# تفسیر خیر کثیر

پشتو ترجمه

# تفسیر ابن کثیر

مؤلف: حافظ عمادالدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیرالدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری

مترجمین: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم، وعبدالکریم صدیقی وقاری امیرنواز

## جلد نمبر ۲

**تسهیلات از شاه فیصل**

① د قرآنی آیاتونو ټکی په ټکی او روانه ترجمه
② داحادیثو تخریج
③ د فقهی مسئلو کښې مسلک حنفی وضاحت
④ مناسب عنوانات ورکول

خوروونکي

فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم : تفسیر خیر کثیر ترجمه تفسیر ابن کثیر
مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری
خورونکي : فیصل کتب خانه محله جنگی
موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا
مکتبه روغانیول جلال آباد
مکتبه رحیمی خوست
نعمت کتب خانه کابل
انتشارات علامه تفتازانی هرات و کابل
صداقت کتب خانه قندهار و کابل
قدرت کتاب فروشی کابل ننګرار
علمی کتب خانه ګردیز
مکتبه علمیه اکوړه ختك
دینی کتب خانه تیمرګره ره
فلاح کتب خانه جلال اباد
مکتبه فریدیه خوست
دیوبند کتب خانه خوست
جدید رشیدیه کتب خانه کابل
مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
مکتبه نعمانیه غزنی
مکتبه رحمانیه قندهار
امیر حمزه کتب خانه قندهار

# تفسیر خیر کثیر

پشتو ترجمه

# تفسیر ابن کثیر

مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری

مترجمین: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، وعبد الکریم صدیقی وقاری امیر نواز

## جلد نمبر ۲

**تسهیلات از شاه فیصل**

(۱) د قرآنی آیاتونو ټکی په ټکی او روانه ترجمه
(۲) د احادیثو تخریج
(۳) د فقهی مسئلو کښې مسلک حنفی وضاحت
(۴) مناسب عنوانات ورکول

خورولکی

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

| |
|---|
| لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا |
| هرګزنشئ رسيدې تاسوا نیکئ ته اترڈې اچه تاسو خرچ کړنیا خینې دهغه څیزونو نه |
| تاسو هيڅ کله،پوره،نیکئ نشئ حاصلولې اترکومې چې تاسوخپل غوره څیزونه خیرات کړی نه وی |
| تُحِبُّوْنَ ۬ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَیْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِیْمٌ ﴿۹۲﴾ |
| اچه ستاسوخوښ وی|اوهغه چه خرچ کوئی تاسوا د څه څیزنه انوبیشکه الله ا په هغې خبردې |
| ........................ او هرڅیز چې تاسوخیرات کوئ نو هغه الله جل شانه ته ښه معلوم دی |

قوله تعالى: لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۬

**دالله ﷻ لار کښې دې دخوښې څیز صدقه کړې شي:-** عمرو بن میمون ؒ وائی چه د " بر " (نیکئ) نه دلته مراد جنت دې یعنی کومې پورې چه تاسو خپل خوښ څیز دالله ﷻ لارکښې خرچ نکړنی نوهیڅ کله به جنت ته داخل نشئ.

**د ایت په نزول د ابوطلحه ؓ باغ صدقه کول:-** انس بن مالك ؓ نه روایت دې چه په ټولو انصاروکښې ابوطلحه ؓ د ټولو نه زیات مالدار وو.هغه ته په خپل ټول مال کښې بیرحاء نومې باغ ډیر زیات خوښ وواودامسجد نبوی ﷺ ته مخامخ وو.رسول الله ﷺ به اکثر دې باغ ته تلو. او ددې د کوهی خوږې اوبه نې څکلې. هرکله چه دا پورتنې آیت نازل شو نو ابوطلحه ؓ حاضر شو او رسول الله ﷺ ته نې عرض اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! الله ﷻ داشان فرمائی اوماته د ټولو نه زیات خوښ دا بیرحا نومې باغ دې. نو زه دا (باغ) په دې امید د الله ﷻ لار کښې صدقه کوم چه کومه نیکی الله ﷻ سره ده هغه خما دپاره اولیکی.نو رسول الله ﷺ تاسو ته اختیار دې چه څنګه مناسب ګنړی نودا تقسیم کړئ. رسول الله ﷺ خوشحاله شو او وې فرمائیل چه واه واه دا ډیره فائدمنده سودا ده. ددې نه به خلقو ته ډیره فائده اورسی.بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه خما رائې دا ده چه ته دا باغ په خپلو رشته داروکښې تقسیم کړې.ابو طلحه ؓ عرض اوکړو چه ډیره ښه ده. اوبیا داباغ ابوطلحه په خپلو رشته دارو او د تره خامنو کښې تقسیم کړو. (مسند احمد، بخاری ومسلم). ([1])

**د عمر ؓ په ایت عمل کول:-** بخاری اومسلم شریف کښې راغلی دی چه یوځل عمر فاروق ؓ هم د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو اوعرض نې اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! خما د ټولو نه زیات خوښ اوبهترین مال هغه دې کوم چه خیبر کښې ماته زمکه ملاؤ شوې وه. ( څه هغه دالله ﷻ لار کښې صدقه کوم). تاسو اوفرمائې څه اوکړم ؟رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اصل زمکه خان سره اوساته اوددې پیداوار او میوې د الله ﷻ لار کښې وقف کړه. ([2])

**د عبدالله بن عمر ؓ په ایت عمل:-** عبدالله بن عمر ؓ فرمائی چه هرکله څه به د تلاوت دوران کښې دې پورتنی آیت ته اورسیدم نو ما خپل مال او جائید کښې سوچ او فکر اوکړو.خوماته د خپلې رومی وینځې نه زیات خوښ څیز بل نه وو. نوما هم هغه د الله ﷻ دپاره آزاده کړه.(خما په زړه کښې ددې دومره محبت دې چه) که ما د الله ﷻ لار په کښې خرچ کړې څیز واپس اخستې شو. نوما به دا وینځه ضرور اخستې وې. (مسندبزار). ([3])

---

[1]) احمد: ۳/۱٤۱،صحیح بخاری کتاب الزکاة باب الزکاة علی الاقارب: ۱٤٦۱،صحیح مسلم: ۹۹۸،موطأ امام مالک: ۲/۵۹۵)

[2]) صحیح بخاری کتاب الوصایا باب الوقف کیف یکتب: ۲۷۷۲، صحیح مسلم: ۱٦۳۲، نسائی: ۳٦۳۳)-

[3]) مسند احمد بزار)-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كُلُّ الطَّعَامِ | كَانَ | حِلًّا | لِّبَنِيٓ إِسۡرَآءِيلَ | إِلَّا مَا | حَرَّمَ |
| ټول دخوراک څیزونه | وو | حلال | دپاره دبني اسرائیلو | ماسوا د هغې نه | چه حرام کړې وو |

ټول څیزونه(چې مسلمانانو دپاره حلال دی هغه) بني اسرائیلو دپاره هم حلال وو| مګر کوم چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِسۡرَآءِيلُ | عَلَىٰ نَفۡسِهِۦ | مِن قَبۡلِ | أَن تُنَزَّلَ ٱلتَّوۡرَىٰةُ |
| اسرائیل (یعقوب علیه السلام) | په خان خپل باندې | مخکښې ددې نه | چه نازل شوې وو توراة |

یعقوب عليه السلام پخپل خان حرام کړی وو| (او دا خبره) دهغه وخت ده چې تورات لانه وو نازل شوې|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُلۡ | فَأۡتُواْ | بِٱلتَّوۡرَىٰةِ | فَٱتۡلُوهَآ | إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴿٩٣﴾ | فَمَنِ |
| ورته اووایه (اې محمد ﷺ) | نو راوړئ | توراة | او لولئ هغه | که یئ تاسو رښتني | نو هغه چاچه |

ورته اووایه چې ښه تاسو تورات راوړئ| او هغه اولولئ| که تاسو رشتونی یئ| ............ نو د دې نه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ٱفۡتَرَىٰ | عَلَى ٱللَّهِ | ٱلۡكَذِبَ | مِنۢ بَعۡدِ | ذَٰلِكَ | فَأُوْلَٰٓئِكَ | هُمُ | ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٩٤﴾ |
| اوتړل | په الله پورې | دروغ | روستو | ددې نه | نو هم هغوی | په حقیقت کښې | ظالمان دی |

پس چه هم څوک په الله باندې دروغ اووائی| ............نو همدغه خلق ظالمان دی|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلۡ | صَدَقَ ٱللَّهُ | فَٱتَّبِعُواْ | مِلَّةَ إِبۡرَٰهِيمَ | حَنِيفٗا |
| اووایه اې محمد ﷺ | چه رښتیا ویلی دی الله | نو روان شئ تاسو | په طریقه دابراهیم | یومخیزی |

(اې پیغمبره) اووایه چې الله تعالی څه وئیلی دی هغه رښتیادی| نو تاسو یومخیز شئ| او دابراهیم په لار روان شئ

| | | |
|---|---|---|
| وَمَا كَانَ | مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴿٩٥﴾ | |
| او نه وو هغه | دمشرکانو نه | |

اوهغه دمشرکانو څنی نه وو|

**قوله تعالی: كُلُّ ٱلطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسۡرَٰٓءِيلُ عَلَىٰ نَفۡسِهِۦ**

**دیهودو سوالونه اود نبی علیه السلام جوابونه** امام احمد رحمه الله په خپل مسند کښې د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت نقل کوی چه یو خل څه یهودیان د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو. او وې وئیل چه مونږ تاسونه څه د داسې خبرو تپوس کوو چې د نبی نه سوا دهغې معلومات چا ته نشته دې. رسول الله ﷺ د هغې جوابونه ورکړل. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه څه تپوس کونی اوکړئ خو تاسو الله ﷻ حاضرناظر اوګنړئ اوماسره هغه شان وعده اوکړئ لکه څنګه چه یعقوب عليه السلام دخپلو خامنونه اخستې وه ، که ما تاسو ته صحیح صحیح جوابونه درکړل نو تاسو به اسلام راوړئ او زما تابع کیږئ به. هغوی قسمونه اوخوړل چه مونږ ته دا خبره منظور ده. که تاسو صحیح صحیح جواب راکړو نو مونږبه اسلام قبلوو. اومونږ به رسول الله ﷺ فرمانبردا رجوړیږو. بیا ئې اووئیل چه مونږ ته څلور خبرې اوښایه ① یعقوب عليه السلام په خپل خان کوم خوراك حرام کړې وو. ② دسړی او ښځې اوبه څنګه وی ( او ولې) کله هلك پیدا کیږی اوکله جینئ؟ ③ او دنبی امی خوب څنګه دې ④ فرښتو کښې کومه یوفرښته دوی ﷺ ته وحی راوړی ؟ دې نه پس رسول الله ﷺ دوباره دهغوی نه قسمونه واخستل . اوبیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ① یعقوب عليه السلام سخت بیمار شو نو نذر ئې اومنلو که الله ﷻ ماته شفا راکړی نو څه به هغه څیز نه خورم چه زما

زيات خوښ دي. هركله چه روغ شو نو د اوښ غوښه او پئ ئې پريښودل. ② دسړي اوبه سپين رنګ والا او ټينګې وي او دښځې اوبه زيړرنګې او نرئي وي. دواړو کښې چه کوم يو برې مومي (او رحم ته ئې مني وړاندې لاړه شي) نونر يا ماده اولاد پيداکيږي. اوپه شکل او شباهت کښې هم هغه شان وي ③ ددې نبي امي سترګې اوده وي او زړه ئې ويخ وي ④ ما ته هغه فرښته وحی راوړي کومې چې به ټولو نبيانو ته وحی راوړه يعني جبريل ؑ .نوبس په دې باندې په چغو شو او وې وئيل که چرې ستاسو د وحی راوړونکې بله فرښته وې نو مونږ به ستاسونبوت منلې وې او عذر به پاتې نه وو. د هر سوال جواب ورکولو په وخت کښې به رسول الله ﷺ هغوئ ته قسم ورکولو او دهغوئ نه به ئې تپوس کولو او هغوئ به اقرارکولو چه آو جواب صحيح دي. دهغوئ باره کښې دا آيت (مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ) نازل شو (1)

**د ايت په شان نزول کښې بل روايت**:- اوبل روايت کښې دي چه اسرائيل ته د عرق النساء بيماری وه. او په دې کښې دهغوئ پنځم سوال هم دې چه دا رعد څه څيز دې؟ رسول الله ﷺ جواب ورکړو چه دالله تعالی فرښتو کښې يو فرښته ده چه په وريځو باندې مقرر ده،اودهغې لاس کښې د اوريو کوړه ده چه هغې سره وريځې دالله ﷻ د حکم مطابق شړي. او د ګړزاری آواز هم دهغې دې.د " جبريل " نوم آوريدو سره هغوئ اووئيل چه دا خودعذاب او جنګ فرښته ده. اودا خوځمونږ دښمنه ده.که د پيداوار او بارانونو والا فرښته ميکائيل ؑ ستاسو ملګرې وه نو مونږ به منلې وې. (2)

**په سابقه ايت اودې کښې مناسبت**: ①د يعقوب ؑ په شان دهغوئ اولاد هم وو اوهغوئی به داوښ غوښې نه هم پرهيز کولو. ددې آيت مخکښې آيت سره يومناسبت خو دادې چه څنګه اسرائيل ؑ خپل خوښ څيز نذر کړو هم دا شان تاسوهم کوئی.خو ديعقوب ؑ شريعت کښې ددې طريقه دا وه چه خپل خوښ او محبوب څيز به ئې دالله ﷻ په نوم پريښودو. اوځمونږ شريعت کښې دا طريقه نه ده بلکه مونږ ته دا فرمائيلې شوی دی چه مونږ خپل خوښ څيزونه دالله ﷻ په نوم خرچ کړو.لکه فرمائی چه ﴿وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ﴾ اوفرمائی چه ﴿وَيُطْعِمُوْنَ الطَّعَامَ عَلٰى حُبِّهٖ﴾ د محبت او خوښې نه باوجود هغوئ خپل خوښ څيزونه ځمونږ لار کښې خرچ کوی. او مسکينانو ته خوراك ورکوی.

②بل مناسبت داهم دې چه مخکښې آيت د نصرانيانو رد وو او دې آيت کښې د يهودو رد دې. د هغوئ رد کښې د عيسی ؑ د پيدائش ريښتونې واقعه بيان شوې وه او دهغوئ د عقيدې رد ئې کړې وو او دلته دنسخ بيان کيږی اودهغوئ د باطلو عقيدو رد کيږی. دهغوئ کتاب کښې صفا موجود وو چه کله نوح ؑ د کشتئ نه په اوچه کوز شو نو په هغوئ ؑ باندې د ټولو ځناورو خوراك حلال وو ، بيا يعقوب ؑ په خپل ځان د اوښ غوښه او د اوښ پئ حرام کړل.اود هغوئ اولاد هم داحرام ګڼړل.نو په تورات کښې هم ددې حرمت نازل شو.دا شان نور هم څه څيزونه بيان شو،دا نسخ نه ده نو نورڅه دې ؟

قوله تعالى: ﴿مِنْ قَبْلِ اَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرٰىةُ﴾

**په شريعتونو کښې فروعی اختلافات شته**:- ①د آدم ؑ د شا اولاد خپلو کښې د رور او خور نکاح شروع کښې جائز وه خو دهغې نه پس حرامه شوه ② آزادو ښځو باندې وينځې سره نکاح کول د ابراهيم ؑ شريعت کښې مباح وو.پخپله ابراهيم ؑ ساره رضي الله عنها باندې هاجره رضي الله عنها راوستې وه. خوبيا تورات کښې ددې نه منع اوشوه. ③دوه خويندوسره په يو وخت کښې نکاح کول د يعقوب ؑ په زمانه کښې جائز وو.ديعقوب ؑ په خپل کور کښې په يووخت کښې دوه سکه خويندې وې. خوبيا تورات کښې داحرام شو. هم دې ته نسخ وائی.دا يهوديان ګوری او لولی ئې ليکن بيا دنسخ نه انکار کوی او انجيل اوعيسی ؑ نه منی. اودهغوئ نه پس خاتم المرسلين سره هم داسې کوی.

---

(1) احمد : ١ / ٢٧٨ ، وسنده حسن)–

(2) احمد : ١ /٢٧٤ ، ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الرعد: ٣١١٧، وسنده حسن)–

**قوله تعالى:: قُلْ صَدَقَ اللّٰهُ فَاتَّبِعُوْا مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا**

**د یهودیانو په دین ابراهیمی باندې دعوی:-** نو دلته فرمائی چه دتورات نازلیدو نه مخکښې ټول خوراکونه حلال وو سوادهغې نه چه کوم اسرائیل په خپل ځان حرام کړي وو. تورات راوړئ او وې لولئ په هغې کښې موجود دی، بیا ستاسو دا بهتانونه او افتراګانې چه الله ﷻ خمونږ دپاره همیشه د خالی ورخ د اختر مقرر کړې ده او مونږ نه ئې وعده اخستې ده چه مونږ به همیشه د تورات عاملان یو. او بل نبی به نه منو. داځومره ظلم او جبر دې، نو د دې ټولو خبرو باوجودستاسو دا طریقه یقیناً د ظالمانو ده.

**په دین ابراهیمی څوک قائم دی؟:-** الله ﷻ ربښتونې خبر ورکړو، دین ابراهیمی هغه دې چه کوم قران پاك بیانوی. چې تاسو د دې کتاب او د دې نبی تابعداری نه کوئی، نه ددې نبی ﷺ نه څوك اعلی نبی شته دې اود دوی د شریعت نه د بل چا شریعت زیات واضح هم نشته دې. لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿قُلْ اِنَّنِيْ هَدٰىنِيْ رَبِّيْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ الخ. انې نبی ! تاسو اووائې چه ما ته خما رب نیغه لار اوخودله د ابراهیم حنیف موحد مضبوط دین. اوبل ځائې کښې فرمائی چه مونږ تاته وحی اولیږله چه د ابراهیم حنیف موحد دین تابعداری اوکړه.

| |
|---|
| اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِيْ |
| بیشکه \| اولنئ کوټه (عبادتخانه) \| چه جوړه شوه \| دپاره د خلقو \| خامخا هغه ده |
| بیشکه د ټولونه اول کور چه د خلقو د عبادت دپاره مقرر شوې وو \| هغه دې |
| بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا وَّهُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝٩٦ فِيْهِ اٰيٰتٌ |
| چه زمکه کښې ده \| چه مبارکه ده \| او هدایت دې \| دپاره د خلقو \| په دې کښې \| نښې دی |
| کوم چې په مکه کښې دې \| هغه دبرکت ځائې دې \| او دخلقو دپاره دهدایت (مرکز دې) \| په دې کښې |
| بَيِّنٰتٌ مَّقَامُ اِبْرٰهِيْمَ ۚ وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ؕ |
| ځرګندې \| ځائې د عبادت دې \| د ابراهیم \| او هغه څوک \| چه داخل شو دې ته \| شو په امن کښې |
| ځرګنده نښې دی \| او د ابراهیم ؑ د عبادت ځائې دې \| او چې څوک دې ته داخل شی \| نو هغه په امن شو |
| وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ |
| او حق دې د الله \| په خلقو باندې \| حج کول ددې کور \| هغه څوک چه طاقت لری \| دې کور ته |
| او د الله په خلقو باندې دا حق دې \| چه ددې کور زیارت دې کوی \| څوک چې دې ته د تلو طاقت لری ..... |
| سَبِيْلًا ؕ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ۝٩٧ |
| د لارې \| او هغه چا چه \| انکار اوکړو \| نو بیشکه الله \| بې پرواه دې \| د مخلوقاتو نه \| |
| ....... او څوک چې انکار اوکړی \| نو (هغه ته دې معلومه وی چې) الله د خلقونه بې نیازه دې \| |

**قوله تعالى:: اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ**

**په مخ د زمکې اولنئ عبادتخانه:-** (مسجد حرام) یعنی د خلقو د عبادت د قربانئ، طواف، مونځ او اعتکاف وغیره دپاره د الله ﷻ کور دی اود دې بانی ابراهیم ؑ وو. او د هغه د تابعدارئ دعوی یهودیان او نصاری او مشرکین او ټول مسلمانان کوی. هغه دا ده چه د ټولونه مخکښې مکه جوړه شوې ده. هم دې خلیل الله او دحج دپاره رومبې آوازکونکې دې، بیا تعجب او افسوس دې په دوی باندې

چه دملت حنفي دعوی کوي اوددې کوراحترام نه وي،دلته حج دپاره نه رازي بلکه خپلې قبلې اوکعبې بیلې بیلې جوړوي.ددې کورپه جوړولو کښې برکت اوهدایت دې اوهغه دټول جهان والودپاره دې.

**د بیت الله او بیت المقدس تاریخ بناء:**-ابوذر ؓ رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه د ټولو نه مخکښې کوم یو جمات جوړ شوی دې ؟ نورسول الله ﷺ اوفرمائیل مسجد ،تپوس ئې اوکړو بیا کوم یو ؟رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه بیت المقدس، تپوس ئې اوکړو چه ددې دوارو په مینځ کښې څومره وخت دې ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه څلویښت کاله. بیا تپوس کوی چه بیا کوم یو ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه چرته هم د مونځ وخت شي نو مونځ اداکوه ټوله زمکه جمات دې(مسند احمد وبخاري ومسلم). (١)

**د کورونو په اعتبار سره خانه کعبه اوله نه ده:**-علی ؓ فرمائی چه کورونه خومخکښې ډیر وو لیکن خاص دالله ﷻ دعبادت دپاره هم دا کور رومبې دې. یو سړي د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه په زمکه دټولو نه رومبې کورهم دا جوړشوي دې نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه نه ،خو برکتونو او مقام ابراهیم او امن والا کورهم دا رومبې کور دې.دبیت الله شریف د جوړیدو پوره کیفیت د سورة بقره آیت ﴿وَعَهِدْنَآ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ﴾ تفسیر کښې تیر شوي دې.هلته دې اوکتلې شي. دلته د دوباره بیان ضرورت نشته.

**د اولنی کور به حق کښې د سدی قول:**- سدی ؒ وائی چه د ټولو نه مخکښې په مخ د زمکې همدا کور جوړ شو لیکن صحیح قول د علی ؓ دې او هغه حدیث کوم چه په بیهقي کښې دې په هغې کښې دی چه آدم ؈ اوحوا علیها السلام د الله ﷻ په حکم بیت الله جوړ کړو اوالله ﷻ اوفرمائیل چه ته د ټولو نه رومبی انسان ئې اودا دټولو نه رومبنی کور دې (٢).

**د ابن کثیر تبصره:**-دا حدیث د ابن لهیعه نه روایت دې او هغه ضعیف راوی دې . ممکن ده چه دا د عبدالله ابن عمر ؓ خپل قول وی.

قوله تعالی: لَلَّذِي بِبَكَّةَ

**مکې ته بکه ولې وائی؟:**-اودیرموك په ورځ چه هغوئ ته کومې دوه بوړنې د ا هل کتاب ملاؤ شوې وې په هغې دا لیکلې شوی وو.دمکې نوم مشهورنوم دې اودلویولویو جابرانو څټونه دلته مات شوی وو.او هرلوئې کونکې دلته پاتې راغلې وو.ددې وجې دې ته بکه اووئیلې شو.او ددې وجې هم دلته به د خلقو رش وو. اودا به هر وخت ډکه وه. او ددې وجې هم چه دلته به خلق یوځائې کیدل. تردې چه کله به ښځو مخکښې مونځ کولو.اوکله به سړو روستو مونځ اوکړو. او بل ځائې کښې به داسې نه کیدل.

**دمکې نور نومونه:**-ابن عباس ؓ فرمائی چه د فج نه تنعیم پورې مکه ده. او دبیت الله نه تر بطحاء پورې بکه ده.بیت الله او مسجد ته بکه وئیلې شوې ده. بیت الله او ددې چاپیرچل ځائې ته بکه او باقی ښار ته مکه وئیلې شوې ده. ددې نور هم ډیر نومونه دی.لکه بیت العتیق ، بیت الحرام،بلد الامین ، بلد المامون،ام رحم،أم القری،صلاح ،عرش،قادس ، مقدس،ناسبه رانس ،حاطمه ، کوثاء ، البلده ، النبیه ، الکعبه .

قوله تعالی: فِيهِ آيَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ مَّقَامُ إِبْرَٰهِيمَ

**په مسجد حرام کښې ښکاره نښې:**- په دې کښې ښکاره نښې دی چه ددې د عظمت او شرافت دلیل دی .اودهغې نه ښکاره ده چه د خلیل الله بناء هم دا ده.په دې کښې مقام ابراهیم هم دې چه په هغې کښې به اسماعیل ؈ اودریدو او ابراهیم ؈ ته به ئې کاڼړی ورکول او هغوئ دکعبې دیوال اوچتولو. دا خو مخکښې د بیت الله شریف دیوال سره لګیدلې وه. لیکن عمر ؓ د خپل خلافت په وخت کښې دا لرې شان لرې کړو اومشرق طرفته ئې کړو چه طواف په ښه طریقې سره کیږي.اوچه کوم خلق طواف نه

(١) احمد : ١٥٠/٥ ، بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب رقم: ١٠ ، ح/٣٣٦٦ ، صحیح مسلم: ٥٢٠ ، نسائی: ٦٩٠ ، ابن ماجة: ٧٥٣)-

(٢) دلائل النبوة للبیهقي : ٤٤/٢)-

پس مقام ابراهيم سره مونځ اداکوی چه هغوئ ته تکليف نه وی اونه دلته رش جوړشي. دې طرفته دمونځ کولو حکم شوې دې . اوددې متعلق پوره تفسير په آيت ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ کښې تير شوې دې. ( فالحمدلله ).

**د بينات تفسير**:-ابن عباس ﷺ فرمائی چه آيات بينات نه يو مقام ابراهيم دې باقي نور دی.مجاهد ﷺ فرمائی چه دخليل الله ﷺ د قدمونو نښې چه په مقام ابراهيم باندې وی ، دا هم آيات بينات دی. ټول حرم لره اوحطيم او ټول ارکان دحج دمقام ابراهيم په تفسير کښې مفسرينو داخل کړی دی

**قوله تعالى**::وَمَن دَخَلَهُ كَانَ آمِنًا

**د امن ځائي** :-دې ته په راتلو سره راتلونکی ته امن ملاويږی. دجاهليت په زمانه کښې هم مکه د امن ځائي وو ، که چابه د پلار قاتل هم دلته اوموندل نو هغه ته به ئې څه نه ونيل. ابن عباس ﷺ فرمائی چه بيت الله پناه غوښتونکوته پناه ورکوی. ليکن ځائې او خوراك څکاك نه ورکوی. او بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا آمِنًا﴾ الخ. آيا دوی دا نه ګوری مونږ حرم د امن ځائې جوړکړو. او بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَآمَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ﴾ الله دوی ته د ويرې نه امن ورکړو. نه صرف انسان ته امن دې بلکه ښکارپره کول ،هغه ويرول ، هغه د هغه ژالې يا دهغه د ځائې نه اخوا کول هم منع دی.ددې ونې کټ کول ،دلته وانبه راوښکل هم ناجائز دی. په دې مضمون کښې ډير احاديث وغيره پوره وضاحت سره دآيت ﴿عَهِدْنَا﴾ الخ تفسير کښې سورة بقره کښې تير شوی دی.

**دنبی ﷺ مکې سره مينه**:- مسند احمد ،ترمذی ،او نسائی کښې حديث دې اوهغې ته امام ترمذی ﷺ حسن صحيح وئيلی دې چه رسول الله ﷺ د مکې بازار او حروره کښې ولاړ وو او وې فرمائيل ائې مکې!ته الله ﷺ ته د ټولې زمکې نه بهتره او خوښه ئې .که څه تانه په زبردستئ سره نه شوم ويستلې نو ما به ته چرې هم نه وې پريښودې.([1])

**د امن بله معنى**:-اوددې آيت يو معنی دا هم ده چه هغه د جهنم نه بچ شو. د بيهقی يو مرفوع حديث کښې دی چه څوك بيت الله ته داخل شونو هغه نيکئ کښې راغلو اوګناهونو نه لرې شو.او د هغه ګناهونه اوبخښلې شو. ليکن د دې يو راوی عبدالله بن مومل قوی نه دې.

وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ

**دحج فرضيت** :-د آيت آخری حصه د حج د فرضيت دليل دې. بعضې وائی چه ﴿وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ﴾ والا آيت دليل د فرضيت دې. ليکن اوله خبره زياته ظاهره ده. ډيرو احاديثو کښې راغلی دی .چه حج د اسلام په ارکانو کښې يو رکن دې. ددې په فرضيت باندې د مسلمانانو اجماع ده.

**د حج يوځل فرضيت** :اودا خبره هم ثابت. ده چه ټول عمر کښې يو ځل په مالدار مسلمان باندې حج فرض دې. رسول الله ﷺ خطبه کښې اوفرمائيل چه ائې خلقو اتاسو باندې الله ﷺ حج فرض کړې دې تاسو حج کوئی.يو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه يارسول الله ﷺ! آيا هر کال ؟ نو رسول الله ﷺ خاموش شو.هغه درې ځل تپوس اوکړو رسول الله ﷺ اوفرمائيل که چرې آو کړې وې نو دا به فرض شوې وو او بيابه تاسو دا نشو ادا کولې. چه څه اونه وايم نودهغې باره کښې تاسو تپوس مه کوئی.ستاسونه مخکښنوخلقو به هم ډير تپوسونه کول او خپلونبيانو عليهم السلام سره به ئې اختلاف کولو اوپه دې وجه هغوئ هلاك شو. څما احکام دطاقت مطابق پوره کوئی.او چه د کوم څيز نه مو.څه منع کړم نو د هغې نه منع شئ. ( مسند احمد ).([2])

---

[1]) احمد: ٣٠٥/٤، ترمذی کتاب االمناقب باب في فضل مکة : ٣٩٢٥، وهو صحيح ابن ماجة: ٣١٠٨)۔

[2]) صحيح مسلم کتاب الحج باب فرض الحج فی العمرة : ١٣٣٧، نسائی: ٢٦٢٠، احمد: ٥٠٨/٢، )۔

دصحيح مسلم شريف حديث كښې دومره زياتې دی چه داتپوس كونكې اقرع بن حابس ﷺ وو او رسول الله ﷺ جواب كښې دا فرمائيلی وو چه په عمر كښې يو ځل فرض دې اوبيا نفل. (١)

يوروايت كښې دی چه هم ددې سوالونو جواب باره كښې آيت ﴿لَا تَسْـَٔلُوا عَنْ أَشْيَآءَ﴾ يعنى د زياتو تپوسونو نه بچ اوسی: ( مسنداحمد ) (٢)

يوروايت كښې دی كه ما آوكړې وې نوهر كال حج فرض شوې وې نوتاسو به دا نشو ادا كولې. او بيا به عذاب نازليدو. ( ابن ماجه). (٣)

آو د يو سوال كونكی په تپوس باندې رسول الله ﷺ حج تمتع هميشه دپاره جائز كړې وو (٤)

يو بل حديث كښې دی چه رسول الله ﷺ حجة الوداع كښې امهات المومنين يعنى خپلو بيبيانو ته فرمائيلی وو چه حج اوشو اوس كور نه مه اوځئ (٥)

پاتې شو استطاعت او طاقت نو هغه كله انسان ته په خپله بغير د ذريعې نه حاصل وی او كله د څه بلې واسطې سره وی. لكه څنګه چه د احكامو كتابونو كښې ددې تفصيل موجود دې.

ترمذی كښې دی چه يو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه يارسول الله ﷺ! كوم يو حج افضل دې ؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په هغې كښې قربانۍ كثرت سره وی .او لبيك زيات اووئيلې شی.

**قوله تعالى: ﴿مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾**

**دسبيل مطلب**:- يو بل سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه يارسول الله ﷺ د سبيل نه څه مراد دی ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه توښه ، د خوراك څكاك لاتق خرچ او سورلی. په دې حديث كښې يو راوی ضعيف دې مګر د حديث متابعت نورو سندونو سره هم شوې دې. د ډيرو صحابه كرام ﷺ او مختلفو سندونو سرمروی دې چه رسول الله ﷺ د ﴿مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾ تفسير كښې زاد راحله يعنى توښه او سورلی خودلی ده.(٦)

**دحج په ادا كولو كښې تلوار كول**:- دمسند يو بل حديث كښې دی چه رسول الله ﷺ فرمانی چه د حج فرض زر ادا كوئی . معلومه نه ده چه څه راپيښ شی.(٧) ابو داود وغيره كښې دی چه د حج اراده كولو والا دې زر خپله اراده پوره كوی. (٨)

**دطاقت نه كوم طاقت مراد دې؟**: ① ابن عباس ﷺ فرمائی چه چا سره درې سوه درهم وی هغه طاقت والا دې.② عكرمه ﷺ فرمائی چه ددې نه مراد صحت جسمانی دې.

**قوله تعالى: ﴿وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ﴾**

**دحج نه انكار كفردې**:- بيا فرمائی چه څوك كفر اوكړی يعنى د حج د فرضيت انكار اوكړی . عكرمه ﷺ فرمائی چه كله دا آيت نازل شو چه د دين اسلام نه سوا چه كوم سړې بل دين اختياركړی نوهغه قبول نه دې. نو يهوديانو اووئيل چه مونږ هم مسلمانان يو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل بيا په مسلمانانوباندې حج

---

(١) ابوداود: كتاب المناسک باب فرض الحج : ١٧٢١، وهو حسن ، نسائى: ٢٦٢١، ابن ماجة: ٢٨٨٦ .)-

(٢) ابن ماجة ابواب المناسک باب فرض الحج : ٢٨٨٥، وهو صحيح)-

(٣) صحيح بخارى كتاب الشركة باب الاشتراک فى الهدى والبدن: ٢٥٠٥، صحيح مسلم: ١٢١٨)-

(٤) ابوداود: كتاب المناسک باب فرض الحج : ١٧٢٢، وهو حسن ، )-

(٥) ترمذى كتاب التفسير باب من سورة آل عمران : ٢٩٩٨، ابن ماجة: ٢٨٩٦،)-

(٦) ابن ماجة: كتاب المناسک باب ما يوجب الحج : ٢٨٩٧،)-

(٧) احمد: ٣١٤/١ ،)-

(٨) ابوداود:٢٢٥/١، كتاب المناسک باب فرض الحج باب رقم: ٦:ح/ ١٧٢٢، وهو حسن ، )-

فرض دي. نو تاسو هم حج کوئی ،نو هغوئ ښکاره انکار اوکړو نو په دې باندې دا ایت نازل شو چه ددې نه انکار کولو والا کافر دې. او الله ﷻ د ټول جهان والو نه بې پرواه دې.

**دفرض حج نه کولو وعید:-** علی ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ صحابه کرامو ؓ ته اوفرمانیل چه کوم سړې په خوراك څکاك آو سورلنی باندې قدرت لری او دومره مال ورسره وی چې حج کولې شی.او بیا هم دې حج اونکړی او ده ته مرګ راشی نو دده مرګ به په یهودیت یا نصرانیت باندې وی. الله ﷻ فرمائی چه دالله ﷻ دپاره په خلقو حج بیت الله فرض دې ، په هغه چا چه د دې لارې طاقت لری.اوچه څوك کفر کوی. نو الله ﷻ د ټول عالم نه بې پرواه دې. (١) ددې راوی باندې هم کلام شوې دې.

عمر فاروق ؓ فرمائی چه څوك طاقت لری او حج اونکړی نو دې به یهودی مری یا نصرانی.ددې سند بالکل صحیح دې.(حافظ ابوبکر اسماعیلی)مسند سعید بن منصور کښې دی چه عمرفاروق ؓ اوفرمانیل چه خما قصد دې چه خه خلق مختلفو ښارونو ته اولیږم ، او هغوئ اوګوری چه کوم خلق مال لری او حج نه کوی نو په هغوئ باندې جزیه اولګوی څکه چې هغوی مسلمانان نه دی. (٢)

| |
|---|
| قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَكۡفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَٱللَّهُ شَهِيدٌ |
| اوووایه انې اهل کتابو ا ولې تاسوانکارکوئی ا د آیتونو دالله نه ا اوالله لیدونکې دې |
| (انې پیغمبره) ورته اووایه چې انې اهل کتابو تاسوولې دالله پاک دحکمونو نه انکار کوئ ا .......اوالله پاک |
| عَلَىٰ مَا تَعۡمَلُونَ ۝ قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَصُدُّونَ |
| دهغه کارونو ا چه تاسو ئې کوئی ا اووایه (انې محمد ﷺ) ا انې اهل کتابو ا ولې منع کوئی تاسو |
| ستاسوټول کارونه وینی ګوری ا ته ورته اووایه چې انې اهل کتابو!تاسو ولې د الله تعالی د لاز نه |
| عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ مَنۡ ءَامَنَ تَبۡغُونَهَا عِوَجٗا وَأَنتُمۡ |
| دلارې دالله نه ا هغه څوک چه ایمان ئې راوړې دې التونی تاسو هغې کښې ا کوږوالې ا حال دا چه تاسو |
| هغه څوک منع کوئ چا چه ایمان راوړې دې ا وتاسو په هغې کښې کوږوالې لټوئ ا اوحال دادې |
| شُهَدَآءُۗ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُونَ ۝ |
| ګواهان یئ (دهغې په نیغوالی) ا او نه دې الله ا ناخبره ا دهغه کارونونه ا چه تاسو ئې کوئی |
| چې تاسو پخپله (دهغې دحق کیدو) ګواهان یئ ا اوالله پاک ستاسو دکارونونه غافل نه دې |

**قوله تعالی:: قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَكۡفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ**

**دیهودیانو د اسلام ددین نه انکار :-**اهل کتاب کافرانو ته الله ﷻ زورنه ورکوی چا چې به حق سره دښمنی کوله. او د الله ﷻ دآیتونونه به ئې انکارکولو. او خلق به ئې هم په زوره د اسلام نه منع کول. او ددې باوجود چه هغوئ ته د رسول الله ﷺ د حقانیت علم وو.دمخکښنونبیانوعلیهم السلام پیش ګویانې او بشارتونه دوی سره موجود وو.د رسول هاشمی ، عربی،امی،مکی، مدنی سید اولاد آدم خاتم الانبیاء رسول ارض وسماء ﷺ ذکر د هغوئ په کتابونوکښې موجود وو. بیاهم په خپله بې ایمانئ ولاړ وو. ددې وجې دوی ته الله ﷻ فرمائی چه ماته ښه پته ده چه تاسو خما د نبیانو تکذیب کوئی. او تاسو خاتم النبیین ته څومره تکلیف رسوئی. اوخما د مخلص بندګانو په لارکښې تکلیفونه پیدا کوئی.څه ستاسو

---

(١) ترمذی کتاب الحج باب ماجاء فی التغلیظ فی ترک الحج: ٨١٢)-

(٢) ددې سند منقطع دې حسن بصری رحمه الله سره ددوی ملاقات ثابت نه دې)-

د اعمالو نه غافله نه یم. د ټولو خرابو بدله به درته ملاویږي. په هغه ورځ به ستاسو نیول وي چه په کومه ورځ به هیڅ سفارش کونکي او مددګار نه وي.

| |
|---|
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ  اٰمَنُوْۤا  اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا  مِّنَ الَّذِيْنَ |
| اني هغه کسانو\| چه ایمان مو راوړي دي \|که چرې تاسو خبره اومنله دیوډلي\|دهغه کسانو نه |
| اني دایمان خاوندانو که تاسوداهل کتابود یوې ډلي تابعداری اوکړه \| ............. |
| اُوْتُوا الْكِتٰبَ  يَرُدُّوْكُمْ  بَعْدَ  اِيْمَانِكُمْ |
| چه ورکړي شوې دي ورته کتاب\|نوواپس به کړي تاسو\|روستو\|د ایمان راوړلو ستاسو نه |
| ........................نو تاسو به ستاسود ایمان راوړو نه پس بیرته کافران کړي |
| كٰفِرِيْنَ۝  وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ  وَاَنْتُمْ  تُتْلٰى عَلَيْكُمْ |
| حالت دکفر ته\|او څنګه کفرکوئي تاسو\|اوحال داچه یئ تاسو\| چه لوستلي کیږي په تاسو باندې |
| .......... او تاسوبه په داسې حالت کښې کفر څنګه اوکړئ چه تاسو ته د الله تعالى (د کتاب) |
| اٰيٰتُ اللّٰهِ  وَفِيْكُمْ  رَسُوْلُهٗ  وَمَنْ يَّعْتَصِمْ  بِاللّٰهِ  فَقَدْ |
| آیتونه دالله \|او په تاسو کښې موجود دې\| رسول دالله \| اوچا چه اونیوو \| دین دالله \| نو |
| آیتونه اوروله شي\| او دهغه پیغمبرستاسومینځ کښې موجود دې \|اوچاچې دالله په دین منګولې اولګولې |
| هُدِيَ اِلٰى  صِرَاطٍ  مُّسْتَقِيْمٍ۝ |
| اووخودلې شوه هغه ته\| لاره \| نیغه \| ۰ |
| |
| نو هغه سمه لاره بیا مونده |

قوله تعالى:: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

**داهل کتاب خبرې منل ګمراهي ده:-** الله ﷻ خپلو مومنانو بندګانو ته داهل کتابو او د دې بدظني ډلې نه د منع کیدو فرمائي. څکه چه دا حاسدان د ایمان دښمنان دي. او دعربو رسالت ته دوی په ښه سترګه نه ګوري. لکه بل ځائې کښې فرمائي چه ﴿ وَدَّ كَثِيْرٌ ﴾ دا خلق سوزي اوتاسو د ایمان نه اړوي. تاسو ددوی په دهوکه کښې مه راځئ. تاسو دکفر نه ډیر لرې یئ. خو تاسو خبروئ دالله ﷻ آیتونه په تاسو شپه ورځ لوستلې شي .اود الله ﷻ رسول ﷺ تاسو کښې موجود دې. لکه بل ځائې کښې دی چه ﴿وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُوْنَ﴾ الخ ،تاسو به ایمان ولې نه راوړئ حال دا چې رسول الله ﷺ تاسو الله ﷻ طرفته رابلي. او تاسو سره وعده هم شوې ده.

قوله تعالى:: وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ وَاَنْتُمْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ اٰيٰتُ اللّٰهِ

**د ټولو نه افضل ایماندار:-** حدیث مبارك کښې دی چه رسول الله ﷺ یوورځ خپلو صحابه کرام ؓ نه تپوس اوکړو چه ستاسو په نیز د ټولو نه زیات ایماندار څوك دي ؟ هغوئ اووئیل چه فرښتې.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه هغوئ ایمان ولې نه راوړي ؟ هغوئ ته خو دالله ﷻ وحی راغلې ده. صحابه کرامو اووئیل چه بیا مونږ. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسو ایمان ولې نه راوړئ څه تاسو کښې موجود یم. صحابه کرامو ؓ اووئیل چه رسول الله ﷺ دې په خپله ارشاد اوفرمائي. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ټولو خلقو کښې د ټولو نه د عجیبه ایمان والا هغه دې چه ستاسو نه پس به راځي،هغوئ به کتابونو کښې

وائي اويه هغې به ايمان راوړي(١)(امام ابن كثير ﷫ ددې حديث سند اوددې معنى او مطلب پوره بيان شرح بخاری كښې كړې دې ) فالحمدلله.

قوله تعالى: وَمَنْ يَعْتَصِمْ بِاللّٰهِ فَقَدْ هُدِيَ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ

بيا فرمائي چه ددې باوجود ستاسو دالله ﷻ دين لره مضبوطيا سره نيول او د الله ﷻ په پاك ذات باندې بهروسه اوتوكل ساتل د هدايت سبب دی. دې سره گمراهي لرې كيږی. هم دا د رشد اوهدايت باعث دې او هم دې سره صحيح لار حاصليږی. او دې سره كاميابی اومراد ملاويږی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اتَّقُوا | اللّٰهَ |
| اې هغه كسانو | چه ايمان مو راوړې دې | اووېرېږئ | دالله تعالى نه |

انې دايمان خاوندانو دالله پاك نه داسې وېره كوئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| حَقَّ تُقٰتِهٖ | وَلَا تَمُوْتُنَّ | اِلَّا وَاَنْتُمْ | |
| لكه څنگه چه حق دې ديرې دهغه نه | او مه مرئ تاسو | مگر په دې حال كښې چه يئ تاسو | |

څنگه چې دهغه نه دوېرې حق دې | اوتاسو ته دې په داسې حالت كښې مرگ راشي چه تاسو ..........

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُّسْلِمُوْنَ | وَاعْتَصِمُوْا | بِحَبْلِ اللّٰهِ | جَمِيْعًا | وَّلَا تَفَرَّقُوْا | وَاذْكُرُوْا |
| مسلمانان | اومنگولې اولگوئ | په رسئ (دين) دالله | ټول | اومه مختلف كيږئ | اوياد كړئ |

مسلمانان ئې | او ټول دالله (د دين) رسئ مضبوطه ونيسئ | اوډلې ډلې مه جوړيږئ | او د الله پاك

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نِعْمَةَ اللّٰهِ | عَلَيْكُمْ | اِذْ كُنْتُمْ | اَعْدَآءً | فَاَلَّفَ |
| نعمت دالله | په تاسو باندې | اكله چه وئ تاسو | دشمنان | انومينه ئې پيدا كړه |

دا نعمت ياد ساتئ | چې تاسو ديوبل دشمنان وئ | نو هغه ستاسو د زړونو په مينځ كښې مينه واچوله

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ | فَاَصْبَحْتُمْ | بِنِعْمَتِهٖٓ | اِخْوَانًا | وَكُنْتُمْ |
| په مينځ د زړونو ستاسو كښې | انوشوئ تاسو | په نعمت دهغه سره | (اسلامی) رونړه | او وئ تاسو |

..........نو تاسو د هغه په مهربانئ سره رونړه رونړه شوئ | .............. اوتاسو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ | مِّنَ النَّارِ | فَاَنْقَذَكُمْ | مِّنْهَا | كَذٰلِكَ | يُبَيِّنُ | اللّٰهُ | لَكُمْ |
| په غاړه | دكندې | د اور | انو بچ كړئ الله تاسو | دهغې نه | هم دغسې | بيانوی | الله تعالى | تاسو ته |

داور دكندې په غاړه وئ | نو الله پاك درته د هغې نه نجات دركړو | دغه شان تاسو ته الله خپلې نښې ښائي

| | | |
|---|---|---|
| اٰيٰتِهٖ | لَعَلَّكُمْ | تَهْتَدُوْنَ |
| نښې خپلې | شايد چه تاسو | نيغه لار بيامومئ |

دې دپاره چې تاسو په سمه لار راشئ

---

١) حاكم: ٤/٨٥).

**قوله تعالى:: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ**

**دالله ﷻ د اطاعت مفهوم:-** الله ﷻ نه پوره پوره ویریدل دا دی چه د هغه اطاعت اوکړې شي .اود هغه ذات نافرماني اونکړې شي .د هغه پاك ذات ذكر اوكړې شي .اود هغه ياد هير نه كړې شي. د هغه ذات شكر اداكړې شي اوكفر اونكړې شي. بعضو روايتونو كښې دا تفسير مرفوع مروي دې ليكن صحيح خبره دا ده چه دا موقوف دی يعنی دا د عبدالله بن مسعود ﷺ قول دې ، والله اعلم.(١)

**دژبې د حفاظت اهميت:-** انس ﷺ فرمائی چه انسان تر هغه پورې دالله ﷻ نه د ويرې حق نشی ادا كولې تر كومې چه دې خپله ژبه محفوظ اونه ساتی. (٢)

**د ايت په نسخ كښې دوه قولونه** ① اكثرو مفسرينو ونيلی دی چه دا آيت ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾ آيت سره منسوخ شوی دې.دې دويم آيت كښې فرمائی چه د خپل طاقت مطابق د هغه نه ويره كونی ② ابن عباس ﷺ فرمائی چه منسوخ شوی نه دی بلكه مطلب دا دې چه د الله ﷻ لار كښې جهاد كونی . د هغه په كارونو كښې دچاد ملامتيا خيال مه ساتی؛ عدل خپل كړنی تر دې چه خپله خپل نفس سره هم عدل كونی.د خپل مور پلار او خپل اولاد باره كښې عدل انصاف كوئی.

**قوله تعالى:: وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ**

بيا فرمائی چه تاسو داسې حالت كښې اوسيږئ چې اسلام په حالت كښې درته مرګ راشی او او تول ژوند په دې باندې قائم اوسئ؛ چه تاسوهم په دې حالت كښې وفات شئ؛ د هغه رب كريم عادت هم دا دې چه انسان خپل ژوند څنګه تير كړی نو هغه حالت كښې ورته مرګ رازی اوچه په كوم حالت كښې ورله مرګ را شی نوپه هغه حالت كښې به دقيامت په ورځ پورته كيږی. الله ﷻ دې ددې نه مونږ په خپله پناه كښې اوساتی. آمين. مسنداحمد كښې دی چه خلقو د بيت الله شريف طواف كولو او حضرات ابن عباس رضی الله عنه هلته موجود وو.د هغوی لاس مبارک كښې لرګې وو. وې فرمائيل چه نبی كريم ﷺ د دې آيت مبارک تلاوت اوكړو او بيا ئې اوفرمائيل كه د زقوم يو قطره هم دنيا ته راپريوزی نو د دنيا د خلقو رزق په خراب شی اوهغوی به هيڅ څيز نشی څكلې . بيا خيال اوكړنی چه د هغه دوزخيانو به څه حال وی چه د هغوی خوراک څكاک زقوم وی (٣)

او حديث پاک كښې دی چه نبی كريم ﷺ فرمائی چه كوم سړې جهنم نه لرې بچ كيدل او جنت كښې اوسيدل غواړی نو هغه ته پكار دی چه تر مرګه پورې په الله ﷻ او په ورځ د آخرت ايمان اوساتی اوخلقو سره هغه شان سلوک كوی كوم چه دې خپل خان دپار غواړی . (مسنداحمد) (٤)

**دمرګ په وخت كښې د الله نه ښه ګمان ساتل:-** جابر ﷺ فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه د هغوی د وفات نه درې ورځې مخكښې واوريدل چه د الله ﷻ نه د مرګ په وخت كښې ښه ګمان ساتئ؛ ( مسلم) (٥)

**الله بنده سره دهغه د ګمان مطابق معامله كوی:-** رسول الله ﷺ فرمائی دالله ﷻ فرمان دې چه څما بنده په ماڅنګه ګمان ساتی نوځه هغه سره شان دهغه د ګمان مطابق معامله كوم. كه دده ګمان ماسره ښه وی نوځه ده

---

(١) ابن ابی حاتم: ٤٤٦/٢،)-

(٢) ابن ابی حاتم: ٤٤٨/٢،)-

(٣) احمد: ٣٠٠/١، ترمذی : كتاب صفة جهنم باب ماجاء فی صفة شراب اهل النار : ٢٥٨٥، وهو صحيح ابن ماجة: ٤٣٢٥)-

(٤) احمد: ١٩٢/٢،هذا اللفظ داروايت صحيح مسلم كتاب الامارة باب وجوب الوفاء ببيعة الخليفة ١٨٤٤كښې هم مطول موجود دې)

(٥) صحيح مسلم كتاب الجنة باب الامر بحسن الظن بالله تعالى عند الموت: ٢٨٧٧، ابوداود: ٣١١٣، ابن ماجة: ٤١٦٧

سره ښه معامله کوم او که هغه په ما باندې بدګمانی کوی نوخه هم هغه سره دغه شان معامله کوم. ( مسند احمد ).([1]) ددې حدیث رومبۍ حصه بخاری اومسلم کښې ده. ([2])

**دمرګ په وخت کښې د الله نه ښه امید ساتل پکاری دی:-** مسند بزار کښې دی چه رسول الله ﷺ دیو بیمار انصاری ﷜ پوښتنې ته تشریف یوړو او د سلام کولو نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه څنګه نې؟ هغه اوونیل چه الحمد لله ښه یم .د الله ﷻ د رحمت امیدوار یم. اود هغه د عذابونو نه ویریږم. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه واورئې اداسې وخت کښې چه د الله ﷻ ویره او طمع دواړه وی نو الله ﷻ هغه ته د امید څیز ورکوی او د ویرې څیز نه ئې بچ کوی. ([3])

**یوحدیث اود هغې په مفهوم کښې درې اقوال:-** مسنداحمد کښې یو حدیث کښې دی چه حکیم بن حزام ﷜ د رسول الله ﷺ نه ددې خبرې بیعت اوکړو چه خه په ولاړه ولاړه راپریوزم.([4]) ①ددې مطلب امام نسائی خویه سنن نسائی کښې دا بیان کړې دې چه په سجده کښې دا شان کول پکار دی② اودا معنی هم بیان شویدې ده چه مړ نه شم مګر مسلمان مړ شم③ اودا هم بیان شوې ده چه په جهاد کښې د شا نه او نه وهلې شم او مړ نشم.

**قوله تعالی:: وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيْعًا**

**دفرقه بندئی ممانعت او د حبل نه مراد :-** بیا فرمائی چه اتفاق پیداکړئی او اختلاف نه بچ اوسئی. ①حبل الله نه مراد د رب وعده ده. لکه [إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللهِ] الخ. ②بعضو ونیلی دی چه ددې نه قران پاك مراد دې.

**د قول ثانی دلائل:-** ①یومرفوع حدیث کښې دی چه قران پاك لره مضبوط اونیسئ او ددې لار نیغه ده.([5])
②اوروایت کښې دی چه کتاب الله دالله ﷻ مضبوطه رسئی ده چه د آسمان نه رازوړنده شوې ده. ([6])
③او حدیث کښې دی چه دا قران پاك دالله مضبوطه رسئ ده. دا ښکاره نور دې .دا سراسرشفا ورکونکې دې. او فائده مند دې. په دې چه څوك عمل کوی نو د هغه دپاره د بچ کیدو خانې دې. څوك چې ددې تابعداری کوی نو د هغه دپاره نجات دې .([7])
④ عبدالله ﷜ فرمائی چه په دې لارو کښې خو شیطانان اوسیږی. تاسو د الله ﷻ لارې ته راشئ اود الله ﷻ لار مضبوطه اونیسئ . او هغه قران پاك دې .([8])

**قوله تعالی:: وَلَا تَفَرَّقُوْا**

**د شپږو خبرو پیژندل:-** اختلاف مه کوئی او تفرقه مه کوئی .د دې نه بچ اوسئ: صحیح مسلم کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه په دریو خبرو الله ﷻ خوشحالیږ ی او دریو خبرو باندې خفه کیږی① یو خو دا چه د هغه عبادت اوکړئ او هغه سره هیڅوك شریك نه کړئی ② دویم دا چه د الله ﷻ رسئ مضبوطیا سره اونیسئ او تفرقه مه پیدا کوئی③ دریم دا چه د مسلمان بادشاه خیرخواهی کوئی. (اوپه کومو دریو

---

[1] ) احمد: ۳۹۱/۲)-
[2] ) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی ( یریدون ان یبدلوا کلام الله) : ۷۵۰۵، صحیح مسلم: ۲٦۷۵، )-
[3] ) رمذی کتاب الجنائز باب الرجاء بالله .....۹۸۳، ابن ماجة: ٤۲٦۱، وهو حسن)-
[4] ) ترمذی کتاب التطبیق باب کیف یخی للسجود: ۱۰۸۵، وهو صحیح احمد: ٤۰۲/۳)-
[5] ) ترمذی کتاب فضائل القران باب ماجاء فی فضل القران: ۲۹۰٦، )-
[6] ) الطبری: ۷۵۷۰، مسند ابی یعلی : ۱۰۲۱، المعجم الصغیر للطبرانی: ۲٦۷۸،)-
[7] ) دارمی : ٤۳/۲)-
[8] ) درامی : ٤۳۱/۲، ح/۳۳۲۰)-

خبرو چي الله تعالی خفه کیږي هغه دا دي،① او فضول بکواس ② دسوال زیاتی ③ او دمال بربادني سره الله ﷺ خفه کیږي. ډیرو روایتونو کښې داسې هم دي چه داتفاق په وخت کښې به دوی د خطا نه بچ شي[1]

**په امت محمدی کښې درې اویا ډلې جوړیدل:-** او ډیرو احادیثو کښې د نا اتفاقۍ نه ویرول شوی دی. لیکن د دې باوجود په دې امت کښې افتراق پیدا شو او په دې کښې به درې اویا فرقې وی. چه په هغې کښې به یو نجات مومی او جنت ته به ځی. اودجهنم د عذابونو نه به ورته نجات ملاؤ شی. اودا هغه خلق دی چه په هغه طریقه قائم وی په کومه چې د الله رسول الله ﷺ او دهغوی صحابه کرام ﷺ قائم دی.

**قوله تعالی:: وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ**

بیا ورته خپل نعمت یادوی،د جاهلیت په زمانه کښې د اوس اوخزرج په مینځ کښې سخت جنګ او دښمنی وه. او خپلو کښې به ئې هر وخت جنګ جاری وو. او کله چه دواړو اسلام قبول کړو نو د الله ﷺ په فضل سره بالکل یو شو. ټول هر څه بغض کینه ئې ختمه شوه. او خپلو کښې رونړه رونړه شو. او د نیکۍ او ښیګړې په کارونو کښې دیو بل مددګار شو.اوداالله ﷺ دین کښې یوبل سره متفق شو. لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿هُوَ الَّذِي أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِ وَبِالْمُؤْمِنِينَ ۝ وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ﴾ الخ.یعنی هغه الله ﷺ ستاسو تائید ئې اوکړو په خپل مدد سره اوپه مومنانوسره او د هغوی په زړونوکښې ئې محبت پیدا کړو. الخ.

**قوله تعالی:: وَكُنْتُمْ عَلَى شَفَا حُفْرَةٍ مِنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا**

خپل بل احسان ذکر کوی چه تاسو د اورغاړې ته ورغلی وئ اوستاسوکفر تاسو اور ته دیکه کولئ .خو ما تاسو ته د اسلام قبلولو توفیق درکړو.او تاسو مې د دې نه اوساتلئ.

**د غزوه حنین په موقع د انصارو د کمال اطاعت نمونه:-** دحنین نه پس هرکله چه مال د غنیمت تقسیم شو نو د دینی مصلحت مطابق رسول الله ﷺ بعضو خلقو ته زیات مال ورکړو نو یو سړی څه داسې نازیبا الفاظ اووئیل چه په هغې باندې رسول الله ﷺ د انصارو جماعت راجمع کړو او خطبه ئې اووئیله. په دې کښې ئې دا هم اوفرمائیل چه د انصارو ډلې ! آیا تاسو ګمراه نه وې ، بیا الله ﷺ خما په وجه تاسو ته هدایت اوکړو؟ آیاتاسوانتشار کښې نه وئ بیا الله ﷺ خما په وجه ستاسو زړونوکښې محبت پیداکړو. آیا تاسو فقیران نه وئ نوالله ﷺ خما په وجه مالدار کړنی ؟ دهر یو سوال په جواب کښې به دې پاکباز جماعت او د الله ﷺ ډلې وئیل چه مونږ باندې د الله ﷺ او د رسول ﷺ احسانات نور هم ډیر دی[2].

**په انصارو کښې بیا زړه دشمنی تازه کیدل اود هغې ختمدل:-** محمد بن اسحاق فرمائی چه داوس او خزرج په مینځ کښې د مودو راسې دشمنی وه او بیا دوی خپلو کښې رونړه رونړه شو نو دې سره په یهودوکښې یو شرارت پیداشو اوهغوئ سړی مقرر کړل چه د دوی په حجرو او مجلسونوکښې کینی.او دوی ته مخکښنۍ دښمنۍ او جنګونه یادوی او دوی کښې بیا دشمنی راوپاروی. نو د دوی دا سازش یو خل کامیاب شو او د دواړو قبیلو په مینځ کښې اور اولګیدو تردې چه توري راوتلې ، او دوه ډلې شو. او هم هغه د جاهلیت چغې ئې وهلې او وسله ئې راوویستله. او دیو بل د وینې تږی جوړ شو. او دا فیصله اوشوه. چه د حره په میدان کښې به راغونډ شواو هلته به خپله خوانمردی ښایو. تږې دې چې زمکه په خپلو وینو سیراب کړو. لیکن رسول الله ﷺ ته ډدې پته اولګیده. رسول الله ﷺ زر موقعې ته راورسیدو او د دواړو فریقو په مینځ کښې ئې تصفیه اوکړه. او وې فرمائیل چه تاسو بیا د جاهلیت نعرې وهئ خما په موجودګئ کښې بیا تاسو جنګونه شروع کړل. بیا رسول الله ﷺ هم دا آیت اولوستلو او تول

[1]) صحیح مسلم کتاب الاقضیة باب النهی عن کثرة المسائل من غیر حاجة: ۱۷۵۱)-
[2]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الطائف : ۴۳۳۰، صحیح مسلم: ۱۰۶۱)-

شرمنده شو.او دوه ساعته مخکښې چه ني کوم حرکت کړې وو په هغې ني افسوس شروع کړو. اوخپلو کښې ني سره مصافحه اوکړه اوبیا رونړه رونړه شو او وسله ني اوغورزوله. او صلح اوشوه.

**د ایت د شان نزول یو بل روایت:-** عکرمه رحمه الله فرمائي چه دا آیت په هغه وخت کښې نازل شو چه کله صدیقه رضي الله عنها باندې منافقانو تهمت اولګولو او د عائشه رضي الله عنها برآت شوې وو ،نوبیا دیوبل مقابله کښې رالاندې شو. والله اعلم.

وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ أُمَّةٌ

|او ضرور دې وی |په تاسو کښې | یوه ډله |

او په تاسو کښې دې ضرور یوه ډله داسې وی

يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ۚ وَأُولَٰئِكَ

چه رابلی (خلق)| نیکئ ته |اوحکم کوی |د نیکئ | اومنع کول کوی|ادبدئي نه |اودغسې خلق|

چې خلق نیکوطرفته رابلی | او دنیکوکارونوحکم کوی| اودبدونه نې منع کوی| اوهمدغه خلق

هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٠٤﴾ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا

خاص هغوی|خلاصې موندونکی دی|اومه کیږئې تاسو| په شان دهغه کسانو|چه ډلې ډلې شول|

نجات موندونکی او کامیاب دی| ......اودهغې خلقو پشان مه کیږه چې په خپل مینځ کښې ډلې ډلې شو

وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ۚ

اوپه اختلافاتو(جګړو کښې )اخته شو| روستو دهغې نه |چه راغلی وو هغوی ته | ښکاره هدایات

...............اود ښکاره نښو راتلونه پس ئې ا ختلاف اوکړو ...............

وَأُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٠٥﴾ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ

اوداکسان چه دی |دوی دپاره| عذاب | لوئي دې |په هغه ورځ |چه سپین به شی | څه مخونه

دغې خلقو لره (په هغه ورځ) لوئې عذاب مقرر دې | په کومه ورځ چې به (بعضې) مخونه سپین وی

وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ ۚ فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ

|اوتوربه شی | څه مخونه | نوهغه کسان | چه تور شی | مخونه دهغوئ |

اوبعضې مخونه به تور وی | ........ نودچامخونه چې تور وی(هغوئ ته به وئیلې شی)

أَكَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ

(اوبه وئیلې شی هغوئ ته) آیا تاسو دکفر لاراختیار کړې وه| روستو | دایمان راوړلوستاسو نه

...... چې تاسو دایمان غوندې لوئې (نعت )موندلو نه پس بیا هم کفر خوښ کړې وو

فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿١٠٦﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ

|نواوڅکئ| عذاب |په سبب دهغې|چه وئ تاسو|چه ناشکری مو کوله| اوهغه کسان

نواوس دخپل کفر په سزا کښې دعذاب خونداوڅکئ|...............او چې د چا

ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ ۖ

|چه سپین شوی وی| مخونه دهغوئ | نو وی به هغوئ | په رحمت دالله تعالی کښې |

مخونه سپین وی | ...............نو هغوئ به دالله پاک رحمتونو کښې مشغول وی

| |
|---|
| هُمْ فِيهَا خٰلِدُوْنَ۝ تِلْكَ اٰيٰتُ اللهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ |
| هغوئ به په هغې کښې \| همیشه وی \| دا ایتونه دالله تعالی دی \| چه مونږ اوروهغه \| تا ته \| |
| همیشه به په (عیش وعشرت) کښې اوسیږی \| دا دالله پاک حکمونه دی چې مونږئې تاسوته اوروو |
| بِالْحَقِّ ط وَمَا اللهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعٰلَمِيْنَ۝ وَلِلّٰهِ مَا |
| په حقه سره \| اونه دې الله \| چه اراده اولری \| دظلم \| دپاره دمخلوقاتو \| اوالله تعالی لره دی هغه چه \| |
| اوالله پاک په خپل مخلوق باندې ظلم نه کوی \| ..................اود الله تعالی دپاره هغه (ټول) څه دی |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ط وَاِلَى اللهِ تُرْجَعُ |
| په آسمانونو کښې دی \| اوهغه چه په زمکه کښې دی \| اوخاص الله تعالی ته \| واپس کولې کیږی \| |
| چه په اسمانونو کښې او زمکه کښې دی \| اوټولې معاملې به اوس الله ته |
| الْاُمُوْرُ۝ |
| معاملې (ټولې) \| |
| پیش کیږی \| |

**قوله تعالى: وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ**

**د جماعت نه څوک مراد دي؟:-** ① ضحاك رحمه الله فرمائی چه د دې جماعت نه مراد خاص د صحابه کرامو رضی الله عنهم او خاص د راویان حدیث جماعت مراد دې. یعنی مجاهدین اوعلماء کرام. ②ابو جعفر باقر رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ ددې آیت تلاوت اوفرمائیلو او بیا ئې اوفرمائیل چه د خیر نه مراد د قران اوحدیث اتباع ده. یادساتئ چه په هر هر متنفس باندې تبلیغ فرض دې. لیکن یو جماعت خو خاص دې کار کښې مشغول اوسیدل پکار دې.

**د امر بالمعروف درې درجې:-** رسول الله ﷺ فرمائی ①چه تاسو کښې څوک بل کس په بدکار اووینی نو هغه دې په لاس سره منع کړی ②او که ددې طاقت ئې نه وی نو په خوله دې منع کړی ③او که ددې طاقت ئې هم نه وی نو خپل زړه کښې دې دې ته بد اوګوری او دا د ټولو نه ضعیف ایمان دې. یوروایت کښې دې نه پس دا هم دی چه ددې نه پس د یو دانې برابر ایمان هم نشته (صحیح مسلم).[1]

**د امر بالمعروف نه کولو وعید:-** مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه په هغه ذات قسم چه د هغه په لاس کښې خما روح دې.تاسو د نیکئ حکم کوئی.او د بدئی نه منع کوئی.ګنی نزدې ده چه په تاسوبه داسې یووخت راشی چه الله ﷻ به په تاسو خپل عذاب نازل کړی. او بیا به تاسو دعاګانې کوئی او هغه به نه قبلیږی.[2]ددې مضمون نور ډیراحادیث هم دی. چرته په بل مقام به ئې ذکر کړو انشاء الله.

**قوله تعالى: وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ تَفَرَّقُوْا**

**دین کښې اختلاف کول د جهنم سبب دې:-** بیا فرمائی چه تاسو د مخکښې خلقو په شان اختلاف مه کوئی تاسو د نیکې خبرې حکم او د بدئ نه منع کوئی.

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان کون النهی عن المنکر: ۴۹، ابوداود: ۱۱۴۰، ترمذی: ۲۱۷۲، نسائی: ۵۰۱۲، ابن ماجة: ۱۲۷۵، عن ابی سعید الخدری)-

[2]) ترمذی کتاب الفتن باب ماجاء فی الأمر بالمعروف: ۲۱۲۹، وهو حسن: احمد: ۳۹۱/۵)-

**د نفساني خواهشاتو تابع جمات باره كښې پيشنګوئي:-** مسند احمد كښې دي چه معاويه بن ابوسفيان ﷺ چه كله دحج دپاره مكې مكرمې ته تشريف يوړو نو د ماسپخين مونځ ادا كولو نه پس ني اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه اهل كتابو خپل دين كښې اختلاف كولو او هغوئ كښې اويا ډلې جوړې شوې.اوځما دې امت كښې به درې اويا ډلې جوړيږي .يعنى په خواهشاتو كښې به ا خته وي.ټول به جهنميان وي.خويو بله ډله هم شته.او ځما امت كښې به داسې خلق هم وي چه د هغوئ رګ رګ كښې به نفساني خواهشات داسې داخل شي لكه څنګه چه يوانسان سپې اوخوري اودهغه يويورګ اويو يو جوړ ته دهغې اثر رسي.انې دعربو خلقو اكه تاسو دخپل نبي ﷺ په راوړې شوې ځيز قائم پاتې نشوئي نو نور خلق خوبه ډير لرې شي (١) ددې حديث ډير سندونه دي .

**قوله تعالى:: يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ**

**د قيامت په ورځ به جنتيان او جهنميان دخپلو مخونو نه پيژندې شي :-** بيا فرمائي چه په هغه ورځ به څه مخونه سپين وي او څه به تور وي.

**د تورو او سپينو مخونوخاوندان به څوک وي؟په دې كښې اقوال:-** ① د ابن عباس ﷺ فرمان دې چه د اهل سنت والجماعت مخونه به سپين وي او داهل بدعت مخونه به تور وي(٢) ② حسن بصرى رحمه الله فرمائي چه دا تور مخونو والا به منافقان وي. او دوى ته به اووئيلې شي چه تاسود ايمان نه پس كفر ولې اوكړو. اوس مزه اوڅكئ (٣)اوسپينو مخونو والا به هميشه هميشه په رحمت رباني كښې وي③ ابوامامه ﷺ چه كله د خارجيانو سرونه د دمشق په مسجد كښې آويزانه اوليدل نو وې فرمائيل چه دا د جهنم سپي دي. ددوى نه بدتر قتل شوي په مخ د ځمكې بل څوك نشته دې . دوى قتل كولو والا بهترين مجاهدين دي.بيا ني دا آيت ﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ﴾ تلاوت اوفرمائيلو.ابو غالب اووئيل چه آيادا دې درسول الله ﷺ نه آوريدلي دى ؟نو وې فرمائيل يو ځل دوه نه بلكه اووه ځله . كه داسې نه وې نو ما به د ژبې نه دا الفاظ ويستلي هم نه وې .(٤)

**د الله تعالى د ګڼړو صفاتو بيان :-** ابن مردويه دلته د ابوذر ﷺ روايت نه يو اوږد حديث نقل كړې دې چه هغه ډير عجيبه دې ليكن غريب دې. انې نبي ﷺ ! ددنيا او آخرت دا خبرې مونږ تاسوته ښكاره كوو. الله ﷻ حاكم عادل دې هغه ذات ظالم نه دې . اوهرڅيز بنه پيژني اوپه هر ځيزباندې قادر دې .بيا دا ممكن نه ده .چه هغه ذات په چا باندې ظلم اوكړي(چه د چا مخونه تور شي. هغوى به ددې لائق وي) د زمكې او آسمان ټول ځيزونه د هغه ذات ملكيت دې .اود هغه ذات غلامان دى .اودهر كار آخرى حكم د هغه په اختيار كښې دې .د دنيا او د آخرت متصرف او با اختياره حاكم صرف هغه ذات دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كُنْتُمْ | | خَيْرَ | أُمَّةٍ | أُخْرِجَتْ | لِلنَّاسِ |
| ايئ تاسوانې محمدى امته | | بهترين | امت | چه ايستلي شوى يئ | دپاره دخلقو |
| تاسوغوره ډله يئ چې د خلقو د (هدايت) دپاره راويستې شوى يئ | | | | | |
| تَأْمُرُونَ | بِالْمَعْرُوفِ | وَتَنْهَوْنَ | عَنِ الْمُنْكَرِ | وَتُؤْمِنُونَ | |
| حكم كوئى تاسو | دنيكئ | او منع كوئى تاسو (خلق) | دبدئى نه | او ايمان لرئى | |
| خلقو ته دنيكئ حكم كوئ ......... اودبدو كارونو نه ني منع كوئ ............او په الله باندې يقين لرئ | | | | | |

(١) احمد: ١٠٢/٤، ابوداود كتاب السنة باب شرح السنة: ٤٥٩٧، وسنده حسن)-

(٢) ابن ابى حاتم: ٤٦٤/٢)-

(٣) ابن ابى حاتم: ٤٦٥/٢)-

(٤) ترمذى كتاب التفسير القران باب ومن سورة آل عمران : ٣٠٠٠، ابن ماجة : المقدمة باب فى ذكر الخوارج : ١٧٦، وسنده حسن)-

بِاللّٰهِ ط وَلَوْ اٰمَنَ اَهْلُ الْكِتٰبِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ط

په الله تعالى باندې|او كه چرې ايمان راوړې وې| اهل كتابو |نو وه به| ډيره بهتره |دپاره دهغوى|

او كه اهل كتابو هم ايمان راوړې وې| ..............نودا به ددوئ دپاره بهتره وه

مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ وَاَكْثَرُهُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ لَنْ يَّضُرُّوْكُمْ

خينې دهغوئ نه|مومنان دى|اوزيات دهغوئ نه | فاسقان دى |هرگزبه ضرر اونه رسوى تاسوته|

په دوئ كښې بعضې خو ايماندار دى|او زيات په كښې نافرمان دى|دوئ تاسوته هيڅ ضرر نشى رسولې

اِلَّآ اَذًى ط وَاِنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ يُوَلُّوْكُمُ الْاَدْبَارَ قف

مگر په تكليف دركولو(دژبې)|او كه دوى جنگ شروع كړى تاسو سره انو او به گرځوئ تاسوته شاگانې|

صرف تنگول كوى| ..............او كه تاسو سره جنگ شروع كړى نو زر به درته شاگانې كړى

ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ اَيْنَمَا

بيا به اونه كړې شى مدد دوى سره |اومقرر شوې دې |په دوى باندې| ذلت |هرچرته چه |

بيا به ددوئ هيڅ مدد اونكړى شى | دوئ چې هرځائې كښې وى نو په دوئ به ذلت وى

ثُقِفُوْٓا اِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ

اوموندلې شى دوى| مگر نه |په رسئ (پناه ملاويدو) سره |دطرفه دالله تعالى نه| اوپه پناه ملاويدوسره

خو كه دالله جل شانه سره پناه اوغواړى | ..............او دخلقونه هم پناه اومومى

مِّنَ النَّاسِ وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَضُرِبَتْ

|دطرفه دخلقو |اودوى اخته شو| په غضب سره| دطرفه دالله تعالى | اومقرر كړې شوه |

(نودابيله خبره ده) | دوى دالله په غضب كښې گير شوى دى | او د دوى دپاره ..............

عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ط ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

په دوى باندې |محتاجى |داپه دې وجه| چه بيشكه دوى| وو |چه كفر به ئې كولو|په آيتونو دالله |

محتاجى مقرر شوې ده |........ داځكه چې دوئ وړاندې نه دالله پاك د آياتونو نه انكار كولو

وَيَقْتُلُوْنَ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ط ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا

او قتلول به ئې پيغمبران| په ناحقه |داانجام | په دې سبب دې |چه دوى نافرمانى اوكړه|او وو دوى|

او پيغمبران عليهم السلام به ئې په ناحقه قتلول| داځكه چې دوئ نافرمانه وو | او دوى

يَعْتَدُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ ق

چه حد نه به تيريدل|

د مقرر حد نه تيريدل |

**قوله تعالى:: كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ**

**امت محمديه دټولو امتونونه بهتر دې :-** الله ﷻ خبر وركوى چه امت محمديه ﷺ د ټولو امتونو نه بهتر دې .

صحيح بخارى كښې دى چه ابوهريره ؓ د دې آيت تفسير كښې فرمائى چه تاسو دنورو حق كښې

بهتر يئ تاسو خلق د ختيونو نه نيسئ او اسلام طرفته ئې راولئ[1] اومفسرين هم دا فرمائي چې تاسو ټول امتونو كښې بهتر يئ او خلقو ته زيات نفع رسونكي يئ.

**امر بالمعروف كونكي ټولوكښې افضل دې**. -دابولهب لور دره ﷞ فرمائي چه يو ځل رسول الله ﷺ نه چا تپوس اوكړو اورسول الله ﷺ هغه وخت كښې په منبر باندې وو چه يارسول الله ﷺ كوم يو سړې بهتر دې ؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د ټولوخلقو نه بهتر هغه سړې دې چه د ټولو نه زيات قارى د قرآن پاك وى ، د ټولونه زيات پرهيزګار وى،د ټولو نه زيات د نيكو حكم كونكي وى، دټولو نه زيات د بدو نه منع كونكي وى،د ټولو نه زيات صله رحمى كنكي وى .(مسند احمد ). [2]

**بهترينه زمانه**. ابن عباس ﷺ فرمائي چه دا هغه صحابه كرام ﷞ دى چه كومومكي نه مدينې ته هجرت كړې وو[3] صحيح خبره دا ده چه دې آيت كښې ټول امت شامل دې.خو بيشكه دا حديث كښې دى چه د ټولو نه بهتره خما زمانه ده.بيا دې نه پس دې سره نزدې زمانه ، بيا دې نه پس زمانه [4]

**د بهترين امت كيدو يوه بله وجه**:- يو بل روايت كښې دى چه [وَكَذٰلِكَ جَعَلۡنٰكُمۡ اُمَّةً وَّسَطًا] الخ .مونږ تاسو بهترين امت جوړكړئ چه تاسو خلقو اندې ګواه اوسئ. رسول الله ﷺ فرمائي چه تاسو د مخكښې امتونو تعداد اوياؤ ته رسولې دې .دالله ﷻ په نيز تاسو ټول د هغوئ نه بهتر يئ او زيات ښه يئ. [5]دامشهور حديث دې ،امام ترمذى ﷫ دې ته حسن ونيلى دى .

**د دې امت د فضيلت نور وجوهات**:- ددې امت د فضيلت دټولو نه يو غټ دليل دا دې چه د دې امت نبى ﷺ فضيلت والا دې.رسول الله ﷺ د ټول مخلوق سردار او د رسولانونه زيات اكرم اوعزت والا دې .رسول الله ﷺ شريعت دومره كامل او دومره پوره دې چه داسې شريعت بل نبى ته نه وو ملاؤ شوې . نوظاهره خبره ده چه د دې خوبيانو والا امت به هم اعلى او افضل وى. ددې امت لږ شان عمل هم د نورو امتونو د زيات عمل نه بهتر او افضل دې.

**د رسول الله ﷺ اعجاز**:- على بن ابوطالب ﷜ فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه ما ته هغه نعمتونه راكړې شوى دى.چه خما نه مخكښې امتونوته نه دى ملاؤ شوى. خلقو تپوس اوكړو چه هغه كوم نعمتونه دى ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ① خما مدد رعب سره شوې دې. ② ما ته د زمكې چابيانې راكړې شوى دى. ③ خما نوم احمد دې خما دپاره ښاوره پاكى راوستونكې ګرځولې شوې كړې ④ خما امت د ټولو نه بهتر امت جوړكړې شويدې ( مسند احمد ) [6]. ددې حديث اسناد حسن دى .

**عيسى ﷤ باندې د دې امت فضيلت ښكاره كول**.- ابوالدرداء ﷜ فرمائي چه ما د ابوالقاسم نه آوريدلى دى چه رسول الله ﷺ فرمائيل چه الله ﷻ عيسى ﷤ ته اوفرمائيل ستا نه پس يو امت راتلونكې دې چه هغوئ به په نعمت باندې حمد اوشكر كوى. اومصيبت باندې به ثواب غواړى او صبر به كوى.حالاتكه هغوئ ته به علم او حلم نه وى.عيسى ﷤ تعجب سره تپوس اوكړو چه بغير د زياتې دوراند يشئ او علم

---

[1]) صحيح بخارى كتاب التفسير باب آل عمران ( كنتم خير امت اخرجت للناس...) : ٤٥٥٧)-
[2]) احمد: ٦/٤٣١٠)-
[3]) حاكم : ٢٩٤/٢ وسنده صحيح)-
[4]) صحيح بخارى كتاب فضائل اصحاب النبى باب فضائل اصحاب النبى ﷺ : ٣٦٠٥، صحيح مسلم: ٢٥٣٥ )-
[5]) احمد: ٤٤٧/٤، ترمذى: كتاب تفسير القران باب ومن سورة آل عمران : ٣٠٠١، وسنده حسن ، وابن ماجة: ٤٢٨٨)-
[6]) احمد : ٩٨/١ .)-

نه دا څنګه کیدې شي ؟ رب العالمین ورته اوفرمائیل چه هغوئ ته به علم او حلم خه ورکوم . (۱) خه غواړم چه دلته بعضې هغه احادیث هم بیان کړم چه د هغې ذکر دلته مناسب دې ، واورئ.

**دامت محمدی اویا زره کسان بې حسابه جنت ته تلل:-** رسول الله ﷺ فرمائي چه څما د امت نه به اویا زره سړي بغیر دحساب کتاب نه جنت ته داخليږي. او د هغوئ مخونه به د څوارلسمې سپوږمۍ په شان روښانه وي. دټولو زړونه به یو وي. ما خپل رب ته ګزارش اوکړو چه ائي الله ﷺ دې تعداد کښې اضافه اوکړه. الله ﷻ اوفرمائیل هر یو سره به اویا زره نور هم وي .ابوبکرصدیق ؓ چې به دا حدیث پاک بیانولو نو فرمائیل به ئې بیا خو به دې تعداد کښې باندیچیان او میروال هم راځي (مسند احمد) (۲)

**د امت محمدی ډیرکسان به بې حسابه جنت ته ځي:-** نبی کرم ﷺ فرمائي چه څما رب اویا زره کسان څما دامت نه بغیر د حساب وکتاب نه جنت ته د داخلیدو زیرې راکړو. عمر فاروق چه دا واوریدل نو وې فرمائیل چه یارسول الله ﷺ دې کښې څه زیاتې اوکړئ. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ما خپل رب نه سوال اوکړو نوماته زیرې ملاؤ شو چه هر زرو سره زر نور.عمر فاروق ؓ اوفرمائیل چه نوره هم د برکت دعا اوکړئ. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ما بیا دعا اوکړه نو هریوکس سره د اویا زره کسانو جنت ته د داخلیدو وعده اوشوه. عمر فاروق ؓ ګزارش اوکړو چه الله ﷻ نور هم اوغواړئ.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ما اوغوښتل نو دومره زیاتې ملاؤ شو ، بیا ئې دواړه لاسونه اوغوړول اووې فرمائیل چه دومره دومره.راوی د حدیث وائی چه څنګه الله ﷻ غواړي نو هغه پاك ذات ته معلوم دی چه دې کښې به څومره مخلوق راځي. (سبحان الله وبحمده) ( مسند احمد) (۳)

ثوبان ؓ حمص کښې بیمار شو. عبدالله بن قرط د هغه ځائې امیر وو٬هغه د ده تپوس له رانغلو. یو کلاعی سړې چه کله د دوی تپوس ته راغلو نو دوی د هغه نه تپوس اوکړو چه ته لیکل کولې شې ؟ هغه اوونیل چه آو .هغه ته ئې اوفرمائیل چه اولیکه. دا خط دې ثوبان د طرف نه چه د رسول الله ﷺ خادم دې.عبدالله بن قرط طرف ته

**د ثوبان ؓ د حمص امیرته حدیث بیانول:-** د حمد صلوة نه پس دې واضح وی که چرې دلته د عیسی ؑ او یا موسی ؑ څوك خادم بیمار شوې وې نو ته به هغه ته ورتلې.بیا ئې اوئیل چه دا خط بوسه او امیر ته ئې اورسوه. هرکله چه دا خط د حمص امیرته اورسیدو نو ویریدو او زر پاسیدو او نیغ راغلو تشریف ئې راوړو. تپوس کولو نه پس چه کله ده د واپس تلو اراده اوکړه نو ثوبان ؓ دده څادر اونیولو او ورته ئې اوفرمائیل چه دا حدیث واوره بیا څه. ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی چه څما امت کښې به اویا زره کسان بغیر د حساب اوکتاب نه جنت ته داخليږی .هر یو زرو سره به زر نور وی(مسند احمد) دا حدیث هم صحیح دې (٤)

**په ټولو جنتیانو کښې د دې امت زیادت:-** عبدالله بن مسعود ؓ فرمائي چه یوه شپه مونږ د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو اوتر ناوخته پورې مو خبرې کولې . هرکله چه مونږ سحر د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شونو رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه بیګاه شپه ماته ټول نبیان خپلو خپلو امتونو سره اوخودلې شو.بعضو نبیانو سره صرف یو کس وو او بعضو سره مختصر ډله وه اوبعضو سره یو جماعت ، اوچا سره هیڅوك نه وو ، هرکله چه موسی ؑ راغلو نو هغوئ سره ډیرزیات خلق وو. څما دا ډله خوښه شوه. ما تپوس اوکړو چه دا څوك دی ؟ نو جواب ملاؤ شو چه دا ستا رور موسی ؑ دې . اودوی سره بنی اسرائیل دی .ما اووئیل چه څما امت چرته دې ؟ جواب راکړې شو چه خپل ښی طرفته

---

(۱) احمد: ۹۸/۱. وسنده حسن وصححه الحاکم: ۳٤۸/۱، ووافقه الذهبي وحسنه الحافظ ابن حجر)-

(۲) احمد: ۹۸/۱)-.

(۳) احمد: ۱۹۷/۱، الطبراني في الکبیر: ۹۲/۲، ح/۱٤۱۳، مختصرا)-.

(٤) احمد: ۲۸۰/۵ وسنده ضعیف)-

اوګوره، ما چه اوکتل نو بې شمیره مجمع ده چه ددې نه غرونه هم ډك شوی دی ،بیا خما نه تپوس اوشو چه اوس خوشحاله یې؛ . ما اوونیل چه انې خما ربه څه راضي یم .نووې فرمانیل چه دوی سره اویا زره نور دی چه بغیر د حساب اوکتاب نه به جنت ته داخلیږي. نوبیا رسول الله ﷺ اوفرمانیل چه ( د محمد ﷺنه دې خما مور پلار قربان شي) که کیدیشي نو ددې اویا زرو نه که دا نه شي کیدې نو دهغه خلقو نه چه کوم په غرونوکښې پټ کړې شوی وو .که دا نشي کیدې نودهغه خلقو نه چه کوم د آسمان په کنارو باندې وو.عکاشه بن محصن ﷺ اوریدلو او عرض ئې اوکړو چه یا رسول الله ﷺ زما دپاره دعا اوکړئې چه ما الله ﷺ ددې اویاؤ زرو نه اوګرځوي. رسول الله ﷺ دعا اوفرمانیله نو یو بل صحابي پاسیدو او هم دا درخواست ئې اوکړو.نو رسول الله ﷺ اوفرمانیل چه تاسو باندې عکاشه سبقت اوکړو.

**جادو منتر نه کول او صرف په الله تعالی باندې توکل کول :**-اوس مونږ خپلو کښې اوونیل چه شاید دا اویازره کسان هغه خلق وی چه په اسلام باندې پیدا شو او پوره عمرکښې کله هم دوی الله سره شرك نه وی کړې رسول الله ﷺ ته چه کله ددې علم اوشو نو وې فرمانیل چه دا هغه خلق دی ①چه منتر او جادو نه کوی ②او د اورداغونه نه لګوی ③ او شکونه نه کوی ④او په خپل رب بهروسه کوی ( مسنداحمد)[1] یوبل سندسره دومره زیاتوالی؛ په یوبل روایت کښې دې چه کله ما (نبی کریم ﷺ) خپله رضامندی ظاهره کړه نوماته ئې اوونیل چه اوس ته ګس طرفته اوګوره. ما چه اوکتل نو بې شمیره مجمع وه . چه هغه د آسمان کنارو پورې وه. یوبل روایت کښې دی چه دا د حج د موسم واقعه ده. رسول الله ﷺ اوفرمانیل چه دخپل امت دا کثرت ډیر زمادیرخوښ شو. ټول میدانونه او غرونه دوی نه ډك وو(مسنداحمد) ([2])یوبل روایت کښې دی چه عکاشه ﷺ نه پس اودریدونکې یو انصاری ﷺ وو(طبرانی) ([3])یوبل روایت کښې دی چه خما امت کښې به اویا زره یا اووه لاکهه کسان جنت ته داخلیږي چه دوی به دیو بل لاسونه نیولی وی. ټول به یو وخت کښې جنت ته داخلیږي. ددوی مخونه به د څوارلسمې سپوږمۍ په شان پرقیږي. ( مسلم ،بخاری ، طبرانی) ([4]).

**په کومو صفاتو موصوف خلق به جنت ته بې حسابه ځي:**-حصین بن عبدالرحمان رحمه الله فرمانې چه څه سعید بن جبیر ﷺ سره وم. نو دوی تپوس اوکړو چه د شپې کوم ستورې ټکرې شوې وو هغه تاسو کښې چا لیدلې وو ،ما اوونیل چه ما لیدلې وو. دامه ګنړئې چه څه په مونځ کښې وم. نه بلکه څه لړم خوړلې وم. سعید بن جبیر ﷺ تپوس اوکړو چه تا څه اوکړل؟ ما اوونیل چه دم مې ونیلی وو. وې ونیل چه ولې ؟ ما اوونیل چه شعبی رحمه الله د بریده بن حصیب ﷺ نه روایت کړې دې چه بدنظر او د زهریله څناورو دم کول جانزدی. وې ونیل چه تاته څنګه یوحکم راورسی په هغې هغه شان عمل کوه. مونږ د ابن عباس ﷺ نه آوریدلی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمانیل چه ماباندې امتونه پیش کړې شو ،بعضو نبیاتوعلیهم السلامو سره یو امتی وو او بعضو سره یو ډله بعضو سره دوه سرې او چا سره هیڅوك نه وو. اوس چه ما اوکتل نو په یو لویه ډله مې نظر پریوتو ،ما اوګنړل چه دا خما امت دې ، خو بیا راته معلومه شوه چه دا د موسی ﷺ امت دې. ما ته اوونیلې شو چه د آسمان کنارو ته اوګوره .ما اوکتل نو هلته بې شمیره خلق وو ،ماته اوونیلې شو چه دا د رسول الله ﷺ امت دې . او دوی کښې اویا زره دی او دوی به بې حسابه جنت ته داخلیږي. دا حدیث ئې اوفرمانیلو نو رسول الله ﷺ مکان ته تشریف یوړو. او صحابه

---

[1]) احمد: ۱/۱ ٤٠)-.

[2]) احمد: ۱/۱ ٤٠)-

[3]) صحیح بخاری کتاب اللباس باب البردو والحبر والشملة: ۵۸۱۱ صحیح مسلم: ۲۱٦)-

[4]) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب یدخل سبعون الفا بغیر حساب: ٦۵٤۳، صحیح مسلم: ۵۲٦)-

كرامو ﷛ خپلو كښې اوونيل چه شايد دا د نبي كريم ﷺ صحابه وى. چا اوونيل چه دا په اسلام باندې پيدا كيدونكي او اسلام باندې مركيدونكي دى. وغيره وغيره. رسول الله ﷺ تشريف راوړو او تپوس ئې اوكړو چه څه خبرې كوئى ؟ موږ ذكر اوكړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه نه دا خلق هغه خلق دى چه نه دم كوى او نه داغ لګوى. نه شك كوى. بلكه په خپل رب باندې بهروسه ساتى . عكاشه ﷛ د دعا درخواست اوكړو. رسول الله ﷺ دعا اوكړه چه يا الله ! ته دې په هغوى كښې شامل كړه .بيا دوه سړى پاسيدل او هم دا ئې اوونيل .رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه عكاشه ﷛ مخكښې شو. دا حديث بخارى شريف كښې دې .ليكن په هغې كښې د دم كولو ذكر نشته دې . صحيح مسلم كښې دا لفظ هم دې (١)

**نبي كريم ﷺ سره د امت باره كښې دالله وعده:-** يو اوږد حديث كښې دى چه ړومبې جماعت به نجات اوموندى ،ددوى مخونه به د څوارلسمې سپوږمۍ په شان روښانه وى. دوى نه به حساب نه شى اخستى. بيادوى نه پس به د ټولو نه زيات روښانه مخونو والا د ستورو په شان روښانه وى. (مسلم) (٢).

رسول الله ﷺ فرمائى چه ما سره څما د رب وعده ده چه څما امت نه به اويا زره كسان بغير حساب كتاب نه جنت ته داخلوى. هريو زرو سره به اويا زره نورې وى.او درې لپې به څما د پروردګار لپونه وى ( كتاب السنن لحافظ ابى بكر بن عاصم ) (٣) ددې سند صحيح دې.

**دا خبره په بل روايت سره:-** يوبل روايت كښې دى چه د رسول الله ﷺ نه ئې د اويا زرو تعداد واوريدو نو يزيد بن اخنس ﷛ اوونيل چه يارسول الله ﷺ ! چه دا خو ستاسو د امت د تعداد مقابله كښې ډير كم دې .نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هر زرو سره زر نور دى .او بيا الله ﷻ درې لپې نورې فرمائيلى دى . (٤) ددې اسناد هم صحيح دى . ( كتاب السنن لابن كثير).

**دالله په لپو سره د امت محمدى كسان جنت ته داخليدل:-** يو بل حديث كښې دى چه څما رب ډير زيات عزت او جلال والا دې اوماسره ئې وعده كړې ده چه څما د امت نه به اويا زره بغير حساب اوكتاب نه جنت ته داخلوى. بيا به د يو زرو شفاعت سره يو زر نور.بيا به څما رب د خپلولاسونو نه درې لپې نورې جوړې كړى او جنت ته به ئې داخلې كړى . عمر فاروق ﷛ چه دا واوريدل نو ډير خوشحاله شواو الله اكبر ئې اوونيلو او وې فرمائيل چه ددوى شفاعت به ددوى د نيكونو ، پلرونو ، ځامنو او لونړو اوخاوندان او قبيلو باره كښې وى. الله ﷻ دې اوكړى چه څه هم د دوى نه شم چه دكومو نه الله ﷻ خپلې لپې ډكوى او جنت ته به ئې داخلوى. ( طبرانى ). (٥) ددې حديث شريف سند كښې هم علت نشته دې . والله اعلم.

**د دې تائيد دپاره بل روايت:-** يو حديث مبارك كښې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه دا اويا زره چه بغير حساب اوكتابه جنت ته داخليږى څما خيال دې چه د دوى په راتلو راتلو به تاسو د خپلو بچو او ښځو دپاره په جنت كښې ځائې هم مقررر كړې وى.(مسند احمد)(٦) ددې سند هم دمسلم په شرط صحيح دې.

**څلور راكهه كسان جنت ته بې حسابه داخليدل:-** يو بل حديث مبارك كښې دى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د الله ﷻ وعده ده چه څما په امت كښې به څلور لكه كسان جنت ته داخلوى. ابوبكرصديق ﷛

---

(١) صحيح بخارى كتاب الرقاق باب يدخل سبعون الفا بغير حساب: ٦٥٤١، صحيح مسلم: ٢٢٠)-.

(٢) صحيح مسلم: كتاب الايمان باب ادنى اهل الجنة: منزلة: ١٩١)-

(٣)كتاب السنة لابن ابى عاصم : ٥٨٩، ترمذى: كتاب صفة القيامة باب منه دخول سبعين الف..٢٤٣٧، وهو حسن ، ابن ماجة: ٤٢٨٦، )

(٤) احمد: ٢٥٠/٥، وسنده حسن كتاب السنة لابن ابى عاصم: ٥٨٨)-

(٥) طبرانى : ٣٠٤/٢٢، ح/٧٧١، وسنده حسن . من حديث ابى سعد الانصار وسنده حسن)-.

(٦) احمد: ١٦/٤، ابن ماجة: كتاب الزهد باب صفة امة محمد: ٢٨٥، من وجه اخر وهو صحيح)-

اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! نور نې هم لږ زیات کړنې. دې اوریدو سره عمرفاروق رضی الله عنه اوفرمائیل چه ابوبکر بس کړنې. ابوبکرصدیق رضی الله عنه جواب کښې اوفرمائیل چه ولې روره که مونږ ټول په ټوله جنت ته داخل شو نو دې کښې ستا څه نقصان شته ؟عمرفاروق رضی الله عنه اوفرمائیل که الله ﷺ اوغواړی نویو لاس سره به ټول مخلوق جنت ته داخل کړی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه عمر رضی الله عنه رښتیا وائی(مسند عبدالرزاق). (١)

دا حدیث یو بل سند سره بیان شوې دې ،دې کښې تعداد یو لاکهه راغلې دې ( اصبهانی). (٢)

**بې حسابه جنت ته د داخلیدونکو بل شمیر:-** یو بل روایت کښې راغلی دی چه کله صحابه کرام رضی الله عنهم اویا زره او بیا یو زر سره زر نور او بیا د الله ﷺ د لپې ډکولو په مقدار بې حسابه جنت ته داخلیدل واوریدل. نو وې فرمائیل چه بیا خو د هغه په بدقسمتئ کښې هیڅ شک پاتې نشو. چه هغه د دې باوجود جهنم ته لاړ شی(ابویعلی )(٣)پورتنې حدیث مبارك یو بل سندسره هم بیان شوې دې. په هغې کښې تعداد درې لاکهه دې بیا د عمرفاروق رضی الله عنه قول او د نبی ﷺ تصدیق بیان شوې دې ( طبرانی ) (٤)یو بل حدیث کښې جنت ته د تلونکو ذکر رسول الله ﷺ فرمائیلې دې چه څما دامت ټول مهاجر خو به په دې کښې راشی. بیا نور تعداد به نورو باندې چیپانو سره پوره شی (محمدبن سهل)ابوسعید رضی الله عنه فرمائی چه د رسول الله ﷺ مخکښې حساب کتاب اوکړې شو نوددې تعداد څلور کروړه نوی زره شو (٥)،

**د بې حسابه جنت ته تلونکو د ډیروالی تشبه دتیارې سره:-** یو بل حسن حدیث کښې طبرانی فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه قسم دې په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې د محمد ﷺ روح دې ، تاسو به دیو تیرې شپې په شان بې شمیره جنت ته داخلیږئ .ځمکه به ستاسو نه ډکه شی ، فرښتې به وائی چه محمد ﷺ سره کوم جماعت راغلې هغه د ټولو نبیانو علیهم السلام د جماعت نه زیات دې (٦)

**امت محمد به د جنتیانو دریمه حصه وی:-** جابر رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه صرف څما تابعدار امت به د جنت څلورمه حصه وی. صحابه کرام رضی الله عنهم خوشحاله شو او نعره تکبیر نې اووئیله ، بیا نې اوفرمائیل چه ماته امید دې چه تاسو به د جنت دریمه حصه یئ. (مسنداحمد) (٧)

**امت محمد به د جنت نیمه حصه وی:-** یوبل حدیث پاک راغلی دی رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته اوفرمائیل چه آیا تاسو راضی نه یئ چه تاسو به دټولو جنتیانو څلورمه حصه یئ. مونږ بیا نعره تکبیر اووئیله . بیا نې اوفرمائیل چه زمااميد دې چه تاسو به د جنتیانو کښې په نیم په نیمه تاسو یئ. مونږ ډیر زیات خوشحاله شواودالله ﷻ حمدمو بیان کړو. بیارسول الله ﷺ اوفرمائیل چه آیا تاسو راضی نه یئ چه تاسود اهل جنت دریمه حصه یئ. مونږ بیا تکبیر اووئیلو(بخاری ومسلم) .

**دجنتیانو په شپږ شلو صفونو کښې به مونږ اتیا صفونه یو:-** طبرانی کښې یو روایت کښې دی چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه مروی دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسودې کښې څه وائې چه تاسودجنتیانو څلورمه حصه شئ؛ یاکه دجنت څلورمه حصه تاسوسره وی.مونږ اووئیل چه ډیره ده.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اووائې که نیم په نیمه یئ .نو هغوئ اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ بیاخو ډیر زیات دی.

---

١) مصنف عبدالرزاق : ٢٠٥٥٦، احمد: ١٦٥/٣، السنة لابن عاصم : ٥٩٠)-

٢) احمد: ١٩٣/٣)-

٣) مسند ابي يعلى : ٣٧٨٣ )-

٤) طبراني : ٦٤/١٧)-

٥) المعجم الاوسط للطبراني : ٤٠٦ الكبير: ٣٠٤/٢٢، و مسند احمد: ٤٥٩/٢)-

٦) طبراني : ٣٤٥٥، مجمع الزوائد : ٤٠٤/١٠)-

٧) احمد: ٣٨٣/٣، وسنده صحيح ، مجمع الزوائد : ٤٠٦/١٠، كشف الاستار:٣٥٣٣)-

رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه واورئی ! چه دټولو جنتیانو شپږ شلې صفونه دی، چه په دې کښې به اتیا صفونه صرف څما دامت وی. مسند احمد کښې هم دا روایت دې چه داهل جنت به شپږ شلې صفونه وی اوپه دې کښې به څما دامت اتیا صفونه وی([1]) داحدیث طبرانی او ترمذی وغیره هم نقل کړې دې ([2])
د طبرانی یو بل روایت کښې دی چه کله دا آیت ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ۝﴾ نازل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسو د اهل جنت څلورمه حصه یې: بیا ئې اوفرمائیل چه ثلث به ئې، بیا ئې اوفرمائیل چه دوه حصې ([3]).

**د مترجم دعا:-** (انې لوئې رحمت والا او ډیرو نعمتونو ورکولو والاربه ! مونږ ستا ډیر زیات شکرګزار یو تا هم د معزز اومحترم رسول ﷺ امت کښې پیدا کړی یو. ستا د رښتونی رسول ﷺ د رښتیا خولې مبارکې سره ستاددې عظیم رحم وکرم او کمال سره څمونږ دګناهګارو په خولو کښې اوبه راغلې. انې دمور پلار نه زیات مهربانه الله ! څمونږ امید پست مه کړې او مونږهم دې خلقو سره جنت ته داخل کړه ، انې الله ﷻ ! ستاد رحمت ددې بې شمیره بندګانونه یوقطره هم مونږ ګناهګارو باندې راو وره. نودابه څمونږ د ګناهونو د وینځلو او ستا د رحمت او رضا حاصلولو دپاره کافی وی. انې الله ﷻ ! مونږ د دې پاك ذکر په موقع دسوال لاسونه نیسو اواوښکو او امیدسره ستاد رحمت په طمع ستا د کرم لمنې نیولو سره ستا نه سوال کوو، اې ربه ته ئې قبول کړې ، او خپلې رضا سره مونږ ته هم جنت الفردوس کښې ځائې راکړه. آمین ( اله الحق آمین).

**جنت ته به دټولو نه وړاندې امت محمدیه داخلیږی :-** صحیح بخاری او مسلم شریف کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه مونږ دنیا ته د ټولو نه روستو راغلو یواو جنت ته به د ټولو نه مخکښې څو. او دوی ته کتاب الله مخکښې ملاؤ شو او مونږ ته روستو ملاؤ شو. چه په کومو خبروکښې هغوئ اختلاف کړې دې په هغې کښې الله ﷻ مونږته نیغه لار اوخودله. د جمعې ورځ هم دغه شان ده یعنی یهود څمونږ نه روستو دهفتې په ورځ دی. او نصرانیان هم څمونږ نه روستو دی چه د اتوار په ورځ ([4]).

**ترڅوچه زما امت جنت ته داخل نشی په نورو امتو حرام دې:-** دارقطنی کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ترکومې څه جنت ته داخل نشم نو نورو نبیانو باندې جنت ته داخلیدل حرام دی. او تر کومې چه څما امت داخل نشی نو نورو امتونو باندې جنت ته داخلیدل حرام دی. ([5])

**دبحث خاتمه:-** دا وو هغه احادیث چه مونږ ددې آیت لاندې پیش کول غوښتل . فالحمدلله .

**دحافظ ابن کثیر رحمه الله امت ته نصیحت:-** امت ته پکار دی چه دلته په دې آیت کښې څومره صفتونه دی په هغې مضبوطیاسره قائم پاتې شی. یعنی امر بالمعروف اونهی عن المنکر او ایمان بالله.

عمر بن خطاب رضی الله عنه خپل حج کښې دا آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو او خلقو ته ئې اووئیل چه ائې خلقو که تاسو ددې آیت مبارك تعریف کښې ځان داخلول غواړئ نو دا صفتونه ځان کښې پیدا کړئ . امام ابن جریر رحمه الله فرمائی چه اهل کتابو به هغه کارونه نه پرېښودل دکومو چه به کتاب الله کښې مذمت وو. الله ﷻ فرمائی چه [كَانُوا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَن مُّنكَرٍ فَعَلُوهُ] یعنی دې خلقو به د خرابو خبرو نه منع نه کوله .

**قوله تعالی:** :وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُم ۚ

---

[1]) احمد: ٤٥٣/١، وهو حدیث حسن مسند ابی یعلی : ٥٣٥٨طبران: ١٠٣٥٠، ابن ابی شیبة:٤٧١/١١، شرح مشکل الاثار: ١٥٦/١)-

[2]) احمد:٣٥٥/٥، ترمذی: کتاب صفة الجنة باب ماجاء فی کم صف اهل الجنة: ٢٥٤٦، وهو حسن ، ابن ماجة: ٤٢٨٩)-

[3]) الطبرانی مسند احمد: ٣٩١/٢، باختلاف یسیر)-

[4]) صحیح بخاری کتاب الجمعة باب فرض الجمعة: ٨٧٦، صحیح مسلم: ٨٥٥)-

[5]) ابن عدی : ١٤٤٨/٤ )-

**داهل كتابومذمت:-** دې پورتني ايت كښې د ايماندارو تعريف اوصفت بيان شوې دې نو دې نه پس د اهل كتابومذمت بيانيږي.نو فرمائي كه دې خلقو هم ځما په آخري نبي ﷺ باندې ايمان راوړې وې نودوی ته به هم دا نعمتونه ملاويدل .خو دوی اكثر په فسق او نافرمانۍ كښې مشغول دی.اوڅه خلقو په كښې ايمان هم راوړو.

**قوله تعالى::** وَإِن يُقَاتِلُوكُمْ يُوَلُّوكُمُ الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ

**د ايماندارو غلبه او د يهودو ذلت :-** بيا الله . مسلمانانو ته بشارت وركوی چه ويريږئ مه الله ﷻ به تاسو ستاسو په مخالفو باندې غالب كړی. نوهغوئ الله ﷻ د خيبر په موقع باندې ذليل كړل. او د دوی نه مخكښې بنو قينقاع ،بنو نضير، بنو قريظه نې هم ذليل او پست كړل. دغه شان د شام نصرانيان هم مغلوب شو.او د شام ملك د دوی د لاس نه اووتلو او هميشه دپاره د مسلمانانو قبضه كښې راغلو. او هلته دعيسى ﷺ تر تشريف راوړو پورې يو حق جماعت په حق قائم وی او كله چه عيسى ﷺ راشي نو د ملت اسلام او د شريعت محمد ﷺ مطابق به حكم كوی ،صليب به مات كړی . خنزير به قتل كړی. جزيه به نه اخلی . اوصرف په اسلام باندې به وی.

**قوله تعالى::** ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوا

بيا فرمائي چه په دوی باندې ذلت او پستي راوستلې شوه. دالله ﷻ د پناه نه سوا هچرته هم امن او عزت نشته دې .يعني كله چه جزيه وركوی او د مسلمان بادشاه اطاعت قبول كړی. اوخلقو ته پناه وركوی يعني عقد و ذمه مقرر شي يايو مسلمان امن وركړی اكرچه څوك ښځه وی يا اګر چه غلام وی د عالمانو يو قول دا هم دې

**دحبل نه څه مراد دې؟ :-** د ابن عباس ﷺ قول دې چه دحبل نه مراد عهد دې،چه د غضب مستحق به وی. مسكيني اولګولې شوه.دا ددوی دكفر،د دوی د نبيانو دقتل كولو،د دوی تكبر،حسد ،سركشۍ وغيره بدله ده. هم په دې وجه په دوی لعنت اوپستي راغله اومسكيني په دوی هميشه دپاره راغله.دا ددوی د نافرمانۍ او تجاوز بدله ده. العياذبالله. ابوداؤد طيالسى كښې حديث كښې دې چه بني اسرائيلو به يوه ورځ كښې سل سل نبيان عليهم السلام قتل كول ،اود ورځې په آخر كښې به خپلو كارونو باندې په بازارونو كښې اخته وو (١)

لَيْسُوا سَوَاءً ۗ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ أُمَّةٌ قَائِمَةٌ يَتْلُونَ

| نه دی برابر(ټول اهل كتاب) | د اهل كتابو نه | يوه ډله | ولاړه ده (په حق) | چه لولی

| خو ټول اهل كتاب يو برابرنه دی | په دوئ كښې يوه ډله په حق كلكه ولاړه ده

آيَاتِ اللَّهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُونَ ۝ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ

|ايتونه دالله|په وختونو د شپې كښې |او هغوئ|سجدې كوی الله ته| ايمان لری |په الله تعالى باندې|

اودشپې په وخت كښې هم دالله پاك ايتونه لولی|اوهغه ته سجده كوی | په الله پاك

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ

اوپه ورځ داخرت باندې| اوحكم كوی |په كولو دنيكۍ باندې|اومنع كول كوی| دبدئ نه |

اوپه اخرت باندې ايمان لری | اوخلقو ته دنيكۍ حكم كوی|اوددبدو كارونونه نې منع كوی

وَيُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ ۖ وَأُولَٰئِكَ مِنَ الصَّالِحِينَ ۝١١٤ وَمَا يَفْعَلُوا

اومنډې وهی | په كارونو دنيكۍ كښې| اوداكسان دی | دصالحانونه |اوهغه چه كوی|

اودنيكۍ كارونوته وړاندې كيږی | اودغه خلق دنيكانو په ډله كښې دی|اودوئ چې

(١) ابن ابي حاتم :۲:-

مِنۡ خَيۡرٍ فَلَنۡ يُّكۡفَرُوۡهُ ‌ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌۢ بِالۡمُتَّقِيۡنَ‏ ﴿١١٥﴾ اِنَّ الَّذِيۡنَ

څه نیکي | انوهرګزبه نه کیږي ناقدري دهغې | اوالله | ښه پیژني | پرهیزګار خلق | بیشکه هغه خلق |

هره نیکي اوکړي | نودهغې ناقدري به هیچرې اونشی | اوالله پاک ته پرهیزګار خلق معلوم دی | بیشکه چاچې

كَفَرُوۡا لَنۡ تُغۡنِىَ عَنۡهُمۡ اَمۡوَالُهُمۡ

چه دکفرطریقه ئې اختیار کړه | هرګز به لرې نه کړې شی | دهغوی نه | مالونه دهغوی |

کفرخوښ کړو | ...... نودالله پاک د عذاب په مقابله کښې به نې نه مال څه پکارشي

وَلَاۤ اَوۡلَادُهُمۡ مِّنَ اللّٰهِ شَيۡـــًٔا‌ ؕ وَاُولٰٓـئِكَ اَصۡحٰبُ النَّارِ‌ ۚ هُمۡ فِيۡهَا

اونه اولاد دهغوی | دعذاب دالله نه | هیڅ څیز | اوداکسان | خاوندان د اور دی | دوی به په هغې کښې

اونه به ئې اولاد څه پکار راشي | دا خلق د اور ملګری دی | ............ او دوئ به په کښې

خٰلِدُوۡنَ‏ ﴿١١٦﴾ مَثَلُ مَا يُنۡفِقُوۡنَ فِىۡ هٰذِهِ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا

همیشه وی | مثال | دهغه څه | چه خرچ کوی ئې (کافران) | په دې | ژوند ددنیا کښې |

همیشه وی | ...... کوم مالونه چې دوئ (داسلام برخلاف) په دې ژوند کښې خرچ کوی

كَمَثَلِ رِيۡحٍ فِيۡهَا صِرٌّ اَصَابَتۡ حَرۡثَ قَوۡمٍ

په شان دمثال | ددا سې باد دې | چه په هغې کښې | ډیره یخني وی | چه اورسیږی | فصل | ددیو قوم ته |

دهغې مثال د هغې سیلۍ پشان دې | چې په کښې یخني وی | اوهغه دچا په فصلونو پریوزی

ظَلَمُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ فَاَهۡلَكَتۡهُ‌ ؕ وَمَا ظَلَمَهُمُ

چه هغوی ظلم کړې وی | په خانونو خپلو | اوتباه کړی هغه فصل | اونه دې کړې ظلم په هغوی باندې |

چې په ځان ئې ظلم کړې وی | اوفصل ورله تباه کړی | اوالله په دوی باندې هیڅ قسم ظلم نه دې کړې

اللّٰهُ وَلٰـكِنۡ اَنۡفُسَهُمۡ يَظۡلِمُوۡنَ‏ ﴿١١٧﴾

الله | لیکن | په ځانونو خپلو باندې | ظلم کوی هغوی |

بلکه هغوی پخپله پخپلو خانونو ظلم کړې دې |

قوله تعالى: لَيۡسُوۡا سَوَآءً‌ ؕ

**اهل کتاب او اهل محمد برابر نه دی:** ابن مسعود ﷺ فرمائی چه اهل کتاب او اصحاب محمد ﷺ برابر نه دی.

**د ایت په شان نزول کښې یو روایت:-** مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ یو خل د ماسخوتن مانځه دپاره ناوخته تشریف راوړو. بیا کله چه رسول الله ﷺ تشریف راوړو نوکوم صحابه کرام ﷺ چه انتظار کښې وو رسول الله ﷺ هغوئ ته اوفرمائیل چه هیڅ یو دین والا په دې وخت کښې ذکرنه کوی صرف تاسو د الله ﷻ ذکر کښې مشغول یئ. په دې باندې دا آیت نازل شو (١)

قوله تعالى: مِنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ

**د ایت په شان نزول کښې دویم روایت:-** لیکن داکثرو مفسرینو قول دې چه داهل کتابو علماء لکه عبدالله بن سلام ،اسد بن عبید ،ثعلبه بن شعبه وغیره باره کښې نازل شوې وو. ځکه چه دا خلق په هغه اهل

---

(١) احمد: ٣٩٦/١، وسنده حسن مسند ابی یعلی : ٥٣٠٦، دا ابن حبان: ١٥٣٠، صحیح ګرزولې دې)-

کتابو کښي شامل نه وو چه د کوم مذمت مخکښې تير شو. بلکه دا جماعت د الله ﷻ په امرباندې قائم وو.او دشريعت محمد ﷺ تابع وو. او دوی کښې استقامت دين شته دې.

**د اهل کتابو مومنانو صفات:-** دې پاك خلق د شپې د تهجدو مونځ کوی او په هغې کښې دالله ﷻ کلام وائی. الله ﷻ باندې اود قيامت په ورځ باندې ايمان لری اوخلقو ته هم د دې خبرو حکم کوی .او څوك چه د دې نه خلاف کوی نو هغوئ منع کوی او په نيکوکارونوکښي مخکښې مخکښې وی. نو اوس الله ﷻ هغوئ ته خطاب کوی چه دا نيکان خلق دی،د دې سورت په آخر کښې فرمائی چه ﴿وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ﴾ الخ،بعضې اهل کتاب په الله ﷻ اوپه قران پاك او په تورات او انجيل باندې ايمان ساتی.او دالله ﷻ نه ويريږی الخ. دلته هم فرمائی چه د دوی نيك اعمال به ضائع نشی.او دوی ته به پوره پوره بدله ملاويږی.

**قوله تعالی:: ﴿وَمَا يَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ يُّكْفَرُوْهُ﴾**

**الله د مومن عمل نه ضائع کوی:-** ټول پرهيزګار خلق د الله ﷻ نظر کښې دی او هغه پاك ذات د هيڅ ښه عمل نه بربادوی. خو دې بې دينه خلقو ته الله ﷻ څه فائده نه ورکوی .او نه د دوی مال دوی ته څه فائده ورکوی.اونه ددوی اولاد نو دا جهنميان دی.د(صر)معنی سخته يخنی ده چه کومې سره پټی سوزی. غرض څنګه چه د چا پټې تيار شی اوهغه بيا اوسوزی او ورته هيڅ فائده ورنکړی ،اصل ئې هم خراب شی .او د دوی په اميدونو باندې اوبه توئې شی. دغه شان دا کافران هم دی. چه څه دوی خرچ کوی ، د هغې نيکه بدله خو لا څه کوې بلکه عذاب به ورته ملاويږی. دا د الله ﷻ طرفنه ظلم نه دې بلکه د دوی د بدو عملونو بدله ده .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا
اے هغه کسانو | چه ايمان موراوړې دې |
اے د ايمان خاوندانو

لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَاْلُوْنَكُمْ
مه نيسئ | دوستان د راز | ماسوا ستاسونه بل څوک | هيڅ کمې نه کوی هغوئ تاسوسره |
دمسلمانانونه سوا نورخلق د راز ملګری مه جوړوئ | ............ هغوئ ستاسو ته په نقصان رسولو

خَبَالًا وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ قَدْ
په فساد کولو کښې | خوښ دې دهغوئ | هغه څيز | چه په تکليف کښې اچوی تاسو | په تحقيق سره |
کښې هيڅ قسم کوتاهی نه کوی | کوم څيزچې تاسوپه مشقت کښې اچوی نو دوئ په هغې خوشحاليږی

بَدَتِ الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۚ وَمَا تُخْفِىْ صُدُوْرُهُمْ
ښکاره شو ې دې بغض | د خلودهغوی نه | او هغه څه چه پټ ساتی | سينې (زړونه) دهغوئ |
بيشکه د دوی د خلونه هم دشمنی څرګنده شوې ده | اوکومه چې ئې د دوی زړونه پټوی هغه

اَكْبَرُ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿١١٨﴾
هغه سخت دې | په تحقيق سره بيان کړې مونږ | تاسو ته | انښې ښکاره | که يئ تاسو | چه پوهيږئ |
خولاددې نه زياته ده | مونږتاسوته نښې ښکاره کړی دی | ............که تاسوعقل لرئ

هَاَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ

واورئی تاسو هغه کسان يئ|چه تاسو مينه کوئی دهغوئ سره|اونه کوی مينه هغوئ تاسوسره|

تاسو هغوئ سره مينهٔ محبت کوئی | ..................خو هغوئ تاسو سره مينه محبت نه کوی

وَتُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ ۚ وَاِذَا لَقُوْكُمْ

حال داچه تاسو ايمان لرئی|په ټولو آسمانی کتابونو باندې|اوکله چه هغوئ يو ځائې شی تاسو سره|

په دې وجه چې تاسو په ټول آسمانی کتابونو ايمان راوړئ دې |اوچې کله ني تاسوسره ملاقات اوشی

قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚ وَاِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ

نو وائی|ايمان راوړې دې مونږ|اوکله چه| جدا شی | نوچيچی |ستاسو خلاف| ګوتې |

نو وائی چې مونږ خو هم(ستاسو په کتاب)ايمان را وړئ دې | اوچې کله ځانله شی نود ډيرې غصې نه

مِنَ الْغَيْظِ ؕ قُلْ مُوْتُوْا بِغَيْظِكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ

د(دوچې د) دغصې نه|ورته اووايه| مړهٔ شئ |دغصې خپلې سره| بيشکه |الله تعالی|پوهيږی|

درباندې ګوتې (په غاښونو کښې) چيچی | ورته اووايه چې په خپله غصه کښې مړئ شئ|بيشکه الله

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿١١٩﴾ اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ

په هغه (خبرو)|چه په سينو (زړونو) کښې دی |که در رسيږی تاسو ته | څه ښيګړه |نوهغه خفه کوی هغوئ

ته ستاسو دزړونو حال معلوم دې | .............. ستاسو خوشحالی دوی خفه کوی

وَاِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَّفْرَحُوْا بِهَا ؕ وَاِنْ تَصْبِرُوْا

اوکه اورسی تاسوته|څه بدی(مصيبت)|نو خوشحاليږی په هغې سره| اوکه |تاسو صبر اوکړئی

اوکه تاسوته څهٔ تکليف اورسی نو دوئ پرې خوشحاليږی |...............اوکه تاسو صبراوکړو

وَتَتَّقُوْا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا ؕ

|او ويره اوکړئی (دالله تعالی نه)|نو تکليف به او نه رسوی تاسو ته| مکر (تدبير) د هغوئ| هيڅ څه

او دالله نه موويره اختيارکړه| نو ددوئ فريبونه تاسوته هيڅ نقصان نشی رسولې

اِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ﴿١٢٠﴾

|بيشکه الله|په هغه کارونو|چه کوی ئې هغوئ| احاطه کونکې دې|

بيشکه الله تعالی ددوئ دهر کارنه راچاپيره دې |

قوله تعالی:: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ

**کافران د مسلمانانو دوستان نشی کيدې :-** الله ﷻ ايماندار منع کوی چه کافرو اومنافقانو سره دوستی مه کوئی خکه چه دا خو ستاسو دښمنان دی. د دوی په دې چالاکو خبرو مه تيروځئ. او د دوی مکر کښې مه راځئ او نه ورته داسې موقع ورکوئی چه دوی تاسو ته نقصان اورسوی. اوخپل باطنی عداوت به راوباسی.تاسو دوی بالکل خپل رازدار مه جوړوئی.ستاسو د راز خبرې پکار ده چې دې کافرو ته بالکل اونه رسی(بِطَانَةً) وائی دانسان رازدار دوست ته. او(مِّنْ دُوْنِكُمْ) نه مراد اهل اسلام نه سوا ټولې فرقې دی.

**هرنبي سره دوه ملګري:-** بخاري شريف وغيره کښې حديث دې چه رسول الله ﷺ فرمائي چه کوم نبي الله ﷺ مبعوث کړي او چه کوم خليفه الله ﷺ مقرر کړي. د دوی دپاره نې دوه بطانه مقرر کړي دی .يو د نيکي خبرې پوهولو والا اود نيکئ رغبت ورکولو والا. د بدئي رهبري کولو والا او پدې باندې آماده کولو والا. نو څوک چه الله ﷺ بچ کول غواړي.نوهم هغه بچ کيديشي (١).

**د بطانة په لفظ د عمر ﷺ استدلال:-** عمر فاروق ﷺ ته اوونيلې شو چه دلته د حيره يو سړې دې چه ډير ښه ليکل کوي اودهغه ډيره ښه حافظه ده.تاسو هغه خپل محرر او منشي مقرر کړئ. نو عمرفاروق ﷺ اوفرمائيل چه بيا خو به څه يو غيرمسلم خپل بطانه جوړ کړم او الله ﷺ دا منع کړې دی (٢).

**ذمي ته خاص عهده ورکول جائز نه ده:-** چې دې واقعه ته د دې آيت په تناظر کښې اوکتې شي.نو دا خبره ذهن راځي.چه ذمي کافران هم داسې کارونو باندې نه دی لګول پکار ځکه چه هغوئ به ددې په وجه د مسلمانانودپټو رازونو نه خبر شي .اودمسلمانانو دښمنان به د مسلمانانو مقابله کښې هوښيارکړي. ځکه چه دوی خودا غواړي چه مسلمانان دې پست او ذليل شي.

**د يو حديث مفهوم د حسن بصري رحمه الله په نيز:-** ازهربن راشد وائي چه خلقو به د انس ﷺ نه احاديث آوريدل. که ديو حديث مطلب باندې به پوهه نشول نو د دې مطلب به ئې د حسن بصري رحمه الله نه تپوس کولو. يو ورځ انس ﷺ دا حديث بيان کړو چه د مشرکانو د اورنه رڼا مه اخلئ: او نه خپله ګوته کښې عربي نقش کوئي. هغوئ راغلل او د خواجه صاحب نه د دې د تشريح تپوس اوکړو نو هغوئ اوفرمائيل چه د آخري جملې مطلب خو دا دې چه په ګوته باندې محمد ﷺ مه ليکئ او د رومبئ جملې مطلب دا دې چه مشرکانونه خپلو کارونو کښې مشورې مه اخلئ. او ګورئي کتاب الله کښې هم دی چه ائې ايماندارو د خپلومسلمانانو نه سوا غير مذهب خپل همراز مه جوړوئي (ابو يعلى) (٣).

**دحافظ ابن کثير رحمه الله ترديد:-** خو د خواجه صاحب دا تشريح قابل غورده. دحديث مبارك صحيح مطلب دا مطلب دې چه دمحمد ﷺ نامه په عربئ کښې مه نقش کوئي. اوحديث کښې صفا منع کړې شوې ده (٤) اودا په دې وجه وو چه د رسول الله ﷺ مهر سره مشابهت نه وی. اود اولنئ جملې مطلب دا دې چه د مشرکانو کلو ته نزدې مه ورځئ. د دوی د ګاونډنه لرې اوسئ. د دوی د ښارونونه هجرت اوکړئ. لکه څنګه چه ابوداود کښې دی چه آيا تاسو د مسلمانانواو مشرکانو په مينځ کښې د جنګ اور ته نه ګورئي (٥)اوحديث مبارك کښې دی چه څوك مشرکانو سره ميل جول ساتي يا هغوئ سره وی نو دې هم د هغوئي په شان دې (٦).

**قوله تعالى:: قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۚ**

**کافران د مسلمانانو دشمنان دي:-** بيا فرمائي چه د دوی د خبرو نه د دوی دښمنئ ښکاري. د دوی د مخونو نه هم د دوی د باطني خبرو معلومات کيديشي. او د دوی په زړونو کښې چې تباه کن شرارتونه دی .هغه ستاسو نه پټ دی.خو مونږ تاسو ته صفا صفا بيان کړي دی .عقل مند خلق د داسې مکارو خلقو په مکارئ کښې نه راځي.

**قوله تعالى:: هٰٓاَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ وَتُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ ۚ**

---

(١) صحيح بخاری کتاب القدر باب المعصوم من عصمة الله : ٦٦١١، نسائی: ٤٢٠٧)-
(٢) ابن ابی حاتم: ٢/٥٠٠)-
(٣) نسائی کتاب الزينة باب قول النبی لا تنقشوا ...( ٥٢١٢)-
(٤) صحيح بخاری کتاب اللباس باب قول النبی ( لا ينقش علی نقش خاتمه) ٥٨٧٧، صحيح مسلم : ٢٠٩٢)-
(٥) ابوداود کتاب الجهاد باب النهی عن قتل من اعتصم بالسجود : ٢٦٤٥، نسائی : ٤٨٨٤، ترمذی: ١٦٠٤)-
(٦) ابو داود کتاب الجهاد باب فی الاقامة بارض الشرک : ٢٧٨٧)-

**کافران مسلمانانو سره محبت نه کوي:** بیافرماني چه څومره دکمزورتیا خبره ده چه تاسو دوی سره محبت ساتئ او دوی تاسوسره محبت نه ساتي. ستاسو ایمان کتاب باندې وي او دوی شکونوکښې پریوتي دي .تاسو خو د دوی کتاب منئ او دوی ستاسو کتاب نه مني. نو پکار ووچه دوی تاسو ته په ښه نظر کتي: خو د دې برخلاف دوی ستاسو په دښمنۍ کښې سوزي.

**قوله تعالى:: وَاِذَا لَقُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۖ وَاِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ ط**

**کافرانو د نفاق لار اختیار کړې ده:-** کله چه تاسو سره مخامخ شي نود خپل ایمان قصې کوي. خو کله چه ستاسونه جدا شي نو دغضب اوحسد په وجه سوزي. نو مسلمانانو ته پکاردي چه د دوی په ظاهري حالت باندې نه خوشحالیږي. دوی که سوزي نو سوزي دې الله ﷻ به اسلام او مسلمانانو ته ترقي ورکوي. دا ورځې شپې به هرحالت کښې مخکښې روانې وي. اګر چه دوی دغصې نه مړه شي. الله ﷻ ددوی د زړونو د رازونو نه ښه واقف دې .ددوی ټولې منصوبې به ښاورو سره ښاورې شي . دوی به خپلوشرارتونوکښې کامیاب نشي .دخپلې خوښې خلاف به دوی دمسلمانانو ترقي په خپلو سترګو اویني. اوآخرت کښې به هم دوی ته معلومه شي چه مسلمانان به د جنت په نعمتونو کښې وي. او د دې برخلاف دوی دلته هم رسوا او ذلیل دي اوهلته به هم د جهنم خشاك جوړیږي.

**قوله تعالى:: اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۡ وَاِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَّفْرَحُوْا بِهَا**

**کافران د مسلمانانو په خوشحالۍ خفه کیږي:-** ددوی د دښمنۍ داڅومره لوئې دلیل دې چه کله تاسوته څه فائده اورسي. نو دوی زړه کښې خفه کیږي. اوالله دې نکړې که تاسوته څه نقصان اورسي نو دوی خوشحالیږي .که دالله ﷻ د طرفنه مومنانو سره مدد اوشي .چه دوی په کافرو باندې غالب شي او د دوی تعداد زیات شي نو دوی په دې باندې اوکه مسلمانانو باندې څه تنګي راشي یا دښمنۍ کښې پریوزي نو ددوی اختر شي .

**قوله تعالى:: وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا ط اِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ○**

**مسلمانانوته د صبر او تقوی حکم:-** اوس الله ﷻ ایماندارو ته خطاب کوي او فرماني که تاسو ددې شریرانو د شرارت نه او ددې بدبختانو د مکر نه نجات غواړئ نو صبر اوتقوی او توکل اوکړئ الله ﷻ به ستاسو دښمنان راګیرکړي. په هیچا کښې دا طاقت نشته چه د یو بدئې نه ځان بچ کړي دا خو د الله ﷻ په خوښې سره کیږي. او څه چه الله ﷻ نه غواړي نو هغه نه کیږي. چې څوك په هغه ذات باندې توکل اوکړي نو هغه د ده دپاره کافي دې .دې مناسبت سره اوس د جنګ احد ذکر شروع کیږي. چه په هغې کښې دمسلمانانو دصبر اوتحمل بیان دې. او چه په هغې دالله ﷻ د آزمیښت پوره نقشه ده. او په هغې کښې د مسلمانانواو منافقانو ظاهري فرق دې . واورئ ارشاد دې چه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | غَدَوْتَ | وَاِذْ |
| | | | | اوکله چه سحر وختی راووتلې ته | |
| | | | | اومسلمانانوته ددې حال اووایه، کوم وخت چې ته دسحر | |
| مِنْ اَهْلِكَ | تُبَوِّئُ | الْمُؤْمِنِيْنَ | مَقَاعِدَ | لِلْقِتَالِ ط | وَاللّٰهُ |
| دکور خپل نه | چه مقررول دې | مومنان (په احد کښې) | په ځایونوباندې | دپاره دجنګ | اوالله |
| دکورنه اووتلې | او مسلمانان دې ځائې په ځائې د جنګ د مورچودپاره مقررکولو | | | ............ | اوالله |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَمِيْعٌ | عَلِيْمٌ ﴿١٢١﴾ | اِذْ | هَمَّتْ | طَّآىِٕفَتٰنِ | مِنْكُمْ | اَنْ تَفْشَلَا | |
| ښه آوریدونکي دي | او هر څه نه خبر دي | یاد کړه کله چه | اراده اوکړه | دوه ډلو | ستاسو نه | چه بزدله شي | |
| هر څه آوري او په هر څه پوهه دي \| هر کله چي ستاسو د ملګرو نه دوه ډلو د بزدلئ اراه اوکړه | | | | | | | |
| وَاللّٰهُ | وَلِيُّهُمَا | وَعَلَى اللّٰهِ | فَلْيَتَوَكَّلِ | الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١٢٢﴾ | | | |
| حال دا چه الله تعالی | مددګار د دواړو دی | او خاص په الله تعالی باندي | پکار دي توکل | مومنانو لره | | | |
| او الله تعالی د دواړو مددګار وو \| او مؤمنان دي همیشه صرف په یو الله تعالی بهروسه ساتی | | | | | | | |
| وَلَقَدْ | نَصَرَكُمُ | اللّٰهُ | بِبَدْرٍ | وَّاَنْتُمْ | | | |
| او په تحقیق سره | مدد کړي وو تاسو سره | الله تعالی | په (جنګ د) بدر کښي | او حال دا چه وئ تاسو | | | |
| (او ددې نه مخکښي) الله د بدر په میدان کښي ستاسو مدد کړي وو \| ............... کله چي تاسو | | | | | | | |
| اَذِلَّةٌ | فَاتَّقُوا | اللّٰهَ | لَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ ﴿١٢٣﴾ | | | |
| کمزوری | نو خان اوساتئ | د الله د ناشکرئ نه | امید دي چه تاسو | شکر ګزار جوړ شئ | | | |
| ډیر کمزوری وئ \| نو د الله تعالی نه اویریږئ \| دې د پاره چي تاسو به شکر ګزاره بنده ګان شئ \| | | | | | | | |

**قوله تعالی:: وَاِذْ غَدَوْتَ مِنْ اَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِيْنَ**

**د جنګ بدر بدلې اخستو د پاره د کافرانو تیارئ:** دا د احد د واقعې ذکر دې (1) اګرچه بعضې مفسرین وائی چه دا د جنګ خندق واقعه ده. لیکن صحیح هم دا ده چه دا د جنګ احد واقعه ده چه په دریمه هجرئی یولسم شوال د خالی په ورخ پیښه شوې وه. جنګ بدر کښي مشرکانو پوره شکست خوړلې وو. د دوی سرداران مردار شوی وو. اوس د هغوئ بدله اخستلو د پاره مشرکانو ډیر لوئې تیارې شروع کړې وو. هغه ټول تجارتی مال چه د بدر د جنګ په موقع باندې په نورو لارو راغلې وو هغه ټول د جنګ د پاره کیخودې شو. او د هر طرفنه ئې خلق جمع کړل او د دریو زرو کسانو یو لښکر ئې تیار کړو او پوره سازو سامان سره ئې په مدینه باندې حمله اوکړه.

**د رسول الله ﷺ د صحابو سره مشوره:-** بل طرفته رسول الله ﷺ د جمعې مونځ نه پس د مالك بن عمر ؓ جنازه اوکړه او د اصحابی ؓ د قبیله بنی نجار نه وو. بیائې خلقو سره مشوره اوکړه چي ستاسو په خیال کښي د مدافعت څه صورت کیدیشی ؟ نو عبد الله بن ابی او فرمائیل چه مونږ ته پکار دی چه مدینې نه بهر اونه خو. که هغوئ راشی او پړاو اوکړی نو چي جیل خانه کښي چه راګیر شو. او که مدینې ته راننوتل نو یو طرفته به خمونږ د بهادرو توري وی او بل طرفته به د ښځو والو ښځې وی ، او د پاس نه به د ښځو او ماشومانو کانړې ویشتل وی. او که دا شان واپس شو نو د بربادئی او خسارې نه سوا به بل هیڅ نه وی. لیکن ددې خلاف د بعضو صحابه کرامو ؓ دا رائې وه چه کوم په جنګ بدر کښي نه ووشریك شوی، هغوئ دا زور لګولې وو چه مدینې نه بهر اوخو او میدان کښي ښه په نره د هغوئ مقابله اوکړو .

**د مدینې نه بهرته د وتو فیصله:-** رسول الله ﷺ کور ته تشریف یوړو او وسله ئې واچوله او بهر ئې تشریف راوړو. دې صحابه کرامو ؓ ته خیال راغلو چه مونږ د الله ﷺ د نبی د منشاء خلاف بهرته وتو باندې زور ورکړو. ددې وجې هغوئ اوونیل چه یا رسول الله ﷺ اکه ستاسو اراده دلته د ایساریدو وی نو هم دلته پاتې شئ، خمونږ د طرفنه هیڅ اصرار نشته دې. رسول الله ﷺ او فرمائیل چه د الله ﷺ د نبی د پاره لائق نه

(1) ابن ابي حاتم: ٢/٥١٠ –

دی چه هغه وسله واچوی اوبیا دې هغه اوباسی.اوس خو خه بالکل نه واپس کیږم ترڅو چه هغه اونښی چه کوم الله ﷺ غواړی.

**دعبدالله بن ابی واپس کیدل:-** نو رسول الله ﷺ یو زر لښکر سره مدینې منورې نه اووتلو. هرکله چه شوط ته اورسیدو نودې منافق عبدالله بن ابی دهوکه اوکړه او خپل درې سوه لښکر ئې واپس کړو ، دې خلقو اووئیل چه مونږ ته پته ده چه جنګ خو هسې هم نه کیږی ولې هسې تکلیف اوچت کړو ؟

**په میدان احمد کښې د جنګ نقشه برابرول:-** رسول الله ﷺ دهغوئ هیڅ پرواه اونه کړه او اووه سوه صحابه کرام ﷺ سره د احد غرطرفته لاړل. غر ئې شاته کړو او ددې په بیخ کښې ئې پړاؤ اوکړو. او دا حکم ئې اوفرمائیل چه تاسو ته ترکومې خه اونه وایم نو جنګ بالکل مه شروع کوئی .د پنځوس صحابه کرامو ﷺ یو ډله ئې بیله کړه او ددې امیر ئې عبدالله بن جبیر ﷺ مقرر کړو او ورته ئې اوفرمائیل چه تاسو دې غونډئ ته اوخیژئی اوددې خبرې خیال ساتئی چه هسې نه دښمن د روستو نه راشی .خو ګورئی که مونږ غالب شو یا مغلوب تاسو بالکل ځائې مه پریږدئی .

**دجنګ انتظامات کول:-** دې انتظماتو کولو نه پس رسول الله ﷺ تیار شو او زره ئې واغوستله. (١) مصعب بن عمیر ﷺ ته ئې بیرغ ورکړو. څو هلکان هم په دې لښکر کښې شامل وو.داواړه سپاهیان(ماشومان) هم د جنګ کولو دپاره تیار وو. څه بعضې ماشومان رسول الله ﷺ خان سره بونه تلل. او بیا ئې دوی جنګ خندق کښې شامل کړی وو. جنګ خندق دې نه دوه کاله پس اوشو.

**د قریشو جنګ دپاره راوتل:-**د قریشو لښکر ډیر شان سره راووتلو.دا د دریو زرو سپاهیانو لښکر وو. دوی سره دوه سوه ښه آسونه هم وو.اودا ئې خان سره راوستی وو.د دوی ښی طرفته خالد بن ولید وو او ګس طرفته عکرمه بن ابوجهل وو(دادواړه سرداران روستومسلمانان شوی وو)دهغوئ طرفته بیرغ قبیله بنوعبدالدارسره وو(٢)بیا جنګ شروع شو چه ددې واقعات به موقع په موقع تفسیرسره رازی انشاء الله

**دجنګ شروع په کومه ورځ وه:-** الغرض دې آیت کښې هم د دې بیان دې چه رسول الله ﷺ مدینې نه بهر تشریف راوړو او خلق ئې دجنګ په ځائې مقرر کړل . د میمنه میسره (ښی او ګس طرف ته) لښکر ئې مقرر کړو،الله ﷺ د ټولو خبرو آوریدونکې او د ټولو د زړونو نه ښه خبر دې .روایاتوکښې تر دې راغلی دی چه رسول الله ﷺ د جمعې په ورځ مدینې منورې نه بهر تشریف یوړو او قران پاك فرمائی چه سحر سحرد ټول لښکر ځایونه مقرر وو. نومطلب دا شو چه د جمعې په ورځ ئې پړاؤ اوکړو او باقی کاروائی ئې د خالی په ورځ سحر اوکړه.

**قوله تعالی:** إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا

**د مسلمانانو د دوو قبیلو بزدلی:-** جابر بن عبدالله ﷺ فرمائی چه څمونږ باره کښې یعنی د بنو حارثه او بنو سلمه باره کښې دا آیت مبارك نازل شوې دې .ستاسو دوؤ ډلو د بزدلئ اراده کړې وه. په دې کښې څمونږ د یو کمزورئی بیان دې .خو دا آیت خپل حق کښې ډیر بهتر ګنړو. ځکه چه دې کښې فرمائیلې شوی دی چه الله د دواړو ولی دې (٣)

**قوله تعالی:** وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ

**صحابوٌ ته د بدر د فتح احسان وریادول:-** بیا فرمائی چه ګورئی ما د بدر په ورځ هم تاسو غالب کړئی حالانکه تاسو ډیر کم وې اوتاسو سره سامان هم کم وو. د بدر جنګ په دویمه هجرئی کښې په اولسم (١٧)رمضان المبارك د جمعې په ورځ شوې وو.او هم د دې نوم یوم الفرقان اینودې شوې وو. په دې

---

١) ددې سند ملاؤ نشو او اوګورئی : فقه السیرة للالبانی: ص/٢٢٣،-

٢) اوګورئی دلائل النبوة للبیهقی: ٣/٢٠٧،-

٣) صحیح بخاری: کتاب المغازی باب ( اذ همت طائفتان منکم ...) : ٤٠٥١، صحیح مسلم: ٢٥٠٥)-

ورځ اسلام او اهل اسلام ته عزت ملاؤ شو او شرك برباد شو. محل د شرك ختم شو حالانکه په دې ورځ مسلمانان صرف درې سوه وو. دوی سره صرف دوه آسونه وو. اوصرف اويا اوښان وو. باقي نور پيدل وو.وسله ورسره هم د نيشت برابر وه. او د دښمن تعداد هم د دوی نه درې چنده وو. يو زرونه لږ كم وو. هريو سره زره وه او د ضرورت نه زياته ښه وسله وه. او د ضرورت نه زيات آسونه وو. دمالدارئی دا حال وو چه سرۀ زر ئې اغوستی وو. په دې موقع الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته عزت وركړو او غالب ئې كړو. خپله وحی ئې نازله كړه او خپل نبی ﷺ او د دوی ملګری مبارك ئې كامياب كړل. اوشيطان او د هغه لښكر ئې تباه كړو.خپلو مومن بندګانو او جنتي لښكر ته دې آيت كښې دا احسان وريادوی چه ستاسو د كم تعداد نه باوجود او د ظاهری اسبابو د عدم موجودګئ نه باوجود تاسو مې غالب كړئی چه تاسو ته معلوم شي چه غلبه صرف په ظاهری اسبابو باندې موقوف نه ده. هم ددې وجې دويم آيت كښې صفا صفا فرمائی چه جنګ حنين كښې تاسو په ظاهری اسبابوباندې نظراوكړو اود خپل زيات تعداد په ليدو خوشحاله شوی وې ، خوستاسو هغه زيات تعداد او موجود اسبابو تاسو ته هيڅ فائده درنكړه.

**په جنګ يرموك كښې د مسلمانانو فتح:-** عياض اشعری رحمه الله فرمائی چه جنګ يرموك كښې خمونږ پنځه سرداران وو① ابوعبيده رضي الله عنه ② يزيد بن ابوسفيان رضي الله عنه ③ ابن حسنه ④ خالد بن وليد رضي الله عنه ⑤ اوعياض رضي الله عنه. او د خليفه عمر فاروق رضي الله عنه حكم وو چه د جنګ په وخت كښې دې ابوعبيده رضي الله عنه سرداری اوكړی. دې جنګ كښې مونږ ته د څلورو واړو طرفونو نه د شكست آثار په نظر راغلل نو مونږ خليفه عمر فاروق رضي الله عنه ته اوليكل چه مونږ مرګ سره مخ يو تاسو مونږ سره مدد اوكړئی. خمونږ جواب كښې عمر فاروق رضي الله عنه مونږ ته اوليكل چه ستاسوخط ماته ملاؤ شو او دې كښې د مدد طلب وو. خه تاسو ته داسې يوذات ښايم چه د ټولو نه زيات مددګار او د ټولو نه زيات مضبوط لښكر والا دې. اوهغه ذات باری تعالی دې چه هغه د خپل بنده او رسول ﷺ مدد اوكړو د بدر په ورځ. بدری لښكر خو ستاسو نه ډير كم وو. خما خط آوريدو سره جهاد شروع كړئی. او اوس ته ما نه تپوس كوئی اونه مه څه ليكئی. دې خط سره خمونږ بهادری نوره هم زياته شوه. خمونږ همتونه زيات شو. بيا مونږ ښه په نره جهاد اوكړو. الحمدلله دښمن ته ماته اوشوه او هغوئ اوتښتيدل. مونږ دولسو ميلو پورې هغوئ پسې لاړو. د غنيمت ډير سامان مو جمع كړو او دا مو خپلو كښې تقسيم كړو. بيا ابوعبيده رضي الله عنه اوفرمائيل چه ما سره به څوك منډه اووهی؟ يو ځوان اووئيل كه تاسوخفه كيږئی نه نو خه به حاضرشم. نو په منډه كښې هغه مخكښې لاړو.ما اوكتل چه د هغه دواړه زلفې هوا كښې الوتې.اوهغه د دې ځوان روستوآس زغلولو. (١)

**مقام بدر ته بدر ولې وائي؟:-** بدربن نارين يو سړې وو. دده په نوم يو كوهې مشهور وو. او د دې ميدان هم دا نوم وو.د بدر جنګ هم په دې نوم سره مشهور شو. دا ځائې دمكې او مدينې ترمينځه دې.

**قوله تعالى::** فَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ۝

**دالله نه د ويرې حكم:-** بيا فرمائي چه دالله تعالى نه ويريږئی چه تاسو ته د شكر ادا كولو توفيق ملاؤشی. او تاسو اطاعت اوكړئی شئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِذْ تَقُوْلُ | | | | |
| ياد كړه چه كله تااووئيل | | | | |
| په كوم وخت | | | | |
| لِلْمُؤْمِنِيْنَ | اَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ | اَنْ يُّمِدَّكُمْ | رَبُّكُمْ | بِثَلٰثَةِ اٰلَافٍ |
| مومنانوته | ايا نه كافي كيږی ستاسو دپاره داخبره | چه مدد اوكړی ستاسو | رب ستاسو | په درې زره |
| كښې چې تامسلمانانو ته اووئيل | چې تاسو دپاره ولې داخبره كافی نه ده | چې الله درې زره | | |

(١) احمد: ٤٩/١، وسنده صحيح ، ابن حبان : الاحسان: (٤٧٤٦)-

مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُنْزَلِيْنَ ﴿١٢٤﴾ بَلٰٓى ۙ اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا

افرښتو سره | چه راولېږلي شوي (داسمان نه) | او کافي کېږي | که تاسو صبر اوکړو | او اوېرېږئ دالله تعالى نه

فرښتي راکوزي کړي | اوستاسو مدد اوکړي | بلکه که تاسو ټينګ پاتي شوئ اودالله د نافرماني نه مو ځان

وَيَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ اٰلٰفٍ

|اوراشي دښمن په تاسو | په دغه وخت (يوناڅاپه) | مدد به اوکړي شي ستاسو | رب ستاسو | په پنځو زرو |

اوساتلو | اوپه تاسودشمن ناڅاپه حمله اوکړه | ......... نو ستاسو رب به تاسو سره د پنځو زرو

مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ ﴿١٢٥﴾ وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ

فرشتوسره | چه نښي داري به وي | اونه دي ګرځولي الله تعالى دا مدد | مګر | خوشحالى | ستاسودپاره

فرشتو په ذريعه مدد اوکړي | اوهغوئ به نشانداري وي | اوداخبره ستاسودپاره الله پاک خوشحالى ګرځولي ده

وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ بِهٖ ۗ وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

او دپاره ددي چه مطمئن شي | زړونه ستاسو | په دي سره | اونه دي مدد | مګر دي | دالله تعالى دطرفه نه

اوددي دپاره چه په دي باندي ستاسو زړونه مطمئن شي | اود الله نه سوا د بل چا د طرفه مدد نشته

الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ﴿١٢٦﴾ لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا

اچه غالب دي | حکيم دي | مدد کوي دپاره ددي چه پريکړي | يوه حصه | دهغه کسانو نه | چه کفرني کړي

اوهغه داختيار او حکمت خاوند دي | (اومدد ځکه کوي) چي د کفارويو ډلي ته (دجنګ بدر په ميدان کښي)

اَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنْقَلِبُوْا خَآئِبِيْنَ ﴿١٢٧﴾ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ

ياداسي شکست ورکړي هغوئ ته | چه واپس لاړ شي نامراد | نشته تاسولره | دفيصلي کولو په اختياراتو کښ

شکست ورکړي ايا ئي خوار اوذليل کړي | چي نامراده واپس لاړ شي | (زما محبوبه ددوئ) فيصله ستا په لاس کښي نده

شَيْءٌ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ اَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَاِنَّهُمْ

څه حصه (اختيار دالله دي) | ايابه معاف کړي | هغوئ لره | ايا به عذاب ورکړي هغوئ لره | پس بيشکه هغوئي

که دالله تعالى خوښه شي | نو ددوئ توبه به قبوله کړي | اوکه دالله پاک خوښه شي | نو دوئ ته به عذاب ورکړي ځکه چي دوئ

ظٰلِمُوْنَ ﴿١٢٨﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ

|ظالمان دي | او الله تعالى لره دي | هغه څه | چه په اسمانونو کښي دي | اوهغه څه | چه په زمکه کښي دي

په خپل ځان زياتي کوي | اوهرڅه چي په اسمانونو کښي دي | اوکه په زمکه کښي دي | هغه ټول دالله دي

يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ

ابښي | هغه څوک | چه خوښه ئي شي | اوعذابوي | هغه څوک | چه خوښه ئي شي | اوالله تعالى

چاته چي غواړي نو ښښنه کوي | اوچاته چي غواړي نو عذاب ورکوي | ..................: اوالله پاک

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٢٩﴾

ښښونکي | رحم کوونکي دي |

ښښونکي مهربان دي |

قوله تعالی: ﴿إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَنْ يَكْفِيَكُمْ أَنْ يُمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ﴾

**فرښتې په کوم جنګ کښې نازلې شوې وې؟** بعضې وائي چه درسول الله ﷺ داتسلئ ورکول دبدر په ورځ وو. حسن بن بصری رحمه الله، شعبي رحمه الله، ربيع بن انس رحمه الله وغيره نه هم دا قول نقل دې[1] ابن جرير رحمه الله هم دا قول خوښوي. ② دعامر شعبي رحمه الله قول دې چه مسلمانانو ته دا خبر ملاؤ شوې وو چه کرزبن جابر د مشرکانو مدد دپاره راځي. په دې باندې د مدد کولو وعده شوې وه. خو بيا رانغلو. ربيع بن انس رحمه الله فرمائي چه الله ﷻ مخکښې د مسلمانانو دمدد دپاره زر فرښتې اوليږلې بيا درې زره شوې. بيا پنځه زره[2] دلته دې آيت کښې د دريو او بيا دپنځو زرو دمدد وعده ده. د بدر دواقعې په وخت کښې د يوزر فرښتو د مدد وعده وه. فرمائي چه ﴿فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُمْ بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلَٰئِكَةِ مُرْدِفِينَ﴾ او دې دواړو آيتونو کښې تطبيق هم دادې څکه چه ﴿مُرْدِفِينَ﴾ لفظ موجود دې. نو رومبې يو زر نازلې شوې اوبيا دې نه پس درې زره نورې نازلې شوې اوآخر پنځه زره پوره شوې. په ظاهره معلوميږي چه دا وعده د جنګ بدر دپاره وه. دجنګ احد دپاره نه وه ③ بعضې وائي چه دجنګ احد په موقع باندې داوعده شوې وه. مجاهد رحمه الله، عکرمه رحمه الله، ضحاك رحمة الله عليه، زهری رحمه الله، موسی بن عقبه رحمه الله وغيره نه هم دا قول نقل دې. خو دوی وائي چه مسلمانان ميدان نه تښتيدلي وو نو ددې وجې فرښتې نازلې شوې. څکه چه ﴿وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا﴾ سره هم دا فرمائيلي وو. يعني که تاسو صبر اوکړئ او تقوی اختيار کړئ د ﴿فَوْرِهِمْ﴾ معنی وجد اوغضب ده. ﴿مُسَوِّمِينَ﴾ معنی علامت والا.

قوله تعالی: ﴿يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُم بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَٰئِكَةِ مُسَوِّمِينَ﴾

**د فرښتو نښې:** علي ﷺ فرمائي چه دفرښتونښه دبدر په ورځ سپين رنګ وړئ وه[3] اوددې آسونونښه دا وه چه د دوی په تندو باندې سپينوالې وو.

ابوهريره ﷺ فرمائي چه د سور رنګ نښه وه. مجاهد رحمه الله فرمائي چه د څټ ويښته او د لکئ نښه وه. اوهم دا نښه د رسول الله ﷺ د لښکر وه يعني دوړئ

مکحول رحمه الله فرمائي چه د فرښتو نښه د وړنې پټکې وو چه د تور رنګ پټکې وو او د حنين په ورځ سره پټکې وو.[4]

ابن عباس ﷺ فرمائي چه د بدرنه علاوه په هيڅ جنګ کښې فرښتې نه دې شريکې شوې. او دا د سپين رنګ پټکې علامت وو. دا صرف مدد دپاره او شمير زياتولو دپاره وې. جنګ دپاره نه وې. دا هم مروی دی چه جنګ بدر کښې د زبير ﷺ په سرباندې د سپين رنګ صافه وه او فرښتو د زيړ رنګ[5].

قوله تعالی: ﴿وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوبُكُم بِهِ﴾

**دفرښتو د راتلو په زيرې کښې فائده:** بيا فرمائي چه دا د فرښتو نزول اوتاسو ته ددې خبر درکول صرف ستاسو د خوشحالولو د پاره او ستاسو د دلجوئي دپاره دې ګنې الله ﷻ ته دا قدرت حاصل دې چه بغير ددوی د نزول نه تاسو غالب کړي. مدد د هغه ذات طرفنه دې. لکه بل ځائې کښې فرمائي چه ﴿وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانتَصَرَ مِنْهُمْ﴾ الخ. که الله ﷻ اوغواړي چه نود دوی نه پخپله بدله واخلي. ليکن هغه ذات هر يو باندې آزمښيت کوي. د الله ﷻ لار کښې چه څوك قتل شی د دوی اعمال ختم نشو بلکه الله ﷻ به دوی

---

[1] ابن ابي حاتم : ٥١٩/٢-
[2] الطبری : ١٨٧/٧-
[3] ابن ابي حاتم : ٥٢٥/٢-
[4] طبرانی :: ١١٤٦٩-
[5] ابن ابي حاتم : ٥٢٧/٢-

ته لار ښائي او د دوی اعمال به بهتر کړي. او دوی به جنت ته داخل کړي. او د دوی تعريف هغه کړيدې او هغه ذات عزت والا دې او خپل هر يو کار کښې حکمت لري.

**د جهاد حکمتونه:-** دا د جهاد حکم هم په رنګ رنګ حکمتونو مبنی دې. ①دې سره به کافران هلاك شي ②يا به ذليل شي ③يا به نامراد واپس شي.

**قوله تعالى: لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ**

**نبی کريم ﷺ باندې عتاب:-** دې نه پس بيان کيږي چه د دنيا او آخرت ټول امور دالله ﷻ لاس کښې دی. اې نبی ﷺ تاته د دې يو خبرې اختيار نشته دې .لکه فرمائی چه ﴿فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ﴾ الخ. ستاسو په ذمه د دوی هدايت نشته دې ، چاته چه الله ﷻ غواړی نو هدايت ورته ورکوی .او يو ځائې کښې فرمائی چه ﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ﴾ الخ. او چاته چې ته غواړې نو هدايت نشې کولې.بلکه الله ﷻ چه چا ته اوغواړی نو هدايت کوی. نو ځما بندګانو کښې ستا هيڅ اختيار نشته دې . تاته چه کوم حکم اورشی نو دا نورو ته رسوئې ، ستا په ذمه هم دا ممکن دی چه الله ﷻ دوی ته توبه ورنصيب کړي. او د بدنی نه پس به هغوئي نيکی کوی. او الله ﷻ به د دوی توبه قبوله کړي. يا ممکن ده چه دوی ته د دوی د کفر اوګناه په وجه عذاب ورکړي نو دا ظالمان ددې مستحق دی.

**د ايت شان نزول:-** صحيح بخاری کښې دی چه رسول الله ﷺ به کله د سحر مونځ کښې د دويم رکعت نه سر اوچتولو او ﴿ سمع الله لمن حمده ربنا لك الحمد﴾ به ئې اووئيل نو کفارو ته به ئې بددعا کوله چه اې الله ﷻ! فلانی باندې لعنت اوکړی .دې باره کښې دا آيت نازل شو چه ﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ﴾ (١).

مسند احمد کښې ددې کافرو نومونه هم راغلی دی. لکه حارث بن هشام ، سهل بن عمرو ، صفوان ابن اميه . او هم په دوی کښې بالاخر څه دوی ته هدايت نصيب شو او هغوی مسلمانان شو.(٢) يوروايت کښې دی چه د څلورو کسانو دپاره ئې دا خيرې کړې وې. او د هغې نه رسول الله ﷺ منع کړې شو.

صحيح بخاری کښې چه کله به رسول الله ﷺ دچا دپاره ښه دعا يا بد دعا کوله نو رکوع نه پس به ئې ﴿ سمع الله﴾ الخ او ﴿ربنا﴾ به ئې وئيله او بيا به ئې دعاکوله. کله بـه ئې وئيل چه اې الله ﷻ! وليدو بن وليدو ، سلمه بن هشام ، عياش ابن ابی ربيعه تباه کړه اوکمزورو مومنانونه ته نجات ورکړې . اې الله ﷻ! قبيله مضر باندې خپل پکړ اوعذاب نازل کړه او په دوی باندې داسې قحط راوله لکه څنګه چه دې ديوسف ﷺ زمانه کښې راوستې وو.دا دعابه په اوچت آواز کيدله. او بعضې وختونوکښې به د سحرمونځ کښې قنوت کيدو او دې کښې به ئې داسې وئيل چه اې الله ﷻ! فلانی فلانی باندې لعنت اوليږه. او د عربو د بعضو قبيلو نومونه به ئې اخستل.(٣)

**د ايت په شان نزول کښې بل روايت:-** او يو روايت کښې دی چه جنګ احد کښې چه کله د رسول الله ﷺ غاښونه مبارك شهيدان شو ، مخ مبارکه ئې زخمی شوه او مخ مبارك نه ئې وينه بهيدله نو خولې مبارکې نه ئې اووتل چه هغه قوم به څنګه نجات بيا مومی چه هغوئ خپل نبی سره دا شان کوی. حالانکه نبی دوی الله ﷻ ته بلی. دې وخت کښې دا آيت نازل شو چه ﴿ لَيْسَ لَكَ﴾ الخ(٤)رسول الله ﷺ دې جنګ کښې يو کنده کښې غوزار شوی وو. اورسول الله ﷺ نه وينه روانه وه. څه خو د دې کمزورنې په وجه اوڅه په دې وجه چه دوه زرې ئې اغوستې وې او پاسيدې نشو.د حذيفه ﷺ مولی سالم ﷺ

---

(١) صحيح بخاری کتاب المغازی باب ( ليس لک من الامر شیء......) : ٤٠٦٩، نسائی: ١٠٧٩)-

(٢) احمد: ٩٣/٢ ، ترمذی: کتاب تفسير القران باب ومن سورة آل عمران : ٣٠٠٤وهو صحيح)-

(٣) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة آل عمران باب ( ليس لک من الامر شیء...) : ٤٥٦٠ صحيح مسلم: ٦٧٥)-

(٤) صحيح بخاری کتاب المغازی بآب ( ليس لک من الامر .....) قبل حديث : ٤٠٦٩، صحيح مسلم: ١٧٩١)-

راورسیدو او ود مخ مبارکې نه نې وینه اوچه کړه. هرکله چه لږ شان بنه شو نو رسول الله ﷺ دا اوفرمائیل او دا آیت نازل شو.(¹)

**قوله تعالى: وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ**

بیا فرمائي چه د زمکې او آسمان هر څیز دهغه پاك ذات دې ، ټول دهغه پاك ذات غلامان دي. چا ته چه اوغواړي نو بښنه اوکړي او چاته چې اوغواړي نو عذاب ورکړي. متصرف هم هغه ذات دې چه څه حکم غواړي نو کوی نې ، هیڅوك د هغه نه اعراض نشي کولې. هغه غفور رحیم دې .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا تَاْكُلُوا | الرِّبٰوٓا | |
| اِئي هغه کسانو | چه ایمان موراوړي دي | مه خورئي | سود | |
| ......ائي دایمان خاوندانو | ......................تاسو (مال د) سود مه خورئ | | | |
| اَضْعَافًا | مُّضٰعَفَةً | وَّاتَّقُوا اللّٰهَ | لَعَلَّكُمْ | تُفْلِحُوْنَ |
| دوچند | په بیابیادوچندئي سره | او ویریږئي دالله نه | امید دي چه تاسو | به کامیابي(فلاح) اومومئ |
| چي هغه په څوڅوچنده زیاتېږي | او الله نه ویریږئ | ....................دي دپاره چه کامیاب شئ | | |
| وَاتَّقُوا | النَّارَ الَّتِيْٓ | اُعِدَّتْ | لِلْكٰفِرِيْنَ | وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ |
| اوخان اوساتئ | اد اورهغه نه | چه تیار کړې شوې دې | دپاره دکافرانو | اوحکم اومنئ دالله |
| اودهغې اور نه خان بچ کړئ | چې کوم کافرانو دپاره تیارشوې دې | اود الله پاك تابعداری کوئ | | |
| وَالرَّسُوْلَ | لَعَلَّكُمْ | تُرْحَمُوْنَ | وَسَارِعُوْٓا | اِلٰى مَغْفِرَةٍ |
| اودرسول | امید دي چه په تاسو | به رحم اوکړې شي | او په منډه ځئ | بښنې ته |
| او د رسول تابعداری کوئ | دې دپاره چې په تاسو رحم اوشي | اود خپل پروردګار بخشش او جنت | | |
| مِّنْ رَّبِّكُمْ | وَجَنَّةٍ | عَرْضُهَا | السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ | اُعِدَّتْ |
| دطرفه درب ستاسونه | وجنت ته | چه پلنوالي دهغې | آسمانونه دي او زمکه ده | چه تیار کړې شوې دی |
| (حاصلولو) ته تلوار کوئ | هغه جنت چه دهغې پلنوالي دآسمانونو او زمکې برابر دې | دغه جنت داسې | | |
| لِلْمُتَّقِيْنَ | الَّذِيْنَ | يُنْفِقُوْنَ | فِي السَّرَّآءِ | وَالضَّرَّآءِ |
| دپاره د پرهیزګارانو | هغه پرهیزګاران | چه خرچ کوی مال | په خوشحالۍ کښې | اوپه تکلیفونو کښې |
| پرهیزګارو دپاره تیار شوې دې | چې دفقیرۍ او مالدارۍ په وخت کښې خپل مالونه خرچ کوی | | | |
| وَالْكٰظِمِيْنَ الْغَيْظَ | وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ | وَاللّٰهُ | يُحِبُّ | الْمُحْسِنِيْنَ |
| اوتیرونکی دغصې وی | اومعاف کونکي دخلقو دي | اوالله تعالی | خوښوی | نیکی کونکی خلق |
| اوقهر اوغصه برداشت کوی | اوخلقو ته معافی کوی | ..............اوالله پاك داسې نیکان خلق خوښوی | | |
| وَالَّذِيْنَ | اِذَا فَعَلُوْا | فَاحِشَةً | اَوْ ظَلَمُوْٓا | اَنْفُسَهُمْ |
| اوهغه کسان دي | کله چه اوکړي هغوی | دبې حیائی کار | یاظلم اوکړی هغوی | په خانونو خپلوباندې |
| اوهغوی داسې نیکان خلق دي | چې کله ترې د بې حیائي کاراوشي | یا په خان څه زیاتې اوکړي | | |

¹) دا روایت مرسل یعنی ضیعف دې)-

| |
|---|
| ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا |
| انو یاد کړی الله\| اومعافی غواړی\| دپاره دګناهونو خپلو\|اوڅوک دی \| چه معاف کوی \| ګناهونه \|سوا |
| نو (هغه وخت) ورته الله یاد شی \| اودخپل ګناهونوبښنه غواړی\|اوبل څوک دی چې ګناهونه به اوبښی بغیر |
| اللّٰهُ وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَهُمْ |
| \| دالله تعالی نه\| اونه کوی ټینګتیا (همیشوالی)\| په هغه (ګناه)\| چه اوکړی هغوی\|اوحال دا چه هغوی |
| دالله تعالی نه \|اوهغوی پخپلو غلطو کارونو هجری همیش والی نه کوی (بلکه سمدستی توبه اوباسی) |
| يَعْلَمُوْنَ ۝ اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ مَّغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَجَنّٰتٌ |
| \| پوهیږی په بدئی خپلی\| دامتقیان دی\|بدله دهغوی ده\| ښښنه \| دطرفه درب دهغوی نه\| اوباغونه دی |
| اګرچې هغوی په دې خپلې بدئ پوهیږی. \| دداسې خلقوبدله دا ده \| چې الله به ورته ښښنه اوکړی |
| تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَنِعْمَ |
| چه بهیږی به\|لاندې د (ونو) دهغې نه نهرونه\| چه همیشه به وی\|په هغې کښې \|او ښنګه ښه ده بدله |
| اوداسې باغونه بهٔ ورکړی \| چې دهغې د (مانړو د) لاندې به نهرونه بهیږی\| همیشه به په کښې اوسیږی |
| اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ۝ |
| دنیک عمله خلقو\| |
| اودنیکانودپاره ډیره ښه بدله ده \| |

قوله تعالى: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً

**د سود حرمت :-** الله ﷻ خپل مومنان بندګان د سود نه او سودی کاروبار نه منع کوی. جاهلانو به د سود قرضې ورکولې. یو موده به مقرروله شوه. که دې موده کښې به رقم وصول نه شو نو موده به نې زیاتوله او دې سره به نې سود هم زیاتولو. او دا شان به سود زیاتیدو زیاتیدو او اصل رقم نه به هم زیات شو. الله ﷻ خلق ددې ناحق مال اخستلو نه منع کوی. او د تقوی حکم ورکوی او په دې باندې دنجات وعده کوی. د اور نه نې ویروی. او د خپلو عذابونو نه نې هم ویروی. اوبیانې خپل او د خپل رسول په اطاعت باندې آماده کوی. او ده سره د رحم اوکرم وعده کوی.

قوله تعالى: وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ

**د جنت پلنوالې:-** بیا نې د سعادت دارین د حصول دپاره نیکو طرفتـه رابللی. اود جنت تعریف کوی. د لنډوالی بیان کوی او د اوږدوالی اندازه په آوریدو باندې پریږدی. لکه څنګه چه د جنت د فرش تعریف کوی او فرمانی چه ﴿بَطَآئِنُهَا مِنْ اِسْتَبْرَقٍ﴾ یعنی ددې استر د نرمو ریښمو دې. نو مطلب دا دې چه هرکله استر داسې دې نو د ظاهر به نې څه حال وی. همدغه شان ددې بیان دلتـه هم کیږی. هرکله چه ددې پلنوالې د اووه آسمانونو او اووه زمکو برابر دې نو د دې پلن والې به څومره وی. او بعضو ونیلی د دی چه لنډوالې او پلن والې دواړه برابر دی. ځکه چه جنت د قبه په شان دې چه عرض لاندې ده. او چه کوم څیز دقبه په شان وی یا مستدیر وی د هغې لنډوالې او پلن والې یوشان وی.

**د جنت الفردوس فضيلت:-** يو صحيح روايت كښې دي چه هركله تاسو د الله ﷻ نه سوال كوئى نو د هغه پاك ذات نه فردوس غواړئ. هغه د ټولو نه اوچت او د ټولو نه بهتر جنت دې. هم د دې جنت نه ټول نهرونه راوځى. او د دې چت د الله ﷻ عرش دى (١)

**د هرقل په نبى كريم ﷺ باندې سوال:-** مسند احمد كښې دى چه هرقل رسول الله ﷺ ته يو سوال د اعتراض په طور اوليږلو چه تاسو ماته د هغه جنت دعوت راكوئ چه د هغې لندوالى او پلن والى د آسمانونو او زمكې برابر دې. نو بيا تاسو اووايئ چه جهنم چرته دې ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه سبحان الله كله چه شپه راشى نو ورځ چرته لاړه شى ؟ چه كوم قاصد دا خط د رسول الله ﷺ خدمت كښې پيش كړې وو او حاضر شوې وو هغه سره د يعلى بن مره ملاقات حمص كښې شوې وو. وائى چه په دغه وخت كښې هغه ډير زيات بوډا وو. وې ونيل چه كله ما دا خط رسول الله ﷺ ته وركړو نو هغوئ خپل ګس طرفته ناست يو صحابى ته وركړو. ما د خلقو نه تپوس اوكړو چه دده څه نوم دې ؟ خلقو اووئيل چه دا معاويه دې (٢) عمر فاروق ﷺ نه هم دا سوال شوې وو نو هغوئ فرمائيلى وو چه د ورځې په وخت كښې شپه او د شپې په وخت كښې ورځ چرته ځى؟ يهودو چه دا جواب واوريدو نو شرمنده شو او وې وئيل چه دا خو توراة نه اخستې شوې دې . ابن عباس ﷺ نه دا جواب مروى دې. يو مرفوع حديث كښې دى چه يو كس د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه كله هر يو څيز باندې شپه راشى نو ورځ چرته لاړه شى ؟ نو دوى اووئيل چه چرته الله ﷻ غواړى. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه جهنم هم چه چرته الله ﷻ غواړى ( بزار)(٣).

**د جملې دوه مطلبونه:-** د دې جملې دوه معنې دى ، يو خو دا چه د شپې په وخت كښې مونږ ورځ نشو كتلې .خو دا هم نا ممكنه نه ده .چې ورځ دې په يو خائې كښې هم نه وى. هم دا شان د جنت پلن والې هم دې . خو بيا هم د جهنم دوجود نه انكار نشى كيدې. الله ﷻ چه چرته غواړى نو هغه هم دې② دويمه معنى دا ده چه هركله ورځ ديو طرفنه راوځى نو شپه د بل طرفنه راوځى.دغه شان جنت اعلى عليين كښې دې او جهنم اسفل السافلين كښې دې خو څه منافات نشته دې ، والله اعلم.

**قوله تعالى::** ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ فِى ٱلسَّرَّآءِ وَٱلضَّرَّآءِ وَٱلْكَٰظِمِينَ ٱلْغَيْظَ

**د مومنانو بندګانو صفات :-** بيا الله ﷻ د جنتيانو صفت بيانوى چه ( دا هغه خلق دى) چه په غم كښې خوشحالئ كښې ، صحت كښې او بيمارئ كښې غرض هر حال كښې د الله ﷻ لار كښې خپل مال خرچ كوى. لكه څنګه چه بل ځائې كښې دى : يعنى هغه خلق شپه ورځ په پټه او ښكاره خرچ كوى . هيڅ يو كار هغوئ د الله ﷻ د اطاعت نه نه شى بندولې . دهغه په مخلوق باندې د هغه حكم سره احسان كوى. داغصه برداشت كوونكى اوخلق د بدو نه منع كونكې دى .د﴿ كظم ﴾ معنى پټ هم ده .يعنى د خپلې غصې اظهار هم نه كوى.

**د غصې برداشت كولو كښې حديث قدسى:-** بعضې روايتونو كښې دى چه ائې ابن آدم كه د غصې په وخت كښې ته ما ياد كړې يعنى ځما حكم اومنې نو زه به تا د خپلې غصې په وخت كښې ياد كړم. يعنى د هلاكت په وخت كښې به تا بچ كړم. ( ابن ابى حاتم ) (٤).

---

(١) صحيح بخارى كتاب الجهاد باب درجات المجاهدين: ٢٧٩٠)-.

(٢) احمد: ٤٤١/٣)-.

(٣) مسند البزار : ٢١٩٦، حاكم: ٣٦/١، ابن حبان: ١٠٣، وسنده صحيح)-

(٤) مسند يعلى : ٤٣٣٨)-

**غصه برداشت كولو د عذاب نه د بچ كيدل دي:-** اويوبل حديث مبارك كښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه كوم كس غصه باندې قابو راولي نو الله ﷻ د هغه نه عذاب لرې كوي. اوچه كوم سړې خپله ژبه دخلاف شرع خبرو نه اوساتي نو الله ﷻ به دده پرده اوساتي. دا حديث غريب دې اوددې سند كښې كلام شته دې
**پهلوان څوک دې؟:-** حديث مبارك كښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه پهلوان هغه نه دې چه بل لره راوپرزوي بلكه حقيقت كښې پهلوان هغه دې چه د غصې په وخت كښې خپل نفس قابو كښې اوساتي. (احمد) ([1])
**مونږ ته د وارث مال د خپل مال نه زيات خوښ دې:-** صحيح بخاري اومسلم كښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه تاسو كښې څوك داسې دی چه هغه ته د خپل وارث مال د خپل مال نه زيات خوښ دې ؟ خلقو اووئيل چه يارسول الله ﷺ ! هيڅوك نشته دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه خه وينم چه تاسو ته د خپل مال نه دخپل وارث مال زيات خوښ دې. خكه چه حقيقت كښې خوستاسو مال هغه دې كوم چې تاسو د الله ﷻ لار كښې خرچ كوئى . او چه كوم پريږدئى نوهغه ستاسو مال نه دې بلكه ستاسو د وارثانو مال دې نو ستاسو د الله ﷻ لار كښې كم خرچ كول او زيات جمع كول . دادليل دې ددې خبرې چه تاسو د خپل مال نه زيات د خپلو وارثانو مال سره زيات محبت ساتئي.
**حقيقي پهلوان:-** بيا فرمائي چه تاسو پهلوان پيژنئى ؟ خلقو اووئيل چه هغه څوك دې كوم چې څوک نشي راپرزولې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه نه بلكه حقيقت كښې پهلوان هغه دې چه دغصې په وخت كښې خپل جذبات قابو اوساتي. بيا ئې اوفرمائيل چه بې اولاد څوك دې ؟ خلقو اووئيل چه د چا اولاد نه وی. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه نه بلكه حقيقت كښې بې اولاد هغه دې چه د هغه په ژوندكښې د هغه څوك اولاد نه وی مړ شوې . (مسلم). ([2])
**مفلس څوك دې؟:-** يوبل روايت كښې هم دی چه رسول الله ﷺ تپوس اوكړو چه تاسو ته معلومه ده. چه مفلس څوك دې ؟خلقو اووئيل چه هغه سره مال نه وی. نورسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دا هغه كس دې چه خپل مال په خپل ټول ژوند كښې دالله ﷻ لاركښې خرچ كړې نه وی. (مسند احمد). ([3])
**يوصحابي ﷺ ته د غصې نه كولو نصيحت:-** حارثه بن قدامه سعدی ﷺ د رسول الله ﷺ خدمت كښې حاضرشو اوعرض ئې اوكړو چه يارسول الله ﷺ ! ماته څه د فائدې خبره اوكړئى چه مختصر وی چه ماته ياده شي. نورسول الله ﷺ اوفرمائيل چه غصه مه كوه. رسول الله ﷺ ورته بيا هم دا اوفرمائيل. او ډيرډير ځل ئې هم دا واوريدل. (مسند احمد)([4]) يو سړی رسول الله ﷺ ته اووئيل چه ماته څه وصيت اوكړئى . نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چه غصه مه كوه. هغه وائي چه ما غوراوكړو نومعلومه شوه چه د ټولو بدو مركز غصه ده(مسند احمد). ([5])
**د غصې لرې كولو علاج:-** يوروايت كښې دی چه ابوذر ﷺ ته غصه راغله نو دوی كيناستل او بيا څملاستل . ددوی نه تپوس اوشو چه دا څه دی ؟ نو وې فرمائيل چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلی دی چه رسول الله ﷺ به فرمائيل چه چاته غصه راشي نوكه هغه ناست وی نو هغه دې اودريږي او كه غصه نې لاترله نو هغه دې څملي . (مسند) ([6]).

---

[1] احمد: ٣٨٢/١، صحيح بخارى كتاب الادب باب الحذر من الغضب : ٦١١٤، صحيح مسلم: ٢٦٠٩)-
[2] احمد: ٣٨٢/١، صحيح بخارى كتاب الرقاق باب ماقدم ماله فهو له : ٦٤٤٢، صحيح مسلم: ٢٦٠٨)-
[3] احمد: ٣٦٧/٥١،)-
[4] احمد: ٣٤٢/٥، وسنده صحيح حاكم ٦١٥/٣، ابن حبان: ٢٦٨٩، طبرانى : ٢٠٩٦)-
[5] احمد: ٣٧٣/٥،، وهو صحيح بالشواهد)-
[6] احمد: ١٥٢/٥، كتاب الادب باب ما يقال عن الغضب : ٤٧٨٢، وهو صحيح)-

**دغصې لرې کولو دپاره اودس کول:-** مسند احمد کښې يو روايت دې چه عروه بن محمد رحمه الله ته غصه راغله. نو دوی اودس ته کښيناستل او وې فرمائيل چه ما د خپلو استاذانو نه دا حديث آوريدلي دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه غصه د شيطان د طرفنه ده او شيطان داور نه پيدا شوې دې او اور اوبو سره مری. نو تاسو د غصې په وخت کښې اودس کوئی. (١)

**غصه برداشت کول د جهنم نه ازادی ده:-** د رسول الله ﷺ نه ارشاد هم نقل دې چه کوم سړې تنګدست ته مهلت ورکړی يا خپل قرض معاف کړی ، الله ﷻ به دې د جهنم نه آزاد کړی. خلقو واورئی ! د جنت اعمال سخت او مشکل دی اود جهنم اعمال آسان دی. نيك بخت هغه دې چه فتنو نه بچ شی . هيڅ يو ګوټ الله ﷻ ته دومره خوښ نه دې چه څومره د غصې ګوټ دې. د داسې سړی زړه د ايمان نه ډك شی . ( مسند احمد). (٢)

**غصه برداشت كول د امن سبب دې:-** رسول الله ﷺ فرمانی چه د کوم سړی د دې طاقت وی چه هغه خپله غصه ضبط کولې شی او ضبط ئې کړی نو الله ﷻ د ده زړه د امن وامان نه ډك کړی. چه کوم سړې باوجود د موجودکيدو نه د شهرت جامه پريږدی نو ده ته الله ﷻ د قيامت په ورځ د کرامت او عزت جامه واغوندوی. او چه څوك د چا سر پټ کړی نو هغه ته به الله تعالی د قيامت په ورځ د بادشاهانو تاج وربسر کړی. (ابوداود).(٣) رسول الله ﷺ فرمانی چه کوم سړې د قدرت نه باوجود غصه اوځکی نو الله ﷻ دې د ټول مخلوق مخکښې اختيار ورکړی چه دده کومه يوه حوره خوښه وی (نو هغه به ده ته ورکوی). (مسند احمد). (٤)

**د حافظ ابن كثير رحمه الله تبصره:-** ددې مضمون نور هم احاديث دی ، نو ددې آيت مطلب دا شو چه هغوی خپله غصه ضبط کوی او دې خلقو ته تکليف نه رسوی بلکه خپل جذبات قابو کښې ساتی. او دالله ﷻ نه د ثواب اميدساتی. اودامعامله الله ﷻ ته حواله کوی. خلقو ته معافی کوی. د ظالمانو د ظلم بدله هم نه اخلی. هم دې ته احسان وائی. او الله ﷻ دې محسنانو بندګانو سره محبت ساتی.

**قوله تعالی:** فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ ۗ وَمَنْ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا اللَّهُ ۗ

**درې قيمتی خبرې:-** حديث مبارك کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه په دريو خبرو قسم کوم ① يو خودا چه صدقې سره مال نه کميږی ② دويم داچه عفو درګزر کولو سره د انسان عزت زياتيږی③ دريم دا چه عاجزی او انکساری کونکی ته الله ﷻ اوچته مرتبه ورکوی .(٥)

**د درجو اوچتونکی اعمال:-** دمستدرک حديث کښې دی چه کوم سړې دا غواړی چه دده بنياد دې اوچت وی او دده درجې دې اوچتې وی نو ده ته پکار دی چه ظالمانو ته معافی اوکړی او نه ورکونکو ته ورکړی او تعلق کټې کونکو سره تعلق جوړ کړی.

**د قيامت په ورځ اعلان:-** او حديث مبارك کښې دی چه دقيامت په ورځ به يو آواز کوونکې آواز اوکړی چه انې هغه خلقو چه نورو خلقو ته به مو معافی او عفو کوله خپل رب نه خپل اجر واخلئ. د مسلمانانو خطاګانو لره معاف کولو والاخلق جنتيان دی . (٦).

**بيا بيا ګناه کول او توبه ويستل:-** نوالله ﷻ فرمائی چه ما دخپل بنده ګناه معاف کړه. دده نه بيا ګناه کيږی او بيا توبه کوی نو الله ﷻ ئې معاف کوی. بيا په دريم ځل چه دده نه ګناه اوشی او بيا دې توبه کوی نو

(١) احمد: ٢٢٧/٤ ابوداود كتاب الادب باب مال يقال عند الغضب : ٤٧٨٤، وسنده حسن)-،

(٢) احمد: ٣٢٧/١،)-

(٣) ابوداود كتاب الادب باب من كظم غيظا، : ٤٧٧٨، )-

(٤) ابوداود كتاب الادب باب من كظم غيظا، : ٤٧٧٧، وسنده حسن ، ابن ماجة: ٤١٨٦)-

(٥) صحيح مسلم كتاب البروالصلة باب استحباب العفو والتواضع : ٢٦٨٨، ترمذی: ٢٠٢٩، بدون قوله ( ثلاث اقسم عليهن.)

(٦) احمد: ٢٩٦/٢، صحيح بخاری كتاب التوحيد باب قول الله ( يريدون ان يبدلوا...) :٧٥٠٧، صحيح مسلم: ٢٧٥٨،)-

الله ﷻ دې بخښي او کله چه په ځلورم ځل ګناه اوکړي او بيا توبه اوباسي نو الله ﷻ دې معاف کوي او وائي چه اوس ځما بنده څه کوي نوکوي دې (مسند احمد) داحديث بخاري اومسلم شريف کښې هم راغلي دې.(١)

**دنبي کريم ﷺ په صحبت کښې روحاني ترقي:-** ابوهريره ﷺ فرمائي چه يو ځل مونږ رسول الله ﷺ ته اووئيل چه يارسول الله ﷺ! چه کله مونږ تاسوته ګورو نو ځمونږ زړونه په رپيدو شي . او مونږ الله والا جوړ شو. خو هرکله چه ستاسو نه لاړ شو نو بيا هم هغه حالت پاتې نشي . او ښځو او بچو سره مشغول شو.اودکور په کارونو کښې راګير شو. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه واورئ کوم حالت چه ستاسو ځما په موجودګئ کښې وي که هم دا حالت ستاسو هر وخت کښې وې نو تاسو سره به فرښتو مصافحه کوله اوتاسو ته به ستاسو ملاقات لره ستاسوکورونو ته راتلې.واورئ اکه تاسو ګناه نه کوئ نو الله ﷻ به تاسو ددې ځائې نه لرې کړي او بل قوم به راولي چه هغه ګناه کوي او بيا الله تعالى هغه بخښي.(٢)

**قوله تعالى:-** جَنّٰتٌ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا

**د جنت ابادي:-** مونږ اووئيل چه يارسول الله ﷺ! مونږ ته اوفرمائې چه د جنت بنا څه ده ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه يو ښخته دسرو زرو اويو ښخته د سپينو زرو،د دې مصالحه خالص مشك دى. ددې کنکر لؤلؤ اوياقوت دى.ددې ښاوره زعفران ده.دجنت ژوند به هيڅکله ختم نشى او د دې ژوند هميشه دې ددوى کيږي به نه زړيږى . ددوى ځوانى به نه فنا کيږى .

**د درې کسانو دعا نه رد کيدل:-** د دريو کسانو دعا نه رد کيږى① دعادل بادشاه ② د روژه دار دعا او ③د مظلوم دعا.د دوى دعا وريځو ته اوخيژى د ده دپاره آسمان دروازې بيرته شى.او الله ﷻ ارشاد فرمائي چه ځما دې په خپل عزت قسم وى چه څه به ستا ضرور مدد کوم. اګر چه څه وخت پس وى . ( مسند احمد)(٣)

**د ګناه معاف کولو طريقه:-** امير المومنين خليفه ابوبکر صديق ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړې څه ګناه اوکړى بيا اودس اوکړى او دوه رکعته مونځ اوکړى او د خپلې ګناه معافى اوغواړى نو الله دا ګناه معاف کوى(مسند احمد) (٤)

**د جنت اته دروازې چاته بيرته کيږي؟:-** صحيح مسلم کښې په روايت د امير المومنين عمر بن خطاب ﷺ مروى دى چه رسول الله ﷺ فرمائي تاسو کښې څوک کامل اودس اوکړى او (اشهدان لااله الاالله وحده لا شريك له واشهدان محمداعبده ورسوله) اووائي نو دده دپاره د جنت اته واړه دروازې بيرته کيږى. چه په کومه داخليدل غواړى نو داخليږى به . (٥)

**د ګناهونو معاف کيدل:-** امير المومنين عثمان بن عفان ﷺ به دسنت مطابق اودس کولواوبيا به ئې فرمائيل چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلى دى چه کوم سړې ځما په شان اودس اوکړې او دوه رکعته مونځ ادا کړى او دې کښې د خپل زړه سره خبرې اونکړى نو الله ﷻ د ده ټول ګناهونه معاف کوى . ( بخاري ومسلم). (٦)

---

(١) احمد: ٢٩٦/٢، کتاب التوحيد باب قول الله ( يريدون ان يبدلوا.....) : ٧٥٠٧، صحيح مسلم: ٢٧٥٨ )-

(٢) احمد: ٣٠٥/٢ وسنده ضيعف)-

(٣) احمد: ٣٠٥/٢ وسنده ضيعف)-

(٤) احمد: ٢/١، ابو داود: کتاب الصلاة باب فى الاستغفار : ١٥٢١، وسنده حسن ، ترمذى: ٤٠٦، ابن ماجة: ١٣٩٥، ترمذى: ٣٥٩٨، وابن ماجة: ١٧٥٢ مختصرا)-

(٥) صحيح مسلم کتاب الطهارة باب الذکر المستحب عقب الوضوء : ٢٣٤)-

(٦) صحيح بخارى کتاب الوضوء باب الوضوء ثلاثا ثلاثا: ١٥٩، صحيح مسلم: ٢٢٦)-

**د حافظ رحمه الله تبصره:-** نودا حديث د عثمان بن عفان رضي الله عنه او د هغې نه مخکښې حديث د عمرفاروق رضي الله عنه او د هغې نه مخکښې روايت د ابوبکر صديق رضي الله عنه نه او دا دريم روايت د ابوبکر صديق رضي الله عنه او علي کريم الله وجهه رضي الله عنه نه روايت شوى دى. نو الحمد لله د الله ﷻ د مغفرت او د هغه دمهربانئ خبر د سيد الامين والاخرين په خوله د رسول الله ﷺ د څلورو وارو خلفاء راشدينو په ذريعه راورسيدو.

**د مترجم دعا:-** (راځئ چه په دې موقع مونږ ګناهګار هم لاس اوچت کړو او د خپل مهربان او کريم رب مخکښې د خپلو ګناهونو اقرار اوکړو او د هغه نه معافي اوغواړو. اې الله ﷻ ! اې د مور پلار نه زيات مهربان ذات ، اې عفو درګزرکولو والا، او يو سوال کونکي خالي لاسونه نه واپس کونکيه نه مونږ ګناهګاروته هم معافي اوکړه ، او خمونږ د ټولو ګناهونه معاف کونکيه ، خمونږ ګناهونه معاف کړه ، آمين مترجم). هم دا هغه آيت مبارك دې چه کله دا نازل شو نو ابليس په ژړا شو( عبدالرزاق). ([1])

**د شيطان هلاکت په څه دې؟:-** مسند ابويعلى کښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائي چه (لا اله الا الله) کثرت سره وائې.اوپه استغفارباندې هميش والې کونئ.ابليس ګناهونو سره خلق هلاکول غواړي.او د ده خپل هلاکت(لا اله الا الله )سره دې. دې حالت کښې سره ابليس خلق په خواهش پرستئ کښې واچول. اودا خلق خپل خان په نيغه لار ګنړي حالانکه دوى هلاکت کښې وى([2])خوددې حديث دوه راويان ضعيف دى

**شيطان ته دالله قسم:-** مسنداحمد کښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائي چه ابليس اوونيل چه اې ربه ! خما دې ستاپه عزت قسم وى څه به بنى آدم ترآخره پورې لمسوم. الله اوفرمائيل چه خما دې په خپل جلال او عزت قسم وى چه ترکومې دې خما نه بخښنه غواړي نو څه دې بخښم. ([3])

**د ګناه نه پس توبهٔ اوباسه:-** مسند بزار کښې دى چه يو سړى رسول الله ﷺ ته اوونيل چه خما نه ګناه اوشوه. نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چه توبه اوباسه. ده اوونيل چه ما توبه اوکړه بيا رانه ګناه اوشوه. نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چه استغفار اوکړه. تر دې چه شيطان سړې شى ([4]). بيا ني اوفرمائيل چه ګناه بخښل د الله ﷻ په اختيار کښې دى .

**توبه الله ته ويستل دى:-** مسند احمد کښې دى چه رسول الله ﷺ ته يو قيدى راغلو او وې وئيل چه يا الله خما تاته توبه ده محمد ﷺ ته توبه نه اوباسم. ( يعنى اې الله څه ستانه بخښنه غواړم) . رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ده حقدار ته حق اورسولو.([5])

**د اصرار نه کولو مطلب:-** اصرار کولو نه مراد دا دې چه ګناه باندې بغير د توبې کولو نه نه اصرار نه کوى.که ډير خل ګناهونه اوشى نو ډير استغفار هم کوى.

**څوک په ګناه اصرار کونکې نه دې؟:-** مسندابويعلى کښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائي چه هغه کس په ګناه باندې اصرارکونکې نه دې .او الوتلونکې نه دې چه څوك استغفار کوى. اګر چه د ده نه يو ورځ کښې اويا خله هم ګناه اوشى.([6])

بيا فرمائي چه دوى ته معلومه ده چه الله ﷻ توبه قبلونکې دې . لکه بل خائې کښې فرمائي چه ﴿أَلَمْ يَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ ٱلتَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِۦ﴾ يعنى آيا دوى ته معلومه نه ده چه الله ﷻ توبه قبلونکې دې . اوبل خائې کښې فرمائي چه ﴿وَمَن يَعْمَلْ سُوٓءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُۥ﴾ يعنى او څوک چه بد خراب کار اوکړي يا ګناه اوکړي اوخپل

---

[1]) تفسير القران لعبد الرزاق : ۴۶۲/۱، رقم: ۴۵۴، )-

[2]) مسند ابى يعلى : ١٣٦،)-

[3]) مسند احمد : ۲۹/۳ ،)-

[4]) مسند البزار : ۳۲۴۹، مجمع الزوائد: ۱۹۹/۱۰ ،)-

[5]) احمد: ٤٣٥/٣، طبرانى : ٨٣٩)-

[6]) ابو داود كتاب الصلاة باب فى الاستغفار : ١٥١٤، ترمذى: ٣٥٥٩، )-

خان باندې ظلم اوکړی بیاالله ﷻ نه مغفرت اوغواړی نو ده ته به معلوم شی چه الله ﷻ څومره بښونکې مهربان دې. مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ په منبر باندې اوفرمائيل ائې خلقو ! تاسو په نورو باندې رحم اوکړئ ، ائې خلقو تاسو د نورو خطاګانې معاف کوئ، الله ﷻ به ستاسو ګناهونه معاف کړی. څوک چه د خان نه خبرې جوړوی والوهغه دپاره هلاکت دې اوګناه باندې همیشوالې کونکو دپاره هلاکت دی (1).

قوله تعالى: أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُم مَّغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ

بیافرمائی چه ددې کارونو په بدله کښې ددوی جزا او مغفرت دې. او رنګ رنګ نهرونه پکښې بهیږی. او دې کښې به دوی همیشه وی ، دا ډیر ښه عاملان دی.

| |
|---|
| قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِكُمْ سُنَنٌ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا |
| اتیر شوی دی ا وړاندې ستاسو نه اډیر د ورونه اپس اوګرځئ ا په زمکه کښې ااواوګورئ |
| ا ستاسو نه مخکښې (په دې زمکه) ډیرې زمانې تیرې شوی دی ا نوتاسودزمکې په مخ اوګورئ |
| كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ۝ هَٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ |
| اچه څنګه ا وو ا انجام ا د دروغ ګڼړلو (احکامو الله لره) ا دا (قران) بیان دې ا دپاره دخلقو |
| چې د هغه خلقوڅه انجام شو اچې د الله احکام ئې په دروغه ګڼړل ا دادټولوخلقودپاره یوښکاره بیان دې |
| وَهُدًى وَمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِينَ ۝ وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنتُمُ |
| ا اوهدایت دې ا اونصیحت دې ا دپاره دپرهیزګارانو ا اوهمت مه بائیلئ ا اوغم مه کوئ ا اوهم تاسو |
| اوپرهیزګارودپاره هدایت او نصیحت دې ا اوهمت مه بائیلئ ا.........او غم مه کوئ ا .........هم تاسو به |
| الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ۝ إِن يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ |
| به غالب یئ ا که یئ تاسو ا مومنان ا که اورسیږی تاسوته ا زخم ا نو رسیدلې دې ا قوم (کفار) ته (هم) |
| غالب کیږئ ا که چرې تاسومومنان یئ ا که (نن) تاسوزخمی شوی یئ انوبیشکه ستاسونه وړاندې نورخلق |
| قَرْحٌ مِّثْلُهُ ۚ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ |
| ا زخم ا پشان دهغې ا اودا ورځې (دزمانې دی) اچه مونږ ئې اړوو راړووا په مینځ دخلقو کښې |
| هم ستاسوپشان زخمی شوی ووا......... اوداخودزمانې ورځی دی چې مونږ ئې دخلقومینځ کښې اړوراړو |
| وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَتَّخِذَ |
| اودپاره ددې چه معلوم کړی الله تعالی ا هغه کسان ا چه ایمان ئې راوړې دې ااوبل (دا) چه ا ونیسی ا |
| اودا (تکلیف) تاسوته ځکه اورسیدوا چې الله پاک ربښتونې مسلمانان ښکاره کړی |
| مِنكُمْ شُهَدَاءَ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ۝ وَلِيُمَحِّصَ |
| ستاسونه اشهیدان (دحق ګواهان) ا اوالله تعالی انه خوښوی ا ظالمان خلق ااوبل (دا) چه جداکړی |
| اوپه تاسو کښې شهیدان اوشی ا . اوالله پاک ظالمان خلق نه خوښوی ا او په تاسو کښې جدا کړی |

(1) احمد: ١٦٥/٢، وسنده حسن)-

اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٤١﴾ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا

الله تعالی | هغه کسان| چه مومنان دی|اوهلاک کړی کافران |آیاګمان کوئی تاسو|چه داخل به شئ تاسو

کوم چه خالص مسلمانان دی | اودهغوئ په لاس کافران هلاک کړی |آیا تاسو ګمان کوئ چې تاسو به

الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ

|جنت ته| او لامعلوم کړی نه دی الله تعالی| هغه کسان | چه جهاد ئې کړې دې| ستاسونه |

(اوچ په اوچه) جنت ته داخل شئ| حال دا چه تراوسه پورې الله هغه خلق نه دی ښکاره کړی چه په تاسو

وَيَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿١٤٢﴾ وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ

اولانه دی معلوم کړی|الله تعالی صابران || و په تحقیق سره|وئ تاسو| چه آرزو به مو کوله| دمرګ

کښې مجاهدین دی او هغه خلق چه صبر کونکی دی | اوتاسو خوبه په هغه وخت کښې دمرګ تمنا کوله

مِنْ قَبْلِ اَنْ تَلْقَوْهُ ۠ فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ وَاَنْتُمْ

وړاندې دهغې نه|چه تاسو مخامخ شئ ددغه (مرګ) سره| نواوس اولیدو تاسوهغه|اوحال دادې چه تاسو

کوم وخت کښې چه لاتاسو مرګ لیدلې نه وو|...................... نواوس چې مرګ تاسو ته مخامخ شو

تَنْظُرُوْنَ ﴿١٤٣﴾ ع

| ورته ګورئی|

اوتاسواولیدو

**قوله تعالی:: قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ**

**ازمائشونه په ټولو امتونو راغلی دی:-** داحد په ورځ اویا مسلمانان شهیدان شوی وو نوالله ﷻ مسلمانانو ته تسلی ورکوی چې ستاسونه وړاندې هم دینداره خلقو نقصان اوچت کړې دې. خو آخر غلبه هم دهغوی ته ملاو شوې وه. که تاسوپه مخکښې واقعاتو باندې یونظر واچوئی نوتاسو باندې به دا راز پرانیستې شی. قرآن پاك کښې پخوانو امتونو بیان کیږی

**قوله تعالی:: هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿١٣٨﴾**

**د قران پاک درې صفتونه:-** اودا(قرآن) وعظ او هدایت هم دې. یعنی ستاسو د زړونو هدایت او تاسو لره د ښه اوبدنه آګاه کولو والا دې .مسلمانانو ته دا واقعات یادوی

**قوله تعالی:: وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٣٩﴾**

**مسلمانانو ته تسلی:-** او بیا ورته د تسلئ په طور فرمائی چه تاسوددې جنګ په نتیجه کتلو سره بدلیږئ مه او غم مه کوئی ، فتح او نصرت اوغلبه صرف او صرف ستاسو دپاره ده انې مومنانو. که تاسو زخمی شئ اوستاسو کسان شهیدان شونوتاسو نه مخکښې هم ستاسو دښمن قتل شوې وو .هغوئ هم زخمی شوی وو. دا خوریدونکې سیورئی دې او ښه هغه څوک دی چه د چا انجام غالب وی. او دا مونږ تاسو دپاره لیکلی دی .

**قوله تعالی:: وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ**

داکله کله شکست خاص کر جنګ احد کښې په دې وجه وو چه مونږ د صابرانو اوغیر صابرانو امتحان واخلواوکومو چه د مودو راسې د شهادت خواهش کولو هغوئ کامیاب شی او هغوئ خپل ځانونه اومال د الله ﷻ لار کښې خرچ کړی.

**قوله تعالی:: وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٤١﴾**

الله ﷻ ظالمان نه خوښوي. داجمله معترضه بيان فرمائي ،دا په دې وجه كه دايماندارو څه ګناهونه وي چه هغه لرې شي كنې د دوى درجات زيات شي.اوپه دې كښې د كافرو ختمول دي. ځكه كه دوى غالب شي نوكبر او غرور كښې به راشي اودا د هلاكت او بربادۍ اسباب دي. او بيا به دوى بالكل ختم شي.

قوله تعالى: ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ﴾

ددې ، تكليفونواوآزميښتونو نه بغير هيڅوك جنت ته نشي تلې. لكه څنګه چه سورة بقره كښې ذكر دي چه تاسو ته معلومه ده چه ستاسونه مخكښې خلقو باندې هم امتحانونه راغلي وو د هغه په شان به په تاسو باندې هم راشي اوتاسو جنت ته لاړشئ.الخ. دابه اونشي.او بل ځائې كښې ارشاد دې چه ﴿الٓمٓ أَحَسِبَ النَّاسُ أَن يُتْرَكُوا أَن يَقُولُوا آمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ﴾ يعنى آيا تاسو خلق دا ګمان كوئى چه مونږ صرف د دوى په قول باندې پرېږدى چه دوى وائى چه مونږ ايمان راوړې دې او په دوى باندې به آزميښت اونكړې شي . دلته هم دا فرمائي چه تركومې پورې صبر كولو والا معلوم نكړې شي يعنى دنيا والو ته ظاهر نشى نو ترهغه به جنت ته داخل نشي .

قوله تعالى: ﴿وَلَقَدْ كُنتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِن قَبْلِ أَن تَلْقَوْهُ﴾

بيا فرمائي چه تاسو خو ددې نه مخكښې دداسې موقعو خواهش مند وې چه تاسو خپل صبر او مضبوطي او استقامت الله ﷻ ته اوښائي او د الله ﷻ لار كښې شهادت اومومئ. اوس تاسو ته مونږ موقع دركړه تاسو اوس خپله ثابت قدمى او اوالعزمى اوښائي.

حديث مبارك كښې دي چه د دښمن د ملاقات خواهش مه كوئى د الله ﷻ نه د غالب كيدو اوعافيت دعا كوئى او كله چه تاسو ميدان ته كوز شئ نو بيا د اوسپنې په شان كلك شئ او صبر سره ثابت قدم اوسئ اويوهه شئ چه جنت د تورو د سيورو لاندې دې .

قوله تعالى: ﴿فَقَدْ رَأَيْتُمُوهُ وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ﴾

بيا فرمائي چه تاسو خپلو سترګو سره دا منظر اوكتلو چه نيزې چليږې او تورې هم او غشى وريږى ، او ډير خراب جنګ روان دې ، هر طرفته لاشونه پراته دي. [1]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا مُحَمَّدٌ | إِلَّا | رَسُولٌ | قَدْ خَلَتْ | مِن قَبْلِهِ | الرُّسُلُ ط |
| اونه دې محمد ﷺ | مګر | يورسول دې | تيرشوى دي | مخكښې دهغه نه | رسولان |
| او محمد ﷺ نورڅه نه دې خو بس يو رسول دې ادده نه مخكښې هم رسولان تيرشوى دي | | | | | |
| أَفَإِن مَّاتَ | أَوْ قُتِلَ | انقَلَبْتُمْ | عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ ط | وَمَن يَنقَلِبْ | |
| ايانوكه مړشي هغه | ايا اووژلې شي | انوتاسوبه واپس ځئ | په پوندو خپلو باندې | شاته | اوهغه څوك چه واپس لاړو |
| نوكه دې مړشي ياقتل كړې شي انوايا تاسوبه په خپلو پوندو(داسلام نه) بيرته ګرځئ او (يادساتئ)څوك | | | | | |
| عَلَىٰ عَقِبَيْهِ | فَلَن يَضُرَّ اللَّهَ | شَيْئًا ط | وَسَيَجْزِي اللَّهُ | | |
| په پوندو خپلو (شاته) | نوهرګز به نقصان اونه رسوى الله ته | هيڅ څه | و زر به بدله وركړي الله | | |
| چې په پوندو بيرته اوګرځي انوهغه الله ته هيڅ نقصان نشي رسولې او الله به شكرګذارو ته ډير | | | | | |
| الشَّاكِرِينَ | وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَن تَمُوتَ | إِلَّا | بِإِذْنِ اللَّهِ | كِتَابًا | مُّؤَجَّلًا ط |
| اشكر كونكو ته | اونشته يو نفس لره | چه مړشي | امګر اپه حكم دالله | | چه ليكلي شوې دې اپه نيته سره |
| ډير اجر وركوي | هيڅ ژوندې دالله پاك دحكم نه بغير نشي مړكيدې | مګريوه نيته ليكلي شوې ده | | | |

[1] صحيح بخارى كتاب الجهاد باب كان النبي ﷺ اذا لم يقاتل في اول النهار ...: ٢٩٦٦، صحيح مسلم:١٧٤١، ابوداود: ٢٦٣١)

وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَمَنْ يُّرِدْ

او څوک چه غواړي | ثواب ددنيا | مونږ به ورکړو هغه ته | دهغې دنيا نه | اوڅوک | چه غواړي |

اوڅوک چې دنياوي بدله غواړي | مونږورته په دنيا کښې بدله ورکوو | ............. او څوک چې

ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ؕ وَسَنَجْزِي الشّٰكِرِيْنَ ﴿١٤٥﴾

ثواب دآخرت | مونږ به ورکړو هغه ته | دهغه آخرت نه | او زربه ورکړو مونږ بدله | شکرگزارو ته |

دآخرت دبدلې اراده لري | نو هغه ته به (په دنياو) آخرت کښې بدله ورکوو | اوشکرکونکوته به ډيراجرورکوو

وَكَاَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ ۙ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ

او ډير (تيرشوي دي) | دپيغمبرانو نه | چه شريک جنګيدلي وو | دهغه سره | خداپرست خلق | ډير |

اوددې نه وړاندې ډيرپيغمبران وو | اچې دهغوئ په ملګرتيا کښې ډيروالله والاکسانو جنګونه کړي وو

فَمَا وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

نونه همت بائيللې وو هغوئ | دوجې د مصيبتونونه | چه رسيدلي وو هغوئ ته | په لاردالله کښې |

خو نه هغوی د هغه مصيبتونو د وجې چه دالله په لار کښې ورته رسيدلي وو بزدله شوي وو |

وَمَا ضَعُفُوْا وَمَا اسْتَكَانُوْا ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ

اونه ئې کمزوري ښکاره کړي وه | اونه ئې سرټيټ کړي وو (باطل ته) | اوالله تعالى خوښوي |

اونه کمزوري شوي وو | ............اونه ئې باطل ته سرټيټ کړي وو | او الله تعالى

الصّٰبِرِيْنَ ﴿١٤٦﴾ وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا رَبَّنَا

داسې صابران خلق | اونه وه | وينا (دعا د هغوئی | مګر دا وه | چه ونيل به ئې | اې ربه زمونږ |

صبرکونکي خلق خوښوي | (بلکه په هغه وخت کښې به) دهغوئ خودا دعا وه چې اې زمونږ ربه

اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَاِسْرَافَنَا فِيْٓ اَمْرِنَا وَثَبِّتْ

معافي اوکړې مونږ ته | ګناهونه زمونږ | اوحد نه اوړيدل زمونږ | په کار زمونږ کښې | اومضبوط کړې

زمونږ ګناهونه معاف کړه | ........اوزمونږ نه چې کوم زياتې شوې دې هغه راته معاف کړه | او (ددشمن

اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٤٧﴾ فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ

اقدمونه زمونږ | اومدد اوکړې مونږ سره | په قوم کافربانډې | انو ورکړو الله تعالى هغوئ ته

په مقابله کښې) زمونږ قدمونه مضبوط کړه | اود کافرو په مقابله کښې مونږ ته فتح راکړه | انو الله هغوئ ته

ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٤٨﴾

اثواب ددنيا | اوښهٔ ثواب | داخرت | اوالله خوښوي | داسې نيکان خلق |

د دنيا بدله ورکړه | اوداخرت بهترينه بدله ئې هم ورکړه | ........... اوالله نيکان خلق خوښوي

**قوله تعالى:: وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ**

**د نبي کريم ﷺ د وفات يا قتل په صورت کښې څه کول دي؟**:-داحد ميدان کښې مسلمانانو ته شکست هم اوشو.اودوی کښې ډيرقتل هم اوشو.په هغه ورځ شيطان دامشهوره کړه چه محمد ﷺ هم شهيد شو. اوابن قميه کافرمشرکانو ته لاړواودا ئې مشهور کړه چه ما محمد ﷺ شهيد کړو او اصل کښې دا يو

افواه وه. اوددي سرې دا قول بالکل غلط وو. ده په محمد ﷺ باندې حمله کړې وه خو دې سره د محمد ﷺ مخ مبارك زخمي شوي وو بله څه خبره نه وه. ددې غلطې خبرې تشهير د مسلمانانو حوصلې پست کړې.او دجنګ نه ئې زړه موړ شو او په تيښته شو. دې باره کښې دا آيت نازل شو چه د مخکښې نبيانو په شان دا هم يو نبی دې .کيديشي چه په ميدان جنګ کښې قتل شی.خودې سره به د الله ﷺ دين نه ختميږي.

يو روايت کښې دی چه يو مهاجر اوکتل چه يو انصاری جنګ احد کښې د زخمونو دلاسه په زمکه پريوتلو.اووينه او شاوره کښې لت پت شو. ده ته اووئيلې شو چه تاته هم معلومه ده چه رسول الله ﷺ قتل شوي دې.ده اووئيل که دا صحيح دی نو خپل کار ئې اوکړو (يعنی د الله پيغام ئې اورسولو) اوس د دوی په دين باندې تپول قربان شم. دې باره کښې دا آيت نازل شو([1]).

**قوله تعالى:: اَفَاۡئِنۡ مَّاتَ اَوۡ قُتِلَ انۡقَلَبۡتُمۡ عَلٰۤى اَعۡقَابِكُمۡ**

بيا فرمائی چه د محمد ﷺ قتل څه داسې څيز نه دې چه تاسو دالله ﷺ د دين نه واړونې . او داسې کولو والا به د الله ﷺ ددين هيڅ اونکړی،الله ﷺ به هغه خلقو ته جزائې خير ورکړی چه د هغه ذات په اطاعت باندې کلك ولاړ وی.اود هغه دين سره مدد کوی.او د هغه درسول ﷺ تابعداری کوی.اودې کښې مضبوط ولاړ وی.که رسول ژوندې وی او که نه.

**د نبی کريم ﷺ په وفات د ابوبکر ؓ تقرير:** - صحيح بخاری شريف کښې دی چه د رسول الله ﷺ د وفات خبرآوريدوسره ابوبکرصديق ؓ په آس باندې سور شو اومسجد ته ئې تشريف يوړو اودخلقو دې حالت کتلوسره دعائشه ؓ کور ته راغلو،دلته محمد ﷺ باندې څادر غوړولې شوې وو.ابوبکر صديق ؓ د څادر پلو اونيولو او د دوی د مخ مبارك نه ئې څادر لرې کړو او ناګاهانه ئې د رسول الله ﷺ د مخ مبارك نه بوسه واخستله او په ژړه کښې ئې اوفرمائيل چه څما مور پلار دې په تا باندې قربان وی ، په الله ﷺ قسم په تاسو به دوه ځله مرګ رانشی چه کوم مرګ تاسو دپاره ليکلې شوې دې هغه راغلو. ([2])

دې نه پس بيا مسجد ته راغلل او وې ليدلوچه عمرفاروق ؓ خطبه ورکوی او فرمائيل چه تاسو خاموش شئ: هغوئ چپ کولو نه پس دوی اوفرمائيل چه کوم سړی د محمد عبادت کولو نو هغه دې پوهه شی چه محمد ﷺ وفات شو. اوچه څا د الله ﷺ عبادت کولو نو هغه دې خوشحاله وی چه الله ﷺ ژوندې دې او هغه ته مرګ نه راځی. بيا ابوبکرصديق ؓ دا آيت تلاوت اوفرمائيلو.خلقوته داسې معلوم شو چه ګنې دا آيت اوس نازل شو. بيا خو د هر سړی په ژبه هم دا آيت جاری شو او خلقو يقين اوکړو چه رسول الله ﷺ وفات شو ،د ابوبکر صديق ؓ نه ئې چه دا آيت واوريدو نو عمرفاروق ؓ اومنل او هغوئ ته يقين اوشو چه رسول الله ﷺ د دې فانی دنيا نه لاړو([3]).

**دحضرت علی ؓ قيمتی خبرې:** - علی ؓ به په ژوند کښې فرمائيل چه نه مونږ د محمد ﷺ په مرګ باندې مرتد شواو نه د دوی په شهادت باندې . په الله ﷺ قسم که محمد ﷺ وفات شی نو مونږ به په دې دين باندې اوسو چه په کوم رسول الله ﷺ شهيد شو. په الله ﷺ مې دې قسم وی چه څه خو د رسول الله ﷺ رور يم ،د رسول الله ﷺ ولی يم،د رسول الله ﷺ د تره خونې يم، اود رسول الله ﷺ وارث يم او څما نه به زيات حقدارد رسول الله ﷺ څوك وی؟

**قوله تعالى:: وَمَا كَانَ لِنَفۡسٍ اَنۡ تَمُوۡتَ اِلَّا بِاِذۡنِ اللّٰهِ كِتٰبًا مُّؤَجَّلًا**

**د مرګ وخت مقرر دې :** -بيا ارشاد دې چه هر سړی به دالله تعالى مقدر سره خپله موده پوره کوی او بيا به مری.لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿ وَمَا يُعَمَّرُ الخ ﴾ يعنی هيڅ څا ته نه عمر ورکولې شی او نه په

---

[1]) دلائل النبوة للبيهقی: ۳/۲٤۸)-

[2]) صحيح بخاری کتاب حواله سابق: ٤٤٥٤)-

[3]) الطبرانی :)-

عمرکښي څه کمي کولې شي. مګر ټول په کتاب الله کښې موجود دی. بل ځاې کښې ارشاد دې چه ﴿هُوَالَّذِیْ خَلَقَکُمْ مِّنْ تُرَابٍ﴾ یعنی الله ﷻ تاسو د خاورې نه پیدا کړئی بیا نې وخت پوره شو او مرګ نې مقرر کړو.

**قوله تعالى:: فَمَا وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَمَا ضَعُفُوْا**

**د بزدلۍ ممانعت:-** دې آیت مبارک کښې بزدله خلقو ته دشجاعت رغبت ورکړې شوې دې. او دالله ﷻ لار کښې د جهاد کولو شوق پیدا کولو بیان کیږی. اودابیانیږی چه دخوانمردنۍ په وجه عمر نه کمیږی او روستو تلوسره هم عمر نه کمیږی. مرګ خو په خپل وخت مقرر دې. اګر که تاسو خوانمردنۍ او شجاعت او نامردی اوښائې.

**په دریاب د صحابوٌ اسونه ورګډیدل:-** حجر بن عدی رحمه الله چه کله د دښمن مقابلې ته تلو او دریائې دجله ته راورسیدو او د اسلام لښکر اودریدو نو دوی ددې آیت تلاوت کولو اوفرمائیل چه هیڅوک بې اجله نه مری، راځئ هم په دې دریاب باندې اسونه ورواچوو. دې فرمائیلو سره دوی خپل آس په دریاب ورواچولودې کتلو سره نورو خلقوهم خپل څناور په اوبوورواچول. دښمن کښې وینه اوچه شوه. او په هغه هیبت راغلو او وې وئیل چه دا خو لیونی خلق دی، دوی خو د اوبو د چپو نه هم نه ویریږی، تښتئ تښتئ نو ټول په ټوله اوتښتیدل. (١)

**قوله تعالى:: وَمَنْ یُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْیَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَمَنْ یُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا**

**د دنیا او د آخرت طلبګار:-** بیا ارشاد کیږی چه د چا عمل صرف ددنیا دپاره وی نو دې کښې چه څومره ده دپاره لیکلې شوې وی هغه به ملاویږی. خو په آخرت کښې به هغه خالی لاس وی. او چه د چا مقصد صرف آخرت وی نو هغوئ ته به آخرت هم ملاویږی. او په دنیاکښې به ورته هم خپله حصه ملاویږی. لکه بل ځاې کښې چې فرمائی چه ﴿مَنْ کَانَ یُرِیْدُ الْعَاجِلَةَ الخ﴾ یعنی څوک چه د آخرت غوښتنه کوی نو مونږ هغه زیاتوو او د دنیا د غوښتنې والو ته مونږ دنیا ورکوو. لیکن آخرت کښې د هغوی هیڅ حصه نشته. او بل ځاې ارشاد دې چه ﴿مَنْ کَانَ یُرِیْدُ الْعَاجِلَةَ الخ﴾ یعنی چه څوک صرف د دنیاطلب کوی نو مونږ چې هغوی ته څه غوارو.هغه ورکوو. بیا هغه جهنمی جوړیږی او ذلت اورسوائی سره مخامخ کیږی. او څوک چې د آخرت غوښتنه کوی او کوشش کوی او ایمان ورسره هم وی نو د دوی کوشش الله ﷻ ته مقبول دې. هم د دې وجې فرمائی چه مونږ شکرګزارو ته ښه بدله ورکوو.

**قوله تعالى:: وَکَاَیِّنْ مِّنْ نَّبِیٍّ قٰتَلَ ۙ مَعَهٗ رِبِّیُّوْنَ کَثِیْرٌ**

**د ربینون معانی:-** د ﴿رِبِّیُّوْنَ﴾ ډیرې معانی دی. لکه علماء کرام، ابرار، متقیان، عابدان، زاهدان، تابع فرمان وغیره وغیره.(٢) نو قرآن پاک د مصیبت په وخت کښې د هغوی دعا نقل کوی.

**قوله تعالى:: فَمَا وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَمَا ضَعُفُوْا وَمَا اسْتَکَانُوْا**

**د ایت په مفهوم کښې دوه اقوال:-** ① بیا الله ﷻ د احد مجاهدینوته خطاب کوی او د دې نه مخکښې هم ډیرومجاهدینو خپلو جماعتونو سره دښمنانولښکرو سره جنګ کړې وو.اوستاسو پشان نې دالله ﷻ لار کښې تکلیفونه برداشت کړی وو. بیا هم د هغوی زړونه مضبوط او صابران اوشکرګزاروو. او سست اوضعیف نه شو.او دصبر په بدله کښې دوی د الله ﷻ محبت حاصل کړو ② یومعنی دا هم بیان شوې ده چه ائې د احد مجاهدینو! تاسو په دې اوریدو چه رسول الله ﷺ شهید شو ولې بې همته کیږی؟ او د کفر په مقابله کښې ولې ویریږئی؟حالانکه ستاسونه مخکښې خلق هم د نبیانوعلیهم السلام په شهادت باندې نه وو ویریدلی او نه نې همت بیللې وو. بلکه تیزنی سره اوجنګیدل دې دومره مصیبت

---

(١) ابن ابی حاتم: ٢/٥٨٤–

(٢) الطبری: ٧/٢٦٦، ابن ابی حاتم: ٢/٥٨٧–

هم هغوی بې همته کړی نه وو،او د هغوی زړونه نې مات کړی نه وو.بیا د رسول الله ﷺ په شهادت باندې ولې دومره ویریږئی .

قوله تعالی:: فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ۝

د دنیا اواخرت بدله :- بیا فرمانی چه هغوی ته د دنیا ثواب نصر او مدد ملاوٚ شو. اود آخرت بنیګړه او نیکی هم دوی سره جمع شوه.دا محسنین دالله ﷻ نیازبین بندګان دی .

| |
|---|
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| انې هغه کسانو\| چه ایمان موراوړې دې\| که چرې \|تاسوخبره ا ومنله\| دهغه کسانو\|چه دکفر لارنې خپله کړې ده\| |
| انې د ایمان خاوندانو! \| ............. که تاسودهغه کسانو تابعداری اوکړه چا چې کفراختیارکړې دې |
| يَرُدُّوْكُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ۝ |
| نو واپس به اوګرځوی تاسو\| په پوندو ستاسو \|نواوبه ګرځئ تاسو\| نقصان موندونکی\| |
| نوتاسوبه په خپلو پوندو (کفر طرفته) واپس کړی \| اودنقصان کونکونه بهٔ اوګرځئ |
| بَلِ اللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ ۚ وَهُوَ خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ۝ سَنُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ |
| بلکه الله تعالی دې\|مددګار ستاسو\| اوهغه\| بهتر \|مددکونکې دې\| زربه اوغورزوؤمونږ\|په زړونو\| |
| (ددوئ خبره مه آورئ)بلکه الله پاک ستاسوملګرې دې\| اوهغه ډیربنهٔ مددګار دې \| .........مونږ خو |
| الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَآ اَشْرَكُوْا |
| دهغه کسانو کښې\|چه انکار ئې کړې دې دحق نه \|رعب (یره)\| په سبب دهغې\|چه شریک کړې دې هغوئ |
| دکافروپه زړنو کښې رعب اچولې دې \| ځکه چې دوئ دالله پاک سره د اسې شریک جوړکړې دې |
| بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا ۚ وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ؕ |
| \|دالله سره\| هغه ځیز \| چه نه دې نازل کړې الله \| په شریک کولو دهغې\| څه دلیل \| اوځانې د هغوئ\| اور دې |
| چې دهغې (د جواز ) په باره کښې الله پاک هیڅ نه دې نازل کړې \| اود دوئ ځانې دوزخ دې |
| وَبِئْسَ مَثْوَى الظّٰلِمِيْنَ۝ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗٓ اِذْ |
| \|اوبد ځانې دې دظالمانو \|او په تحقیق سره\| ربښتیا کړه تاسوسره الله \|وعده خپله\| کله چه |
| اودا ډیربدځانې دې چې داظالمان به په کښې اوسیږی \| اوالله تاسوسره خپله وعده ربښتیا کړه\|څه وخت |
| تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ ۚ حَتّٰٓى اِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ |
| اووژل تاسو هغوئ\| په حکم دهغه(یعنی الله ) سره\|تردې پورې\| چه بې زړهٔ شوئی تاسو\|اوجګړه اوکړه تاسو |
| چه د(جنګ په اول کښې)تاسو هغوئ دالله په حکم سره بې دریغه قتل کړل\| خوچې تاسو بې زړهٔ شوې |
| فِى الْاَمْرِ وَعَصَيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَآ اَرٰىكُمْ |
| په کار خپل کښې \|اونافرمانی اوکړه تاسو\|روستو دهغې نه \|چه اوخودلو تاسو ته (الله تعالی)\| |
| اوپه خپل کار کښې موجګړه شروع کړه\| (اودپیغبر)دحکم نافرمانی موشروع کړه\| څه وخت چې |

مَّا تُحِبُّوْنَ ۚ مِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا وَمِنْكُمْ

هغه څوک چه خوښوۀ تاسو | بعضې ستاسو نه | هغه وو | چه غوښتله ئې | دنيا | او بعضې ستاسو نه |

الله پاک تاسو ته ستاسو دخوښې څيزاوخودلو | تاسو کښې بعضې خلق ددنيا طلب گار وو | او بعضې

مَّنْ يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ

هغه وو | چه غوښتل ئې | آخرت | بيا الله تعالى په شا کړئې تاسو | دهغوئ (کافرانو) نه |

دآخرت طلب گار وو | نو تاسو ئې دکافرو (تعاقب) نه واړولئ |

لِيَبْتَلِيَكُمْ ۚ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ۗ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ

دپاره ددې چه ازمائش اوکړي په تاسو | او يقينا معافي اوکړه الله | تاسو ته | او الله | خاوند دفضل دې |

چې په تاسو امتحان اوکړي | اوپه دې کښې ئې هم تاسو ته معافي اوکړه | او الله په مؤمنانو باندې

عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ اِذْ تُصْعِدُوْنَ وَلَا تَلْوٗنَ عَلٰٓى اَحَدٍ وَّالرَّسُوْلُ

په مومنانو باندې | ياد کړئي کله چه | منډې وهلې تاسو | او نه موکتل په شا | هيچاته | او رسول |

ډير مهربان دې | (هغه وخت) ياد کړئ چې تاسو مخ په بره روان وئ | او هيچا لاتدې نه کتل | او پيغمبر درته

يَدْعُوْكُمْ فِيْٓ اُخْرٰىكُمْ فَاَثَابَكُمْ غَمًّۢا بِغَمٍّ

رابللې تاسو | دروستو ستاسو نه | نو بدله درکړه هغه تاسو ته | دغم دپاسه دبل غم |

روستونه آوازونه درکول | نو ددې عمل بدله داشوه چې دغم دپاسه غم ئې درکړو

لِّكَيْلَا تَحْزَنُوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَآ

دپاره ددې چه تاسو اونه کړئي خفگان | په هغه څه | چه لاړ شي دلاس ستاسو نه | او نه په هغه مصيبت |

دې دپاره چې ستاسو دلاسونو نه کومه فتح لاړه يادرته څه تکليف دراورسي نو چې تاسو په عغې غمژن نشئ

اَصَابَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۝

چه اورسيدو تاسو ته | او الله تعالى | خبردار دې | په هغه څه | چه تاسو يئ

......... او الله پاک ستاسو په زړونو خبردار دې |

قوله تعالى: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَرُدُّوْكُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ

**دکافرانو د تابعدارئ نه ممانعت** . الله ﷻ خپل ايماندار بندگان منع کوي چه دکافرو او منافقانو خبره مه منئ . او وائي که چرې تاسو ددوى او منل نو تاسو باندې به دنيا او آخرت کښې ذلت وى . دوى خو دا غواړي چه تاسو د اسلام نه واړوى . بيا فرمائي چه ماته مولا او مددگار اووانئ او ما سره دوستئ او ما باندې بهروسه سائئ او خما نه مدد غواړئ . بيا فرمائي چه ددې شريرانو په زړونو کښې د دوى دکفر په وجه ويره او خوف دې .

**د امت محمدي پنځه خصوصيات** :- بخاري شريف او مسلم شريف کښې روايت دې چه پنځه خبرې دى چه خمانه مخکښې هيڅ يو نبى ته نه دى ورکړې شوى ① خما مدد په رعب سره شوې دې د تولې مياشتې لارې پورې ② خما دپاره ځمکه جمات او د پاکونکې جوړه شوې ده ③ خما دپاره د غنيمت مال حلال

کړې شوې دي④ اوماته شفاعت راکړې شو⑤ هرنبی خپل خپل قوم ته لیږلې شوې وو.اوخما پیدائش خما نبوت د ټولې دنیا دپاره عام دي.(¹)

**دامت محمدی څلور فضیلتونه:-** مسند احمد کښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائی چه الله تعالی په ټولو نبیانواوبعضو روایتونوکښې دی چه په ټولو امتونو باندې ماته څلور فضیلتونه راکړي دی. ① څه نې دنیاطرفته رسول جوړ کړم او وې لیږلم.② ما او خما امت دپاره نې ټوله زمکه جمات اوپاکونکې ګرځولې دي ، چه کوم ځائې کښې دمونځ وخت شی نو خما امتیان هغه ځائې کښې مونځ کوی ③ خمادښمن که خما نه دیو میاشتې په مسافت باندې هم لرې وی الله ﷺ به د هغوی زړه کښې خما رعب اچوی. اوهغه به ریږی. ④ خما دپاره د غنیمت مال حلال کړې شو. (²)

اوبل روایت کښې دی چه خما مدد کړې شویدې په رعب سره او په دښمن باندې . (³)

**دنبی کریم ﷺ پنځه خصوصیات:-** د مسند یو روایت کښې دی چه ماته پنځه څیزونه راکړې شوی دی . ① څه هر سپین او تور طرفته لیږلې شوې یم.

② خما دپاره ټوله زمکه او اودس دپاره جوړه شوې ده .③ خما دپاره د غنیمت مال حلال کړې شوې دې.مخکښې دا حلال نه وو.④ خما مدد رعب سره کړې شوې دې د ټولې میاشتې په مسافت .⑤ ماته شفاعت راکړې شو. ټولونبیانوعلیهم السلام شفاعت اوغوښتلو خو ما خپل شفاعت دخپل امت دهغه خلقو دپاره پټ ایښودې دې چه هغوئ شرك نه وی کړې .(⁴)

ابن عباس ﷺ فرمائی چه الله ﷺ دابوسفیان په زړه کښې رعب واچولو او هغه د جنګ نه روستو شو(⁵)

**دجنګ احد واقعات :-** بیا ارشاد فرمائی چه الله ﷺ خپله وعده پوره کړه او ستاسو مدد نې او کړو. ددې نه هم دا استدلال کیدېشی چه دا وعده د احد د ورځې وه. د دریو زرو د دښمن لښکر وو. خومقابلو راتلو سره دهغوئ حوصلې پست شوې او مسلمانانو ته فتح حاصله شوه. خو بیا د غشو والو د نافرمانئ په وجه او د بعضې حضراتو د کم همتئ په وجه هغه مشروط وعده روستوکړې شوه.

**قوله تعالی:** وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللَّهُ وَعْدَهُ إِذْ تَحُسُّونَهُم بِإِذْنِهِ

بیا فرمائی چه تاسو هغه خپلولاسونو سره پریکولو. د ورځې په شروع کښې الله تعالی تاسو غالب کړئې لیکن تاسوبزدلی نه کار واخستو اودنبی نافرمانی مو اوکړه.اوخپلو کښې مواختلاف اوکړو. حالانکه الله ﷺ تاسوته ستاسو د رغبت څیز درکړې وو.یعنی مسلمانان صفا غالب شوی وو. دغنیمت مال ستاسو وړاندې وو.اوکفار په تیښته روان وو. تاسو کښې بعضو د د نیا طلب او د کافرو هزیمت ته کتلو سره د نبی ﷺ د فرمان خیال اونه ساتلو او غنیمت پسې ئې منډه کړه اګر چه بعضې نیك خلق د آخرت طلبګارخلق هم وو.خو ددې نافرمانئ په وجه کافرو ته بیا کامیابی ملاو شوه .او یو ځل بیا ستاسو آزمېښت اشو. غالب شوی وې خوبیا مغلوب شوئې. د فتح نه پس شکست اوشو. لیکن بیا هم الله ﷺ ستاسودا جرم معاف کړو.ځکه چه هغه ته معلومه ده چه تاسو دهغوئ نه په تعداد اواسبابو کښې کم وئ .دخطا معاف کیدل هم (وَعَفَا عَنكُمْ) کښې داخل دی. اودا مطلب هم دې چه د دې لړ شان جنګ نه پس اودڅه بزرګانود شهادت نه پس هغه ستاسونه خپل آزمېښت اوچت کړو.او باقی ئې معاف کړل. الله ﷺ ایماندارخلقو باندې لطف وکرم او رحم کوی.

(¹) صحیح بخاری کتاب التیمم باب رقم :١١ ح/٣٣٥، صحیح مسلم: ٥٢١، نسائی : ٤٣٢)-
(²) احمد: ٢٤٨/٥، ترمذی : کتاب التفسیر باب ماجاء فی الغنیمة : ١٥٥٣ ، مختصرا وهو حسن)-
(³) صحیح مسلم کتاب المساجد باب المساجد ومواضع الصلاة : ٥٣٢)-
(⁴) احمد: ٤١٦/٤)-
(⁵) ابن ابی حاتم : ٥٩٨/٢)-

**دجنګ احد واقعه د عبدالله بن عباس ﷺ روايت :-** دعبدالله بن عباس ﷺ نه مروی دی چه د رسول الله ﷺ مذ ذ ثنګه په احد کښې اوشو دا شان چرته نه وو شوې . دې باره کښې د الله ﷻ ارشاد دې چه الله ﷻ خپله وعده رښتيا کړه خوبيا ستاسود بعضو کارونو په وجه معامله بدله د دې خلاف شوه. بعضو خلقو دنيا خوښه کړه اودرسول الله ﷺ نافرمانی ئې اوکړه. يعنی رسول الله ﷺ بعضې تيراندازدغر په يو دره باندې مقرر کړی وو او ورته ئې فرمائيلی ووچه د دې خائې نه د دښمن نګرانی کونی هسې نه چه هغوئ مونږ باندې د شا نه حمله اوکړی. که تاسو اوګورئی چه مونږ شکست اوخوړو نوتاسو دخپل خائې نه مه خوزئی . اوکه تاسو اوګورئی چه مونږ غالب شو نو بيا هم تاسو د غنيمت مال جمع کولو دپاره مه جمع کيږئی.هرکله چه رسول الله ﷺ غالب شو نو دې تيراندازو د رسول الله ﷺ د حکم خلاف اوکړو او خپل خائې ئې پريښودو اومسلمانانو لره راغلل او د غنيمت مال ئې جمع کول شروع کړل. د صفونو خيال ئې اونه ساتلو. دره ئې خالی پريښوده. مشرکانو تيښيته پريښودله .او غور فکر کولو نه پس ئې په دې خائې حمله اوکړه. چه کوم مسلمانان تر اوسه پورې هغه خائې کښې وو هغوئ شهيدان شول. او اوس کافرانوپه مسلمانانو باندې د شا نه حمله اوکړه او دوی ته خبر نه وو. د مسلمانانو حوصلې پست شوې او د ورځې د شروع فتح په شکست کښې بدله شوه. اودا مشهوره شوه چه رسول الله ﷺ هم شهيد شو. او جنګ دې رنګ سره د مسلمانانو يقين اوشو. لږ وخت پس چه کله د مسلمانانو نظرونه د رسول الله ﷺ په مخ مبارك پريوتلو نو خپل ټول مصيبتونه او تکليفونه ترې هير شو. اودخوشحالئ نه رسول الله ﷺ طرفته په منډه شو.رسول الله ﷺ دې طرفته راتلل او فرمائيل ئې چه دالله ﷻ غضب دې وی په هغه خلقو چه کومود الله د رسول ﷺ مخ مبارك په وينو ککړ کړه. د دوی هيڅ حق نه وو چه په مونږ دا شان غالب شو.لږ وخت پس مونږ واوريدل چه ابوسفيان غر سره ولاړ دې او وائی چه (اعل هبل اعل هبل) د هبل بت نوم دې اوچت وی ، د هبل بت نوم دې اوچت وی. ابوبکر صديق ﷺ چرته دې ؟ عمر فاروق ﷺ چرته دې ؟ عمرفاروق ﷺ تپوس اوکړو چه يارسول الله ﷺ ! دوی ته جواب ورکړم ؟ نو رسول الله ﷺ عمر فاروق ﷺ ته اوفرمائيل چې ته داسې جواب ورکړه چه (الله اعلی واجل الله واعلی اجل) الله ﷻ ډير اوچت دې او جلال والا دې. هغه تپوس اوکړو چه محمد ﷺ چرته دې ؟ ابوبکر ﷺ چرته دې ؟ عمر چرته دې ؟ دوی اوفرمائيل چه دا دې رسول الله ﷺ . اودا دې ابوبکر صديق ﷺ او دا خه عمر فاروق ﷺ يم . ابوسفيان اوونيل چه دا د بدربدله ده او حالت دا رنګ بدليږی رابدليږی. د جنګ مثال خو د کوهی د ډول په شان دې .عمرفاروق ﷺ اوفرمائيل چه برابر بالکل نه دی ستاسو مقتولان جهنم ته لاړل او خمونږ شهداء جنت ته اورسيدل.ابو سفيان اوونيل که يقينی داسې وی نو مونږ په نقصان کښې يو. واورئی ستاسو په مقتولانو کښې به د بعضو پوزې او غوږونه پريکړې وی.اوداسې خلق به تاسو اووينئ ، دا خمونږ د سردارانو رائې نه وه ليکن مونږ ته دا بد هم نه معلوميږی([1]) داحديث غريب دې او دا قصه هم عجيبه ده. دا د ابن عباس ﷺ مرسلات دی. هغوئ په دې جنګ کښې شريك نه وو. مستدرك حاکم کښې هم دارو ايت موجود دې.ابن ابی حاتم او بيهقی په دلائل النبوة کښې دا مروې دې.او صحيح احاديثو کښې ددې بعضې شواهد هم موجود دی .

**د ابن مسعود ﷺ په روايت سره د احد د جنګ واقعه:-** مسند احمد کښې عبدالله بن مسعود ﷺ فرمانی چه د احد په ورځ ښځې مسلمانانو پسې وې او هغوئ به د زخميانو مرهم پټی کولې. ماته پوره يقين وو چه نن په مونږ کښې هيڅوك طالب د دنيا نه وو بلکه په هغه وخت کښې که ماته په دې خبره قسم راکړې شوی وونو ما به قسم کړې وو . ليکن قران پاك کښې دا آيت نازل شو چه ﴿مَّن يُرِيدُ الدُّنْيَا﴾ يعنی تاسوکښې بعضې ددنيا طالبان دی. هرکله چه صحابه کرام ﷺ د رسول الله ﷺ خلاف شو او د هغوئ نه

---

[1]) حاکم : ٢٩٦/٢، حاکم دا صحيح ګرزولې دې او ذهبی ددوی موافقت کړې دې ددې حديث پاک اکثر حصه شواهد دپاره اوګورئی صحيح بخاری ، کتاب الجهاد باب مايکره من التنازع: ٣٠٣٩م.

د رسول الله ﷺ نافرماني اوشوه. نو د دوی قدمونه پست شو. رسول الله ﷺ سره صرف اووه انصار او دوه مهاجرين باقي پاتې شو. هرکله چه مشرکان د رسول الله ﷺ نه ګير چاپيرشول نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ دې په هغه سړي رحم اوکړي چه څوک دا خلق لرې کړي. نويو انصاري پاسيدو او د دې لوښې دلې سره ئي يواځې جنګ شروع کړو او شهيد شو. بيا کفارو حمله اوکړه. رسول الله ﷺ بيا هم دغه اوفرمائيل. بيا يو انصاري تيار شو او شجاعت سره ئي جنګ اوکړو چه هغوئ ئي مخکښې راتلو ته پرې نښودل. او دې هم شهيد شو. تردې چه دا اووه واړه صحابه کرام ﷺ شهيدان شو. الله ﷻ دې د دوی نه راضي شي. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه افسوس مونږ خپلو ملګرو سره د انصاف معامله اونکړه. اوس ابو سفيان په چغو اووئيل چه (اعل هبل) دوی اوفرمائيل چه (الله اعلیٰ واجل) ابو سفيان اووئيل چه (لنا العزي ولاعزي لکم) خمونږ عزی بت دې ستاسو هېڅ عزی نشته دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه اووائې چه (الله مولانا والکافرين لامولیٰ لهم) الله ﷻ خمونږ مولا دې. او د کافرو هيڅوک مولا نشته دې. ابوسفيان اووئيل چه نن ورځ د بدر د بدلې ورځ ده. څه ورځ خمونږ څه ورځ ستاسو. دا خولاس په لاس سودا ده. د يو بدله کښې يو ده. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه بالکل نه خمونږ شهيدان ژوندي دی. او رزق ورته ملاويږي. او ستاسو مقتولان خو جهنم ته لاړل. بيا ابوسفيان اووئيل چه ستاسو مقتولانو کښې به تاسو ګورئي چه د بعضو پوزې او غوږونه پريکړې شوی دی. ليکن ما نه د دې حکم کړې وو نه مې ددې نه منع کړې ده.او زه په دې باندې خفه هم نه يو.او خوشحاله پرې هم نه يم.

**د حمزه ﷺ شهادت :-** چه وې کتل نو معلومه شوه چه د حمزه ﷺ خيټه ئي شلولې وه او هنده د هغه ځيګر باندې چکونه لګولی وو. خودا ئي تيره کړې نه وه. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ناممکن وو چه د حمزه ﷺ د غوښې يو ټکړه هم د هندې خيټې ته ورغلې وه. الله ﷻ د حمزه ﷺ دبدن حصه جهنم کښې اچول نه غوښتل. نو د حمزه ﷺ جنازه ئي خپلې مخې ته کيخوده او په دوی ئي د جنازې مونځ اوکړو. بيا ديو انصاري جنازه راوړې شوه . او هغه د حمزه ﷺ سره کيخودې شوه. او نبی کريم ﷺ بيا د هغه دجنازې مونځ اداکړو. خود حمزه ﷺ جنازه هم هلته وه. دا شان اويا کسان راوړې شو او د حمزه ﷺ اويا ځل جنازه ادا کړې شوه. (مسند). ([1])

**د ابوسفيان اعلان:-** صحيح بخاری شريف کښې دبراء ﷺ نه مروی دی چه د احد په ورځ دې مشرکانو سره خمونږ جنګ اوشو ، رسول الله ﷺ د تيراندازو يو جماعت بيل يو ځائې کښې کينولو. او د دې سرداری ئي عبدالله بن جبير ﷺ ته اوسپارله او وې فرمائيل که چرې تاسو اوکتل چه مونږ په هغوئ غالب شو نو تاسو د دې ځائې نه مه خوزنئ او که هغوئ غالب شو نو بيا هم تاسو د دې ځائې نه مه خوزنئ. دجنګ شروع کيدو سره د مشرکانو قدمونه پست شو تر دې چه ښځو هم تهبندونه اوچت کړل او غرونو ته لاړې . اوس د تيراندازو جمات غنيمت غنيمت وينا سره لاندې راغلل. اګر چه ددوی امير دوی ډير منع کړل .خو هيچا د دوی اونه منل. نو اوس مشرکانو په مسلمانانو د شانه حمله اوکړه او اويا صحابه کرام شهيدان شو. ابو سفيان په يو غونډئی باندې اوختو.دوی اووئيل چه محمد ﷺ ژوندې دې ؟آيا ابوبکر صديق ﷺ ژوندې دې ؟آيا عمرفاروق ﷺ ژوندې دې ؟ خو د رسول الله ﷺ فرمان سره صحابه کرام ﷺ خاموش پاتې شو.نو ابوسفيان خوشالي نه په ټوپونوشو او وې وئيل چه دا ټول خمونږ د توري دلاندې دی ،که چرې ژوندی وې نو ضرور به ئي مونږ ته جواب راکړې وې. دې کښې عمرفاروق ﷺ صبر نه شو او وې فرمائيل چه ائې د الله ﷻ دښمنه ته دروغژن ئې او الحمدالله مونږ موجود يو .او الله ﷻ ستاسو هغی او بربادئی دپاره باقی ساتلی يو.بيا هغه خبرې اوشوې چه کومې پورته بيان شوې ([2])

---

[1]) احمد: ٤٦٣/١)-

[2]) صحيح بخاری کتاب الجهاد باب مات يکره من التنازع : ٣٠٣٩، ابوداود : ٢٦٦٢)-

**د حذیفه ﷜ د پلار شهادت:**- صحیح بخاری کښې عائشه ﵂ نه روایت دې چه جنګ احد کښې مشرکانو ته هزیمت اوشو او ابلیس آواز اولګولو چه اے د الله ﷺ بندګانو تاسو روستو اوګورئی . روستی جماعتونه په مخکښنوباندې جماعتونو غالب شو.حذیفه ﷜ اوکتل چه دمسلمانانو توري ددوی په پلار یمان باندې وریږی.دیرئې اووئیل چه اے د الله ﷺ بندګانو دا خما پلار دی دا خما پلار یمان ﷜ دې مګر د دوی چا آوریدل .هغه خو شهید شو لیکن حذیفه ﷜ هیڅ اونه وئیل بلکه وې فرمائیل چه الله ﷻ دې تاسو معاف کړی. لیکن د حذیفه ﷜ دا ښیګړه تر آخره پورې دوی سره وه. ([1])

**د بعضو مسلمانانو په وجه فتح په شکست کښې بدلیدل:**- سیرت ابن اسحاق کښې دی چه زبیر بن عوام ﷜ فرمائی چه ما په خپله اوکتل چه مشرکان د مسلمانانو ړومبۍ حملې سره په تیښته شو.تر دې چه د دوی ښځې هنده وغیره تهبندونه اوچت کړل او په تیښته شوې . خودې نه پس چه کله تیراندازو مرکز پریښودو او کافرو پرې د شا نه حمله اوکړه او بل طرفته چا دا اووئیل چه محمد ﷺ شهید شو .نو بیا حمله برعکس شوه ګنی مونږ به د مشرکانو علم بردارو ته رسیدلی وې او بیرغ به د هغوئ دلاس نه پریوتې وې. خو عمره بنت علقمه حارثه ښځې هغه اونیوله . او د قریشو مجمع دلته جمع شوه. ([2])

**دانس بن نضر﷜ شجاعت:**-د انس بن مالک ﷜ تره انس بن نضر ﷜ دې کتلو سره عمرفاروق ﷜ او طلحه وغیره ته ورغلل. اووې فرمائیل چه تاسو ولې همتونه اوبائیلل .هغوئ جواب کښې اووئیل چه محمد ﷺ شهید شو.انس ﷜ اوفرمائیل چه بیا تاسو څه کوئی؟دې وینا سره دې د مشرکانو کښې ورداخل شو تردې چه الله ﷻ سره ملاؤ شو.([3])

**دانس بن نضر﷜ شهادت:**- دې د بدر په ورځ جهاد کښې نه وو شامل شوې.نو وعده ئې کړې وه چه بیا که څه موقع راغله نو خپله ځوانمردی به ښایم . دې جنګ احد راغلو. هرکله چه مسلمانانو کښې شور شو نودوی اووئیل چه یاالله څه د مسلمانانو د دې کار نه معذور یم او دمشرکانو دکار نه بری یم. بیا ئې خپله توره واخستله او مخکښې شو. لار کښې ورسره سعد بن معاذ ﷜ ملاوشو او وې وئیل چه چرته روان ئې؟ وې فرمائیل چه ماته خو د احد دغرنه دجنت خوشبو راځي. نو مشرکانو کښې ورداخل شو او ښه په بهادرئی سره اوجنګیدو تر دې چه شهادت ئې نصیب شو. د اتیاؤ نه زیات زخمونه د تورو د دوی په بدن مبارک باندې وو.د دوی پیژند ګلی نه کیدله .د ګوتوبندونو سره د دوی پیژند ګلو اوشوه.([4])

**دحضرت عثمان ﷜ مقام او مرتبه:**- صحیح بخاری شریف کښې دی چه یو حاجی بیت الله شریف کښې یو مجلس اوکتلو اوتپوس ئې اوکړو چه دا څوک دې ؟ خلقو اووئیل چه دا قریشی دی . تپوس ئې اوکړو چه د دوی شیخ څوک دې ؟ جواب ملاؤ شو چه عبدالله ابن عمر ﷜ دې.نو هغه راغلو او وې وئیل چه څه تپوس کول غواړم .عبدالله ﷜ ورته اوفرمائیل چه اوکړه تپوس . ده اووئیل چه ستا دې په بیت الله قسم وی رښتیا اووایه چه آیاعثمان بن عفان ﷜ د احد په ورځ تښتیدلې وو ؟ دوی جواب کښې اووئیل چه آؤ.هغه اووئیل چه د بدر په ورځ هم دوی غیر حاضر وو.دوی ورته جواب ورکړو چه آؤ !وې وئیل چه تاسو ته معلومه ده چه هغه بیعت رضوان کښې هم نه وو. وې فرمائیل چه دا هم صیحح دی . هغه خوشحاله شو اوتکبیر ئې اووئیلو.عبدالله ﷜ ورته اووئیل چه راشه چه څه تاته پوره واقعات اووایم . د احد په تیښته خو الله ﷻ معافی کړې ده. د بدر په ورځ د غیرحاضرئی وجه دا وه چه د دوی په کور کښې د رسول الله ﷺ لور بی بی وه.هغه سخته بیماره وه. رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه ته مه راځه مدینه کښې اوسه . تاته به الله ﷻ دې جنګ کښې د شرکت اجر درکوی. اوغینمت کښې هم ستا حصه

---

[1]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب ( اذ همت طائفتان منکم....) : ٤٠٦٥)-

[2]) الطبرانی : ٨٠٠٨، دلائل النبوة للبیهقی ٢٢٧/٣، السیرة لابن هشام: ٢١/٣، وسنده حسن)-

[3]) الطبری : ٤٩٤٥، ابن هشام . ٨٨/٣:)-

[4]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة احد: ٤٠٤٨، صحیح مسلم: ١٩٠٣)-

ده .د بیعت رضوان واقعه دا ده چه هغوئ رسول الله ﷺ مکې والو ته لیږلی وو د پیغام د پاره ددې و جې چه کوم عزت دوی ته مکه کښې حاصل وو هغه بل چاته نه وو حاصل دوی چه کله تشریف یوړو نو دا بیعت اخستې شوې وو. رسول الله ﷺ خپل لاس مبارك پاس کړو او وې فرمائیل چه دا د عثمان ﷺ لاس دې، بیا ئې خپل بل لاس په دې کیخودلو. بیا ئې دې سړی ته اوونیل چه اوس لاړ شه او دې هم خان سره بوخه [1].

**قوله تعالی: إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُونَ عَلَىٰ أَحَدٍ**

**د رسول الله ﷺ مسلمانان رابلل:** بیا فرمائی چه **(اذ تصعدون)** الخ. یعنی تاسو د خپل دښمن نه تښتیدنی او غر ته ختئ؛ اود ویرې او خوف په وجه مو بل طرفته توجه نه وه. رسول الله ﷺ هم تاسو هلته پریښودو. او رسول الله ﷺ تاسو ته آوازونه کول اوتاسو ئې پوهولئ چه مه تښتئ؛ راواپس شئ؛
سدی رحمه الله فرمائی چه دمشرکانو دې اچانك او زوردارې حملې سره دمسلمانانو حوصلې کمزورې شوې . څه مدینې طرفته واپس شو او څه غرونو ته اوختل . دالله رسول ﷺ ورته آوازونه کول او ورته ئې ونیل چه انې د الله تعالی بندګانو ځما طرفته راشئ ، ځما طرفته راشئ؛ د دې واقعې بیان په دې آیت کښې دې.عبدالله بن زبعری شاعر دا واقعه په نظم کښې هم بیان کړې ده. نبی کریم ﷺ هغه وخت کښې صرف دولسو کسانو سره پاتې وو. دمسند احمد یو اوږد حدیث کښې د دې ټولو واقعاتو ذکر دې [2]

**د طلحه ﷺ شجاعت:** - دلائل النبوة کښې دی چه کله شکست ملاؤ شو نو بیا رسول الله ﷺ په هغه وخت کښې صرف یولسو کسانوسره پاتې وو. چه په هغوئ کښې یو طلحه بن عبیدالله وو. دوی غر ته ختل خو مشرکانو نه پرې نښودو.نو رسول ا لله ﷺ خپلو ملګرو ته آوازونه اوکړل چه څوك شته دې چه د دوی مقابله اوکړی. طلحه ﷺ د رسول الله ﷺ په آواز لبیك اوونیلو او تیار شو خو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه لږ صبر اوکړه.یوبل انصاری تیار شو او هغوئ سره.جنګیدو ، تر دې چه شهید شو دغه شان یویو شهیدان شول. اوس صرف طلحه ﷺ پاتې شو. دا صحابی ﷺ هر خل تیار شو خو رسول الله ﷺ دې منع کړو،آخر دوی مقابلې ته راغلو او دا شان بهادرنی سره ئې جنګ اوکړو چه د هغه ټولو جنګ یو طرفته او ددوی جنګ بل طرفته . دې جنګ کښې د دوی ګوته کټ شوه نو د دوی ژبې نه فریاد اوختلو. رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل که تاسو بسم الله ونیلې وې یا مو د الله نوم اخستې وې نو ته به فرښتو اوچت کړې وې .او آسمان طرفته به ئې بوتلې وې او خلقو به درته کتل دې وخت کښې رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرام ﷺ ته رسیدلې وو [3]؛
صحیح بخاری شریف کښې دی چه قیس بن ابی حازم رحمه الله فرمائی چه " ماواکتل چه د طلحه ﷺ هغه لاس چه د هغې نه دوی دال سپر جوړ کړې وو شل شو. [4]

**د نبی کریم ﷺ محافظینې فرشتې:** - سعد بن ابی وقاص ﷺ فرمائی چه ځما ترکش نه رسول الله ﷺ ټول غشی خواره کړه او وې فرمائیل چه ځما مور پلار دې په تا قربان وی مشرکان اوولہ. [5] نو نبی کریم ﷺ به غشی اوچتول اوما به ویشتل په دې مشرکانو.په هغه ورځ ما دوه کسان اوکتل چه د رسول الله ﷺ ښی اوکس طرفته وو او هغوئ ډیر سخت جنګ کولو. ما د دې نه مخکښې لیدلې وو او نه د دې نه روستو دا دواړه جبرائیل ﷺ و میکائیل ﷺ وو. [6]

[1] صحیح بخاری کتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ باب فضائل عثمان: ٣٦٩٩)-
[2] احمد: ٢٩٣/٤، صحیح بخاری : ٤٠٤٣، مختصرا)-
[3] نسائی کتاب الجهاد باب مایقول من یطعنه العدو : ٣١٥١ وهو حسن)-
[4] صحیح بخاری کتاب المغازی باب (اذ همت طائفتان....) : ٤٠٦٣)-
[5] صحیح بخاری حواله سابق: ٤٠٥٥)-
[6] صحیح بخاری حواله سابق: ٤٠٥٤،صحیح مسلم کتاب فضائل اکرامه صلی الله علیه وسلم بقتال الملائکة معه ﷺ: ٢٣٠٦)

**په رسول الله ﷺ باندې ځان قربانونکی:-** اویو روایت کښې دی چه څوك رسول الله ﷺ سره د سخت جنګ په وخت کښې وو. هغوی یویو شهید شو ،هغوئ ته به رسول الله ﷺ فرمائیل چه څوك شته دې چه دوی منع کړی او جنت ته لاړ شی، او جنت کښې خما ملګرې وی (١).

**د ابی بن خلف د نبی کریم ﷺ د لاسه قتل کیدل:-** ابی بن خلف مکه کښې قسم کړې وو چه څه به رسول الله ﷺ قتلوم .هرکله چه رسول الله ﷺ ته د دې علم اوشو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه هغه خو نه بلکه څه به هغه قتل کوم. د احد په ورځ دې د سر نه پښو پورې په زره کښې پټ وو.رسول الله ﷺ طرفته راغلو او دا ئې وئیل که محمد ﷺ بچ شو نو څه به هلاك شم. بل طرفنه مصعب بن عمیر ﷺ دې خبیث طرفته وراندې شو خو هغوئ شهید شو.نو بیا رسول الله ﷺ هغه طرفته وړاندې شو او د هغه ټول جسم زره کښې پټ وو ، صرف لږ شان تندې ئې ښکاریدو ،رسول الله ﷺ په نیزه په تندی اووهلو او دې د آس نه راپریوتو. اګر چه د دې زخم نه وینه راونه وتله لیکن د ده دا حالت وو چه چغې ئې وهلې . خلقو دې اوچت کړو او لښکر ته ئې بوتلو او تسلی ئې ورکوله چه هیڅ داسې زخم نشته دې ، دومره ولې فریاد کوې.آخر د دوی د پیغورونونه مجبور شو .وې وئیل چه ما آوریدلی دی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څه به ابی بن خلف قتل کوم. دا رښتیا دی څه هیڅکله نشم بچ کیدې.دې پسې مه خئ،چه څه لږ شان زخمی شوې یم. په الله مې دې قسم وی چه د هغه په قبضه کښې خما ساه ده که د اهل حجاز والو په لاسونو داسې زخم لګیدلې وې نو هغوئ به هم هلاك شوی وو. نو داسې فریاد فریاد کښې هلاك شو او جهنم ته اورسیدو. (٢)

**هم دا واقعه په بل روایت:-** مغازی بن محمد بن اسحاق کښې دی چه هرکله دا سړې رسول الله ﷺ ته مخامخ شونو صحابه کرام ﷺ خواهش اوکړو چه هغه سره جنګ اوکړی. خو رسول الله ﷺ هغوئ منع کړل او رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دې راپرېږدئی. کله چه نزدې شو نو رسول الله ﷺ د حارث بن صمه نه نیزه واخستله او په هغه ئې حمله اوکړه. هرکله چه ئې د رسول الله ﷺ لاس کښې نیزه اولیده نو په رپیدو شو.موږ په هغه وخت کښې اووئیل چه د ده خیر نشته.رسول الله ﷺ د هغه په مرئی وار اوکړو او هغه د آس نه پرمخ راپریوتلو.

**د ابن بن خلف د مرداریدو ځائې:-** د ابن عمر ﷺ بیان دې چه بطن رابغ کښې دې کافر ته مرګ راغلو. یو شپه څه دې ځائې باندې تیریدم نوما یو ځائې کښې اور اوکتلو چه شغلې ختلې او اومې کتل چه یوسړې په زنځیرونو کښې تړلې شوې اور ته ئې راکاږی.اوهغه تنده تنده کوی.او بل سړې وائی چه ده ته اوبه ورکړنی دې پیغمبر ﷺ وهلې دې. دا ابی بن حلف دې.

**دالله دغضب دوه مستحق کسان:-** بخاری او مسلم کښې روایت دې چه رسول الله ﷺ خپل هغه مخامخ غاښونو طرفته اشاره اوکړه او وې فرمائیل چه په هغه خلقو دې دالله ﷻ سخت عذاب دې چې خپل نبی سره ئې دا شان سلوك اوکړل. او په هغوئ دې هم دالله تعالی غضب وی چه څوك چې د الله د رسول ﷺ د لاس نه قتل شی (٣).

**د رسول الله ﷺ غاښونه چا شهیدان کړی وو؟:-** او یو روایت کښې دا الفاظ هم دی چه کومو خلقو د رسول الله ﷺ مخ مبارك زخمی کړې وو(٤)عتبه بن ابی وقاص رسول الله ﷺ زخمی کړې وو ،اودمخامخ څلورواړه غاښونه مبارك ئې شهیدان کړی وو. په مخ مبارك ئې زخمونه راغلی وو او په شونډو مبارکو ئې هم.

---

١) صحیح مسلم کتاب الجهاد : باب غزوةاحد: ١٧٨٩)-

٢) دلائل النبوة للبیهقی : ٢٥٨/٣، )-

٣) صحیح بخاری کتاب المغازی باب ما اصاب النبی ﷺ من الجراح...... : ٤٠٧٣، صحیح مسلم: ١٧٩٣)-

٤) صحیح بخاری : ٤٠٧٤)-

**دسعدبن ابی وقاص ﷺ خواهش:-** سعد بن ابی وقاص ﷺ فرمائی چه څومره ماته د دې سړی د قتل کولوحرص وو دومره د بل چا د قتل کولو نه وو. دا سړې ډیر زیات بداخلاقه وو. او ټول قوم د ده دښمنان وو.او د ده بدئی کښې د رسول الله ﷺ دا فرمان کافی دې چه څوك نبی زخمی کړی نو په هغه د الله ﷻ غضب وی.(۱)

**د رسول الله ﷺ خیرې:-** عبدالرزاق کښې دی چه رسول الله ﷺ د ده دپاره بددعا کړې وه چه اې الله ﷻ دې کال کښې دې هلاك کړې او د ده مرګ دې په کفر کښې وی.نو هم دغه شان اوشو اودا بدبخت کافرشو او جهنم ته اورسیدو. (۲)

**رسول الله ﷺ د الله په حفاظت کښې:-** دیو مهاجر بیان دې چه د څلورو واړو طرفونو نه غشی راوریدل. خو د الله ﷻ قدرت سره به دا ټول بې خایه تلل. ابی بن خلف په هغه ورځ قسم کړې وو چه ماته نن محمد ﷺ اوښائی .نن به ئې څه قتلوم. که هغوئ بچ شو نو بیا څما خیر نشته. اوس هغه رسول الله ﷺ طرفته روان شو او بالکل رسول الله ﷺ ته نزدې شو او هغه وخت کښې رسول الله ﷺ سره هیڅوك نه وو. لیکن الله ﷻ د ده په سترګو پرده واچوله او ده ته رسول الله ﷺ نه ښکاریدو. هرکله چه هغه واپس شو نو صفوان ده ته پیغور اوکړو . ده اووئیل په الله قسم ما دې نه وو لیدلې والله هغه د الله په حفاظت کښې دې. مونږ ته په لاس نه راځی. واورئ مونږ څلورو کسانو د هغه دقتل کولو اراده کړې وه اوخپلو کښې مو وعده کړې وه . مونږ ډیر اوغوښتل خو کامیابی نشو .(۳)

**د امام واقدی رائې:-** واقدی وائی چه ثابت شوې خبره دا ده چه د رسول الله ﷺ تندې زخمی کولووالا ابن قمه وو اودرسول الله ﷺ شونډو مبارکو اوغاښونو مبارکو ته تکلیف رسولو والا عتبه بن ابی وقاص وو.

**دابوطلحه ﷺ بهادری:-** ام المومنین عائشه صدیقه ﷺ بیان فرمائی چه کله به څما پلار ابوبکرصدیق ﷺ د احد ذکرکولو.نو ښکاره به به ئې بیانول چه د هغې ورځې ټول فضیلت طلحه ﷺ دپاره دې ، هرکله چه څه واپس شوم نو اومې کتل چه یو سړې د رسول الله ﷺ حمایت کښې داسې جنګ کوی نو مااووئیل چه الله ﷻ دې اوکړی دا ابوطلحه وی. چه نزدې شوم او اومې کتل نوهغه ابوطلحه وو ، ما اووئیل چه ﴿ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ﴾ چه څما د قوم یو سړې دې . څما اود مشرکانو په مینځ کښې یو سړې دې چه دمشرکانو مینځ کښې ولاړ وو. او د دوی ډیروزیاتو حملو مشرکان پست کړی وو. چه غورسره مې اوکتل نوهغه ابوعبیده بن جراح ﷺ وو. او بیا چه کله ما په غور رسول الله ﷺ ته اوکتل نو د رسول الله ﷺ غاښونه مبارك شهیدان شوی وو. او مخ مبارك ئې زخمی وو. او په تندی مبارك ئې د زرې دوه کړئی ننوتې وې. څه رسوْل الله ﷺ طرفته ورتلم خو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د ابوطلحه ﷺ خبر واخله .

**د ابوعبیده ﷺ د نبی ﷺ سره عشق:-** ما غوښتل چه د رسول الله ﷺ د تندی مبارك نه هغه دواړه کړئی راوباسم خوابوعبیده ﷺ ماته قسم راکړو اوخپله نزدې راغلو او دا ئې محسوس کړل چه په لاسونوئې راوباسی نورسول الله ﷺ ته ډیر تکلیف وی نو غاښونو سره ئې یو کړئی اونیوله او راویوستله . خودې کښې د هغوئ غاښ هم مات شو. ما غوښتل چه دویمه هم څه راوباسم .خو ابوعبیده ﷺ بیا قسم راکړونو څه روستوشوم. بیا هغوئ دویمه کړئی هم راوویستله.دې خل هم د هغه غاښونه مات شو. مونږ د هغه خبر واخستو.

**د رسول الله ﷺ د زخم وینه څکل:-** د رسول الله ﷺ د زخم وینه ابوسعید خدری ﷺ اوڅکله چه وینه کمه شی،بیا دوی ته اووئیلې شو چه خوله کښې اوبه واچوه. لیکن هغوئ اووئیل چه په الله ﷻ قسم څه به

---

(۱) دلائل النبوة للبیهقی : ۳/۲۶۵)-

(۲) مصنف عبدالرزاق : ۹۶۴۹، دلائل النبوة للبیهقی : ۳/۲۶۵)-

(۳) اخرجه الواقدی فی مغازیه : ۱/۲۳۸)-

خوله کښې اوبه وانچوم. بيا ميدان جنګ ته لاړو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل که څوك جنتی سړي کتل غواړي نو ده ته دې اوګوري ، نو هم دې ميدان کښې دوی شهيدشو.([1])

**د نبی کريم ﷺ په زخم ايره پورې کول:-** صحيح بخاری شريف کښې دی چه د رسول الله ﷺ مخ مبارک . مخامخ غابښونه.او سر مات شو. فاطمې رضي الله عنها به د رسول الله ﷺ وينه وينځله اوعلی رضي الله عنه به ډهال کښې اوبه راوړې او د رسول الله ﷺ په زخم به ئې اچولې .هرکله چې دوی ته معلومه شوه. چه وينه نه اودريږي نو فاطمې رضي الله عنها بورئی اوسيزله. اودهغې ايره ئې درسول الله ﷺ په زخم مبارك کيخوده. اودې سره وينه بنده شوه. ([2])

**د غمونو نه څه مراد دې؟:-** بيا فرمائی چه تاسوته غم دپاسه غم اورسيدو. د بغم "ب" په معنی د علی ده لکه ﴿فِیْ جُذُوْعِ النَّخْلِ﴾ کښې ،،فِیْ،، په معنی د (عَلٰی) ده. ① يو غم خو شکست او دا مشهوريدل چه الله دې نه کړې رسول الله ﷺ باندې تکليف دې . دويم غم د مشرکانو غالب راتلل او رسول الله ﷺ به فرمائيل چه د دوی سره دا بلندی لائق نه وه. ② دغه شان دا هم دی چه يو غم خود غنيمت دلاس نه تلل او دويم د هزيمت کيدو([3]).

عبدالرحمان فرمائی چه داشان يو غم د خپلو رونړو او دويم غم د نبی ﷺ ددې منحوس خبر. بيا فرمائی چه کوم غنيمت او فتح ستاسونه فوت شوه او زخمونه او شهادت ملاؤ شو په هغې باندې غم. الله ﷻ سبحانه وتعالی چه ډير بلندئی او جلال والا دې ، هغه ستاسو اعمالونه خبر دار دې .

ثُمَّ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ اَمَنَةً نُّعَاسًا يَّغْشٰى

بيائې نازل کړو|په تاسوباندې|روستو|د دغه غم نه|اطمينان (بې غمی)|پر کالی دخوب| چه راغله |

| بيا ئې ددې لوئې غم نه پس ستاسو په زړونو کښې اطمينان پيدا کړو| چې يو ډلې ته خوب ورغلې وو|

طَآئِفَةً مِّنْكُمْ ۙ وَطَآئِفَةٌ قَدْ اَهَمَّتْهُمْ اَنْفُسُهُمْ

په يوه ډله باندې|ستاسونه| اوبله ډله وه |چه په فکر کښې اچولې وو هغوئ لره|نفسونو دهغوئ|

اوبله ډله پاتې شوه | ............ نوهغوئ سره د خپل خان غم وو

يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ؕ يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا

چه ګمانونه ئې کول|په الله باندې| ناحقه |ګمان دجاهليت |هغوئ وائی (اوس)| چه ايا شته مونږ لره

چې په الله پاک باندې ئې په ناحقه جاهلانه ګمان کولو|............ دغه خلق اوس وائی چې

مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَیْءٍ ؕ قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ ؕ

د (دچلولو) ددې کار نه| څه حصه |ورته اووايه| بيشکه اختيار ددې کار ټول|الله تعالی لره دې|

چې په دې کار کښې زمونږ څه اختيار وو| ته ورته اووايه چې ټول کارونه د الله پاک په اختيار کښې دی

يُخْفُوْنَ فِیْۤ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ ؕ يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ

پټوی داخلق| په نفسونو خپلو کښې |هغه چه |نه ئې ظاهروی | تاته |دوی وائی| که چرې وې|

اصل کښې دوئ خپلوزړونو کښې داسې خبرې پټې کړی دی |چې هغه ستاسو په مخکښې نه ښکاره کوی| دوئ خپل مينځ

---

[1]) مسند الطيالسی : ١/٣، ح/٦)-

[2]) صحيح بخاری کتاب المغازی باب ما اصاب النبی ﷺ من الجراح يوم احد: ٤٠٧٥، صحيح مسلم: ١٧٩٠، ابن ماجة: ٢٤٦٤)-

[3]) تفسيرابن جرير : ٤/٦٧)-

| |
|---|
| لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَیْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ؕ |
| موږ لره ادي کار (دمشرئي) نه ا څه اختیا ر انه به وو وژلي شوی موږ ا دلته په (احد کښې) |
| کښې وائي که چرې څه لږ ډیر اختیار زموږ په لاس کښې وې ا نوموږ به دلته نه وو قتل شوی |
| قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِیْ بُیُوْتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِیْنَ كُتِبَ |
| ورته اووایه اکه وې تاسو اپه کورونو خپلو کښې اخامخا به راوتلي وې اهغه کسان اچه لیکلي شوې وو |
| ورته اووایه اکه چرې تاسو په خپلوکورونو کښې هم ناست وې؛ نو د چا په قسمت کښې |
| عَلَیْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰی مَضَاجِعِهِمْ ۚ وَلِیَبْتَلِیَ اللّٰهُ |
| اپه هغوئ باندې اوژل (مرګ) اطرف دځایونو دمرګ خپل ته ا او (دا کار اوشو) دپاره ددې چه ازماني االله |
| چې مرګ لیکلي شوې وو ا نوهغوئ به دخپل دمرګ ځایونوته راوتی وو ا اودامعامله ځکه اوشوه چې الله |
| مَا فِیْ صُدُوْرِكُمْ وَلِیُمَحِّصَ مَا فِیْ قُلُوْبِكُمْ ؕ |
| هغه څه اچه په سینو ستاسو کښې دی ا اودپاره ددې چه جدا کړي اهغه خیرې اچه په زړونو ستاسو کښې دې |
| ستاسودسینوپټ رازونه آزماني ا .................. اوستاسوزړونو نه دروغو نه صفا کړي |
| وَاللّٰهُ عَلِیْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۱۵۴﴾ اِنَّ الَّذِیْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ |
| ااو الله تعالی ښه پوهه دې ا په حال د سینو ابیشکه هغه کسان ا چه واپس اوګرزیدل استاسو نه ا |
| اوالله پاک ته دزړونو حال ښه معلوم دې ا .................. په تاسو کښې چې څوک د |
| یَوْمَ الْتَقَی الْجَمْعٰنِ ۙ اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ |
| په هغه ورځ ا چه مخامخ شوې ا دواړه ډلې ابیشکه (دهغې وجه داوه) اچه خویولی ئې ووهغوئ لره |
| دجنګ په ورځ تختیدلی وو ا .................. نو هغوئ په اصل د خپلو خینو عملونو په وجه |
| الشَّیْطٰنُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا ۚ وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ |
| شیطان اپه سبب دځینو ا هغه ګناهونو اچه کړی ووهغوئ ا اومعاف کړل الله تعالی ا هغوئ ا بیشکه الله |
| شیطان دهوکه کړی وو ا .................. اوالله پاک هغوئ معاف کړل ا .................. اوبیشکه الله پاک |
| غَفُوْرٌ حَلِیْمٌ ﴿۱۵۵﴾ ع |
| اښونکي دې ا صبرناک دې ا |
| ښښونکې صبرناک دې ا |

قوله تعالی: ثُمَّ اَنْزَلَ عَلَیْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ اَمَنَةً نُّعَاسًا یَّغْشٰی طَآئِفَةً مِّنْكُمْ ۙ

**د پرکالئ تفسیر:-** الله ﷻ په خپلو بندګانو چه احسان کړې وودغم اومصیبت په وخت کښې دهغې بیان فرمائي چه هغه پاك ذات په دوی باندې پرکالی راوسته، وسله ئې لاس کښې وه، دشمن ئې مخکښې دې، لیکن زړه کښې ئې دومره تسکین دې چه سترګې ئې دپرکالئ نه نه غړیږی اودا د امن نشان دې لکه سورة انفال کښې د بدر واقعه کښې دی چه ﴿اِذْ یُغَشِّیْكُمُ النُّعَاسَ اَمَنَةً﴾ یعني دالله ﷻ طرفنه امن د پرکالئ په صورت کښې نازل شو.

**د پرکالئ دوه قسمونه:-** عبدالله بن مسعود ﷛ فرمائی چه دجنګ په وخت کښې پرکالی دالله ﷻ د طرفنه ده. اویه مونځ کښې پرکالی راتلل د شیطان حرکت دې.

**داحد په ورځ په مؤمنانو پرکالی:-** ابوطلحه ﷛ بیان فرمائی چه د احد په ورځ ما ته دومره زیات خوب راغلو چه باربار خما دلاس نه توره غوزار شوه. دوی فرمائی چه کله ما سرپورته کړو او اومې کتل نود هر سړی داحالت وو([1])خویو ډله داسې وه چه د هغوئ په زړونو کښې نفاق وو،دوی د شرم په وجه ویره کښې وو.اود هغوئ غلط خیالات او بدګمانئ د حد نه تیرې شوې وې. ([2])

**قوله تعالی:: وَطَآئِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنفُسُهُمْ يَظُنُّونَ بِاللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ**

**د مؤمنانود منافقانو د زړونو حالات:-** نواهل ایمان ،اهل یقین،اهل ثبات ، اهل توکل او اهل صدق خو یقین کولو چه الله ﷻ به دخپل رسول ضرور مدد کوی.او د دوی چه څه مراد دې نو هغه به ضرور پوره کوی. خو دمنافقان او بې یقینه خلقو او کمزوری ایمان والو داحالت وو چه دوی په عذاب کښې وو او افسوسونه ئې کول . اود دوی په زړونو کښې رنګ په رنګ وسوسې اوچتیدې. دهغوی پوره یقین راغلې وو.چه اوس مړه شو او اوس مړه شو. هغوی ته معلومه شوه چه رسول او مومن نه پاتې کیږی بلکه اوس د بچ کیدو هیڅ صورت نشته. فی الواقع د منافقانو داحال وو چه لږ شان ئې هم شکست اولیدو او د ناامیدئی وریځې ئې اوکتلې.د دوی برخلاف ایماندارو د الله نه نیک او ښه ګمان کولو.

**په مؤمنانو پرکالی راتلل:-** د دوی د زړونو خیالات دا وو که څمونږ لږ شان هم وس وې نو مرګ نه به بچ شوې وې.او پټ په پټه به ئې دا وئیل.زبیر ﷛ بیان فرمائی چه په دومره سخت وخت کښې مونږ ته دومره زیات خوب راغلو چه څمونږ زنې سینو سره اولګیدې.

ما په دې حالت کښې د معتب بن قشیر دا الفاظ واوریدل که څمونږ لږ هم اختیار وې نو مونږ به دلته نه قتل کیدې([3])الله ﷻ دوی ته فرمائی چه په تقدیرونو کښې وخت نه بدلیږی اګر چه تاسو په کورونو کښې یئ: خو بیا هم چه د چا مرګ دلته لیکلې شوې وو نوهغوئ د کورونو نه راوتلی وو. اودلته دې میدان ته راغلی وو.او د الله ﷻ چه څه لیکلی وو هغه به پوره نازل شوې وې . دا وخت په دې وجه وو چه الله ﷻ ستاسو د زړونو رازونه او ستاسو ارادې ظاهرې کړی. دې آزمیښت سره نیک او بد کښې فرق اوشو.الله ﷻ ستاسو د ارادو او زړونو نه پوره واقف دې هغه پاک ذات په دې معمولی شان واقعې سره منافقان ښکاره کړل.

**قوله تعالی:: إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا**

فرمائی چه په دوی باندې دا ګناه شیطان اوکړه. او اصل دا د دوی د عملونو نتیجه وه نه به دوی د رسول ﷺ نافرمانی کوله اونه به د دوی حوصلې کمزورې کیدې.دوی ته الله ﷻ معذوره وانې. او هغه ورته معافی اوکړه.او د دوی دا خطائې معاف کړه. د الله ﷻ کار تجویز کول،بخښل،معاف کول ، حلم اوبردباری کول او تحمل او عفوکول دی .ددې نه معلومه شوه چه د عثمان ﷛ وغیره خطا الله ﷻ معاف کړه.

**په عثمان ﷛ اعتراضونه اود هغې جوابونه:-** مسند احمد کښې دی چه ولید بن عقبه ﷛ یو ځل عبدالرحمان بن عوف ﷛ ته اووئیل چه تهد امیر المومنین عثمان بن عفان ﷛ نه دومره ولې خفه ئې ؟ هغوئ اووئیل چه دوی ته اووایه چه څه د احد په ورځ نه وم تختیدلې اونه دبدر په غزوه کښې غیر حاضر نه اوم

[1]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب ( ثم انزل علیکم من بعد الغم ....) : ٤٠٦٨، تعلیقا، خو ۴۵۷۲ کښې موصولاهم موجود دی اومزید اوګورئی : احمد: ۲۹/۴ ، ترمذی: ۳۰۰۷ ، وسنده صحیح السنن الکبری للنسائی: ۱۱۱۹۸)-

[2]) ترمذی کتاب تفسیر القران باب من سورة آل عمران : ۳۰۰۸،بدون ذکر الایة : صحیح دون قوله : والطائفة الاخری : ....واخذه للحق وهو مدرج)-

[3]) ابن ابی حاتم : ۶۲۰/۲ ، الطبری : ۸۰۹۳، وابن اسحاق دا سند حسن دي )-

او نه مې د عمر سنت پرېښودى دى. وليد ﷺ لاړ او عثمان ﷺ ته ئې داواقعه بيان كړه نو هغوئ د دې جواب كښې اوفرمائيل چه قران پاك فرمائى چه ﴿وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ﴾ يعنې د احد ورځې خطا الله ﷻ معاف كړې ده. بيا چه كومه ګناه الله ﷻ معاف كړه نو په هغې شرم ولې دې؟ دبدر په ورځ خه د رسول الله ﷺ دلور او خپلې بي بي په بيمارنى كښې مصروف اوم ترديې چه هغه هم په دغه بيمارنى كښې وفات شوه. اوماته رسول الله ﷺ مال غنيمت كښې پوره پوره حصه راكړه. او ظاهر دى چه حصه به هغوئ ته ملاويده چه كوم موجود وو نو حكمى لحاظ سره خما موجودګى ثابت شوه. پاتې شود عمر ﷺ سنت نو د هغې ما كښې طاقت نه وو. نه عبدالرحمان كښې. لاړشه او هغوئ ته دا جواب وركړه. (١)

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ

انې هغه كسانو| چه ايمان مو راوړې دې|مه كيږئې تاسو|پشان دهغه خلقو

انې د ايمان خاوندانو! تاسو دهغه خلقو په شان خبرې مه كوئ:

كَفَرُوْا وَقَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ اِذَا ضَرَبُوْا فِي الْاَرْضِ

چه كافران شوى دى|او وې وئيل| رونړو خپلوته |كله چه| اووتل (په سفر)| په زمكه كښې |

چې كوم كافر دى | چې كله دهغوئ خپل خپلوان په سفر لاړ شي ياچرته غزا ته لاړ شي (او شهيدان شي)

اَوْ كَانُوْا غُزًّى لَّوْ كَانُوْا عِنْدَنَا مَا مَاتُوْا وَمَا قُتِلُوْا

ياوو غزاكونكى |كه وې هغوئ| زمونږسره |نه به مړه شوى وو| اونه به وو وژلې شوى|

نوهغوئ ته وائى | كه دوئ مونږ سره دلته پاتې شوې وې نونه به مړه شوى وو| اونه به قتل شوى وو

لِيَجْعَلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ حَسْرَةً فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۗ وَاللّٰهُ

دپاره ددې چه اوګرځوى الله تعالى|دغه خبره| يوافسوس |په زړونو دهغوئ كښې| اوالله |

داسې خبرې الله پاک دهغوئ په زړونو كښې دحسرت پيدا كولو په سبب ګرځوى| او اصل كښې الله پاک

يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿١٥٦﴾

ژوندى كول كوى|اومړۀ كول كوى|اوالله تعالى|د هغه كارونو|چه تاسو ئې كوئى|ليدونكې دې|

ژوندى كول اومړۀ كول كوى| .......... اوالله پاک ستاسو كارونه وينې ګورى ......................

وَلَىِٕنْ قُتِلْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ

اوكه چرې اووژلې شوئ تاسو|په لار دالله تعالى كښې | يا | مړۀ شوئ|نو كوم بخښش|

اوكه تاسو دالله په لار كښې شهيد كړې شوئ| يا په خپل مرګ مړۀ شئ| نو مغفرت

مِّنَ اللّٰهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ﴿١٥٧﴾

چه دې دطرفه دالله نه|او كوم رحمت چه دې|هغه بهتر دې|دهغه څيزونو نه|چه دا خلق ئې جمع كوى|

او رحمت دالله پاک طرفنه دې | اودا د هغه ټولو مالونو نه بهتردې چې كوم دا خلق راجمع كوى

وَلَىِٕنْ مُّتُّمْ اَوْ قُتِلْتُمْ لَاِ۟لَى اللّٰهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿١٥٨﴾ فَبِمَا رَحْمَةٍ

اوكه چرې |تاسو مړۀ شئ|يا اووژلې شئ|نو خامخابۀ الله تعالى ته|ورغونډيږئى |نوپه سبب درحمت سره

اوكه تاسومړه شوئ يا اووژلې شوئ نوپه هرحال الله ته به را جمع كيږئ| (انې پيغمبره)دا مهربانى ده

(١) احمد: ١/٦٨، وسناده حسن ، مجمع الزوائد: ٧/٢٢٦، طبرانى : ١٣٥، مختصرا)–

| |
|---|
| مِّنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ ۚ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيْظَ الْقَلْبِ |
| د طرفه د الله نه\|نرم شوې ته دوی ته (انې زما محبوبه ﷺ)\|او که چرې وې ته\| تندخویه \|او د سخت زړه والا |
| د الله پاک چې ته دې خلقو سره ډیر زیات نرم ئې \| او که چرې ته تندخو او سخت زړه وې |
| لَانْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِكَ ۖ فَاعْفُ عَنْهُمْ |
| نو خامخا به خوارهٔ شوی وو دوی \| ستاسو د خوا نه \|نو معاف کړه خطاګانې د دوی\| |
| نو ټول خلق به ستا نه خواره واره شوی وې \| نو د دوئ کوتاهیانې معاف کوه |
| وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْاَمْرِ ۚ فَاِذَا |
| او ښبنه غواړه د پاره د دوی\| او مشوره کوه د دوی سره \|په کار د دین کښې\| نو کله چه \| |
| او د دوئ د پاره د بخښنې دعا کوه \| او په (اهمو) کارونو کښې دوئ سره مشوره کوه \| نو هر کله |
| عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۗ . اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ |
| کله اراده او کړه تا\| نو بیا بهروسه کوه \|په الله تعالی باندې\| بیشکه الله \| خوښوی \| |
| چې اراده دې پخه شی \| نو بیا په الله پاک بهروسه کوه\| او الله هغه خلق خوښوی چې کوم |
| الْمُتَوَكِّلِيْنَ ۝ |
| بهروسه کونکی خلق (په الله تعالی باندې)\| |
| په هغه بهروسه کوی\| |

قوله تعالى:: يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا

**مؤمنان د فاسدو عقیدو ساتلو نه منع کول** :الله ﷻ مومنان منع کوې چه د کافروېـان فاسدې عقیدې نه ساتی دې کافرو کنټرل چه کوم خلق په سفر او جنګ کښې مړه شو که چرې دوی سفر یا جنګ نه کولې نو دوی به نه مړه کیدل.

قوله تعالى:: لِيَجْعَلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ حَسْرَةً فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۗ وَاللّٰهُ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۗ

**د منافقانو د باطلې عقیدې تردید**- بیا فرمائی چه دا باطل خیال هم د دوی حسرت او افسوس زیاتولو والا دې. اصل کښې مرګ او ژوند د الله ﷻ په لاس کښې دې، د هغه خوښې سره ژوند ملاویږی. د هغې ارادې سره ټول کارونه جاری کیږی او دا هر څه د هغه په قبضه کښې دی . د هغه پاك ذات قضا او قدرت نه روستو کیږی. د هغه لونې ذات د علم او نظر نه هیڅ یو څیز پټ نه دې. د ټول مخلوق د هر یو کار هغه ته علم دې.

قوله تعالى:: وَلَئِنْ قُتِلْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ۝

**شهادت د الله د مغفرت او رحمت سبب دې**:- دویم آیت کښې فرمائی چه د الله ﷻ لار کښې قتل کیدل یا مړه کیدل د الله ﷻ د مغفرت او رحمت ذریعه ده.او دا د دنیا او مافیها نه بهتر دی. ځکه چه دا فانی ژوند دې او هغه ژوند باقی دې او ابدی دې.

قوله تعالى:: وَلَئِنْ مُّتُّمْ اَوْ قُتِلْتُمْ لَاِلَى اللّٰهِ تُحْشَرُوْنَ ۝

**په صورت کښې الله تعالی ته پش کیدل**:-بیا ارشاد فرمائی که تاسو په هره طریقه قتل شئ نو ستاسو واپسی به الله ﷻ طرفته وی. بیا به تاسو د الله سره د خپلو عملونو بدله بیاموممئ که بده وی او که ښه وی.

**قوله تعالى: فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ**

**د نبي په امت باندې مهرباني:-** الله ﷻ په خپل نبي ﷺ او مسلمانانو باندې احسان کوی چه د نبي متونکو او د دوی د نافرمانۍ نه ځان ساتونکو دپاره الله ﷻ د نبي ﷺ زړه نرم کړې دې .که د الله ﷻ رحمت نه وې نو دومره نرمي او آساني به نه وه.

**د عربۍ قاعده:-** قتاده ﷺ فرمائی چه (ما) صله ده او عرب دا معرفه سره يوځائې کوی. لکه (فَبِمَا نَقْضِهِمْ الخ) کښې او نکره سره ئې هم يو ځائې کوی. لکه (عَمَّا قَلِيلٍ) کښې،دا شان دلته هم دی.يعنی د الله ﷻ رحمت سره نو د دوی زړونه نرم شوی دی .

**د نبي کريم ﷺ صفات:-** حسن بصری رحمه الله فرمائی چه دا د رسول الله ﷺ اخلاق دی چه په دې باندې د رسول الله ﷺ بعثت اوشو.دا آيت هم د هغه آيت په شان دې لکه (لَقَدْ جَاءَكُمْ) يعنی تاسو ته هم ستاسو د جنس نه يو رسول راغلو چه په ده باندې ستاسو مشقت ګران دې ستاسو باندې راوړو بآندې ډير حرص کونکې دې په مومنانو باندې شفقت کونکې دې اورحم کونکې دې . مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ د ابوامامه باهلی ﷺ لاس اونيولو او وې فرمائيل چه ائې ابوامامه ! بعضې مومنان هغه دی چه د هغوئ دپاره ځما زړه پريشانه شي. (1)

**د فظا معنی:** ﴿فظا﴾ نه مراد دلته سخت کلام دې . خکه چه دې نه پس د﴿غَلِيظَ الْقَلْبِ﴾ الفاظ دی.يعنی سخت زړه

**د ايت مفهوم:-** فرمان دې چه ائې نبي ﷺ ! که ته سخت کلامه او د سخت زړه خاوند وې.نو دا خلق به ستاسونه منتشر شوی وو. او تاسو به نې پريښودی وې .خو الله ﷻ دوی ستاسو عاشقان جوړ کړل او د دوی زړونه ستاسو لاس کښې دی . د دې وجې تاسو هم دوی سره محبت اونرمی کونئ.

**د نبي کريم ﷺ صفتونه په اسمانی کتابونوکښې:-** عبد الله بن عمرو ﷺ فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ صفتونه په مخکښنی کتابونو کښې هم کتلی دی چه رسول الله ﷺ سخت کلام او سخت زړه والا او د بدئی بدله بدئ سره ورکولو والا نه دې بلکه معاف کولو والا دې (2).

**مخلوق سره د نيکئ حکم:-** دترمذی يو حديث مبارك کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه ما ته خلقو سره د نيکئ کولو او خيرخواهئ کولو دا شان حکم شوې دې لکه څنګه چه څه د فرضو پابند يم. (3)

**قوله تعالى: وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ**

**د مشورې حکم :-** دې آيت کښې دا هم فرمان دې چه ته دوی ته معافی کوه. ددوی دپاره استغفار کوه. او کارونوکښې دوی سره مشوره کوه.

**د نبی کريم ﷺ صحابه کرامو سره مشورې:-** ددې وجې د رسول الله ﷺ عادت مبارك وو چه د خلقو د خوشحالئ دپاره به ئې هغوی سره مشوره کوله.

① لکه څنګه چه ئې د بدر په ورځ قافلې طرفته د ورانډې تلو باره کښې مشوره کړې وه.او صحابه کرامو ﷺ اوفرمائيل که تاسو دسمندر په غاړه ولاړ يئ او مونږ ته حکم اوکړئ چه دې کښې ورټوپ کړئ نو بيا به هم مونږ انکار نه کوؤ. (4)اوتاسو مونږ برك الغماد ته بوتلل غواړئ نوبيا به هم مونږ تاسوسره يو. مونږ د موسى ﷺ د ملګرو په شان نه يو چه موسى ﷺ ته ئې وئيلی وو چه ته اوستا رب

---

(1) احمد: ٢٦٧/٥، وسنده حسن طبرانی : ٧٤٩٩)-

(2) صحيح بخاری کتاب البيوع باب کراهية السخب فی السوق: ٢١٢٥)-

(3) الکامل لابن عدی : ٤٤٧/٢)-

(4) صحيح بخاری کتاب المغازی باب قول الله (اذ تستغيثون ربکم ......) : ٣٩٥٢)-

دې جنګ کوی مونږ خو دلته ناست يو. مونږ به ستاسو ښی او ګس طرفته صفونه جوړو او د دښمن مقابله به کوو.

② دا شان رسول الله ﷺ ددې خبرې هم مشوره اوکړه چه منزل به چرته وی ؟ اومنذربن عمرو مشوره ورکړه چه هغه خلقو سره د جنګ کولو دپاره وړاندې تلل پکار دی .

③ داشان د احد په موقع هم دوی مشوره اوکړه مدينه کښې پاتې شواو جنګ اوکړو که بهراوخو ؟ د جمهورو رائې داوه چه بهر ميدان ته وتل پکار دی او دوی سره مقابله کول پکار دی .نو رسول الله ﷺ هم دا اوکړل .

④ او رسول الله ﷺ د جنګ احزاب په موقع باندې هم خپلو صحابه کرام ﷺ سره مشوره اوکړه چه د مدينې د پيداوار دريمه حصه واخلو او مخالفينو سره صلح اوکړو.نو سعدبن عباده ﷺ او سعد بن معاذ ﷺ ددې نه انکار اوکړو او رسول الله ﷺ هم دا مشوره قبوله کړه. او مصالحت ئې ترک کړو.

⑤ داشان د حديبيه په ورځ رسول الله ﷺ د دې خبرې مشوره واخستله چه د مشرکانو په کورونو حمله اوکړوکه نه ؟نو ابوبکر صديق ﷺ اوفرمائيل چه مونږ چا سره جنګ کولو دپاره نه يوراغلی بلکه خمونږ اراده د عمرې ده. نو دا هم رسول الله ﷺ منظور کړل .

⑥ دغه شان منافقانو چه کله د رسول الله ﷺ بی بی ام المومنين عائشه ﷺ باندې تهمت اولګولو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ائې مسلمانانو ماته مشوره راکړئی چه دې خلقو سره څه اوکړم چه خما کور والابدناموی.په الله قسم خما د علم مطابق خو خما بی بی کښې هيڅ خرابی نشته دې.او چه کوم سړی سره داتړی هغه هم ښه نيک بنده دې. (١)

⑦اورسول الله ﷺ د عائشه ﷺ جدائی دپاره علی ﷺ او اسامه ﷺ سره مشوره اوکړه. غرض دا چه د جنګ په کارونو کښې هم او په نورو کارونوکښې هم رسول الله ﷺ به خپلو صحابه کرامو ﷺ سره مشوره کوله.

**د مشورې حکمی حيثيت:-** په دې کښې د عالمانو اختلاف دې چه دا د مشورې کولو حکم په طور د وجوب وو اوکه اختياری وو چه خلق خوشحاله شی . ابن عباس ﷺ فرمائی چه دې آيت کښې ابوبکر صديق ﷺ اوعمرفارق ﷺ سره د مشورې کولو حکم دې ( حاکم ) (٢) دا دواړه د رسول الله ﷺ ملګری او وزيران وواود مسلمانانو پلاران دی(کلبی) مسنداحمد کښې دی چه رسول الله ﷺ دې دواړو بزرګانو ته اوفرمائيل كه ستاسو امرکښې يو رائې شی نوخه به ستاسو خلاف نه کوم(٣) رسول الله ﷺ نه يوکس تپوس کوی چه د عزم څه معنی ده. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کله عقل مندو سره مشوره اوکړې شی او د هغوی په مشوره عمل اوکړی شی (ابن مردويه).

**مشوره ورکونکې امين دې:-** ابن ماجه کښې د دوی دا فرمان دې چه چا سره مشوره اوکړې شی هغه امين دی.ابوداود ،ترمذی نسائی وغيره کښې هم داروايت دې.امام ترمذی ﷫ دی ته حسن وائی(٤)او يو روايت کښې دی چه کله تاسوڅوك خپل رور سره مشوره اوکړی نوهغه ته پکاردی چه د ښه خبرې مشوره ورکړی. (ابن ماجه ) .(٥)

**قوله تعالی:: فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ**

---

(١) صحيح بخاری کتاب التفسير باب ( ان الذين يحبون ان تشيع الفاحشة ....) : ٤٧٥٧)-

(٢) حاکم : ٣/٧٠، )-

(٣) احمد: ٤/٢٢٧،)-

(٤) ابن ماجة کتاب الادب باب المستشار الموتمن : ٣٧٤٥، ابوداود : ٥١٢٨، وهو حسن ترمذی : ٢٨٢٢)-

(٥) ابن ماجة کتاب الادب باب المستشار الموتمن : ٣٧٤٧،)-

بیا فرمانی چه کله تاسو دیو خبرې مشوره اوکړئی نو بیا د دې د کولو پخه اراده کوئی. نواوس په الله ﷻ باندې بهروسه اوساتئی، الله ﷻ بهروسه کوونکی دوستان ساتی.

اِنْ يَّنْصُرْكُمُ اللّٰهُ فَلَا غَالِبَ

اکه مدد اوکړی ستاسو|الله تعالی|نونشته غالب کیدونکی

اکه الله پاک ستاسو سره مدد کوی| نو هیڅ طاقت په تاسو غالب کیدې نشی

لَكُمْ ۚ وَاِنْ يَّخْذُلْكُمْ فَمَنْ ذَا الَّذِيْ يَنْصُرُكُمْ

په تاسو (هیڅوک)|او که پرېښودې: هغه تاسو|نو څوک دې| هغه کس |چه مدد به اوکړی ستاسو|

او که الله پاک مو یواځې پرېږدی | نو بل داسې څوک کیدې شی چې دهغه نه پس به تاسوسره مدد اوکړی

مِّنْۢ بَعْدِهٖ ۗ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ

روستو دهغه نه |اوخاص په الله تعالی دې| توکل اوکړی| مومنان |اونه دې داکار د هیڅ یو نبی|

...... او مؤمنان دې په الله پاک باندې بهروسه اوکړی | اوهیڅ یونبی داکار نه دې

اَنْ يَّغُلَّ ۗ وَمَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ

چه خیانت اوکړی| او څوک چه خیانت اوکړی|نورابه شی|دهغه څیز سره| چه خیانت ئې کړې وی|

چې هغه خیانت اوکړی | ...... اوڅوک چې خیانت اوکړی نوهغه څیز به خان سره

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ

په ورځ د قیامت |بیا به پوره ورکړې شی بدله| هر نفس ته |دهغه عمل|چه کړې ئې وی|

دقیامت په ورځ راوړی | بیابه هر سړی ته دخپل عمل پوره پوره بدله ورکولې شی

وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝ اَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ كَمَنْۢ

او په هغوی به هیڅ ظلم نه کیږی|آیا نوهغه څوک|چه پیروئی ئې اوکړه| درضا دالله | کیدیشی پشان دهغه چا

او هغوی سره به هیڅ ظلم نشی کولې | ایا هغه څوک چه همیشه دالله درضاد پاره کار کوی دهغه چا

بَآءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ۗ وَبِئْسَ

چه ګیرشو |په غضب کښې |دطرفه دالله تعالی نه|اوآخری خائې وی دهغه| دوزخ |او بدخائې دې

پشان کیدې شی | چې دالله پاک په غضب کښې ګیرشوې وی| اوداسې کس خائې جهنم دې | اودیر

الْمَصِيْرُ ۝ هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا

ادورتلو |دهغوی| لوئې درجې دی | په نزد دالله تعالی|او الله تعالی الیدونکې دې|دهغه عملونو|

بدخائې دې د ورتلو| د الله پاک په نیز دخلقو جدا جدا درجې دی| او الله دهغوی کارونه وینی

يَعْمَلُوْنَ ۝ لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ بَعَثَ

چه دوی ئې کوی|په حقیقت کښې |احسان کړې دې | الله|په مومنانوباندې |اکله چه راولیږل (الله)|

ګوری | حقیقت کښې په مؤمنانو باندې الله پاک ډیرلوئ احسان کړې دې | چې په دوی کښې ئې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيهِمْ | رَسُولًا | مِّنْ أَنفُسِهِمْ | يَتْلُوا | عَلَيْهِمْ | آيَاتِهِ |
| په هغوئ کښې | يو پيغمبر | د هغوئ د خپل قوم نه | چه لولي | په هغوئ باندې | آيتونه د الله تعالى |
| ددوئ (د خپل قوم نه) يو پيغمبر را اليږلې دې \| چې هغه ورته د الله پاک آيتونه اوري | | | | | |
| وَيُزَكِّيهِمْ | وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ | وَالْحِكْمَةَ | وَإِن كَانُوا | | |
| او پاکوي هغوئ (د ګناهونو نه) | او تعليم ورکوي هغوئ ته د کتاب | او د حکمت (پوهې) | حالانکه وو هغوئ | | |
| او د ژوند تيرولو سمه لار ورته ښائي \| او دوئ ته د کتاب او حکمت خودنه کوي \| او ددې نه | | | | | |
| مِن قَبْلُ | لَفِي ضَلَالٍ | مُّبِينٍ ﴿١٦٤﴾ | | | |
| د مخکښې نه | خامخا په ګمراهۍ | ښکاره کښې \| | | | |
| وړاندې خو دا خلق ښکاره ګمراهۍ کښې وو \| | | | | | |

**قوله تعالى:: إِن يَنصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ**

بيا دويم آيت کښې ارشاد دې چه هم دا شان دی چه مخکښې تير شو چه ﴿وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ﴾ يعني مدد صرف د الله ﷻ د طرفنه دې .هغه ذات غالب دې او د حکمتونو خاوند دې .

**قوله تعالى:: وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ**

بيا حکم کوی چه مومنانو ته پکار دی بهروسه او توکل صرف په الله ﷻ باندې ساتی.

**قوله تعالى:: وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَغُلَّ ۚ وَمَن يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ**

**نبی صادق او امين دې :-** بيا فرمائی چه د نبی شان سره نه ښائی چه هغه خيانت اوکړی .

**د ايت شان نزول:-** ابن عباس ﷺ فرمائی چه د بدر په ورځ يو سور رنګه څادر نه ملاويدو نو خلقو اووئيل چه شايد رسول الله ﷺ اختستې وی .نودې باندې دا آيت نازل شو. ( ترمذی) ([1])

**دمنافقانو د تهمت لګول:-** اويو روايت کښې دی چه منافقانو په څه خيز په رسول الله ﷺ باندې تهمت لګولې وو. نودې باندې دا آيت نازل شو **(ومان کان)** الخ.نو ثابته شوه چه د رسول ﷺ د رسولانو سردار دې او هر قسمه خيانت،بې خايه طرفتدارئی نه پاك اوبری دې.که د مال تقسيم وی او که د امانت اداکول وی.

**د خيانت يو بل صورت:-** ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه نبی غلول نشی کولې چه بعضو لښکروته مال غنيمت ورکړی او بعضو ته حصه ورنکړی .

**د ايت دويم تفسير:-** ددې آيت دا تفسير هم بيان شوې دې چه نبی د الله ﷻ يو نازل شوې خيز پټ کړی او امت ته ئې اونه رسوی﴿ يغل ﴾ د "ي" پيش سره هم لوستلې شوې ده.نومعنی به داوی چه د نبی ذات داسې نه دې چه کوم خلق دوئ سره دی هغوئ دې خيانت اوکړی.

**د ايت بل شان نزول:-** دقتاده ﷺ او ربيع نه مروی دی چه د بدر په ورځ د رسول الله ﷺ بعضو صحابه کرام ﷺ څه مال غنيمت د تقسيم نه مخکښې اخستې وواو دې باندې دا آيت نازل شو( ابن جرير).

**خائن دپاره سخت عذاب دې :-** بيا خائن خلق يروی او د سخت عذاب خبر ورکوی. احاديث مبارکه کښې هم د دې باره کښې سخت وعيد راغلې دې .

**ګاونډی سره خيانت:-** دمسند احمد حديث کښې دی چه د ټولو نه زيات خيانت کولو والا هغه سړې دې چه د ګاونډيانو د پټی زمکه يا د هغه د کور په زمکه باندې قبضه اوکړی.که يو ګز زمکه هم قبضه کړی نو د اووه زمکو طوق به ده ته اغوستې شی . ([1])

[1]) ابوداود کتاب الحروف : ٣٩٤٧)-

**د حاکم د خيانت څيزونه:-** دمسند يو بل حديث کښې دی څوک چه مونږ حاکم جوړ کړو ، که د هغه کور نه وی نو کورجوړولې شی، که ښځه نې نه وی نوخادم ساتلې شی، که سورلی ورسره نه وی نو سورلی اخستې شی. که ددې نه سوا نورڅه اخلی نوخائن به وی. دا حديث ابوداودکښې نورو الفاظوسره منقول دې([2])

**دخيانتګر نه د رسول الله ﷺ براءت:-** دابن جرير روايت کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمانی چه څه په تاسو کښې هغه کس پيژنم چه هغه به چيلۍ اوچته کړی او هغه چيلۍ به چغې وهی ،هغه به د قيامت په ورځ راشی او خما نوم سره به ما بلی. (اې محمد) څه به ورته وايم چه څه ستا دپاره الله ته هيڅ نشم ونيلې ما خوتاته تبليغ کړې وو. څه هغه کس هم پيژنم چه اوښ به نې اوچت کړې وی او رابه شی . او هغه به وائی چه انې محمد ﷺ ! انې محمد ﷺ ! څه به ورته وايم چه د الله ﷺ په مخکښې زه ستا هيڅ مدد نشم کولې. ما خوتبليغ کړې وو. او څه هغه کس هم پيژنم چه هغه به داسې آس راولی چه آوازونه به کوی ،هغه به ماته آواز کوی چه يامحمد ﷺ ! يامحمد ﷺ ! څه به ورته اووايم چه د الله ﷺ مخکښې څه ستا هيڅ مدد نشم کولې ما درته ونيلی وو ، ([3]) دا حديث صحاح سته کښې نشته . (يعنی دا هغه کسان دی په مال غنيمت کښې نې خيانت کړی وی)

**هم دا حديث په بل سند سره :-** مسنداحمد کښې دی چه رسول الله ﷺ د ازد قبيلې يو سړې حاکم جوړ کړو او وې ليږلو اوهغه ته به نې ابن اللتبيه ونيل. هرکله چه ده زکوة وصول کړو او واپس راغلو نو ده اوونيل چه دا خو ستاسو دې او دا ماته تحفه ملاؤ شوې ده. رسول الله ﷺ په منبر تشريف فرماشو او وې فرمائيل چه په دې خلقو باندې څه شوی دی چه کله څه دوی يو کار پسې اوليږم او دوی واپس راشی نو وائی چه دا ستاسو دی او دا ماته تحفه کښې ملاؤ شوې دې. دوی دې خپلو کورونوکښې کينی چه بيا څوك دوی ته تحفې ورکوی که نه ؟ په هغه ذات مې دې قسم وی چه د هغه په قبضه کښې د محمد ﷺ ساه ده ، چه تاسو کښې څوك د دې نه څه واخلی نو هغه به دا څيز د قيامت په ورځ خپله غاړه کښې اچولې راوړی. که اوښ وی نو هغه به چغې وهی ، که غوا وی نو هم به چغې وهی ، اوکه چيلۍ وی نو هغه به چغې وهی. بيا رسول الله ﷺ خپل لاسونه دومره اوچت کړل چه د ترخونو سپين والی نې مونږ ته ښکاره شواو درې خله نې اوفرمائيل چه انې الله ﷺ آيا ما، ستا احکام اورسول ؟ ([4])

**د حاکمانو څخه استل خيانت دې:-** دمسند يو ضعيف حديث مبارك کښې دی چه داسې تحصلدارانواو حاکمانو ته څه په تحفو کښې ملاؤ شی هغه خيانت دې ([5]). دا روايت صرف مسند احمد کښې دې چه ضعيف دې اوداسې معلوميږی چه د مخکښنو طويل احاديثو خلاصه ده .

**معاذبن جبل ﷺ ته نصيحت:-** ترمذی کښې روايت دې چه معاذ بن جبل ﷺ فرمانی چه څه رسول الله ﷺ يمن ته اوليږلم ، هرکله چه څه روان شوم نو څه نې راوغوښتم ، کله چه څه واپس شوم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ما ته صرف د يوې خبرې دپاره راغوښتې . که ته خما د اجازت نه بغير څيز اخلې نوهغه به خيانت وی. او هر خائن به دقيامت په ورځ خپل خيانت سره حاضريږی. بس تاته مې هم دا ونيل ، اوس څه لاړشه.([6])

---

[1]) احمد : ٢٤١/٥، صحيح بخاری: ٢٤٥٢، صحيح مسلم: ١٦١٠)-

[2]) احمد : ٢٢٩/٤، ابوداود کتاب الخراج باب فی ارزاق فی العمال : ٢٩٤٥، وسنده صحيح)-

[3]) الطبری : ١٠٥/٤ ح/٨١٥٧)-

[4]) احمد : ٤٢٣/٥ ، صحيح کتاب الهبة باب من لم يقبل الهدية لعلة: ٢٥٩٨، ، صحيح مسلم : ١٨٣٢)-

[5]) احمد: ٤٢٤/٥)-

[6]) ترمذی : کتاب الاحکام باب ماجاء فی هدايا الامر : ١٣٣٥)-

**د خیانت شوی څیز سره میدان حشر ته راتلل:-** مسند احمد کښې دي چه رسول الله ﷺ یو ورځ اودریدو او دخیانت ذکر ئې اوکړو او ددې لویولویو ګناهونو او وبالونونه ئې مونږ ویرولو. بیا رسول الله ﷺ دا ذکر اوفرمائیلو چه د قیامت په ورځ به خلق خناورو سره راشي او رسول الله ﷺ ته به فریاد کوی او رسول الله ﷺ به انکارکوی ، لکه څنګه چې وړاندې بیان شو. په هغې کښې د سروسپینو ذکر دې دا حدیث مسلم او بخاری شریف کښې هم دې (¹)

**دیو صحابی ﷺ د عامل جوړیدو نه ویریدل:-** مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل انې خلقو څوک مونږ عامل جوړ کړو او بیا هغه څمونږ نه یو د ستنې هومره څیز هم پټ کړی نوهغه خیانت دې ، او دې سره به دقیامت په ورځ حاضریږی. دې آوریدو سره یو غنم رنګی انصاری سعدبن عباده ﷺ اودریدو او وې فرمائیل چه یارسول الله څه عامل نه جوړیږم. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ولې ؟ هغه اووئیل چه دا تاسو چه اوفرمائیل . رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه اوس واوره چه څوک مونږ عامل جوړ کړو یا چاته مونږ څه کار حواله کړو نو هغه ته پکار دی چه لږ ډیر هرڅه راوړی چه کوم ده ته ورکړې شوی وی او واخلی او چه دڅه نه منع شی هغې نه دې منع شی . دا حدیث مسلم او ابوداود کښې هم دې (²).

**دخیانت په وجه عذاب قبر:-** ابو رافع ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ به عام طور د مازیګر مونځ نه پس عبدالاشهل ته تشریف اوړو. او تقریبا تر ماښام پورې به هلته مجلس وو. یو ورځ د ماښام وخت کښې هلته ئې تشریف یوړو ، وخت کم وو ، تیز تیز تلل ، چه بقیع ته اورسیدو نورسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تف دې تاته تف دې . ما اوګڼړل چه ګنې ماته وائی نو ما خپلې کپړې درست کړې ، او روستو پاتې شوم. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه څه خبره ده ؟ ما اووئیل چه ستاسو د فرمان په وجه . رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ماتاته نه وو وئیلی بلکه دا قبر د فلانی سړی دې ، دا سړې ما فلانئ قبیلې ته لیږلې وو. ده ترې یو څادر اخستې وو ،اواوس هغې نه اور جوړ شوې دې او دې پرې سوزی. (مسند احمد ) (³).

**دخیانت نه ځان اوساتئ:-** عباده بن صامت ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ به د غنیمت د مال نه د اوښ د شا نه څه ویښته اخستل نو فرمائیل به ئې چه ځما هم په دې کښې حق شته دې چه څومره ستاسو په دې کښې دې .خیانت نه ځان ساتئ، د خیانت کونکی رسوانی به د قیامت په ورځ وی .تار ستنې پورې رسوانی او ددې نه حقیر څیز هم .دالله تعالی لار کښې نزدو او لرو سره جهاد کوئی. وطن کښې هم او سفر کښې هم .جهاد د جنت د دروازونه یو دروازه ده ، د جهاد په وجه الله ﷻ مشکلاتو او مصیبتونو نه نجات ورکوی.د الله ﷻ حدونه خپلواو پردو دواړو باندې جاری کوئ. دالله ﷻ باره کښې دې ملامت کونکې په ملامتیا ونیلو سره ستاسو خوله بنده نکړی.( مسند احمد ).(⁴)

**خیانت د قیامت د ورځې رسوائی ده:-** ددې حدیث بعضې حصه ابن ماجه کښې هم مروی ده. ابو مسعود انصاری ﷺ فرمائی چه کله څه رسول الله ﷺ عامل جوړ کړم اووې لیږلم .نو وې فرمائیل چه انې ابو مسعود ﷺ ! لاړشه خو هسې نه چه تا څه د قیامت په ورځ داسې حالت کښې اووینم چه ستا په شا باندې اوښ وی او هغه چغې وهی چه کوم تا خیانت کړې وی .ما اووئیل چه یارسول الله ﷺ بیا خو څه نه ځم. نورسول الله ﷺ اوفرمائیل چه بیا خو تا په زور نه لیږم.( ابوداود ).

**دقیامت په ورځ د خیانت شوی څیز راوړل:-** ابن مردویه کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی که یو کاڼړئی جهنم ته اوویشتلې شی نو اویاکاله هغه روان وی او ددې بیخ ته نه رسی . د خیانت څیز به هم دغه شان

---

¹) احمد: ٤٢٦/٢، صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الغلول : ٣٠٧٣، صحیح مسلم: ١٨٣١)-

²) صحیح مسلم کتاب الامارة باب ما غلظ تحریم الغلول : ١٨٣١، احمد: ١٩٢/٤، ابوداود: ٣٥٨١)-

³) احمد: ٣٩٢/٦، نسائی کتاب الامامة باب الاسراع الی الصلاة من غیر سعی : ٨٦٣، وهو حسن)-

⁴) ابوداود کتاب الخراج باب فی غلول الصدقة : ٢٩٤٧، وسنده حسن)-

جهنم ته ويشتلې شي بيا به خيانتګر ته ونيلي شي چه لاړه شه دا راوړه. هم دا معنى د الله ﷻ دې دې فرمان چه ﴿وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ ۚ وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ (١)

**په مال غنيمت کښې د خيانت په وجه شهيد جهنم ته تلل:-** مسند احمد کښې دى چه د خيبر په ورځ صحابه کرام ﷺ راتلل او وې فرمائيل چه فلانې شهيد دې. فلانې شهيد دې .هرکله چه ديو سړي باره کښې اوونيلې شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه بالکل نه ما هغه جهنم کښې ليدلې دې.ځکه چه ده د غنيمت دمال يو څادريټ کړې وو.بيارسول الله ﷺ اوفرمائيل چه انې عمر بن خطاب ﷺ ! ته لاړشه او خلقو ته اعلان اوکړه چه جنت ته به صرف ايماندار ځي. نو څه لاړم او ټولو ته مې دا اعلان اوکړو. دا حديث مسلم اوترمذى کښې شته دې . امام ترمذى ﷫ دې ته حسن صحيح ونيلې دى (٢).

**د صدقې په څارو کښې دخيانت کولو سزا:-** ابن جرير کښې دى چه يو ورځ عمرفاروق ﷺ د عبدالله بن انيس ﷺ سره د صدقاتو ذکر اوکړو او وې فرمائيل چه تاسو د رسول الله ﷺ دا فرمان نه دې آوريدلې چه رسول الله ﷺ صدقاتو کښې د خيانت کوونکوباره کښې اوفرمائيل چه دې کښې څوك اوښ يا چيلۍ واخلى نو دې به هغه د قيامت په ورځ اوچتوى.عبدالله ﷺ اوفرمائيل چه آو،دا روايت ابن ماجه کښې هم دې (٣).

**د صدقې په مال کښې خيانت کول:-** ابن جرير کښې د سعدبن عباده ﷺ نه مروى دى چه دې رسول الله ﷺ د صدقو دوصولۍ دپاره ليږلو وو.نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه انې سعده ! هسې نه چه ته د قيامت په ورځ چغه وهونکې اوښ راولې.نو سعد ﷺ اوفرمائيل چه نه خو به څه داعهده قبوله کړم اونه ددې احتمال شته دې.نورسول الله ﷺ ددې کار نه هم دې منع کړو.(٤)

**دخيانت شوى څيز عذاب:-** مسند احمد کښې دى چه مسلمه بن عبدالمالك سره د روم جنګ کښې سالم بن عبدالله هم وو.يوسړي د ده د مال نه څه خيانت مال راوويستو. د لښکر سردار دسالم ﷺ نه دې باره کښې فتوى طلب کړه نو دوى اوفرمائيل چه ما ته څما پلار عبدالله ﷺ اوهغه ته د هغه پلارعمر بن خطاب ﷺ بيان کړې. چه رسول الله ﷺ فرمانيلى دى چې د چا په مال کښې تاسو د غلا سامان اومومئ نو هغه اوسيزئى.راوى وائى چه څما خيال دا هم دې چه دائې هم اوفرمائيل چه هغه ته سزا ورکړئى . نو هرکله چه دهغه مال بازارکښې راويستلې شو نو په هغې کښې يو قران پاك هم وو.

**خيانت شوى څيز سره به څه کولې شي؟:-** ① سالم ﷺ نه دې باره کښې بيا تپوس اوشو نو وې فرمائيل چه دا خرڅ کړئى او د دې قيمت صدقه کړئى. دا حديث ابو داود او ترمذى شريف کښې هم شته دې (٥). امام على بن مدينى ﷫ او امام بخارى ﷫ فرمائى چه دا حديث منکر دې . امام دارقطنى ﷫ فرمائى چه صحيح دا ده چه دا دسالم ﷫ خپله فتوى ده .حضرت امام احمد اود دوى دملګرو هم دا قول دې.حسن ﷫ هم دا وائى ② على ﷺ فرمائى چه دده مال دې اوسيزلې شي او دې دې د مملوك د حد نه کم اووهلې شي.اوده ته دې دده حصه ورنکړې شي ③ امام ابوحنيفه ﷫،امام بخارى ﷫،امام مالك ﷫ اوامام شافعى ﷫ اودجمهورو مذهب ددې خلاف دې. دوى وائې چه د ده مال دې اونه سيزلې شي .بلکه د دې په مثل دې ده ته تعزيرى سزا ورکړې شي.امام بخارى ﷫ فرمائى چه رسول الله ﷺ د خائن دجنازې نه انکار کړې وو اوده مال ئې نه وو سيزلې . والله اعلم.

---

(١) ابن مردويه)-

(٢) صحيح مسلم کتاب الايمان باب غلظ تحريم الغلول : ١١٤، ترمذى :١٥٧٤، احمد: ١/ ٣٠)-

(٣) ابن ماجة کتاب الزکاة باب ماجاء فى عمال الصدقة: ١٨١٠، وهو حسن : احمد: ٣/ ٤٩٨)-

(٤) الطبرى : ٨١٦٢، وسنده صحيح .)-

(٥) احمد: ١/ ٢٢، کتاب الجهاد باب فى عقوبة المال : ٢٧١٣،)-

**مسلک حنفي:-** دا مسئله راته صریحي معلومه نشوه البته په احکام القران د علامه ظفراحمد عثماني رحمه الله کښې دی ( لم يذكر للغلول عقوبة في الدنيا فدل على انه لا يحرق رحله حدا ) یعني الله تعالی په مال غنیمت کښې د خیانت کولو په سزا کښې څه دنیاوی سزا نه ده ذکر کړې د دې نه دا معلومیږي چې د مال غنیمت غلا شوې څیز به نشی سوزولې چونکه عثماني رحمه الله حنفي دې او دوی د نه سوزولو ذکر کړې دې نو معلومه شوه چه د احنافو په نیز به خیانت شوې څیز نشي سوزولې (احکام القران ۲/۷۳)-

مسند احمد کښې دی چه کله د قران پاك د تغیر حکم اوکړې شونو عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائیل چه تاسو کښې د چا نه څومره کیدیشي نو هغه دې پټ کړي. ځکه چه څوك څه څیز پټ کړي نو د قیامت په ورځ به هغه څیز راوړي. بیا ئې اوفرمائیل چه ما اویا خله د رسول الله ﷺ نه زباني آوریدلی دی. نو آیا څه د رسول الله ﷺ لوستې شوی قرآت نه منکر شم او هغه پریږدم ؟(١)دا امام وکیع رحمه الله هم په خپل تفسیر کښې راوړې دې -

**په مال غنیمت کښې د خیانت کونکی سره د نبی کریم ﷺ سختی:-** ابو داود کښې دی چه د رسول الله ﷺ عادت مبارك وو چه کله به د غنیمت مال راغلو نو رسول الله ﷺ به بلال رضي الله عنه ته حکم کولو او هغه به خلقو ته اعلان کولو چه چا سره څه وی نوهغه راوړئي .نوبیا به رسول الله ﷺ په دې کښې پنځمه حصه ویستله او نور به ئې تقسیم کړو.یو ځل یو سړی دې نه پس د ویښتو یو غنچه راوړه او وې وئیل چه یارسول الله ﷺ دا ځمانه پاتې شوې وه. نو رسول الله ﷺ ورته اووئیل چه تا د بلال اعلان آوریدلې وو چه کوم هغه درې خله کړې وو. هغه اووئیل چه آو. نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه په هغه وخت کښې دې ولې راونړو. نو هغه عذر اوکړو ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل
چه اوس ئې بالکل نه اخلم .هم ته به دا د قیامت په ورځ راوړې.(٢)

**قوله تعالی::** أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللَّهِ كَمَن بَاءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللَّهِ

**ایماندار او بې ایمان برابر نه دی :-** الله ﷻ فرمائي چه د الله ﷻ په شریعت باندې تګ کونکی او د الله ﷻ رضامندی حاصلونکی،ددې ثوابونو حاصلونکی،اودهغه د عذابونو نه بچ نکی،نودا خلق او کوم خلق چې د هغه دعذاب مستحق شو،اوچه د مرګ نه پس به جهنم کښې خپل ځائې جوړوی.آیا دا دواړه برابرکیدیشي ؟بیا فرمائي چه نیکی او بدی دواړه مختلف درجو کښې دی (٣)، هغه د جنت درجو کښې دې. او دې د جهنم په طبقو کښې دې. لکه بل ځائې کښې فرمائي چه ﴿وَلِكُلٍّ دَرَجَاتٌ مِّمَّا عَمِلُوا﴾ هر یو دپاره د هغه د عمل مطابق درجې دی. بیا فرمائي چه الله ﷻ ددوی عملونه اوکتل او زر ده چه دوی ته به پوره پوره عمل ملاؤ شی. نه به نیکی کمیږی او نه به بدی زیاته شی . بلکه د عمل مطابق به جزا او سزا وی.

**قوله تعالی::** لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ

**نبی هم د انسانانو جنس نه دې :-** بیا فرمائي چه مومنانو باندې د الله ﷻ لوئې احسان دې چه په دوی کښې ئې هم د دوی د جنس نه پیغمبر راولیږلو چه هغه سره خبرې اوکړی اوتپوسونه ترې اوکړی ، او دوی سره سره پاسی او دوی ته ترې فائده اورسی . لکه بل ځائې ارشاد دې چه ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا﴾دلته هم مطلب دا دې چه ستاسو د جنس نه هغه ذات ستاسو جوړې پیدا کړې .او بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ اووایه چه څه ستاسو په شان انسان یم ، ماته وحی کیږی چه ستاسو معبود یو معبود دې او فرمان دې چه ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ یعنی ستاسو نه مخکښې چه مونږ څومره رسولان لیږلی دی هغوئ ټولو به خوراك کولو او بازارونو کښې به ګرځیدل.

---

(١) احمد:)-
(٢) ابوداود كتاب الجهاد باب في الغلول اذا كان يسيرا : ٢٧١٢، وسنده حسن)-
(٣) ابن ابي حاتم : ٦٤٦/٢، الطبری: ٣٦٧/٧)-

اوبل خاني کښې ارشاد دي چه ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِیْٓ اِلَیْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰی﴾ یعنی ستا نه مخکښې
مونږ سړو ته وحی کړې وه چه کلو کښې اوسیدل .او ارشاد دي چه ﴿یٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اَلَمْ یَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ﴾
یعنی ائې جناتو اوانسانانو!آیا تاسو ته ستاسو نه رسول نه وو راغلي ؟

قوله تعالی:: اَنْفُسِهِمْ یَتْلُوْا عَلَیْهِمْ اٰیٰتِهٖ وَیُزَكِّیْهِمْ وَیُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ

الغرض دا پوره احسان دي ، چې مخلوق طرفته هم د هغوی د جنس رسولان لیږلي شوی دی چه مخلوق دوی سره کینی پاسی.او د سوالو د جوابونو په ذریعه دین زده کوی. نوالله ﷻ فرمانی چه هغه د الله ﷻ آیتونه یعنی قران پاك دوی ته لولی او د نیکو خبرو حکم کوی او دبدو نه ئې منع کوی اودوی پاکوی او دوی نه د جاهلیت او ناپاکئ اثرات ختموی. او دوی ته سنت ښائی او د دې رسول ﷺ د راتلو نه مخکښې دوی ګمراه شوی وو. ظاهری بدئ اوپوره جهالت کښې وو.

| |
|---|
| اَوَلَمَّآ اَصَابَتْكُمْ |
| آیا اوهر کله چه \| راورسیدو تاسوته |
| اوبه تاسوځه شوی دی چې کله په تاسوباندې ............. \| |
| مُّصِیْبَةٌ قَدْ اَصَبْتُمْ مِّثْلَیْهَا قُلْتُمْ اَنّٰی هٰذَا |
| مصیبت \| چه په تحقیق سره \| رسولې ووتاسو \| دوچند ددې \| نو اووئیل تاسو \| چه د کومې راغې دا (غم) \| |
| مصیبت راشی \| حالانکه تاسو دهغې دوچنده نقصان (دښمن) ته رسولې وو \| نوتاسووائې چې داد کوم خانې نه راغلو |
| قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ١٦٥ |
| ورته اووایه \| دا دطرفه \| د نفسونو ستاسونه دې \| بیشکه الله تعالی \| په هر څیزباندې \| قادردې |
| ورته اووایه چې دا تاسوته هم ستاسو د کړو په وجه راغلي دي \| بیشکه الله پاک په هرڅهٔ قادر دې |
| وَمَآ اَصَابَكُمْ یَوْمَ الْتَقَی الْجَمْعٰنِ |
| \| اوهغه \| چه دااورسیدوتاسوته \| په هغه ورځ \| چه مخامخ شوې \| دواړه ډلې |
| اوکوم تکلیف چې تاسو ته د دوو ډلو یو بل سره د مخامخ کیدو په په ورځ رسیدلې وو |
| فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِیَعْلَمَ الْمُؤْمِنِیْنَ ١٦٦ |
| \| نوهغه په حکم د الله تعالی (دررسیدلې وو) \| دپاره ددې چه معلوم کړی \| مومنان \| |
| دا دالله پاک په حکم سره وو \| (دا هرڅه د دې وجې) چې مؤمنان جدا کړی |
| وَلِیَعْلَمَ الَّذِیْنَ نَافَقُوْا وَقِیْلَ لَهُمْ |
| اودپاره ددې چه معلوم کړی \| هغه کسان \| چه منافقت ئې کړې وو \| اوچه اووئیلې شوا \| هغوئ ته \| |
| اومنافقان جدا کړی \| .............. (هغه منافقان) چې ورته اووئیلې شی |
| تَعَالَوْا قَاتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ اَوِادْفَعُوْا قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ |
| چه راشئ \| جنګ اوکړئ \| په لار دالله کښې \| ایا دفاع (حفاظت) اوکړی \| نو اووئیل هغوئ \| که مونږ ته علم وې |
| چې راشئ دالله په لار کښې جهاد اوکړئ \| یا (کم از کم) دخپل کور کلی نه دشمن لرې کړئ \| نوهغوئ اووئیل که مونږ ته معلوم |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قِتَالًا | لَّاتَّبَعْنٰكُمْ ؕ | هُمْ لِلْكُفْرِ | يَوْمَئِذٍ | اَقْرَبُ | |
| د جنګ | نو خامخا به مونږ پیروي کړې وې ستاسو | هغوئ کفرته | په دغه ورځ | ډیر نزدې وو | |

وې اچې دا جنګ دې | نو مونږ به درپسې ضرور درغلي وو | ددې وینا په وخت کښې هم هغوئ کفرته زیات نژدې وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْهُمْ | لِلْاِيْمَانِ ۚ | يَقُوْلُوْنَ | بِاَفْوَاهِهِمْ | مَّا | لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ ؕ |
| په نسبت دهغوئ | ایمان ته | وائي هغوئ | په خولو خپل | اهغه خبرې | چه نه وي په زړونو دهغوئ کښې |

په نسبت دایمان | ..................دوئ په خولې هغه څه وائي چې په زړونو کښې ئې نه وي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاللّٰهُ | اَعْلَمُ | بِمَا | يَكْتُمُوْنَ ۚ | اَلَّذِيْنَ | قَالُوْا |
| او الله تعالی | ښه پوهیږي | په هغه خبرو | چه پټوئي ئې هغوئ | داهغه خلق دي | چه اوونیل هغوئ |

او کومې خبرې چې دوئ پټوي | الله په هغې ښه خبر دې |..............داهغه خلق دي چې دوئي د خپلو رونړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِاِخْوَانِهِمْ | وَقَعَدُوْا | لَوْ اَطَاعُوْنَا | مَا قُتِلُوْا ؕ | قُلْ | |
| رونړو خپلو ته | او حال داچه ناست وو پخپله | که دوئ خبره منلې زمونږ | نو نه به وو وژلي شوي | ورته اووایه | |

په باره کښې اوونیل | حالانکه دوئ پخپله ناست پاتې شو | که چرې زمونږ خبره ئې منلې وې نو وژلي شوي به نه وو ورته اووایه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَادْرَءُوْا | عَنْ اَنْفُسِكُمُ | الْمَوْتَ | اِنْ | كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۞ |
| انولرې کړئی | دخانونو خپلونه | مرګ | که چرې | یئ تاسو رښتني |

ښه ده تاسو دخپل خان نه مرګ لرې کړئی | که تاسو په دې وینا کښې رشتوني یئ

**قوله تعالی: اَوَلَمَّآ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَدْ اَصَبْتُمْ مِّثْلَيْهَا**

**د جنګ احد مصیبت:-** دلته چه دکوم مصیبت ذکر کیږي دا د احد مصیبت دې چه په هغې اویا صحابه کرام ﷺ شهیدان شوي وو. او ددې نه دوچند مصیبت مسلمانانو کافرانو ته رسولې وو یعني د بدر په ورځ اویا کافران قتل شوي وو او اویا قیدیان شوي وو. نومسلمانانو اوونیل چه دا مصیبت څنګه دې ؟ الله ﷻ فرمائي چه دا ستاسو د خپل طرفنه دې .

**د احد شهیدان د بدر د قیدیانو د رهائي په بدله کښې:-** عمر بن خطاب ﷺ بیان کوي چه د بدر په ورځ مسلمانانو فدیه واخسته او کوم کفار ئې پرېښودي وو د هغې په سزا کښې راتلونکي کال کښې دوی کښې اویا مسلمانان شهیدان شول. او صحابه کرام ﷺ کښې شور جوړ شو او د رسول الله ﷺ څلور غاښونه مبارك شهیدان شو. د رسول الله ﷺ په سرمبارك باندې زخمونه راغلل. اود رسول الله ﷺ مخ مبارك هم ویني شو. ددې بیان دې آیت کښې کیږي. (ابن ابی حاتم ومسند امام احمد بن حنبل ) [1].

**د بدر د فدې په بدله کښې اویا شهیدان:-** علي ﷺ نه مروي دي چه جبرئیل ﷺ رسول الله ﷺ ته راغلو او وې فرمائیل چه اني محمد ﷺ ! الله تعالی ته دا خوښ نه دی چه ستا قوم کافران قیدیان جوړ کړي .تاسو دوی ته حکم اوکړئ چه دوؤ خبرو کښې یو اختیار کړي. یا خودې دا قیدیان اووژني یا دې د دوی نه فدیه واخلي او دوی دې آزاد کړي . خو بیا به مسلمانانو کښې دومره تعداد کښې شهیدان کیږي. رسول الله ﷺ خلق راجمع کړل او دواړه خبرې ئې پیش کړې . نو هغوئ اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! دا خمونږ د قبیلې خلق دي ،خمونږ رشته دار رونړه دي. مونږ د دوی نه ولې فدیه وانخلو ؟ او دې مال سره به مونږ قوت حاصل کړو اوخپلو دښمنانوسره به جنګ اوکړو. اوبیا مونږ کښې چه دومره کسان

[1] احمد: ۳۰/۱ وسنده حسن )-

شهيدان شي نو دي کښې خمونږ څه نقصان دي؟نوجرمانه ئې وصول کړه اواويا قيديان ئې پريښودل .
اودوی نه هم اويا مسلمانان شهيدان شول په غزوه احد کښې ( ترمذی ، نسائی ).(١)

**د ايت دوه مطلبه:-** ① نومطلب دا شو چه دا ستاسو د طرفنه اوشو يعنی تاسو د بدر قيديان ژوندی پريښودل اودهغوئ نه مودجنگ جرمانه وصول کړه.اودا شرط مو منظورکړی وو چه نوستاسودي دومره کسان شهيدشی نوهغه شهيد شو② دويم مطلب دا دي چه تاسو د رسول الله ﷺ نافرمانی کړې وه په دې وجه تاسوته نقصان اورسيدو.تيرانداز و ته رسول الله ﷺ حکم کړې ووچه هغوئ دې خپل ځائې نه پريږدی.خو هغوئ هغه ځائې پريښودو. الله ﷻ په هر څيز قادر دې او چه کومه اراده او حکم اوکړی نو هغه نه روستو کيږي .

**قوله تعالى:: وَلِيَعۡلَمَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ۝ وَلِيَعۡلَمَ ٱلَّذِينَ نَافَقُواْۚ**

**د احد په جنګ کښې حکمتونه:-** ①د دواړو جماعتونو د جنګ په وخت کښې تاسوته نقصان اورسيدو. او تردې چه تاسو د دښمن نه په تيښته شوئی . تاسو کښې بعضې خلق شهيدان شول او بعضې زخميان شول.دا ټول هرڅه د الله ﷻ د قدر او قضا سره وو او د هغه پاك ذات حکمت د دې مقتضی وو. ②او د دې يومقصد دا هم ووچه الله ﷻ ته (په علم ظاهری سره) متزلزل ايمان والا او ثابت قدم خلق معلوم شی. او منافقان هم معلوم شی.لکه عبدالله بن ابی ابن سلول او دده ملګری چه په لار کښې واپس شو. يو مسلمان هغوئ پوهه کړه چه راځئ د الله ﷻ لار کښې جهاداوکړئی او يا کم ازکم هغه کسان خومنع کړه چه حمله کوونکی دی.

**قوله تعالى:: قَالُواْ لَوۡ نَعۡلَمُ قِتَالٗا لَّٱتَّبَعۡنَٰكُمۡۗ**

**د منافقانو د وينا دوه مطلبه:-** ①خو هغوئ دا خبره روستو اوغورزوله او وې ونيل چه مونږ خو د جنګ د طريقو نه واقف نه يوکه مونږ واقف وې نو ضرور به تاسو سره وې .دا هم د مدافعت يو صورت وو چه هغوئ مسلمانانو سره وې او دې سره مسلمانان زيات ښکاريدل يا ئې دعاګانې کولې؛ ② د هغوئ د جواب يو مطلب دا ووکه چرې مونږ ته معلوم وې چه تاسو په رښتيا دښمن سره مقابله کوئی نو مونږ به هم تاسو سره وې . خو مونږ ته پته ده چه جنګ نه کيږی.

**د لارنه د عبدالله بن ابی واپس کيدل:-** سيرت محمد بن اسحاق کښې دی چه رسول الله ﷺ زرو کسانو سره احد طرفته لاړل.نيمه لار کښې عبدالله ابن سلول روان شو او د نورو ئې اومنل او د مدينې نه اووتلو. او خما ئې اونه منل. په الله قسم مونږ ته نه دي معلوم چه مونږ کومې فائدې دپاره جنګ اوکړو ؟ خلق ولې خپل ځانونه ضائع کوی.چه څومره نفاق او شك اوشکوك والا خلق وو د دوی په آواز ئې لبيك اوئيلو اودريمه حصه لښکر هغه سره واپس شو. عبدالله بن عمرو ابن حزام دبنو سلمه رور دوی ډير پوهول چه اې خما قومه خپل نبی او خپل قوم مه رسوا کوئی.دوی دښمن ته مه پريږدئی او واپس کيږئی مه خو هغوئ بهانه جوړه کړه چه مونږ ته معلومه ده چه جنګ نه کيږی . هر کله چه دا بې چاره ګان عاجزه شو.نو وې ونيل چه تاسو دې الله ﷻ غرق کړی د الله دښمنانو ، د الله تاسوته هيڅ حاجت نشته دې ، الله ﷻ دخپل نبی مددګار دې . نو رسول الله ﷺ هم هغوئ پريښودل (٢)

**قوله تعالى:: هُمۡ لِلۡكُفۡرِ يَوۡمَئِذٍ أَقۡرَبُ مِنۡهُمۡ لِلۡإِيمَٰنِۚ**

الله ﷻ فرمائی چه هغوئ په هغه ورځ دايمان مقابله کښې کفر ته زيات نزدې وو. دې نه معلومه شوه چه د انسان احوال زيات مختلف دی. کله هغه کفر ته نزدې شی او کله ايمان ته نزدې شی .

**قوله تعالى:: يَقُولُونَ بِأَفۡوَٰهِهِم مَّا لَيۡسَ فِي قُلُوبِهِمۡۚ**

---

(١) ترمذی کتاب السير باب ماجاء فی قتل الاساری والفداء : ١٥٦٧ )-

(٢) السيرة لابن هشام : ٥٢/٣، معضلا الطبری : ٨١٩١)-

بیا فرمائی چه دوی خپلو خولو نه خبرې جوړوی او د دوی زړونو کښې بل څه دی . لکه څنګه چه دوی وائی که موږ ته جنګ راتلې نو موږ به ضرور تاسو سره وې . حالانکه دوی ته یقینی طور معلومه ده، چه مشرکان لرې لرې نه مسلمانانو سره د مقابلې دپاره راغلی دی.هغوئ سوزی څکه چه دهغوئ سرداران دبدر په ورځ میدان کښې پاتې شوی وو.اودهغوئ اشراف قتل شوی وو.نو اوس په دې کمزورو مسلمانانو حمله آور شو. او یقینی طور یو عظیم جنګ کیدونکې دې . نوالله ﷻ فرمائی چه ماته د دوی د زړونو د پټو خبرو هم علم دې .

قوله تعالی: ﴿الَّذِينَ قَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوا لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا﴾

دا هغه خلق چه دوی ونیل که چرې خمونږ رونړو خمونږ خبره منلې وې اوکور کښې ناست وې او جنګ کښې شریك شوې نه وې نو نن به مړه شوی نه وو. نو دې باره کښې د الله ﷻ ارشاد دې که دا صحیح وی او تاسو په دې خپله خبره کښې رینتونی یئ او میدان ته نه تلو سره انسان د مرګ نه بچ کیږی نو پکاردی چه تاسو مړه نشئ ،د دې وجې تاسو کورونوکښې ناست یئ .لیکن ظاهره دا ده چه تاسو به هم یو ورځ روان یئ اګر چه تاسو مضبوطو برجونو کښې پناه واخلئ . موږ به تاسو هله اومنو چه تاسو خان د مرګ نه بچ کړئ. جابر بن عبدالله ﷺ فرمائی چه دا آیت د عبدالله بن ابی بن سلول او د ده د ملګرو باره کښې نازل شوی دې (١)

| وَلَا تَحْسَبَنَّ | الَّذِينَ | قُتِلُوا | فِي سَبِيلِ اللَّهِ | أَمْوَاتًا | بَلْ أَحْيَاءٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومه کوه ګمان | په هغه کسانو | چه وژلې شوی دی | په لاره دالله کښې | دمړو | بلکه ژوندی دی |

اوتاسو ګمان مه کوئ دهغه خلقو په باره کښې چې دالله په لارکښې شهید شوی وی| چې ګنی دامړهٔ دی بلکه دوی ژوندی دی

| عِنْدَ رَبِّهِمْ | يُرْزَقُونَ | فَرِحِينَ | بِمَا | آتَاهُمُ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|
| په نیزد رب خپل | هغوئ ته رزق ورکولې شی | خوشحاله دی | په هغه څه | چه ورکړی دی هغوئ ته الله |

دخپل رب په نیز دوئ ته رزق ملاویږی| الله پاک چې کوم فضل پرې کړې دې په هغې دوی خوشحالیږی

| مِنْ فَضْلِهِ | وَيَسْتَبْشِرُونَ | بِالَّذِينَ | لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ | مِنْ خَلْفِهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| دفضل خپل نه | اوخوشحالیږی | په هغه کسانو | چه لاته دوی رسیدلی دی هغوئ ته | روستو دهغوئ نه |

اوپه هغه مسلمانانو باندې یو بل ته زیرې ورکوی کوم چه وروسته رسیدلی نه دی بلکه روستو پاتې دی

| أَلَّا خَوْفٌ | عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ | يَسْتَبْشِرُونَ | بِنِعْمَةٍ | مِنَ اللَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| چه نشته یره | په هغوئ باندې | اونه به دوی غمژن شی | خوشحالی حاصلوی | په نعمت خپل سره | د طرفه دالله نه |

په هغوئ هیڅ ویره نشته دې او نه به هغوئ غمژن شی| هغوئ دالله په نعمت اوفضل باندې ډیرزیات خوشحاله دی

| وَفَضْلٍ | وَأَنَّ اللَّهَ | لَا يُضِيعُ | أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ | الَّذِينَ | اسْتَجَابُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوپه فضل سره | اوپه دې چه بیشکه الله | نه ضائع کوی | اجردمومنانو | هغه کسان | چه قبول کړو حکم |

اوپه دې چې الله پاک دمؤمنانو اجر نه ضائع کوی (بلکه پوره پوره ورکوی) | چې د الله او د رسول حکم

| لِلَّهِ | وَالرَّسُولِ | مِنْ بَعْدِ مَا | أَصَابَهُمُ | الْقَرْحُ | لِلَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دالله تعالی | اودرسول | وروستودهغې نه | چه رسیدلې ووهغوئ ته | زخم | دپاره دهغه کسانو |

د زخمی کیدو نه پس هم قبول کړلو | ..................نو په هغوئ کښې چې

(١) الطبری : ٣٨٣/٧)-.

أَحۡسَنُواْ مِنۡهُمۡ وَٱتَّقَوۡاْ أَجۡرٌ عَظِيمٌ ۝ ٱلَّذِينَ قَالَ لَهُمُ

چه نیکئ ئې کړې وې| دهغوئ نه|اوپرهیزئې کړې وې|اجر لوئې دې |اهغه کسان|چه ا وونیل| هغوئ ته |

کوم نیکان اوپرهیزګار دی هغوئ دپاره لوئې اجردې | ..............هغه کسان چې هغوئ ته

ٱلنَّاسُ إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدۡ جَمَعُواْ لَكُمۡ فَٱخۡشَوۡهُمۡ

خلقو | چه بیشکه خلق | راجمع شوی دی | ستاسو خلاف | نواووېرېږئې | دهغوئ نه|

خلقو اوونیل چې خلق (کافران) ستاسو د حملې دپاره راجمع شوی دی| نو دهغوئ نه اووېرېږئ

فَزَادَهُمۡ إِيمَٰنٗا وَقَالُواْ حَسۡبُنَا ٱللَّهُ

نوزیات کړل هغوئ لره (دې خبرې)|دجهته دایمان نه|او وې ونیل |چه کافي دې مونږ لره الله |

نو په دې خبره دهغوئ ایمان نور هم زیات شو| اودا ئې اوونیل چې زمونږ دپاره یوازې الله پاک کافي دې

وَنِعۡمَ ٱلۡوَكِيلُ ۝ فَٱنقَلَبُواْ بِنِعۡمَةٖ مِّنَ ٱللَّهِ

او هغه ډېر ښهٔ | کار سمبوونکې دې |نو واپس راغلل هغوئ|په نعمت سره|دطرفه دالله نه|

اوهغه ډېر ښهٔ کارساز دې | ..............نوهغوئ دالله پاک په نعمت اوفضل سره راواپس شول په داسې

وَفَضۡلٖ لَّمۡ يَمۡسَسۡهُمۡ سُوٓءٞ وَٱتَّبَعُواْ رِضۡوَٰنَ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ

او په فضل سره|چه اونه رسید وهغوئ ته|هیڅ ضرر|اوپیروئې ئې اوکړه|درضا مندئې دالله | اوالله تعالی

حال کښې چه هیڅ نقصان ورته اونه رسیدو| اودالله پاک درضاکار ئې هم اوکړو | اوالله پاک د ډېر لوئې

ذُو فَضۡلٍ عَظِيمٍ ۝ إِنَّمَا ذَٰلِكُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ يُخَوِّفُ أَوۡلِيَآءَهُۥ

مالک دفضل | لوئې دې |بیشکه| دغه | شیطان وو |چه ویروي ئې خلق| ددوستانو خپلونه

فضل خاوند دې |..............حقیقت کښې داشیطان وو چې تاسو ئې دخپلو ملګرونه ویرولې

فَلَا تَخَافُوهُمۡ وَخَافُونِ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ۝

|انومه ویرېږئې دهغوئ نه| او ویرېږئې زمانه|که یئ تاسو | مومنان |

نوتاسو دخلقونه مه ویرېږئې | اوزمانه ویرېږئ | که تاسو مومنان یئ |

قوله تعالی: وَلَا تَحۡسَبَنَّ ٱلَّذِينَ قُتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمۡوَٰتَۢاۚ

**د بئرمعونه د شهیدانو واقعه:-** الله ﷻ فرمائی اګر چه شهید دالله ﷻ لار کښې اووژلې شی لیکن آخرت کښې د دوی روحونه ژوندی وی او هغوئ ته روزئ ملاویږی .دا د دې آیت شان نزول دې چه رسول الله ﷺ خلویښت یا اویا صحابه کرام ؓ بیرمعونه طرفته لیږلی وو .دا جماعت ترې هغه غار ته رسیدلې وو چه کوم د دې کوهی دپاسه وو نوهغوئ هلته پړاؤ اوکړو او خپلو کښې ئې اوونیل چه څوك دی چه خپل خان باندې تکلیف تیر کړی او د الله د رسول کلمه هغوئی ته اورسوی. یو صحابی د دې دپاره تیار شو. او هغه د دې خلقو کورونوطرفته ورغلو او په اوچت آواز ئې اونیل چه اې بیر معونه والو واورئ ! زه د الله تعالی د رسول قاصد یم زما ګواهی ده چه معبود صرف الله ﷻ دې او محمد د هغه بنده او د هغه رسول دې .دې آوریدو سره یو کافر خان سره غشئ واخستو او د کور نه راووتلو او دغه شان نښه ئې برابره کړه اودا صحابی ؓ ئې پرې اوویشتلو .ددې صحابی د ژبې نه بیساخته اووتل چه ( فزت ورب الکعبة ) دکعبې په رب قسم زه مراد ته اورسیدم . اوس کافر دې نښو پسې روان شو او هلته اورسیدل. او د

دوی سردار عامر بن طفیل دا ټول مسلمانان شهیدان کړل. انس ﷺ فرمائي چه د دوی باره کښې قرآن پاك کښې نازل شو چه خمونږ د طرفنه خمونږ قوم ته دا خبر اورسوه چه مونږ رب سره ملاقي شوی یو او هغه لوئې ذات خمونږ نه راضي شوې دې او مونږ هم د هغه پاك ذات نه راضي شوی یو. مونږ دا آیتونه باربار ونیل بیا یو موده پس دا منسوخ شو او اوچت کړې شو. او آیت ﴿ ولا تحسبن ﴾ الخ نازل شو (محمدبن جریر). ([1])

**شهیدان به دنیا ته د واپس راتلو تمنا کوی:**- صحیح مسلم شریف کښې دی مسروق فرمائي چه مونږ عبدالله ﷺ نه د دې آیت مطلب اوپوښتلو نو عبدالله ﷺ اوفرمائیل چه مونږ رسول الله ﷺ نه د دې آیت باره کښې تپوس کړې وو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل .چه د هغوئ روحونه د شین رنګ مارغانو قالب کښې دی.دعرش مشالونه د هغوی دپاره دی ،ټول جنت کښې چه چرته دوی خې هلته تلې شي او د جنت په استوګنو کښې آرام کوی. د هغوی رب هغوی طرفته یو نظر اوکړو د هغوی نه ئې تپوس اوکړو چه څه غواړئ ؟ وې وئیل چه ائې الله ﷺ ! نور څه اوغواړو ټول جنت کښې مونږ ته اختیار دې چه چرته نه خورو څکو نو مونږ ته اختیار دې . نوبیا څه طلب کړو؟ الله ﷺ بیا د هغوی نه د دې تپوس اوکړو په دریم خل تپوس کولو سره هغوی هم دا اوفرمائیل . هرکله چه هغوی اوکتل چه بغیر د غوښتلو نه هیڅ حُ ره نشته نو وې وئیل چه ائې خمونږ ربه ! مونږ غواړو چه ته خمونږ روحونه خمونږ بدنونو ته واپس کړې.بیا مونږ دنیا ته واپس شواو ستا لارکښې جهاد اوکړو اوشهیدان شو. اوس معلومه شوه چه هغوی ته د نور کمې نه وو نو د هغوی نه تپوس کول پریښودې شو([2]).

**هیڅ جنتی دنیا ته واپس تلل نه غواړی خو:**رسول الله ﷺ فرمائي چه کوم خلق مړه شي او د الله تعالی سره ښه بدله اومومی نوهغوئ بیا دنیا ته واپس راتلل نه خوښوی. خو د شهید دا خواهش وی چه دنیا ته دوباره لاړشي او دوباره دالله ﷺ لار کښې شهید شي ځکه چه د شهادت درجې ده ته معلومې وی ( مسند احمد) صحیح مسلم شریف کښې دا حدیث مبارك موجود دې . ([3])

**د جابر ﷺ پلار ته د الله تعالی خطاب:**- مسنداحمد کښې دی چه رسول الله ﷺ جابر بن عبدالله ﷺ ته اوفرمائیل چه ائې جابرتاته معلومه ده چه الله ﷺ ستا پلار ژوندې کړو او هغه ته ئې اووئیل چه اې خما بنده اوغواړه څه غواړې ؟ نو هغه اووئیل چه ما دنیا ته بیا اولیږل چه بیا ستا لار کښې شهید شم .الله ﷺ اوفرمائیل چه ما خو فیصله کړې ده چه هیڅوك به دوباره نه واپس کیږی .([4]) دهغه نوم عبدالله بن عمرو بن حرام انصاری وو.الله ﷺ دې د هغه نه راضي شي .

**د شهیدان په تمنا سره د ایاتونو نازلیدل:**- صحیح بخاری کښې دی چه جابر ﷺ فرمائي چه خما د پلار د شهادت نه پس څه په ژړا شوم او د پلار د مخ مبارك نه مې کپړا اوچته کړه او بار بار مې د هغه مخ ته کتل.صحابه کرامو ﷺ څه منع کړم لیکن رسول الله ﷺ خاموش وو. بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ائې جابره ! مه ژاړه. کله چه د احد په ورځ ستا پلار شهید شونو ترڅو چه ستا پلار راوچت شوې نه وو ملائکو په هغه خپلې وزرلې خورې کړې وې .([5]) نو الله ﷺ د هغه روح دشین مارغه په قالب کښې واچولو چه د جنت میوې خوری او د جنت د نهرونو نه اوبه څکی او د عرش د سیوری لاندې زوړندو

---

[1]) الطبری : ۸۲۲٤، وسنده حسن . د اآیت تنیسخ روایت صحیح بخاری : ٤۰۹۵، صحیح مسلم ۲۷۷۵. کښې موجود دی.-

[2]) صحیح مسلم کتاب الامارة باب بیان ان ارواح الشهداء فی الجنة: ۱۸۸۷)-

[3]) احمد:۱۲٦/۳. صحیح مسلم کتاب الجهاد باب تمنی المجاهدین ان یرجع الی الدنیا : ۱۲٦۵، صحیح مسلم : ۱۸۷۷)-

[4]) احمد: ۳٦۱/۳، مسند حمیدی : ۱۲٦۵، مسند ابی یعلی : ۲۰۰۲)-

[5]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب من قتل من المسلمین یوم احد: ٤۰۸۱، تعلیقا ، او ۱۲٤٤ کښې موصولاهم موجود دی.)-

مشالونو کښې ارام کوي. هرکله چه دوی ته دا بهترین نعمتونه ملاؤ شو نو وې وئیل چه کاش خمونږ هغه رونړو ته د دې علم وې چه کوم نعمتونه مونږ دلته راکولې شی نو هغوی به د جهاد نه مخ نه اړولو. او دالله ﷺ لار کښې به جنګ کولو سره نه ستړی کیدل . الله ﷻ دوی ته اوفرمائیل چه تاسو بې فکره اوسئ د اخبر به هغوئ ته اورسی نو دا آیتونه نازل شو.(١)

**د جابر ﷺ د پلار په خواهش ایاتونه نازلیدل:-** ابن عباس ﷺ فرمائي چه د حمزه ﷺ او ددوی ملګرو باره کښې دا آیتونه نازل شو ( مستدرك حاكم ) دا هم مفسرینو فرمائیلی دی چه د احد د شهیدانو باره کښې دا آیتونه نازل شو. (٢) ابوبکر ابن مردویه کښې جابر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ماته اوکتل او وې فرمائیل چه انې جابر! دا څه خبره ده چه ته ډیر غمژن نې . نو ما اووئیل یارسول الله ﷺ ! خما پلار شهید شو اوپه هغه باندې قرض وو او خما خویندې دی . رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه واوره ! څه به تاته اووایم ، چه چا سره الله تعالی کلام کړې دې د پردې په شا سره نې ورسره کلام کړې دې . خو ستا پلار سره نې مخامخ په مخامخ خبرې اترې اوکړې . وې فرمائیل چه خما نه اوغواړه چه څه غواړې . ستا پلار اووئیل چه انې الله ﷻ څه ستا نه سوال کوم چه ته ما دوباره دنیا ته اولیږه چه څه دوباره ستا لار کښې شهید شم . الله ﷻ اوفرمائیل چه دا خبره خو ما مخکښې هم کړې وه چه هیڅوك به دوباره واپس دنیا ته نه راځی. نووې وئیل چه بیا خما نه پس راتلونکو ته دې د دې مرتبو خبر اورسوه. نوالله ﷻ دا آیت نازل کړو چه (وَلَاتَحْسَبَنَّ الخ) (٣). بیهقی کښې دومره زیاتوالې دې چه عبدالله ﷺ اوفرمائیل چه انې الله ﷻ ستا حق هم ادا نه کړې شو (٤)

**شهیدان د جنت په دروازه:-** مسند احمد کښې دی چه شهیدان جنت کښې دروازه باندې د نهر په غاړه ګنبد باندې دی . سحر مابنام دوی ته د جنت نعمتونه ملاویږی (٥)

**د احادیثو په مینځ کښې تطبیق:-** دواړو احادیثو کښې تطبیق دې ①چه بعضې شهیدان هغه دی چه د هغوئ روحونه د مارغانو قالبونو کښې دی او بعضې هغه دی چه د هغوئ ځائې ګنبد دې . ②اودا هم کیدیشی چه هغوئ جنت کښې ګرزخی راګرځی او دلته جمع کیږی .او بیا دوی د خوراك څکاك دپاره دلته راځی. والله اعلم.

دلته که هغه حدیث نقل کړو نو بې موقعه به نه وی چه په هغې کښې دی. چه دهر مومن دپاره همدا بشارت دې .مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائي چه د مومن روح یو مارغه دې چه د جنت په ونو کښې میوې خوری .تردې پورې چه د قیامت په ورځ کله چه د الله ﷻ مخکښې ټول مخلوق ولاړ وی نو روحونه به د دوی بدنونو ته واپس کړی (٦).

**د حدیث په روایت کښې درې جلیل القدر امامان:-** ددې حدیث راویانو کښې درې جلیل القدر امامان دی کوم چې د هغه څلورو وارو امامانو نه دی د کومو مذهبونه چې منلې شی .①یو خو امام احمد بن حنبل رحمه الله ددې حدیث روایت کړې دې②دویم امام محمد بن ادریس شافعی رحمه الله دې ③ دریم د ده استاد امام مالك بن انس رحمه الله اصبحی دې نو امام احمد رحمه الله ، امام شافعی رحمه الله اوامام مالك رحمه الله ، درې واړه زبردست پیشوایان دی ،او د دې حدیث راویان دی . نو د دې حدیث نه ثابته شوه چه د ایماندارو

(١) احمد: ٢٦٥/١، ابوداود : کتاب الجهاد باب في فضل الشهادة : ٢٥٢٠، وهو حسن )-

(٢) حاکم : ٣٨٧/٢، وسنده ضعيف الطبرى: ٣٨٩/٧)-

(٣) ترمذی کتاب تفسير القران سورة آل عمران : ٣٠١٠، وسنده حسن ابن ماجة: ١٩٠)-

(٤) حاکم: ٢٠٣/٣ ، وسنده موضوع دلائل النبوة للبيهقى : ٢٩٨/٣)-

(٥) احمد: ٢٦٦/٣)-.

(٦) احمد: ٤٥٥/٣، ابن ماجة: ٤٢٧١ وهو صحيح)-

روحونه د جنتي مارغانو په شکل کښې اوسي.اود شهیدانو روحونه لکه مخکښې تیر شو چه د شین رنګ مارغه په شان قالب کښې اوسیږی. دا روحونه د ستورو په شان دی او د عامو مومنانو روحونو دا مرتبه نه ده حاصله . دوی په خپله الوزی رااالوزی. الله ﷻ چه ډیر لوئي مهربان اوزبردست احسانو والا دی،خمونږ دعاده چه هغه مونږ ته پخپل فضل اوکرم سره ایمان اواسلام باندې مرګ راولی.آمین .

قوله تعالی:: فَرِحِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِٱلَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا۟ بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ

**د شهیدانو د وجه**:- بیا فرمائی چه دا شهیدان چه په کومو کومو نعمتونو اوآسانو کښې دی دوی بې حده خوشحاله او مسرور دی .

①او دوی ته دا خوشحالی او راحت هم دې چه د دوی رونړه چه کوم د دوی نه پس د الله ﷻ لار کښې شهیدان کیږی او دوی ته به راځی نو دوی ته به د بیا دپاره ویره نه وی . او نه به دوی ته د هغه څیزونو ویره وی چه کوم دوی روستو پریښودی دی . الله ﷻ دې مونږ ته جنت نصیب کړی.

② محمد بن اسحاق رحمه الله فرمائی مطلب دا دې چه هغوئ خوشحاله دی او د دوی نور رونړه چه دوی سره جهاد کښې شریك وو. هغوئ به هم شهیدان کیږی دوی سره به ملاویږی وی او الله ﷻ به دوی ته ثواب ورکوی.

③ سدی رحمه الله فرمائی چه شهید ته یو کتاب ورکولې شی چه په فلانئ ورځې به تاته فلانې راځی ، نو څنګه چه ددنیا خلق د یو غیرحاضر خپل په راتلو خوشحالیږی نو دغه شان دا شهیدان به هم د دې شهیدانو په خبر باندې خوشحالیږي.

④سعید بن جبیر ﷺ فرمائی مطلب دا دې چه کله شهید جنت ته لاړ شی اوهلته د جنت منزلونه او رحمتونه اوګوری نو وائی به چه کاش د دې علم خمونږ دې رونړو ته هم وی چه کوم اوسه پورې دنیا کښې دی نو دوی به ډیر په خوانمردئی سره جهاد کښې حصه اخستې . او هغه خایونو ته به خي چه کوم خائې نه ژوندی راتلو امید نه وی . نو هغوئ به هم خمونږ نعمتونو کښې حصه دار وی. نو رسول الله ﷺ دې خلقو ته د دوی حال اورسولو اوالله ﷻ دوی ته اوونیل چه ما ستاسو خبر ستاسو نبی ﷺ ته ورکړو، دې سره هغوئ ډیرزیات خوشحاله شو .

⑤بخاری او مسلم شریف کښې دبیر معونه قصه بیان شوې ده چه کوم اویا انصار صحابه ﷺ وو. او کافرو هغوئ په یو ورځ د سحر په وخت کښې قتل کړی وو. او د دوی د قاتلانو په حق کښې رسول الله ﷺ یو میاشت پورې مونځ کښې قنوت کښې بددعا کړې وه ، او په هغوئ ئې لعنت کړې وو. او د دوی باره کښې قران پاك کښې دا آیت نازل شو چه خمونږ قوم ته خبر اورسوه مونږ خپل رب سره ملاقی شو هغه خمونږ نه راضی دې اومونږ دهغه نه راضی یو[1]. هغوئ د الله ﷻ نعمتونو کتلو سره خوشحاله دی .

⑥ عبدالرحمان ﷺ فرمائی چه آیت ( یستبشرون ) د ټولو ساه لرونکو حق کښې دې که شهیدان وی که غیر شهیدان . داسې موقعې ډیرې کمې دی چه الله ﷻ د خپلو نبیانو فضیلت او ددوی د ثوابونو ذکر کوی او دې نه پس د مومنانو د ثوابونو ذکراونکړی.

قوله تعالی:: ٱلَّذِينَ ٱسْتَجَابُوا۟ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ مِنۢ بَعْدِ مَآ أَصَابَهُمُ ٱلْقَرْحُ

**د جنګ احد نه پس سمدستی بیا د جنګ دپاره تیاریدل**:- بیا دهغه رینښتونو مسلمانانو تعریف کیږی چه هغوئ د حمراء الاسد په ورځ د زخمونو باوجود جهاد ته ملا ترلې وه. مشرکانو مسلمانانو ته زخمونه رسولی ووأو خپلو کورونوته واپس شو. خو بیا دوی ته خیال راغلو چه موقعه ښه وه مسلمانان ناکامه شوی دی او زخمی شوی وو.ددوی بهادران شهیدان شوی وو. که مونږ لږ شان نور بهادرئی سره جنګیدلې وې نو فیصله به شوې وې . هرکله چه رسول الله ﷺ د هغوئ د دې ارادې نه خبر شو نو مسلمانان ئې تیارول

[1]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة رجیع.... ٤٠٩٠، صحیح مسلم: ٦٧٧)-

شروع کړل چه ماسره روان شئ مونږ. مشرکانو پسي خو چه په هغوئ رعب پریوخی او په دې پوهه شی چه مسلمانان لا تراوسه پورې طاقت کښې دی. احد کښې چه کوم خلق موجود وو صرف هغوئ ته د تلو حکم وو. خو صرف جابر بن عبدالله ﷺ دوی سره وو دوی نه علاوه. په دې آواز باندې مسلمانانو لبیک اوونیلو اودزخمی کیدو باوجود اووینه کښې لت پت د الله ﷻ اود هغه درسول ﷺ اطاعت ته تیار شو.

**پورتنۍ واقعه په بل روایت سره:-** عکرمه ﷺ بیان کوی چه کله مشرکان احد نه واپس شو نو لاره کښې ئې سوچ اوکړو چه نه خو تاسو رسول الله ﷺ قتل کړې دې او نه مو د مسلمانانو ښځې نیولې دی، افسوس تاسو هیڅ اونکړل او واپس شوئ. هرکله چه دا خبر رسول الله ﷺ ته اورسیدو نو رسول الله ﷺ مسلمانانو ته د تیارئی حکم ورکړو. دوی تیار شو او د مشرکانو تعاقب کښې اووتل تردې چه حمراء الاسد پورې یا بیرابی عیینه ته راورسیدل. د مشرکانوزړونه د رعب د ویرې ډك شو او دې وینا سره مدینې منورې نه اووتل چه راتلونکې کال ته به گورو. رسول الله هم واپس مدینې منورې ته راغلو. دا هم یومستقل جنګ دې. ددې ذکر دې آیت مبارك کښې دې. (١)

**حضرت جابر ﷺ ته په جهاد کښې د شرکت اجازت:-** د احد جنګ په پنځلسم شوال، د هفتې په ورځ شوې وو. (د دې نه یو روځ پس) په شپاړسم تاریخ د اتوار په ورځ رسول الله ﷺ اعلان اوکړو چه ائې خلقو! د دښمن تلاش کښې اووځئ او صرف هغه خلق اووځئ چه کوم میدان احد کښې وو. په دې آواز جابر ﷺ حاضر شو او عرض ئې اوکړو یارسول الله ﷺ! پرون جنګ کښې زه نه ووم. ځکه چه زما پلار عبدالله ماته اوونیل چه ائې ځویه تاسره دا ورې ورې خویندې دی، زما دا خوښه نه ده چه مونږ دواړه دوی ځانته پریږدو. یو به دلته پاتې شو. او زه دا نه غواړم چه زه رسول الله ﷺ سره لاړنشم او ته ورسره لاړشې. د دې وجې زما خوښه ده چه ته خپلو خویندو سره کښینه او زه ځم. په دې وجه زه هلته پاتې شوم. زما پلارتاسو سره راغلو. اوس زما خواهش دې چه تاسو نن ماته اجازت راکړئی زه تاسو سره لاړشم نو رسول الله ﷺ ورته اجازت ورکړو.

**د صحابوُ جانثاری:-** درسول الله ﷺ غرض ددې سفر نه دا وو چه دښمن اوتښتی او ورته دا خیال اوشی چه مونږ. کښې لا قوت باقی دې. او دوی ځمونږ د مقابلې نه عاجز نه دی. د قبیله بنو عبدالاشهل یو صحابی ﷺ بیان کوی چه مونږ په غزوه احد کښې دواړه رونړه شامل وو. او مونږ ډیر زیات زخمی شو. اوس واپس شو. هرکله چه د رسول الله ﷺ اعلان کونکی اعلان اوکړو چه واپس راشئ نو مونږ دواړو رونړو وخپلو کښې اوونیل چه افسوس مونږ. سره سورلی نشته چه په هغې سواره شواو دالله ﷻ نبی ﷺ سره لاړشو. اونه د زخمونو په وجه په بدن کښې دومره طاقت شته دې چه پیدل لاړ شو. افسوس دا دې چه غزوه ځمونږ دلاس نه اووتله. ځمونږ بې شمیره زخمونه به مونږ نن منع کړی. خو بیا مونږ همت اوکړو. ماباندې زما د رور په نسبت کم زخمونه وو. هرکله چه زما رور بالکل عاجز شو نو قدم به نې نشو اوچتولې ډیر مشکل سره تلو اوکله چه به ستړې شو نو ایسار به شو او دغه شان مونږ لښکر ته اورسیدو. (سیرت ابن اسحاق) (٢)

**دحضرت زبیر ﷺ د جهاد دپاره تیاریدل:-** صحیح بخاری شریف کښې دی چه عائشه صدیقه ﷺ عروه ﷺ ته اوونیل چه ائې وراره ستا دواړه پلاران هم دې خلقو کښې دی د کومو باره کښې چې آیت (اَلَّذِیْنَ اسْتَجَابُوْا) الخ نازل شو. یعنی زبیر ﷺ او صدیق ﷺ او رسول الله ﷺ ته د احد جنګ کښې نقصان اورسیدو او مشرکان مخکښې لاړل. نو رسول الله ﷺ ته خیال راغلو چه هسې نه دوی واپس شی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل څوك شته دې چه دوی پسې لاړ شی. په دې آواز اویا کسان د دې کار دپاره تیار شو چه

---

(١) السنن الکبری للنسائی: ١١٠٨٣، طبرانی فی الکبیر: ١١٦٣٢)-

(٢) الطبری: ٨٢٣٣، دلائل النبوة للبیهقی: ٣/٣١٤)-

په هغوئ کښې يو ابوبکر صديق ﷺ وو ، دويم زبير ﷺ وو (١). دا روايت او نور ډير روايتونه ډيرو سندونو سره ډيرو کتابونو کښې راغلي وو. ابن مردويه کښې دي چه رسول الله ﷺ عائشه ﷺ اوفرمائيل چه ستا دواړه پلاران په دې خلقو کښې دی ليکن دا حديث مرفوع بيانول صرف خطا ده ، ددې وجې چه ددې په راويانو کښې ثقه هم شته دې چه په کښې اختلاف دې . چه د رسول الله ﷺ نيکونو کښې نه وو. صحيح دادی چه عائشه ﷺ دا خبره د اسماء بنت ابی بکر ﷺ خوئي عروه ﷺ ته ونيلې وه. ابن عباس ﷺ فرمانی چه الله ﷺ د ابوسفيان زړه کښې رعب واچولو او د دې باوجود چه هغه د احد جنګک کښې لږ شان کامياب شوې هم وو. ليکن بيا هم مکې ته لاړو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ابوسفيان تاسوته نقصان رسولو دپاره واپس شوې وو. الله ﷺ د هغه زړه کښې رعب اچولو . د احد جنګک دشوال مياشت کښې شوې وو او تاجران خلق ذی القعده کښې مدينې ته راغلی وو او بدر صغری کښې به ئې هرکال په دې مياشت کښې پړاؤ کولو. دې خل هم د دې واقعې نه پس راغلل او مسلمانان ډير زخميان وو ، رسول الله ﷺ ته به ئې خپل تکليفونه بيانول . اوډير زيات غمژن وو. نبی عليه لسلام خلق په دې خبره باندې رامات کړل چه هغوئ رسول الله ﷺ سره لاړ شي او وې فرمائيل چه دا خلق به اوس لاړ شی اوبيا به حج ته رازی. او بيا به دا قدرت راتلونکی کال پورې نه وی . خو شيطان خپل دوستان ويرول او لمسول شروع کړل او وې ونيل چه خلقو ستاسو د ختمولو دپاره لښکرې تياري کړی دی . او په دې وجه خلق نرم شو.

**د رسول الله ﷺ ترغيب:-** رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه واورئی که تاسو کښې يو هم لاړ نشی نوځه به يوازې ځم .نو بياد رسول الله ﷺ ترغيب سره ابوبکرصديق ﷺ ،عمرفاروق ﷺ اوعثمان ﷺ ،علی ﷺ، زبير ﷺ،سعد ﷺ ،طلحه ﷺ ، عبدالله بن عوف ﷺ ، عبدالله بن مسعود ﷺ ، حذيفه بن يمان ﷺ ، ابو عبيده بن جراح ﷺ وغيره اويا صحابه کرام ﷺ رسول الله ﷺ سره تلوته تيار شو. دا مبارك لښكر د ابو سفيان تلاش کښې تر بدرصغری پورې لاړو ، هم د هغوئ د فضيلت او د بهادرئی ذکر په دې آيت مبارك کښې دې .

**حمراء الاسد ته رسيدل:-** رسول الله ﷺ دې سفرمبارك کښې مدينې منورې نه اته ميله لرې حمراء الاسد ته اورسيدو. مدينه کښې ئې خپل نائب ابن ام مکتوم ﷺ جوړ کړې وو. هلته رسول الله ﷺ پير ،نهه او چارشنبې پورې قيام اوفرمائيلو او بيا مدينې منورې ته واپس شو. په دې دوران کښې د قبيله بنو خزاعه سردار معبد خزاعی دلته راغلو او دې هم مشرك وو ليکن دې ټولې قبيلې سره د رسول الله ﷺ صلح شوې وه. ددې قبيلې مشرك اومومن ټول د رسول الله ﷺ خيرخواه وو. هغه اوونيل چه د رسول الله ﷺ ملګرو ته کوم تکليف رسيدلې دې په هغې مونږ ته ډير زيات افسوس دې . الله ﷺ دې دوی ته د رسول الله ﷺ خوشحالی نصيب کړی. کله چه حمراء اسد ته رسول الله ﷺ اورسيدو نو ددې نه مخکښې ابوسفيان تلې وو.

**دابو سفيان په مسلمانانو باندې د حملې کولو اراده:-** ده او دده ملګرو د واپس کيدو اراده کړې وه چه کله مونږ په دوی غالب شو او دوی مواووژل او زخمی موکړل نو بيا کار نيمګړې ولې پريږدو ځئ چه واپس لاړ شو او دوی بيخی ختم کړو. دا مشورې کيدلې

**د معبد خزاعی اهم کردار ادا کول :-** چه معبد خزاعی راورسيدو. ابوسفيان د هغه نه تپوس اوکړو چه وايه څه خبر دې ؟ هغه اوونيل چه رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو ﷺ سره ستاسو تعاقب کښې راروان دې.

(١) صحيح بخاری کتاب المغازی باب ( استجابو لله والرسول ...) : ٤٠٧٧، صحيح مسلم: ٢٣١٨-

هغه خلق ډير غصه کښې وو چه کوم ړومبي جنګ کښې نه وو شريك شوى ، هغوئ هم راغلى دى او د تپلو اراده خه بدلې دى . او ډير زيات طاقت سره حمله کونکى دى. ما خو داسې لښکرهيڅکله نه دي ليدلې.دې آوريدو سره د ابوسفيان وار خطا شو او وې وئيل چه ښه شوه چه تا سره مې ملاقات اوشو ګنى مونږ پخپله هغوئ طرفته ورتلونکى وو. معبد اووئيل چه بالکل نه دا اراده پريږدئى او خما خبره چه تاسو به ددې ځائې نه دتلو نه مخکښې د هغوئ آسونه اووينئ . اودهغوئ د لښکر اودهغوئ د غصې حال درته ما اووئيلو. خو صرف تاسو ته وايم چه ځئ او خپل ځانونه بچ کړئى. ماسره داسې الفاظ نشته دې چه هغې سره خه د اسلام والو غيض وغضب او اراده او بهادرى او سختى او پوخ والى بيان کړم. نو مختصر دا دى چه واورئى که خپل خير غواړئى نو زر ددې ځائې نه لاړشئ . ابو سفيان اودده ملګرى د ويرې نه تك تور شو او د مکې لار ئې اونيوله. د قبيله عبدالقيس يو سړې د کاروبار غرض سره مدينې ته روان وو ، هغه ته ابوسفيان اووئيل چه ته رسول الله ﷺ ته دا خبراورسوه چه مونږ ستا د ختمولو دپاره لښکر جمع کړې دې او مونږ د واپس کيدو اراده کړې ده. که تاسو دا پيغام زمونږ اورسولو نو عکاظ کښې به کشمش کښې زياته حصه درکړو. نو دا خلق حمراء الاسدته راغلل او د ويرولو دپاره ئې د خطرناك خبر واورولو. ليکن صحابه کرام ؓ ډير استقلال او خوانمردئى سره جواب ورکړو چه مونږ لره الله ﷻ کافى دې اوهغه بهترين کارسازدې. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ما د دوى دپاره د کاڼرى يو نشان مقرر کړې دې که واپس شى او هلته راورسى نو داسې به ختم شى لکه تيره شوې ورځ. ([1])

**دايت مطلب:** بعضو خلقو دا وئيلى دى چه دا آيت د بدر باره کښې نازل شوې دې . ليکن صحيح دا دى چه دحمراء اسد باره کښې دا آيت نازل شوې دې . مطلب دا دې چه دالله ﷻ دښمنانود دوى دغمژن کولو دپاره د دښمن د سامان او اکثريت نه ويرول خو دوى صبرناك ثابت شو. ددوى يقين کښې هيڅ فرق رانغلو بلکه د دوى توکل نور هم زيات شو. او د الله ﷻ مدد طرفته د دوى نظرونه نور هم وړاندې شو.

**قوله تعالى::** وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ

**حسبنا الله د ابراهيم عليه السلام کلمه ده:-** صحيح بخارى کښې عبدالله بن عباس ؓ نه مروى دى چه (حَسْبُنَا اللَّهُ)الخ ابراهيم عليه السلام اور ته د ورتلو په وخت کښې وئيلى وو. او محمد ﷺ په هغه وخت کښې کله چه رسول الله ﷺ خلقو د ډيرو لښکرونو نه ويرولو. ([2])

**د امام حاکم سهو:-** دتعجب خبره دا ده چه امام حاکم دا روايت نقل کړې دې اوفرمائيلى ئې دى چه دا په بخارى شريف او مسلم شريف کښې نشته دى ([3]). بخارى شريف کښې يو روايت کښې دا هم دى چه دا آخرى کلمه وه چه د خليل الله عليه السلام د خولې مبارکې نه په هغه وخت کښې وتلې وه څه وخت چې هغه اور ته غورځولې شو. ([4]).

اوانس ؓ والا روايت کښې دى چه د احد په موقع کله چه رسول الله ﷺ ته د کافرو د لښکر خبر ورکړې شو نو رسول الله ﷺ دا کلمه اووئيله.او يو روايت کښې دى چه د على ؓ سردارئى کښې چه کله رسول الله ﷺ يو وړوکې شان لښکر روان کړو او لارکښې ورته د خزاعه يو اعرابى دا خبرو ورکړو نو رسول الله ﷺ دا فرمائيلى وو .د ابن مردويه حديث کښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى وو چه کله تاسو باندې څه ګران کار او لوئې کار راشى نو تاسو (حَسْبُنَا اللَّهُ) آخره پورې وائې .

---

[1]) الطبرى : ٨٢٤٣،)-

[2]) صحيح بخارى کتاب التفسير سورة آل عمران باب قوله تعالى ( الذين قال لهم الناس ...) : ٤٥٦٣)-

[3]) حاکم : ٢٩٨/٢، وهو حديث صحيح بالشواهد)-

[4]) صحيح بخارى کتاب التفسير سورة آل عمران باب قوله تعالى ( الذين قال لهم الناس ...) : ٤٥٦٤)-

**په مشکل وخت کښې دا دعا کول**:- مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ د دوو سړو مینځ کښې فیصله اوکړه نو چه دچا خلاف فیصله شوې وه هغه دا کلمه اوونیله. نو رسول الله ﷺ هغه واپس راوغوښتلو او ورته ئې اوونیل چه په عاجزئی او کاهلۍ باندې د الله ﷻ ملامتیا اوشوه ، دانائی او دوراندیشی او عقل مندی کوه. بیا چه کله څه کار کښې انخښلې نو دا وایه (۱).

**د اسرافیل علیه السلام د شپیلۍ وهلو انتظار**:- د مسندیو حدیث شریف کښې دی چه څنګه آرام اوکړم حالانکه صاحب د شپیلۍ (اسرافیل d) خوله کښې شپیلۍ نیولې ده. او تندې ئې لاندې کړې دې او د الله ﷻ د حکم منتظر دې چه کله به ورته حکم اوشی او دې شپیلۍ کښې به پوک اووهی. صحابه کرامو ﷺ اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ څه اووایو ؟رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ؞ علی الله توکلنا﴾ وائی .(۲)

**په واقعه افک کښې د عائشې دا کلمه وئیل**:- ام المومنین زینب رضي الله عنها او ام المومنین عائشه رضي الله عنها نه مروی دی چه زینب رضي الله عنها فخر سره اوفرمائیل چه څما نکاح خو پخپله الله ﷻ کړې ده او ستا نکاح ستا وارثانو کړې ده. صدیقه رضي الله عنها اوفرمائیل چه څما د براءت او پاکۍ آیتونه د آسمان نه په پاك کلام کښې نازل شوی دی.زینب رضي الله عنها اومنل او تپوس ئې اوکړو چه ته کله د صفوان بن معطل په سورلئی باندې سوریدې نو تا څه وئیلی وو ؟ نو صدیقه رضي الله عنها اوفرمائیل چه ﴿حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ دې آوریدو سره ام المومنین زینب رضي الله عنها اوفرمائیل چه تا د ایمان والو کلمه وئیلې وه.

**قوله تعالی**:- ﴿فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ﴾

نو هم دې آیت کښې دالله ﷻ ارشاد دې چه په الله ﷻ توکل کونکی خلق الله ﷻ غالب کړل او دوی سره چه کوم خلق خراب وو او هغوئ ئې ذلت او بربادئی سره مغلوب کړل. دا خلق بغیر د څه نقصان نه او خرابئی نه خپلو ښارونو ته واپس شو. دښمن خپل مکار توب کښې ناکام شو. د دوی نه الله ﷻ رضا شو. ځکه چه دوی دالله ﷻ د رضا کار کړې وو. الله ﷻ ډیر فضل او کرم والادې.

**د نعمت او فضل تفسیر**:- ابن عباس ﷺ فرمائی چه دا نعمت وو چه هغوئ سلامت اوسی او فضل دا وو چه رسول الله ﷺ د تاجرانو یو قافلې نه مال واخستو چه په هغې کښې نفع اوشوه او دا ټوله نفع رسول الله ﷺ خپلو ملګروباندې تقسیم کړه (۳).

مجاهد رحمه الله فرمائی چه ابوسفیان رسول الله ﷺ ته اوونیل چه اوس د وعدې ځائې بدر دې. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ممکن ده . نو رسول الله ﷺ هلته اورسیدو خو دا ډرپوك هلته رانغلو. هغه ځائې د منډۍ ورځ وه. مال ئې واخستو چه ډیر په نفع خرڅ شو. ددې نوم غزوه بدر صغری دې

**قوله تعالی**:- ﴿اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ اَوْلِيَآءَهٗ﴾

**د ایت مطلب**:- بیا فرمائی چه دا شیطان وو چه تاسوئې دخپلو دوستانو نه ویرولې . تاسوته پکار دی چه د دوی نه مه ویریږئی بلکه صرف څما نه ویره کوئی . ځکه چه د ایماندارئی شرط دا دې چه کله تاسو څوك ویروی او د دینی کارونو نه مو منع کوی نو مسلمانان په الله ﷻ باندې توکل او بهروسه ساتی اوهغه طرفته رجوع کوی او هغه ذات د ده دپاره کافی او ناصر دې . لکه چې فرمائی چه ﴿اَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبْدَهٗ﴾ آیاالله ﷻ د خپل بنده دپاره کافی نه دې ؟ دا خلق وو تاسو د دوی نه سوا نورو نه ویروی (تر دې چه فرمائی چه ) ته اووایه چه زما دپاره الله ﷻ کافی دې ، توکل کونکو ته ته پکار دی چه صرف په هغه باندې بهروسه اوساتی .

---

۱) احمد: ٦/٢٤، ابوداود کتاب الفضائل باب الرجل یحلف علی حقه : ٣٦٢٧)-

۲) احمد: ١/٣٢٦، ترمذی کتاب صفة القیامة بآب ماجاء فی شان الصور : ٢٤٣١))-

۳) دلائل النبوة : ٣/٣١٨))-

شيطان د خپلو ملګرو ملګرتيا کوی:- ①او بل خاني کښې ارشاد دې چه د شيطان ملګرو سره جنګ اوکړئ ، شيطان ډير مکر والا دې ②او بل خاني کښې ارشاد دې چه دا شيطاني لښکر دي ، ياد ساتئ: د شيطان لښکر هم نقصان کښې دې ③او بل خاني کښې ارشاد دې چه ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾ الله ﷻ ليکلې دی چه يقينا زه او زما رسولان به غلبه بيا مومي او الله تعالى قوی او عزيز دې .④اوبل خاني کښې ارشاد دې چه ﴿وَلَيَنْصُرَنَّ اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ﴾ چه څوك د الله ﷻ مدد اوکړی نو الله ﷻ به د هغه سره مدد اوکړی. ⑤او فرمان دې چه ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ يَنْصُرْكُمْ﴾ اے ايمان والو ! که تاسو د الله ﷻ مدد کونې نو الله ﷻ به هم ستاسو مدد اوکړی الخ. ⑥او آيت کښې دی چه باليقين مونږ د خپلو رسولانو او ايماندارو مدد دنيا کښې هم کوؤ او په هغه ورځ هم په کومه ورځ چې به ګواه ولاړ وی چه په کومه ورځ به د ظالمانو هيڅ عذر دوی ته فائده نه ورکوی. او ددوی دپاره لعنت دې.او ډير خراب خاني دې۔

وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ ۚ اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ

|اونه دي کړی غمژن تا | هغه کسان | چه هغوی تندی کوی | په کفر کښې | بيشکه هغوی | هرګز نقصان نشی رسولي الله ته

اوته دهغه خلقو په کارونو مه غمژن کيږه چې د کفر ترقۍ دپاره منډې وهی | دوی هيڅکله الله ته هيڅ نقصان نشی رسولی

شَيْـًٔا ۭ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي الْاٰخِرَةِ ۚ

هيڅ څه | اراده لری الله تعالى | چه نکړی مقرر | دهغوی دپاره | څه برخه | په آخرت کښې |

...........الله پاک داغواړی چی په آخرت کښې ورته هيڅ حصه ورنکړی |

وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْاِيْمَانِ

اودهغوی دپاره | عذاب دې لوئي | بيشکه هغه کسان | چه وائي خيستو کفر | په ايمان باندې |

او دوی دپاره لوئي عذاب مقرر دې | بيشکه کومو کسانو چې دايمان مقابله کښې کفر اخستې دې

لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ وَلَا يَحْسَبَنَّ

هرګز نقصان نه شی رسولي الله ته | هيڅ څه | او دي هغوی دپاره | عذاب دردناک | او ګمان دې نه کوی

هغوی دالله پاک هيڅ نقصان نشی کولي | اوهغوی دپاره دردناک عذاب مقرردې | او کومو کسانو چه

الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ خَيْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ ۭ

|هغه کسان | چه کافران شوی دی | چه کوم مهلت مونږ ورکوؤ | هغوی ته | چه بهتر دې | دهغوی دپاره

کفر کړې دې هغوی دې داخيال نه کوی چې ګنې مونږ د دوی د ښيګړې دپاره دوی ته مهلت ورکوو

اِنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ لِيَزْدَادُوْٓا اِثْمًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ

بيشکه مهلت ورکوؤ مونږ | هغوی ته | دپاره ددې چه زياته کړی هغوی | ګناه | اومقرر دې هغوی له | عذاب |

مونږ خو مهلت ورکوو چې دوی په کښې د ګناهونو بارونه خان لره درانه کړی | .........اودوی دپاره

مُّهِيْنٌ ۝ مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى مَآ اَنْتُمْ

سپوونکې | نه دې الله تعالى | چه پريږدی | مومنان | په هغه حال کښې چه يئ تاسو |

سپکونکې عذاب مقرر دې | الله پاک مؤمنان په دې حالت کښې نه پريږدی په کوم کښې چه تاسو ئې

عَلَيْهِ حَتّٰى يَمِيْزَ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ ؕ وَمَا كَانَ اللّٰهُ

په هغې باندې (په دې وخت کښې) | تردې پورې | چه جدا به کړي ناپاک | د پاکو نه | او نه دې الله تعالى

تردې چه هغه پاک او پليت خلق جدا جدا کړي | ..................او دهغه دا طريقه هم نه ده

لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِيْ مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ

چه خبر کړي تاسو | په غيبو باندې | ليکن الله | غوره کوي | د رسولانو خپلو نه | هغه څوک |

چې تاسو ټول د غيبو په خبرو خبر کړي | بلکه دې د پاره الله پخپلو پيغمبرانو کښې چې څوک غوره کول غواړي نو هغه غوره کوي

يَّشَآءُ ۚ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ۚ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا

چه غواړي ئې هغه | نو ايمان راوړئ | په الله تعالى باندې | او په رسولانو د هغه باندې | او که تاسو ايمان راوړئ

نو تاسو په الله پاک او د هغه په رسول باندې ايمان راوړئ (چې د دې په ذريعه درته غيب معلوم شي) او که دا ايمان

وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ

او ويريدنې د الله نه | نو دې ستاسو د پاره | اجر لوئې | او ګمان دې نه کوي | هغه کسان | چه بخل کوي |

او پرهيزګارۍ په لار روان شي | نو تاسو د پاره ډير لوئې اجر دې | او په چاچې الله پاک (د مال) فضل کړې دې

بِمَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ ؕ

په هغه خيز | چه ورکړې دې هغوئ ته الله | د فضل خپل نه | چه دا بخل | ګنې بهتر دې | د هغوئ د پاره

او هغوئ په کښې شومتيا کوي | .........نو دا خيال دې نه کوي چې شومتيا د دوی د پاره بهتره ده

بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ؕ سَيُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا

| بلکه | دا بخل | بد دې د هغوئ د پاره | زر ده چه د هغوئ د غاړې زنځنې به شي | هغه چه بخل کړې دې هغوئ

بلکه دا د دوئ د پاره د نقصان سبب دې | د غه د شومتيا مال به ورته د قيامت په ورځ تيزنځئ کړې شي

بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ

| په هغې سره | په ورځ د قيامت | او خاص الله لره دې | ميراث د آسمانونو | او د زمکې | او الله تعالى

......................او د آسمانونو او زمکو ټول ميراث د الله تعالى دې | ...........او الله پاک

بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝

| په هغه کارونو | چه کوئ ئې تاسو | خبر دې |

ستاسو په کارونو ښه خبر دې |

**قوله تعالى: وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ**

**د نبي کريم ﷺ په کفر باندې غمژن کيدل:**-محمد ﷺ خلقو باندې ډير زيات مهربان وو ، د دې وجې ورته بې لارې کيدل خوښ نه وو کوم کسانو چې به کفر کولو رسول الله ﷺ به په دې ډير غمژن کيدو. د دې وجې الله ﷺ رسول الله ﷺ منع کوی چه د الله ﷺ حکمت د دې تقاضا کوی چه د دوی کفر الله ﷺ ته يا رسول الله ﷺ ته هيڅ نقصان نشی رسولې .دا خلق خپله آخروی حصه بربادوی او خپلو ځانونو د پاره عذابونه تيار وی. الله ﷺ به د دوی د مخالفت نه رسول الله ﷺ محفوظ او ساتی. رسول الله ﷺ دې په دې غمژن کيږی نه .

قوله تعالى:: إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ
**کافرانو ته مهلت ورکول**:- بيا فرمائی چه څما دا وعده هم مقرر ده چه څوک ايمان په کفر سره بدل کړی هغوئ هم څمونږ هيڅ نشی کولي بلکه هم خپل نقصان کوی . او ځان دپاره دردناك عذاب تياروی .
قوله تعالى:: وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ لِأَنْفُسِهِمْ
بيا دکافرانو بيان کوی چه د الله ﷻ مهلت د دوی په گمان کښې دوی دپاره ښه دي① لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائی چه ﴿أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُمْ بِهِ مِنْ مَالٍ وَبَنِينَ ۞ نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرَاتِ ۚ بَلْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ يعنی آيا دا کفار گمان کوی د دوی د مال او اولاد زياتوالي د دوی دپاره څمونږ د طرفنه د خيريت نښه ده ؟ نه بلکه دوی کښې شعور نشته دي② بل ځائي کښې فرمائی چه ﴿فَذَرْنِي وَمَنْ يُكَذِّبُ بِهَٰذَا الْحَدِيثِ﴾ يعنی ما او دا دروغږن پريږده اومونږ په مزه مزه دوی رانيسو چه دوی ته به ددې علم هم نه وی ③او بل ځائي کښې ارشاد دي چه ﴿فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ﴾ الخ. يعنی د دوی په مالونو او اولاد مه دهوکه کيږه الله ﷻ دوی ته په دنيا کښې هم عذاب ورکوی او د دوی مرګ به هم په کفر باندې وی .
قوله تعالى:: مَا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ
بيا فرمائی چه دا خبره يقينی ده چه بعضې احکام او بعضې امتحاناتو داسې وی چه الله ﷻ هغې سره ښکاره کوی او ظاهروی چه د هغه دوست څوک دي ؟ اود هغه دښمن څوك دي ؟ مومن صابر څوك دې او منافق فاجر جدا کوی . او صفا به ښکاره شی .
**دايت مصداق**:- ددې نه مراد د احد د جنګ ورځ ده چه په هغې کښې د ايماندارو صبر ، د ايمان پوخوالی، استقامت، او توکل او فرمانبرداری او اطاعت اود منافقانو بې صبری او مخالفت اوتکذيب او موافقت او انکار او خيانت صفا ښکاره شو. غرض دا چه د جهاد حکم ، د هجرت حکم ، دا يو آزمينښت وو چه چاپه ښه اوبد کښې تميز اوکړو.سدی ﷺ فرمائی خلقو ونيلی وو که محمد ﷺ رينښتوني وی نو اودې وائی چه په مونږ کښې رينښتوني مسلمان کوم يو دي اوکوم نه دي ؟ نو دې باندې دا آيت ﴿مَا كَانَ اللَّهُ﴾ الخ. نازل شو. (ابن جرير).
قوله تعالى:: وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ
بيا فرمان دي چه د الله ﷻ غيب تاسو نه شئ پيژندئی ، هغه داسې اسباب پيدا کوی چه د مومن او منافق صفا تميزاوشی.ليکن الله ﷻ خپلو رسولانو کښې چه څوك غواړی نو منتخب کوی نې .او بل ځائي ارشاددي چه ﴿عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ الله ﷻ عالم الغيب دي نو په خپلوغيبو هيڅوك نه خبروی. مګر چه کوم يو رسول خوښ کړی د هغه مخکښې نګهبانې فرښتې ګرځوی راګرځوی .
قوله تعالى:: فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۚ وَإِنْ تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ
بيا فرمائی چه الله ﷻ باندې اودهغه په پيغمبرانوباندې ايمان راوړئی.يعنی اطاعت نې اوکړئی او د شريعت پابند اوسئ. ياد ساتئی چه ايمان اوتقوی کښې ستاسو دپاره اجر عظيم دي .
قوله تعالى:: وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ
**د بخل انجام**:- بيا ارشا دي چه بخيل سړې دي خپل مال ځان دپاره بهتر نه ګنړی .دا خودده دپاره ضرر ناك څيز دي .دين خودې ليکن کله کله دنياوی طور سره د دې انجام او نتيجه دا وی چه د بخيلئ به د دوی غاړه کښې طوق اچولې شی .
**مال په خامار وی**:-صحيح بخاری شريف کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه چاته الله ﷻ مال ورکړی اوهغه ددې نه زکوة نه ورکوی نوددې مال نه به د قيامت په ورځ يو ګنجې مارجوړ شی او د ده د مرئ نه

به راتاؤ شي او ددې مار په سترګو به دوه نښې وي او د ده شونډې به ځيرې وي.او وائي به چه ځه ستا مال يم او ځه ستا خزانه يم بيا رسول الله ﷺ هم دا آيت (وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ) الخ تلاوت اوفرمائيلو.[1]

**د مار نه منډې وهل:** -دمسند احمد يو حديث کښې دی چه دې به منډې وهي او مار به ده پسې وي او دې به راونيسي او د ده د غاړې نه به طوق شي . [2]

**مار به ټکونه ورکوي:** - مسند ابويعلى کښې دی چه کوم سړې خزانه ځان نه روستو پريږدي اومړشي نو هغه خزانه د يو جزامی مار په شان شکل کښې به ده پسې منډې وهې او د هغه مار سترګو باندې دوه ټورټاکی وی او دې به ورته وائي چه ته څوك ئې ؟ دې به اووائي چه ځه ستا خزانه يم کومه چه تا ځان نه روستو پريخودې وه. تر دې چه هغه مار به دې راونيسي او دده لاس به خوري اوبيا باقي بدن [3].

**مال به اژدها شي:** - دطبرانی حديث مبارك کښې دی چه کوم سړې خپل آقا ته ورشي او هغه نه خپل حاجت اوغواړي او د دې باوجود چه هغه سره وي او ده ته ورنکړي نو دا به دقيامت په ورځ دده دپاره يو اژدها جوړه شي . [4]

**د رشته دار حاجت نه پوره کولو سزا:** - دويم روايت کښې دی چه کوم رشته دار محتاج د خپل مالدار رشته دار نه سوال اوکړي اودې هغه ته ورنکړي نو د ده سزا به دا وی چه هغه مال به دده غاړه کښې دهار په شان اچولې شي ( ابن جرير ) .[5]

ابن عباس ﷺ فرمائی چه اهل کتابو د خپلو کتابونو خبرو خودلو کښې بخل کولو د هغوئ سزا په دې آيت کښې بيانيږي ليکن صحيح خبره دا ده اګر چه دا قول د دې آيت عموم کښې داخل دې .بلکه دا په طور داولی داخل دې ، والله أعلم.

**قوله تعالى:** وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

بيا فرمائی چه د آسمانونو او زمکې مالك الله ﷻ دې ، هغه چه تاسو ته څه درکړی دی په هغې کښې دهغه په نوم ورکړه کوئی او د ټولو کارونو واپس کيدل هغه طرفته ده. سخاوت کوئی چه په هغه ورځ مو پکار راشي او خيال ساتئ ځکه چه ستاسو نيتونو او د زړهٔ ارادو او ټولو عملونو نه الله ﷻ خبر دې .

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوٓا | الَّذِينَ | قَوْلَ | اللَّهُ | لَقَدْ سَمِعَ | | |
| چه وې وئيل | خبره دهغه کسانو | | | خامخا واوريده الله | | |
| بيشکه الله پاک دهغه کسانو خبره واوريده چې دائي اووئيل | | | | | | |
| قَالُوا | مَا | سَنَكْتُبُ | وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ | فَقِيرٌ | إِنَّ اللَّهَ | |
| چه هغوئ اووئيل | هغه | زرده چه اوبه ليکومونږ | اومونږ غنيان يو | فقير دې | چه الله تعالى | |
| بيشکه الله پاک محتاج دې اومونږ مالداران يو مونږ به ددوئ داخبره اوليکو او دا هم چې | | | | | | |

---

[1] صحيح بخاری كتاب الزكاة باب اثم مانع الزكاة : ١٤٠٣، نسائی : ٢٤٨٤)-

[2] احمد : ٩٨/٢، ترمذی : كتاب التفسير القران باب ومن سورة آل عمران : ٣٠١٢، وسنده صحيح نسائی: ٢٤٤٣، ابن ماة: ١٧٨٤)-

[3] حاكم : ٣٨٨/١، )-

[4] الطبری:٨٢٨٤)-

[5] الطبری : ٨٢٨١، موقوفا وسنده حسن ، : ٨٢٨٣، مرسلا : ٨٢٨٢، مرفوعا متصلا و رواه احمد: ٣/٥ ، والنسائی : ٢٥٦٧ وسنده حسن)-

وَقَتْلَهُمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّنَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿١٨١﴾ ذٰلِكَ

او وژل دهغوی|پیغمبرانولره| په ناحقه | او اوبه وایو مونږ|او څکئ| عذاب داورسوزونکي|داعذاب|

دوی په ناحقه پیغمبران قتل کول| (اوچي وخت راشي)نوورته به اووایوچي د سوزونکي عذاب خوند اوڅکئ

بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ

په سبب دهغې دي| چه وړاندې کړی دی| لاسونو ستاسو | اوبیشکه الله |نه دي| ظالم |

دا ستاسو دخپلولاسونود کړو سزا ده | ......................اوالله پاک په بنده ګانوباندې

لِّلْعَبِيْدِ ﴿١٨٢﴾ اَلَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيْنَآ اَلَّا نُؤْمِنَ

په بندګانو باندې|هغه کسان چه وائی| بیشکه الله تعالی|(حکم)هدایت کړي دي مونږته| چه مونږبه نه منو

یوذره ظلم نه کوی | څوک چي دا وائي چي الله مونږ ته وئیلی دی چي ایمان مه راوړئ

لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَاْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ؕ قُلْ

هیڅ یورسول| تردې پورې|چه راوړي مونږ ته | یو قربانی |چه اوخوری هغې لره| اور | اووایه

په هیڅ یوپیغمبرتردې پورې چي اول زمونږ په مخکښې داسې قرباني اونکړي چي دغیبواور راشی اوهغه اوخوری

قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِيْ بِالْبَيِّنٰتِ وَبِالَّذِيْ

چه راغلی وو تاسوته|ډیر رسولان|وړاندې زمانه | په ښکاره نښوسره |اودهغه نښې سره هم

ته ورته اووایه چي زمانه وړاندې پیغمرانو تاسو ته څرګنده نښې راوړې وې | اوهغه نښه نې

قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١٨٣﴾ فَاِنْ

|چه مطالبه کړې وه تاسو| نوولې |اووژل تاسوهغوئ| که يئ تاسو | رښتینی | نوکه چرې

هم راوړې وه چي تاسوئې غواړئ| نو هغوئ مو ولې وژل که تاسورښتینی يئ| ........نوکه چرې

كَذَّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ

دروغ اوګڼړلي شوې ته (اني محمد ﷺ)انودروغ ګنړلي شوې دی| ډیر رسولان | مخکښې ستاسو نه

دوئ تا دروغژن ګنړی | ............. نو ستانه وړاندې پیغمبران هم دروغژن ګنړل شوی وو

جَآءُوْ بِالْبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴿١٨٤﴾

|چه راوړې نې وې | ښکاره نښې |اوصحیفې| او کتاب |رڼرا ورکونکي

چې هغوئ ښکاره نښې او صحیفې اوځلیدونکي کتاب راوړې وو|

**دیهودیانو شان ګنبي ګستاخی :-** ابن عباس ﷺ فرمائی چه کله دا ایت نازل شو چه څوك دی چه الله ﷻ ته قرض حسنه ورکړی.اوهغه داپه څو څو چنده زیات کړی.نو یهودیانو اووئیل چه اني نبی ﷺ استا رب فقیردې څه چه د خپلو بندګانو نه قرض غواړی.دې باندې دا آیت **(لقد)** الخ نازل شو.

**قوله تعالی:** لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِيَآءُ

**دایت شان نزول:-** ابن ابی حاتم کنبي دی چه ابوبکرصدیق ﷺ دیهودیانو مدرسي ته تشریف یوړو، اوهلته لوئي معلم فنخاص وو اود دې لاندې یو لوئې عالم اشیع وو،خلق جمع وو اوهغوئ سره مذهبی خبرې کولې.ابوبکر صدیق ﷺ اوفرمائیل چه اني فنخاص ادالله ﷻ نه اوویریږه اومسلمان شه.په الله قسم

چه تاته ښه معلوم دی چه رسول الله ﷺ د الله رينښتوني رسول دې . او دې ر سول ﷺ د الله ﷻ د طرفنه حق راوړی دی او ددې رسول ﷺ صفتونه توراة او انجيل کښې بيان شوی دی چه ستاسو لاس کښې دي . نو فنحاص جواب کښې اووئيل چه ائي ابوبکر ﷺ ! واوره په الله قسم الله تعالى خمونږ محتاج دې مونږ د هغه محتاج نه يو. مونږ هغه ته دا شان عاجزی نه کوو لکه څنګه هغه لوئي ذات مونږ ته عاجزی کوی. بلکه مونږ خو د هغه نه بې پرواه يو ، مونږ غنيان يو او مالدار يو اوکه هغه ذات غني وې نو قرض به ئي نه غوښتلو. لکه څنګه چه ستاسو پيغمبر وائی.مونږ دسود نه منع کوی او پخپله سود کوی .که غني وې نو مونږ ته به ئي سود ولې راکولو. دې باندې ابوبکر صديق ﷺ غصه شو او فنحاص ئي په مخ يوڅپيړه اووهلو او وې فرمائيل چه په الله ﷻ قسم چه د چا په قبضه کښې خما ساه ده که تاسويهودو سره خمونږ معاهده نه وې نو ائي د الله دښمنه مابه ستا سر د تن نه جدا کړې وې . خو ائي بدنصيبو حق په دروغه ګنړئ . فنحاص لاړو او د دې شکايت ئي رسول الله ﷺ ته اوکړو . رسول الله ﷺ ابوبکر صديق ﷺ نه تپوس اوکړو هغه دې ولې اووهلو؟ابوبکرصديق ﷺ ورته دا واقعه بيان کړه. خو فنحاص دخپل قول نه واوړيدو چه ما خوداسې نه وو کړی. دې باره کښې دا آيت نازل شو. (1)

**قوله تعالى:: سَنَكْتُبُ مَا قَالُوا وَقَتْلَهُمُ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ**

بيا الله ﷻ دوی ته د عذاب خبر ورکوی ، د دوی دا قول اودې سره دا شان بله لويه ګناه يعنی د نبيانوعليهم السلام قتل کول مونږ د دوی په اعمال نامه کښې ليکلي دي.يو طرفته د الله ﷻ شان کښې بې آدبي او بل طرفته نبيانو عليهم السلام وژلو سره به دوی ته د دوی په دې غلطو کارونو سخته سزا ملاويږی. دوی ته به مونږ اووايو چه د سوزونکی عذاب مزه اوڅکئ .اودوی ته به اووئيلې شي چه داستاسو د رومبی کرتوت بدله ده . دې سره به دوی په سخت عذاب کښې ذليل او خوار وی. داسراسر عدل دې او انصاف دې او ظاهره ده چه مالك خپلوغلامانو باندې ظلم کونکی نه وې .

**قوله تعالى:: الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ عَهِدَ إِلَيْنَا أَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُولٍ حَتَّىٰ يَأْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَأْكُلُهُ النَّارُ**

بيا د دې خيال دپاره ئې دا دعوی اوکړه چه په آسمانی کتابونو کښې کوم چې مخکښې نازل شوی وو هغې کښې مونږ ته الله ﷻ حکم راکړې دې کله پورې مونږ ته يو رسول دا معجزه اونه ښائی چه د ده امت به کښې يو سړې قربانی اوکړی او د هغې قربانئ د خوراك دپاره آسمان نه يو قدرتی اور راشی او دا اوخوری. نو مونږ به هغه ايمان نه راوړو. د دوی د دې قول باره کښې ارشاد دې چه بيا تاسو ولې هغه پيغمبران عليهم السلام اوژل چه کومو ځان سره دا معجزه او دې سره نور براهين راوړی وو ؟ هغوئ ته خو الله ﷻ دا معجزه ورکړې وه چه د هريو قبوله شوې قربانی به آسمان ته پورته کيده خوتاسو هغه هم رينښتيا اونه ګڼړل. هغوئ سره مو هم دښمني مخالفت اوکړه بلکه هغوئ مو قتل کړل. ددې نه صفا ظاهره شوه چه تاسو ته ستاسو د خبرې پخپله هم څه لحاظ نشته دې ، نه تاسو د حق ملګری يئ او نه يو نبی منئ. يقينًا تاسو دروغژن يئ .

**قوله تعالى:: فَإِن كَذَّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ**

بياالله ﷻ خپل نبی ته تسلی ورکوی چه د دوی په دروغ ګڼړلو سره تاسو مه غمژن کيږئ اومه غم کوئ او د رومبو پيغمبرانو عليهم السلام واقعات خپل ځان ته په طور دتسلئ ياد کړئ چه هغوئ هم دليلونوظاهريدونه پس اودخپل حقانيت ښه واضح کيدونه باوجود بيادوئ هم دوئ دا دروغ اوګڼړلو.

**د زبر او منيروضاحت:** ﴿زُبُر﴾ نه مراد آسمانی کتابونه دی چه ددې صحيفو په شان آسمان نه په دې رسولانو نازل شوی وو. او ﴿الْمُنِيرِ﴾ نه مراد واضح او ښکاره او روښانه دليلونه دی.

(1) الطبری : ٨٣٠٠، ).-

| |
|---|
| كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ |
| ا هرنفس څکونکي ا |
| هرژوندي به |
| الْمَوْتِ وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَمَنْ |
| دمرګ دي اا او بیشکه اپوره به درکړې شي تاسوته ااجرونه ستاسو ا په ورځ د قیامت انو هغه څوک |
| يوخل مرى ا اوتاسوته به خپل پوره اجر دقيامت په ورځ درکولي شي ا ..................نوڅوک چې |
| زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَاُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ |
| اچه بچ کړې شوا د اور نه اا وداخل کړې شوا جنت ته ا نوهغه کامیاب شوا اونه دي ا ژوند ددې دنيا |
| ددوزخ داور نه بچ شي ا اوجنت ته داخل شي ا نو هغه کامياب شو ا اوددنيا ژوندنورهيڅ نه دي |
| اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ لَتُبْلَوُنَّ فِيْٓ اَمْوَالِكُمْ |
| امگرا سامان دي ا د دهوکي اخامخا به تاسو آزمائيلي کيږئ ا په مالونو ستاسو کښي |
| مګر ښکاره دهوکه ده ا ..................ستاسود مالونواوځانونوامتحان به ضرور کيږي |
| وَاَنْفُسِكُمْ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ |
| او په نفسونو ستاسو کښي اا وخامخا به آورئ تاسوا دهغه کسانونه ا چه ورکړې شوي دي ورته کتاب |
| اوتاسو به دهغې خلقونه چې مخکښي ورته کتاب ورکړې شوي دي .................. |
| مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا اَذًى كَثِيْرًا |
| اوراندې ستاسونه اا ودهغه کسانونه ا چه شرک ئې کړې دي ا تکليف ورکونکي خبرې ا ډيرې |
| اودمشرکانودخولې نه ډيرې بدې ردې خبرې آورئ .................. |
| وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ |
| اا وکه تاسو صبر اوکړوا او پرهیزګاری مواوکړه انو بیشکه دا ا د اوچتو کارونوځنې دی ا |
| اوکه تاسوصبر اوکړوا او ځانونه بچ اوساتئ ا نو دا د ډيرې اوچتې حوصلې خبره ده ا |

**قوله تعالى: كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ**

**هر ساه لرونکی لره مرګ شته :-** ټول مخلوق ته اطلاع ده چه هر ساه لرونکی څيز لره مرګ شته دې لکه فرمائی چه ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝ وَيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ۝﴾ يعنی دې زمکه باندې چه څومره دی ټول فانی کیدونکی دی.صرف ستاد رب ذات باقی پاتې کیدونکې دې چه ډير بزرګئ اوانعام والا دې ،نو صرف هغه واحد ذات به هميشه ژوندې وی. اوکله به هم نه فنا شي

جنات او انسانان ټول په ټوله مره کیدونکی دی ،دا شان فرښتې او حاملان عرش به هم مړی کیږی اوصرف الله ﷻ وحده لا شريك به باقی پاتې شی .مخکښې هم هغه ذات وواو آخره پورې به هم هغه ذات پاتې وی.هرکله چه ټول مړ شی نو موده به ختمه شی صلب آدم نه چه څومره اولاد پيدا کیدونکې وو هغه پیدا شو اوټول په ټوله مړه شو. د مخلوق خاتمه اوشوه او هغه وخت کښې به الله ﷻ قیامت قائم

کړی .اومخلوق ته به دهغوی د ټولو عملونو، ورو ،لويو ،ښکاره ،پټو ، صغيره اوکبيره ټولو ګناهونوسزا ملاؤ شی. په هيڅ چا به هيڅ ظلم نه وی . هم دانی د دې نه پس جمله کښې فرمائيلی دی.

**د حضرت خضر عليه السلام نصيحت**:- علی ﷺ فرمانی چه د رسول الله ﷺ د وفات نه پس مونږ ته محسوس شو چه ګويا څوك رازی ،د ښپو آواز ئې راتلو ،ليکن هيڅوك به نه وو. هغه راغلو او وې وئيل چه انې اهل بيت تاسو باندې دې سلام وی او د الله تعالی رحمت دې وی په تاسو باندې ،هر جاندار څيز د مرګ مزه څکونکې دې ، تاسو ټولو ته به ستاسو د عملونو بدله ملاؤ شی د قيامت په ورځ . د هر مصيبت نه خلاصې د الله تعالی سره دې . دهر مړ کيدونکی بدله ده او دهر فوت کيدونکی حاصليدل دی. الله ﷻ باندې بهروسه ساتئ او ښه اميد ترې ساتئ. او دا ګڼړئ چه په رښتيا په مصيبت کښې اخته هغه کس دې چه د ثواب نه محروم شی،تاسو باندې دې د الله تعالی د طرفنه سلامتيا وی او د هغه رحيم ذات برکتونه او رحمتونه دې وی ( ابن ابی حاتم ) .دعلی ﷺ خيال دې چه دا خضر عليه السلام وو. (¹)

**قوله تعالی**:: فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ

**کامياب څوك دی؟**:- حقيقت دا دی چه پوره کامياب انسان هغه دې چه د جهنم نه بچ شی او جنت ته لاړشی.رسول الله ﷺ فرمانی چه جنت کښې د يو کوړې ځايې ملاويدل د دنيا او ما فيها نه بهتر دی که تاسو غواړئ نو وانی چه ﴿فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ﴾ ددې مخکښې زياتوالئ نه بغير دا حديث بخاری او مسلم شريف وغيره کښې هم دې او زياتئ سره ابن ابی حاتم کښې دی او ابن مردويه کښې هم دی. (²)

رسول الله ﷺ فرمانی چه دچا خواهش وی چه دجهنم نه بچ شی او جنت ته داخل شی نو هغه ته پکار دی چه تر مرګه پورې په الله ﷻ ،د قيامت په ورځ ايمان اوساتی اوخلقو سره هغه سلوك اوکړی چه کوم دې پخپله خوښوی.(³)دا حديث د روميی آيت ﴿فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ﴾ تفسير کښې تير شوې دې.مسند احمد کښې هم د وکيع بن جراح تفسير کښې دا حديث موجود دی.

دې نه پس د دنيا د حقارت او د ذلت بيان کيږی .چې دا ډيره ذليله او فانی اوزوال کيدو والا څيز دې. لکه بل ځانې کښې فرمانی چه﴿بَلْ تُؤْثِرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَى﴾ تاسو خو د دنيا په ورکړه باندې فخر کونی حالانکه اصل کښې بهتر اوبقاء والا څيز آخرت دې .دويم آيت کښې دی چه تاسو ته مو څه درکړی دی دا خو د دنيا فائده ده او د دې زينت بهترين او باقی پاتې کيدو والا خو هغه دې چه کوم الله ﷻ سره دې .

**قوله تعالی**:: وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ

**دنيا د اخرت په مقابله کښې**:- حديث مبارك کښې دی په الله ﷻ قسم دنيا د آخرت مقابله کښې صرف داسې دی لکه چه يو سړې خپله ګوته سمندرکښې ډوبه کړی نو دده ګوته د سمندر د اوبو مقابله کښې چې څه نسبت لری . هم هغه د دنيا د آخرت په مقابله کښې لری (⁴)

قتاده ﷺ فرمانی چه دنيا څه څيز دې ، هسې د دهوکې څيز دې اوتاسويه ددې دپريښودو نه پس يوورځ ددې نه ځانې . په هغه الله ﷻ مې دې قسم وی چه دهغه نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته چه دا نزدې ستاسو نه جدا کيدونکې او بربادونکې څيز دې ، نو تاسو ته پکار دی چه هوش نه کار واخلئ او دلته

---

¹) ابن ابی حاتم داروايت علی ابی علی الهاشمی په وجه موضوع دې )-

²) احمد: ٢/٤٣٨، ترمذی کتاب تفسير القران باب ومن سورة آل عمران ٣٠١٣، وسنده حسن ، ابن حبان : ٧٤١٧، او امام حاکم ٢/٢٩٩ کښې دا صحيح ګرزولې دې او علامه ذهبی رحمه الله ددې موافقت کړې دې اوداشان ددې معنی صحيح بخاری: ٣٢٥٠ کښې هم موجود ده)-

³) صحيح مسلم کتاب الامارة باب وجوب الوفاء ببيعة الخليفة .....: ١٨٤٤)-

⁴) صحيح مسلم کتاب الجنة باب فناء الدنيا : ٢٨٥٨ ترمذی: ٢٣٢٣، ابن ما جة: ٤١٠٨)-



د الله ﷻ اطاعت اختیار کړئی او دخپل طاقت نه زیاتې نیکئ اوګټئ. دالله ﷻ درکړې شوی طاقت نه بغیر هیڅ یو کار نه کیږی.
**قوله تعالی:: لَتُبْلَوُنَّ فِيٓ أَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ**
بیا دانسانی آزمیښت ذکر کیږی .لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُم بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ﴾ الخ ، مطلب دا دې چه د مومن امتحان ضرور کیږی کله ځانی، کله مالی او کله د اهل وعیال ذریعې سره او کله نورو طریقو سره ،دا آزمیښت د دیندارئی اندازې مطابق کیږی .دسخت دیندار امتحان هم سخت وی او دکمزوری دیندار امتحان هم کمزورې وی .
**قوله تعالی:: وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ**
**د صبر تلقین:**-بیا الله ﷻ صحابه کرامو ته خبر ورکوی چه د بدر نه مخکښې مدینه منوره کښې تاسو ته د اهل کتابو اومشرکانو نه تکلیفونه او پریشانئ اورسیدې ،بیا تسلی ورکوی او طریقه ورته ښائی چه تاسو د صبر لمن اونیسئ او پرهیزګاری اختیار کړئ او دا ډیر لوئې کار دې .
**د مسلمانانو د کافرانو په تکلیفونو صبر کول:**- اسامه بن زید ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ او د رسول الله ﷺ صحابه کرام ﷺ مشرکانو ته او اهل کتابو ته ډیره معافی کوله. او د هغوئ تکلیفونه به ئې برداشت کول. اود الله ﷻ د دې فرمان عاملان وو تر دې چه د جهاد آیتونه نازل شو.
**دعبدالله بن ابی ګستاخی:**- صحیح بخاری شریف کښې د دې آیت د تفسیر لاندې دی چه رسول الله ﷺ په خپل خر سور شو او اسامه ﷺ ئې خان پسې کینولو اود سعاد بن عباده ﷺ عیادت دپاره دحارث بن خزرج قبیلې ته لاړل .دا واقعه د جنګ بدر نه مخکښې شوې وه. لاره کښې یو مخلوط مجلس ناست وو چه په هغې کښې مسلمانان ،یهودیان ،مشرکان اوعبدالله بن ابی بن سلول وو. دې هم تراوسه پورې خپل رنګ کښې رنګ وو. مسلمانانو نه عبدالله بن رواحه ﷺ هم وو. د رسول الله ﷺ سورلئ مبارکې نه دوړې اوختلې نو عبدالله بن ابی بن سلول په خپله پوزه کپړا واچوله او وې وئیل چه دوړې مه کوه ، رسول الله ﷺ ته ورغلو.او رسول الله ﷺ سورلئ نه کوز شو او سلام ئې اوکړو او دوی ته ئې داسلام دعوت ورکړو او دقران پاك څو آیتونه مبارك ئې اولوستل . نو عبدالله بن ابی بن سلول اووئیل ائې صاحبه واوره ما ته ستا دا طریقه نه ده خوښه . د رسول الله ﷺ خبرې حق سهی لیکن دا ولې چه رسول الله ﷺ خمونږ مجلسونو ته راځی او مونږ ته تکلیف راکوی. خپل کور ته لاړ شه او دا هغه چاته اووایه چه څوك تاتهٔ درشی دې آوریدو سره عبدالله بن رواحه ﷺ اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ بیشکه تاسو خمونږ مجلسونوته تشریف راوړئی .ځکه چه مونږ ته دا خوښ دی . او دې کښې خپلو کښې ډیر تکرار اوشو. او یو بل ته ئې بدرد اووئیل او نزدې وه چه جنګ هم شوې وې لیکن د رسول الله ﷺ پوهولو سره خیر شو. او ټول خاموش شو.
**حضرت سعد ﷺ ته خبر ورکول:**- رسول الله ﷺ خپلې سورلئ باندې سواره شو او سعد ﷺ ته لاړو او هلته ئې سعد ﷺ ته اوفرمائیل چه ائې ابو حباب ا نن عبدالله بن ابی بن سلول دا دا وئیلی دی سعد ﷺ اووئیل چه یارسول الله ﷺ تاسو دوی پریږدئی او دوی معاف کړئی. قسم په الله چه په تاسو باندې ئې قران پاك نازل کړو ، واورئی چه د هغوئ خو رسول الله ﷺ سره ډیره زیاته دښمنی ده. او دا ځکه چه د دې ځائې خلقو هغه خپل سردار جوړول غوښتل او د مشرئ د پټی تړلو مشوره ئې کړې وه .بل طرفته الله ﷻ رسول الله ﷺ خپل نبی ﷺ راولیږلو. خلقو رسول الله ﷺ نبی اومنلو. د هغه سرداری ختمه شوه. او په دې وجه هغه غمژن دې او هم په دې وجه دې د خپل زړه نه تیکې غوځوی. چه څه ئې اووئیل نو هغه ئې اووئیل . تاسود هغه هیڅ پرواه مه کوئی . نو رسول الله ﷺ هغه معاف کړو. اوهم دا د رسول الله ﷺ عادت مبارك وو. او د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو ﷺ هم . یهودیانو او مشرکانو ته به ئې معافی

کوله. او په دې فرمان به نې عمل کولو. هم دا حکم په دې آیت ( ودکثیر ) کښې دې چه کوم حکم د معافئ دې آیت ( ولتسمعن ) کښې دې .

**دجهاد اجازت ملاویدل:-** بیا دې نه پس رسول الله ﷺ ته د جهاد اجازت ورکړې شو. او رومبئ غزوه بدر اوشوه او په دې کښې د کفارو د لښکر سرداران قتل شو. دې حالت او د اسلام شوکت کتلو سره اوس عبدالله بن ابی بن سلول او دده ملګرې ویریدل او ددې نه بغیر دوی ته هیڅ په نظر نه راتلل چه بیعت اوکړې او په ظاهره مسلمانان شي. (١)

**یوه قاعده:-** نودا کلیه قاعده یاد ساتل پکار دي چه هر حق والا چه نیکئ او ښیګړې کوي او څوک د خلاف شرع کار نه منع کوي او په دې کښې هغه ته ضرر او مصیبتونه رسي نو هغه ته پکار دي چه دا ټول تکلیفونه برداشت کول او دالله تعالی لار کښې د صبر او سهارې نه کار اخلي. هم په هغه پاک ذات بهروسه ساتي. هم د هغه ذات نه مدد غواړي او خپل کامل رغبت او پوره رجوع هغه طرفته ساتي.

| |
|---|
| وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَتُبَيِّنُنَّهٗ |
| (یاد کړه) کله چه واخستله الله \| پخه وعده \| دهغه کسانو نه \| چه ورکړې شوي دي ورته کتاب \| چه خامخا بیانوئ تاسو هغه کتاب |
| او (دوی ته یاد کړه) کله چې الله پاک د اهل کتابونه لوظ واخستو چې تاسو به خلقو ته دا کتاب بیانوئ |
| لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ ۡ فَنَبَذُوْهُ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ وَاشْتَرَوْا |
| اخلقو ته \| او نه به پټوئ هغه \| نو اوغورزؤ هغوئ هغه \| روستو \| دشاګانو خپلو نه \| اوو انې خستو |
| ............ او په دې کښې به هیڅ نه پټوئ \| خو دوئ (هدوتول) شاته اوغورزولو \| او په لږ قیمت ئې |
| بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ۝ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ |
| \| په هغې \| قیمت لږ \| نو بد دې \| هغه چه \| هغوئ ئې اخلي \| ګمان مه کوه ته \| په هغه کسانو |
| خرڅ کړو \| ........................ اودائې ډیره خرابه سودا اوکړه \| ....... ته په هغه چا ګمان مکوه څوک چې |
| يَفْرَحُوْنَ بِمَآ اَتَوْا وَّيُحِبُّوْنَ اَنْ يُّحْمَدُوْا بِمَا |
| \| چه خوشحالیږي \| په هغه کار \| چه اوکړو هغوئ \| او خوښوي هغوئ \| چه اوستائیلې شي \| په هغه کار |
| په خپلو بدو کارونو خوشحالیږي \| او دا غواړي چې په داسې کارونو د هغوئ تعریف اوشي |
| لَمْ يَفْعَلُوْا فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ |
| \| چه نه وي کړې هغوئ \| نو مه ګڼره ته هغوئ \| خلاصیدونکي \| د عذاب نه \| او دې هغوئ لره \| عذاب |
| کوم چې هغوئ نه وي کړي \| چې ګڼې هغوئ به د عذاب نه بچ شي \| ...................... د هغوئ د پاره |
| اَلِيْمٌ ۝ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ |
| دردناک \| او الله لره ده \| بادشاهي د آسمانونو \| او د زمکې \| او الله تعالی \| په هر څیز باندې \| قادر دې |
| خو دردناک عذاب مقرر دې \| او د آسمانونو او زمکو مالک صرف یو الله دې \| او هغه په هر څه قدرت لري |

**قوله تعالی:** وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَتُبَيِّنُنَّهٗ

(١) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة آل عمران باب ( ولتسمعن من الذين ... ) : ٤٥٦٦، صحیح مسلم : کتاب الجهاد: ١٧٩٨-

**دعلم پټولو ګناه:-** الله ﷻ دلته اهل کتاب ویروی چه دپیغمبرانو په ذریعه د دوی نه کومه د الله وعده اخستې شوې وه چه په رسول الله ﷺ باندې به ایمان راوړنی او د رسول الله ﷺ ذکر او د رسول الله ﷺ بشارت خلقوته رسوئی او هغوئ به د رسول الله ﷺ په تابعدارنی راضی کونی اوبیا چه کله رسول الله ﷺ تاسوته تشریف راوړی نو تاسو به د هغه تابعداری کوئ. خو هغوئ دا عهد پټ کړو او د دې په ظاهرولو باندې دوی سره د دنیا اوآخرت وعده شوې وه ، د دې بدله کښې لږه شان دنیا کښې راګیر شواو پریشانه پاتې شو او د دوی دا اخستل خرڅول ډیر زیات بد دی. په دې کښې عالمانو ته تنبیه ده چه هغوئ دې داسې نه کوی ګنی دوی باندې به هم عذاب راشی کوم چې په هغوئ راغلې وو او دوی نه به الله ﷻ خفه شی لکه څنګه چه د هغوئ نه خفه شوې وو. علماء کرامو ته پکار دی چه دوی سره کوم فائده ورکونکې علم وی.چې په هغې سره خلق بنه عمل کولې شی او دا خوروی او هیڅ خبره نه پټوی. حدیث مبارك کښې دی چه کوم سړی نه د یوې مسئلې تپوس اوشی او هغه دا پټه کړی نو د قیامت په ورځ به هغه ته د اور واګې اچولې شی ([1])

**په دروغه قسم خوړلو بې برکتی:-** دویم آیت مبارك کښې د ریاکارنی مذمت دې . بخاری اومسلم شریف کښې حدیث مبارك دې چه کوم سړې په دروغه دعوی اوکړی اوزیات مال ګټل غواړی نو الله ﷻ به هغه نورهم کم کړی.([2])دبخاری او مسلم دویم حدیث مبارك کښې دې چه کوم ته نه وې ورکړې شوې نو هغه سره آسودګی کونکی د دوو دروغو کپړو اغوستنکی پشان دې ([3]).

**قوله تعالی:**: لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ

**د ایت شان نزول:-** مسند احمد کښې دی چه یو ځل مروان خپل دربان رافع ته اووئیل چه عبدالله بن عباس ﷺ ته ورشه او هغوئ ته اووایه که په خپل یو کار باندې خوشحالیدل او نه کولو باندې تعریف خوښولو باندې به دالله تعالی عذاب وی. نو په دې په مونږ باندې دالله ﷻ عذاب وی نو دغه شان خو مونږ کښې هېڅوك نشی بچ کیدې .عبدالله ﷺ د دې جواب کښې اوفرمائیلو چه ستا دې آیت سره څه تعلق دې ؟ دا خو د اهل کتابو باره کښې دې .بیا رسول الله ﷺ (وَإِذْ أَخَذَ اللّٰهُ) نه تر آیت د آخره پورې تلاوت اوفرمائیلو او وې فرمائیل چه دوی نه نبی ﷺ دیو څیز باره کښې تپوس کړې وو نو هغوئ د دې څه غلط جواب ورکړو. او بهر وتلو سره ئې ګمان اوکړو چه مونږ د رسول الله ﷺ د سوال جواب ورکړو. اودې سره د دوی دا خواهش هم وو چه رسول الله ﷺ سره به خمونږ تعریف اوکړی اود اصل جواب په پټولو او ددې فقرې په وئیلو باندې دوی خوشحاله وو. هم د دې بیان دې آیت کښې کیږی. داحدیث بخاری وغیره کښې هم دې . ([4])

**د ایت دویم شان نزول:-** او صحیح بخاری شریف کښې دا هم دی چه کله رسول الله ﷺ میدان جنګ ته تشریف اوړو نو منافقان خپلو کورونو کښې کښیناسته او رسول الله ﷺ سره نه تلل ، بیا ئې خوشحالئ کولې چه مونږ جنګ کولو نه بچ شو ، اوس چه کله د الله ﷻ نبی ﷺ واپس کیږی نو دوی خبرې جوړوی او د دروغو عذرونه کوی او قسمونه خوری او خپل عذرونو سره رسول الله ﷺ ته یقین دهانی کوی او غواړی چه کوم کار مونږ نه دې کړې په هغې هم خمونږ تعریف اوشی نودې باندې دا آیت نازل شو. ([5])

---

[1]) ابوداود کتاب العلم باب کراهیة منع العلم : ٣٦٥٨، وسنده حسن ترمذی : ٢٦٤٩)-.
[2]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان غلظ تحریم قتل الانسان نفسه : ١١٠، ددې اصل صحیح بخاری ٦٠٤٧، کښې موجود دې)-
[3]) صحیح بخاری کتاب النکاح باب المتشبع بما لم ینل : ٥٢١٩، صحیح مسلم: ٢١٢٩)-
[4]) احمد:١/٢٨٩، صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة آل عمران باب (ولا تحسبن الذین یفرحون...)٤٥٦٨، صحیح مسلم: ٢٧٧٨)-
[5]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة آل عمران باب ( ولا تحسبن اللذین یفرحون...) : ٤٥٦٨، صحیح مسلم: ٢٧٧٨)-

**د ابوسعيد ﷺ په ژبه د ايت شان نزول:-** تفسير ابن مردويه کښې دی چه مروان د ابوسعيد ﷺ نه د دې اېت مبارك باره کښې تپوس کړې وو لکه څنګه چه پورته تير شو چه ابن عباس ﷺ نه ئې تپوس اوکړو نو ابوسعيد ﷺ د دې مصداق او د دې شان نزول هغه منافقان اوګرځولو .چه کوم به د غزوه په وخت کښې کښيناستل ، که مسلمانانو ته به نقصان اوشو نو خوشحاليدل به او که فائده به ورته اوشوه نو خپل عذر به ئې ظاهرولو او فتح اونصرت جشن به ئې کولو. په دې باندې مروان اوونيل چه چرته دا واقعه او چرته دا آيت ؟ نو ابو سعيد ﷺ اوفرمائيل چه دا زيد بن ثابت هم ددې نه واقف دې .مروان زيد ﷺ نه تپوس اوکړو نوهغوئ هم د دې تصديق اوکړو .ابوسعيد ﷺ اوفرمائيل چه د دې علم رافع بن خديج ﷺ ته هم دې چه په مجلس کښې موجود وو. ليکن هغه ويريږی چه هسې نه ته ترې هغه اوښې واخلې چه کومې ورته تا صدقې کښې ورکړې دی. زيد بهر اووتلواو وې وئيل چه ته خما په شهادت باندې خما تعريف نه کوې ؟ابو سعيد ﷺ اوفرمائيل چه تاسوريښتونئ شهادت ادا کړو. نو زيد ﷺ اوفرمائيل چه بيا هم د ريښتونی شهادت څه مستحق يم . مروان په هغه زمانه کښې د مدينې منورې امير وو.

دويم روايت کښې دی چه د مروان دا سوال د رافع بن خديج ﷺ نه مخکښې وو. د دې نه مخکښې روايت کښې تير شوی دی چه مروان د دې آيت باره کښې عبدالله بن عباس ﷺ نه تپوس کړې وو ، نو يادساتئ چه په دې دواړو کښې تضاد او منافات نشته . مونږ نشو وئيلې خکه چه دا آيت عام دی ، دا په کښې هم شامل دی . او دغه هم. مروان والا روايت هم ممکن دې چه مخکښې دې دواړو صاحبانو جواب ورکړې وی ، بيا نور دتشفئ په طور عبدالله بن عباس ﷺ نه هم مروان په ذريعه دخپلو کسانو سوال کړې وی . والله اعلم .

**د ثابت بن قيس ويره:-** ثابت بن قيس انصاری ﷺ د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو يارسول الله ﷺ ! ماته د خپل هلاکت ډيره زياته ويره ده.رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چه ولې ؟ جواب کښې ئې اوفرمائيل چه د دې يو وجه دا ده چه الله ﷺ د دې خبرې نه منع کړې ده چه څه مې نه وی کړې او په هغې تعريف خوښئ او خما حال دادې چه څه تعريف خوښوم. دويمه خبره دا ده چه تکبر نه الله ﷺ منع کړې ده او څه جمال خوښوم . دريمه خبره داده چه د رسول الله ﷺ آواز نه اوچت آواز سره خبرې کول منع دی او خما آواز اوچت دې .نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه آيا ته په دې خبره خوشحاله نه ئې چه ستا ژوند ښه وی او ستا مرګ د شهادت مرګ وی او ته جنتی ئې . نودې خوشحاله شو او وې وئيل چه ولې نه يارسول الله ﷺ ! دا خو ډيره ښه خبره ده ،نو هم دا شان اوشو چه د دوی ژوند ښه شو او مرګ ئې د شهادت شو.مسيلمه کذاب سره د مسلمانانو جنګ اوشو په هغې کښې ثابت بن قيس انصاری ﷺ شهيد شو. (۱)

**قوله تعالى: فَلَا تَحْسَبَنَّهُم بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ**

**دوه قراء تونه -** x‌﴿تحسبهم﴾ لره ﴿يحسبهم﴾ هم لوستلې شوې دې .

**کافران د عذاب نه نشی بچ کيدې:-** بيا فرمان دې چه ته دا خيال مه کوه چه دوی به د عذاب نه خلاص شی ، دوی به عذاب ضرور مومی او هغه هم دردناك .

**قوله تعالى: وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ**

**الله په هر څيز قادر دې:-** بيا ارشاد دې چه د هر څيز مالك او په هر څيز قادر الله ﷺ دې . هغه پاك ذات هيڅوك نشی عاجز کولې.نو تاسو د هغه نه ويريږئ اود هغه پاك ذات مخالفت مه کوئ . د هغه د غضب نه ويريږئ اود هغه د غضب نه دبچ کيدو کوشش کوئ.او د پاك ذات د عذاب نه ځان بچ کړئ ،نوځو څوك د هغه نه لوئې شته دې اونه څوك د هغه زيات قدرت والا شته دې .

---

۱) حاکم : ۲۳٤/۳،صحيح ابن حبان: ۷۱۶۷)-

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ
بیشکه | په پیدا کولو | داسمانونو | او زمکې کښې | او په مختلف کیدلو | دشپې | او ورځ کښې
داسمانونو او زمکې پیدا کولو کښې او دشپې او ورځې پرله پسې راتللو کښې دهغې ...
لَاٰيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿﴾ الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُودًا
ډیرې نښې دقدرت دی | دپاره دعقل مندو خلقو | هغه (عاقلان) | چه یادوی الله | په ولاړه | او په ناسته |
عقل مندو دپاره ډیرې نښې دی | ..................... چې په ولاړه او په ناسته
وَّعَلٰى جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ
او په ډډو خپلو یعنی په ملاسته | وغوروفکر کوی | په پیدائش (جوړښت کښې) | داسمانونو |
اوپه هر اړخ د الله پاک ذکر کوی | اود آسمانونو او زمکې په پیدائش کښې سوچ فکر کوی
وَالْأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سُبْحٰنَكَ
اود زمکې | او (وائی) انې ربه زمونږ | نه دی پیدا کړی تا | دا ټول هر څه | عبث (بې مقصده) | پاکی ده تا لره |
(اودا وائی) انې زمونږه ربه دا عجیبه څیزونه تا بې فائدې نه دی پیدا کړی | (دعبث کار کولو نه) پاک ئې
فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿﴾ رَبَّنَا إِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ
نو اوساته مونږ | دعذاب د اوور نه | انې ربه زمونږ | بیشکه ته چه | څوک داخل کړې | اور ته |
نومونږ د دوخ دعذاب نه بچ اوساته | انې زمونږ ربه تا چې څوک دوزخ ته ور داخل کړل نو هغه
فَقَدْ أَخْزَيْتَهٗ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ ﴿﴾ رَبَّنَا
نو په حقیقت کښې | تا رسوا کړو هغه | او نشته ظالمانو دپاره | څوک مددګار | انې ربه زمونږ |
دې اوشرمولو | او دظالمانو دپاره هیڅوک مددګار نشته دې | ..................... انې زمونږه ربه
إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِي لِلْإِيمَانِ أَنْ اٰمِنُوا بِرَبِّكُمْ
بیشکه مونږ | اوریدو | یو اواز کونکې | چه رابلې خلق | طرف د ایمان ته | چه ایمان راوړنې | په رب خپل |
مونږ دیوسړی اواز واوریدو چې هغه د ایمان طرفته بلنه کوله | اودا ئې وئیل چې خپل رب اومنئ
فَاٰمَنَّا ۖ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا
نو ایمان راوړو مونږ | انې ربه زمونږ | معاف کړه مونږ ته | ګناهونه زمونږ | او لرې کړې زمونږ نه |
نو مونږ دهغه خبره اومنله | انې زمونږه ربه زمونږ کوتاهی معاف کړه | اوزمونږ نه ګناهونه لرې کړه
سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ ﴿﴾ رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا
ګناهونه زمونږ | اووفات کړې مونږ | دنیکانو خلقو سره | انې ربه زمونږ | اوراکړه مونږ ته | هغه |
..................... اودنیکانو دله کښې مو خاتمه اوکړه | زمونږه ربه تا چې کومې .....................
وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ
چه وعده نې کړې ده تاسو | په ذریعه درسولانو خپلو | اومه شرمنده کوه مونږ | په ورځ د قیامت |
وعدې زمونږ باره کښې پیغمبرانو سره کړی دی هغه راسره پوره کړه | اودقیامت په ورځ زمونږ پرده اوساته

| | | |
|---|---|---|
| إِنَّكَ | لَا تُخْلِفُ | الْمِيعَادَ ۝ |
| بيشكه ته | نه كوې خلاف | د وعدې |
| بيشكه ته دخپلې وعدې خلاف نه كوې | | |

**قوله تعالى:: إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ**

**د ايت شان نزول:-** طبراني كښې دى چه ابن عباس ﷺ فرمائي چه قريش يهودو ته ورغلل او د هغوئ نه ئې تپوس اوكړو چه موسى ﷺ تاسو ته كوم معجزات راوړي وو ؟ هغوئ اووئيل چه هغه لرګې چه د هغې نه به بلا جوړيده ، او پړقيدونكې لاس .بيا نصرانيانو ته ورغلل اودهغوئ نه ئې تپوس اوكړو چه عيسى ﷺ تاسو ته كومې نښې راوړې وې ؟ هغوئ جواب كښې اووئيل چه مورزاده ړانده روغول او برګى مرض والا ښه كول ،او مړي ژوندى كول .بيا قريش رسول الله ﷺ ته راغلل او رسول الله ﷺ ته ئې اووئيل چه دعا اوكړئ خمونږ دپاره د صفا غر د سرو شي. رسول الله ﷺ دعا اوكړه او په دې باندې دا آيت نازل شو چه ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ الخ. يعنى څوك چه د قدرت نښې كتل غواړي نوهغوئ دپاره په دې كښې نښې دى .دوى به هم په دې كښې غور كوى نو د هغه لوئې قدرتونو والا الله ﷺ مخكښې به په سجده شي .(١) ليكن دې روايت كښې يو اشكال دې ، هغه دا چه دا سوال مكه مكرمه كښې شوې وو او دا آيت مدينه منوره كښې نازل شوې وو. والله اعلم .

**قوله تعالى:: وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ**

**د الله په كائناتو كښې سوچ فكر كول:-** د آيت مطلب دا دې چه د آسمان په شان اوچت او وسعت والا مخلوق او د زمكې په شان لاندې اوسخت اولوئې مخلوق ، بيا آسمان كښې لوئې لوئې نښې دى . لكه ګردش كونكى او په يو خائې ولاړ ستورى او د زمكې لوئې لوئې پيداوار لكه غرونه او ځنګلونه او ونې او واښه او پتې او مختلف قسمه جاندار او سورى او بيل بيل ذائقې والا او رنګ په رنګ خوشبو والا اومختلف قسم خواصو والا ميوې وغيره . آيا دا ټول قدرتونه يو عقل مند انسان دپاره د سوچ نه دى او د ده رهبرى الله ﷺ طرفته نه كوى ؟ چه دوى د نورو نښو د كتلو ضرورت محسوسوى . بيا د ورځې اوشپې راتلل او كم اوزيات كيدل اوبيا يوشان كيدل ، دا ټولې دالله ﷺ د قدرت كامله پوره پوره نښې دى . هم د دې وجې آخر كښې فرمائي چه په دې كښې عقل والو دپاره كافى نښې دى چه څوك پاك نفس والا هر په څيز باندې نظر اچونكونكې وى.اود بيوقوفانويه شان ړانده او په غوږونو كاڼه نه وى. ددې داحالت بل ځائې بيان فرمائي چه دوى د آسمان او زمكې ډيرې نښې خپلو پښو لاندې راولى او تيريږى او دې كښې غور او فكر نه كوى،دوى كښې اكثر د الله ﷺ منلونه پس بيا هم شرك نه بچ كيږى .

**ذاكرين عقلمند دى:** اوس ددې عقل مندو صفتونه بيانيږى چه دوى په ناسته ملاسته دالله تعالى نوم اخلى

**دعمران بن حصين ﷺ په حديث استدلال:-** دبخارى او مسلم شريف حديث كښې دى چه رسول الله ﷺ عمران بن حصين ﷺ ته اوفرمائيل په ولاړه مونځ كوه ، كه طاقت دې نه وى نوپه ناسته كوه او كه دا هم نه شې كولې نو په ملاسته كوه(٢) يعنى هيڅ حالت كښې هم د الله ﷺ ذكر نه مه غافله كيږه. زړه كښې ، په پټه ، او په ژبه د الله ﷺ ذكر كوه.دا خلق د آسمان او زمكې پيدائش ته ګورى .او د هغه پاك ذات په حكمتونو كښې غور كوى كوم چې د هغه خالق او يو الله ﷺ په قدرت باندې دلالت كوى .

---

(١) اسباب النزول للواحدى : ٢٨٤، الطبرانى : ١٢٣٢٢)-

(٢) صحيح بخارى كتاب التقصير باب اذا لم يطق قاعدا صلى على جنب : ١١١٧، ابوداود: ٩٥٢، ترمذى : ٣٧٢، ابن ماجة: ١٢٢٣)-

**فکراوسوچ د اکابرینو په نظرکښې :-** ① شیخ سلیمان دارانی رحمه الله فرمانی چه د کور نه د وتلو په وخت کښې په کوم کوم څیز څما نظر پریوزی ، خه کورم چه په هغې کښې د الله ﷻ یو نعمت زما دپاره موجود دی . اوزما دپاره په هغې کښې دی

② حسن بصری رحمه الله فرمانی چه دیو ساعت غور او فکر کول د ټولې شپې د قیام نه بهتر دی .

③ فضیل رحمه الله فرمانی چه د حسن رحمه الله قول دی چه غور او فکراو مراقبه یو داسې آئینه ده چه ستا په وړاندې ستا بدئی او نیکئ پیش کوی.

④ سفیان بن عیینه رحمه الله فرمانی چه غور او فکر یو داسې نور دی چه ستا په زړه به اثر کوی او اکثر به نې دا بیت لوستلو چه :

**اذا المرء کانت له فکرة ۞ ففی کل شئ له عبرة**

**ترجمه :-** یعنی چه دکوم انسان باریك بینی او سوچ عادت جوړ شی نوهغه ته هر یو څیز کښې یو عبرت او نښه په نظر راځی .

⑤ عیسی علیه السلام فرمانی چه خوش نصیب دې هغه کس چه د هغه وینا د الله ﷻ ذکر اونصیحت وی او چپ پاتې کیدل ئې غوراو فکر وی او دده کتل عبرت او تنبیه وی.

⑥ لقمان حکیم علیه السلام دا د حکمت نه ډکه مقوله یاد ساتل پکار دی چه تنهائی کښې څوك څومره زیات ناسته کوی نو دومره دده غور اوفکراو انجام بینی هم زیاته وی. او چه څومره دا زیاتیږی نو دومره په انسان لارې زیاتیږی په انسان پرانیستې کیږی او دا به دې جنت ته رسوی.

⑦ وهب بن منبه رحمه الله فرمانی چه څومره مراقبه زیاته وی نو دومره به پوهه زیاته وی. او څومره چه پوهه زیاته وی نو دومره به علم زیات نصیب کیږی. او چه څومره علم زیات وی نو نیك عملونه به هم زیاتیږی .

⑧ عمر بن عبدالعزیز رحمه الله ارشاد فرمانی چه د الله ﷻ ذکر کښې خپله ژبه لوندول ډیر بهتر دی او د الله ﷻ نعمتونوکښې غور اوفکرکول ډیر افضل عبادت دی.

⑨ مغیث اسود رحمه الله مجلس کښې ناست وو او وې فرمائیل چه ائې خلقو ! هره ورځ قبرستان ته ځئ چه تاسو ته خپل انجام معلوم وی. او بیا خپل زړه کښې هغه منظر حاضر کړئی چه تاسو الله ﷻ ته مخامخ ولاړ یئ ،بیا یو ډلې ته جهنم ته د تلو حکم کیږی او یو ډلې ته جنت ته . خپل زړونه دې حال کښې جذب کړئی او خپل بدنونه هم هلته حاضر کړئی . جهنم خپل مخکښې کړئی ، د هغې ستکونه ، د هغې د اور قیدخانې خپل مخکښې کړئی . دې وینا سره به نې په چغوچغو ژړل تردې چه بې هوشه به شو.

⑩ عبدالله ابن مبارك رحمه الله فرمانی چه یو سړی یو راهب سره یو قبرستان او یو د ګند اچولو ځائې کښې ملاقات اوکړو او هغه ته نې اووئیل چه ائې راهبه ! تاسره دې وخت کښې دوه خزانې دی ، یو خزانه د خلقو یعنی قبرستان ،او یو خزانه د مال یعنی ګند اچولو ځائې .

⑪ عبدالله بن عمر رضی الله عنه به ویرانو کورونو طرفته تلواو یو ویرانه دروازې سره به اودریدو او ډیر افسوس او حسرت سره به نې وئیل چه ائې ویرانو کورونو ! ستاسو اوسیدونکی چرته دی ؟ بیا به نې پخپله فرمائیل چه ټول د زمکې لاندې شو ،ټولو د فنا جامونه اوڅکل . صرف د الله ﷻ ذات باقی پاتې کیدونکې دې .

⑫ ابن عباس رضی الله عنه فرمانی چه دوه رکعته چه د زړه اطمینان سره ادا شی د هغه ټول مونځ نه افضل دی چه کوم کښې ټوله شپه تیره شی خو په هغې کښې دلچسپی نه وی.

⑬ خواجه حسن بصری رحمه الله فرمائي چه انې ابن آدم ! ( خپله خيټه دريو حصو کښې تقسيموه ) يو حصه کښې خوراك اچوه ، يوحصه اوبو دپاره پريږده اويو حصه د ساګانو اخستلو دپاره پريږده چه دې سره ته د خپل آخرت باره کښې اود آخرت انجام باره کښې غور اوکړې شې .
⑭ دبعضو حکيمانو قول دې چه کوم يو سړې د دنيا په څيزونو بغير د عبرت حاصلولونه نظر اچوی نو د غفلت اندازې سره د ده دا سترګې کمزورې شی .
⑮ بشير ابن حارث جافی رحمه الله فرمائي که خلقو د الله ﷻ د عظمت خيال کولې نو بالکل به د دوی نه ګناهونه نه کيدل .
⑯ عامر بن عبدقيس رحمه الله فرمائي چه ما ډيرو صحابه کرامو ﷺ نه آوريدلی دی چه د ايمان رڼا مراقبه او غور وفکرکښې ده.
⑰ مسيح ابن مريم سيدنا عيسی ﷺ فرمائي چه انې ابن آدم ! انې ضعيف انسانه ! ته چه چرته هم يې نو د الله ﷻ نه ويريږه او دنيا کښې عاجزی او مسکيني کوه او جمېرت خپل کور جوړ کړه او خپلو سترګو ته ژړا اوښايه ، او خپل بدن ته د صبر عادت اوښايه ، اوخپل زړه غور آوفکر کونکی جوړ کړه ، د صبا د رزق غم نن مه کوه .
⑱ عمر بن عبدالعزيز يو ځل مجلس کښې ناست وو او په ژړا شو. خلقو ترينه ددې وجه اوپوښتله نو دوی اوفرمائيل چه ما د دنيا او د دې په لذتونوکښې او د دې خواهشونوکښې غور آوفکر اوکړو او عبرت مې حاصل کړو ،هرکله چه په نتيجه اورسيدم نو ځما خواهشات ختم شوی وو.
**خلاصه د کلام:-** حقيت دا دی چه دهر سړی دپاره په دې کښې عبرت او نصيحت دې او پندونصيحت دې . حسين بن عبدالرحمان هم خپلو شعرونو کښې دا مضمون ښه بيان کړې دې . نوالله ﷻ د خپلوهغه بندګانو مدح اوتعريف بيان کړو چه کوم د مخلوقاتو نه عبرت او نصيحت حاصل کړی او د هغه خلقو مذمت ئې بيان کړه چه د الله ﷻ په قدرتونو باندې غور نه کوی . دمومنانو مدح کښې بيانيږی چه دا خلق په ناسته په ولاړه د الله ﷻ ذکرکوی ، د زمکې او آسمان په پيدانش کښې غور و فکر کوی او وائی چه انې الله ﷻ ! تا دا مخلوق عبث اوبې کاره نه دې پيدا کړې بلکه د يو مقصد دپآره دې پيدا کړې دې چه خرابوته د خرابو بدله او نيکو ته د نيکو بدله ورکړې .
**قوله تعالی:** رَبَّنَآ اِنَّكَ مَنۡ تُدۡخِلِ النَّارَ............وَلَا تُخۡزِنَا يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ؕ اِنَّكَ لَا تُخۡلِفُ الۡمِيۡعَادَ۝
**د عقلمندو مناجات:-** بيا د الله ﷻ د پاکوالی بيان دې فرمائي چه انې الله ﷻ ته د دې نه پاك يې چه يو څيز بې مقصده پيدا کړې. انې خالق خلق ، انې په عدل اوانصاف سره د کائناتو چلونکيه ، انې د نقصانونو او عيبونو نه پاك ذاته ، مونږ ته د هغه عملونو طاقت او توفيق راکړې چه په هغې سره مونږ ستا د عذاب نه بچ شو او ستا نعمتونو سره جنت ته داخل شو. دوی داسې هم وائی چه انې الله ﷻ ! چه تا څوك جهنم ته بوتلل نو هغوئ برباد شو ،ذليل او خوار شو او د مجمع حشر مخکښې دې دوی رسوا کړل ،د ظالمانو هيڅوك مددګار نشته .او نه د دوی څوك بچ کونکې شته نه ستا د ارادې مخکښې راتلې شی ، انې ربه ! خمونږ د اعلان کونکی اعلان واوريدو چه ايمان طرفته ئې رابلل کول .نو مونږ پرې ايمان راوړو. د دې نه مراد رسول الله ﷺ دې چې فرمائي به ئې په خپل رب باندې ايمان راوړئ ،نومونږ ايمان راوړې دې ، او تابعداری ئې اختيار کړئ. نو خمونږ دايماندار اتباع په وجه خمونږ ګناهونه معاف کړه او د هغې پرده پوشی اوکړه او خمونږ ګناهونه خمونږ نه لرې کړه ، اومونږ صالحان او نيکان جوړ کړه .انې رب ﷻ تا چه مونږ سره د خپل رسول ﷺ په ژبه کومې وعدې کړې دی هغه پوره کړه. او دامطلب هم بيان شوې دې چه کومه وعده تا خپلو رسولانو سره د ايمان راوړوکړې وه ، ليکن رومبئ معنی صحيح ده.

**د الله خپلو نيكانو بندګانو سره وعده پوره كول**:-د مسند احمد يو حديث مبارك كښې دى چه دعسقلان دوه عروسه دى چه يو په كښې دا دې ①هم دلته نه به الله ﷻ دقيامت په ورځ اويازره كسان راوچتوى چه هغوئ سره به حساب كتاب نه وى②هم دلته نه به اويا زره شهيدان اوچتيږى چه دوى به يو وفد جوړوى او الله ﷻ ته به ورځى③ هم دلته به د شهيدانو لښكرې وى چه د دوى سرونه به پريكړې شوى د دوى په لاسونو كښې وى اوددوى د ځټونو نه به وينې بهيږى اودا به وائى چه انې الله ﷻ! تا چه مونږ سره دخپلو رسولانوپه ذريعه كومې وعدې كړې وې هغه پوره كړه. مونږ د قيامت په ورځ مه رسوا كوه ،ته وعده خلافئ نه پاك ئې . الله ﷻ به اوفرمائى چه ځما بندګان رېښتونى دى ،دوى ته په نهر بيضه كښې غسل وركړئې .دوى چه په دې كښې غسل اوكړى نو پاك صاف او ښكلى رنګك والا به شى . اودوى دپاره به ټول جنت مباح وى. چه چرته غواړى نو خوراك به كوى اوچه چرته تلل غواړى نو تلئ به شى(١) دا حديث غريب دې او بعضې وائى چه موضوع دې . والله اعلم . مونږ د قيامت په ورځ ټوله ډله كښې مه رسوا كوه. ستا وعدې رېښتونې دى او تا چه د خپلورسولانو په ذريعه كومې وعدې كړې دى هغه اټل دى ، د قيامت ورځ به ضرور راځى . نوته مونږ ته د هغه ورځې نه نجات راكړه.رسول الله ﷺ فرمائى چه بنده باندې به غصه او ملامتيا او شرمندګى دومره زياته شى اوداشان به دالله تعالى مخكښې اودرولې شى او قاتل او معقول به كړې شى چه دې به اووائى چه كاش ما جهنم ته اوغورزوى .(٢) (ابويعلى ). ددې حديث مبارك سند هم غريب دې .

**دتجهدو په وخت كښې دا اياتونه لوستل**:-د احاديثو نه دا هم ثابت دى چه كله به رسول الله ﷺ د تهجدو دپاره پاسيدل نو د سورة آل عمران دا لس آيتونه به ئې لوستل.

**هم دا عمل په بل روايت سره** :- بخارى شريف كښې دى چه ابن عباس ﷺ فرمائى ما خپلې ترور ميمونه رضي الله عنها كره شپه تيره كړه ، دا د رسول الله ﷺ بى بى وه. كله چه رسول الله ﷺ راغلو نو څه وخت پورې ئې ميمونې رضي الله عنها سره خبرې كولې او بيا اوده شو، كله چې د شپې آخره شوه نو رسول الله ﷺ پاسيدو او آسمان طرفته ئې نظر اوكړواو ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ الخ﴾تردسورة آخره پورې ئې تلاوت اوفرمائيلو.بياپاسيدو او مسواك سره ئې استعمال كړو او اودس ئې اوكړو اويوولس ركعته مونځ ئې اداكړو.كله چه ئې د بلال حبشى ﷺ د اذان آواز واوريدو نو دوه ركعته ئې د سحر سنت ادا كړل او بيا ئې جمات ته تشريف يوړو او خلقو ته ئې د سحر مونځ وركړو.(٣)

**دابن عباس د نبى كريم ﷺ سره اودريدل**:- صحيح بخارى كښې دا روايت بل ځائې كښې هم دې چه د بسترې لنډوالى كښې څه او پلن والى كښې رسول الله ﷺ او د رسول الله ﷺ زوجه صاحبه ام المومنين ميمونه رضي الله عنها څملاستل نيمې شپې ته نزدې يا څه پس رسول الله ﷺ پاسيدو او خپلو لاسونو مباركو سره ئې خپلې سترګې مباركې مخلې ، او ددې لسو آيتونو مباركو تلاوت ئې اوفرمائيلو او بيائې د زوړند مشكيزې نه اوبه واخستې او په ښه شان ئې اودس اوكړو او مونځ ته اودريدو . څه پاڅيدم او د رسول الله ﷺ ښى طرفته د رسول الله ﷺ اقتداء كښې مونځ دپاره اودريدم . رسول الله ﷺ خپل ښې لاس څماسر باندې كيخودو او څه ئې دغوږ نه اونيولم او څه ئې خپل ګس طرفته كړم .او دوه ركعته ئې شپږ ځل ادا كړل يعنى دولس ركعته مو اوكړل. بيا ئې وتر اوكړل او څملاستو تر دې چه د موذن د آذان آواز

---

(١) احمد : ٢٧٦/٣،)-
(٢) مسند يعلى : ١٧٧٦،)-
(٣) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة آل عمران باب قوله ( ان فى خلق السموات ...) : ٤٥٦٩؛ صحيح مسلم: ٧٦٣)-

نې واوريدو اوموذن راغلواو ورته نې اطلاع ورکړه. رسول الله ﷺ اودريدلو او دوه رکعته نې ادا کړل او بهر لاړل اود سحرمونځ نې ادا کړو.[1]

**د ابن عباس ﷛ د رسول الله ﷺ په کور کښې شپه تيرول:-** د ابن مردويه دې حديث کښې دی عبدالله ﷛ فرمائی چه ما ته خما پلار عباس ﷛ اوفرمائيل چه تاسو نن شپه د رسول الله ﷺ کور کښې تيره کړه. او د رسول الله ﷺ د مونځ کيفيت اوګوره. د شپې چه کله ټول خلق د ماسختن مونځ دپاره لاړل نو څه ناست اووم. هرکله چه رسول الله ﷺ تلو کښې شو نو وې فرمائيل څوک نې؟ عبدالله ئې. ما اوونيل چه آو جې. وې فرمائيل چه ولې ولاړ نې ؟ ما اوونيل چه د پلار حکم دې چه شپه د رسول الله ﷺ کور کښې تيره کړه. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ښه راځه . کور ته چه راغلو نو وې فرمائيل چه بستره خوره کړئ . د تاپ تکيه راغله او رسول الله ﷺ په هغې سرمبارک کيخودو او څملاستو تر دې چه ما د رسول الله ﷺ د خراټي آواز واوريدو ، بيا رسول الله ﷺ پاسيدو او نيغ کيښناستو او آسمان طرفته نې اوکتل او درې ځل نې ﴿سبحان الملك القدوس﴾ اوونيل . بيا نې د سورة آل عمران آخرى لس آيتونه تلاوت کړل ، او بل روايت کښې دى چه د تلاوت نه پس رسول الله ﷺ دا دعا اوفرمائيله چه :

**(اللهم اجعل فى قلبى نورا وفى سمعى نورا وفى بصرى نورا و عن يمينى نورا و عن شمالى نورا ومن بين يدى نورا ومن خلفى نورا ومن فوقى نورا ومن تحتى نورا واعظم لى نورا يوم القيامة)** (ابن مردويه) دا دعا بعضو صحيح طريقو سره هم مروى ده.[2]

**د لسو اياتونو په نزول د رسول الله ﷺ ژړا:-** ددې آيت د تفسير په شروع کښې د طبرانى حوالې سره تير شوى دى د هغې نه معلوميږى چه دا آيت مکى دې . ليکن مشهور د دې خلاف دې. يعنى دا چه دا آيت مدنى دې . اوددې دليل کښې دا حديث مبارك پيش کيدې شى کوم چې ابن مردويه کښې دې چه عطاء ﷛،ابن عمر ﷛ او عبيد بن عمير ﷛ عائشه ﷝ ته راغلو ،د دوى او د عائشه ﷝ مينځ کښې پرده وه. عائشه صديقه ﷝ تپوس اوکړو چه عبيد ته ولې نه راځې ؟ عبيد اوفرمائيل چه آماجان صرف په دې وجه د شاعر قول دې چه (زرغبا تزددحبا) يعنى لږ لږ راځه چه محبت زيات شى . ابن عمر ﷛ اوفرمائيل چه انې مور بى بى مونږ ته هغه عجيبه خبره اوکړه چه د رسول الله ﷺ ذات مبارك کښې تاسو کتلى وى .عائشه صديقه ﷝ په ژړه شوه او وې فرمائيل چه د رسول الله ﷺ ټول.کارونه عجيبه وو. يو واقعه واورئ . يو ځل د شپې خما نمبر کښې رسول الله ﷺ ته راغلواو ماسره څملاستو ، بيا نې ماته اوونيل چه انې عائشه ﷝ څه د خپل رب څه عبادت کول غواړم ما پريږده . ما اوونيل چه يارسول الله ﷺ څه ستاسو قرب غواړم اودا هم خما خوښ ده چه رسول الله ﷺ د الله ﷻ عبادت اوکړى. نو رسول الله ﷺ پاسيدو او يو مشك نه نې اوبه واخستې او اودس نې اوکړو اومونځ ته اودريدل ، بيا چه کله نې ژړا شروع کړه نو دومره نې اوژړل چه ږيره مبارکه نې لمده شوه. بيا سجدې ته لاړل او دومره نې اوژړل چه زمکه لمده شوه ،بيا په اړخ څملاستل او ژړل نې تر دې چه بلال ﷛ راغلو او مونځ دپاره ئې رسول الله ﷺ اوبللو او کله چه نې د رسول الله ﷺ اوښکې اوليدې نو وې فرمائيل چه انې د الله ﷻ رسوله ﷺ تاسو ولې ژاړئ ؟ الله ﷻ ستاسو ټول مخکښې روستى ګناهونه معاف کړى دى . رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه انې بلال ﷛ ! څه به ولې نه ژاړم ؟ ما باندې نن شپه دا آيت نازل شوې دې چه ﴿اِنَّ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾. هلاکت دې هغه سړى دپاره چه دا آيت اولولى او بيا هم غور اوتدبر نه کوى .

---

[1]) صحيح بخارى كتاب التفسير باب ( ربنا انک من تدخل النار ......) : ٤٥٧١، صحيح مسلم: ٧٦٣)–

[2]) صحيح بخارى كتاب الدعوات باب الدعاء اذا انتبه الليل : ٦٣١٦، صحيح مسلم : ٧٦٣، ابو داود : ٥٠٤٣)–

**هم دا واقعه په بل روایت کښې:-** دعبد بن حمید تفسیر کښې هم دا حدیث شته دې ، په هغې کښې دی چه کله مونږ عائشه رضی الله عنها ته ورغلو نو مونږ ورته سلام اوکړو نو عائشه رضی الله عنها تپوس اوکړو چه څوك دی ؟ مونږ ورته خپل نوموونه اوخودل . اوآخر کښې دا هم دی چه مونځ نه پس رسول الله ﷺ په خپل ښی طرف ملاست وو او د خپل رخسار لاندې ئې لاس مبارك ایښودې وو او ژړل ئې تردې چه اوښکو سره زمکه لمده شوه. اود بلال رضی الله عنه جواب کښې رسول الله ﷺ دا هم فرمائیلی وو چه آیا خه دې شکر گزرار بنده جوړ نه شم ؟او د آیتونو نازلیدو باره کښې (عَذَابَ النَّارِ) پورې رسول الله ﷺ تلاوت کړې وو.([1])

دابن مردویه په یو ضعیف سند سره منقول روایت کښې د ابوهریره رضی الله عنه نه مروی دی چه رسول الله ﷺ به د سورة آل عمران آخری لس آیتونه هره شپه لوستل ([2])، دې روایت کښې مظاهر ابن اسلم ضعیف دې .

| |
|---|
| فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّي |
| نو په جواب کښې اوونیل ا هغوی ته ا رب دهغوی ا چه زه ا |
| نو الله پاك دهغوی دعاقبوله کړه ا واورته ئې اوونیل چې زه به |
| لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنكُم مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ |
| نه ضائع کوم ا عمل ا دیو عمل کونکي ا ستاسو نه ا که نارینه وی ا اوکه زنانه وی ا |
| تاسو کښې دهیچا عمل نه ضائع کوم ا که نارینه وی اوکه زنانه ا ............تاسو یول |
| بَعْضُكُم مِّن بَعْضٍ فَالَّذِينَ هَاجَرُوا |
| (څکه چه) ځینې ستاسو د ځینونورو نه دی ا نو هغه کسان چه هجرت ئې کړې دې (دوطن خپل نه) ا |
| دیو بل حصه یئ ا نو هرچا چې زما دپاره کور کلئ پریخودې وی |
| وَأُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَأُوذُوا فِي سَبِيلِي |
| او ایستلي شوې دی ا د کورونو خپلونه ا او تکلیفونه ورسولي شوی دی ا په لار څما کښې ا |
| او د کورونو نه ویستلي شوي وی ا او زما په لار کښې ئې تکلیفونه برداشت کړی وی |
| وَقَاتَلُوا وَقُتِلُوا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ |
| او جنګونه ئې کړی دی ا او وژلي شوې دی ا خامخا به لرې کړم زه ا دهغوی نه ا ګناهونه دهغوی ا |
| او جنګیدلي وی ا او وژلي شوی وی ا زه به ضرور دهغوی ګناهونه معاف کړم |
| وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ثَوَابًا |
| او خامخا به داخل کړم هغوی ا جنتونو ته ا چه بهیږی به ا لاندې دهغې نه ا نهرونه ا دابدله ده ا |
| او داسي باغونو ته به ئې داخل کړم ا چې دهغې لاندې ولې بهیږی ا الله پاك سره دهغوی ثواب مقرر دې |
| مِّنْ عِندِ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ عِندَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ |
| دطرفه الله تعالی نه ا او الله چه دې ا د هغه سره دې ا بهترینه ا بدله |
| او الله پاك سره ډیر ښه ثواب موجود دې ا |

[1]) عبد بن حمید.-

[2]) الیوم واللیلة لابن السنی ، : ٦٨٨ )

**قوله تعالى:: فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ**

**الله ﷻ د دعاګانو قبلونکی دي:-** دلته (اسْتَجَابَ) په معنی د (اجاب) دي. او دا عربئ کښې برابر او مروج نه وائي.ام سلمه رضي الله عنها يوه ورځ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه څه خبره ده چه د ښځو چرته هم په قران پاك کښې ذکر نشته ؟ په دې باندې دا آيت نازل شو.د انصار بيان دې چه ښځو د ټولو نه رومبی مهاجره چه هودج ته راغله هغه ام سلمه رضي الله عنها وه.(١) د دې مور بی بی نه دا هم مروی دی چه دا آيت د ټولو نه آخر کښې نازل شوي دې .د دې آيت مطلب دا دې چه صاحب عقل او صاحب ايمان خلقو چه کله الله ﷻ نه دعاګانې اوکړې د کومو ذکر چې رومبنی آيتونو کښې وو نو الله ﷻ هم د دوی ټول مرادونه پوره کړل.د دې په وجه دا آيت د " ف " نه شروع شو. لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي﴾ الخ يعنی کله چې خما بندګان ستا نه زما په باره کښې سوال کوی نو ته ورته اووايه چه څه خو تاسو نه ډير نزدې يم ،کله چه څوك ځما نه غواړي نو څه د هغه دعا قبلوم. نو دوی ته پکار دی چه خما نه اوغواړي او ماباندې ايمان راوړي ،څه لرې نه ده چه دوی ته رشد او هدايت نصيب شي.

**قوله تعالى:: أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنكُم مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ**

**د عمل نه ضائع کولو وعده:-** بيا د قبوليت او دعا تفسير کيږی اوالله ﷻ خبر ورکوی چه څه د يو عامل عمل نه بې ځايه کوم بلکه هر يو ته پوره پوره بدله ورکوم. که ښځه وی او که سړې ، هريو په ثواب او د عملونو بدله کښې يوشان دې .

**قوله تعالى:: فَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَأُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَأُوذُوا فِي سَبِيلِي**

**دمهاجرينو درجه:-** نو کوم خلق چه د شرك ځائې پريږدی او د ايمان ځائې ته راشی ، دار الکفر نه هجرت اوکړي او خپل رونړه ،دوستان، ګوانډيان د خپل الله ﷻ په نوم پريږدی ،د مشرکانو تکليفونه برداشت کوی اوآخر عاجزه شي خو بيا هم ايمان نه پريږدی بلکه د خپل خوږ وطن نه زړه صبر کړی. دوئ د خلقو هيڅ نقصان نه وو کړې چه د دې بدله کښې دوی ته تکليف ورکوی بلکه د دوی صرف دا قصور ووچه خما په لار روان وو صرف ځما د توحيد په وجه ئې د دنيا سره دشمنی قبوله کړه. خما په لاره تلو سره رنګ په رنګ تکليفونوسره دوی مخ شول. لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَن تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ رَبِّكُمْ﴾ يعنی داخلق رسول الله ﷺ اوتاسو صرف په دې وجه د وطن نه اوباسی چه تاسو ايمان راوړې دې اوهغه پاك ذات ستاسو رب دې .او ارشاد دې چه ﴿وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَن يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ﴾ يعنی دوی سره ئې دښمنی په دې وجه وه چه دوی په الله عزيز اوحميد باندې ايمان راوړ .

**قوله تعالى:: لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ**

**شهيد ته د قرض نه سوا ټول ګناهونه معاف کيدل:-** بيا فرمائی چه دوی جهاد هم اوکړو او دوی شهيدان هم شو.دا اعلی درجه ده او اوچته مرتبه ده چه د الله ﷻ لار کښې جهاد دې ، سورلی ختميږی او خوله ئې ښاورې سره ښاورې شی .بخاری او مسلم شريف کښې دی چه يو سړی اووئيل چه يارسول الله ﷺ که څه په نيك نيت اوبهادرئی سره جهاد اوکړم او روستو نه شم او بيا شهيد شم نو آيا الله ﷻ به ځما ګناهونه معاف کړی.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه آو. بيا رسول الله ﷺ هغه نه تپوس اوکړو تا چې څه اووئيل هغه بيا اووايه.نوهغه بيا خپل سوال دوباره کړو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه آو (ګناهونه به دې معاف کړی) خو قرض نه معاف کوی. دا خبره ماته جبريل عليه السلام اوس اوکړه.(٢)

---

(١) حاکم : ٢/٣٠٠)-

(٢) صحيح بخاری کتاب المغازی باب غزوة احد:٤٠٤٦، صحيح بخاری مسلم:١٨٨٥، نسائی : ٣١٥٦)-

**قوله تعالی:** : وَلَأُدۡخِلَنَّهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ ثَوَابٗا مِّنۡ عِندِ ٱللَّهِۚ
بیادلته فرمائی چه څه به ددوی بدئ معاف کړم او دوی به جنت ته داخل کړم. چه په هغې کښې څلور واړه طرفته نهرونه بهیږی په هغې کښې په چا کښې پیی دی او چا کښې شهد اوچاکښې شراب او چا کښې صفا اوبه او دغه شان نعمتونه دی چه نه به چرته سترګو کتلی وی اونه به غوږونو آوریدلی وی اونه به چرته د انسان زړه کښې ددې خیال تیر شوې وی.دا د الله ﷻ د طرفنه ده بدله . ظاهره ده چه کوم ثواب د هغه شهنشاه عالی طرفنه وی نو هغه به څومره زبردست وی او بې انتها به وی ؟ لکه دیو شاعر قول دې که هغه عذاب ورکړی نو هغه هم هلاکونکې او بربادونکې دې او که انعام ورکړی نو هغه هم بې حسابه ،د قیاس نه زیات . ځکه چه د هغه ذات بې پرواه دې . د نیکو اعمالو بدله الله ﷻ سره ده .

**خلقو ته نصیحت**.- شداد بن اوس رضی الله عنه فرمائی چه‌ې انې خلقو ا د الله ﷻ په قضا باندې غمژن او بې صبره کیږنی مه.واورئی مومن باندې ظلم او جبر نه کیږی . که تاسوته خوشحالی او رحمت اورسی نو په هغې دالله ﷻ حمد بیان کړئی او د هغه شکر پرې اوباسئ .او که تاسوته څه مصیبت اورسی.نو د صبر لمن مه پریږدئی. او دنیکئ او ثواب خواهش کوئی الله ﷻ بهترین بدله او ثواب ورکونکئ دې

**دکافرو راحت ته کتل نه دی پکار**: :- الله ﷻ فرمائی چه انې نبی ﷺ! د دې کافرانو بد مستئ او ددوی ناز ونعم د دوی راحت او آرام او د دوی خوشحالئ طرفته مه ګوره نزدې ده چه دا ټول فنا کیدونکی دی او دوی دپاره به صرف د دوی بدعملونه د عذاب په صورت کښې باقی پاتې شی . دا ټول نعمتونه د آخرت مقابله کښې هیڅ نه دی . هم د دې مضمون ډیر آیتونه قران کریم کښې دی ① لکه ﴿مَا يُجَٰدِلُ فِيٓ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فَلَا يَغۡرُرۡكَ تَقَلُّبُهُمۡ فِي ٱلۡبِلَٰدِ﴾ یعنی کافران د الله ﷻ آیتونو کښې جنګ کوی د دوی ښارونو کښې ګرزیدل راګرزیدل دې تاسو په دهوکه کښې وانه چوی② بل ځائې کښې ارشاد دې ﴿قُلۡ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَفۡتَرُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلۡكَذِبَ﴾ الخ : یعنی کوم خلق چه په الله ﷻ پورې دروغ تړی هغوئ فلاح نه مومی . هسې دې دا شان دنیا کښې فائده واخلی لیکن آخری راتګ خو خمونږ طرفته دې بیا به مونږ د دوی دکفر بدله کښې دوی ته سخت عذاب ورکړو③ بل ځائې کښې ارشاد دې چه مونږ به دوی ته لږه شان فائده ورکړو اوبیا به ئې دنقصان والا عذاب طرفته راکاږو بې بس به ئې کړو④ اوبل ځائې ارشاد دې چه دې کافرانو ته لږ مهلت ورکړه .⑤او بل ځائې کښې ارشاد دې چه آیا هغه سړې د ښه وعدې موندلووالا دې او چه کوم دنیا کښې آرام سره ژوند تیروی . اود قیامت په ورځ به عذاب کښې حاضریدو والا برابر کیدیشی ؟

| |
|---|
| لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ |
| ادهوکه دې نه کړی تا اګرزیدل ا |
| ته په دې مه دهوکه کیږه چې |
| ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِي ٱلۡبِلَٰدِ ۝١٩٦ مَتَٰعٞ قَلِيلٞ ثُمَّ مَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُۚ |
| دهغه کسانو اچه کافران دی اپه ملکونو کښې ا(دا) فائده ده ا لږه ا بیا اځائې دهغوئ ا دوزخ دې ا |
| چې کافر په ښارونو کښې ګرځی ا دادیو څو ورځو مزې دی ا اوبیا ددوئ ځائې دوزخ دې |
| وَبِئۡسَ ٱلۡمِهَادُ ۝١٩٧ لَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوۡاْ رَبَّهُمۡ لَهُمۡ جَنَّٰتٞ |
| اوډیر خراب ځائې دې دقرار الیکن هغه کسان اچه ویریږی ا دخپل رب نه ادوی دپاره دی باغونه ا |
| اوډیربد ځائې دې ا خوځوک چې دالله پاک نه ویریږی ا هغوئ دپاره داسې باغونه تیار شوی دی |

تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا نُزُلًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ

چه بهیږی به| لاندې دهغې نه| نهرونه |اوهمیشه به وی| په هغې کښې |میلمستیاده| د طرفه دالله تعالی|

چې دهغې لاندې به ولې بهیږی | دوئ به په هغې کښې همیشه اوسیږی | دغه د الله د طرفه میلمستیاده

وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَیْرٌ لِّلْاَبْرَارِ ﴿۱۹۸﴾

او څه چه دالله سره دی| (هغه) بهتر دی|دپاره دنیکانو

اونیکانو دپاره هغه څه بهتر دی چې دالله پاک سره موجود دی|

**قوله تعالى:: وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَیْرٌ لِّلْاَبْرَارِ﴿﴾**

**د مؤمنانو ذکر:-** چونکه د کافرو دنیاوی او د آخرت حال بیان شو نو اوس دې سره د مومنانو ذکر کیږی چه داخلق به د قیامت په ورځ د نهرونو په جنتونو کښې وی.

**د ابرابر وجه تسمیه:-** ①ابن مردویه کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه دوی ته ابرار په دې وجه وائی چه دوی مور پلار او اولاد سره نیك سلوك کوی. چه څنګه ستا د پلار تاباندې حق دې دغه شان ستا د اولاد تاباندې حق دې .هم دا روایت ابن عمر ﷺ نه موقوفًا هم مروی دې .او موقوف کیده ئې زیات صحیح ښکاری ،والله اعلم .

② حسن رحمه الله فرمائی چه ابرار هغه خلق دی چه کوم تکلیف نه ورکوی .

**د نیکانو دپاره اخرت غوره دې:-** عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی چه هر سړی دپاره مرګ ښه څیز دې که هغه سړې نیك وی او که بد .که نیك وی نوده دپاره الله ﷻ سره هغه څه دی چه بهتر دی او که بد وی نو د ده د ګناهونو په وجه چې به د الله ﷻ عذاب د ده په ژوند کښې زیاتیدل هغه د ګناهونو سلسله ختمه شوه ، د رومبی دلیل دا قول دالله ﷻ ﴿وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَیْرٌ لِّلْاَبْرَارِ﴾ دې .او د دویم دلیل ﴿وَلَا یَحْسَبَنَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّمَا نُمْلِیْ لَهُمْ خَیْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ ؕ﴾الخ یعنی کافر دې خمونږ مهلت خپل حق کښې بهتر نه ګڼړی،دا مهلت د دوی ګناهونو کښې زیاتوالې راولی او د دوی دپاره رسوا کوونکې عذاب دې . ابوالدرداء ﷺ نه هم دا مروی دی .

وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

| اوبیشکه | ځینې داهل کتابو نه|

| اوپه اهل کتابو کښې بعضې داسې دی

لَمَنْ یُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَیْكُمْ

خامخا هغه څوک دی|چه ایمان لری| په الله تعالی|او په هغه کتاب| چه نازل کړې شوې دې تاسوته|

چې الله پاک منی | او هغه کتاب هم منی چې تاسو ته راغلې دې (یعنی قران پاک )

وَمَآ اُنْزِلَ اِلَیْهِمْ خٰشِعِیْنَ لِلّٰهِ ۙ لَا یَشْتَرُوْنَ

اوپه هغه کتاب| چه نازل کړې شوې دې | هغوئ ته | یریدونکی دی |دالله تعالی نه| نه اخلی |

اوهغه هم منی چې هغوئ ته رالیږلې شوې دی | الله پاک ته عاجزی کوی | دالله پاک

بِاٰیٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِیْلًا ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ

په آیتونو دالله تعالی| قیمت لږ | داکسان چه دی| ددوی دپاره | اجر د دوی دې | ادرب ددوی سره|

آیتونه (د دنیا) په لږ قیمت نه خرڅوی | دهغوئ بدله دخپل رب سره د ه.............

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ اللَّهَ | سَرِيعُ | الْحِسَابِ ۝ | يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ | ءَامَنُوا | اصْبِرُوا |
| بیشکه الله تعالی | زراغستونکي | دحساب دي | اثې هغه کسانو | چه ایمان موراوړي دي | صبر کوئ |
| اوالله پاک زر حساب کونکي دي | | | ..............اثې دایمان خاوندانو صبر کوئ | | |
| وَصَابِرُوا | | وَرَابِطُوا | | وَاتَّقُوا اللَّهَ | |
| اوټینګ اوسئ (دباطل په مقابله کښې) | | او ملاتړلي تیا اوسئ (دحق په خدمت کښې) | | او ویریږئ دالله نه | |
| (اودکفر مقابلې ته) پښې مضبوطې کړئ | | اوملاګانې کلکې اوتړئ | | اوالله پاک نه ویریږئ | |
| لَعَلَّكُمْ | تُفْلِحُونَ ۝ | | | | |
| امید دي چه تاسو | کامیابي بیاموئ | | | | |
| امیدي چې (دعذاب نه به) خلاصي بیاموئ | | | | | |

قوله تعالى: ﴿إِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ لَمَن يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُمْ﴾

**په اهل کتابو کښې دایمان دارو کامیابي.** الله ﷻ د اهل کتابو د هغه فرقې تعریف کوی چه کومو پوره ایمان راوړې دي .قران کریم هم منې او د خپل نبی ﷺ کتاب باندې هم ایمان راوړی. د الله ﷻ ویره د دوی په زړونوکښې وی او د الله ﷻ د احکامو پابندئ کښې ډیر په شوق سره مشغول اوسی. الله ﷻ ته عاجزی او فریاد کوی.د رسول الله ﷺ پاکې اوښکاره نښې نه پټوی کومې چه د دوی کتابونوکښې دی . بلکه هر یو ته ئې ښائي.او ورته ترغیب ورکوی چه رسول الله ﷺ اومنئ. داسې ډلې ته به الله ﷻ اجر ورکوی که یهود دی او که نصرانیان دی.

① سورة قصص کښې دا مضمون داسې بیان شوې دې چه ﴿الَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ الْكِتَٰبَ﴾ الخ. چه چا ته مونږ دې نه مخکښې کتاب ورکړې وو هغوئ په هغې باندې هم ایمان لری اوکله چه دا کتاب په هغوئ لوستلې شی نووائی چه مونږ په دې باندې هم ایمان راوړو ، دا برحق او خمونږ د رب طرفه دې . مونږ خو مخکښې نه دا منلو . دوی ته به د دوی د صبر دوچند اجر ملاویږی.

② اوبل ځائې ارشاد دې چه چاته مونږ کتاب ورکړې دې او هغوی دغه کتاب په صحیح طریقه لولی نو هغوئ قران باندې هم زر ایمان راوړی. الخ.

③ بل ځائې ارشاد دې چه ﴿وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ ۝﴾. د موسی ﷺ قوم کښې هم یوه ډله د حق هدایت کونکی او د حق سره عدل کونکی دی .

④ اوبل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿لَيْسُوا سَوَآءً﴾ الخ. یعنی اهل کتاب ټول یو شان نه دی ، په دوی کښې یوه ډله د شپې هم کتاب الله لولی او سجدې کوی.

⑤ اوبل ځائې کښې دی چه اثې نبی ﷺ ! ته اووایه چه اثې خلقو ! تاسو که ایمان راوړئ اوکه نه راوړئ ، مخکښې چه چا ته علم ورکړې شوې دې ، کله چه دوی ته د قران پاك آیتونه تلاوت کړې شی نو هغوی په سجدو کښې پریوځی او وائی چه خمونږ رب پاك دې او یقینًا د هغه وعده ریښتونې ده او باقی پاتې کیدونکې ده. دا خلق په ژړا ژړا سجدې ته ځی او خشوع او خضوع کښې مشغول وی. دا صفتونه یهودو کښې موندلې شوی دی اګرچه ډیر کم خلق داسې وو.

**د یهودیانو باعمله عالمان.** عبدالله بن سلام ﷺ او د دوی په شان نور ایماندار یهودیان عالمان .لیکن د دوی تعداد لس هم نه وو.خو نصرانیان اکثر هدایت طرفته راغلې وو. او د حق منونکی وو لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَىٰ حَيَوٰةٍ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا﴾ نه تر ﴿خَٰلِدِينَ فِيهَا﴾ آخری آیت

پوري .مطلب دا دي چه ایمان والو سره عداوت او دښمني: کښې د ټولو نه زیات یهودیان دي او مشرکانو او ایمان والو سره محبت والو کښې نصرانیان مخکښې مخکښې دی. الخ.

**د نجاشی متاثر کیدل:-** اوس فرمائی چه داسې خلق الله ﷺ په نیز د اجر عظیم مستحق دی. حدیث مبارك کښې دی چه جعفر بن ابی طالب ﷺ چه کله سورة مریم تلاوت اوفرمائیلو نو د نجاشی او د بادشاه د اراکینو اودنصرانیانو عالمانو مخکښې نو دوی باندې رییدل راغلل نو ټول حاضرین سره د بادشاه په ژړا شو.او دومره متاثره شوچه په ژړا ژړا د دوی ږیرې لمدې شوې. (١)

**په نجاشی غائبانه جنازه:-** صحیح بخاری اومسلم کښې دی چه د نجاشی بادشاه د وفات خبر رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو ﷺ ته ورکړو او ورته ئې اوفرمائیل چه ستاسو رور حبشه کښې وفات شوی دی ،د هغه د جنازې مونځ ادا کړئی . او رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو ﷺ سره میدان ته اووتلو او صفونه ئې جوړ کړل او د هغه د جنازې مونځ ئې ادا کړو(٢).

**د ایت شان نزول:-** ابن مردویه کښې دی چه کله نجاشی وفات شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه خپل رور دپاره استغفار اوکړئی نو بعضو خلقو اووئیل چه اوګورئی رسول الله ﷺ مونږته د نصراني دپاره د استغفار کولوحکم کوی چه په حبشه کښې وفات شوی دې . نودې باندې دا آیت نازل شو.(٣) یعنی د ده دااسلام خبرقران پاك ورکړو.

**شان نزول په روایت سره:-**ابن جریر کښې دی چه د ده دمرګ خبر رسول الله ﷺ ورکړوچه ستاسورور اصحمه وفات شوې دې.بیارسول الله ﷺ بهر تشریف یوړو او څنګه چه دجنازې مونځ کیږي نوهغه شان ئې دجنازې مونځ ځلورو تکبیرونو سره اداکړل.نودې باندې منافقانواعتراض اوکړو او دا آیت نازل شو.

**دنجاشی د قبر نه رڼرا ختل:-** ابوداود کښې دی چه عائشه رضي الله عنها فرمائی چه د نجاشی د وفات نه پس مونږ دا آوریدل چه د هغه په قبر باندې نور ښکاری. (٤)

**دنجاشی په الله توکل:-** مستدرک حاکم کښې دی چه د نجاشی یو دښمن د ده د سلطنت نه نجاشی باندې حمله اوکړه نو مهاجرینو اووئیل چه ته دوی سره مقابلې ته تیار شه مونږ هم تاسره یو. ته به خپل بهادری وینې.اوتا چه کوم ښه سلوك مونږسره کړې دې دهغې بدل به مونږ خلاص کړو. لیکن نجاشی اووئیل چه د خلقو په مدد سره د بچ کیدو نه د الله ﷺ په مدد سره بچ کول بهتر دی . دې باره کښې دا آیت نازل شو(٥)

**د ایت مصداق څوك دی؟:-** ① مجاهد رحمه الله فرمائی چه د دې نه مراد اهل کتاب مسلمانان دی (٦) ② حسن بصری رحمه الله فرمائی چه ددې نه مرادهغه اهل کتاب دی چه د رسول الله ﷺ نه مخکښې وو. اسلام نه خبر وو او هغوئ ته د رسول الله ﷺ د اطاعت شرف هم حاصل شو. نو هغوئ ته اجر هم دوچنده ملاؤ شو.یود رسول الله ﷺ نه د مخکې ایمان او بل په رسول الله ﷺ باندې ایمان .

**درې قسمه خلقو ته دوچنده اجر ملاویدل:-**بخاری او مسلم شریف کښې ابوموسی نه مروی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه درې قسمه خلقوته به دوچند اجرملاویږی① په هغوئ کښې یواهل کتابوهغه کس دې هغه پخپل نبی باندې ایمان راوړې وو اومابادې ئې هم ایمان راوړو(٧)اوباقی دوه ئې هم ذکر کړل

---

(١) سیرة ابن هشام : ٣٥٧/١)-

(٢) صحیح بخاری کتاب المناقب الانصار باب موت النجاشی : ٣٨٧٧ صحیح مسلم: ٩٥١)-

(٣) الطبرانی فی الاوسط : ٣٦٨٨، وسنده حسن)-

(٤) ابوداود کتاب الجهاد باب فی النور یری عند قبر الشهید : ٢٥٢٣، )-

(٥) حاکم : ٣٠٠/٢ )-

(٦) الطبری: ٤٩٩/٧)-

(٧) صحیح بخاری کتاب العلم باب تعلیم الرجل امته واهله: ٩٧، صحیح مسلم: ١٥٤، ابوداود :٢٠٥٣، ترمذی: ١١١٦، نسائی: ٣٣٤٦)

**قوله تعالى:: لَا يَشْتَرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا**
**د الله په اياتونو دنيا نه اخستل:-** د الله ﷻ آيتونه په لږ قيمت نه خرڅوي يعنې دوی سره چه کوم علم دې هغه نه پټوي .لکه څنګه چه دوی کښې د يو رذيل جماعت طريقه وه بلکه دا خلق خودا ښه خوروی او ظاهروی.د دوی بدلـه د دوی رب سره ده. الله ﷻ زر حساب کونکی دې .يعنې زر راغونډونکې او ګيرونکې او شميرونکې.
**قوله تعالى:: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا**
**د درې څيزونو حکم:-** بيا فرمائي چه خپل خوښ دين اسلام باندې کلك اوسئ او په راحت او مصيبت هيڅ حال کښې دا مه پريږدئي تر دې چه تاسو ته مرګ راشي نو چه هم په دې باندې درته مرګ راشي . او خپل هغه دښمنانو سره هم صبرنه کاروا خلئ چه کوم خپل دين پټوي.امام حسن بصري رحمه الله وغيره علماء سلف هم دا تفسير بيان کړې دې .
**د مرابطه معنی:-** ①(مرابطه) واني د عبادت په ځاني کښې هميشه اوسيدو او ثابت قدم اوسيدو ته .
**د مرابطه تفسير:-** او ونيلې شوی دی چه د يو مونځ نه پس د بل مونځ انتظار کښې اوسئ . هم دا قول دې په مسلم شريف کښې او نسائي کښې د عبدالله ابن عباس رضي الله عنه ، سهل بن حنيف رحمه الله اومحمد بن کعب قرظي رحمه الله .رسول الله ﷺ فرمائي چه راشئ چه څه تاسو ته اوښايم چه الله ﷻ په کومو څيزونو ګناهونه ختموی،درجې اوچتوی ①اودس کول اګر چه تکليف وی ② لرې نه مسجد ته راتلل ③ ديو مونځ نه پس د بل مونځ انتظار کول ،هم دا رباط دی .هم دا مرابط دی .هم دا دالله ﷻ لار کښې مستعدی ده. (¹)
**د ايت شان نزول:-** ابن مردويه کښې دی چه ابوسلمه رحمه الله نه يو ورځ ابوهريره تپوس اوکړو چه اني خما وراره تاته معلومه ده چه د دې آيت شان نزول څه دې ؟ هغوئ اوونيل چه ماته نه دې معلوم . دوئ اوفرمائيل چه اني زما واوره ! په هغه وخت کښې هيڅ غزوه نه وه چه کله دا آيت د هغه خلقو حق کښې نازل شو چه کومو به جمات آبادولو .او مونځونه به ني صحيح صحيح ادا کول.اوبيا به ني د الله ﷻ ذکر کولو①دوی تـه حکم کيږی چه تاسو د پنځو مونځونو پابندی کوئي②او خپل نفس او خپل خواهشاتو باندې قابو ساتئ③او جماتونو کښې مرابط اوسيږئ. او د الله ﷻ نه ويريږئي.هم دا اعمال موجب فلاح دی.(²)
**دګناهونو کفاره:-** د ابن جرير حديث کښې دی چه آيا څه دې تاسوته هغه اعمال اونه ښايم چه د ګناهونو کفاره ده. ① سره د تکليف او مشقت نه کامل اودس کول ② او د يو مونځ نه پس د بل مونځ انتظار کول .ستاسو کوشش هم په دې کښې پکار دې. او حديث کښې دی چه جمات ته په تلو کښې زيات قدمونه اخستل (³) او يو روايت کښې دی چه دګناهونو معافئ غوښتلو سره درجې هم زياتيږی او هم دا د دې آيت مطلب دې ليکن دا حديث بالکل غريب دې . ابوسلمه بن عبدالرحمان رضي الله عنه فرمائي چه د (رَابِطُوا) نه مراد د مونځ انتظار دې .(⁴) ، ليکن پورته بيان شوی دی چه دا فرمان د ابوهريره رضي الله عنه دې . والله اعلم
**د مرابطه بل تفسير:-** اودا هم ونيلې شوی دی چه (رَابِطُوا) نه دښمن سره جهاد کول او د اسلامي ملك د حدونو نګهباني کول او دښمن اسلامي ښارونو کښې داخلې ته نه پريښودل . ددې ترغيب کښې ډير احاديث دی او په دې باندې هم د ډير ثواب وعده ده.

---
(¹) موطا امام مالک : ۲٦۱/۱، صحيح مسلم كتاب الطهارة باب فضل اسباغ الوضوء على المكاره : ۲٥۱، نسائي : ۱٤۳)-
(²) ابن مرويه )-
(³) ابن جرير)-
(⁴) ابن جرير )-

**د یوې ورځې جهادي تیارئ ثواب:-** صحیح بخاري شریف کښې دی چه دیو ورځې جهاد تیاری کول: ټولې دنیا او څه چه په دې کښې دی د دې نه بهتر دې[1]د مسلم شریف حدیث مبارك کښې دی چه د یو شواروز د جهاد تیاری کول د یوې میاشتې دکاملو روژو نه او د یوې میاشتې د شب بیداری نه افضل دی او که د دې تیارئ کولو په وخت کښې ورته مرګ راشی نو چه څومره نیک اعمال نې کړی دی د ټولوثواب به ورته ملاویږی.اوداللهﷻ طرفنه به دوی ته روزی ملاویږی. او دوی به دفتنو نه په امن وی[2]

**د الله په لار کښې د مرګ فضیلت:-** مسند احمد کښې دی چه د هر مرده اعمال ختمیږی مګر چه کوم سړې د اللهﷻ لار کښې تیارئ کښې وی او دې حالت کښې دې مړ شی نو د ده عمل تر قیامته پورې زیاتیږی او ده ته د قبرعذاب نه نجات ملاویږی .

ابن ماجه کښې روایت دې چه دوی ته به د قیامت د ورځې ویرې نه نجات ملاویږی[3]. ابن ماجه کښې یو روایت کښې دی چه دوی ته به د قیامت د ویرې نه امن ملاویږی.[4]مسند احمد کښې دی چه دوی ته سحر ماښام جنت کښې روزی ملاویږی . او تر قیامته پورې به دوی ته دمرابط اجر ملاویږی[5]مسند احمد کښې دی چه کوم سړې د مسلمانانو د سرحد سره درې ورځې تیارئ کښې تیرې کړی نوده ته د ټول کال د تیارئ اجر ملاویږی.[6]

**د جهاد فضیلت دعثمان ﷛ په ژبه:-** امیر المومنین عثمان بن عفان ﷛ یو ځل په منبر خطبه کښې اوفرمائیل چه رسول اللهﷺ فرمائیلی دی تاسو ته زه هغه خبره کوم چه کومه چې ما د رسول اللهﷺ نه پټپله آوریدلې وه.دا ما تراوسه پورې په یو خاص خیال سره نه ده کړې .درسول اللهﷺ فرمان دې چه د اللهﷻ لارکښې یو شپه پهره کول د زرو کالو د شپو د عبادت نه بهتر دې هغه زر کلونه چې د هغې ټولې شپې په قیام کښې او ټولې ورځې په روژه کښې تیرې کړی شی .[7]

**د روایت نه بیانولو وجه:-** ددې حدیث د نه بیانولو یو وجه خلیفه رسول عثمان ﷛ دا بیان کړې ده چه د دې فضیلت آوریدوسره هسې نه تاسو مدینه پریږدنی اومیدان جنګ ته لاړ شئ اوس نې خه وایم هرسړی نه اختیار دې چه کومه خبره ځان دپاره خوښوني نو هغه دې د هغې پابند شی[8]. دویم روایت کښې دا هم دی چه آیا ما او رسولو؟ خلقو اوونیل چه آو. نورسول اللهﷺ اوفرمائیل چه انې اللهﷻ ته ګواه اوسه.[9]

**دشرحبیل ﷛ د اسلامی سرحد څوکئ کول:** ترمذی شریف کښې دی چه شرحبیل بن سمط ﷛ دسرحد حفاظت کښې وو. او زمانه زیاته تیره شوه نو د ده زړه تنګ شو. اوپه دې کښې ده ته سلمان فارسی ﷛ ورغلو او وې فرمائیل چه تاته د الله تعالی د پیغمبر یو حدیث واورم. رسول اللهﷺ فرمائیلی دی چه څوک یوه ورځ د سرحد په حفاظت کښې تیره کړی نو دا د یوې میاشتې د روژې او قیام اللیل نه بهتر ده .اوڅوك چې دې حالت کښې وفات شی نو هغه به د قبر د فتنه نه بچ وی. او دده اعمال به تر قیامته پورې جاری وی.[10]

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب فضل رباط یوم فی سبیل الله : ۲۸۹۲)-
[2]) صحیح مسلم کتاب الامارة باب فضل الرباط فی سبیل ا لله : ۱۹۱۳)-
[3]) احمد : ٦/ ۲۰ ابوداود کتاب الجهاد باب فی فضل الرباط : ۲۵۰۰ وسنده صحیح ترمذی : ۱٦۲۱)-
[4]) ابن ماجة ابواب الجهاد باب فضل الرباط فی سبیل الله : ۲۷٦۷، وهو صحیح)-
[5]) احمد: ٤۰٤/۲، )-
[6]) احمد: ۳٦۲/٦، )-
[7]) احمد: ٦۱/۱ )-
[8]) ابن ماجة کتا ب الجهاد باب فضل الرباط فی سبیل الله : ۲۷٦٦)،-
[9]) احمد : ۶۲/۱، وهوحسن بالشواهد )-
[10]) ترمذی فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل المرابط : ۱٦٦٤، وهو صحیح)-

**د یوې شپې څوکۍ** ابن ماجه کښې دی چه یوه شپه د الله ﷺ لار کښې پهره ورکول په دې غرض چه مسلمانان په امن کښې وی ، او نیت ئې صحیح وی اګر چه دا د رمضان شپه نه وی نودا د هغه یوکال د عبادت د ثواب نه بهتر ده چه په هغې کښې د ورځې روژه او او په شپه تهجدو کښې مشغول وی. او داالله ﷺ لار کښې دیوې ورځې تیارې په دې غرض چه مسلمانان محفوظ وی او د ده نیت د ثواب وی او دا د رمضان میاشت نه وی نو ده ته د الله ﷺ په نیز د زرو کالو د روژو او تهجدو نه افضل ثواب ملاویږی.او که دې غازی شی اوسلامتیا سره واپس شی نود ده اعمال نامه کښې به د زرو کالو ګناهونه نه لیکلې کیږی اونیکۍ به په کښې لیکلې شی.اوددې مرابط اجر به ده ته تر قیامته پورې ملاویږی (١) دا حدیث مبارك غریب دې بلکه منکر دې ، د دې یو راوی عمرو بن ابن صبح مهتم دې.د ابن ماجه یو غریب حدیث کښې دی چه یوه شپه د مسلمان لښکر چوکیداری د یو زرو کالو د شپو د عبادت او د ورځو د روژو نه افضل دی.د هر کال درې سوه شپیته ورځې اوهره ورځ د زرو کالو په شان . (٢)

**په څوکیدار دالله رحمت:-** د دې راوی سعید بن خالد ته ابوزرعه رحمه الله وغیره ائمه ضعیف ونیلې دی . بلکه امام حاکم رحمه الله فرمائی چه د دوی روایاتو کښې موضوع احادیث هم شته دې.یو منقطع حدیث کښې دی چه د اسلامی لښکر په چوکیدار باندې دې د الله ﷺ رحم وی( ابن ماجه). (٣)

**صحابی ﷺ ته د یوې شپې په څوکۍ د جنت زیرې ملاویدل:-** سهل بن حنظله ﷺ فرمائی چه د حنین په ورځ مونږ رسول الله ﷺ سره وو،د ماښام مونځ مو رسول الله ﷺ سره ادا کړو.یو کس په آس سور راغلو او وې فرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! څه مخکښې تلې اوم او فلانی غر ته ختلې اوم او ما اوکتل چه د قبیله هوازن خلق میدان ته راغلی دی تر دې چه د هغوئ اوښې ، چیلۍ او ښځې او ماشومان هم وو. رسول الله ﷺ په خندا شو او وې فرمائیل چه ماشاء الله دا ټول به سبا د مسلمانانو غنیمت کښې وی . بیا ئې اوفرمائیل چه نن شپه به پهره څوك ورکړی ؟ انس بن ابومرثد ﷺ اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! څه حاضر یم .رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه لاړ شه او سورلۍ راوله. هغه په خپل آس سور شو او حاضر شو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دغه غر ته ورشه او خبردار تر سحره پورې هیڅ چیر مه کوه. سحر چه کله رسول الله ﷺ مونځ دپاره راغلل اودوه رکعته سنت ئې ادا کړل او خلقو نه ئې تپوس اوکړو چه ستاسو د پهردارخو څه شورشغرب نه وو؟ خلقو اونیل چه نه یارسول الله ﷺ . نو بیا ئې تکبیر اوونیلې او رسول الله ﷺ مونځ شروع کړو.اود رسول الله ﷺ خیال دغه غر طرفته وو. هرکله چه رسول الله ﷺ سلام اوګرزولو نو وې فرمائیل چه خوشحاله شئ ستاسو پهره دار راغلو . مونږ چه اوکتل نو هغه لږ وخت پس مونږ ته هم ښکاره شو. هغه چه راغلو نو رسول الله ﷺ ته ئې عرض اوکړو یارسول الله ﷺ ! څه په دې غر پورته ختلې ووم اوستاسو د وینا مطابق مې هلته شپه تیره کړه. سحر ما بل غر کښې اولتیولو خو هلته هم څوك نه وو.رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه آیا ته د شپې هلته نه لاندې هم ر اکوز شوې وې . نو هغه اوونیل چه نه صرف د مونځ دپاره او قضاء حاجت دپاره لاندې راکوز شوې ووم. نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه تا خان دپاره جنت واجب کړو. اوس که ته د دې نه پس څه عمل نه کوې نو هیڅ باك نشته دې ( ابوداود نسائی ) (٤)

**په څوکۍ کونکې سترګه د جنهم د اور حرمت.-** مسنداحمد کښې دی چه د یو غزوه په موقع باندې یوه شپه مونږ په اوچت خانې وو.او سخته یخنی وه.تردې چه خلقو زمکه کښې کندې کنیستې وې اوخان دپاسه نې څه چتونه جوړ کړی وو.رسول الله ﷺ آواز اوکړو چه څوك شته دې چه نن شپه څمونږ چوکیداری

---

(١) ابن ماجة كتاب الجهاد باب فضل الرباط فی سبیل الله : ٢٧٦٨)-

(٢) ابن ماجة كتاب الجهاد باب فضل الحرس والتكبير فی سبیل الله : ٢٧٧٠. وسنده موضوع ، سعید بن خالد منکر الحدیث دې.-

(٣) ابن ماجة كتاب الجهاد باب فی فضل الحرس : ٢٧٦٩)-

(٤) ابوداود كتاب الجهاد فضل الحرس فی سبیل الله : ٢٥٠١ ، وسنده حسن السنن الكبرى للنسائی : ٨٨٧٠)-

اوکړی اوخما نه بهترینه دعا واخلی .نو یو انصاری اودریدو او وې ونیل چه یارسول الله ﷺ ! خه تیار یم . رسول الله ﷺ هغه راوغوښتلوا و د هغه نه ئې د هغه د نوم وغیره تپوس اوکړو او ورته ئې دعا اوکړه. کله چه ابوریحانه ﷛ دا دعاګانې واوریدلې نو مخکښې شواو وې ونیل چه یارسول الله ﷺ ! خه به پهره ورکوم. رسول الله ﷺ خه راوبلل او خمانه ئې هم د نوم وغیره تپوس اوکړو او ماته ئې هم دعا اوکړه. خو د دې انصاری ﷛ نه دا دعا کمه وه. بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په هغه سترګه باندې د جهنم اور حرام دې چه کومه د الله ﷻ د ویرې اوژاړی.او په هغه سترګه باندې هم د جهنم اور حرام دې چه د الله ﷻ لار کښې شپه رونړه کړی.(¹)

مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی کوم سړې چه د مسلمانانو پهره دار شی او پخپله خوښه د سلطان د اجرت نه بغیر غوادړی. نو دې به خپلو سترګوسره د جهنم اورقدرته او نه ګوری . صرف د قسم پوره کیدو دپاره ، چه کوم دې آیت مبارك کښې دی ﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا﴾ یعنی تاسو ټول به دې ته وارد کیږئی (²)

**د نبی کریم ﷺ خبرې**:- صحیح بخاری کښې دی چه برباد شو د دنیا بنده او دجامو بنده ، که مال ورته ورکړې شی نو خوشحالیږی او که ورنکړې شی نو خفه کیږی .دې برباد او غرق شو. که دده بدن کښې ازغې لاړشی نود ویستلو کوشش ئې مه کوئی . خوش نصیب او ښه سړې هغه دې چه د الله ﷻ لار کښې جهاد دپاره ئې د خپل آس واړې نیولې وی . د ده ویښته خواره واره وی. او د ده قدمونه ګرد آلوده وی. که دې په چوکیدارئی مقرر کړې شی نو چوکیداری کوی او که د لښکر مخکښې حصه کښې مقرر کړې شی نو هلته خوشحاله وی. دخلقو نظرنه دې دومره زیات پریوتې وی که چرته ځی نو ده ته اجازت نه ملاویږی .او که چا ته ئې سفارش اوشی نو هغه نه قبلیږی (³)

الحمد لله ددې آیت متعلق ډیر احادیث بیان شو. د الله ﷻ په دې فضل او کرم مونږ شکر ادا کوو. او که مونږ ډیر شکر ادا کړو نو د الله ﷻ شکر نشو پوره کولې.تفسیر ابن جریر کښې دی چه ابوعبیده بن جراح ﷛ د جنګ د میدان نه امیر المومنین خلیفة المسلمین عمر فاروق ﷛ ته یو خط اولیکلو . په هغې کښې د درومیانو د فوځ کثرت او دهغوئ آلات حرب اود هغوئ تیارئی باره کښې ئې اولیکل. او ورته ئې اولیکل چه سخته خطره ده .دلته نه ورته فاروق اعظم ﷛ جواب کښې اولیکل چه په هغې د حمد وثناء نه پس د تحریروجه دا وه .چه کله کله په مومنانو باندې سختئ هم راځی . لیکن الله ﷻ دې نه پس آسانئ رالیږی. واورئی یو سختئ دوو آسانو باندې نه شی غالبه کیدې . واوره د الله ﷻ فرمان دې چه ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا﴾ الخ (⁴).

**فضیل بن عیاض ﷫ ته خط**:- عبدالله بن مبارك ﷫ په ۱۷۰هجرئی یا ۱۷۷ هجرئ کښې د طرسوس ښار کښې محمد بن ابراهیم ابن ابی سکینه چه دده د وداع دپاره راغلې وو؟ اوده جهاد کولو دا اشعار اولیکل او فضیل بن عیاض ته ئې اولیږل :

| | |
|---|---|
| ① یاعابد الحرمین لوابصرتنا * | لعلمت انك فی العبادة تلعب |
| ② من کان یخضب خده بدموعه * | فنحورنا بدمائنا تتخضب |
| ③ اوکان یتعب خیله فی باطل * | فخیولنا یوم الصبیحة تتعب |
| ④ ریح العبیر لکم ونحن عبیرنا * | رهج السنابك والغبار الاطیب |
| ⑤ ولقد اتانا من مقال نبینا * | قول صحیح صادق لایکذب |

---

(¹) احمد: ١٣٤/٤، نسائی : کتاب الجهاد باب فی ثواب عین سهرت : ٣١١٩)-

(²) احمد: ٤٣٧/٣ )-

(³) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الحراسة فی الغزو فی سبیل الله : ٢٨٨٧)-

(⁴) الطبری:٥٠٣/٧)-

⑥لایستوی غبار خیل الله فی * انف امرء ودخان نار تلهب

⑦هذا کتاب الله ینطق بیننا * لیس الشهید بمیت لایکذب

①انې په مکه اومدینه کښې اوسیدونکو اوعبادتکونکو! که تاسو مجاهدین کتلې نو تاسوته به معلومه شوی وه چه ستاسو عبادت خو لوبې تیوقې دی.

②یوهغه سړې چه د هغه اوښکې د هغه رخسار لوند کړی او یو مونږ یو چه خپل خان د الله ﷺ لار کښې حلال کړو او خپله وینه کښې پخپله څملو.

③یوهغه سړې دې چه د هغه آس باطل او بې کاره ستړې کیږی او څمونږ آسونه د حملې او جنګ په ورځ ستړی کیږی.

④ که عبیرخوشبو ستاسو دپاره ده نو څمونږ دپاره خوشبو دآسونو دپاپونو ښاوره او پاك ګرد اوغباردې.

⑤یقین اوساتئ مونږ ته د رسول الله ﷺ دا حدیث رارسیدلې دې چه هغه بالکل صحیح او رښتونې دې ⑥چه د چا پوزې ته د الله د لښکر ګرد اورسیدو نو د ده پوزې ته به د شغله وهونکی اور لوږې هم نه اونه رسی.

⑦ اودادې دالله کتاب چه مونږ سره موجود دې او صفا بیان کوی او رښتنیا وانی چه شهید مړ نه دې.

محمد بن ابراهیم رحمة الله فرمائی چه کله څه مسجد حرام ته اورسیدم او فضیل بن عیاض ته مې دا اشعار اوونیل نو دوی ډیر زیات اوژړل او وې فرمائیل چه انې ابو عبدالرحمان د الله ﷺ رحمتونه دې وی په هغویٔ باندې .او دانې رښتیا ونیلی دی او ماته نې نصیحت کړې دې او دې کښې خما بیحده خیرخواهی دې. بیا نې ماته اوونیل چه ته حدیث لیکې نو ما اوونیل چه آو جی.نو وی ونیل چه تا خان سره کومه نصیحت نامه راوړې ده د هغې بدله کښې څه تاته یو حدیث لیکم . هغه دا دې چه رسول الله ﷺ ته یو سړی درخواست اوکړو یارسول الله ﷺ ! ماته داسې عمل اوښانې چه هغې سره څه د مجاهد ثواب اومومم. رسول الله ﷺ ورته اوونیل چه آیا تا کښې دومره طاقت شته دې چه ته مونځ کوې او ستړې کیږنې نه او روژې نیسې او کله هم روژه نه پریږدې ، هغه اوونیل چه یارسول الله ﷺ ما کښې دومره طاقت چرته دې ؟ څه ډیر زیات کمزورې یم. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه که تا کښې دومره طاقت وې او تا داسې کړې هم وې نوبیا به هم ته د مجاهد درجې ته نشوې رسیدلې . تاته دا هم معلومه ده چه د مجاهد د آس رسئ اوږده شی اوهغه یو طرف او بل طرفته خوره شی نو په دې هم مجاهد ته نیکئ ملاویږی ([1]).

**قوله تعالی::وَاتَّقُوااللهَ**

**د تقوی حکم**:- دې نه پس الله ﷺ حکم کوی چه د الله تعالی نه ویریږئ او هر حال کښې هر وخت هره معامله کښې د الله ﷺ نه ویریږئ.هرکله چه رسول الله ﷺ معاذ بن جبل ﷺ یمن طرفته اولیږلو نو ورته نې اوفرمائیل چه انې معاذ ! چه چرته هم نې نو دالله ﷺ ویره زړه کښې ساته اوکه ستا نه څه ګناه اوشی نو زر وریسې نیکی کوه چه هغه ګناه ختمه کړی او خلقو سره ښه اخلاق او مروت سره ملاویږه. ([2])

**قوله تعالی::لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴿﴾**

**د کامیابی زیرې**:- بیا فرمائی چه په دې څلورو کارونوکولو سره به تاسو په دنیا او آخرت کښې کامیاب شئ.

[1]) صحیح بخاری کتاب الجهاد فضل الجهاد والسیر:٢٧٨٥)-

[2]) احمد: ٢٣٦/٥، ترمذی کتاب البر والصلة باب ماجاء فی معاشرة الناس :١٩٨٧، وهوحسن)-

محمد بن کعب قرظي رحمه الله فرمائي چه د دې مطلب دا دې چه خما لحاظ ساتئ او خما د ويرې نه رپيږئ او ويريږئ . خما او خپله معامله کښې متقيان اوسئ ، نو سبا چه کله ماسره ملاويږئ نو نجات به مومئ اوبامراد به يئ (١) انتهى (الحمد لله) . دسورة آل عمران تفسير ختم شو.

(ولله الحمد والمنة ونسأله الموت على الكتاب والسنة امين ياإله العالمين).

## دسوره نساء تفسير

**سورت نساء مکی دې:** ① ابن عباس ﷺ فرمائي چه داسورة مدينه منوره کښې نازل شو ② عبدالله بن زبير ﷺ او زيد بن ثابت ﷺ هم دا فرمائي. ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه کله دا سورت نازل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه اوس منع نشته دې (٢)

**په سورت نساء کښې څلور عظيم اياتونه:-** مستدرك حاکم کښې عبدالله بن مسعود ﷺ نه مروی دی چه سورة نساء کښې پنځه آيتونه داسې دی که ټوله دنيا ماته ملاؤ شي نو بيا به هم ماته دومره خوشحالی نه وی چه څومره د دې آيتونو سره ده ① يعنی آيت ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ﴾ الخ. يعنی الله ﷻ په چاباندې ذره برابر ظلم نه کوی او چه د چا څومره نيکئ وی نو د هغې ثواب ورته زيات ورکوی. او د خپل طرفنه چه ورته انعام عظيم ورکوی هغه بيل دې .

② او آيت ﴿إِن تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَنُدْخِلْكُم مُّدْخَلًا كَرِيمًا﴾ الخ. يعنی که تاسو د کبيره ګناهونونه بچ کړئ نو ستاسو واړه ګناهونه به هم معاف کړو اوتاسو ته به عزت والا ځائې يعنی جنت درکړو .

③ اوآيت ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ﴾ الخ يعنی الله ﷻ سره چه څوك شرك اوکړی نوهغه نه بخښې باقی ټول ګناهونه بخښې چه اوغواړی .

④ اوآيت ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوا أَنفُسَهُمْ جَاءُوكَ﴾ الخ. يعنی که دا خلق د ګناه کولونه پس تاته راشی او پخپله دالله ﷻ نه دخپلو ګناهونو معافی اوغواړی او رسول الله ﷺ هم د دوی دپاره استغفار اوغواړی نو بيشکه الله ﷻ معاف کونکی او مهربان ذات دې .

**يو پنځم ايات اضافه:-** امام حاکم رحمه الله فرمائي چه هسې خود دې اسناد صحيح دی ليکن د دې يو راوی عبدالرحمن د خپل پلار نه آوريدو کښې اختلاف کوی. د عبدالرزاق روايت کښې دی چه ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ﴾ الخ بدله کښې ﴿وَمَن يَعْمَلْ سُوءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللَّهَ يَجِدِ اللَّهَ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ يعنی چا نه چه يو غلط کار اوشی يا په خپل نفس څه ظلم اوکړی بيا الله ﷻ نه معافی اوغواړی نو بيشکه الله ﷻ بخښونکئ او مهربان دې .

**تطبيق:-** دواړو حديثونو کښې تطبيق داشان دې چه ديو آيت بيان ړومبی حديث کښې خو پاتې شوې دې او د دې

بيان دويم حديث کښې دې نو ړومبی څلور آيتونه د ړومبی حديث او پنځم آيت د دې حديث ﴿وَمَن يَعْمَلْ﴾ الخ سره پنځه شی يا دا چه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ﴾ باندې پوره دې. او ﴿وَإِن تَكُ حَسَنَةً﴾ لره بيل شميرلی شی نودواړو حديثو کښې پنځه پنځه آيتونه شو والله اعلم ، ( مترجم).

**د شپږم اووم او اتم ايت اضافه:-** ابن جرير کښې ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه دې سورة کښې اته آيتونه دی ① ړومبې آيت ﴿يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ﴾ الخ. يعنی الله تعالی غواړی چه تاسو ته خپل احکام صفا صفا بيان کړی. او تاسو ته دهغه نيکو خلقو لار اوښائی چه ستاسونه مخکښې تير شوی وو. اوتاسو سره مهربانی اوکړی او الله ﷻ دانا او صاحب د حکمت دې .

---

(١) الطبری : ٧/٥١٠ -.
(٢) الطبرانی : ١٢٠٣٣ -.

② دویم آیت دي ﴿وَ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْكُمْ﴾ الخ. یعنی الله ﷻ غواړی چه تاسو باندې خپل رحمت نازل کړی اوستاسو توبه قبوله کړی او کوم خلق چه خواهشاتو پسې روان دی هغوئ غواړی چه تاسو د حق لارې نه لرې کړی ③دریم آیت دي ﴿يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ ۚ وَخُلِقَ الْاِنْسَانُ ضَعِيْفًا﴾انسان چونکه ضعیف پیدا کړې شوې دی، الله ﷻ ده باندې اسانتیا کول غواړی.باقی ټول آیتونه هغه دی چه کوم مخکښې تیر شو.ابن ابی ملیکه رحمه الله فرمائی چه ما ابن عباس رضی الله عنه نه د سورة نساء باره کښې واوریدل نو ما قران پاك اولوستلو او څه لا وړوکې بچې ووم( حاکم ). (١)

| آیاتونه | | سورة النساء مدنی دي | | رکوع گانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ٧٦ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دی | | ٢٤ |

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ

انې خلقو | اوویریږئی | درب خپل نه | هغه (رب) | چه پید انې کړئی تاسو | دنفس یو نه |

انې خلقو دخپل رب د (نیولو) نه ویریږئ | هغه رب چې تاسو ټول ئې دیونفس نه پیدا کړی یئ

وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً ۚ

اوپیدائې کړه | دهغه نفس نه | جوړه دهغه | او خوارهٔ ئې کړل دهغې دواړو نه | نارینه | ډیر | اوزنانه (ډیرې) |

اوهم دهغې یوکس نه ئې دهغه جوړئ (بی بی حوا) پیدا کړه او بیا دغې دواړو نه ئې ډیرسړی اوښځې خواره کړل

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ

اودالله ﷻ نه ویریږئی | هغه (الله تعالی) | چه تاسو دیوبل نه حقونه غواړئی | په واسطه دهغه سره |

اودالله پاک نه ویریږئ | چې دهغه په نوم تاسو دیوبل حقونه غواړئی | او

وَالْاَرْحَامَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ①

او خان اوساتئ دخپلولئ دختمولو نه | بیشکه الله تعالی | دې په تاسو باندې | نظر ساتونکې |

اودخپلولئ د تعلقاتو (ختمولونه اوویریږئ) ، اوالله ستاسو ټولو نګهبان دی

**دالله نه د ویرې کولو حکم:-** الله ﷻ دخپلې تقوی حکم کړې دی چه ستاسو بدن نه دې صرف د هغه ذات عبادت صادر شی اوستاسو په زړه کښې دې صرف د هغه ویره وی.

**قوله تعالی:** خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا

**دبی بی حواء پیدائش:-** بیا خپل قدرت کامله بیانوی چې هغه ذات تاسو ټول د یو سړی یعنی آدم علیه السلام نه پیدا کړی یئ .آدم ملاست وو چه د دوی د ګسې پوښتئ نه حوا علیها السلام پیدا کړې شوه. ددوی بی بی یعنئ حوا علیها السلام ئې هم د دوی نه پیدا کړه.

**دښځې د سړی نه په پیدا کولو کښې حکمت:-** ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ښځه د سړی نه پیدا شوې ده ، ددې وجې ددې شهوت اوحاجت سړی کښې ایښودې شوې دې .اوسړې د زمکې نه پیدا شوې دې د دې وجې د ده حاجت زمکه کښې ایښودې شوې دې . نو تاسو خپلې ښځې په خپل قابو کښې ساتئ.

---

١) حاکم : ٢/٣٠٠ وسنده حسن)-

**د ښځې نه په کومه طريقه فائده اخستې شي؟**:- صحيح حديث مبارك کښې دی چه ښځه د پوښتۍ نه پيدا کړې شوې ده اود ټولو نه اوچته پوښتۍ د ټولو نه زياته کږه ده. که ته دا بالکل نيغول غواړې نو دا به ماته شی اوکه ته په دې کښې څه کوږوالې باقی پريږدې نوته به د دې نه فائده اوچته کړې . (١)

**قوله تعالى:**: وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً

بيا فرمائی چه ددې دواړو يعنی آدم عليه السلام او حوا نه ډيرانسانان پيدا شول چه دنياکښې څلور واړه طرفونو ته خواره شوی دی.اوددې انسانانو قسمونه اوصفتونه اورنګونه او بول چال مختلف دی.لکه څنګه چه داد الله ﷻ قبضه کښې وو او بيا ئې دا خواره کړل ، بيا به يو وخت داسې راشی چه دا ټول به بيا قبضه کښې واخلی اويو ميدان کښې به ئې جمع کړی. نوتاسو د الله ﷻ نه ويريږئ اود هغه اطاعت کوئ اودهغه عبادت کوئ .

**قوله تعالى:**: وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ

**خپلولی ساتل**:- هم ددې الله ﷻ په نوم تاسو خپلو کښې يوبل نه غواړئ . لکه دا ونيل چه تاته الله ﷻ اود هغه رشتې يادوم او وايم .او د هغه ذات په نوم قسمونه خورئ او وعدې کوئ .

**دقطع تعلق ممانعت** :- الله ﷻ نه ويريږئ او د رشتو حفاظت کوئ او دا مه ختموئ . بلکه جوړوئ ئې . او خپلوسره صله رحمی،نيکی او ښه سلوك کوئ (أَرْحَامَ) هم يو قرات دې.يعنی د الله ﷻ په نوم او د رښتو دخاطره. الله ﷻ ستاسو د ټولو عملونو او حالاتو نه خبر دې . ښه مو ګوری . لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا﴾ يعنی او الله ﷻ هر څيز باندې ګواه اوحاضر دې .

**دعبادت اصلی مقام**:- صحيح حديث مبارك کښې دی چه د الله ﷻ عبادت داسې کوه لکه چه ته هغه وينې او که دې مرتبې ته نه ئې رسيدلې نو چې هغه تا وينی (٢)مطلب دادې چه د هغه ذات خيال اوساتئ چه هغه ستاسو په ناسته پاسته او ګرزيدو باندې نګران دې .

**د ابائی رشتې په وجه يوبل سره د احسان کولو حکم**:- دلته فرمائی چه ائې خلقو!تاسو ټول ديومورپلار نه پيدا يئ.يو بل باندې شفقت کوئ اوکمزوری او ناتوان سره ملګرتياکوئ اودهغوئ سره ښه سلوك کوئ صحيح مسلم شريف کښې حديث دې چه کله د قبيله مضر څه خلق رسول الله ﷺ ته راغلل او څادرونه ئې خان نه تاؤ کړی وو خکه چه د دوی په بدن جامې نه وې. نو رسول الله ﷺ د ماسپخين مونځ نه پس اودريدو وعظ او نصيحت ئې اوفرمائيل او په هغې کښې ئې د دې آيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو چه ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ الخ. بيائې خلقوته دخيرات کولو ترغيب ورکړو ، چا سره چه څه وو نو هغه ئې دې خلقو ته ورکړل ،درهم اودينار هم او کهجورې او غنم هم.(٣) الخ. مسند او سنن کښې د خطبه حاجات په بيان کښې دی چه بيا ئې درې آيتونه اولوستل او په هغې کښې يو آيت دا هم وو.(٤)

| وَآتُوا | الْيَتَامَىٰ | أَمْوَالَهُمْ | وَلَا تَتَبَدَّلُوا | الْخَبِيثَ | بِالطَّيِّبِ | وَلَا تَأْكُلُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او ورکړئ | يتيمانوته | مالونه دهغوئ | اومه بدلوئ | خراب مال | په ښه مال سره | اومه خورئ |
| ديتيمانومالونه هغوئ ته واپس کوئ او ښه څيز په بدڅيز مه بدلوئ او مه خورئ تاسو | | | | | | |

---

(١) صحيح بخاری کتاب النكاح باب المدارة مع النساء: ٥١٨٤، صحيح مسلم: كتاب الرضاع باب الوصيلة بالنساء حديث نمبر: ١٤٦٧)-

(٢) صحيح بخاری كتاب الايمان باب سوال جبريل عليه السلام عن الايمان : ٥٠ صحيح مسلم: ٩)-

(٣) صحيح مسلم كتاب الزكاة باب الحث على الصدقة : ....: ٢٣٥١، ترمذی : ٢٦٧٥)-

(٤) ابوداود : ٢١١٨، الترمذی : ١١٠٥، ابن ماجة: ١٨٩٢، والنسائی: ١٤٠٥)-

أَمْوَالَهُمْ إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ ۚ إِنَّهُ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا ۝ وَإِنْ خِفْتُمْ

مالونه دهغوی|یوځای دمالونو خپلو سره|بیشکه (دامال خوړل)| ده ګناه لویه |اوکه ویریږئ تاسو|

دهغوی مالونه خپلومالونو سره شریک| خکه چې دا ډیره لویه ګناه ده | ............ اوکه تاسوویریږئ

أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ

چه اوبه نه کړئ انصاف| په حق د یتمانو کښې |نو په نکاح کښې واخلئ| هغه ښځې چه خوښې وی|

چې تاسوبه دیتیمانو جینکو په حق کښې انصاف اونه کړې شئ| نوکومې نورې ښځې چې موخوښې وی هغوئ په نکاح واخلئ

لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ ۖ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا

تاسوته| دښځونه |دوه دوه | او درې درې| او څلور څلور| نوکه یریدئ تاسو| چه اوبه نکړې شئ انصاف

دوه دوه اودرې درې اوڅلور څلور| نوکه تاسو سره دا ویره وی چې د هغوئ مینځ کښې به انصاف اونه کړې شئ

فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ۚ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ

نو یوه اوکړئ| یا هغه وینځې چه مالکان شوی دی| ښی لاسونه ستاسو| داکار |زیات نژدې دې|

نویوه(تاسودپاره بس ده) یاداسې وینځې چې ستاسو په ملکیت کښې راغلې وی| نودبې انصافئ نه

أَلَّا تَعُولُوا ۝ وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً ۚ فَإِن

دې ته چه اونه کړئ بې انصافی تاسو|او ورکوئ ښځو ته |مهرونه دهغوئ|په خوشحالئ سره| نوکه |

دبچ کیدودپاره دا کار زیات ښه دې | اوښځوته دهغوئ مهرونه په خوشحالئ اداکوئ| نوکه

طِبْنَ لَكُمْ عَن شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا

هغوئ راضی شوې به بخښنه|تاسوته| څه حصه | ددغې مهرنه| په خوشحالئ دنفس خپل سره|

........هغوئ تاسوته په خوشحالئ مهر کښې څه حصه پریږدی | ..........

فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَّرِيئًا ۝

نو خورئ هغه |مزه نا که| بې ضرره |

نوهغه ښه په مزه بې ضرره خوړلې شئ|

قوله تعالی:: وَآتُوا الْيَتَامَىٰ أَمْوَالَهُمْ ۖ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ

**د یتیمانو سره د ظلم کولو د ناجائزې طریقې حرمت :-** الله ﷻ د یتیمانو سرپرستانو ته حکم کوی چه کله یتیم بلوغت او پوهې ته اورسی نو تاسو سره چه د هغوئ کوم مالونه دی هغه هغوئ ته حواله کړئ پوره پوره بغیر د څه کمی او خیانت نه .اوخپل مال سره د دې د ګډون نیت مه ساتئ. هر کله چه تاسوته الله ﷻ حلال رزق درکوی نو بیا ولې حرامو پسې منډې وهئ؟ تاسو ته ستاسو د تقدیر رزق ملاویږی. تاسو خپل مال مه پریږدئ او د نورو حرام مال ته زړه مه ښه کوئ. تاسو چه کله کمزورئ څناور اووینئ نو غټ او ښکلی ته زړه مه کوئ . د خراب ورکولو او ښه اخستلو او کوټه ورکول او کره اخستلو نیت مه کوئ. مخکښې به خلقوداسې کول چه دیتیمانو دچیلو رمو نه به ئې ښه چیلئ اخستې اوخپلې کمزورې او خرابې چیلئ به ئې د هغوئ رمه کښې کیخودې اوشمیر به ئې پوره کولو اودکوټه درهم مقابله کښې به ئې کره درهم اخستلو اود ابه ئې ونیل چه مونږ خو د درهم بدله کښې درهم او د

چیلۍ بدله کښې چیلۍ واخسته. د هغوئ مال کښې به ئې خپل مال ګډوډ کړو او بیا به ئې ونیل چه اوس دا څنګه بیل کړو ؟ د هغوی مال مه خرابوئی ځکه چه دا لویه ګناه ده (١).

یو ضعیف حدیث کښې هم دامعنی آخری جمله کښې راغلې ده.د ابوداود حدیث مبارك کښې یو دعا کښې دحوب لفظ دګناه معنی کښې راغلې دې (٢)ابوایوب ﷺ چه کله خپلې بی بی ته د طلاق ورکولو اراده کړې وه نو رسول الله ﷺ هغه ته فرمائیلی وو چه دې طلاق کښې ګناه ده .نو هغه خپلې ارادې نه روستو شو. یو روایت کښې دی چه داکومه واقعه مروی ده د ابوطلحه ﷺ او ام سلیم ﷺ ده.(٣)

**قوله تعالی: وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ**

**یتیمانو جینکو سره د نکاح کولو حکم :-** بیا فرمائی که ستاسو په کفالت کښې څوك یتیمه جینئ وی او تاسو هغې سره نکاح کول غواړئی لیکن چونکه د هغې هیڅوك نه وی. نو تاسو داسې مه کوئی چه مهر اوحقوق کښې کمې اوکړئ او خپل کور ته ئې راولئ ، ددې نه منع شئ او نورې ډیر ښځې دی چه هغوئ سره تاسو نکاح کولئ شئ.

**د ایت شان نزول:-** عائشه ﷺ فرمائی چه یو یتیمه جینئ وه اوهغې سره ډیر مال وو او د هغې یو باغ هم وو ، اودا جینئ چه د چا پرورش کښې وه هغه دې سره د دې مال په وجه نکاح اوکړه او دې ته ئې پوره مهر هم ورنکړو.نودې باندې باره کښې دا آیت نازل شو.څما خیال دې چه دې باغ اودې مال کښې دا جینئ حصه داره وه. (٤)

**شان نزول په بل روایت سره:-** صحیح بخاری کښې دی عروه بن زبیر د عائشه ﷺ نه د دې آیت مبارك د مطلب تپوس اوکړو نوعائشه ﷺ اوفرمائیل چه اټې وراره ! دا ذکر د هغه یتیمې جینئ دې چه کومه دخپل ولی په قبضه کښې وی اوهغه مال کښې شریکه وی او د هغه د دې مال اوجمال خوښ وی اوغواړی چه دې جینئ سره نکاح اوکړی لیکن کوم مهر وغیره چې د بل ځائې نه دې ته ملاویږی هغه دې ته نه ورکوی نو دا سړې ددې نه منع کوی چه دا نیت پریږده او بلې ښځې سره نکاح اوکړه. بیا دې نه پس خلقو د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو نو دې باره کښې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿يَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ﴾ الخ. هلته فرمائیلې شوی وو چه کله د یتیمې جینئ سره کم مال وی او ددې جمال هم کم وی نو ددې سرپرست ددېنه ډډه کوی او دې ته هیڅ توجه نه ورکوی نوبیا هیڅ وجه نشته چه د دې مال اوجمال ته مائل شی او د دې پوره حقوق ادا نکړی او دې سره خپله نکاح اوکړی. (٥)

عدل او انصاف سره پوره پوره مهر مقرر کوئ نو دې کښې هیڅ حرج نشته دې. ګنی بیا خو ښځې څه کمې نه دی که بل چا سره نکاح کول غواړئ نو وې کړئی.

**قوله تعالی: مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ**

**یو وخت کښې څلورو ښځو سره د نکاح کولو اجازت :-** که ستاسو خوښه وی نو دوه دوه ښځې خپله نکاح کښې ساتلئ شئ. اوکه غواړئی نو درې درې ساتلئ شئ او که غواړئی نو څلور څلور . بل ځائې هم دا الفاظ هم په دې معنی کښې دی .

فرمائی چه ﴿جَاعِلِ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا أُولِي أَجْنِحَةٍ مَّثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ﴾ یعنی کومې فرښتې چه الله ﷻ خپلې قاصدانې جوړوی او لیږی ئې نو په هغوئ کښې بعضې دوه دوه وزرو والا وی او بعضې درې درې وزرو والا

---

(١) الطبری: ٥٢٥/٧)-

(٢) ابوداود کتاب الطب باب کیف الرقی :٣٧٩٢)-

(٣) حاکم : ٣٠٢/٢)-

(٤) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النساء باب ( وان خفتم الا تقسطوا...) : ٤٥٧٣ )-

(٥) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النکاح باب ( وان خفتم الا تقسطوا ...): ٤٥٧٣ ، صحیح مسلم: ٣٠١٨)-

بعضې څلور څلورو وزرو والا.فرښتو کښې ددې نه زياتو وزرو والا فرښتې هم شته دې ځکه چه په دليل سره ثابت دی .

**دجمهورو مسلک:-** ليکن سړی دپاره په يو وخت کښې د څلورو ښځو نه زياتې ساتل منع دی.لکه څنګه چه دې آيت مبارك کښې موجود دی.او لکه څنګه چه د ابن عباس ﷺ او جمهوروقول دې.دلته الله ﷻ د خپل احسان او انعام ذکرکوی. که د څلورو نه د زياتو اجازت وې نو ضرور به ئې فرمائيلې وې . امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دا حديث چه د قران پاك وضاحت کونکې دې دې اوخودل چه د رسول الله ﷺ نه سوادبل چاڅپاره دڅلورو نه زياتې بيبيانو ساتلو اجازت نشته دې.هم په دې باندې د عالمانو اجماع ده

**دشيعګانو اختلاف:-** ①البته د بعضو شيعه ګانو قول دې چه نهه پورې جمع کول جائز دی . ②بلکه بعضو شيعه ګانونيلی دی چه نهونه هم زيات جمع کولو کښې هيڅ باك نشته.دې.اوهيڅ تعداد مقرر نه دې .

**د شيعه ګانو استدلال:-** د دوی استدلال د رسول الله ﷺ دفعل نه دې ①لکه څنګه چه صحيح حديث مبارك کښې راغلی دی چه د رسول الله ﷺ نهه بيبيانې وی (¹)②او بخاری شريف کښې يو معلق حديث کښې بعضو راويانو يولس بيان کړی دی (²) ③انس ﷺ نه مروی دی چه رسول الله ﷺ پنځوس بيبيانو سره عقد کړې وو او د دياړلسو رخصتی اوشوه او يو وخت کښې يولس بيبيانې دوی سره وې ، د وفات وخت کښې د رسول الله ﷺ نهه بيبيانې وې .

**دجمهورو جواب:-** څمونږ عالمان د دې جواب کښې فرمائی چه دا د رسول الله ﷺ خصوصيت وو . امتی لره يو وخت کښې څلورو نه زياتې بيبيانې ساتل نه دی پکار اونه د دې اجازت شته دې .لکه څنګه چه دا حديث په دې امر دلالت کوی .

**د جمهورو دليل:-** ①غيلان بن سلمه ثقفی رضی الله عنه چه کله مسلمان شو نو دده لس ښځې وې . نو رسول الله ﷺ ورته ارشاد اوفرمائيلو چه په دوی کښې د خپلې خوښې څلور اوساته او باقی پريږده (نو هغه همداشان اوکړل).

بيا د د عمرفاروق ﷺ په زمانه کښې ئې خپلو دغه بيبيانو ته طلاق ورکړو. او په خپلو خامنو کښې ئې خپل مال تقسيم کړو.هرکله چه عمر فاروق ﷺ ته دا معلومه شوه نو عمرفاروق ﷺ اوفرمائيل چه شايد ستا شيطان ستا زړه کښې دا خبره واچوله او ستا زړه کښې ئې دا خبره کينوله چه نزدې ده چه ته به مړ کيږې او تا ددې وجې خپلې بيبيانې جدا کړې چه ستا مال وانخلی او تا خپل مال خپل اولاد کښې تقسيم کړو. څه تاته حکم کوم چه ته خپلو بيبيانو ته رجوع اوکړه او خپل اولاد نه مال واپس واخله ، که تا داسې اونکړل نو څه به ستا نه پس ستا دا طلاقې شوې ښځې هم ستا په مال کښې وارثانې جوړې کړم ځکه چه تاهغوئ ته هم ددې ويرې د وجې طلاق ورکړې دې .او معلوميږی چه ستا ژوند هم اوس ختيمدونکې دې اوکه تا خما خبره اونه منله نو يادساته چه څه به حکم کوم چه ستا قبر دې په ګانړو ويشتلې شی.لکه څنګه چه د ابورغال قبر ويشتلې شی (³).(مسندا حمد ، شافعی، ترمذی، ابن ماجه ، دار قطنی، بيهقی وغيره).

**په روايت باندې د حافظ رحمه الله کلام:-** يو مرفوع حديث پورې دې خو دې تولوکتابونو کښې شته دې ، خو د عمرفاروق ﷺ واقعه صرف په مسند کښې ده. ليکن دا زيات حسن دې ، اګرچه امام بخاری دې ته ضعيف وئيلی دی او د دې د اسناد بله طريقه ئې خودلې ده او دې طريقې ته ئې غيرمحفوظ وئيلې دی .خودې تعليل کښې هم نظر دې . والله اعلم. او بزرګ محدثينوهم په دې باندې کلام کړې دې . ليکن د

¹) صحيح بخاری کتاب النکاح باب کثرة النساء: ٥٠٦٧، صحيح مسلم: ١٤٦٥)-
²) صحيح بخاری کتاب الغسل باب اذا جامع ثم عاد...: ٢٦٨)-
³) احمد: ١٤/٢، دارقطنی : ٢٧١/٣، بيهقی : ١٧٣/٧، ترمذی : کتاب النکاح باب ماجاء فی الرجل وعنده يسلم وعنده عشر نسوة: ١١٢٨ ابن ماجة: ١٩٥٣، مختصرا)-

مسند احمد والا حدیث ټول راویان ثقه دی. او د شیخینو په شرط باندې دی. یو بل روایت کښې دی چه دا لس واړه ښځې هم خپل خاوند سره مسلمانې شوې وې. اوګورئی سنن نسائی. (١)

**استدلال:-** ددې حدیث نه صفا ښکاره ثابته شوه.که د څلور نه زیاتې ښځې یو وخت کښې ساتل جائز وې نورسول الله ﷺ به هغه ته دا نه فرمائیل چه لسو ښځو کښې چه کومې څلور ستا خوښې وی هغه پریږده او باقی رخصت کړه. ځکه دې څلورو واړو هم اسلام قبول کړې وو. تر دې چه دا خبره هم یاد ساتل پکار دی چه ثقفی سره دا لس ښځې موجود وې . او رسول الله ﷺ د ده نه شپږ جدا کړې . بیا څنګه کیدېشی چه یو سړې د څلورو نه زیاتو ښځو سره واده اوکړی ؟ والله اعلم بالصواب .

**د جمهورو دویم دلیل:-** دویم حدیث ابوداوداو ابن ماجه وغیره کښې دې. عمیره اسدی ﷺ فرمائی چه کله ما اسلام قبول کړو نو خما نکاح کښې اته ښځې وې ، ما رسول الله ﷺ ته د دې ذکر اوکړو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په دوی کښې څلورو نه سوا څلور جدا کړه.(٢) ددې سند حسن دې او د دې شواهد هم موجود دی،د راویانو د نومونو مخکښې روستوکیدل د داسې روایاتو دپاره نقصان ده نه وی.

**دریم دلیل:-** دریم حدیث مسند شافعی کښې دې . نوفل بن معاویه ﷺ فرمائی چه کله ما اسلام قبول کړو نوخما نکاح کښې پنځه ښځې وې. رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل چه په دوی کښې څلور خوښې کړه او یو جدا کړه. ما هغه ښځې ته طلاق ورکړو کومه چه زیات عمر والا او بې اولاده د شپیتو کالو وه (٣) نودا احادیث د رومبی حدیث د غیلان والا حدیث شواهد دی لکه څنګه چه امام بیهقی رحمه الله فرمائیلی دی .

**قوله تعالی::** فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ

بیا فرمائی که چرې یو نه زیاتو بیبیانو کښې انصاف نه شئ کولئ او تاسو سره د دې ویره وی چه انصاف به اونه کړئ شئ نو صرف یو باندې بس والئ اوکړئی . اګر چه وینځه وی لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَلَن تَسْتَطِيعُوا أَن تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ﴾ یعنی تاسو که غواړئی لیکن تاسو نه به اونه شی چه د ښځو مینځ کښې پوره انصاف او عدل اوکړې شئ او هسې نه چه یو طرفته شئ او بله په مصیبت کښې مه اچوئی .

**قوله تعالی::** ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَلَّا تَعُولُوا

**د وینځو په مینځ کښې د نوبت عدم فرضیت:-** خو یاد ساتل پکار دی چه د وینځو مینځ کښې د نمبر وغیره تقسیم واجب نه دې البته مستحب دی. چه څوك ئې اوکړی نو هغه ښه اوکړل او چا چې اونه کړل نو هېڅ باك نشته دې .

**د جملې مطلب:-** ① دې نه پس چه کومه جمله ده هغې د مطلب باره کښې بعضو وئیلی دی چه دا نزدې ده چه ستاسو اهل وعیال یعنی فقیری مو زیاته نه وی لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً﴾ یعنی که تاسو ته د فقر ویره وی . یوعربی شاعر فرمائی چه :

فمايدري الفقيرمتى غناه ::: ومايدري الغنى متى يعيل

(ترجمه) فقیر ته پته نشته چه دې به مالدار شی اومالدار ته معلومه نه ده چه دې به کله غریب شی .
هرکله چه یو مسکین محتاج شی نو عرب وائی چه (عال الرجل) یعنی دا سړې فقیرشو.غرض داچه دې معنی کښې خودا لفظ مستعمل دې لیکن دلته دا تفسیر څه زیات ښه معلومیږی ځکه چه کهٔ د آزادوښځو کثرت د فقیرئی وجه جوړیږی نو د وینځو کثرت هم د فقیرئی سبب جوړیدې شی .نو

---

(١) دارقطنی : ٢٧١/٣، بیهقی : ١٨٣/٧، وسنده حسن)-
(٢) ابوداود کتاب الطلاق باب فیمن اسلم وعنده نساء اکثر من تربع : ٢٢٤١، ابن ما جة: ١٩٥٢)،-
(٣) مسند الشافعی : ١٦/٢ )-

صحيح قول د جمهورو دي اومراد ترې دا دي چه دنږدې ده چه تاسو د ظلم نه بچ شئ. عرب وائي چه ( عال فی الحکم ) چه ظلم شوې وی ، د ابو طالب يو قصيده کښې دی چه :

بميزان قسط لا يخيس شعيرة ::: له شاهد من نفسه غير عائل

(ترجمه) داسې تلې سره ئې تول کوی چه هغې کښې داوربشې دانې هومره هم کمې نشته دې دوی سره ددې گواه ددوی نفس دې چه ظالم دې .

ابن جرير کښې دی چه کله کوفيانو عثمان ﷺ باندې خط کښې يو الزام لګولې وو نو د هغې جواب کښې خليفهٔ رسول اوليکل چه ( انی لست بميزان اعول ) څه د ظلم تله نه يم .

صحيح ابن حبان وغيره کښې يو مرفوع حديث د دې تفسير کښې مروی دې چه د دې معنی ده چه تاسوظلم مه کوئی(١)ابو حاتم رحمه الله فرمائی چه ددې مرفوع کيدو خطا ده البته د عائشه رضی الله عنها دا قول دې .

دغه شان د ﴿لا تعولوا﴾ معنی هم يعنی تاسو ظلم مه کوئی ، عبدالله بن عباس ﷺ ،عائشه رضی الله عنها ، مجاهد رحمه الله ،عکرمه رحمه الله ، حسن رحمه الله ، ابومالك رحمه الله ،ابورزين رحمه الله ،نخعی رحمه الله ، شعبی رحمه الله ، ضحاك رحمه الله او عطاء خراسانی رحمه الله ،قتاده رحمه الله ، مقاتل بن حيان وغيره نه هم دا مروی دی(٢)عکرمه رحمه الله هم د ابوطالب شعر پيش کړې دې،امام ابن جرير رحمه الله دا روايت کړې دې اوپخپله امام صاحب هم دا خوښوی.

**قوله تعالى::وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً**

**دمهر وجوب:-** بيا فرمائی چه خپلو بيبيانو ته مهر په خوشحالئ سره ورکوئی چه کوم هم مقرر وی . او چه کوم تاسو منظور کړی وی،خو که ښځه پخپله خپل ټول سامان لږ ډير پخپله خوښی سره سړی ته معاف کړی نو هغې ته اختيار دې.او دې صورت کښې بيشکه سړې که دا خپل استعمال کښې راولی نو حلال اوطيب دی.رسول الله ﷺ نه پس بل هيچاله جائز نه دی چه بغير د واجب مهر نه نکاح اوکړی او نه دا چه د مهر ته چل ول جوړ کړی اوددروغو ورته يونوم ورکړی.(٣)

**د مهر برکت:-** ابن ابی حاتم کښې د علی ﷺ قول دې چه هرکله تاسو کښې څوك بيمار شی نو هغه ته پکار دی چه د خپلې ښځې نه د هغې د مال نه درې درهمه يا کم و بيش واخلی او د دې شهد واخلی او په دې کښې دآسمانی باران اوبه يوځائې کړی نو ورته درې دريې ښيکړې ملاؤ شی.﴿هَنِيئًا مَرِيئًا﴾ ① د ښځې مال ② د شهدو شفا ③ د مبارك باران اوبه.

**د لونړو مهر پخپله اخستلو ممانعت:-** ابو صالح رحمه الله فرمائی چه خلقو به د خپلو لونړو مهر پخپله اخستو نو دې باندې دا آيت نازل شو او هغوئ د دې نه منع کړې شو. (ابن ابی حاتم ابن جرير ).

**د مهر په تعين کښې د زوجينو اختيار :-** د دې حکم آوريدو سره خلقو رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه د دوی خپلو کښې مهر څه دې ؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په کوم څيز باندې د دوی کوروالاراضی وی(ابن ابی حاتم ) (٤).

**هم دا مضمون په بل روايت سره:-** رسول الله ﷺ خپله خطبه کښې درې ځله اوفرمائيل چه د کونډو نکاح کوئی،يوسړې پاسيدو او تپوس ئې اوکړو چه يارسول الله ﷺ ! دوی کښې خپلو کښې مهر څه دې ؟

(١) صحيح ابن حبان : ٤٠١٨، وسنده صحيح )-

(٢) الطبری : ٥٤٩/٧)-

(٣) الطبری : ٥٥٣/٧)-

(٤) بيهقی : ٢٣٩/٧)-

رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په څه بانديې د دوی کور والا راضی وی (¹). د دې یو راوی ابن سلمانی ضعیف دې . بیا دې کښې انقطاع هم ده .

وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ اَمْوَالَكُمُ الَّتِيْ

|اومه ورکوئی (حواله کوئی)| ناپوهانوته |مالونه خپل| هغه |

| اوناپوهه کسانو ته خپل مالونه مه ورکوئی

جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِيٰمًا وَّارْزُقُوْهُمْ فِيْهَا

چه جوړه کړې ده الله تعالی|ستاسودپاره|دګزران ذریعه|البته خوراک ورکوئی هغوئ ته | په دغه مالونو کښې

کوم چې الله پاک ستاسو دګذران ذریعه ګرزولی ده | او هغوئ ته په کښې ډوډئ او

وَاكْسُوْهُمْ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۝ وَابْتَلُوا

اوجامې ورکوئی هغوئ ته| اوکوئ هغوئ ته | خبرې | نیکې (خوږې خوږې)| او امتحان کوئی

اوجامه ورکوئی| اودنیکئ او نصیحت خبرې ورته کوئی| .............اوتاسوامتحان کوئی

الْيَتٰمٰى حَتّٰىٓ اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا

|ادیتیمانو| تر دې چه | اورسیږی هغوی|حد دنکاح ته| نو که | اولیدل تاسو | دهغوئ نه|هوښیارتیا

په یتیمانوباندې | تردې چې هغوئ دنکاح عمر ته اورسی | نو که تاسویه کښې لږډیر تمیزبیامومندو

فَادْفَعُوْٓا اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ ۚ وَلَا تَاْكُلُوْهَآ اِسْرَافًا وَّبِدَارًا

انوورکړئی| هغوئ ته |مالونه دهغوئ| اومه خورئی تاسوهغه|په زیاتئ سره| اوپه تلوارسره (ددې نه)|

نوهله ورته مالونه حواله کړئی| اوداسې مه کوئی چې د هغوئ مالونه په زورزیاتی اوخورئ |اوپه تلوار ئې والوزوئی

اَنْ يَّكْبَرُوْا ؕ وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۚ

چه هغوئ رالوئې شی (او وابه ئې اخلی)|اوهغه څوک| چه وی مالدار | نوهغه دې خان اوساتی

ددې ویرې نه چې دوئ به لوئې شی| او خپل مال به طلب کړی|اوڅوک چه مالداروی هغه دې دعوض اخستونه خان اوساتی

وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ فَاِذَا دَفَعْتُمْ

اوهغه څوک چه وی| فقیر (غریب)| نوخوری دې|مطابق دعامې طریقې| نوکله چه حواله کړئی تاسو|

اوڅوک چې محتاج وی| نو هغه دې د رواج مطابق خرڅ خوراک اخلی| بیاچې کله تاسویتیمانوته

اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ۝

هغوئ ته| مالونه دهغوئ|نوګواهان اونیسئ| په هغوئ باندې|اوکافی دې | الله | دحساب دپاره

ته د هغوی مالونه حواله کوئ| نوګواه پرې جوړ کړئ | اود صحیح حساب دپاره الله کافی دې

**قوله تعالی:: وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ اَمْوَالَكُمْ**

**د مال خرچ کولو دپاره دعقل شرطیت:-** الله ﷻ خلق منع کوی چه کم عقل بې وقوف د مال د تصرف نه منع کړی. مال الله ﷻ په تجارتونو وغیره کښې لګولې دې او د ده د معاش ذریعه ئې جوړه کړې ده. د دې

¹) بیهقی : ۲۳۹/۷)-

نه معلومه شوه چه کم عقل خلق دمال خرچ کولو نه منع کول پکار دی.لکه چې نابالغ ماشوم وی یالیونې وی یا دیوانه وی یا کم عقل بې قوف وی او بې دینه وی او په خرابه طریقه خپل مال خرچ کوی. دغه شان هغه سړې چه په هغه ډیر زیات قرض وی او هغه دا قرض د خپل ټول مال نه هم نشی اداکولې.که دا قرض دارې حاکم وخت ته درخواست اوکړی نو حاکم وخت به هغه ټول مال د ده د قبضې نه واخلی او دې به بیدخله کړی.

**د سفهاؤ په تفسیر کښې اقوال:-** ① ابن عباس ﷺ فرمائی چه دلته سفهاء نه مراد ستا اولاد او ستا ښځې دی(١)دغه شان ابن مسعود ﷺ ،حکم بن عیینه رحمه الله اوضحاك رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد ښځې او ماشومان دی (٢) ② سعید بن جبیر ﷺ فرمائی چه ددې نه یتیم مراد دی (٣)دمجاهد رحمه الله او عکرمه رحمه الله اوقتاده رحمه الله قول دې چه ددې نه ښځې مراد دی (٤)ابن ابی حاتم کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه بیشکه ښځې بې وقوفې دی مګر کومې چه د خپل خاوند تابعدارې وی.(٥) ③ ابن مردویه کښې دا اوږد حدیث هم مروی دې چه ابوهریره ﷺ فرمائی چه ددې نه مراد سرکشه خادم دې.

**قوله تعالی:: وَارْزُقُوهُمْ فِيهَا وَاكْسُوهُمْ**

بیا فرمائی چه دوی ته خوراك څکاك ورکونې اودوی سره ښه خبرې کونې . ابن عباس ﷺ فرمائی یعنی ستا مال چه په دې باندې ته ژوند تیروې.دا خپلو بچو او ښځو ته مه ورکوه چه بیا د هغوئ لاس ته ناست نې . بلکه خپل مال خپله قبضه کښې ساته .اود دوی اصلاح کوه او دوی ته په خپل لاس جامې او د خوراك څکاك بندوبست کوه. او د دوی خرچ هم (٦)

**قوله تعالی:: وَابْتَلُوا الْيَتَامَىٰ حَتَّىٰ إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ**

**دیتیم دمال د حفاظت حد :-** بیا فرمائی چه دیتیمانو پرورش کونې تر دې چه هغوئ ځوانئ ته اورسی. دلته نکاح نه مراد بلوغت دې او بلوغت هغه وخت کښې ثابتیږی چه کله دې خاص قسم خوبونه وینی چه په هغې کښې خاص اوبه راوځی. علی ﷺ فرمائی چه ما ته د رسول الله ﷺ دا فرمان ښه یاد دې چه احتلام نه پس یتیمی نشته دې او نه چپ پاتې کیدل ټوله شپه ورځ. (٧)

**درې کسان مرفوع القلم دی:-** دویم حدیث مبارك کښې دی چه د درې قسمه خلقو نه قلم اوچت شوې دې.

① بچی نه چه تر څو دې بالغ شوې نه وی② د اوده نه چه ترڅوهغه بیدار شوې نه وی③ لیونی نه ترڅو چه هغه هوش کښې راغلې نه وی(٨)

**د بلوغ دویمه نښه:-** نو یو خو دا بلوغت علامت دې . او دویم علامت د بعضو په نیز دا دې چه د پنځلسو کالو شی ،د دې دلیل په بخاری اومسلم کښې د ابن عمر حدیث دې .په هغې کښې هغوئ فرمائی چه د احد په جنګ کښې څه رسول الله ﷺ خانسره بونتلم . په هغه وخت کښې څما عمر څوارلس کاله وو او کله چه د خندق جنګ راغلو نو رسول الله ﷺ څه قبول کړم اوبه هغه وخت کښې څما عمر پنځلس کاله وو.عمر بن عبدالعزیز ته چه کله داحدیث اورسیدو نو هغوئ اوفرمائیل چه دنابالغ اوبالغ حد دادې(٩)

---

(١) الطبری : ٥٦٢/٧)-.
(٢) الطبری : ٥٦٢/٧)-.
(٣) الطبری : ٥٦٣/٧)-
(٤) الطبری : ٥٦٤/٧)-..
(٥) ابن ابی حاتم : )-
(٦) الطبری : ٥٧٠/٧)-..
(٧) سنن ابی داود : ٢٨٧٣،)-
(٨) ابوداود کتاب الحدود باب فی المجنون یسرق اویصیب حدا: ٤٣٩٨، ترمذی: ١٤٢٣،نسائی ٣٤٦٢،ابن ماجة:٢٠٤١، وهوحسن)
(٩) صحیح بخاری کتاب الشهادات باب بلوغ الصبیان وشهادتهم : ٢٦٦٤، صحیح مسلم: ١٨٦٨، )-

**د بلوغ دریمه نښه:-** دریم علامت د بلوغت د زیرناف ویښتو راوتل دی . په دې کښې د عالمانو درې اقوال دی .یو دا علامت د بلوغ دې او دویم دا چه دا د بلوغ علامت نه دې او دریم دا چه په مسلمانانو کښې نه دې او ذمیانوکښې دې . ځکه چې ممکن ده چې دوائی سره ویښته زر راوخیژی. او ذمی چه کله ځوان شی نوپه هغه جزیه لازم شی نو دائې ولې استعمال کړل ؟خو صحیح خبره دا ده چه د ټولو په حق کښې دا علامت د بلوغت دې.ځکه چه اول خو جبلی امر دې ، د علاج معالجه اهتمام خو ډیرې لږې احتمال دې صحیح هم دا ده چه دا ویښته په خپل وخت باندې راوزی.

**زیرناف ویښته علامت ګرځولو باندې دویم دلیل:-** دویم دلیل مسند احمد کښې حدیث دې په هغې کښې عطیه قرظی ﷺ بیان فرمائی چه د بنو قریظه جنګ نه پس مونږ خلق رسول الله ﷺ ته پیش کړې شو نو رسول الله ﷺ حکم اوکړو چه یو سړې دې اوګوری چه د چا ویښته راوتلی وی نو هغه دې قتل کړې شی .اوچه د چا نه وی راوتلی نوهغه دې پرېښودې شی.نو ځما هم نه وو راوتلی نو ځه نې پرېښودم. سنن اربعه کښې هم داحدیث مبارك شته دې (١)اوامام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وائی. د سعد ﷺ فیصله باندې راضی شوی وه او دا قبیله د جنګ کولو نه روستو شوی وه. بیا سعد ﷺ اوفرمائیل چه په دوی کښې کوم خلق جنګ کوی هغوئ قتل کړنی او ماشومان دې قید کړې شی .

**دریم دلیل:-** غرائب ابی عبید کښې دی چه یو هلك د یو ځوانې جینئ باره کښې اووئیل چه ما دې سره بدکاری کړې ده.اصل کښې دا تهمت وو.عمر فاروق ﷺ ده ته دتهمت حد ورکول غوښتل خو وې فرمائیل چه اوګورئی که د ده زیرناف ویښته راوتلی وی نو په ده حد جاری کړئی ګنی دې پرېږدئی. کله چه اوکتلې شو نو نه وو نو د هغه نه حد لرې کړې شو.

**قوله تعالی::** فَإِنْ آنَسْتُم مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ

**د مال د حفاظت راتلو سره مال حواله کول:-** بیا فرمائی چه کله تاسو اوګورئی چه دوی دخپل مال صلاحیت اودمال دحفاظت لائق شو نو ددوی سرپرستو ته پکار دی چه هغوی ته د هغوی مالونه ورکړی. بغیر د ضروری حاجت نه صرف د دې ویرې نه چه دوی به لوئی شی او دوی به ځمونږ نه خپل مال واخلی نو چه مونږ د دې نه مخکښې د دوی مال ختم کړو. د دوی مال مه خورئی .

**قوله تعالی::** وَمَن كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۖ وَمَن كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ ۚ

**مالدار او غریب دپاره د یتیم د مال نه اخستل :** ① چه چاته ضرورت نه وی که مالدار وی نو هغه ته پکار دی چه د دوی د مال نه دې هیڅ نه اخلی.ددوی دپاره دا مال دمردارې او روانې وینې په شان حرام دې. ②خو که غریب او محتاج وی نو بیشکه چه د خپل پرورش دحق مطابق د حاجت دپاره دستور مطابق د دې مال نه دې واخلی(٢) خپل حاجت ته دې اوګوری اوخپل محنت ته دې هم اوګوری. که د ده محنت د حاجت نه کم وی نودحاجت مطابق دې واخلی اوکه دحاجت د محنت نه کم وی نو دمحنت بدله دې واخلی.

**د مالدرائ نه پس د یتیم مال واپس کولو حکم:-** بیا داسې ولی که مالدار شی نو ده چه ځه خوړل ځکل کړی وی هغه به واپس کوی که نه ؟په دې کښې دوه اقواله دی،یو دا چه دابه واپس کوی ځکه چه دا ده د خپل کاربدله کښې اخستې وو.د امام شافعی رحمه الله ملګرو په نیز هم دا صحیح دی.ځکه چه آیت بغیر د بدل نه مباح کړی دی.

**د اولنی قول دلائل :-** ① مسند احمد وغیره کښې دی چه یو سړی اووئیل یارسول الله ﷺ! ما سره مال نشته دې او یو یتیم ځما پرورش کښې دې ، نو آیا ځه د هغه د مال نه خوړلې شم ؟ نو رسول الله ﷺ

---

(١) احمد:٤/٤١٠،ابوداود کتاب الحدود باب فی الغلام یصیب الحد:٤٤٠٤ ترمذی:١٥٨٤،نسائی:٣٤٦٠، ابن ماجة:٢٥٤١، وهو صحیح)

(٢) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ( من کان فقیرا کل بالمعروف ... ) : ٤٥٧٥)-

اوفرمائیل چه او ته د هغه مال خپل کار کښې راوستې شي خو په دې شرط چه د حاجت نه زیات نه وی . او نه د دې جمع کول وی او نه دا چه خپل مال بچ کوې او د هغه مال خرچ کوې. (١)

**دابن حبان روایت:-** ② ابن ابی حاتم کښې هم داسې روایت دې . ابن حبان وغیره کښې دی چه یو سړی رسول الله ﷺ نه سوال اوکړو چه څهٔ یو یتیم د ادب خودلو دپاره د ضرورت مطابق وهلې شم که نه ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه څنګه ته خپل بچی ته زورنه ورکوې (دغه شان کولې شې ) . اومه داسې کوه چه خپل مال بچ کړې اود هغه مال خرچ کوې او د هغه مال سره خان مالداره کوې . (٢)

**د ابن عباس ﷛ فتوی:-** ③ ابن عباس ﷛ نه چا تپوس اوکړو چه ما سره چه څومره اوښان دی او ما سره چه کوم یتیمان پرورش کښې دی د هغوئ هم اوښان دی . څه خپل اوښان د پیو دپاره غریبانانو ته تحفه کښې ورکوم نو آیاداځمادپاره جائز دی چه د دې یتیمانو د اوښو پې اوځکم؟نو ابن عباس ﷛ اوفرمائیل ته د دې یتیمانو ورکې اوښې راولې او ددې د خوراك بندوبست کوې اود هغوئ دپاره حوض درست کوې اود دې نګهباني کوی نو بیشکه د پئیو نه هم فائده اوچتولې شې خو په دې طریقه چه دې بچو ته نقصان اونه رسی اونه حاجت والا ته ( موطاامام مالك ) (٣) .

عطاء بن ابی رباح رحمه الله ،عکرمه رحمة الله علیه،ابراهیم نخعی رحمه الله ،عطیه عوفی رحمه الله اوحسن بصری رحمه الله نه هم دا قول نقل دې .

**دویم قول:-** دویم قول دادې چه د غریبئ لرې کیدو نه پس به هغه مال یتیم ته واپس کوی. ځکه چې اصل ممانعت دې.یو وجې سره جواز شوې وو چه کله هغه وجه ختمه شی.نو د دې بدله به ورکوی.داسې لکه چه یو سړې بې بسه شی او دغیر مال اوخوری لیکن کله چه د ده حاجت پوره شی نو دې نه پس که په ده باندې ښه وخت راغلونو دې به دا واپس کوی.

**د دویم دلائل:-** ①د دویم دلیل دا دې چه عمر فاروق ﷛ چه کله دخلافت په تخت کښیناستو نو اعلان ئې اوکړو چه ځما حیثیت دلته د یو یتیم د ولی پشان دې . که ځما ضرورت نه وو نو څه به د بیت المال نه هیڅ نه اخلم. اوکه محتاج ووم نو د قرض په طوربه اخلم.هرکله چه ما باندې ښه وخت راغلو نو هغه به واپس کوم. (ابن ابی الدنیا). دا حدیث سعید بن منصور کښې هم دې او د دې اسناد صحیح دی.بیهقی کښې هم دا حدیث دې .

**دابن عباس قول:-** ②ابن عباس ﷛ نه د آیت ددې جملې تفسیر مروی دې چه د قرض په طور دې واخلی او نورو مفسرینونه دامروی دی.عبدالله بن عباس ﷛ فرمانی چه دمعروف خوړلو مطلب دادې چه دریو ګوتو سره دې خوراك کوی. او روایت کښې د دوی نه مروی دی چه هغوئ دې صرف خپل مالونه د خپل ضرورت پوره کولو دپاره خرچ کړی چه ده ته د یتیم د مال ضرورت نه وی . عامرشعبی رحمه الله فرمانی چه داسې بې بسی وی چه مرداره خوراك جائز وی نو بیشکه اودې خوری . لیکن بیا به ئې ادا کوی. یحیی بن سعدانصاری رحمة الله علیه! او ربیعه رحمه الله نه د دې تفسیر داشان مروی دې که یتیم فقیر وی نو ده ته دې ولی د ده د ضرورت مطابق ورکوی او دې ولی ته به څه نه ملاویږی دا عبارت کښې صحیح نه معلومیږی. ځکه چه د دې نه مخکښې جمله دا،هم ده چه که هغه غنی وی نو منع دې شی یعنی چه کوم ولی غنی وی،نو دلته هم دا مطلب دې چه کوم ولی فقیر نه وی چه یتیم فقیر وی ،دویم آیت کښې دی چه ﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ :- (ترجمه ) دیتیم مال ته نزدې مه

(١) احمد: ٢/١٨٦، ابوداود کتاب الوصایا باب ماجاء فیما لولی الیتیم ان ینال من مال الیتیم : ٢٨٧٢ وسنده حسن نسائی : ٣٦٩٨، ابن ماجة:٢٧١٨)—

(٢) ابن حبان : ٤٢٤٤، وسنده حسن، المعجم الصغیر: ٢٤٤)—

(٣) موطا امام مالک کتاب صفة النبی ﷺ باب ما جاء فی الطعام: ٣٣، وهو صحیح)—

ورځئ خو که د اصلاح په طور وی ( نو ښه ده). بیا که حاجت وی نو حسب حاجت په طریق معروف ددې نه خوراك څكاك كوئي .

**قوله تعالی:** فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ فَأَشْهِدُوا عَلَيْهِمْ

**دمال حواله کولو په وخت کښې ګواهان قائمول:-** بیا سرپرستو ته بیان کوی چه کله هغوئ بلوغت ته اورسی او تاسو اووینئ چه په دوی کښې تمیز راغلې دې،نوځه وخت چې تاسو دوی ته د دوی مال ورکوئ نو ګواهان پرې مقرر کوئ هسې نه چې انکار اوکړی.هسې خو اصل ریښتونې ګواه اوپوره نګران او باریك حساب کونکی الله ﷻ دې،هغه ته ښه معلومه ده چه ولې د یتیم مال کښې څه نیت لرلې دې ؟آیا ده خیانت اوکړو،تباه ئې کړل،د دروغوریشیاؤ حساب ئې اولیکلو،او ورئې کړل اوکه صفا نیت سره ئې اوکړل ، اوډیرصفائي سره ئې د ده د مال خیال اوساتلواو حساب اوکتاب ئې صفا اوساتلو. ددې ټولو خبرو علم خو هغه یو لوئې او نګهبان ذات ته دې

**ابوذر ﷺ ته نصیحت:-** صحیح مسلم کښې حدیث مبارك دې چه رسول الله ﷺ ابوذر ﷺ ته اوفرمائیل چه ائې ابوذر ! څه وینم چه ته کمزورې ئې او څه چه خپل ځان دپاره غواړم نو هم هغه ستا دپاره غواړم ، خبردار د دوؤ کسانو هم سردار او امیر مه جوړیږه او مه د یو یتیم ولی جوړیږه. [1]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِلرِّجَالِ | نَصِيبٌ | مِّمَّا | تَرَكَ | الْوَالِدٰنِ | وَالْأَقْرَبُونَ ص |
| اودپاره دنارینه | حصه ده | دهغه مال نه | چه پریښودې وی | مور پلار | اوخپلوانو |
| دنارینه هم په هغه مال کښې برخه مقرره چې مور پلار اونوروخپلوانو پریخودې وی | | | | | |
| وَلِلنِّسَاءِ | نَصِيبٌ | مِّمَّا | تَرَكَ | الْوَالِدٰنِ | وَالْأَقْرَبُونَ |
| اودپاره دزنانه | حصه ده | دهغه مال نه | چه پریښودې وی | موریلار | اوخپلوانو |
| اوښځوهم هغه مال کښې حصه مقرر ده چې کوم موریلار اونوروخپلوانو پریخودې وی | | | | | |
| مِمَّا قَلَّ مِنْهُ | أَوْ كَثُرَ | نَصِيبًا | مَّفْرُوضًا ۝ | وَإِذَا حَضَرَ | |
| دهغې نه که لږوی دهغې مال نه | اوکه ډیر | حصه | مقرر کړې شوې | اوکله چه حاضر شی | |
| که دغه مال لږ وی اوکه ډیر وی \| داحصې دالله پاك دطرفنه مقرر دی \| اوکله چې | | | | | |
| الْقِسْمَةَ | أُولُوا الْقُرْبٰى | وَالْيَتٰمٰى | وَالْمَسٰكِينُ | | |
| (دمیراث)دتقسیم په وخت کښې | اوخاندان خلق (چه وارثان نه وی) | اویتیمان | مسکینان | | |
| دتقسیم په وخت کښې خپل خپلوان ،یتیمانان او مسکینان (د تقسیم مجلس ته ) حاضر شی | | | | | |
| فَارْزُقُوهُمْ | مِّنْهُ | وَقُولُوا لَهُمْ | قَوْلًا | مَّعْرُوفًا ۝ | وَلْيَخْشَ |
| نوور کړئ هغوئ ته | دهغې نه | او وائې هغوئ ته | خبره | نیکه (خوږه پسته) | اوبکار دی چه اوویریږی |
| نوهغوئ ته هم په کښې څه ورکوئ \| او سمې روغې خبرې ورسره کوئ \| اوداسې خلقو ته ددې نه ویره پکارده | | | | | |
| الَّذِينَ | لَوْ تَرَكُوا | مِنْ خَلْفِهِمْ | ذُرِّيَّةً | ضِعٰفًا | خَافُوا عَلَيْهِمْ ص |
| هغه کسان | که چرې پریږدی هغوئ | روستو دمرګ خپل نه | اولاد | کمزوری | انو یریږی په هغوئ |
| که هغوئ خان نه پس داسې اولاد پریخودې وې انوځنګه ویره به ئې په زړونو کښې راتله | | | | | |

[1] صحیح مسلم کتاب الامارة باب کراهیة الامارة بغیر ضرورة : ۱۸۲٦ ابوداود: ۲۷٦۸، نسائی: ۳٦۹۷)-

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَلْيَتَّقُوا اللّٰهَ | وَلْيَقُوْلُوْا | قَوْلًا سَدِيْدًا ⑨ إِنَّ الَّذِيْنَ | يَأْكُلُوْنَ |
| نو یکار دی چه اوویریږی د الله نه \| او یکار دی چه اووائی \| خبره سمه خوږه \| بیشکه هغه کسان \| چه خوری \| | | | |
| نو یکار ده چې د الله پاک نه اوویریږي \| او (یتیمانو سره) سمه خبره کوني \| بیشکه هغه کسان چې | | | |
| أَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا | إِنَّمَا | يَأْكُلُوْنَ | فِيْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا |
| مالونه د یتیمانو \| په ظلم سره \| په حقیقت کښې \| خوری (یعنی اچوی) هغوی \| په خیټو خپلو کښې \| اور \| | | | |
| چې د یتیمانو مالونه په ناحقه خوری هغوی نور څه نه کوی خو خپلې خیټې د اور نه ډکوی | | | |
| وَسَيَصْلَوْنَ | سَعِيْرًا ⑩ | | |
| او اچولې کیږی به هغوی \| د لمبو سخت اور ته \| | | | |
| او دوزخ اور ته به زر داخل کړې شی \| | | | |

**قوله تعالى:: لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْأَقْرَبُوْنَ**

**میراث کښې د هریو حصه مقرر ده :-** د عربو د مشرکانو دا دستور وو چه کله به څوك مړ شو نو د هغه مشر اولاد ته به د ده مال ملاویدو، کشر اولاد او ښځې به بالکل ددې نه محرومه وې . اسلام دا حکم اوفرمائیلو او د ټولو ئې یو برابر حیثیت قائم کړو چه وراثان به ټول وی که قرابت حقیقی وی او که په وجه د زوجیت وی یا په وجه د نسبت آزادئ وی ، حصه به ټولو ته ملاویږی اګر چه کم وبیش وی. ام کجه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شوه او عرض ئې اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! خما دوه لونړه دی او دهغوئ پلار وفات شوې دې .او هغوئ سره هیڅ نشته دې .نو دا آیت مبارك نازل شو. هم دا حدیث به نورو الفاظو سره د میراث او نورو آیتونو تفسیر کښې به انشاء الله نزدې راشی ،والله اعلم .

**قوله تعالى:: وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبٰى**

**د میراث د تقسیم په وخت کښې غریبانانو ته څه ورکول:-** د دویم آیت مبارك مطلب دا دې چه کله د یو مرده میراث تقسیمیږی او هلته د ده څوك لرې رشته دارهم راشی چه د هغه هیڅ حصه مقرر نه وی او یتیمانان او مساکین راشی نو هغوئ ته هم څه نه څه ورکړئ .

**غریبانانو ته په میراث کښې د څه ورکولو شرعی حیثیت:-** د اسلام شروع کښې دا واجب وو او بعضې وائی چه مستحب وو.او اوس هم دا حکم باقی دې که نه ؟په دې کښې دوه اقواله دی . ابن عباس ﷺ فرمائی چه دا باقی دې (١) مجاهد رحمه الله ، ابن مسعود رضی الله عنه ، ابوموسی رضی الله عنه ، عبدالرحمان بن ابوبکر رضی الله عنه ، ابوالعالیه رحمه الله ، شعبی رحمه الله ، حسن رحمه الله ،ابن سیرین رحمه الله ،سعید بن جبیر رحمه الله ،مکحول رحمه الله ،ابراهیم نخعی رحمه الله ، عطاء بن ابی رباح رحمه الله ، زهری رحمه الله ،یحیی بن معمر رحمه الله هم دې ته باقی وائی. بلکه دا حضرات سوا د ابن عباس ﷺ نه د وجوب قائل دی. (٢)

**د عبیده رحمه الله او عروه رحمه الله عمل:-** عبیده رحمه الله ، د یو وصیت ولی وو هغوئ یو چیلئ ذبح کړه او درې قسمه خلقو باندې ئې اوخوړله .اووې فرمائیل که دا آیت نه وې نو دا هم خما مال وو. عروه رحمه الله د مصعب د مال تقسیم وخت کښې خپلوانو ته مال ورکړې وو .د زهری رحمه الله هم قول دې چه دا آیت محکم دې ، منسوخ نه دې .

**غریبانانو ته د څه ورکولو حکم په وصیت پورې متعلق دې:-** یو روایت کښې ابن عباس ﷺ فرمائی چه دا موقوف دې وصیت باندې .نو د عبدالرحمان بن ابوبکر رضی الله عنه وفات نه پس د دوی خوئې عبدالله د خپل

(١) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النساء باب (واذا حضر القسمة...) : (٤٥٧٦)-

(٢) الطبری: ٨/٨)-

بلا رمیراث تقسیم کړو او دا واقعه د ام المومنین عائشه رضي الله عنها په موجودګۍ کښې شوې وه. نو کوم کښې چه خومره مسکینان او قرابتدار وو تپولو ته ئې ورکړل او د دې آیت تلاوت ئې اوفرمائیلو. ابن عباس ﷺ ته چه کله معلومه شوه نو وې فرمائیل چه هغه صحیح اونه کړل . ددې آیت نه مراد دا دې چه کله مرده وصیت کړې وی ( ابن ابی حاتم).

**غریبانانو ته د څه ورکولو حکم منسوخیت قائلین:-** د بعضو قول دې چه دا آیت بالکل منسوخ دې لکه عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی چه دا آیت منسوخ دې او ناسخ آیت ( يُوصِيكُمُ اللَّهُ) الخ دې. حصې مقرر ولو نه مخکښې دا حکم وو، بیا کله چه حصې مقرر شوې اوهرحقدار ته پخپله الله حق اورسولو نو اوس صدقه صرف هغه پاتې شوه چه دکومې مرده وصیت کړې وی .سعید بن مسیب رحمه الله هم دافرمائی که وصیت ددې خلقودپاره وو نو دابله خبره ده. ګنی دا آیت منسوخ دې. دجمهورو دخلورو واړو امامانو هم داقول دې .

**د یو عجیبه قول نقل کول:-** امام ابن جریر رحمه الله دلته یو عجیبه قول اختیار کړې دې د هغه د اوړد او بار بار تقریر حاصل دا دې چه د مال د تقسیم په وخت کښې کله چه د مرده رشته دار راشی نو دوی ته ورکړنی اوکه یتیمانان مسکینان راشی نو دوی سره خبرو کښې نرمی اوکړنی او دوی ته ښه جواب ورکړنی. لیکن دې کښې نظردې (یعنی دا قول ضعیف دې) والله اعلم. ابن عباس ﷺ وغیره فرمائی چه تقسیم نه مراد دلته د میراث تقسیم دې ،نو دا قول د امام جریر رحمه الله خلاف دې

**د ایت صحیح مطلب:-** صحیح مطلب د دې آیت دا دې چه کله دا غریب خلق د میراث د تقسیم په وخت کښې راشی او تاسو خپله خپله حصه جدا کړنی او دا غریبانان ګوری نو دوی تاسو هم څه ورکړنی . او دوی د هغه ځائې نه خالی لاس مایوسه مه لیږنی. دا الله ﷺ رؤف رحیم ته خوښ نه دی .دوی ته د الله ﷺ لارکښې صدقه هم ورکونی چه دوی هم خوشحاله شی.

**غریبانانو ته د څه نه ورکولو نتیجه:-** لکه بل ځائې کښې فرمائی چه کله فصل پوخ شی نو په دغه ورځ د دوی حق ادا کړنی او الله ﷺ د دې خبرې ډیر مذمت کړې دې چه تاسو د اوږو اومسکینانو نه د خپل باغ میوې په پټه کور ته راوړې لکه سورة ن کښې دی چه هغوی د شپې په وخت کښې په پټه د پټی او باغ دانې اومیوې راوړلودپاره لاړل .اودهغوی نه هلته عذاب مخکښې رسیدلې وو.او ټول باغ سویزیدلې ایرې ایرې وو.د نورو حق تباه کوونکو هم دا حشر وی. حدیث شریف کښې دی چه په کوم مال کښې صدقه اونشی یعنی هغه سړې د خپل مال نه صدقه اونه باسی نو د ده مال د ده دپاره تباهی جوړیږی ([1]).

**قوله تعالی:: وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا خَافُوا عَلَيْهِمْ**

بیافرمائی چه ویریږی دې هغه خلق چه کوم مالونه پریږدی الخ. یعنی یو سړې د خپل مرګ په وخت کښې وصیت کوی او دې کښې خپلوانو ته ضرر رسوی نو د دې وصیت آوریدونکی ته پکار دی چه د الله ﷺ نه اویریږی او د ده صحیح خبرې طرفته رهنمائی اوکړی. او د ده د وارثانو دپاره داسې ښیګړه اوغواړی لکه د خپلو وارثانو سره چه ښیګړه کوی، کله چه د هغوی د بربادنی اوتباهئ ویره وی.

**په مال کښې د دریمې حصې د وصیت ممانعت:-** بخاری او مسلم شریف کښې دی چه کله رسول الله ﷺ د سعد بن ابی وقاص ﷺ بیمار پرسئ دپاره ورغلل او سعد ﷺ اونیل چه یارسول الله ﷺ ! ما سره ډیرمال دې اوصرف ځما یو لور ده نو که تاسو اجازت راکونی نو څه به د خپل مال درې حصې د الله ﷺ لار کښې صدقه کړم ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه نه . هغوئ اوفرمائیل چه د نیم اجازت راکړنی نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه نه . هغه بیااونیل چه دیوې حصې اجازت راکړنی .رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه خیردې لیکن

---

[1]) بیهقی : ١٥٩/٤، مسند الحمیدی بتحقیقی : ٢٣٩ ، ()-

دا هم زیات دی. ته که د خان نه روستو خپلوان مالدار پریږدې نو دا ډیره بهتره ده د دې نه چه ته هغوئ غریبانان پریږدې او هغوئ کریږي.[1]

**د یوې حصې نه کم وصیت کول:** ابن عباس ﷺ فرمائي خلق دیوې حصې نه کم وصیت کوی نو دا ډیره ښه ده ځکه چه رسول الله ﷺ یوحصې ته هم زیات وئیلی دی.[2] فقهائې کرام فرمائي که دمړه وارثان مالداروی نوبیا خیر دې دیوې حصې وصیت دې اوکړي. اوکه غریبانان وی نومستحب دی چه د دې نه دکم وصیت اوکړي.

**قوله تعالی:** إِنَّ ٱلَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَٰلَ ٱلْيَتَٰمَىٰ ظُلْمًا

**دایت دویم مطلب:** د دې آیت دویم مطلب دا بیان شوې دې. چه تاسو د یتیمانو دومره مال ساتئ چه څومره تاسو غوارئی چه ستاسو د مرګ نه پس نور خلق ستاسو د وړوکی اولاد خیال ساتی. ځنګه چه تاسو نه غوارئی چه د دوی مال دې نور خلق ظلم سره او خوری او هغوئ دې په داسې حالت کښې بالغ شی چې فقیران وی. دغه شان د نورو د اولاد مال هم مه خورئی دا هم ښه مطلب دې، ځکه د دې نه پس دهغه خلقو سزا بیان شویده چه کوم په ناحقه د یتیمانانو مال خوری چه دا خلق خپلو خیټو کښې اور اچوی او دوی جهنم ته تلونکی دی.

**د یتیم مال خوړل لویه ګناه ده:** بخاری او مسلم شریف کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه د اووه ګناهونو نه ځان ساتئ ځکه چه دا د هلاکت باعث دی. تپوس اوشو چه کوم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ① الله ﷻ سره شرک کول ② جادو ③ بې وجې قتل ④ سود خوړل ⑤ دیتیم مال خوړل ⑥ جهاد نه تیختـه کول ⑦ په پاکه مسلمانه ښځه باندې تهمت لګول.[3]

**دمعراج په شپه د یتیمانو مال خوړونکو عذاب:** ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرات صحابه کرامو ؓ کله رسول الله ﷺ نه د معراج د شپې د واقعې باره کښې تپوس اوکړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ما ډیر خلق اوکتل چه د هغوئ شونډې لاندې زوړندې وې او فرښتو دهغوئ شونډې نورې هم راښکلې، بیا به ئې په دې باندې د جهنم کاڼړی اینبودل چه دا به د دوی د خیټو نه روستو وتل او دوی به ډیرې چغې وهلې. اوهائې هائې به ئې کول. ما جبریل ؑ نه تپوس اوکړو چه دا کوم خلق دی؟ هغوئ اوفرمائیل چه دا هغه خلق دی چه دوی به د یتیمانو مال خوړلو او دوی به خپلو خیټو کښې اور اچولو. او نزدې ده چه دوی به جهنم ته داخل شی.[4]

**د یتیم مال خوړونکی حشر:** سدی ﷫ فرمائي چه د یتیم مال خوړونکی به د قیامت په ورځ خپل قبر نه داسې پاسی چه د ده سپیږمو نه به د اور شغلې خیژی. هر سړې به دوی پیژنی چه دوی په ناحقه دیتیم مال خوړلې وو. ابن مردویه کښې یو مرفوع حدیث مبارک کښې هم دا مضمون نزدې نزدې مروی دې.[5]

**د یتیمانو د مال نه د ځان ساتلو وصیت:** او یوحدیث مبارک کښې دی چه څه تاسوته وصیت کوم چه د دې دوارو ضعیفانو مال دوئ ته حواله کړئ، د ښځو او د یتیمانانو، د دوی د مال نه ځان او ساتئ.

**د سورة بقرې د ایت د نزول نه پس د صحابو عمل:** سورة بقره کښې روایت تیر شوې دې چه کله دا آیت نازل شو نو چا سره چه یتیمانان وو نوهغوئ د دوی مالونه جدا کړل. عام طور داسې به کیدل چه د خوراک څکاک داسې څیز به بچ شو نو یاخو به ئې بل وخت کښې دا باسی څیز خوړو. او یا به سخاشو اودابه ئې اوغورزولو، اوکور والو کښې به هیچا دا نه خوړلو. دا خبره دوادړو ته ښه معلوم نشوه. رسول الله ﷺ ته هم

[1] صحیح بخاری کتاب الوصایا باب ان یترک ورثته اغنیاء خیر ....: ۲۷٤۲، صحیح مسلم: ۱٦۲۷)-

[2] صحیح بخاری حواله سابق: ۲۷٤۳، صحیح مسلم: ۱٦۲۹)-

[3] صحیح بخاری کتاب الحدود باب رمی المحصنات: ٦۸٥۷، صحیح مسلم: ۸۹)-

[4] الطبری: ۸۷۲٥، )-

[5] مسند ابی یعلی: ۷٤٤۰، ابن حیان: ٥٥٦٦،)-

ددې ذکراوشو ، دې باندې دا آيت نازل شو چه ﴿وَيَسْتَلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى﴾ الخ . د دې مطلب دا دې چه په کوم کار کښې د يتيمانو بهترې وي نوهغه کوئ ، نو دې نه پس بيا خوراک څکاک يو ځاې شو.

يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ

|حکم کوی تاسو ته الله تعالى| په باره د اولاد ستاسو کښې

|ستاسودا اولاد په باره کښې الله تاسو ته حکم کوی

لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً

|حصه دپاره د نارينه|په مثل | دحصې | ددوؤ زنانه| نوکه وی (دمړی وارثاني) صرف ښځې (لونړه)|

چې ديوسړي برخه ددوه سړو برابره ده نوکه د مړی وارثاني دوه

فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ وَاِنْ كَانَتْ

زياتې | د دوؤ نه | نو ده حصه دهغوی| په دريو کښې دوه حصې|دهغه مال نه|چه پريښې وی مړی| اوکه وه |

يادوؤ نه زياتې وی نوهغوی له دې په دريو کښې دوه برخې ورکړې شی اوکه

وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ وَلِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ

(وارثه) صرف يوښځه (لور)|نوده حصه دهغې|نيمې (دميراث)| او ده حصه د مورپلار دمړی|دپاره دهريو

يوزنانه وارثه وی نوهغې له دې نيم مال ورکړې شی او مور پلار ته دې هريو ته

مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ اِنْ كَانَ لَهٗ وَلَدٌ فَاِنْ لَّمْ

دهغوی دواړو |شپږمه | دهغه مال نه |چه پريښودې وی مړی|(هله) که وی|هغه مړی لره | ولد |نوکه نه وو|

دواړو نه شپږمه حصه ورکړې شی که چرې ددوی اولاد وی | ..........اوکه چرې

يَكُنْ لَّهٗ وَلَدٌ وَّوَرِثَهٗٓ اَبَوٰهُ فَلِاُمِّهِ

هغه مړی لره | ولد |او وارثان وو دهغه مړی|صرف مورپلار دهغه|نوده حصه دمور دهغه|

د ده اولاد نه وی اومورپلار ني وارثان وی | ............نو (په دې صورت کښې) د مور ئې

الثُّلُثُ فَاِنْ كَانَ لَهٗٓ اِخْوَةٌ فَلِاُمِّهِ السُّدُسُ

دريمه (باقى دپلار ده)|اوکه وو هغه مړی لره|رونړه خويندې|نوده حصه دمور دهغه| شپږمه

دريمه حصه ده | اوکه رونړه خويندې ئې پاتې وی | نو دمور ئې بيا شپږمه حصه مقرر ده

مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْ بِهَآ اَوْ دَيْنٍ اٰبَآؤُكُمْ

روستو (د اداکولو)دوصيت نه|چه وصيت اوکړی| په هغې سره|يا روستو دقرض ورکولونه| پلاران ستاسوا

داحصې به هله ويستې شی چې اول دمړی وصيت پوره کړې شی|اوکه قرض پرې وی نواول به هغه اداکولې شی

وَاَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُوْنَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا

اوځامن ستاسو| نه پوهيږئ تاسو| چه کوم يو دهغوی نه | زيات نزدې دې|تاسوته| په لحاظ دنفعې سره

اوستاسوپلرونه او ځامن چې دی تاسونه پوهيږئ چې څوک تاسوته فائده رسولو کښې زيات نزدې دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَرِيْضَةً | مِّنَ اللّٰهِ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ كَانَ | عَلِيْمًا | حَكِيْمًا۝ |
| ادامقرر حصې دی | ادطرفه دالله تعالی | ابیشکه الله دې | ابنه پوهه | اودحکمت خاوند |
| داحصې الله پاک مقرر کړی دی | | بیشکه الله پاک په هرڅه پوهه دی | | |

**قوله تعالى:** يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ

**دابن کثیر رحمه الله د میراث په احکامو تبصره:-** دا آیت کریمه او دې نه پس آیت کریمه او د دې سورت آخری آیت کریمه د علم فرائض آیتونه دی . دا پوره علم د هغه آیتونو او میراث احادیثونه استنباط کړې شوې دی چه کوم احادیث د دې آیتونو ګویا تفسیراووضاحت دې . دلته مونږ د دې آیت تفسیر لیکو. باقی چه د میراث دمسائلو پوره تقریر دې او هغې کښې چه د کومو دلائلو پوهه کښې اختلاف دې د هغې د بیانولو مناسب ځائې د احکاموکتابونه دی ، تفسیر نه دې . الله ﷻ دې خمونږ مدد اوکړی.

**ټول علم درې حصې دی:-** د علم فرائض زده کولو رغبت کښې ډیر احادیث دی . دې آیتونو کښې چه د کومو فرائضو بیان دې دا ټول زیات اهم دی.ابوداود او ابن ماجه کښې دی چه علم اصل کښې درې حصې دی اوددې نه سوا فضول دی ① دقران ایاتونه چه مضبوط دی اودهغې احکام باقی دی.② سنت قائمه یعنی احادیث چه کوم ثابت دی ③او فریضه عادله یعنی د میراث مسائل چه ددې دواړو نه ثابت دی.[1]

**میراث نیم علم دې:-** دابن ماجه دویم ضعیف حدیث مبارک کښې دی چه فرائض (دمیراث علم) زده کړئ او نوروته ئې ښائې دانیم علم دې.او هیریږی اوهم دا رومبې هغه څیز دې چه خمادامت نه به واخستې شی[2] ابن عیینه رحمه الله فرمائی چه دې ته نیم علم په دې وجه وئیلې شوی دی چه ټول خلق داعام طوربیش کوی.

**دایت شان نزول:-** صحیح بخاری شریف کښې دی چه د دې آیت تفسیر جابر بن عبدالله رضی الله عنه نه مروی دې چه زه بیمار ووم. رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق رضی الله عنه خما پوښتنې ته راغلل. د بنو سلمه محله کښې پیاده راتلل،زه په هغه وخت کښې بیهوش ووم. رسول الله ﷺ اوبه راوغوښتلې او اودس ئې اوکړو او بیائې د اودس اوبو نه مابانديَ څاڅکی راواچول نو دې سره زه هوش کښې راغلم. ما اووئیل چه یارسول الله ﷺ! زه خپل مال څنګه تقسیم کړم؟نودې کښې دا آیت مبارک نازل شو. صحیح مسلم او نسائی وغیره کښې هم دا حدیث موجود دې.[3]

**دایت دویم شان نزول:-** ابوداود ، ترمذی ، ابن ماجه ، مسندامام احمد بن حنبل وغیره کښې مروی دې چه دسعد بن ربیع رضی الله عنه بی بی صاحبه رسول الله ﷺ ته راغله اوعرض ئې اوکړو چه یارسول الله ﷺ دا دواړه دسعد رضی الله عنه لونړه دی.د دوی پلار تاسو سره جنګ احد کښې شریک شوې وو او هم هلته شهید شو. د دوی تره د هغه ټول میراث قبضه کړې دې .او د دوی دپاره ئې هیڅ نه دی پریښودی.او دا ښکاره ده چه ددوی نکاح بغیر د مال نه نشی کیدې.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د دې فیصله به پخپله الله ﷻ کوی . نو دا آیت نازل شو.رسول الله ﷺ د هغوئ تره ته جواب اولیږلو چه دوه حصې دې دواړو جینکو ته ورکړه او اتمه حصه د دوی مور ته ورکړه او باقی مال ستا دې.[4]

**د دواړو روایاتونو په مینځ کښې تطبیق:-** ظاهره داسې معلومیږی چه د جابر رضی الله عنه سوال باندې ددې سورة آخری آیت نازل شوې دې لکه څنګه چه نزدې به راشی انشاء الله.ددې وجې د دوی وارثانې د دوی خوئیندې وې،جینکئ ئې هلته وې نه. هغه خو کلاله وو.او دا آیت مبارک دې باره کښې نازل شو یعنی د سعد

---

[1]) ابو داود کتاب الفرائض باب ماجاء فی تعلیم الفرائض : ۲۸۸۵)-
[2]) ابن ماجة کتاب الفرائض باب الحث علی تعلیم الفرائض : ۲۷۱۹)-
[3]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النساء باب ( یوصیکم الله فی ...) : ٤٥٧٧، صحیح مسلم: ۱٦۱٦)-
[4]) احمد: ۳۵۲/۳، ابوداود کتاب الفرائض باب ماجاء فی میراث الصلب : ۲۸۹۱، ترمذی: ۲۰۹۲، ابن ماجة: ۲۷۲۰)-

بن ربیع ﷺ د وراثت باره کښې نازل شوې دې .او ددې راوی هم پخپله جابر ﷺ دې. خوامام بخاری ﷫ داحدیث د دې آیت مبارك تفسیرکښې وارد کړې دې.د دې وجې مونږ هم د هغه تابعداری اوکړه ، والله اعلم.

**د نارینه دوچنده حصې وجه:-** مطلب دا دې چه الله ﷻ تاسو ته ستاسو د اولاد باره کښې عدل کوئ . اهل جاهلیت به ټول مال هلکانو ته ورکولو. او جینکئ به نې خالی لاس پریښودې.نو الله ﷻ د هغوئ حصه هم مقررکړه. خود دواړوحصو کښې فرق اوساتلې شو. ځکه چه د سړو په ذمه کومې ذمه واریٔ دی هغه د ښځو په ذمه نه دی .لکه د خپلو متعلقینو د خوراك ، څکاك ،اوخرچ اوکفالت ،تجارت اوکسب اونور مشقتونه د دوی په ذمه وی. نو دوی ته نې د ښځو مقابله کښې دوچنده حصه ورکړه.

**یوه باریکه نکته:-** بعضو هوښیار بزرګانو دلته یو باریکه نکته بیان کړې ده ، فرمائی چه الله ﷻ خپلو بندګانو باندې ډیر زیات مهربان دې د مور پلار په نسبت ، مور پلار ته د دوی داولاد باره کښې وصیت کوی،نو معلومه شوه چه مور پلارخپل اولاد باندې دومره مهربان نه دې څومره چه څمونږ خالق الله ﷻ خپل مخلوق باندې مهربان دې .

**دالله مهربانی د مور نه هم زیاته ده:-** یو صحیح حدیث مبارك کښې دی چه د قیدیانو نه د یو ښځې ماشوم د دې نه ورك شو ، هغې دلیونو پشان خپل ماشوم تلاش کولو او چه کوم ماشوم به نې لیدو نو خپلې سینې سره به نې لګولو او هغه ته به نې پئ ورکول. رسول الله ﷺ چه دا اوکتل نو خپلو صحابو ﷺ ته نې اوفرمائیل چه تاسو اووائې چه آیا دا ښځه به داخپل ماشوم اور ته اوغورځوی ؟خلقو اووئیل یارسول الله ﷺ ! بالکل نه.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په الله ﷻ قسم الله ﷻ خپلو بندګانو باندې د دې نه هم زیات مهربان دې (<sup>1</sup>)

**د حصو تقسیم:-** ابن عباس ﷺ فرمائی چه مخکښې د مال حصه دار او حقدار صرف هلکان وو. مور پلار ته به د وصیت په طور مال ملاویدو. الله ﷻ دا منسوخ کړل او هلك ته نې د جینئ نه دوچند حصه ورکړه. اومور پلارته نې شپږمه حصه ورکړه. او دریمه حصه هم .او ښځې ته اتمه حصه او څلورمه حصه اوخاوند ته نیمه او څلورمه. (<sup>2</sup>)

**د بعضو خلقو اعتراض:-** فرمائی چه دمیراث احکام نازلیدو سره بعضو خلقو اووئیل چه دا ښه خبره ده چه ښځې ته شپږمه حصه او اتمه حصه ورکړې شوه. او جینئ ته نیمه حصه او وړو وړو ماشومانو دپاره هم حصه مقرر شوه. حالانکه نه خو دوی کښې څوك جنګ ته تلې شی او نه دغنیمت مال راوړې شی .دا چه تاسو د دې آیتونو په نازلیدو خاموشی اختیاروئ چه شاید رسول الله ﷺ نه دې هیر شی یا دې رسول الله ﷺ څمونږ په وینا دا بدل کړی. بیا خلقو رسول الله ﷺ ته اووئیل چه تاسو جینئ د پلار په مال کښې د نیم مال حصه داره جوړونی حالانکه نه خو هغه په آس د کښیناستو قابله ده او نه دښمن سره مقابله کولې شی.رسول الله ﷺ ماشوم ته وراثت کښې حصه ورکوی حالانکه داهغه ته هیڅ فائده نه ورکوی. دې خلقو به د جاهلیت زمانه کښې داسې کول (<sup>3</sup>)چه میراث به نې صرف هغه کس ته ورکولو چه کوم به د جنګ کولو قابل وو. مشر هلك به نې د وراثت قابل ګڼړلو(که د مرده ځامن او لونړه دواړه وی نو) فرمائی چه دجینئ څومره حصه رسی نوددې نه دې دوچند هلك ته ورکړې شی . یعنی که یو هلك او یو جینئ وی نو د ټول مال درې حصې کړی دوه حصې هلك ته او یو حصه دې جینئ ته ورکړې شی .

**قوله تعالی::** فَإِن كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ ٱثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۖ

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الادب باب رحمة الولدٰ وتقبله ومعانقته : ٥٩٩٩، صحیح مسلم: ٢٧٥٤)-.
[2]) صحیح بخاری کتاب الادب التفسیر: سورة النساء باب ( ولکم نصف ما ترک ازواجکم...) : ٤٥٧٨)-
[3]) الطبری: ٨٧٢٨،)-

**د صرف جینکو په صورت کښې د میراث تقسیم**:-اوس فرمائی که صرف جینکئ وی نو دوی ته به څه ملاویږی (مترجم)لفظ (فَوْقَ) ته بعضې خلق زائد وائی . لکه ﴿فَاضْرِبُوْافَوْقَ الْاَعْنَاقِ﴾ کښې لفظ (فَوْقَ) زائد دې . لیکن مونږ دا نه منو. نه په دې آیت کښې او نه هغه آیت کښې . ځکه چه قرآن پاك کښې هیڅ داسې څیز زیاتی نشته دې چه د هغې هیڅ فائده نه وی . د الله ﷻ کلام کښې داسې کیدل محال دی. بیا دا خیال ساتل پکار دی که داسې وې نو دې نه پس (فَلَهُنَّ) به نه راتلو بلکه ( فلهما) به راتلو.

**د دوو جینکو نه د زیاتو په صورت کښې حکم**:- خو دا دې مونږ ته معلومه وی که چرې جینکئ د دوؤ نه زیاتې نه وی یعنی صرف دوه وی نو هم دا حکم دې .یعنی دوی ته به دوه ثلث ملاویږی① ځکه چه دویم آیت کښې دوؤ خویندو ته دوه ثلث ورکړې شوې دی. اوکله چه دوؤ خویندو ته دوه ثلث ورکولې شی نو دوؤ جینکو ته دوه ثلث ولې نه ملاویږی ؟ دوی دپاره دوه حصې په طور د اولی پکار دی او حدیث مبارك کښې راغلی دی چه دوؤ جینکو ته رسول الله ﷺ دوه حصې مال ورکړې دې لکه څنګه چه د دې آیت مبارك د شان نزول په بیان کښې د سعد ﷺ د لونړو په ذکرکښې ددې نه مخکښې بیان شو. نو اوس کتاب او سنت نه ثابت شو.دغه شان ددې دلیل دا هم دې که یو جینئ وی او هلك نه وی نو دې صورت کښې به دې ته نیم مال ورکولې شی.او که دوؤ ته دنیم نیم ورکولو ذکر کول مقصود وو وې نو هم دلته بهٔ بیانیدو ،هرکله چه یو جدا کړې شوه نومعلومه شوه ه د دوؤ هغه حکم دې چه دوؤنه زیات وی،والله اعلم

**قوله تعالی**:: وَلِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ

**د مور پلار حصه** :- دموږپلار حصه بیانیږی .د دوی د وراثت مختلف صورتونه دی ①یو دا که د مړده اولاد د یو جینئ نه زیات وی او مور پلار ئې هم وی نو دوی ته به شپږمه حصه ملاویږی. یعنی شپږمه حصه مورته او شپږمه حصه پلار ته که د مړده صرف یو لور وی نو نیم مال به دې جینئ ته ورکولې شی اوشپږه حصه به مور ته اوشپږمه حصه پلار ته .اوکومه شپږمه حصه چه باقی پاتې شوه هغه به په طور د عصبه پلارته ملاویږی. نو دې حالت کښې به پلار فرض اوتعصب دواړه جمع کړی . یعنی مقرره شپږمه حصه او په طور د عصبه والا مال.

**قوله تعالی**:: فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلَدٌ وَّوَرِثَهٗٓ اَبَوٰهُ فَلِاُمِّهِ الثُّلُثُ

دویم صورت دا دې که صرف مورپلار وراثت کښې وی نو مور ته به دریمه حصه ا و باقی ټوله به پلارته په طوردعصبه ملاویږی. یعنی دوه ثلث به د ده مور ته ملاویږی. یعنی د مور په نسبت پلارته به دوچند حصه ملاویږی .که د مړده ښځې خاوند هم وی یا د مړده سړی ښځه هم وی یعنی اولاد ئې نه وی ، مور پلار ئې وی او خاوند وی یا ښځه نودې باندې اتفاق دې چه خاوند ته به نیمه او ښځې ته به څلورمه حصه ملاویږی.

**د مور په حصه کښې اختلاف**:- بیا د علماء کرامو دې کښې اختلاف دې چه مورته به د دې نه پس څه ملاویږی ؟ په کښې درې قوله دی .

① یو دا چه کوم مال باقی پاتې شی په هغې کښې دریمه حصه به ورته ملاویږی دواړو صورتونو کښې یعنی که ښځه خاوند پریږدی او مړه شی او که سړې ښځه پریږدی اومړ شی .ددې وجې باقی مال ددوی نسبت سره ګویا ټول مال دې .او دمور حصه دپلار نه نیمه ده. نو باقی مال نه دریمه حصه دې واخلی او دوه دریمې حصې چه باقی وی هغه به پلار ته ملاویږی .عمر فاروق ﷺ ، عثمان ﷺ ، او په اعتبار د زیات صحیح روایت د علی ﷺ فیصله هم دا ده.د ابن مسعود ﷺ او د زید بن ثابت ﷺ هم دا قول دې . اووه واړه فقهاء کرام او څلورواړه امامانواو دجمهور عالمانو هم دا فتوی ده.

② دویم قول دادې چه دې دواړو صورتونو کښې به مور ته دټول مال ثلث ملاویږی ځکه چه دا آیت عام دې ،که خاوند اوښځه یو ځائې وی او که نه وی. نو عام طور به دامور ته ورکولې شي که د مړده اولاد

نه وی.د ابن عباس ﷺ همدا قول دي . علی ﷺ او معاذ بن جبل ﷺ نه هم دا شان مروی دی . شریح ﷫ او داود ﷫ هم دا فرمانی . ابوالحسن بن لبان ﷫ په خپل کتاب ایجاز کښې چه کوم دعلم فرائض باره کښې دي همدا قول خوښ کړې دې ، خو دې قول کښې نظر دې بلکه دا قول ضعيف دې ځکه چه آيت دده دا حصه په هغه وخت کښې مقرر کړې ده چه کله د ټول مال وراثت صرف مور پلار ته ملاویږی او کله چه زوج یا زوجه وی او هغوئ د خپلو حصو مستحق وی نوبیا چه کوم باقی پاتې شو بیشکه هغه ددې دواړو حصه ده نو دې کښې به ورته ثلث ملاویږی.

③ دریم قول دادې که مرده سړې وی او دده ښځه موجود ده نو صرف دې صورت کښې خو به دې ته دټول مال دریمه حصه ملاویږی ځکه چه دې ښځې ته به دټول مال څلورمه حصه ملاویږی . که دټول مال دولس حصې شی نو درې حصې خو به دا واخلی او څلور حصې به مور ته ملاویږی باقی پنځه حصې به پلار ته ملاویږی . لیکن که ښځه مړه شوې وی اوددې خاوند موجود وی نو مور ته به دباقی مال دریمه حصه ملاویږی که دټول مال دریمه حصه دې صورت کښې مور ته ملاوشی نو د دلته د پلار هم زیاته حصه رسی. لکه د مرده دمال نې شپږ حصې کړې ، درې خاوند ته ورکولې شی او دوه مور ته به ملاویږی ، نو پلار ته به یو ملاوړ شی چه دمور نه هم لږه ده.ددې وجې دې صورت کښې شپږو کښې درې حصې خو به پلار ته ملاویږی او یو مور ته او دوه پلار ته .دامام ابن سیرین ﷫ هم داقول دې ، داسې ګنړل پکار دی چه دا قول د دوؤ اقوالو نه مرکب دې . ضعیف هم دې او صحیح قول ړومبې دې .

والله أعلم .

**قوله تعالى:: فَإِن كَانَ لَهُۥٓ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ ٱلسُّدُسُ**

**د مور پلار په حق کښې دریم صورت:-** دمور پلار احوالو کښې دریم صورت دادې چه هغه رونړو سره وی که هغه سکه رونړه وی اوکه صرف دپلار طرفنه وی یا صرف د مور طرفنه وی . نو که پلار موجود وی نو د خپل رور میراث کښې به دوی ته هیڅ نه ملاویږی لیکن مور به شپږمه حصه واخلی او دوی ته به نې ورکړی. او که بل وارث نه وی او صرف مور سره پلار وی نو مال به ټول په ټوله پلار ته ملاویږی. دوه رونړه هم د ډیرو رونړو په حکم کښې دی. دجمهورو هم دا قول دې . خو ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه یوځل رسول الله ﷺ عثمان ﷺ ته اووئیل چه دوه رونړه مور دثلث نه شی کولې او سدس ته نشی رسیدلې.قرآن پاک کښې د(**اخوة**) دجمع لفظ دې ، دوه رونړه که ددې نه مراد وې نو (**اخوان**) به وئیلی کیدو.خلیفه ثالث جواب ورکړو چه دا دمخکښې نه راروان دی .اوڅلورو واړو طرفونوته دا مسئله دا شان رارسیدلې ده ، ټول خلق ددې عاملان دی. څه دا نه شم بدلولې .اول خو دا اثر ثابت نه دې ،د دې د راوی شعبه ﷫ باره کښې د امام مالك ﷫ جرح موجود ده .بیا په دې خبره چه دا قول د ابن عباس ﷺ نه دې دویم دلیل دا دې چه پخپله د ابن عباس ﷺ خاص ملګری او اوچت شاګردان هم د دې خلاف دی .زید ﷫ فرمانی چه دوؤ ته هم (**اخوة**) وئیلې کیږی .

الحمد لله مادامسئله ډیره وضاحت سره یو بیله رساله کښې لیکلې ده.سعید بن قتاده ﷫ نه هم دغه شان مروی دی.خو که د مرده یو رور وی نو مور د دریمې حصې نه نشی لرې کولې.دعالمانوفرمان دې چه دې کښې حکمت دا دې چه د مرده د رونړو دودونو او د خوراك څکاك وغیره ټوله خرچه به د پلار په ذمه وی. دمور په ذمه به نه وی ځکه چه مقتضائې حکمت دا وو چه پلار ته زیات ملاوړ شی.دا توجیه ډیره ښه ده لیکن ابن عباس ﷺ نه صحیح سند سره دا مروی دی چه دا شپږمه حصه چه دمورکمه شوې ده هغه به ورکولې شی.دا قول شاذ دې . امام ابن جریر ﷫ فرمانی چه د عبدالله ﷺ دا قول د ټول امت خلاف دې.د ابن عباس ﷺ قول دې چه ﴿ کلاله ﴾ هغې ته وائی چه د هغه خونې او پلار نه وی.

**قوله تعالى:: مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِى بِهَآ أَوْ دَيْنٍ**

**د وصیت او قرض نه پس به د میراث تقسیم وی :-** د ټولو سلفو اوخلفو اجماع ده چه قرض وصیت باندې مقدم دې اوکه د آیت مطلب ته هم په غور اوکتلې شی نو هم دا معلومیږی . ترمذی وغیره کښې دی

چه علي بن ابی طالب ﷺ فرمائي چه تاسو قران پاك كښې د وصيت حكم مخكښې لولئ او د قرض روستو ليكن ياد ساتل پكار دی چه رسول الله ﷺ قرض مخكښې ادا كړې دې .بيا ئې وصيت جاری كړې دې . چه د يو مور رونړه وی نو دابه خپلوكښې وارثان وی بغير دعلاتي رونړو.يو كس به د خپل رور وارث وی ،د هغه نه چه هغه د بلې مور نه وی (١)دا حديث صرف د حارث رحمه الله نه مروی دې. اوپه دې باندې بعضې محدثينو جرح كړې ده. خو حارث حافظ فرائض وو،دې علم كښې دوی ته خاص دلچسپي او دسترس وو او دحساب هم ډير لوئي ماهر وو ، والله اعلم.

قوله تعالى:: ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا ۚ

بيا فرمائي چه مونږ پلار اوخامنو دپاره خپله خپله حصه مقرر كړه. اودجاهليت رسم موختم كړو.بلكه اسلام كښې چه كوم مخكښې حكم وو چه مال به اولاد ته ملاويدو ،مور پلار ته به صرف په طور د وصيت ملاويدو لكه ابن عباس ﷺ نه مخكښې بيان شو نو هغه منسوخ شو.او اوس دا حكم شو. تاسو ته دامعلومه نه ده چه تاسو ته به دپلارنه زياته نفع ملاويږی اوكه اولاد به نفع دركوی.اميد د دواړو نه نفع ده.يقين په چاباندې د زياتې نفعې نشته ،دويم دا زياته ممكن ده چه دپلار نه زيات خونې په كار راشي اونفع وركړی اوداممكن هم ده چه دخونې نه زيات پلار په پكار راشي.اودهغه نه ورته نفع اوشي.

قوله تعالى:: فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ۝

بيا فرمائي چه دا مقررې حصې اوميراث دا دالله ﷻ د طرفنه فرض دی او په دې كښې د څه اميد يا ويرې په وجه د كمي او زياتي گنجائش نشته دې . او نه د چا محروم كول جائز دی اونه چاته زيات وركول جائز دی .الله ﷻ عليم اوحكيم دې چه څوك د څه مستحق وی هغه ته ئې هغه هومره حصه وركړې ده ،هرڅيز هغه پاك ذات ته ښه معلوم دې . ستاسو د نفع او نقصان هغه ته پوره علم دې . د هغه پاك ذات هيڅ يو كار د حكمت نه خالي نه وی. تاسو ته پكار دی چه د هغه پاك ذات احكام او فرمان باندې ټنگ اوكړئ .

| |
|---|
| وَلَكُمْ |
| اووه حصه ستاسو |
| نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ ۚ فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ |
| انيم ا دهغه مال اچه پريښودې وی ا بيبيانو ستاسو ا كه نه وی دهغوی اولاد ا اوكه وی دهغوی اولاد |
| اوستاسوښځې چې كوم مال پريږدی په هغې كښې ستاسونيمه حصه ده اهله كه دهغوی اولاد نه وی اوكه |
| فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ |
| انو ده حصه ستاسو څلورمه ادهغه مال نه چه پريښودې وی هغوی ا روستو(د اداكولو) دوصيت نه |
| اولاد ئې وی نو بيا دهغوی په ميراث كښې ستاسوڅلورمه حصه ده ا دابه دهغوی د وصيت پوره كولو نه پس وی |
| يُوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۚ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا |
| اچه كړې وی هغوی اهغه وصيت ايا روستو د قرض وركولو نه ا اوده حصه دښځو ا څلورمه ا دهغه مال نه |
| يا د قرض ادا كولو نه پس وی ا اوستاسوپه پاتې مال كښې دهغوی څلورمه حصه ده |

(١) ترمذی كتاب الفرائض باب ماجاء فی ميراث الاخوة من الاب والأم : ٢٠٩٤، ابن ما جة:٢٧١٥)-

تَرَكْتُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ

|چه پریږدئی تاسو| که نه وی |ستاسو| اولاد | او که وی |ستاسو| اولاد

که چرې دهغوئ اولاد نه وی| ..........................اوکه اولاد ئې وی نو

فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ

| نو ده حصه دښځو اتمه|دهغه مال نه|چه پریږدئی تاسو|روستو(دادکولو)دوصیت نه| چې اوکړئی تاسو

نوبیا ستاسوپه میراث کښې دهغوئ اتمه حصه ده | هله چې ستاسووصیت اول پوره شی

بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ؕ وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً

یاروستودادکولو دقرض نه| اوکه وی | سړې |چه میراث ترې اوړې شی| مونډ وتلې

یا ستاسوقرض اداکړی شی| اوکه چرې یوسړې یاښځه مړه شی اونه ئې موروی اونه ئې پلار وی اونه ئې اولادوی|

اَوِ امْرَاَةٌ وَّلَهٗٓ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ

|یا وه ښځه کلاله او وو د هغه| روریا خور |نو ده حصه دهریو ددې دواړو نه| شپږمه

یائې روریا یوه خور پاتې شی| ..........................نو هر یوته به شپږمه حصه ورکولې شی

فَاِنْ كَانُوْٓا اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِى الثُّلُثِ

اوکه وو رور او خور (دمونډوتلی)| زیات | ددغه (یو) نه|نوهغوئ ټول شریکان دی|په دریمه حصه کښې

اوکه رونړه خویندې ئې دیونه زیاتې وی| نو ټول به په دریمه حصه شریک کښې ګڼړلې شی

مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۙ

|روستو دادکولو دوصیت نه|چه وصیت کولې شی |په هغه سره| یا روستو د ورکولو دقرض نه|

داهله چې اول ترې هغه وصیت پوره کړې شی د کوم چه وصیت شوی وی یا قرض ادا کړې شی|

غَيْرَ مُضَآرٍّ ۚ وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

چه نه وی نقصان رسوونکې(نوروته)| داحکم دې | دطرفه دالله نه| اوالله تعالی| پوهه دې|

خوچې(دغه قرض یا وصیت)د ضرر دپاره نه وی |دا دالله پاک حکم دې | او الله پاک په هرڅه پوهه

حَلِيْمٌ ؕ ۝۱۲

صبرناک دې|

او صبرناک دې|

قوله تعالی:: وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ اَزْوَاجُكُمْ

**د ښځې په مال کښې د خاوند حصه :-** الله ﷻ فرمائی چه ائې سړو ! ستاسو ښځې چه مړې شی که د دوی اولاد وی نوپه هغې کښې نیمه حصه ستاسو ده اوکه د هغوئ اولاد وی نوتاسو ته به څلورمه حصه ملاویږی د وصیت او قرض نه پس .ترتیب داسې دې چه قرض دې ادا کړې شی ، بیا دې وصیت پوره کړې شی بیا دې میراث تقسیم کړې شی . دا داسې مسئله ده چه په دې باندې د ټولو عالمانو اجماع ده. نمسی هم په دې مسئله کښې د ځامنو حکم کښې دې بلکه د اولاد نه پس اولاد هم دې حکم کښې دې چه د دوی موجودګې کښې به خاوند ته څلورمه حصه ملاویږی .

قوله تعالی:: وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ

دخاوند په مال كښې د ښځې حصه :- بيا د ښځو حصه بيانوي چه هغوئ ته به يا څلورمه حصه ملاويږي يا اتمه حصه، څلورمه په دې حالت كښې چه د وفات شوي خاوند اولادنه وي ، اتمه په هغه صورت كښې چې اولاد وي اودې څلورمه حصه كښې يا اتمه حصه كښې به دمرده ټولې ښځې شاملې وي. كه څلور وي نوداحصه به دوى كښې برابرتقسيمولې شى، كه درې وي نو بيا هم، كه يو وي نودهغې پوره حصه ده

قوله تعالى:: وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَٰلَةً

د كلاله تفسير:- ﴿مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ﴾ تفسير ددې نه مخكښې تيرشوې دې ﴿كَلَٰلَةً﴾ مشتق ده د ﴿اكليل﴾ نه ﴿اكليل﴾ وائى هغه تاج وغيره ته چه د هغه سر هر طرفته پټ كړى ، دلته د دې نه مراد دا دې چه د ده وارثان د ده نه ګيرچاپيره خلق وى، اصل او فرع يعنى جرړې يا ښاخ نه وى ابوبكرصديق ﷺ نه د ﴿كَلَٰلَةً﴾ د معنې تپوس اوشو نو ابوبكرصديق ﷺ اوفرمائيل چه څه خپلې رائې سره جواب وركوم كه صحيح وى نودالله ﷻ طرفنه دې او كه غلط وى نو ځما او شيطان طرفنه به وى. اوالله ﷻ اود هغه رسول ﷺ د دې نه برى الذمه دى ﴿كَلَٰلَةً﴾ هغه سړې دې چه د هغه نر اولاد نه وى او نه ئې پلار وى. عمر فاروق ﷺ چه كله خليفه شونو دوى هم د دې موافقت سره اوفرمائيل چه ماته د دې نه شرم راځى چه څه د ابوبكر ﷺ رائې سره اختلاف اوكړم (ابن جرير) (1)

ابن عباس ﷺ فرمائى چه كوم خلقو چې د حضرت عمر فاروق زنانه رالاندې كړې ده په هغوى كښې د ټولو آخرى زمانه كښې يم. ما د دوى نه آوريدلى وو چه خبره هغه ده چه كومه ما ونيلې ده صحيح ده اودرست هم دا ده چه كلاله وائى هغې ته چه نه ئې پلار وى اونه ځوئې. على ﷺ، ابن مسعود ﷺ ، ابن عباس ﷺ، زيد بن ثابت ﷺ ، شعبى رحمه الله ، حسن رحمه الله ، قتاده رحمه الله ، جابربن حكم رحمه الله هم دا فرمائى (2) داهل مدينه، اهل كوفه او اهل بصره هم دا قول دې. اووه واړه فقهائې كرام ، څلور واړه امامان او جمهور سلف اوخلف بلكه ټول هم دا فرمائى، ډيرو بزرګانو په دې باندې اجماع كړې ده. اويومرفوع حديث مبارك كښې هم داراغلى دى (3).

د كلاله په تفسير كښې ضعيف قول:- ابن لبان فرمائى چه ابن عباس ﷺ نه مروى دى چه كلاله هغه دى چه د چا اولاد نه وى. ليكن صحيح رومبې قول دې. اوممكن دى چه راوى مراد باندې پوهه شوې نه وى.

قوله تعالى:: وَلَهُۥٓ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ فَلِكُلِّ وَٰحِدٍ مِّنْهُمَا ٱلسُّدُسُ

بيا فرمائى چه دده رورياخور وى يعنى د مور د طرفه وى لكه څنګه چه په بعضې قراءت كښې **(او اخت من ام)** دى لكه سعدبن ابى وقاص ﷺ وغيره ابوبكرصديق ﷺ وغيره نه هم دا تفسير مروى دې. نو دوى كښې هر يو دپاره شپږمه حصه مقرر ده. كه زيات وى نو يو ثلث كښې ټول شريك دى ،

**د مورد طرفه د ځوئې د نورو وارثانو نه په تقسيم كښې اختلاف:-** چه كوم رور د مور نه وى د نورو رونړو نه مختلف دې ① يو خو دا چه د خپل ميراث وركولو نه باوجود هم وارث وى ،لكه مور، ② دويم دا چه د دوى سړى او ښځې، يعنى رور او خور ميراث كښې برابره دى ③ دريم دا چه دوى په هغه وخت كښې وارثان وى چه كله مرده كلاله وى. نود پلار نيكه ، د ځوئې ، د نمسى موجودګئ كښې هم وارث نه وى ④ څلورم دا چه دوى ته د ثلث نه زياته نه ملاويږى. كه دوى هرڅومره وى .سړى وى كه ښځې. عمر فاروق ﷺ دا فيصله كړې ده چه كوم رور يا خور د مورنه وى نو د هغوئ ميراث به د اشان تقسيميږى چه سړى دپاره دوچند او ښځې ته به يوه حصه ملاويږى زهرى رحمه الله فرمائى چه عمرفاروق ﷺ داسې فيصله نه شى كولې .ترڅو چه هغوئ د رسول الله ﷺ نه آوريدلى نه وى.

قوله تعالى:: فَإِن كَانُوٓا۟ أَكْثَرَ مِن ذَٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِى ٱلثُّلُثِ

(1) الطبرى : ٨/٥٣)-
(2) الطبرى : ٨/٥٥)-
(3) الحاكم : ٤/٣٣٦)-

**سکه رونړه هم په کښې شريک دی:-** ايت کښې دومره خو ښکاره دی که د دې نه زيات وی نو ثلث کښې شريك دی. دې صورت کښې د عالمانو اختلاف دې که د مړده په وارثانو کښې خاوندوی او مور وی يا نيا وی او دوه نې مورنی رونړه وی او يا يو يا د يو نه زيات د پلارنی رونړه وی نو جمهور وائی چه دې صورت کښې به خاوند ته نيمه حصه ملاويږی .اومور يا نيا ته به شپږمه حصه ملاويږی.او چه کوم رونړه نې د مور نه وی.هغه ته به يوه حصه ملاويږی. اوپه دې کښې د قدر مشترک په طور سکه رونړه هم شامل دی.کوم رونړه چې نې د مور نه وی .د اميرالمومنين عمرفاروق ﷺ په زمانه کښې يو داسې صورت راپيښ شوې وو.نو دوی خاوند ته نيمه حصه ورکړه. او ثلث نې هغوئ ته ورکړه چه کوم دمور نه رونړه وو،نو سکه رونړه هم پيش شو.عمرفاروق ﷺ اوفرمائيل چه تاسو دوی سره شريك يئ. عثمان ﷺ نه هم دغه شان شريك کول او دوئ روايتونونه يو روايت کښې داسې د ابن مسعود ﷺ او زيد بن ثابت ﷺ او ابن عباس ﷺ نه مروی دی .سعيد بن مسيب رحمه الله ،قاضی شريح رحمه الله ،مسروق رحمه الله ،طاوس رحمه الله ، محمد بن سيرين رحمه الله ،ابراهيم نخعی رحمه الله ،عمر بن عبدالعزيز رحمه الله ،ثوری رحمه الله اوشريك رحمه الله نه هم دا قول نقل دې.امام مالك رحمه الله ، امام شافعی رحمه الله ،او امام اسحاق بن راهويه رحمه الله هم دې طرفته تلی دی.

**د علی ﷺ رائې:-** خو علی بن ابوطالب ﷺ دې کښې د شرکت قائل نه دې. بلکه دوی د مور اولاد ته دې حالت کښې ثلث ورکولو او د يو مور پلار اولاد ته به نې هيڅ نه ورکول. ددې وجې چه دوی عصبه دی. او عصبه په هغه وخت کښې وی چه ذوی الفروض نه بچ شی بلکه وکيع بن جراح رحمه الله وائی چه علی ﷺ نه د دې خلاف مروی نه دی .ابی کعب ﷺ ،ابوموسی اشعری ﷺ نه هم دا قول نقل دې.ابن عباس ﷺ نه هم مشهور دا ده .شعبی رحمه الله ،ابی ليلی رحمه الله ،ابوحنيفه رحمه الله ،ابويوسف رحمه الله ،محمد بن حسن، حسن بن زياد رحمه الله ، زفربن هذيل رحمة الله عليه، امام احمد رحمة الله عليه، يحيی بن آدم رحمه الله ، نعيم بن حماد رحمة الله عليه، ابوثور رحمة الله عليه، داود بن علی ظاهری رحمه الله هم دې طرفته نظر کوی . ابوالحسن ابن لبان فرضی رحمه الله هم دا اختيار کړی دی ، اوګورئی د دوی کتاب الايجاز.

**مسلک حنفی:-** د احنافو مسلک په مذکوره مسئله کښې د جمهورو پشان دې البته حافظ ابن کثير فرمائيلی دی چه سکه رونړه به په کښې هم د قدر مشترک په طور شريک وی خو ثناء الله پانی پتی رحمه الله فرمائيلی دی چه د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نيز به سکه رونړه په دې کښې نه وی شامل که يو وی اوکه زيات وی خکه چه دې عصبه دې او د ذوی الفروض نه څه پاتې شوی نه دی نو د ده په کښې څه نشته او د امام شافعی رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نيز په ثلث کښې سکه رونړه هم شريک دې (تفسير مظهری ٢٤٣\٢)-

**قوله تعالى:** مِنۢ بَعۡدِ وَصِيَّةٖ يُوصَىٰ بِهَآ أَوۡ دَيۡنٍ غَيۡرَ مُضَآرّٖۚ

**د شرعی وصيت پوره کول ضروری دی :-** بيا فرمائی چه دا تقسيم د وصيت پوره کولو نه پس دې. وصيت دې داسې وی چه خلاف عدل نه وی اونه په کښې چاته د نقصان رسولو ويره وی او نه په چا ظلم اوجبر کړې شوې وی ، اود يو وارث وراثت نه وی وهلې شوی. اونه چا ته کم زيات ورکړې شوې وی. څوک چې ددې خلاف وصيت کوی يا د شريعت نه خلاف وصيت کولو کښې کوشش کوی نو دې دالله ﷻ دحکم اودهغه په شريعت کښې خلاف حکم کولو والا او هغه ذات سره جنګ کولو والادې .

**ضرر رسول ګناه کبيره ده:-** رسول الله ﷺ فرمائی چه وصيت کښې څه ضرر او نقصان رسول ګناه کبيره ده. (ابن ابی حاتم ) (١).

نسائی کښې دابن عباس ﷺ قول هم داشان مروی دې. بعضو روايتونو کښې ابن عباس ﷺ نه د دې فرمان نه پس د آيت تکړه تلاوت کول هم مروی دی .د امام ابن جرير رحمه الله د قول مطابق صحيح هم دا خبره ده چه دا مرفوع حديث نه دې موقوف قول دې .(١)

---

(١) دار قطنی : ١٥١/٤)-

**د وارث دپاره د قرار حکم:-** ①د آئمه کرام رحمهم الله په دې کښې اختلاف دې چه وارث دپاره چه کوم اقرار مرده اوکړی آیا هغه صحیح دې که نه ؟ بعضې وائی چه صحیح نه دې ، ځکه چه دې کښې د تهمت لګولو ګنجانش دې. حدیث شریف کښې صحیح سند سره راغلی دی چه الله ﷻ هر حقدار ته د هغه حق رسوی.او اوس وارث دپاره څه وصیت نشته دی (²)امام مالك ، امام احمدبن حنبل رحمه الله،امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم داقول نقل دې . د شافعی رحمه الله هم دارومبې قول وو

② لیکن آخری قول دا دې چه اقرار کول به صحیح منلې شی . طاؤس رحمه الله ، حسن رحمه الله ، عمر بن عبدالعزیز رحمه الله نه هم دا قول نقل دې .امام بخاری رحمه الله هم دا قول خوښوی اوخپل کتاب بخاری شریف کښې هم دې ته ترجیح ورکوی. نواز

**دصحت اقرار دلیل:-** د هغوئ دلیل یو حدیث دا هم دې چه رافع بن خدیج رضی الله عنه وصیت اوکړو فزاریه چه په کوم څیز باندې خپلې دروازې بندې کړې وی هغه دې بیرته نکړې شی.امام بخاری رحمه الله بیا فرمائی چه بعضې خلق وائی چه دده دا اقرار کول جائز نه دی ځکه چه په دې کښې وارثانو سره بدګمانی ده. لیکن څه وایم چه رسول الله ﷺ فرمائی چه بدګمانی نه ځان اوساتئ ،بدګمانی د ټولو نه لوئې دروغ دی. (³) قران پاک کښې د الله ﷻ فرمان دې چه الله ﷻ تاسو ته حکم کوی چه د چا کوم امانت وی هغه امانت هغه ته اورسوئې. دې کښې د وارث او غیر وارث هیڅ تخصیص نشته دې .(⁴)

**تنبیه:-** یادساتئ چه دا اختلاف په هغه وخت کښې دې چه کله اقرار فی الواقع صحیح وی اود نفس الامر مطابق وی اوکه صرف حیله سازی وی او بعضو وارثانو ته زیات ورکول او بعضو ته کم ورکول وی او دایو بهانه وی نو بالاجماع دا پوره کول حرام دی. او ددې آیت صفا الفاظ هم د دې د حرمت فتوی ورکوی . بیا فرمائی چه دا دالله ﷻ احکام دی چه ډیر د برداشت او علم خاوند دې .

| |
|---|
| تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ |
| \| دا حدونه دالله دی\| اوڅوک چه اومنی حکم دالله تعالی\| اودرسو ل دهغه\| |
| \| دادالله پاک مقرر حدونه دی \| اوڅوک چې دالله اودهغه درسول حکمونه منی |
| يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ |
| نوداخل به کړی هغه لره\| داسې باغونو ته \| چه بهیږی به \| لاندې دهغې نه\| نهرونه \| |
| هغوئ به الله پاک داسې باغونو ته داخل کړی \| ..............چې دهغې لاندې به ولې بهیږی |
| خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ⑬ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ |
| همیشه به وی هغوئ\| په هغې کښې \|اوداکامیابی ده \|لویه \|او څوک چه نافرمانی کوی دالله تعالی |
| په هغې کښې به همیشه وی \| ..........اوهمدالویه کامیابی ده\|..............ز او څوک چې دالله او |
| وَرَسُوْلَهٗ وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خٰلِدًا |
| اودرسول دهغه\| او اوړی \| دحدونودهغه نه \|نوداخل به کړی هغه \|اور ته \| چه همیشه به وی\| |
| درسول حکمونه اونه منی\| اودالله پاک دمقرر حدونونه مه مخکښې تیرشی \|نوداسې اور ته به ئې داخل کړی\|چې |

(¹) النسائی ل الکبری : ۱۱۰۹۲، وسنده صحیح)-
(²) ابوداود کتاب الوصایا باب ماجاء للوراث : ۲۸۷۰، وسنده حسن ترمذی: ۲۱۲۰، ابن ماجة: ۲۷۱۳، نسائی: ۳۶۷۱)-
(³) صحیح بخاری کتاب الادب باب ما ینهی عن التحاسد والتدبر: ٦٠٦٤، صحیح مسلم:۲۵۶۳، ابوداود: ٤۸۸۲، ترمذی : ۱۹۲۸)
(⁴) صحیح بخاری کتاب الوصایا باب قول الله تعالی ( من بعد وصیة یوصی بها...) قبل حدیث : ۲۷٤۹)-

| فِيهَا | وَلَهُ | عَذَابٌ مُّهِينٌ |
|---|---|---|
| په هغې کښې | او د پاره د هغه دی | عذاب سپکونکې |
| همیشه به په کښې وی | او هغه د پاره رسوا کونکې سزا مقرر ده | |

**قوله تعالی: ﴿تِلْكَ حُدُودُ اللهِ ۚ وَمَنْ يُطِعِ اللهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ﴾**

**په وصیت کښې د الله حدود قائمولو حکم:** - اوچه کوم سړې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ نافرمانی اوکړی او د هغه مقرر شوی دی حدونو نه مخکښې تیر شی نوداسړې به الله ﷻ جهنم ته واچوی په هغې کښې به دې همیشه وی.داسې خلقو دپاره ذلیل عذاب دې . یعنی دا فرائض او دا مقدار چه الله ﷻ مقرر کړی دی اود دې مړی وارثان چه الله ﷻ ددوی د قرابت والو ته او ددوی دحاجت مطابق چه څومره حصه ورکړې ده دا ټول د الله ﷻ حدونه دی.تاسو دا حدونه مه ماتونی اومه ددې نه مخکښې څئ؛ چه کوم سړې د هغه پاك ذات احکام اومنی،او بهانوحیلو سره خپلو ته ورکړه کښې کمې زیاتې اونکړی، د الله ﷻ حکم او دهغه فریضه هغه شان اداکړی څنګه چې الله ﷻ بیان کړې ده،نو دالله ﷻ وعده ده چه دوی به داسې جنت ته داخل کړی چه هغې کښې به همیشه نهرونه بهیږی،اودا خلق کامیاب اومقصد ته رسیدونکی دی.

**قوله تعالی: ﴿وَمَنْ يَعْصِ اللهَ وَرَسُولَهُ وَيَتَعَدَّ حُدُودَهُ﴾**

اوچه څوك د الله ﷻ حکم رد کړی او د یو وارث حصه کمه زیاته کړی ، اود الله ﷻ د رضا خیال اونه ساتی،بلکه د هغه پاك ذات حکم بدل کړی اودهغې خلاف عمل اوکړی،یعنی د الله ﷻ تقسیم نظرانداز کړی اود هغه پاك ذات حکم عدل نه ګڼړی نو داسې سړې به همیشه رسوائې او رسواکن او دردناك عذاب کښې وی .

**په وصیت کښې د عدل او ظلم جزا او سزا:** - رسول الله ﷺ فرمائی چه یو سړې تر اویاکالو پورې دنیکۍ عمل کوی ، بیا د وصیت په وخت کښې ظلم او زیاتې کوی ، دده خاتمه په خراب عمل باندې اوشی ، او دې جهنمی جوړ شی.اویو سړې د بدئی عمل اویاکاله کوی ، بیا خپل وصیت کښې عدل کوی او د ده خاتمه په نیکۍ سره اوشی او دې جنت ته داخل شی . بیا د دې حدیث راوی ابوهریره ﷺ فرمائی چه دا آیت اولولی: ﴿تِلْكَ حُدُودُ اللهِ﴾ نه تر ﴿وَلَهُ عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾ پورې .

سنن ابی داود (بَابُ الاِضرارفی الوصیة) کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی یو سړې یا یوه ښځه د الله ﷻ عبادت کښې ترشپیتو کالو پورې مشغول وی ، خو د مرګ په وخت کښې وصیت کښې څه کمې زیاتې اوکړی نو د ده دپاره جهنم واجب شی. بیا ابوهریره ﷺ ﴿مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ﴾ نه تر د آیت آخره پورې اولوستو. ترمذی او ابن ماجه کښې هم دا حدیث دې ، امام ترمذی دې ته حسن غریب وائی. مسنداحمد کښې دا حدیث مکمل او پوره موجود دې ([1]).

| وَالّٰتِي | يَأْتِينَ | الْفَاحِشَةَ |
|---|---|---|
| او هغه ښځې | چه راشی | کار دزنا ته |
| اوستاسو په زنانه کښې څوك چې بدكاري اوكړي | | |

| مِنْ نِّسَائِكُمْ | فَاسْتَشْهِدُوا | عَلَيْهِنَّ | أَرْبَعَةً | مِّنْكُمْ | فَإِنْ شَهِدُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| د ښځو ستاسو نه | نو ګواهی واخلئ | خلاف دهغوئ | د څلورو کسانو | ستاسو نه | نو که ګواهی اوکړه هغوئ |
| نو په هغوئ باندې څلور کسان ګواهان پیش کړئ | | | نو که څلور کسان پرې ګواهی ورکړی | | |

---

[1] احمد: ٢/٢٧٨، ابوداود: ٢٨٦٧، ابن ماجة: ٢٧٠٤، وسنده حسن)-

| |
|---|
| فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ حَتَّىٰ يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ أَوْ يَجْعَلَ |
| نو بندي کړئ: هغوئ\| په کو رونو کښې \| اتردې پورې \| چه واخلي هغوئ لره مرګ \| يا اوګرخوي \| |
| نو هغوئ په کورونو کښې ترهغې پابندې کړئ چې مرګ ئې فنا کړي \| اويا ورته الله تعالی |
| اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا ۝ وَالَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنْكُمْ |
| الله \| دپاره دهغوئ\| لار د (خلاصي\| اوهغه دوه کسان\| چه راشي د زنا دې کار ته \| ستاسو نه \| |
| بله څه لار (قانون) راوباسي \| اوپه تاسو کښې کوم دوه کسان چې بدکاري اوکړي |
| فَآذُوهُمَا ۚ فَإِنْ تَابَا وَأَصْلَحَا |
| نو تکليف اورسوئ: هغوئ دوارو ته\| نو که توبه اوويستله دوارو\| اوصحيح کړو دوارو عمل خپل |
| نو سزا ورته ورکړئ\| .................نو که توبه اوباسي \| .......اود خپلو عملونو اصلاح اوکړي \| |
| فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ تَوَّابًا رَحِيمًا ۝ |
| انو پرېږدئ\| هغوئ دواړه\| بيشکه الله \| ډير توبه قبلونکي\| رحم کوونکي دې\| |
| نو بيا ئې پرېږدئ: بيشکه الله پاک توبه قبلونکي او مهربان دې |

**قوله تعالی:: وَالَّتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِسَائِكُمْ**

**د زنا اولنې منسوخ حکم:-** د اسلام شروع کښې دا حکم وو چه کله به د عادلانو ګواهانو رېښتونې ګواهئ سره د ښځې بدکاري ثابت شوه نو هغې باره کښې داحکم وو چه هغه به د کورنه بهر نشي پرېښودلې اوکور کښې دې قيد کړې شي او هميشه دې قيد کړې شي يعنی مرګ نه دې مخکښې داپرې نېښودې شي.د دې بيان فرمانی چه دا بله خبره ده چه الله ﷻ د دوی دپاره څه بله لار راوباسي. بيا چه کله د دويم صورت سزا تجويز شوه نو هغه ناسخ شو اودا حکم ختم شو.

**د زنا دويم او ناسخ حکم:-** ابن عباس ﷺ فرمانی چه کله د سورة نور آيت نه وو نازل شوې نو د بدکارې ښځې هم دا حکم وو. بيا دې آيت کښې د واده شوې ښځې د رجم يعنی هغه په کاڼو ويشتلو او ناواده کړې ته د کوړو وركولو حکم نازل شو. عکرمه ﷺ ، سعيد بن جبير ﷺ ،حسن رحمه الله ، عطاء رحمه الله ، ابوصالح رحمه الله ، قتاده رحمه الله ، زيد بن اسلم رحمه الله اوضحاك نه هم داقول نقل دې چه دا آيت منسوخ دې اودې امر باندې دټولو اتفاق دې.

**د زنا اولنی حکم منسوخيت دليل:-** عباده بن صامت ﷺ فرمانی چه رسول الله ﷺ باندې کله وحی نازله شوه نو رسول الله ﷺ باندې به د دې ډير اثر وو.اوتکليف به ئې محسوسولو. او د رسول الله ﷺ مخ مبارک به زيړ شو او رنګ مبارك ئې بدل شو. الله ﷻ خپل نبی ﷺ باندې يو وحی نازل کړه هرکله چه هغه ختمه شوه نو رسول الله ﷺ اوفرمانيل چه خما خبره واورئ الله ﷻ د دې دپاره لار راوښکله . که واده شوې سړې او واده شوې ښځه وه نو سل کوړې ، بيا کاڼو سره ويشتل او که واده شوی نه وی نو سل کوړې او ديو کال جلاوطنی (مسلم وغيره) ([1])ترمذی وغيره کښې دا حديث د الفاظو بدلون سره راغلې دې. امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وائی . داشان ابوداود کښې هم دی.([2])دابن مردويه غريب حديث کښې دی چه ناواده شوی او واده شوی دې حکم سره دا هم دی که دواړه بوډاګان وی نو دوی به رجم کولې

[1]) احمد: ۳۱۸/٥، صحيح مسلم: کتاب الحدود با ب حد الزنی : ۱٦۹۰)-.

[2]) ابوداود کتاب الحدود باب فی الرجم: ١٤٣٤، ابن ماجة: ۲٥٤۹، وصحيح مسلم: ۱۳/۱٦۹۰)-

شي لیکن دا حدیث غریب دې . طبراني کښې دي چه رسول الله ﷺ فرمانیلي دي چه د سورة نساء نازلیدو نه پس اوس د منع کولو حکم پاتې نشو. (یعنې د کور نه د وتلو نه د منع کولو حکم) [1]

د امام احمد رحمه الله مذهب د دې حدیث مطابق هم دا دې چه زاني واده شوی ته دې کوړې هم ورکړې شي اورجم هم .اوجمهور وائي چه کوړې به نشي ورکولې بلکه رجم کولې به شي.ځکه چه رسول الله ﷺ ماعز ﷺ اوغامدیه ښځه رجم کړه. او کوړې ئې ورته ورنکړې . دعه شان دوو یهودیانو ته هم رسول الله ﷺ د رجم کولو حکم کړې وو د رجم کولو نه مخکښې ئې د کوړو حکم نه وو فرمانیلې . نو د جمهورو د قول مطابق معلوم شو چه دوی ته د کوړو ورکولو حکم منسوخ شوې دې . ضرروی نه دی ، والله اعلم.

**مسلک حنفي:**- اوپه محصن کښې به د سنګسارسره د کوړو دواړه سزاګانې نشي جمع کولې.ځکه چه رسول الله ﷺ دا دواړه سزاګانې نه دی جمع کړې.اوددې وجې هم چه د سنګسارنه پس د کوړو وهلوڅه فانده نشته.ځکه چه نورو ته د تنبیه ورکولوفانده په سنګسارکولوسره حاصلیږي.ځکه چه سخته سزا خو سنګسارکول دي.اوخپله زناکارته هم د هغه دمرګ نه پس تنبیه نشي ملاویدې.([2])

**قوله تعالی:: وَالَّذٰنِ يَأْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا**

**د لواطت حکم:**- بیا فرمانی که د بې حیایئی دا کار دوه سړي خپلو کښې اوکړي نو دوی ته تکلیف ورکړئ یعنې دوی ته بدرد اووائې او شرم اوغیرت ورته مخکښې کړئ . دا حکم هم داشان شو تر دې چه الله ﷺ د کوړو او اورجم سره منسوخ کړل. عکرمه رحمه الله ، عطاء رحمه الله ،حسن رحمه الله ،عبدالله بن کثیر رحمه الله فرمانی چه د دې نه مراد سړې او ښځه دی .

سدی رحمه الله فرمانی چه د دې نه مراد هغه ځوانان هلکان دي چه واده شوی نه وی. مجاهد رحمه الله فرمانی چه د لواطت باره کښې دا آیت نازل شوې دې . رسول الله ﷺ فرمانی چه څنګه تاسو لواطت باندې څوک اوګورئ نو دې او دا دویم کس دواړه قتل کړئ.([3])

**قوله تعالی:: فَإِنْ تَابَا وَأَصْلَحَا فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا**

که دوی ددې خپل کار نه منع شي او توبه ګارشي او صحیح شي نو بیا تاسو دوی سره سختي مه کوئ اودوی سره خبرو کښې نرمي کوئ. ځکه چه ګناه نه توبه کونکی داسې دې لکه چه ده هډو ګناه کړې نه وی. الله ﷺ توبه قبلونکې دې اوبردبار دې .

**د وینځې د بدکارئ سزا:**- صحیح بخاری اومسلم کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی که د چا وینځه بدکاری اوکړي نو د دې مالك دې ته حد ورکړي او په دې دې غصې نه کوی ([4])یعنې د حد ورکولو نه پس دې دا نه وهي ځکه چه حد کفاره ده.

إِنَّمَا التَّوْبَةُ
ابیشکه قبلول دتوبې ا
اصل خبره داده چې
عَلَى اللَّهِ | لِلَّذِينَ | يَعْمَلُونَ السُّوءَ | بِجَهَالَةٍ | ثُمَّ | يَتُوبُونَ
حق دي په الله تعالی باندې | دپاره دهغه کسانو | چه کوی بد عمل | په ناپوهۍ سره | بیا توبه اوباسی ا
الله پاک دهغه کسانو دتوبې قبلولو حق په خان منلي دې | چې په ناپوهۍ کښې یو غلط کار اوکړي

[1]) دار قطني ٦٨/٤، بيهقي : ١٦٢/٦)-
[2]) تسهيل الهدايه(١٣٦/٤)-
[3]) ابوداود كتاب الحدود فيمن عمل قوم لوط : ٤٤٦٢، وسنده حسن ترمذی: ١٤٥٦، ابن ماجة: ٢٥٦١)-
[4]) صحيح بخاری كتاب الحدود باب لايثرب على الامة اذا زنت : ٦٨٣٩، صحيح مسلم: ١٧٠٣)-

| |
|---|
| مِنۡ قَرِيۡبٍ فَاُولٰٓئِكَ يَتُوۡبُ اللّٰهُ عَلَيۡهِمۡ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ |
| زر نو دغه كسان چه دي ارجوع به كوي په رحمت سره الله تعالى ا په هغوئ باندي ا اودې الله تعالى ا |
| اوبيا ډيرزر توبه اوباسى ا نو داسې خلقو ته الله پاک د رحمت په نظر گورى ا اوالله پاک |
| عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا ۞ وَلَيۡسَتِ التَّوۡبَةُ لِلَّذِيۡنَ يَعۡمَلُوۡنَ السَّيِّاٰتِ ۚ |
| په هر څه پوهه اوصاحب د حكمت ااونشته قبلول ا دتوبې ا دپاره دهغه كسانو ا چه كوي بد كارونه ا |
| په هرڅه پوهه او د هرمصلحت نه خبر دې ااوتوبه دهغه چا دپاره نه ده ا ............چې گناهونه كوي |
| حَتّٰۤى اِذَا حَضَرَ اَحَدَهُمُ الۡمَوۡتُ قَالَ اِنِّىۡ تُبۡتُ الۡـٰٔنَ |
| تردې پورې ا چه كله ا حاضر شي ا يوته په هغوئ كښې ا مرگ ا (نو) وائي ا چه بيشكه ماتوبه كړه ا اوس ا |
| تردې چې په دوئ كښې دچا د مرگ وخت راشي ا نو (هغه وخت) ني اووئيل ا چې اوس مې توبه ده |
| وَلَا الَّذِيۡنَ يَمُوۡتُوۡنَ وَهُمۡ كُفَّارٌ ؕ اُولٰٓئِكَ |
| اونه ده قبوله توبه دهغه كسانو ا چه مړه شي ا په داسې حال كښې چه هغوئ ا كافران وي ا دا كسان چه دي ا |
| اونه (توبه) دهغه چا دپاره چې كافر مرشي ا ............دغه كسانو دپاره |
| اَعۡتَدۡنَا لَهُمۡ عَذَابًا اَلِيۡمًا ۞ |
| تياركړې دي مونږ ا دپاره دهغوئ ا عذاب ا دردناك |
| مونږ دردناك عذاب تياركړې دي ا |

قوله تعالى:: اِنَّمَا التَّوۡبَةُ عَلَى اللّٰهِ لِلَّذِيۡنَ يَعۡمَلُوۡنَ السُّوۡٓءَ بِجَهَالَةٍ

**په ناپوهتيا سره گناه كولو نه پس توبه :-** مطلب دا دې چه الله ﷻ د خپلو هغه بندگانو توبه قبلوى چه په ناخبرئى كښې څوك بدكار اوكړى . بيا توبه اوباسى نودا داسې شو چه گويا ده هډو گناه نه ده كړې خو دا توبه به د ملك الموت كتلونه مخكښې وى. مجاهد رحمه الله فرمائى چه څوك هم غلطئ سره يا په قصدسره څه نافرمانى اوكړى هغه جاهل دې چه تر كومې پورې د دې نه منع نه شي (١). ابوالعاليه رحمه الله فرمائى چه صحابه كرامو رضي الله عنهم به فرمائيل چه بنده چه كومه گناه اوكړى هغه جهالت دې(٢)قتاده رحمه الله هم د صحابه كرام يو ډلې نه داسې روايت كوى.عطاء رحمه الله ابن عباس رضي الله عنه نه هم دغه شان مروى دى .

**د مرګ نه وړاندې توبه ويستلو حكم :** د زرتوبه ويستلوتفسير كښې دى چه ملك الموت كتلو نه مخكښې وخت ته سكرات ته نزدې ونيلې شوى دى، خپل صحت كښې توبه كول پكار دى.دساه وتلو نه مخكښې توبه كول پكار دى.عكرمه رحمه الله فرمائى چه دنيا ټول په ټوله نزدې ده. ددې متعلق احاديث واورئى.

**د خنكدن نه وړاندې توبه:-** رسول الله ﷺ فرمائى چه الله ﷻ د خپلو بندگانو توبه قبلوى تركومې چه دده خنكدن شروع نشي. ( ترمذى ) (٣).

**د مرګ نه څومره وړاندې توبه قبليږى؟:-** چه كوم مومن بنده د خپل مرگ نه يو مياشت مخكښې توبه اوباسى نو د ده توبه الله ﷻ ته قبوله ده. تردې چه دې (يومياشتې) نه پس هم بلكه د مرگ نه يوورځ مخكښې ،بلكه دې نه يو ساعت مخكښې هم چه څوك اخلاص سره توبه اوكړى او خپل رب طرفته

---

(١) الطبرى: ٨٩/٨)۔

(٢) الطبرى: ٨٩/٨)۔

(٣) ترمذى كتاب الدعوات باب ان الله يقبل توبة العبد مالم يغرغر: ٣٥٣٧، وهو حسن ابن ماجة: ٤٢٥٣)۔

رجوع اوکړی نو الله ﷻ د ده توبه قبلوی. عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی چه څوك د مرګ نه یو کال مخکښې توبه اوباسی نو الله ﷻ د هغه توبه قبلوی ، او چه څوك یو میاشت مخکښې توبه اوباسی نو الله ﷻ دده توبه قبلوی . او چه څوک یوه هفته مخکښې توبه اوباسي نو الله ﷻ د هغه توبه قبلوی ، او چه څوك یو ورځ مخکښې توبه اوکړی نو الله ﷻ د هغه قبلوی. ددې آوریدو سره ابوایوب انصاری ﷺ دا آیت اولوستو نو دوی اوفرمائیل چه هم هغه وایم چه څه مې د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی.

**په توبه قبلولو کښې د الله مهربانی:-** مسند احمد کښې دی چه څلور صحابه کرام ﷺ جمع شول او په هغوی کښې یو اووئیل مادرسول الله ﷺ نه آوریدلی دی (1)چه کوم سړی د خپل مرګ نه یو ورځ مخکښې هم توبه اوباسی نو الله ﷻ د هغه توبه قبلوی .دویم تپوس اوکړو چه آیا دا رښتیا دی چه دا تا د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی ؟ هغه اووئیل چه آؤ. نوبل اونیل چه ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی که نیمه ورځ مخکښې هم توبه اوباسی نو الله ﷻ د هغه توبه قبلوی. دریم اووئیل چه تا دا آوریدلی دی ؟ هغه اووئیل چه آؤ. وې ونیل چه ما آوریدلی دی که یو ساعت مخکښې هم ورته توبه ورته نصیب شی نو الله ﷻ د هغه توبه قبلوی . څلورم اووئیل چه تا دا آوریدلی دی ؟ هغه اووئیل چه آؤ ما آوریدلی دی . هغه څلورم اووئیل چه ما رسول الله ﷺ نه تردې پورې آوریدلی دی چې تر کومې پورې د ده مرنی ته روح نه وی راغلې نو د ده دپاره د توبې دروازې بیرته وی. (2)ابن مردویه کښې دی چه تر کومې پورې د ده غرغره شروع نشی نوترهغه وخت پورې د ده توبه قبوله ده(3) ډیرومرسلو احادیثوکښې دا مضمون راغلې دې.

**الله او د شیطان قسمونه:-** ابوقلابه رحمه الله فرمائی چه الله ﷻ کله په ابلیس لعنت اوکړو نو هغه وخت اوغوښتواووې ونیل چه ستا په عزت او جلال قسم چه ترکومې د ابن آدم بدن کښې روح وی نو خه به د هغه د زړه نه نه اوزم. الله ﷻ اوفرمائیل چه خما دې په خپل ذات قسم وی چه تر کومې پورې په هغه کښې روح وی نودهغه توبه به قبلوم. یو مرفوع حدیث مبارك کښې هم دې ته نزدې نزدې (بیان )نقل دې.

**دحافظ ابن کثیر رحمه الله تبصره :-** د دې ټولو احادیثو نه معلومیږی چه کله ترکومې پورې ژوندې وی او ده ته د خپل ژوند امید وی نو تر هغه وخته پورې چه دې الله ته توبه اوباسی نو الله ﷻ هغه قبلوی. او په ده باندې رجوع کوی او الله ﷻ علیم او حکیم دې .

قوله تعالی:: وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّاتِ

**د ځنکدن په وخت کښې د توبې حکم:-** خو کله چه د ژوند نه مایوسه شی او فرښتې اوګوری او د ده بدن نه روح اوځی او حلق ته راورسی او سینه کښې ښخ شی اوحلق ئې غرغره شروع کړی نو بیا دده توبه نه قبلیږی . ځکه چه الله د دې نه پس فرمائی چه تر مرګه پورې چه کوم ګناهونه ئې کړی وو او کله دې مرګ اوګوری او ا ووائی چه اوس خه توبه کوم نو د داسې سړی توبه قبوله نه ده لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿فَلَمَّا رَاَوۡا بَاۡسَنَا﴾ (دوؤ آیتونو پورې ) مطلب دا دې چه خمونږ د عذابونو معائنه کولو نه پس خمونږ د ایمان اقرار کول نفع نه ورکوی. اوبل ځائې کښې دی چه ﴿يَوۡمَ يَاۡتِيۡ بَعۡضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ﴾ الخ ، مطلب دا دې چه کله مخلوق نمر لره د مغرب نه راختو باندې وینی نو په هغه وخت کښې به دوی ایمان راوړی نو نه خو به د دوی ایمان قبول وی او نه به د دوی عمل دوی ته نفع ورکوی.

قوله تعالی:: وَلَا الَّذِيۡنَ يَمُوۡتُوۡنَ وَهُمۡ كُفَّارٌ

**د مشرک ښښنه نشته :-** بیا فرمائی چه کفر او شرك باندې چه څوك مړه شی نو د دوی ندامت او توبه به

---

(1) مسند الطیالسی : ٢٢٨٤)-

(2) احمد: ٤٢٥/٣)

(3) مسند البزار : ٣٢٧٣، مجمع الزوائد : ١٠٩٨)-

دوی ته هیڅ فائده نه ورکوي . اونه به فدیه او نه به بدله دوی ته څه فائده ورکوي. اګر چه دوی د ټولې زمکې برابر سرزر هم ورکړي.

**دپردې حائل کيدو نه وړاندې توبه قبليدل:-** ابن عباس ﷺ وغيره فرمائي چه دا آيت د اهل شرك باره کښې نازل شوې دې . مسند احمد کښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه الله ﷻ د خپل بنده توبه قبلوي. او دې بنيي. ترکومې چه پرده رانشي . ورته اووئيلې شو چه پردې نه څه مطلب دې ؟ وې فرمائيل چه د شرك حالت کښې چه ني ساه اوزي (١) داسې خلقو دپاره الله ﷻ سره سخت او دردناك عذاب تيار کړې دې او هميشه به دوی په هغې کښې وی.

يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

| اني هغه كسانو| چه ايمان مو راوړې دې|

اې دايمان خاوندانو!

لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا ۭ وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ

نه دى حلال| تاسو لره| چه ميراث كښې واخلئ| ښځې | په زور سره| | ومه تنګونئ هغوئ|

تاسودپاره جائز نه دی | چې په زور د ښځو نه ميراث يوسئ| اوهغوئ (په دې غرض) مه تنګوئ

لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ

دپاره ددې چه واخلئ تاسو| بعضې هغه مال (مهر)| چه تاسو ورکړې وی هغوئ ته| البته | كه هغوئ راشي

چې دخپل ادا شوی مهرڅه حصه ترې نه واپس واخلئ| ..............مګر كه هغوئ

بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ فَاِنْ كَرِهْتُمُوْهُنَّ

بدكارئ ته| ښكاره سره| او ژوند تيروئ هغوئ سره| په ښه طريقه| نوكه نه خوښوئ تاسوهغوئ لره

ښكاره بدكاري اوكړي|نو بيا(ني تنګولې شئ)|اودښځوسره په ښه طريقه وخت تيروئ| كه هغوئ ستاسوخوښې نه وی

فَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْـًٔا وَّيَجْعَلَ اللّٰهُ فِيْهِ خَيْرًا كَثِيْرًا ۝ وَاِنْ

اكيدېشي| چه تاسو نه خوښوئ| يو څيز| او كيخودې وی الله تعالى|په هغې كښې| خير ډير | او كه چرې

نو اكيدېشي چې يو څيز ستاسو خوښ نه وی| او الله پاك په هغې كښې تاسوله ډيره فائده ايخودې وی

اَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ ۙ وَّاٰتَيْتُمْ اِحْدٰىهُنَّ

اراده اوكړه تاسو| دبدلولو| ديوې ښځې | په ځائې د بلې ښځې| حال دا چه وركړې وی تاسو|يو دهغوئ ته

اوكه تاسو(په ښه طريقه وخت نشئ تيرولې) او ديوې په ځائې بله ښځه بدلول غواړئ| او يوې ته مو

قِنْطَارًا فَلَا تَاْخُذُوْا مِنْهُ شَيْـًٔا ۭ اَتَاْخُذُوْنَهٗ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا

ډير مال نومه اخلئ تاسو| دهغه مال نه | څه څيز| آيا تاسو به اخلئ هغه (مال)| په تور پوركولو سره| او په ګناه

ډيرمال وركړی وی |نو هغه ترې واپس مه اخلئ| .........آيا تاسو دا غواړئ چې په بهتان تړلو او ښكاره

(١) احمد: ٥/١٧٤)-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُّبِينًا ⓴ | وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ | وَقَدْ | أَفْضَى | بَعْضُكُمْ | إِلَى بَعْضٍ |
| ښکاره سره | او څه رنګ به ا خلئ تاسو | او حال دا چه | رسیدلی وی | خینې ستاسونه | خینوته (په کوروالی سره) |
| ظلم کولو باندې دغه مال واخلئ؟ | اوداڅنګه واپس اخستی شی؟ حال دا چې تاسو یوبل سره لیدل کتل کړی دی | | | | |
| وَأَخَذْنَ | مِنْكُمْ | مِّيثَاقًا | غَلِيظًا ㉑ | وَلَا تَنْكِحُوا | مَا |
| او اخستی وی هغوئ | ستاسونه | وعده | کلکه (په نکاح سره) | او مه کوئی نکاح | دهغې سره |
| اوهغوئ ستاسونه دنکاح په وخت کښې مضبوطې وعدې اخستې وی | اوهغه ښخو سره هیچرې نکاح مه کوئ | | | | |
| نَكَحَ | آبَاؤُكُمْ | مِّنَ النِّسَاءِ | إِلَّا مَا | قَدْ سَلَفَ ط | إِنَّهُ |
| چه نکاح کړی وی | پلارانو ستاسو | دښځونه | البته څه چه | وړاندې شوی دی | بیشکه داکار |
| چې کوموسره ستاسوپلرونو نکاح کړی وی | (ددې حکم نه چې مخکښې څه اوشوهغه اوشو بیا دپاره خیال ساتئ) | | | | |
| كَانَ فَاحِشَةً | وَّمَقْتًا ط | وَسَاءَ سَبِيلًا ㉒ ع | | | |
| دی دبې حیائی | اودغصې | اوبده لاره ده | | | |
| خکه چه دا ډیره دبې حیائی خبره ده | اودنفرت کار دې | | | | |

**قوله تعالی:** يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا ط

**ښځې په وراثت کښې داخستلو ممانعت:-** صحیح بخاری کښې دی ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه کله به یو سړې مړ شو نو د هغه وارثان به د دې ښځې پوره حقدار ګنړلې شو. که په هغوئ کښې به چا غوښتل نوهغه به ئې خپله نکاح کښې اخسته. اوکه هغه به غوښتل نو د بل چا نکاح کښې به ئې ورکوله. که غوښتل به ئې نو نکاح کولو ته به ئې نه پرېښودله . د ښځې د خپلوانونه زیات به دا خلق د دې حقدار ګنړلې شو. د جاهلیت د دې رسم خلاف دا آیت نازل شو.[1]

**دویم روایت:-** دویم روایت کښې داهم راغلی دی چه هغه خلقو به دا ښځه مجبوروله چه هغه د مهر د حق نه دستبرداره شی ګنی داسې بې نکاح ناسته وی.[2]

**دریم روایت:-** داهم مروی دی چه په هغوئ کښې به څوك راغلل او د دې ښځې د خاوند په مرګ به ئې په دې ښځه باندې څادر واچولو نو هغه د دې ښځې مختار ګنړلې شو.

**څلورم روایت:-** اویو روایت کښې دی که دې څادر اچونکی به دا ښځه ښکلې اوموندهٔ نو خپله نکاح کښې به ئې اخسته.که دا به ښکلې نه وه نو دابه هسې ناسته وه تر دې چه دې ته به مرګ راغلو او بیا به د دې د مال وارث شو.

**پنځم روایت:-** دا هم مروی دی چه د مړی یو نزدې دوست به په دې کپړا واچوله نو بیا به که هغه د دې ښځې بدله کښې څه فدیه ورکړه نو هغه ته به ئې د نکاح کولو اجازت ورکولو ګنی هسې به ترمرګه ناسته وه.

**شپږم روایت:-** زید بن اسلم رحمه الله فرمائی چه د اهل مدینه به دا دستور وو چه وارث به د دې ښځې هم وارث جوړیدو.دې خلقو به دې ښځې سره ډیر خراب سلوك کولو. تر دې چه د طلاق ورکولو په وخت کښې به ئې دوی ته شرط اېښودو چه چرته خه غوارم نو ستا نکاح به هلته کوم. دغه شان قید نه د

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النساء باب ( لا یحل لکم ان ترثوا لنساء کرها..) : ٤٥٧٩، ابوداود: ٢٠٨٩)-

[2] ابوداود کتاب النکاح باب فی قوله تعلی( لا یحل لکم ان ترثو......) : ٢٠٩٠، وسنده حسن )-

ازادیدو صورت به دا وو چه هغه ښځې ته څه ورکړې اوځان ترې خلاص کړي. الله ﷻ ددې نه مومنان منع کړل.
اتم روایت:- ابن مردویه کښې دی چه کله ابوقیس بن اسلت وفات شو نو د هغه خوئي د هغه ښځې سره نکاح کول غوښتل لکه څنګه چه د جاهلیت په زمانه کښې دستور وو. نودې باندې دا آیت نازل شو.
نهم روایت:- عطاء رحمه الله فرمائي چه د یو بچي په پرورش کولوبه ئې هغه خرچ کولو.
لسم روایت:- مجاهد رحمه الله فرمائي چه کله به څوك مړ شو نو د هغه خوئي به د هغه ښځې حقدار ګڼړلي شو. که هغه به غوښتل نوپخپله به ئې دې خپلې ناسکه مورسره نکاح کوله اوکه غوښتل به ئې نو د بل چا نکاح کښې به ئې ورکوله. لکه رور یا وراره یا چه چرته به ئې غوښتل.
یوولسم روایت:- عکرمه رحمه الله روایت کوي چه د ابوقیس د دې ښځې نوم کبشه وو. هغې د دې صورت خبر رسول الله ﷺ ته ورکړو چه نه خو ماته دا خلق د خپل خاوند په میراث کښې حصه راکوي اونه ما پریږدي چه څه بل چرته نکاح اوکړم. نو دې باندې دا آیت نازل شو. (١)
دولسم روایت:- یو روایت کښې دی چه د کېړې اچولو رسم نه مخکښې که ښځه به اوتښتیده او خپل موریلارکره به راغله نو هغې ته به خلاصې ملاؤ شو.
دیارلسم روایت:- مجاهد رحمه الله فرمائي چه کله به دوی ته یوه یتیمه ماشومه پاتې شوه نو هغه به دوی نه ورکوله(مورته)په دې امید چه کله خمونږ ښځه مړه شي نو دې سره به نکاح اوکړویا به د خپل خوئي دې سره نکاح اوکړو.
د روایاتوخلاصه:- اوس د دې ټولو اقوالو نه معلومه شوه چه د دې ټولو صورتونو نه الله ﷻ په دې آیت مبارك کښې منع اوفرمائیله. او ښځو ته د دې مصیبت نه نجات ملاؤشو. والله اعلم.
قوله تعالى:: وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ
بیافرمائي چه دې ښځو ته د خوراک څکاک او ژوند تیرولو کښې تکلیف او پریشانی مه ورکوئی چه یا خودې هغوئ خپل مهر پریږدي او یا دې دوی ته څه پریږدي یا خپل څه بل حق نه لاس اووینځي اودا به په دې باندې مجبورولې او زورولې شوه.
ابن عباس ﷺ فرمائي چه د دې مطلب دا دې چه ښځه ئې خوښه نه ده ، دې سره ئې زړه او نه لګیدو او داپرېښودل غواړي نودې صورت کښې به مهر او ټول حقوق وغیره ورکول وي. اوددې نه دبچ کیدو دپاره به دې ښځه باندې زورزیاتې کوي اورنګ رنګ تکلیفونو کښې ئې راګیروي چه هغه خپل حقوق پریږدي اولاړه شي اویاراضي شي .نو دې صورت کښې قرآن پاك مسلمان ته خبرداري ورکړو چه دا صورت پریږدئي .ابن سلماني رحمه الله فرمائي چه دې دواړو آیتونو کښې رومبي آیت د جاهلیت امر ختمولو دپاره او دویم ایت د اسلام د دامردااصلاح دپاره نازل شوي وو.
قوله تعالى:: إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ
دفاحشه په تفسیر کښې اقوال:- ①ابن مبارك رحمه الله هم دا فرمائي . مګردې صورت کښې چه د دوی نه ښکاره بې حیائي صادر شي . دې نه مراد په قول د اکثرو مفسرینو صحابه کرامو ﷺ وغیره زناکاری ده. یعني دې صورت کښې جائز دی چه دې دې نه مهر واپس واخستې شي. او هغه دې پریشانه کړې شي چه خلع باندې راضي شي (٢) لکه څنګه چه د سورة بقره آیت مبارك کښې دی چه ﴿لَا يَحِلُّ لَكُمْ﴾ الخ. یعني تاسو دپاره حلال نه دی چه تاسو د هغې نه څه واخلئ چه کوم تاسو هغې ته ورکړي دی . مګر دې حالت کښې چه دواړه د الله ﷻ حدونه قائم نشي ساتلې او د دې ویره وي الخ.

---

(١) الطبری : ٨٨٧٤ »)-
(٢) الطبری: ١١٥/٨)-.

② بعضو بزرګانو فرمائيلي دي چه ﴿بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ نه مراد د خاوند خلاف کيدل ، د هغه نافرماني کوی،خوله غلطه خوزول،خراب اخلاق،د زوجيت حقوق ښه طريقې سره نه ادا کول وغيره دی. (١)

③ امام ابن جرير رحمه الله فرمائی چه د دې آيت الفاظ عام دی ، دې کښې زنا او دا دواړه په دې کښې شامل دی يعنی هغه ټولو صورتونو کښې چه خاوند لره مباح وی چه هغه تنګ کړی چه هغه خپل ټول حقونه يا لږ حق پريږدی او بيا هغه جدا کړی .دامام صاحب رحمه الله دا فرمان ډير مناسب دې ، والله اعلم . دا روايت هم مخکښې تير شويدې چه تر دې پورې ددې آيت د نازليدو سبب دجاهليت رسم دې . چه په دې کښې الله ﷻ منع فرمائيلې ده . ددې نه معلوم شو چه دا پوره بيان دامر جاهليت داسلام نه دختمولو دپاره شوې دې.

**دا يت شان نزول**:- ابن زيد فرمائی چه د مکې قريشو کښې دا خبره وه چه کله به د يو سړی يو شريفې ښځې سره نکاح اوشوه او د دوی موافقت به نه وو نو دې سړی به هغې ته طلاق ورکولو ، ليکن دا شرط به په کښې وو چه د هغه د اجازت نه بغير به دې بل ځائې کښې نکاح نشوه کولې . په دې خبره به ئې ګواه مقرر کړو.او اقرار نامه به ئې اوليکله.اوس که چرته نه به پيغام راغلو او هغه ښځه به راضی وه نو دې سړی به وئيل چه ته ما ته دومره رقم راکړه نو ځه به تاته د نکاح کولو اجازت درکړم. که هغې به ادا کړو نو ورته به ئې اجازت ورکړو ګنې دغه شان به هغه پاتې وه او بله نکاح به ئې نشوه کولې . ددې ممانعت په دې آيت کښې نازل شو.دمجاهد رحمه الله په قول دا حکم او د سورة بقرة آيت دواړه يو دې.

**قوله تعالى:: وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ**

**ښځو سره د ښهٔ سلوک حکم**:- بيا فرمائی چه ښځو سره نيک سلوک کوئی چه هغوئ ستاسو دپاره ښائسته اوښه حالت کښې وی. تاسو هم خپل حالت ښه ساتئ: لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ﴾ يعنی لکه څنګه چه ستاسو حقوق په دوی باندې دی نودغه شان د هغوئ حقوق په تاسو باندې دی.

**بهترين سړې څوک دې؟**:- رسول الله ﷺ فرمائی چه په تاسو کښې بهترين سړې هغه دې چه خپلې کور والا سره بهتر سلوک کوی څه خپلو بيبيانو سره ښه سلوک کوم. (٢)

**د نبی کريم ﷺ خپلو بيبيانو سره سلوک**:- رسول الله ﷺ د خپلو بيبيانو سره ډيرې خوشحالئ ، مهربانئ ، نرمو اخلاقو او روڼې تندی سره ملاويدلو. هغوئ سره به ئې د خندا خوشحالئ خبرې کولې . د هغوئ زړونه به ئې خپل لاس کښې ساتل . هغوئ ته به ئې ښه خوراک څکاک ورکولو. په فراخه زړه به ئې دوی باندې خرچ کولو. داسې دخنداخبرې به ئې کولې چه دې سره به هغوئ خندل. داسې هم شوی دی چه رسول الله ﷺ عائشه رضي الله عنها سره منډه هم وهلې ده. چه په هغه منډه کښې عائشه رضي الله عنها مخکښې لاړه. څه موده پس بيا ئې منډه اووهله نو دې ځل عائشه رضي الله عنها روستو پاتې شوه. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه بدل خلاص شو(٣)

د دې نه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چه دې سره عائشه صديقه رضي الله عنها خوشحاله شی. چه کومې بی بی سره به رسول الله ﷺ شپه تيروله نو ټولې بيبيانې به هلته جمع شوې .يو ساعت نيم به کښيناستې او خبرې اترې به ئې کولې . کله کله به داسې هم کيدل چه رسول الله ﷺ به هغوئ سره يو ځائې خوراک اوکړو او بيا به ټولې خپلوخپلو کورونو ته تللې او رسول الله ﷺ به هم هلته آرام کولو چه کوم ځائې به د شپې تيرولو نمبر وو. خپلې بی بی صاحبې رضي الله عنها سره به يو څادر کښې څملاستو او قميص مبارک به ئې

---

(١) الطبری: ۸/۱۱۷)-

(٢) ترمذی کتاب المناقب باب فضل ازواج النبی : ۳۸۹۵ وهو صحيح )-

(٣) ابوداود کتاب الجهاد باب فی السبق علی الرجل : ۲۵۷۸، وسنده صحيح ابن ماجة: ۱۹۷۹، مختصرا)-

اوويستلو ، صرف تهبند به ئې وو. د ماستخن مونځ نه پس به کور ته تلو اوساعت دوه به ئې خبرې اترې کولې چه دې سره به د کور والو زړه خوشحاله شو. غرض دا چه ډير محبت او مينې سره به رسول الله ﷺ وخت تيرولو. نو مسلمانانو ته پکار دی چه خپلو بيبيانو سره ښه په مينه او محبت سره اوسيږی . الله ﷻ فرمائی چه ستاسو ښه والی خما د نبی په نقش قدم تلل دی . د دې تفصيلی احکامو ځايې تفسير نه دې بلکه په دې مضمون کتابونه شته دې . والحمد لله .

**قوله تعالى:**: فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰٓ أَن تَكْرَهُوا۟ شَيْـًٔا

**ښخو سره د ښه سلوک تاکيد**:- بيا فرمائی که ستاسو زړه نه غواړی نو بيا هم تاسو خپلو بيبيانو سره ښه سلوك کوئی اودا ممکن دی چه الله ﷻ تاسو ته ډيره ښيګړه درکړی . ممکن دی چه نيك اولاد درته درکړی. اودې سره الله ستاسو نصيب ښه کړی .

**دښځې باره کښې مومن ته نصيحت**:- صحيح حديث کښې دی چه مومن سړې دې مومنه ښځه نه جدا کوی. که د دې يو خبره نيمه ئې خوښه نه وی نو يو نيم عادت به ئې ښه هم وی . (١)

**قوله تعالى:**: وَإِنْ أَرَدتُّمُ ٱسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ وَءَاتَيْتُمْ إِحْدَىٰهُنَّ قِنطَارًا

**د طلاق ورکولو اراده** :- بيا فرمائی په تاسو کښې که څوك خپلې بی بی ته طلاق ورکول غواړی او د دې په ځائې بلې بی بی سره نکاح کول غواړی نو هغې ته د هغه مهر نه ورکړئ کوم چه تاسو مقرر کړې وی او د هغې نه دا واپس مه اخلئ اګر چه تاسو هغوئ ته خزانې ورکړې وی .د سورة آل عمران تفسير کښې د قنطار پوره بيان تير شوې دې ، ځکه دلته دوباره د بيانولو ضرورت نشته دې .

**زيات مهر مقرر کول جائز دی**:- د دې نه ثابت شو چه مهر کښې زيات مال ورکول هم جائز دی . امير المومنين عمر فاروق ﷛ نه مخکښې د زياتو زياتو مهرونو ورکولو نه منع کړې وه. بيا ئې د خپل قول نه رجوع اوکړه لکه چه مسند احمد کښې دی چه حضرت عمرفاروق ﷛ چه د ښځو مهر تړلو کښې زياتې مه کوئی که په دنياوی اعتبار سره څه د ښيګړې څيز وې يا د الله ﷻ په نيز دا د تقوی څيز وې نو ستاسو ټولو نه مخکښې به د الله ﷻ رسول ﷺ دا عمل کړې وو. رسول الله ﷺ د خپلې يو بی بی يا يو لور مهر د دولسو اوقيو نه زيات نه دې مقرر کړې (تقريباً پاؤ باندې سل روپی) .

انسان چه کله مهر زيات مقرر کړی نو دا د هغه دپاره مصيبت جوړيږی . تر دې چه په مزه مزه د ده ښځه په ده بوج شی او د ده په زړه کښې هغې سره دښمنی پيدا شی. اودې وائی چه تا خما په اوګو باندې مشك زړوند کړی دی (٢) دا حديث هم ډيرو کتابونو کښې مروی دې .

**دعمر ﷛ په مهر کښې دغلو نه منع کول**:- يو حديث مبارك کښې دی چه عمرفارق ﷛ منبر باندې تشريف فرما شو او وې فرمائيل چه ائې خلقو ! تاسو ولې زيات زيات مهرونه تړل شروع کړل ؟ رسول الله ﷺ او د رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷛ خو د څلورو سوؤ درهمو تړلې مقرر کړې وو (چه دا سل روپئ جوړيږی ) که دا زيات مهر د تقوی او کرامت سبب وې نو تاسو به دې کښې زمونږ نه وړاندې شوې نه وئ خبردار چه د نن نه پس خما آوريدو کښې رانشی چه چا د څلور سوؤ درهمو نه زيات مهر مقرر کړې دې . دې فرمائيلو نه پس دوی د منبر نه لاندې راکوز شو نو يو قريشيه ښځه ورته مخامخ شوه او ورته ئې اوفرمائيل چه ائې امير المومنين ! آيا تاسو خلق منع کړل چه د څلورو سوؤ نه زيات مهر مه مقرروئ ؟ دوی ورته اوفرمائيل چه آؤ. هغه ښځې اوونيل چه آيا تا د الله ﷻ نازل شوې قرآن پاك نه دې آوريدلې ؟ دې فرمائيل چه څه ؟ هغې اوونيل چه الله ﷻ فرمائی چه ﴿وَءَاتَيْتُمْ إِحْدَىٰهُنَّ قِنطَارًا﴾ الخ ، تاسو هغوئ ته خزانه ورکړې وی . الخ. عمرفاروق ﷛ اوفرمائيل چه ما معاف کړئی ، د عمر نه خو هر سړې زيات پوهه دې . بيا دوی واپس شو. او هم په هغه وخت په منبر کښيناستل او خلقو ته ئې اوفرمائيل چه ائې

(١) صحيح مسلم كتاب الرضاع باب الوصية بالنساء: حديث: (١٤٧١)-

(٢) حمد: ١/ ٤٠، ابوداود كتاب النكاح باب الصدق: ٢١٠٦، وهو حسن ترمذى: ١١١٤، نسائى: ٣٣٥١، ابن ماجة: ١٨٨٧)-

خلقو ! ما تاسو د خلورو سوو درهمو نه زيات مهر مقررلو نه منع كړي وئ . خو اوس وايم چه څوك د خپل مال نه څومره مهر وركول غواړي وركوي دې . خپلې خوښې سره چه څومره مهر وركول غواړي نو وركوي دې . څه به هغه نه منع كوم. (١)يو روايت كښې ددې ښځې دا آيت لوستل مروى دى چه ﴿وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنطَارًا مِّن ذَهَبٍ﴾ عبدالله بن مسعود ﷺ قرآت كښې هم داشان دى . او د عمرفاروق دا فرمانيل هم مروى دى چه يوه ښځه عمر باندې غالب شوه. (٢)
او روايت كښې دى چه دوى اوفرمانيل اګر چه ذى القصه د يزيدبن حصين لور وى بيا هم د دې مهر زيات مه مقرر كوئى او كه تاسو اوكړل نو زيات رقم به بيت المال دپاره اخلم . دې سره يو لوړې اوږدې پوزې والا ښځې اووئيل چه ائي عمر فاروق ! تاسو دا حكم نشئ كولئ الخ.
قوله تعالى: وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ وَقَدْ أَفْضَىٰ بَعْضُكُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ
**مهر نشى واپس كيدلې :-** بيا فرمائى چه تاسو چه كوم مهر خپلو ښځو ته وركړې دې هغه تاسو څنګه واپس كوئى ؟ حالانكه تاسو هغوئ نه ډيره فائده اوچته كړې ده ، تاسو هغوئ نه خپل حاجتونه پوره كړى دى او هغوئ تاسو سره او تاسو هغوئ سره يو ځائې شوئى . يعنى تاسو د ښځې خاوند تعلقات هم قائم كړل.
**د شيخينو روايت:-** صحيح بخارى او مسلم كښې دا حديث نقل دې په هغې كښې د يو سړى په خپله ښځه باندې د زنا تهمت لګول او بيا د رسول الله ﷺ مخكښې بيانول او بيا د دې دواړو قسمونه خوړل او دې نه پس د رسول الله ﷺ دا فرمائيل چه الله ﷺ ته ښه معلوم دى چه تاسو دواړو كښې دروغژن څوك دې ؟ آيا تاسو كښې اوس هم څوك توبه كوى ؟ درې ځل ئې دا اوفرمائيل نو دې سړى اووئيل چه ما كوم مال دې ته وركړې دې مهر كښې د هغې باره كښې تاسو څه فرمائې ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د هغې بدله كښې خو ستا دپاره حلاله شوې وه. او اوس چه تا دې باندې تهمت اولګولو نو خبره نوره هم لرې شوه (٣)
**د پيغلې جينئ د زنا د ارتكاب واقعه:-** دغه شان يو بل حديث مبارك كښې دى چه نضر يو پيغلې سره نكاح اوكړه او هركله چه هغې سره يو ځائې شو نو وې كتل چه د هغې د زنا نه حمل شوې وو ،د دې ذكر ئې رسول الله ﷺ ته اوفرمائيل . نو رسول الله ﷺ هغه جدا كړو او مهر ئې ورته وركړو او دې ښځې ته ئې د كورو وركولو حكم اوفرمائيلو. او وې فرمائيل چه كوم بچې پيدا شى هغه به ستا غلام وى .او مهر خو سبب وو. ددې د حلت ( ابوداود).(٤) غرض دا چه دې آيت كښې هم دا مطلب دې چه دواړو ښځې خاوند كښې خلوت شوې وو ، بيا مهر واپس كول څه معنى لرى .
قوله تعالى: وَأَخَذْنَ مِنكُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا
بيا فرمائى چه عقد نكاح چه دا يومضبوطه وعده ده او تاسو دې كښې ترلې شوى يئ. تاسو د الله ﷺ دا فرمان واوريدو كه تاسو يوځائې اوسيږئ نو په ښه طريقه او كه جدا كيږئ نو هم په ښه طريقه .
**په نكاح كښې د شهادتينو اقرار:-** يو حديث مبارك كښې دى چه تاسو دا ښځې د الله ﷺ امانت سره اخلئ او تاسو دوى خپل ځان دپاره د الله ﷺ كلمې سره حلالوئى . يعنى د خطبه نكاح تشهد سره . رسول الله ﷺ ته د معراج په شپه چه كوم بهترين انعامات وركړې شو په هغې كښې يو دا هم وو چه رسول الله ﷺ ته فرمائيلې شوى وو چه ستا د امت يو خطبه هم قبوله نه ده ترڅو چه هغوئ د دې امر ګواهى ورنكړى ته بنده ئې او څما رسول ئې . ( ابن ابى حاتم )

---

(١) ابو يعلى )-
(٢) مصنف عبدالرزاق : ١٠٤٢٠،)-
(٣) صحيح بخارى كتاب الطلاق : باب صداق الملاعنه: ٥٣١١، صحيح مسلم: ١٤٩٣)-
(٤) ابوداود كتاب النكاح ، باب الرجل يتزوج المراة فيجدها حبلى : ٢١٣١،)-

صحیح مسلم شریف کښې دی جابر ﷺ نه مروی دی چه رسول الله ﷺ خطبه حجة الوداع کښې فرمائیلی وو چه تاسو خپلې ښځې د الله تعالی په امانت کښې اخیستې دی او هغوئ مو د الله ﷻ کلمې سره خان دپاره حلالې کړې دی (۱).

قوله تعالی:: وَلَا تَنْكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ

**د میرنئ مور سره د نکاح حرمت:-** بیا الله ﷻ د ناسکه مور د حرمت بیان کوی . او د هغې تعظیم او توقیر بیان فرمائی . تردې که یو پلار یو ښځې سره نکاح اوکړه او هغه ښځه ئې لا کور ته هم نه وه راوستې چه هغې ته ئې طلاق ورکړو یا د ده پلار مړ شو وغیره نو بیا هم هغه ښځه د دې خونې دپاره حرامه ده . په دې باندې اجماع ده . **د ابوقیس ﷺ واقعه:-** ابوقیس ﷺ یو ډیر لوئې اونیك صحابی وو ، د ده د وفات نه پس د ده خونې د ده ښځه اوغوښتله اوهغه د ده ناسکه مور وه. په دې باندې د ده ناسکه مور اووئیل چه بیشکه ته په خپل قوم کښې نیك ئې خو خه تا خپل خونې ګنړم. خو خه بیاهم رسول الله ﷺ ته ورخم. دلته راغله او رسول الله ﷺ ته ئې ټوله قصه بیان کړه. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه خپل کور ته واپس شه. (۲)بیا دا آیت نازل شو چه کومې ښځې سره یو پلار نکاح کړې وی نو هغې سره د خونې نکاح کول حرام دی . داسې واقعات هغه وخت کښې نور هم موجود وو نوهغوئ د خپلو ارادو نه منع کړې شو. یو خو دا د ابوالقیس واقعه وه. دده د ښځې نوم ام عبیدالله ضمره وو.

**د خلف واقعه:-** دویمه واقعه د خلف وه ،د هغه په کور کښې د ابوطلحه لور وه. د هغه د انتقال نه پس د هغې خونې صفوان هغه خپله نکاح کښې راوسته . امام سهیلی فرمائیلی دی چه په جاهلیت کښې د دې نکاح کول معمول وو او دا به باقاعده نکاح ګڼړلې شوه. او بالکل حلاله ګڼړلې شوه. د دې وجې دلته هم د دې ذکر اوشو چه کوم مخکښې تیر شو نو هغه تیر شو ، لکه دوه خویندو سره د نکاح کولو حرمت هم دلته بیان کړې شو. کنانه بن خزیمه هم دشان کړی وو چه د خپل پلار ښځې سره ئې نکاح کړې وه. اونضر د دې نه پیدا شوې وو. او د رسول الله ﷺ فرمان موجود دې چه څمانه پورته نسل هم باقاعده نکاح کښې وو او د زنا نه نه وو. نو معلومه شوه چه دا خبره په هغوئ کښې برابره جاری اوجائز وه. اودا به ئې نکاح شمیرله.

ابن عباس ﷺ فرمائی چه کومې کومې رشتې الله ﷻ حرامې کړې دی هغه ټولې جاهلیت والا هم حرامې ګڼړلې سوا د خپلې ناسکه میرنئ مور او دوه خویندې په نکاح کښې جمع کولو نه. نوالله ﷻ خپل کلام مبارك کښې هم دا رشتې حرام اوګرځولې. عطاء او قتاده رحمهما الله هم دا فرمائی . یاد ساتئ چه سهیلی چه د کنانه کومه واقعه نقل کړې ده هغه د غور طلب ده او قابل نظر ده. بالکل صحیح نه ده. والله اعلم

قوله تعالی:: إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا ۖ وَسَاءَ سَبِيلًا

**د میرنئ مور سره د نکاح قباحت:-** بهر صورت دا رشته د دې امت په افرادو باندې حرامه ده او ډیره قبیح ده. ځکه فرمائی چه دا ډیر فحش او خراب کار او د بغض سبب او خرابه لار ده. بل ځائې کښې فرمان دې چه ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ﴾ الخ یعنی هیڅ یو خرابئ او بې حیایئ او فحش کار ته نزدې مه ورځئ که ښکاره وی اوکه پټ وی او فرمان دې چه ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰ﴾ الخ ، زنا ته نزدې مه ورځئ یقینی طور دا فحش کار دې او خرابه لار ده. تر دې چه د دې نه ئې هم زیات اوفرمائیل چه دا کار دې سره سره د بغض دې . یعنی فی نفسه هم دا لوئې امر دې . دې کښې پلار او خونې کښې عداوت پیداکیږی. او دښمنی هم ظاهریږی . دا ظاهره ده او عام طور موندې شی چه کوم یو سړې یوې ښځې سره نکاح اوکړی او د دې رومبی خاوند سره بغض ساتی .هم دا وجه ده چه د رسول الله ﷺ بیبیانې امهات المومنین اوګرزولې شوې او امت باندې د مور په شان حرامې شوې . ځکه چه هغه د نبی ﷺ بیبیانې دی . او محمد ﷺ د

---

(۱) صحیح مسلم: کتاب الحج باب حجة النبی ﷺ : ۱۲۱۸ ، ابوداود: ۱۹۰۵، ابن ماجة: ۳۰۷٤)-

(۲) بیهقی : ۱٦۱/۷)-

پلار په شان دي . بلکه په اجماع سره ثابت دي چه د رسول الله ﷺ حق د نیکونو اوپلرونو د حقونونو
نه هم زیات دي بلکه د رسول الله ﷺ محبت د خپل ځان د محبت نه هم مقدم دي.(**صلوات الله وسلامه علیه**
) دا هم وئیلې شوي دي چه دا کار د الله ﷻ د بغض سبب دې او خرابه لار ده،اوس چه څوك داسې کار
اوکړي نو هغه دین نه مرتد دې.هغه دې قتل کړې شي.او د هغه مال دې بیت المال کښې داخل کړې
شي.

**د میرنۍ مور سره د نکاح کونکی سزا:-** سنن او مسند احمد کښې مروي دي چه یو صحابی رسول الله ﷺ یو
کس طرفته اولیږلو او هغه کس د خپل پلار ښځې سره واده کړې وو چه هغه قتل کړي او د هغه مال
راوړي.(1) براء بن عازب ﷜ فرمائي چه خما تره عمیر ﷜ د رسول الله ﷺ بیرغ سره مالره راغلو ، ما
ترې تپوس اوکړو چه اې تره ! رسول الله ﷺ تاچرته لیږي ؟ وې فرمائیل چه هغه سړي طرفته چه هغه د
خپل پلار ښځې سره نکاح کړې ده ، ماته حکم دې چه څه هغه قتل کړم . (مسند احمد). (2)

**د پلار مباشرې ښځې سره د نکاح کولو حرمت:-** مسئله په دې باندې د علماء کرامو اجماع ده چې کومې
ښځې سره پلار مباشرت اوکړو اګر چه ورسره نکاح اوکړي یا ئې ملکیت کښې راولی یا ئې شبه سره
وی ، هغه ښځه په ځوئي حرامه ده.

**د پلار په صرف مباشرت یا کتلو سره حرمت کښې اختلاف:-** که جماع نه وی شوي صرف مباشرت ئې اوشو یا
ئې هغه اندامونه اوکتل چه د هغې کتل د یو اجنبی سړي دپاره کتل حلال نه وو. نو دې کښې اختلاف
دې . امام احمد رحمه الله دې صورت کښې هم ښځه دې ځوئي دپاره حرامه ګنړي.

**د امام احمد رحمه الله د مذهب تائید:-** حافظ ابن عساکر رحمه الله وائي چه دې واقعې نه هم د دې مذهب تقویت
ملاویږي چه خدیج حمصی رحمه الله چه د امیر معاویه مولی وو ، امیر معاویه ﷜ دپاره یوه وینځه
واخسته چه غنم رنګې او ښکلې وه او بغیر د کپړو نه ئې هغه ته اولیږله. د هغه لاس کښې یو چاړه وه
، هغې سره ئې اشاره اوکړه او وې وئیل چه ښه نفع ده خو د دې دپاره اسباب وي .بیا ئې اوفرمائیل چه
دا یزید بن معاویه ته اولیږه ، بیا ئې اووئیل چه نه اودریږه ، ربیعه بن عمر حرسی ماته راوله . دا ډیر
لوئې فقیه وو. هرکله چه هغه راغلونو معاویه ﷜ د هغه نه د دې مسئلې تپوس اوکړو چه ما د هغه
ښځې اندامونه لیدلي دي . د هغې کپړې په بدن نه وې . اوس څه هغه خپل ځوئې یزید ته په نکاح
کولې شم ؟ نو آیا هغه لره دا حلاله ده که نه ؟ ربیعه رحمه الله اوفرمائیل چه امیر المومنین داسې مه کوئی
دا اوس دهغه قابله پاتې نشوه. وې فرمائیل چه ته صحیح وائې . ښه ده لاړ شه او عبد الله ابن مسعده
فزاری راوله .هغه چه راغلو ،هغه غنم رنګې وو ،هغه ته امیر معاویه ﷜ اوفرمائیل چه څه داوینځه تاته
درکوم چه ستااولاد سپین وي .دا عبدالله بن مسعده ﷜ هغه صحابی دې چه کوم رسول الله ﷺ فاطمه
رضي الله عنها ته ورکړې وو. فاطمه رضي الله عنها دهغه خصسانه اوکړه او بیائې د الله ﷻ په نوم آزاد کړو. بیا دې معاویه
﷜ ته راغلو.

**مسلک حنفی:-** د احنافو په نیز که فرج ته په شهوت سره اوګوری نو په دې باندې حرمت راځي یعنې که
پلار یا ځوئې د یوې ښځې فرج ته په شهوت باندې اوګوری نو په دوی کښې د ناظرد پلاریا ځوئې دغه
منظور الیها یعنی چاته چې ئې نظر کړي وی نکاح جائز نه ده او که د فرج نه علاوه بل داسې ځائې ته ئې
کتلې وی هغه عورت وی نو په دې سره حرمت نه واقع کیږي (احکام القران للعلامة ظفراحمد العثمانی
٢٠٤/٢).-

---

(1) احمد: ٣٩٧/٤، کتاب الحدود باب فی الرجل یزنی بحریمه: ٤٤٥٧، وسنده صحیح ترمذی : ١٣٦٢ نسائی : ٣٣٣٣، ابن ماجة: ٢٦٠٧)-

(2) احمد: ٢٩٢/٤)-

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهٰتُكُمْ

احرامې کړې شوې دی | په تاسو باندې | میندې ستاسو |

| او ودیر خراب دستور دی|په تاسو حرامې دی ستاسو میندې

وَبَنٰتُكُمْ وَأَخَوٰتُكُمْ وَعَمّٰتُكُمْ وَخٰلٰتُكُمْ وَبَنٰتُ الْأَخِ

اولونړه ستاسو|اوخویندې ستاسو|اود پلار خویندې ستاسو|اود مور خویندې ستاسو|اولونړه درورا

لونړه ستاسو|خویندې ستاسو | ..........اوخویندې دپلرونو|اوخویندې د میندوستاسو|او وریرې

وَبَنٰتُ الْأُخْتِ وَأُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِىٓ أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوٰتُكُمْ

اولونړه د خویندو(خورزې)|او میندې ستاسو| هغه | چه تې نې درکړې وی تاسوته|اوخویندې ستاسو|

اوخورزې | ..........اوهغه میندې چې تاسوته نې تې درکړې وی | ..........اودتی خویندې

مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَأُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِىْ

دتی رودولو شریکې|اومیندې دښځو ستاسو(خواښې)|او پرکتیانې ستاسو| هغه |

..........اوخواښیانې ستاسو| ..........اوپرکتې: ستاسو هغه چې

فِىْ حُجُوْرِكُمْ مِّنْ نِّسَآئِكُمُ الّٰتِىْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ

چه په غیږوستاسو کښې لوئې شوې وی| دښځو ستاسونه|هغه ښځې|چه کور والې کړې وی تاسو دهغوئ سره

ستاسو په تربیت کښې وی| دهغه ښځونه چې تاسوورسره نژدیکت کړې وی (جماع مو ورسره کړې وی)

فَإِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ وَحَلَآئِلُ

|اوکه چرې نه یې تاسو| چه کوروالې مو کړې وی | هغوئ سره| نونشته گناه |په تاسو باندې| اوښځې |

نوکه نژدیکت مونه وی کړې | نوبیا دپرکتې: په نکاح کولو کښې هیڅ گناه نشته دې

أَبْنَآئِكُمُ الَّذِيْنَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ وَأَنْ تَجْمَعُوْا

دخامنو ستاسو (اینگوریانې)|هغه (خامن)|چه پیدا وی دشاگانو ستاسونه| اوداچه | یو ځائې والې اوکړئ

اوستاسو دخپلو حقیقې خامنوښځې | اودا چې یوځائې کړئ تاسو په یووخت کښې

بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ط إِنَّ اللّٰهَ كَانَ

|په مینځ ددوؤ خویندو کښې | ماسوا| دهغې نه چه مخکښې شوی دی |بیشکه چه الله | دې

دوه خویندې| څه چې ووهغه تیر شو بیشکه الله پاک

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿٢٣﴾

|ښونکې ارحم کوونکې

بخښونکې رحم کونکې دې

قوله تعالیٰ:: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهٰتُكُمْ

هغه ښځې چه سړو باندې حرامې دی:- نسبی ،رضاعی، اود سخرګنۍ رشته کښې چه کومې ښځې سړی دپاره حرامې دی دهغې بیان په دې آیت مبارک کښې کیږي.ابن عباس ﷺ فرمائی اووه ښځې په وجه د

نسب حرامې دی.او اووه ښځې د سخرګنۍ په وجه.بيا هغوئ ﷺ د دې ايت مبارك تلاوت اوفرمائيلو. دخور لونړو پورې خو نسبي رشتې دی. (١)
جمهورعلماء كرامووددې آيت نه استدلال كړې دې چه زنا نه كومه جينۍ پيداشوې وی هغه هم په دې زانی باندې حرامه ده ځكه چه دا هم لور ده. او لونړه حرامې دی . هم دا مذهب د امام مالك رحمه الله ، امام ابوحنيفه رحمه الله ،او دامام احمد بن حنبل رحمه الله دی.د امام شافعی رحمه الله نه د دې اباحت كښې څه حكايتونه نقل كړې شوی دی.ځكه چه دا شرعی لحاظ سره لور نه ده . نو لكه څنګه چه د ورثه باره كښې دادلور په حكم كښې نه شامليږی اودې ته ميراث نه ملاويږی ،دغه شان د دې آيت مبارك حرمت كښې داخل نه ده . والله اعلم .
**مسلك حنفی:**-لكه څنګه چه حافظ ابن كثير رحمه الله فرمائيلی دی هم د احنافو مسلك دې چې د كومې ښځې سره زنا اوشی د هغې لور په زانی باندې حرامه ده (تفسيرمظهری ٢٦٤١٢)-
**قوله تعالى:** : وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ
**د رضاعی مور حرمت:**-بيا فرمائی چه څنګه تاسوباندې سكه ميانديې حرامې دی هم دغه شان رضاعی مورهم حرامه ده.
**رضاعت هم د حرمت سبب دې:**- صحيح بخاری او مسلم كښې دی چه په رضاعت سره هغه ښځې حراميږی كومې چې په نسب سره حراميږی. صحيح مسلم كښې دی چه هغه ښځې رضاعت سره هم حرامې دی چه كومې نسب سره حرامې دی. (٢)

**په حرمت رضاعت كښې د بعضو صورتونو استثناء:**-بعضې فقهائې كراموپه دې كښې څلور صورتونه او بعضو شپږ صورتونه مخصوص كړی دی چه دا احكام د فروع كتابونوكښې دی ، ليكن تحقيقی خبره دا ده چه په دې كښې څه خصوصيت نشته دې ځكه چه هم د دې پشان بعضو صورتونه نسب كښې هم مونديې شی .او دې صورتونو كښې بعضې صرف د سخرګنۍ رشتو په وجه حرام دی .نو حديث باندې هيڅ اعتراض نه شی كيدې . والحمدلله .
**څومره مقدار سره رضاعت ثابتيږی او د دې د مودې بيان:**- د آئمه كرامو په دې كښې اختلاف دې چه څومره ځل پی: څكلوسره حرمت ثابتيږی ① بعضې خو وائی چه تعداد معين نه دی،په مطلق پيوڅكلوسره حرمت ثابتيږی. امام مالك رحمه الله هم دا فرمائی.د ابن عمر ﷺ، سعيد بن مسيب رحمه الله، عروه بن زبير رحمه الله زهری رحمه الله هم دا قول دې . دليل دا دې چه دلته رضاعت عام دې .
② بعضې وائی چه درې ځله پی: اوڅكی نو حرمت ثابت شو . لكه څنګه چه صحيح مسلم كښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چې پ يو ځل يا دوه څكلو سره حرمت نه ثابتيږی(٣)داحديث مختلفو الفاظو سره مروی دې.امام احمد بن حنبل رحمه الله ،اسحاق بن راهويه رحمه الله ،أبوعبيده رحمه الله اوابوثور رحمه الله هم دا فرمائی.علی ﷺ،ام فضل رضي الله عنها، ابن زبير ﷺ،سليمان ابن يسار ﷺ ،سعيد بن جبير ﷺ نه هم دا مروی دی
③ بعضې وائی چه پنځه ځل پی: څكلو سره حرمت ثابتيږی ددې نه كم نه . د دوی دليل صحيح مسلم كښې دا روايت دې چه عائشه رضي الله عنها فرمائی چه مخكښې قرآن پاك كښې لس ځل دپيو څكلو د حرمت حكم نازل شوې وو ، بيا منسوخ شو او د پنځو ځلو پيو څكلو حكم باقی پاتې شو. د رسول الله ﷺ

---

(١) الطبری : ١٤٢/٨)-
(٢) صحيح بخاری كتاب الشهادات باب الشهادت علی الانساب : ٢٦٤٦، صحيح مسلم: ١٤٤٤)-
(٣) صحيح مسلم كتاب الرضاعة باب فی المصة والمصتان : ١٤٥٠، من طريق آخر عن عائشة رضی الله عنها ابوداود : ٢٠٦٣، ترمذی: ١١٥٠)-

وفات پورې هغه په قران پاك كښې لوستلې كيدو(١)دويم دليل دسهله بنت سهيل روايت كښې دې چه هغه ته رسول الله ﷺ حكم كړې وو (٢) چه سالم ﷺ چه د ابو حذيفه ﷺ مولى وو پنځه خل پئ اوځكول. عائشه رضي الله عنها ته چې به كومه ښځه راغله نو هم د دې حديث مطابق به ئې ورته هم دا حكم كولو. امام شافعي رحمه الله او ددوى ټول ملګرى هم دا فرمائي چه پنځه خل پئ ځكول معتبر دى .

**مسلك حنفي:-** احناف رحمهم الله فرمائي.چه په مطلق پئ وركولو يا رودلوسره حرمت رضاعت ثابتيږى.كه كم وى اوكه زيات وى.خوپه دې شرط چه د رضاعت په موده كښې وى.حسن بصرى ،سعيدبن المسيب، وكيع، عبدالله بن مبارك او زيات جمهورفقهاء رحمهم الله ددې قائلين دى.(تسهيل الهدايه شرح هدايه ١٩٩١٣)۔

**په كومه مودهٔ كښې پئ وركولو باندې احكام مرتب كيږى؟:-** دا هم ياد ساتل پكار دى چه د جمهورو مذهب دا دې چه رضاعت به د پئيو ځكلونه مخكښې يعنى دوه كالو كښې دننه دننه عمر كښې وى ، د دې مفصل بيان آيت ﴿حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ﴾ تفسير كښې تير شوې دې .

**مسلك حنفي:-** د احنافو هم دا مسلك دې چه هغه رضاعت معتبر دې او په هغې باندې د رضاعت احكام جارى كيږى كوم چې د رضاعت په موده كښې دننه دننه اوشى اوكه د رضاعت د مودې نه پس ماشوم ته پئ وركړې شى نو په هغې باندې حرمت رضاعت نه ثابتيږى (تسهيل الهدايه ٢٠٣١٣)۔

**د رضاعت اثر د ناسكه مور خاوند ته رسى كه نه؟:-** بيا په دې كښې اختلاف دې چه د دې رضاعت اثر به د ناسكه مورخاوند ته هم رسى كه نه ؟ نو جمهور او آئمه اربعه فرمائي چه رسى به. او د بعضو سلفو قول دې چه صرف پئ ځكونكې ته به رسى او رضاعئ پلار ته نه رسى. ددې د تفصيل ځائې د احكامو لوئې لوئې كتابونه دى ، تفسيرنه دې.

**قوله تعالى:: وَأُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ**

**د خواښيانو حرمت:-** بيا فرمائي چه خواښې حرامه ده. چه كومې جينئ سره نكاح اوشى نو د نكاح په وجه د دې مور سره د دې هلك نكاح حرامه شوه كه صحبت اوشى اوكه اونه شى .خو چه كومې ښځې سره نكاح كوى او د دې ښځې د رومبى خاوند نه لور وى نوكه دې ښځې سره صحبت اوكړى.نو دا جينئ په ده حرامه شوه اوكه مجامعت نه مخكښې ئې دې ښځې ته طلاق وركړو نو دې جينئ سره بيا نكاح كول حرام نه دى. ځكه چه دې آيت مبارك كښې دا قيد دې . چې تاسو ورسره جماع كړې وى

**د خواښې حرمت د هغې د لورسره د جماع كولو پورې مقيد دهٔ:-** بعضې خلقو ضمير خواښې او ددې پرورش كښې چه كومې جينكئ دى دواړو طرفته راجع كړې دې ، هغه وائې چه خواښې هم په هغه وخت كښې حرامه ده چه كله د دې د لور سره د دې خوم جماع كړې وى ګنى نه ده حرامه . صرف په عقد سره نه خو ښځه حراميږى او نه پرې دا ښځه حرامه شوه اونه ددې ښځې لور.

**دعلى ﷺ په قول سره تائيد:-** على ﷺ فرمائي چه كوم سړى يوې جينئ سره واده اوكړو ، بيا د دخول نه مخكښې ئې ورته طلاق وركړو نو هغه د دې مور سره نكاح كولې شى. خو د ربيبه جينئ سره د دې مور ته دا شان طلاق وركولو نه پس نكاح كولې شى .

**د زيد بن ثابت رضي الله عنه په قول سره تائيد:-** زيد بن ثابت ﷺ نه هم دا قول منقول دې . يو بل روايت كښې دى چه د دوى نه مروى دى چه دوى به فرمائيل چه كله هغه ښځه غيرمدخوله مړه شى او دا خاوند د هغې ميراث واخلى بيا د دې مور راوستل مكروه دى ، خوكه دخول نه مخكښې ورته طلاق وركړى نو كه غواړى د هغې د مور سره نكاح كولې شى .

---

(١) صحيح مسلم كتاب الرضاع بآب تحريم بخمس رضعات : ١٤٥٢، ابوداود : ٢٠٦٢، ترمذى: ١١٥٠، نسائى: ٣٣٠٩)۔

(٢) صحيح مسلم كتاب الرضاع باب رضاعة الكبير : ١٤٥٣، نسائى: ٣٣٢١، ابن ماجة: ١٩٤٣)۔

**د ابن عباس ؓ په قول سره تائید:**- بکرابن کنانه ؒ فرمائي چه ځما نکاح ځما پلار د طائف یوې ښځې سره اوکړه او لا کورته مې راوستې نه وه چه د هغې پلار مړ شو او د هغې مور یعنې ځما خوابنې کونډه شوه او هغه ډیره مالداره وه نو ځما پلار ماته مشوره راکړه چه ځه هغه جینۍ پریږدم او دې ښځې سره نکاح اوکړم. ما د ابن عباس ؓ نه د دې مسئلې تپوس اوکړو نو هغوئ اوفرمائیل چه ستا دپاره جائز ده .بیا ما ابن عمر ؓ نه تپوس اوکړو نو هغوئ اوونیل چه جائز نه ده . ما دا خپل پلار ته اوئیل نو هغوئ معاویه ؓ ته اولیکل او د دې دواړو بزرګانو فتوې نې هم ورته اولیکلې. د دې جواب کښې امیر معاویه ؓ اوفرمائیل چه زه خونه حرام حلالولې شم او نه حلال حراموولې شم ، تاسو پوهه شئ اوستاسو کار. تاسودا حالت ګورئی ټول حالت ستاسو مخکښې دې . دې نه سوا ښځې نورې هم ډیرې دی . غرض دا چه نه ئې اجازت ورکړو او نه ئې انکار اوکړو. ځما پلار خپل خیال د هغې د مور طرفته واړولو او ځما نکاح ئې هغې سره اونه کړه.

**د مختلفو عالمانو قول:**- عبدالله بن زبیر ؓ فرمائي چه د ښځې د لور اود لوردمور یو حکم دې که ښځې سره ئې دخول نه وی کړې نو دا دواړه حلالې دی . لیکن د دې اسنادو کښې مبهم راوی دې . مجاهد ؒ نه هم دا قول نقل دې . ابن جبیر ؒ او ابن عباس ؓ هم دې طرفته دی. امیر معاویه ؓ دې کښې توقف کړې دې په شافعیانو کښې ابوالحسن احمد بن محمد صابوني نه هم په قول د رافعي مروی دې.عبدالله ابن مسعود نه هم د دې پشان مروی دی .لیکن بیا دوی د خپل قول نه رجوع کړې ده. طبراني کښې دی چه د قبیله فزاره شاخ د قبیله بنو کمخ یو سړی یو ښځې سره نکاح اوکړه ، بیا ئې ددې مورطرفته مخ شو نو د عبدالله ابن مسعود ؓ نه ئې د دې مسئلې باره کښې تپوس اوکړو چه آیا ځه د هغې مور سره نکاح کولې شم که نه ؟ دوی اوفرمائیل چه آؤ. نو ده هغه جینۍ ته طلاق ورکړو او د هغې مور سره ئې واده اوکړو. او د هغې نه ئې هم اولاد اوشو. بیا ابن مسعود ؓ مدینې منورې ته راغلو او د دې مسئلې تحقیق ئې اوکړو نو معلومه شوه چه دا حلال نه دی . نو واپس کوفې ته لاړو او هغه سړی ته ئې اوونیل چه دا ښځه جدا کړه دا تالره حرامه ده. هغه دا فرمان اومنلو او هغه ئې جداکړه. جمهور علماء دې طرفته دی چه جینۍ صرف عقد نکاح سره نه حرامیږی تر هغه وخت پورې چه دې سره مباشرت اونشي خومور به صرف دجینۍ په عقد نکاح سره حرامه وی اګر چه مباشرت نه وی شوې. ابن عباس ؓ فرمائي چه کله یو سړی خپلې ښځې ته د دخول نه مخکښې طلاق ورکړی یا هغه ښځه مړه شي نودهغه مور د ده دپاره حلاله نه ده . چونکه دا خبره مبهم ده د دې وجې ئې دا نه ده خوښه کړې شوې .ابن مسعود ؓ ،عمران بن حصین ؓ ،طاؤس ؒ ،مسروق ؒ ،عکرمه ؒ ،عطاء ؒ ، حسن ؒ ، مکحول ؒ ،ابن سیرین ؒ ،قتاده ؒ ،او زهری ؒ نه همدا مروی دی . د څلورو واړو امامانو، فقهائې کرامو او جمهور سلف اوخلف کرامو همدا مذهب دې . والحمد لله.

**د ابن جریج ؒ فیصله:**- امام ابن جریج فرمائي چه صحیح قول هم دهغه حضراتو دې چه کوم دواړو صورتونو کښې د حرمت قائل دی. ځکه چه الله ﷻ د دې حرمت سره د دخول شرط نه دې لګولې لکه څنګه چه د دې جینۍ د مور دپاره ئې دا شرط لګولې وو. بیا په دې باندې اجماع ده. چه دا یو داسې دلیل دې چه د دې خلاف کول په دې وخت کښې جائز نه دی چه کله په دې باندې اتفاق اوشو.

**په غریب حدیث سره تائید.**- او یو غریب حدیث مبارک کښې دا هم مروی دی د کوم په مسند کښې کلام دې چه رسول الله ﷺ فرمائي چه کله یو سړی یو ښځې سره واده اوکړی نو د ده دپاره د هغې مور سره نکاح کول حرام دی حلال نه دی که دې جینۍ سره ئې صحبت شوې وی که نه وی شوې . خو چه کومې ښځې سره نکاح اوکړی بیا د ملاویدونه مخکښې هغې ته طلاق ورکړی نو که غواړې د هغې لور سره

نکاح کولې شی(¹) اگر چه د دې حدیث مبارك سند کمزورې دې .لیکن په دې مسئله باندې اجماع ده
چه د دې په صحت باندې گواه ده. چه دې نه پس د بلې گواهۍ ضرورت نشته دې

**قوله تعالی:: وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِي فِيْ حُجُوْرِكُمْ**

**د پرکټو حرمت:-** بیا فرمائی چه تاسو د کومو جینکو پرورش کړې وی او هغه ستاسو په غیره کښې وی هغه هم په تاسو حرامې دی . په دې شرط چه تاسو د دې ناسکه لونړو مور سره صحبت کړې وی . د جمهور فرمان دې چه د دوی په غیږ کښې لونې شوی وی اوکه نه وی په دواړو صورتونو کښې حرامې دی. عام طور داسې جینکۍ خپلې مور سره وی او خپل ناسکه پلارانو سره پرورش مومی د دې وجې دا ونیلې شوی دی چه دا څه قید نه دې ،یعنی که ستاسو په پرورش کښې نه وی نو بیا ورسره نکاح کولې شی نه په دواړو صورتونو کښې ورسره نکاح نشئ کولې)

**د قید د نه شرطیت یو مثال:-** لکه دې آیت کښې دی چه ﴿وَلَا تُكْرِهُوْا فَتَيٰتِكُمْ عَلَى الْبِغَآءِ اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا﴾یعنی که ستاسو وینځې پاکدامنې اوسیږی نو تاسو هغوئ په بدکارنی باندې مه بې بسه کوئی .دلته هم دا قید که هغوئ پاکې اوسی که په اعتبار د واقعې سره دې دا نه که هغوئ خپله داسې وی (یعنی زنا کول غواړی) نو هغوئ په بدکارنی باندې آماده کړئی .دغه شان په دې آیت کښې کښې هم د ،،حجورکم،، قید احترازی نه دې بلکه که غیره کښې نه وی نو بیا هم حرامې دی .

**دام حبیبه خواهش:-** صحیح بخاری او مسلم کښې دی چه ام حبیبه رضي الله عنها اوفرمائیل یا رسول الله ﷺ! تاسو خما خور د ابوسفیان لور غزه سره نکاح اوکړئی . رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ته څه غواړې ؟ مور بی بی اوفرمائیل چه آو څه خو رسول الله ﷺ لره یوازې نه شم پرینبودې بیا څه دې بنیگړه کښې خپل خور ولې شامله نه کړم رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه واوره هغه په ما حرامه ده .ام المومنین اوفرمائیل چه مونږ اوریدلی دی چه تاسو د ابوسلمه رضي الله عنه لور سره نکاح کول غواړئی . رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د هغه لور چه د ام سلمه رضي الله عنها د خیټې نه ده ؟ ام حبیبه اوونیل آو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه واوره اول خو هغه زما دپاره حرامه ده ځکه چه هغه خما ربیبه ده ، ما سره ئې پرورش شوې دې ، دویم دا که داسې نه وې نو بیا هم هغه په ما حرامه وه . ځکه چه هغه د هغې پلار ما سره شریك پئ رودلی دی او هغه خما وریره شوه.ماته اوددې پلار ابوسلمه ته ثوبیه پئ راکړی دی ،خبردار ماته خپلې لونړه او خپلې خویندې مه پیش کوئی. (²)

**د بخاری روایت:-** د بخاری شریف روایت کښې دا الفاظ دی که خما نکاح ام سلمه سره نه وې شوې نو بیا هم هغه په ما حرامه وه. (³) نو رسول الله ﷺ د حرمت سبب صرف نکاح اوګرځوله هم دا مذهب د څلورو واړو امامانو ، اووه واړه فقهاء کرامو،او د جمهور سلفو او خلفودې .

**مسلک حنفی:-** د احنافو په نیز چې د لور سره نکاح اوشی اګرچې وطی نه وی شوې نو د هغې مور په دې ناکح باندې حرامه ده (احکام القرآن للعلامة ظفراحمد العثمانی ۲/۱۱۲)-

**د قید د شرطیت قول** :داهم ونیلې شوی دی که هغوئ دوی سره پرورش موندې وی نو حرامې دی ګنې نه .

**د دې قول دلیل:-** مالك بن اوس بن حدثان رحمه الله فرمائی چه خما ښځې نه اولاد پاتې شو او مړه شوه. خما هغې سره ډیر زیات محبت وو. د دې وجې ماته د هغې د مرګ ډیره زیاته صدمه وه. علی رضي الله عنه سره خما اتفاقیه ملاقات اوشو نو کله چه څه هغوئ غم کښې اولیدم نو خما نه ئې تپوس اوکړو چه څه خبره ده ؟ ما ورته پوره واقعه اوونیله نو علی رضي الله عنه اوفرمائیل چه ستانه مخکښې دهغې د ړومبی خاوند نه اولاد

---

¹) الطبری : ۸۹۵۷)-
²) صحیح بخاری کتاب النکاح باب ( وامهاتکم التی ارضعنکم ....) ۵۱۰۱ ، صحیح مسلم: ۱٤٤۹)-
³) صحیح بخاری کتاب النکاح باب عرض الانسان ابنته : ۵۱۲۳)-

شته دي ،ما اوونیل چه او شته دي يو جيني . او هغه طائف کښې اوسيږي . وې فرمائيل چه بيا هغې سره نکاح اوکړه. ما ورته د قران پاك دا آيت مبارك اولوستو چه بيا د دې څه مطلب دې ؟
علي ﷺ اوفرمائيل چه دا خو په هغه وخت کښې دی چه د هغې تاسره پرورش شوې وی اوهغه خوستا په قول طائف کښې ده تاسره نه ده (١).اګر چه د دې اسناد صحيح دی ليکن دا قول بالکل غريب دې. داود بن علي ظاهري رحمه الله او د دوی ملګری هم دې طرفته دی . امام رافعي رحمه الله د امام مالك رحمه الله هم دا قول خودلې دی (چې د هغوی هم دا مذهب دې ) ابن حزم هم دا اختيار کړې دې . خمونږ شيخ حافظ ابوعبدالله ذهبي رحمه الله مونږ ته اوونيل چه دا خبره ما د خپل شيخ امام تقي الدين ابن تيميه رحمه الله مخکښې پيش کړه نو هغوئ دا ډيره مشکل محسوس کړه او توقف ئې اوفرمائيل ، والله اعلم.
**دحجورکم تفسير:-** ﴿حُجُورِكُم﴾ نه مراد کور دې . لکه ابوعبيده ﷺ نه چه مروی دی .
**دوينځې اود هغې د لور جمع کول:-** کومه وينځه چې د ده ملکيت کښې وی او دې سره لور هم وی ، دې باره کښې عمر فاروق ﷺ نه سوال اوشو چه يونه پس به بله جائز وی که نه ؟ نو دوی اوفرمائيل چه خه دا نه خوښوم .د دې سند منقطع دې .ابن عباس ﷺ نـه هم دغـه شان سوال اوشو نـو دوی جـواب کښې اوفرمائيل چه يو آيت نه دا حلاله معلوميږی . دويم آيت نه حرامه نو څه خو به دا بالکل اونه کړم.
**د ابن عبدالبر رحمه الله په قول سره د حرمت تائيد:-** شيخ ابوعمر بن عبدالبر رحمه الله فرمائي چه په علماء کرامو کښې دې مسئله کښې هيڅ اختلاف نشته دې چه د چا دپاره حلال نه دی چه يوې ښځې سره د هغې د ملکيت په وجه وطي اوکړی . اوبيا د دې ښځې لور سره هم د هغې د ملکيت په وجه وطي اوکړی څکه چه الله ﷻ دا په نکاح کښې هم حرامه ګرزولې ده. دا آيت اوګورئي او د علماء کرام په نيز د دې احکام د نکاح تابع دی . مګر چه کوم روايت عمر فاروق ﷺ او ابن عباس ﷺ نه نقل کړې شوې دې ، د آئمه کرامو فتوی او د هغوئ متبعينو کښې هيڅوك په دې باندې نه دی .
قتاده رحمه الله فرمائي چه د ربيبه لور او د هغې دلور لور او دغه شان څومره چه لاندې رشته څې تولې حرامې دی.
ابوالعاليه رحمه الله نه هم د قتاده رحمه الله روايت په شان مروی دی. ﴿دَخَلْتُم بِهِنَّ﴾ نه مراد ابن عباس ﷺ فرمائي چه دوی سره نکاح کول دی .عطاء فرمائي چه هغوئ رخصت کړې شی او جامې ترې لرې کړې شی او ورسره چير چاړ اوکړې شی او ارادې سره سرې کښيني، ابن جريج رحمه الله نه سوال اوشو چه داکار د ښځې په کور کښې شوې وی . فرمائي چه هلته او دلته هم دا حکم دې.که داسې اوشو نو د دې ښځې لور په ده حرامه شوه. (٢) امام ابن جرير رحمه الله فرمائي چه صرف خلوت او تنهائي کښې کيدو سره د دې حرمت نه ثابتيږی . که مباشرت کولو او لاس لګولو او شهوت سره د هغې اندام طرفته کتلو نه مخکښې ئې طلاق ورکړې وو نو د ټولو اجماع سره خبره ثابت شوه چه جينئ به په ده حرامه نه وی تر هغه وخت پورې چې جماع نه وی شوې .
**قوله تعالى:** ﴿وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ﴾
بيا فرمائي چه ستاسو انګينډې هم تاسو باندې حرامې دی چه دا ستاسو د څامنو بيبيانې دی . يعنی ستاسو دپاللې شوی څامنو بيبيانې حرامې نه دی ، څوکه دسکه څوئې ښځه يعنی انګور سخر باندې حرامه ده. لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ﴾ يعنی کله چه زيد د هغې نه خپل حاجت پوره کړو نو مونږ هغه ستا نکاح کښې درکړه چه په مومنانو د هغوئ د پاللې شوو هلکانو ښځو باره کښې آسانتيا شی . عطاء رحمه الله فرمائي چه مونږ به

(١) ابن ابي حاتم : وسنده صحيح)-
(٢) الطبري: ١٤٨/٨)-

اوریدل چه کله رسول الله ﷺ د زید ښځې سره نکاح اوکړه نو د مکې مشرکانو کونړ کونړ شروع کړو ، نو دې باندې دا آیت نازل شو چه ﴿وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ أَبْنَاءَكُمْ﴾ او آیت ﴿مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ﴾ نازل شو. (¹) یعنی بیشکه د صلبی هلکانو بیبیانې حرامې دی پاللې شوې هلکان شرعی لحاظ ستاسو په اولاد کښې نه دی.رسول الله ﷺ تاسو کښې د چا پلار نه دې .
حسن بن محمد رحمه الله فرمانی چه دا آیتونه مبهم دی. لکه څنګه چه ستاسو د هلکانو بیبیانې ستاسو خوانبې.طاؤس رحمه الله ، ابراهیم رحمه الله ، زهری رحمه الله ، اومکحول رحمه الله نه هم دا شان مروی دی . څه وایم چه د مبهم نه مراد عام دی یعنی مدخول بها او غیر مدخول بها دواړه شامل دی ،صرف نکاح کولو سره حرمت ثابتیږی . که صحبت شوې وی او که نه وی شوې . په دې مسئله اتفاق دې .
**یوسوال او دهغې جواب:**- که یو سړې سوال اوکړې چه د رضاعی خوئې ښځې حرمت به څنګه ثابت وی . ځکه چه آیت کښې خو د صلبی خوئې ذکر دې . نو جواب دا دې چه هغه حرمت د رسول الله ﷺ د دې حدیث نه ثابت دې کوم کښې چې رسول الله ﷺ فرمانیلی دی چه په رضاعت سره هغه څه حرامیږی څه چه په نسب سره حرامیږی (²)دجمهورو مذهب هم دا دې چه د رضاعی خوئې ښخه حرامه ده . بعضو خلقو په دې باندې اجماع کړې ده.
**قوله تعالی:**: ﴿وَأَن تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ﴾
**د دوو خویندو په یو نکاح کښې جمع کول:**- بیا فرمانی چه د دوو خویندو یو نکاح کښې ساتل هم حرام دی. هم داشان ملکیت د وینځو د حکم هم دې چه دوو خویندو سره یو وخت کښې وطی کول حرام دی. مګر د جاهلیت زمانه کښې چه څه اوشو نو هغه اوشو اوهغه تیر شو. نو معلومه شوه چه اوس دا کار بیا دپاره جائز نه دې لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿لَا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ إِلَّا الْمَوْتَةَ الْأُولَىٰ﴾ یعنی هلته به مرګ نه وی لکه څنګه چه مخکښې مرګ راغلې وو.

**دجمع بین الاختین په حرمت باندې د عالمانو اجماع:**- نو معلومه شوه چه اوس به بیا دپاره کله مرګ نه راځی. صحابه ﷺ ،تابعین ،آئمه اوسلف او خلف علماء کرام رحمة الله علیهم هم په دې باندې اجماع کوی چه د دوو خویندو یو ځائې نکاح کول حرام دی. او چه کوم سړې مسلمان وی او د هغه نکاح کښې دوه خویندې وی نو هغه ته به اختیار ورکولې شی چه یو اوساتی او یو پریږدی او دې به داسې کوی.
**چې دچا په نکاح کښې دوه خویندې وی نو هغه به څه کوی؟**:- فیروز ﷺ فرمانی چه کله څه مسلمان شوم نو خما نکاح کښې دوه ښځې وې او دواړه خپلو کښې خویندې وې ،رسول الله ﷺ ماته حکم اوکړو چه په دوی کښې یو اوساتم او یو ته طلاق ورکړم(مسند احمد )ابن ماجه ، ابوداود ،او ترمذی کښې هم دا حدیث دی(³) ترمذی کښې دا هم دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کومه غواړې اوساته او یو ته طلاق ورکړه.امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وائی.ابن ما جه کښې دابوخراش نه داسې واقعه هم مذکور ده. (⁴)ممکن دی چه د ضحاك بن فیروز كنیت ابوخراش وی او دا واقعه یو وی اود دې خلاف هم ممکن دی.(یعنی چه دا دواړه جدا جدا واقعې وی)
دیلمی ﷺ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! خما نکاح کښې دوه خویندې دی ، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په دوی کښې چه په هغوی کښې یوې ته طلاق ورکړه (ابن مردویه )نو دیملی ﷺ نه مراد فیروز دې دوی د یمن سردار وو. او دوی اسود عنسی متنبی ملعون قتل کړې وو.

(¹) الطبری: ۱٤۹/۸)-
(²) صحیح بخاری کتاب الشهادات باب الشهادت علی الانساب: ۲٦٤٦، صحیح مسلم: ۱٤۱٤)-
(³) احمد: ۲۳۲/٤، ابوداود: کتاب الطلاق باب فیمن اسلم وعنده نساء اکثر : ۲۲٤۳،)-
(⁴) ابن ماجة: کتاب النکاح باب الرجل یسلم: ۱۹۵۰، وهو حسن بالشواهد)-

**دوو وینځو سره په یو وخت کښې جماع کول:-** دوه وینځې چه خپلو کښې خویندې وي هغوئ یو نکاح کښې جمع کول او ورسره وطی کول حرام دی . د دې دلیل د دې آیت د عموم د وجې. ابن مسعود ﵁ نه د دې باره کښې سوال اوشو نو دوی اوفرمائیل چه مکروه دی. سائل اوونیل چه قرآن پاك کښې موجود دی چه ﴿إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ مګر هغه چه د هغوئ مالك ستاسو ښی لاسونه دی . په دې باندې ابن مسعود ﵁ اوفرمائیل چه ستا اوښ خوهم ستا لاس کښې دې .هم دا قول دجمهورو ،څلورو واړه امامانو وغیره نه مشهور دې

**د دوو وینځو خویندو په مینځ کښې جمع کولو اباحت:-** اګر چه بعضې سلفو دې مسئله کښې توقف کړې دې . عثمان بن عفان ﵁ نه چه کله ددې مسئلې باره کښې تپوس اوشو نو دوی اوفرمائیل چه یو آیت دا حلالوی او بل نې حراموی.نو څه خو د دې نه منع کوم.سائل د هغه ځائې نه اووتلو نولار کښې ورته یو صحابی ﵁ ملاؤ شو ، ده د هغه نه هم دا تپوس اوکړو ،هغوئ دا اوفرمائیل چه که ماته څه اختیار وې نو ما به داسې کولو والوته عبرت ناکه سزا ورکولې.امام مالك ﵀ فرمائیلی دی چې ابن شهاب فرمائی چه څما ګمان دې چه دا ویونکې غالبًا علی ﵁ وو. زبیر بن عوام ﵁ نه هم د دې پشان مروی دی .(١) ابن عبدالبر په کتاب الاستذکار کښې وئیلی دی چه د دې واقعې راوی قبیصه بن ذویب دې .هغه د علی ﵁ نوم د دې وجې نه دې اخستې چه هغه د عبدالمالك بن مروان ملګرې وو.او دې خلقو باندې د علی ﵁ نوم اخستل دروند وو(یعنی د حسد د وجې ئې د هغه نوم نه اخستل)

**د دوو وینځو خویندو په مینځ کښې جمع کولو حرمت:-** ایاس بن عامر وائی چه ما علی بن ابی طالب نه سوال اوکړو چه څما ملکیت کښې دوه وینځې دی او دواړه خپلو کښې خویندې دی ، یو سره ما تعلقات قائم کړی دی او څما د هغې نه اولاد هم شوې دې ، اوس څما زړه غواړی چه د دې خور سره چه څما وینځه ده هم نکاح اوکړم. نو تاسو اوفرمائې چه د شریعت دې باره کښې څه حکم دې ؟ دوی اوفرمائیل چه ړومبئ وینځه آزاده کړه. او بیا د دې دې بلې خور سره نکاح اوکړه. هغه اوونیل چه نور خلق خو وائی چه څه د دې نکاح اوکړم نو بیا د دې خور سره تعلقات قائمولې شم. علی ﵁ اوفرمائیل چه ګوره دې صورت کښې هم خرابی ده . هغه دا که د دې خاوند دې ته طلاق ورکړی یا مړ شی نو هغه به ستا طرفته واپس راځې .د دې آزادولو کښې خو سلامتی ده ، بیا دوی څما لاس اونیول او وې فرمائیل چه واوره !د آزادو ښځو او وینځو د حرمت او حلت لحاظ دواړه یو شان دی .خو البته تعداد کښې فرق دې . یعنی آزادې ښځې څلورو نه زیاتې نشی جمع کولې او وینځو کښې هیڅ تعداد نشته دې . او پښو ځکلو کښې هم هغه تولې رشتې حرامې دی چه د نسل اونسب په وجه حرامې دی د دې نه پس ابو عمر اوونیل : چې دا روایت داسې دې که څوك د مشرق نه یا مغرب نه صرف د دې روایت د آوریدو دپاره مکې یا بل ځائې ته لاړ شی یعنی سفر اوکړی نو هم د ده دا سفربه ده دپاره سودمندوی والله اعلم

**د علی ﵁ نه هم د توقف روایت:-** دا یاد ساتل پکار دی چه علی ﵁ نه هم داشان مروی دی چه څنګه عثمان ﵁ نه مروی دی.په ابن مردویه کښې دی چه دوی اوفرمائیل دوه وینځې چه خپلو کښې خویندې وی یو وخت کښې دواړه جمع کول او دوی سره مباشرت کول د یو آیت نه د دې حرمت ثابتیږی او د دویم ایت نه حلالوالې .

**د دوو خویندو وینځو جمع کولو په حرمت کښې اقوال:-** ①ابن عباس ﵁ فرمائی چه وینځې په زما د قرابت په وجه په دوی کښې بعضې په ما باندې حرامیږی خو د دوی خپلو کښې چه کوم قرابت وی دا په ما باندې نه حراموی.دجاهلیت د زمانې خلقو هم دا حرام ګڼړل چه کوم تاسو حرام ګڼړئ.خو د پلار د ښځې سره نکاح او د دوو خویندو جمع کول ئې حرام نه ګڼړل کله چې اسلام نو دا دواړه یې هم حرامې کړې .هم په دې وجه د دې

(١) موطا امام مالک کتاب النکاح باب ماجاء فی کراهیة اصابة الاختین : ٣٤، وهو صحیح)-

دواړو حرمت بيان سره سره فرمائي چه کومې نکاح شوې دی هغه شوی دی ② ابن مسعود ﷺ فرمائي چه کومې آزادې ښځې حرامې دی هغه وينځې هم حرامې دی. خو عدد کښې څه قيد نشته دې يعنی آزادې ښځې څلورو نه زياتې نشی جمع کولې او د وينځو د پاره دا حد نشته دې③ شعبی رحمه الله هم دا فرمائی.

**دجمع بين الاختين د حلت روايت:-** ابوعمر رحمه الله فرمائی چه عثمان ﷺ دې باره کښې چه څه فرمائيلی دی هغه د سلفو يو جماعت هم وائی . چه په هغوئ کښې ابن عباس هم دې .

**دابن کثير رحمه الله رائې:-** ليکن اول خو د دې نقل کښې پخپله دې حضراتو سره ډير اختلاف دې . دويم دا چه دې قول طرفته پوهه علماء کرامو مطلقًا توجه نه ده کړې او نه ئې دا قبول کړی دی . دحجاز ،عراق ، شام بلکه د مشرق او مغرب ټول فقهاء کرام د دې خلاف دی .کامل علم والو او رښتيا پوهې والو اتفاق دې چه څنګه دوه خويندې نکاح کښې نشی جمع کيدې . سوا د يو څو کسانو نه چه هغوی صرف الفاظو ته کتلی دی آود سوچ او فکر نه بغير ئې د دې جمهورو عالمانو نه جدائی اختيار کړې ده د کامل علم او پوهه خاوندانو خو په دې اتفاق دې چې لکه څنګه د دوو خويندو په مينځ کښې جمع والې نشی کولې دغه شان د دوه وينځې هم چه خپلو کښې چې خويندې وی د ملکيت په وجه نه شی جمع کيدې

دغه شان د مسلمانانو اجماع ده چه دې آيت کښې مور ، خور او لور وغيره حرام شوی دی دوی سره چه څنګه نکاح حرام ده دغه شان که دوی وينځې شی نو هم دوی سره ملاويدل حرام دې . غرض د نکاح او ملکيت نه پس دواړو حالتونو کښې دا ټول په ټوله برابرې دی. نه نکاح کولو په ذريعه دوی سره ملاويدل جائز دی او نه د ملکيت په وجه دغه شان هم دا حکم د دوؤ خويندو د جمع کولو او د خوابنې او د دويم خاوند د ښځې نه چه کومه لور وی دهغې دې .پخپله ددې جمهورو مذهب هم دا دې.او هم دا هغه دليل دې چه په دې ټولو مخالفينو باندې پوره سند اوکامل حجت دې.الغرض دوه خويندې يو وخت کښې ساتل هم حرام دی .او دوه خويندې په طورد وينځو ساتل او دوی سره ملاويدل هم حرام دی .

(الحمد لله د تفسير ابن کثير څلورمې پارې پښتو ترجمه ختمه شوه).

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّالْمُحْصَنٰتُ | مِنَ النِّسَآءِ | اِلَّا مَا | مَلَكَتْ | اَيْمَانُكُمْ | كِتٰبَ |
| او وادهٔ شوي | دښځو نه | ما سوا دهغه ښځونه | چي مالکان شوي دي | ښي: لاسونه ستاسو | دا فرض دي |

اووادهٔ شوي ښځي (چه د بل په نکاح کښي وي) مګرهغه ښځي حرامي نه دي چي ستاسوپه ملکيت کښي راشي (يعني وينځي) | دا قانون دي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اللّٰهِ عَلَيْكُمْ | وَاُحِلَّ | لَكُمْ | مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ | اَنْ |
| دالله \| په تاسو | اوحلالي کړي شوي دي | ستا سو دپاره | هغه چي ماسوادي ددغه محرماتونه | (په دي شرط) چي |

دالله ﷻ چي تاسودپاره ئې جوړ کړي دي | ددي نه سوا هرڅومره ښځي چي دي هغه تاسودپاره حلالي دي

| | | |
|---|---|---|
| تَبْتَغُوْا | بِاَمْوَالِكُمْ | مُّحْصِنِيْنَ |
| طلبوئ تاسو هغوئ | په مالونوخپلوسره | د پاره د نکاح کولو ........... |

دخپلو مالونو (مهرونو) په ذريعه ئې طلبوئ | د نکاح په قلعه کښي ئې بند ونکي ئې

| | | | |
|---|---|---|---|
| غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ؕ | فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ | بِهٖ | مِنْهُنَّ |
| نهٔچي زنا کونکي يئ دهغوئ سره | بيا هغه چي مزه واخستله تاسو | په هغي سره | دهغوئ نه |

دانه چي صرف خپل شهوت پري پوره کوئ | بيا چي تاسوکومو ښځونه مزه واخسته ..........

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاٰتُوْهُنَّ | اُجُوْرَهُنَّ | فَرِيْضَةً ؕ | وَلَا جُنَاحَ | عَلَيْكُمْ |
| نوورکړئ هغوئ ته | مهرونه دهغوئ | تاکلي شوي | او نشته ګناه | په تاسو |

نو هغوئ ته خپل مهرونه پوره اداکړئ | او په دي کښي هيڅ باک نشته چي دمهر مقرر کولونه پس

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيْمَا | تَرٰضَيْتُمْ | بِهٖ | مِنْ بَعْدِ | الْفَرِيْضَةِ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ |
| په هغه کار کښي | چي راضي شوئ تاسو | په هغي باندي | روستو | دمقررولو دمهرنه | بيشکه الله |

تاسوخپل مينځ کښي په څه (کمي زياتي) باندي راضي شئ | ..........بيشکه الله ﷻ

| | |
|---|---|
| كَانَ عَلِيْمًا | حَكِيْمًا ۝ |
| دي پوهه | او دحکمت خاوند |

په هرڅه پوهه او صاحب د حکمت دي |

**قوله تعالى: وَّالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ**

**د محصنات نه مراد دکافرو قيدي ښځي دي** :-يعني خاوندانو والا ښځي هم حرامي دي.خو که دکافرانو ښځي ميدان جنګ کښي ستاسوقيد کښي راشي نوديوحيض تيرولونه پس هغه تاسو دپاره حلالي دي.

**دکافرو قيد شووښځوحکم**:-مسند احمد کښي حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي چه جنګ اوطاس کښي ښځي قيد شوي او ددوي خاوندان وو ، نو مونږ نبي کريم ﷺ نه دي باره کښي تپوس اوکړو نو دي باره کښي دا آيت نازل شو.او دوی سره ملاويدل حلال شو. ترمذي ، ابن ماجه ، او صحيح مسلم وغيره کښي هم داحديث شته دي[1] دطبراني روايت کښي دی چه داواقعه دجنګ خيبر ده.

[1]) احمد:۷۲/۳، صحيح مسلم كتاب الرضاع باب جواز وطئ المسبية بعد الاستبراء : ١٤٥٦، ابوداود: ۲۱۵۵ ترمذي: ۱۱۳۲)-

**د وینځې خرڅول د بعضو په نیز طلاق دي:** ①دسلفو یو جماعت ددې آیت کریمه په عموم استدلال کوی اوفرمائی چه وینځه خرڅول ددې د خاوند د طرفنه د طلاق ملاویدل دی②حضرت ابراهیم رحمه الله نه چه کله ددې مسئلې باره کښې تپوس اوشو نو دوی دحضرت عبدالله رضی الله عنه دا فتوی بیان کړه.③او یوسند سره مروی دی چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائیل چه کله یو خاوند والا ښځه خرڅه کړې شی ددې د بدن زیاته حصه ددې دمالك وی. (یعنی د خرڅ نه پس بیا هغه د خپل خاوند پاتې نشوه بلکه د هغې مالک به د هغې نه فائده اخلی ازمترجم) ④حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه ، حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه اوحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم دا فتوی نقل ده چه ددې خرڅول ددې طلاق دې.

⑤ابن جریر کښې دی چه د وینځې طلاقونه شپږ دی.خرڅول ئې طلاق دې.آزادول هم.هبه کول هم براءت کول اوددې د خاوند طلاق ورکول هم ( دا پنځه صورتونه بیان شو ، شپږم صورت نه په تفسیر ابن کثیر کښې شته دې او نه ابن جریر کښې ، مترجم )⑥حضرت ابن المسیب رحمه الله فرمائی چه خاوند والا ښځو سره نکاح کول حرام دی.خو وینځې سره حرامه نه ده.ځکه چه ددوی طلاق ددوی خرڅول دی⑦ حضرت معمر رحمه الله او حضرت حسن رحمه الله هم دا فرمائی چه کوم ددې بزرګانو قول دې.

**دجمهورو په نیز د وینځې خرڅول طلاق نه دې:-** لیکن جمهور ددې خلاف دی.هغوئ فرمائی چه خرڅول ددوی طلاق نه دې ځکه چه اخستلو والا نائب دې او خرڅولو والا ددې نفع ددې ملکیت نه اخلی. او دا دهغه نه سلب کوی او خرڅوی ئې.

**دلیل:-** ددوی دلیل دحضرت بریره رضی الله عنها حدیث دې چه په مسلم او بخاری وغیره کښې دې چه ام المومنین حضرت عائشه رضی الله عنها چه کله دا واخستله نو دا ئې آزاده کړه نو ددې نکاح حضرت مغیث رضی الله عنه سره فسخ نه شوه. بلکه رسول کریم ﷺ دوی ته د فسخ کولو او باقی ساتلو اختیار ورکړو. اوحضرت بریره رضی الله عنها فسخ کول خوښ کړل. دا واقعه مشهوره ده (¹)

**استدلال:-** نو که خرڅول طلاق وې نو دا بزرګان وائی چې نبی کریم ﷺ به حضرت بریره رضی الله عنها ته د خرڅیدو نه پس دخپلې نکاح باقی ساتلو اونه ساتلو اختیار نه ورکولو. اختیار ورکول دلیل دې دنکاح باقی ساتلو. نود آیت نه مراد صرف هغه ښځې دی چه جهاد کښې قبضه کښې راشی.والله اعلم

**دریم قول محصنات نه پاکدامې ښځې مراد دی:-** او دا هم ونیلې شوی دی چه دمحصنات نه مراد پاك دامنې ښځې دی یعنی عفیفه ښځې تاسو باندې حرامې دی ترکومې چه تاسو نکاح ،ګواه ،مهر اود ولی د طرفه نه د هغوی دعصمت مالکان جوړ نشئ.که یو وی او که څلور.ابوالعالیه رحمه الله او طاؤس رحمه الله هم دا مطلب بیان کړې دې.

**دحضرت عمر په نیز د ایت مطلب:-** حضرت عمر رحمه الله او حضرت عبیده رحمه الله فرمائی چه مطلب دادې چه څلورو نه زیاتې ښځې تاسو باندې حرامې دی خو وینځو کښې شمیر نشته.

**قوله تعالی:: كِتٰبَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ**

بیافرمائی چه دا حکم الله ﷻ په تاسو باندې فرض کړو. یعنی د څلورو حکم. نوتاسو دا کتاب لازم اونیسئ او ددې د حد نه مخکښې مه ځئ.او ددې د شریعت اوددې د فرائضو پابند اوسئ.دا هم ونیلې شوی دی چه حرامې ښځې الله ﷻ خپل کتاب کښې بیان کړې دی .

**قوله تعالی:: وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ**

**د حلالو مصداق** بیا فرمائی ①چه کومې ښځې حرامې دی هغه مونږ بیان کړې. ددوی نه علاوه ټولې

¹) صحیح بخاری کتاب العتق باب بیع الولاء، ۲۵۳۶، صحیح مسلم: ۱۵۰۴، ابوداود: ۲۲۳۳، ترمذی: ۱۱۵۴ وابن ماجة: ۲۵۲۱)-.

حلالې دي.

②يو مطلب دا هم بيان شوې دې چه ددې څلورو نه كمې تاسو دپاره حلالې دي.ليكن دا قول د حقيقت نه لرې قول دې. او صحيح مطلب رومبې دې.او هم دا د حضرت عطاء قول دې .

③ حضرت قتاده رحمه الله ددې دامطلب بيانوى چه دې نه مراد وينځې دى.هم دا آيت دليل دې دهغه خلقو چه د دوؤ خويندود جمع كولو د حلت قائل دى. اود هغوئ دليل هم دې كوم چې وائى چې يو آيت دا حلالوى او دويم ئې حراموى.

**قوله تعالى::أَن تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُم**

**دمهر فرضيت:-** او بيا فرمائى چه تاسودا حلالې ښځې خپل مال سره حاصلې كړئى.څلورو پورې خو د آزادو ښځوحكم دې. او د وينځو شمير نشته دې. البتـه د شريعت په طريقه به وى .ددې وجې فرمائى چه د زنا نه دبچ كيدو دپاره به وى.او د شهوتونو پوره كول بر ترې مقصود نه وى.

**قوله تعالى:: فَمَا اسْتَمْتَعْتُم بِهِ مِنْهُنَّ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ فَرِيضَةً**

بيا فرمائى چه كومو ښځو نه تاسو فائده اوچتوئ نو ددې مقابله كښې تاسو هغوئ ته مهر وركړئى.لكه څنګه چې په بل آيت مبارك كښې دى ﴿وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ وَقَدْ أَفْضَىٰ بَعْضُكُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ﴾ : (ترجمه ) " تاسو به مهر دښځونه څنګه اخلئ؛ حالانكه تاسو يو بل سره يو ځائې شوى يئ؛اوبل ځائې كښې فرمائى چه ﴿وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً﴾ :(ترجمه ) " تاسو د ښځو مهر خوشحالئ سره ادا كوئى .او بل ځائې كښې فرمائى چه ﴿وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا﴾ : (ترجمه ) تاسو چه څه ښځو ته وركړى دى دهغې واپس اخستل حرام دى.

**د نكاح متعه حرمت :-** ددې آيت مبارك نه نكاح متعه په جواز باندې استدلال كړې شويدې.بيشكه متعه داسلام شروع كښې مشروع وه خو بيا منسوخ شوه. ①امام شافعى رحمه الله او دعلماء كرامو يو جماعت فرمائى چه دوه خله متعه مباح شوه اوبيامنسوخ شوه② بعضې وائى چه ددې نه زيات خله مباح اومنسوخ شوه③اودبعضو قول دې چه صرف يوځل مباح اوبيامنسوخ شوه اوبيا نه ده مباح شوې.

**د نكاح متعه دجواز قائلين:-** حضرت ابن عباس رضي الله عنه او څه نور صحابه كرامو رضي الله عنهم نه دضرورت په وخت كښې ددې اباحت مروى دې.حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم يو روايت داسې مروى دې.حضرت ابن عباس رضي الله عنه ، حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه ، حضرت سعيد بن جبير رضي الله عنه او سدى رحمه الله نه د ﴿مِنْهُنَّ﴾ نه پس ﴿إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ قراءت مروى دې.

**دجمهورو مذهب او دليل:-** ليكن جمهور ددې خلاف دى. او ددې بهترينه فيصله بخارى او مسلم كښې دحضرت على كرم الله وجهه روايت كوى. په هغې كښې دى چه نبى كريم ﷺ دخيبر په ورځ نكاح متعه اوكورنو خرونو د غوښې نـه منع اوفرمائيله[1] ددې حديث مبارك الفاظ داحكامو كتـابونوكښې تفصيل سره بيان شوى دى.

**دويم دليل:-** صحيح مسلم كښې دى چه حضرت سبره بن معبد جهنى رضي الله عنه نه مروى دى چه د فتح مكه غزوه كښې هغه نبى كريم ﷺ سره وو. نبى كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه ائې خلقو ! ما تاسو ته ښځو سره د متعه كولو اجازت دركړې وو ، ياد ساتئ بيشكه الله ﷻ دا ترقيامه پورې حرامه كړه. چه چا سره داقسم ښځه وى نو هغه ته پكار دى چه هغه پريږدى او تاسوچه هغوئ ته څه وركړى وى د هغې نه څه

[1]) صحيح بخارى كتاب المغازى غزوة خيبر : ٤٧١٦، صحيح مسلم : ١٤٠٧، نسائى : ٣٣٦٨، ترمذى: ١٧٩٤ ابن ماجة:١٩٦١)-

واپس مه اخلئ:(۱)

**دريم دليل**:- صحيح مسلم شريف كښې يو روايت كښې دی چه دا نبی كريم ﷺ حجة الوداع كښې فرمائيلی وو. دا حديث ډيرو الفاظو سره مروی دې او ددې تفصيل ځائې د احكامو كتابونه دی.

**نكاح متعه حرامه ده**

**مسلک حنفی**:- داحنافو مذهب هم د جمهورو پشان دې يعنی دوی هم د نكاح متعې د حرمت قائل دی (احكام القران للعلامة ظفراحمد العثمانی (۲۲۹۱۲)-

**قوله تعالی**: وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَٰضَيْتُم بِهِۦ مِنۢ بَعْدِ ٱلْفَرِيضَةِ

**دمهرمقرر كولونه پس په هغې كښې كمې زياتې**:- بيا فرمائی چه مقرر كولو نه پس كه تاسو رضامندنی سره څه مقرر كړئی نو دې كښې هيڅ باك نشته دې.

**په مهر كښې د تقررئ نه پس د زوجينو په رضا كمې زياتې جائز دې**

**مسلک حنفی**:- داحنافو په نيز هم د مهر مقرر كولو نه پس كه ښځه خاوند په مهر كښې كمې زياتې كوی نو دا جائز دی خو چه په خپل مينځ كښې په رضا مندئ سره وی (احكام القران للعلامة ظفراحمد العثمانی (۲۳۲۱۲)-

**دقائلين متعې په نيز د ايت مطلب**:- كوم كسان چه د متعې د جواز قائل دی نوهغوی د دې دا مطلب بيانوی. چه كله مقرر وخت تير شی نو د متعې په موده زياتولو او چه څه مو وركړی دی دهغې نه علاوه نور څه وركولو كښې هيڅ گناه نشته دې.

سدی ﷫ وائی چه كه غواړی نو مخكښې چې ئې كوم مهر مقرر كړې وی نو د متعې موده ختميدونه وړاندې دې ورته اووائی چه زه د دومره مودې دپاره نوره متعه كوم.نو كهٔ دې درحم د پاكوالی نه وړاندې د متعې په موده كښې زياتې اوكړو. او موده پوره شوه .نو بيا ددې هيڅ دباو نشته دې .هغه ښځه به جدا شی او يو حيض پورې به صبر اوكړی اود خپل رحم صفائی به اوكړی. په دې دواړو كښې ميراث نشته.نه به دا ښځه ددې سړی وارثه وی او نه به دا سړې ددې ښځې وارث وی.

**دمانعين متعې په نيز د ايت مطلب**:- او كومو حضراتو چې دا جمله .د نكاح مسنون دمهر په باره كښې خودلې دې.نو دهغوئ په نيز خو مطلب ښكاره دې چه په دې آيت كښې د مهر د ادا كولو تاكيد بيانيږی.لكه فرمائی چه مهر آسانئ او خوشحالئ سره وركوئ. نو مطلب دا شوكه د مهر مقررولو نه پس ښځه خپل حق معاف كړی يا لږ پريږدی اونور معاف كړی او ددې نه دست بردار شی نو ښځه خاوند باندې هيڅ گناه نشته دې.حضرت حضرمی ﷫ فرمائی چه خلق مهر مقرروی ،بيا ممكن ده چه دوی باندې تنگی راشی نو كه ښځه خپل حق پريږدی نوجائز دی.امام ابن جرير ﷫ هم دا قول خوښ كړې دې (۲)حضرت ابن عباس ﷛ فرمائی چه مراد ددې نه دادې چه دمهر پوره پوره رقم هغوئ ته حواله كړئ.بيا هغوئ ته د جدا اوسيدو او جدا كيدو پوره پوره اختيار وركړئ.

**قوله تعالی**: إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا

بيا ارشاد دې چه الله ﷻ عليم او حكيم دې.په دې احكامو كښې كوم چې د حلت او حرمت متعلق دی چه كوم حكمتونه پراته دی. او په دې كښې كوم مصلحتونه دی الله ﷻ ته هغه ښه معلوم دی.

---

(۱) صحيح مسلم كتاب النكاح باب النكاح المتعة : ۱٤۰٦، ابن ماجة: ۱۹۹۲)-
(۲) الطبری : ۱۸۰/۸)-

وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ

او هغه څوك|چي طاقت نه لري |په تاسو كښي | دمال | چي نكاح اوكړي

|اوپه تاسو كښي چي څوک داطاقت نه لري چي هغه

الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ

د اصيلوا مومناتو ښځو سره |نودهغه وينځوسره دې نكاح اوكړي |چي مالكان شوي وي ښي لاسونه ستاسو

اصيلي مسلماني ښځي سره نكاح اوكړي |نوهغه مسلمانو ښځو سره دې نكاح اوكړي چي تاسو ئې مالكان ئې

مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ ؕ بَعْضُكُمْ

دهغه وينځو ستاسو نه| چي مومناني وي | او الله | ښهٔ عالم دې | په ايمانونو ستاسو |بعضې ستاسو

......الله ﷻ ته ستاسودايمان حال ډيرښه معلوم دې (كيديشي وينځه داصيلي نه ښهٔ مسلمانه وي) تاسوټول

مِّنْ بَعْضٍ ۚ فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ

دبعضو نه دي|نوپه نكاح واخلئ هغوئ |په اجازت |دسر پرستانو دهغوئ | اوورکړئ هغوئ ته | مهرونه دهغوئ

يوشان يئ نوهغوئ سره دمالكانوپه اجازت نكاح اوكړئ| اودرواج مطابق ورته مهرونه هم وركړئ

بِالْمَعْرُوْفِ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ اَخْدَانٍ ۚ

درواج مطابق| چي پاكدامني وي| او نهٔ وي زنا كارې | او نهٔ وي نيونكي دپټو يارانو

چي هغوئ دنكاح په قلعه كښي محفوظې شي| او په ښکاره بدكاري نهٔ كوي|اونهٔ پټ پټ ياران نيسي

فَاِذَآ اُحْصِنَّ فَاِنْ اَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ

بياهركله چي|نكاح اوكړي انو كه راتلل اوكړل هغوئ | بدكارئ ته |نومقرره ده د هغوئ دپاره | نيمه

نوهركله چي هغوئ په نكاح سره محفوظې شي| اودې نه پس بدكاري اوكړي |نوهغوئ ته داصيلي

مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ؕ

دهغې اچي ده په اصيلو ښځو باندې| د سزا نه | داحكم دپاره د هغه چا دې|چي ويريږي|دماتيدودحد نه| تاسو نه

په نسبت نيمه سزا وركړئ | .............دآساني هغه چا د پاره ده چي هغه سره د زنا ويره وي

وَاَنْ تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۵﴾

اوكه صبراوكړئ تاسو|دا غوره ده|ستاسو دپاره| او الله |ښښونكي|مهربان دې|

داوكه تاسو صبر اوكړئ |نودا ستاسودپاره ډيره بهتره ده| اوالله ﷻ ښښونكئ مهربان دې |

قوله تعالى: :وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ

**د آزادې ښځې سره دنكاح كولو ونس نه لرو صورت:-** ارشاددې چه د چا د آزادو مسلمانو ښځو سره دنكاح كولو طاقت او قدرت نه وي ربيعه رحمه الله فرمائي چه ﴿ طولا ﴾ نه مراد قصد او خواهش دې.يعنې وينځې سره دنكاح كولو خواهش.امام ابن جرير رحمه الله داقول نقل كړيدې اوبيا ئې داپخپله رد كړې دې مطلب دادې چه كله داسې حالت وي نو دمسلمانانو ملكيت كښې چه كومې وينځې دي

هغوئ سره نکاح اوکړئ.دټولو کارونو حقيقت الله ﷻ ته معلوم دې.تاسوصرف ظاهر کتونکي يئ.
تاسوټول آزاداوغلام ايماني رشته کښې يويئ.وينځوسره نکاح دهغوئ دمالکانوپه اجازت سره کوئ
قوله تعالى:: فَانْكِحُوهُنَّ بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ

**د وينځې ولي څوک دې؟** :- معلومه شوه چه د وينځو ولي دهغوئ مالك دې.دهغوئ د اجازت نه بغير
ددوی نکاح نه منعقد کيږی.دغه شان غلام هم د خپل مالك د رضا نه بغير خپله نکاح نشي
کولی.حديث مبارك کښې دی چه کوم غلام د خپل مالك د اجازت نه بغير خپله نکاح اوکړی نو دا
زناکار دې [1].

څوکه د وينځې مالکه يوه ښځه وی نو د مالکې په اجازت سره دې هغه وينځه هغه څوک په نکاح
ورکړی څوک چې ددې ښځې نکاح کولې شی.(مثلا د مالکې پلارراواخله څکه چه د مالکې ولی د
هغې پلار دې نو لکه څنګه چې هغه د خپلې لور د نکاح ولی دې دغه شان د خپلې لور د وينځې د نکاح
هم ولي دې ازمترجم) څکه چه حديث مبارك کښې دی چه ښځه دې دبلې ښځې نکاح نه کوی او نه دې
ښځه خپله نکاح په خپله کوی.هغه ښځې زنا کارې دی چه کومې خپله نکاح په خپله کوی [2].

## د عاقلې بالغې آزادې ښځې پخپله خپله نکاح کول جائز ده

**مسلک حنفي**:- مسئله داده.چه دحرة، عاقله، بالغه نکاح ددې په رضامندئ، بغير د ولی منعقد
کيږی.او که نه منعقد کيږی؟ د ظاهرالرواية مطابق د شيخينو رحمهما الله په نيز منعقدکيږی.اود ابويوسف
رحمه الله نه په غير ظاهر الروايت کښې يو روايت دې.چه بغير د ولی نه نکاح نه منعقد کيږی.اود امام
محمد رحمه الله په نيز موقوف منعقد کيږی.که ولی اجازت ورکړی.نو نافذ به وی.او که اجازت ورنکړی.نو
منعقد به نه وی. (تسهيل الهدايه شرح هدايه (۵۷۱۳)-

قوله تعالى:: وَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ
بيا فرمائي چه د ښځو مهر په خوشحالئ ورکوئی کمولو سره ،تکليف ورکولو سره او داسې نه چه دا
وينځه اوګنړئي او دې ته کم ورکوئي.

قوله تعالى:: مُحْصَنَاتٍ غَيْرَ مُسَافِحَاتٍ وَلَا مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ
**د زناکارو وينځو سره د نکاح ممانعت**:- بيا فرمائي چه اوګورئي چه هسې نه دا ښځې بدکارئی طرفته په
خپله مائلې وی. اونه داسې وی که څوك دوی طرفته مائل شی نو دوی هغه طرفته مائله کيږی .نه په
ښکاره زنا کارې وی او نه په پټه بدکارې وی.چه يو څائې بل څائې يارانې جوړوی او ګرځی او پټ په
پټه يارانې کوی. چه څوك داسې خرابې وی نو الله ﷻ تاسو ته حکم کوی چه داسې ښځو سره نکاح مه
کوئی.

## د پاکدامن سړی دپاره زناکارې ښځې سره نکاح جائز ده

**مسلک حنفي**:- د احنافو په نيز د زناکارې ښځې سره نکاح کول جائز دی د تفصيل دپاره اوګورئ
(احکام القرآن للجصاص باب تزويج الزانية (۳۹۱۱۳) -

قوله تعالى:: فَإِذَا أُحْصِنَّ فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ
**د قراءت وضاحت**:- د ﴿أُحْصِنَّ﴾ دويم قرات ﴿أَحْصَنَّ﴾ هم ونيلې شوې دې د دواړو معنی يو ده.
**د وينځې او غلام احصان څه دې؟** ① دلته د احصان نه مراد اسلام دې ② يا وادهٔ شوې ښځې

---

[1] ابوداود كتاب النكاح باب في نكاح العبد بغير اذن مواليه : ۲۰۷۸، ترمذی: ۱۱۱۱، ابن ماجة: ۱۹۵۹،

[2] ابن ماجة كتاب النكاح باب لانكاح الا بولی : ۱۸۸۲، السنن الکبری للبیهقی :۱۱۰/۷، عن ابی هريرة وسنده صحيح وله حکم المرفوع)-

①ابن ابی حاتم نه یو مرفوع حدیث کښې دی چه ددوی احصان اسلام او عفت دې.لیکن دا حدیث منکردې ،دې کښې ضعف هم دې.او د یو راوی نوم هم نشته.داسې حدیث د حجت لائق نه دې.
② دویم قول یعنې احصان نه مراد نکاح ده.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی ، حضرت مجاهد رحمه الله ، حضرت طاؤس رحمه الله ،حضرت ابن جبیر رحمه الله ، حضرت حسن رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله وغیره نه هم دا قول نقل دې.امام شافعی رحمه الله نه ابوعلی طبری رحمه الله خپل کتاب ایضاح کښې هم دا نقل دی.مجاهد رحمه الله فرمائی چه د وینځې محصن کیدل دادی چه هغه د یو آزاد سړی نکاح کښې راشي.داشان دغلام احصان دادې چه هغه آزادمسلمانې ښځې سره نکاح اوکړی.حضرت ابن عباس ﷺ نه هم دا منقول دی.شعبی رحمه الله او نخعی رحمه الله هم دا فرمائی.
**د ابن کثیر ترجیح**:-دا هم وئیلې شوي دی چه ددې دواړو قراء تونو اعتبار سره معنی هم بدلیږی.﴿ **أُحْصِن** ﴾ نه مرادخو نکاح ده او ﴿ **أَحْصَنَ** ﴾ نه مراد اسلام دې .ابن جریر رحمه الله هم دا قول خوښوی.لیکن په ظاهره مراد دلته نکاح ده.والله اعلم.ځکه چه د آیت سباق هم په دې دلالت کوی. دایمان ذکرخو لفظونو کښې موجود دې.
**په جمهور باندې اشکال**:- بهر حال په دواړو صورتونو کښې دجمهورو دمذهب مطابق بیا هم د آیت معنی کښې هم اشکال باقی دی.ځکه چې د جمهورو قول دې چه وینځې سره د زنا کولو په وجه هغې ته به پنځوس کوړې ورکولې شی. برابره ده که هغه مسلمانه وی او که کافره ،که واده شوې وی او که واده شوې نه وی.حالانه دآیت مفهوم دا تقاضا کوی چه غیر محصنه وینځه باندې حد نشته دې.
**جوابونه**:-نوددې مختلف جوابانونه دی① دجمهورو قول دې چه بیشکه منطوق په مفهوم باندې مقدم دې ،ددې وجې مونږ هغه عام احادیث په کومو کښې چه په وینځو باندې د حد جاری کولو بیان دې ددې آیت مفهوم باندې مقدم کوو.
**په وینځه د حد قائمولو دلیل**:- صحیح مسلم کښې حدیث دې چه حضرت علی ﷺ خپله خطبه کښې اوفرمائیل چه "انې خلقو خپلو وینځو باندې حدقائم ساتئ که هغوئ محصنې وی اوکه غیرمحصنې وی. نبی کریم ﷺ ماته حکم کړې چه د وینځې سره زنا کولو باندې حد قائم کړه. خو هغه نفاس کښې وه نو زه ویریدم چه هسې نه دحد کوړې لګولو سره دا مړه شی.نو ما هغه وخت کښې هغې باندې حد قائم نه کړو. اود نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شوم اوواقعه مې ورته بیان کړه نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تا ښه اوکړل چه تر کومې پورې چې هغه صحیح شوې نه وی نو حد پرې مه جاری کوه" (١)،مسند احمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کله دا نفاس نه فارغه شی نو دې ته پنځوس کوړې ورکړئی.(٢)
**دویم دلیل**:- حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه ما نبی کریم ﷺ نه آوریدلی وو چه کله تاسو کښې څوک وینځې سره زنا اوکړی او زنا ظاهره شی نو هغې ته حد ورکړئی او بدرد ورته مه وائې.بیا که دوباره زنا اوکړی نو بیا ورته حد ورکوئی او بدردورته مه وائې.بیا که په دریم ځل هم زنا اوکړی او ښکاره شی نو دا خرڅه کړئی اګر چه دویښتو د رسئ بدله کښې وی.اوصحیح مسلم کښې دی چه کله دریم ځل دا کار ددې نه اوشی نو په څلورم ځل نې خرڅه کړئی (٣)

(١) صحیح مسلم کتاب الحدود باب تاخیر عن النفساء : ١٧٠٥، ترمذی : ١٤٤١، السنن الکبری للنسائی : ٧٢٩٩)-
(٢) زوائد مسند احمد: ١٣٦/١،
(٣) صحیح بخاری کتاب الحدود باب لایثرب علی الامة اذا زنت: ٦٨٣٩، صحیح مسلم: ١٧٠٣، ابوداود : ٤٤٧٠)-

**دریم دلیل: په عهد فاروقی کښې وینځوباندې حد جاری کول:-** عبدالله بن عیاش بن ابوربیعه مخزومی ﷬ فرمائی چه " مونږ قریشی خوانانوته حضرت عمرفاروق ﷺ د امارت په وینځوباندې د حد جاری کولو حکم کړې وو. مونږ هغوئ ته د زنا په وجه پنځوس کوړې ورکړې وې " (۱)

**په وینځو دحد نه جاری کولو قائلینو د عامو احادیثو نه جواب:-** ② کوم حضرات چې دې طرفته دی چه وینځه باندې د احصان نه بغیرحد نشته.هغوئ فرمائی چه (په کومو احادیثو کښې چې د وینځو د حد ذکر دې نو) دغه وهل د ادب او خودنې او منع کولو په غرض وو. حضرت ابن عباس ﷺ هم دې طرفته دې.حضرت طاؤس ﷬ ، حضرت سعید ﷬ ، حضرت ابوعبیده ﷬ او د حضرت داؤد ظاهری ﷬ هم دا مذهب دې

**د دویم فریق دلیل:-** دهغوئ لوئې دلیل د آیت مفهوم دې اودا د شرط په مفهومونو کښې دې.او د اکثرو په نیز حجت دې .ددې وجې دهغوئ په نیز د آیت مفهوم د احادیثو په عموم باندې مقدم کیدې شی.

**دویم دلیل:-** اود حضرت ابوهریره ﷺ اوزید بن خالد حدیث مبارک کښې دی چه نبی کریم ﷺ نه تپوس اوشو چه کله وینځه زنا اوکړی اوهغه محصنه نه وی یعنی وادۀ شوې نه وی. نو څه په کولې شی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که هغه زنا اوکړی نو حد ورکړئی او که بیا زنا اوکړی نو هغې ته کوړې ورکړئی او بیا ئې خرڅه کړئی اګر چه د ویښتو د رسئ بدله کښې وی. د حدیث مبارك راوی حضرت ابن اشهاب ﷬ فرمائی چه ما ته معلوم نه ده چه د دریم ځل نه پس ئې څلورم ځل اوفرمائیل که نه.(۲)

نو ددې حدیث مطابق هغه جواب ورکوی چه ګورئی دلته د حد مقدار او دکورو تعداد نه دې بیان شوې لکه چه د محصنه باره کښې ئې صفا فرمائیلی دی او لکه قرآن پاك کښې چې مقرر شوی دی چه د محصنات په مقابله کښې په دوی باندې نیم حد دې. نو آیت او حدیث مبارك کښې داسې تطبیق واجب شو ، والله اعلم.

**دریم دلیل:-** ددې نه هم زیات صراحت والا روایت کوم چې د حضرت سعید بن منصور په روایت کښې حضرت ابن عباس ﷺ نه نقل شوې دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په وینځه باندې حد نشته دې تر څو چه هغه احصان اونکړی. یعنی څو پورې چه هغه نکاح والا نشی.نو کله چه خاوند والا جوړه شی نو په دې باندې نیم حد دې په نسبت د آزادې نکاح دارو ښځو.

دا حدیث ابن خزیمه کښې هم دې ، لیکن هغه فرمائی چه دا مرفوع ګنړل خطا ده. دا موقوف دی یعنی د حضرت ابن عباس ﷺ قول دې.بیهقی کښې هم روایت دې او دهغوئ هم دا فیصله ده.(۳)او وائی چه د حضرت علی ﷺ اوحضرت عمر فاروق ﷺ حدیث د یوواقعې فیصله ده.او د حضرت ابوهریره ﷺ د حدیث هم ډیر جوابابونه دی.

**د ابوهریره د حدیث نه جوابونه:-** ① یودا چه دامحمول دې په هغه وینځه چه واده شوې وی .داشان دې دواړو احادیثو کښې تطبیق او جمع کیدې شی.

②دویم داچه دې حدیث کښې دحدلفظ راوی دخپله خانه داخل کړې دې اوددې دلیل دجواب فقره ده

③ دریم دا چه دا حدیث د دوؤ صحابه کرامو ﷺ دې .اوهغه حدیث صرف دیو صحابی ﷺ دې.اود دوو صحابو حدیث د یو صحابی په حدیث باندې مقدم دې.

(۱) موطا امام مالك : ۸۲۷/۲، کتاب الحدود باب جامع ماجاء فی حد الزنی: ۱۶ وسنده صحیح )-
(۲) صحیح بخاری کتاب الحدود باب اذا زنت الامة: ۶۸۳۷، صحیح مسلم: ۱۷۰۴، ابوداود: ۴۴۶۹)-
(۳)بیهقی :۲۴۳/۸،عن ابن عباس ابن ابی شیبة:۵۱۹/۹،ح/۲۸۲۸۸:ددې سند کښې سفیان بن عیینه مدلس دې اوروایت معنعن دې،

اودغه شان دا حديث نسائي هم نقل كړې دې اودې د مسلم په شرط باندې برابر دې.حضرت عباد بن تميم د خپل تره نه روايت كوى اوهغه بدرى وو چه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل كله وينځه زنا اوكړى نو دې ته كوړې وركړئى .كه بيا زنا اوكړى نو كوړې وركړئى ، كه بيا زنا اوكړى نو بيا ئې په كوړو اووهئ، چې بياه زنا اوكړى نو دا خرڅه كړئى اګر چه د ويښتو د يو رسئ بدله كېنې وى. (١)

③ څلورم جواب دادې چه دا هم لرې ده چه يو راوى په جلد باندې لفظ د حد اطلاق كړې وى او هغه جلد لره حد ګنړلې وى يا د حد د لفظ اطلاق تاديبا په طور د سزا وى لكه څنګه چه د حد د لفظ اطلاق په طور د سزا وى. چه كوم بيمار زانى په يو څانګه وهلې شوې وو په كومه كېنې چې سل واړه واړه ښاخونه وو. اولكه د لفظ د حد اطلاق په هغه سړى كړې شوې وو چه دخپلې ښځې وينځې سره ئې زنا كړې وه لكه ښځې دده دپاره حلاله كړې وه .حالانكه هغې ته سل كوړې وركول تعزير صرف يو سزا وى. لكه امام احمد وغيره سلف خيال كوى ، حد حقيقى صرف دادې چه خوان ته سل كوړې او واده شوى ته يا لوطى ته رجم وركړې شى ، والله اعلم.

ابن ماجه وغيره كېنې حضرت سعيد بن جبير ﷺ فرمائي چه وينځې كله نكاح نه وى كړې نو هغه دې په زنا باندې اونه وهلې شى.ددې اسناد صحيح دى.ليكن ددې دوه مطلبه كيديشي.يو خو دا چه بالكل دې اونه وهلې شى نه حد اونه نور څه ، نودا قول خو غريب دې.ممكن ده چه د آيت الفاظو ته نظر كولو نه پس فتوى وركړې شوى وى او حديث ورته نه وى رسيدلې.دويم مطلب دا چه د حد په طور دې اونه وهلې شى.كه دا معنى مراد وى نو ددې خلاف نه ده. اوكه سزا وركړې شى نو دا به د حضرت ابن عباس ﷺ د فتوى مطابق وى ، والله اعلم.دريم جواب دادې چه دا آيت باندې دلالت كوى چه محصنه وينځه باندې په نسبت دآزادې ښځې نيم حد دې.ليكن محصنه كيدو نه مخكښې د كتاب اوسنت عموم كېنې هم شامل دې چه دې ته هم سل كوړې وركړې شى .لكه دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ :

(ترجمه ) " زنا كاره ښځه او زنا كار سړې دې سل كوړې اووهلې شى.

لكه حديث مبارك كېنې دى چه نبى كريم ﷺ فرمائي چه خما كلام واخلئ او خما كلام باندې خان پوهه كړئى.الله ﷻ ددوى دپاره لاره راويستې ده. كه د دواړو طرفونو نه واده شوى نه وى نو سل كوړې او يو كال جلاوطنى او كه دواړه واده شوى وى نو سل كوړې او كانړو سره رجم كول.داحديث مسلم شريف كېنې دې (٢)اودغه شان نور احاديث هم دى.د داود بن على ظاهرى رحمه الله هم داقول دې.ليكن دا ډير ضعيف دې.څكه چه الله ﷻ محصنه وينځو ته په نسبت دآزادوښځو د نيمو كوړو وركولو سزا بيان كړې ده يعنى پنځوس كوړې. نوبيا تر كومې چه هغه محصنه نه وى نو بيا ددې سزا نه هم زياته سزاواره څنګه كيديشي.حالانكه شريعت قاعده داده چې داحصان نه مخكښې كمه سزاده اواحصان نه پس زياته ده.بيا ددې برعكس څنګه كيديشي. نبى ﷺ نه صحابه كرام ﷺ دهغه وينځې دسزا باره كېنې تپوس كوى چې واده شوې نه وى. او نبى كريم ﷺ هغوئ ته جواب وركوى چه هغوئ په كوړو اووهئ: ليكن دا نه فرمائي چه سل كوړې ئې اووهئ: نوكه ددې هغه حكم وې لكه څنګه چه حضرت داود ظاهرى رحمه الله بيان كړې دې نوبيا نبى كريم ﷺ باندې ددې حكم بيانول واجب وو. څكه چه دهغوئ داسوال خو صرف په دې وجه وو چه د وينځې د واده كيدو نه پس هغې ته دسلوكوړو وهلو بيان نشته دې ګنى ددې قيد لګولو څه ضرورت وو چه سوال كېنې وائى چه هغه واده شوې نه وى.څكه چه بيا خو

(١) السنن الكبرى للنسائي : ٧٢٣٨، وضعف ابآ اويس ولكن سنده حسن ابو اويس حسن الحديث )-

(٢) صحيح مسلم كتاب الحدود باب حد الزنى: ١٦٩٠)-

واده شوې او نه واده شوی کښې هیڅ فرق پاتې نشو ، که دا ایت نازل شوې نه وې.لیکن دې دواړو صورتونو کښې دوی ته د یو علم شوې وو ددې وجې د دویم باره کښې سوال اوکړې شو او نبی کریم ﷺ ورته جواب ورکړو او معلوم شو.

لکه څنګه چه بخاری او مسلم کښې دی چه کله صحابه کرامو ؓ د نبی کریم ﷺ نه په نبی کریم ﷺ باندې د درود لیږلو متعلق تپوس اوکړو نو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه سلام خوهغه شان دې چه څنګه تاسوته معلوم دی.([1])

اویوروایت کښې دی چه کله دالله ﷻ فرمان ﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ ۚ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ نازل شو.اوالله ﷻ حکم اوفرمائیلو چه په نبی کریم ﷺ باندې درود اوسلام لیږئ نو صحابه کرامو ؓ اوفرمائیل چه د سلام طریقه او د هغې الفاظ خومونږ ته معلوم دی. خو مونږ ته ددې کیفیت بیان کړئی ([2]). نودغه شان دا سوال هم دې.

④ د آیت د مفهوم څلورم جواب د ابوثور دې چه د ابوداود د جواب نه زیات بهتر دې ، هغه فرمائی چه کله وینځې واده شی.نو دهغوئ د زنا حد نیم شی، د هغه حد نه کوم چه د واده شوو آزادو ښځو د زناکارئی حد دې.نو ظاهره ده چه دآزادو ښځو حد دې صورت کښې رجم دې.او دا هم ظاهره ده چه رجم نیم نه شی کیدې.نو دې صورت کښې به رجم وی. او د واده نه مخکښې که دا زنا اوکړی نو دې ته به پنځوس کوړې ورکولې شی.ځکه چه دې حالت کښې آزاده ښځه باندې سل کوړې دی.

**د ابوثورغلطی:-** پنه اصل کښې د آیت په مطلب پوهیدلو کښې ده نه غلطی شوې ده او په دې کښې د جمهورو خلاف دې.بلکه امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د یو مسلمان په دې کښې هیڅ اختلاف نشته دې چه مملوك باندې د زنا سزا رجم نه دې .

ددې وجې آیت دلالت کوی چه په دوی باندې د محصنات نیم عذاب دې اود محصنات لفظ کښې چه کوم الف لام دې هغه دعهد دې.یعنی هغه محصنات چه د هغوئ بیان ددې آیت شروع کښې تیر شوی دی چه ﴿أَن يَنكِحَ الْمُحْصَنَاتِ﴾.او مراد صرف آزادې ښځې دی.دلته د آزادو ښځو د نکاح دمسئلې بحث نشته ، بحث دادې چه مخکښې ارشاد دې چه په دې باندې د زناکارئی دسزا کوم حد وو ، دهغې نه نیمه سزا په دې وینځو باندې دې.نومعلومه شوه چه دا د هغه سزا ذکر دی چه نیمې دې شی اوهغه کوړې دی نو هغه به دسلو نه نیمې پنځوس پاتې شی.رجم یعنی سنګسارول کول داسې دی چه ددې تقسیم نشې کیدې .(یعنی نیمیدې نشی) والله اعلم.

مسند احمد کښې یوه واقعه ده چه دابوثور رحمه الله د مذهب پوره تردید کوی.په دې کښې دی چه صفیه وینځې یو غلام سره زنا اوکړه او هغه نه ئې یو بچې پیدا شو او ددې بچی دعوه زانی اوکړه. مقدمه حضرت عثمان ؓ ته اورسیده. حضرت عثمان ؓ حضرت علی ؓ راوبللو.او ددې مسئلې حل کول ئې ورته حواله کړل: دالله ﷻ شیر حضرت علی اوفرمائیل چه په دې کښې به هغه فیصله وی چه کومه نبی کریم ﷺ کړې وه. بچې خو به دهغه وی چه د چا دا وینځه ده. او زانی به سنګساریږی. بیا ئې دې دواړوته پنځوس پنځوس کوړې ورکړې.([3])

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب الصلاة علی النبی صلی الله علیه : ٤٠٥)-

[2]) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ان الله وملائکته سورة احزاب : ٤٧٩٧، صحیح مسلم: ٤٠٦)-

[3]) احمد: ١/١٠٤، ح/٨٢٠،

داهم ونيلې شوي دي چه ددې مفهوم نه مراد تنبيه ده ، اعلى ته په ادنى باندې ، يعنى كله چه هغوئ واده شوي وي نو په هغوئ باندې د آزادو ښځو په نسبت نيم حد دې.نو پدې باندې خو رجم د سره شته نه.نه دنكاح نه مخكښې اونه د نكاح نه روستو. دواړو حالتونو كښې صرف كوړې دي.
اوددې دليل حديث دې.صاحب الايضاح هم دا فرمائى او حضرت امام شافعى رحمه الله همدا ذكر كوي امام بيهقى رحمه الله خپل كتاب " السنن و الآثار" كښې همدا ئې ذكركړې دې.ليكن داقول د آيت دلفظ نه ډير لرې دې .اوهغه دا چه د نيم حد كيدو دليل صرف آيت دې ، دې نه سوا هيڅ نشته دې.نو دې نه سوا به نيم څنګه كيدېشي ؟
اوداهم ونيلې شوي دي چه مطلب دادې چه كله واده شوې وي نو دې حالت كښې به صرف امام حد قائموي.ددې وينځې مالك دې ته حد نشي وركولې.
د امام احمد رحمه الله مذهب كښې يو قول دا دې چه د واده نه مخكښې ددې خاوند تـه دحد جارى كولو اختيار بلكه حكم دې.خو دواړو صورتونو كښې به حد نيم نيم وي.
خو دا هم لرې خبره ده څكه چه آيت كښې ددې استدلال نشته دې اوكه دا آيت نه وې نو مونږ ته به معلوم نه وې چه د وينځو باره كښې حد نيم دې. اودې صورت كښې به هغوئ هم عموم كښې داخلې وى او پوره حد يعنى سل كوړې او رجم هم په دوى جارى كول واجب وو.لكه څنګه چه عام روايتونو نه ثابت دى.حضرت على رضي الله عنه نه مروى دى چه ائې خلقو ! خپلو ماتحتو باندې حد جارى كړئى ، واده شوې يا غير واده شوې.اوهغه عام حديث چه كوم مخكښې تير شويدې چه په هغې كښې د خاوند والا او بې خاوند هيڅ تفصيل نشته دې.د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت والاحديث پاك نـه جمهورو دادليل نيولې دې .اوهغه دادې چه كله تاسو كښې څوك يو وينځې سره نكاح اوكړي. او بيا ددې زنا ښكاره شى. نو ده له پكار دى چه په دې باندې حد جارى كړي او دې ته دې ردبد نه وائى.(ملخصا). [1]
خلاصه داچې دوينځې دزناكارئى باره كښې ډير اقوال دى.يو دا چه تر كومې پورې ددې نكاح نه وى شوې. دې ته به پنځوس كوړې وركولې شى.او دنكاح نه پس هم هم دا حد دې.
**په زناكارې وادهٔ شوې وينځې او غلام باندې هم پنځوس كوړې حد دې**
**مسلک حنفى:-** په زناكاره وينځه كه هغه واده شوې وى اوكه پيغله وى دغـه شان غـلام كـه هغـه واده كړې وى اوكه لونډ وى په دواړو صورتونو كښې پنځوس كوړې وهل دى چې واده شوې نه وى نو هغه حكم خو ښكاره دې چه د ناواده كړي آزاد سړي او ښځې حد چې زنا اوكړى سل كوړې دى نو دغلام او وينځې به پنځوس كوړې وى اوپاتې شو وادهٔ شوې غلام او وينځهٔ نو چونكه د آزاد سړى او ښځې حدزنا رجم دې او رجم داسې څيز دې چه دا نيم كيدې نشى چې نيم سړې دې مړ شى او نيم دې ژوندې وى څكه چه روح به دې نيم كيدې نشى نو د دې وجې د وادهٔ شوى غلام او وادهٔ شوې وينځې حد زنا به هم پنځوس كوړې وى دا د ا حنافو مسلک دې بلكه د څلورو واړه امامانو هم دا مسلک دې (معارف القران ۲/۳۷۳)-
**په جلا وطنئ كښې مذاهب** - او دا وينځه به جلا وطن كولې شى كه نه ؟ په دې كښې درې اقوال دى.① يو داچه جلاوطنى به ئې وى.② دويم دا چه نه به وى.③ دريم دا چه جلاوطنئ كښې به ئې نيموالې هم وى يعنى دشپږو مياشتو دپاره به دا دكور نه ويستلې شى پوره كال نه.پوره كال آزادو ښځو دپاره. دا درې واړه قولونه د امام شافعى رحمه الله مذهب كښې دى

[1] صحيح بخارى كتاب البيوع باب بيع العبد : ۲۱۵۲، صحيح مسلم:۱۷۰۳، ابوداود: ۴۴۷۰-

**دویم مذهب:-** لیکن د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جلاوطنی د تعزیر په طور ده.هغه په حد کښې نه ده ، دامام په رائې په موقوف ده. که غواړی جلاوطن دې کړی اوکه غواړی نه دې جلاوطن کوی.سړی او ښځې ټول په دې حکم کښې برابر دی.

**دریم مذهب:-** خود امام مالك رحمه الله مذهب کښې دی چه جلاوطنی صرف د سړو دپاره ده ښځودپاره نشته دې.خکه چه جلاوطنی صرف ددې دحفاظت دپاره ده.او که ښځه جلاوطن کړې شی نودا به دحفاظت نه بهر شی .او د سړو یا ښځو باره کښې د جلاوطن کولو والا حدیث صرف حضرت عباده رضی الله عنه او حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه مروی دې چه نبی کریم ﷺ دهغه غیر شادی شده زانی باره کښې فرمائیلی وو ، دحد ورکول او دیو کال د جلاوطنۍ حکم ئې فرمائیلې وو ( بخاری ) (۱) ددې معنوی مراد همدا دې چه ددې حفاظت دې اوشی او ښځه که جلاوطن کړې شی نو دا به د حفاظت نه اوخی.والله اعلم.

**دویم قول:-** دویم قول دادې چه وینځې ته به ددې په زنا کارئی باندې د واده نه پس پنځوس کوړې ورکولې شی .او د ادب خودلو دپاره به دا وهلې هم شی.لیکن ددې مقرر شمیرنشته.مخکښې تیر شوی دی چه د واده نه مخکښې به دا نشی وهلې.لکه چه د حضرت سعید بن مسیب رحمه الله قول دې.که ددې نه مراد دا وانخستې شی چه دا بالکل هډووهل پکارنه ده نو دا به تاویلی مذهب وی.گنی قول ثانی کښې دا داخلولې شی.

**دریم قول:-** او یو قول دادې چه د واده نه مخکښې سل کوړې او واده نه پس پنځوس کوړې لکه چه د ابوداود قول دې.اودا د ټولو اقوالونه بهتر قول دې.او دا چه واده نه مخکښې پنځوس او واده نه پس رجم دې لکه چه د ابوثور قول دې. لیکن داکمزورې دې.والله سبحانه وتعالی أعلم بالصواب.

**قوله تعالی::** ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ

بیا فرمائی چه وینځو سره نکاح کول به په دې شرط سره جائز دی.چې څوک ورسره نکاح کوی هغوئ ته په زنا کښې د واقع کیدو خطره وی او د وادهٔ نه بغیر ژوند تیرول هغوی دپاره سخت وی. ددې په وجه به دوی ته تکلیف وی.نو بیشکه پاك دامنې وینځو سره نکاح کول جائز دی.اګر چه دې حالت کښې هم خپل نفس منع کول او دې سره نکاح نه کول ډیر بهتر دی. ددې وجې چه ددې نه کوم اولاد وی هغه به ددې د مالك وینځې وی.څوکه خاوندغریب وی نو ددې به دا اولاد ددې د مالك ملکیت د امام شافعی رحمه الله دقول قدیم مطابق نه وی.

**قوله تعالی::** وَأَنْ تَصْبِرُوا خَيْرٌ لَكُمْ

بیافرمائی که تاسو صبر اوکړئی نو دا ستاسو دپاره افضل دی.او الله غفور او رحیم دې.جمهور علماء کرامو ددې آیت نه استدلال کړې دې چه وینځې سره نکاح کول جائز دی. لیکن دا ضروری ده چه دا په هغه وخت کښې دی چه کله آزادې ښځې سره د نکاح کولو طاقت ئې نه وی او نه په ده کښې د صبرکولو طاقت وی.بلکه زنا کښې د واقع کیدو ویره وی.خکه چه په دې کښې یو خرابی داده چه اولاد غلامۍ کښې راځی.دویم داچه یو شان سپکوالې وی .چه آزاده ښځو نه نظر واوړی.او وینځو طرفته مائل شی.

خوامام ابوحنیفه رحمه الله او ددوی ملګری دجمهورو خلاف دی،هغوئ وائی چه دا دواړه خبرې شرط نه دی بلکه چه د چا په نکاح کښې څوك آزاده ښځه نه وی هغه لره وینځې سره نکاح کول جائز دی که هغه وینځه مومنه وی اوکه اهل کتابو نه وی.که د ده د آزادو ښځو سره د نکاح کولو طاقت هم وی او اګر چه ده ته بدکارئی کښې داخته کیدو ویره نه وی.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الحدود باب الاعتراف بالزنی : ۶۸۶۷، صحیح مسلم: ۱۷۹۰)-

ددوی لونې دلیل دا آیت دې چه ﴿وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ﴾ یعنی آزادې ښځې دهغوی نه چه تاسو نه مخکښې ورته کتاب الله ورکړې شوې وو. نو هغوئ وائی چه دا آیت عام دې. آزاده غیر آزاده په دې کښې ټولې شاملې دی. او محصنات نه مراد پاکې اوپاك دامنې او عصمت والا ښځې مراد دی. لیکن ددې ظاهری دلالت هم پدې مسئله کښې دې چه کوم د جمهورو مذهب دې ، والله اعلم.

**د ازادې ښځې سره د نکاح کولو قدرت باوجود د وینځې سره نکاح جائز ده**

**مسلك حنفی:** - د پورتنی بحث نه معلومه شوه چه د امام شافعی او نورو امامانو مذهب دا دې چې د سړی د آزادې ښځې سره د نکاح کولو قدرت وی نو ده دپاره د وینځې سره نکاح کول جائز نه دی او بیا حافظ ابن کثیر رحمه الله امام اعظم رحمه الله ته د آزادې ښځې سره د نکاح د قدرت باوجود وینځې سره دنکاح کولو د جواز کوم قول نقل کوی نو دا نسبت ئې صحیح دې البته دومره ضرور ده چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هم غوره دا ده چه د ازادې ښځې سره نکاح اوکړی خوکه د آزادې په ځائې د وینځې سره اوکړه نو دا نکاح جائز ده خو د سره د کراهته (معارف القرآن تفسیر مفتی محمد شفیع عثمانی رحمه الله ۲/۳۷۱).

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | يُرِيْدُ | اللّٰهُ |
| | | | | غواړی | الله |
| | | | | \| الله دا غواړی | |
| لِيُبَيِّنَ لَكُمْ | وَيَهْدِيَكُمْ | سُنَنَ | الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِكُمْ | |
| چې اوښائی تاسو ته طریقې | اوروان کړی تاسو | په طریقو | دهغه نیکانو خلقو | چې مخکښې ستاسونه وو | |
| چې تاسوته خپل حکمونه بیان کړی \| اوپه هغه لار مو روان کړی چې ستاسونه مخکښې خلق ئې پرې روان کړی وو | | | | | |
| وَيَتُوْبَ | عَلَيْكُمْ ۗ وَاللّٰهُ | عَلِيْمٌ | حَكِيْمٌ ﴿۲۶﴾ | وَاللّٰهُ يُرِيْدُ | اَنْ |
| اوقبولوالې د توبې اوکړی | په تاسو \| اوالله | ښۀ پوهه | اودحکمت خاوند دې | او الله اراده لری | چې |
| اوتاسوته خپل رحمت متوجه کړی \| او الله ﷻ په هرڅه پوهه اوصاحب د حکمت دې \| او الله پاک غواړی | | | | | |
| يَّتُوْبَ | عَلَيْكُمْ قف | وَيُرِيْدُ | الَّذِيْنَ | يَتَّبِعُوْنَ | الشَّهَوٰتِ |
| رجوع اوکړی په رحمت سره | په تاسو باندې | اواراده لری | هغه کسان | چې تابعداری کوی | دخواهشانو |
| چې تاسوته خپل رحمتونه راوګرزوی \| اوخوك چې په خپلو خواهشاتو پسې ګرځی | | | | | |
| اَنْ تَمِيْلُوْا | مَيْلًا | عَظِيْمًا ﴿۲۷﴾ | يُرِيْدُ اللّٰهُ | اَنْ يُّخَفِّفَ | عَنْكُمْ ۚ |
| چې مائله شئ تاسو | په مائله کیدلو | لویو سره | غواړی الله | چې سپکوالې اوکړی | په تاسو |
| هغوئ داغواړی چې تاسودسمې لارې نه ډیرلرې کړی \| اوالله ﷻ داغواړی چې په تاسوباندې سپکوالې اوکړی | | | | | |
| وَخُلِقَ | الْاِنْسَانُ | ضَعِيْفًا ﴿۲۸﴾ | | | |
| او پیدا کړې شوې دې | انسان | کمزورې | | | |
| (ځکه چې) انسان کمزورې پیداکړې شوې دې \| | | | | | |

**قوله تعالی:** يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ

**د الله ﷻ احکامو کښې سختي نشته:-** فرمان دې چه اې مومنانو ! الله ﷻ اراده کړې ده چه حلال او حرام تاسو ته بیان شوی دی (لکه چه دې صورت کښې او نورو صورتونو کښې هغه پاك ذات بیان کړی دی) هغه الله ﷻ غواړي چه د مخکښې خلقو قابل تعریف لارې ستاسو په پوهه کښې راولي چه تاسو به هغه شریعت باندې عمل اوکړئ چه کوم دهغه محبوب او دهغه درضا منډنی دې.

**قوله تعالى:** وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ

هغه پاك ذات غواړي چه ستاسو توبه قبوله کړي.چه دکومې ګناه نه او کومې حرام کارئ نه تاسو توبه اوکړئ نوهغه توبه زر قبلوي.هغه ذات عالم اوصاحب د حکمت دې.خپل شریعت ، په خپله اندازه ، او خپل حکم کښې هغه صحیح علم او کامل حکمت والا دې.

**قوله تعالى:** وَيُرِيدُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الشَّهَوَاتِ أَنْ تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا

د نفساني خواهشاتو پیروکار یعنې د شیطانانو غلامان یهود او نصارا تاسو د حق نه لرې کول غواړي.الله ﷻ خپلو احکامو او حکم کښې منع کولو او شریعت کښې اندازې مقرر کړې دی اوپه دې کښې ئې ستاسودپاره آسانئ پیدا کړې ده.او هم په دې وجه ئې څو شروطو سره ستاسودپاره وینځو سره نکاح کول حلال کړی دی.

**قوله تعالى:** وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا

انسان چونکه پیدائشي کمزورې دې ددې وجې الله ﷻ خپلو احکامو کښې سختي نه ده اینښودې.دې فی نفسه هم کمزورې او دده ارادې او حوصلې هم کمزورې دی، د ښځو باره کښې هم کمزورې دې. دلته چه راشي نو بې وقوف ترې جوړ شي.

**په شب معراج په مونځونو کښې کمې کیدل:-** کله چه نبي کریم ﷺ شب معراج کښې سدرة المنتهى نه واپس شو او کلیم الله حضرت موسى ﷺ سره ئې ملاقات اوشو نو حضرت موسى ﷺ ترې تپوس اوکړو چه تاسوباندې څه فرض کړې شو ؟ نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه تولـه ورځې کښې پنځوس مونځونه.نوکلیم الله حضرت موسى ﷺ اوفرمائیل چه واپس لاړشئ اوالله ﷻ ته سوال اوکړئ چه دا کم کړي.ستاسو امت کښې ددې طاقت نشته دې.ستاسو نه مخکښې خلقوباندې هم تجربه شوې ده. او هغوئ ددې نه په کمو ویریدلي وو. اوستاسو امت خو غوږونو اوسترګو اوزړه په اعتبارسره نور هم کمزورې دی.نو نبي کریم ﷺ واپس لاړو او لس ئې معاف کړل.بیا هم داخبره اوشوه نو بیا نبي کریم ﷺ لاړو او بیا ئې لس کم کړو تر دې چه آخرې خل پنځه پاتې شو( ).

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ | | آمَنُوا |
| | | | | | هغه کسانو | | چې ایمان مو راوړې دې |
| | | | | | ائې دایمان خاوندانو | | |
| لَا تَأْكُلُوٓا | أَمْوَالَكُم | بَيْنَكُم | بِالْبَٰطِلِ | | إِلَّآ أَن | | تَكُونَ |
| مۀ خورئ تاسو | مالونه | دیوبل | په خپل منځ کښې | په ناجائزه طریقه | ما سوا ددې نه | | چې وی |
| خپل مینځ کښې دیوبل مالونه په ناجائزه طریقه مۀ خورئ | | | | | ..................... | | خوکه |
| تِجَٰرَةً | عَن تَرَاضٍ | مِّنكُمْ | وَلَا تَقْتُلُوٓا | أَنفُسَكُمْ | | | إِنَّ اللَّهَ |
| سوداګری | په رضامندئ سره | ستاسود طرفه | اومۀ قتلوئ | خانونه خپل | | | بیشکه الله |
| سوداګری ستاسو په خپل مینځ کښې په رضا اوشي(نوخیردې)اوخپل خانونه هلاکت کښې مه اچوئ بیشکه الله | | | | | | | |

( ) صحیح بخاری کتاب الصلاة باب کیف فرضیت الصلاة فی الاسراء :۳۴۹، صحیح مسلم: ۱۶۳)-

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَانَ بِكُمْ | رَحِيمًا ﴿٢٩﴾ | وَمَنْ يَفْعَلْ | ذٰلِكَ | عُدْوَانًا | وَّظُلْمًا | |
| دې په تاسو باندې | مهربانه | اوڅوك چې كوي | دغه كارونه | په زياتئ سره | اوپه ظلم سره | |
| په تاسو ډیر مهربان دی ................ اوڅوك چې په ظلم زياتی داسې كارونه كوي ............ | | | | | | |
| فَسَوْفَ | نُصْلِيهِ | نَارًا | وَكَانَ ذٰلِكَ | عَلَى اللّٰهِ | يَسِيرًا ﴿٣٠﴾ | إِنْ |
| نو زر به | داخل كړو مونږه هغه | اور ته | اودې | دا كار | په الله باندې | آسان | كه |
| نومونږ به ئې د جهنم اور ته ورداخل كړو اودا كار الله ﷻ ته ډیر آسان دی .................. كه | | | | | | |
| تَجْتَنِبُوا | كَبَائِرَ | مَا | تُنْهَوْنَ | عَنْهُ | نُكَفِّرْ | عَنْكُمْ |
| تاسو خان اوساتلو | دلويو ګناهونو | هغونه | چې تاسو منع كړې شوې ئې | دهغې نه | نومونږ به ختم كړو | ستاسو نه |
| تاسو (هغې) لويو ګناهونو نه پرهيزاوكړئ دكومونه چې منع كړې شوې يئ ............ نومونږ به ستاسو | | | | | | |
| سَيِّئَاتِكُمْ | وَنُدْخِلْكُمْ | مُدْخَلًا | كَرِيمًا ﴿٣١﴾ | | | |
| ګناهونه ستاسو | اومونږ به داخل كړو تاسو | خائې دداخليدو | عزتمند ته | | | |
| واړه ګناهونه معاف كړو اودعزت خائې ته به مو داخل كړو ............ | | | | | | |

**قوله تعالى: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ**

**د شرع نه خلاف تجارت او بيع خيار:** - الله ﷻ خپل ايماندارو بندګانوته فرمائی چې تاسو ديوبل مال په باطلوطريقوسره مه خورئ.اكر چه دهغه ګنټې نه وی چې هغه شرعی طور حرامه ده.لكه سودخوری ، جواری او داسې هررنګ حيله سازی اكر چه دې ته شريعت جوازصورت وركړې وی.الله ﷻ ته ښه معلوم دی چه اصل حقيقت څه دې.

**دحرام خورئ يو صورت:** - حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه سوال اوشو چه يو سړې كپړا اخلی او وائی كه خما خوښه شوه نو دا به واخلم ګنی كپړا او يو درهم به واپس كوم. دوی ددې آيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو يعنی دا ئې باطل مال كښې شامل كړل.

حضرت عبدالله رضی الله عنه فرمائی چه دا آيت محكم دې يعنی منسوخ نه دې اونه تر قيامته پورې منسوخ كيد يشی.ددوی نه مروی دی چه كله دا آيت نازل شو نو مسلمانانو د يوبل خوارك پرينبودلو نو دې باندې دا آيت نازل شو چه ﴿لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ﴾ يعنی په ړوند باندې څه ګناه نشته

**د تجارة اعرابی وضاحت:** - او ﴿تِجَارَةً﴾ ﴿تِجَارَةٌ﴾ هم لوستلې شوې دې.دا استثناء منقطع ده.اكر چه داسې فرمائيلې كيږی دكوم مال حرمت راغلې وی مال دهغې نه وی.خوشرعی طريقې سره تجارت نه فائده اوچتول جائز دی چه د خريدار او خرڅولو والا رضامندنی سره وی.لكه بل خائې كښې فرمائی چه هيڅ يو بې ګناه سړې مه وهئ او كه په حق سره وی نو جائز دی.لكه څنګه چه بل آيت كښې دی چه هلته به دوی ته مرګ نه راځی صرف هغه مرګ چې دوئ ته په ړومبی ځل راغلې وو .(يعنی دوئ ته به بيا مرګ نه راځی).

**قوله تعالى: إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ**

**په لين دين كښې د قبلولو حكم:** - حضرت امام شافعی رحمه الله ددې آيت مبارك نه استدلال كوی او فرمائی چه اخستل خرڅول بغير د قبوليت نه صحيح نه دی.خكه چه درضامندنی پوره سند نشته دې.صرف لين دين كول هم كله كله رضامندئی باندې پوره دليل نه وی. او جمهور ددې برخلاف دی. او د درې

واړو امامانو هم دا قول دې چه څنګه ژباني خبرې اترې درضامندئ دلیل دې.هم دغه شان لین دین هم درضامندئ دلیل دې.
بعضې حضرات فرمائي چه کم قیمت معمولي څیزونوکښې خو صرف اخستل او ورکول کافي دي اودغه شان د اخستلو خرڅولو چه کومه طریقه وي.په صحیح مذهب کښې احتیاطي طور سره خبرواترو کښې که قبلولیت اوکړی نو دابله خبره ده.

**بیع د ژباني خبرو نه بغیر په تعاطي یعني مبیعې ورکولو او پیسو اخستلو سره جائز ده**

**مسلک حنفي:-** حافظ ابن کثیر رحمه الله چې درې واړه امامانو ته کوم نسبت کړې دې چې څنګه ژباني خبرې اترې درضامندئ دلیل دې.هم دغه شان لین دین هم د رضا مندئ دلیل دې.په دې درې واړه امامانو کښې امام ابوحنیفه رحمه الله هم شامل دې او دا نسبت دوی ته صحیح دې احقر شاه فیصل په تسهیل الهدایه شرح هدایه کښې لیکي ﴿بیع تعاطئ دې ته وائي.چه د ایجاب او قبول نه بغیر د مبیع او د ثمن لین دین ( اخستل خرڅول) کول،یعني که بائع مشتري ته مبیع ورکړي.او مشتري ده ته ثمن ورکړي.او د دواړو د طرفه کلام قطعا نه وي. نودا بیع به منعقد کیږي.ځکه چه په دې صورت کښې ایجاب او قبول اګرچه نه دې موجود شوې.خود بیع معنی موجود شوې ده. په دې وجه به دا بیع هم صحیح وي.(تسهیل الهدایه (۳۱۱۵)_

**د قبولو د حکم عمومیت:-** حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه اخستل خرڅول وي اوکه بښنه وي ټولو ته دا حکم شامل دې.د ابن جریریو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه تجارت رضامندی ده.او د اخستلو خرڅولونه پس اختیار دې.هیڅ یومسلمان دپاره داجائزنه دی چه بل مسلمان ته دهوکه ورکړي.داحدیث مرسل دې.

**د مجلس خیارحکم:-** پوره رضامندئ کښې دمجلس د ختمې پورې اختیاردی.بخاري او مسلم کښې دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه اخستونکي او خرڅونکي دواړو ته اختیار دې. ترکومې چه جدا شوی نه وي.(۱) بخاري شریف کښې دی چه کله دوه کسان اخستل خرڅول اوکړي نو هر یو ته اختیار دې چه ترکومې جدا شوی نه وي.(۲)ددې حدیث مطابق حضرت امام مالك رحمه الله ، حضرت امام شافعي رحمه الله او ددوی دملګرو فتوی ده او د جمهورو سلفو هم فتوی ده. اوهم پوره رضامندی په دې کښې داخله ده. داخستلو خرڅولو نه درې ورځې پس اختیار ورکول هم. اګر چه دا اختیار ټول کال پورې وي ،لکه دکلي خلقو کښې چې وي وغیره.

**په معمولي څیزونوکښې صرف اخستل ورکول کافي دي:-** دحضرت امام مالك رحمه الله مشهور مذهب هم دا دې چه ددوی په نیز صرف لین دین کولو سره بیع صحیح کیږي.د حضرت امام شافعي رحمه الله مذهب کښې هم یو دا قول دې او په دوی کښې بعضې وائي چه دمعمولي قیمت څیزونو کښې نشته دې کوم چه خلقوداخستلو خرڅولو دپاره اینبودې وي، صرف لین دین کافي دې. دبعضو اصحابو اختیار هم دا دې لکه څنګه چه متفق علیه دی.

**په خبرو اترو کښې ایجاب او قبول سره بیع پوره کیږي د مجلس ختمیدو ضرورت نشته**

**مسلک حنفي:-** د احنافو په نیز خرڅونکي او اخستونکي ته د عقد ختمولو اختیار تر هغه وخته پورې وي ترڅوچې دوی په خبرو اترو کښې عقد فیصله کړې نه وي اوچې کله عقد فیصله کړی او خرڅول اخستل

---

(۱) صحیح بخاری کتاب البیوع باب کم یجوز الخیار: ۲۱۰۸، صحیح مسلم: ۱۵۳۲، ابوداود:۳۴۵۵، نسائی : ۴۴۷۴)_
(۲) صحیح بخاری کتاب البیوع باب اذا خیر احدهما صاحبه بعدالبیع : ۲۱۱۲، نسائی:۴۴۷۳)_

پوره شي نو د دې نه پس په دوی کښې يو کس ته هم د عقد د فسخ کولو اختيار نشته اګرچې د عقد مجلس لا باقي وی ختم شوې نه وی (تفسير مظهری ۲/۲۹۹)۔

**قوله تعالى:** وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ

**حرام مال خوړل هلاکت دې:-** بيا فرمائي چه تاسو هغه مال مه خورئ چه کوم الله ﷻ حرام کړې دې اودهغه نافرماني مه کوئ ، اود يو بل مال مه خورئ ،او د يو بل مال بې ځايه مه خرڅوئ ، او ولې تاسو داسې کولو سره ځان هلاکوئ. الله ﷻ غفور ورحيم دې او هر حکم او هر ممانعت رحمت دې.

**دهلاکت يو مصداق:-** مسند احمد کښې دی چه حضرت عمرو بن عاص ﷺ د ذات السلاسل کال باندې نبی کريم ﷺ ليږلې وو. دوی فرمائي چه ماته يو شپه احتلام اوشو ، يخني ډيره وه ،تردې چه ماسره ويره شوه چه هسې نه ديخنۍ نه مړ شم ، نو ما تيمم اوکړو او خپل جماعت ته مې د سحر مونځ ورکړو. هرکله چه هلته نه واپس شو نو مونږ خلق د نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو نو ما ورته دا ټوله واقعه بيان کړه.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه آيا تا خپلو ملګرو ته د جنابت په حالت کښې مونځ ورکړو. ما اووئيل چه يارسول الله ﷺ يخني ډيره زياته وه او ماته دخپل ځان خطره وه نوماته ياد شو چه الله ﷻ فرمائي چه خپل ځان دخپله لاسه مه هلاکوئ.الله ﷻ رحيم دې ، ما تيمم اوکړو او مونځ مې ورکړو.نو نبی کريم ﷺ په خندا شو او ماته ئې هيڅ اونه وئيل.([1])يو روايت کښې دی چه نورو خلقو نبی کريم ﷺ ته بيان اوکړو او بيا د نبی کريم ﷺ په تپوس کولو سره حضرت عمرو بن عاص ﷺ ورته دا عذر اوکړو.

**قوله تعالى:** وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَٰنًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا

**دخودکشۍ کولو عذاب:-** بخاری او مسلم کښې دی چه کوم سړې اوسپنې سره خودکشي اوکړي نو تر قيامته پورې به هغه په اوسپنه ځان وهي اوخودکشي به کوی.او چه څوک په قصد د مرګ کولو نيت اوکړي او دې نيت سره زهر اوخوري نو هغه به هميشه جهنم کښې زهر خوري.([2])او يو روايت کښې دی چه کوم سړې خپل ځان په خپله يو څيز سره قتل کړی هغه به تر قيامته پورې هم دې څيز سره دځان وژلو په عذاب کښې وی.([3])

**خودکشي دجهنم تلو سبب:-** نبی کريم ﷺ فرمائي چه ستاسو نه مخکښې يو سړې زخمي شو ، هغه خپل لاس په چاړه ځان نه جدا کړو ، او د ده وينه نه اودريده ، او هم دې حالت کښې مړ شو.نو الله ﷻ اوفرمائيل چه خما بنده دخپله لاسه خپل ځان فنا کولو کښې تيزی اوکړه. ما ده باندې جنت حرام کړو([4])

هم ددې وجې الله ﷻ فرمائي چه کوم کس دا په ظلم او زياتۍ سره اوکړي يعنی ده ته معلومه وی چه دا حرام دی او بيا هم دې دا اوکړی په دې حرام کولو دې زړه ور وی نو دې جهنمي دې.نو هر عاقل لره پکار دی چه ددې سختې ويرې نه اوويريږي.د زړه په غوږونو سره دالله ﷻ فرمان واوری نو ددې نه اجتناب کول پکار دی.

---

[1]) صحيح بخاری کتاب التيمم باب اذا خاف الجنب على نفسه: ...تعليقا قبل حديث : ۳٤۵، او حافظ ابن حجر ددې سند ته صحيح وائی الفتح: ۱/٤۵٤، ابوداود: کتاب الطهارة باب اذا خاف الجنب البرد: ۳۳٤)-

[2]) صحيح کتاب الطب باب شرب السم:۵۷۷۸، صحيح مسلم: ۱۰۹، ابوداود: ۳۸۷۲، ترمذی: ۲۰٤۳، وابن ماجة: ۳٤٦۰،نسائی : ۱۹٦۷)-

[3]) صحيح بخاری کتاب الايمان والنذور باب من حلف بملة سوى الاسلام : ٦٦۵۲، صحيح مسلم: ۱۱۰، ابوداود: ۳۲۵۷، ترمذی: ۱۵٤۳، نسائي: ۳۸٤٤)-

[4]) صحيح بخاری کتاب الجنائز باب ماجاء فی قاتل النفس: ۱۳٦٤، صحيح مسلم: ۱۱۳)-

**د گناه کبیره بیان:-** بیا فرمائی که تاسو د لویو لویو گناهونه نه بچ شوئی نو مونږ به ستاسو واړه واړه گناهونه معاف کړو. او تاسو به جنت ته داخل کړو. حضرت انس ﷺ نه مرفوعاً مروی دی چه مونږ ته درب کریم دطرفنه کوم مثال راغلې دې مونږ دهغې په شان مثال نه دي لیدلي. بیابه مونږ ددې دپاره دخپل اهل اومال نه جدا نشو ځکه چه هغه د کبیره گناهونونه سوا زمونږ واړه گناهونه معاف کوی. بیا ئې ددې آیت تلاوت اوفرمائیلو. (۱)

**دجمعې په مانځه گناهونه معاف کیدل:-** ددې آیت متعلق ډیر احادیث دی. څه لږ ډیر مونږ دلته بیانوو. مسنداحمد کښې حضرت سلمان فارسی ﷺ نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاسوته معلوم دی چه د جمعې ورځ څه ده ؟ ما جواب ورکړو چه دا هغه ورځ ده چه په دې کښې الله ﷺ خمونږ پلار حضرت آدم ﷺ پیدا کړې وو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه واوره چه څه ماته معلوم دی هغه واوره. چه کوم سړې په دې ورځ په ښه شان پاکي حاصل کړی. اود جمعې مونځ دپاره راشی او مونځ ختمیدو پورې چپ ناست وی نو دده دا عمل د راتلونکې جمعې پورې دده دگناهونو کفاره جوړیږی تر څو چه دې د قتل نه بچ وی (۲)

**په مونځ روژه او زکاة د گناهونومعاف کیدل:-** ابن جریر کښې دی چه یو ځل نبی کریم ﷺ خطبه اوفرمائیله او وې فرمائیل چه په هغه رب قسم چه دهغه په لاس کښې خما روح دې. او درې ځله ئې دا اوفرمائیل او نبی کریم ﷺ سر مبارك ښکته کړو او مونږ هم سرونه ښکته کړل او خلق په ژړا شو او ژړونه ئې په ژړا باندې تش کړل چه دالله ﷺ رسول په څه ځیز قسم کړې دې او بیا ولې خاموش شو. لږ وخت پس ما سر اوچت کړو اود نبی کریم ﷺ مخ مبارك باندې خوشحالی وه او ودې سره مونږ هم دومره خوشحاله شو که چرې مونږ ته سور رنگې اوښان ملاؤ شوی وې نو دومره به نه وې خوشحاله شوې. اوس نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم بنده پنځه وخت مونځ کوی او درمضان روژې نیسی اوزکوة ورکوی او اووه کبیره گناهونونه بچ اوسی نو دده دپاره د جنت ټولې دروازې بیرته کولې شی او ده ته به اوونیلې شی چه سلامتی سره دې ته داخل شه. (۳)

**اووه لوئې گناهونه :-** چه دکومو اووه گناهونویه دې حدیث کښې ذکر دې دهغې تفصیل بخاری اومسلم شریف کښې داشان راغلې دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ددې اووه گناهونو نه بچ اوسئ ځکه چه دا هلاکونکې دی. تپوس اوشو چه یارسول الله ﷺ هغه کوم کوم دی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ① الله ﷺ سره شرك کول ② اوهغه ( نفس ) قتل کول چه د کوم قتل الله ﷺ حرام کړې دې. خو که په څه شرعی وجه دده وینه حلاله شوې وی نو دا بله خبره ده. ③ او جادو کول ④ او سود خوړل ⑤ او دیتیم مال خوړل ⑥ او کله کفارو سره جنگ وی نو دمیدان جنگ نه تښتیدل. ⑦ او په پاکو ښځو تهمت لگول. (۴)
یو روایت کښې دجادو بدله کښې هجرت کول او واپس خپل و طن ته راتلل. (۵)

**دیوغلط خیال تردید:-** دا یاد ساتئ دې اووه گناهونوته د کبیره وئیلو دا مطلب نه دې چې کبیره گناهونه صرف هم دادی لکه څنگه چه دبعضو خلقو خیال دې او دهغوئ په نیز مفهوم مخالف معتبر دې. دراصل دا ډیر کمزورې خیال دې او غلط اصول دی. اوخاص کر په هغه وخت کښې چه کله ددې خلاف

---

(۱) حافظ ابن حجر مختصر زوائد البزار: ۷۸/۲،
(۲) احمد: ٤٠٤ ١)-
(۳) نسائی کتاب الزکاة باب وجوب الزکاة: ۸/۵ ح/۲٤٤۰، وسنده حسن لذاته)-
(۴) صحیح بخاری کتاب الحدود باب فی المحصنات : ٦٨٥٧، صحیح مسلم: ۸۹، ابوداود: ۲۸۸٤، نسائی: ۳۷۰۱)-
(۵) ابن ابی حاتم والبزار کشف الاستار:

دلیل موجود وی. اودلته خوښکاره لفظونو کښې د کبیره ګناهونو ذکر هم موجود دې.دالاندې احادیث اوګورئ.

**نبی کریم سره په جنت کښې د ملګرتیا اعمال:-** مستدرك حاکم کښې دی چه حجة الوداع کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انې خلقو ! دالله ﷻ ولی صرف مونځګزار دی چه کوم پنځه وخته مونځ کوی په پابندئی سره چه څوك د رمضان روژې نیسی اودا فرض منی او د ثواب په نیت نې ساتی ، هم داشان زکوة ورکوی په خوشحالئ ، او دټولو کبیره ګناهونو نه بچ اوسی د کومو نه چه الله ﷻ منع کړی ده.یو سړی تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! هغه کبیره ګناهونه کوم کوم دی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ① شرك کول ② قتل کول ③ میدان جنګ نه تیښته کول ④ د یتیم مال خوړل ⑤ سود خوړل ⑥ پاك دامنو ښځو باندې تهمت لګول ⑦ د مور پلار نافرمانی کول.⑨دبیت الحرام حرمت ماتول چه په مرګ او ژوند کښې ستاسو قبله ده.واورئ ! چه کوم سړې تر مرګه پورې ددې ګناهونو نه بچ پاتې شی او مونځ کوی او زکوة ورکوی ، هغه به دالله ﷻ نبی ﷺ سره جنت کښې په سرو محلونو کښې وی.(١)

**دکبیره ګناهونو نه ځان ساتل دجنت داخلیدو سبب:-** حضرت طیلسه بن میاس ﷺ فرمائی چه مانه یو ګناه اوشوه چه ځما په نیز کبیره وه. ما حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ ته ددې ذکر اوکړو نو دوی اوفرمائیل چه هغه کبیره ګناهونه نهه دی.① الله ﷻ سره شرك کول ② یو سړې بغیر د څه وجې قتل کول ③ د میدان جنګ نه تښتیدل ④ په پاکو ښځو باندې تهمت لګول ⑤ سود خوړل ⑥ دیتیم مال په ظلم خوړل ⑦ جمات حرام کښې الحاد خورول ⑧ جادو جائز ګنړل ⑨ او د موړپلار نافرمانی کول.حضرت طیلسه بن میاس رحمه الله فرمائی چه ددې بیان نه پس حضرت ابن عمر اوکتل چه ځما ویره هیڅ کمه نه شوه نو وې فرمائیل چه آیا ته دا غواړې چه د جهنم د اور نه بچ شې او جنت ته داخل شې ؟ نو ما اوفرمائیل چه آو.نو وې فرمائیل چه ستامور پلار ژوندی دی ؟ ما اووئیل چه صرف پلار مې ژوندې دې.وې فرمائیل چه ته هغه سره نرمې خبرې کوه او هغه ته خوراك ورکوه او ددې کبیره ګناهونو نه بچ اوسه ، ته به یقینی طور جنت ته داخل شې.(٢)

**دلویو ګناهونو یو بل روایت:-** اویو روایت کښې دی چه حضرت طیلسه رحمه الله سره حضرت ابن عمر ﷺ میدان عرفات کښې د ونې دلاندې ملاقات شوې وو. په هغه وخت کښې حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ په خپل سر او مخ باندې اوبه اچولې. په دې کښې دا هم دی چه کله حضرت عبدالله ﷺ دتهمت لګولو ذکر اوکړو نو ما اووئیل چه دا هم په د قتل پشان لویه ګناه ده څه ؟ هغوئ اوفرمائیل چه آو.او په دې کښې د جادو دګناه هم ذکر دې.او یو روایت کښې دی چه ځما اودهغه ملاقات د مابنام په وخت کښې شوې وو او ما دهغوئ نه د کبائرو ګناهونو باره کښې تپوس کړې وو نو وې فرمائیل چه ما رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه کبائر اووه دی ، ما تپوس اوکړو چه کوم کوم دی.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ①چه شرك ②او تهمت.ما اووئیل چه دا هم په د قتل پشان دی.وې فرمائیل چه آو. ③او یو مومن بغیر دڅه سبب نه وژل ④اودجنګ نه تښتیدل ⑤او جادو کول ⑥اوسود خوړل ⑦اودیتیم مال خوړل ⑧او د مور پلار نافرمانی کول او ⑨بیت الله شریف کښې الحاد کول چه په ژوند او مرګ ستاسو قبله ده.(٣)

**د کبیره ګناهونو یو بل فهرس:-** مسند احمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه ①د الله ﷻ یو بنده الله ﷻ سره شریك نه وی جوړ کړی،مونځ قائموی② درمضان روژې اونیسی③ او دکبیره ګناهونو نه

---

(١) حاکم: ٥٩/١، ابوداود کتاب الوصایا باب ماجاء فی التشدید فی اکل مال الیتیم : ٢٨٧٥، نسائی: ٤٠١٧،

(٢) ابن جریر والبخاری فی الادب المفرد: ٩، وسنده صحیح)-

(٣) الطبری: ٩١٨٩، موقوفا

بچ شي نو هغه جنتي دي.یو سړي تپوس اوکړو چه یارسول ﷺ کبائر څه دي؟نبي کریم ﷺ اوفرمائیل ①چه الله ﷻ سره شرك کول ②مسلمان لره قتل کول ③دجنګ په ورځ تیښته کول.[1]

**دکبیره ګناهونو یوبل روایت:-** ابن مردویه کښې دي چه نبي کریم ﷺ د یمن خلقو ته یو کتاب لیکلې اولیږلو چه په هغې کښې فرائض سنن وو،دیت یعنی دجرمانو احکام وو ، اودا کتاب ئې دحضرت عمروبن حزم په لاس یمن ته لیږلې وو. په دې کتاب کښې دا هم وو چه دقیامت په ورځ به په ټول کبیره ګناهونو کښې دټولونه لویه ګناه دا وی ①چه انسان الله ﷻ سره څوك شریك جوړ کړی ②او یو ایماندار سړې قتل کړی بغیر حق نه ③اودالله ﷻ لارکښې جهاد کښې جنګ کوی او بیا بیغیرتوب اوښائی او خان بچ کولو دپاره اوتښتی ④، اودمور پلارنافرمانی کوی ⑤او په ښځو باندې الزام لګوی ⑥ ، او جادو کوی ⑦ اوسود خوری ⑧، او دیتیم مال بربادوی.[2]

**په کبیره ګناهونوکښې یوه بله اضافه:-** یو روایت کښې دي چه کبیره ګناهونوکښې دروغ خبره یا د دروغو شهادت هم دې.[3]او یو حدیث مبارك کښې دی چه دکبیره ګناهونو دبیانولو په وخت کښې نبي کریم ﷺ تکیه وهلې ناست وو. لیکن کله چه ئې دابیان اوفرمائیلو چه د دروغو ګواهی او د دروغو خبره نو په هغه وخت کښې دوی د تکیه نه پاسیدل او ډیر زور سره ئې دا خبره بیان بیان کړه او باربار ئې دا بیانوله.تردې چه مونږ اوونیل چه کاش اوس حضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم ددې تکرار نه کوی.

**کبیره ګناهونوکښې یوبله اضافه:-** بخاری او مسلم کښې دی چه حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نبي کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! کومه ګناه د ټولو نه لویه ده ؟نبي کریم ﷺ اوفرمائیل ①چه ته څوك الله ﷻ سره شریك جوړ کړې ددې باوجود چه ته صرف هغه پاك ذات پیدا کړې ئې. ما تپوس اوکړو چه دې نه پس②نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته خپل بچی ددې ویرې نه قتل کړې چه هغوئ به تاسره خوراك کوی ③ما تپوس اوکړو کومه ګناه ډیره لویه ده ؟③نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته خپلې ګوانډئ سره بدکاری اوکړې،بیا نبي کریم ﷺ دا آیت مبارك تلاوت کړو چه ﴿وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ تا إِلَّا مَنْ تَابَ﴾.[4]

**په لویوګناهونوکښې د شرابو د څکلو ذکر:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمروبن عاص ﷺ دمسجد حرام حطیم کښې دننه ناست وو.اوسړی ترینه د شرابو باره کښې تپوس اوکړو نو دوی اوفرمائیل چه زما پشان بوډا ډیر عمر والا سړې په دې ځائې کښې کښینې او دالله رسول ﷺ باندې دروغ ونیلې شی؟دشر ابو څکل د ټولو ګناهونو نه لویه ګناه ده.دا کار دټولو خباثتو مور ده.شرابی مونځ نه کوی.هغه خپلې مور ، ترور سره دزنا کولو نه نه منع کیږی.[5]دا حدیث مبارك غریب دې.

**د شرابوڅکلو تباهی :-** ابن مردویه کښې دی چه حضرت ابوبکرصدیق ﷺ ، حضرت عمر فاروق ﷺ او نور صحابه کرام ﷺ یو خل یو مجلس کښې ناست وو ،هلته د ګناه کبیره ذکر اوشو چه دټولو نه لویه ګناه کومه یوه ده. نوچا سره څه خاص جواب نه وو. ددې وجې هغوئ حضرت عبدالله بن عمر ﷺ اولیږلو چه ته لاړ شه او حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ﷺ نه دې باره کښې تپوس اوکړه. څه لاړم

---

[1] احمد: ۴۱۳/۵، کتاب تحریم الدم باب ذکر الکبائر : ۴۰۱۴؛
[2] ابن مردویه وحاکم: ۳۵۹/۱، ح/۱۴۴۷، وصحیح ابن حبان: مع الاحسان: ۶۵۲۵، صحیح مسلم: ۸۸)-
[3] صحیح بخاری کتاب الادب باب عقوق الوالدین من الکبائر:۵۹۷۶، صحیح مسلم: ۸۷، ترمذی: ۱۹۰۱)-
[4] صحیح بخاری کتاب الادب باب قتل الولد خشیة ان یاکل معه: ۶۰۰۱، صحیح مسلم: ۸۶)-
[5] طبرانی : ۱۱۳۷۲

او هغه راته اوونیل چه د ټولو نه لویه ګناه شراب څکل دی.خه چه واپس راغلم او د مجلس خلقو ته مې
جواب واورولو. خو دې سره د مجلس خلقو ته اطمینان ملاوشو. اوټول حضرات پاسیدل او د حضرت
عبدالله بن عمرو بن عاص ﷺ کورته لاړل او پخپله ئې دهغوئ نه دې باره کښې تپوس اوکړو. نو هغوئ
اوفرمائیل چه خلقو د نبی کریم ﷺ مخکښې یو واقعه بیان کړه چه بنی اسرائیلو کښې یو بادشاه یو
سړې ګرفتار کړو،بیا ئې هغه ته اوونیل چه یا خو د خپل خان نه لاس اووینځه او یا په دې کارونو کښې
یو اوکړه. یعنی یا خو شراب اوڅکه یا په ناحقه قتل اوکړه یا زنا اوکړه یا د خنزیر غوښه اوخوره.د دغو
غور کولو نه پس د خان د ویرې لړ شان شراب اوڅکل.هرکله چه ئې شراب اوڅکل نو نشه شو او بیا ئې
هغه ټول کارونه اوکړل چه کومو نه دې روستو شوې وو. نبی کریم ﷺ چه کله دا واقعه بیان کړه نو
مونږته ئې اوونیل چه کوم سړې شراب څکی نو تر څلویښتو ورځو پورې دهغه مونځ نه قبلیږی او چه
څوك دشرابو څکلو عادت کښې مړ شی اودده مثانه کښې لړ شان شراب هم وی نو په هغه باندې الله
ﷻ جنت حراموی. اوکه دشرابو څکلو نه څلویښتو ورځو کښې دننه مړ شی نو دې دجاهلیت په
مرګ مړ شی.دا حدیث غریب دې [1]

**په دروه قسم خوړل:** یو روایت کښې دی چه په دروغه قسمه خوړلو ته هم الله ﷻ ګناه کبیره وئیلې ده
بخاری وغیره). [2]

**د ګناه په وجه تور داغ لګیدل:**- ابن ابی حاتم کښې د دروغوقسم بیان نه پس دا فرمان هم دې چه څوك
دالله ﷻ قسم اوکړی او یو خبره اوکړی او په هغې د مچ دوزرې برابرهم زیاتې اوکړی ، نو دده زړه
باندې یو تور داغ اولګی چه تر قیامته پورې باقی وی.

**مورپلارته کنځل کول:**-ابن ابی حاتم کښې دی چه داهم ګناه کبیره ده چه انسان خپل مور پلار ته کنځل
اوکړی. خلقو تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! څوك به مور پلارته څنګه کنځل کوی ؟نبی کریم ﷺ
اوفرمائیل چه څوك دبل مور پلار ته کنځل اوکړی نودا داسې دی لکه چه ده خپل مور پلار ته کنځل
اوکړه. که ده دهغه پلار ته ، دهغه مور ته بدرد اوونیل نو ده دا خپل مور پلار ته اوونیل.

**مورپلارباندې لعنت وئیل:**- بخاری شریف کښې دی چه د ټولو نه لویه ګناه داده چه سړې خپل مور پلار
باندې لعنت اووائی.خلقو اوونیل چه دا څنګه کیدیشی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د بل مور
پلارباندې لعنت وئیل خپل مور پلار باندې لعنت وئیل دی [3].

**مسلمان ته کنځل کول:**- صحیح حدیث مبارك کښې دی چه مسلمان ته کنځل کول سړې فاسق
جوړوی.اودده قتل کول کفر دې. [4]

**مسلمان بې عزته کول:**- ابن ابی حاتم کښې دی چه اکبرالکبائر یعنی ټولو کبیره ګناهونوکښې د ټولو نه
لویه د مسلمان عزت اخستل دی ، او د یو کنځل بدله کښې دوه کنځل دی [5].

**دوه مونځونه جمع کول:**- ترمذی کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې دوه مونځونه بغیر د
عذر نه جمع کړی هغه د کبیره ګناهونو یو دروازه باندې داخل شو [6].

---

[1]) حاکم: ۱۴۷/٤، وصححه علی شرط مسلم وسنده حسن المعجم الاوسط: ۳٦٥)-

[2]) صحیح بخاری کتاب استابة المرتدین باب اثم من اشرک بالله: ٦٩٢٠)-

[3]) صحیح بخاری کتاب الادب باب لا یسب الرجل والدیه: ٥٩٧٣، صحیح مسلم: ۹۰، ابوداود: ٥١٤١، ترمذی: ۱۹۰۲)-

[4]) صحیح بخاری کتاب الایمان باب خوف من ان یحبط وهو لا یشعر : ٤٨ صحیح مسلم: ٦٧)-

[5]) ابوداود کتاب الایمان باب ل الغیبة : ٤٨٧٧،

[6]) ترمذی: کتاب الصلاة باب ماجاء فیمن ادرک رکعة من العصر قبل ان تغرب الشمس : ۱۹۹،

ابن ابی حاتم کښي دي چه دحضرت عمر بن خطاب ﷛ کتاب چه خمونږ مخکښي اولوستي شو په هغې کښي وو چه دوه مونځونه بغیر د څه عذر نه یو ځائې کول گناه کبیره ده .او دجنګ میدان نه تښتیدل او مال لوټ کول گناه کبیره ده.خلاصه دا چې ماسپخین یا مازیګر یا ماسخوتن وخت نه مخکښي وخت کښي بغیر د څه شرعي عذر نه جمع دوه مونځونه جمع کول گناه کبیره ده.بیا چه کوم سړي ئې بالکل نه کوي دهغه د گناه به لا څه وائي.

**د مونځ پریخودو گناه:-** صحیح مسلم او صحیح بخاری کښي دي چه دبنده او شرك ترمینځه دمونځ پریښودل دي [1] دسنن یو حدیث مبارك کښي دي چه مونږ کښي اوکافرو کښي فرق کونکي د مونځ پریښودل دي.چا چه داپریښودلو نو هغه کفر اوکړو [2] او یوروایت کښي دي چه د نبی کریم ﷺ فرمان دې چا چې د مازیګر مونځ پریښودو دهغه اعمال تباه شو. [3] اوحدیث مبارك کښي دي چا نه چې د مازیګر مونځ فوت شو.نو دده مال او دده اهل وعیال هلاك شول. [4]

**په الله باندې بدګمانی کول:-** ابن ابی حاتم کښي دي چه یو سړی نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه گناه کبیره کومې کومې دي ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ① الله تعالی سره شرك کول. ② دالله ﷻ رحمت او نعمت نه نااُمیده کیدل.③ اودهغه د نیولو نه بې خوف کیدل .او دا ټولو نه لویه گناه ده.

هم ددې په شان یو بل روایت هم د امام بزار نه مروی دی ،لیکن زیات صحیح داې اود حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ باندې موقوف دې. [5] ابن مردویه کښي دی چه حضرت ابن عمر ﷛ فرمائی د ټولو نه لویه گناه الله ﷻ باندې بدګمانی کول دی.او دا روایت ډیر غریب دې. [6]

**هجرت ترک کول:-** مخکښي چه کوم روایت تیر شوې دې چه په هغې کښي د هجرت نه پس د کفر وطن ته واپس تلل اوهغې کښي اوسیدل هم گناه کبیره ده. دا حدیث شریف ابن مردویه کښي دې.اووه کبیره گناهونو کښي ئې یوه دا هم شمار کړه. خو په دې کښي نظر(په دې لفظ سره د حدیث ضعف ته اشاره وی) دې اودې ته مرفوع وئیل غلط دی. [7]

**د ابن کثیر ﷫ رائې:-** صحیح خبره هغه ده چه کومه تفسیرابن جریر کښي مروی ده چه حضرت علی ﷛ یوځل دکوفې جمات کښي ولاړ وو اوخلقو ته ئې خطبه وئیله. اودې خطبه کښي ئې اوفرمائیل چه ائې خلقو!کبیره گناهونه اووه دی.دې آوریدو سره خلق په چغو شو. دوی دا دوباره اوئیل. بیا ئې اوفرمائیل.بیا ئې اوفرمائیل چه تاسو څما نه ددې تفصیل نه غواړئ؟ خلقو اوویل چه ائې امیر المومنین ! اوفرمائي هغه کومې کومې دی.حضرت علی ﷛ اوفرمائیل چه ① الله ﷻ سره شرك کول.② چه کوم نفس الله ﷻ حرام کړې وی هغه قتل کول ③ پاکو ښځو باندې تهمت لګول ④ دیتیم مال خوړل ⑤ سود خوړل ⑥ د جنګ دوران کښې تیښته کول ⑦ هجرت نه پس بیا دوباره دارالکفر کښي اوسیدل.دحدیث راوی حضرت محمد بن سهیل ﷫ خپل پلار حضرت سهیل بن خثیمه ﷫ نه تپوس اوکړو چه دائې څنګه په گناه کبیره کښې داخل کړل.نو دوی اوفرمائیل چه خوږه څویه ددې نه به زیات

[1] صحیح مسلم کتاب الایمام باب بیان اطلاق اسم الکفر علی من ترک الصلاة : ۸۲، ابوداود: ۲۶۲۰، ابن ماجة: ۱۰۷۹)-
[2] ترمذی کتاب الایمان باب ماجاء فی ترک الصلاة : ۲۶۲۱، وسنده صحیح ، نسائی : ٤٦٤، ابن ماجة: ۱۰۷۹)-
[3] صحیح بخاری کتاب مواقیت الصلاة باب اثم من فاتته العصر : ۵۵۲، صحیح مسلم: ۶۲۶)-
[4] صحیح بخاری کتاب مواقیت الصلاة باب اثم من فاتته العصر : ۵۵۲، صحیح مسلم: ۶۲۶)-
[5] ابن ابی حاتم: وسنده حسن البزار کشف الاستار : ۱۰۶، وهوحسن ، مجمع الزوائد : ۱۰٤/۱)
[6] ابن مردویه
[7] ابن جریر

ظلم څه وی چه یو سړې هجرت اوکړی او مسلمانانو سره یو ځاني شی ، مال غنیمت کښې ورته حصه مقرر شی ، مجاهدینو کښې دده نوم اولیکلې شی ، بیا هغه داټول څیزونه پریږدی او اعرابی جوړ شی او دارالکفر ته لاړشی او لکه څنګه چه وو هغه شان شی. [1]
**په وصیت کښې طرفدار لویه ګناه ده:-** مسنداحمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ حجة الوداع کښې خطبه اوفرمائیله او وې فرمائیل چه خبردار هغه (ګناهونه) څلور دی. ① الله تعالی سره شریك مه جوړوئې ② ناحق قتل مه کوئې خو شرعی اجازت بل څیز دې ③ زنا مه کوئې ④ غلا مه کوئې [2] هغه حدیث مخکښې تیر شوې دې. کوم کښې چه دی چه وصیت کولو کښې چاته نقصان رسول ګناه کبیره ده. [3]
**دکبیره ګناهونوپه فهرس کښې بله اضافه:-** ابن جریر کښې دی چه ﷺ صحابه کرامو ﷺ یو خل دګناه کبیره ذکر اوکړو ① چه الله تعالی سره شریك جوړول. ②دیتیم مال خوړل. ③ جنګ نه تیښته کول ④ پاکو ښځو باندې تهمت لګول ⑤. دمور پلار نافرمانی کول ⑥. دروغ ونیل ⑥. دهوکه کول ⑦ خیانت کول ⑧. جادو کول. ⑨سود خوړل. داټول ګناه کبیره دی.نو ر سول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسو به هغه ګناهونوسره څه کوئې چه کوم خلق دالله ﷻ وعدې اوخپل قسمونه لږ لږ قیمت باندې خرڅوی.آخر آیت پورې سدوی تلاوت اوفرمائیلو [4]،ددې اسناد ضعیف دی.اوداحدیث حسن دې.نو دې ټولو احادیثوکښې د ګناه کبیره ذکر موجود دې.
**دګناه کبیره باره کښې دعمر ﷺ نه تپوس:-** اوس دې باره کښې د سلفو صالحین اقوال اوګورئې.ابن جریرکښې دی چه څه خلقو مصر کښې حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ نه تپوس اوکړو چه مونږ ډیرې داسې خبرې ګورو چه په هغې څمونږ عمل نشته دې.ددې وجې مونږ دې باره کښې امیر المومنین حضرت عمرفاروق ﷺ نه تپوس کوو. حضرت ابن عمرو ﷺ دوی سره مدینې منورې ته راغلل او حضرت عمرفاروق ﷺ سره ملاؤ شو دوی تپوس اوکړو چه کله راغلی یئ؟ هغوئ جواب کښې اونیل چه دومره وخت مو اوشو. هغوئ نه ئې تپوس اوکړو چه تاسوساجازت غوښتلې دې که نه؟ ددې جواب ورکولو نه پس ئې ددې خلقو ذکراوکړو. دوی اوفرمائیل چه هغوئ جمع کړئې.بیا هغوئ دوی ته راغلل او په هغوئ کښې ئې یو نه تپوس اوکړو چه ستا دې په الله ﷻ او په قرآن قسم وی چه تا پوره قران پاك لوستې دې ؟ هغه اوونیل چه آؤ. وې فرمائیل چه تا دا په زړه کښې محفوظ کړې دې.هغه اوونیل چه نه.اوکه آؤ ئې کړې وې نو حضرت عمرفاروق ﷺ به هغه عاجز کړې وې.بیا ئې اوفرمائیل چه دا خپل نظر کښې خپله ژبه کښې او خپل چال کښې راګیر کړې دې.بیا یو یو نه ئې دا سوال اوکړو. بیا ئې اوفرمائیل چه تاسو عمر دې مشقت کښې اچول غواړئې چه د خلقو ژوند د کتاب الله مطابق صحیح شی.څمونږ رب ته مخکښې څمونږ د خطا ګانو علم وو. بیا دوی آیت ﴿إِن تَجْتَنِبُوا﴾ تلاوت کړو. بیا ئې اوفرمائیل چه آیا اهل مدینه ته ستاسو د راتګ سبب معلوم دې ؟ هغوئ اوونیل چه نه .وې فرمائیل چه دوی‌وې فرمائیل که چرې هغوئ ته ددې علم وې نو مابه دې باره کښې هغوئ ته هم وعظ کړې وې.ددې اسناد حسن دی او متن هم حسن دې.اګر چه دا روایت حسن رحمه الله د حضرت عمرفاروق ﷺ نه نقل دې.او په هغې کښې انقطاع ده. لیکن دومره نقصان سره دده پوره شهرت حاصل دې.

[1]) الطبری: ۳۹/٤)-
[2]) احمد: ۳۳۹/٤، وهو صحیح)-.
[3]) دار قطنی : ۱۵۱/٤،
[4]) الطبری: ۹۲۲۷،

**د کبائرو بل فهرست:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت علی ﷺ فرمائی چه ګناه کبیره دادی ① الله تعالی سره شرك کول ② چا لره قتل کول ③ دیتیم مال خوړل ④ پاکه ښځه باندې تهمت لګول ⑤ دجنګ نه تیښته کول ⑥ هجرت نه پس دارالکفر کښې قیام کول ⑦ جادو کول ⑧دمور پلار نافرمانی کول.سود خوړل ⑨ جماعت نه جدا کیدل ⑩ خریدوفروخت ماتول.مخکښې تیر شوی دی چه حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائی چه د لوئې نه لویه ګناه الله تعالی سره شریك جوړول او دالله ﷻ رحمت نه مایوسه کیدل دی.او دالله ﷻ مکرنه نه ویریدل.ابن جریر ددوی نه روایت کوی چه دسورة نساء دشروع نه واخله تردیرشو آیتونو پورې ګناه کبیره بیان شوی دی.بیادوی داآیت مبارك تلاوت کړوچه ﴿إِن تَجْتَنِبُوا﴾.

**د زیاتی اوبو اوواښو منع کول کبیره ګناه ده:** بریده ﷺ فرمائی چه کبیره ګناهونه(دادی) ① الله ﷻ سره شریك جوړول② موریلار رخفه کول ③هرکله چې اوبه ډیرې وی او(دضرورت نه زیاتې وی) نودا خلقوته نه ورکول④ ده سره چې کوم نرخناور وی دهغې بدله کښې ماده ورکول اوپدې څه نه اخستل[1]

بخاری او مسلم یو مرفوع حدیث کښې دی چه نه دې د بچ شوو اوبو منع اوکړې شی اونه دې د بچ شوی واښو نه منع اوکړې شی. [2]

او یو روایت کښې دی چه درې قسمه ګناهګارو ته به الله تعالی د قیامت په ورځ د رحمت نظر نه کوی او نه به دوی پاکوی. بلکه دوی دپاره دردناك عذاب دې ، یوهغه سړې چه په ځنګل کښې د بچ شوو اوبو نه مسافر منع کړی [3]مسنداحمد کښې دی چه کوم کس د بچ شوې اوبه او بچ شوې واښو نه منع اوکړی نو الله ﷻ به دقیامت په ورځ په ده خپل فضل نه کوی.حضرت عائشه ﵂ فرمائي چه کبیره ګناهونه هغه دی چه کوم ښځو نه دبیعت اخستلو په بیان کښې تیر شوی دی یعنی آیت ﴿عَلَىٰ أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا الخ﴾.

یو ځل حضرت انس بن مالك ﷺ ددې آیت دعظیم الشان احسان بیان فرمائی.اوبه دې باندې ئې ډیرد خوشحالۍ اظهاراوکړویعنی ایت (ان تجتنبوا)

**دابن عباس په نیز د کبیره ګناه تعریف:-** یو ځل د حضرت ابن عباس ﷺ مخکښې خلقو اووئیل چه ګناه کبیره اووه دی.دوی اوفرمائیل چه ډیر ډیر خله اووه دی.دویم روایت کښې دی چه دوی اوفرمائیل چه اوه خو کم درجه ده ګنې اویا دی دیو بل سړی په مخکښې دوی اوفرمائیل چه هغه اووه سوه دی.او اووه خو ډیر نزدې دی.یاد ساتئ د استغفار نه پس کبیره کبیره نه پاتې کیږی. او په ګناه باندې همیشوالی کولو سره صغیره ګناه صغیره نه پاتې کیږی.او بل سند سره مروی دی چه دوی اوفرمائیل چه کومه ګناه باندې چې د جهنم یا د الله د غضب یا د لعنت یا د عذاب وعید بیان شوې دې هغه کبیره دی.اویو روایت کښې دی چه کومو نه الله تعالی منع اوفرمائی هغه کبیره دی.چه په کوم کار کښې دالله ﷻ نافرمانی وی هغه لوئې ګناهونه دی.

**د ګناه کبیره په باره کښې د تابعینو اقوال:-** دتابعینو اقوال هم اوګورئې.عبیده ﷫ فرمائی چه کبیر ګناهونه دا دی ① الله تعالی سره شرك کول ② قتل نفس بغیر حق ③ میدان جنګ نه تښتیدل ④

[1] ابن ابی حاتم موقوفا والبزار: ۱۰۷،
[2] صحیح بخاری کتاب المساقات باب من قال ان صاحب الماء احق بالماء: ۲۳۵۳، صحیح مسلم: ۱۵۶۶، ترمذی: ۱۲۷۲، ابن ماجة: ۲۴۷۸)۔
[3] صحیح بخاری کتاب المساقات باب اثم من منع ابن السبیل من الماء : ۲۳۵۸، صحیح مسلم: ۱۰۸، ابوداود: ۳۴۷۳، ابن ماجة: ۲۲۰۷)۔

دیتیم مال خوړل ⑤ سود خوړل ⑥ بهتان لګول ⑦ هجرت نه پس وطن ته واپسی. د حدیث راوی ابن عون دخپل استاد محمد رحمه الله نه تپوس اوکړو چه آیا جادو ګناه کبیره دې؟ وې فرمائیل چه دا بهتان کښې راغلو. دا لفظ ډیرو بدو ته شامل دې.

**شرک:-** حضرت عبیده بن عمیر رضی الله عنه په ګناه کبیره باندې دقرآن پاک آیت تلاوت کړو شرک باندې: ﴿وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ الخ﴾ یعنی الله ﷻ سره شرک کولو والا داسې دې لکه چه دآسمان نه راپریوتو نودې مارغان اونیسی او دې به بوځی، یا ئې هوا یو نامعلوم ځائې کښې اوغورځوی.

**د یتیم مال خوړل:-** دیتیم دمال باره کښې ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا﴾ (ترجمه) "چه کوم خلق ظلم سره دیتیم مال خوری هغوئ خپلو خیټو کښې د جهنم اور اچوی.

**سود خوړل:-** دسودخورنی باره کښې دی چه ﴿الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا﴾ (ترجمه) چه کوم خلق سود خوری هغوئ به د قیامت په ورځ مخبوط الحواس او پاګل جوړ شی اوولاړ به وی.

**تهمت لګول:-** په پاکدامنو ښځو باندې د تهمت لګولو باره کښې دی ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ﴾ (ترجمه) چه کوم خلق په پاکو بې خبرو ایماندارو ښځو باندې تهمت اولګوی.

**د دشمن نه تیښته کول:-** په میدان جنګ کښې د دشمن نه د تیښتې په باره کښې دی. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ الْأَدْبَارَ﴾ الخ(ترجمه) " ائې ایمان والو اکله چه کافرو سره تاسو د جنګ دپاره مخامخ شئ نو مخ مه اړوئې.

**هجرت نه پس وطن ته واپس کیدل:-** هجرت نه پس کفرستان کښې اوسیدو باندې ﴿إِنَّ الَّذِينَ ارْتَدُّوا عَلَىٰ أَدْبَارِهِم﴾ الخ. (ترجمه) چه کوم خلق هدایت نه پس مرتد شی.

**د مؤمن قتل:-** دمومن قتل باره کښې دی ﴿وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا﴾ الخ. (ترجمه) "چه څوک یو مسلمان په قصد سره اوژنی دهغه سزا جهنم ده او دې کښې به همیشه وی.

**د دروغو ګواهی ورکول:-** حضرت عطاء رحمه الله نه هم دګناه کبیره بیان نقل شوې دې او په هغې کښې د دروغو ګواهی ده. **صحابوٌ ته بدرد وئیل:-** حضرت مغیره رحمه الله فرمائیلی دی دا وئیلې کیږی چه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمرفاروق رضی الله عنه ته بد وئیل هم ګناه کبیره ده. زه وایم چه دعلماء کرامو یو جماعت هغه ته کافر وئیلی دی چه څوک صحابه کرام رضی الله عنهم ته بد وائی. حضرت امام مالک رحمه الله نه مروی دی چه امام محمد بن سیرین رحمه الله فرمائی چه خه دا باور نشم کولې چه د چا په زړه کښې د نبی کریم ﷺ محبت وی او هغه حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه سره دښمنی اوساتی ( ترمذی). ([1])

**زیدبن اسلم او کبائر:-** حضرت زید بن اسلم رحمه الله ددې آیت تفسیر کښې لیکی چه کبائر دادی چه ① الله ﷻ سره شریک جوړول ② الله ﷻ او دهغه رسولان نه منل ③ جادو کول ④ اولادقتل کول ⑤ الله ﷻ ته د اولاد او ښځې نسبت کول او هم داشان هغه اعمال او اقوال دی چه د هغې نه پس هیڅ نیکی نه قبلیږی. خو چه کوم داسې ګناهونه دی چه هغې سره دین پاتې کیږی او عمل قبلیدې شی داسې ګناهونه دنیکئ بدله کښې الله ﷻ معاف کوی.

حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه الله ﷻ هغوی سره د مغفرت وعده کړې ده څوک چې دکبیره ګناهونو نه بچ شی اومونږته دا هم ذکر شوی دی چه نبی کریم ﷺ دا هم اوفرمائیل چه څوک کبیره ګناهونو نه بچ اوسی او درست اوسی او زیرې واورئ ([2]) مسند عبدالرزاق کښې په صحیح سند سره د رسول کریم ﷺ

---

[1]) ترمذی: کتاب المناقب باب قول عمر لابی بکر یاخیر الناس : ۳۶۷۵،

[2]) ابن جریر

نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څما شفاعت څما دامت کبیره ګناهونو والو دپاره هم دې [1] امام ترمذی رحمه الله هم دې ته حسن وائی اګر چه ددې روایت او سند دضعف نه خالی نه دې مګر ددې چه کوم شواهد دی هغې کښې هم صحیح روایات دی.لکه یو حدیث مبارك کښې دی چه آیاتاسو ته معلومه ده. چه څما شفاعت به صرف متقیانو دپاره اومومنانو دپاره دې څه ؟ نه نه بلکه دګناهګارو او خطاکارو خلقو دپاره هم دې.([2])

**دکبیره ګناه په تعریف کښې اقوال:**-اوس دعلماء کرامو اقوال واورئی چه په هغې کښې وئیلې شوی دی چه کبیره ګناه څه ته وائی؟① بعضې وائی چه کبیره هغه ده په کومه کښې چه شرعی حد وی② بعضې وائی چه په هغې باندې قران پاك کښې یا احادیثو کښې سزا وی③ دبعضو قول دې چه هغې سره دینداری کمیږی او دیانتدارئی کښې کمی راځی.

**دهروی رحمه الله رائې:**- قاضی ابوسعید هروی رحمه الله فرمائی چه دهغې حرمت په ښکاره لفظونو سره ثابت وی او چه د هغې په کولو باندې حد وی لکه قتل وغیره.هم داشان د هرې فریضې ترك کول او د دورغو ګواهۍ والا روایت او د دروغو قسم⑥ قاضی رحمه الله رویانی رحمه الله فرمائی چه کبائر اووه دی.① بې وجه څوك قتل کول.② زنا ③ لواطت ④ شراب څکل ⑤ غلاکول ⑥ غصب ⑦ تهمت .او یو اتم څیز هم دویم روایت کښې مروی دې یعنی د دروغو ګواهی

اودې سره داهم شامل کړې شوی دی چه سود خوری ، درمضان روژې بلاعذر نه نیسی د دورغو قسم خپلولی کټ کول ،د مور پلار نافرمانی ،جهاد نه تښتیدل ،دیتیم مال خوړل ، ناپ تول کښې کمی خیانت کول ، مونځ دوخت نه مخکښې یا د وخت نه روستو بې د څه عذر نه اداکول.مسلمان بې د څه وجې قتل کول ، نبی کریم ﷺ باندې دروغ تړل ،د نبی کریم ﷺ صحابه کرام ؓ ته کنځل کول ، بې د سبب نه ګواهی پټول ، رشوت اخستل ، ښځو او سړو کښې ناچاقی کول ، بادشاه ته چغل خوری کول ، زکوة نه منع کول ، د قدرت باوجود ښه خبرې نه کول ، د بدو خبرو نه منع نه کول ، قران زده کولو نه پس هیرول ، ساه لرونکې څیز په اور سیزل ، د ښځې خپل خاوند ته بې د څه سبب نه نه راتلل ، دالله ﷻ رحمت نه نا امیده کیدل ، دالله ﷻ دمکر نه بې ویرې کیدل ، داهل علم او حاملان قران بدوئیل ، ظهار کول ،د خنزیر غوښه خوړل ، مردار خوړل ، خوکه د ضرورت په وجه وی اود اضطرار په حالت کښې وی نو دا بله خبره ده.

امام شافعی رحمه الله فرمائی چه په دې کښې بعضو کښې د توقف ګنجائش شته دی.دکبائرو باره کښې بزرګان دین ډیر کتابونه لیکلی دی.شیخ حافظ ابوعبدالله ذهبی رحمه الله هم یو کتاب لیکلې دې چه په هغې کښې ئې اویا کبیره ګناهونه شمیرلې دی.او دا هم وئیلې شوی دی چه کبیره ګناهونه هغه دی چه په هغې باندې شارع ﷺ د جهنم وعید آورولې دې.که دا قسمه ګناهونه اوشمیرلې شی نو ډیرې دی.اوکه کبیره ګناه هغې ته اووئیلې شی چه هغې نه شارع ﷺ منع کړې وی نو ډیر دی ، والله اعلم.

| | |
|---|---|
| وَلَا تَتَمَنَّوْا | مَا |
| اواومه کوئ آرزو تاسو | دهغه څیز |
| | او الله تعالی چه |

[1] ترمذی کتاب صفة القیامة باب منه حدیث شفاعتی لاهل الکبائر من امتی : ۲۴۳۵، وسنده صحیح ابن ماجة: ۴۳۱۰–

[2] ابن ماجة: کتاب الزهد باب ذکر الشفاعة : ۴۳۱۱

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَضَّلَ اللّٰهُ | بِهٖ | بَعْضَكُمْ | عَلٰى بَعْضٍ ؕ | لِلرِّجَالِ | نَصِيْبٌ |
| چې زيات وركړې وى الله | هغه څيز | بعضو ته | په تاسو كښې | په مقابله دبعضو | دَ دپاره دنارينو | حصه |

يو كس ته دبل په مقابله كښې كوم فضيلت وركړې دې تاسو دهغوې خواهش مهٔ كوئ؛ نارينو چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِّمَّا اكْتَسَبُوْا ؕ | وَلِلنِّسَآءِ | نَصِيْبٌ | مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ؕ |

مطابق دهغې عمل چې كړې وى هغوئ | اوده دپاره دزنانو | حصه | مطابق دهغه عمل چې كړې وى هغوئ

پخپل عمل څه ګټلى وى هغه دهغوئ حصه ده او زنانو چې خپل په عمل څه ګټلى دى هغه دهغوئ حصه ده

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاسْئَلُوا اللّٰهَ | مِنْ فَضْلِهٖ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | كَانَ | بِكُلِّ شَىْءٍ | عَلِيْمًا ﴿۳۲﴾ |
| اواوغواړئ دالله نه | فضل دهغه | بيشكه الله | دې | په هر څيز باندې | علم لرونكې |

دالله ﷻ نه دهغه دكرم او فضل سوال كوئ | بيشكه الله ﷻ په هرڅهٔ پوهه دې |

**ښځې دې سړو سره اوكه په اوكه تلو په ځائې دې دالله ﷻ فضل تلاش كړي**: حضرت ام سلمه رضي الله عنها يو ځل ونيلې وو چه يارسول الله ﷺ سړى جهاد كوى اومونږ ښځې ددې ثواب نه محرومه يو. داشان ميراث كښې هم مونږ ته دسړو په نسبت نيمه حصه ملاويږى. دې باندې دا آيت مبارك نازل شو(ترمذى)[1] او يو روايت كښې دى چه دې نه پس آيت ﴿رَبُّهُمْ اَنِّىْ لَاۤ اُضِيْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى﴾ نازل شو. او يو روايت كښې دى چه ښځو داخواهش كړې وو چه كاش مونږ سړى وې نو جهاد كښې به شريكيدې. او يو روايت كښې دى چه يو ښځه د نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضره شوې وه او وئيلى ئې وو چه تاسو اوګورئ كه نه ښځوته يو او سړو ته دوه حصې ملاويږى. د دوؤ ښځو شهادت د يو سړى برابر دې. بيا عمل كښې داسې دى چه يو نيكى نيمه نيكى پاتې كيږى، دې باندې دا آيت نازل شو([2])حضرت سدى رحمه الله فرمائى چه سړو ونيلى وو چه هركله مونږ د دوؤ حصو مالكان يو نو مونږ ته دې دوچند اجر هم ملاؤ شى. او ښځو درخواست كړې وو چه كله مونږ باندې جهاد فرض نه دې اومونږ ئې نه كوؤ نو دشهادت ثواب مونږ ته ولې نه ملاويږى ؟ دې باندې الله ﷻ دا دواړه منع كړل او حكم ئې اوفرمائيل چه خما فضل تلاش كړئ. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه ددې مطلب دادې چه انسان دې دا خواهش نه كوئ چه كاش د فلانى مال او اولاد دې خما وې. نودې باندې دهغه حديث نه هيڅ اشكال نه ثابتيږى چه په هغې كښې دى چه دحسد قابل صرف دوه دى. ① يو مالدار چه دالله ﷻ لار كښې خپل مال خرچ كوى. ② او دويم وانى چه كاش ماسره هم مال وې نو ما به هم داشان دالله ﷻ لار كښې خرچ كولو. نودا دواړه دالله ﷻ په نيز اجر كښې برابر دى.([3])ځكه چه دا منع نه دى يعنى دداسې نيكئ حرص هم بد نه دې ، دلته دداسې څيز ددې نيكئ پشان كار كولو غرض سره دحاصلولو خواهش دې چه محمود دى. اوهلته دده خپل څيز پخپله دده قبضه كښې كولو نيت دې چه په هر رنګ كښې مذموم دې. نو ددينى او دنياوى فضيلت خواهش دا شان منع دې. بيا فرمائى چه يو ته به ددې عمل ثواب ملاويږى ، دخير بدله كښې خير او شر بدله كښې شر. اودا هم مراد اخستې شى چه هر يو ته دهغه د حق مطابق ميراث ملاويږى. بيا ارشاد دې چه مونږ نه خمونږ فضل غواړئ اوخپلو كښې ديو بل د فضيلت خواهش بې

[1]) ترمذى كتاب التفسير القرآن باب ومن سورة النساء : ۳۰۲۲،

[2]) ابن ابى حاتم : وسنده حسن)–

[3]) صحيح بخارى كتاب العلم باب الاغتباط فى العلم والحكمة : ۷۳، صحيح مسلم: ۸۱۶)–

سود امر دې.او خما نه خما فضل اوغواړئ څه هيڅکله بخيل نه يم، کريم يم، وهاب يم، تاسو ته به درکوم، او ډير څه به درکوم. نبی کريم ﷺ فرمائي چه اې خلقو ! الله ﷻ نه دهغه فضل تلاش کړئ، الله ﷻ نه غواړئ او الله ﷻ نه غوښتنه الله ﷻ ته ډيره خوښه ده.يادساتئ د تولو نه اعلی عبادت د فراخوالی او وسعت اورحمت انتظار کول اوودې اميد ساتل دی[1]او يو روايت کښې دی چه داسې اميد ساتلو والا الله ﷻ ته ډير خوښ دی ([2]) الله ﷻ عليم دې، هغه ته ښه معلوم دی چه څوك دوركړې قابل دی او څوك دفقيرئ قابل دی.او څوك د آخرت د نعمتونو مستحق دی. او څوك دهغه ځانې د رسوايانو سزاوار دی.او هغه ذات دده اسباب او وسائل آسانوی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا | | | | |
| او دپاره دهريو مقرركړی دی مونږ | حقداران | دهغه مال | | |
| او اوګورئ کوم يومال چې موريلار او نور خپلوان پريږدی | | | | |
| تَرَكَ | الْوَالِدَانِ | وَالْأَقْرَبُونَ | وَالَّذِينَ عَقَدَتْ | أَيْمَانُكُمْ |
| چې پريږدی | مور اوپلار | اورشته داران | اوهغه کسان چې غوټه شوی دی | قسمونه ستاسو |
| نومونږ هريوديپاره وارثان مقرر کړی دی | اوچاسره چې تاسولوظونه کړی دی | | | |
| فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ | إِنَّ اللَّهَ | كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ | شَهِيدًا | |
| نوورکړئ هغوئ ته حصه دهغوئ | بيشکه الله دی په هرڅيز باندې | نظر لرونکې | | |
| نوهغوئ ته هم خپلې خپلې حصې ورکړئ بيشکه الله (حاضر ناظر دی) په هر څيز باندې ګواه دی | | | | |

**د نزدې رشته دار به ځانې هغه هلك ته حصه ورکول چه چا ته ئې رور يا خوئې وئيلې وی** :: د ډيرو مفسرينو نه مروی دی چه دموالی نه مراد وارثان دی.بعضې وائی چه ددې نه عصبه مراد دی.د تره اولادته هم موالی وائی.لکه دحضرت فضل ابن عباس ﷺ اشعاروکښې دی.نو دآيت مطلب داشو چه اې خلقو ! تاسو هر يو دپاره مونږ عصبه جوړ کړی دی چه دهغه مال وارثان وی چه کوم ددوی مور پلار او رشته دارو پريښودې وو. او هغه چه تاسو ورته رونړه وئيلی دی اوتاسو قسمونه خوړلو خوړلو سره هغوئ خپل رونړه جوړ کړی دی او هغوئ ستاسو رونړه جوړ شوی دی. هغوئ ته د هغوئ د ميراث حصه ورکړئ لکه څنګه چه تاسو قسمونو سره وعده کړې وه. دا حکم داسلام شروع کښې وو او بيا منسوخ شو. اوحکم اوشوچه تاسو کومې وعدې کړې دی هغه پوره کړئ او مه ئې هيروئ.خو ميراث هغوئ ته نه شی رسيدې.صحيح بخاری شريف کښې دی چه حضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه د موالی نه مراد وراثان دی.او دې نه پس جملې نه مراد دادې چه مهاجرين کله مدينې منورې ته راغلل نو دا دستور وو چه هر مهاجر به دخپل انصار رور وارث وو ، او دده خپل رشته دار به وارثان نه وو ، نو دې آيت مبارك دا طريقه منسوخ کړه. او حکم ئې اوکړو چه ددوی مدداوکړئ او دوی ته فائده اورسوئ دوی سره خيرخواهی اوکړئ ليکن ميراث ددوی حق نه دی او وصيت کوئ. ([3])
داسلام نه مخکښې دا دستور وو چه دوه سړو کښې به دا وعده اوشوه چه څه ستا وارث اوته خما وارث داشان دعربو قبائلو به وعدې کولې ، نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه د جاهليت رسمونه او وعدې

---

[1] ترمذی کتاب الدعوات باب انتظار الفرج : ۳۵۷۱
[2] الترمذی : (۳۵۷۱)۔
[3] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة النساء باب ( لکل جعلنا موالی ) ۴۵۸۰)۔

اسلام مضبوطوی [1] لیکن اوس اسلام کښې قسمونه اوداقسمه وعدې نشته دا دې ایت مبارك منسوخ کړې.او وې فرمائیل چه ذی رحم رشتې د کتاب الله حکم سره زیات اولی دی په نسبت دمعاهدو والو، یو روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ دجاهلیت قسمونه او وعدو باره کښې تر دې تاکید اوکړو چه فرمائی که ماته سرهٔ اوښان راکړې شی اوداقسم ماتولو دپاره اووئیلې شی چه کوم دارالندوه کښې شوې وه نو خه دا نه خوښوم.[2] ابن جریر کښې دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائی چه خه خپل وړوکوالی کښې خپل ماما سره حلف طیبین کښې اووم ، ماته سره اوښان ملاوشو خوداقسم هیڅکله نه ماتوم[3] نو یاد ساتئ چه د قریشو او انصارو کوم تعلق نبی کریم ﷺ قائم کړې دې هغه صرف الفت او محبت پیداکولودپاره وو خلقو سوال اوجواب کښې د نبی کریم ﷺ دا فرمان مروی دې چه دجاهلیت حلف پوره کړئ.اوس اسلام کښې هیڅ حلف نشته دې [4] د مکې دفتح په ورځ هم نبی کریم ﷺ اوریدل او خپله خطبه کښې نې ددې خبرې اعلان کړې وو. [5]

داؤد بن حصین رحمه الله فرمائی چه ما حضرت ام سعد بنت ربیع رضی الله عنها نه قرآن پاك لوستو ، ماسره دهغه نمسی موسی بن سعد هم لوستو چه دحضرت ابوبکر ﷺ غیږ کښې نې د یتیمئ ورځې تیرې کړې وې.ما دې آیت مبارك کښې ﴿ عاقده ﴾ اولوستلو نو ځما استاذې خه منع کړم او وې فرمائیل چه ﴿ عقدت ﴾ وایه.واوره دا آیت د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ او دهغه د ځوئی حضرت عبدالرحمان ﷺ باره کښې نازل شوې دې.دوی مخکښې د اسلام نه منکر وو. او حضرت ابوبکرصدیق ﷺ قسم کړې وو چه دې به خپل وارث نه جوړوی. او آخر چه کله دې د مسلمانانو سره ډیر زیات جنګیدو نه پس اسلام طرفته راغلو او مسلمان شو نو حضرت ابوبکرصدیق ﷺ ته حکم اوشوچه دې دخپلې حصې میراث نه مه محروموه. خودا قول غریب دې او صحیح قول ړومبې دې.الغرض ددې آیت او احادیث نه دهغوئ قول رد کیږی چه دقسم او وعدو په وجه نن هم دوراثت رسولو قائل دی لکه د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله او د هغوئ د ملګرو خیال دې او امام احمد رحمه الله نه هم یو روایت دا شان شوې دې.

لیکن صحیح مذهب د جمهورو دې اوحضرت امام مالك رحمه الله او حضرت امام شافعی رحمه الله او دمشهور قول مطابق د امام احمد هم.نو آیت کښې ارشاد دې چه دهر سړی وارث ددې نزدې خلق دی او نور نه.بخاری اومسلم کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه حصه دارو وارثانو ته دهغوئ حصې ورکوئ او چه څه بچ شی نو هغه دې عصبه ته ملاؤ شی [6] او وارثان هغه دی چه دهغې ذکر دفرائضو دوؤ آیتونو کښې دې. او چه چا سره تاسو مضبوط قسمونه او وعدې کړې دی یعنی ددې آیت نازلیدو نه مخکښې هغوئ ته دهغوئ حصه ورکړئ یعنی دمیراث اودې نه پس چه کوم حلف دی هغوئ په تاثیر والا نشی ګنړلې.او دا هم وئیلې شوی دی که ددې نه مخکښې وعدې او قسمونه وی اوکه ددې آیت مبارك د نازلیدو نه پس وی ، دټولو حکم دادې چه داسې حلیفو ته به میراث نه ملاویږی. اود حضرت ابن عباس ﷺ په قول دهغوئ حصه نصرت ، مدد ، خیرخواهی او وصیت دې میراث نه.دوی فرمائی چه خلقو به وعدې کولې چه دوی کښې څوك مخکښې مړ شی او کوم یو پاتې شی نو دې به دهغه مړه وارث وی. نو الله ﷻ آیت ﴿وَأُولُوا الْأَرْحَامِ﴾ نازل کړو او حکم نې اوفرمائیلو چه ذی رحم محرم یو نه بل

---

[1] ) احمد: ۳۱۷/۱ دارمی : ۲۵۲٦، مسند ابو یعلی : ۲۳۳٦، ابن حبان : ٤۳۷۰، وهو حدیث حسن طبرانی : ۱۱۷٤۰ )-

[2] ) طبری : ۹۲۹۱)-

[3] ) الطبری : ۹۲۹۷، )-

[4] ) احمد: ٦۱/۵ )-.

[5] ) الطبری : ۹۲۹۹ )-

[6] ) صحیح بخاری کتاب الفرائض باب میراث الولد من ابیه وامه: ٦۷۳۲، صحیح مسلم: ۱٦۱۵، ترمذی: ۲۰۹۸)-

بهتر دي خو خپلو دوستانو سره ښه سلوك كوئي. یعنی كه هغوئ دپاره ثلث مال كښې وصیت اوكړنی نو داجائزدی.معروف او مشهور امر هم دا دې.او نورو هم ډېرو سلفونه مروی دی چه دا آیت منسوخ دې اوناسخ آیت ﴿وَاُولُوا الْاَرْحَامِ﴾ والا دې. حضرت سعید بن جبیر ﷺ فرمائی چه دوی ته ددوی حصه ورکړنی یعنی میراث.حضرت ابوبكر صدیق ﷺ یو صاحب خپل مولی جوړكړې وو نو هغه نې وارث كړو.
ابن المسیب ﷫ فرمائی چه دا آیت دهغه خلقو حق كښې نازل شوې دې چه دخپلو ځامنو نه سوا نورو لره خپل ځامن جوړوی او هغوئ نې دخپل جائیداد وارثان جوړول.نو الله ﷻ اوفرمائیل چه دوی ته په وصیت كښې د دوی حصه وركوئی.اومیراث نې موالي یعنی ذی رحم محرم رشته دارو ته او عصبه طرفته واپس كړه.اوددې نه نې منع اوفرمائیله او دا نې ناخوښ كړل چه صرف زبانی دعوؤ او هغو ته میراث وركړې شي چه كوم ته تاسو صرف په خوله ځامن ونیلی دی او هغوئ دپاره نې وصیت اوفرمائیلو. امام ابن جریر ﷫ فرمائی چه ځما په نیز مختار قول دادې چه دوی ته حصه وركړنی یعنی د نصرت ، نصیحت او مدد ، دا نه چه دوی ته میراث كښې حصه وركړنی ،نو ددې معنی كولو سره بیادا آیت منسوخ منلو هېڅ وجه باقی پاتې نشوه اونه دا ونیلې كیږی چه دا حكم مخكښې وو او اوس پاتې نشو. بلكه د آیت دلالت صرف په دې امر دې چه كومې وعدې خپلو كښې د مددكولو او خیرخواهئ اوښیكړې وی هغه پوره كړنی نودا آیت محكم او غیر منسوخ دې.خودامام صاحب دې قول باندې ذره نظر شته دې ځكه چه په دې شك نشته دې چه بعضې عهدوپیمان به صرف نصرت او مدد وو. لیكن دې كښې هم شك نشته دې چه بعضې وعدې د وراثت وې او د ډېرو سلفو نه مروی دی. اولكه څنګه چه د حضرت ابن عباس ﷺ تفسیر كښې تیر شوی دی چه په هغې كښې هغوئ صفا فرمائیلی دی چه مهاجر به د انصارو وارثان وو. دده نزدې رشته دار به وارثان نه وو. او نه به ذی رحم رشته دار وارثان وو. تر دې چه دامنسوخ شو. بیا امام صاحب ﷫ دا څنګه فرمائیلې دی چه دا آیت محكم اوغیر منسوخ دې ، والله اعلم.

| |
|---|
| اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ |
| سړی \| حاكمان دی \| په ښځو \| په سبب ددې چې فضیلت وركړې دې \| الله \| بعضو دهغوی ته |
| سړی په زنانو حاكمان دی \| ځكه چې الله ﷻ یوډلې ته په بله باندې فضیلت |
| عَلٰى بَعْضٍ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ ؕ فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ |
| په بعضو \| اوپه سبب ددې \| چې خرچ كوی نارینه \| دمالونوخپلو نه \| نو نیكانې صالحانې ښځې \| حكم منونكې وی |
| وركړې دې \| او ځكه چې سړو (په ښځو) خپل مالونه خرچ كړی دی \| ......نو نیكانې ښځې \| حكم منونكې ښځې |
| حٰفِظٰتٌ لِّلْغَیْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ؕ وَالّٰتِیْ تَخَافُوْنَ |
| حفاظت كونكې وی \| دپاره دغائب خاوندانو \| د الله په حفاظت سره \| اوهغه ښځې \| چې ویریږئ تاسو |
| او(دخاوند) په غیر موجودګئ كښې (دخپل عزت) حفاظت كونكې ښځې اكومې چې الله ﷻ محفوظ كړی دی \| او چه |
| نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِی الْمَضَاجِعِ |
| دسركشئ دهغوئ نه \| نو نصیحت اوكړئ هغوئ ته \| او جدا شئ دهغوئ نه \| دخوب په بسترو كښې |
| د كومو ښځو سركشئ نه ویریږئ \| نو(اول نې) په طریقه پوهه كړئ \| اوبیا ترې خپلې بسترې جدا كړئ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاضْرِبُوهُنَّ | فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ | فَلَا تَبْغُوا | عَلَيْهِنَّ | سَبِيلًا |
| او ووهئ هغوئ | نوکه تابعداري شوې هغوئ حکم منلو ستاسو ته | نومه لټوئ تاسو | په هغوئ باندې | لاره دزياتي |
| اوبیاني اووهئ \| نوکه هغوئ ستاسو خبره او منله نو هیڅ بې هیڅ ورته بهانې مه جوړوئ اودایقین اوکړئ | | | | |
| إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا | | | | |
| بیشکه الله \| دې \| اوچت \| لوئ \| | | | | |
| چې بیشکه الله ﷻ ډیراوچت اوډیرلوئې دې | | | | |

**دنافرمانه ښځو پوهولو ترتیب وار دري طريقې:-** الله ﷻ فرمائي چه سړې د ښځې حاکم او مشر او سردار دې.دې لره صحيح او درست ساتلو والا دې ، ددې وجې سړې د ښځو نه افضل دی.همدا وجه ده چه نبوت صرف په سړو کښې راروان دې.او داشان شرعي طور خليفه هم سړې کيدېشي.نبي کريم ﷺ فرمائي چه هغه خلق هيڅکله نجات نشي موندې چه کوم خپل ولي يو ښځه جوړه کړي ( بخاري ) [1] داشان منصب او قضاء وغيره هم صرف سړي لائق دی.دويمه وجه دافضيلت داده چه سړې په ښځو باندې خپل مال خرچ کړې چه کوم دکتاب و سنت ددوی په ذمه دی.لکه مهر کښې نان نفقه کښې او نورو ضرورتونو پوره کولو کښې.نو سړې في نفسه افضل دې. او س د نفع او حاجت پوره کولو هم دده درجه اوچته ده. نو دې په ښځه سردار جوړکړې شوې دې.لکه بل ځائې کښې دې چه ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي مطلب دادې چه ښځې به دسړو اطاعت کوی.اودسړی د بچو پرورش او دده دمال حفاظت به دا ښځه کوی.حضرت حسن بصري رحمه الله فرمائي چه يو ښځې نبي کريم ﷺ ته د خپل خاوند شکايت اوکړو چه هغه دا په څپيړه وهلې وه. نو نبي کريم ﷺ د بدلې اخستلو حکم ورکړې وو چه دا آيت نازل شو او بدله پاتې شوه. ( [2] )يو بل روايت کښې دی چه يو انصاري خپلې ښځې سره د نبي کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو ، دې ښځې نبي کريم ﷺ ته اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ ده څه په څپيړه وهلې يم او دهغې داغ تر اوسه پورې څما په مخ موجود دې. نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه دده حق نه وو. نو هلته هم دا آيت نازل شو چه د آدب خودلو دپاره سړي په ښځو باندې حاکمان دی. نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه ما نور څه غوښتلي وو او الله ﷻ نور څه اوغوښتل. حضرت شعبي رحمه الله فرمائي چه دمال خرچ کولو نه مراد دمهر ادا کول دی.که يو سړې په ښځه باندې د زناکارئ تهمت اولګوی نو د لعان حکم دې او که ښځه دخپل سړي متعلق دا خبره اوکړي او دا ثابته نه کړی نو ده ته به کوړې ورکولې شي.نو ښځو کښې نيك نفس والا هغه دی چه کومې د خپلو خاوندانو اطاعت ګزارې وی.اودخپل مال او نفس حفاظت کولووالا وی.د کوم چه الله ﷻ په خپله حکم کړیدې.نبي کريم ﷺ فرمائي چه بهتره ښځه هغه ده چه کله ددې خاوند دې طرفته اوګوری نو هغه خوشحاله کړي.اوکله چه دې ته حکم اوکړي نودائې پوره کوی.اوکله چه ددې خاوندچرته بهرلاړشي نوخپل نفس دبدو نه محفوظ ساتي او دخپل خاوند د مال حفاظت کوی.بيا نبي کريم ﷺ ددې آيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو.دا حديث د آيت دذکر نه علاوه صحيح دې،مسنداحمد کښې دی چه نبي کريم ﷺ فرمائي چه کله يوښځه پنځه وخته مونځ اداکړي،درمضان روژې نيسي اودخپلې شرمګاه حفاظت کوی او دخپل خاوند فرمان برداره وی ، نودې ته به اوونيلې شي چه دجنت په کومه دروازه ته غواړې په هغې داخله شه ( [3] )

---

[1] ) صحيح بخاري كتاب الفتن باب رقم: ١٩ ، ٧٠٩٩، نسائي : ٥٣٩٠، ترمذي: ٢٢٦٢ ، )-
[2] ) اسباب النزول للواحدي : ٣١١، والطبري: ٩٣٠٥، مرسلا)-
[3] ) احمد: ١٩١/١، المعجم الاوسط للطبراني : ٤٥٩٥)-

بیا فرمائی چه تاسو دکومو ښځو دسرکشئ نه ویرېږئ یعنی ستاسو اوچتیدل غواړي او نافرمانی کوی او بې پرواه وی او تاسره دښمنی ساتی نو اول دې ته نصیحت اوکړه او ښه نې پوهه کړه او کوز پاس ورته اوښایه ، اودالله ﷻ نه اوویروه ، حقوق زوجیت ورته یادکړه ، اودا ورته اووایه چه ګوره دخاوند دومره حقوق دی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی که ما چاته حکم کولې چه دالله ﷻ نه سوا بل چاته سجده اوکړه نو ښځې ته به مې حکم کړې وو چه هغه دې خپل خاوند ته سجده اوکړي. ځکه چه دټولو نه لوئې حق په دې باندې دده دې.([1]) بخاری شریف کښې دی چه کله یو سړې خپله ښځه خپلې بسترې ته راوبلی اوهغه انکار اوکړی نو تر سحره پورې فرښتې په دې لعنت وائی.([2]) صحیح مسلم کښې دی چه په کومه شپه یو ښځه مرروره شي او دخپل خاوند ښسره ته پرېږدی نو تر سحره پورې دالله ﷻ درحمت فرښتې په دې باندې لعنت وائی.([3]) نودلته ارشاد فرمائی چه داسې ښځې مخکښې پوهه کړئی او بیائې د خپلو بسترو نه جدا کړئی([4])حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی یعنی که څملونې نو په بستر خو ددوی نه مخ واړونی او دوی سره مجامعت مه کوئی.او دې سره خبرې اترې هم مه کوئ. اودا دښځې دپاره ډېره لویه سزا ده.بعضې مفسرین فرمائی چه دوی سره ملاسته پرېږدئی.نبی کریم ﷺ نه سوال اوشو چه د ښځې په خاوند څه حق دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کله ته خوراك کوې نو دې ته هم ورکړه او کله چه څه اغوندې نو هغې ته هم ورکړې او هغه په مخ مه وهئ اومه هغې ته کنځل کوئی ،اودکور نه مه جداکوئی په غصه کښې او که ته په غصه کښې دې سره خبرې اترې پرېږدې نو دا دکور نه مه اوباسه([5])بیا فرمائی که دې سره هم اونشی نو تاته اجازت دې چه غصې او وهلو سره دا په لار راوله.

صحیح مسلم کښې د نبی کریم ﷺ دحجة الوداع خطبه کښې دی چه دښځویاره کښې دالله ﷻ نه اوویرېږئی ځکه چه هغوئ ستاسو خدمت کونکې او ماتحت دی. ستاسو په هغوئ حق دادې چه تاسو د چا په تګ راتګ خفه کیږئی هغوئ مه پرېږدئی. که هغوئ داسې اونکړی نو تاسو هغوئ ته تنبیه هم کولئ شئ. لیکن سختې نې مه وهئ.تاسو باندې دهغوئ حق دادې چه هغوئ ته خوراك څکاك ورکوئی او هغوئ ته پوشاك هم ورکوئی.([6]) نو داسې وهل نې نه دی پکار چه دهغې نشان پاتې شی اوهغې سره څه اندام مات شی یا څه زخم پرې راشی.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی که هغوئ پدې هم منع نشی نو فدیه ترې واخلئ او طلاق ورته ورکړئی.یوحدیث مبارك کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دالله ﷻ وینځې مه وهئ.دې نه پس یو ځل حضرت عمرفاروق ﷺ راغلواوعرض ئې اوکړو چه یارسول الله ﷺ ا ښځې ستاسو ددې حکم په آوریدو سره زړورې شوې ، دې باندې نبی کریم ﷺ دهغوئ د وهلو اجازت ورکړو.اوس د سړو د طرفنه ډېر وهل شروع شو او ډېرو ښځو نبی کریم ﷺ ته شکایت اوکړو نو نبی کریم ﷺ سړوته اوونیل چه ائې خلقو واورئی ا مالره ښځې راغلې او فریاد ئې اوکړو ، یادساتئ تاسو کښې چه څوك خپلې ښځې وهی هغه ښه سړی نه دی.( ابوداود وغیره ).([7])

---

[1]) احمد: ۲۳۲۲، ابوداود: ۲۱۴۰، وسنده حسن ابن ماجة: ۱۸۵۳)-
[2]) صحیح بخاری کتاب النکاح باب اذا مات المراة مهاجرة: ۵۱۹۳)-
[3]) صحیح مسلم کتاب النکاح باب تحریم امتناعها من فراش زوجها: ۱۴۳۶)-
[4]) ابوداود کتاب النکاح بآب فی حق المراة علی زوجها : ۲۱۴۲، وسنده صحیح ابن ماجة: ۱۸۵۰)-
[5]) ابوداود کتاب النکاح بآب فی حق المراة علی زوجها : ۲۱۴۲، وسنده صحیح ابن ماجة: ۱۸۵۰)-
[6]) صحیح مسلم کتاب الحج باب حجة النبی ﷺ ۱۲۱۸ ابوداود: ۱۹۰۵، ابن ماجة: ۳۰۷۴)-
[7]) ابوداود کتاب النکاح باب فی ضرب النساء : ۲۱۳۶، وهو صحیح ابن ماجة: ۱۹۸۵)-

حضرت اشعث فرمائي چه يو ځل څه د حضرت فاروق اعظم ﷺ ميلمه شوم. په هغه ورځ ښځه خاوند كښې څه جنګ اوشو او حضرت عمرفاروق ﷺ خپله بي‌بي اووهله. بيائې ماته اوونيل چه اشعث درې خبرې ياد ساته چه كومې ما دحضرت نبي ﷺ نه آوريدلې دي.① يو دا چه سړي نه به تپوس نه شي كولې چه ده خپله ښځه په څه اووهله.② دويم دا چه دوترو كولو نه مخكښې مه ځمله او ③ دريم دراوي د ذهن نه وتلي دي (نسائي) (١) بيا فرمائي كه ښځې ستاسو فرمانبردارې شي نو تاسو هغوئ باندې هيڅ سختي مه كوئي اومه هغوئ وهئ او مه ددوي نه بيزاره كيږئي. الله ﷻ اوچت او لويو والا دې. يعني كه د ښځو د طرفنه قصور اوشي نو تاسو ددوي د توبه كولو نه پس دوي ته څه تكليف اورسولو نو ياد ساتئي چه ددوي بدله اخستلو والا پخپله الله ﷻ دې. او يقيناً هغه پاك ذات ډير زورور اوزبردست دې.

| |
|---|
| وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا |
| اوكه چرې \| يريږئ تاسو \| دمخالفت نه \| په منځ دهغوئ دواړو كښې |
| اوډيرلوئي دې \| اوكه د دواړو (ښځې خاوند) په مينځ كښې |
| فَابْعَثُوْا حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَحَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَا |
| نو اوليږئ \| يوفيصلې كونكې\| دخپلوانو دسړي نه \| او بل فيصلې كونكې\| دخپلوانودښځې نه |
| د مخالفت نه ويريږئ\| نو يوثالث د سړي دخپلوانونه مقرر كړئ او يو ثالث د ښځې د خپلوانونه مقرر كړئ |
| اِنْ يُّرِيْدَآ اِصْلَاحًا يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا |
| كه اراده لرله هغوئ دواړوا د صلحې كولوانوموافقت به پيدا كړي الله \| په منځ دهغوئ دواړو كښې |
| كه هغوئ دواړه جوړښت غواړي\| نو الله ﷻ به د دواړو په مينځ كښې موافقت پيدا كړي |
| اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ﴿٣٥﴾ |
| بيشكه الله \| دې ښه پوه \| ښهٔ خبردار\| |
| بيشكه الله ﷻ ښهٔ پوهه اوپه هرڅهٔ خبردار دې\| |

**د ښځې خاوند په جنګ كښې د حكمينو تقرري**:-مخكښې ئې دا صورت بيان كړو چه نافرماني او كج روي د ښځو طرفنه وي ، اوس دلته دهغه صورت بيان كيږي كه دواړه يو بل نه خفه وي نو څه به كولې شي؟نوعلماء كرام فرمائي چه داسې حالت كښې دې ثقه او پوهه سړې مقرر كړي چه ظلم اوزياتې معلوم كړي چه د چا دطرفنه دې.نو ظالم دې دظلم نه منع كړي. كه دې سره هم بهتري رانغله.نو د ښځې د طرفه دې اودسړي دطرفه دې يو يو بهترين سړې مقرر كړي شي.او دا دواړه دې يو خانې شي او تحقيقات دې اوكړي او چه په كومه خبره امر كښې مصلحت وي اوكوم بهتر اوګڼړي نو دهغې فيصله دې اوكړي يعني كه جدا كوي ئې اوكه خپلو كښې ورله صلح كوي.

**صلحې ته ترجيح وركول**:- ليكن نبي ﷺ ددې خبرې ترغيب وركړې دې. چه تركومې كيديشي نو كوشش كوئي چه د مصحلت كولو څه صورت پيدا شي. كه ددې دواړو تحقيق كښې د خاوند د طرف نه خرابي ثابته شي نو دې به دخپلې ښځې نه منع كړي اودې به مجبوروليې شي چه دې د خپله روبه

(١) ابوداود كتاب النكاح باب ق ضرب النساء : ٢١٤٧، وسنده حسن ابن ماجة: ١٩٨٦)-.

کښې فرق راولی هغه دې صحیح کړی .او ترصحیح کیدو پورې دې ددې نه جدا وی. اود هغې اخراجات وغیره دې اداکوی.اوکه شرارت دښځې د طرفه وی نو هغې ته دې نان نفقه نه ورکوی اودا دې مجبوره کړې شی چه خاوند سره ښه دخوشحالۍ ژوند تیر کړی.دغه شان که هغه(مشران) دا فیصله اوکړی چې خاوند دې ښځې ته طلاق ورکړی نوخاوند به ورته طلاق ورکوی. اوکه هغه (مشران) دافیصله اوکړی چې دواړه به یو ځائې اوسیږی نو دا (ښځه خاوند به دا منی).

**دابن عباس رائې**:- بلکه حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی که دواړو کسانو په یو فیصله متفق شو چه دوی دې په خوشحالۍ سره خپل تعلقات صحیح کړی او دا فیصله یو فریق اومنی او بل فریق ئې نه منی نو دې حالت کښې یو وفات شی نو بل فریق به دده وارث وی چه کوم خفه وو. لیکن چه کوم خفه وو هغه ته به د هغه کس رواثت نه ملاویږی کوم چې راضی وو ( ابن جریر ).

**مسلک حنفی**:-ما سره چه احنافو کوم کتابونه دی په هغې کښې راته دا جزیه معلومه نشوه د دې وجې معذرت غواړم چې په دې مسئله کښې ما تاسو د مسلک حنفی نه خبرنکړې شوئ (احقر شاه فیصل)

**دخلافت عثمانی یوه واقعه**:-یوداسې جګړه کښې حضرت عثمان ﷺ حضرت ابن عباس ﷺ او حضرت معاویه ﷺ حاکمان مقرر کړی وو او فرمائیلی ئې وو که تاسو دې دواړو کښې صلح کول غواړئی نو دا به صلح وی اوکه جدائی پکښې راوستل غواړئی نو دا به جدائی وی.یو روایت کښې دې چه حضرت عقیل بن ابی طالب فاطمه بنت عتبه بن ربیعه سره نکاح اوکړه نو (فاطمه بنت عتبه) اوونیل چې ته ماته راځې هم اوهم څه به ستا خرچ برداشت کوم. اوس داسې اوشوچه کله به عقیل دې ته راتلو نو تپوس به ئې کولو چه عتبه بن ربیعه اوشیبه بن ربیعه چرته دې.دوی به فرمائیل چه ستا ګس طرفته جهنم کښې.په دې به هغه غصه شوه.یوځل حضرت عثمان ﷺ لره راغلو او دا واقعه ئې بیان کړه.خلیفة المسلمین په دې په خندا شو اوحضرت ابن عباس ﷺ اوحضرت امیر معاویه ﷺ ئې د فیصلې دپاره مقررکړل.حضرت ابن عباس ﷺ خو به فرمائیل چه دې دواړو کښې دې جدائی راوستې شی.لیکن حضرت امیر معاویه ﷺ به فرمائیل چه بنو عبدمناف کښې دا تفریق نه خوښوم.اوس دا دواړه حضرات دحضرت عقیل ﷺ کورته ورغلل او وې کتل نودروازه ئې بنده ده او دواړه ښځه خاوند دننه دی ، دا دواړه واپس شو.

**دخلافت حیدری یو واقعه**:- مسند عبدالرزاق کښې دی چه دحضرت علی ﷺ دخلافت په زمانه کښې یو ښځه خاوند کښې اختلاف راغلو. او دوی دواړه راغلل. یو سره ددوی خپلوان وو.اوبل سره کورنئ خلق وو.حضرت علی ﷺ یو یو ډله بیله کړه او دوی ته ئې حکم اوکړو ،بیا ئې دواړو ډلو ته اوفرمائیل چه تاسوته معلوم دی چه ستاسو څه کار دې او ستاسو څه منصب دې که تاسو غواړئی نو دواړه یو ځائې کړئی اوکه غواړئی نو دواړه جدا کړئی.دې آوریدو سره ښځې اوونیل چه څه د الله ﷻ په فیصله راضی یم که د جدا کیدو په صورت کښې وی اوکه د یو ځائې کیدو په صورت کښې وی.سړی اوونیل چه زه بیلتون خوښنوم. په دې باندې حضرت علی ﷺ اوفرمائیل چه نه نه ، په الله قسم تا ته به دواړه صورتونه منظوروې.

**دعالمانو اجماع**:- نو دعلماء کرامو په دې اجماع ده چه داسې صورت کښې دواړو منصفانو ته اختیار دی تردې چه ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی که غواړی نودوه یا درې طلاق هم ورکولې شی.حضرت امام مالک رحمه الله نه هم دا مروی دی.

**دتفریق دعدم اختیار قائلین**:- حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه دوی ته د جمع کولو اختیار دې د تفریق نه حضرت امام مالک رحمه الله نه هم دا قول نقل دې .د امام احمد رحمه الله او ابوثور رحمه الله او داؤد رحمه الله همدا مذهب دې.

ددوی دلیل ﴿إِن يُرِيدَا إِصْلَاحًا﴾ جمله ده په دې کښې د تفریق ذکر نشته دې. که دوی د دواړو طرفونو وکیلان وی نو بیشکه ددوی حکم به جمع او تفریق دواړو کښې نافذ وی .اودې کښې د چا خلاف هم نه دې منقول.بیا دا هم خیال ساتل پکار دې چه دواړه ډلې دې دحاکم طرفنه مقرر وی. او فیصله به هم دوی کوی .اګر چه ددوی نه فریقین ناراض وی یا دوی د دواړو ښځې خاوند طرفنه وکیلان وی.
دجمهورو مذهب رومبې دې اودلیل دادې چه دوی ته قران پاک حکم کړې دې او که کومه فیصله یا حکم شی نودې فیصلې سره که څوک خوشحاله وی او که څوک خفه وی.بهر صورت د هغه فیصله به قطعی وی.د آیت ظاهري الفاظ د جمهورو مرسته کوی د امام شافعی رحمه الله نوې قول هم دادې او امام ابوحنیفه رحمه الله اوددی ملګرو نه همدا قول نقل دې.
دویم قول (چه د حکمینو ته د تفریق اختیار نشته) چې د چا دې هغوئ وائی که دا د حکم په صورت کښې وې نو بیا په حضرت علی رضی الله عنه هغه خاوند ته ولې فرمائیل چه ترکومې ښځې د دواړو صورتونو اقرار کړې وی اوته ئې اونه کړې نو ته دروغژن ئې ، والله اعلم.
ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه دعلماء کرامو اجماع ده چه هرکله د دواړودلو قولونه مختلف وی نو د دویم قول اعتبار به نه وی او په دې امر باندې هم اجماع ده چه دوی اتفاق کول غواړی نو ددوی فیصله به نافذ وی البته که جدائی غواړی نو بیا به هم فیصله نافذ وی که نه.په دې کښې اختلاف دې .لیکن د جمهورو مذهب همدا دې چه په دې کښې به هم ددوی فیصله نافذ وی اګر چه دوی وکیل نه وی جوړکړې شوې

**د ښځې او خاوند په مینځ کښې روغه کولو کښې د حکمینو اختیار**

**مسلک حنفی:-** که ښځهٔ او خاوند دواړه حکمینو یعنی فیصله کونکوته اختیار ورکړی یا هغوی خپل وکیلان مقرر کړی او دا اومنی چه تاسو دواړو کومه فیصله اوکړه هغه مونږ ته منظوره ده نو په دې کښې صورت کښې که دواړه فیصله کونکو د دوی د جدائی فیصله اوکړه نو دا به صحیح وی او نافذه به وی.د احنافو دا مسلک دې (معارف القران ۲/ ۴۰۳)-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاعْبُدُوا اللَّهَ | | وَلَا تُشْرِكُوا | بِهِ | شَيْئًا |
| او عبادت کوئ دالله | | اومهٔ شریکوئ | دهغه سره | هیڅ څیز |
| او صرف دالله جل جلاله عبادت کوئ | | او هیڅ څیز ورسره مهٔ شریکوئ | | |
| وَبِالْوَالِدَيْنِ | إِحْسَانًا | وَبِذِي الْقُرْبَىٰ | وَالْيَتَامَىٰ | وَالْمَسَاكِينِ |
| او دمور او پلار سره | احسان کوئ | او دخپلوانو سره | او دیتیمانو سره | او دمسکینانو سره |
| اومورپلار سره ښهٔ سلوک کوئ | | او خپلوانو سره ............ | او یتیمانو سره......... | او مسکینانوسره |
| وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ | وَالْجَارِ الْجُنُبِ | وَالصَّاحِبِ بِالْجَنبِ | وَابْنِ السَّبِيلِ | |
| اودګاونډی رشته دار سره | او دګاونډی غیررشته دار سره | او دملګری ادخنګ سره | او دمسافر سره | |
| او ګاونډیانو سره که خپلوان وی او که پردی وی | او دناستې ملګری سره (لکه دفترملګرې د سفرملګرې) | او مسافرسره | | |
| وَمَا | مَلَكَتْ | أَيْمَانُكُمْ | إِنَّ اللَّهَ | لَا يُحِبُّ |
| او دهغه وینځو غلامانو سره | چې مالکان وی دهغوئ | ښې لاسونه ستاسو | بیشکه الله | نهٔ خوښوی |
| او(هغې وینځومریانوسره )چې تاسوئې مالکان ئې | | ............ | بیشکه الله جل جلاله نهٔ خوښوی | |

| مَنْ | كَانَ | مُخْتَالًا | فَخُوْرًا ﴿٣٦﴾ |
|---|---|---|---|
| هغه څوك | چې وي | كبرژن | فخركونكي |
| هغه سړي چې چا كښې تكبر وي | اوفخركونكې وي | | |

قوله تعالى: وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا

**دحسن سلوک مستحق خلق:**- الله ﷻ دخپل عبادت حکم کوی او دخپل توحید باره کښې بیان کوی. او فرمائی چه ماسره شریك مه جوړوئی. ځکه چه خالق ، مالك ، رازق ، ټولو نعمتونو والا ، ټول مخلوق باندې هر وخت کښې درحمت باران کولو والا صرف هغه پاك ذات دې نو د عبادت لائق هم هغه لوئې ذات دې.

**دالله په بنده حق:**- حضرت معاذ ﷜ ته نبی کریم ﷺ فرمائی چه تاته معلومه ده چه دالله ﷻ په بندګانو باندې څه حق دې ؟ دوی جواب کښې فرمائی چه الله او دهغه رسول ﷺ ته ښه معلوم دی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دا چه د ① هغه عبادت کوی ② هغه سره څوك شریك جوړ نکړی. بیا ئې اوفرمائیل چه تاته معلوم دی چه کله بنده دا کارونه اوکړی نو الله ﷻ هغه ته څه ورکوی ؟ دا چه هغه لوئې ذات ده ته عذاب ورنکړی.[1]

قوله تعالى: وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا

**مور پلار سره د حسن سلوک حکم:**- بیا فرمائی چه مور پلار سره احسان کوئی هغوئ د عدم نه وجود ته د راوستو سبب جوړ شوی دی. قرآن پاك کښې ډیرو آیتونو کښې الله ﷻ خپل عبادت سره مور پلار سره د احسان کولو حکم کړې دې لکه فرمائی چه ﴿اَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ﴾ او ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا﴾.

قوله تعالى: وَبِذِي الْقُرْبٰى

**خپلوانو سره ښه کول:** دلته ئې هم اوفرمائیل چه خپلو رشته دارو سره ښه سلوك کوئی او احسان کوئی.

**رشته دارته صدقه کول:**- حدیث مبارك کښې دی چه مسکین ته صدقه ورکول صرف صدقه ده لیکن نزدې رشته دار ته صدقه ورکول صدقه هم ده او صله رحمی هم ده.[2]

قوله تعالى: وَالْيَتٰمٰى

**یتیمانو سره ښه سلوک:**- بیا حکم فرمائی چه یتیمانو سره احسان کوئی ، ځکه چه دوی سره محبت کونکې، ددوی خبر اخستلونکې اوددوی په سر لاس راښکونکې او ددوی نیازبین توب زغمونکې بل څوك نشته دې، هغه څوک وفات شول چې دوی ته به ئې محبت سره خوراك، څکاك ورکولو.

قوله تعالى: وَالْمَسٰكِيْنِ

**مسکین سره د ښه کولو حکم:**- بیا مسکینانو سره د حسن سلوك ارشاد دې فرمائی چه هغوئ حاجت مندی دی، خالی لاس دی ، محتاج دی ، ددوی ضرورتونه تاسو پوره کړئی ، ددوی حاجتونه تاسو پوره کړئی اوددوی کارونه کوئی. د فقیر او مسکین پوره بیان به دسورة برآت تفسیر کښې راشی، انشاء الله.

قوله تعالى: وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ

**د ګاونډیانو حقوق د احادیثو په رڼا کښې:**- دخپلو ګاونډیانو خیال ساتئ او هغوئ سره حسن سلوك کوئی که هغه ستاسو رشته داروی اوکه نه ، که مسلمان وی اوکه یهودیان یا نصرانیان. دا هم ونیلې

---

[1] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب من جاهد نفسه فی طاعة الله : ۶۵۰۰، صحیح مسلم: ۳۰)۔
[2] ترمذی کتاب الزکاة باب ماجاء فی الصدقة علی ذوی القربی : ۶۸۵، وهو صحیح : نسائی: ۲۵۸۳)۔

شوی دی چه ﴿وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ﴾ نه مراد ښځه ده او ﴿وَالْجَارِ الْجُنُبِ﴾ نه مراد رفیق سفر دې. د ګاوندیانو حق کښې ډیر احادیث راغلی دی.دهغې نه څه واورئ.

**د ګاونډی سره د حسن سلوک حکم:-** مسند احمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه ما ته حضرت جبریل ؑ د ګاونډیانو باره کښې تر دې وصیت کولو چه ماته ګمان اوشو چه کیدې شی ګاوانډیان به د یو بل وارثان هم شی.([1])

**بهترین ګاونډی:-** فرمائی چه بهتر ملګرې هغه دې چه هغه خپلو ملګرو سره حسن سلوک کښې د ټولو نه زیات ښه وی، او ګاونډیانوکښې د الله په نیز د ټولو نه زیات بهتر هغه دې چه ګاونډیانو سره نیك سلوك کښې ټولو نه زیات وی.([2])

**د ګاونډی فکر کول:-** فرمائی چه انسان ته نه دی پکار چه د خپل ګوانډی د آسودګۍ نه بغیر دې ښه پۀ مړه خیټه خوراك اوکړی.([3])

**دګاونډی سره د خیانت د ګناه غټوالې:-** یو ځل نبی کریم ﷺ صحابه کرام ؓ ته اوفرمائیل چه تاسو د زنا باره کښې څه وائې؟خلقو اوونیل چه هغه حرامه ده.الله ﷻ اوهغه رسول ﷺ دا حرامه کړې ده. او تر قیامته به دا حرامه وی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واورئ ! لسو ښځو سره زنا کونکې دهغه سړی نه کم ګناهګارې دی چه څوك د خپل ګوانډی ښځې سره زنا اوکړی.بیا تپوس کوی چه تاسو د غلا متعلق څه وائې ؟ هغوئ جواب کښې اوونیل چه داهم الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ حرامه کړې ده اوهغه هم تر قیامته پورې حرامه ده.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واوړئ ! د لسو کورونو نه غلا کونکې ګناه دهغه سړی نه کمه ده چه څوك د خپل ګاونډی دکور نه غلا اوکړی.([4])

**دګاونډی د ښځې سره د زنا لویوالې:-** بخاری او مسلم کښې دی چه حضرت ابن مسعود ؓ سوال کوی چه یارسول الله ﷺ کومه یوه ګناه لویه ده ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا چه ته الله ﷻ سره شریك جوړ کړې حالانکه هغه پاك ذات ته پیدا کړې نې ما تپوس اوکړو چه کومه ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته د خپل ګاونډی ښځې سره زنا اوکړې.([5])

**دجبرئیل ؑ د ګاونډی د حقوقو تاکیدکول:-** یو انصاری صحابی ؓ اوفرمائیل چه څه د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضریدو دپاره کور نه اووتلم او هلته اورسیدم. او ما چه اوکتل نو یو صاحب ولاړ دې او نبی کریم ﷺ هغه طرفته متوجه دې.ما خیال اوکړو چه شاید دده به نبی کریم ﷺ سره څه کار وی.نبی کریم ﷺ اودریدو او هغه سره نې خبرې شروع کړې وې.ډیر ناوخته شو تردې چه څه دې پریشانه کړم چه نبی کریم ﷺ به سترې شوې وی. ډیر وخت پس نبی کریم ﷺ واپس شو او ما ته راغلو. ما اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! دې سړی خو تاسو ډیر وخت ولاړ اوساتلئ او څه پریشانه شوم چه نبی کریم ﷺ به ډیر سترې شوې وی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تا اونه کتل ؟ ما اوونیل چه آوه ما ښه اوکتل.وې فرمائیل چه تاته معلومه ده چه دا څوك وو ؟ هغه حضرت جبریل ؑ وو اوماته نې د ګاونډی د حقوقو باره کښې تاکید کولو ، تر دې نې دهغه حقوق بیان کړل چه ماته ګمان اوشو چه غالبًا نن به ګوانډی وارث هم جوړ شی([6]) (مسنداامام احمد ).

[1]) صحیح بخاری کتاب الادب باب الوصاة بالجار: ۶۰۱۵، صحیح مسلم: ۲۶۲۴)-
[2]) ترمذی کتاب البر والصلة باب ماجاء فی حق الجوار: ۱۹۴۴، وسنده صحیح )-
[3]) احمد: ۵۴/۱، )-
[4]) احمد: ۸/۶، وسنده حسن )-
[5]) صحیح بخاری کتاب الادب باب قتل الولد خشیة ان یاکل : ۶۰۰۱، صحیح مسلم: ۸۶)-
[6]) احمد: ۳۲/۵)-

**بل روایت:-** مسند عبد بن حمید کښې دی حضرت جابر بن عبدالله ﷺ فرمائی چه یو سړې د عوالی مدینې (د مدینې پورته طرف) نه راغلو ، هغه وخت نبی کریم ﷺ او حضرت جبریل ﷺ په هغه ځائې کښې مونځ کولو چه کوم ځائې کښې به ئې دجنازې مونځ کولو. هرکله چه نبی کریم ﷺ فارغ شو نو هغه سړي ورته اووئیل چه نبی کریم ﷺ سره دا بل سړې څوك دې چه مونځ کوی؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تا هغه اولیدلو؟ هغه اووئیل چه آؤ.وې فرمائیل چه تا ډېره لویه نیکی اوکتله.دا حضرت جبریل ﷺ وو چه ماته ئې د ګاونډی باره کښې وصیت کولو تر دې چه ما اوکتل چه نزدې ده چه هغه به وارث جوړ کړې شي. ([1])

**د ګاونډي درې قسمونه:-** اتم حدیث شریف د بزاردې. چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ګاونډیان په درې قسمه وی.دیو حق والا یعنی ادنی،د دوو حقوقو والایعنی درمیانه اودریو حقونووالایعنی اعلی.یو حق والا هغه دې چه کوم مشرك دې او ده سره ئې رشته نه وی. دوو حقونو والا هغه دې چه مسلمان وی اورشته دارنه وی یوحق داسلام اودویم د ګوانډ.اودریو حقونووالاهغه دې چه مسلمان هم وی،ګوانډی هم وی او خپل رشته دار هم وی نو د اسلام حق ، د ګوانډ حق او د صله رحمئ حق درې حقونه شو. ([2])

**دروازې ته د نزدې ګاونډي حق:-** دمسند احمد نهم حدیث مبارك کښې دی چه حضرت عائشه ﵂ نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه څما دوه ګاونډیان دی ، یو ته هدیه لیږم نو په دواړو کښې چا ته اولیږم.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د چا دروازه درته زیاته نزدې وی. ([3])

**دګاونډي په حق کښې بل حدیث:-** د طبرانی لسم حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ اودس اوکړو ، خلقو د نبی کریم ﷺ د اودس اوبه واخستې او خان باندې ئې مخل شروع کړې ، نو نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه داسې ولې کوئې ؟ هغوئ اووئیل چه دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ دمحبت په وجه.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څوك دا غواړی چه الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ ده سره محبت اوکړی نو هغه ته پکار دی چه کله خبرې کوی نو رښتیا وائی، اوکله چه ده سره څوك امانت کیږدی نو هغه امانت ادا کوی ([4])
(تفسیر ابن کثیر کښې دا حدیث هم دې ځای باندې ختم شوې دې لیکن شاید مخکښې جمله دده نه په غلطئ سره پاتې شوې ده چه دهغې صحیح تعلق دې مسئلې سره دې او هغه داده چه هغه ته پکار دی چه د ګاونډی سره ښه سلوك کوی او احسان ورسره کوی مترجم).

**دقیامت په ورځ اولنئ مقدمه:-** یولسم حدیث د مسند احمد کښې دی چه دقیامت په ورځ به دټولو نه مخکښې کومه جګړه دالله ﷻ مخکښې پیش کولې شی هغه به د دوو پروسیانویعنی ګوانډیانو وی ([5])

**قوله تعالی:** ﴿وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ﴾

**د صاحب بالجنب نه مراد:-** بیا حکم دې د ﴿وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ﴾ سره دسلوك کولو. ① ددې نه مراد د ډېرو مفسرینو په نیز ښځه ده ② او ډېر فرمائی چه ددې نه مراد د سفر ملګرې دې. ③ اودا هم مروی دی چه ددې نه مراد دوست او ملګرې دې .برابره ده که سفر کښې وی او که دقیام حالت کښې وی.

**قوله تعالی:** ﴿وَابْنِ السَّبِيلِ﴾

[1]) البزار : ۱۸۹۷، کتاب الادب المفرد : ۱۲۶، وسنده حسن)-
[2]) مسند البزار : ۱۸۹۶، وسنده مرفوع)-
[3]) صحیح بخاری کتاب الادب باب حق الجوار فی قریب الابو اب: ۶۰۲۰)-
[4]) الطبرانی وابونعیم والبیهقی فی شعب الایمان: ۱۵۳۳، وسنده حسن مجمع الزوائد : ۱۴۵/۴)-
[5]) احمد: ۱۵۱/۴، والطبرانی : ۳۰۳/۱۷، ح/۸۳۶، وهو حدیث حسن)-

**د ابن السبيل نه مراد:-** ①ابن السبيل نه مراد ميلمه دي ②اودا هم چه كوم په لاره روان وي اوچاسره ايسار شي. نو كه دلته ترې ميلمه مطلب واخستې شي نو چه سفر كښې تلو تلو كښې ميلمه جوړ شي نودواړه يوشو. ددې پوره بيان به هم د سورة بقره په تفسير كښې راشي.

**قوله‌تعالى:** وَمَامَلَكَتۡ أَيۡمَانُكُمۡ

**د غلام سره نيكي كول-** بيا دغلامانو باره كښې فرمان دې چه هغوئ سره نيك سلوك كوني ځكه چه دوي غريبانان دي اوستاسو په لاس كښې قيديان دي.او دوي بانديې تاسوته پوره اختيار دې.نوتاسو ته پكار دى چه په دوي رحم اوكړئ.او ددوي د ضرورتونو د خپل وس مطابق خيال اوساتئ.**په مرض الوفات كښې دغلامانو دحقوقو تاكيد:-** نبي كريم ﷺ خو خپل مرض الموت كښې هم ددوي باره كښې وصيت كړې دې.نبي كريم ﷺ فرمائي چه اے خلقو ! دمونځ او غلامانو خيال ساتئ ، باربار به ئې دا فرمائيل تر دې چه ژبه مباركه ئې تتبه شوه. [1]

**غلامانوباندې خوراك صدقه ده:-** دمسند احمد يو حديث مبارك كښې دي چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو څه خورئي هغه هم صدقه ده او چه څه خپلو بچو ته وركوني هغه هم صدقه ده ، او چه څه تاسو خپلوبيبيانو ته وركوني هغه هم صدقه ده ،او چه څه خپلو غلامانوته وركوني هغه هم صدقه ده. [2]

**دخوارك منع كولوممانعت:-** مسلم كښې دي چه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ يو ځل خپل داروغه نه اوفرمائيل چه آيا تا غلامانو ته خوراك وركړې دې ؟ هغه اوونيل چه نه.وې فرمائيل چه لاړشه او خوراك ورته وركړه.نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي چه انسان دپاره دا ګناه كافي ده چه دكوم خوراك دې مالك دى. او دې دهغې نه منع اوكړي (اوغوښتونكى ته ئې ورنكړي). [3]

**غلام ته خوراك وركول دهغه حق دې:-** مسلم شريف كښې دي چه دمملوك ماتحت (غلام يا وينځې) حق دې چه هغه ته خوراك څكاك او اغوستلو دپاره هرڅه وركړې شي .اود هغه د طاقت نه زيات كار ترې وانخستې شي. [4]

**غلام په خوراك كښې د شريكولو حكم:-** بخاري شريف كښې دي چه كله تاسو ته يو خادم خوراك راوړي.نو تاسوته پكار دي چه اول خو هغه ځان سره كينوې اوكه نه ئې كينوئ نو يو نمړئي دوه هغه ته وركړې.ځكه چه هغه ددې خوراك د پخلي ګرمي او برداشت كړې دې.او يو روايت كښې دي چه پكار دى چه هغوئ ځان سره كينوني ، او كه خوراك كم وي نو يو نمړئي دوه هغوئ ته وركړئي. [5]

**غلامان د ازادو رونړه دي:-** نبي كريم ﷺ فرمائي چه ستاسو غلامان هم ستاسو رونړه دي.الله ﷻ هغوئ ستاسو ماتحت جوړ كړي دي .نو چه د چا لاس كښې دهغه لاس وي هغوئ دې ورته خوراك وركوي او پوشاك دې ورته هم وركړي او هغوئ نه دې داسې كار نه اخلي چه هغوئ ئې طاقت نه لري. كه څه داسې مشكل كار راشي نو پخپله دې هم ورسره شريك شي.(بخاري ومسلم). [6]

**قوله‌تعالى:** إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخۡتَالٗا فَخُورًا

---

[1]) ابن ماجة كتاب الجنائز باب ما جاء في ذكرمرض رسول الله صلى الله عليه وسلم : ۱۶۲۵)-

[2]) احمد: ۱۳۱/٤ وسنده حسن)-

[3]) صحيح مسلم: كتاب الزكاة باب فضل النفقة على العيال والمملوك : ۹۹۶، ابوداود : ۱۶۹۲)-

[4]) صحيح مسلم كتاب الايمان باب اطعام المملوك مما ياكل : ۱۶۶۲)-

[5]) صحيح بخارى كتاب الاطعمة باب الاكل مع الخادم : ۵٤۶۰، صحيح مسلم : ۱۶۶۳، ابوداود: ۳۸٤۶، ترمذى: ۱۸۵٤، ابن ماجة: ۳۲۸۹)-

[6]) صحيح بخارى كتاب العتق باب قول النبي صلى الله عليه وسلم ( العبد اخوانكم فاطعموا هم) : ۲۵٤۵، صحيح مسلم: ۱۶۶۱، ابوداود : ۵۱۵۸، ترمذى : ۱۹٤۵، ابن ماجة: ۳۶۹۰)-

**متکبر دالله نه خوښه وي:** بیا فرمائي چه خودبین ، متعجب ، متکبر ، خودپسند ، خلقو باندې فوقیت ظاهرونکي ، خپل خان لوئي حسابونکي، خپل خان د نورو نه بهتر ګنړونکي ، الله ﷻ ته خوښ نه دي اګرچه هغه خپل ځان لوئي حسابوي.لیکن دالله ﷻ په نیز هغه ذلیل دې.اود خلقو نظر کښې هغه حقیر دي.دا ځومره بده خبره ده چه یو کس بل سره احسان اوکړي او بیا په هغه احسان کوي .لیکن الله ﷻ چه کوم نعمتونه ده ته ورکړي دي دهغې شکر نه ادا کوي.خلقو کښې چه کیني نو فخر کوي چه څه دومره لوئي سړې یم ، ماسره دا دي او دا دي.نواز.

**دحضرت ابورجاء ؓ قول:**- حضرت ابورجاء هروي رحمه الله فرمائي چه هر بدخلق متکبر خودپسند وي. بیا ني ددې آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو او وې فرمائیل چه دمور پلار نافرمان سرکش او بدنصیب وي.بیا دوی دا آیت مبارك تلاوت کړو چه ﴿وَبَرًّا بِوَالِدَتِي وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا﴾.حضرت عوام بن حوشب رحمه الله هم دا فرمائي.

**هغه درې کسان چه الله ورسره دشمني کوي:**- حضرت مطرف رحمه الله فرمائي چه ماته دحضرت ابوذر ؓ یو روایت رارسیدلې وو او ځما زړه کښې خواهش وو چه څه وخت پخپله حضرت ابوذر ؓ سره ملاقات اوکړم او دا روایت ترې زباني واورم. نو یو ځل مې ورسره ملاقات اوشو نوورته ماأووئیل چه ماته خبر رارسیدلې دې چه تاسو د رسول الله ﷺ دا یو حدیث بیان فرمائیلې دې چه درې قسمه خلق دالله ﷻ دوستان دي،اودرې قسمه خلق نه خوښوي.حضرت ابوذر ؓ فرمائي چه آؤ داریښتیا دي. څه به خپل خلیل ﷺ باندې ځنګه دروغ جوړ کړم ما اووئیل چه هغه درې کسان کوم دي چې هغوئ سره الله ﷻ دښمني ساتي.دوی هم ددې آیت تلاوت اوفرمائیلو.اووې فرمائیل چه دا خو ته په کتاب الله کښې هم کتې شي (١)

**دتکبرمذمت:**- دبنو هجیم یو سړې نبي کریم ﷺ ته واني چه ماته نصیحت اوکړه. نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه جامې د ګیټو نه لاندې مه ساته. ځکه چه دا تکبرا وخود پسندي ده. او الله تعالی دا نه خوښوي.(٢)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | الَّذِينَ | يَبْخَلُونَ | وَيَأْمُرُونَ |
| | | هغه کسان | چې شومتیا کوي | او حکم کوي |
| | | | هغه کسان چې شومان وي او نورو ته | |
| النَّاسَ | بِالْبُخْلِ | وَيَكْتُمُونَ | مَا | اٰتٰهُمُ اللّٰهُ | مِنْ فَضْلِهٖ |
| خلقو ته | د شومتوب | او پټوي | هغه څه | چې ورکړي وي هغوئ ته الله | دفضل خپل نه |
| هم دشومتیا حکم کوي | او الله ﷻ چې ورته پخپل فضل څه(مال متاع)ورکړې دي هغه پټوي | | | | |
| وَاَعْتَدْنَا | لِلْكٰفِرِيْنَ | عَذَابًا مُّهِيْنًا | وَالَّذِيْنَ | يُنْفِقُوْنَ | |
| او تیار کړې دې مونږه | دپاره دکافرانو | عذاب رسوا کونکي | او هغه کسان | چې خرچ کوي | |
| اومونږ کافرانو دپاره رسوا کونکي عذاب تیار کړې دې | اوهغه کسان(هم دالله پاك خوښ نه دي) چې هغوئ خپل | | | | |

١) حاکم : ٨٨/٢، وسنده صحیح)-
٢) احمد: ٦٤/٥، لم اجده ورواه احمد: ٦٤/٥، بسند آخر وسنده صحیح وانظر سنن ابي داود : ٤٠٨٤)-

| |
|---|
| أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ ۚ |
| مالونه خپل \| دپاره دښودنې \| د خلقو \| اونه لرې يقين \| په الله باندې \| او نهٔ په ورځ دآخرت باندې |
| مالونه صرف دنوم دپاره خرچ كوی\| اونه په الله ایمان راوړی اونه په ورځ د آخرت باندې |
| وَمَن يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا ۝ وَمَاذَا |
| اوهغه څوك چې وى \| شيطان \| د هغه \| ملګرې \| نو بد دې \| داملګرى \| اوڅه نقصان وو |
| اوربشتيا خبره داده چې شيطان دچاملګرى شى\| نو دغه ډيربد ملګرى دې \|او ددوئ څه نقصان كيدو |
| عَلَيْهِمْ لَوْ آمَنُوا بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَنفَقُوا |
| هغوئ دپاره\| كه ايمان راوړې وې هغوئ \| په الله باندې\|او په ورځ دآخرت باندې\|اوخرچ كړې وې هغوئ |
| كه دوئ په الله ﷻ او په ورځ دآخرت باندې ايمان راوړې وې \| او (د الله په لاره كښې ئې هغه څه) خرچ كړې |
| مِمَّا رَزَقَهُمُ اللَّهُ ۚ وَكَانَ اللَّهُ بِهِمْ عَلِيمًا ۝ |
| دهغې نه\| چې وركړې دى هغوئ ته الله\| اودې الله\| په هغوئ ښه عالم \| |
| وې كوم چې ورته الله ﷻ وركړې دى\| اوالله ﷻ ته ددوئ حال ډيرښهٔ معلوم دې \| |

**قوله تعالى:: الَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ**

**دبخيل توب او خودنې مذمت** :-ارشاد دې چه كوم خلق دالله ﷻ د خوشحالولو په موقع د مال خرچ كولو نه مخ اړوى لكه مورپلار ته وركول ،د رشته دارو سره ښه سلوك كول ، يتيمانو سره ، مسكينانو سره ، رشته دارو سره،اوپردو سره،ملګرو سره،مسافرو سره،او هغه غلامانو سره چه كوم دده ماتحت وى ، او هغوئ ته فى سبيل الله وركړه كول ، او صرف دا نه بلكه خلق هم دبخل نه منع كوى او د الله په لار كښې دخرچ كولو مشورې وركوى.حديث مبارك كښې دى چه كومه يوه بيمارى د بخل نه لويه ده.(يعنى نشته) ([1])

**بخل هلاكت دې**:- اوحديث مبارك كښې دى چه انې خلقو ! بخيلئ نه ځان اوساتئ ، هم دې ستاسونه مخكښې خلق تباه كړى دى .هم ددې په وجه دهغوئ نه قطع رحمى او فسق وفجور او بدكارونه ظاهر شوى وو([2])

**قوله تعالى:: وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۗ**

بيا فرمائى چه دا خلق د دې ګناه نه علاوه په يوه بله ګناه كښې هم اخته دى. يعنى دالله ﷻ نعمتونه پټوى،هغه نه ظاهروى،او نه دوى په خپل خوراك څكاك كښې هغه ظاهرى وى او نه په اخستلو كښې دى،لكه بل ځائې كښې فرمائى چه ﴿إِنَّ الْإِنسَانَ لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ ۝ وَإِنَّهُ عَلَىٰ ذَٰلِكَ لَشَهِيدٌ ۝﴾ (ترجمه ) " انسان دخپل رب ناشكره دې او په دې خپل حالت او خصلت ګواه دې.بيا فرمائى چه ﴿وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ ۝﴾ يعنى هغوئ دمال محبت كښې مست دى.نو دلته هم فرمان دې چه دوى دالله ﷻ فضل لره پټوى.

**قوله تعالى:: وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ۝**

بيا دوى ته تنبيه وركوى چه كافرو دپاره مونږ ذلت والا عذاب تيار كړې دې.دكفر معنى ده پټ ساتل ،

---

[1]) صحيح بخارى كتاب المغازى باب ل قصة عمان والبحرين : ۳۸۳، من قول ابى بكر )-

[2]) احمد: ۱۹۵/۲، وسنده صحيح ، الحاكم:۱۱/۱، ابن حبان :۵۱۷۶)-

اوپېتول ، نو بخيل هم دالله ﷻ د نعمتونوپټونکې دې. او په دې باندې پرده اچوونکې او ددې انكار كونكې دې.نو هغه ددې نعمتونوناشكره شو. حديث مبارك كښې دي چه الله ﷻ كله په خپل يو بنده باندې خپل انعام كول غواړي نودا غواړي چه دهغې اثر په هغه باندې ظاهركړي.([1]) ددې معنى كښې يو روايت ابوداود ([2]) كښې د نبى كريم دعا ده چه ﴿ واجعلنا شاكرين لنعمتك مثنين بها عليك قابليها واتمها علينا ﴾ اې الله ﷺ مونږ دخپلو نعمتونو شكر ګزار جوړ كړه. اوددې په وجه مونږ خپل ثنا خوان جوړ كړه.او ددې قبلولو والا او دانعمتونه مونږ ته بيا راكړه. ([3])

**د ايت يوبل مصداق:-** دبعضوسلفو قول دې چه دا آيت د يهودو د هغه بخل باره كښې دې چه هغوئ به خپل كتاب كښې د نبى كريم ﷺ صفات پټول.ددې وجې ددې آخر كښې دى چه مونږ دكافرو دپاره ذلت والا عذاب تيار كړې دې.هيڅ شك نشته دې چه ددې آيت حمل په هغوئ باندې كيدې شي.ليكن دا په ظاهره دلته د مال دبخل بيان دې .اګر چه په دې كښې د علم بخل هم شامل دې.خيال اوكړئ چه آيت خپلوانو او كمزورو ته د مال وركولو د بيان باره كښې دې .هم دغه شان د دې نه روستو آيت كښې د الله تعالى دهغه خلقو مذمت بيانوى چې كوم خودنې دپاره مال خرچ كوى .دلته دهغه خلقوبيان اوشو چې بخيلان او ممسكان دى او چه پيسه پيسه جمع كوى.

**قوله تعالى:: وَالَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ::** بيا دهغه خلقو بيان دې چه وركړه كوى خو نيت ئې پكښې ښه نه وى،صرف په دنيا كښې د خپل نوم دپاره ئې وركوى.

**درې قسمه خلق جهنم ته تلل:-** يوحديث مبارك كښې دې چه په كومو درې قسمه خلقوباندې به د جهنم اور بلولې شى هغه به هم دا رياكار وى. ① عالم رياكار ② غازى رياكار ③ سخى رياكار.دا سخى به وائى چه اې الله تعالى ما ستا په هره لار كښې خپل مال خرچ كړو. نو ده ته به دالله تعالى د طرفنه جواب وركړې شى چه ته دروغژن ئې ، ستا اراده صرف دا وه چه په سخى او جواد سره مشهور شې نو هغه اوشو. يعنى ستا مقصد دنيا كښې پوره شو او تاته په دنيا كښې شهرت ملاؤ شو «دا د اوږد حديث لږه حصه ده خو د هغې خلاصه دا ده چه دغه درې واړه كسان به جهنم ته اوغورځولى شى» ([4])

**دحاتم طائى سخاوت:-** اوحديث مبارك كښې دى چه نبى كريم ﷺ حضرت عدى بن حاتم ﷺ ته اوفرمائيل چه ستا پلار په خپل سخاوت سره څه غوښتى وو هغه ورته ملاؤ شو.«يعنى دنياوى شهرت» ([5])

**د ابن جدعان اخرت:-** نبى كريم ﷺ نه سوال كيږى چه عبدالله بن جدعان خو لوئى سخى وو .هغه به مسكينانو او فقيرانو سره ډير ښه سلوك كولو.او دالله ﷻ په نوم ئې غلامان آزادول. نودا به هغه ته فائده وركوى ؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه نه ، هغه ټول عمر كښې يو ځل هم دا نه وو وئيلې چه اې الله ﷻ زما ګناهونه دقيامت په ورځ معاف كړه. ([6])

**قوله تعالى:: وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ ۗ وَمَن يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا ۝**

**د رياكار عقيده اوتعلق:-** ددې وجې الله تعالى دا فرمائى چه ددوى ايمان په الله ﷻ او په ورځ د قيامت باندې نشته دې ، ګنى دشيطان پنجه كښې به دوى نه راتلل او بد به ئې ښه نه ګڼړل.دا دشيطان

---

[1]) احمد: ۴۷۴/۳، وسنده ضعيف وله شاهد صحيح عند ابى داود : ۴۰۶۳، فالحديث به حسن

[2]) كتاب اللباس باب فى الخلقان : ۴۰۶۳ ، نسائى : ۵۲۲۶، )-

[3]) ابوداود كتاب الصلاة باب التشهد : ۹۶۹، وسنده حسن وهو صحيح )-

[4]) صحيح مسلم كتاب الامارة باب من قاتل للرياء والسمعة : ۱۹۰۵، نسائى: ۳۱۳۹، ترمذى: ۲۳۸۲)-

[5]) احمد: ۲۵۸/۴، وسنده حسن ابن حبان: ۳۳۲)-

[6]) صحيح مسلم كتاب الايمان باب الدليل على ان من مات على الكفر: ۲۱۴، ترمذى: ۳۱۲۱، ابن ماجة: ۴۲۷۹)-

ملګری دی اوشیطان ددوی ملګرې دې.دملګری په بدئ باندې هم سوچ اوکړئی ، عربی شاعر وائی چه

عن المرءلاتسأل وسل عن قرينه

فكل قرين بألمقارن يقتدي

(ترجمه )دانسان باره کښې تپوس مه کوه،دهغه دملګرو تپوس اوکړه،هرملګرې دخپل ملګری په نقش قدم روان وی.

قوله تعالى: :وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِهِمْ عَلِيْمًا ﴿۳۹﴾

بیا فرمائی چه دا څه رکاوټ نشته چې دهغې په وجه دوی په ا لله باندې ایمان نشی راوړلې اواو صحیح لار روان شی ، اوریاکاری پریږدی ، او اخلاص او یقین باندې قائم پاتې شی. ددوی په دې کښې څه نقصان دې بلکه سراسر فائده ده چه ددوی آخرت به ښه شی.او دوی ولې د الله ﷻ په لار کښې خرچ کولوکښې کنجوسی کوی. دالله ﷻ محبت او دهغه رضامندی حاصلولو دپاره کوشش نه کوی.الله ﷻ ته دوی ښه معلوم دی.ددوی دښه بد نیتونوعلم الله ﷻ ته دې.اهل توفیق او غیر اهل توفیق هغه پاك ذات ته ښکاره دی.هغه نیکانو ته دنیك عمل کولو توفیق ورکوی او دوی ته خپله رضا ورکوی او دوی ته خپل قرابتداری ورکوی.اوبدان خپل ګرفت کښې راولی اودې سره به ددوی دنیا اوآخرت برباد وی

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ

| بیشکه الله | نۀ کوی ظلم

ابیشکه الله ﷻ په چاباندې

مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۚ وَاِنْ تَكُ حَسَنَةً يُّضٰعِفْهَا وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ اَجْرًا

په قدر | د ذرې | او که وی نیکی | نو دوچند کوی هغه | او ورکوی | دطرف خپل نه | اجر

دذرې برابر ظلم نۀ کوی | اوڅوک چې یوه نیکی اوکړی نوهغه ورته په څوچنده زیات ورکوی| اودخپل طرفنه ورته

عَظِيْمًا ﴿٤٠﴾ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ

لوئ | نو څرنګ حال به وی| په هغه وخت| چې راولو مونږ| د هر امت نه | یوګواه

ډیرلوئې اجر ورکوی| نوهغه وخت به دوئ څه کوی چې مونږ به د هرامت نه یویو ګواه راوبلو

وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَاۤءِ شَهِيْدًا ﴿٤١﴾ؕ يَوْمَئِذٍ يَّوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

اوراولو مونږ تا لره| په دې خلقو باندې | ګواه | په دغه ورځ به | آرزو کوی | هغه کسان | چې انکار ئې کړې وو

اوپه دې خلقوباندې به تاګواه کړوا چا چې کفر کړې وی اود رسول صلی الله علیه وسلم نافرمانی ئې کړې

وَعَصَوُا الرَّسُوْلَ لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْاَرْضُ ؕ وَلَا يَكْتُمُوْنَ

اونافرمانی ئې کړې وه درسول|کاش چې هواره کړې شی | په هغوئ | زمکه | اونۀ به شی پټولې

وی هغوئ به دا وائی کاش چه زمکه په دوی باندې هموار ه شی او دوی سره هډو حساب اونشی

اللّٰهَ حَدِيْثًا ﴿٤٢﴾ع

دالله نه | هیڅ خبره |

اوهلته به دالله ﷻ نه هیڅ پټولې نشی |

**قوله تعالی: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۖ وَإِن تَكُ حَسَنَةً يُضَاعِفْهَا﴾**

**دنیکۍ اجر به څو چنده وي:-** الله رب العزت فرمائي چه هغه په هیڅ ظلم نه کوي اونه دچا نیکي ضائع کوي بلکه ددې اجر به دقیامت په ورځ ډیر زیات ورکوي.لکه بل ځائې کښې آیت مبارك کښې دي چه ﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ﴾ مونږ به د انصاف تلې قائم کړو.

اوفرمائي چه حضرت لقمان ؑ خپل ځوئې ته فرمائیلي وو چه ﴿يَا بُنَيَّ إِنَّهَا إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ﴾ اې خویه که یوڅیزد اوري د دانې برابر وي اګر چه هغه په کاڼړي کښې یاپه آسمان کښې وي یاپه زمکه کښې دننه وي الله ﷻ به هغه ضرور حاضروي بیشکه الله ﷻ باریك بین اوخبرداردې.او بل ځائې کښې فرمائي چه ﴿يَوْمَئِذٍ يَصْدُرُ النَّاسُ أَشْتَاتًا لِّيُرَوْا أَعْمَالَهُمْ﴾ په هغه ورځ به خلق مختلفو حالاتوکښې پیش کړې شي دا پیش کول به د دې دپاره وي چې هغوئ ته خپل عملونه اوخودلې شي.نو چا چه ذره نیکي کړې وي هغه به هغه ته خودلې شي او چه چا ذره برابر ګناه کړې وي هغه به هغه ته خودلی شي.

**د ذرې برابر ایمان والا به د جهنم نه راوځي:-** بخاري اومسلم کښې دشفاعت اوږد حدیث مبارك کښې دي چه بیا به الله ﷻ اوفرمائي چه واپس لاړ شئ او چه د چا په زړه کښې د اوري ددانې برابر هم ایمان اوګورئی نو هغه د جهنم نه راوباسئ.نو ډیر مخلوق به د جهنم نه راوښکلې شي.حضرت ابوسعید ؓ چه به داحدیث مبارك اوفرمائیلو نو وئیل به نې که تاسو غواړئی نو دا آیت قراني اووایې ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۖ وَإِن تَكُ حَسَنَةً يُضَاعِفْهَا﴾.(1)

**په حقوق العباد کښې د کوتاهئ انجام:-** ابن ابی حاتم کښې حضرت عبدالله بن مسعود ؓ فرمائي چه د قیامت په ورځ به دالله ﷻ یوبنده راوستلې شي او یو آواز کونکې به په اوچت آواز د محشر خلقو ته اووائي چه دا د فلاني ځوئې یا لور ده اوددې یا دده نوم فلانې دې ، که ده باندې د چا حق وي نوهغه دې راشي او دده نه دې خپل حق واخلي.په هغه وخت کښې به دا حالت وي چه یو ښځه به داغواړي چه ددې څه حق ددې په پلار یا رور یا خور یا خاوند باندې وي چه راشي اوهغه ترې واخلي.رشتې به ختمې شي.هېڅوك به دچا پکار نه راځي.الله ﷻ که اوغواړي نو خپل حق به معاف کړي.خو دخلقو به هیڅ حق نه معاف کوي.هرکله چه حقداران راشي نو هغه ته به اووئیلې شي چه د دوی حق ادا کړه.دې به اووائي چه دنیا خو ختمه شویده او اوس خما لاس کښې څه دي چه څه نې ده ته ورکړم. نو دده نیکئ به واخستې شي اوحقدارو ته به ورکړې شي اود هریوحق به په دې طریقه اداکړې شي.اوس دا سړې دالله ﷻ دوست دې.نو دې سړي به د غوښتو د دانې برابر نیکي پاتې نشي چه هغه الله ﷻ زیاته کړي او الله ﷻ دې جنت ته داخل کړي.بیا نبی کریم ﷺ ددې آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو. اوکه هغه بنده دالله ﷻ تعالی دوست نه وي بلکه بدبخت او سرکش وي. نو حال به داوي چه فرښتې به اووائي چه ائې الله ﷻ دده ټولې نیکئ ختمې شوې ، او اوس هم لاحقدار باقي دي.حکم به اوشي چه دهغوی ګناهونه واخلئ او په ده نې واچوئی او دې جهنم ته داخل کړئی.اعاذناالله منها.

ددې موقوف اثر بعضو شواهد مرفوع احادیثو کښې هم موجود دي.ابن ابی حاتم کښې د حضرت ابن عمر ؓ فرمان دې چه آیت ﴿مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾ د بانډیچیانو باره کښې نازل شوې دې.نو دې باندې هغوئ نه سوال اوشو چه بیا د مهاجرینو باره کښې څه دي.دوی اوفرمائیل چه ددې نه ډیر ښه

(1) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی: ( وجوه یومئذ ناظرة) : ۷۴۳۹، صحیح مسلم: ۱۸۳ نسائی: ۵۰۱۳، ابن ماجة: ۱۷۹)-

آیت ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ﴾ دي.[1]

**مشرکانو ته د هغوئ د نیکو بدله** :- حضرت سعید بن جبیر رحمه الله فرمائي چه دمشرکانو په عذاب کښې به هم د نیکو په وجې کمې کولې شي. خودوی به د جهنم نه نه راوځي.په صحیح حدیث مبارك کښې دي چه حضرت عباس رضی الله عنه نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! ستاسو تره ابوطالب ستاسو ملاتړوو ، تاسو ئې د خلقو د بچ بچ کړنې ، او تاسو دپاره هغوئ سره په جنګ وو ، نو آیا هغوئ ته به هغه دا څه فائده نه ورکوی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه په لږ شان اور کښې دې اوکه خما تعلق نه وې نو هغه به دجهنم په لاندې طبقه کښې وو.[2]

**د حافظ ابن کثیر رائې**:- خو دا ډیر ممکن ده چه دا فائده صرف ابوطالب دپاره وی.یعنی نورو کفارو دپاره نه وی.ددې وجې مسند طیالسی کښې حدیث مبارك دې چه الله ﷻ دمومن په هیڅ نیکئ ظلم نه کوی،دنیا کښې د رزق وغیره صورت کښې دهغې بدله ورکوی. اوآخرت کښې ثواب او اجر ورکولو والا دې.او کافر خو په دنیا کښې خپله نیکی خوری.قیامت کښې به ده سره هیڅ نه وی.[3]

قوله تعالی:: وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيمًا

په دې ایت مبارک کښې د اجر عظیم نه مراد جنت دې.الله ﷻ دې په خپل فضل و کرم او رحم سره خپله رضامندی راکړی او جنت دې څمونږ نصیب کړی ، آمین.

**په نیکئ یولاکهه او دوه لاکهه نیکئ ملاویدل**:-مسند احمد کښې یو غریب حدیث مبارك کښې دی حضرت ابوعثمان رحمه الله فرمائی چه ما ته خبر اوشو چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائیلی دی چه الله ﷻ خپل بنده ته دیونیکئ بدله کښې یولاکهه نیکئ ورکوی.ماته تعجب اوشواوما اووئیل چه دحضرت ابوهریره رضی الله عنه خذمت کښې خو ستاسو نه زیات پاتې شوې یم ما کله دهغوئ نه دا حدیث نه دې آوریدلې.اوس ما پخه اراده اوکړه چه لاړ شم او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه ددې تپوس اوکړم. ما د سفر سامان اوتړلو ، او روایت معلوماتو دپاره اووتلم. معلوم شو چه هغوئ حج ته تلی دی.نوما هم د حج اراده اوکړه اوهلته اورسیدم او حضرت ابوهریره رضی الله عنه سره مې ملاقات اوشو. ما اوونیل چه انې ابوهریره رضی الله عنه ! ما آور یدلی دی چه تاسو دا حدیث بیان کړې دې ، آیا دا رینبتیا دی ؟ دوی اوفرمائیل چه ته خو تعجب کښې معلومیږې.تا قران پاك نه دې لوستلې ، الله ﷻ فرمائی چه څوك الله ﷻ ته ښه قرض ورکړی نو الله ﷻ نه آوریدلی دی چه یو نیکی به زیاته کړې شی او ددې بدله کښې به دوه لاکهه نیکئ ملاؤ شی.[4] دا ډیر ډیر زیات کړی او دویم آیت کښې تولې دنیا ته کمه ونیلې شویده. د الله ﷻ قسم ما نبی کریم ﷺ دا حدیث مبارك نورو طریقوسره هم مروی دې.

قوله تعالی:: فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا

بیا د قیامت د خراب حال او سختئ بیان کیږی چه په هغه ورځ به نبیان علیهم السلام په طور د ګواه پیش کیږی.اوآیت کښې دی چه ﴿وَأَشْرَقَتِ الْأَرْضُ بِنُورِ رَبِّهَا وَوُضِعَ الْكِتَابُ وَجِيءَ بِالنَّبِيِّينَ وَالشُّهَدَاءِ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ﴾ زمکه به دخپل نور سره پرقیږی،اعمال نامې به ورکولې شی،او نبیان به په طور د ګواه

---

[1] )مجمع الزوائد : ۲٦/۷،ددې سند کښې عطیه مجروح راوی دې(التقریب : ۲/۲٤، رقم: ۲۱٦) نودا روایت مردود دې)-

[2] ) صحیح بخاری کتاب مناقب الانصار باب قصة ابی طالب : ۳۸۸۳، صحیح مسلم: ۲۰۹)-

[3] ) صحیح مسلم کتاب صفات المنافقین : باب جزاء المومن: ۲۸۰۸)-

[4] ) احمد: ۲/۵۲۱)-

پيش کيږي. اوبل ځاى کښې ارشاد دې چه ﴿وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا﴾ هر امت نه به مونږ هم ددوى نه ګواه پيش کوو.

**ددې ايت په اوريدو د نبى کريم د سترګو اوښکې:-** صحيح بخارى شريف کښې دى چه نبى کريم ﷺ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ته اوفرمائيل چه قران پاك اووايه. حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ اووئيل چه يارسول الله ﷺ څه به تاسو ته قران پاك وايم په تاسو خو نازل شوې دې. نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه زما زړه غوارى چه د بل نه ئې واورم. نو ما د سورة نساء د شروع آيتونه اووئيل ، هرکله چه څه آيت ﴿ فكيف ﴾ تلاوت ته اورسيدم نو نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه بس کړه. ما اوکتل چه د نبى کريم ﷺ سترګو مبارکو نه اوښکې جارى وې.(١)

**د نبى کريم ﷺ د ژړا په باره کښې بل روايت:-** حضرت محمد بن فضاله انصارى ﷺ فرمائى چه نبى کريم ﷺ قبيله بنو ظفر ته تشريف يوړو ، او په هغه صخره باندې اودريدو چه کومه نن هم دهغوئ محله کښې ده ، نبى کريم ﷺ سره حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ، حضرت معاذ بن جبل ﷺ او نور صحابه کرام ﷺ هم وو. نبى کريم ﷺ يو قارى ته اووئيل چه قران پاك اووايه. هغه په وئيلو وئيلو کښې کله دې آيت ﴿ فكيف ﴾ ته راورسيدو نو نبى کريم ﷺ دومره اوژړل چه د نبى کريم ﷺ په رخسار او ږيره مبارکه باندې اوښکې راغلې. او عرض ئې اوکړو چه اې ربه چه کوم موجود دى نو په هغوئ خو به زه ګواه شم ليکن چه کوم خلق ما نه دى ليدلى دهغوئ باره کښې څه دى؟(ابن ابى حاتم ) (٢)ابن جرير کښې دى چه نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه څه په دې خلقو ګواه يم تر کومې چه څه په دوى کښې يم. نو کله چه ته ماددې دنيا نه فنا کړې نو بيا خو به صرف هم ته په دوى نګهبان ئې.

**په روستو امت باندې د نبى کريم ﷺ د ګواهئ وضاحت:-** ابوعبدالله قرطبى رحمه الله په خپل کتاب کښې د تذکره باب کښې فرمائى چه د نبى کريم ﷺ د خپل امت دشهادت باره کښې څه راغلى دى. په هغې کښې حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله دا قول راوړې دې چه هر سحر ماښام نبى کريم ﷺ باندې د خپل امت اعمال پيش کولې شى نو نبى کريم ﷺ به د قيامت په ورځ په دوى ګواهى ورکوى ، بيا هم دا آيت ئې تلاوت اوفرمائيلو.

**حافظ ابن کثير ﷺ رائې:-** ليکن اول خو دا د حضرت سعيد رحمه الله خپل قول دې. دويم دا چه ددې سند انقطاع ده. په دې کښې يو راوى مبهم دې اودهغه نوم نشته دې. دريم دا چه دا حديث مرفوع نه بيانو ى. خو امام قرطبى رحمه الله دا قبلوى او ددې ذکر کولونه پس فرمائى چه دا مخکښې تيرشوى دى چه الله ﷺ ته دهر پير او هر جمعرات په ورځ اعمال پيش کيږى. نو دا په نبيانو عليهم السلام او مور پلار باندې هره جمعه پيش کيږى. او په دې کښې هيڅ تعارض نشته دې. ممکن ده چه خمونږ نبى ﷺ باندې هره جمعه پيش کيږى. او هره ورځ هم.

قوله تعالى: يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ تُسَوَّىٰ بِهِمُ الْأَرْضُ ۗ

**د کافرو د خاورې کيدو ارمان کول:-** بيا فرمائى چه په هغه ورځ به کافر او د نبى کريم ﷺ مخالفين آرزو کوى چه کاش زمکه اوچوى. او دوى په دې کښې داخل شوې وې. بيا زمکه بيا برابر شوې وې. څکه چه داسې تکليفونه به ورته ملاويږى چه دبرداشت نه بهر وى. اودغه شان رسوائې دالله غصې سره به ئې

---

(١) صحيح بخارى كتاب فضائل القران باب قول المقرى للقارى حسبك : ٥٠٥٠. صحيح مسلم: ٨٠٠، ابودود: ٣٦٦٨، ترملى: ٣٠٣٨)-

(٢) طبران : ٢٤٣/١٩ ح/٥٤٦ وسنده حسن )-

مخ وی.اودوی به یریږی. لکه بل آیت مبارك کښې چې فرمائی ﴿یَوۡمَ یَنظُرُ ٱلۡمَرۡءُ﴾ چه په کومه ورځ چې به انسان په خپلوسترګو خپل مخکښې لیږلې اعمال اووینی نو کافربه اووائی چه کاش ښاورې شوې وې.

**قوله تعالی:: وَلَا يَكۡتُمُونَ ٱللَّهَ حَدِيثٗا**

بیا فرمائی چه دوی به د خپلو ټولو بدوعملونو اقرار په هغه ورځ کوی. او یو څیز به هم پټ نه ساتی.

**د قران پاک د دوو ایاتونو په مینځ کښې تطبیق:**-یو سړی حضرت ابن عباس ؓ ته اوفرمائیل چه انې حضرت یوخائې کښې قران پاك کښې دی چه مشرکان به دقیامت په ورځ اووائی چه ﴿وَٱللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشۡرِكِينَ﴾ په الله قسم چه زمونږ رب دې مونږ شرك نه دې کړې او بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَلَا يَكۡتُمُونَ ٱللَّهَ حَدِيثٗا﴾یعنی دوی به الله ﷻ نه یوه خبره هم نشی پټولې.بیا ددې دواړو آیتونو مطلب څه دې؟ دوی اوفرمائیل چه ددې بل وخت دې او دهغې بل وخت.هرکله چه دوی اوګوری چه موحدین (مومنان) جنت ته روران دی نو اووبه وائی چه راشئ تاسوهم د شرك نه انکار اوکړئ ، دا څه عجب کار دې.بیا به ددوی په خولو باندې مهر اولګولې شی ، او لاس او پښې به ئې خبرې کوی ، او دالله ﷻ نه به یو خبره هم نه پټیږی.( ابن جریر ).

**دویم روایت:**- مسند عبدالرزاق کښې دی چه دا سړې راغلو او وې وئیل. چه ما باندې ډیر څیزونه قرآن پاك کښې مختلف دی.نو دوی اوفرمائیل چه څه مطلب دې .؟ آیا ته په قران پاك کښې شك کوې ؟ هغه اووئیل چه نه شك نه کوم خو څما په نظر کښې دې کښې اختلاف راځی.دوی اوفرمائیل چه کوم کوم ځائې کښې اختلاف دې هغه مقامات بیان کړه. نو هغه دا دوه آیاتونه پیش کړه چه یو نه پټیدل ثابت دی.دویم نه نه پټیدل ثابت دی.نو دوی ددې جواب کښې د دواړو آیتونو تطبیق اوکړو.

**دریم روایت:**- یو بل روایت کښې د سائل نوم هم راغلې دې چه هغه نافع بن رازق وو. اودا هم دی چه حضرت ابن عباس ؓ هغه ته دا اوفرمائیل چه شاید ته دیو مجلس نه راغلې ئې ، او هلته به ددې تذکره شوې وی.تا به وئیلی وی چه څه څم او حضرت ابن عباس ؓ نه تپوس کوم. که دا ګمان صحیح دې نوپه تالازم دی چه جواب آوریدو نه پس دا هغوی ته اورسوې ، بیا ئې هم دا جواب ورکړو.

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَقۡرَبُوا الصَّلٰوةَ |
| اې هغه کسانو / چې ایمان مو راوړې دې / مه نزدې کیږئ / مانځه ته |
| اې مومنانو تاسو د نشې په حالت کښې مونځ ته مه نزدې کیږئ |
| وَاَنۡتُمۡ سُكٰرٰى حَتّٰى تَعۡلَمُوۡا مَا تَقُوۡلُوۡنَ وَلَا جُنُبًا |
| په داسې حال کښې چې تاسو / په نشه کښې یئ / تردې پورې / چې پوهه شئ / په هغه څه / چې تاسوئې وایئ / او نه په حال دجنابت کښې |
| البته چه څه وائې او په هغې پوهیږئ (نوبیا مونځ کوئ) اونه په حالت د جنابت کښې (مانځه ته ........ |
| اِلَّا عَابِرِىۡ سَبِيۡلٍ حَتّٰى تَغۡتَسِلُوۡا وَاِنۡ كُنۡتُمۡ مَّرۡضٰٓى |
| ماسوا ددې نه / چې تیریدونکې یئ / په لاره / تر دې پورې / چې تاسو غسل اوکړئ / او که ئې تاسو / ناجوړه |
| نزدې کیږئ.البته که په لاره تیریدونکې ئې ترڅوچې موغسل نه وی کړې / او که ناجوړه ئې |
| اَوۡ عَلٰى سَفَرٍ اَوۡ جَآءَ اَحَدٌ مِّنۡكُمۡ مِّنَ الۡغَآئِطِ اَوۡ لٰمَسۡتُمُ النِّسَآءَ |
| یا په سفر کښې یئ / ایا / راشی / یو له تاسو نه / اودس ماتی نه / یاګوتی وروړئ تاسو / ښځو ته |
| یاپه سفر کښې یئ ایا په تاسو کښې څوک د اودس ماتی نه واپس شی ایاښځوسره نزدیکت اوکړئ |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمْ تَجِدُوا مَآءً | فَتَيَمَّمُوا | صَعِيدًا | طَيِّبًا | فَامْسَحُوا | بِوُجُوهِكُمْ | |
| او اونهٔ مومئ ا اوبه | نو تیمم اوکړئ | په خاوره | پاکه | او مسح اوکړئ | په مخونو خپلو | |
| اواوبه اونهٔ مومئ نوپه پاکه خاوره باندې تیمم اوکړئ او په مخونواو لاسونومسح اوکړئ | | | | | | |
| وَأَيْدِيكُمْ | إِنَّ اللَّهَ | كَانَ عَفُوًّا | غَفُورًا | | | |
| اوپه لاسونو خپلو | بیشکه الله | دې عفو کونکې | بښونکې | | | |
| بیشکه الله ﷻ نرمی کونکې او بښونکې دې | | | | | | |

**قوله تعالى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَىٰ حَتَّىٰ تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ**

**د جنابت احکام او دشرابو دحرمت واقعه**:- الله ﷻ خپل بندګان منع کوی چه د نشې حالت کښې مونځ کوی .ځکه چه هغه وخت کښې مونځګزار ته معلومه نه وی چه هغه څه وائی.دې سره د مانځه د محل یعنی جمات ته تلو نه هم منع کوی.چې دې (شرابی) او جنب کس دې جمات ته نه ځی.یعنی چاته چه دغسل حاجت وی نو داسې سړې که دمسجد په یوه دروازه باندې ورداخل شی او په بله دروازه باندې اوځی نودا جائز دی.

**د شرابو مرحله وار حرمت**:- د نشې حالت کښې مونځ ته د نه ورتلو حکم د شرابو دممانعت نه مخکښې وو. ځکه چه هغه حدیث مبارک نه ثابت دی کوم دسورة بقره آیت مبارک ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ﴾ تفسیر کښې ذکرشوې دې .نبی کریم ﷺ چه کله دا آیت مبارک د حضرت عمر فاروق ﷺ مخکښې تلاوت کړو نو دوی دعا اوفرمائیله چه ائې الله ﷻ دشرابو باره کښې پوره بیان نازل کړه. بیا دا آیت مبارك نازل شو یعنی د نشې حالت کښې مونځ ته نزدې مه ورځئ.دې سره خلقو د مونځ وخت کښې د شرابو څکل پریښودل .ددې آوریدو سره هم حضرت عمررضی الله عنه دا دعا اوکړه نو آیت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ نه تر ﴿فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ﴾ نازل شو.په دې کښې دشرابو نه دبچ کیدو صفا حکم موجود دې.ددې آوریدو سره حضرت فاروق اعظم ﷺ اوفرمائیل چه (دشرابو څکلو نه) مونږ منع شو.[1]

**د مانځه په وخت کښې اعلان کول**:- هم ددې روایت یو بل سند کښې دی چه کله دسورة نساء دا آیت نازل شو اودنشې وخت کښې د مونځ نه ممانعت اوشو نو هغه وخت کښې دا دستور وو چه کله به مونځ ته خلق آودریدل نو یو سړی به آواز کولو چه هیڅ نشې والا سړې دې مونځ ته نزدې نه راځی[2]

**دحضرت سعد ﷺ په سبب د شرابو حرمت**:- ابن ماجه شریف کښې دی چه حضرت سعد ﷺ فرمائی چه څما باره کښې څلور آیتونه نازل شوی دی.یو انصاری خوراك اوکړو او ډیرو خلقوته ئې دعوت ورکړو.مونږ ټولو خوراك څکاك اوکړو ، بیا موشراب اوڅکل او ښه نشه شو.بیا خپلوکښې مو فخر کولو ، یو سړی د اوښ هډوکې را اوچت کړو او په هغې ئې حضرت سعد ﷺ اوویشتو او دې سره دهغوئ پوزه زخمی شوه. او دهغې داغ پاتې شو. تر دغه وخته پورې شراب منع نه وو. نو دا آیت نازل شو ، دا حدیث مبارك صحیح مسلم او بخاری کښې پوره پوره مروی دې.[3]

---

[1]) ابوداود: ۳۶۷۰)-

[2]) ابوداود اول کتاب الاشربة باب تحریم الخمر : ۳۶۷۱. وسنده صحیح )-

[3]) صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب فی فضل سعدبن ابی وقاص : ۱۷۴۸، ابوداود : ۲۰۸، ترمذی : ۳۱۸۹)-

**دمانځه په وخت کښې د شرابو د حرمت سبب:-** دابن ابی حاتم روایت کښې دی چه عبدالرحمان بن عوف ﷺ دعوت اوکړو او خلق ورغلل او خوراك ئې اوکړو اوبیائې شراب هم اوڅکل او مست شو. دې کښې دمونځ وخت شو ، یو سړې ئې امام جوړ کړو ، هغه مونځ کښې سورة ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾ کښې داشان اووئیل چه ﴿ ماأعبد ماتعبدون، ونحن نعبد ماتعبدون ﴾ نودې باندې دا آیت نازل شو اودنشې حالت کښې مونځ کول منع شو. داحدیث مبارك ترمذی کښې هم دې او حسن دې.[1]

د ابن جریر ﷫ روایت کښې دی چه حضرت علی ﷺ ، حضرت عبدالرحمان ﷺ او دریم یو بل صاحب شراب اوڅکل او حضرت عبدالرحمان ﷺ مونځ کښې امام شو.او دقرآن پاك قرات ئې غلط کړو. په دې دا آیت مبارك نازل شو. ابو داود اونسائی کښې هم دا روایت دې.[2] د ابن جریر ﷫ یو بل روایت کښې دی چه حضرت علی ﷺ امامت اوکړو او چه څنګه وئیل پکار وو هغه شان ئې اونه وئیل.دې باندې دا آیت مبارك نازل شو. او یو بل روایت کښې مروی دی چه حضرت عبدالرحمان بن عوف ﷺ امامت اوکړو اوداشان ئې اووئیل چه ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ ۝ اَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ ۝ وَاَنْتُمْ عٰبِدُوْنَ مَآ اَعْبُدُ ۝ وَاَنَا عَابِدٌ مَّا عَبَدْتُّمْ ۝ وَلَآ اَنْتُمْ عٰبِدُوْنَ مَآ اَعْبُدُ ۝ لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ ۝﴾.نودا آیت نازل شو او دې حالت کښې مونځ کول حرام شو.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دشرابوحرمت نه مخکښې به خلقو دنشې حالت کښې مونځ کولو.نو دې آیت دوی دداسې کولونه منع کړل. ( ابن جریر ).

**دنشې نه د خوب غلبه مراد ده:-** حضرت قتاده ﷫ فرمائی چه ددې دنازلیدو نه پس خلق ددې نه منع شو ، بیا دشرابو مطلق حرمت نازل شو.حضرت ضحاك ﷫ فرمائی چه دې نه دشرابو نشه مراد نه ده بلکه د خوب غلبه مراد ده.امام ابن جریر ﷫ فرمائی چه صحیح هم داده چه ددې نه دشرابو نشه مراد ده.او دلته خطاب هغوئ ته شوې دې کوم چه په نشه کښې وو. لیکن دومره چه احکام شرع په دوی باندې جاری نه شی.څکه چه د نشې داسې حالت والا سړې دمجنون په حکم کښې دې.د ډیرو اصولی حضراتو قول دې چه خطاب هغه خلقو ته دې چه کلام باندې پوهیږی. داسې نشې والو طرف ته نه دې چه هډو پوهیږی نه دوی ته څه وئیلې کیږی ؟ ددې وجې خطاب باندې پوهیدل شرط دی. او داهم وئیلې شوی دی اګر چه الفاظ دا دی چه دنشې حالت کښې مونځ مه کوئی لیکن مراد دادې چه د نشې څیزونه مه خورئی څکئ مه.څکه چه په شپه او ورځ کښې پنځه مونځونه فرض دی.نو دا څنګه ممکن دی چه یو شرابی سړې به داپنځه وخت مونځ په صحیح وخت ادا کړی او دې همداسې شراب څکی. والله اعلم.

**د مانځه په وخت کښې د نشې نه کولو د حکم نظیر:-** نو دا حکم به داشان وی چه څنګه دا حکم دې چه ائې مومنانو الله ﷻ نه ویریږئی څومره چه دهغه پاك ذات نه د ویرې حق دې.او که مرئی نو چه تاسو مسلمانان یئ.نو ددې مراد دادې چه داسې تیاری هر وخت اوساتئ.داسې پاك اعمال هر وخت کوئی چه تاسو ته مرګ راشی نو چه تاسو په اسلام باندې یئ.دغه شان په دې آیت مبارك کښې ارشاد دې. تردې چه تاسو څه وایې په هغې پوهیږئ.دا د نشې حد دې یعنی دنشې حالت کښې به هغه سړې ګنړلې شی چه خپله خبره باندې هم نه پوهیږی.نشې سړې به قرات غلطوی ، اوده ته به د سوچ او فکر کولو موقع نه ملاویږی.او نه به دې خشوع او خضوع او عاجزی کولې شی.

**د خوب په وخت کښې د مونځ نه کولو حکم:-** مسند احمد کښې دی نبی کریم ﷺ اوفرمائیل کله چه تاسو کښې څوك د خوبه وی او هغه مونځ کښې وی نو هغه ته پکار دی چه واپس شی او اوده شی تردې چه

---

[1]) ترمذی : کتاب تفسیر القران باب ومن سورة النساء : ۳۰۲۶، وهو حسن )-

[2]) ابوداود کتاب الاشربة باب تحریم الخمر : ۳۶۷۱، وسنده حسن)-

ده ته معلومه شی چه دې څه وائی.(١) بخاری او نسائی کښې هم داحديث مبارك شته دې (٢) او ددې بعضو طرق کښې دا الفاظ هم دی چه ممکن ده چه هغه خپل ځان دپاره استغفار وائی.او دهغه د ژبې نه ددې خلاف اووئيلې شی.(٣)

قوله تعالی:: وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ

**دجنابت حالت کښې جمات ته داخليدل**:- بيا فرمان دې چه نه خودې جنب مونځ ته نزدې کيږی ترڅو چه غسل اونه کړی .خوکه هسې تيريږی جمات کښې نو داتيريدل جائز دی .حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی دداسې ناپاکئ حالت کښې جمات ته داخليدل جائز نه دی.خو دجمات يو طرفنه بل طرفته تلو کښې څه حرج نشته دې خو جمات کښې دې نه کينی. (٤) او دنور صحابه کرامو ﷺاو تابعينو هم دا قول دې.

**دانصاروجمات ته د جنابت حالت کښې داخليدل**:- حضرت يزيد بن ابوحبيب ﷺ فرمائی چه بعضې انصار چه د جمات نه ګيرچاپيره اوسيدل. او هغوئ به جنب وو او کور کښې به نې اوبه نه وې اودهغوئ دکورونو دروازې جمات ته متصل وې نو هغوئ ته اجازت وو چه جمات کښې هم دې حالت کښې تيريدېشی.

**د بخاری په حديث استدلال**:- دبخاری د حديث نه هم دا خبره ښکره معلوميږی چه د خلقو دروازې جماتکښې وې.نو نبی کريم ﷺ دخپل مرض الموت آخری وخت کښې فرمائيلی وو چه جمات ته د کوموخلقو دروازې دې هغه ټولې بندې کړئی او صرف د حضرت ابوبکرصديق ﷺ دروازه پريږدئی (٥) ددې نه دا هم معلومه شوه چه د نبی کريم ﷺ نه پس به د نبی کريم ﷺ جانشين حضرت ابوبکرصديق ﷺ وی.ځکه چه دهغوئ به جمات ته دراتلو ضرورت زيات پيښيږی چه دمسلمانانو د اهمو امورو فيصلې اوکړی.نبی کريم ﷺ د ټولو دروازو بندلو او د حضرت ابوبکرصديق ﷺ دروازه نې بيرته ساتلو حکم اوکړو.داحاديثو بعضو کتابونوکښې دحضرت ابوبکر صديق ﷺ په ځائې د حضرت علی ﷺ نوم دې.هغه بالکل غلط دی.(٦) صحيح هم هغه دې چې په کسوم صحيح دې.

**دجنب دپاره په جمات باندې تيريدو کښې مذاهب**:- ① ددې آيت کريمه نه زياتو امامانو دليل نيولې دې چه جنب سړې جمات کښې ايساريدل حرام دی خو تيريدل پکښې جائز دی.هم داشان حيض او نفاس والا ښځه هم.② اوبعضو وئيلی دی چه دې دواړو لره تيريدل هم جائزنه دی .ممکن دی چه جمات کښې ګردوغبار وی .③ اوبعضې وائی که ددې خبرې ويره نه وی نو ددوی تيريدل هم جائز دی.

مسلک حنفی: دجنب دپاره په جمات باندې تيريدل څنګه دی؟

**په جمات د تيريدو د جوازدليل**:- ①دصحيح مسلم شريف حديث مبارك کښې دی چه نبی کريم ﷺ عائشه ﷺ ته اوفرمائيل چه ماسره جمات نه بورئی راوړه نو ام المومنين ورته اوفرمائيل چه يارسول الله څه خو حيض کښې يم.نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه ستا حيض ستا لاس کښې نه دې (٧) ددې نه

---

١) احمد: ٣/١٥٠، صحيح بخاری کتاب الوضوء باب الوضوء من النوم ومن لم ير من النعسة: ٢١٣)-

٢) صحيح بخاری کتاب الوضوء باب الوضوء من النوم ومن لم ير من النعسة: ٢١٣ نسای: ٤٤٣)-

٣)صحيح بخاری کتاب الوضوء باب الوضوء من النوم ومن لم يرمن النعسة:٢١٣،صحيح مسلم:٧٨٦، ابوداود: ١٣١٠،ترمذی : ٣٥٥،ابن ماجة: ١٣٧٠)

٤) ابن ابی حاتم : وسنده حسن ابوجعفر الرازی حسن الحديث ههنا)-

٥) صحيح بخاری کتاب الصلاة باب الخوخة والممر فی الجمات: ٤٦٧)-.

٦) احمد : ٣٣١/١، مطولا عن ابن عباس ﷺ وسنده حسن الحاکم: ١٣٢/٣، وصححه ووافقه الذهبی )-

٧) صحيح مسلم کتاب الحيض باب جواز غسل الحائض راس زوجها : ٢٩٨)-

ثابتيږي چه حائضه جمات ته تلې شي.او دنفاس والا هم دا حکم دې.دا دواړه د تلو په لار راتلې شي.
**په جمات د تيريدو د عدم جواز دليل:-** ابوداود کښې د حضرت امام بخاري رحمه الله فرمان دې چه څه حائضه او جنب دپاره جماتته راتګ نه حلال وم.(١) امام ابومسلم خطابي رحمه الله فرمائي چه دې حديث ته يو جماعت ضعيف وئيلي دي.څکه چه ددې يو راوي افلت مجهول دې.ليکن ابن ماجه کښې دا روايت دې اوهغې کښې د افلت په ځائې محدوج ذهلي دې.(٢) رومبي حديث په روايت د حضرت عائشه رضي الله عنها دې اودويم په روايت دحضرت ام سلمه رضي الله عنها دې.ليکن صحيح نوم دحضرت عائشه رضي الله عنها دې.
**بل روايت:-** يوبل روايت ترمذی کښې هم دې او په هغې کښې دی چه اې علي رضي الله عنه ! دې جمات کښې خما ستا نه سوا جنب لره حلال نه دی.(٣) داحديث بالکل ضعيف دې او بالکل ثابت نه دې.په دې کښې راوي سالم دې چه متروك دې او دده استاد عطيه هم ضعيف دې.والله اعلم.
**د حضرت علي رضي الله عنه قول:-** ددې آيت مبارك تفسير کښې حضرت علي رضي الله عنه فرمائي چه مطلب دادې چه جنب سړې دې حالت کښې د غسل نه بغيرمونځ نه شي کولې.ليکن که مسافر وی او ورته اوبه ملاؤ نشي نو اوبه ملاويدو پورې هغه کولې شي .(٤) حضرت ابن عباس رضي الله عنه ، حضرت سعيد بن جبير رحمه الله ، حضرت ضحاك رحمه الله نه هم دا مروی دی.حضرت مجاهد رحمه الله ، حضرت حسن رحمه الله ، حضرت زيد رحمه الله او حضرت عبدالرحمان رحمه الله نه هم دا شان مروي دی.
**يوقول:-** يوقول چه دا حديث عبدالله بن کثير رحمه الله فرمائي چه مونږ به آوريدل چه دا آيت د سفر حکم کښې دې.ددې حديث مبارك نه ددې مسئلې شهادت کيديشي چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه بناوره د مسلمان طهارت دې اګر چه تر ته لس کاله اوبه ملاؤ نشي.اوکله چه ملاؤ شي نو هم دا استعمال کړه. دا ستا دپاره بهتر دی.(٥) ( اهل سنن اواحمد ).
**د امام ابن جرير رحمه الله تبصره:-** امام ابن جرير رحمه الله فرمائي چه په دې دواړو اقوالو کښې اولنی قول دهغه خلقو دې چه وائي ددې نه مراد جمات کښې تيريدل داشان دی لکه چې سړې جماعت ته داخل شي.څکه چه کوم مسافر ته دجنابت حالت کښې اوبه ملاؤ نشي نو دهغه حکم مخکښې صفا بيان شوې دې .نو که هم دا مطلب دلته هم واخستلې شي نو بيا دا هم واپس کولو کښې دويمه جمله باقي نه پاتې کيږي. نو معنی د آيت اوس دا شوه چه اې ايمان والو ! کله چې تاسو په نشه کښې يئ نو تاسو جماعت ته مه داخليږئ ترڅو چې تاسو پخپلو خبرو باندې پخپله نه پوهيږئ. هم داشان دجنابت حالت کښې هم جمات ته مه څئ ترکومې چې غسل اونکړئ خوکه هسې تيريږئ نو داجائز دی.
**د ،،عابر،،لغوی تحقيق:-** د﴿ عابر ﴾ معنی تلل راتلل يعني تيريدو والا دی ددې مصدر ﴿ عبرا ﴾ او ﴿ عبورا﴾ راځي.هرکله چه څوك نهر کښې تيرشي نو عرب وائي چه ﴿ عبرا فلان النهر ﴾ فلاني سړې نهر نه تير شو او همداشان قوی اوبنه چه سفر کوی هغې ته ﴿ عنبر الاسفار ﴾ وائي.امام ابن جرير رحمه الله چه دکوم قول تائيد کوی هم دا دجمهورو قول هم دې او آيت مبارك نه ظاهر همدا دی.يعنی الله ﷻ په دې ناقص حالت کښې د مونځ نه منع فرمائي چه دمقصود نه خلاف دې.هم دا شان دمونځ ځائې ته داسې حالت کښې راتلو نه منع کوی.اودا ددې ځائې دعظمت او پاکوالي خلاف دی ، والله اعلم.

---

١) ابوداود کتاب الطهارة باب في الجنب يدخل الجمات: ٢٣٢، وسنده حسن)-
٢) ابن ماجة : ٦٤٥)-
٣) الترمذی : ٣٧٢٧)-
٤) ابن ابي حاتم :)-
٥) احمد: ١٥٥/٥، ابوداود : کتاب الطهارة باب الجنب يتيم : ٣٣٢، وسنده حسن ، ترمذی : ١٢٤، نسائي: )-

قوله تعالى: ﴿حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا﴾

**داودس نه پس جنت دپاره په جمات کښې ايساريدلو کښې اختلاف:-** بيا فرمائي تر دې پورې چه تاسو غسل اوکړئی ، حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله ، حضرت امام مالك رحمه الله او حضرت امام شافعي رحمه الله وائي چه جنب دپاره جمات کښې ايساريدل حرام دی .ترکومې چه غسل اونکړی يا که اوبه ملاؤ نشی يا اوبه وی خو ددې استعمالولو قدرت نه لرى نو تيمم دې اوکړي② حضرت امام احمد رحمه الله فرمائي چه که جنب اودس اوکړی نو ده دپاره جماتکښې ايساريدل جائز دی.

**دامام احمد رحمه الله دليل:-** مسند احمد او سنن سعيد بن منصور کښې مروی دی ، حضرت عطاء ابن يسار رحمه الله فرمائي چه ما د نبي کريم ﷺ صحابه کرام ﷺ اوکتل چه هغوئ جنب وو او اودس به ئې اوکړو او جمات کښې به ناست وو.([1]) والله اعلم.

قوله تعالى: ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضٰى﴾

**د تيمم د جواز عذر مرض:-** بيا د تيمم مواقع بيانوی او فرمائي چه د کومې بيمارئی په وجه تيمم جائز دې هغه بيمارئ دا دی چه په هغه وخت کښې اوبو سره ديو اندام د فوت کيدو يا ددې دخرابيدو يا دمرض د زياتيدو ويره وی.بعضې علماء کرام هر مرض باندې د تيمم فتوی ورکوی.ځکه چه دا آيت عام دې.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه يو انصاری بيمار وو ، نه اودريدې شو او نه ئې اودس کولې شو او دده څوك خادم هم نه وو چه ده ته ئې اوبه ورکړې وی.هغوئ ددې ذکر نبي کريم ﷺ ته اوکړو نو دې باندې دا حکم نازل شو. دا روايت مرسل دې.

قوله تعالى: ﴿أَوْ عَلٰى سَفَرٍ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ﴾

**د تيمم د جواز عذر سفر او لوئې اودس ماتې:-** دويم حالت دتيمم دجواز سفر دې که اوږد وی او که کم وی.

﴿غائط﴾ وائی نرمې زمکې ته ، دلته دا کنايه شوې ده د غټو متيازو نه

قوله تعالى: ﴿أَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ﴾

**د لمس تحقيق :-** د﴿لٰمَسْتُمْ﴾ دويم قرات ﴿لَمَسْتُمْ﴾ دې.ددې تفسير کښې دوه اقوال دی ،

**د لمس نه مراد جماع ده:-** يو دا چه مراد ترې جماع ده لکه څنګه چه آيت کښې دی چه ﴿وَإِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ﴾ که تاسو خپلو ببيانو ته د مجامعت نه مخکښې طلاق ورکړئی او دهغوئ مهر مقرر کړئی هغې نه ورته نيمه ورکړئی.او بل آيت مبارك کښې دی چه ائې ايمان والو ! کله چه تاسو ايماندارو ښځو سره نکاح اوکړئی بيا مجامعت نه وړاندې ورته مخکښې طلاق ورکړئی نو ددوی په ذمه عدت واجب نه دې.دلته هم لفظ ﴿مِنْ قَبْلِ أَنْ﴾ دې.حضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه ﴿أَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ﴾ نه مراد مجامعت دې.

**کوم حضرات د لمس نه جماع مراد اخلی:-** حضرت علی ﷺ ، حضرت ابی بن کعب ﷺ ، حضرت مجاهد رحمه الله ،حضرت طاؤس رحمه الله ، حضرت حسن رحمه الله ، حضرت عبيد بن عمير رحمه الله ، حضرت سعيد بن جبير رحمه الله ،حضرت شعبی رحمه الله ، حضرت قتاده رحمه الله او حضرت مقاتل بن حيان نه هم دا مروی دی.

**دحضرت ابن عباس په قول سره استدلال:-** حضرت سعيد بن جبير رحمه الله فرمائي چه يو ځل په دې لفظ مذاکره اوشوه نو څو موالی اووئيل چه دا جماع نشوه او څو عربو اووئيل چه جماع ده.ما ددې بيان حضرت ابن عباس ﷺ ته اوکړو ، نو حضرت ابن عباس ﷺ تپوس اوکړو چه ته چاسره وې.ما اووئيل موالی سره.وې فرمائيل چه موالی مغلوب شو. د لمس او مس او مباشرت معنی جماع ده.الله ﷻ دلته کنايه کړې ده.

---

[1]) سعيدبن منصور وسنده حسن للدالة )-

**د لمس نه مراد د لاس اوړل دی:-** دویم بعضو نورو حضراتو ددې نه مراد مطلق لاس لګول اخستی دی.که د ښځې دبدن هرې حصې سره وی نواودس واجبیږی.حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ، فرمائی چه مباشرت سره لاس لګولو سره ، بوسه اخستلو سره به اودس کول وی ، لمس نه مراد لاس لګول دی.حضرت ابن عمر ﷺ هم ددې قائل دې چه کله د ښځې نه بوسه واخستې شی نو اودس کول به وی.([1]) هغوئ به دا لمس کښې داخلول.

**کوم حضرات د لمس نه مراد د لاس اوړل اخلی:-** حضرت عبیده رحمه الله ، حضرت ابوعثمان رحمه الله ، حضرت ثابت رحمه الله ، حضرت ابراهیم رحمه الله او حضرت زید رحمه الله هم دا فرمائی چه لمس نه مراد جماع نه علاوه دی .

**دعبدالله بن عمرقول:-** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی چه دانسان خپلې ښځې نه بوسه اخستل او دې ته لاس لګولو سره ملامست راځی نو دې سره به اودس کول وی.([2]) ( موطا امام مالك ). دارقطنی کښې پخپله د حضرت ابن عمر ﷺ نه مروی دی.

**تعارض او تطبیق:-** لیکن دویم روایت کښې ددوی نه ددې خلاف نقل دی چه دوی اودس کښې وو او دوی د خپلې ښځې نه بوسه واخستله ، بیا ئې اودس اونکړو او مونځ ئې ادا کړو.نو ددواړو روایتونو د ثابتولو نه پس دا فیصله کوی چه دوی اودس مستحب ګڼړلو. والله اعلم.

**په مطلق لاس اوړلو سره د اودس ماتیدو کښې مذاهب:-** مطلق لاس لګولو سره داودس کولوقائل حضرت امام شافعی رحمه الله او ددوی ملګری دی.او حضرت امام مالك رحمه الله او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم دا نقل دی.

**په لمس د اودس ماتیدو د قائیلینو دلائل:-** ①ددې قول قائلین وائی چه دلته دو قراتونه دی ﴿لَمَسْتُم﴾ او ﴿لمستم﴾ اود لمس اطلاق لاس لګولوسره هم قران پاك نه کیږی.ارشاددې چه ﴿وَلَوْنَزَّلْنَاعَلَيْكَ كِتَابًافِيْ قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوْهُ﴾ ښکاره دی چه دلته لاس لګول مراد دی.

②داشان حضرت ماعزبن مالك ﷺ ته د رسول الله ﷺ دا فرمائیل چه شاید تا به بوسه اخستې وی یا به دې لاس لګولې وی.([3]) هلته هم لفظ د ﴿لمست﴾ دې.او صرف دلاس لګولو معنی کښې دې.

③ اوحدیث مبارك کښې دی چه ﴿واليدزناهااللمس﴾ ، لاس لګولو ، او زنا کول دی.([4])

④حضرت عائشه رحمه الله رضي الله عنها چه ډیرې کمې ورځې به داسې وې چه نبی ﷺ مونږ ته راغلې وی او خمونږ نه ئې بوسه نه وی اخستې او لاس ئې مونږ ته نه وی لګولې .([5])

⑤دبخاری شریف او مسلم شریف حدیث مبارك کښې دی چه نبی کریم ﷺ ملامست سره بیع نه منع اوفرمائیل.([6]) دا هم دلاس لګولو بیع ده. نودا لفظ چه څنګه جماع دپاره ونیلې کیږی داشان لاس لګولو دپاره هم استعمالیږی. شاعر وائی چه :

**ولمست كفی كفه اطلب الغنی** (ترجمه ) ما لاس دده لاس سره یو ځائې کړه ما خو مالداری غوښتله.

---

[1] ) موطا امام مالک کتاب الطهارة باب الوضوء من قبلة الرجل امراته : ٦٥، البیهقی : ١٢٤/١، مطولا وسنده ضعیف ومختصرا وسنده صحیح وهو صحیح بالشواهد مجمع الزوائد :٢٥٢/١)-

[2] ) موطا امام مالک کتاب الطهارة باب الوضوء من قبلة الرجل امراته : ٦٤، ح/٩٣، وهو صحیح )-

[3] ) صحیح بخاری کتاب الحدود باب هل یقول الامام للمقر لعلک لمست او غمزت : ٦٨٤٤)-

[4] ) احمد: ٢٤٩/٢، صحیح ابن حبان : ٤٤٢٢، وسنده صحیح صحیح ابن خزیمة : ٣٠ وسنده صحیح )-

[5] ) احمد: ١٠٨/٦، ابوداود کتاب النکاح باب القسم بین النساء : ٢١٣٥ وسنده حسن)-

[6] ) صحیح بخاری کتاب البیوع باب بیع الملامسة : ٢١٤٤، صحیح مسلم: ١٥١٢، )-

⑥ يو بل روايت مبارك كښې دى چه يو سړې د نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شو او عرض ئې اوكړو چه يارسول الله ﷺ ! دهغه سړى باره كښې څه فيصله ده چه هغه يو سړي پردئ ښځې سره هغه ټول كارونه اوكړى كوم چې ښځه خاوند خپلوكښې كوى سوا د جماع نه.نو آيت ﴿ أَقِمِ الصَّلَوٰةَ ﴾ نازل شو اونبى كريم ﷺ فرمائى چه اودس دې اوكړى او مونځ دې ادا كړى. دې باندې حضرت معاذ ﷺ تپوس كوى چه آيا دا حكم دده دپاره خاص دى كه د ټولو مسلمانانو دپاره دې.نبى كريم ﷺ جواب فرمائى چه ټول ايمان والو دپاره دى([1])امام ترمذى رحمه الله دا د زائد حديث سره روايت كوى ، ددې سندمتصل نه دې ، امام نسائى رحمه الله دا مرسلا روايت كوى.الغرض ددې قول قائل ددې حديث نه استدلال كوى چه دې سره د اودس حكم په دې وجه وو چې هغه ښځې ته لاس لګولې وو جماع ئې ورسره نه وه كړې.

**د شپږم دليل نه جوابونه:-** ددې جواب وركولې شى ①اول خو دا حديث منقطع دې ، ابن ابى ليلى رحمه الله او د معاذ ﷺ ترمينځه ملاقات ثابت نه دې.

②دويم دا كيديشى چه ده ته ئې د اودس حكم د فرض اداكولو دپاره وركړې وو لكه څنګه چه د حضرت ابوبكرصديق ﷺ حديث مبارك كښې دى چه بنده څه ګناه اوكړى بيا اودس اوكړى اودوه ركعته مونځ ادا كړى نو الله ﷺ دده ګناه معاف كوى ([2])الخ.دا پوره حديث سورة آل عمران كښې د آيت ﴿ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا﴾ تفسير كښې تير شوې دې.

**دامام ابن جرير رحمه الله د لمس نه جماع مراد اخستونكو قول ته ترجيح وركول:-** امام ابن جرير رحمه الله فرمائى چه ددې دواړو اقوالو نه بهتر قول دهغوئ دې كوم چې دا وائى چه ددې نه مراد جماع ده نور څه نه.او صحيح مرفوع حديث كښې راغلى دى چه نبى كريم ﷺ خپلې بى بى نه بوسه واخسته او اودس ئې اونكړو او مونځ ئې اوكړو. ام المومنين حضرت عائشه رحمه الله فرمائى چه نبى كريم ﷺ به اودس اوكړو او بيا به ئې بوسه واخسته او بيا به ئې مونځ كولو او اودس به ئې نه كولو.حضرت حبيب رحمه الله فرمائى چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه كله به نبى كريم ﷺ د خپلې يوې يو بى بى نه بوسه واخسته نو چه كله به مونځ ته تلو نو اودس به ئې نه كولو. ما اوونيل چه هغه به تاسو وې نو حضرت عائشه رضي الله عنها مسكې شوه. ددې سند كښې كلام دى.([3])ليكن نورو سندونو سره ثابت دى چه پورتنې راوى يعنى حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه آوريدونكې حضرت عروه بن زبير رحمه الله دې ،

اويوروايت كښې دى چه اودس نه پس به نبى كريم ﷺ خمانه بوسه اخسته او بيا به ئې اودس نه كولو([4]) ، اويو سند سره مروى دى چه نبى كريم ﷺ بوسه واخسته او بيائې اودس اونكړواو مونځ ئې ادا كړو. ([5])

**دام سلمى رضي الله عنها روايت:-** حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرمائى چه نبى كريم ﷺ به بوسه اخسته حالانكه د نبى كريم ﷺ به روژه وه ، بيا به ئې نه روژه نيوله او نه به ئې اودس كولو. ([6]) ( ابن جرير)

**د زينب رضي الله عنها روايت:-** حضرت زينب بنت خزيمه رضي الله عنها فرمائى چه نبى كريم ﷺ به بوسه اخستلو نه پس اودس نه كولو او مونځ به ئې ادا كولو. ([1])

---

[1]) احمد: ٥/٢٤٤، الترمذى : ٣١١٣)-

[2]) ابوداود : ١٥٢١، وسنده حسن الترمذى : ٣٠٠٦، ابن ماجة: ٢٣٩٥ )-

[3]) ابوداود كتاب الطهارة باب الوضوء من القبلة : ١٧٩، وهو حسن ترمذى : ٨٦)-

[4]) الطبرى : ٩٦٣٧)-

[5]) ابوداود كتاب الطهارة باب الوضوء من القبلة : ١٧٨، وهو حسن نسائى: ١٧٠)-

[6]) الطبرى : ٩٦٣٨، المعجم الاوسط للطبرانى : ٣٨١٧، واللفظ للطبرى : علامه هيثمى مجمع الزوائد ٢٤٧/١ كښې يزيد بن سنان په وجه دا معلول ګرزولې دې)-

**په ايت کښې د لمس نه مراد جماع ده**

**مسلک حنفي:-** احناف د دې قائلين دی په آيت کښې د لمس نه مراد جماع ده ښځې ته لاس اوړل مراد نه دی د دې وجې د دوی په نيز ښځې ته په لاس اوړلو او د هغې په ښکلولو باندې اودس نه ماتيږي لکه څنګه چې امام ابن جرير رحمه الله دې قول ته ترجيح ورکړې ده. چه په آيت کښې د لمس نه جماع مراد ده (احکام القران للعلامة ظفراحمد العثماني رحمه الله (۲۷۲۱۲)-

**قوله تعالى:** فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا

**دتيمم حکم:-** بيا فرمائي که اوبه نه مومئ نو پاکې ښاورې سره تيمم اوکړئ. ددې نه اکثرو فقهاء کرامو استدلال کړې دې چه چاته اوبه نه ملاويږي نو دهغه دپاره د تيمم اجازت د اوبو دتلاش نه پس دې. کتب فروع کښې دتلاش کيفيت ليکلې شوې دې.

**د اوبو نشتوالي په وخت کښې تيمم کول:-** بخاري اومسلم کښې دی چه نبی کريم ﷺ يو سړې اوکتلو چه د خلقو نه څانله دې او خلقو سره ئې مونځ اونکړو، نو نبی کريم ﷺ هغه نه تپوس اوکړو چه مونځ دې ولې اونکړو، آيا ته مسلمان نه ئې څه؟ هغه اووئيل چه يارسول الله ﷺ يم خو مسلمان ليکن جنب يم او اوبه نشته. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه بيا دې صورت کښې ستا دپاره ښاوره کافي وه. (۲)

**تيمم په لغت کښې:-** د تيمم لفظي معنی قصد کول دی، عرب وائي چه ﴿ تيممك الله بحفظه ﴾ يعنی الله ﷻ دې حفاظت ستا قصد اوکړي. د امراؤ القيس شعر کښې دا لفظ هم دې معنی کښې راغلې دې.

**دصعيد په مصداق کښې مذاهب:-** ① د صعيد معنی کښې وئيلې شوې دي چه هر څيز چه کوم د زمکې نه راخيژي. نو په دې کښې ښاوره، شګه، ونه، کانړي، وابښه، هم داخل دی. دحضرت امام مالك رحمه الله قول هم دادې. ② او وئيلې شوی دی. چه کوم څيز د ښاورې دجنس نه وی لکه شګه، چونا، دا مذهب دابوحنيفه رحمه الله دې. ③ اودا هم وئيلې شوی دی چه صرف ښاوره ده. داقول د حضرت امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله او ددوی دملګرو دې.

**کوم څيز چه د جنس د زمکې نه وی په هغې تيمم جائز دې**

**مسلک حنفي:-** د کوم مذهب نسبت چه ابن کثير رحمه الله امام اعظم رحمه الله ته کړې دې دا نسبت ټيک دې د دوی په نيز کوم څيزچه د جنس د زمکې نه وی په هغې باندې تيمم جائز دې ﴿احکام القران للعلامة ظفراحمد العثماني رحمه الله (۲۸۰۱۲)-

**د دريم مذهب د قائلينو دلائل:-** ① دهغوی دليل خو د قران پاك دا آيت مبارك دې چه ﴿فَتُصْبِحَ صَعِيدًا زَلَقًا﴾ يعنی هغه ښاوره خوينداركې شي.

② دويم دليل د صحيح مسلم شريف کښې دا حديث مبارك دې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه مونږ ته تولو خلقو باندې فضيلتونه راکړې شوی دی (۱) خمونږ صفونه د فرشتو د صفونو په شان دی، (۲) خمونږ دپاره ټوله زمکه جمات جوړه کړې شوه (۳) او د زمکې ښاوره خمونږ دپاره پاکه او پاکونکې جوړه کړې شوه هرکله چه مونږ ته اوبه ملاؤ نشي. (۳)

**دتربت د لفظ تحقيق:-** د حديث مبارك الفاظو کښې د تربت لفظ دې او يو سند سره د تربت په ځائې تراب هم مروی دې. نو دې حديث مبارك کښې داحسان ضابطولو په وخت کښې د ښاورې تخصيص کړې شوې دې. که يو څيز هم د اودس قائمقام په کار وې نو ددې ذکر به ئې هم ورسره کړې وې.

(۱) احمد: ۶۲/۶)-

(۲) صحيح بخاری کتاب التيمم باب رقم: ۹، صحيح مسلم: ۶۸۲)-

(۳) صحيح مسلم کتاب المساجد باب المساجد ومواضع الصلاة: ۵۲۲)-

د طیب معنی - دلته چه د طیب لفظ دې ددې معنی کښې ونیلې شوی دی چه ددې نه مراد حلال دی او ونیلې شوی دی چه ددې نه مراد پاك دې لکه حدیث مبارك کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی پاکه بناوره د مسلمان اودس دې اگر چه لس کالو پورې اوبه اونه مومی. بیا کله چه اوبه ملاؤ شی نو هغه خپل بدن سره اولګوی ،دا ددوی دپاره بهتر ده. [1] امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وائی. حافظ الحسن قطان رحمه الله هم دې ته صحیح وائی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی دټولو نه زیاته پاکه بناوره د پټی زمکه ده ، بلکه تفسیر ابن مردویه کښې خو دا مرفوعا وارد شوی دی. [2]

قوله تعالی: ﴿فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ﴾

بیا فرمان دې چه دا په خپل مخ او لاسونو باندې اومخی. تیمم د اودس په ځائې کیږی ، اودا صرف دپاکوالی حاصلولو دپاره دې، د اودس پشان د ټولو اندامونو باره کښې نه دې نو صرف په دوارو لاسونو او مخ باندې مخل کافی دی او په دې اجماع ده ،

هر اندام دوه ځله مسح کول:- لیکن تیمم کښې د امامانواختلاف دې. جدید مذهب د حضرت امام شافعی رحمه الله دادې چه دوه ځل په مخ او دوه ځل په لاسونو باندې مسح کول واجب دی.

ددې وجه دا دې. د ﴿یدین﴾ اطلاق ترخونو پورې او څنګلو پورې کیږی لکه آیت د اودس کښې هم داشان ددې لفظ اطلاق کیږی او مراد صرف تلی وی لکه څنګه چه د ترخ د حد باره کښې دی چه ﴿فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا﴾ دلته دتیمم حکم کښې دلاس ذکر مطلق دې او د اودس حکم کښې مقید دې .ددې وجې دا مطلق به په مقید باندې حمل کولې شی. ځکه چه طهوریت جامع موجوددې.

اوبعضې خلق ددې دلیل کښې د دار قطنی والا روایت پیش کوی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل تیمم دوه ضربونه دی ، یو ضرب لاس وهل او مخ باندې مخل او دویم ضرب لاس وهل او دواړه لاسونه ترڅنګلو پورې مخل. [3] خو دا صحیح نه دې، ځکه چه ددې په سند کښې ضعف دې ، حدیث ثابت نه دې

د ابوداود روایت اودهغې ضعف:- د ابوداود یو حدیث مبارك کښې دی چه نبی کریم ﷺ خپل لاسونه مبارك په یو دیوال باندې اوهل او مخ باندې نې اومخل او بیائې دوباره لاسونه اوهل او په خپلو څنګلو نې اومخل. [4] لیکن ددې اسناد کښې محمد بن ثابت عبدی ضعیف دې ، هغوئ ته د حدیث بعضو حافظانو ضعیف ونیلې دی. هم دا حدیث بعضو ثقه راویانو هم روایت کړې دې. لیکن هغه مرفوع نه دې بلکه دې ته دعبدالله ابن عمر رضی الله عنه فعل وائی. امام بخاری رحمه الله ، امام ابوزرعه رحمه الله ، اوامام ابن عدی رحمه الله فیصله کړې ده چه دا موقوف دې. او امام بیهقی فرمائی چه دې حدیث ته مرفوع ونیل منکر دی.

دشافعی رحمه الله دلائل:- ① دحضرت امام شافعی رحمه الله دلیل دا حدیث هم دې چه نبی کریم ﷺ تیمم اوکړو او خپل مخ ئې اومخل اوخپلو دوارو لاسونه ئې اومخل. [5]

② حضرت ابوجهم رضی الله عنه فرمائی چه ما اوکتل چه نبی کریم ﷺ متیازې کوی ، ما نبی کریم ﷺ ته سلام اوکړو لیکن نبی کریم ﷺ جواب رانکړو. فارغیدو نه پس نبی کریم ﷺ یو دیوال ته ورغلو او خپل دواړه لاسونه مبارك ئې په هغې اووهل او بیائې په خپل مخ راښکل اوبیائې خپل دواړه لاسونه په دیوال اووهل او پخپلو لاسونو ئې راښکل تر څنګلو پورې. بیا ئې ځمادسلام جواب راکړو [1] (ابن جریر)

---

[1] ابوداود کتاب الطهارة باب الجنب یتیمم: ٣٣٢، وسنده حسن ترمذی: ١٢٤، نسائی: ٣٢٣)-

[2] ابن ابی حاتم: ٩٦٢/٣، ح/٥٣٧٤)-

[3] حاکم: ١٧٩/١، دارقطنی: ١٨٠/١)-

[4] ابوداود کتاب الطهارة باب التیمم فی الحضر: ٣٣٠)

[5] بیهقی: ٢٠٥/١)-

**د شافعي قديم مذهب:-** دا د حضرت امام شافعي رحمه الله جديد مذهب وو.د دوی قديم مذهب دا دی چه ضربونه خو تيمم کښې دوه دی ليکن دويم ضرب کښې لاسونه صرف تر مرونډونو پورې مخل پکار دی

**دريم قول:-** دريم قول دادی چه صرف يو ضرب يعني يو ځل لاسونه وهل ښاوره باندې وهل کافي دی. دګرد نه ګنده لاسونه دې په مخ باندې اووهی دواړو مرونډونو پورې .

## د يو ضرب دپاره دليل

**د يو ضرب دپاره د حضرت عمار په واقعه باندې استدلال:-** ①مسند احمد کښې دی چه يو سړې امير المومنين حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ته راغلو او وې وئيل چه څه جنب شوې يم اوماته اوبه ملاؤ نه شوې نو ماته څه کول پکار دی.دوی اوفرمائيل چه مونځ نه دی کول پکار.دربار کښې حضرت عمار رضي الله عنه هم ناست وو ، وې فرمائيل چه اے امير المومنين ! آيا تاسو ته ياد نه دی چه څه او تاسو يولښکر کښې وو او مونږ جنب وو او مونږ ته اوبه ملاؤ نشوې.نوتاسو مونځ اونکړو او ما ښاوره کښې ځان لت پت کړو اومونځ مې ادا کړو. هرکله چه مونږ واپس شو او د نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو نو ما ورته دا ټوله واقعه اووئيله نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ستادپاره دومره کافي وو. بيا نبی کريم ﷺ خپل لاسونه په زمکه اووهل او دې ته ئې پوکې ورکړو اوخپل مخ باندې ئې اومخل او خپلو تلو باندې ئې او مخل.([2])

② په مسند احمد کښې دی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه تيمم کښې يو ځل لاسونه وهل دی د مخ دپاره وی او د دواړو لاسونو د تلو دپاره دی.([3])

③ مسند احمد کښې حضرت شقيق رحمه الله فرمائی چه څه حضرت عبدالله رضي الله عنه اوحضرت ابوموسی رضي الله عنه سره ناست ووم نو ابويعلی حضرت عبدالله رضي الله عنه ته اووئيل که يو سړی ته اوبه ملاؤ نشی نو مونځ به کوی که نه دې باندې حضرت عبدالله رضي الله عنه اوفرمائيل چه تاته ياد نه دی چه حضرت عمار حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ته څه وئيلی وو. دائې وئيلی وو چه اے عمر رضي الله عنه ! تاسو ته يادنه دی چه کله څه او تاسو نبی کريم ﷺ اوښانوته ليږلی وو ، هلته څه جنب شوم او ښاوره کښې لت پت شوم ، واپس چه راغلو او نبی کريم ﷺ ته مو دا بيان اوکړو نو نبی کريم ﷺ په خندا شو او وې فرمائيل چه تادپاره دومره کافي وو ، بيا نبی کريم ﷺ خپل لاسونه يوبل سره يوځائې کړل اوخپل مخ باندې ئې يو ځل لاسونه اومخل دا يو ضرب شو.په دې باندې حضرت عبدالله رضي الله عنه اوفرمائيل چه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په دې باندې قناعت اونکړو .دې آوريدو سره حضرت ابوموسی رضي الله عنه اوفرمائيل چه بيا به ته ددې آيت سره څه کوې چه کوم سورة نساء کښې دې. چه کله تاسو اوبه اونه مومئ نو د ښاورې قصد اوکړئ.ددې جواب حضرت عبدالله رضي الله عنه ورنکړې شو او وې فرمائيل چه واوره که مونږ خلقو ته د تيمم کولو اجازت ورکړو نو ډير ممکن دی چه کله دوی ته يخې اوبه معلومې شی نو تيم به کوی.([4])

**دامام شافعي رحمه الله استدلال:-** سورة مائده کښې فرمان دې چه ﴿فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ﴾ دا په خپلو لاسونو اومخ باندې اومګئ. په دې حضرت امام شافعي رحمه الله استدلال کوی چه تيم په پاکه ښاوره کول او په هغې ګردآلود کيدل چې په لاسونو باندې ګرد راشی او هغه په مخ اولاسونو راښکل ضروری دی.

---

[1]) الطبری : ۹٦٦۷۳ )-

[2]) صحيح بخاری کتاب التيم باب التيمم هل ينفخ فيها : ۳۳۸، صحيح مسلم: : ۳٦۸، ابوداود : ۳۲٦، نسائی : ۳۱٦ ابن ماجة: ۵٦۹)-

[3]) احمد: ۲٦۳/٤، وهو حسن ترمذی: ۱٤٤)-

[4]) صحيح بخاری کتاب التيمم باب التيمم ضربة : ۳٤۷، صحيح مسلم: ۳٦۸، ابوداود: ۳۲۱، نسائی: ۳۲۰)-

**دابوجهم په حدیث استدلال:-** لکه څنګه چه د حضرت ابوجهم ﷺ حدیث مبارک کښې تیر شو چه هغوی نبی کریم ﷺ اولیدلوچه استنجا ئې کوله او سلام ئې اوکړو. او په دې کښې دا هم دی چه نبی کریم ﷺ فارغ شو نو یو دیوال ته ورغلل او هغه ئې خپلې همسا سره اوګرولواوبیائې په دې لاس اووهلو او تیمم ئې اوکړو.بیا فرمان دې چه الله ﷻ تاسو باندې ستاسو دین کښې تنګی او سختی کول نه غواړی بلکه هغه تاسو پاکول غواړی ، ددې وجې ئې د اوبو نه ملاویدو په وخت کښې ښاورې سره تیمم مباح کړو او تاسو باندې ئې خپل انعام اوکړو چه تاسو شکر ادا کړئې.

**تیمم د امت محمدی خصوصیت دې:-** نو دا امت دې نعمت سره مخصوص دې لکه څنګه چه بخاری او مسلم شریف کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ماته پنځه څیزونه داسې راکړې شوی دی چه خما نه مخکښې هیچا ته نه دی ورکړې شوی.

① دیوې میاشتې په مسافت سره خما مدد رعب سره اوکړې شو(چه دومره پورې به زما رعب د دشمن په زړونو کښې وی کوم خائې ته چې سړې په یو میاشت کښې رسیږی)

② خما دپاره ټوله زمکه جمات او پاکونکې جوړه کړې شوه.

③ خما په یو امتی باندې چه کله د مونځ وخت راشی نو هغه دې هم هغه خائې کښې مونځ ادا کړی دهغه جمات او دهغه اودس هغه سره هم هلته موجود دی (حالانکه د نورو امتونو عبادت به صرف د هغوی په عبادت خانو کښې وو)

④ مادپاره د غنیمت مال حلال کړې شو اودا خما نه مخکښې حلال نه وو.

⑤ ماته شفاعت راکړې شوی دې ، ټول نبیان علیهم السلام خپلو خپلو امتونو طرفته لیږلې شوی وو خو څه ټولې دنیا دپاره لیږلې شوې یم.([1])

**دامت محمدی درې خصوصیات:-** اود صحیح مسلم حوالې سره هغه حدیث تیر شوې دې چې مونږ ته په ټولو خلقو درې فضیلتونه راکړې شوی دی.

① خمونږ صفونه د فرشتو د صفونو پشان جوړکړې شوی دی.

② خمونږ دپاره ټوله زمکه جمات جوړه کړې شوه.

③ او ددې زمکې ښاوره خمونږ دپاره اودس جوړ کړې شوې دې کله چه مونږ ته اوبه ملاؤ نشی.

**قوله تعالی:** إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا۝

دې آیت کریمه کښې الله ﷻ حکم فرمائی چه خپلو مخونو او خپلو لاسونو باندې مسح کوئې چه کله تاسوته اوبه ملاؤ نشی.الله ﷻ معاف کولو والا او بخښونکې دې.دهغه لوئې ذات د عفو شان دې چه هغه ذات ستاسو دپاره داوبو نه ملاویدوپه وخت کښې تیمم مشروع کړو او د مونځ کولو اجازت ئې درکړو .که تاسو دپاره ئې داسې نه وې کړې نو تاسو ته به ډیر زیات مشکلات وو. خکه دې آیت کریمه کښې مونځ په ناقص حالت کښې منع کړې شویدې لکه د نشې حالت کښې یا جنابت حالت کښې یا د بې اودسۍ حالت کښې ، نو ترکومې چې تاسو په خپلو خبرو باندې په خپله نه پوهیږئی ، اوباقاعده غسل او شرعی طور سره اودس اونکړئی نو تاسو مونځ نه شئ کولې. خو که د بیمارئی حالت کښې یې اوکله چه اوبه نه ملاویږی نو د غسل او اودس قائمقام تیمم جوړ کړې شوې دې.نود الله ﷻ په دې احسان مونږ دپاره شکر ادا کول پکاردی. الحمد الله.

**په سورة نساء کښې دتیمم واقعې بیانولو وجه:-** دتیمم رخصت نازلیدو واقعه هم واورئی.مونږ داواقعه دسورة نساء ددې آیت مبارک په تفسیر کښې په دې وجه بیانوؤ چه سورة مانده کښې د تیمم کوم آیت

---

[1]) صحیح مسلم کتاب المساجد باب المساجد: ۵۵۲)-

دې هغه ددې نه پس نازل شوې دې.ددې دليل دادې چه دا ظاهره ده چه دا ايت دشرابو دحرمت نه مخکښې دې او شراب د جنګ أحد نه څه وخت پس حرام شوی دی کله چه نبی کريم ﷺ دبنونضير ديهوديانو محاصره کړې وه. او د سورة مائده آخری آيت مبارك چه دې کښې نازل شوهغې کښې بالخصوص د دې سورت ابتدائی حصه ده .نو مناسب هم دا دی چه د تيمم شان نزول هم دا بيان کړې شی ، الله ﷻ دې نيك توفيق راکړی او هم په هغه بهروسه ده.

**دتيمم د ايت شان نزول:-** مسند احمد کښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها حضرت آسماء رضي الله عنها نه يو هار اوغوښتلو د قرض په طور چه دابه بيا واپس کوم ، هغه سفر کښې ورك شو.نبی کريم ﷺ ددې د تلاش کولو دپاره کسان اوليږل او هغوئ ته هغه هار ملاؤ شو. خو دې کښې دمونځ وخت راغلو او دوی سره اوبه نه وې ،هغوئ بې أودسه مونځ اوکړو او نبی کريم ﷺ چه ورغلل نو ددې شکايت ئې ورته اوکړو. نو دې باندې د تيمم حکم نازل شو. حضرت اسيد بن حضير رضي الله عنه اوفرمائيل چه ائې ام المومنين حضرت عائشه رضي الله عنها ! الله ﷻ دې تاسو ته جزاء خيردرکړی ، چه تاسو ته کوم تکليف هم رسيدلې دې په الله قسم د هغې نتيجه ستاسو او دټولو مسلمانانو دپاره خير وی.(۱)

**پورتنۍ واقعې په دويم روايت:-** بخاری شريف کښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی مونږ سفر کښې وو بيداء يا ذات الجيش کښې خما هار اوشليدو او پريوتلو. اوددې تلاش دپاره نبی کريم ﷺ سره د قافلې ايسار شو. اوس نه مونږ سره اوبه وې او نه هلته ميدان کښې اوبه وې.خلقو خما شکايت خما پلار حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه ته اوکړو چه اوګوره .مونږ ددې په وجه په څه مصيبت کښې اخته شو. نو خماپلار حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه مالره راغلواو په هغه وخت کښې نبی کريم ﷺ خما په پتون باندې خپل سر مبارك ايښودې وو او اوده وو. راتلو سره ئې ماته اوونيل چه تا نبی کريم ﷺ او نوروخلق ايسار کړی دی.او اوس نه هغوئ سره اوبه شته او نه دلته ميدان کښې اوبه په نظر راځی الغرض څه ئې ښه اورټلم او الله ﷻ خبر چه څه څه ئې ماته اوونيل.او څه ئې تشو تشو کښې وهلم.خو ما لږ هم تندې ترېو نه کړو اونه مې څه حرکت اوکړو چه هسې نه د نبی کريم ﷺ آرام کښې څه خلل راشی.ټوله شپه تيره شوه.سحر خلق پاسيدل خو اوبه نه وې ، الله ﷻ دتيمم آيت نازل کړو او ټولو تيمم اوکړو. حضرت اسيد بن حضير رضي الله عنه اوفرمائيل چه ائې دابوبکرصديق رضي الله عنه کورنۍ ! دا څه ستاسو رومبې برکت نه دې.اوس کله چه مونږ هغه اوښ راوچت کړو چه په کومې څه سوره ووم نو دهغې لاندې هار ملاؤ شو.(۲)

**پورتنۍ واقعه په دريم روايت :-** مسنداحمد کښې دی چه نبی کريم ﷺ خپلې بی بی صاحبې حضرت عائشه رضي الله عنها سره اولات جيش باندې تير شو ،د ام المومنين حضرت عائشه رضي الله عنها يمنی مهرو هار مات شوې او چرته پريوتې وو او ورك شوې وو. او ددې تلاش کښې مونږ دلته ايسار شو. نبی کريم ﷺ سره ټولو مسلمانانو دلته شپه تيره کړه سحر چه پاسيدلو نو اوبه نه وې ،نو الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته اجازت ورکړو چه ښاورې سره تيمم اوکړی او پاکی حاصله کړی. او مسلمانان نبی کريم ﷺ سره اودريدل او زمکه باندې ئې لاسونه اووهل او چه کومه ښاوره به دې پورې لګيدلې وه دهغې د څنډلو نه بغير ئې هغه په خپلو مخونو باندې راښکل تر اوګو پورې او لاسونه ترلاندې ترخونو پورې (۳).

**پورتنۍ واقعه په څلورم روايت:-** د ابن جرير رحمه الله روايت کښې دی چه ددې نه مخکښې حضرت ابوبکر

---

(۱) احمد: ۵۷/۶، صحيح بخاری کتاب التيمم باب اذا لم يجدماء ولاترابا: ۳۳۶، صحيح مسلم: ۳۶۷، ابوداود: ۳۱۷، نسائی: ۳۲۳، ابن ماجة: ۵۶۸)-

(۲) صحيح بخاری کتاب التيمم باب : ۱، صحيح مسلم: ۳۶۷ ، نسائی : ۳۱۰)-

(۳) احمد : ۲۶۳/۴ ، ابوداود : ۳۲۰، وسنده صحيح )-

صدیق ﷺ حضرت عائشه رضی الله عنها ته په غصه شوې وو لیکن د تیمم اجازت نه پس په خوشحالۍ خوشحالۍ خپلې لورته راغلو.او وې فرمائیل چه ته ډیره مبارکه نې مسلمانانو ته دومره لوئې اجازت ملاؤ شو. بیا مسلمانانو یو ضرب سره خپل مخونه اومخل او دویم ضرب سره ئې خپلې څنګلې او ترخونو پورې لاسونه اومخل. (۱)

**د تیمم د ایت یو بل شان نزول:-** ابن مردویه کښې روایت دې چه حضرت اسلع بن شریك ﷺ اوفرمائیل چه نبی کریم ﷺ په اوښه باندې سور روان وو ، دیخنۍ موسم وو ، دشپې وخت وو ، سخته یخنی وه.او زه جنب شوم او بل طرفته نبی کریم ﷺ د کوچ کولو اراده اوکړه نو ما دې حالت کښې د نبی کریم ﷺ اوښه چلول خوښ نه کړل اودې سره ماته دا خیال هم راغلو که یخاوبه سره لامبم نو مړ به شم یا به بیمار شم.ما پټ شان یو انصاری ته اوئیل چه تاسو ددې اوښې واګې اونیسئ ، نو هغه اوښه نیولې وه اوتلو اوما اور بل کړو او ګرمو اوبو سره مې غسل اوکړو ، بیا مې منډه اووهله او قافلې ته اورسیدم.نبی کریم ﷺ ماته اوفرمائیل چه اسلع څه خبره ده د اوښې چال څنګه بدل شوې دې ؟ ما اووئیل چه یارسول الله ﷺ ! ما دا نه وه روانه کړې بلکه فلانی صحابی ﷺ داروانه کړې وه.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ولې ما ورته ټوله واقعه اوونیله نو دې باندې دا آیت ﴿لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ﴾ نه تر ﴿عَفُوًّا غَفُوْرًا﴾ پورې نازل شو. (۲)دا روایت بل سند سره هم مروی دی.

<table>
<tr><td>اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ</td></tr>
<tr><td>| آیا نۀ دی کتلی تا | هغه کسانو ته</td></tr>
<tr><td>| آیا تا دهغې خلقو حالت نه دې لیدلې</td></tr>
<tr><td>اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يَشْتَرُوْنَ الضَّلٰلَةَ وَيُرِيْدُوْنَ</td></tr>
<tr><td>چې ورکړې شوې ده ورته | څه حصه | د کتاب نه | هغوئ اخلی | ګمراهی | اوغواړی دا</td></tr>
<tr><td>چې دکتاب(علم) نه ورته لویه برخه ورکړې شوې وه | اوبیا هم ګمراهی اخلی | اودا غواړی</td></tr>
<tr><td>اَنْ تَضِلُّوا السَّبِيْلَ ۝ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاَعْدَآئِكُمْ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَلِيًّا ۡ</td></tr>
<tr><td>چې تاسو ورکه کړئ لار | اوالله ښۀ پیژنی | دشمنان ستاسو | اوکافی دې الله دوست</td></tr>
<tr><td>چې تاسود حقې لارې نه بې لارې کړی | اوالله ﷻ ته ستاسودشمنان ډیرښه معلوم دی | اوتاسودپاره دالله ﷻ ملګرتیا کافی ده</td></tr>
<tr><td>وَّكَفٰى بِاللّٰهِ نَصِيْرًا ۝ مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا</td></tr>
<tr><td>او کافی دې الله | مددګار | بعضې دهغه کسانونه | چې یهودیان دی</td></tr>
<tr><td>اوتاسودپاره دالله پاک مدد کافی دې | ............ د هغه کسانو نه چې یهودیان شوی دی</td></tr>
<tr><td>يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا</td></tr>
<tr><td>اړوی | خبرې | دخایونو دهغې نه | اووایئ هغوئ | واوریدله مونږه | او مونږ او نۀ منل</td></tr>
<tr><td>خینې خلق لفظونه دخپلو مناسبو خایونونه اړوی راړوی (اوچه تاسوته راشی) نووائی مونږ واوریدل او مونږ نۀ منو</td></tr>
</table>

(۱) طبری : ۹۶۷۵)-

(۲) طبرانی : ۸۷۵)-

وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّرَاعِنَا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ

واوره|درته دې واو نه رولې شی | اولفظ راعنا وانی| په تاوولو | دژبو خپلو سره

او واوره (اني نبی) الله دې درته واو نه روی او د راعنا په الفاظو ژبې پرې تاو راتاو کړی

وَطَعْنًا فِي الدِّينِ ۚ وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا سَمِعْنَا

او په عيب ونيلو سره | په دين كښې | او كه چرې هغوئ | ونيلې وې | چې واوريده مونږ وينا (ستا)

اود دين اسلام په قبلولو (مسلمانانو ته) پيغورونه ورکوی|اوكه ددې (لفظونو) په ځانې دوئ ونيلې چې مونږ واوريدل

وَأَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ

اواومنلو مونږه حكم | اولفظ واوره | او اوګوره مونږ ته | خامخاوه داخبره | بهتره | دهغوئ دپاره

اوتابعداری کوو (ستاسو) او واوره (خبره زمونږ) او زمونږ لحاظ اوكړه| نو دا به ددوئ دپاره ډيره بهتره وه

وَأَقْوَمَ وَلَٰكِن لَّعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ۝

اوزياته صحيح |خو ليكن | لعنت كړې دې په هغوئ الله| په سبب د كفر دهغوئ | نو نه راوړی ايمان|مګر لږ

اودموقعې مطابق خبره به وې|خو په دوی باندې الله ﷻ د كفر په وجه لعنتونه ورولې دی نو ډيركم په كښې ايمان راوړی

قوله تعالى: : أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يَشْتَرُونَ الضَّلَالَةَ وَيُرِيدُونَ أَن تَضِلُّوا السَّبِيلَ ۝

**ديهوديانو په كتاب الله عمل نه كول:** - الله ﷻ فرمانی چه ديهوديانو يو قابل مذمت خصلت داهم دې چه ګمراهی دهدايت په مقابله كښې اختياروی. په نبی كريم ﷺ باندې چه څه نازل شوی دی هغې نه مخ اړوی .او چه كوم علم الله ﷻ د خپل طرفنه دوی ته وركړې دې نو هغه هم شاته غورځوی. ددوی كتابونو كښې پخپله هم د نبی كريم ﷺ باره كښې بشارتونه موجود وو. خود خپلو مريدانو نه دوی خيرخيرات اخلی او ددې په لالچ كښې دوی دا نه ظاهروی بلكه دې سره دا غواړی چه پخپله مسلمانان هم ددې نه واړوی، دالله ﷻ دكتاب نه منكرشی، هدايت او رينښتونی علم پريږدی. الله ﷻ ستاسو دښمنانونه ښه خبر دې. هغه لوئې ذات تاسو د دښمن نه خبرداروی چه تاسو دوی دهوكه نكړی. تاسو دپاره دالله ﷻ حمايت كافی دې. تاسو يقين اوساتئ چه كوم خلق الله ﷻ ته ټيټيږی الله ﷻ دهغوئ ضرور مدد كوی اودهغوئ مددګار جوړيږی .

قوله تعالى: : مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِ

**ديهوديانو دالله په كتاب كښې تحريف كول:** - دريم آيت چه د لفظ من نه شروع كيږی ، په هغې كښې بيان دجنس دپاره دې. لكه ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ﴾ كښې. بيا د يهوديانو د هغه ډلې ذكر كوی چه كومو تحريف كړې وو ، ددې نه مراد دا دې چه هغوئ د كلام الله مطلب بدلوی، اود الله تعالى چې كوم مراد وی د هغې خلاف تفسير كوی. او دا كاردوی په قصد سره كوی. اودې سره دوی كلام الله باندې افتراء كوی او ددې مرتكب كيږی.

قوله تعالى: : وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ

**د يهودو په پيغمبر ﷺ پورې ټوقې كول:** - بيا فرمانی چې دوی وانی چه اني پيغمبر ﷺ! چه څه تاسو اووئيل مونږ هم واوريدل ليكن مونږ منلو والا نه يو. خيال اوكړئ اوددوی كفر اوالحاد اوګورئ چه په قصد سره ناپاكو الفاظو سره اظهار خيال كوی. او وانی چه تاسو واورئ او الله ﷻ دې اوكړې چه تاسو

واورنی یا دا مطلب چه تاسو واورنی اوستاسو دې واونه ریدنی شی لیکن رومبې مطلب زیات بهتر دې.دا ونیل ددوی د خندا په طور وو ، الله ﷻ دې په دوی لعنت اوکړی.

وَرَاعِنَا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّينِ ۚ

د نبی کریم ﷺ په حق کښې ګستاخی کول:- او ﴿رَاعِنَا﴾ به نې ونیل چه ددې نه به په ظاهره دا ګنړلې کیدل چه دا خلق وائی چه مونږ طرفته غوږ کیږده.لیکن هغوئ به ددې نه مراد دا اخستو چه تاسو ډیرلو نې والا یئ، ددې پوره مطلب ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا ﴾ تفسیر کښې تیر شوې دې.مقصد دادې چه کوم نې ظاهرول ، دهغې خلاف خپلې ژبې اړوی او د طعن په طور خپلو زړونو کښې پټ ساتی.در اصل دا به دوی د نبی کریم ﷺ بې ادبی او ګستاخی کوله. نو دوی ته هدایت کولې شی چه دوی دې داسې الفاظ پریږدی چه دهغې معنی دوه وی.او صفا صفا دې اووائی چه مونږ واوریدل ، تاسوخمونږ عرض واورنی،تاسو خمونږ طرفته اوګورنی.دا وینا ددوی دپاره بهتر ده او هم دا صفا او رښتونی اومناسب خبره ده.خو ددوی زړونه د نیکئ نه لرې دی. اصل ایمان دپاره ددوی زړونو کښې خانې نشته دې.ددې جملې تفسیر هم مخکښې تیر شوې دې ، مطلب دادې چه نفع ورکولو والا ایمان دوی کښې نشته دې.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اُوْتُوا الْكِتٰبَ | اٰمِنُوْا | بِمَا | نَزَّلْنَا
اې هغه کسانو | چې درکړې شوې دې کتاب | ایمان راوړئ | په هغه (قران) | چې نازل کړې دې مونږ
اې دکتاب خاوندانو (یهودو) په هغه کتاب ایمان راوړئ کوم چه مونږ نازل کړې دې ..........

مُصَدِّقًا | لِّمَا | مَعَكُمْ | مِّنْ قَبْلِ | اَنْ نَّطْمِسَ | وُجُوْهًا
چې تصدیق کونکې دې | دهغه کتاب | چې تاسوسره دې | وړاندې ددې نه | چې مونږه بدل کړو | مخونه
چې ستاسودکتاب تصدیق کونکې دې | د دې نه وړاندې (ایمان راوړئ) چې مونږ مخونه بدل کړو

فَنَرُدَّهَا | عَلٰٓى اَدْبَارِهَآ | اَوْ نَلْعَنَهُمْ | كَمَا | لَعَنَّآ | اَصْحٰبَ السَّبْتِ ۭ
پس اوګرخوو هغه | شاګانو طرف ته | یالعنت اوکړو په هغوئ | لکه چې لعنت کړې وو مونږه | دخالی د ورځې په خلقو
او هغه شاطرف ته واړوؤ | یاپرې داسې لعنت اوکړو چې دخالی د ورځې په خاوندانو چې موکړې وؤ

وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ | مَفْعُوْلًا ﴿٤٧﴾ | اِنَّ اللّٰهَ | لَا يَغْفِرُ | اَنْ يُّشْرَكَ | بِهٖ
اودې | حکم دالله | خامخا کیدونکې | بیشکه الله | نه معاف کوی دا خبره | چې شریك جوړ کړې شی | دهغه سره
اودالله ﷻ حکم ضرور پوره کیدونکې دې | ......الله ﷻ خو بس یوشرک نه معاف کوی

وَيَغْفِرُ | مَا | دُوْنَ ذٰلِكَ | لِمَنْ يَّشَاۗءُ ۚ | وَمَنْ | يُّشْرِكْ
اومعاف کوی | هغه ګناه | چې ماسوا وی دهغې نه | هغه چاته چې خوښه نې شی | او هغه څوك چې شریك جوړ کړی
اوددې نه سوا چه هرڅومره ګناهونه وی چې غواړی نو معاف کوی نې | او چا چې

بِاللّٰهِ | فَقَدِ افْتَرٰٓى | اِثْمًا | عَظِيْمًا ﴿٤٨﴾
دالله سره | نو هغه جوړ کړل | دروغ | لوئ
الله ﷻ سره شریک پیدا کړو | نو هغه ډیرلوئې دروغ جوړ کړل په الله باندې

قوله تعالیٰ: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اٰمِنُوْا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ

**دنافرمانو شکلونه مسخ کيدل:-** الله ﷻ يهوديانو او نصرانيانو ته حکم فرمائي چه ما خپل زبردست کتاب په خپل بهترين نبي ﷺ نازل کړې دې چه په دې کښې پخپله ستاسو د کتاب تصديق هم دې په دې ايمان راوړئ ددې نه مخکښې چه ستاسو صورتونه مسخ شي او سترګې مو د مخې په خائې شانته شي. يا دامطلب چه ستاسو څهرې به مسخ کړو، او سترګې غوږونه او پوزې ټول هر څه مو ختم شي بيا مو دا مسخ څهر هم ختمه شي. داعذاب ددوی د کړو دې. دوی هم حق نه آوري او باطل طرفته او هدايت نه ضلالت طرفته روان دی. نو الله ﷻ دوی ته تنبيه ورکوی چه څه به هم داشان ستاسو مخونه التيه کړم چه تاسو به التيه روان يئ؛ اوستاسوسترګې به بدلې شي. او هم داشان تفسير بعضو د ﴿إِنَّا جَعَلْنَا فِي أَعْنَاقِهِمْ﴾ الخ آيت هم کړې دې. غرض دا چه دا د ډير خراب مثال او ګمراهئ او هدايت نه د لرې والي بيان اوشو.

**دامام مجاهد تفسير:-** حضرت مجاهد رحمه الله نه مروی دی مطلب دادې چه مونږ په رينښتيا تاسو دحق لارې نه آړوو. اوګمراهئ طرفته مومتوجه کووو. مونږ به تاسو کافران کړو. او ستاسو څهرې د شادوګانو په شان کړو.

**د کعب احبار ﷺ د دې ايت په اوريدو اسلام قبلول:-** ابوزيد رحمه الله فرمائي چه دا واپس کول دا وو چه د حجازد زمکې نه ئې د شام ښارونو ته اورسول. دا هم تير شوی دی چه ددې آيت په آوريدو سره حضرت کعب احبار ﷺ اسلام قبول کړې وو. ابن جرير کښې دی چه د حضرت ابراهيم رحمه الله مخکښې د حضرت کعب احبار ﷺ د اسلام راوړلو ذکر اوشو نو دوی اوفرمائيل چه حضرت کعب احبار ﷺ دحضرت عمر فاروق ﷺ زمانه کښې اسلام قبول کړې وو. دې بيت المقدس ته تلو او مدينې ته راغلو او حضرت عمر فاروق ﷺ هغه ته ورغلو او وې فرمائيل اني کعب ﷺ ! مسلمان شه. هغوئ جواب ورکړو چه ته خو په قران کښې وائې چه د چا توراة اوچت کړو او بيا هغوئ دا اوچت نه کړو يعني عمل ئې پر اونکړو نو دهغوئ مثال د خر په شان دې چه په هغه بوج اچولې شوې وی. اوداهم تاسو ته معلومه ده چه څه هم دهغه خلقو نه يم چه د چا نه توراة اوچت کړې شوې دې. په دې باندې حضرت عمر فاروق ﷺ هغه پرېښودو. تر دې چه دې حمص ته اورسيدو او هلته ئې واوريدل چه يو سړی چه ددوی د کورنئ نه وو ددې آيت مبارك تلاوت اوکړو. هرکله چه هغه دا آيت مبارك ختم کړو نو دې اوويريدو چه هسې نه ددې آيت وعيد ما ته راونه ګرځي. او هسې نه چه څما خوله هم واوړي. ده زر اووئيل ﴿يارب اسلمت﴾ اني څما ربه ما ايمان راوړو. بيا حمص نه واپس شو او خپل وطن يمن ته راغلو او تردې چه خپل کور والو سره اسلام کښې داخل شو. (1)

**د کعب احبار د ايمان راوړو بل روايت:-** ابن ابی حاتم کښې د حضرت کعب احبار رحمه الله واقعه داشان مروی ده چه دده استاد ابومسلم جليلی به دې په دې ملامته کولو چه تا نبی کريم ﷺ ته په راتلو کښې سستي کړې ده. بيا ئې هغه اوليږلو چه لا رشه اوګوره چه نبی کريم ﷺ هم هغه پيغمبر دې چه د چا خوشخبری او صفتونه په توراة کښې دی. دوی راغلل او وې وئيل چه کله څه مدينې منورې ته اورسيدم نو ما هلته يو کس اوليدو چه دقران پاك تلاوت ئې کولو چه اني اهل کتابو مونږ چه کوم کتاب نازل کړې دې او تاسو سره چه کوم کتاب رينښتونې دې ، په دې باندې ددې نه مخکښې ايمان راوړئ چه مونږ ستاسو څهرې ختمې کړو او دا التيه کړو. څه زر راوچت شوم او زر زر مې غسل اوکړو او خپله څهره باندې مې لاس راښکلو چه هسې نه ايمان راوړلو کښې ما باندې ناوخته شي او څما څهره التيه نشي. بيازر راغلم او مسلمان شوم. (2)

---

1) ابن جرير-

2) ابن ابي حاتم-

**قوله تعالى:: أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّا أَصْحٰبَ السَّبْتِ**

**په يهودو د الله د لعنت بيان:-** بيا فرمائي يا خو به مونږ په دوی لعنت اوکړو لکه څنګه چه د خيالی ورځي په خلقو لعنت کړې وو يعني کومو خلقو چه د خيالی په ورځ حيلو بهانو سره کبان ښکار کولو حالانکه هغوئ ددې کار نه منع کړې شوی وو. اودهغې نتيجه دا شوه چه هغوئ نه شادوګان او خنزيران جوړ شو. ددوی تفصيلي واقعه به په سورة اعراف کښې راشي انشاء الله.

**قوله تعالى:: وَكَانَ أَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا**

**دالله د فيصلې اټل والې:-** بيا فرمائي چه دالله ﷻ کارونه به پوره کيږي او هرکله چه هغه يو حکم ورکوی نو هيڅوك نشته دې چه ددې مخالفت او ددې ممانعت اوکړي.

**قوله تعالى:: إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ**

**الله شرک نه معاف کوی:-** بيا خبر ورکوی چه څوك الله ﷻ سره شرك کوی نو الله ﷻ دهغه ګناهونه نه معاف کوی. يعني چه کوم سړې الله ﷻ سره داسې وخت کښې ملاقات اوکړي چه هغه مشرك وی نو هغه باندې د بخشش دروازې بندې دی. ددې جرم نه سوا نور ګناهو نه که هر څنګه وی چا ته چې ئې اوغواړی نو ښنبی يې. ددې آيت کريمه متعلق ډير احاديث مونږ په په اختصار سره ذکر کوو.

**اولنی حديث:-** حديث په حواله مسند احمد. دالله ﷻ په نيز د ګناه درې قوانين دی. ① يو خوهغه چه الله ﷻ دهغې هيڅ پرواه نه کوی. ② دويم هغه چه په هغې کښې الله ﷻ هيڅ نه پريږدی. ③ دريم هغه چه الله ﷻ هغه بالکل نه بخښی.

**کومه ګناه چه الله ئې نه ښنبی:-** نو کوم چه هغه نه بخښی نو هغه شرك دې. الله ﷻ فرمائي چه الله ﷻ سره څوك شرك کوی نو الله تعالى هغه نه ښنبی. اوبل ځائې کښې ارشاد دې چه څوك الله ﷻ سره شرك اوکړي په هغه جنت حرام دې.

**کومه ګناه چه الله ئې ښنبی:-** او چه د کوم ديوان الله تعالى سره څه وقعت نشته دې هغه د بنده خپل ځان باندې ظلم کول دی. د هغې ګناه تعلق الله تعالى سره دې. د يو ورځې روژه چه کومه هغه پريخودې وی يا مونځ نو الله ﷻ هغه ښنبی. او چه دکوم ديوان د الله ﷻ په نيزد څه وقعت نشته دې هغه دبنده پخپل ځان ظلم کول دی او دهغې بدله او قصاص ضروری دې.([1])

**دويم حديث:-** دويم حديث مبارك کښې دی په حواله د مسند بزار دالفاظو رووبدل سره د هغې مطلب هم دادې([2]) دريم حديث په حواله مسند احمد، ممکن دی چه الله ﷻ هره ګناه اوښنبی مګر هغه سړې چه دکفر په حالت کښې مړ شی ا و هغه سړې چه هغه بل بنده قتل کړې وی. «نو دهغوی ښنبنه نه کوی»([3])

**څلورم حديث:-** څلورم حديث په حواله دمسند احمد. الله فرمائي چه ائې بنده ! ته چه کومې پورې خما عبادت کوې او خما نه نيك اميد ساتې نو څه به ستا خطاګانې معاف کوم ، ائې خما بنده که ته د ټولې زمکې برابر ګناهونه اوکړې اوما ته راشې نو څه تاته د هغې مغفرت اوکړم خو په دې شرط چه تا ماسره شرك نه وی کړې.([4])

**پنځم حديث :-** په حواله د مسند احمد ، چه کوم بنده لا اله الا الله اووائی ، بيا هم په دې باندې دې وفات شی نو هغه به ضرور جنت ته ځی. دې آوريدو سره حضرت ابوذر ﷺ تپوس اوکړو اګر چه هغه

---

[1] ) احمد: ٢٤٠/٦ ، )-
[2] ) البزار ٣٤٣٩ ، )-
[3] ) احمد: ٩٩/٤، نسائي : ٣٩٨٩ وسنده صحيح )-
[4] ) احمد: ١٥٤/٥، وسنده حسن)-

زنااو غلا کړې وی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل اګر چه هغه زنا او غلا کړې وی.درې ځل هم دا سوال او جواب اوشو. دڅلور سوال په جواب کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل اګر چه د ابوذر پوزه خړه وی.حضرت ابوذر ؓ دهغه ځائې نه خپل څادر اوځنډلو او لاړو او دې نه پس به ئې چه کله دا جمله وئیله نو وئیل به ئې اګرچې د ابوذر پوزه په خاورو ککړه وی.[1]

**دابوذرؓ په بل روایت سره :-** دا حدیث بل سند سره هم مروی دې خو هغې کښې لږ شان زیاتوالې دې. په هغې کښې دی چه حضرت ابوذر ؓ فرمائی چه خه نبی کریم ﷺ سره مدینه منوره کښې روان ووم، مونږ د احد غر ته کتل ، دې کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ائې ابوذر ؓ ! ما اوئیل چه لبیك یارسول الله ﷺ.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واوره ! که ماسره ددې غر برابر هم سره زر وې نو ما به دا نه غوښتل چه دا ماسره تر درې ماښامو پورې پاتې شی ، سواد هغه دینار نه چه کوم خه د قرض خلاصولو دپاره کیږدم.اوباقی ټول مال دالله تعالی لار کښې داشان داشان خرچ کړم. نبی کریم ﷺ نبی او ګس طرفته لپې اوشیندلې.بیا څه وخت پس مونږ روان وو چه نبی کریم ﷺ ماته آواز اوکړو او وې فرمائیل چه چاسره دلته زیاتې وی نوهلته به ورسره کمې وی.خو چه څوك چې دا شان او داشان خرچ اوکړی او نبی کریم ﷺ خپلې لپې به خپلې مخې او ګس طرفنه ډکولې او اشاره به ئې کوله. بیا څه تلو نه پس ئې اوفرمائیل چه ائې ابوذر ! چه څه راځم ته دلته اودریږه. نبی کریم ﷺ تشریف یوړو ، او خما نظر نه غائب شو ما آوازونه آوریدل ، زړه مې بې آرامه شو چه هسې نه په تنهائی کښې څوك دښمن ورته نقصان اورسوی.ماقصد اوکړو چه ورشم خو دې سره ماته د نبی کریم ﷺ دا فرمان یاد شو چه تر کومې پورې خه رانشم نو ته دلته اوسه. نو خه هلته ولاړوم په دې کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم راغلو.نو ما ورته اوئیل چه یارسول الله ﷺ دا آوازونه څنګه وو؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ما ته حضرت جبریل ؑ راغلې وو او فرمائیلې ئې وو چه ستاسو امت کښې څوك وفات شی او هغه الله تعالی سره څوك شریك کړې نه وی .نوهغه به جنت ته داخلیږی. ما اووئیل اګر چه هغه زنا او غلاکړې وی.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل اګر چه هغه زنا او غلا کړې وی. [2]

**د ابوذرؓ حدیث په لږ زیادت سره:-** داحدیث بخاری اومسلم کښې هم دی. او بخاری او مسلم کښې داهم دی چه حضرت ابوذر ؓ فرمائی چه خه د شپې اووتلم نو اومې کتل چه نبی کریم ﷺ یواځې تشریف اوړی نو خما خیال راغلو چه کیدې شی نبی کریم ﷺ خپل ځان سره څوك نه بوځی.نو خه د سپوږمۍ رڼرا کښې نبی کریم ﷺ پسې روان ووم. هرکله چه نبی کریم ﷺ شاته اوکتل نو خه ئې اولیدلم او تپوس ئې اوکړو چه ته څوك ئې ؟ ما اووئیل ابوذر ، الله ﷻ دې ما ستاسو نه قربان کړی.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه راځه ما پسې راروان شه .مونږ لږ مخکښې لاړو.بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه (په دنیا کښې) د زیات مال دولت مالک به د قیامت په ورځ کمی والا وی.مګر هغه چه چاته الله ﷻ مال ورکړې وی ، اوهغه دغه مال مخکښې روستو نیکو کارونو کښې خرچ کوی.بیا څه لږ شان تلو نه پس نبی کریم صلی الله علیه وسلم خه یو ځائې کښې کینولم اودهغه ځائې نه ګیرچاپیره کاڼړی وو. او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خما واپسۍ پورې دلته ناست اوسه. بیا نبی کریم ﷺ مخکښې لاړل تردې چه خما نظر نه غائب شو. نبی کریم ﷺ زیات وخت تیر کړو.بیا ما اوکتل چه نبی کریم ﷺ تشریف راوړی او په خوله مبارکه وائی او راروان دی چه اګر چه زنا ئې کړې وی اګر چه غلا ئې کړې وی.هرکله چه ماته راورسیدل نو خه صبرنه شوم او تپوس مې اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! الله ﷻ دې ما ستاسو نه قربان

---

[1]) صحیح بخاری کتاب اللباس باب الثیاب الابیض : ۵۸۲۷؛ صحیح مسلم: ۹۴)۔

[2])صحیح بخاری کتاب الاستئذان باب من اجاب بلبیک : ۶۲۶۸ صحیح مسلم:کتاب الزکاة باب الترغیب فی الصدقة حدیث ۱)

کړې،دې ميدان کښې تاسو ځا سره خبرې کولې.ما واوريدل چه څوك تاسو ته جواب درکوي.نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه هغه حضرت جبريل ؑ وو. ماته راغلو چه خپل امت ته خوشخبري واوروه چه څوك مرې او هغه الله تعالى سره شريك نه وي جوړ کړې هغه به جنتي وي.ما اووئيل چه ائې جبريل ؑ ! اگر چه هغه زنا کړې وي اواگر چه هغه غلا کړې وي.نو حضرت جبريل ؑ اوفرمائيل چه آو.ما بيا تپوس اوکړو،هغوئ جواب راکړو چه آو. ما بيا هم دا تپوس اوکړو نو وې فرمائيل چه آو.او اگر چه هغه شراب څکلي وي.([1])

**د شرک نه پرهيز کونکې جنتي دي:-** شپږم حديث په حواله د مسند عبدبن حميد .يو سړې نبي کريم ﷺ ته راغلو او وې وئيل چه يارسول الله ﷺ ! واجب کوونکې څيز کوم يو دې ؟ نبي کريم ﷺ اوفرمائيل کوم سړې چې داسې حالت کښې مړ شي چه هغه شرك نه وي کړې نو هغه دپاره جنت واجب دې ، او څوك چه داسې حالت کښې مړشي چه هغه شرك کړې وي نو هغه دپاره جهنم واجب دې ([2]).

**پورتنې حديث په دويم سند سره:-** هم دا حديث مبارك بل طريق سره مروي دې.اوپه هغې کښې دي چه کوم سړي الله تعالى سره شرك نه وي کړې او هغه مړ شي نو هغه دپاره بخشش حلال دې،که الله ﷻ غواړي نو هغه ته به عذاب ورکړي او که غواړي نو هغه به اوبښي.څوك چه الله تعالى سره شرك اوکړي نو الله ﷻ هغه نه بښي.او دې نه سوابښي ( ابن ابي حاتم ).

**پورتنې حديث په دريم سند سره:-** او بل سند سره مروي دي چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه هميشه د مغفرت مستحق وي ترڅوچې پردې اوچتې نکړې شي.تپوس اوکړې شو يارسول ﷺ ! پردې اوچتيدو نه څه مراد دي ؟ نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړې شرك نه کوي اوالله ﷻ سره ملاقات اوکړي نو هغه دپاره دالله ﷻ مغفرت حلال شو . که الله ﷻ غواړي نو عذاب به ورکړي اوکه غواړي نو دې به اوبښي.بيا نبي کريم ﷺ آيت ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ﴾ تلاوت کړو. (مسند ابويعلى ).

**موحد جنتي دي:-** اووم حديث په حواله د مسند احمد سره نقل دې، چه کوم سړې مړ شي او هغه الله ﷻ سره شرك نه وي کړې نو هغه به جنت ته داخليږي.([3])

**دامت د بښنې يو عجيبه زيرې:-** اتم حديث په حواله د مسند احمد نقل دې. يو ځل نبي کريم ﷺ صحابه کرام ؓ ته راغلو او وې فرمائيل چه ستاسو رب ﷻ ماته اختيار راکړې دې چه څه دا خوښ کړم چه دخپل امت اويا زره کسان جنت ته بې حسابه داخل کړم يا دا خبره خوښه کړم چه الله ﷻ کوم څيز خما دامت دپاره محفوظ کړې دې هغه خوښ کړم.نو صحابه کرام ؓ اوئيل چه آيا الله تعالى به ستاسو دپاره هغه څيز اوساتي.ددې آوريدو سره نبي کريم ﷺ دننه تشريف يوړو ، بيا ئې تکبير اووئيلو او بهر ئې تشريف راوړو او وې فرمائيل چه خما رب ﷻ ماته اويا زره کسانو پورې زياتوالې راکړو اوهغه پټه حصه هم.حضرت ابوايوب انصاري ؓ چه کله دا حديث بيان کړو نو حضرت ابورهم رحمه الله سوال اوکړو چه هغه پټ څيز څه دې ؟ دې سره خلقو دوي ته څه وئيل شروع کړل چرته ته او چرته د نبي کريم ﷺ اختيارشوې څيز.ابوايوب انصاري ؓ اوفرمائيل چه ترکومې خمونږ گمان دې اودا بالکل يقين ته نزدې دې،هغه داچه هغه څيز جنت ته تگ دې دهرهغه سړي دپاره چه په رينښتوني زړه سره گواهي ورکړي چه الله ﷻ يو دې،اودهغه نه سوابل معبود نشته دې اومحمد ﷺ دهغه رسول اودهغه بنده دې . ([1])

---

[1] صحيح بخارى كتاب الرقاق باب المكثرون هم المقلون:٦٤٤٣، صحيح مسلم كتاب الزكاة باب الترغيب في الصدقة حديث (٢:

[2] صحيح مسلم كتاب الايمان باب الدليل على من مات لا يشرک به شيئا : ٢٦٩ عن جابر ؓ)-

[3] احمد: ٧٩/٣)-

**چې مشرک نه وی جنتی دې:-** نهم حدیث په حواله د ابن ابی حاتم نقل دې. یو سړې د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او وې وئیل چه یارسول الله ﷺ! خما وراره حرامو نه لاس نه نیسی ، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دهغه دینداری څنګه ده ؟ وې وئیل چه مونځګزار دې او موحد دې حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه لاړشه اودهغه نه دهغه دین په طوردهبه طلب کړه ،که انکار نې اوکړو نوهغه نه واخله.هغه لاړو اوهغه نه نې طلب کړو.هغه انکار اوکړو. هغه واپس راغلو او نبی کریم ﷺ ته نې خبر ورکړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ماته معلومه شوه چې هغه په دین باندې ولاړ دې. نودې باندې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ﴾ الخ.([2])

**د شرک نه بیزاری د غلبې سبب دې:-** لسم حدیث په حواله د حافظ ابو یعلی ، یو سړې نبی کریم ﷺ ته راغلو او وې وئیل چه یارسول الله ﷺ اما هیڅ یو حاجت یا حاجت والا پرې نښودو اوټول هرڅه مې اوکړل.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آیا ته دا ګواهی نه ورکوې چه الله ﷺ نه سوابل څوك د عبادت لائق نشته دې او محمد ﷺ دهغه رسول دې .درې ځل هغه دا اووئیل چه آؤ. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا به په ټولو باندې غالب شی. ([3])

**په یوه خبره د دوزخ مستحق جوړیدل:-** یولسم حدیث په حواله د مسند احمد ، حضرت ابوهریره ﷺ ضم ضم ابن جوش یمامی ته اووئیل چه انې یمامی یو سړی ته هیڅ کله دا مه وایه چه الله ﷺ به تانه بښی یا به تا جنت ته نه داخلوی.یمامی ﷺ اوفرمائیل چه دا خبره خو مونږ خلق خپلو رونړو او دوستانو سره غصه کښې وایو.دوی ورته اوفرمائیل چه خبردار دا بالکل مه وایه.واورئی ما نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه بنی اسرائیلو کښې دوه سړی وو،یو خو عبادت کښې ډیر زیات ښه وو او بل خپل خان باندې زیاتی کولو والا وو.او دواړه خپلو کښې دوستان او رونړه وو. عابد چه به کله دا بل سړې په څه ګناه کښې اوکتلو نو وئیل به نې چه انې دوسته منع شه. نو هغه به جواب کښې وئیل چه ما خپل رب ته پریږده اوهغه ما باندې نګهبان جوړ کړې نه ئې.یو ځل عابد اووئیل چه په الله ﷺ قسم تا به هغه ذات بالکل اونه بخښی یا به دې جنت ته داخل نکړی. الله ﷺ هغه ته فرښته اولیږله چه هغوئ د دواړو روحونه قبض کړل. هرکله چه دا دواړه الله ﷺ ته پیش شو نو الله ﷺ دې ګناهګاره ته اووئیل چه خما رحمت سره جنت ته داخل شه او دې عابد ته ئې اووئیل چه آیا تاته حقیقی علم وو ؟آیا ته خما په هر څیزباندې قادر نې؟دې جهنم طرفته بوځئ.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په هغه ذات قسم چه هغه په لاس کښې دابوالقاسم روح دې،هغه د خپلې ژبې نه یوکلمه داسې اوویستله چه هغې دده آخرت تباه کړو([4])

**څوك چې ما بخښونکې منی:-** دولسم حدیث مبارك په حواله د طبرانی.چه چا ددې خبرې یقین اوکړو چه څه دګناه په بخښش قادر یم نو څه هغه اوبخښم او هیڅ پرواه نه وی تردې چه هغه ماسره شریك جوړ نه کړی.([5])

**د الله د رحمت غلبه:-** دیارلسم حدیث په حواله د بزار ابویعلی.چه په کوم عمل باندې الله ﷺ د ثواب وعده کړې ده نو هغه مالك الملك ضرور پوره کوی.او چه په کوم باندې ئې د سزا وئیلی دی.دهغې اختیار دې.([1])

---

[1]) احمد: ٤١٣/٥، مجمع الزوائد: ٣٧٤/١٠)-

[2]) طبرانی: ٤٠٦٣، مجمع الزوائد: ٧/٥)-

[3]) مسند ابو یعلی: ٣٤٣٣، وسنده صحیح مجمع الزوائد: ٨٣/١٠)-

[4]) احمد: ٤٢٣/٢، ابوداود: کتاب الادب فی النهی عن البغی: ٤٩٠١، وسنده حسن)-

[5]) الطبری:)-

حضرت ابن عمر ﷛ فرمائي چه مونږ صحابه کرامو ﷡ به د قاتل باره کښي، دیتیم دمال باره کښي، او پاکو ښځو باندې د تهمت لګولو باره کښې ، او د دروغو ګواهۍ ورکولو باره کښې ، هیڅ شك شبه نه کوله. تردې چه آیت ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ﴾ نازل شو.نو صحابه کرام ګواهۍ نه منع شو (۲)( ابن ابی حاتم )داین جریرروایت کښې دی چه د کومو ګناهونو ذکرقران پاك کښې شوې دې او هغه ګناهونه څوك هم کوی نودهغه جهنمی کیدو باره کښې مونږ ته هیڅ شك نه وو. تر دې چه مونږ ته دا آیت نازل شو ، هرکله چه مونږ داواوریدو نو مونږ د ګواهۍ ورکولو نه منع شو او ټول ا مور مو الله تعالی ته اوسپارل.(۳)

**د نبی ﷺ شفاعت د لویو ګناهګارانو دپاره دې:-** دبزاریوروایت کښې دی چه چا به کبیره ګناه کوله نو مونږ به هغوئ دپاره استغفار نه کولو. تر دې چه د مونږ نبی کریم ﷺ نه دا آیت مبارك واوریدلو او نبی کریم ﷺ ا وفرمائیل چه ما خپل شفاعت په خپل امت کښې د کبیره ګناه کوونکو دپاره روستو کړې دې.(۴)

**د الله د رحمت ایت:-** ابوجعفر رازی نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ فرمائی کله چې دا آیت ﴿يَٰعِبَادِيَ ٱلَّذِينَ أَسْرَفُوا﴾ نازل شویعنی ائې ځما هغه بندګانو چه پخپلوخانونو باندې موظلم کړې دې تاسو ځما د رحمت نه مه مایوسه کیږئ.نو یو سړې واوریده او دا تپوس ئې اوکړو چه یارسول الله ﷺ شرك کولو والا هم ؟ نبی کریم ﷺ داسوال کول خوښ نه کړه .بیا نبی کریم ﷺ آیت ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ﴾ اولوستو (۵).

**د ابن کثیر تبصره:-** د سورة تنزیل (زمر) آیت مشروط دې تو بې سره ، نو چه کوم سړې دکومې ګناه نه توبه اوباسی او الله ﷻ طرفته رجوع اوکړی اګر چه باربار اوکړی ، نو دمایوسه کیدو والا آیت کښې د توبې شرط ضرور دې ګڼی دې کښې به شرك هم راشی او بیا به مطلب صحیح نه وی.ځکه چه دې آیت مبارك کښې وضاحت سره موجود دی چه الله ﷻ مشرك نه بخښی .خودې نه سوا نور ګناهونه بخښی.یعنی اګر چه ده توبه نه وی ویستې .د دې مطلب سره دا آیت امید ورکولو والا دې .اود زیات امید طمع ددې نه پیدا کیږی .والله اعلم.

**قوله تعالی:** ﴿وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَىٰ إِثْمًا عَظِيمًا﴾

بیا فرمائی چه څوك الله سره شرك اوکړی نوهغه ډیره لویه ګناه اوکړه لکه څنګه چه آیت مبارك کښې دی چه شرك ډیره لویه ګناه ده.

**دټولو نه لویه ګناه:-** بخاری او مسلم کښې حضرت ابن مسعود ﷛ نه مروی دی چه ما اووئیل یارسول الله ﷺ ا دټولو نه لویه ګناه کومه یوه ده ؟ وې فرمائیل چه الله ﷻ سره شریك جوړول.حالانکه هغه ذات ته پیدا کړې ئې.(۶) بیا پوره حدیث مبارك بیان شوې دې ،ابن مردویه کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه څه تاسو ته د ټولو نه لویه ګناه ښایم.هغه الله ﷻ سره شرك کول دی.بیا حضرت نبی کریم ﷺ ددې آیت مبارك آخری حصه تلاوت کړه. بیا د مور پلار نافرمانی کول.بیا حضرت نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو چه ﴿أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ﴾ یعنی ځما شرك ادا کړئ او د خپل مور پلار شکر

---

(۱) مسند ابی یعلی : ۳۳۱۶، البزار : ۳۶۳۵، )-

(۲) الطبری : ۹۷۳۷، ابن ابی حاتم : )-

(۳) ابن ابی حاتم :)-

(۴) البزار : ۳۲۵٤، وسنده حسن)-

(۵) الطبری : ۹۷۳۵، ابن جریر)-

(۶) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی ( فلا تجعلوا لله اندادا) : ۸۵٤۰ ، صحیح مسلم: ۹۶)-

ادا کړنې او خما طرفته واپس کیدل دی.([1])

| |
|---|
| اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ يُزَكُّوۡنَ |
| آيا تا اونۀ کتل \| هغه کسانو ته \| چې پاك ښکاره کوی |
| آيا ته هغه خلقو ته نۀ گوری \| |
| اَنۡفُسَهُمۡ ؕ بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّىۡ مَنۡ يَّشَآءُ وَلَا يُظۡلَمُوۡنَ فَتِيۡلًا ۝ |
| خانونه خپل \| بلکه الله \| پاکوی \| هغه څوك \| چې اوغواړی \| او کولې به نشی ظلم په هغوی \| د تار هومره |
| چې خپل خانونه پاکدامن ښکاره کوی \| بلکه الله ﷻ چې د چاباره کښې اوغواړی نوهغه پاکوی \| او په |
| اُنۡظُرۡ كَيۡفَ يَفۡتَرُوۡنَ عَلَى اللّٰهِ الۡكَذِبَ ؕ وَكَفٰى بِهٖۤ اِثۡمًا مُّبِيۡنًا ۝ |
| اوګوره \| څرنګې \| تړی هغوی \| په الله باندې \| دروغ \| او کافی دی \| دا دروغ \| ګناه ښکاره |
| هغوی به د ذرې هومره ظلم اونشی \| اوګوره دوی څنګه په الله ﷻ باندې دروغ تړی \| او دا ښکاره ګناه کافی ده |
| اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ اُوۡتُوۡا نَصِيۡبًا مِّنَ الۡكِتٰبِ يُؤۡمِنُوۡنَ |
| آيا تا اونۀ کتل \| هغه کسان \| چې ورکړې شوې ده \| حصه \| د کتاب \| هغوی ایمان راوړی |
| ته خلقو ته نۀ ګورې چې د کتاب (تورات د علم نه) څه حصه ورته ورکړې شوې ده \| او حال دا دې چې ایمان راوړی |
| بِالۡجِبۡتِ وَالطَّاغُوۡتِ وَيَقُوۡلُوۡنَ لِلَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا هٰٓؤُلَآءِ |
| په وهمی خبرو \| او په شیطان باندې \| او وائې \| په حق د هغه کسانو کښې \| چې کافران دی \| دا |
| په وهمی او شیطانی څیزونو باندې \| ..........او د کافرو باره کښې وائی چې دا خلق |
| اَهۡدٰى مِنَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا سَبِيۡلًا ۝ اُولٰٓئِكَ |
| زیات په نیغه دی \| د هغه کسانو نه \| چې ایمان نې راوړې دې \| د حیثیته دلارې \| دا (وینا کونکی) |
| د مسلمانانو په نسبت په بهتره لار روان دی \| .............دوی داسې خلق دی |
| الَّذِيۡنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ ؕ وَمَنۡ يَّلۡعَنِ اللّٰهُ |
| هغه کسان دی \| چې لعنت کړې دې په هغوی الله \| او هغه څوك \| چې لعنت اوکړی پرې الله |
| چې الله ﷻ پرې لعنت کړې دې \| ..........او په چا چې الله ﷻ لعنت اوکړی |
| فَلَنۡ تَجِدَ لَهٗ نَصِيۡرًا ۝ |
| نو هرګز به بیا اونۀ مومې ته \| هغه د پاره \| څوك مددګار \| |
| نو هیڅوك به د هغه مددګار بیانۀ مومې \| |

قوله تعالى: اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ يُزَكُّوۡنَ اَنۡفُسَهُمۡ ؕ بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّىۡ مَنۡ يَّشَآءُ

[1] ابن مردویه ۸)-

**خوله باندې تعریف او د خودپسندئ مذمت**:- دیهودیانواو نصرانیانو قول وو چه مونږ دالله ﷻ اولاد او د هغه نیازبین یو.او ونیل به ئې چه جنت ته به صرف یهود داخلیږي یا نصرانیان.ددوی دقول تردید کښې دا آیت ﴿أَلَمْ تَرَ﴾ الخ ، نازل شو.

**د ایت شان نزول**:-او په قول د مجاهد رحمه الله ددې آیت شان نزول دادې چه دې خلقو به خپل بچي امامان جوړول او ونیل به ئې چه دوی بې گناه دی.داهم نقل دی چه ددوی خیال وو چه خمونږ بچي فوت شوی دی هغوئ خمونږ دپاره الله تعالی د نزدیکت ذریعه ده ، خمونږ سفارشیان دی او مونږ به هغوئ پاك کړی.نو دا آیت مبارك نازل شو.حضرت ابن عباس ﷺ دیهودو دخپلو بچو د مخکښې کولو واقعه بیانوی او فرمائي چه دروغژن دی ، الله ﷻ یو گناهگار د یو بې گناه په وجه نه پاکوی.دا به ئې ونیل چه خمونږ بچي بې گناه دی نو ددوی پشان مونږ هم بې گناه یو.

**د چاپه مخامخ تعریف کولو حرمت**:- اوونیلې شوی دی چه دا آیت د نورو مدح بیانولو رد کښې بیان شوې دې.صحیح مسلم شریف کښې دی چه مونږ ته حضرت نبی کریم ﷺ حکم اوکړوچه دمدح کوونکی خوله د خاورې نه ډکه کړئ.[1]

بخاری او مسلم شریف کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ یو ځل یو سړې اوکتلو چه د بل سړی تعریف اومدح ئې کوله نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تا د خپل ملگری څټ مات کړو. بیائې اوفرمائیل که چرې تاسو کښې څوك د څه ضرورت دپاره دبل تعریف کوی نو داسې وائي چه څه فلانې سړې دا شان گنړم.حقیقي پاکوالې چه دالله ﷻ په نیزهم داشان ده داسې په خله دې تعریف نه کوی.[2]

**دخپل ځان په خپله د تعریف کولو ممانعت**:- مسنداحمد کښې د حضرت عمر بن خطاب ﷺ قول دې چه څوك اووائي چه څه مومن یم هغه کافر دې او چه څوك اووائي څه عالم یم ، هغه جاهل دې او څوك چې اووائي چه جنتي یم ، هغه دوزخي دې.[3] ابن مردویه کښې ددوی دا فرمان هم نقل دې چه ماته تاسو باندې دډېرو نه زیاته ویره ددې خبرې ده چه یو سړې خودپسندی کوی او په خپل ځان فخر کوی.[4]

مسنداحمد کښې دی چه حضرت معاویه ﷺ ډېر کم حدیث بیانولو.اوډیرې کمې جمعې به وی چه په هغې کښې دوئ داڅو حدیثونه نه وی بیان کړی چه چا سره الله تعالی د نیکئ اراده اوکړی نو هغه ته دین کښې پوهه ورکوی.اودا مال خوږ او شین رنگې دې ، اوڅوك چې دا حق طریقه حاصلوی نو په هغې کښې به برکت وی. تاسو خپلو کښې د یو بل د مدح او تعریف کولو نه پرهیز اوکړئ ځکه چه دا چاړه راښکل دی.[5]

**په مخامخ دچا د مدحې کولو مذمت**:- حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائي چه انسان سحر خپل دین دپاره اوځي او بیا کله چه واپس شي نو ده سره دده دین نه هیڅ نه وی.(همداشان ) هغه چا سره ملاو شي اومدح او تعریف ئې اوکړی ، او قسمونه خوری او وائي چه ته داسې ئې او ته داسې ئې ، حالانکه نه هغه دده د نقصان مالك دې او نه دده د فائدې او زیاته ممکنه ده چه ددې تعریفي کلمو نه پس دهغه نه داکارونه اونشي لیکن ده خو الله ﷻ خفه کړو ، بیا دوی هم دا آیت مبارك تلاوت کړو(ابن جریر) او

---

[1] ) صحیح بخاری کتاب الزهد باب النهي عن المدح : ۳۰۰۲ ابوداود : ۴۸۰۴، ترمذی : ۲۳۹۳، ابن ماجة: ۳۷۴۲)-
[2] ) صحیح بخاری کتاب الادب باب مایکره من ا لتمادح : ۶۰۶۱ ، صحیح مسلم: ۳۰۰۰)-
[3] ) احمد: )-
[4] ) ابن مردویه)-
[5] ) احمد : ۹۳/۴)- دا روميئ جمله دوې نه ابن ماجه کښې هم مروی ده.

ددې تفصیلی بیان به آیت ﴿فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ﴾ تفسیر کښې انشاء الله راشي.نو دلته ارشاد دې چه الله ﷻ هغه ذات دې چه د چاپاکول اوغوارې هغه پاکوی.ځکه چه هغه دټولوڅیزونو حقیقی اواصلی مالك دې

**قوله تعالی::** وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا۝

**د فتیل تفسیر:-** بیا فرمائی چه الله ﷻ د چا دیو تار هومره نیکی هم نه ضائع کوی.د فتیل معنی ده دکهجورې ګټکی مینځ کښې چه کوم تار وی هغه دې، او مروی دی چه هغه تار چه هغه ځوك ګوتو سره تقسیم کړی.

**قوله تعالی::** انظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ

بیا فرمائی چه ددوی افتراء ته اوګورئی چه څنګه دالله ﷻ د اولاداو د هغه د محبوب کیدو دعوی کوی.اوڅنګه وائی چه مونږ به صرف څو ورځې په اور کښې یو.او څنګه دخپلو مشرانو په نیکو اعمالو باندې اعتماد کوی.حالانکه دیو عمل بل ته نفع نه ورکوی.لکه ارشاد دې چه ﴿تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ﴾ دا یو جماعت وو چه تیر شو دهغوئ اعمال به هغوئ سره او ستاسو اعمال به تاسره وی.

**قوله تعالی::** وَكَفَىٰ بِهِ إِثْمًا مُّبِينًا۝

بیا فرمائی چه ددوی دا ښکاره کذب او افتراء ددوی دپاره بس ده.

**قوله تعالی::** أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ

**د جبت معانی:-** ①د﴿ **جبت** ﴾معنی حضرت فاروق اعظم وغیره نه نقل دی چه ددې معنی جادو او طاغوت او شیطان ده.[1] ② دا قول هم دې چه ﴿ **جبت** ﴾ د حبش لفظ دې ، ددې معنی شیطان ده.شرك بت پرستی،بت،جادو وغیره هم راغلې ده③ بعضې وائی چه ددې نه مراد حیي بن اخطب دې.④بعضې وائی چه کعب ابن اشرف دې ⑤یو حدیث مبارك کښې دی چه فال او مارغانو ... یعنی ددوی نومونه یا وینا یا الوتل یا ددوی نومونو سره ګمان کول ، او زمکه باندې نښې راښکلو سره معامله کول دا ټول جبت دی [2] ⑥ حضرت حسن رحمه الله وائی چه جبت نه مراد د شیطان دهږ که ده .[3]

**د طاغوت معنی:-** دطاغوت نسبت مخکښې سورة بقره کښې تیر سوی دی.دلته د دوباره بیانولو ضرورت نشته دې.حضرت جابر ﷺ نه چه کله د طاغوت باره کښې سوال کیږی نو فرمائی چه دا کاهنان خلق چه دوی ته به شیطان راتلو.②حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دوی دانسان صورت کښې شیطانان دی.اودوی ته خپلې خپلې جګړې راوړی.او دوی حاکمان منی .③حضرت امام مالك رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد هرهغه څیز دې چه د الله نه سواد هغه کیږی.(او هغه خلقو معبود جوړ کړی وی)

**قوله تعالی::** وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هَٰؤُلَاءِ أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا۝

**د ایت شان نزول:-** بیا فرمائی چه ددوی جهالت او بې دینی اوخپل کتاب سره کفر دې حد ته رسیدلې دې چه کافرانو ته په مسلمانانو فوقیت ورکوی.ابن ابی حاتم کښې دی چه حیی بن احطب او کعب بن اشرف د مکې خلقو ته ورغلل نود مکې خلقو دوی ته اوونیل چه تاسو اهل کتاب او اهل علم یئ.نو اووائی چه مونږ زیات بهتریو که حضرت محمد ﷺ.هغوئ اونیل چه ته څوك ئې اوهغه څوك دې.نو اهل مکه اوونیل چه مونږ صله رحمی کوو. تیار اوښان ذبح کوو. خلقو باندې لسی (شوملې ) څکوو. غلامان آزادوو. حاجیانوته اوبه ورکوو. او حضرت نبی کریم ﷺ خو بیلتون راوستونکې دې ، هغه خمونږ رشتې ختمې کړې ، دهغوئ ملګری خو هغه حاجیان وو کوم غله وو. چه کوم بنی غفار د قبیلې

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ( وان کنتم مرضی ......) قبل حدیث : ۴۵۸۳)-

[2]) ابوداود کتاب الکهانة باب فی الخط وزجر الطیر: ۳۹۰۷ )-

[3]) احمد : ۴۷۷/۳، ابوداود: ۳۹۰۷)-

نه دی.اوس اووائي چه مونږ ښه یو اوکه هغه ؟ نو دې دواړو اووئیل چه ته بهتر ئې او ته په نیغه لار ئې ، نودې باندې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْأَبْتَرُ﴾ نازل شو. (1)

**د ایت په باره کښې دویم شان نزول:-** د بنو وائل او بنو نضیر څوسرداران چه کله عربو کښې د حضرت نبی کریم ﷺ خلاف سازشونه کول او یو عظیم جنګ دپاره ئې تیارۍ کولو او په هغه وخت کښې چه کله قریشوته راغلل نو قریشو دوی عالم او درویشان اوګڼړل او اوتپوس ئې تري اوکړو چه اووائي خمونږ دین ښه دې او که دحضرت محمد ﷺ ، نو دې خلقو اووئیل چه ته په ښه دین باندې یې او په زیاته صحیح لار ئې.نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو او خبر ورکړې شو چه دا لعنتی ډله ده ، او ددوی دنیا او آخرت کښې هېڅوك مددګار نشته دې ،ددې وجې صرف کفار خپل خان سره یو ځائې کوی په طور د چاپلوسئ او دخوشامدئی داکلمات دخپلو معلوماتو خلاف وائی لیکن یادساتئی چه دوی نشی کامیابیدئی.نوهم دا اوشو ، دوی یو زبردست لښکر تیار کړو او ټول عرب ئې خان سره یو ځائې کړل او دې خلقو مدینه منوره باندې حمله اوکړه.تردې چه حضرت نبی کریم ﷺ دمدینې منورې نه ګیرچاپیره کنده اوکنسته. خو آخر د دنیا خلقو اوکتل چه ددوی مکر هم دوی ته خار جوړ شو. اوهم دوی نقصانیان او تاوانیان شو. نامراد او ناکام ، خالی لاسونه پاتې شو ، بلکه دوی نامرادئی او مایوسئ سره اونقصان سره واپس شو.الله ﷻ دمومنانو کفایت په خپله اوکړو ، او خپل قوت او عزت سره ئې دا خلق اوشرمول ، فالحمد لله الكبير المتعال.

| |
|---|
| أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ |
| د بادشاهئ نه \| خه حصه \| آیا شته دوئ دپاره \| |
| آیا ددوئ (د الله تعالی) په بادشاهئ کښې څه حصه شته \| |
| فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا ۝ أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَىٰ مَا |
| که وی نو بیا به \| ورنکړې \| خلقو ته \| یو پوټې هم \| آیا حسد کوی دوئ \| خلقو سره \| په هغه څیز |
| که داسې وې نودوئ به نوروخلقو ته لږڅیزهم نه وې ورکړې \| آیا دوئ نوروخلقوسره په دې حسد کوی |
| آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۖ فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ الْكِتَابَ |
| چې ورکړې دې هغوئ ته الله \| دفضل خپل نه \| نو ورکړې وؤ مونږه \| اولاد د ابراهیم ﷺ ته \| کتاب |
| چې الله ﷻ په هغوئ خپل فضل کړې دې \| ( نوورته دې معلومه وی چې ) مونږ دابراهیم ﷺ اولاد ته کتاب |
| وَالْحِكْمَةَ وَآتَيْنَاهُم مُّلْكًا عَظِيمًا ۝ فَمِنْهُم مَّنْ آمَنَ |
| اوحکمت \| اوورکړې وؤ مونږه هغوئ ته \| بادشاهی \| لویه \| نوځینې دهغوئ نه \| هغه دی \| چې ایمان ئې راوړې دې |
| او حکمت ورکړې وؤ \| اولویه بادشاهی موورکړې وه \| نوبیا په هغوئ کښې چاخو پرې ایمان راوړو |
| بِهِ وَمِنْهُم مَّن صَدَّ عَنْهُ ۚ وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ۝ |
| په هغې \| اوبعضې دهغوئ نه \| هغه دی \| چې مخ ئې واړولو دهغې نه \| اوکافی دې \| دوزخ \| شغلې کوونکې اور \| |
| اوچا ترې نه مخ اوګرزولو (او ایمان ئې راونړلو) \| او د جهنم ګرم اور دوی دپاره کافی دې \| |

(1) ابن ابی حاتم صحیح ابن حبان : الاحسان : ٦٥٣٨ ٦٥٣٨ وسنده صحيح )

قوله تعالى: أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا
**ديهوديانو اونصرانيانو د بخل بيان:-** دلته په طور د انكار سوال كيږي چه آيا هغوئي د ملك دخه حصې مالكان دي يعني نه دي.بيا ددوى بخيلي بيانيږي كه داسې وې نو دوى چا د لږې شان فائدې هم روادار نه وو. خاص كر د الله ﷻ دې پيغمبر ته به ئې دومره هم نه وركولې څومره چې د كهجورې د گټكې په مينځ كښې پرده وى.لكه بل آيت مبارك كښې دى چه ﴿ قُل لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَائِنَ رَحْمَةِ رَبِّي إِذًا لَّأَمْسَكْتُمْ خَشْيَةَ الْإِنفَاقِ ﴾كه تاسو څماد رب د خزانو مالكان وئ نو تاسو به دخرچ دويرې بالكل منع شوى وئ.اګر چه ښكاره ده چه هغه نشې كميدې ليكن ستاسو كنجوسى تاسو ويروى.ددې وجې فرمائى چه انسان ډير بخيل دې.

قوله تعالى: أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَىٰ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ
ددې بخل دبيان نه پس ددوى حسد بيانوى.چه نبى كريم ﷺ ته الله ﷻ كوم عظيم نبوت وركړې دې او نبى كريم ﷺ عربو نه دې،بنى اسرائيلو نه نه دې،ددې وجې دوى سوزى او خلق د نبى كريم ﷺ دتصديق كولو نه منع كوى.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائى دلته ﴿النَّاسَ﴾ نه مراد مونږ يو نور څوك نه.
فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَآتَيْنَاهُم مُّلْكًا عَظِيمًا
**په ال ابراهم باندې دالله نعمتونه:-** الله ﷻ فرمائى چه مونږ آل ابراهيم ته نبوت وركړو او كتاب مو وركړو او تعليم طريقې مو ورته اوخودلې او په دوئ ته مو بادشاهت وركړو اودا بنى اسرائيل د حضرت ابراهيم ﷺ اولاد نه وو.

قوله تعالى: فَمِنْهُم مَّنْ آمَنَ بِهِ وَمِنْهُم مَّن صَدَّ عَنْهُ
**د اهل كتابو كفر:-** ددې باوجود په دوى كښې بعضې مومنان شو او انعام او اكرام ئې اومنلو.،خو بعضو بياهم كفر اختيار اوكړو او دائې اونه منل او خلق ئې هم ددې نه منع كړل ، حالانكه هغوئ هم بنى اسرائيل وو نو دوى دخپلو نه هم منكر شوى وو. نوبيا انې نبى آخرالزمان ! ستاسو نه انكار څه لرې خبره نه ده ، او تاسو هم ددوى نه يئ.[1]
**د كفر دويم مطلب:-** دا مطلب هم كيدېشى چه په حضرت محمد ﷺ باندې بعضو ايمان راوړو او بعضو نه.نو دا كافر خپل كفر كښې ډير سخت او ډير زيات پاخه دى.او دوى دهدايت او حق نه ډيرلرې دى

قوله تعالى: وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا
بيا دوى ته سزا بيانيږى چه دوى دپاره دجهنم سوزيدل كافى دى ، ددوى د كفراوعناد په وجه او ددوى دتكذيب په وجه او سركشئ په وجه ددوى هم دا سزا ده.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ الَّذِينَ | | | | | | | |
| ابيشكه هغه كسان | | | | | | | |
| ابيشكه چاچې | | | | | | | |
| كَفَرُوا | بِآيَاتِنَا | سَوْفَ | نُصْلِيهِمْ | نَارًا | كُلَّمَا | نَضِجَتْ | |
| چې انكار ئې كړې دې | دآيتونو زمونږ نه | ازرده چه | امونږ داخل كړو هغوئ | اورته | هر كله چې | اوسوزى | |
| زمونږ دآيتونومنلونه انكاركړې دې | اهغوئ به مونږ د جهنم اور ته داخل كړو | اهر كله چې دهغوئ څرمنې اوسوزى | | | | | |

[1]) طبراني : ۳/۱۱۳)-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| جُلُوْدُهُمْ | بَدَّلْنٰهُمْ | جُلُوْدًا غَيْرَهَا | لِيَذُوْقُوا | الْعَذَابَ ؕ | |
| څرمنې دهغوئ | نو بدلې به کړو مونږ د هغوئ | څرمنې | نورې | دپاره ددې چې وڅکې | عذاب |
| نومونږ به ورته نورې څرمنې ورواغوندؤ | | | چې دعذاب خوند په ښه شان اوڅکي | | |
| إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيْزًا | حَكِيْمًا ﴿۵۶﴾ | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | |
| بيشكه الله ادې غالب او صاحب دحكمت | اوهغه كسان | چې ايمان ئې راوړوا | اوعمل ئې اوكړو | نيك | |
| الله ﷻ غالب دې اودحكمتونو صاحب دې | اوچا چې زمونږ آيتونه | اومنل | اونيك عملونه ئې اوكړل | | |
| سَنُدْخِلُهُمْ | جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَآ |
| داخل به كړومونږ هغوئ | باغونو ته | چې بهيږي به | لاندې دهغې نه نهرونه | هميشه به وي هغوئ | په هغې كښې |
| هغوئ به داسې باغونوته داخل كړواچې دهغې لاندې به ولې بهيږي | | | هميشه هميشه به په هغې كښې اوسيږي | | |
| اَبَدًا ؕ | لَهُمْ | فِيْهَآ | اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ز | وَّنُدْخِلُهُمْ | ظِلًّا |
| تل هميشه | اوې به دپاره دهغوئ | په هغې كښې | بيبيانې اپاكې | اومونږ به داخل كړو هغوئ | سورې |
| ددوئ ملګرتياد پاره به پاكې بيبيانې وركولې شي | | | اوخپلو سورو ته به ئې داخل كړو | | |
| ظَلِيْلًا ﴿۵۷﴾ | | | | | |
| ګڼړ ته | | | | | |

**قوله تعالى:: إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا سَوْفَ نُصْلِيْهِمْ نَارًا ؕ**

**دجهنم عذاب او دجنت راحتونه ::** د الله ﷻ آيتونه نه منونكي او درسولانو بې عزتي كونكو سزا او ددوئ د بد انجام ذكر كيږي، دوی به هغه اور طرفته ديكه كولې شي چه د خلورو واړو طرفونو نه ګيروی او د دوی هرارخ به سوزي .او صرف دا نه بلكه دا عذاب به هميشه وی ،

**قوله تعالى:: كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُوْدًا غَيْرَهَا لِيَذُوْقُوا الْعَذَابَ ؕ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿۵۶﴾**

يوڅرمن به ئې اوسوزی او بله به پرې راشي اوهغه به دسپين كاغذ په شان وی.د يو يو كافر به سل سل څرمنې وی.او هره څرمن باندې به قسما قسم او بيل بيل عذاب وی.يو يو ورخ كښې به اويازره خل څرمنې بدلوی.([1]) يعنې ددوی څرمنې ته به اوونيلې شي چه بيا واپس شه نو واپس به شي.

**د څرمنې بدليدو باره كښې بل روايت:-** هركله چه دحضرت فاروق رضی الله عنه مخكښې ددې آيت مبارك تلاوت اوشو نو هغوئ تلاوت كونكې ته د دوباره تلاوت كولو اوونيل.هركله چه هغه دوباره اوونيل حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه فرمائي چه خه تاسو ته ددې تفسير اوواېم.يو يوساعت كښې سل سل خله به بدلولې شي.دې باندې حضرت عمرفاروق رضی الله عنه اوفرمائيل چه ما نبی كريم ﷺ نه هم دا آوريدلی دی ([2]) ( ابن مردويه وغيره ).

**په ساعت كښې شل خله څرمن بدليدل:-** دويم روايت كښې دی چه په هغه وخت كښې كعب ونيلی وو چه ماته ددې آيت تفسير ياد دې ما د اسلام قبلولو نه مخكښې لوستې وو. دوی اوفرمائيل چه بيان ئې اوكړه كه هغه هم هغه شان وو چه څنګه ما نبی كريم ﷺ نه آوريدلې دې نو مونږ به دا قبول كړو ګنې

---

[1]) ابن ابی حاتم)-

[2]) ابن ابی حاتم وابن مردويه)-

مونږ به دې ته هيڅ توجه نه ورکوؤ. نو دوی اوفرمائيل چه يو ساعت کښې يو سل شل خل وی.دې باندې حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائيل چه ما همداشان نبی کريم ﷺ نه آوريدلی دی.(١)

**د څرمنو د غټوالی اندازه:-** حضرت ربيع بن انس ﷺ فرمائی چه ړومبی کتاب کښې ليکلی وو چه ددوی څرمنې به څلويښت لاسونه يا شپږ اويا لاسه وی،او ددوی خيټې به دومره وی چه دې کښې به غرونه راځی.هرکله چه دا څرمنې اور اوخوری نو نورې څرمنې به پيدا شی.يوحديث مبارك کښې ددې نه هم زيات راغلی دی.مسند احمد کښې دی چه جهنميان به جهنم کښې دومره غټ غټ وی چه ددوی د غوږ د نرمئی نه واخله تراوګو پورې ديو کال مسافت وی.اود دوی د څرمنې غټوالې به اويا ذراع وی.او ددوی مخامخ غاښونه به د احد دغر هومره وی.(٢)

**يوضعيف قول:-** او دا هم وئيلې شوی دی چه د څرمنې نه مراد لباس دې .ليکن دا ضعيف دې او دظاهری لفظ خلاف دې.

قوله تعالی:: وَالَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدۡخِلُهُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَاۤ اَبَدًا

بيا د نيکو خلقو دانجام ذکر کوی چه هغوئ به جنت عدن کښې وی چه هغې کښې به نهرونه جاری وی چه دوی چرته هم غواړی.نو تلې به شی ، خپلو محلونو کښې باغونو کښې چه په کومو لارو باندې غواړی نو تلئ به شی او هم هلته به ( ددوی په خوښه ) هغه نهرونه بهيږی.بيا دتولونه اوچته مزه دا ده چه دا ټول نعمتونه به ابدی او هميشګير وی.نه به په دې کښې زوال وی او نه به په دې کښې کمې وی او نه به دا واپس کيږی او نه به فنا کيږی نه به دا زړيږی اونه به خرابيږی اونه به ختميږی.

قوله تعالی:: لَهُمۡ فِيۡهَاۤ اَزۡوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ

بيا په هغوی باندې هلته نه حيض راځی او نفاس او ګندګې او خيری او بوئی.د رذيلو صفتونو اوخرابو اخلاقو نه پاکې بيبيانې وی .

قوله تعالی:: وَّنُدۡخِلُهُمۡ ظِلًّا ظَلِيۡلًا

او دوی به په ګنړو او اوږدو سيورو کښې وی او دا به ډير د فرحت او سرور اوخوشحالئ سيورې وی.نبی کريم ﷺ فرمائی چه جنت کښې يو ونه ده چه دهغې د سيوری لاندې يو کال پورې يو سور مزل اوکړی .نوهم به د هغې سيورئ ختم نه شی او دا شجرة الخلد ده.( ابن جرير).(٣)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ | يَاۡمُرُكُمۡ | اَنۡ تُؤَدُّوا | الۡاَمٰنٰتِ | اِلٰۤى اَهۡلِهَا |
| بيشکه الله | حکم کوی تاسو ته | چې اوسپارئ تاسو | امانتونه | د امانت خاوندانو ته |

(مسلمانانو) الله ﷻ تاسو ته حکم درکوی چې امانتونه خپلو مالکانو ته واپس کړئ؛

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاِذَا حَكَمۡتُمۡ | بَيۡنَ النَّاسِ | اَنۡ تَحۡكُمُوۡا | بِالۡعَدۡلِ | اِنَّ اللّٰهَ |
| اوهرکله چې فيصله کوئ تاسو | په منځ دخلقو کښې | نوفيصله کوئ | په انصاف سره | بيشکه الله |

اوکله چې تاسو دخلقو ترمينځه فيصله کوئ نو په عدل اوانصاف سره فيصله کوئ بيشکه الله

(١) ابن مردويه-
(٢) احمد: ۲/۲٦)-
(٣) الطبری : ۹۸۷۳ )-

| بَصِيرًا | سَمِيعًا | كَانَ | إِنَّ اللّٰهَ | بِهٖ | يَعِظُكُمْ | نِعِمَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او ښه ليدونكي | ښه اوريدونكي | دي | بيشكه الله | په هغې سره | چي نصيحت كوي تاسوته | ډير ښه دي هغه |
| | ........بيشكه الله ﷻ هرڅه آوري او هرڅه ويني ګوري | | | | | تاسوته ډير ښكلي نصيحت كوي |

**قوله تعالى: إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمٰنٰتِ إِلٰى أَهْلِهَا**

**د امانت قسمونه او د امانت د ادا كولو تاكيد**: نبي كريم ﷺ فرمائي چه څوك تاسره دامانت كيږدي نو د هغه امانت اداكړه اوڅوك چه تاسره خيانت اوكړي نوته هغه سره خيانت مه كوه (امام احمد و اهل سنن) [1]

**د ايت عموم**:- د آيت الفاظ عام دي ،اودې كښې دالله ﷻ ټول حقوق شامل دي.لكه روژه ، مونځ ، زكوة ، كفاره ، نذر وغيره.او دبندګانو خپلو كښې حقوق هم شامل دي.لكه امانت كښې كيخودې شوې څيز وغيره ، نو څوك چه دا حق نه وركوي نو دقيامت په ورځ به هغه رانيولې كيږي.

**ښناورونه بدله اخستل**:- صحيح حديث مبارك كښې دي چه د قيامت په ورځ به دهر حقدار حق هغه ته وركولې شي.تر دې چه يود ښكرو چيلۍ به يوه بې ښكرو چيلۍ وهلې وي نو ددې بدله به هم اخستې شي.[2]

**شهيد ته به هم په امانت كښې خيانت نه معاف كيږي**:- حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چه د شهادت په و جه ټول ګناهونه ختميږي ، مګر امانت نه ختميږي ،اګر چه څوك دالله ﷻ لار كښې شهيد شي ، هغه به هم د قيامت په ورځ راوستې شي او ورته به اوونيلې شي چه خپل امانت ادا كړه. جواب به اوشي چه اوس خو دنيا نه ده څه نې چرته نه ادا كړم ؟ فرمائي چه دا څيز به ده ته جهنم كښې په نظر راشي او ده ته به اوونيلې شي چه دا واخله. دې به دا په خپله اوګه باندې واخلي او لاړ به شي.ليكن دا به ترې غوزار شي ، نودې به هم دې عذاب كښې ګرفتار وي.حضرت زاذان رحمه الله چه دا روايت واريدو نو راغلو او دا ئې حضرت براء ﷺ ته بيان كړو. هغوئ اوونيل چه ځما رور ريښتيا ونيلي دي بيا ئې دقران پاك دا آيت مبارك تلاوت كړو. [3]حضرت ابن عباس ﷺ وغيره فرمائي چه هر نيك اوبد لره هم دا حكم دې.ابو العاليه رحمه الله فرمائي چه دكوم څيز حكم وركړې شوې وي او د كوم څيز نه منع شوې وي هغه ټول امانت دي.حضرت ابى بن كعب ﷺ فرمائي چه ښځه د خپل شرمګاه هم امانتداره ده.

حضرت ربيع بن انس رحمه الله فرمائي چه كوم معاملات ستا او نوروپه مينځ كښې وي دا ټول دې كښې شامل دي. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي په دې كښې دا هم داخل دي چه سلطان د اختر په ورځ خلقو ته خطبه وركړي.

**د خانه كعبې چابياني هم امانت دي**:- ددې آيت مبارك شان نزول كښې مروى دي چه كله نبى كريم ﷺ مكه معظمه فتح كړه او اطمينان سره بيت الله شريف ته داخل شونو خپله اوښه باندې سور وو او طواف ئې اوكړو ، حجر اسود سره ئې خپله همسا مباركه اولګوله. ددې نه پس ئې عثمان بن طلحه ﷺ چه د خانه كعبې كنجئ به هغه سره وه ،هغه ئې راوغوښتلواو كنجى ئې ترې اوغوښتله . هغه ورته وركول غوښتل چه په دې كښې حضرت عباس ﷺ عرض اوكړو. يارسول الله ﷺ ! داماته اوسپارئې چه ځما په كورنئ كښې د زمزم اوبه څكول او دكعبې كنجيانې دواړه وي.دې آوريدو سره حضرت عثمان بن طلحه ﷺ خپل لاس روستو كړو. نبى كريم ﷺ ترې دوباره طلب كړه او بيا هم دا واقعه اوشوه. نبى

[1] احمد : ۴۱۴/۳، ابوداود : كتاب البيوع باب فى الرجل ياخذ حقه: ۳۵۳۵)-

[2] صحيح مسلم كتاب البر والصلة باب تحريم الظلم : ۲۵۷۲ ترمذى : ۲۴۲۰)-

[3] ابن ابى حاتم)-

کريم ﷺ ترې په دريم خل اوغوښتله.حضرت عثمان فرمائي چه دالله ﷺ په امانت سره ئې درکوم.نبي کريم ﷺ د کعبې مبارکې دروازه بيرته کړه او دننه داخل شو. هلته چه کوم بتان او تصويرونه وو هغه ټول ئې مات کړل او وې غورزول.د حضرت ابراهيم ﷺ بت هم وو چه دهغه لاس کښې دفال غشي وو. نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷺ دې دا مشرکان تباه کړی دحضرت ابراهيم ﷺ دې غشو سره څه کار. بيا ددې څيزونو د ختمولو او تباه کولو او په دې باندې اوبو اچولو نه پس بهر راوتل.دکعبې په دروازه نبي کريم ﷺ اودريدلو او وې فرمائيل چه دالله تعالى نه سوا بل هيڅ څوک معبود نشته او دهغه پاك ذات سره هيڅوك شريك نشته. هغه لوئې ذات خپله وعده ريښتيا کړه اودخپل بنده مدد ئې اوکړو او هغه زبردست ذات دې لوئې لښکر ته ئې شکست ورکړو. بيا نبي کريم ﷺ يو اوږده خطبه اوفرمائيله چه په هغې کښې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه د جاهليت ټول جنګونه اوس ختم شو او خما دپښو لاندې شو ، که هغه مالي وې او که جاني وی، خود بيت الله شريف د چوکيدارئی او حاجيانو ته د اوبو ورکولو منصب به هغه شان باقي وی .ددې خطبې نه پس نبي کريم ﷺ لا ناست نه وو چه حضرت علي ﷺ راغلو او وې فرمائيل چه يارسول الله ﷺ ! ماته کنجي راکړئې چه د بيت الله شريف د چوکيدارئې او د حاجيانوته د اوبو ورکولو منصبونه دواړه يو ځائې شي. خو نبي کريم ﷺ هغه ته ورنکړه. مقام ابراهيم ئې دکعبې دننه نه راوويستلو او دا نبي کريم ﷺ دکعبې ديوال سره يو ځائې کړو او خلقو ته ئې اوفرمائيل چه ستاسو کعبه داده.بيا نبي کريم ﷺ طواف کښې مشغول شو.لا ئې دوه چکرې نه وې لګولې چه حضرت جبريل ﷺ نازل شو او نبي کريم ﷺ په خپله خوله مبارکه ددې آيت مبارك تلاوت شروع کړو. دې باندې حضرت عمر فاروق ﷺ اوفرمائيل چه خما مور پلار دې په تاسو قربان وی ماخو ددې نه مخکښې ستاسو نه ددې آيت مبارك تلاوت نه وو آوريدلې.بيا نبي کريم ﷺ عثمان بن طلحه ﷺ راوبللو او هغه ته ئې کنجي ورکړه او وې فرمائيل چه نن د وفا او نيکئ او د ښه سلوك ورځ ده (١).

**ترقيامته پورې د خانه کعبې د چابيانونګران:-** دا حضرت عثمان بن طلحه ﷺ دې چه دهغه نسل کښې تر ننه پورې دکعبې مبارکې کنجي هم دوی سره ده. او دوی دصلح حديبيه او فتح مکه په مينځ کښې اسلام راوړې وو او هغه وخت کښې خالد بن وليد او عمر بن عاص ﷺ مسلمانان شوی وو. ددوی تره حضرت عثمان بن طلحه د احد جنګ کښې مشرکانو سره وو بلکه دهغوئ بيرغ لرونکی وو. او هم هلته دکفر حالت کښې وژلې شوې وو. الغرض مشهوره هم دا دی چه دا آيت مبارك دې باره کښې نازل شوې دې.اوس دا دې باره کښې نازل شوې دې که نه دې ، بهر صورت ددې حکم عام دې لکه څنګه چه دعبدالله ابن عباس ﷺ او محمد بن حنفيه ﷺ قول دې چه هر ته د امانت د ادا کولو حکم دې.

**قوله تعالى:** وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ أَن تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ

**دعدل او انصاف حکم:-** بيا ارشاد دې چه فيصلې عدل سره کوئی.حاکمانو ته د احکم الحاکمين حکم کيږی چه هيڅ حالت کښې دې عدل نه پريږدی.حديث مبارك کښې دی چه الله ﷺ حاکم سره وی تر کومې چه هغه ظلم اونکړی. کله چه هغه ظلم اوکړی نو هغه دې خپل ځان ته اوسپاری.(٢) يو اثر کښې دی چه ديو ورځې عدل د څلويښتو کالو د عبادت برابر دې.

**قوله تعالى:** إِنَّ اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِ

بيا فرمائي چه د امانت ادا کول او د عدل او انصاف حکم او دغه شان د شريعت ټول احکام او ممنوعات ستاسو د ښيګړې او فائدې څيزونه دی.او ددې امر تاسو ته ستاسو پروردګار کوی.( ابن ابی حاتم ).

---

(١) السيرة النبوية لابن هشام : ٤٢/٤ ))-

(٢) ابن ماجة كتاب الاحكام باب التغليظ فى الحيف والرشوة: ٢٣١٢، وسنده حسن ترمذى : ١٣٣٠)-

**د ابوهريره ﷺ د روايت په بيانولو کښې خاص طريقه:-** اويو روايت کښې دي چه حضرت ابوهريره ﷺ کله ددې آيت آخري الفاظ اووئيل نو خپل په غوږ مبارك کښې ئې دشهادت ګوته کيخوده (يعني اشارې سره ئې آوريدل اوکتل او غوږ اوسترګه باندې ئې ګوته کيخوده ) او وې فرمائيل چه ما دغه شان رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي.راوی دحديث ابوزکريا رحمه الله فرمائي چه خمونږ استاد مقرى رحمه الله هم داشان اووئيل او اشارې سره ئې مونږ ته اووئيل ، دخپل ښي لاس ګوته ئې خپلې ګسې سترګې باندې کيخوده او ددې سره ګوته ئې په خپله ګوته باندې کيخوده ( ابن ابي حاتم ) دا حديث داشان ابوداودهم روايت کړې دي.(1)

اوامام ابن حبان رحمه الله هم خپل صحيح کښې دا راوړې دې او حاکم مستدرك کښې او ابن مردويه خپل تفسير کښې هم نقل کړی دی.ددې سند کښې چه ابويونس رحمه الله دې هغه دحضرت ابوهريره ﷺ مولي دې دهغه نوم سليم بن جبير دي.

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاُولِي الْاَمْرِ

انې هغه کسانو| چې ايمان مو راوړې دې| حکم اومنئ: دالله | اوحکم اومنئ: د رسول | اودخاوندانو دحکم

انې مومنانو دالله ﷻ حکم منئ| اود رسول حکم منئ| اودخپلو(مسلمانانو)حاکمانو حکم منئ:

مِنْكُمْ ۚ فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ اِلَى اللّٰهِ

ستاسونه |نو بيا که| ستاسو په منځ کښې جګړه راشي| په څه خبره کښې |نو واپس کوئ هغه | الله ته

نوکه تاسوخپلو کښې په يوخبره کښې مختلف شئ| نو هغه الله ﷻ اورسول ته اوسپارئ:

وَالرَّسُوْلِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّاَحْسَنُ

اورسول ته| که يئ تاسو| چې ايمان لرئ| په الله | اوپه ورځ د آخرت| دا کار| غوره دې | اوډير ښه دي

که تاسوپه رښتيا په الله او په ورځ دآخرت ايمان راوړئ| دا خبره ډيره ښه ده| اوددې انجام ډير ښه دي

تَاْوِيْلًا ﴿٥٩﴾

دانجام په لحاظ سره |

قوله تعالى:: يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ ۚ

**دالله تعالى اودهغه درسول ﷺ اطاعت واجب او دعلماء امراء اطاعت مشروط دې :-** صحيح بخاری شريف کښې په روايت دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ مروی دی چه رسول الله ﷺ يو وړوکی لښکر کښې حضرت عبدالله بن حذافه بن قيس ليږلې وو دهغه باره کښې دا آيت مبارك نازل شو.(2)

**دامير تابعداری صرف په نيکئ کښې ده:-** بخاری اومسلم شريف کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ يو لښکر اوليږلو چه دهغې سردار ئې يو انصاری مقرر کړو. يو ځل هغه سخت غصه شو او وې فرمائيل چه آيا تاسو حضرت نبی کريم ﷺ نه وو وئيلي چه ځما تابعداری به کوئ ؟ ټولو اووئيل چه بيشکه دا حکم ئې راکړې دې.وې فرمائيل چه ښه لرګی راجمع کړئ.بيا ئې اور راغوښتلواو په هغې ئې اولګولو ، بيائې حکم ورکړو چه تاسو اورته ورداخل شئ.يو نوجوان اوفرمائيل چه اې خلقو ! واورئ د

(1) ابوداود کتاب السنة باب فی الجهمية : ۴۷۲۸)-

(2) صحيح بخاری کتاب التفسير باب ( اطيعوالله واطيعو الرسول ) : ۴۵۸۴، صحيح مسلم: ۱۸۳۴، ابوداود: ۲۶۲۴، ترمذی : ۱۶۷۲)-

اوردبج کیدو دپاره تاسو دحضرت نبی کریم ﷺ لمن نیولې ده.تاسو تیزی مه کوئی تر کومې چه حضرت نبی کریم ﷺ سره مونږ ملاؤ شوی نه یو.بیا که حضرت نبی کریم ﷺ هم دا اوفرمائیل چه بیشکه تاسو اور ته داخل شئ.نو دا خلق د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او ټوله واقعه ئې ورته بیان کړه.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که تاسو اور ته داخل شوی وې نو ټول عمر به اور کښې وئ.واورئی فرمانبرداری صرف نیکئ کښې ده.([1])

**دامیر د اطاعت منل مشروط دی:**- ابوداودو کښې دی چه مسلمانانو باندې آوریدل او منل فرض دی.اګر چه ستاسو طبیعت غواړی او ستاسو زړه روستو شی. خو تر"هغه وخته پورې دې چه الله تعالی درسول الله ﷺ دنافرمانئی حکم اونکړی.هرکله چه دنافرمانئی حکم ملاؤ شی نو مه ئې آورئی او مه ئې منئ.([2])

**د امیر د اطاعت تاکید:**- بخاری او مسلم کښې دی چه حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه فرمائی چه مونږ درسول الله ﷺ نه بیعت اوکړو داوریدو او د منلو(چه مونږ به ستا خبره اورو او منو) که مونږ خوشحال یو اوکه نه،که سختئ وی که آسانئ اګر چه مونږ باندې نوروته ترجیح ورکړی ،او مونږ نه ئې بیعت واخستو چه داهل نه به دهغه کار نه اخلو مګر دا چه تاسو ښکاره کفر باندې هغه اوګورئی او دې باره کښې ستاسو واضح دلیل وی .

**امیرکه غلام وی هم واجب الاطاعت دې:**- بخاری اومسلم شریف کښې دی چه واورئی او اطاعت اوکړئی اګر چه تاسو باندې یو حبشی غلام هم امیر جوړ کړې شی ،اګر چه دهغه سر کشمش دې.([3])صحیح مسلم کښې دی چه حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چه ماته خلیل (یعنی حضرت نبی کریم ﷺ) وصیت اوکړو د آوریدو او د منلو اګر چه ناقص لاس والا حبشی غلام وی.([4])دمسلم یو بل حدیث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ دحجة الوداع خطبه کښې اوفرمائیل اګر چه تاسو باندې یو حبشی غلام عامل جوړ کړې شی چه هغه تاسو کتاب الله طرفته رابلی نو تاسو دهغه آورئی او منئ.([5])یو روایت کښې دا الفاظ دی اګرکه غلام حبشی وی چه د هغه اندامونه کټ شوی وی ، دی. ([6])ابن جریر کښې دی چه څما نه پس به خلق تاسو سره ملاویږی د نیکانو نه نیك او د بدانو نه بد،تاسو کښې هر یو د هغوی حق حکم آورئی او منئ.اوهغوی پسې مونځونه کوئی.که هغوئ نیکی کوی نوهغوئ لره نفع ده او ستاسو دپاره هم.اوکه هغوئ ګناه کوی نو ستاسو دپاره ښه والې دې او په هغوئ بوج دې .([7])

**دامیر د اطاعت په باره کښې بل حدیث:**- حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بنی اسرائیلو کښې مسلسل پیغمبران راغلل ، یو نه پس بل ، او څما نه پس هیڅ نبی نشته دې.مګر خلفاء به وی ، او ډیر به وی.خلقو تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ بیا مونږ دپاره څه حکم دې.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د رومبې بیعت پوره کړئی بیا دده نه پس والا ، دهغوئ حق هغوئ ته ورکړئ. الله ﷻ به د هغوی نه د هغوی رعیت باره کښې تپوس کوی ([8])

---

[1]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب سریة عبدالله بن حذافة: ۴۳۴۰، صحیح مسلم: ۱۸۴۰، ابوداود: ۲۶۲۵ نسائی: ۴۲۱۰)-

[2]) ابو داود کتاب الجهاد باب فی الطاعة: ۲۶۲۶ والبخاری :۷۱۴۴، ومسلم: ۱۸۳۹)-

[3]) صحیح بخاری کتاب الاحکام باب السمع والطاعة : ۷۱۴۲ ابن ماجة: ۲۸۶۰)-

[4]) صحیح مسلم کتاب الامارة وجوب طاعة لامراء فی غیر معصیة: ۱۸۳۷)-

[5]) صحیح مسلم ایضا: ۱۸۳۸، نسائی: ۴۱۹۷)-

[6]) صحیح مسلم ایضا: ۱۸۳۸، )-

[7]) الطبری : ۹۸۸۱ ،)-

[8]) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب ما ذکر عن بنی اسرائیل : ۳۴۵۵، صحیح مسلم: ۱۹۳۲، ابن ماجة: ۲۸۷۱ ،)-

حضرت نبی کریم ﷺ چه کوم سړي خپل امیر کښې یو کار داسې اوګوري چه دده خوښ نه وي نو ده ته پکار دی چه صبر اوکړي.چه کوم کس د جماعت نه یو لیشت جدا شو نو دې هلاك شو ( بخاري او مسلم ) [1]

**د بیعت نه د انکار کولو ممانعت:-** ارشاد دې چه کوم سړې د امیر د اطاعت نه لاس روستو کړي هغه به دقیامت په ورځ الله ﷻ سره د حجت او دلیل نه بغیر ملاقات کوي اوچه څوك داسې حالت کښې مړ شی چه ده بیعت نه وی کړې نو هغه به دجاهلیت په مرګ مړ کیږی.[2] ( مسلم ).

**عبدالله بن عمر وبن العاص ﷺروایت:-** حضرت عبدالرحمان ﷺ فرمائی چه څه بیت الله شریف ته لاړم او اومې کتل چه حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص دکعبې سیوری ته ناست وو، ا و دخلقو یوه ډله جمع وه ، څه هم یو طرفته کیناستم.په هغه وخت کښې حضرت عبدالله ﷺ دا حدیث بیان کړو ، څه یو سفر کښې حضرت نبی کریم ﷺ سره ووم ،یو منزل کښې مونږ کوز شو ، چا خپله خیمه صحیح کوله او چا خپل غشی سنبالولو ، او څوک نورو کارونو کښې مشغول شول.مونږ واوریدل چه یو آواز کونکې آواز کوی ، مونږ هغه طرفته متوجه شو نومونږ واوریدل چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه په هر نبی باندې د الله ﷻ طرفنه فرض وی چه خپل امت ته هغه تولې نیکئ اوښائی چه کومې ده ته معلوم وی ، او دټولو بدو نه ئې منع کړی چه کومې دده په نظر کښې بدې وی.واورئی ! څما د امت دعافیت زمانه اول زمانه ده ، آخره زمانه کښې به لوئې لوئې مصیبتونه راشی او داسې داسې کارونه به ښکاره شی. چه هغه مسلمانان نه خوښوی ، او ډیرې فتنې به راشی ، یو فتنه به راشی او مومن به ګنړی چه په دې کښې څما هلاکت دې ، بیا دې نه پس به بله ددې نه لویه فتنه راشی ، او هغې کښې به ده ته دخپل هلاکت یقین راشی ، او هم داشان به فتنې او فسادونه او زبردست آزمینښتونه اوپوره تکلیفونه راځی ، نوکوم سړې چه دا خبره خوښه کړی چه د جهنم نه لرې شی او جنت کښې ځان دپاره حصه جوړه کړی نو ده ته پکار دی چه تر مرګه پورې په الله ﷻ او په ورځ د قیامت پوره پوره ایمان اولری ، او خلقو سره هغه سلوك اوکړی چه کوم ځان دپاره خوښوی.واورئی ! چه چا د امام تابعداری اوکړه نو هغه دخپل لاس قبضه او د خپل زړه میوه هغه ته ورکړه .اوس ده ته پکار دی چه دهغه اطاعت اوکړی ، که بل څوك راشی اودهغه نه دا اخستل غواړی نو پکار دی چه هغه سره جنګ اوکړی.عبدالرحمان ﷺ فرمائی چه ما دا واوریدل نو نزدې ورغلم او ورته مې اووئیل چه تاته څه دالله ﷻ قسم درکوم چه ته اووایه چه تا دا پخپله د حضرت نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دې.او خپل زړه کښې دې محفوظ کړی دې. ما اووئیل چه ګورئی دخپل د ترۀ زوئې حضرت معاویه ته چه هغه مونږ ته د خپل باطل مال نه دخوراك او خپلو کښې د جنګ کولو حکم راکوی. حالانکه الله ﷻ ددې دوارو کارونو نه ممانعت کړې دې.ارشاد دې چه ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓاْ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم﴾ ددې آوریدو سره حضرت عبدالله لږ خاموش شو او بیا ئې اوفرمائیل چه د الله ﷻ اطاعت کښې دهغه اطاعت دې او دالله ﷻ دنافرمانۍ حکم چه هغه درکړی نو هغه مه قبلوه.[3](مسلم) دې باره کښې نور احادیث هم ډیر دی.

**دخالد بن ولید او عماربن یاسرواقعه:-** هم ددې د ممانعت په تفسیر کښې حضرت سدی رحمه الله نه مروی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ یو لښکر اولیږلو چه دهغې امیر حضرت خالد ﷺ وو. دې لښکر کښې حضرت عمار بن یاسر ﷺ هم وو. دې لښکر چه کوم قوم طرفته تګ غوښتلو روان شو او دشپې په

[1] صحیح بخاری کتاب الاحکام باب السمع والطاعة : ۷۱٤۳، صحیح مسلم : ۱۸٤۹)-
[2] صحیح مسلم کتاب الامارة باب وجوب ملازمة جماعة المسلمین : ۱۸٤۹)-
[3] صحیح مسلم کتاب الامارة باب وجوب الوفاء بیعة الخلیفة :۱۸٤٤ ابوداود: ٤۲٤۸ مختصرا نسائی : ٤۱۹۶ ابن ماجة: ۳۹۵۶)-

وخت کښې هغه کلی ته اورسیدل او هلته ئې پړاؤ اوکړو. دې خلقو ته دخپلو جاسوسانو په ذريعه معلومه شوه او ټول په ټوله دشپې اوتښتیدل .صرف يو سړې پاتې شو ، هغه خپلو کور والو ته اووئيل اوهغوئ دهٔ دکور ټول مال راجمع کړو ، بيا دشپې په وخت کښې د خالد ﷺ لښکر ته راغلو او معلومه شوه چه حضرت عمار بن ياسر ﷺ ته راغلو، او هغوئ ته ئې اووئيل چه انې ابواليقظان ما اسلام قبول کړې دې او ګواهي مې ورکړې ده چه دالله ﷺ نه سوا بل معبود نشته دې اودا چه محمد ﷺ د الله تعالى رسول او بنده دې.خما قوم چه ستاسو واوريدل چه تاسو دلتـه راغلى يئ نو ټول ددې ځائې نه اوتښتيدل.صرف زهٔ باقي يم.نو آيا صبا به خما داسلام ماته نفع راكړى ، كه نفع نه راکوی نو چه زهٔ هم اوتښتم. حضرت عمار ﷺ فرمائى چه يقيني طور به اسلام تاته نفع درکوی.ته مه ځه بلکه ايسار شه سحر چه کله حضرت خالد ﷺ لښکر كشى اوكړه نو سوا ددې سړى نه هلته هيڅ نه وو. هغه ئې دمال سره ګرفتارکړو.هرکله چه حضرت عمار ﷺ ته معلومه شوه نو دوى حضرت خالد ﷺ ته راغلل او ورته ئې اووئيل چه دې پريږده ده اسلام قبول کړې دې او خما پناه کښې دې.حضرت خالد ﷺ اووئيل چه ته څوك ئې چه چاته به پناه ورکوې.دې باندې دواړو کښې څه تلخ كلامى اوشوه. او قصه دومره زياته شو چه حضرت نبى كريم ﷺ ته ټوله واقعه بيان شوه. په دې باندې دحضرت عمار ﷺ پناه جائز اوګرزولې شوه. او بيا دپاره ئې دامير د اجازت نه بغير د پناه نه ورکولو هدايت ئې ورته اوفرمائيلو. بيا دواړو کښې تلخ کلامی تيزه شوه، دې باندې حضرت خالد ﷺ حضرت نبى كريم ﷺ ته اوفرمائيل چه دې پريکړې پوزى غلام ته تاسو هيڅ نه وائې.دا اوګورئ دې ماته بدرد وائى.حضرت نبى كريم ﷺ حضرت خالد ﷺ ته اوفرمائيل چه عمار ته بدرد مه وايه.چه څوك عمار ته كنځل كوى نو الله تعالى هغه ته كنځل كوى.چه څوك حضرت عمار ﷺ سره دشمنى كوى نو هغه الله ﷺ سره دښمنى كوى.اوچه څوك حضرت عمار ﷺ باندې لعنت كوى نو الله تعالى په هغه لعنت وائى.اوس حضرت خالد ﷺ ډير ملامت شو.حضرت عمار ياسر ﷺ خفه وتلې وو. حضرت خالد ﷺ په منډه ورغلو او حضرت عمار بن ياسر ﷺ ته ورغلواو دهغه نه ئې معافى اوغوښتله.او خپل تقصير معافى ئې ترې اوغوښتله.اوتر دې هغه پسې وو چه هغه معاف کړې نه وو او ده نه راضى شوې نه وو. نو الله ﷺ دا آيت مبارك نازل كړو (۱).

(امر امامت او خلافت متعلق شرطونه وغيره د آيت د﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّى جَاعِلٌ فِى ٱلْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ په تفسيرکښې تير شوى دى هتله دې اوکتلې شى مترجم)

**د اولى الامر نه څوک مراد دى:-** حضرت ابن عباس ﷺ نه هم دا روايت مروى دې ( ابن جرير او ابن مردويه ). حضرت ابن عباس ﷺ وغيره فرمائى چه اولى الامر نه مراد پوهه او دين دارہ خلق دى ، يعنى علماء كرام.ظاهرى خبره خودا معلوميږى.مخکښې حقيقى علم الله ﷺ ته دې چه دا لفظ عام دې اوكه علماء كرام او امراء دواړه دې کښې شامل دى .لكه څنګه چه مخکښې تير شو.قران پاك فرمائى چه ﴿لَوْلَا يَنْهَىٰهُمُ ٱلرَّبَّٰنِيُّونَ﴾ يعنى ددوى عالمانو دوى د حرام خوړلو او دروغو وئيلو نه ولې منع نكړل.او بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿فَسْـَٔلُوٓا۟ أَهْلَ ٱلذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ حديث مبارك کښې دى چه قران پاك والو نه تپوس اوکړئى كه تاسوته ددې علم نه وى.

**دامير اطاعت د نبى اطاعت دې:-** صحيح حديث مبارك کښې دى چه خما اطاعت كونكې دالله ﷺ اطاعت

---

(۱) طبرى : ۹۸۶۶عن السدى وابن حبان: ۷۰۴۰، وسنده صحيح من حديث خالد بن الوليد ﷺ بلفظ مختلف وبدون ذكر الاية)

کونکې دي.اوچه چا خما نافرماني اوکړه هغه دالله ﷺ نافرماني اوکړه. (۱)اوچه چا دامير اطاعت اوکړو نو هغه خما اطاعت اوکړو ،او چا چه خما دمقرر شوی امير نافرماني اوکړه نو هغه خمانافرماني اوکړه.نو دا دی احکام د عالمانو او امراء د اطاعت.

**دامير اطاعت کله واجب دې:-** دې آيت مبارك کښې ارشاد دې چه د الله ﷺ اطاعت کوني يعني دهغه دکتاب او د هغه د رسول ﷺ اطاعت کوني يعني په سنتو عمل کوني او د حکم والو اطاعت کوني يعني په هغه څيز کښې چه دالله ﷺ اطاعت وي.او چه دالله ﷺ د حکم خلاف وي او تاسوته هم ددې خلاف کار حکم درکوی نو دا مه قبلوني.څکه چه داسې وخت کښې دعلماء او امراء منل حرام دی.لکه څنګه چه رومبی آيت کښې تير شو چه اطاعت صرف په نيکئ کښې دې.يعني دامير حکم د الله تعالى اود رسول الله د حکم موافق وی مسند احمد کښې ددې نه هم زيات صفا حديث مبارك دې .او په هغې کښې دی چه په اطاعت کښې د الله د فرمان خلاف حکم منل نشته (۲).

**قوله تعالى::** فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

**داختلاف په صورت کتاب الله او سنت رسول الله حاکم مقرر کول:-** بيا فرمائي که تاسو ته په څه باره کښې جګړه راپيښه شي نو الله ﷺ طرفته راشئ يعني کتاب الله طرفته او سنت رسول ﷺ طرفته لکه چه دحضرت مجاهد رحمه الله تفسير کښې دی. نودلته الله ﷺ په صفا او واضح لفظونو کښې حکم ورکوی چه خلق په کومه مسئله کښې اختلاف اوکړی که هغه مسئله د اصول دين متعلق وی اوکه د فروع دين متعلق.ددې د تصفيه صرف هم دا صورت دې چه کتاب الله او سنت حاکم اومنلې شي.چه څه دې کښې وی هغه قبول کړی لکه بل آيت مبارك کښې چې دی چه ﴿وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِن شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ﴾ چه کوم څيز کښې ستاسو اختلاف وی نو د هغې فيصله الله ﷺ طرفته ده.

نوکتاب اوسنت چه کوم حکم درکړی اوپه کومه مسئله د صحت شهادت درکړی نو هم هغه حق ده او هم هغه باقی ده. قران پاك فرمائي چه د حق نه پس چې نور څه هم دی هغه ضلالت اوګمراهی ده. ددې وجې دلته هم دې حکم سره دا ارشاد دې که تاسو په الله ﷺ اوپه ورځ د قيامت ايمان ساتئی يعني که تاسو دايمان دعوی کښې رينښتونی يئ نو تاسوته چه د کومې مسئلې علم نه وی او چه کومه مسئله کښې ستاسو اختلاف وی او په هغه امر کښې ستاسو جدا جدا رائې وی نودهغې فيصله کتاب او سنت رسول ﷺ سره کوني او چه څه په دې دواړو کښې وی نو هغه منئ.نوثابته شوه چه کوم سړی داختلافی مسئلې تصفيه کتاب الله او سنت طرفته نه راوړی نو هغه په الله تعالى او په ورځ دقيامت ايمان نه لري

**قوله تعالى::** ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا

بيا ارشاددې چه په جنګ جګړو کښې او اختلاف کښې خپله فيصله کتاب الله او سنت رسول ﷺ ته راوړئ اوهغه طرفته رجوع کول بهتردی.او هم دا نيك کار او ښه امر دې.او هم د ښه بدلې ورکولو کار دې.اوددې ميوه ډيره ښه جزا ده.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ تَرَ | إِلَى الَّذِينَ | يَزْعُمُونَ | أَنَّهُمْ | آمَنُوا |
| آيا اونه ليدل تا | هغه خلق | چې ګمان کوی اچې | بيشکه هغوئ | ايمان راوړې دې |

ته هغه کسانو ته نه ګورې | چې په خولې خو دا دعوی کوی چې مونږ تا ته

---

(۱) صحيح بخاری کتاب الاحکام باب قول الله تعالى ( اطيعوا الله واطيعو الرسول ) :۷۱۳۷، صحيح مسلم: ۱۸۳۵ نسائی : ۴۱۹۸)-

(۲) احمد: ۴۲۶/۴، وهو صحيح بالشواهد)-

بِمَآ أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ
په هغه کتاب | چې نازل کړې شوې دې | تاته | او په هغه کتابونو | چې نازل کړې شوی دی | مخکښې ستانه
نازل شوې کتاب هم منو | ......................او ستا نه مخکښې نازل شوی کتابونه هم منو
يُرِيْدُوْنَ أَنْ يَّتَحَاكَمُوْٓا إِلَى الطَّاغُوْتِ وَقَدْ أُمِرُوْٓا
هغوئ غواړی | چې یوسی فیصلې دمقدماتو خپلو | ابلیس ته | حالانکه حکم شوې وو هغوئ ته
(خوعمل ئې دادې) چې خپلې جګړې شیطان ته وړاندې کوی | او حال دا چې هغوئ ته حکم شوې وو
أَنْ يَّكْفُرُوْا بِهٖ ط وَيُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ أَنْ يُّضِلَّهُمْ ضَلٰلًا
چې کفر او کړی | په ابلیس | او غواړی | شیطان | چې ګمراهه کړی دوئ | په ګمراهئ
چې دهغه نه به انکار کوی | ...... او شیطان خودا غواړی چې دوئ دسمې لارې نه
بَعِيْدًا ﴿٦٠﴾ وَإِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلٰى مَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ
لرې سره | او هر کله چې | او وئیلې شی دوئ ته | راشئ | هغه کتاب ته | چې نازل کړې دې الله
ډیر لرې کړی | هر کله چې دوئ ته او وئیلې شی چې کوم حکم الله ﷻ رالیږلې دې هغې ته راشئ
وَإِلَى الرَّسُوْلِ رَأَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا ﴿٦١﴾
او راشئ رسول ته | ته وینې | دامنافقان | چې بچ کوی ځانونه | تاته دراتلونه | په بچ کولو سره
او دهغه رسول ته مخامخ شئ | نو ته دا منافقان ګورې چې تا نه لرې لرې ګرځی
فَكَيْفَ إِذَآ أَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ
نو څه حال به وی | کله چې | اورسیږی دوئ ته | مصیبت | په سبب د هغه عمل | چې مخکښې لیږلې دې
......................بیا هغه وخت به ئې څه حال وی چې د کړو عملونو په وجه پرې مصیبت راشی
أَيْدِيْهِمْ ثُمَّ جَآءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ ق بِاللّٰهِ إِنْ أَرَدْنَآ إِلَّآ
لاسونو ددوئ | بیا | راځی تاته | قسمونه خوری | چې قسم په الله | نۀ وه | اراده زمونږه | مګر صرف
نو بیا تاسو ته راځی | او په الله ﷻ باندې قسمونه خوری چې زمونږ غرض خو صرف (د مسلمانانو سره)
إِحْسَانًا وَّتَوْفِيْقًا ﴿٦٢﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَعْلَمُ اللّٰهُ مَا
د ښیګړې | او د موافقت راوستو | دا هغه کسان دی | چې معلوم دی | الله ته | هغه څه
ښیګړه او اتفاق راوستل دی | د دغه کسانو د زړونو حال الله ﷻ ته معلوم دې
فِيْ قُلُوْبِهِمْ ق فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَّهُمْ
چې په زړونو ددوئ کښې دی | نو ډډه او کړه | ددوئ نه | او نصیحت او کړه دوئ ته | او اوایه | دوئ ته
......................| نو ته د هغوئ د خبرو هیڅ پرواه مه کوه | هغوئ ته نصیحت کوه | او د هغوی

| | | |
|---|---|---|
| فِىٓ اَنۡفُسِهِمۡ | قَوۡلًا | بَلِيۡغًا۞ |
| په حق دنفسونو ددوئ کښې | وينا | کوزيدونکې زړونو ته |
| په زړونو کښې اثر پيدا کونکې وعظ ورته کوه | | |

**قوله تعالى:** يُرِيۡدُوۡنَ اَنۡ يَّتَحَاكَمُوۡۤا اِلَى الطَّاغُوۡتِ

**قرآن او حديث نه ووړه کول:-** پورته آيت مبارك کښې الله ﷻ دهغه خلقو دعوى دروغ ګرځولې ده. څوك چه زبانى اقرار کوى. چه دالله ﷻ په مخکښو کتابونو او دې قرآن پاك باندې خمونږ ايمان دې. ليکن کله چه ديوې مسئلې تحقيق کول وى، او کله چې يو اختلاف ختمول وى، او کله چه هم يوجګړه ختمول وى، نو قرآن او حديث طرفته رجوع نه کوى بلکه بل طرفته ځى.

**دآيت شان نزول:-** دا آيت نازل شويدې دهغه دوو سړو باره کښې چه په هغوى کښې څه اختلاف وو، يو يهودى وو او بل انصارى وو. يهودى ونيل چه څه حضرت محمد ﷺ ته ورځو چه هغه فيصله اوکړى او انصارى ونيل چه کعب بن اشراف ته ورځو. دا هم ونيلې شوى دى چه دا آيت دهغه منافقانو باره کښې نازل شويدې چه هغوئ اسلام ظاهرولوليکن پټ په پټه ددوى توجه جاهليت طرفته وه. ددې نه سوا نور اقوال هم دى. آيت د حکم او الفاظو په اعتبار سره عام دې. دا ټول واقعات په دې کښې شامل دى. دې کښې دهر هغه سړى دمذمت او برائى اظهار کوى چه کتاب او سنت پريږدى او باطل طرفته خپله فيصله اوړى. اوهم دا مراد دلته د طاغوت نه دې. (يعنى د قرآن وحديث نه سوا ځيز يا سړې)،

رَاَيۡتَ الۡمُنٰفِقِيۡنَ يَصُدُّوۡنَ عَنۡكَ صُدُوۡدًا۞

**د صدود معنى:-** دصدود نه مراد تکبر اومخ اړول دى. لکه څنګه چه بل آيت مبارك کښې دى چه ﴿وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمُ اتَّبِعُوۡا مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ قَالُوۡا بَلۡ نَتَّبِعُ مَاۤ اَلۡفَيۡنَا عَلَيۡهِ اٰبَآءَنَا﴾ کله چه دوى ته اوونيلې شى چه الله ﷻ کومه وحى نازله کړېده دهغې فرمانبردارى اوکړئى نو جواب کښې وائى چه مونږ دخپلو نيکونو او پلارانو په نقش قدم ځو دايماندارو جواب دا نه وى بلکه دهغوئ جواب بل آيت کښې داسې مذکور دې چه ﴿اِنَّمَا كَانَ قَوۡلَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ﴾ ايماندارو چه کله د الله اورسول فيصلې او حکم طرفته اوبللې شى نو دهغوئ جواب دا وى چه مونږ واوريدل او مونږ د زړه دکومې نه دا قبلوو.

**قوله تعالى:** فَكَيۡفَ اِذَاۤ اَصَابَتۡهُمۡ مُّصِيۡبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتۡ اَيۡدِيۡهِمۡ ثُمَّ جَآءُوۡكَ يَحۡلِفُوۡنَ ۖ بِاللّٰهِ اِنۡ اَرَدۡنَاۤ اِلَّاۤ اِحۡسَانًا وَّتَوۡفِيۡقًا۞

**د منافقانو کردار:-** بيا دمنافقانو مذمت بيانيږى چه ددوى دګناهونو په وجه چه کله دوى ته تکليفونه رسى اوستا ضرورت محسوسوى نو دوى په منډه راځى او ستا خوشحالولو دپاره عذر معذرت کوى. او قسمونه خورى اود خپلې نيکئ او صلاحيت يقين ورکول غوارى. او وائى چه نبى کريم ﷺ پريښودل او خپلې فيصلې بل طرفته اوړلو مقصد دا وو چه د نورو زړه هم خوشحاله کړو. او دوى سره مو خپلو کښې زړونونه خيرې لرې شى ګنى مونږ د زړه نه دوى سره مخلص نه يو. لکه څنګه چه په دې آيت کښې چه ﴿ فَتَرَى الَّذِيۡنَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ ﴾ نه تر ﴿نٰدِمِيۡنَ﴾ پورې بيان شوى دى.

يعنى ته به اوګورې چه د کومو کسانو په زړونو کښې مرض دې يعنى منافقان دى هغوى به د يهود او نصرانيانو ټولودوستئ کښې کوشش کوى او وائى چه مونږ ته په آفت کښې د اخته کيدو خطره ده. خو ديره ممکن ده چه الله مسلمانانو ته ﷺ فتح راولى يا خپل بل څه حکم راوليږى او دا خلق په هغه ارادو پښيمانه شى. کومې چه د دوى په زړونو کښې پټې دى.

**د شان نزول باره کښې بل روایت:-** حضرت ابن عباس ﷛ فرمائی چه ابوبرزه اسلمی یو جادوګر وو، یهودو به په هغه خپلې فیصلې کولې.یو واقعه کښې مشرکان ده طرفته په منډه شو نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿الم تر﴾ نه تر ﴿توفیقا﴾ پورې (۱).

قوله تعالی:: أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللَّهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ

بیا فرمائی چه داسې خلق یعنی دمنافقانو زړونو کښې څه دی ، ددې علم الله ﷻ سره دې ، دهغه نه هیڅ وړوکې څیز هم پټ نه دې.او هغه ددوی د ظاهر او باطن نه خبر دې.نو ددوی نه چشم پوشی اوکړه او ددوی په باطنی ارادو باندې غصه مه کونی ، او دوی ته د نفاق نه د لرې اوسیدو اود فساد نه کولو نصیحت اوکړنی او دوی ته داسې خبرې اوکړه چه د دوی په زړونو کښې کینی او اثر پرې اوکړی او ددوی دپاره دعا هم اوکړئی.

| |
|---|
| وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا |
| اونهٔ دې لیږلې مونږ ایو رسول ا مګر |
| اومونږ هریو پیغمبر صرف ددې دپاره رالیږلې دې |
| لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ |
| چې د هغه حکم اومنلې شی ا په حکم دالله سره ا اوکه چرې دوئ ا څه وخت چې ئې ا ظلم کړې وو ا په ځانونو خپلو |
| چې دالله ﷻ په حکم د هغه خبره اومنلې شی ا او څه وخت چه دوی په ځانونو زیاتې کړې وې |
| جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا |
| راغلې وې تاله ا اومعافی ئې غوښتې وې دالله نه ا اومعافی غوښتې وې ا دپاره ددوئ ا رسول ا نوخامخا به موندلې وو دوئ |
| اوتاته راغلې وې ا اودالله نه ئې ښښنه غوښتې وې ا اوپیغمبرهم دوی دپاره معافی غوښتې وې انو یقیناً |
| اللَّهَ تَوَّابًا رَحِيمًا ۞ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ |
| الله ا توبه قبلونکې ارحم کونکې انو قسم دې ستا د پروردګار ا نشی مومنان کیدې دوئ ا تر دې پورې |
| الله به ئې ښښونکې مهربانه موندلې وې استا په رب مې دې قسم وی چې دوی ترهغه وخته پورې ایماندار کیدې |
| يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا |
| چې فیصله کونکې کړی تا ا په هغه جګړه کښې ا چې راشی ا په منځ ددوئ کښې ا اوبیا ا اونهٔ مومی |
| نهٔ شی ترڅوچې پخپلو جګړو کښې ستا حکم اونهٔ منی ا اوبیا چې ته فیصله اوکړې نو دوی پخپلو |
| فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ۞ |
| په زړونو خپلو کښې ا څه تنګی ا د هغه فیصلې نه ا چې اونې کړې ته ا اووې منی دوئ ا په منلو سره ا |
| زړونو کښې (د هغې فیصلې په وجه) تنګی بیانهٔ مومی ا او د هغې منلو ته ښه غاړه بسته شی ا |

(۱) المعجم الکبیر: ٤٥ ١٢٠)-

وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ بِاِذۡنِ اللّٰهِ

**حضرت محمد ﷺ نه دعا طلب كول** :- مطلب دادې چه هره زمانه كښې د رسول تابعداري د الله ﷻ د طرفنه فرض ده. منصب درسالت هم دادې چه ددوی ټول احكام دې د الله ﷻ احكام اوګڼرلې شي.
حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه ﴿ بِاِذۡنِ اللّٰهِ ﴾ نه مراد دا دې چې ددې توفيق خو دالله ﷻ لاس كښې دې، دهغه په قدرت او مشيت باندې موقوف دی. لكه څنګه چه آيت كښې دی چه ﴿اِذۡ تَحُسُّوۡنَهُمۡ بِاِذۡنِهٖ﴾ دلته هم د اذن نه مراد امر قدرت او مشيت دې، يعني هغه تاسو ته په دوی غلبه دركړه.

قوله تعالى:: وَلَوۡ اَنَّهُمۡ اِذۡ ظَّلَمُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ جَآءُوۡكَ فَاسۡتَغۡفَرُوا اللّٰهَ

بيا الله ﷻ غاصبانو او خطاكارو ته ارشاد فرمائي چه دوی ته پكار دی چه رسول الله ﷺ ته راشي او دهغه نه معافي اوغواړي. او پخپله حضرت نبي كريم ﷺ ته هم عرض كول پكار دی. چې تاسو خمونږ دپاره دعا اوكړئي. هركله چه داسې اوكړي نو يقينا الله ﷻ به دوی طرفته رجوع اوكړي. او دوی به اوبښي او په دوی به رحم اوكړي.
ابومنصور صباغ په خپل كتاب كښې مشهورې قصې ليكلې دی ، ليكلي نې دی چه د عتبی بيان دې چه څه د حضرت نبي كريم ﷺ قبر سره ناست اووم ، يو اعرابي راغلو او هغه اووئيل السلام عليك يارسول الله ﷺ ! ما د قران پاك آيت آوريدلې دې او تاسو ته راغلې يم چه ستاسو په وړاندې د خپلو ګناهونو استغفار اوكړم ، او د حضرت نبي كريم ﷺ شفاعت طلب كړم ، بيا هغه دا اشعار اووئيل چه :

يا خير من دفنت بالقاع اعظمه
فطاب من طيبهن القاع والاكم
نفسي الفداء لقبر انت ساكنه
فيه العفاف وفيه الجود والكرم

چه د چا هډوكي ميدانونو كښې دفن شوی دی ا ود چا خوشبو سره به ميدانونه او غونډئی ټولې خوشبوداری جوړې شي. انې په دې ټولو كښې بهترينې هستئ! خما ځان دې په دې قبر قربان وی چه د هغې كښې اوسيدونكې ته يې په كوم قبر كښې چې هوښيارتيا او سخاوت او شرافت دې
بيا أعرابي واپس شو اوماته خوب راغلو. خوب كښې مې اوكتل چه ګويا حضرت نبي كريم ﷺ ماته فرمائي چه ورشه او دې اعرابي ته زيرې وركړه چه الله ﷻ دده ګناه معاف كړه.
**د حضرت نبي كريم ﷺ فيصله حتمي ده** :- بيا الله ﷻ دخپل بزرګ اومقدس ذات قسم كوی او فرمائي چه ترهغه پورې يو سړې دايمان حدودو كښې نه راځي. چه ترڅو پورې چه هغه ټولو امورو كښې الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ حاكم اونه مني اود حضرت نبي كريم ﷺ هريو حكم او هره فيصله او هرحديث مبارك قابل قبول او حق صريح اونه مني، اوزړه بالكل د رسول ﷺ تابع نكړي. غرض دا چې ظاهر او باطن او واړه اولوني ټولو كارونو كښې د رسول الله ﷺ حديث اصل اصول اومني نو هغه مومن دې.

قوله تعالى:: ثُمَّ لَا يَجِدُوۡا فِيۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيۡتَ

نوفرمان دې چه ستا احكام په فراخه زړه قبلوني او په خپل زړه كښې څه تنګي او خرابي نه راولي. پوره تسليم ټولو احاديث سره راځي. نو نه خو د احاديثو منلو نه روستو كيږي او نه ددې د روستو كولو اسباب لټوي او نه ددې دمرتبې څه بل څيز مني . او نه ددې ترديد كوی. او نه ددې مقابله كوی. اونه ددې په منلو كښې جګړې كوی. لكه حضرت نبي كريم ﷺ فرمان دې چه په هغه ذات مې دې قسم وی

چه د هغه په قبضه کښې ځما روح دې چه تاسو کښې تر هغه وخت پورې هيڅوک مومن نشي جوړيدې چه ترڅو هغه خپل خواهش د هغه دين تابع نکړي کوم چې ما راوړې دې (۱)

**د زبیر رضی الله عنه او انصاری رضی الله عنه مقدمه:-** صحيح بخاری شريف کښې دی چه حضرت زبير ﷺ يو انصاری سره د باغ په اوبه کولو جګړه اوکړه ، نو حضرت نبی کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه زبير ته اوبه اوځکوه او بيا ئې د انصاری باغ ته پريږده. دې باندې انصاری اووئيل چه يارسول الله ﷺ ! دا خوستا ترور ځوئې دې ، دې آوريدو سره د حضرت نبی کريم ﷺ مخ مبارک مغير شو او وې فرمائيل چه زبيره چه ته اوبه ورکړې نو بيا اوبه اوساته (مه ئې ورکوه ) تردې چه اوبه د باغ ديوالونوته اورسی نو بيا ئې خپل ګاونډی طرفته پريږده.اول خو حضرت نبی کريم ﷺ داسې صورت بيان کړو چه په هغې کښې حضرت زبير ﷺ ته څه تکليف نه وو ، او انصاری ته فراخی ورکړې.ليکن کله چه انصاری دا خپل حق کښې بهتر اونه ګڼړله نو حضرت نبی کريم ﷺ زبيرته دهغه پوره حق ورکړو. حضرت زبير ﷺ فرمائی چه ترکومې ځما خيال دې نو دا آيت ﴿فَلَا وَرَبِّكَ﴾ الخ هم دې باره کښې نازل شوې دې.(۲)

**په دې واقعه کښې بل روايت:-** مسنداحمد کښې يو مرسل حديث مبارک کښې دی چه دا انصاری بدری وو(۳)او يو روايت کښې دی چه دواړو کښې په دې جنګ وو چه نهر سره دحضرت زبير ﷺ باغ نزدې وو او بياد انصاری.انصاری ونيل چه اوبه مه ايساروه چه دواړو باغونو ته يوشان راځی.(۴)

**دانصاری نوم:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه دا دواړه دعويدار حضرت زبير ﷺ او حضرت حاطب بن ابی بلتعه ﷺ وو(۵) حضرت نبی کريم ﷺ دوی کښې دا فيصله اوکړه چه مخکښې دې نزدې والا اوبه ورکړی او بيا دې لاندې والا.

**دحضرت عمر ﷺ د نبی ﷺ په فيصله نه راضی کيدونکې کس قتلول:-** بل يو غريب روايت کښې شان نزول دا مروی دې چه دوه کسانو خپل جنګ حضرت نبی کريم ﷺ ته يوړو او خپله فيصله ئې حضرت نبی کريم ﷺ ته پيش کړه خوچه دچا خلاف وه هغه اوئيل چه يارسول الله ﷺ اتاسو مونږ حضرت عمرفاروق ﷺ ته اوليږئ، حضرت نبی کريم ﷺ ورته اووئيل چه ډيره ښه ده هغه ته ورشئ.هرکله چه دوی راغلل نو چه د چا حق کښې فيصله شوې وه هغه ټوله واقعه بيان کړه.حضرت عمرفاروق ﷺ دې بل سړی ته اووئيل چه دا ريښتيا دی. هغه اقرار اوکړو. دوی ورته اوفرمائيل چه تاسو دواړه دلته ايسار شئ څه راځم او تاسو کښې فيصله کوم. لږ وخت پس توره په لاس راغلو او چه کوم سړی ونيلی وو چه مونږ حضرت عمرفاروق ﷺ ته واستوه د هغه څټ ئې والوزولو. دويم سړی چه دا اوکتل نو اوتښتيدو ، حضرت نبی کريم ﷺ ته راغلو او وې ونيل چه يارسول الله ﷺ ا ځما ملګرې اووژلې شو او ما ځان بچ کړو او دلته راغلم اوکه نه وې راغلې نو ځما هم خيرنه وو. حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ما عمر داسې نه ګڼړلو چه هغه به داسې جرات سره ديومومن خون واخلی.دې باندې دا آيت مبارک نازل شو. اوالله ﷺ حضرت عمرفاروق ﷺ بری کړو. خو هسې نه چې دې نه پس هم دا طريقه خلقو کښې روانه وی. نو ددې وجې دې نه پس آيت نازل شو چه ﴿وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ﴾ چه مخکښې راځی.(ابن ابی حاتم ).ابن مردويه

---

(۱) شرح السنة للبغوی : ۱۰۴)-

(۲) صحيح بخاری کتاب التفسير باب ( فلا وربک لا يومنون...) : ۴۵۸۵، صحيح مسلم: ۲۳۵۷ ، ابوداود : ۳۶۳۷، ترمذی: ۱۳۶۳ نسائی: ۵۴۱۸ ابن ماجة: ۱۴۸۰)-

(۳) احمد: ۱۶۵/۱ البخاری: ۲۷۰۸ وهو صحيح )-

(۴) احمد: ۵/۴ صحيح بخاری : ۲۳۵۹ صحيح مسلم: ۲۳۵۷)-

(۵) ابن ابی حاتم)-

کښې هم دا روایت چه غریب او مرسل دې او ابن ابی لهیعه راوی ضعیف دې.والله اعلم.

**دحضرت عمر ﷺ واقعه په بل سند سره** :- دویم سند سره مروی دی چه دوه سړی د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او خپله جګړه ئې پیش کړه. حضرت نبی کریم ﷺ د حقدار سړی په حق کښې فیصله اوکړه.لیکن چه دچا خلاف فیصله شوې وه هغه اوونیل چه ځه په دې راضی نه یم.حضرت نبی کریم ﷺ ترې تپوس اوکړو چه ته څه غواړې ؟ هغه اوونیل چه حضرت ابوبکر صدیق ﷺ ته ورشو. دواړه چه کله هلته اورسیدل نو حضرت صدیق اکبر ددوی واوریدل او وې فرمائیل چه ستا فیصله هم هغه ده چه کومه حضرت نبی کریم ﷺ کړې ده. هغه بیاهم خوشحاله نه شو. او وې ونیل چه څه حضرت عمرفاروق ﷺ ته ورځو. هغوی ته چه ورغلل نو بیا هغه اوشو چه کوم پورته بیان شو(تفسیرحافظ ابواسحاق )

وَلَوْ اَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ اَنِ اقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ اَوِ اخْرُجُوْا مِنْ دِيَارِكُمْ

اوکه چرې مونږه| فرض کړې وې| په دوی| چې قتل کړئ | ځانونه خپل |یااوځئ بهر| د کورونو خپلو نه

اوکه مونږ دوی ته دا حکم ورکړې وې اچې خپل ځانونه قتل کړئ | یا د خپلو کورونو نه اوځئ ........

مَّا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْهُمْ ط وَلَوْ اَنَّهُمْ فَعَلُوْا مَا

نو نه به وو کړې دوی داکار| سوا| دلږو کسانو | ددوی نه | اوکه | دوی | کړې وې| هغه

نو په دوی کښې به ډیرو کمو کسانو په دې عمل کړې وو| اوکه چرې دوی په دغه نصیحت عمل کړې وې

يُوْعَظُوْنَ بِهٖ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَشَدَّ تَثْبِيْتًا (٦٦)

چې نصیحت کیږی دوی ته|په هغې سره| نو وو به دا کار|غوره|ددوی دپاره| اوزیات ټینګ ساتونکې(ایمان کښې)

نو دا به ددوی دپاره ډیره بهتره وه| ........... اودایمان دمضبوطیا سبب به وو

وَّاِذًا لَّاٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ لَّدُنَّآ اَجْرًا عَظِيْمًا (٦٧) وَّلَهَدَيْنٰهُمْ

اوبیابه خامخا ورکړې وو مونږ دوی ته | د طرفه خپل نه| اجر لوئې| اوخامخابه خودلې وه مونږ دوی ته

اوکه داسې ئې کړې وې نو مونږ به ورله دخپل طرفنه ډیرلوئې اجرورکړې وو| اوپه سمه

صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا (٦٨) وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ

لاره | نیغه |اوڅوک چې حکمونه منی دالله| اود رسول |نو دغه کسان به| دهغو کسانو سره وی

لاربه مو روان کړی وؤ| اوڅوک چې د الله اودهغه درسول حکم اومنی|نو هغوی به دهغې خلقو سره وی

اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ

چې انعام کړې دې الله | په هغوی باندې| یعنی دپیغمبرانو سره| او دصدیقانو سره| اودشهیدانو سره

په چا چه الله ﷻ نعمتونه کړی دی | چې پیغمبران دی ، صدیقان دی ، شهیدان دی

وَالصّٰلِحِيْنَ ج وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا (٦٩) ط ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ط

او د نیکانو سره | او ښهٔ دی | دا کسان |دپاره دملګرتیا| دا حقیقی فضل دې | د طرفه د الله نه

اونیکان دی| اودغه کسان ډیر ښهٔ ملګری دی | ........دا هغه فضل دې چې دالله ﷻ دطرفنه کیږی

| وَكَفٰى | بِاللّٰهِ | عَلِيْمًا ﴿٧٠﴾ |
|---|---|---|
| او کافي دی | الله | پوهه |

او دی په حقیقت صرف د الله علم کافي دی

**قوله تعالی:** وَلَوْ اَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ اَنِ اقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ اَوِ اخْرُجُوْا مِنْ دِيَارِكُمْ مَّا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْهُمْ

**د کافرانو فطرت:-** الله خبر ورکوی چه اکثر خلق داسې دی که هغوئ دهغه کارونو نه منع کړې شی چې دکومو نه منع کړې شوې او دوئ هغه لګیا دی کوی نوهغوئ به دا کارونه کول.څکه چې د دوی ذلیله طبیعتونه دالله ﷻ د حکم مخالف جوړ شوی دی.نو دلته الله ﷻ دخپل علم خبر ورکوی چه کوم کارونه شوی نه دی او هغه کیدلې نو هغه به څنګه کیدلې.

**دیوبزرګ قول:-** ددې آیت مبارك آوریدو سره یو بزرګ اوفرمائیل که الله ﷻ مونږ ته دا حکم کړې وې نو یقینا مونږ به کړې وې لیکن دهغه شکر دې چه هغه مونږ ددې نه بچ کړو.هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ ته دا خبره اورسیده نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بیشکه څما امت کښې داسې داسې خلق هم دی چه هغوئ په زړونو کښې ایمان د مضبوطو غرونونه نه هم زیات مضبوط او ثابت دی [1] (ابن ابی حاتم).

**دثابت بن قیس ؓ قول:-** ددې روایت بل سند کښې دی چه ډیر صحابه کرامو ؓ دا فرمائیلی وو. د حضرت سدی ؒ قول دې چه یو یهودی حضرت ثابت بن قیس بن شماس ته په فخر سره ونیلی ووچه الله ﷻ په مونږ باندې پخپله دخپل څان قتل کول فرض کړې وو.نو دې باندې حضرت ثابت ؓ اوفرمائیل چه والله که مونږ باندې دافرض وې نومونږ به دا هم کولی.نودې باندې آیت مبارك نازل شو.

**دایت په شان نزول کښې بل حدیث:-** اویو روایت کښې دی چه کله دا آیت نازل شو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که دا حکم شوې وې نو ددې حکم منلو کښې به یو ابن عبد هم وې (ابن ابی حاتم).

**دعبدالله بن رواحه ؓ فضیلت:-** او یو روایت کښې دی چه دا آیت مبارك حضرت نبی کریم ﷺ اوونیلو نو عبدالله بن رواحه ؓ طرفته ئې اشاره اوکړه او وې فرمائیل چه دې هم په دې عمل کولووالو نه دې.

**قوله تعالی:** وَلَوْ اَنَّهُمْ فَعَلُوْا مَا يُوْعَظُوْنَ بِهٖ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَشَدَّ تَثْبِيْتًا ﴿٦٦﴾ وَّاِذًا لَّاٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ لَّدُنَّآ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٦٧﴾ وَّلَهَدَيْنٰهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿٦٨﴾

**دالله تعالی داطاعت انعام:-** بیا فرمانی که دې خلقو دا حکم منلې وې او زمونږ منع کړو کارونو نه منع شوې وې نودابه ددوئ په حق کښې زیاته بهتره وه.ددې نه چې هغوئ دالله د حکم مخالفت اوکړې او ممانعت کښې اخته شی،اوهم دا زیات رینبتونی دی،نو هغه وخت کښې به مونږ دوی ته جنت ورکړې وې او دنیا او آخرت کښې به مو ددوی راهنمانی کړې وې.

**قوله تعالی:** وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿٦٩﴾

**د الله او رسول تابعدار به کوم څائې وی:-** بیا فرمانی چه دالله ﷻ او رسول ﷺ په احکامو باندې چې چا عمل اوکړو اودمنع شوئ کارونونه منع شو.نوهغه ته به دالله ﷻ دعزت په کور کښې عزت ملاویږی.او دې به دنبیانوعلیهم السلام ملګرې وی ، او د صدیقینو مرتبې د نبیانو علیهم االسلام نه پس دی ،بیا دشهیدانو،بیا دټولو مومنانو چه هغوئ صالحان وی.او دهغوئ ظاهر او باطن ښکلې وی.لږ خیال خو اوکړنی چه څنګه پاك او بهترین ملګری دی.

**هرپیغمبر ؑ د مرګ او ژوند اختیار ملاویدل:-** صحیح بخاری کښې دی چه حضرت عائشه ؓ فرمانی چه ما د حضرت نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه هر نبی ته د هغه د مرض په زمانه کښې دنیا کښې د

[1] ابن ابی حاتم : ۹۹۲۶)-

پاتې کیدو او اخرت ته دتلو اختیار ورکولې کیږی هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ بیمار شو نو اود کوم مرض نه چې حضرت نبی کریم ﷺ نه شو پاسیدې نو د حضرت نبی کریم ﷺ آواز مبارك ډیر زیات په مزه شو ، خو ما واوریدل چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمانی ﴿چه هغونی سره چه چا باندې الله ﷻ انعام کړې دې چه نبیان علیهم السلام دی ، صدیقین دی ، شهیدان دی اونیکان دی.ما ته معلومه شوه چه اوس حضرت نبی کریم ﷺ ته اختیار ورکړې شوې دې [1]

هم دا مطلب دې دهغه بل حدیث مبارك کښې چه کوم کښې د حضرت نبی کریم ﷺ الفاظ وارد شوی دی چه انی الله ﷻ ! څه اوچت او بهتر ملګرې غواړم.دې ځل حضرت نبی کریم ﷺ دا الفاظ ارشاد اوفرمائیل او بیا وفات شو.[2] علیه افضل الصلوة والتسلیم.

**دایت شان نزول**:- ددې آیت مبارك شان نزول په باره کښې تفسیرابن جریر کښې دی چه یو انصاری حضرت نبی کریم ﷺ ته راغلو او حضرت نبی کریم ﷺ اوکتل چه هغه ډیر پریشانه دې.حضرت نبی کریم ﷺ ترې د پریشانئ د سبب تپوس اوکړو .نوجواب کښې هغه اووئیل یارسول الله ﷺ ! دلته مونږ خلق ستاسو خدمت کښې سحر مابنام ناست یو اوستاسو دیدار کوؤ ، او یو ساعت دوه هم تاسو سره ناست یو.لیکن تاسو به د قیامت په ورځ د نبیانو علیهم السلام په اعلی مرتبوکښې یئ؛ اومونږ به تاسو ته نشو دررسیدې.حضرت نبی کریم ﷺ هیڅ جواب ورنکړو نو دې سره جبریل ﷺ نازل شو او دا آیت مبارك ئې راوړو.حضرت نبی کریم ﷺ هغه صحابی پسې کسان اولیږل اوهغه ته ئې دا زیرې ورکړو.

**د شان نزول باره کښې بل روایت**:- هم دا اثر مرسل سند سره هم مروی دې.دهغې سند ډیر بهتر دې.حضرت ربیع ﷺ فرمانی چه صحابه کرامو ﷺ اووئیل چه دا ظاهره ده چه د حضرت نبی کریم ﷺ درجه حضرت نبی کریم ﷺ باندې ایمان راوړو والو نه ډیره زیاته اوچته ده.نو مونږ چه کله جنت کښې جمع شو نو خپلو کښې به یو بل څنګه ګورو او څنګه به ملاویږو. نو دا آیت مبارك نازل شو او حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د اوچتو درجوجنتیان به د لاندې درجو جنتیانو ته راځی او دبهار موسم کښې به یوباغ کښې په ټول جمع کیږی اود الله ﷻ داحساناتو ذکر او دهغه پاك ذات تعریفونه به کوی.او چه څه غواړی نوهغه به ورته ملاویږی او هروخت کښې به نازونعم کښې وی.

**پورتنې روایت په بل سند سره** :- ابن مردویه کښې روایت دې چه یو سړې حضرت نبی کریم ﷺ ته راغلو او وې ونیل چه یارسول الله ﷺ ! څه تاسو د خپل ځان نه اود خپل اهل وعیال نه او د خپلو بچونه زیات محبوب ګنړم ، څه چه کورته لاړشم نو د زیارت کولو شوق ما بې قراره کړی او صبر نشم کولې او منډې وهم اوبیا دیداردپاره راشم.لیکن کله چه ماته خپل اودحضرت نبی کریم ﷺ مرګ رایاد شی او ددې یقین دې چه حضرت نبی کریم ﷺ به جنت کښې نبیانوعلیهم السلام سره په اوچتو درجو کښې وی اوځه به لاندې درجوکښې یم. نو ویریږم چه بیا به څه دحضرت نبی کریم ﷺ دیدارنه محروم شم. حضرت نبی کریم ﷺ ورته هیڅ جواب ورنکړو په دې دا آیت نازل شو[3]ددې روایت نورې هم طریقې دی

**زیاتې سجدې د نبی کریم د ملګرتیا سبب**:- صحیح مسلم شریف کښې دی چه ربیعه بن کعب اسلمی ﷺ فرمانی چه څه یو شپه د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې ووم او اوبه وغیره به مې ورته راوړې.یو ځل حضرت نبی کریم ﷺ ماته اوفرمائیل چه څه اوغواړه.ما اووئیل چه څه په جنت کښې ستاسو ملګرتیا غواړم.وې فرمائیل چه دې نه سوا نور.بل څه اوغواړه.ما اووئیل چه هم دا غواړم.حضرت نبی کریم ﷺ

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النساء: باب ( فاولئک مع الذین ) : ۴۵۸۶ صحیح مسلم: ۲۴۴۴، ابن ماجة ۱۶۲۰)-
[2] صحیح بخاری کتاب المغازی باب اخر ماتکلم به النبی صلی الله علیه وسلم ۴۴۶۳، ابن ماجة: ۲۴۴۴)-
[3] ابن مردویه ، دا روایت دشواهدو لحاظ سره حسن دې)-

اوفرمائيل چه ماسره مدد کوه او سجدې ښه ډيرې کوه. (۱)

**د نبی ﷺ د ملګرتيا نسخه:-** مسنداحمد کښې دی چه يو سړی حضرت نبی کريم ﷺ ته اوونيل چه ځه دالله ﷻ د بې شريك کيدو او د حضرت نبی کريم ﷺ د رسول کيدو ګواهی ورکوم ، پنځه وخته مونځ ادا کوم ، دخپل مال نه زکوة ورکوم ، او درمضان روژې نيسم.نو حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه څوك تر مرګه پورې په دې قائم وی نو هغه به نبيانو ، صديقينو ، اوشهيدانوسره داشان وی لکه څنګه چه خما دا دوه ګوتې يو ځائې دی .ليکن دا شرط چه دمور پلارنافرمان نه وی.

**دقران تالی به پيغمبرانو سره وی:-** مسند احمد کښې دی چه چا دالله تعالی لاز کښې زر آيتونه اوونيل نو هغه به انشاء الله د قيامت په ورځ نبيانو ، شهيدانو او صالحانو سره وی.

**د صحابود خوشحالئ سبب:-** ترمذی شريف کښې دی چه ريښتونې امانتدار تاجر به نبيانو ، صديقينو اوشهيدانو سره وی.(۲)ددې تولو نه زيات زيرې په هغه حديث مبارك کښې دې کوم چې د صحاح او مسانيد وغيره کښې د صحابه کرامو ﷺ يو لوئې ډلې نه په تواتر سره نقل دې چه حضرت نبی کريم ﷺ نه دهغه سړی باره کښې تپوس اوشو چه يوقوم سره محبت ساتی ليکن هغوئ سره ملاؤ شوې نه وی.حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ﴿المرءمعمن احب﴾ هر انسان به هغه چا سره وی چه چا سره ئې محبت کولو. حضرت انس فرمائی مسلمانان څومره په دې حديث مبارك سره خوشحاله شو نو دومره په بل څيز سره نه وو خوشحاله شوې.(۳)

**دانس ﷺ د نبی کريم ﷺ سره محبت :-** حضرت انس ﷺ فرمائی چه په الله قسم خما محبت حضرت نبی کريم ﷺ او حضرت ابوبکرصديق ﷺ ، حضرت عمرفاروق ﷺ سره دې ، نوخما اميددې چه الله ﷻ به ما دوی سره پورته کوی.اګر چه خما اعمال ددوی په شان نه دی ( يا الله ﷻ ! ته خمونږ زړونه هم د حضرت نبی کريم ﷺ اودحضرت نبی کريم ﷺ د ملګرو دمحبت نه ډك کړې اوزمونږ حشر هم دوی سره اوکړې ،

**د پيغمبرانودرجو ته به څوک رسيږی:-** حضرت نبی کريم ﷺ فرمائی چه جنتيان به دخپل ځان نه پورته درجو والا جنتيانو بالاخانو نه داسې ګوری لکه څنګه چه تاسو يو ځليدنه ستوری ته چه مشرق يا مغرب کښې وی هغې ته ګورئی دوی به ډيره فاصله کښې وی.صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چه يارسول الله ﷺ ادا منزلونه به خو د نبيانو عليهم السلام دپاره مخصوص وی نو مونږ هلته څنګه رسيدې شو. حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ولې نه په هغه ذات قسم چه د هغه په قدرت کښې زما روح دې دې منزلونو ته به هغه خلق رسی چه څوك په الله ﷻ باندې ايمان راوړی اورسولان ريښتونی منی.(۴)(بخاری او مسلم )؛

**په حديث اوريدو سره ديو حبشی صحابی وفات کيدل:-** يو حبشی د حضرت نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه اوکړه څه تپوس کوې ، هغه عرض اوکړ يارسول الله ﷺ ! تاسو ته الله ﷻ په رنګ ،صورت ، اونبوت کښې مونږ باندې فضيلت درکړې دې . نو که څه په هغه څيزونو ايمان راوړم په کومو چې تاسو تاسو ايمان راوړې دې ، او هغه احکام اومنم کوم چې تاسو منئ نوآيا جنت کښې څه تاسو سره يو ځائې کيدې شم ؟ حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه آؤ په هغه الله ﷻ مې دې قسم وی چه دهغه په قبضه کښې خما روح دې جنتی حبشی به جنت ته داسې داخليږی

---

(۱) صحيح مسلم كتاب الصلاة باب فضل السجود : ٤٨٩)-

(۲) احمد : ٤٣٧/٣)-

(۳) صحيح بخاری كتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ باب مناقب عمر ﷺ : ٣٦٨٨ صحيح مسلم: ٢٦٣٩)-

(۴) صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب ما جاء فى صفة الجنة : ٣٢٥٦ ، صحيح مسلم: ٢٨٣١)-

چه سپین به وی او دده د تندی پړقا او نور به د زرو میلو په مسافت باندې هم په نظر راځی.بیا نې اوفرمائیل چه ﴿ لااله‌الاالله ﴾ ویونکو سره الله ﷻ وعده ده.او ﴿ سبحان‌الله‌وبحمده ﴾ ویونکو دپاره یولاك شل زره نیکۍ لیکلې کیږی ، دې باندې یو بل صاحب اووئیل یارسول الله ﷺ ! چه هرکله داسې دی نو بیا به مونږ څنګه هلاك شو ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه یو انسان به دقیامت په ورځ داسې اعمالو سره راشی که هغه په غر باندې کیخودې شی نو په هغه به هم بوج شی ، خو یونعمت به داسې راشی چې صرف د هغه په شکر کښې به دا اعمال کم په نظر راځی.خو دا بله خبره ده چه الله ﷻ خپل رحمت کامله سره دا پټ کړی او جنت ورکړی ، او دا آیتونه نازل شو چه ﴿هَلۡ اَتٰى عَلَى الۡاِنۡسَانِ﴾ نه تر ﴿وَّمُلۡكًا كَبِيۡرًا۝﴾ پورې.نو حبشی صحابی ﷜ اووئیل یارسول الله ﷺ ! چه په جنت کښې ستاسو سترګې مبارکې کوم کوم څیزونه ګوری نو آیا هغه به څما سترګې هم ګوری ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آو.نو دې باندې هغه دومره اوژړل چه هم دې کښې وفات شو.رضی الله عنه وارضاه.حضرت ابن عمر ﷜ فرمانی چه ما اوکتل چه دهغه لاش مبارك خپله حضرت نبی کریم ﷺ قبرته کوزوی.([1])دا روایت غریب دې او دې کښې نکارت .دی او ددې سند ضعیف دې.بیا فرمانی چه داخاص دالله ﷻ عنایت او د هغه فضل دې او دهغه رحمت دې چه ددې قابل شو ، الله ﷻ ته ښه معلوم دی او هغه ښه پیژنی چه د هدایت او توفیق مستحق څوك دې.

يَاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا خُذُوۡا حِذۡرَكُمۡ
| انې هغه کسانو|چې ایمان مو راوړې دې | اونیسئ | وسلې خپلې
| انې مومنانو تاسو خپلې وسلې خان سره اونیسئ

فَانۡفِرُوۡا ثُبَاتٍ اَوِانۡفِرُوۡا جَمِيۡعًا۝ وَاِنَّ مِنۡكُمۡ لَمَنۡ
بیا اوځئ|په جدا جدا ډلو کښې |یا اوځئ ټول په جمع | اوبیشکه بعضې په تاسو کښې| خامخاهغه څوك دی
اوپه جدا جدا ډلو یا په جمع سره اوځئ|..................په تاسو کښې څینې داسې هم شته چې

لَّيُبَطِّئَنَّ ۚ فَاِنۡ اَصَابَتۡكُمۡ مُّصِيۡبَةٌ قَالَ قَدۡ اَنۡعَمَ اللّٰهُ
چې بچ کوی خان دجنګ نه| نو که اورسیږی تاسو ته| څه مصیبت | وائی چې| فضل اوکړو | الله
(دجنګ نه)خان بچ کوی|که تاسو ته څه مصیبت اورسی نو دې وائی چې الله ﷻ راباندې دېرلونې فضل| وکړو

عَلَيَّ اِذۡ لَمۡ اَكُنۡ مَّعَهُمۡ شَهِيۡدًا۝ وَلَئِنۡ اَصَابَكُمۡ فَضۡلٌ
په ما باندې| چې نۀ ووم زه| دهغوئ سره| حاضر | اوکه چرې| اورسیږی تاسو ته | فتح
چې زه ورسره موجود نۀ ووم|...... اوکه په تاسو باندې الله ﷻ (د فتحې یا د مال غنیمت) فضل

مِّنَ اللّٰهِ لَيَقُوۡلَنَّ كَاَنۡ لَّمۡ تَكُنۡۢ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهٗ مَوَدَّةٌ
د الله د طرفه| نو وائی | لکه چې نۀ وه | په منځ ستاسو کښې اوپه منځ دهغه کښې| څۀ دوستی
اوکړی|نو داسې وائی لګیا شی چې ګنی ستاسو او دهغه په مینځ کښې هډو مینه (پیژند ګلو) نه وه

[1] الطبرانی الکبیر : ۱۳۵۹۶ )-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰلَيۡتَنِيۡ كُنۡتُ مَعَهُمۡ | فَاَفُوۡزَ | فَوۡزًا | عَظِيۡمًا۞ | فَلۡيُقَاتِلۡ | |
| كاش چي\| زه وې \| دهغوئ سره\|نو كامياب شوې به ووم\|په كاميابئ\|الوئ سره\|نو پكار دي چي اوجنگيږي | | | | | |
| كاش چي زه هم ورسره (جهاد دپاره) تلې وې \| نو په لويه كاميابئ بۀ كامياب شوې ووم\| د الله په لار كښي | | | | | |
| فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ | الَّذِيۡنَ | يَشۡرُوۡنَ | الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا | بِالۡاٰخِرَةِ ؕ | وَمَنۡ يُّقَاتِلۡ |
| په لاره دالله كښي \|هغه كسان \|چي خرڅوي\| ژوند ددنيا \|په آخرت باندې\|او څوك چي جنګ اوكړي | | | | | |
| هغه كسانو دپاره جهاد كول پكار دي \| چي ددنيا ژوند د آخرت بدله كښي اخلي \| اوڅوك چي | | | | | |
| فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ | فَيُقۡتَلۡ | اَوۡ يَغۡلِبۡ | فَسَوۡفَ | نُؤۡتِيۡهِ | اَجۡرًا عَظِيۡمًا۞ |
| په لار دالله كښي \| نوكه قتل كړې شي \| يا غالب شي \| نو زر به\| وركوؤ مونږ هغه ته\| اجر لوئ | | | | | |
| دالله ﷻ په لار كښي جهاد اوكړي\| اوبيا شهيد كړې شو\| ياغلبه اومومي انو مونږ به ورته ډيرزر لوئي اجر وركړو | | | | | |

**كافرانو سره د قتال دپاره دجنګ سامان دتيارولو ساتلو حكم :-** الله ﷻ مسلمانانو ته حكم كوي چه هغوئ هر وخت خپل دبچ كيد بندوبست كوي او هر وخت وسله په لاس اوسي چه دوي باندې دښمن په آسانه غالب رانشي.دضرورت وسله ځان سره ساتئي او خپل شمير زياتوئي ، او قوت زياتوئي ، او باقاعده دجهاد دپاره په يو آواز ښه په ځوانمردئي سره راپاسئ ، ورو ورو لښكرو كښي تقسيم شئ يا د فوج په صورت كښي ، چه هر څنګه هم وي نو كله چه آواز اوشي نو زر تياريږئي.دا دمنافقانو خصلت دې چه پخپله هم دالله ﷻ د لارې نه زړه پټوي او نورو ته هم دې تلقين كوي.لكه څنګه چه عبدالله بن ابی سلول سردار دې.دمنافقانو فعل وو چه الله ﷻ دې هغوئ رسوا كړي. ددوي دا حالت دې كه د الله ﷻ رحمت سره مسلمانانو ته ددښمن مقابله كښي كاميابي اونشوه نو دښمن به په دوي غالب شي ، او دوي ته نقصان اورسيدو ، اوددوي سرې شهيدان شو ، نو دوي كور كښي ناست وي ، او په خپل هوښيارتوب فخر كوي ، او دا دالله ﷻ انعام ګڼري چه دوي په جهاد كښي شريك نه شو. خو دې بې خبرو ته معلوم نه دي چه كوم اجر و ثواب دې مجاهدينو ته ملاؤ شو دهغه ټولو نه دا بدنصيبه محروم پاتې شو. كه دوي وې نو دوي به د غازي درجه موندې وې.او د خپل صبر ثواب په دوي ته ملاؤ شوې وې.يا به دوي ته د شهادت اوچته درجه وركړې شوې وې.

او كه مجاهدينو ته دالله ﷻ فضل ملاؤ شو يعني دوي په دښمنانو باندې غالب شو ، دوي ته فتح نصيب شوه ، دوي دښمنان تس نس كړل ، او مال د غنيمت كښي دوي ته وينځې او غلامان ملاؤ شو او دوي فتح اونصرت سر ه واپس راغلل ، نو اوس دوي غصه كښي دي او ډير افسوسونه كوي ، او پښيمانه دي ، او داسې كلمات د خولې نه اوباسي چه ګويا دوي هډو ستاسو نه نه وو ، لكه چه ددوي دين بل دې.وائي چه هغوئ سره هم نه شو او مونږ ته حصه هم ملاؤ نشوه.او مونږ نه وينځې او غلامان هم لاړل.الغرض چه په دنيا كښې په دوي باندې پښيمانتيا ده.نو كوم مومنان چه دالله ﷻ لار كښي تلو ته تيار دي هغوئ ته پكار دي چه هغه خلقو سره جهاد اوكړي چه كوم ددنيا بدله كښي دين خرڅوي. خپل كفر د خپل عدم ايمان په وجه بربادوي.واورئي ! دالله ﷻ لار كښي چه څوك مجاهد وي نو هغه ته نقصان نه وي ، ددوي دواړه جهانونه ښائسته وي.كه دې قتل كړې شي نو ده ته اجر و ثواب ملاويږي ، غالب شي نو بيا هم ورته ثواب ملاويږي.

بخاري او مسلم کښې دی چه د الله ﷻ لار کښې دمجاهد ضامن پخپله الله ﷻ دې ، یا به دوی جنت ته داخل کړی ،یا چه دکوم ځائې نه هغه تلې دې هغه به ته صحيح سالم غنيمت سره واپس را شی.[1] فالحمدلله.

وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ

اوآخرڅه شوی دی په تاسو | چې نۀ جنګیږئ | په لار د الله کښې | حال دا چه کمزوری

آخر څه وجه ده چې تاسو د الله ﷻ په لار کښې جهاد نۀ کوئ | ..................حالانکه هغه کمزوری

مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا

د سړو نه | او دښځو نه | اودماشومانو نه | هغه کسان | چې وائی | ائې ربه زمونږه | راوباسې مونږ

سړی اوښځې اوماشومان چې هغوئ فریادونه کوی | او وائی چې ائې زمونږه ربه مونږ راوباسې

مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا ۚ وَاجْعَلْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ

د دې کلی نه | چې ظالمان دی| اوسیدونکی د دې| او پیدا کړې دپاره زمونږ| د خپل طرف نه

ددې کلی(مکې) نه | څکه چه ددې خلق ظالمان دی | اودخپل طرفنه مونږ دپاره څوک ملګرې اوګرزوه

وَلِيًّا ۙ وَاجْعَلْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ نَصِيرًا ﴿٧٥﴾ الَّذِينَ آمَنُوا

دوست | او پیدا کړې دپاره زمونږ| دطرفه خپل نه| مددګار | هغه کسان| چې ایمان ئې راوړې دې

اودخپل طرفه مونږ دپاره څوک مددکونکې پیدا کړه| ............ کوم خلق چې ایماندار دی

يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۖ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ

هغوئ جنګ کوی| په لار د الله کښې| اوهغه کسان | چې دکفر په لاره روان دی| هغوئ جنګ کوی

هغوئ دالله ﷻ په لار کښې جهاد کوی| ............اوکوم چې کافران دی هغوئ د

فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ فَقَاتِلُوا أَوْلِيَآءَ الشَّيْطٰنِ ۖ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ

په لار د ابلیس کښې | نو اوجنګیږئ|ددوستانو دشیطان سره| بیشکه تدبیرا دشیطان

شیطان په لار کښې جنګ کوی| نودشیطان ملګرو سره په کلکه اوجنګیږئ | بیشکه دشیطان تدبیرونه

كَانَ ضَعِيفًا ﴿٧٦﴾

دی کمزوری|

(د الله د تدبير په مقابله کښې) ډیر کمزوری دی |

قوله تعالى:: وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ :- الله ﷻ مومنانو ته رغبت ورکوی خپله لار کښې د د مظلومو مسلمانانو د مدد دپاره **جهاد فرض دې** او په هغوئ کښې ښځې او جهاد کولو او فرمائی چه هغه کمزوری او بې وسه خلق چه په مکه کښې دی او په هغوئ کښې ښځې او

[1]) صحيح بخاری كتاب فرض الخمس باب قول النبی صلی الله عليه وسلم احلت لكم الغنائم : ۳۱۲۳، صحيح مسلم: ۱۸۷٦؛ نسائی : ۳۱۲٤)-

ماشومان هم دي او هغوئ هلته تنګ شوی دي.او کافران په هغوئ نوی نوی ظلمونه کوی .اوهغوئ بالکل بې وسه دي او هغوئ آزاد کړنی او هغوئ هم دا وائی چه مو نږ ددې ځائې نه آزاد کړنی.مکې مکرمې ته دې آیت مبارك کښې قریه ونیلې شوی دی ﴿وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِّن قَرْيَتِكَ الَّتِي أَخْرَجَتْكَ﴾ دیر کلی ددې کلی نه زیات طاقتور وو ، او ددې کلی والو هغوئ اوویستل.دمکې اوسیدونکی ماته د دکافرانو دظلم شکایت کوی او ورسره خپلو دعاګانو کښې وائی چه ائې ربه د خپل طرفنه مونږ دپاره مددګار اوولی مقرر کړه.

**ابن عباس ﷺ په معذورينو کښې وو:**- صحیح بخاری کښې دی چه حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه زه او زما مور هم په دې کمزورو خلقو کښې وو[1]او یو روایت کښې دی چه دوی ﴿وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ﴾ اولوستلو او وې فرمائیل چه زما مور بی بی هم په دې خلقو کښې ده.او هغه الله ﷻ معذوره کړې ده. [2]

﴿الَّذِينَ آمَنُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۖ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ ۖ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ كَانَ ضَعِيفًا﴾

بیافرمائی چه ایماندار دالله ﷻ د فرمانبردارئی اورضا دپاره جهاد کوی.اوکفاردشیطان اطاعت کوی.نو مسلمانانو ته پکار دی چه دشیطان دوستان چه د الله ﷻ دښمنان دی ، دوی سره د زړه نه جهاد اوکړی او یقین اوساتی چه د شیطان مکروه او فریب به ددوی هیڅ اونکړی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ تَرَ | إِلَى الَّذِينَ | قِيلَ | لَهُمْ | كُفُّوا | | |
| آیا او نهٔ لیدل تا | هغه کسان | چې اووئیلې شو | هغوئ ته | چې بند کړئ | | |
| تهٔ هغه خلقو ته نه ګورې چې ورته وئیلې شوې وو | | | | | | |
| أَيْدِيَكُمْ | وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ | وَآتُوا الزَّكَاةَ | فَلَمَّا | كُتِبَ | | |
| لاسونه خپل | اوقائموئ مونځ | او ورکوئ زکاة | نو هر کله | چې فرض کړې شو | | |
| چې خپل لاسونه (دجنګ نه) بند کړئ | اومونځ قائموئ | اوزکاة ورکوئ | نواوس چې هرکله | | | |
| عَلَيْهِمُ | الْقِتَالُ | إِذَا | فَرِيقٌ | مِّنْهُمْ | يَخْشَوْنَ | النَّاسَ |
| په هغوئ باندې | جهاد | نو اوس دا حال دې چې | یوه ډله | دهغوئ نه | ویریږئ | دخلقو نه |
| هغوئ ته د جهاد حکم ورکړې شو | نوپه دوی کښې دیوې ډلې دا حال دې چې د خلقونه داسې ویریږی | | | | | |
| كَخَشْيَةِ | اللَّهِ | أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً ۚ | وَقَالُوا | رَبَّنَا | لِمَ كَتَبْتَ | عَلَيْنَا |
| پشان دویرې | دالله | یا زیاته ویره | اووائی | ائې ربه زمونږه | ولې فرض کړو تا | په مونږ |
| لکه څنګه چې دالله نه ویره پکار ده | بلکه ددې نه هم زیات ویریږی | او وائی چې ائې زمونږ ربه په مونږ دې | | | | |
| الْقِتَالَ ۚ | لَوْلَا أَخَّرْتَنَا | إِلَىٰ أَجَلٍ | قَرِيبٍ ۗ | قُلْ | مَتَاعُ الدُّنْيَا | |
| جهاد | ولې دې روستو نهٔ کړومونږه | دنیتې | نزدې پورې | ورته اووایه | سامان د ژوند ددنیا | |
| ولې جهاد فرض کړو | ولې دې مونږ ته نور مهلت رانکړو | (ائې پیغمبره ﷺ) تهٔ ورته اووایه چې ددنیا ژوند | | | | |

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ( وما لکم لا تقاتلون ...) : ٤٥٨٧)-
[2] صحیح بخاری ایضا : ٤٥٨٨)-

قَلِيْلٌ ۚ وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى ۫ وَلَا تُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ۝

لږدي|اوآخرت ډیر ښهٔ دي|دپاره دهغه چا|چي ویریږي|اونهٔ به کیږي ظلم په تاسو| د یو تار برابر هم

ډیرلږ دي | اودپرهیزګارو دپاره آخرت ډیرغوره دي |...... او په تاسو به د یو تار برابر هم ظلم نشي کولي

اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِيْ بُرُوْجٍ

هر چرته چي | یئ تاسو | رالاندي به کړي تاسولره| مرګ | اګر که | یئ تاسو| په قلاګانو

(پاتې شو مرګ) نو چه هرځائي کښي ئې مرګ به درته ضرور راځي | اګر که په مضبوطو قلاګانو کښي

مُّشَيَّدَةٍ ؕ وَاِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ وَاِنْ

مضبوطو کښي | اوکه اورسی دوئ ته | څهٔ خیر | نو وائي | دا د طرفه د الله نه دي | اوکه

محفوظ ئې| اوهر کله چي دوئ ته څه فائده اورسی | نو وائی چي دا د الله ﷻ دطرفه مقرر ده| اوکه

تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ ؕ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ

اورسی دوئ ته څه مصیبت| نووائي| دادي د طرفه ستا نه دي | اووایه چي تول| دطرفه دالله نه دی

دوئ ته څهٔ نقصان اورسی | نو دوئ وائی چي دا ستا د طرفه دي| ته ورته اووایه چي دا تول هرڅه دالله د طرفه دی

فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ حَدِيْثًا ۝ مَآ اَصَابَكَ

نوڅه شوی دی په دې| خلقو| چي نهٔ دی نږدې دې ته| چي پوهه شی| په څه خبره| څه چه اورسیدل تا ته

آخر په دوئ څه شوي دی چي په هیڅ خبره نهٔ پوهیږي | ............تا ته چي څه

مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ۫ وَمَآ اَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ ؕ

د خیر نه | نو دطرفه دالله نه دی | او څه چي اورسیدل تاته | د شر نه | نو هغه دنفس ستا نه دی

خیر رسی | نو د الله ﷻ په مهربانئ دررسی | اوچي کوم نقصان دررسی| نو هغه دخپل عمل په وجه دررسی

وَاَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ۝

اولیږلی ئې مونږ ته (ای محمده ﷺ)|دپاره دخلقو | رسول | او کافی دي الله |په حیثیت د ګواه|

اوائې پیغمبر د ﷺ ته خو مونږ ټولو خلقو ته رسول لیږلي ئې |او په دې خبره صرف دالله ګواهي کافي ده|

قوله تعالی:: اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ

د ایت پس منظر :- واقعه بیانیږي چه د اسلام په شروع کښې کله چه مسلمانانو مکه مکرمه کښې وو ، هغوئ کمزوري وو ، کم وو ، په عزتمند ښار کښې وو ، دکافرو غلبه وه ، دوی دهغوئ ښار کښې وو ، هغوئ زیات وو ، هغوئ جنګي سازوسامان سره طاقت کښې وو ، ددې وجې الله ﷻ په هغه وخت کښې مسلمانانو ته د جهاد حکم ورنکړو .بلکه دوی (مسلمانانو) ته ئې اوفرمائیل چه دوی دې دکافرانو سزاګانې برداشت کوی ، د هغوئ مخالفت دې برداشت کوی، دهغوئ ظلمونه دې زغمی ، دالله ﷻ د طرفنه چه کوم احکام نازل شوی دی په هغې دې عمل کوی ، مونځ دې ادا کوی ، زکوة دې ورکوی

اګر چه دوی سره مال هم زيات نه وو ليکن بيا هم هغوی ته مسکينانو سره د مدد کولو او همدردئ کولو حکم شوې وو. د الله ﷻ د مصلحت تقاضا دا وه چه دوی دې کفارو سره جنګ نه کوی بلکه صبر دې کوی.بل طرفته کافرو دوی باندې ډير زيات ظلمونه کول.هر وړوکی لوئې ته به ئې سختې سزاګانې ورکولې.مسلمانان ئې ډير زيات تنګ کړی وو. ددې وجې ډير زيات برداشت سره جوش پيدا شوې وو ،او ژبې نه به ئې الفاظ وتل چه د دې روزانه روزانه مصبيتونو نه خودا بهتر ده چه په يو ځل په دوی باندې د زړه براس اوباسو ، ميدان کښې لاس په لاس معلوم کړو ، کاش چه مونږ ته الله ﷻ د جهاد حکم راکړی.ليکن اوسه پورې حکم نه وو شوې.هرکله چه دوی ته د هجرت اجازت ملاؤ شو او مسلمانانو خپل دين ، خپل زر ، خپله زمکه په الله ﷻ قربان کړل. او خپل دين اسلام سره مکې مکرمې نه لاړل ، مدينه منورې ته اورسيدل نو دلته دوی ته هر رنګ سهولت اوامن ملاؤ شو ، دمدد کولو دپاره ورته انصارمدينه ملاؤ شو. ، تعداد ئې زيات شو ، قوت او طاقت ئې څه قدرې زيات شو ، نو اوس د الله ﷻ طرفنه دوی ته اجازت ملاؤ شو چه تاسو سره څوک جهادکوی نو هغوئ سره جهاد کونئ. بعضې خلق ويريدل ، ميدان جنګ کښې د قتل کيدو نظاره ، دښځو د کونډيدو خيال ، دبچو د يتيم کيدو ويره ،ددوی مخکښې وه.په ويره کښې ئې اووئيل چه اې الله ﷻ جهاد دې ولې اوس فرض کړو ،لږ خو به دې مهلت راکړې وې.

هم دا مضمون نورو آيتونو کښې دا شان بيان شوې دې چه﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُورَةٌ﴾مختصر دا چه ايماندار وائی چه يو سورت ولې نازل نه شو. هرکله چه څه سورت نازل شی او په هغې کښې د جهاد ذکر وی نو د بيمار زړه خلق وائی او په غصه کښې وائی او دمرده ګټانو په شان سترګې بندې کړې ، په دوئ افسوس دې. حضرت عبدالرحمان بن عوف او ددوی ملګری مکې ته حضرت نبی کريم ﷺ ته راغی او وائی چه يارسول ﷺ ا مونږ ته د کفر حالت کښې عزت حاصل وو او اوس د اسلام حالت کښې مونږ ذليله ګنړلې شو (مطلب دا وو چه د حضرت نبی کريم ﷺ حکم منل ضروری دی ، او حضرت نبی کريم ﷺ مقابلې کولو نه منع کوی چه دې سره دکافرو جرات نور هم زيات شو ، او هغوئ مونږ ته ذليل وائی ، نو حضرت نبی کريم ﷺ مونږ ته ولې د مقابلې کولو اجازت نه راکوی ).ليکن حضرت نبی کريم ﷺ جواب ورکړو چه ماته دالله ﷻ هم دا حکم دې چه مونږ معافی اوکړو او خبردار کافرو سره جنګ مه کونئ.بيا چه کله مدينې منورې ته ئې هجرت اوکړو نودلته د جهاد احکام نازل شو خوخلق روستو شو ، نو دې باندې دا آيت مبارك نازل شو (نسائی ، حاکم ، ابن مردويه ). ([1])

**ايت د کمزور مسلمانانو باره کښې دې:-** حضرت سدی رحمه الله فرمائی چه کله صرف د صلوة او زکوة حکم وو نو خواهش به ئې کولو چې جهاد فرض شی ، هر کله چه د جهاد فرضيت نازل شو نو کمزوری مسلمانان ويريدل لکه څنګه چه د الله تعالی نه ويريدل پکار دی.بلکه ددې نه هم زيات ويريدل او وې وئيل چه اې ربه ! تا په مونږ جهاد ولې فرض کړو ، ولې دې مونږ ته دمرګ وخت پورې صحيح فائده اوچتولو نه منع کړو. دوی ته جواب ملاويږی چه دنياوی فائده ناپائيدار او دې سره سره ډيره کمه ده ، خو آخرت دمتقيانو دپاره ددنيا نه ډير زيات بهتر او پاك دې.

**ايت د يهود په باره کښې دې:-** حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا آيت ديهوديانو باره کښې نازل شوې دې.جواب کښې اووئيلې شو چه د پرهيزګارو انجام ډير ښه دې.تاسو ته به ستاسو داعمالو بدله پوره پوره درکولې شي.يو نيك عمل به مو هم ضائع نکړو .دې جمله کښې دوی ته د دنيا نه بې رغبتئ دپاره وئيلې شی ، او آخرت طرفته توجه ورکولې شی او د جهاد رغبت ورکولې شی.

---

[1]) نسائی کتاب الجهاد باب وجوب الجهاد: ۳۰۸۸ وسنده صحيح )-

حضرت حسن رحمه الله فرمائي چه الله ﷻ دې په هغه بنده رحم اوکړی چه هغه دنیا کښې داسې مشغول وی چه ټوله دنیا اول نه تر آخره پورې داشان شې لکه اوده سړې چه خپل خوب کښې یو خوبن ځیز اوګوری لیکن دې چه کله راویښ شی نو ده ته معلومه شی چه هېڅ نه وو.

**د دنیا په باره کښې اشعار:-** د ابو مصهر رحمه الله داکلام څومره ښکلې دې :

ولاخیر فی الدنیا لمن لم یکن له — من الله فی دار المقام نصیب
فان تعجب الدنیا رجالا فانها — متاع قلیل والزوال قریب

**ترجمه:** دهغه سړی دپاره دنیا دښیګړې نه بالکل خالی ده. اوده ته په صبا آخرت کښې هیڅ حصه نه ملاویږی.اګرچه دنیا لیدلو سره بعضې خلق تعجب کوی.خو په حقیقت کښې دا لږه غوندې فائده ده اوهغه هم ډیره زر فنا کیدونکې ده.

**قوله تعالی:** ﴿اَیْنَ مَا تَكُوْنُوْا یُدْرِكْكُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِیْ بُرُوْجٍ مُّشَیَّدَةٍ ۗ وَاِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ یَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَیِّئَةٌ یَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ ۗ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۗ فَمَالِ هٰۤؤُلَآءِ الْقَوْمِ لَا یَكَادُوْنَ یَفْقَهُوْنَ حَدِیْثًا﴾

**دمرګ نه خلاصی نشته:-** بیاارشادباری تعالی دې چه آخر به هر یو د مرګ مزه څکی ، هیڅ یو ذریعې سره هیڅوک نشی بچ کیدې،لکه فرمان دې چه ﴿كُلُّ مَنْ عَلَیْهَا فَانٍ﴾ څومره مخلوق چه په زمکه دی ټول به فنا کیږی.او بل ځائې کښې ارشاد دې ﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ﴾ هر یو ساه لرونکې مړکیدونکې دې.بل ځائې فرمائي ﴿وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ﴾ ستاسو نه مخکښې خلقو کښې مونږ د هیچا دپاره همیشه ژوند نه وو مقرر کړې.مقصد دادې که څوک جهاد کوی او که نه کوی د الله تعالی نه سوا هر څوک به دمرګ مزه څکی.هر یو دپاره یو وخت مقرر دې او دهر یو د مرګ ځائې مقرر دې.

**دخالدبن ولید رضی الله عنه هغه چاته نصیحت چې جهاد نه ویریږی:-** حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه چه کله بیمار وو نو فرمائیل ئې چه قسم په الله ﷻ فلانی فلانی ځائې غرض په سوونو جنګونو کښې ما حصه واخسته ، ثابت قدمئ خوانمردئ او بهادرئ سره مې جهاد اوکړو.راشئ اوګورئ څما د بدن هېڅ یوه حصه هم داسې نه ده چه په هغې باندې د نیزې داغ نه وی.یا په غشی نه وی لګیدلې یا په توره یا په بله وسله نه وی لګیدلې.لیکن څمامرګ میدان جنګ کښې نه وو لیکلې شوی او اوس اوګورئ څه په خپل کټ باندې مرم ، چرته دی هغه خلق چه دجهاد نه مخ اړوی ، هغوئ دې څما نه سبق زده کړی.

**مرګ یو اټل حقیقت دې :-** بیا فرمائي چه د مرګ پنجې نه تاسو لره اوچتې ، مضبوطې او محفوظ قلعه ګانې هم نشی خلاصولې.

**دبروج یوضعیف تفسیر:-** بعضو وئیلی دی چه ددې نه مراد آسمان او برج دی ، لیکن دا قول ضعیف دې.صحیح هم داده چه مراد ترې محفوظ مقامات دی یعنی د مرګ نه که هر څومره حفاظت اوکړې شی لیکن مرګ به په خپل وخت راځی او دخپل وخت نه مخکښې کیږی.

دزهیر شعردې چه مرګ نه تښتیدو والا که آسمان نه پورې هم اولړی نو ده ته هیڅ نفع نه شی ورکولې

**په مشید،مشدد اوغیرمشدد کښې فرق:-** یو قول دې چه ﴿ مشیدة بتشدید اومشید ﴾ بغیر تشدید نه یو معنی کښې دی.اوبعضې دې دواړو کښې د فرق قائل دی.د اول معنی مطول او د دویم معنی مزین یعنی لاس لګولو سره.

**د جولا د لاسه د مرګ یوه عجیبه قصه:-** ابن جریر او ابن ابی حاتم کښې په دې موقع د یو مطول قصه حضرت مجاهد رحمه الله نه مروی ده. (۱) پخوا زمانه کښې یو حامله ښځه وه. هرکله چه ددې درد شروع شو

---

(۱) داااثر اسرائیلیاتو نه دې والله اعلم-

نو ددې ماشومه پیدا شوه نو دې خپلې نوکرۍ ته اوونیل چه لاړه شه او اور راوړه ، هغه بهر اووتله او دې کتل نو په دروازه باندې یو سړې ولاړ دې اوتپوس کوی چه څه اوشو هلك که جینۍ؟ هغې ورته اوونیل چه جینۍ شوې ده. نوهغه ورته اونیل چه دا جینۍ به سلو سړو سره زنا کوی اوبیا دې سړه چه دا کوم سړې نوکر دې هغه سره به نکاح کوی اوددوی مرګ سبب به یو جولا وی.دا سړې هم ددې خانې نه واپس راغلو او راتلو سره ئې ددې جینۍ خیټه یو چړې سره اوڅیرله ، اودا مړه اوګڼړله او دهغه خائې نه په تیښته لاړو. ددې مور چه دا اوکتل نو د خپلې لور خیټه ئې ټانکې کړه او ددې علاج ئې شروع کړو ، او دا جینۍ ښه شوه ، او پدې یو موده تیره شوه او دا جینۍ بالغه شوه. اودا جنیۍ ډیره ښکلې وه. په غلطو کښې اخته شوه. بل طرفته نوکر د سمندر په لار چرته تلې وو او کار ئې شروع کړو او ډیره پیسه ئې پیدا کړه ، ده هغه ټول مال خان سره دې خپل وطن ته راړو.ده یو بوډئی ښځه راوغوښتله او هغې ته ئې اونیل چه څه واده کول غواړم.په کلی چه کومه ښکلې ښځه وی هغې سره څما واده اوکړه.دا ښځه لاړه او ټول ښار کښې ددې جینۍ نه بله ښکلې جینۍ نه وه.دې هم دا پیغام ورکړو ، هغې منظور کړواو نکاح اوشوه. اودا جینۍ دده کور ته راغله. دواړو ښځې خاوند کښې ډیر محبت وو.

یو ورځ ذکر کښې دې ښځې دده نه تپوس اوکړو چه ته څوك ئې او چرته نه راغلې ئې.اودلته څنګه راغلې ئې.وغیره وغیره.ده ورته خپله ټوله واقعه بیان کړه چه څه دلته دیوښځې غلام اوم.اوددې لور سره مې دا حرکت کولو نه پس اوتښتیدم.او اوس دومره کلونو پس دلته راغلې یم.دې ورته اوونیل چه تادچا خیټه څیرې کړې وه څه هم هغه یم ، او دې ورته هغه خپل زخم اوخودلو. نوبیا هغه ته یقین اوشو نو ده ورته اوونیل چه ښه ده ما ته دې سره داهم معلوم شو ، اوهغه دا چه تا به سلو سړو سره زنا کړې ده. هغې اونیل چه دا صحیح دی داکار ما کړې دې لیکن شمیر ماته یاد نه دې.هغې اوونیل چه ماته ستا باره کښې یو بله خبره هم معلومه شوه.او ستا د مرګ سبب چه ستا دمرګ سبب به یو جولا وی.خو بیا هم څما تاسره ډیر زیات محبت دې.څه به ستا دپاره یو اوچت محل جوړ کړم.ته به په هغې کښې اوسه چه تاته جولاګان وغیره نشی درتلې. نو هغه یو داسې محل تیار کړو او دا ښځه په هغې کښې اوسیده. څه موده پس یو ورځ دواړه ښځه خاوند ناست وو ، چه په دې کښې د وی په چت جولا اولیدو.ددې کتلو سره دې سړی اوونیل چه اوګوره نن دا جولا ښکاره شو.ښځې اوونیل چه دا څما دپاره جان لیوا دې ؟ هرکله چه داسې ده نو څه دا مړکړم.غلامانو ته ئې حکم اوکړو چه دا ژوندې اونیسئ او ما ته ئې راوړئ.هغوئ هغه اونیولو او په زمکه کښې ئې کیخودلو او په دې ئې پښه کیخوه چه دا مړ کړی.هغه ئې مړ کړو. دهغې نه چه کوم ګند راووتلو نود هغې یو قطره ددې د ګوتې او نوك ترمینځه پریوتله او ددې د زهر اثر په دې اوشو او ګوته ئې توره شوه او ددې نه آخر مړه هم شوه.

حضرت عثمان ﷺ باندې چه کله باغیانو حمله اوکړه نو حضرت عثمان ﷺ د حضرت محمد ﷺ د امت دخیر خواهئ او ددوی د اتفاق دپاره دوه اشعار اوونیل ، چه دهغې مطلب داهم دې چه دمرګ نه بچ کیدو دپاره څه څیز هیڅ او هیڅ قوت نشته دې.

**د ښځو د بې عقلئ او بې وفائې عجیبه واقعه:-** دحضر بادشاه ساطرون لره چه دکسری سابورذولاکتاف قتل کړې وو هغه واقعه مونږ دلته بیانوو.ابن هشام کښې دی چه کله سابور عراق کښې وو نو هغه زمانه کښې دې علاقه باندې ساطرون حمله کړې وه. ددې جواب کښې چه کله ده حمله اوکړه نو هغه قلعه بند شو. هغه یو کال پورې محاصره اوکړه لیکن قلعه فتح نه شوه.

یو ورځ د ساطرون لور نضیره دخپل پلار قلعه کښې ګشت کولو چه په دې کښې ددې نظر په سابور پریوتلو. سابور په هغه وخت کښې ډیر په شاهانه لباس او ریښمی لباس او تاج شاهی کښې وو. د نضیره زړه کښې خیال راغلو چه ده سره څما واده اوشی نو ډیره به ښه وی. نو دې ورته خفیه پیغامونه

لیږل شروع کړل اودا وعده اوشوه که دا جینۍ ددې قلعې په فتح کولو کښې سابور سره مدد اوکړي نو سابور به دې سره نکاح اوکړي. ددې پلار ساطرون شرابی وو. ټوله شپه به نشه کښې وو. دده لور دې موقعې نه فائده واخسته او خپل پلار ني ټوله شپه په نشه کښې مدهوش اوساتلو او دده تکیه لاندې نه ني د دروازې چابیانې واخستې.او د خپل یو بهروسې والا غلام په ذریعه ني سابور ته اورسولې.او د دې مدد سره هغه دروازه بیرته کړه.اوښار کښې ني قتل عام اوکړو.او په دې ښار قابض شو. دا هم ونیلې شوی دی چه په دې قلعه کښې یو جادو وو چه تر کومې هغه جادو مات نه کړې شی نو ددې قلعې فتح کول ناممکن وو ، دې جینۍ هغه ته ددې جادود ختمولو طریقه اوخودله چه یو زړه کونتره واخلئ او ددې پښې د پیغلې د ړومبی حیض وینې سره ګنده کړې شی ، بیا دې دا کونتره پرېښودې شی اوکله چه دا د قلعې په دیوال کینی نو د قلعې نه به دجادواثر ختم شی اودقلعې پاټک به بیرته شی. نو سابور هم داسې اوکړل او قلعه فتح شوه او ساطرون ني قتل کړو او ټول خلق ختم شول او ټول ښار ني ویران کړو او دا جینۍ ني خان سره بوتله.اودې سره ني نکاح اوکړه.یو شپه چه دا جینۍ نضیره په خپله بستره ملاسته وه ، دې ته خوب نه ورتلو ، بې چینه وه او اوړیده راوړیده ، نوسابور ترې تپوس اوکړو چه څه خبره ده.دې اوونیل چه شاید بستره کښې څه دی چه ددې په وجه ماته خوب نه رازی.شمع بله کړې شوه او بستره راغونده کړې شوه. نو ددې نه دآس یو پاڼړه راوتله. سابور په دې نزاکت حیران شو چه د دومره ورې پاڼړې په وجه دې ته خوب نه ورځي.تپوس ني اوکړو چه ستا پلار به تا دپاره څه کول.هغې اوونیل چه صرف نرمه د ریښمو بستره به وه ، صرف د باریك ریښمو لباس به وو ، صرف د نلو ګوده به مې خوړه او صرف انګوری شراب به مې څکل.دا انتظام خما پلار خما دپاره کړې وو.دا وه هم داسې چه ددې دپنډئی ګوده هم په نظر راتله.

دې خبرو خبرو کښې سابور باندې یو بل رنګ اوختو.اوهغه اوونیل چه کوم پلار ته داسې په ناز ونعم اوپاللې نوهغه سره تا دا څه سلوك اوکړو چه هغه دې خما په لاس قتل کړو او دهغه ملك او تاج دې برباد کړو او اوس ستا نه څه امید ساتل بېکار دی.الله ﷻ ته معلوم چه ماسره به څه کوی.نو هم په هغه وخت کښې ني حکم اوکړو چه دا د سر د ویښتو نه یو آس سره اوتړنی او آس نه واکې اوباسئ ،نو هم داسې اوکړې شو او آس ویرولې شو او هغه اوتښتیدو او دا ني په زمکه راښکله اوددې ښځې بدن ذره ذره شو. دا واقعه عربو په خپلو نظمونو کښې هم بیان کړې ده.

بیا فرمائی چه کله دوی ته ښه سبزی ، ښه میوې او کرکیله ملاوه شی نو وائی چه دا دالله ﷻ د طرفه دی.او که قحط پرې راشی ، روزئ کښې پرې تنګی راشی ، او مرګ او د اولادکمې پرې راشی او کرکیله اوباغونه ني خراب شی نو وائی چه داد نبی د تابعدارئی په وجه دی. دادمسلمانئ په وجه دی. او دینداره کیدو په وجه.فرعونیانو به هم دغه شان بدو کښې دحضرت عیسی ؑ او مسلمانانوپحقله به بدګمانی کوله. لکه قران پاك کښې بل ځائې کښې ذکر دی ، یو آیت کښې دی چه ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللهَ عَلٰى حَرْفٍ﴾ یعنی بعضې خلق داسې هم دی چه په یو غاړه ولاړ وی او دالله ﷻ عبادت کوی. یعنی که دوی ته څه خیر اورسی نو خوشحالیږی. او که څه مصیبت ورته اورسی نو زر التبه شی ، دا هغه خلق دی چه په دواړو جهانونو کښې برباد دی.نو دلته هم دمنافقانو بدی بیانیږی چه په ظاهره مسلمانان دی او په زړه کښې کوږه دی او دوی نه چه کله څه نقصان اورسی نو دوی شور جوړکړی او وائی چه دا داسلام په وجه مونږ ته نقصان اورسیدو.

**د حسنة تفسیر**:- حضرت سدی رحمه الله فرمانی چه ﴿حَسَنَةٌ﴾ نه مراد دلته باران کیدل ، څناورو کښې زیاتوالې ، د بچو زیاتوالې ، خوشحالی راتلل ، وغیره دی.که داسې اوشی نو وائی چه دا ټول د الله د طرفه دی او که ددې خلاف اوشی نو وائی چه ددې بې برکتئ سبب رسول الله ﷺ دې او وائی چه دا ستا

د طرفه دی. يعنې مونږ دخپلو مشرانو لار پرېښوده او ستا تابعداري مو اختيار کړه نو په دې وجه مونږ په دې کښې راګيرشو. نو الله ﷻ ددې ناپاك قول او غلطې عقيدې ترديد کوی او فرمائی چه دا ټول هر څه دالله ﷻ د طرفه دی. دهغه قضا په هر نيك او بد، فاسق او فاجراومومن او کافر ټولو باندې ده. نيکی او بدی د هغه لوئې ذات د طرفه ده.

قوله تعالى: ﴿وَإِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَذِهِ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَذِهِ مِنْ عِنْدِكَ قُلْ كُلٌّ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ فَمَالِ هَؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا﴾

بيا ددوی دهغه قول هم ترديد کوی چه کوم د شك شبهې ، کم علمئ ، بې وقوفئ ،جهالت او ظلم په وجه دوی کوی فرمائی چه په دوی څه شوی دی چه په خبره نه پوهيږی

**د شيخينو په بوه مسئله کښې اختلاف:-** يو غريب حديث مبارك کښې د ﴿كل من عندالله﴾ متعلق دی هغه واورئ. بزار کښې دی چه مونږ حضرت نبی کريم ﷺ سره ناست وو چه په دې کښې څه خلقو سره حضرت ابوبکرصديق ﷛ ، اوحضرت عمرفاروق ﷛ د دوی آوازونه اوچتيدل. او حضرت نبی کريم ﷺ ته نزدې راغلل او بيا دواړه صاحبان کيناستل. نو حضرت نبی کريم ﷺ ترې تپوس اوکړو چه دا تيزې تيزې خبرې مو ولې کولې. يو سړی اووئيل چه يارسول الله ﷺ ! حضرت ابوبکرصديق ﷛ خو وئيل چه نيکئ او ښيګړې دالله ﷻ د طرفه دی. او بدئ او تکليفونه څمونږ د طرفه دی. حضرت نبی کريم ﷺ حضرت عمر فاروق ﷛ نه تپوس اوکړو چه تا څه وئيل. حضرت عمر فاروق ﷛ اوئيل چه دواړه خبرې دالله ﷻ د طرفه دی. حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه هم دا بحث دحضرت جبريل ﷺ او حضرت ميکائيل ﷺ په مينځ کښې شوې وو. ميکائيل به هم هغه وئيل چه کوم حضرت ابوبکرصديق ﷛ وائی او حضرت جبريل ﷺ به هغه وئيل چه څه ائې عمر فاروق ته وائې. نو هرکله چه آسمان والو کښې اختلاف دې نو زمکې والو کښې به خامخا اختلاف وی. نو آخر د حضرت اسرافيل ﷺ د طرفه فيصله اوشوه او هغوئ فيصله اوکړه چه حسنات او سيئات دواړه دالله ﷻ د طرفه دی .بيا حضرت نبی کريم ﷺ دواړو بزرګانو طرفته متوجه شو او وې فرمائيل چه څما فيصله واورئ اويادساتئ که الله ﷻ خپله نافرمانئ کول غوښتلې نوابليس به نې نه پيدا کولو. ليکن شيخ الاسلام امام تقی الدين ابوالعباس ابن تيميه ﷫ فرمائی چه : داحديث موضوع دې او دټولو محدثينو په دې اتفاق دې چه دا روايت ضعيف دې.

قوله تعالى: ﴿مَا أَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللَّهِ وَمَا أَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَفْسِكَ﴾

**خير دالله د طرفه او د شرسبب زمونږ د طرفه دی:-** بيا الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته خطاب کوی خو مراد ترې عموم دی يعنی ټولو ته خطاب دې چه تاسو ته څه نيکی رسی نو هغه دالله ﷻ رحم او لطف دې. او چه کومه بدی درسی نو دا پخپله ستاسو د اعمالو نتيجه ده .لکه بل آيت مبارك کښې چه دی چه ﴿وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ﴾ چه تاسو ته کوم مصيبت درسی نو هغه ستاسو دبعضو عملونو په وجه دې او الله ﷻ خو د ډيرو بدعملونو نه تاسوته معافی کوی.

**د راروانې جملې تشريح:-** ﴿فَمِنْ نَفْسِكَ﴾ نه مراد سبب د ګناه دې. يعنی شامت داعمالو. حضرت نبی کريم ﷺ نه منقول دی چه حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم يو سړی ټول بدن يو لرګی سره رانښکلی شی يا دده قدم اوخوئيږی يا ده ته څه لږ شان محنت اومشقت اورسی او په دې سره په ده خوله راشی نو هغه هم په څه نه څه ګناه سره وی ،او هسې خو الله ﷻ د ډيرو ګناهونو نه معافی کوی. هغه ډير زيات دی.[1] ددې مرسل حديث مضمون يو متصل حديث مبارك کښې هم دې .

---

[1]) الطبری : ۹۹۷۵ ))-

**په تکلیف سره ګناهونه معاف کیدل:-** حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه په هغه ذات مې دې قسم وی چه دهغه په قبضه کښې خما روح دې ، چه کله یو ایماندار ته یو تکلیف اورسی تردې چه دده بدن کښې یو ازغې هم ننوځي نو ددې په وجه الله ﷻ دده ګناهونه معاف کوی .([1]) ابوصالح رحمه الله فرمائی چه ددې آیت مطلب دادې چه تاسو ته کوم مصیبت دررسي نو دهغې سبب ستاسو ګناه ده ، خوددې مقدر کولو والا الله تعالی دې.حضرت مطرف بن عبدالله رحمه الله فرمائی چه تاسو دتقدیر باره کښې څه غوارئ ، نوتاسو دپاره د سورة نساء آیت مبارك كافى نه دې.بیا ئې دا آیت مبارك اولوستلو چه په الله ﷻ قسم خلق الله ﷻ ته نه دی سپارلې شوی ، دوی ته حکم شوې دې ، او دې الله ﷻ طرفته به دوی واپس کیږی.دا قول ډیر قوی اومضبوط دې.او دقدریه او جبریه پوره تردید کوی ، تفسیر ددې دبحث موضوع نه دې.

قوله تعالى: ﴿وَأَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا ۖ وَكَفٰى بِاللهِ شَهِيْدًا﴾

بیا فرمائی چه ائې نبی ﷺ ا ستا کار د شریعت تبلیغ کول دی.د الله ﷻ د رضامندئ او د هغه کارونونه نه خلق منع کول دی چې دکومو نه ممانعت شوې دې.او خلقو ته هغه احکام رسول دی چې دکومو درسولو حکم شوې دې.د الله ﷻ ګواهی کافی ده.هغه ته رسول جوړ کړې ئې دغه شان هم دهغه ګواهی په دې خبره هم کافی ده چه تا تبلیغ اوکړو ، ستا اوددوی ترمینځه چه څه اوشو نو هغه پاك ذات په هغې کښې خبر دې.دوی چه تاسوسره کومه دښمنی او کبر کوی نو هغه ذات په هغې هم خبردار دې.

مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللهَ ۚ وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَاۤ اَرْسَلْنٰكَ

چاچې تابعداری اوکړه درسول| نو په اصل کښې هغه تابعداری اوکړه دالله| اوچاچه مخ واړولو|نونه ئې لیږلې مونږ ته

چاچې درسول تابعداری اوکړله | نوهغه دالله ﷻ تابعداری اوکړله |اوچا چې مخ اوګرځولو| نو ته خو مونږ

عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ۞ وَيَقُوْلُوْنَ طَاعَةٌ ۫ فَاِذَا بَرَزُوْا مِنْ عِنْدِكَ

په دوئ باندې|محافظ| اووائی دوئ | مونږ تابعدار یو | خوکله چې | رااوزی دوئ| د مجلس ستانه

په دوئ نګران نه ئې مقرر کړې| اودوئ وائی چې مونږ ستا تابعداری کوو|خوچې ستادمجلس نه پورته شی

بَيَّتَ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ غَيْرَ الَّذِيْ تَقُوْلُ ۭ وَاللهُ يَكْتُبُ

نو دشپې مشورې کوی | یوه ډله | ددوئ نه | خلاف د هغه خبرو | چې ته ئې وائې | اوالله | لیکی

نویوه ډله په کښې داشان شته| چې دشپې مجلس جوړوی |او ستا د خبرې خلاف مشورې کوی|اوالله ﷻ

مَا يُبَيِّتُوْنَ ۚ فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ ۭ وَكَفٰى بِاللهِ

هغه خبری چې دشپې ئې کوی دوئ|نو پروا مه کوه د دوئ|او بروسه کوه|په الله باندې | اوکافی دې الله

دهغوئ تولې پټې مشورې لیکی | نوددوئ پرواه مه| اوپه الله ﷻ بهروسه کوه | او الله د کارسازئ

وَكِيْلًا ۞

کارساز |

دپاره کافی دې |

---

[1]) صحیح بخاری کتاب المرضی باب ما جاء فی کفارة المرض : ٥٦٤١ ، صحیح مسلم: ٢٥٧٣)-

قوله تعالى: ﴿مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ﴾

**د حضرت نبی کریم ﷺ اطاعت د الله تعالى اطاعت دي:-** الله تعالى فرمائی چه څما بنده او رسول حضرت محمد ﷺ اطاعت صحیح معنو کښې څما اطاعت دي. د حضرت نبی کریم ﷺ فرمان حقیقت کښې څما فرمان دي. حضرت نبی کریم ﷺ دخپل طرفنه هیڅ نه وائی. چه څه فرمائی هغه څما د طرفنه ورته وحی کیږي. حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه څوك څما تابعداری کوی هغه دالله تعالى تابعداری کوی. او چا چه څما نافرمانی اوکړه. نو هغه دالله ﷻ نافرمانی اوکړه. او چه چا څما نافرمانی اوکړه نو هغه دالله ﷻ نافرمانی اوکړه. اوچاچه دامیر اطاعت اوکړو نو هغه څما اطاعت اوکړو اوچه چا د امیر نافرمانی اوکړه نو هغه څمانافرمانی اوکړه. دا حدیث مبارك مسلم او بخاری شریف کښې دي.[1]

قوله تعالى: ﴿وَمَنْ تَوَلَّىٰ فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا﴾

بیافرمائی چه ائې نبی ﷺ! اکوم خلق چه ګناه کوی اوبې غمه کیني نو دهغوئ وبال په تاسو نشته دې. تاسو باندې صرف رسول دی. نیك نصیب چه دا اومنی نو نجات به ورته ملاؤ شی او اجر به ورته ملاؤ شی. خو ددې نیکو ثواب به حضرت نبی کریم ﷺ ته هم ملاویږی. ځکه چه اصل کښې ددې لارې راهبر، ددې نیکئ معلم حضرت نبی کریم ﷺ دي او چه څوك ئې او نه منی، او عمل پرې اونکړی نو هغوئ به ډیر په نقصان کښې کوی. بدنصیب به وی. ددوی دګناهونو بوج به هم په دوی وی. ددوی ګناه حضرت نبی کریم ﷺ باندې نه ده. ځکه چه تاسو ددوی پوهولو او حق لار خودلو کښې هیڅ کمې نه دې کړې. حدیث مبارك کښې دی چه د الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ تابعداری کونکې په هدایت دې. او د الله او د رسول ﷺ نافرمان خپل نفس ته نقصان رسونکې دې.[2]

قوله تعالى: ﴿وَيَقُولُونَ طَاعَةٌ فَإِذَا بَرَزُوا مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ ۖ وَاللَّهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُونَ﴾

بیا دمنافقانو حال بیانوی چه په ظاهری طور خو د اطاعت او موافقت اظهار کوی. خو کله چه د نظرونو نه لرې شی. او خپل خانې ته اورسی نو داسې شی لکه چه دوی هډو خبر نه وو. چه څه دلته وو دهغې بالکل برعکس دشپو پټ پټ ګرزی.

حالانکه الله ﷻ د پټو او ښکاره کو نه ښه خبر دې. دهغه مقررې د زمکې فرښتې ددوی ټول کړه وړه، اوټولې خبرې، ددوی اعمال نامې هر څه لیکی. نو دوی لره ویروی چه دا څه بې هوده حرکت دې. هغه ذات خو تاسو پیداکړنی. هغه ذات نستاسو هیڅ خبره نه شی پټیدې. دا چه تاسو ظاهر او باطن یو شان نه ساتئ ستاسو ددې ظاهر او باطن به سزا به هغه تاسو سزا درکوی.

اوبل آیت کښې هم دمنافقانو دخصلت بیان دې الفاظو سره فرمائی چه ﴿وَيَقُولُونَ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالرَّسُولِ﴾

قوله تعالى: ﴿فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا﴾

بیا خپل نبی ﷺ ته حکم کوی چه تاسو دوی ته معافی اوکړنی او ددوی خطاګانې معاف کړنی، ددوی حال د دوی نوم سره نورو ته مه وانې، ددوی نه بالکل بې ویرې اوسئ، الله ﷻ باندې بهروسه اوساتئ، او چه څوك هغه پاك ذات طرفته رجوع اوکړی نو هغه پاك ذات دهغه دپاره کافی دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ | الْقُرْآنَ ۚ | وَلَوْ كَانَ | مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللَّهِ |
| آیا نو نهٔ کوی غور دوی | په قرآن | او که چرته وي (دا قرآن) | د طرفه دغیر الله نه |
| آیا دوی قرآن پاک ته فکر نه کوی | | که دا کتاب د الله نه سوا د بل چا د طرفه وي | |

[1] صحیح بخاری کتاب الاحکام باب قول الله ( اطیعوا الله واطیعوا الرسول ) ۷۱۳۷ صحیح مسلم: ۱۸۳۵ عن ابی هریرة رضی الله عنه)

[2] ابوداود کتاب الصلاة باب الرجل یخطب علی قوس :۱۰۹۷ )-

لَوَجَدُوْا فِیْهِ اخْتِلَافًا كَثِیْرًا ﴿۸۲﴾ وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ

نو موندلې به وو دوی | په دې کښې | اختلاف | ډیر | او هر کله چې راشي دوی ته | يو خبر

نو دوی به په کښې ډیر اختلاف موندلی وو | ........................ اودوی چې یو خبر واوري

مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ط وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ

دامن (اطمینان) | یاد ویرې | نو خوروی دوئ هغه | او که چرې رسولې وې دوی دغه خبر | رسول ته

که هغه دامن وی او که د ویرې | نو دوئ هغه خوروی | ............ او که دوئ دغه خبرې رسول ته

وَاِلٰٓى اُولِی الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِیْنَ

او ذمه وارو کسانو ته | ددوئ نه | نو معلوم کړې به وې دې لره | هغه کسانو

اوخپلو (مسلمانانو) مشرانو ته سپارلې وې انو په دوی کښې به د هغه کسانو په علم کښې داخبره راغلې وې چې کوم

یَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ط وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ

تحقیق کونکی دی د دغې (خبر) | ددوئ نه | او که نهٔ وې فضل دالله

د خبرې په معنی او مطلب ښه پوهیږی | ............ او که په تاسو باندې دالله فضل

عَلَیْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّیْطٰنَ اِلَّا قَلِیْلًا ﴿۸۳﴾

په تاسو | او رحمت دهغه | نو خامخا به تابعداری کړې وه تاسو دشیطان | ما سوا | د لږو نه

او رحمت نه وې | ............ نو دیوځو کسانو نه سوا به نور ټول شیطان پسې روان شوی وئ

قوله تعالی: أَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ ط

**قرآن د تعارض نه پاک کتاب دې** :- الله ﷻ خپلو بندګانو ته حکم کوی چه هغوئ دې قرآن پاك غور فکر اوتدبر سره لولی. ددې نه دې اعراض نه کوی ، ددې نه دې بې پرواهی نه کوی، ددې مضبوط مضمون ، د دې د حکمت نه ډك احکام ، اوددې په بلیغ او فصیح الفاظودې سوچ اوکړی. دې سره دا خبر ورکوی چه دا کتاب داختلافاتو، اضطراباتو اوتضاد نه پاك دې. ځکه چه دا د حکیم او حمید الله ﷻ کلام دې. هغه پاك ذات چې څنګه هغه حق دې. دغه شان دهغه کلام هم سراسر حق دې.

بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿أَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ اَمْ عَلٰى قُلُوْبٍ اَقْفَالُهَا﴾ یعنی داخلق ولې قران پاك کښې تدبر نه کوی او که ددوی په زړونو څه مضبوطې تالې لګیدلې دی.

قوله تعالی: وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ﴿۸۲﴾

بیا فرمائی که دا قران پاك دالله تعالی د طرفنه نه وې نازل شوې لکه څنګه چه دمشرکانو او منافقانو ګمان دې ، که فی الواقع داقران چادخپل طرفنه پیش کړې وو او بل څوك ددې قائل وې نوضرورت ددې خبرې وو چه دې کښې به دخلقو اختلاف وې یعنی ناممکنه ده چه انسانی کلام د اضطراب او تضاد نه سالم وی. بیا خوبه دا وې چه دې خلقو به څه نورموندې او هغوئ به څه نور. او دلته نې یو خبره اوکړه او مخکښې نې ددې نه بله خبره اوکړه. نو داسې پاك کتاب دداسې متضادو خبرو نه بچ شوې او صفا دلیل دې چه دا دالله ﷻ کلام دې.

**د پخوانو عالمانو اقرار**:- او بل ځائې کښې د پخو عالمانو قول نقل کوی. چې هغوئ وائی مونږ دې باندې ایمان راوړو، دا هرڅه خمونږ د رب د طرفه دی. یعنی محکم او متشابه ټول حق دی او ددې وجې

متشابه لره محکم طرف ته واپس کوی او هدایت مومي.او چه د کومو خلقو زړونه کاږه دی هغوئی محکم لره متشابه طرفته واپس کوی او ګمراه کیږي.هم دا وجه ده چه الله ﷻ داول قسم خلقو تعریف اوکړو او د دویم قسم خلقو ئې بدی بیان کړه.

**په قران کښې تضاد نشته:-** أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ دعمرو بن شعیب ﴿عن ابیه عن جده﴾ حدیث کښې دی چه څه اوخما روریو مجلس کښې ناست وو اودوی سره د سرو اوښانوملاویدل هم نه وو. مونږ دواړه راغلو او اوموکتل چه د حضرت نبی کریم ﷺ دروازه باندې څه صحابه کرام ؓ ولاړ دی ، مونږ ادب سره یو طرفته کښیناستو. دوی خپلو کښې دقران پاك یو آیت مبارك کښې مذاکره کوله. او څه اختلاف ئې وو. آخر خبره زیاته شوه. اوخپلوکښې ئې په زوره زوره خبرې شروع کړې.ددې آوریدو سره حضرت نبی کریم ﷺ غصه کښې بهر تشریف راوړو. اود حضرت نبی کریم ﷺ مخ مبارك دغصې نه سور وو.اوپه دوی ئې ښاورې راغورزولې ، او حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه چپ شئ ، ستاسو نه مخکښې امتونه هم په دې وجه هلاک شوی وو چه هغوئ خپلو نبیانو کښې اختلاف اوکړو. او دکتاب الله یو آیت مبارك ئې د بل آیت مبارك خلاف اوګرځولو. یادساتئ د قران پاك هیڅ یوآیت د بل آیت مبارك خلاف نه دې اونه هغه په دروغه ګڼړي.بلکه دقران یو یو آیت مبارك دبل آیت مبارك تصدیق کوی.تاسو چه په کوم یو پوهه لرئی نو په هغې عمل اوکړئی او چه په کوم نه پوهیږی نو هغه پوهې والو دپاره پریږدئی.([1])

**د تقدیر په مسئله کښې اختلاف:-** اوپه یو روایت کښې دی چه صحابه کرامو ؓ د تقدیر باره کښې بحث کولو.راوی وائی چه کاش څه په دغه مجلس کښې نه وې ناست.حضرت عبدالله بن عمرو ؓ فرمائی چه څه د ماسپخین په وخت کښې حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر ووم ،او دې کښې دوؤ سړو کښې دیو آیت مبارك باره کښې اختلاف پیدا شو ، او آوازونه ئې اوچت شو. نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مخکښې امتونه هم په دې وجه هلاك شوی وو چه هغوئ کتاب الله کښې اختلاف کړې وو.([2])(مسند احمد).

**قوله تعالی::** وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ

**بې تحقیقه خبره کول هم دروغ دی:-** بیا دا جلد باز خلق منع کوی ، چه دیو امن یا ویرې خبرې آوریدو سره بې تحقیقه مه یو طرفته کیږئ اومه بل طرفته .ځکه چې ممکن ده هغه بالکل غلطه وی.د صحیح مسلم په مقدمه کښې حدیث مبارك دې چه انسان لره هم دا دروغ کافی دی چه هغه څه واوری هغه بیان کړی ، ابوداود کښې هم دا روایت دې.([3])بخاری او مسلم کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ د قیل وقال نه منع فرمائیلې ده ([4])یعنی هغه خبرې نه چه صرف ئې آوریدلې وی او دا بغیر د تحقیق نه بیانوی.ابوداود کښې یو حدیث مبارك دې چه د انسان دا خراب فعل دې چه داسې اووائی چه خلق داسې وائی اوبیا خلق دسې خیال کوی اوداسې وائی. ([5])او صحیح حدیث کښې دی چه کوم سړې څه خبره اوکړی او هغه ګمان کوی چه دا غلطه ده نو هغه هم د دروغژنو نه یو دروغژن دې.([6])

**دحضرت عمر ؓ احتیاط:-** دلته مونږ د حضرت عمر فاورق ؓ روایت نقل کول مناسب ګڼړو چه هرکله دوی ته دا خبر اورسیدو چه حضرت نبی کریم ﷺ خپلو بیبیانو ته طلاق ورکړې دې نو حضرت

---

[1]) احمد : ۱۸۱/۲، وسنده حسن )-

[2]) احمد : ۱۸۷/۲، ابن ماجة فی المقدمة فی القدر: ۸۵ وسنده حسن )-

[3]) صحیح مسلم فی المقدمة باب النهی عن الحدیث بکل ما سمع : ۸ ابوداود : ٤٩٩٢)-

[4]) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب ما یکره من قیل وقال : ٦٤٧٣ صحیح مسلم: ١٧١٥)-

[5]) ابوداود کتاب الادب باب مافی الرجل زعموا : ٤٩٧٢ وهو صحیح )-

[6]) صحیح مسلم فی المقدمة باب وجوب الروایة عن الثقات : ١ ابن ماجة: ٣٩)-

عمرفاروق ﷺ کور نه جمات ته راغلل او دلته هم خلقو ونیل چه او طلاق ئې ورکړي دي نو خو حضرت عمر فاروق ﷺ پخپله حضرت نبی کریم ﷺ ته ورغلو او تپوس ئې تري اوکړو چه دا ریښتیا دي چه تاسو خپلو بيبيانو ته طلاق ورکړي دي ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه دا غلط دی.نو حضرت فاروق اعظم ﷺ دالله ﷺ لوئي بيان کړه. ([1])

صحیح مسلم کښې دي چه بیا دوی ﷺ جمات ته راغلل او د جمات په دروازه باندې اودریدل په اوچت آواز ئې اوفرمانیل چه اې خلقو ا حضرت نبی کریم ﷺ خپلو بيبيانو ته طلاق نه دي ورکړې.نو دې باندې دا آیت مبارک نازل شو. نوحضرت عمر فاروق ﷺ هغه هستی ده چه هغوئ ددې معاملې تحقيق اوکړو.([2])

قوله تعالى:- وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ

**د استنباط تعریف:-** استنباط وائی يو څيز ديو ځائي نه اومخزن نه راويستل چه کله يو سړې يو غراوکنى او دهغې لاندې نه يو څيز راوباسی نو عرب وائی چه ﴿ استنبط الرجل ﴾ بيا فرمائی که الله ﷺ تاسو باندې فضل او رحم نه وې کړې نو تاسو به د کامل ایمان نه پس تولو دشیطان تابعداری کړې وې.داسې موقعو باندې هم دا معنی وی چه تاسو تول په تولو ، نو دعربو داسې اشعار هم دی.

| |
|---|
| فَقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ ۚ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ ۖ |
| نو جنګ کوه\| په لاردالله کښې \| نه ئې مکلف ته\| مګردخان خپل \| اوتيز کړه\| مومنان |
| نو دالله ﷺ لار کښې جهاد کوه\| ته دخپل خان نه سوا دبل چا ذمه دار نه ئې \| اومومنان جهادته تيزوه |
| عَسَى اللَّهُ أَن يَكُفَّ بَأْسَ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ وَاللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا |
| لرې نه ده چې الله\|بند کړي\| زور دهغه کسانو\| چې کفر ئې کړې دې\| اوالله\| ډيرسخت دې \|په زور کښې |
| ډير زر به الله ﷺ دکافرانو زور ختم کړي \| ..................دالله ﷺ زور د تولونه سخت دې |
| وَأَشَدُّ تَنكِيلًا ۝ مَّن يَشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَكُن لَّهُ |
| اوډير سخت دې\| په سزا ورکولو کښې \| څوک چې سفارش کوی\| سفارش ښه \| نو وی به هغه لره |
| اودهغه سزا دهرچانه سخته ده \| څوک چې دنیکئ سفارش کوی هغه دپاره به |
| نَصِيبٌ مِّنْهَا ۖ وَمَن يَشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَكُن لَّهُ كِفْلٌ مِّنْهَا ۗ |
| حصه دهغې نه\| اوڅوک چې سفارش کوی\| سفارش بد \| نو وی به هغه لره\| حصه\| دهغې نه |
| د نيکئ نه حصه وی \| اوڅوک چې دبدئ سفارش کوی نو هغه د پاره به د بدئ نه حصه وی |
| وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيتًا ۝ وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ |
| اودې الله \| په هريو څيز \| قدرت لرونکې \|او هرکله چې \| اوکړې شی تاسو ته \| سلام |
| او الله ﷺ د هرڅه قدرت لری \| اوهرکله چې په تاسو سلام واچولې شی |

[1]) صحیح بخاری کتاب العلم باب التناوب فی العلم : ۸۹، صحیح مسلم: ۱٤۷۹)-
[2]) صحیح مسلم کتاب الطلاق باب فی الایلاء : ۱٤۷۹)-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَحَيُّوا | بِأَحْسَنَ مِنْهَآ | أَوْ رُدُّوهَا ط | إِنَّ اللَّهَ | كَانَ |
| نو دسلام جواب ورکړئ | په ښه طریقې سره دهغې نه | یا واپس کړئ هم هغه | بیشکه الله | دی |

نو (سلام اچونکی ته) دهغې نه بهتر جواب ورکوئ | یاکم ازکم هغه جواب ورکوئ الله ﷻ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ | حَسِيبًا ﴿٨٦﴾ | اَللَّهُ | لَآ إِلَٰهَ | إِلَّا هُوَ ط |
| د هر څیز | حساب کونکې | الله هغه دی | چې نشته لائق دعبادت هیڅوك | مګرهم هغه دی |

دهرڅیزحساب کونکې دی | الله ﷻ هغه ذات دی چې دهغه نه بغیربل معبودنشته دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَيَجْمَعَنَّكُمْ | إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ | لَا رَيْبَ | فِيهِ ط | وَمَنْ |
| خامخا به هغه راجمع کړی تاسو | ورځ دقیامت ته | چې نشته شك | په هغې کښې | او څوك دی |

تاسوټول به خامخا دقیامت په ورځ راجمع کوی | چې دهغې په راتګ کښې هیڅ شک نشته

| | | |
|---|---|---|
| أَصْدَقُ | مِنَ اللَّهِ | حَدِيثًا ﴿٨٧﴾ ع |
| ډیر ریښتینې | د الله نه | په خبرو کښې |

اوداللہ نه زیاته ریښتنې خبره دچاکیدې شی

قوله تعالى:: فَقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ

**د الله مدد مجاهدینو سره دې** :-نبی کریم ﷺ ته حکم کیږی چه پخپله دالله ﷻ لار کښې جهاد اوکړنی. اګرچه تاسو سره څوك هم دنبی کریم ﷺ سره مدد نه کوی.

**په هرصورت کښې دشمن سره مقابله کول**:- ابواسحاق رحمه الله حضرت براء بن عازب رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه یو مسلمان خانله وی او دښمنان سل وی نو آیاهغه دې دوی سره جهاد اوکړی.دوی ورته اووئیل چه آؤ.نو وې فرمائیل چه دې نه خو د قران پاك دا آیت منع کوی ، الله ﷻ فرمائی چه دخپله لاسه په هلاکت کښې خانونه مه اچوئ نو حضرت براء رضی الله عنه اوفرمائیل چه واوره ! الله ﷻ خپل نبی ﷺ نه فرمائی چه دالله ﷻ لار کښې جهاد اوکړه فقط ستا نفس مکلف کولې شی.او حکم کیږی چه مومنانوته هم ترغیب ورکوه. ( ابن ابی حاتم).مسند احمد کښې دومره زیادت دې چه مشرکانو باندې حمله کولو والا هلاکت طرفته تلونکې نه دی بلکه ددې نه مراد دالله ﷻ لار کښې خرچ کولو نه منع کونکې دې.([1])اویو روایت کښې دی چه کله دا آیت نازل شو نو حضرت نبی کریم ﷺ صحابه کرام رضی الله عنهم ته اوفرمائیل چه ماته خما رب د جهاد حکم کړې دې ([2])،نو تاسو جهاد کونی.داحدیث غریب دې.

قوله تعالى:: وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ ۖ

**د جهاد ترغیب**:- بیا فرمائی چه مومنانو ته د جهاد ترغیب ورکړه. د بدر میدان کښې حضرت نبی کریم ﷺ د مسلمانانو د صفونو ته د ترتیب ورکولو په وخت کښې اوفرمائیل چه پاسئ هغه جنت طرفته چه دهغې پلن والې د آسمان او زمکې هومره دې. ([3])

[1]) احمد : ۲۸۱/٤، وسنده حسن ددې معنی روایت صحیح بخاری. ۴۵۱۲ کښې موجود دې)-
[2]) وسنده ضیعف )-
[3]) صحیح مسلم کتاب الامارة باب ثبوت الجنة للشهید : ۱۹۰۱ )-

**مجاهدبه الله جنت ته داخلوی:-** د جهاد د ترغیب کښې ډیر احادیث دی.بخاری شریف کښې دی چه څوك په الله ﷻ باندې ایمان راوړی او مونځ قائموی او زکوة ورکوی.درمضان روژې نیسی نو په الله ﷻ حق دې چه دې جنت ته داخل کړی ، دالله ﷻ لار کښې نې جهاد کړې وی یا چه چرته پیدا شوې وی هم هلته قائم وی .خلقو اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! آیامونږ خلقو ته ددې زیرې ورنکړو ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واورئی جنت کښې سل درجې دی چه دهغې په درجو کښې دومره فاصله ده چه څومره د زمکې او آسمان ترمینځه ده،دا درجې الله ﷻ دهغو دپاره تیارې کړې دی چه څوك دهغه په لار کښې جهادکوی.نو کله چه تاسودالله ﷻ نه جنت غواړئی نوجنت الفردوس غواړئی هغه بهترین جنت دې،او دټولونه اعلی دې،ددې دپاسه د رحمان عرش دې،اوهم ددې نه دجنت ټول نهرونه راوتلی دی. (١)

**مومن به جنت ته داخلیږی:-** دمسلم یو حدیث مبارك کښې دی چه کوم کس په الله ﷻ ، په دین اسلام ،په حضرت محمد ﷺ باندې راضی وی نودهغه دپاره جنت واجب دې.حضرت ابوسعید ﷛ ددې آوریدو سره اونیل چه یارسول ﷺ دوباره اوفرمائې. حضرت نبی کریم ﷺ دوباره هم دا اوفرمائیل ، اووې فرمائیل چه یو بل عمل دې چه الله ﷻ د هغې په وجه الله ﷻ دخپل بنده سل درجې اوچتوی ، د یو درجې او بلې درجې مینځ کښې دومره فاصله ده لکه څومره چه د زمکې او آسمان ترمینځه ده. تپوس اوکړې شو چه هغه کوم یو دې ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دالله ﷻ لار کښې جهاد کول.(٢)

قوله تعالى:: عَسَى اللَّهُ أَنْ يَكُفَّ بَأْسَ الَّذِينَ كَفَرُوا

بیا فرمائی چه کله تاسو جهاد دپاره تیار شئ نو مسلمانان به ستاسو دتعلیم په وجه تیار شی.نو تاسو سره به دالله ﷻ مددشامل حال وی.الله ﷻ به دکفر زور ختم کړی.دکفارو حوصله به کمزورې شی.اودوی کښې به حوصله پاتې نشی .چه مسلمانانو سره مقابلې ته راشی.

قوله تعالى:: وَاللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنْكِيلًا

د الله ﷻ نه زیات جنگی قوت اود هغه ذات نه زیات د قوت خاوند اوسختې سزا ورنکې څوك نشته .هغه قادر ذات دې ،او هغه ذات به (کافران ) په دنیا کښې مغلوب کړی ، او هم دوی ته به په آخرت کښې عذاب ورکړی لکه بل ایت مبارک کښې دی چه (وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ الخ )، اوکه د الله خوښه شی نو دهغوئ نه به پخپله بدله واخلی.لیکن الله ﷻ هغه ذات دې چه تاسو باندې امتحان کوی.چه کوم یو کس په یو کارخیر کښې حصه واخلی نو هغه ته هم دهغه نیکئ بدله کښې ثواب ورکولې شی.او چه څوك ددې خلاف کوشش اوکړی او بد اوکړی نو دده دکوشش او نیت به هم په ده بوج وی.

قوله تعالى:: مَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَكُنْ لَهُ نَصِيبٌ مِنْهَا

**دجائز سفارش اجر:-** حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه سفارش اوکړئی اجر به بیا مومئ:الله ﷻ به دخپل نبی ﷺ په خوله دا جاری کړی.(٣)دا آیت د یو بل د سفارش باره کښې نازل شوې دې .دې مهربانی ته اوگورئی چه فرمائی چه صرف په شفاعت باندې به اجرملاویږی.که په سفارش سره کار اوشی اوکه اونشی. الله ﷻ د هرڅیز حافظ دې ، هرڅیز باندې حاضر دې ، دهر څیز حساب اخستلو والا دې ، په هرڅیز قادر دې،په هر څیز باندې همیشه دهغه نظر وی، هر یو ته روزئی ورکونې دې دهر انسان د عملونو اندازې لګونکې دی.

قوله تعالى:: وَإِذَا حُيِّيتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا

---

(١) صحيح بخارى كتاب الجهاد باب درجات المجاهدين : ٢٧٩٠)-

(٢) صحيح مسلم كتاب الامارة باب بيان ماعده الله للمجاهدين : ١٨٨٤ نسائى : ٣١٣٣)-

(٣) صحيح بخارى كتاب الزكاة باب التحريض على الصدقة : ١٤٣٢، صحيح مسلم: ٢٦٢٧)-

**سلام اچول:-** مسلمانانو ! کله چه تاسو ته یو مسلمان سلام اوکړی نو ددې سلام جواب بهترینو الفاظو سره ورکړئ، یا کم ازکم هم هغه الفاظو سره جواب ورکړئ کوم چې درته هغوی ونیلی وی.نوزیاتوالی په دې کښې مستحب دې .او برابرې فرض دې.

**د سلام درې درجې:-** ابن جریر کښې دی چه یو سړې د حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه ﴿ السلام علیك یارسول الله﴾ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ﴿ وعلیك السلام ورحمة الله﴾بیا بل کس راغلو ، او هغه اوونیل چه ﴿ السلام علیك ورحمة الله﴾ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ﴿ وعلیك السلام یارسول الله ورحمة الله وبرکاته﴾بیا یو بل کس راغلو او هغه اوونیل چه ﴿ السلام علیك یارسول الله ورحمة الله وبرکاته﴾ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ﴿ وعلیك ﴾نو هغه سړی اوونیل چه ائې دالله نبی ﷺ ! فلانی اوفلانی تاسو ته سلام اوکړو نو تاسو ﷺ جواب کښې څه زیاتی اوکړو او ما دپاره مو داسې اونکړل.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تا خمونږ دپاره باقی څه پرې نښودل.دالله ﷻ فرمان دې چه کله تاسو ته سلام اوکړې شی نو تاسو هغه شان جواب ورکوئ ، یا دهغې نه په ښه الفاظو کښې جواب ورکړئ ، د وجې مونږ هم هغه جواب درکړو. (¹)دا روایت ابن ابی حاتم کښې هم دا شان معلق مروی دې.هغه ابوبکر ابن مردویه روایت کړیدې.او ما دا مسند کښې نه دې کتلې.والله اعلم. ددې حدیث نه هم معلومه شوه چه د سلام کلماتو کښې ددې نه زیاتې نشته.که وې نو حضرت نبی کریم ﷺ به دې آخری صحابی ﷺ ته په جواب کښې ونیلې وې.

**په سلام د لسو نه دیرشو پورې نیکئ ملاویدل:-** مسند احمد کښې دی چه یو سړې حضرت نبی کریم ﷺ ته راغلو او ﴿السلام علیکم یارسول الله ﴾ ئې اوونیل اوکیناستو.حضرت نبی کریم ﷺ جواب ورکړو او وې فرمائیل چه ده ته لس نیکئ ملاؤ شوې ، او بل راغلو اوهغه اوونیل چه ﴿ السلام علیکم یارسول الله ورحمة الله ﴾ اوبیا کیناستو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ده ته شل نیکئ ملاؤ شوې.بیا دریم کس راغلو او هغه اوونیل چه ﴿ السلام علیك یارسول ورحمة الله وبرکاته ﴾ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ده ته دیرش نیکئ ملاؤ شوې. (²) امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن غریب وانی.

**سلام په چا اچول پکار دی؟:-** حضرت ابن عباس ﷺ دا آیت مبارك عام اخلی.او فرمائی چه د الله تعالی مخلوق کښې تاسوته څوك سلام اوکړی نو هغه ته جواب ورکوئ اګر چه مجوسی وی.حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه د سلام بهتر جواب ورکول خو دمسلمان دپاره دی.اوددې واپس کول د اهل ذمه دپاره دی.لیکن دې تفسیر کښې خبرې شته لکه څنګه چه پورته حدیث کښې تیر شو چه ددې نه مراد دا دې چه د هغه د سلام بهترجواب ورکړې شی ،اوکه مسلمان د سلام ټول الفاظ اووائی نو بیا دې جواب ورکولو والا هم دا واپس کړی.ذمی خلقوته پخپله سلام ورکول صحیح نه دی .اوکه درته سلام اوکړی نو جواب کښې دې هم دومره الفاظ اووانی.

**دیهودی د سلام جواب:-** بخاری او مسلم کښې دی چه کله څوك یهودی اونصرانی تاسو ته سلام اوکړی نو خیال ساتئ تاسو د دې په ځائې چې ﴿ السلام علیك﴾ اووایې.د دې په ځائې ﴿وعلیك ﴾ وایې (³)

---

¹) الطبری : ۵۰۱۰۰،۱۰، ۷)-
²) احمد : ٤٣٩/٤، ابوداود : کتاب الادب باب کیف السلام : ٥١٩٥ وسنده حسن ترمذی : ٢٦٨٩)-
³) صحیح بخاری کتاب الاستئذان باب کیف الرد علی اهل الذمة بالسلام : ٦٢٥٧، صحیح مسلم: ٢١٦٤، ابوداود: ٥٢٠٦، ترمذی : ١٦٠٣)-،

**په یهودي د سلام اچولو ممانعت:-** صحیح مسلم کښې دي چه تاسو یهودیانو او نصرانیانو ته په سلام کښې وړاندې والې مه کوئی ، او کله چه لار کښې رش وی نو هغوئ د لارې تنګ طرف ته مجبوره کوئ (۱)

**دسلام او جواب حکم:-** امام حسن بصري رحمه الله فرمائی چه سلام نفل او ددې جواب ورکول فرض دی. (۲)، اونورعلماکرام هم دا فرمائی.نو که جواب ورنکړی نو ګناهګاربه وی.ځکه چې سلام دالله ﷻ حکم دې .

**سلام اچول سنت او جواب ئې واجب دې**

**مسلک حنفي:-** داحنافو په نیز د سلام اچول سنت دی او د دې جواب ورکول په هغه الفاظو سره کوم چه سلام اچونکی ونیلی وی واجب دی مثلا هغه اووائی ﴿السلام علیکم﴾ نو د دې په جواب کښې ﴿وعلیکم﴾ ونیل واجب دی او په دې باندې اضاف کول مستحب دی یعنی چې په جواب کښې اووائی ﴿وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته﴾ **احکام** القران للعلامة ظفراحمد العثمانی رحمه الله (۲۱۲/۳۰ تا ۳۰۴).

قوله تعالی: ﴿اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ۭ﴾

بیا الله ﷻ دخپل توحید بیان کوی اوخپل الوهیت ښکاره کوی، او په دې کښې ضمني طور قسم هم خوری.ددې وجې دا دویمه جمله لام سره شروع کړې شی.چه قسم په جواب کښې راځی.نو رومبئ جمله خبردې او قسم هم دې چه الله تعالی به نزدې ټول خلق په میدان حشر کښې جمع کړی.او هلته به هریوته دهغه د عمل بدله ملاویږی.

﴿وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا﴾

دالله ﷻ نه زیات محبت کولو والا هیڅوک نشته دې.دهغه خبر دهغه وعده ، دهغه وعید ټول رینښتیا دی.هم هغه ذات معبود برحق دې اودهغه نه سوا بل مربی نشته دې.

| | | |
|---|---|---|
| فَمَا لَكُمْ | | فِي الْمُنٰفِقِيْنَ |
| نوڅه شوی دی په تاسو | | په باره دمنافقانو کښې |
| دا په تاسو باندې څه شوی دی چې د منافقانو | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِئَتَيْنِ | وَاللّٰهُ | اَرْكَسَهُمْ | بِمَا | كَسَبُوْا ؕ |
| چې دوه ډلې یئ | حالانکه الله | واپس ګرځولی دی هغوئ | په سبب دهغه عملونو | چې کړی دی هغوئ |
| باره کښې دوه ډلې شوئ | حال دادې چې الله پاک هغوئ دخپل عمل په سبب اړولی دی | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَتُرِيْدُوْنَ | اَنْ تَهْدُوْا | مَنْ | اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ | | وَمَنْ |
| آیا تاسو غواړئ | چې نیغه لار اوښایئ | هغه چاته | چې بې لارې کړې دې الله | | حالانکه هغه څوک |
| آیاتاسودا غواړئ چې هغه چاته هدایت اوکړئ څوک چه الله تعالی ګمراه کړی وی | | | | | اوڅوک چې |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يُّضْلِلِ | اللّٰهُ | فَلَنْ | تَجِدَ | لَهٗ سَبِيْلًا ﴿۸۸﴾ | وَدُّوْا لَوْ |
| چې بې لارې کړی دی | الله | نو هرګز | ته به اونه مومې | دپاره دهغه څه لار | هغوئ غواړی |
| الله ﷻ دلارې نه بې لارې کړی | نو هغه دپاره بیا ته سمه لار نشې موندې | | | ......... | هغوئ خو دا غواړی |

(۱) صحیح مسلم کتاب السلام باب النهی عن ابتداء اهل الکتاب بالسلام: ۲۱۶۷ ابوداود: ۵۲۰۵ ، ترمذی : ۱۶۰۲ (۰)-

(۲) الادب المفرد : ۱۰۴۰)-

تَكْفُرُوْنَ كَمَا كَفَرُوْا فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً

چې تاسو کافران شئ | لکه څنګه چې | هغوئ په خپله کافران دی | اوشئ تاسو او هغوئ ټول | برابر

که څنګه چې پخپله کافردی چې دغه شان تاسو هم کافران شئ | ..............چې ټول برابر شئ

فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا

نو په دې وجه تاسو مهٔ جوړ وئ | دهغوئ نه | دوستان خان له | تر دې چې | هجرت اوکړی هغوئ

نو هیڅوک ترینه خان سره مهٔ ملګری کوئ | تر دې چې د الله په لار کښې (د مکې نه مدینې ته) هجرت

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ط فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ

په لار د الله کښې | نو که مخ ئې واړولو دهجرت نه | نو اونیسئ هغوئ | او قتل کړئ هغوئ | چرته چې

اوکړی | نو که دهجرت نه ئې ډډه اوکړه | نو چه په کوم ځائې کښې یئ نو نیسئ یئ او قتلوئ یئ

وَجَدْتُّمُوْهُمْ ص وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿٨٩﴾ اِلَّا

او مومندل تاسو هغوئ | او مهٔ نیسئ | په هغوئ کښې | دوست | او نهٔ مددګار | ماسوا

.............. او په دوی کښې هیڅوک خان لره ملګرې یا مددګار مهٔ جوړوئ | البته

الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ اِلٰى قَوْمٍۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ

دهغه منافقانو نه | چې یوځائې شی | د یو قوم سره | چې په منځ ستاسو | او په منځ دهغه کښې | معاهده وی

هغه منافقان (د قتل د حکم نه بچ دی) چې داسې قوم سره یوځائې شی چې ستاسو ورسره معاهده شوې وی

اَوْ جَآءُوْكُمْ حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ اَنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ

یا راشی هغوئ تاسو ته | چې تنګې شوی وی | سینې دهغوئ | ددې خبرې نه چې | جنګ اوکړی تاسو سره

یا داسې منافقان چې تاسو ته راشی او په جنګ کولو ستومانه وی نهٔ تاسره جنګ کوی

اَوْ يُقَاتِلُوْا قَوْمَهُمْ ط وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ

یا جنګ اوکړی | د قوم خپل سره | او که | غوښتلې الله | نو خامخا به ئې غلبه ورکړې وې هغوئ ته | په تاسو

او نهٔ خپل قوم سره جنګ کوی | او که الله ﷻ غوښتلې نو دغه منافقان به ئې په تاسو مسلط کړې وې

فَلَقٰتَلُوْكُمْ ج فَاِنِ اعْتَزَلُوْكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ وَاَلْقَوْا

نو خامخا به جنګیدل تاسو سره | بیا که چرې | هغوئ پریږدی تاسو | او نهٔ کوی جنګ تاسو سره | او وړاندې ئې کړه

او تاسو سره به ئې جنګونه کول | نو که هغوئ ستاسو د مقابلې نه ډډه اوکړی | او تاسو سره جنګ نهٔ کوی

اِلَيْكُمُ السَّلَمَ لا فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيْلًا ﴿٩٠﴾

تاسو ته | صلح | پس نهٔ دې درکړې الله | حق تاسو ته | په هغوئ باندې | دلارې

او د صلحې لاس درواړاندې کړی | نو بیا الله ﷻ تاسو ته دهغوی مقابله کښې د جنګ حق نهٔ دې درکړې

سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّاْمَنُوْكُمْ

زر ده چي بيا به مومئ تاسو | نورمنافقان | چي غواړي به هغوئ | چي په امن کښې پاتې شي ستاسونه

يو بل قسم منافقان به بيامومئ چي (جنګ نۀ خوښوي) | داغواړي چي ستاسودطرفه هم په امن کښې وي

وَيَاْمَنُوْا قَوْمَهُمْ ؕ كُلَّمَا رُدُّوْٓا اِلَى الْفِتْنَةِ اُرْكِسُوْا

اوپه امن پاتې شي | دقوم خپل نه | هرکله چي | اوبللي شي هغوئ | فتني ته | نوواپس اوګرځولي شي

اودخپل قوم د طرفه هم په امن کښې وي | خو هرکله چي دشرموقع په لاس ورشي نو هغې ته ورګرځي

فِيْهَا ۚ فَاِنْ لَّمْ يَعْتَزِلُوْكُمْ وَيُلْقُوْٓا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ

په هغې کښې | نو که نۀ شول په څنګ ستاسو نه | اوواړاندې ئي نۀ کړه | تاسو ته | صلح

نو که دغه خلق ستاسره دمقابلې نه روستو نشو | ..............او صلح پيش نکړي

وَيَكُفُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ ؕ

اوبند يئ نۀ کړل | لاسونه خپل | نو اونيسئ هغوئ | اوقتل کړئ هغوئ | هرځائي کښې چي اومومئ هغوئ

اولاسونه ئي او نۀ نيول | نوچي کوم ځائي ئي بيامومئ هلته ئي رانيسئ او قتلوئ ئي

وَاُولٰٓئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿۹۱﴾

اوهغوئ ټول چي دي | ګرځولي دي مونږ | تاسودپاره | په هغوي باندې | ادليل | ښکاره |

اوهم په دې خلقوباندې مونږ تاسو ته د لاس پورته کولو څرګند اختيار درکړې دې

قوله تعالى: فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ

**د منافقانو باره کښې د صحابه کرامو ﷺ اختلاف:** -په دې کښې اختلاف دې چه دمنافقانو په کوم يو امر کښې دمسلمانانو دوه قسمه خيالات پيدا شوي وو. حضرت زيد بن ثابت ﷺ فرمائي چه حضرت نبي کريم ﷺ کله د احد ميدان جنګ ته تشريف يوړو نو هغه وخت کښې حضرت نبي کريم ﷺ سره منافقان هم وو چه جنګ نه مخکښې واپس شوي وو. د دوی باره کښې بعضې مسلمانانو وئيل چه دوی قتل کول پکار دي اوبعضو وئيل چه دوی هم مومنان دي ([1])نو دې باره کښې دا آيت مبارك نازل شو. نو حضرت نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا ښار پاك دې دا به پخپله ګند او خيرې داسې لرې کړي لکه څنګه بټئ د اوسپنې نه خيرې اوزنګ لرې کوي ([2])(بخاري او مسلم)

**په جنګ احد کښې د مسلمانانو تعداد:** - ابن اسحاق کښې دي چه د احد دجنګ لښکر يو زر وو ، عبدالله بن ابی بن سلول درې سوه کسانو سره واپس شوې وو اوحضرت نبی کريم ﷺ سره بيا اووه سوه کسان پاتې وو.

**دايت په شان نزول کښې بل روايت:** - حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي مکه کښې څه خلق وو چه کلمه ويونکي وو. ليکن دمسلمانانو خلاف به ئې مشرکانو سره مدد کولو. دوی د څه ضرورت دپاره د مکې نه بهراووتل ، دوی ته يقين وو چه د دوی به اصحاب رسول ﷺ سره څه جنګ جګړه نه وی.خکه چه دوی

[1]) صحيح مسلم کتاب صفات المنافقين باب صفات المنافقين : ۲۷۷۶)-

[2]) صحيح بخاری کتاب المغازی باب غزوة احد : ۴۰۵۰، صحيح مسلم: ۱۳۸۴، ترمذی : ۳۰۲۸)-

په ظاهره کلمه گو وو. بل طرفته چه کله د مدینی مسلمانانوته ددې علم اوشو.نو وې ونیل چه دې نامرادو سره رومبې جهاد اوکړئ،دوی خمونږ دښمنانانوسره دی.اوبعضو اوونیل چه سبحان الله چه دا خلق ستاسو په شان کلمه وائی ، تاسو هم هغوئ سره جنګ کوئی ؟ صرف پدې وجه چه هغوئ هجرت نه دې کړې ،اوخپل کورونه ئې نه دی پریښودی.مونږ دپاره دهغوئ وینه او مال څنګه حلالیدېشی ؟ دا دهغوئ اختلاف د حضرت نبی کریم ﷺ مخکښې اوشو خو حضرت نبی کریم ﷺ خاموش پاتې شو نو دې کښې دا آیت مبارك نازل شو. (ابن ابی حاتم).

**د ایت شان نزول کښې دویم روایت:-** دحضرت سعد بن معاذ ﷺ څوئې فرمائی چه حضرت عائشه صدیقه ﷺ باندې چه کله تهمت اولګیدو او حضرت نبی کریم ﷺ په منبر باندې اودریدل او وې فرمائیل چه څوك شته دې چه ما د حضرت عبدالله بن ابی د تکلیف نه بیچ کړی. په دې باندې د اوس او خزرج په مینځ کښې چه کوم اختلاف پیدا شو نود هغې باره کښې دا آیت مبارك نازل شو. لیکن دا قول غریب دی.ددې نه سوا نور اقوال هم دی.الله ﷺ دوی ددوی دنافرمانۍ په وجه هلاك کړل.ددوی دهدایت هیڅ لار نشته.دوی خوغواړی چه د ریښتونی مسلمانان هم ددوی په شان ګمراه شی. دومره دښمنی. ددوی په زړونو کښې دې ، نو تاسو منع کولې شئ چه تر کومې پورې دوی هجرت اونکړی نو دوی خپل مه ګنړئی.دا خیال مه ساتئی چه دوی ستاسو دوستان دی او مددګار دی.بلکه دوی پخپله ددې لائق دی چه دوی سره جهاد اوکړې شی.بیا دوی کښې دهغه حضراتو استثناء کولې شی چه هغوئ دیوداسې قوم پناه اخستې وی چه هغوئ سره دمسلمانانو وعدې شوی وی.نو ددوی حکم به هم هغه وی چه کوم د هغه قوم دې چه وعده وسره شوې وی

**د ایت شان نزول کښې څلورم روایت:-** سراقه بن مالك مدلجی وائی چه کله د بدر جنګ کښې مسلمانان غالب شو او چاپیر چل کښې خلقو کښې اسلام ښه خور شو نو ماته معلوم شوه چه د حضرت نبی کریم ﷺ اراده ده چه خالد بن ولید ته یو لښکر ورکړی او څما قوم بنو مدلج سره جنګ اوکړی.نو څه د حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شوم او ما اوونیل چه څه تاسوته خپل یو احسان دریادوم ، خلقو ماته اوونیل چه ته خاموش شه ، لیکن حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه وایه چه څه ونیل غواړې.ما اوونیل چه ما ته معلومه ده چه تاسو څما قوم طرفته لښکر لیږل غواړئی.څه غواړم چه تاسو دوی سره صلح اوکړئی په دې خبره که قریش اسلام راوړی نو هغوئ به هم اسلام قبلوی او که هغوئ اسلام قبول نه کړو نو په هغوئ هم حمله مه کوئی.حضرت نبی کریم ﷺ د حضرت خالد بن ولید لاس اونیولو او وې فرمائیل چه ده سره لاړ شه او دده د وینا مطابق دده قوم سره صلح اوکړه. نو په دې خبره صلح اوشوه چه هغوئ به د اسلام د دښمنانو هیڅ قسمه مدد نه کوی.اوکه قریش اسلام قبول کړی نو دوی به هم اسلام قبلوی.نوالله ﷺ دا آیت مبارك نازل کړو چه دوی غواړی چه تاسو هم د دوی په شان کفر اوکړئی.بیا تاسو او هغوئ برابرشئ. نو دوی کښې هیچ څوک دوست مه جوړوئی

هم دا روایت ابن مردویه کښې هم دې.او په دې کښې دی چه آیت ﴿إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ﴾ نازل شو ، نو چه کوم خلق هم دوی سره ملاویږی نو هغه به هم ددوی په شان په امن کښې وی.اوددې زیات مناسب کلام سره دې صحیح بخاری شریف کښې دصلح حدیبیه قصه کښې دی بیا چې چا غوښتل نو دکافرو جماعت کښې به داخلیدل او امن کښې به وو ، اوچې چا به غوښتل نو د مدینې مسلمانانو سره به ملاویدو. او د معاهدې په وجه به په امن کښې وو.[1] دحضرت ابن عباس ﷺ قول دې چه دا حکم بیا

---

[1] صحیح بخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد: ۲۷۳۱ ، )-

دې آيت منسوخ كړو چه ﴿فَاِذَا انْسَلَخَ الْاَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ﴾ يعني كله چه د معززې مياشتې تيرې شي نو مشركانو سره جهاد كوئي چه چرته هم دوى اووينئ.

**قوله تعالىٰ:** اِلَّا الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ اِلٰى قَوْمٍۭ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ

**د هغه كافرانو حكم چه غيرجانبدار وى:-** بيا ديو بل جماعت ذكر كيږي چه هغوئ ددې خبرې نه مستثنى دي چه ميدان جنگ ته راوستلې كيږي نو بې بسه شي وي ،هغوئ خو تاسو سره نه جنگ كول غواړي او نه تاسو سره يو ځاى كيدل غواړي او نه خپل قوم سره جنگ كول خوښوى.بلكه دا داسې خان بچ كولو والا خلق دي چه نه تاسو سره دي او نه ستاسو دښمنانو سره او نه ستاسو دوستانو سره.دا هم دالله ﷻ نضل دې چه دغه خلق ئې په تاسومسلط نكړل. كه هغه ذات غوښتلې نو دوى ته به ئې طاقت وركړې وې او ددوى زړونو كښې به ئې اچولې چه دوى تاسوسره جنگ اوكړي.نو كه دوى تاسو سره د جنگ كولو نه منع شي او صلح سره يو شي نو تاسو ته هم دوى سره دجنگ كولو اجازت نشته. هم دا قسمه خلق وو چه د بدر په ورځ دمكې مشركانو سره راغلل اود زړه نه دوى تاسو سره جنگ نه خوښولو.لكه حضرت عباس وغيره. هم دا وجه وه چه حضرت نبى كريم ﷺ د حضرت عباس ﷛ د قتل نه منع كړې وه.او حكم ئې كړې وو چه دوى دې ژوندې گرفتار كړې شي.

**قوله تعالىٰ:** سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّاْمَنُوْكُمْ وَيَاْمَنُوْا قَوْمَهُمْ

**منافقانو سره د جنگ حكم:-** بيا ديو بل جماعت ذكر كيږي.چه په ظاهره پورته ذكر شوؤ خلقو پشان دى. ليكن اصل كښې نيت كښې ئې فرق دې.دا خلق منافقان دى.چه كله حضرت نبى كريم ﷺ ته راشى نواسلام ظاهروى او دمسلمانانو نه خپل مال او ځان محفوظ ساتي.بل طرفته چې كله دوى كفارو سره يو ځاى شي او كوم كسان چې د باطلو معبودانو عبادت كوى ، هغوئ سره ملاو شى دې دپاره چه دهغوئ نه په امن كښې وى،اصل كښې دا خلق كافر دى لكه بل ځاى كښې چې دي چه كله خپلو شيطانانو ته ورشى نو هغوئ ته په تنهائى كښې وائى چه مونږ تاسوسره يو.دلته هم ذكر كيږى چه كله دوى فتنې طرفته ځى نو د پوره زړه نه په هغې كښې حصه اخلى.لكه څنگه چه څوك پرمخ پروت وى.فتنې نه مراد دلته شرك دې.

**د شان نزول باره كښې بل روايت:-** حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى چه دا خلق هم د مكې وو. دلته چه به راغلل نو رياكارئ دپاره به ئې اسلام قبلولو. هلته چه به لاړل نو بتانو ته به ئې سجدې كولې.نو مسلمانانو ته ئې اوفرمائيل كه ددې خپلې دوغله پاليسئ نه منع نشو ، تاسو ته د تكليف دركولو نه منع نشو،صلح نه كوى،نودوى هم امن كښې مه پريږدئ،دوى سره هم جهاد كوئى.دوى قيديان كړئى.چه دوى چرته هم دوى اوموميئ نو دوى سره خبرې مه كوئى.بيشكه په دوى باندې مونږ تاسو ته غلبه دركړې ده او ښكاره حجت مو دركړې دې

| وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ | اَنْ يَّقْتُلَ | مُؤْمِنًا | اِلَّا خَطَـًٔا | وَمَنْ | قَتَلَ | مُؤْمِنًا | خَطَـًٔا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه دي كار ديومومن | چې قتل كړي | مومن | مگر په خطا سره | اوڅوك چې | مړكړي | يومومن | په خطا سره |

اوديو مسلمان داكار نه دې اچې هغه بل مسلمان قتل كړي امگر په خطا سره او چا چې يو مسلمان په خطاسره قتل كړو

| فَتَحْرِيْرُ | رَقَبَةٍ | مُّؤْمِنَةٍ | وَّدِيَةٌ | مُّسَلَّمَةٌ | اِلٰٓى اَهْلِهٖٓ | اِلَّآ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو دي آزادول | ديو غلام | مومن | او ديت دي | چې سپارلې شوې وي | وارثانو دمړي ته | مگر |

نو كفاره ئې داده، چې يو مؤمن مرئ دې آزاد كړي | اود مړي وارثانو ته دې خون بها وركړي | مگر

أَنْ يَصَّدَّقُوْا ط فَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ

که هغوئ معاف کړی دیت | نو که وو (مقتول) | دداسې قوم نه | چې دشمن وو ستاسو | او هغه وو مومن

که هغوئ خون بها اوبښی (نو جائزده) | او که دغه مؤمن مړی دداسې قوم سړې وو چې ستاسو ورسره دشمنی وی

فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ط وَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ

نو دی آزادول دیو غلام | مومن | او که وو مړې | دداسې قوم نه | چې په منځ ستاسو

نو یو مسلمان مرئ دې آزاد کړی (او دومره بس دی) | او که دداسې قوم سړې وو چې ستاسو

وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ وَتَحْرِيْرُ

او په منځ دهغوئ کښې | معاهده وه | نو دې دیت | وزسپارلې شوې | وارثانو دمړی ته | او آزادول

او دهغوئ په مینځ کښې یوه معاهده وی | نو دهغه وارثانو ته دې خون بها هم ورکړی | او

رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ج فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ ز

دیو غلام | مومن | نو چاچې اونه موندو (غلام) | نو دی پرې روژې نیول | دوه میاشتې | پرله پسې

یو غلام دې هم آزاد کړی | او څوک چه د مرئ آزادولو طاقت نهٔ مومی | نو هغه دې دوه میاشتې پرله پسې روژې

تَوْبَةً مِّنَ اللهِ ط وَكَانَ اللهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۹۲﴾ وَمَنْ يَقْتُلْ

دپاره دقبلولو د توبې | د طرفه دالله نه | او دې | الله | پوهه | خاوند د حکمت | او څوك | چې قتل کړی

اونیسی اِدا د الله ﷻ د طرفه د توبې ویستلو طریقه ده | او الله په هر څه پوهه او صاحب د حکمت دې | او څوک چې یو

مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيْهَا وَغَضِبَ اللهُ

یو مومن | په قصد سره | نو سزا دهغه | جهنم دې | چې همیشه به وی | په هغې کښې | او غضب کړې دې الله

مومن په قصد سره قتل کړی | نو دهغه سزا دوزخ دې | او په هغې کښې به همیشه وی | او په هغه د الله غضب

عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَأَعَدَّ لَهٗ عَذَابًا عَظِيْمًا ﴿۹۳﴾

په هغه باندې | او لعنت کړې دې الله په هغه باندې | او تیار کړې ئی دې | هغه دپاره | عذاب لوئ

دې | او لعنت ئې پرې کړې دې | او د هغه دپاره ئې لوئې عذاب تیار کړې دې

قوله تعالى: : وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلَّا خَطَئًا ج

**دقتل خطا احکام** :-ارشاد دې چه یو مسلمان دپاره جائز نه دی چه په څه حال کښې د یو مسلمان رور خون په ناحقه توئې کړی.

**په درې صورتونو کښې د مسلمان د قتل جواز**:- بخاری او مسلم شریف کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه یو مسلمان دپاره جائز نه دی چه هغه د الله ﷻ دوحدانیت باندې او د رسول الله ﷺ د رسالت

ګواهي ورکوي چې قتل کول حلال نه دی مګر درې حالتونو کښې ① يو دا چه هغه څوك قتل کړی وی ②دویم چه واده ئې کړی وی او زنا اوکړی ③دریم دین اسلام پریږدی او د مسلمانانو نه جدا شی.[1]

**حد قائمول د چا کار دې**:- بیا داهم یاد ساتئ چه کله د دوی نه په دې دریو وارو کارونو کښې څه کار واقع شی نو به عوامو کښې هڅا ته دا اختیار نشته چه دې قتل کړی ځکه چې دا کار د امام یا د نائب امام منصب دی.

**د ایت شان نزول کښې اولنې قول**:- د دې نه پس استثناء منقطع ده. د عربو شاعرانو کلام کښې هم دا قسمه استثناء ویرې دی. د دې آیت مبارك شان نزول کښې یو قول دا هم نقل دې چه عیاش بن ابی ربیعه چه د ابوجهل ناسکه رور وو ، او دده د مور نوم اسماء بنت مخزمه وو، دده باره کښې نازل شوې دی. ده یو سړې قتل کړې وو او هغه ته ئې د اسلام قبلولو په وجه سزاګانې ورکولې تر دې چه هغه مړ شو. د هغه نوم حارث بن یزید غامدی وو. د حضرت عیاش ﷺ زړه کښې دا خار راغلو او زړه کښې ئې پخه اراده اوکړه چه کله هم موقع ملاؤ شوه. نو زه به دې قتل کوم. الله ﷺ څه ورځې پس قاتل ته هم د اسلام قبلولو هدایت نصیب کړو. او هغه مسلمان شو. او هجرت ئې هم اوکړو. لیکن حضرت عیاش ﷺ ته دا معلومه نه وه ، د مکې د فتح په ورځ دې د هغوئ په نظر کښې راغلو. په دې وجه چه هغه تر اوسه پورې کفر کښې وو. په ده ئې اچانك حمله اوکړه او هغه ئې قتل کړو نو دې باندې دا آیت نازل شو.

**د ایت شان نزول کښې دویم قول**:- دویم قول دادې چه دا آیت مبارك د حضرت ابودرداء ﷺ باره کښې نازل شوی دی. چې هغه په یو کافر کس باندې حمله کړې وه او توره ئې پرې راویستې وه خو هغه کلمه اوونیله لیکن دوی په توره اووهلو او هغه ئې قتل کړو. هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ ته دا واقعه بیان شوه نو حضرت ابودرداء ﷺ ورته خپل عذر بیان کړو چه هغه صرف د خپل خان بچ کولو دپاره کلمه ونیلې وه. حضرت نبی کریم ﷺ خفه شو او وې فرمائیل چه ولې تا د هغه زړه شلولې وو څه. دا واقعه صحیح حدیث کښې هم شته دې. لیکن هلته د بل صحابی نوم دې .[2]

قوله تعالى: وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَـًٔا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦٓ

**دقتل خطاء په کفاره کښې غلام ازادول**:- بیا د قتل خطا ذکر کیږی او په دې کښې دوه څیزونه واجب دی. یو غلام آزادول، دویم دیت ورکول. د دې غلام دپاره دا شرط هم دې چه هغه ایماندار وی کافر نه وی. وړوکې ماشوم بچې هم کافی نه دې تر کومې چه هغه خپلې ارادې سره ایمان ظاهر نکړی. او د دومره عمر نشی. دامام ابن جریر رحمه الله مختار قول دا دې که دده مور پلار دواړه مسلمانان وی. نو دا جائز دی ګنی نه. د جمهورو مذهب دادې چه مسلمانیدل شرط دی د وړوکې او لوئې څه قید نشته دې .

**د کفاره کښې د وینځې ازادول**:- یو انصاری ﷺ یو توره وینځې سره د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضریږی او وائی چه ځما په ذمه د یو مسلمان آزادول دی. که دا مسلمانه وی نو زه دا آزادوم حضرت نبی کریم ﷺ د دې وینځې نه تپوس اوکړو چه آیا ته ګواهی ورکوې چه د الله ﷺ نه سوا بل معبود نشته دې. هغې اوونیل چه آو. حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه آیا ته د دې خبرې هم ګواهی ورکوې چه زه د الله ﷺ رسول او بنده یم. هغې اوفرمائیل چه آو. حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه مرګ نه پس دوباره ژوندی کیدو باندې هم ته یقین ساتې. هغې اوفرمائیل چه آو. حضرت نبی کریم ﷺ

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الدیات باب قوله تعالی( ان النفس بالنفس ): ۶۸۷۸،صحیح مسلم: ۱۶۷۶، ابوداود : ۴۳۵۲ ابن ماجة: ۲۵۳۴)-

[2]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب بعث النبی صلی الله علیه وسلم اسامة: ۴۲۶۹، صحیح مسلم: ۹۶ عن اسامة بن زید ﷺ )

اوفرمانیل چه دا ازاده کړه.(۱) ددې اسناد صحیح دی.اوصحابی څوك وو؟ دده نوم كه معلوم نه وی نو په دې وجه ددې په سند كښې څه نقصان نه راځی(ځكه چه صحابه ټول عدول دی). دا روایت دحدیث نوروكتابونو كښې دا شان دې چه حضرت نبی كریم ﷺ د هغې نه تپوس اوكړو چه الله ﷻ چرته دی؟ هغې اوونیل چه آسمانونوكښې.حضرت نبی كریم ﷺ ترې تپوس اوكړو چه څه څوك یم؟ هغې جواب كښې اوونیل چه ته دالله رسول ﷺ نې.حضرت نبی كریم ﷺ ورته اوفرمانیل چه دا آزاده كړه دا ایمانداره ده.(۲) نويو د غلام یاوینځې آزادول واجب دی

**د قتل خطاء په كفاره كښې دیت وركول:-** او بل دیت وركول دی چه دمقتول كور والو ته وركړې شی.دا د هغه مقتول بدله ده. دا دیت سل اوښان دی ، او ددې پنځه قسمه دی ، شل خوددؤ عمر اوښې او شل هم ددې عمر اوښې اوشل د دریو كالو چه وی اوښې او نورې به د پنځوكالو وی.او شل چه د څلوروكالو ښكاری.همدا فیصله حضرت نبی كریم ﷺ د قتل خطا په دیت كښې كړې ده. اوګورنی سنن ومسند احمد(۳)داحدیث په روایت دحضرت عبدالله رضی الله عنه موقوف هم مروی دې.حضرت علی رضی الله عنه او یو بل جماعت نه هم منقول دی.او دا هم ونیلې شوی دی چه دا دیت به په څلورمه حصه كښې تقسیم شوې وی.دا دیت به ددې قاتل په عاقله او دده د عصبه یعنی د ده په نزدې رشته دارو باندې وی. دده په خپل مال باندې نشته.حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی چه په دې امر كښې ما ته څوك مخالف نه دی معلوم.حضرت نبی كریم ﷺ د دیت فیصله هم په دې خلقو كړې ده. او دا حدیث خاصه كښې په كثرت سره دې.امام صاحب چه كوم حدیث مبارك طرفته اشاره كوی هغه دېردی .

## دیت په قاتل او عاقله دواړو باندې دې

**مسلك حنفی:-** دامام ابوحنیفه رحمه الله او امام ابو یوسف په نیز دیت په عاقله او قاتل دواړوباندې دې صرف په عاقله باندې نه دې واجب بلكه قاتل به ورسره په دیت كښې شریك وی (تفسیرمظهری ۲،۱،۴۰)-

## دیت سل اوښان په څلورو حصو كښې تقسیم دی

**مسلك حنفی:-** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دیت سل اوښان دی خو بیا دا اوښان په څلورو درجو كښې تقسیم دی پنځویشت به بنت محاض وی او پنځویشت به بنت لبون وی او پنځویشت به حقه وی او پنځویشت به جذعه وی (تفسیرمظهری ۲،۲۱۲،۴۰)-

**دیت د قاتل په عاقله دې:-** بخاری او مسلم كښې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه مروی دی چه دهذیل قبیلې دوه ښځې خپلو كښې په جنګ شوې ، یو ښځې دا بله په كانړی اوویشته اوهغه حامله وه ، ددې بچی هم ضائع شو او هغه هم مړه شوه. حضرت نبی كریم ﷺ ته راغلل نو حضرت نبی كریم ﷺ فیصله اوكړه چې ددې بچی په بدله كښې خو یو وینځه یا غلام ازادول دی.اودښځې بدله كښې دیت او دیت د قاتلې ښځې د حقیقی رشته دارو په ذمه دې.(۴)

---

(۱) احمد : ۴۵۲/۳-
(۲) صحیح مسلم كتاب المساجد باب تحریم الكلام فی الصلاة: ۵۳۷)-
(۳) ابو دادو : ۴۵۴۵ ترمذی : ۱۳۸۶ نسائی : ۴۸۰۶، ابن ماجة: ۲۶۳۱، احمد : ۴۵۰/۱،)-
(۴) صحیح بخاری كتاب الدیات باب جنین المراة : ۶۹۱۰ صحیح مسلم: ۱۶۸۱، ابوداود : ۴۵۷۶، نسائی: ۴۸۲۲ )-

**مسئله**:- ددې نه دا هم معلومه شوه چه کوم قتل عمد خطا سره وی هغه هم په حکم کښې دخطاء محض پشان دې یعنی د دیت اعتبار سره په دې کښې تقسیم ثلث شو ، درې حصې به وی ځکه چه په دې کښې شباهت عمد یعنی بالقصد هم دې.

**دامام د قتل خطاء بوج به په بیت المال وی**:- صحیح بخاری شریف کښې دی چه د بنوخزیمه دجنګ دپاره حضرت خالد بن ولید ﷺ لره حضرت نبی کریم ﷺ یو لښکر کښې سردار جوړ کړو او وې لیږلو ، هغوئ چه هلته لاړل نو د اسلام دعوت ئې ورکړو ، هغوئ دعوت قبول کړو لیکن د نادانئی په وجه ئې د ﴿أَسْلَمْنَا﴾ یعنی مونږ مسلمان شو په ځائې ﴿صبانا﴾ اونیل یعنی مونږ بې دین شو ، خالد بن ولید ﷺ دوی سره قتل کول شروع کړل.هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ ته ددې معلومات اوشو نو حضرت نبی کریم ﷺ لاس اوچت کړو او الله ﷻ ته ئې عرض اوکړو چه یا الله د خالد بن ولید ددې فعل نه بیزاری او برات خه ستا مخکښې وړاندې کوم. بیا حضرت علی ﷺ ئې راوبللو اوهغوئ ئې اولیږل چه لاړه شه او دهغوی مقتولانو ته دیت ورکړه او ددوی چه کوم مالی نقصان شوی دې هغه هر څه ورته اداکړه.[1]

**مسئله**:- ددې نه ثابته شوه چه د امام یا نائب د خطا بوج به په بیت المال وی.

**قوله تعالی**:: ﴿إِلَّا أَن يَصَّدَّقُوا﴾

بیا فرمائی چه دیت ورکول واجب دی.خوکه د مقتول اولیاء په خپله ددې اخستلو نه روستو شی نو دوی ته اختیار دی اوهغوئ دا په طور د صدقه معاف کیدلې شی.

﴿فَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ﴾

بیا فرمان دې که مقتول مسلمان وی لیکن دده اولیاء حربی کافران وی نو قاتل باندې دیت نشته دې.قاتل باندې په دې صورت کښې د غلام یا وینځې آزادول دی.

**قوله تعالی**:: ﴿وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ﴾

اوکه د مقتول وراث او ولی د داسې قوم نه وی چا سره چې ستاسو صلح او وعده شوې وی. نو په دې صورت کښې به دیت وی خوکه چرې مقتول مومن وو نوکامل دیت به وی ، اوکه مقتول کافر وو نو د بعضو په نیز خو پوره دیت وی.دبعضو په نیزنیم دیت ، دبعضو په نیز دریمه حصه دیت ، دا تفصیل د احکامو په کتابونوکښې موجود دې.

**د مومن او کافر دواړو دیت یوبرابر دې**

**مسلک حنفي**:- دامام ابو حنیفه رحمه الله په نیز د مومن او کافر په دیت کښې څه فرق نشته بلکه د کافر دیت به هم د مومن د دیت پشان پوره وی (تفسیر مظهری ۴۰۸۱۲)-

**قوله تعالی**:: ﴿فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ اللَّهِ﴾

**دوه میاشتې پرله پسې روژې نیول**.- اوپه قاتل باندې مومن غلام یا وینځه آزادول هم لازم دی .اوکه دچا طاقت د غریبئ په وجه نه وی نو د هغه په ذمه د دوؤ میاشتو روژې دی چه پرله پسې به ئې نیسی ، که دڅه عذر په وجه لکه بیماری شوه یا حیض شو یا نفاس شو. نو ددې عذرونو نه بغیر دې روژه په مینځ کښې نه پریږدی،او که ددې عذر نه بغیر ئې روژې پریخودې نو بیا به دسر نه دروژو شمیر پوره کوی.

**په سفرکښې روژې ماتول سره د تسلسل حکم**:- د سفر باره کښې دوه اقوال دی ، ① یو داچه دا هم شرعی عذر دې.② دویم دا چه دا عذر نه دې.

**د سفر په وجه په افطار سره تتابع ختمیږی**

[1] صحیح بخاری کتاب المغازی باب بعث النبی صلی الله علیه وسلم خالد بن ولید : ۴۳۳۹ نسائی : ۵۴۰۷-

**مسلک حنفی**:- د سفر په وجه که روژه ماته کړی نو د جمهورو په نيز چې په هغې کښې احناف هم شامل دی ده باندې سردوباره روژنې نيول لازميږی تتابع او پرله پسې والې ختم شو البته د امام شافعی په قديم قول کښې ده باندې د سفر په وجه که تتابع فوت شی سردوباره د روژو نيول نشته (تفسيرمظهری ۳۲۷/۲)-

**مسکينانو ته خوراک ورکول**:- بيا فرمانی چه د قتل خطا د توبې دا صورت دې چه غلام نشی آزادولې نوروژې اونيسی ، او که دروژې طاقت په کښې نه وی نودې مسکينانو ته خوراك ورکولې شی که نه نو يو قول خو دادې چه شپيته مسکينانو ته به خوراك ورکوی.لکه څنګه چه د ظهار دکفارې دی.خلته صفا بيان فرمانی اودلته د قتل خطاء په باب کښې په دې وجه بيان نه فرمانی چه دا دويرلولو والا مقام دې.که د آسانتی صورت ئې بيان کړو نو هيبت او عظمت به دومره باقی پاتې نشی.دويم قول دادې چه دروژې لاندې څه نه وی ، که وې نو بيان سره به ئې بيان کړې وې.د حاجت په وخت کښې بيان لره موخر کول صحيح نه دی

**قوله تعالى**:: ﴿وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾:::: الله عليم او حکيم دې ، ددې تفسير څو ځل تير شوې دې.

**قوله تعالى**:: ﴿وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا﴾

**د قتل عمد حرمت**:- دقتل خطا نه پس اوس د قتل عمدبيان دې.ددې ډير زيات سخت او ډير مضبوط تاکيد راغلې دې.دا هغه ګناه ده چه دا الله ﷻ شرك سره يو ځانې بيان کړې ده.فرمانی چه ﴿وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا﴾ يعنی مسلمانان بندګان هغه دی چه الله سره هغوئ بل معبود نه جوړی او نه هغوئ يوکس په ناحقه قتلوی. بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ﴾ دلته هم الله ﷻ د حرامو کارونو ذکر فرمائی او د شرك او د قتل ذکر کوی.او ددې مضمون آيتونه نور هم ډير زيات دی او احاديث هم دې باب کښې وارد شوی دی.

**دقيامت په ورځ د ټولو نه اوله مقدمه**:- مسلم شريف او بخاری شريف کښې دی چه د ټولو نه مخکښې به دقيامت په ورځ د ديت فيصله کيږی (¹) ابو داود کښې دی چه د ايماندارو خلقو په نيکيانو کښې زياتې رازی تر ترڅو چه دې په ناحقه قتل اونکړی.اوکه داسې ئې اوکړل نو تباه به شی.

**دمسلمان د قتل عظمت**:- اويو حديث مبارك کښې دی چه د ټولې دنيا زوال داالله ﷻ په نيز ديو مسلمان قتل کولو نه کم نقصان دې (²)

**د يومسلمان په قتل ټول مخلوق جهنم ته تلل**:- اويوحديث مبارك کښې دی که د زمکې او د آسمان ټول خلق ديو مسلمان په قتل کښې شريك شی نو الله ﷻ به ټول پرمخ دوزخ ته داخل کړی (³)

**په يوه خبره دمسلمان په قتل کښې د شرکت ګناه**:-اويو حديث مبارك کښې دی چه کوم سړی ديو مسلمان په قتل کښې نيمې خبر کولو سره هم مدد اوکړی نوهغه به دقيامت په ورځ الله ﷻ ته په داسې حالت کښې حاضريږی چه دده په تندی به ليکلې شوې وی چه داسړې داالله ﷻ درحمت نه محروم دې (⁴)

**د مسلمان په قتل کښې د ابن عباس ﷺ مذهب**:- د حضرت ابن عباس ﷺ قول دې چه چا يومومن په قصد سره قتل کړو نو دده توبه نه قبليږی.د کوفې خلقو چه کله په دې مسئله کښې اختلاف اوکړو نو

¹) صحيح بخاری کتاب الرقاق باب القصاص يو م القيامة: ۶۵۳۳، صحيح مسلم: ۱۶۷۸)-

²) ابوداود کتاب الفتن باب فی تعظيم قتل المومن : ۴۲۷۰، وسنده صحيح )-

³) ترمذی کتاب الديات باب ماجاء فی تشديد قتل المومن : ۱۳۹۵ وهوحسن نسائی : ۳۹۹۲)-

⁴) ابن ماجة ابواب الديات باب التغليظ فی قتل مسلم ظلم : ۲۶۲۰)-

حضرت ابن جبیر حضرت ابن عباس ؓ ته ورغلواو تپوس ئې ترې اوکړو.نو هغوی ورته اوفرمائیل چه دا د قران پاک آخری آیت دې بل هیڅ یو آیت دا آیت نه دې منسوخ کړې.[1]او دوی فرمائی چه دویم آیت ﴿وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ﴾ دې چه په هغې کښې د توبې ذکر دې هغه د مشرکانو باره کښې نازل شویدې.[2]لیکن کله چه یوسړی د اسلام په حالت کښې یو مسلمان په غیر شرعی وجه باندې قتل کړو نو دده سزا جهنم دې. اودده توبه نه قبولیږی.

**د قاتل د توبې باره کښې د مجاهد ؒ قول:**- حضرت مجاهد ؒ چه کله د حضرت ابن عباس ؓ دا قول بیان کړو نو وې فرمائیل مگر څوک چه پښیمانه شو.(نو دهغه توبه قبلیږی) [3]

**دابن عباس ؓ په نیزد مسلمان د قاتل دپاره توبه نشته:**- سالم بن ابوالجعد ؒ فرمائی چه حضرت ابن عباس ؓ کله نابینا شوې وو ، یو ځل مونږ هغوئ سره ناست وو نو دې کښې یو سړې راغلو ا و دوی ته ئې آواز اوکړو اوتپوس ئې اوکړو چه دې باره کښې تاسو څه وائې چه چا یو مومن په قصد سره قتل کړو.نودوی اوفرمائیل چه دهغه سزا جهنم ده. اودې کښې به دې همیشه وی ، په ده به دالله تعالی غضب وی او په ده به دالله ﷻ لعنت وی ، او دده دپاره عظیم عذاب تیار دې ، هغه بیا تپوس اوکړو که هغه توبه اوباسی اونیك عمل کوی او هدایت باندې کلك اوسی ؟

نو وې فرمائیل چه دده مور په ده بوره شی دده دپاره هدایت چرته دې.په هغه ذات مې دې قسم وی چه د هغه په لاس کښې خما روح دې ما د حضرت نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه هغه مور دې په هغه بوره شی چه چا یو بنده قتل کړو ، هغه به د لاسونونه نیولې شوی وی او د رحمان عرش ته به مخامخ راوستې شی او دده رګونو کښې به وینه څې رازی ، او ا لله ﷻ ته به اووائی چه د ده نه تپوس اوکړه چه د: څه ولې قتل کړې ووم ؟ په هغه الله ﷻ قسم چه دهغه په قبضه کښې خما ساه ده ددې آیت نازلیدونه پس د حضرت نبی کریم ﷺ وفات پورې ددې منسوخ کیدو والا آیت نازل نشو.او یو روایت کښې دومره دی چه نه د دې نه پس په حضرت نبی کریم ﷺ وحی راغلې وه [4].

**دابن عباس ؓ موافقین:**- حضرت زید بن ثابت ؓ ، حضرت ابوهریره ؓ ، حضرت عبدالله بن عمر ؓ حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمان ؒ ، حضرت عبید بن عمیر ؒ ، حضرت قتاده ؒ ، حضرت ضحاك ؒ هم دحضرت ابن عباس ؓ خیال سره متفق دی.ابن مردویه کښې دی چه مقتول به دغه قاتل نیولې وی او د قیامت په ورځ به ئې دالله ﷻ مخکښې راولی ، او بل لاس کښې به ئې خپل سر نیولې وی او وائی به چه ائې خما ربه دده نه تپوس اوکړه چه ده څه ولې قتل کړې ووم ؟ قاتل به اووائی چه ائې پروردګاره ! ددې وجې چه ستاد عزت دخاطره .الله ﷻ به اووائی چه دا خما لار ده.دویم مقتول به هم خپل سر نیولې راوړی او هم دا به وائی. قاتل به جواب کښې اووائی خکه چه د فلانی عزت وی .الله ﷻ به اوفرمائی چه دده ګناه به هغه واپس واخلی. بیا به دې اورته واچولې شی.اودې کوهی کښې به اویاکاله لاندې روان وی. [5]

---

[1] صحیح بخاری کتاب- التفسیر سورة النساء ( من قتل مومنا متعمدا) : ۴۵۹۰، صحیح مسلم: ۳۰۲۳)-

[2] صحیح بخاری کتاب- التفسیر سورة الفرقان: قوله تعالی ( الا من تاب وامن ) : ۴۷۶۶، صحیح مسلم : ۳۰۲۳،)-

[3] صحیح بخاری کتاب مناقب الانصار باب مالقی النبی صلی الله علیه وسلم واصحابه من المشرکین بمکة: ۳۸۵۵)-.

[4] الطبری: ۱۰۱۹۳،احمد: ۱/ ۲۴۰،نسائی:کتاب القسامة باب ماجاءفی کتاب القصاص: ۴۸۷۰، ابن ماجة: ۲۶۲۱، دا روایت شواهدو سره صحیح دې)-

[5] ابن مردویه وسنده ضعیف النسائی ۴۰۰۲، بلفظ اخر وسنده ضعیف وهو صحیح بالشواهد )-

**څوک نشی ښښلی؟**:مسند احمد کښې دی ممکن دی چه الله ﷻ ټول ګناهونه ښښی، لیکن ( هغه سړی نه ښښی)چه دکفر په حالت کښې مړشی دویم هغه چه یو مومن په قصد قتل کړی.[1] ابن مردویه کښې داسې حدیث هم دې اوهغه بالکل غریب دې.[2]محفوظ هغه حدیث دې چه دسند په حواله سره بیان شو.[3]

**دمومن د قتل په وعید کښې یوبل حدیث**:- حمید وائی چه ماته ابوالعالیه راغلو ،ماسره یو دوست هم په هغه وخت وو ، مونږ اووئیل چه تاسو دواړه څما نه عمر کښې کم یئ او په حافظه کښې زیات یئ راځئ ماسره بشر بن عاصم ته لاړشئ،هرکله چه مونږ هلته اورسیدو نو حضرت بشر ته مو اووئیل چه هغه ته هم هغه حدیث واوروه.هغوئ اورول شروع کړل .چه په دې عقبه بن مالك لیثی ﷺ اووئیل چه حضرت نبی کریم ﷺ یو وړوکې شان لښکر لیږلی وو.هغوئ په یو قوم حمله اوکړه او خلق اوتښتیدل، دوی سره یو سړې تښتیدو او دې سړی پسې یو لښکر والا سړې وریه منډه وو ، هرکله چه هغه ورنزدې شو او په هغه ئې توره راویستله نو هغه اووئیل چه زه مسلمان یم. دې سړی دهغه هیڅ خیال اونکړو او هغه سړې ئې اووهلو، ددې خبر حضرت نبی کریم ﷺ ته اوشونو حضرت نبی کریم ﷺ ډیر زیات خفه شو. دا خبر هغه سړی ته هم اورسیدو. یو ورځ حضرت نبی کریم ﷺ خطبه وئیله چه دې قاتل اووئیل چه یارسول الله ﷺ ! په الله ﷻ قسم هغه خو دا خبره صرف د قتل نه د بچ کیدو دپاره کړې وه. حضرت نبی کریم ﷺ دهغه نه مخ واړولو او خطبه ئې وئیله. هغه دوباره اووئیل.حضرت نبی کریم ﷺ تری دوباره مخ واړولو.دې صبر نه شو او په دریم ځل ئې هم بیا داسې اووئیل.نو حضرت نبی کریم ﷺ بیا هغه طرفته متوجه شو او د حضرت نبی کریم ﷺ په مخ مبارك باندې د خفګان آثار وو. حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه قاتل مومن باندې دالله ﷻ انکار دې.درې ځله ئې دا اووئیل.دا روایت نسائی کښې هم دې.[4]

**د قاتل په توبه کښې دوه مذاهب د ابن کثیر رحمه الله فیصله**:- نو یو مذهب خودا شو چه دمومن د قاتل توبه نه ده قبوله. دویم مذهب دا چه تو به دده د الله ﷻ ترمینځه ده. دجمهور سلفو اوخلفو هم دا مذهب دې که هغه توبه اوویستله او الله ﷻ طرفته ئې رجوع اوکړه ، خشوع وخضوع کښې مشغول شو ، نیك عملونه ئې کول ، نو الله ﷻ به دهغه توبه قبوله کړی. او مقتول ته به د خپل طرفه بدله ورکړی او هغه به راضی کړی.الله ﷻ فرمائی چه ﴿إِلَّا مَن تَابَ﴾ دا خبردې اوخبر کښې د نسخ احتمال هدو وی نه. او دا آیت د مومنانو باره کښې دې نو دا آیت په کافرانو پورې خاص کول د ظاهر خلاف دې.او دیو ښکاره دلیل محتاج دې.والله اعلم.

**دایت په عموم باندې استدلال**:- الله ﷻ فرمائی چه ﴿قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ﴾ یعنی ائی څما بندګانو ! چه چا په خپلو ځانونو زیاتې کړې وی.نو څما د رحمت نه دې نه مایوسه کیږی .دا آیت مبارك د عموم اعتبار سره هرې ګناه ته شامل دې.که هغه کفر او شرك وی اوکه هغه شك اونفاق وی ، که هغه قتل او فسق وی.چه څوك الله ﷻ طرف ته رجوع اوکړی نو الله ﷻ به هغه طرفته متوجه شی او چه څوك توبه اوباسی نو الله ﷻ به د هغه توبه قبوله کړی.فرمائی چه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ﴾ یعنی الله ﷻ شرك نه ښښی اود دې نه سوا ټول ګناهونه چه اوغواړی نو ښښی.دالله ﷻ ددې آیت مبارك نه قربان

[1] نسائی کتاب المحاربة (تحریم الدم): ۳۹۸۹، وسنده صحیح )-
[2] ابوداود وسنده صحیح وابن حبان : ۵۹۸۰، والحاکم: ۳۵۱/٤، والبیهقی : ۲۱/٦)-
[3] ابن مردویه )-
[4] احمد : ۲۷۹/۵، وسنده حسن ، ددې شواهد دپاره نور اوګورئی : صحیح بخاری : ۴۲۲۹، صحیح مسلم ۹۲ و دابوداود : ۲۲۴۳)-

شم هغه لوئي ذات هم په دې سورت کښې ددې ایت نه مخکښې هم یو ایت مبارك بیان کړې دې اودهغې تفسیر مونږ په هغه ځائې کښې بیان کړې دې.او بیا ددې آیت مبارك نه پس د خپلې عامې معافئ اعلان کوي چه بندګانو کښې ددې کامل مغفرت امید پیدا شي ، والله اعلم.

**دابن کثیر رحمه الله په یوبل حدیث باندې استدلال:-** بخاري او مسلم شریف کښې هغه حدیث مبارك هم په دې موقع دیادساتلو قابل دې چه په هغې کښې دی چه یو بنی اسرائیلی سل قتلونه کړي وو ، بیا هغه د یو عالم نه تپوس کوي چه آیا ځما توبه به قبوله شی که نه.هغه جواب ورکو ی چه ستااو ستا توبه کښې څوك حائل کیدیشي ؟ او هغه ته وائي چه دا بدنې پریږده او د نیکانو ښار ته لاړ شه. نو هغه هجرت کوي او لاره کښې وفات کیږي او د رحمت فرښتې ده ته راځي (1). دا حدیث پوره پوره ډیر ځل بیان شوي دې.نوچې په بنی اسرائیل کښې د قاتل توبه قبلیده. نو په دې امت مرحومه باندې د توبې دروازې ولې بندلې شي،مونږ نه خو په هغوئ باندې ډیرې زیاتې پابندئي وې .اودهغه بوئلو نه الله تعالی مونږ آزادکړو.او رحمة للعالمین پشان پیغمبر نې راولیږلو. هغه دین نې راکړو چه د آسانو او ښکاره او سهل دین دې.نو دلته چه دقاتل کومه سزا بیان شوې ده دهغې نه مراد دا دې چه د هغه سزا داده چه هغه ته به سزا ورکولې شي .حضرت ابوهریره رضی الله عنه او د سلفو یو جماعت هم دا فرمائی.بلکه ددې پشان یوبل حدیث ابن مردویه کښې دې.خو د سند په لحاظ سره هغه صحیح نه دې.اودغه شان د هر وعید مطلب هم دادې که ددې مقابل څه نیك عمل وغیره نه وي نو ددې بدنی بدله هغه ده چه کومه وعید کښې بیان شوه. هم دا طریقه د وعید باره کښې ځمونږ په نیز ډیره درست او احتیاط والا ده .والله اعلم بالصواب.

اودقاتل جهنم ته د تلو په تقدیر هم که په قول د حضرت ابن عباس رضی الله عنه وغیره د توبې نه قبلیدو په وجه وي اوکه په قول د جمهورو،د نیکو عملونو په وجه سره به هغه به همیشه په جهنم کښې نه وي بلکه دلته د خلود نه مراد ډیر وخت پورې پاتې کیدل دی.لکه څنګه چه د متواتر حدیث نه ثابت دی چه جهنم نه به هغه خلق هم راوځی چه د چا په زړونو کښې د اوری د دانې هومره ایمان وی.(2) او پورته چه کوم حدیث بیان شو ممکن ده چه الله جل جلاله ټول ګناهونه دکفر اود مومن د قتل نه بغیرمعاف کړی ، او په دې حدیث کښې ،د،عسی،، ټکی د ترجې (امید) دپاره وی نو دوارو صورتونو کښې به ترجی یعنی امید اخوا شي نو بیا به هم وقوع یعنی داسې کیدل دواړو سره یو کښې نه پورته کیږی اوهغه قتل دې.چونکه په دې کښې انساني حق دې ، هغه توبې سره نه ختمیږی بلکه انسانی حق خو د توبې صورت هم حقدار ته رسول ضروری دی.په دې کښې چه څنګه قتل دې هم داشان غلا ده ، غصب دې ، تهمت دې ، او نور انسانی حقوق هم دی. اودهغې توبې سره معاف کیدل اجماعًا ثابت دی.بلکه د توبې د صحت شرط دې چه ددوی حقوق اداکړی.او کله چه اداکولو محال وی نودقیامت په ورځ به ددې مطالبه به ضروری وی.لیکن مطالبې سره سزا واقع کیدل ضروری نه دی.ممکن دی چه دقاتل ټول نیك عملونه مقتول ته ورکړې شي یا بعضې ورکړې شي او ده سره هم څه پاتې شي او دې اوبخښلې شي.او دا هم ممکن دی چه دقاتل مطالبه الله جل جلاله خپل فضل وکرم سره د خپل طرفنه دحورو او قصرونو او د بلند درجو ورکولو سره پوره کړی.او ددې بدله کښې دې خپل قاتل ته معافی اوکړی او په دې خوشحاله شي او الله جل جلاله قاتل اوبخښي وغیره. والله اعلم.

**په قصد سره د قتل کونکی قاتل دنیاوی سزا:-** په قصد دقتل کونکی دپاره په دنیا کښې څه سزا ده او په

---

(1) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب : ٥٤، رقم: ٣٤٧٠، صحیح مسلم: ٢٧٦٦)-

(2) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قوله تعالی ( وجوه یومئذ ناضرة) : ٧٤٣٩ صحیح مسلم: ١٨٣)-

خرت کښې څه سزا ده. دنیا کښې خو الله ﷻ دمقتول ولیانو ته په ده باندې غلبه ورکړې ده. فرمائي چه ﴿وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَانًا﴾ چه څوك ظلم سره قتل کړې شي مونږ دده پسماندګانو ته غلبه ورکړې ده. هغوی ته اختیار دې چه یا خو بدله واخلي یعنی قاتل قتل کړي یا ئې معاف کړي یا دیت یعنی خون بها یعنی جرمانه وصول کړي.اوده په جرمانه کښې هم سختي ده. دا په درې قسمه ده. دیرش خو د څلور کلن عمر اوښان او دیرش پنځه کلن او څلویښت ښه پاخه اوښان لکه څنګه چه د احکامو کتابونو نه ثابت دي.

په دې کښې د آئمه اختلاف دې چه په ده (قاتل عمد) باندې د غلام آزادول یا دوه میاشتې پرله پسې روژې نیول یا خوراك ورکول شته که نه ؟ نو امام شافعي رحمه الله او د دوی ملګري او دعلماء کرامو یو جماعت خو د دې قائل دې چه کله قتل خطاکښې دا وی نو عمد کښې به په طریقه اولی سره وی. او په دوی باندې جواب کښې په دروغه د غیر شرعي قسم دکفارې پیش کش شوې دې .او هغوئ ددې عذر عمد پرېښودې دې.دمونځ قضاء ئې جوړه کړې ده.لکه څنګه چه په دې باندې اجماع ده. خطا کښې امام احمد رحمه الله اوددوئ أصحاب او نور حضرات وائي چه قتل عمد د کفارې نه زیات دې.څکه چه دې کښې کفاره نشته.اودغه شان د دروغو قسم او ددوی دپاره دواړو صورتونوکښې او په قصد سره پرېښودې شوې مونځ کښې فرق کولو هیڅ لار نشته دې.ددې وجې په قصد سره پرېښودې شوی مونځ دپاره د قضا په وجوب قائل دی.

**په قتل عمد کښې کفاره نشته**

**مسلك حنفي:-** د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نیز په قتل عمد کښې کفاره نشته.احکام القران للعلامة ظفراحمد العثماني رحمه الله (٣٢٦/٢).

**د اول فریق دلیل:-** د مخکښې جماعتونو دلیل یو دا حدیث مبارك هم دې کوم چه مسند احمد کښې مروي دې چه خلق حضرت واثله بن اسقع رحمه الله ته راغلل او وې ونیل چه یو داسې حدیث اووائې چه په هغې کښې کمې زیاتې نه وی نو ډیر زیات خفه شو. او وې فرمائیل چه کله تاسو قران پاك وائې نو په دې کښې کمې زیاتې کوئی ؟ هغوئ اووئیل چه حضرت څمونږ مطلب دادې چه پخپله حضرت نبي کریم ﷺ نه تاسو آوریدلی وی.وې فرمائیل چه مونږ حضرت نبي کریم ﷺ ته د یوسړی باره کښې ورغلو چه هغه د قتل په وجه خپل ځان ته جهنمي ونیل. نو حضرت نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه دده د طرف نه یو غلام آزاد کړئی،دهغه د یو یو اندام په بدله کښې به الله تعالی د ده یو یو اندام د جهنم نه آزاد کړي.(١)

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَتَبَيَّنُوْا |
| ائې هغه کسانو چې ایمان موراوړې دې \| کله چې \| سفر کوئ تاسو \| په لار د الله کښې \| نو ښه تحقیق کوئ |
| ائې مومنانو تاسو چې د الله لار کښې (جهاد دپاره) لاړشئ نو (پخپل پردی کښې) ښه تحقیق کوئ |
| وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ اَلْقٰٓى إِلَيْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُوْنَ |
| او مه وایئ تاسو \| هغه چاته \| چې پیش کړی \| تاسو ته سلام \| چې نه ئې ته \| مومن \| غواړئ تاسو |
| او څوك چې در باندې سلام واچوی \| نو هغه ته دا مه وائې چې ته مومن نه ئې \| ...............که تاسو |

(١) احمد : ١٠٧/٤؛ ابوداود : ٣٩٦٤ وسنده حسن )-

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَرَضَ | الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | فَعِنْدَ اللّٰهِ | مَغَانِمُ | كَثِيْرَةٌ | كَذٰلِكَ | كُنْتُمْ | |
| مال | دژوند د دنیا | نو دی الله سره | غنیمتونه | ډیر | هم په دې حالت | وئ تاسو | |
| د دنیا مال غواړئ \| نو الله پاک سره ډیر بنه غنیمتونه دی \| .................. آخر تاسو هم | | | | | | | |
| مِّنْ قَبْلُ | فَمَنَّ اللّٰهُ | عَلَيْكُمْ | فَتَبَيَّنُوْا | اِنَّ اللّٰهَ | كَانَ | | |
| مخکښې ددې نه | نو احسان اوکړو الله | په تاسو | نوبنه تحقیق کوئ | بیشکه الله | دې | | |
| ددې نه وړاندې (مکه) کښې دغه شان کمزوری حالت کښې پاتې شوی وې انو الله په تاسو احسان اوکړو او الله | | | | | | | |
| بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | خَبِيْرًا | | | | | |
| په هغه څه | چې تاسو ئې کوئ | خبردار | | | | | |
| ستاسو د ټولو کارونو نه بنه خبر دې | | | | | | | |

**قوله تعالی: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا ضَرَبْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَتَبَيَّنُوْا وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ اَلْقٰٓى اِلَيْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا**

**سلام د اسلام نښه ده**:-ترمذی وغیره کښې یو حدیث مبارك دې چه د بنو سلیم یو کس چیلئ څرولې، دې د صحابه کرام ﷺ یو جماعت سره تیر شو او سلام ئې اوکړو نو صحابه کرام ﷺ خپلو کښې اووئیل دې مسلمان نه دې صرف د خپل ځان بچ کولو دپاره ئې سلام واچولو.نو هغه ئې قتل کړو. او چیلئ ئې تږې واخستې لاړل.نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو. (¹)

**په دې حدیث اعتراضونه او دهغې نه دابن کثیر رحمه الله جوابونه**:- دا حدیث مبارك صحیح دې لیکن څه خلقو په دې کښې علتونه راویستی دی چه د سماك راوی نه سوا ددې طریقې بل څوك ناقل نشته .اودې د عکرمه ﷺ نه ددې روایت کوی اود هغه په روایت کښې تامل هم دې.اوددې آیت شان نزول کښې نور واقعات هم مروی دی.بعضې وائی چه دمحلم بن جثامه باره کښې نازل شوې دې.بعضې وائی چه د اسامه بن زید ﷺ باره کښې نازل شوې دې.او ددې نه سوا نور اقوال هم دی.لیکن څه وایم چه دا ټول کلام مردود دې.سماك نه دا ډیرو آئمه کرامو نقل کړې دې ، د عکرمه ﷺ نه په صحیح کښې دلیل اخستې شویدې.هم دا روایت په نورو طریقو سره حضرت ابن عباس ﷺ نه صحیح بخاری کښې مروی دې(²)

**د آیت دویم شان نزول**:- سنن سعید ابن منصور کښې هم مروی دی.ابن جریر او ابن حاتم کښې دی چه یوسړی لره دده پلار او دده قوم دخپل اسلام خبر رسولو دپاره د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې اولیږلو.لارکښې دده ملاقات د حضرت نبی کریم ﷺ لیږلې شوی یو جماعت سره اوشو. دهغوئ ته اووئیل چه څه مسلمان شوې یم خو ددوی یقین اونشو او دې ئې دشمن اوګڼړلو او دې ئې قتل کړو.هرکله چه دده پلارته ددې خبر اوشو نو پخپله د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او ټوله واقعه ئې ورته بیان کړه. نو حضرت نبی کریم ﷺ هغه ته زر دینار ورکړل او دیت ئې ادا کړو او هغه ئې عزت سره رخصت کړو نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو.

---

¹) صحیح بخاری کتاب تفسیر القران باب ومن سورة النساء : ۳۰۳۰-

²) صحیح بخاری کتاب تفسیر القران باب ومن سورة النساء باب (ولا تقولوا لمن القی الیکم السلام) ۳۴۹۱، صحیح مسلم: ۳۰۱۵-

**د ایت دریم شان نزول:-** دا دمحلم بن جثامه واقعه ده چه حضرت نبی کریم ﷺ خپل یو وړوکې لښکر اضم طرفته اولیږلو. هرکله چه دا لښکر بطن اضم ته اورسیدو نو عامر بن اضبط اشجعی په خپله سورلۍ سور وو او خپل سامان سره راتلو ، چه نزدې راغلو نوسلام ئې اوکړو ، ټول اودریدل لیکن محلم بن جثامه خپل څه ذاتي وجه باندې په ده حمله اوکړه.هغه ئې قتل کړو او دهغه سامان ئې قبضه کړو. بیا مونږ حضرت نبی کریم ﷺ ته اورسیدو او ټوله واقعه مو ورته بیان کړه. نودې سره دا آیت مبارك نازل شو. (۱)

**دایت څلورم شان نزول:-** یو بل روایت کښې دی چه عامر اسلامی طریقې سره سلام کړې وو. خو د جاهلیت د ړومبی عداوت په وجه محلم هغه قتل کړې وو. حضرت نبی کریم ﷺ چه دا خبر واوریدو نو د عامر خلقو ته ئې اونیل تاسو واوریدل ، لیکن عینیه اوونیل چه نه نه په الله ﷻ قسم ترکومې چه دده په ښځو دا مصیبت رانشی چه کوم ځما په ښځو باندې راغلې دې.محلم خپل دواړه څادرونه اغوستی وو او راغلو او حضرت نبی کریم ﷺ ته مخامخ کیناستو ، په دې امید چه حضرت نبی کریم ﷺ دده دپاره استغفار اوکړی.لیکن حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ دې اونه بښی.دې ددې ځائې نه پښیمانه په ژړا اووتلو او خپل څادر سره ئې خپلې اوښکې اوچولې.اووه ورځې هم لا نه وې تیرې چه دې وفات شو. خلقو هغه دفن کړو لیکن زمکې دده لاش بهر راغوزار کړو. حضرت نبی کریم ﷺ ته هر کله چه ددې ذکر اوشو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو ددې ملګری نه بدتر خلق زمکه خپل ځان کښې پریږدی.لیکن دالله ﷻ اراده ده چه هغه ذات تاسوته د مسلمان حرمت اوښائی نو دده لاش په غر واچولې شو ، او دده دپاره کانړی هم واچولې شو ، او دا آیت مبارك نازل شو. (۲) (ابن جریر)

**دایت پنځم شان نزول:-** صحیح بخاری شریف کښې تعلیقًا مروی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ حضرت مقداد ﷺ ته اوفرمائیل چه هر کله تایو داسې سړې قتل کړو چه هغه دکافرو نه پټ پټه اسلام قبول کړې وو اوهغه خپل اسلام ښکاره کړې هم وو. اوتاسو مکه کښې داشان وې چه ایمان به مو پټولو. (۳) بزار کښې دا واقعه داشان مروی ده چه حضرت نبی کریم ﷺ یو وړوکې لښکر لیږلې وو چه په هغې کښې حضرت مقداد ﷺ هم وو. هرکله چه دښمنانو ته اورسیدو نو وې کتل چه ټول یو خوا بل خوا شوی دی.صرف یو مالدار سړې هلته پاتې شوې دې.ده دهغوئ په کتلو اوئیل چه ﴿ اشهدان لااله الاالله ﴾ لیکن بیاهم پرې هغه حمله اوکړه او هغه ئې قتل کړو. یو سړی چه دا واقعه اوکتله نو هغه ډیر غصه شو او وې وئیل چه مقداد تا هغه قتل کړو او هغه کلمه ونیلې وه ؟ څه به ددې ذکر حضرت نبی کریم ﷺ ته کوم. هرکله چه دا لښکر واپس شو نو دې سړی دا واقعه حضرت نبی کریم ﷺ ته عرض کړه حضرت نبی کریم ﷺ حضرت مقداد راوغوښتلو او وې فرمائیل چه تا دا څه اوکړل ؟ صبا دقیامت په ورځ به ته ﴿ لا اله الاالله ﴾ سره څه کوې ؟ نو الله ﷻ دا آیت مبارك نازل کړو او حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ائې مقداد هغه سړې پټ په پټه مسلمان وو. لکه څنګه چه تا په مکه کښې خپل ایمان پټ ساتلې وو. بیا تا هغه د اسلام ظاهرولو باوجود قتل کړو ؟ (۴)

**قوله تعالی:** تَبْتَغُوْنَ عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۫ فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ كَثِيْرَةٌ ؕ

---

(۱) احمد : ۱۱/۶ ؛ مجمع الزوائد : ۸/۷)-

(۲) ابن جریر)-

(۳) صحیح بخاری کتاب الدیات باب قول الله تعالی ( ومن یقتل مومنا متعمدا ....) ۶۹۶۶ تعلیقا)-

(۴) البزار : ۲۲۰۲)-

بیا فرماني چه تاسو د کوم غنیمت لالچ کښې غفلت کوئی او د سلام اچونکی په ایمان کښې شك کوئ او هغوئ قتل کوئی، واورئی دا غنیمت هم دالله ﷻ د طرفنه دې. هغه سره ډیر غنیمتونه دی چه هغه تاسو ته حلالې ذریعې سره درکوی. او تاسو لره به ددې مال نه کښې ډیر بهتر وی.

**قوله تعالی:** كَذٰلِكَ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا

**د مسلمانانو اولني حالت:-** تاسو هم خپل وخت یاد کړئی چه تاسو هم داسې وئ. تاسو به هم د خپلې کمزورئی او ضعف په وجه خپل ایمان نشو ظاهرولې. قوم نه پټیدلئی. نن الله ﷻ تاسو باندې احسان اوکړو ، تاسو ته ئې قوت درکړو ، او تاسو په ښکاره د اسلام اظهار کولې شئ، نوچه کوم بې سروسامان د دښمن په پنجه کښې انښتی دی او د ایمان اظهار ښکاره نشی کولې، هرکله چه هغوئ د خپل ایمان اظهار اوکړی نو تاسو ته پکار دی چه دا اومنئی. او یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَاذْكُرُوْٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ﴾ یاد کړئی کله چه تاسو کمزوری وې ، الغرض ارشاد دې چه څنګه به د چیلو شپونکی خپل ایمان پټولو هم دغه شان ددې نه وړاندې تاسو په ډیر زیات سخت حالت کښې د مشرکانو په مینځ کښې وئ او خپل ایمان مو پټولو.

**د ایت دویم تفسیر:-** دا مطلب هم بیان شوې دې چه تاسو هم وړاندې مسلمانان نه وئ الله ﷻ تاسو باندې احسان اوکړو او تاسو ته ئې اسلام نصیب کړو. حضرت اسامه ﷺ قسم کړې وو چه ددې نه پس به کله هم یو ﴿لااله الاالله﴾ وئیلو والا سړې نه قتلوم. ځکه دوی ته هم په دې ښه سزا ورکړې شوې وه. بیا د تاکید په طور دوباره وائی چه ښه تحقیق کوئی. بیا دهمکی ورکوی چه الله ﷻ د خپلو عملونو نه غافله مه ګڼړئی. چه تاسو څه کوئی هغه ذات ته ددې هر څه خبر دې.

| | | |
|---|---|---|
| لَا يَسْتَوِي | الْقٰعِدُوْنَ | مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ |
| نۀ دی برابر | ناست کسان | دمومنانو نه |
| انښی برابر یدې هغه مسلمانان چې بې دڅه عذر نه په کور ناست وی | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ | وَالْمُجٰهِدُوْنَ | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | بِاَمْوَالِهِمْ |
| د چاچې څه عذرنشته | اوجهاد کونکی | په لاردالله کښې | په مالونوخپلوسره |
| اوهغه مومنان چې دالله ﷻ په لار کښې په سرومال سره جهاد کوی | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاَنْفُسِهِمْ ؕ | فَضَّلَ اللّٰهُ | الْمُجٰهِدِيْنَ | بِاَمْوَالِهِمْ | وَاَنْفُسِهِمْ |
| اوپه ځانونوخپلوسره | فضیلت ورکړې دې الله | جهاد کونکو ته | په مالونو خپلو سره | اوپه ځانونو خپلو سره |
| الله ﷻ فضیلت ورکړې دې په سرومال باندې جهاد کونکوته | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى الْقٰعِدِيْنَ | دَرَجَةً ؕ | وَكُلًّا | وَّعَدَ اللّٰهُ | الْحُسْنٰى ؕ |
| په کیناستونکو | په درجه کښې | او دټولو سره | وعده کړی ده الله | دښې جزا |
| په ناستو خلقو باندې | اګرچې هریو سره ئې دجنت وعده کړې ده | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَفَضَّلَ اللّٰهُ | الْمُجٰهِدِيْنَ | عَلَى الْقٰعِدِيْنَ | اَجْرًا | عَظِيْمًا ۙ |
| او فضیلت ورکړې دې الله | جهاد کونکوته | په کیناستونکو باندې | داجر | لوئ |
| خو د هغه غازیانو دپاره د ناستو خلقو په مقابله کښې ډیرلوئې اجر دې | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| دَرَجٰتٍ | مِّنْهُ | وَمَغْفِرَةً | وَّرَحْمَةً ط | وَكَانَ اللّٰهُ |
| دهغوئ دپاره درجې دي لوئ | دطرفه دهغه (الله) نه | او مغفرت دی | او رحمت دی | او دی الله |
| هغوئ دپاره دالله ﷻ دطرفه لوئي لوئي درجې اوبښنه او رحمت دی.............. او الله ﷻ | | | | |
| غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا ۹۶ | | | |
| بخښونکې | رحم کونکې | | | |
| بښونکې رحم کونکې دی | | | | |

**قوله تعالى: لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ**

**عامو حالاتو کښې جهاد فرض کفایه دی:-** صحیح بخاری کښې دی چه کله ددې آیت مبارك دشروع آیتونه نازل شو چې هسې ناست مسلمانان او مجاهدین مسلمانان برابر نه دی.حضرت نبی کریم ﷺ حضرت زید ؓ راوغوښتلو اوبه هغه ئې دا آیاتونه لیکل.په دې کښې حضرت ابن ام مکتوم ؓ نابینا راغلو او وې وئیل چه یارسول الله ﷺ ! ځه خو نابینا یم.دې باندې دا الفـاظ ﴿غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ﴾ نازل شو.یعنی سوا د هغه ناستو نه چه معذوره وی.([1])

**قوله تعالى: غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ**

**د معذورمسلمانانو استثنی:-** او یوروایت کښې دی چه حضرت زید ؓ خپل خان سره قلم دوات راوړی وو.او یو حدیث کښې دی چه حضرت ابن ام مکتوم ؓ فرمائیلی وو چه ، یارسول الله ﷺ ! که ما کښې طاقت وې نو ځه به هم ضرور جهاد کښې شامل شوې وې.دې باندې دا الفاظ نازل شو. په هغه وخت کښې د حضرت نبی کریم ﷺ پتون مبارك د حضرت زید ؓ په پتون وو. اوپه هغوئ دومره بوج راغلو چه نزدې وو چه دهغوئ پتون مات شوې وې.([2])

**د وحی دروندوالې:-** او یوبل حدیث مبارك کښې دی چه کله ددې الفاظو وحی راغله نو په حضرت نبی کریم ﷺ باندې سکینه نازله شوه نو ځه د حضرت نبی کریم ﷺ خوا کښې ناست ووم. په الله ﷻ قسم چه هغه بوج چه کوم د رسول الله ﷺ د پتون په ماباندې پریوتې وو د هغې نه ما زیات بوج نه وو لیدلې.بیا وحی تلو نه پس حضرت نبی کریم ﷺ تر (عظیما) پورې آیت ماته حکم اوکړو.اوما په یو هدوکی اولیکلو.

**هم دا وقعه په بل روایت:-** او دیو حدیث الفاظ دی چه د حضرت ابن ام مکتوم ؓ الفاظ لا ختم شوی نه وو چه په حضرت نبی کریم ﷺ باندې وحی نازل شوه. حضرت زید ؓ فرمائی چه هغه منظر تر اوسه پورې څما په نظر کښې دې لکه چه ځه ئې ګورم چه دې نه پس نازل شوی الفاظ ما دهغه خانې نه خپل تحریر کښې اولیکل([3])

**د شان نزول باره کښې بل روایت:-** حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه دې نه مراد دبدر جنګ کښې چه کوم خلق شامل وو اوهغه چه کوم نه وو تلی([4])د بدر د غزوې په موقع حضرت عبدالله بن جحش ؓ او

---

[1]) صحیح بخاری کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة النساء باب ( لایستوی القاعدون.....): ۴۵۹۳، صحیح مسلم: ۱۸۹۸)-
[2]) صحیح بخاری کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة النساء باب ( لایستوی القاعدون.....): ۴۵۹۳، ترمذی: ۳۰۳۳، نسائی: ۳۱۰۱)-
[3]) ابوداود کتاب الجهاد باب الرخصة فی العقود.....: ۲۵۰۷ وسنده حسن )-
[4]) صحیح بخاری کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة النساء باب ( لایستوی القاعدون.....): ۴۵۹۳)-

حضرت عبدالله بن ام مکتوم ﷺ راغلل او حضرت نبی کریم ﷺ ته ئې عرض اوکړو چه مونږ داواړه نابینا يو، مونږ دپاره څه رخصت شته؟. هغوی ته دې آيت قرانی کښې رخصت ورکړې شو.
نوکومو مجاهدينوته چه ناستو مسلمانانو فضيلت ورکړې شوې وو دا هغه دي چه صحت مند او تندرست دی[1] نو اول خو مجاهدينو ته ناستو خلقو باندې مطلقًا فضيلت وو، خو بيا هم دې وحی سره چه کوم الفاظ نازل شو نوپه دې سره هغه خلق چه معذوره وو دعامو ناستو مسلمانانو نه مستثنی شو.لکه ړانده ، شل ، او بيمار دا دمجاهدينو درجه کښې دی.
**مجاهدينو ته په کومو ناستو فضيلت دې:-** بيا دمجاهدينو چه کوم فضيلت بيان شوې دې هغه په هغه خلقو دې چه بې د څه وجې جهاد کښې شامل شوې نه شو. لکه چه د حضرت ابن عباس ﷺ تفسير تير شو. اوهم دا پکار هم دې.بخاری کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ فرمائی چه مدينه کښې داسې خلق هم شته چه تاسو کوم جهاد دپاره سفر اوکړئ يا د جهاد په سفر په يو ځائې باندې تيريږئ. نو هغوئ ستاسوسره اجر کښې برابر دی.صحابه کرام ﷺ عرض اوکړو اګرچې هغوی په مدينه کښې مقيم دی.
حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه آو ځکه چې هغوئ د عذر د وجې ايسارشوی دی [2]
او يو روايت کښې دی چه تاسو چه څه خرچ کونی دهغې ثواب هم تاسو ته ملاويږی او دوی ته هم ملاويږی.[3]هم دا مطلب يو شاعر په دې الفاظو کښې بيان کړې دې چه :

يا راحلين الى البيت العتيق لقد سرتم جسوماً وسرنا نحن ارواحاً
انا اقمنا على عذر وعن قدر ومن اقام على عذر فقد راحاً

(ترجمه:-ائې دالله ﷺ دکور حج کوونکو! اګر چه تاسو خپلو بدنونو سره دې طرفته روان يئ، ليکن مونږ هم خپل روحانی طريقې سره روان يو، واورئی ، بې وسئ او عذر مونږ منع کړی يو او دا ظاهره ده چه عذر سره پاتې کيدونکی په جهاد کښې د تلونکو نه کم نه دې.
**قوله تعالى:: وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ:** بيا فرمائی چه هريوسره دالله ﷺ وعده د جنت او د لونې اجر ده.دې نه معلومه شوه چه جهاد فرض عين نه دې بلکه فرض کفايه دې.
**قوله تعالى:: وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا**
بيا ارشاد دې چه مجاهدينو ته غيرو مجاهدينو باندې فضيلت حاصل دې.
**قوله تعالى:: دَرَجَاتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً**
بيا ددوی اوچتې درجې ،ددوی دګناهونومعافی ، او په دوی باندې چه کوم رحمت او برکت دې ، دهغې بيان فرمائی او دخپل عام رحم او بخشش خبر ورکوی.
**دمجاهدينودرجې:-** بخاری اومسلم کښې دی چه جنت کښې سل درجې دی الله ﷺ په خپل لار کښې مجاهدينو دپاره تيارې کړې دی.د هرو دوؤ درجو په مينځ کښې دومره فاصله ده څومره چه دآسمان او زمکې ترمينځه ده [4]
**د دوو درجو مينځ کښې فاصله:-** اوحديث مبارك کښې دی حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړې دالله ﷺ لار کښې غشئ اولی هغه ته دجنت درجه ملاويږی.يو سړی تپوس اوکړو چه درجه څه ده ؟

[1] ترمذی كتاب تفسير باب ومن سورة النساء : ۳۰۳۲)-
[2] صحيح بخاری كتاب المغازی باب : ۸۲ ح/۴۴۲۳، ابن ماجة: ۲۷۶۴)-
[3] ابوداود كتاب الجهاد باب الرخصة فی العقود: ۲۵۰۸ وهو صحيح)-
[4] صحيح بخاری كتاب الجهاد باب درجات المجاهدين فی سبيل الله : ۲۷۹۰ عن ابی هريرة ﷺ صحيح مسلم: ۱۸۸۴)-

حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه ستاسو د کورونو دبالاخانو هومره نه ده بلکه د دوو درجو مینځ کښې دسلو کالو فاصله ده.[1]

إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ

| بیشکه هغه کسان | چې روحونه واخستل دهغوئ | فرښتو

| چا چې په ځان زیاتي اوکړو او فرشتو دهغوئ روحونه قبض کړل

ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنْتُمْ ط قَالُوا

چې ظلم کونکی ووُ| په ځانونو خپلو| اووئیل ورته فرښتو| په کوم حال کښې | وئ تاسو| اووئیل هغوئ

نوتپوس ترینه اوکړو فرښتو | چې تاسو په څه حال کښې وئ په |هغوئ جواب کښې اووئیل چې

كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ ط قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً

ووُ مونږه | کمزورې کړې شوې| په زمکه کښې | اووئیل فرښتو | آیا نهٔ وه | زمکه دالله | فراخه

مونږ دزمکې په مخ کمزوری خلق ووُ................. نو فرښتو اووئیل چې ولې دالله زمکه فراخه نهٔ وه

فَتُهَاجِرُوا فِيهَا ط فَأُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ط وَسَاءَتْ

چې هجرت کړې وې تاسو| په هغې کښې | نو دا هغه خلق دی| چه ځائ دهغوئ| دوزخ دې| اوبدځائې دې

چې تاسو په کښې هجرت کړې وې| داهغه خلق دی چې ددوئ ځائې جهنم دې| او ډیربد

مَصِيرًا ﴿٩٧﴾ إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ

دورتلو | مګرنهٔ هغه| چې بې وسه دی | د نارینو نه | او د زنانو نه | او د ماشومانو نه

ځائې دې د ورتلو|خو کوم نارینه اوزنانه اوماشومان چې په رښتیا کمزوری دی او بهر ته د تلو هیڅ ذریعه

لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا ﴿٩٨﴾ فَأُولَٰئِكَ عَسَى اللَّهُ

چې طاقت نهٔ لری | د څه حیلې | اونهٔ مومی لار د وتلو | نو دا بې وسه چې دی| امید دې چې الله

نهٔ لری او لار نهٔ مومی| ................................نو کیدې شی چې الله تعالی هغوئ ته

أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ ط وَكَانَ اللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٩٩﴾ وَمَنْ

معافی اوکړی | دګناهونو دهغوئ نه| اودې | الله | ډیر معافی کونکې | ښښونکې | اوڅوک

معافی اوکړی| ......................اوالله ډیرمعاف کونکې او ښښونکې ذات دې|...... اوڅوک چې

يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً ط

چې هجرت اوکړی|په لار د الله کښې|او به مومی|په زمکه کښې|ځائې دپنا اخستلو| ډیر | اوفراخی

دالله ﷻ په لار کښې هجرت اوکړی| هغوئ به په مخ دزمکې استوګنې دپاره ډیرځایونه اوهرقسم فراخی بیامومی

[1]) نسائی: کتاب الجهاد باب ثواب من رمی بسهم : ۳۱۴۶، عن کعب بن مرة ﷺ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنۡ | يَّخۡرُجۡ | مِنۡۢ بَيۡتِهٖ | مُهَاجِرًا | اِلَى اللّٰهِ | وَرَسُوۡلِهٖ | ثُمَّ |
| اوڅوك | چې اوځي | دكور خپل نه | چې هجرت كونكې وی | طرف دالله ته | اودرسول دهغه ته | بيا |
| اوڅوك چې دخپل كور نه دالله او د هغه د رسول ﷺ په لار كښې هجرت اوكړي ......... بيا | | | | | | |
| يُدۡرِكۡهُ | الۡمَوۡتُ | فَقَدۡ وَقَعَ | اَجۡرُهٗ | عَلَى اللّٰهِ | وَكَانَ اللّٰهُ | غَفُوۡرًا |
| اورسيږي هغه ته | مرګ | نو واقع شو | اجر دهغه | په الله باندې | اودې الله | ببنونكې |
| په لار كښې ورته مرګ راشي نو هغه ته به هم الله ﷻ د هجرت اجر وركوی ..........او الله ﷻ ببنونكې | | | | | | |
| رَّحِيۡمًا ﴿١٠٠﴾ | | | | | | |
| رحم كونكې | | | | | | |
| اورحم كونكې دې | | | | | | |

**قوله تعالى: اِنَّ الَّذِيۡنَ تَوَفّٰهُمُ الۡمَلٰٓئِكَةُ**

**د هجرت فرضيت:-** محمد بن عبدالرحمان الاسود ﷫ فرمائي چه اهل مدينه نه جنګ كولو دپاره چه كوم يو لښكر تيار شوې وو په هغې كښې ځما نوم هم وو. ځه دحضرت ابن عباس ﷠ مولى حضرت عكرمه ﷫ سره ملاو شوم ، هغه ددې خبرې ذكر اوكړو نو هغوئ ځه په دې كښې دشركت كولو نه سختئ سره منع كړم. او وې ونيل چه واوره ! ما د حضرت ابن عباس ﷠ نه آوريدلي دی چه بعضې مسلمانان چه د حضرت نبی كريم ﷺ زمانه كښې مشركان وو او ددوی تعداد زياتيدو ، اكثر به داسې هم وو چه په دوی كښې به ئې څوك په غشي ويشتلو سره هلاك كړو ،دمسلمانانو توري سره به قتل كړې شو. نودې باره كښې دا آيت مبارك نازل شو. [1]يعنى دمرګ په وخت كښې ددوی د خپلې بې وسئ حيله الله ﷻ ته قبوله نه ده.

اويو روايت كښې دی چه داسې خلق چه خپل ايمان به ئې پټ ساتلو ، هركله چه دوی كافرو سره جنګ بدركښې راغلل نو په هغوئ كښې بعضې د مسلمانانو دلاسه اووژلې شو. نو په دې مسلمانان غمكين شو چه افسوس دا خو خمونږ رونړه وو او خمونږ دلاسه مړه شو. ددوی دپاره به ئې استغفار كولو. نو دې باندې دا آيت مبارك نازل شو[2] نو باقی مسلمانانو دپاره دا آيت مبارك اوليكلې شو چه ددوی هيڅ عذر نه وو.وې ونيل چه دوی راوتل او دوی سره مشركان يوځائې شو او دوی تقيه اوكړه.نو دا آيت مبارك نازل شو چه ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّقُوۡلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ﴾

**دايت په شان نزول كښې د عكرمه قول:-** حضرت عكرمه ﷫ فرمائي چه دا آيت دهغه خلقو باره كښې نازل شوې دې چه داسلام كلمه به ئې ونيله او وو مكه كښې.په دوی كښې على بن اميه بن حلف او ابو قيس بن وليد بن مغيره او ابومنصور بن حجاج او حارث بن زمعه وو.

**دايت په شان نزول كښې د ضحاك قول:-** ضحاك ﷫ فرمائي چه دهغه منافقانو باره كښې دا آيت مبارك نازل شوې دې چه د حضرت نبی كريم ﷺ دهجرت نه پس هم مكه كښې پاتې شوی وو. بيا د بدر جنګ كښې مشركانو سره راغلل. بيا بعضې ميدان جنګ كښې اووژلې شو. مقصد دادې چه د دې آيت مبارك حكم عام دې دهر هغه سړی دپاره چه په هجرت قادر وی ، بيا هم په مشركانو كښې پروت

[1] صحيح بخاری كتاب التفسير باب ( ان الذين توفهم ) : ٤٥٩٦)-
[2] الطبری : ١٠٢٦٥ )-

وو او په دین مضبوط نه وی نو هغه دالله تعالی په نیز ظالم دې.او ددې ایت مطابق اودمسلمانانو په اجماع سره هغه د حرام کار مرتکب شوې دې.دې آیت مبارك کښې هجرت پریښودو ته ظلم ونیلې شوې دې.داسې خلقوته دوی د نزع په حالت کښې فرښتې وائی چه تاسو ولې دلته ایسار یئ؟ ولې مو هجرت اونکړو ؟ نودوی جواب ورکوی چه مونږ دخپل ښار مکې نه نه شو تلې.نو دې جواب کښې ورته فرښتې وائی چه آیا دالله ﷻ زمکه کښې فراخی نه وه ؟ ابوداود کښې دی چه کوم سړې مشرکانو سره یو ځائې وی او هغوئ سره اوسی نو هغه هم دهغوئ په شان دې. دا وه د دوستۍ نتیجه (۱).

**حضرت عباس ؓ ته جواب**:- حضرت سدی ؒ فرمائی چه حضرت عباس ؓ او حضرت عقیل ؓ او نوفل ګرفتار شوی وو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه عباس ته خپله فدیه ورکړه او د خپل وراره هم.حضرت عباس ؓ اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! چه آیا مونږ ستاسو قبلې طرفته مونځ نه کوو څه؟ آیا مونږ کلمه دشهادت نه وایو څه؟حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ائې عباس ! تا خو بحث اوکړو لیکن ته به دې کښې پاتې راشې.واوره ! الله ﷻ فرمائی چه ، بیا حضرت نبی کریم ﷺ هم دا آیت مبارك تلاوت کړو،یعنی تاسو هجرت ولې اونکړو ؟ (۲)

قوله تعالی: إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ

بیا چه کوم خلق دهجرت په پریښودو ملامته نه وی دهغوئ ذکر کوی چه کوم خلق دمشرکانو دلاسه پاتې نه شی او هیڅکله به پاتې نشی نو هغوی ته دلارې علم نشته دې.هغوی ته به الله ﷻ معافی اوکړی.دعسی کلمه دالله تعالی کلام کښې دوجوب او یقین دپاره راځی.الله تعالی معاف کولو والا او معافئ کونکې دې.

**د کمزور بې وسو مسلمانانو دپاره دعا**:- حضرت ابوهریره ؓ بیان کوی چه حضرت نبی کریم ﷺ د ماسخوتن مونځ کښې سمع الله لمن حمده ونیلو نه پس سجدې ته د تلو نه مخکښې دا دعا کړې وه چه ائې الله ﷻ ! عیاش بن ابو ربیعه ، سلمه بن هشام ،ولیدو ابن ولید او ټول بې وسه مسلمانان د کافرو د پنجې نه خلاص کړه.ائې الله ﷻ ! خپل سخت عذاب په قبیله مضر نازل کړه. ائې الله ﷻ ! په دوی باندې داسې قحط راوله لکه څنګه چه دې دحضرت یوسف ؑ په زمانه کښې راوستې وو. (۳)

**دا حدیث په بل روایت سره**:- ابن ابی حاتمؒ کښې د حضرت ابوهریره ؓ نه مروی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ د سلام ګرځولو نه پس قبلې طرفته مخ کړو. او لاس ئې اوچت کړو. او دعا ئې اوکړه ائې الله ﷻ ! ولید بن ولید ، عیاش ابن ربیعه ، سلمه بن هشام او ټول بې وسه مسلمانان دکافرو دپنجې نه خلاص کړه .څکه چه دوی کښې د حیلې طاقت نشته.او نه د لارې موندلو. (۴)

**تائید دحدیث**:- ابن جریرکښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ دماسپخین دمونځ نه پس دا دعا کوله. ددې حدیث مبارك شواهد په صحیح کښې هم د سند نه علاوه په نورو سندونو سره هم نقل دې لکه څنګه چه مخکښې تیر شو.

**ابن عباس اود هغوی مور په معذوروکښې وه**:- حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه زه او زما مور په هغه ضعیفو ښځو او بچو کښې وو چه د چا ذکر په دې آیت مبارك کښې دې ، مونږ ته الله ﷻ معذور ونیلی

---

(۱) ابوداود کتاب الجهاد باب فی الاقامة بارض الشرك : ۲۷۸۷)،-

(۲) الطبری : ۱۰۲۷ داروایت مرسل دې)-

(۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النساء: باب قول الله تعالی (فاولئك عسی الله ان یعفو عنهم) ۴۹۹۸،صحیح مسلم: ۶۷۵)

(۴) ابن ابی حاتم)-

دي.(۱)

قوله تعالى: وَمَن يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً

**اجر او ثواب به د نيت مطابق وي**:- د هجرت ترغيب ورکوي او مشرکانو نه د جدا کيدو هدايت کوي او فرماني چه دالله تعالى لار کښې دې هجرت کولو والا نه پريشانه کيږي بلکه دوي چه هر ځائې ته ځي نو دوي دپاره به الله ﷻ د پناه اسباب تياروي.او هغوي به آرام سره هلته اوسيږي.د مراغم يومعنى يو ځائې نه بل ځائې ته تلل دي.حضرت مجاهد رحمه الله فرماني چه هغوئ د خپل غم نه دبچ کيدو دپاره ډير صورتونه اومومي. دامن ډير اسباب به دوي ته ملاؤ شي.

قوله تعالى: وَمَن يَخْرُجْ مِن بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ

بيا فرماني چه کوم سړې دهجرت نيت سره دخپل کور نه اوځي ، بيا دهجرت ځائې ته د رسيدو نه وړاندې په لار کښې وفات شي. نو ده ته هم د هجرت ثواب ملاؤ شو.

**د عملونو دارومدار په نيت دې**:- حضرت نبى کريم ﷺ فرمائي چه دهر عمل دارومدار په نيت دې.او هر سړې دپاره هغه بدله ده چه هغه د کوم نيت کړې وي. نو چه د چا هجرت چې دالله ﷻ د رضا دپاره او د رسو ل الله ﷺ د رضا دپاره وي،نوهغه هجرت الله ته قبول دې.او چه د چا هجرت د دنيا حاصلولودپاره وي يا يو ښځې سره د نکاح دپاره وي.نو هغه ته به داصل هجرت ثواب نه ملاويږي بلکه دهغه هجرت به هغه شان ګنړلې کيږي.(د څهٔ دپاره چې ئې هجرت کړې وي ) (۲) دا حديث مبارک عام دې.اوهجرت وغيره ټول اعمال په دې کښې شامل دي.

**د سلوکسانو د قاتل واقعه**:- بخارى اومسلم شريف کښې دهغه سړي باره کښې دی چه هغه يو کم سل قتلونه کړي وو ، بيا ئې يو عابد قتل کړو او سل ئې پوره کړل.بيائې يو عالم نه تپوس اوکړو چه آيا دده توبه قبليديشى که نه ؟ نوهغه عالم ورته اووئيل چه ستا او ستا د توبې مينځ کښې هيڅ څيز حائل نه دې ته خپلې قبيلې نه هجرت اوکړه او فلانى ښار ته لاړ شه اوهلته دالله ﷻ عابدان بندګان اوسيږي.نو ده هجرت اوکړو او هغه طرفته روان شو ، لا په لار کښې وو چه ده ته مرګ راغلو. درحمت او عذاب فرښتې دده باره کښې په مختلفې شوې.بعضو وئيل چه دې سړي توبه کړې وه او هجرت ئې اوکړو او روان شوې وو خو هلته اونه رسيدو. بيا هغوئ ته حکم اوشو چه هغوى دې د دواړو طرفونو زمکه ناپ کړي. چه داسړې کوم کلي ته نزدې وو نو هغوئ سره به دې وي.بيا الله ﷻ زمکې ته حکم اوکړو چه د خراب کلي طرفته لرې شه (يعنى د هغه طرفنه فاصله زياته کړه ) اود نيکانو کلي ته نزدې شه. هرکله چه زمکه ناپ کړې شوه نو توحيد والو طرفته يو لويشت نزدې وو او دې درحمت فرښتو بوتلو. يو روايت کښې دى چه دمرګ په وخت کښې ده دخپلې سينې په زور دنيکو خلقو کلي طرفته ځان راښکو. (۳)

**د موضوع سره متعلق يو بل روايت**:- مسند احمد کښې يو حديث مبارك دې چه کوم سړې خپل کور نه دالله ﷻ لار کښې د جهاد په نيت اووتلو ، بيا حضرت نبى کريم ﷺ خپلې درې واړه ګوتې مبارکې يعنى دکلمې ګوته ، مينځنۍ ګوته او دې سره نزدې ګوته يو ځائې کړه او بيا ئې اوفرمائيل چه چرته دې مجاهد ؟ بيا هغه خپلې سورلۍ نه راپريوتو او يو ځناور دې ځيرې کړو يا په خپل مرګ مړ شو نو دده

---

۱) صحيح بخارى کتاب التفسير سورة النساء : باب قول الله تعالى ( الا المستضعفين من الرجال والنساء ) : ۴۵۹۷)-

۲) صحيح بخارى کتاب بدء الوحى کان بدالوحى الى رسول الله صلى الله عليه وسلم : ۱ صحيح مسلم : ۱۹۰۷، ابوداود: ۲۲۰۱، ترمذى : ۱۶۴۷ نسائى : ۳۸۲۵)-

۳) مسند احمد : ۳۶/۴))-

دهجرت ثواب دالله تعالی په ذمه دې.( راوی وائی چه په خپل مرګ مړکیدو دپاره چه کومه کلمه حضرت نبی کریم ﷺ استعمال کړه ) په الله قسم ما ددې نه مخکښې دا کلمه د حضرت نبی کریم ﷺ نه دهیڅ یو عربی د ژبې نه نه وه آوریدلې او چه کوم سړې د غضب په حالت کښې قتل شو نو هغه ددې ځائې مستحق شو.

**د ایت باره کښې یوبل شان نزول:-** حضرت خالد بن حزام ﷺ هجرت او حبشې ته لاړو لیکن لار کښې دې یو مار اوچیچلو او په دې کښې دده روح قبض شو. ددوی باره کښې دا آیت مبارك نازل شو. حضرت زبیر ﷺ فرمائی چه هجرت کولو نه پس هغه حبشې ته رسیدلې وو او ماته دهغه باره کښې خبر شوې وو چه دې هم هجرت کوی راځی. اوماته معلومه وه. چه په قبیله بنو اسد کښې د دوی نه سوا بل چا هجرت نه وو کړې. او چه څومره مهاجرین وو د هغوی سره رشته دار وو، خوماسره هیڅوك نه وو. ما د هغه یعنی دحضرت خالد ﷺ ډیر زیات انتظار کولو. هرکله چه ماته دهغه د شهادت خبر ملاؤ شونو څه ډیر زیات خفه شوم.([1])دا اثر ډیر غریب دې.د دې وجه دا ده چه دا قصه مکه مکرمه کښې وه او دا آیت مدینه منوره کښې نازل شوې دې.لیکن زیاته ممکنه ده چه د راوی مقصد دا وی چه د آیت مبارك حکم عام دې.اګر چه شان نزول ئې نه وی.والله اعلم.

**دایت شان نزول کښې بل روایت:-** او یو روایت کښې دی چه حضرت ضمیره بن جندب ﷺ هجرت کولو دپاره حضرت نبی کریم ﷺ طرفته رااوان شو لیکن حضرت نبی کریم ﷺ ته د رارسیدو نه مخکښې لار کښې وفات شو ، ددوی باره کښې دا آیت مبارك نازل شوې دې.([2])

**د ایت باره کښې بل شان نزول:-** او یو روایت کښې دی چه حضرت ابوضمیره چه په سترګو ړوند وو ، هرکله چه دا آیت مبارك ﴿إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ﴾ ئې واوریدو نو وې وئیل چه څه مالدار یم او ماسره سامان هم شته دې ماته پکار دی چه هجرت اوکړم. نو دسفر سامان ئې تیار کړو او حضرت نبی کریم ﷺ طرفته رااوان شو. لیکن لا په تنعیم کښې وو چه دوی ته مرګ راغلو.ددوی باره کښې دا آیت مبارك نازل شو.

**دمجاهد په لار کښې مرګ د جنت سبب دې:-** طبرانی کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ فرمائی چه کوم سړې خما لار کښې د جهاد کولو دپاره اووتلو صرف خما وعدې ئې ریښتونې اوګڼړلې او خما په رسولانو ئې ایمان راوړو نو هغه د الله ﷻ ضمانت کښې دې یا به هغه لښکر سره مړ شی او جنت ته به داخل شی یا به واپس دالله ﷻ ضمانت کښې راشی یا به غنیمت او اجر او دالله ﷻ فضل واخلی ، که دې په خپل مرګ مړ شی یا آس نه پریوځی مړشی یا اوښ نه پریوځی مړ شی یا ئې یو زهریله ځناوراوچیچی یا په خپله بستره مړشی یا شهیدشی.ابوداود کښې دومره زیاتوالې دې چه هغه جنتی دې.

**دمجاهد شهید مرتبه:-** بعضې الفاظ ابوداود کښې نشته دې ([3]). ابویعلی کښې دی چه کوم سړې حج دپاره اوځی،بیا مړ شی نو تر قیامته پورې به دده دپاره دحج ثواب لیکلې کیږی.څوك چې عمرې دپاره اوځی او لارکښې وفات شی نو دده دپاره تر قیامته پورې دعمرې اجر او ثواب لیکلې کیږی.او چه څوك جهاد دپاره اوځی اومړ شی نو تر قیامته پورې دده دپاره د جهاد ثواب لیکلې کیږی.داحدیث مبارك غریب دې.([4])

---

[1]) ابن ابی حاتم : )-
[2]) ابن ابی حاتم :)-
[3]) ابوداود کتاب الجهاد باب فیمن مات غازیا : ۲٤۹۹ )-
[4]) ابو یعلی : ٦۳٥۷ )-

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | ضَرَبْتُمْ | فِي الْأَرْضِ | فَلَيْسَ | عَلَيْكُمْ | جُنَاحٌ | |
| او هر کله چې | سفر کوئ تاسو | په زمکه کښې | نو نشته | په تاسو | هيڅ ګناه | |
| او هر کله چې تاسو په سفر روان شئ نو په تاسو باندې هيڅ ګناه نشته | | | | | | |
| أَنْ تَقْصُرُوا | مِنَ الصَّلٰوةِ | إِنْ خِفْتُمْ | أَنْ يَفْتِنَكُمُ | الَّذِينَ | | |
| چې لنډ والې اوکړئ | په مانځه کښې | که ويرېږئ تاسو | چې په فتنه کښې به واچوی تاسو | هغه کسان | | |
| که تاسو مونځ کښې قصر اوکړئ ...........که دا ویره درسره وی چې کافران به مو پریشانه کړی | | | | | | |
| كَفَرُوا | إِنَّ الْكٰفِرِينَ | كَانُوا | لَكُمْ | عَدُوًّا | مُّبِينًا ۝ | |
| چې کافران دی | بیشکه چې کافران | دی | ستاسو | دشمنان | ښکاره | |
| بیشکه کافران ستاسو ښکاره دشمنان دی | | | | | | |

**په سفر کښې د قصر حکم:-** فرمان دې چه تاسو کله په سفر اوځئ او هم دا الفاظ دسفر دپاره په سورة مزمل کښې هم راغلی دی. نوتاسو باندې مونځ کښې کمی کولو باندې هېڅ ګناه نشته دې. د کمې یا کمیت یعنی دڅلورو رکعتو په ځائې دوه رکعته دی لکه څنګه چه جمهورو ددې آیت مبارك نه ګڼلی دی.اګر چه په دې کښې بعضو مسئلو کښې اختلاف دې.

**کوم سفرموجب د قصر دې؟ په دې کښې مذاهب:-** ①بعضې وائی چه دا شرط دې چه سفر د اطاعت وی لکه جهاد دپاره یا حج دپاره یا عمرې دپاره یا د علم طلب دپاره یا زیارت (د نبی کریم ﷺ) دپاره وی وغیره.حضرت ابن عمر ؓ ، حضرت عطاء رحمه الله اویحیی یو روایت کښې وائی چه دامام مالك هم دا قول دې. څکه چه ددې نه مخکښې فرمان دې که تاسو ته د کافرو نه ویره وی.②بعضې وائی چه ددې قید هیڅ ضرورت نشته دې چه سفر دقربت خداوندی دپاره وی یا نه وی بلکه دمونځ کمې هر مباح سفر دپاره دې.لکه اضطرار او د بې وسئ صورت کښې چه مردارې د خوراك اجازت دې.خو شرط دادې چه سفر معصیت نه وی.حضرت امام شافعی رحمه الله او حضرت امام احمد رحمه الله وغیره اماعانو هم داقول دې.یو سړی حضرت نبی کریم ﷺ نه سوال اوکړو چه څه د تجارت دپاره په سمندر کښې سفر کوم نو حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه ده ته د دوؤ رکعتو کولو حکم دې. دا حدیث مبارك مرسل دې.③د بعضې مذهب دې چه په هر سفر کښې دقصر مونځ کول پکار دی.سفر که مباح وی اوکه ممنوع.تر دې که څوك د غلا دپاره راشی اومسافرو ته د تکلیف ورکولو دپاره وتلې وی نو هغه ته هم د قصر مونځ کول پکار دی.حضرت ابوحنیفه رحمه الله ، حضرت ثوری رحمه الله ، او حضرت داود رحمه الله نه هم دا قول نقل دې چه دا آیت مبارك عام دې.لیکن دا قول د جمهورو خلاف دې.

**د ګناه سفر هم د قصر فی الصلاة سبب دې**

**مسلك حنفی:-** لکه څنګه چه حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائیلی دی هم دا مذهب د احنافو دې (تفسیرمظهری ۴۳۱۱۲)-

**په سفرکښې د قصر دپاره ویره شرط ده که نه؟ :-** دکفارو سره د ویرې شرط لګولې شوې دې دا په اعتبار اکثرسره.د آیت دنازلیدو په وخت کښې هم دغه حالت وو.(یعنی دکافرو د طرفه په مسلمانانو ویره وه) ددې وجې آیت کښې هم ددې بیان شوې دې.هجرت نه پس به د مسلمانانو سفرونه ټول په ټوله ویرې وو. قدم په قدم به د دښمن خطره وه بلکه د دجهاد یا د یو خاص لښکر سره د تلو نه بغیر به چا سفرکولې نشو. اودا قاعده ده چه کله منطوق په اعتبار د غالب راشی نو ددې مفهوم معتبر نه وی.

**د ویرې د قید نظیر:** - لکه څنګه چه بل ایت کښې دی چه خپلې وینځې په بدکارئی مه مجبوره وې که هغوئ پاکوالئ غواړی.(نو د آیت مطلب دا نه دې که وینځې زما کول غواړی نو بیا خیر دې تاسو پرې زنا کوئ بلکه په هغه وخت کښې چې کومې وینځې وې هغوی پاکدامنې وی او زنا به ئې د خپلو مالکانو د مجبورئ نه کوله نو ځکه الله تعالی دا قید اولګولو.که هغوی پاکدامنی غواړی دغه شان دلته هم د سفر په آیت کښې چونکه مسلمانان په ویره کښې وو.نو ځکه الله تعالی د ویرې ذکر اوکړو.دا مطلب نه دې که په سفر کښې ویره نه وی نو تاسو قصر مه کوئ) او لکه چه څنګه الله تعالی په بل ځائې کښې فرمائی چه ستاسو هغه پرکتئ چه ستاسو په پرورش کښې وی دهغه ښځو نه چه تاسو ورسره صحبت کړې وی .(نوستاسو دپاره د هغوی سره نکاح جائز نه ده) نو لکه څنګه چه په دې دوو آیتونو کښې قید بیان شوې دې.لیکن ددې په قید د حکم دارومدار نشته دې.بلکه ددې نه بغیر هم حکم هغه دې ، یعنی وینځې بدکارئی دپاره مجبوروَل حرام دی.برابرده که هغوئ پاکوالې غواړی اوکه نه غواړی.همداشان دهغه ښځې لور حرامه ده چه هغې سره نکاح نه پس صحبت شوې وی که د خاوند په پرورش کښې وی او که نه وی.حالانکه دواړو ځایونو کښې دقران پاك قید موجود دې.نو څنګه چه په دې دواړو موقعو کښې بغیر د قید نه هم دا حکم دې هم دغه شان دلته هم که ویره نه وې نو بیا هم زمونږ دپاره دسفر په وجه په سفر کښې مونځ کښې قصر کول جائز دی.

**په سفر کښې قصر د الله هدیه ده:** - مسنداحمد کښې دی چه حضرت یعلی بن امیه حضرت عمرفاروق ﷺ نه تپوس اوکړوچه دمونځ د تخفیف حکم خو د ویرې په حالت کښې دې اواوس خو امن دې.نو حضرت عمرفاروق ﷺ جواب کښې اوفرمائیل چه هم دا خیال ځما هم وو اوهم دا سوال ما د حضرت نبی کریم ﷺ نه کړې وو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا دالله ﷻ صدقه ده چه هغه پاك ذات تاسو ته درکړې ده تاسودا صدقه قبوله کړئی.([1])

**هم دا حدیث په بل روایت سره:** - مسلم او سنن وغیره کښې هم دا حدیث مبارك شته دې ،بالکل صحیح روایت دې.ابوحنظله حذاء ﷺ حضرت عمر فاروق ﷺ نه دسفر دمونځ باره کښې تپوس اوکړو نو حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل چه دوه رکعته دی.هغوئ اوونیل چه په قران پاك کښې خو د ویرې په وخت کښې دوه رکعته دی او په دې وخت کښې خو پوره امن دې.نو حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل چه هم دا د رسول الله ﷺ سنت دی.( ابن ابی شیبه). د یو بل سرې په سوال حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل چه د آسمان نه خو رحصت نازل شوې دې که اوس تاسو دا غواړئی نو واپس ئې کړئی.

**دویم دلیل:** -حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی د مکې معظمې اومدینې منورې په مینځ کښې د امن باوجود مونږ د حضرت نبی کریم ﷺ سره دوه رکعته مونځ اوکړو ([2]) ( نسائی وغیره ).

**دریم دلیل:** - أویو بل حدیث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ مدینې نه مکې معظمې ته روان شواوهیڅ دښمن ویره نه وه صرف دالله ویره وه اوحضرت نبی کریم ﷺ به دوه رکعته مونځ اداکولو. ([3])

**دا حدیث په بل روایت سره:** - بخاری شریف کښې حدیث مبارك دې چه واپسئ کښې هم حضرت نبی کریم ﷺ دوه رکعته مونځ کولو. اودمکې په دې سفر کښې حضرت نبی کریم ﷺ لس ورځې قیام فرمائیلې وو. ([1])

---

[1]) صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین وقبصها باب صلاة المسافرین : ٦٨٦، ابوداود: ١١٩٩، ترمذی : ٣٠٣٤ ابن ماجة: ٩٤٥)-

[2]) ترمذی کتاب الجمعة (السفر) باب ما جاء فی التقصیر فی السفر : ٥٤٧، وهو صحیح نسائی : ١٤٣٦ بمعناه)-

[3]) ترمذی کتاب الجمعة (السفر) باب ماجاء فی التقصیر فی السفر: ٥٤٧ وهو صحیح نسائی : ١٤٣٧)-

**څلورم دليل**: مسنداحمد کښې حضرت حارثه ﷺ نه روايت دي چه ما حضرت نبی کريم ﷺ سره منی کښې دماسپخين او مازيګر مونځ دوه دوه رکعته اداکړو حالانکه په هغه وخت کښې مونږ کثرت کښې وو او ډير زيات امن کښې وو. [2]

**پنځم دليل**:- صحيح بخاری کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمر فرمانی چه ما حضرت نبی کريم ﷺ او حضرت ابوبکرصديق ﷺ سره او حضرت عمرفاروق ﷺ سره او حضرت عثمان ﷺ سره (سفر کښې) دوه رکعته ادا کړی دی.ليکن حضرت عثمان ﷺ اوس د خپل خلافت په آخری زمانه کښې پوره مونځ کولو.[3]

**شپږم دليل**:- د بخاری شريف يو روايت کښې دی چه کله حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ته حضرت عثمان ﷺ د څلورو رکعتو ذکر اوکړو نو د دوی اوفرمائيل چه ﴿ اناالله ﴾ او وې فرمائيل چه ما حضرت نبی کريم صلی الله عليه وسلم سره منی کښې دوه رکعته مونځ کړې دې او صديق اکبر ﷺ سره هم او حضرت عمرفاروق ﷺ سره هم ، کاش چه د څلورو رکعتو په ځائې خما دوه رکعته قبول شی.[4] نو دا احاديث ښکاره دليلونه دی ددې خبرې چه د سفر د دوؤ رکعتو دپاره ويره شرط نه ده بلکه د ډير امن په صورت کښې هم دوه رکعته اداکولې شی.

## سفر که د امن وی هم موجب قصر دې

**مسلک حنفی**:- داحنافو مسلک دا دې که په سفر کښې امن وی نو بيا به هم قصر کوی باقی په آيت کښې چې د ،،خوف،، قيد ذکر دې نو د دې وضاحت حافظ ابن کثير رحمه الله کړې دې دوباره ذکر کولو ته ضرورت نشته (تفسيرمظهری ۴۳۳/۲)۔

**قصر په تعداد د رکعتونو کښې دې**:- ددې وجې بعضې علماء کرام فرمانی چه دلته کيفيت کښې يعنی قرات قومه ،رکوع سجود وغيره کښې قصر اوکمې مراد نه دې بلکه په کميت کښې يعنی تعداد درکعتونو کښې تخفيف مراد دې.حضرت ضحاک رحمه الله ، حضرت مجاهد رحمه الله ، او حضرت سدی رحمه الله نه هم دا قول نقل دې لکه چه رازی.ددې يو دليل د حضرت امام مالک رحمه الله نه روايت کړې شوې دې حديث مبارک هم دې چه حضرت عائشه رضی الله عنها فرمانی چه مونځ دوه دوه رکعته په حضر او سفر کښې فرض کړې شوې وو. بيا سفر کښې خو هغه دوه رکعته فرض شو او د حضر په صورت کښې دوه زيات کړې شو. [5]

د نورعلماء کرامو يو ډله دا وانی چه اصل مونځ دوه رکعته وو خوبيا ددې آيت مبارک کښې قصر نه مراد کميت دې نوبيا د رکعتونو تعداد کښې کمې څنګه کيديشی ؟ ددې قول ډير زيات تائيد ډير وضاحت سره دهغه حديث مبارک نه کيديشی چه کوم مسند احمد کښې دې چه حضرت عمرفاروق ﷺ نه روايت دې چه د نبی کريم ﷺ په ژبه دسفر دوه رکعته دی اوضحی مونځ هم دوه رکعته دې او عيدالفطر مونځ هم دوه رکعته دې اوجمعې مونځ هم دوه رکعته دې.هم داپوره مونځ دې قصر والا نه دې.[6]

---

[1]) صحيح بخاری کتاب التقصير باب ما جاء فی التقصير وکم يقيم يقصر : ۱۰۸۱، صحيح مسلم: ۶۹۳ ابوداود : ۱۲۳۳ ، ترمذی : ۵۴۸ نسائی : ۱۴۵۴، ابن ماجة: ۱۰۷۷)-

[2]) صحيح بخاری کتاب التقصير باب الصلاة بمنی : ۱۰۸۳، صحيح مسلم: ۶۹۶)-

[3]) صحيح بخاری کتاب التقصير باب الصلاة بمنی : ۱۰۸۳، صحيح مسلم: ۱۰۹۰ ، نسائی : ۱۴۵۱)-

[4]) صحيح بخاری کتاب التقصير باب الصلاة بمنی : ۱۰۸۴، صحيح مسلم: ۶۹۵)-

[5]) صحيح بخاری کتاب الصلاة کيف فرضت الصلوة فی الاسراء : ۳۵۰ ، صحيح مسلم: ۶۸۵، ابوداود : ۱۱۹۸ نسائی : ۴۵۳)-

[6]) نسائی : کتاب تقصير الصلاة باب :۱ ح/۱۴۴۱، وهو صحيح : ابن ماجه: ۱۰۶۳)-

**د حدیث په صحت د ابن کثیر کلام:-** دا حدیث مبارك نسائی ، ابن ماجه او صحیح ابن حبان کښې هم دې.ددې سند په شرط دمسلم دې.ددې د راوی د ابن ابی لیلی دحضرت عمرفاروق ﷺ نه آوریدل ثابت دی.لکه څنګه چه امام مسلم رحمه الله په خپله صحیح مقدمه کښې لیکلی دی ([1])او پخپله دې روایت کښې او ددې نه سوا نور وضاحت سره موجود دی. او هم دا صحیح دی.انشاء الله.اګر چه بعضې محدثین ددې د آوریدو قائل نه دی. لیکن ددې منلو کښې هم ددې سند کښې څه نقصان نشته دې خکه چه بعضو طرق کښې ابن ابی لیلی یو راوی دې او دهغوئ دحضرت عمرفاروق ﷺ نه آوریدل ثابت دی.والله اعلم.([2])

مسلم وغیره کښې د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه مروی دی چه الله ﷻ ستاسو د نبی حضرت محمد ﷺ په خوله مبارکه مونځ د اقامت په حالت کښې څلور رکعته فرض کړې دې او په سفر کښې دوه رکعته او د ویرې په حالت کښې یو رکعت لکه څنګه چه حضر کښې ددې نه مخکښې او ددې نه روستو مونځ مو کولو یا کولې شې هم دغه شان په سفر کښې هم. ([3])

**په دواړو روایتونو کښې موافقت:-** او دې روایت کښې او دحضرت عائشه رضی الله عنها والا روایت کښې چه کوم پورته تیر شو چه په حضر کښې الله ﷻ دوه رکعته فرض کړې وو هیڅ منافات نشته دې ، ددې وجې اصل دوه رکعته وو ، روستو دوه نور زیات شو ، بیا د حضر څلور رکعته شو نو اوس ونیلی شی چه د اقامت حالت کښې فرض څلور رکعته دی.لکه څنګه چه حضرت ابن عباس ﷺ والا روایت کښې دی ، والله اعلم.

الغرض د دواړه روایتونونه ثابتیږی چه په سفر کښې دوه رکعته دی او هم دا پوره مونځ دې ، کم نه دې.اوهم دا د حضرت عمرفاروق ﷺ د حدیث مبارك نه ثابت دې.نو ددې نه مراد د قصر کیفیت دې لکه څنګه چه صلوة خوف کښې.هم ددې وجې فرمائی که تاسو د دې خبرې نه ویریږئی چه کافر به تاسو په فتنه کښې واچوی. او دې نه پس فرمائی چه کله تاسو دې کښې یئ او مونځ کوئی نوبیاهم.

بیا دقصر مقصد صفت او کیفیت هم بیان فرمائی.امام المحدثین حضرت امام بخاری رحمه الله کتاب الصلوة الخوف هم دې آیت ﴿وَإِذَا ضَرَبْتُمْ﴾ نه تر ﴿مُّهِينًا﴾ پورې لیکل شروع کړی دی.

حضرت ضحاك رحمه الله ددې تفسیر کښې فرمائی چه دا د جنګ وخت دې ، انسان په خپله سورلئ باندې مونځ او تکبیر وائی ، ددوی مخ چه کوم طرفته وی هم هغه طرفته دې وی.حضرت سدی رحمه الله فرمائی چه کله تا سفر کښې دوه رکعته مونځ اوکړو نو هغه د قصر مقدار پوره کوئ.خو کله چه دکافرو فتنه وی اوویره وی نو یو رکعت قصر دې.او ددې ویرې نه سوا دا حلال نه دې.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد هغه ورځ ده چه کله حضرت نبی کریم ﷺ د خپلو صحابه کرام ﷺ سره عسفان کښې وو او مشرکان په ضجنان کښې وو ، یو بل سره تیار وو او په دې کښې د ماسپخین د مونځ وخت شو.حضرت نبی کریم ﷺ ټول صحابه کرامو ﷺ سره حسب معمول څلور رکعته پوره ادا کړل.بل طرفته مشرکانو د سامان لوټ کولو اراده اوکړه.

ابن جریر رحمه الله دا د حضرت مجاهد رحمه الله او حضرت سدی رحمه الله او حضرت جابر رحمه الله اود حضرت ابن عمر ﷺ نه روایت کوی او همدا قول اختیاروی.او دې ته وائی چه هم دا صحیح دې.حضرت خالد بن اسید ﷺ حضرت عبدالله بن عمر ﷺ ته وائی چه د صلوة خوف د قصر حکم خو مونږ په کتاب الله کښې مومو

---

[1]) انظر آخره مقدمة صحیح مسلم)-

[2]) ابن ما جة کتاب اقامة الصلوة باب تقصیر الصلاة فی السفر : ۱۰۶۴ وسنده صحیح )-

[3]) صحیح مسلم کتاب الصلاة المسافرین و قصرها باب صلاة المسافرین وقصرها : ۶۸۷، ابوداود : ۲۴۷، نسائی : ۱۵۳۲)-

لیکن د صلوة مسافر د قصر حکم خو مونږ په کتاب الله کښې نه مومو نو حضرت ابن عمر ؓ جواب کښې فرمائی چه مونږ خپل نبې حضرت نبی کریم ﷺ لیدلې وو چه په سفر کښې به ئې قصر کولو. اومونږ هم په دې عمل اوکړو. (۱)

**په سفر کښې قصر نه دې بلکه پوره مونځ دې:-** خیال اوکړئ چه حضرت ابن عمر ؓ هم ددې اقرار کوی. دې آیت کښې د مسافر د قصر مونځ بیان نه کوی بلکه ددې دپاره ئې فعل رسول الله ﷺ سند جوړ کړو. ددې نه زیات صریح روایت د ابن جریر دې چه کوم کښې چې حضرت سماک ؓ ددوی نه د صلوة سفر مسئله تپوس کوی. دوی ورته فرمائی چه د سفر مونځ دوه رکعته دې. اوهم دا دوه رکعته د سفر د پوره مونځ دې قصر نه دې. قصر خو صلوة خوف کښې دې چه هغه امام یو جماعت ته یو رکعت کوی. دویم جماعت د دښمن سره مقابله کښې وی. بیا دوی لاړې شی او بل جماعت راشی. او امام دوی ته یورکعت ادا کړی نو امام دوه رکعته ادا کړل او ددې دواړو جماعتونو یو یو رکعت شو (۲)

وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَوٰةَ فَلْتَقُمْ طَائِفَةٌ مِّنْهُم

اوهرکله چې موجود ئې ته | په دوئ کښې | او قائموې | دپاره د دوئ | مونځ | نو اودریږی دې | یوه ډله | ددوئ نه

اوائې پیغمبره هرکله چې ته دمسلمانانو ډله کښې موجود یې | او دجنګ په وخت کښې ورته مونځ ورکوې | نو ددوی یوه ډله دې تا سره

مَّعَكَ وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا

تاسره | او اودې نیسی هغوئ | وسله خپله | نو بیا چې کله | سجده اوکړی هغوئ | نو شی دې هغوئ

اودریږی | او خپله خپله وسله دې ځان سره اونیسی | هرکله چې سجده اوکړی نو ستاسو نه دې

مِن وَرَائِكُمْ وَلْتَأْتِ طَائِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا

روستو ستاسو نه | اورا دې شی | ډله | بله | چې لانه دې کړې مونځ هغوئ

روستو لاړ شی | او بله ډله چې مونځ ئې نه وی کړې هغه دې رامخکښې شی ..........

فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ

نواودې کړی مونځ | تاسوسره | اواودې نیسی هغوئ | سامان د حفاظت خپل | اووسله خپله

اوتاسره دې مونځ کښې شریک شی | اودخپل حفاظت سامان دې ځان سره اوساتی او خپلې وسلې دې هم ځان سره واخلی

وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ

خوښوی هغه کسان | چې کافران دی | چې که تاسو غافلان شئ | دوسلو خپلو نه

کافران دا غواړی چې تاسو د خپلو وسلو اواسبابو نه (لږ قدرله) غافله شئ

وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً ۚ وَلَا جُنَاحَ

او د سامانونو خپلو نه | نو حمله به اوکړی | په تاسو | په یو ځل | اونشته ګناه

.........نوچې په تاسو باندې په یو ځل حمله اوکړی | ......اوپه تاسو هیڅ ګناه نشته

(۱) الطبری: ۱۰۳۲۳)-
(۲) الطبری: ۱۰۳۲۳)-

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْكُمْ | إِنْ | كَانَ | بِكُمْ | أَذًى | مِّنْ مَّطَرٍ | أَوْكُنْتُمْ | مَّرْضَى | أَنْ |
| په تاسو | که چرې | وی | په تاسو | څه تکلیف | دوجې دباران نه | یا وئ تاسو | ناجوړه | چې |

.............که چرته تاسو ته د باران د وجې تکلیف وی |..............یا بیماران یئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَضَعُوٓا | أَسْلِحَتَكُمْ | وَخُذُوا | حِذْرَكُمْ | إِنَّ اللَّهَ | أَعَدَّ |
| کیږدئ تاسو | وسلې خپلې | اوبیا هم اونیسئ | د خپل حفاظت سامان | بیشکه چې الله | تیار کړې دې |

چه تاسو خپله وسله پرانیزئ|.......... خودخپل حفاظت خیال ساتئ| بیشکه الله ﷻ

| | | |
|---|---|---|
| لِلْكٰفِرِينَ | عَذَابًا | مُّهِينًا۝ |
| دپاره دکافرانو | عذاب | رسواکونکې |

کافرانو دپاره رسواکونکې عذاب تیارکړې دې |

**د ویرې حالت کښې مونځ کول** :-د ویرې دمونځ دوه قسمونه دی.اومختلف صورتونه او حالتونه دی.کله داسې هم وی چه دښمن قبلې طرفته وی ، کله دښمن بل طرفته وی ، مونځ هم کله څلور رکعته وی اوکله درې رکعته لکه د ماښام کله دوه رکعته وی لکه د سحر مونځ او صلوة سفر ، کله جماعت سره ادا کول ممکن وی.کله لښکرې داشان یو بل سره په جنګ کښې وی چه په جمع مونځ ادا کول ممکن نه وی بلکه خان خانله قبلې طرفته او بغیر قبلې نه پیدل او په سورلئ چه څنګه هم اوشی نو ادا کیږی.

**دسختې ویرې په وخت د مونځ په مقدار کښې مذاهب**:- ①بلکه داسې هم وی اودا جائز هم دی چه د دښمنانو د حملو نه بچ شی ، په هغوئ پرله پسې حملې کوی.مونځ ادا کوی .داسې حالت کښې صرف یو رکعت مونځ باره کښې د علماء کرامو فتوی ده. اودلیل دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ حدیث مبارك دې چه کوم ددې نه مخکښې تیر شو. حضرت عطاء رحمه الله ، حضرت جابر رحمه الله ، حضرت حسن رحمه الله ،حضرت مجاهد رحمه الله ، حضرت حکم رحمه الله ، حضرت قتاده ، حضرت حماد ، حضرت طاوس رحمه الله ، حضرت ضحاك رحمه الله ، حضرت محمد بن نصر رحمه الله ، حضرت مروزی ابن حزم رحمه الله نه هم دا فتوی ده. د سحر مونځ کښې صرف یو رکعت پاتې کیږی .② اسحاق بن راهویه رحمه الله فرمائی چه دداسې کوشش په وخت کښې یورکعت کافی دې اګرکه اشارې سره نې ادا کوی.که دومره قدرې هم قادر نه وی نو سجده دې اوکړی دا هم ذکر الله دې.③ اوڅه خلق وائی چه صرف یو تکبیر هم کافی دې.

**د دې مذهب تطبیق**:- لیکن دا کیدیشی چه یو سجده او یو تکبیر نه مراد هم یورکعت وی.لکه امام احمدبن حنبل رحمه الله اوددوی ملګرونه هم دا فتوی ده.اوهم دا قول دې د حضرت جابر بن عبدالله ﷺ ، حضرت عبدالله بن کعب ﷺ وغیره صحابه کرامو ﷺ.

**د تطبیق رد**:- حضرت سدی رحمه الله فرمائی لیکن چه دکومو خلقو قول صرف یو تکبیر بیان شوې دې دهغې قائلین دا په پوره رکعت نه محمول کوی بلکه هم تکبیر ظاهروی او مراد ترې اخلی.لکه د اسحاق بن راهویه مذهب چه دې.امیر عبدالوهاب ابن بخت مکی هم دې طرفته مائل دې.④ تردې پورې چه هغه وائی که په دې هم قدرت نه وی نو دا دې په خپل نفس هم نه پریږدی.یعنی صرف نیت دې اوکړی ؛ فالله اعلم.

**د سختې ویرې په وخت په یو رکعت اکتفاء جائز نه ده**

**مسلك حنفی**:- د سختې ویرې په وخت کښې په یو رکعت یا صرف په تکبیر تحریمه اکتفاء جائز نه ده بلکه پوره مونځ به کوی البته که مسافر وی نو سفرانه مونځ به کوی (تفسیر مظهری ۴۳۸۱۲)-

**د مونځ روستو کولو قائلين:-** بعضې عالمان داسې خاص وختونو کښې دمونځ د تاخير رخصت ورکوي. **دلائل:-** ① ددوی دليل دا دې چه حضرت نبی کريم ﷺ جنګ خندق کښې د نمر پريوتلو نه پس د ماسپخين او مازيګر مونځ کړې وو. (١) بيائې ماښام او ماستختن. (٢)

② بيا دې نه پس د بنو قريظه د جنګ په ورځ دوی طرفته چه ئې څوک ليږلې وو هغوئ ته ئې تاکيد کړې وو چه تاسو دې هيڅوک هم بنو قريظه ته درسيدو نه مخکښې دمازيګر مونځ نه کوی. دا ډله لا په لار کښې وه چه دمازيګر وخت شو نوبعضو اوونيل چه د حضرت نبی کريم ﷺ مقصد ددې فرمان نه دا وو چه مونږ زر بنو قريظه ته اورسو ، دا نه چه مونږ دې مونځ نه کوو. نودې خلقو په لار کښې مونځ اداکړو. اونورو بنو قريظه ته په رسيدو مونځ ادا کړو او نمر ډوب شوې وو. هرکله چه ددې خبرې ذکر حضرت نبی کريم ﷺ ته اوشو نو حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دواړو ډلو کښې يو ته هم څه ملامتيا نشته دې.

**تبصره:-** مونږ په دې باندې تفصيلي بحث په خپل کتاب السيرة کښې کړې دې.او دا مو ثابت کړې ده. چه صحيح خبره باندې هغه ډله وه چه کومې په وخت مونځ ادا کړې وو. اګر چه دوئمه ډله هم معذوره وه.مقصد دا دې چه دا ډله د جهاد په موقع په دښمن دحملې کولو په غرض قلعې طرفته روانه وه او مونځ ئې موخر کړو. ددښمنانو دا ډله د ملعون يهوديانو وه چه کومو وعده ماته کړې وه. او د صلح خلاف ئې کړی وو.

**د جمهورومسلک:-** خو جمهور وائی چه د صلوة خوف نازليدو سره دا منسوخ شو. دا واقعه ددې آيت مبارك د نازليدو نه مخکښې وه. د صلوة خوف نه پس اوس د جهاد په وخت کښې مونځ روستو کول جائز نه دی.د ابوسعيد رضی الله عنه روايت کښې هم دا ظاهره ده اودا حضرت امام شافعي رحمه الله نه مروی دی. (٣)

**دامام اوزاعی رحمه الله قول:-** ليکن د صحيح بخاری (٤) ﴿باب الصلوة عند مناهضة الحصون﴾ کښې دی چه اوزاعی رحمه الله فرمائی که د فتح تياری وی او د جمعې د مونځ امکان نه وی نو هر سړې دې خپل خپل ځان له مونځ په اشارې سره ادا کړی.که دا هم نه شی کيدې نو مونځ کښې دې تاخير اوکړی تردې چه جنګ ختم شی يا امن شی نو هغه وخت کښې دې دوه رکعته ادا کړی اوکه امن نه وی نو يو رکعت دې اداکړی.صرف تکبير ونيلو سره کافی نه دی.که داسې وی نو مونځ دې روستو اوکړی کله چه دده ښه اطمينان اوشی.حضرت مکحول رحمه الله هم دا فرمان کړې دې.

**د سخت جنګ په وخت کښې د مونځ روستو کولو روايت:-** حضرت انس بن مالك رضی الله عنه فرمائی چه د تسترد قلعې په محاصره کښې څه موجود ووم. د صبا صادق په وخت کښې لاس په لاس جنګ شروع شو او سخته هنګامه شوه. مونږ خلقو مونځ نشو کولې.او يوشان جهاد کښې اخته وو. هرکله چه الله ﷻ مونږ په قلعه قابض کړو نو په هغه وخت کښې مونږ د نمر راختلو په وخت کښې مونځ ادا کړو. په دې جنګ کښې خمونږ امام حضرت ابوموسی رضی الله عنه وو. حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه ددې مونځ بدله کښې ټوله دنيا اوددې ټول ځيزونه هم ما نشی خوشحالولې. (٥)

---

(١) صحيح بخاری کتاب مواقيت الصلاة باب من صلی بالناس جماعة بعد الوقت : ٥٩٦، صحيح مسلم: ٦٣١)-

(٢) ترمذی کتاب الصلاة باب ماجاء فی قول الرجل تفوته الصلوة : ١٧٩، وهوحسن نسائی : ٦٢٣)-

(٣) صحيح بخاری کتاب المغازی باب مرجع النبی صلی الله عليه وسلم من الاحزاب : ٤١١٩، صحيح مسلم: ١٧٧٠)-

(٤) النسائی : ١٧/٢، ح/٦٦٢، وسنده صحيح)-

(٥) صحيح بخاری ابواب صلاة الخوف باب الصلاة عند مناهضة الحصون ولقاء العدو وقبل حديث : ٩٤٥)-

**دامام بخاري په بخاري کښې طريقه کار:-** امام بخاري رحمه الله دې نه پس جنګ خندق کښې د حضرت نبي کريم ﷺ د مونځ د تاخير بيان کوی.بيا بنو قريظه ولا واقعه او د حضرت نبي کريم ﷺ فرمان چه تاسو بنو قريظه ته د رسيدو نه مخکښې د مازيګر مونځ مه کوني وارد دی.اګر چه امام همام حضرت امام بخاري رحمه الله هم دا خوښوی چه دداسې سخت جنګ او سختې خطرې په وخت کښې اوچې فتح نزدې وی نو که په داسې موقع باندې مونځ موخر شي نو هيڅ باك نشته دې.

دحضرت ابوموسی رضی الله عنه والا فتح تستروالا واقعه دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه د زمانې ده.او دا منقول نه دی چه د مسلمانانو يو خليفه يا بل صحابی په دې اعتراض کړې وی.اودا خلق دا هم وائی چه د خندق په موقع هم د صلوة خوف آيتونه موجود وو. ځکه چې دا آيتونه په غزوة ذات الرقاع کښې نازل شو. او دا غزوة د غـزوة خندق نـه مخکښـې وه.او پـه دې د جمهوروعلمـاء کرامـو اهـل سيراومغازی اتفاق دې .حضرت محمد بن اسحاق رحمه الله ، حضرت موسـی ابـن عقبـه رحمه الله ،حـضرت واقـدی رحمه الله ، حضرت محمدبن سعد کاتب واقدی رحمه الله ، اوحضرت خليفه بن خياط رحمه الله وغيره هم ددې قائل دی.البته دامام بخاري رحمه الله وغيره قول دې چه غزوة ذات الرقاع د خندق نه پس شوې وه. په سبب د حديث ابوموسی رضی الله عنه او دوی پخپله خيبر ته راغلی وو. (¹)والله اعلم.

**د حافظ ابن کثير تعجب:-** ليکن تعجب په دې امر دې چه قاضی ابويوسف رحمه الله ، مزنی رحمه الله ، ابراهيم بن اسماعيل رحمه الله وائی چه صلوة خوف منسوخ شوې دې.نبی الله ﷺ غزوه خندق کښې روستو مونځ کړې وو. دا قول بالکل غريب دې.ځکه چه غزوه خندق نـه پـس د صلوة خـوف احاديث ثابت دی.ددغې ورځې مونځ تـاخير د مکحـول او اوزاعـی پـه قـول محمـول کـول زيـات قـوی او زيـات درست دی.يعنی دهغوئ هغه قول چه په حواله د بخاري بيان شويدې چه فتح نزدې وی او د مونځ ادا کولو امکان نه وی نو په مونځ کښې تاخير جائز دې.والله اعلم.

آيت مبارك کښې حکم دې چه کله تاسو دوی ته د جماعت مونځ ورکوئ نو دا حالت د رومبنی نه علاوه دې.په هغه وخت کښې يعنی انتهائی د ويرې په وخت کښې خو رکعت دې او هغه هم جدا جدا پيدل او په سورلئ قبلې طرفته مخ کول وی اوکه نه وی. چه څنګه هم ممکن وی.لکه څنګه چه حديث مبارك تير شوې دې.داحال د امامت او جماعت بيانيږی .

**دجماعت په وجوب باندې ا ستدلال:-** د جماعت په وجوب باندې دا آيت بهترين اومضبوط دليل دې چه د جماعت په وجه سره ډير کمې کړې شوې دې.که جماعت نه وې نو دا صورت جائز کيدې نشو.

**د ايت نه يوکمزورې استدلال:-** چا ددې نه يو بل استدلال هم کړې دې.هغوئی وائی چه په دې کښې چونکه دا الفاظ دی چه کله ته په دوی کښې نې او دا خطاب حضرت نبی کريم ﷺ ته دې.نومعلومه شوه چه د صلوة خوف حکم حضرت نبی کريم ﷺ نه پس منسوخ شوې دی.دا استدلال بالکل ضعيف دې.

**د دې استدلال يـو نظير:-** دا استدلال داسې دې لکه څنګه استدلال د هغه خلقو وو چه کومو خلفاء راشدينوته زکوة نه ورکولو او ونيل به نې چه قران پاك کښې دی چه ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ يعنی ته ددې خلقو د مال نه زکوة واخله او په دې سره تـه دوی پـاك کـړه او تـه ددوی دپاره د رحمت دعا اوکړه. ستا دعا د دوی دپاره باعث تسکين ده. نو مونږ به حضرت نبی کريم ﷺ نه پس هيچا تـه زکوة نـه ورکوو. بلکه مونږ به زکوة هغه چاته په خپل لاس ورکوو. چه چاته مو خوښـه شی .او صرف هغـه چاتـه بـه زکوة ورکوو چه د چا دعا خمونږ دپاره د تسکين سبب وی.

---

¹) صحيح بخاري کتاب المغازی بآب غزوة ذات الرقاع قبل حديث: ٤١٢٥)

**د نظیرد استدلال تضعیف:-** خو د هغوی دا استدلال غلط وو. ددې وجې صحابه کرام ﷺ دا رد کړه او دوی نې مجبور کړل چه دوی زکوة ادا کړی بلکه په دوی کښې چه کومو خلقو دوی منع کړې وو هغوئ سره نې جنګ اوکړو.

**د ایت شان نزول:-** راځئ چه مونږ د آیت صفت بیانولو نه مخکښې ددې شان نزول بیان کړو. ابن جریر کښې دی چه دبنو نجار یو قوم حضرت نبی کریم ﷺ نه سوال اوکړو چه مونږ تجارت کوو نومونږ دې مونځ څنګه اداکوو. نو الله ﷻ خپل دا قول نازل کړو چه ﴿وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ﴾ بیا تول کال څه وحی رانغله ، بیا حضرت نبی کریم ﷺ یو غزوه کښې وو چه د ماسپخین مونځ دپاره اودریدل ، مشرکانو اووئیل چه افسوس څه ښه موقع مولاس نه اووتله کاش چه په دوی مو د مونځ حالت کښې حمله کړې وې.په دې بعضو مشرکانو اووئیل چه دا موقع خو به مونږ ته بیا ملاویږی ، ددې نه لږ وخت پس دوی بل مونځ دپاره (یعنی دمازیګر ) دپاره اودریږی.لیکن الله ﷻ د مازیګر د مونځ نه مخکښې او د ماسپخین دمونځ نه پس ﴿إِنْ خِفْتُمْ﴾ پوره دوه آیتونه نازل کړل. او کافران ناکام شو. پخپله الله د صلوة خوف تعلیم ورکړو. (۱)اګر چه دا شان نزول ډیر ضعیف دې لیکن داسې احادیث شته چې په هغې سره دا مضبوطیږی

**د اولنی قول مطابق بل روایت:-** حضرت ابوعیاش زرقی ﷺ فرمانی چه عسفان کښې مونږ حضرت نبی کریم ﷺ سره وو ، خالد بن ولید د کفر حالت کښې وو. او مشرکانو سردار وو ، دا خلق خمونږ مخامخ وو. هرکله چه مونږ قبلې طرفته د ماسپخین مونځ ادا کړو نو مشرکانو اووئیل چه کاش مونږ په دې موقع حمله کړې وې اودا موقع مو لاس نه لاړه.هم دا وخت وو چه دوی کله مونځ کښې مشغول شوې وې او په دوی موحمله کړې وې.بیا په دوی کښې بعضو پیژندګلو خلقو اووئیل چه هیڅ خبره نشته ، دې نه پس ددوی د بل وخت دمونځ راځی.اوهغه مونځ خودوی ته د خپلو بچو نه هم زیات عزیز دې.په هغه وخت کښې به حمله اوکړو. نود ماسپخین او مازیګر په وخت کښې الله ﷻ حضرت جبریل ﷺ نازل کړو او آیت ﴿وَإِذَا كُنْتَ فِيهِمْ﴾ نازل شو. نو د مازیګر د مونځ وخت کښې مونږ ته الله ﷻ حکم اوکړو چه خپله وسله خان سره کړئ او صفونه درست کړئی او حضرت نبی کریم ﷺ پسې روستو اودریږئی.قیام کښې ، رکوع کښې ،قومه کښې ټول په ټوله اوسئ.هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ سجدې ته لاړو. نو دوه صفونو کښې ړومبی صف حضرت نبی کریم ﷺ سره سجدې ته لاړو او دویم صف ولاړ وو د هغوئ نګرانی نې کوله. هرکله چه فارغ شو نو دا خلق اودریدل او دویم صف والا سجدې ته لاړل.هرکله چه نې دواړه سجدې اوکړې نو اوس ړومبی صف والا دویم صف کښې اودریدل او دویم صف والا د ړومبی صف په ځانې.بیا قیام رکوع او قومه ټولو حضرت نبی کریم ﷺ سره ادا کړه.اوهرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ سجدې ته لاړو نو اول صف سجدې ته لاړو او دویم صف ولاړ وو نګرانی نې کوله. هرکله چه دوی د سجدې نه فارغ شو اوالتحیات باندې کیناستل نو د دویم صف خلقو سجدې ادا کړې التحیات کښې ټول په ټوله یو ځائې شو او سلام نې هم حضرت نبی کریم ﷺ سره یو ځائې اوګرزولو. صلوة خوف خو حضرت نبی کریم ﷺ یو ځل دلته عسفان کښې اوکړو او په دویم ځل نې بنوسلیم کښې.(۲) دا حدیث مسند احمد ، ابوداود او نسائی کښې هم دې.ددې اسناد صحیح دی او شاهد هم په کثرت سره دی. بخاری شریف کښې دا روایت اختصار سره دې او په هغې کښې دی چه

---

(۱) الطبری : ۱۰۳۱۹)-

(۲) احمد ۵۹/٤، ابوداود : کتاب الصلاة السفر صلاة الخوف : ۱۲۳٦ وسنده صحیح نسائی : ۱۵۵۱)-

ددې باوجود چه ټول خلق مونځ کښې وو لیکن د یو بل نګرانئ نې کوله. (۱)

**د صلاة خوف بل شان نزول:**- ابن جریر کښې دی چه سلیمان بن قیس یشکری حضرت جابر بن عبدالله نه تپوس اوکړو چه دمونځ دقصر کولو حکم کله نازل شو ؟ نو هغوئ اوفرمائیل چه د قریشو یو قافله د شام نه راتله.مونږ هغوئ طرفته روان شو اوهر کله چه نخله ته اورسیدو نویو سړي حضرت نبی کریم ﷺ ته ورغلواو وې وئیل چه آیا تاسو ځمانه نه ویریږئ. حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نه.هغه اووئیل چه تاسو ځمونږ نه څوك بچ کولې شي ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ ما تاسو نه بچ کوی.بیا نې توره راویستله او وې ویرولو اوبیا کوچ کولو آواز اوکړو. او حضرت نبی کریم ﷺ وسلې سره روان شو.

**د صلاة خوف طریقه.**- بیا اذان اوشو اوصحابه کرام ﷺ دوه حصو کښې تقسیم شو. یوې حصې حضرت نبی کریم ﷺ سره مونځ ادا کولو او دوهمې حصې نګرانی کوله او حضرت نبی کریم ﷺ سره متصل وو ، هغوئ دوه رکعته حضرت نبی کریم ﷺ سره ادا کړل او روستو شو او روستو خلق خپل ځائې ته لاړل او اوس روستو خلق مخکښې راغلل او د مخکښې خلقو په ځائې اودریدل او هغوئ ته حضرت نبی کریم ﷺ دوه رکعته مونځ ادا کړو او بیا ئې سلام اوګرزولو. نو حضرت نبی کریم ﷺ څلور رکعته ادا کړل او د ټولو دوه دوه رکعته شو. او الله ﷻ مونځ کښې د کمی او ځان سره د وسلې ساتلو حکم نازل کړو. (۲)

**په نبی کریم ﷺ باندې د تورې ویستلو واقعه:**-مسند احمد کښې حدیث مبارك دې چه کوم سړی توره ترلې حضرت نبی کریم ﷺ باندې حمله کړې وه هغه د دښمن د قبیلې نه وو. اودهغه نوم غرث بن حارث وو. هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ دالله ﷻ نوم واخستو نو د هغه د لاس نه توره پریوتله او حضرت نبی کریم ﷺ توره خپل لاس کښې واخستله او هغه ته نې اوئیل چه اوس به تا ځما نه څوك بچ کوی ،نو هغه معافی اوغوښتله چه تاسو ما باندې رحم اوکړئ.حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه ته دالله ﷻ د یو والی او ځما د رسول کیدو شهادت ورکوې ؟ هغه اوئیل چه دا خو نه ورکوم.خو څه دا اقرار کوم چه څه به تاسو سره جنګ نه کوم. او هغه خلقو سره به ملګرتیا نه کوم چه کوم حضرت نبی کریم ﷺ سره جنګ کوی. حضرت نبی کریم ﷺ هغه معاف کړو. هرکله چه دې خپلو ته راغلو نو وې وئیل چه ما د حضرت نبی کریم ﷺ پشان په مخ د زمکې هېڅ یو کس نه دې لیدلې. (۳)

اویو روایت کښې دی چه یزید فقیر رحمه الله حضرت جابر ﷺ نه تپوس اوکړو چه دا په سفر کښې دوه رکعته دې آیا دا قصر دی ؟ نو دوی اوفرمائیل چه پوره مونځ دې خو په وخت د جهاد کښې یو رکعت دې او بیا دا شان د صلوة خوف ذکر اوشو. په دې کښې دا هم دی چه د حضرت نبی کریم ﷺ سلام سره حضرت نبی کریم ﷺ نه روستو خلقو اوپه هغه خلقو سلام اوګرزولو او په دې کښې دواړوفوج سره د یو یو رکعت بیان دې. نو دټولو یو یو رکعت شو او د حضرت نبی کریم ﷺ دوه رکعته شو. (۴)

**د صلاة خوف بل روایت:**- او نورو روایتونوکښې دی چه یوه ډله حضرت نبی کریم ﷺ نه روستو صف کښې وه او یو ډله د دښمن مقابلې ته ولاړه وه. بیا یو رکعت نه پس چه کوم خلق حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم پسې روستو ولاړوو هغوئ روستو شو او د ولاړو خلقو په ځائې اودریدل او روستو

---

(۱) صحیح بخاری کتاب صلاة الخوف باب یحرس بعضهم بعضا فی صلاة الخوف : ۹۴۴ ، نسائی : ۱۵۳۴)-

(۲) الطبری : ۱۰۳۳۰)-

(۳) احمد : ۳۹۰/۳، وسنده صحیح ، ابن حبان : ۲۸۷۲)-

(۴) ابن ابی حاتم: ۲۹۸/۳، نسائی : کتاب صلاة الخوف: ۱۵۴۶، وسنده صحیح )-

خلق مخکښې شو. (¹)دا حديث مبارك ډيرو كتابونو كښې ډيرو سندونو سره د حضرت جابر ﷺ نه مروي دې.

**د صلاة خوف د طريقې بل روايت:-** يو بل حديث مبارك كوم چې په روايت د سالم عن ابيه مروي دې.په هغې كښې دا هم دي چه بيا صحابه كرام ﷺ پاسيد او خانله خانله ئې يو يو ركعت ادا كړو. (²)د دې حديث هم ډير سندونه دي.او ډير الفاظ دي.حافظ ابن بكر ابن مردويه دا ټول جمع كړې دي اودا شان ابن جرير هم.مونږ دا په كتاب احكام كبير كښې ليكل غواړو.انشاء الله.

**په صلاة الخوف كښې د وسلې نيولو حكم:-** د ويرې په مونځ د وسلې خان سره د ساتلو حكم دبعضو په نيز خو په طور د وجوب دې ، خكه چه د آيت ظاهري الفاظ هم دا دي.حضرت امام شافعي ﷺ نه هم دا قول نقل دې.او د دې تائيد د دې آيت مبارك د رومبې فقرې نه كيږي چه باران يا د بيمارئ په وجه وسله خان نه كيخودو كښې تاسو باندې څه ګناه نشته دې.خپل حفاظت دپاره ئې خان سره ساتئ.يعنی داسې تيار اوسئ چه وخت راتلو سره وسله تاسوسره وي.الله ﷻ كافرو دپاره سخت عذاب تيار كړې دې.

**په ايت كښې د وسلې نيولو حكم استحبابی دې**

**مسلك حنفی:-** داكثروعالمانو په نيز چې احناف په كښې هم شامل دی د ويرې په حالت كښې په مانځه كښې خان سره وسله نيول مستحب دی.(تفسير مظهری ۲/۴۳۶)-

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | فَإِذَا | قَضَيْتُمُ | الصَّلٰوةَ | |
| | | | بيا چې كله | اوكړئ تاسو | مونځ | |
| | | | اوهركله چې تاسودمونځ نه فارغ شئ | | | |
| فَاذْكُرُوا اللهَ | قِيٰمًا | وَّقُعُودًا | وَّعَلٰى جُنُوبِكُمْ | فَإِذَا | اطْمَأْنَنْتُمْ | |
| نو يادوئ الله | په ولاړه | اوپه ناسته | او په اړخونو خپلو | نوكله چې | په اطمينان شئ تاسو | |
| نو په ولاړه ، ناسته او په ملاسته په هر حال كښې دالله ﷻ ذكر كوئ | | | | بيا چې (د دشمن نه) بې غمه شئ | | |
| فَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ | إِنَّ | الصَّلٰوةَ | كَانَتْ | عَلَى الْمُؤْمِنِينَ | كِتٰبًا | |
| نو قائموئ مونځ | بيشكه | مونځ | دې فرض | په مومنانو باندې | لازم كړې شوې | |
| نو پوره مونځ اداكوئ | بيشكه مونځ په مسلمانانو باندې په خپل خپل وخت فرض كړې شوې دې | | | | | |
| مَّوْقُوتًا۝ | وَلَا تَهِنُوا | فِي ابْتِغَاءِ | الْقَوْمِ | إِنْ تَكُونُوا | | |
| په وخت كښې | اوسستی مه كوئ | په طلب | دقوم (دكافرانو) | كه يئ تاسو | | |
| ........ او د (دښمن) قوم په لټون كښې سستی مه كوئ | | | | كه تاسو (دكافرانو سره په جنګ | | |
| تَأْلَمُونَ | فَإِنَّهُمْ | يَأْلَمُونَ | كَمَا | تَأْلَمُونَ | | |
| چې دردمن كيږئ تاسو | نو بيشكه هغوئ هم | دردمن كيږي | لكه څنګه چې | تاسو دردمن كيږئ | | |
| (كولو كښې قسم قسم)درد ديږئ | نو ستاسو پشان هغوئ (كافرانو) هم درديږي (اوتكليفونه ورته رسی) | | | | | |

---

(¹) احمد: ۳/۲۹۸، كتاب صلاة الخوف: ۱۵۴۶، وهو صحيح)-

(²) صحيح بخاری : ۱۳۳، صحيح مسلم: ۱۹۴۲، ابوداود: ۱۲۴۳، ترمذی : ۵۶۴، نسائی: ۱۵۳۶)-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَتَرْجُوْنَ | مِنَ اللّٰهِ | مَا لَا يَرْجُوْنَ | وَكَانَ اللّٰهُ | عَلِيْمًا |
| اوتاسو امید لرئ | دالله نه | دهغه ثواب چې نه ئې لرې هغوئ | اودې الله | پوهه |
| حال دا دې چه تاسو دالله ﷻ نه هغه امیدونه (د جنت وغیره) ساتئ اچې هغوئ يئ نه ساتي اوالله په هر څه | | | | |
| حَكِيْمًا | | | | |
| اوخاوند د حكمت | بيش | | | | |
| پوهه او خاوند د حکمت دې | | | | |

قوله تعالى:: فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلٰوةَ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ

**د امن حالت کښې مونځ په وخت ادا کول** :- الله ﷻ په دې آیت مبارك کښې حکم کوی چه د ويرې د مونځ نه پس د الله ﷻ ذکر کثرت سره کوئی.اګر چه دالله ﷻ د ذکر حکم او تاکید او ترغیب دمونځونو نه پس هر وخت کښې دې.لیکن دلته خصوصیت سره په دې وجه بیان شوې دې. چه دلته ډیرزیات رخصت دې .مونځ کښې تخفیف اوکړې شو ، بیا د مونځ حالت کښې یو خوا بل خوا تلل ئې د مصلحت دپاره جائز کړل.لکه څنګه دحرمت د میاشتو متعلق الله ﷻ فرمائی چه په دې کښې په خپلو ځانونو ظلم مه کوئی.اګر چه نورو وختونو کښې هم په ځان ظلم ممنوع دې.لیکن دې پاکو میاشتو کښې د دې زیات تاکید راغلې دې.نو فرمان دې چه خپل هر حالت کښې دالله ذکر کوئی. او کله چه درته اطمینان حاصل شی،ویره نه وی ، نو باقاعده خشوع او خضوع سره دمونځ د ارکانو پابندی کوئی.دا مونځ تاسو باندې په خپل وخت کښې مقرر شوې دې د الله ﷻ د طرفنه.لکه څنګه چه د حج وخت مقرر دې.هم دا شان د مونځ وخت هم مقرر دې.یو وخت نه پس دویم ، اودې نه پس دریم.

قوله تعالى:: وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ إِنْ تَكُوْنُوْا تَأْلَمُوْنَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُوْنَ كَمَا تَأْلَمُوْنَ

بیا فرمائی چه ددښمن تلاش کښې ناراستی مه کوئی.بهادرئی او چالاکئ سره یو پټ ځائې کښې کینئ اودهغوئ خبر اخلئ.که تاسو ته زخم او قتل سره نقصان رسی نوآیا هغوئ ته نه رسی څه؟ هم دا مضمون ئې په دې الفاظو کښې سورة ال عمران کښې بیان کړې دې چه ﴿إِنْ يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ﴾ نو مصیبت او تکلیف رسیدو کښې خو تاسو او هغوئ برابر يئ ، خو فرق ډیر دا دې چه تاسو دالله ﷻ ذات اقدس نه امیدونه ساتئ او هغوئ سره خو دالله آسره نشته. تاسو ته به اجر او ثواب ملاویږی ، تاسو سره به مدد او نصرت کیږی لکه څنګه چه الله ﷻ خبر ورکړې دې او وعده ئې کړې ده.نه خو دالله ﷻ وعده په دروغه ده او نه دهغه وعده روستو کیدو والا ده.نو تاسو ته د هغوئ په نسبت ډیرزیات کوشش کول پکار دی.ستاسو زړونو کښې د جهاد جوش پکار دې.تاسو ته پکار دی چه دې طرفته رغبت ورکړئ.ستاسو په زړونو کښې دالله ﷻ دکلمې قائم ساتلو او مضبوطولو او خورولو او اوچتولو جوش اوولوله موجود پکار ده. الله ﷻ چه څه مقدر کوی ، چه کومه فیصله کوی ، چه څه جاری کوی ، چه څه شروع کوی ، چه کوم کار کوی ، ټولو کښې خبر لرلو والا صحیح او ریښتونی علم سره حکمت والا دې.هر حال کښې هر وخت د تعریف او حمد لائق دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّا | أَنْزَلْنَا | إِلَيْكَ | الْكِتٰبَ | بِالْحَقِّ |
| بیشکه مونږه | نازل کړې دې | تاته | دا کتاب | په حقه |
| مونږ تا ته دا کتاب (قرآن) په حق (مضامینو سره) نازل کړې دې | | | | |

لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ ؕ وَلَا

دپاره ددې چې فيصله اوکړې ته | په منځ | دخلق کښې | په هغه طريقه | چې ښودلې ده تاته الله | او مه

د دې دپاره چې تاته الله کومه حقه خبره خودلې ده | د هغې مطابق ته د خلقو په مينځ کښې فيصله اوکړې

تَكُنْ لِّلْخَآئِنِيْنَ خَصِيْمًا ۝ وَّاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا

کيږه ته | دپاره دخيانتګرو | جګړه کونکې | او معافي غواړه دالله نه | بيشکه الله | دې | ښښونکې

او دخيانت ګرو ملګرتيا مه کوه | او دالله ﷻ نه معافي غواړه | بيشکه الله ﷻ ښښونکې ..........

رَّحِيْمًا ۝ وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَهُمْ ؕ

رحم کونکې | او جګړه مه کوه ته | دهغه خلقو د طرفه | چې خيانت کوی هغوئ | دځانونو خپلوسره ...

او مهربان دې | او څوک چې د خپلو ځانونو سره خيانت کوی | نو ته دهغوئ دطرفه جګړه مه کوه

اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا ۝ يَّسْتَخْفُوْنَ

بيشکه الله | نه خوښوی | هغه څوک | چې وی ادير خيانت کونکې | ګناهګار | پټولې شی هغوئ (ګناهونه)

بيشکه الله تعالی خيانت ګر او ګناهګار خلق نه خوښوی | .............. دا خلق (خپل ګناهونه)

مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ اِذْ يُبَيِّتُوْنَ

د خلقو نه | اونه شی پټولې | دالله نه | او هغه | دهغوئ سره وی | کله چې | هغوئ دشپې کوی

دخلقونه خو پټولې شی | خو دالله ﷻ نه ئې نشی پټولې | او الله ﷻ خو په هغه وخت کښې هم هغوئ سره وی

مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطًا ۝

هغه | چې نه ئې خوښوی الله | د خبرو نه | اودې الله | په هغه کارونو چې کوی ئې دوئ | احاطه کونکې

کله چې هغوئ پټ په پټه دهغه دمرضئ خلاف مشورې کوی | او الله ددوئ په ټولو عملونو احاطه کونکې دې

هٰٓاَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۟

يئ تاسو | هغه کسان | چې جګړه مو اوکړه | دطرفه ددوئ نه | په ژوند | د دنيا کښې

خبردار! تاسو خو په دې دنيا کښې د دوئ دطرفه جګړه اوکړه .............

فَمَنْ يُّجَادِلُ اللّٰهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَمْ مَّنْ يَّكُوْنُ

پس څوک به | جګړه کوی | دالله سره | دطرفه ددوئ نه | په ورځ دقيامت | يا آخر | څوک | به وی

نو په ورځ دقيامت به د دوی دپاره څوک دالله ﷻ مخکښې جګړه کوی | .............. او آخر هلته به

عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ۝

ددوئ | وکيل |

څوک ددوئ د طرفه وکالت اوکړی

**نبی کریم ﷺ به په څه فیصله کوی ؟** :-الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته فرمانی چه دا قران پاك چه تاسو باندې الله تعالی نازل کړې دې او دا بالکل حق او سچ دې او د دې خبرونه هم حق او د هغه فرمان هم حق دی.

قوله تعالی: لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَآ أَرٰىكَ اللّٰهُ

**نبی کریم ﷺ ته په خلقو کښې انصاف سره د فیصلې کولو حکم:-** بیا فرمانی چه تاسو د خلقو مینځ کښې هغه انصاف اوکړئی چه الله ﷻ کوم تاته اوښانی.د علم اصولو بعضې علماء کرامو ددې نه استدلال کړې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ ته د اجتهاد نه د حکم کولو اختیار وو. ددې دلیل هغه حدیث مبارك دی چه کوم بخاری اومسلم شریف کښې دې چه حضرت نبی کریم ﷺ خپله دروازه مبارکه کښې د جنګ کوونکی آوازونه واوریدل نو حضرت نبی کریم ﷺ بهر تشریف راوړو او وې فرمائیل چه څه یوانسان یم چه څه آورم او د هغې مطابق فیصله کوم ، ممکن دی چه یو سړې زیات حجت باز او زیات زبان دراز وی او ماته د هغه خبرې صحیح ښکاره شی او څه د هغه حق کښې فیصله اوکړم او فی الواقع هغه حقدار نه وی نو په دې پوهه شئ هغه دده دپاره د جهنم ټکړه ده.اوس ده ته اختیار دې چه دا اخلی او که پریږدی ئې.(١)

**د نبی کریم ﷺ فیصله چا دپاره ناجائز نشی جائز کولې:-** مسند احمد کښې دی چه دوه انصارو یو فیصله د میراث باره کښې حضرت نبی کریم ﷺ ته راوړه. په دې واقع موده تیره شوې وه. ددې ګواه او شاهد هېڅوك نه وو. نو په هغه وخت کښې حضرت نبی کریم ﷺ ورته هم هغه حدیث مبارك بیان کړو او وې فرمائیل چه هغه دې خما د دې فیصلې په بناء د خپل رور حق نه اخلی.که داسې اوکړی نو دقیامت په ورځ به خپل څټ کښې د جهنم اور اچوی.اوس دواړه بزرګان په ژړا شو او ونیل ئې چه خپل حق خپل رور ته ورکوم. حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوس تاسو داسې اوکړئی چه اوس لاړشئ او څومره چه تاسو نه کیدیشی نو تاسو صحیح صحیح برخې تقسیم کړئی او بیا په هغې پچه واچونی او هر یو خپله برخه واخلئ.اود یو بل غلطی معاف کړئی.(٢)ابوداود کښې هم دا حدیث مبارك شته دې.او په هغې کښې دالفاظ دی چه څه ستاسو په مینځ کښې د خپلې پوهې مطابق فیصله کوم او په دې کښې هیڅ وحی نه ده نازل شوې.(٣)

**دڅادر د پټیدو واقعه:-** ابن مردویه کښې دی چه دانصارو یو ډله یو جهاد کښې حضرت نبی کریم ﷺ سره وه.هلته یو سړی نه چا څادر پټ کړو. او دهغه سړی ګمان په طعمه ابن اسیرق باندې وو. دا قصه د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت اقدس کښې پیش شوه.غل دا څادر دیو سړی کور کښې په بې خبرئی کښې غوزار کړې وو او خپل خاندان والوته ئې اووئیل چه ما څادر فلانی خائې کښې غوزار کړې دې.تاسو د شپې لاړشئ او حضرت نبی کریم ﷺ ته اووائې چه څمونږ ملګرې غل نه دې ، غل خو فلانی دې اومونږ معلومات کړی دی چه څادر هم د هغه کور کښې پروت دې .نو حضرت نبی کریم ﷺ تاسو د ټولو مخکښې څمونږ ملګرې بری کړئی.اود هغه حمایت کوئي ګنې ویره ده چه هسې نه هغه هلاك شی.حضرت نبی کریم ﷺ هم داسې اوکړل او په دې باندې دا آیتونه نازل شو. اوکومو خلقو چه خپل دروغ پټ کړی وو اوحضرت نبی کریم ﷺ ته راغلی وو د هغوئ باره کښې دا دوه آیتونه نازل شو چه

---

١) صحیح بخاری کتاب الاحکام باب من قضی له بحق اخیه یاخذه....: ۷۱۸۱، صحیح مسلم: ۱۷۱۳)-

٢) احمد: ۳۰۸/٦، ابوداود: ۳۵۷٤، وسنده حسن)-

٣) ابوداود کتاب القضاء باب ل قضاء القاضی اذا خطاء : ۳۵۸۵، وهو حسن)-

﴿يَسْتَخْفُونَ﴾ نه .(۱)

قوله تعالى: وَلَا تَكُن لِّلْخَائِنِينَ خَصِيمًا

بيا الله ﷺ فرمائي چه څوك بد اوخراب كارونه كوي ، ددې نه مراد هم دا خلق دي ، او د غل او د هغه د حمايتيانو باره كښې فرمان نازل شو چه څوك خطا او ګناه اوكړي او هغه ګناه او الزامونه چه چا نه وي كړې او هغه په چا تهمت اولګوي نو هغه ښكاره ګناهګار دې.څودا سياق غريب دې.بعضې بزرګانو نه مروي دي چه دا آيت دبنو ابيرق د غل باره كښې نازل شوې دې.

**د بنو ابيرق قبيلې خلقو غلا كول**:-دا قصه په تفصيل سره ترمذى كتاب التفسير كښې د حضرت قتاده ﷺ په ژبه داشان مروي ده چه څمونږ كورنۍ بنو ابيرق قبيله كښې يو كور وو چه په هغې كښې بشر ، بشير او مبشر وو. بشير يو منافق سړې وو. اشعارو كښې به ئې د حضرت نبى كريم ﷺ او د حضرت نبى كريم ﷺ د صحابه كرام ﷺ هجوه كوله. اوبيا به ئې دا اشعار بل چا طرفته منسوب كول او ښه مزې به ئې اوچتولې.اصحاب رسول ﷺ ته معلوم وو. چه هم دا خبيث ددې اشعارو جوړونكې دې.دا خلق د جاهليت د زمانې راسې تنګدست وو. راروان وو.دمدينې د خلقو خوراك اوربشې او كهجورې وې.څو چه كوم خلق مالدار وو هغوئ به د راغلو قافلو نه ميده واخسته او دا به هغوئ خپل ځان دپاره مخصوص كوله. باقى كور والوبه اوربشې او كهجورې خوړلې .څما تره رفاعه هم د شام نه راغلې يو قافلې نه ميده اخستې وه او دا ئې خپله بالاخانه كښې محفوظ كړه. اوهغه ځائې كښې ئې تورې او زغرې وغيره پرتې وې.د شپې غلو د لاندې نه دې ته سورې اوكړو او غله او وسله ئې راوويستله او دائې يوړه.صبا له څما تره راغلو ټوله واقعه ئې بيان كړه. بيا مونږ لټون كولو نومعلومه شو چه دبنو ابيرق كور كښې بيګاه اور بليدو او خوراك ئې پخولو.غالبا چه هغوئ ستاسو نه غلا كړې وه. ددې نه مخكښې چه مونږ د خپلې كورنۍ نه تپوس كولو ددې قبيلې خلقو مونږ ته وئيلي وو چه ستاسو غل لبيد بن سهل دې.مونږ ته معلوم وو چه د لبيد دا كار نه دې هغه خو يو رينښتونې مسلمان وو. حضرت لبيد ﷺ ته چه كله ددې خبر اوشو نو ډير غصه شو. تورو سره مونږ بنو ابيرق ته راغلو او ورته ئې اووئيل چه يا خو څمونږ غلا ثابته كړئې ګنې تاسو به قتل كړو. دې خلقو دې برى كړو او معافى ئې اوغوښتله. مونږ ټول په ټوله د پوره تحقيق نه پس په دې نتيجه اورسيدو چه غلا بنو ابيرق كړې وه. څما تره ماته اووئيل چه ته لاړشه او حضرت نبى كريم ﷺ ته دا واقعه اووايه.څه لاړم او حضرت نبى كريم ﷺ ته مې ټوله واقعه اووئيله او دا مې هم ورته اووئيل چه مونږ ته وسله راكړه ، دغلې د واپس كولو ضرورت نشته دې .حضرت نبى كريم ﷺ څه مطمئن كړم چه ښه ده څه به ددې تحقيق كوم. دا خبر چه كله بنو ابيرق ته اوشو نو هغوئ خپل يوكس حضرت نبى كريم ﷺ ته اوليږلو اود هغه نوم اسيد بن عروه وو. هغوئ راغلل او حضرت نبى كريم ﷺ ته ئې اووئيل چه يارسول الله ﷺ ! دا خو ظلم دې بنوابيرق د ښه صلاحيت او اسلام والا خلق دي.اودوى ته قتاده بن نعمان او دده تره غلۀ وائي او بغير د څه ثبوت او دليل نه د غلا داغ په دوى لګوى.وغيره.بيا چه كله څه د حضرت نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شوم نو حضرت نبى كريم ﷺ ماته اووئيل چه دا ته خو بدرد وائې او په ديندار اونيكو خلقو د غلا الزام لګوې او تاسره څه ثبوت نشته دې.څه چپ ناست ووم او واپس راغلم او زړه كښې ډير زيات پښيمانه او پريشان ووم. خيال راتلو چه كاش چه ما چپ چاپ ددې مال نه لاس وينځلې وې او حضرت نبى كريم ﷺ ته مې ددې ذكر نه وې كړې نو ښه به وو. په دې كښې څما تره راغلو او څما نه ئې تپوس

---

۱) ابن مردويه وسنده ددې سند كښې عطيه بن سعد العوفى مجروح راوى دې التقريب: ۲۴/۲ رقم: ۲۱۲.-

اوکړو چه تا څه اوکړل ؟ ما ورته ټوله واقعه بیان کړه.ددې په آوریدو سره هغه اوونیل ﴿وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ﴾ ، الله نه مدد غواړو.د دوی تګ وو چه حضرت نبی کریم ﷺ ته په ذریعه د وحی دا آیتونه نازل شو. نو ﴿خَائِنِيْنَ﴾ نه مراد بنوابیرق دی .دوی ته د استغفار حکم اوشو اودادهغه فرمان په وجه وو چه کوم دوی حضرت قتاده ﷛ ته فرمائیلي وو ، او بیا ئې دې سره فرمائیلي وو که دا خلق استغفار اوکړي نوالله ﷻ به دوی اوبښي.

**د روایت باقي حصه** :- بیا فرمائي چه کومه ګناه نه وی شوې هغه په بل چا تپل بدترین جرم دی. ﴿اَجْرًا عَظِيْمًا﴾ پورې یعنی هغوئ حضرت لبید ﷛ باره کښې اوونیل چه دې غل دې.هرکله چه دا آیتونه نازل شو نوحضرت نبی کریم ﷺ بنو ابیرق نه څمونړ وسله واپس کړه. ما دا واخسته او خپل تره نه ورغلم. دې بې چاره بوډا وو. د سترګو نظر ئې هم کم وو. ماته ئې اوفرمائیل چه خویه لاړشه اودا ټوله وسله دا الله ﷻ په نوم خیرات کړه.تر نن پورې څه د خپل تره باره کښې بدګمانه ووم چه د زړه نه ایماندار نه دې ،لیکن دې واقعه سره ځما بدګمانی ختمه شوه. او په دې قائل شوم چه رینښتونې مسلمان دې.بشیر د دې آیتونو آوریدو سره مشرکانو سره یو ځائې شو.اوسلافه بنت سعد بن سمیه ته لاړواو هلته ئې قیام اوکړو. دې باره کښې دې نه پس آیتونه ﴿وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ﴾ نه تر ﴿بَعِيْدًا﴾ پورې نازل شو. او حضرت حسان ﷛ د دې فعل هجوه په خپلو شعرونوکښې اوکړه. ددې اشعارو آوریدو سره دده ښځې ته ډیر زیات غیرت راغلو او د بشیر ټول اسباب ئې په خپل سرکیخودو او د ابطح میدان کښې ئې غوزار کړو او وې وئیل چه ته هیڅ ښیګړې مالره نه ئې راوستې بلکه د حسان ﷛ اشعارو ماته راوستی ئې څه به تا خپل ځان سره نه پرېږدم.دا روایت ډیرو کتابونوکښې راغلې دې ډیرو سندونو سره مطول او مختصر مروی دې.(1)

**قوله تعالی:**: يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ

ددې منافقانودکم عقلئی بیان کیږی چه هغوئ خپل شرارتونه خلقو نه پټوی.نوددې نه څه نتیجه راوختله؟ الله ﷻ نه ئې پټ نه شی ساتلې ؟بیا دوی ویروی چه ستاسو پټ رازونه هم الله ﷻ نه پټ نه دی.

**قوله تعالی:**: هٰاَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

بیا فرمائي چه دا مو اومنل چه دنیاوی حاکمانوسره چه کومې فیصلې کیږی په هغې تاسو غلبه اومونده.لیکن د قیامت په ورځ چه دالله تعالی مخکښې چه دظاهراو باطن عالم دې هلته چې فیصله کیږی.نوتاسو به څه کونی ؟ هلته به څوك وکیلان پیش کوئی ؟ چه هغوئ ستاسو د دروغو دعوو تائید اوکړي. مطلب دادې چه په هغه ورځ ستاسو هیڅ داؤ نه چلیږی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | يَّعْمَلْ | سُوْٓءًا | اَوْيَظْلِمْ | نَفْسَهٗ | ثُمَّ |
| او څوک چي | اوکړي | بدی | یا ظلم اوکړي | په خان خپل | بیا |
| او څوک چي ګناه یا په خپل خان زیاتي اوکړي | ..........بیا | | | | |
| يَسْتَغْفِرِاللّٰهَ | يَجِدِاللّٰهَ | غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا | وَمَنْ | يَّكْسِبْ |
| ببښنه اوغواړي داالله نه | اوبه مومی الله | ببښونکي | رحم کونکي | اوڅوک چي | اوکړي |
| الله ﷻ نه ببښنه اوغواړي | نوالله ﷻ به ډیر ببښونکي اوزیات مهربانه بیامومی | ........ اوڅوک چي | | | |

(1) ترمذی: کتاب تفسیر القران باب ومن سورة النساء: ۳۰۳۶/۲۲، وسنده حسن الحاکم: ۳۸۵/۴، وابن اسحاق صرح بالسماع عنده

إِثْمًا فَإِنَّمَا يَكْسِبُهُ عَلَىٰ نَفْسِهِ ط وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا

گناه | نو بیشکه | بار کوی ئې هغه | په خان خپل باندې | او دې | الله | په هر څه پوهه

گناه کوی نو د هغه د گناه نقصان هم هغه ته رسیږی | ............ او الله په هر څه پوهه

حَكِيمًا ۝ وَمَنْ يَكْسِبْ خَطِيئَةً أَوْ إِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهِ

صاحب د حکمت | او څوك چې | اوکړی | غلط کار | یا بوه گناه | بیا | اولی | په دې گناه سره

او صاحب د حکمت دې | او چا چې خطا کار اوکړو | یائې گناه اوکړه | بیا ئې د هغې تهمت په یوبې گناه

بَرِيئًا فَقَدِ احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُبِينًا ۝

یوبې گناه سړي | نو بې شکه چې بار ئې کړو په خان | غټ دروغ | او گناه | ښکاره

کس باندې اولگوو | نو ډیر لوي بهتان ئې جوړ کړو | ............ او ښکاره جاره گناه ئې اوکړه

وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهُ لَهَمَّتْ

او که چرې نه وې | فضل | د الله | په تا باندې | او رحمت د هغه | نو خامخا قصد کړې وو

او (اې پیغمبر ﷺ) که په تا د الله ﷻ فضل او مهربانی نه وې | نو د دوی یوې ډلې خو دا قصد کړې وو چې

طَائِفَةٌ مِنْهُمْ أَنْ يُضِلُّوكَ ط وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ وَمَا

یوې ډلې | د دوئ نه | چې تیر باسی تا لره | او نه تیر باسی دوئ | مگر | ځانونه خپل | او نه شی

د مجرم په بچ کیدلو کښې تا په غلطه لار روان کړي | او حال دا دې چې دوی د خپل ځان نه بغیر بل څوک نشی غلطولې

يَضُرُّونَكَ مِنْ شَيْءٍ ط وَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ

ضرر رسولې تا ته | د هیڅ څیز | او نازل کړې دې الله | په تا باندې | کتاب | او حکمت

او تا ته هیڅ قسمه نقصان نشی رسولې | او الله ﷻ په تا کتاب او د حکمت خبرې (احادیث) نازل کړې دی

وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ط وَكَانَ فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ

او ښودلې ئې دی تا ته | هغه څه | چې نه وې ته | چې پوهیدلې پرې ته | او دې | فضل د الله | په تا باندې

او هغه خبرې ئې درته خودلې دی چې تا ته معلومې نه وې | او په تا باندې د الله ﷻ لوي مهربانی ده

عَظِيمًا ۝

ډیر لوئ |

قوله تعالى: وَمَنْ يَعْمَلْ سُوءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللَّهَ يَجِدِ اللَّهَ غَفُورًا رَحِيمًا ۝

**دالله تعالى درحمت بیان:-** الله ﷻ خپل فضل او خپله مهربانی بیانوی. چه څوك یو گناه نه توبه اوباسی نو الله ﷻ هغه سره مهربانی کوی. هر هغه سړې چه خپل رب طرفته ئې رجوع اوکړه، الله ﷻ به هغه په خپل وسیع رحمت کښې پټ کړی. او دده کبیره او صغیره گناهونه به معاف کړی. اگر چه دده گناهونه د زمکې او آسمان نه زیات وی. بنو اسرائیلو کښې چه به کله چا یو گناه اوکړه نو به قدرتی حرفونو کښې به دهغه په دروازه هغه گناه لیکلې شوې په نظر راتله او ددې کفاره به هم لیکلې کیده او دا به ده ادا

کوله. او دوی ته دا حکم وو که چرې د دوی په کپړا میتازې پریوزی نو هغه هومره کپړه به پریکوی.الله ﷺ په دې امت باندې آسانه کړه او صرف په اوبو وینځلو سره هم جامه پاکیږی.او توبه کولو ګناه معافی کیږی.

**دیوې ښځې واقعه:-** یو ښځې حضرت عبدالله بن مغفل ﷺ نه سوال اوکړو چه یوښځې بدکاری اوکړه، بیا چه کله ددې بچې پیدا شو نوهغه ئې مړکړو. نو دوی اوفرمائیل چه د هغې سزا جهنم دې.هغه په ژړاواپس شوه نو دوی هغه راواپس کړه او آیت ﴿مَنۡ يَعۡمَلۡ﴾ ئې ورته اووئیلو. نو هغې خپلې اوښکې اوچې کړې او واپس شوه.

**دګناه نه پس دوه رکعته مونځ کول:-** حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه دیو مسلمان نه یوه ګناه اوشی او بیا هغه اودس اوکړی او دوه رکعته مونځ اداکړی او الله تعالی نه استغفار اوکړی نو الله ﷺ د هغه ګناهونه بخښی.بیا حضرت نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك او آیت ﴿وَالَّذِيۡنَ اِذَا فَعَلُوۡا فَاحِشَةً﴾ الخ تلاوت کړو. (1)ددې آیت مبارك پوره بیان مونږ په مسند ابوبکر کښې کړې دې.او څه بیان په سورة آل عمران کښې تیر شوې دې.

**په توبه ویستلو سره د ګناه معاف کیدل:-** حضرت ابودرداء ﷺ فرمائی چه د حضرت نبی کریم ﷺ عادت مبارك وو چه مجلس کښې به ناست وو او څه کار دپاره به پاسیدو او بیا به ئې د واپس کیدو اراده اوکړه نو پیزار مبارك یا کپړا مبارکه څه نه څه به ئې پریښودل.یو ځل حضرت نبی کریم ﷺ خپل پیزار مبارك پریښودې وو او یو ډولچه ئې اوبو سره یوړه.څه هم حضرت نبی کریم ﷺ پسې روستو روستو لاړم.حضرت نبی کریم ﷺ څه لږ شان لرې تلو نه پس حاجت پوره کولو نه بغیر واپس راغلو او وې فرمائیل چه ما ته د رب یو پیغام راوړونکې راغلو او ماته ئې پیغام راکړو ، بیا حضرت نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك ﴿مَنۡ يَعۡمَلۡ﴾ الخ تلاوت کړو.او وې فرمائیل چه خه خپلو صحابه کرام ﷺ ته د زیری ورکولو دپاره د لارې نه راواپس شوم.

ددې نه مخکښې چونکه آیت ﴿وَمَنۡ يَّعۡمَلۡ سُوۡٓءًا اَوۡ يَظۡلِمۡ نَفۡسَهٗ﴾ یعنی هرې بدنې کونکې ته به د هغې سزا ملاویږی ، نازل شوې وو ، ددې وجې صحابه کرام ﷺ پریشانه وو. ما اووئیل چه یارسول الله ﷺ! اګر چه زنا اوکړی ، اګر چه غلا اوکړی ، بیا هغه استغفار اوکړی.نو هغه به هم الله ﷺ بخښی ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آو. ما دوباره تپوس اوکړو.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آو. ما په دریم ځل تپوس اوکړو نو حضرت نبی کریم ﷺ په دریم اوفرمائیل چه آو. اګر چه د ابودرداء پوزه خاك آلود شی.نو حضرت ابودرداء چه به کله دا حدیث مبارك بیانولونو خپله پوزه به ئې وهله.(2)ددې اسناد ضعیف دی ، اوداحدیث غریب دی.

**قوله تعالی:: وَمَنۡ يَّكۡسِبۡ اِثۡمًا فَاِنَّمَا يَكۡسِبُهٗ عَلٰى نَفۡسِهٖ::** بیافرمائی چه ګناهګار خپل ځان سره بد کوی.لکه بل ځائې کښې فرمائی چه هیڅوك به د بل بوج نه اوچتوی.یو بل ته به فائده نشی ورکولې،هرسړې به دخپلوکړو ذمه داروی.هیڅوك به نه وی چه د چابوج واخلی.درب علم،درب حکمت،درب عدل،د رب رحمت خلاف دی چه دیوګناه باندې بل اونیسی.

**قوله تعالی:: وَمَنۡ يَّكۡسِبۡ خَطِيۡٓــئَةً اَوۡ اِثۡمًا ثُمَّ يَرۡمِ بِهٖ بَرِيۡٓــئًا**

بیافرمائی چه څوك بدکار اوکړی اودهغه الزام په بل اولګوی لکه څنګه چه بنو ابیرق د لبید په نوم کړې وه او دا واقعه ددې نه مخکښې تفصیل سره بیان شوه ، یا ترې مراد زید بن سمین یهودی

---

(1) ابوداود : ۱۵۲۱، وسنده حسن)-

(2) ابن مردویه)-

دي.لکه د بعضو نورو مفسیرینو خیال دي چه ددې غلا تهمت دې قبیلې د یو بې ګناه په ذمه لګولې وو.او پخپله خائنان او ظالمان وو. آیت اګر چه د شان نزول اعتبار سره خاص دې لیکن د حکم اعتبار سره عام دې.چه څوك هم داسې کوی نودالله ﷻ د سزا مستحق دې.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ

دې نه پس د آیت ﴿ وَلَوْلَا ﴾ تعلق هم دې واقعې سره دې.یعنی لبید بن عروه اودده ملګرو دبنو ابیرق د غلو د حضرت نبی کریم ﷺ مخکښې برات اوکړو، اوهغه نې پاك کړل ، او د حضرت نبی کریم ﷺ د اصلی حالت نه اړولوکښې ټول کار دوی کړې وو. خو الله ﷻ د حضرت نبی کریم ﷺ حقیقی نګهبان دې اوبه دې موقع ئې حضرت نبی کریم ﷺ ددې خائنانو د طرفدارنی نه بچ کړو او اصلی واقعه صفا شوه. کتاب نه مراد قران او حکمت نه مراد سنت دې.نزول وحی نه مخکښې دوی ته معلوم نه وو . ددوی علم الله ﷻ حضرت نبی کریم ﷺ ته د وحی په ذریعه اوکړو. لکه یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَكَذٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا﴾ نه پوره سورت پورې.او آیت کښې دی چه ﴿وَمَا كُنْتَ تَرْجُوٓا أَنْ يُّلْقٰٓى إِلَيْكَ الْكِتٰبُ إِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرًا لِّلْكٰفِرِينَ﴾ الخ ، ددې وجې فرمائی چه دا ټولې خبرې د الله ﷻ فضل دې ، چه تاسو سره شامل دې

لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ

| نشته خیر | په ډیرو کښې | دپټو خبرو ددوئ نه | مګر | دهغه چا | چې حکم کوی |

ددوئ په ډیروپټومشورو کښې هیڅ خیر نشته |........البته هغه څوك چې(خلقو ته) ........ ........

بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلَاحٍۭ بَيْنَ النَّاسِ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ

په صدقه کولو| یاپه یو نیك کار| یا په اصلاح کولو | په منځ دخلقو کښې | او هغه څوك |چې کوی

دصدقې ورکولویادنیکۍ کولویا دخلقو په مینځ کښې د اصلاح کولو دپاره مشوره اوکړی(نودا ښې خبرې دی)

ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ أَجْرًا عَظِيْمًا ۝ وَمَنْ

دا کارونه |دپاره د لټولو| د رضا دالله | نو زر به | مونږ ورکړوهغه ته| ثواب لوئ | او څوك چې

اوڅوك چې دالله ﷻ درضادپاره داسې کار اوکړی| نومونږ به ډیر زر هغه ته ډیرلوئې اجر ورکړو| اوڅوك

يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ

مخالفت کوی درسول | روستو | دهغې نه | چې ښکاره شوې ده | هغه ته | نیغه لار | او روان شی

چې د هدایت ښکاره کیدونه پس هم د پیغمبر ﷺ مخالفت کوی|...............اود

غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى

په غیر | دلارې دمومنانو | نو مونږ به اوګرزوؤ هغه لره | هغه طرفته | چې دې ورګرزیدلې دې

مومنانود لارې نه سوا په بله لار روان شی | نومونږ ئې هغه طرفته ګرزوو| چه دې ورته پخپله ورګرزیدلې وی

وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ۖ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ۝

اومونږ به داخل کړو هغه | په جهنم کښې |اوبدخائې دې | د ورتلو |

او دوزخ ته به ئې داخل کړو| اودوزخ ډیر بدخائې دې | .............

**قوله تعالی: لَاخَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوَاهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ**

**د اصلاح بين الناس فضيلت:**- د خلقو اکثر کلام بې خیره وي،سوا د هغو نه چه د چا خبرې خیرات کولو، د نیکۍ،خلقو کښې د ملاپ وي.دحضرت سفیان ثوری رحمه الله پوښتنې ته څه خلق ورغلل ، په هغوی کښې حضرت سعید ابن احسان رحمه الله هم وو ، نو وې فرمائیل چه سعید تا چه د ام صالح روایت مبارك نه کوم حدیث بیان کړې وو نن هغه بیا بیان کړه.هغوی اوفرمائیل چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د انسان ټولې خبرې د ده دپاره وبال دی سوا د ذکر الله او ښه کارونو خودولو نه او د خرابو کارونونه منع کولو نه.حضرت سفیان ثوری رحمه الله اوفرمائیل چه هم دا مضمون په دې آیت کښې دې ، هم دا مضمون په آیت ﴿يَوْمَ يَقُومُ الرُّوحُ﴾ کښې دې هم دا مضمون په سورة العصر کښې دې .(١)

**په صلح کښې د دروغو وئیلو اجازت:**- مسنداحمد کښې د حضرت نبی کریم ﷺ فرمان دې چه خلقو کښې دمیل ملاپ دپاره او اصلاح دپاره چه کومې خبرې کیږي یا څه اخوا دیخوا خبرې اوکړی نوهغه دروغژنوکښې نه دې.حضرت ام کلثوم بنت عقبه رضي الله عنها فرمائی چه ما د داسې خبرو اجازت په دریو موقعو آوریدلی دی ① جهاد کښې ② خلقو کښې صلح کولو دپاره ③ دښځې خاوند خبرو کښې.دا مورېي بې په هجرت کونکو او بیعت کونکو کښې ده. (٢)

**دصدقې نه افضل عمل:**- اوحدیث مبارك کښې دی چه تاسو ته یو داسې عمل اوښایم چه د روژې او مونځ او صدقې نه هم افضل دې ؟ خلقو خواهش اوکړو.چې آو، نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خپلو کښې اصلاح کول.فرمائی چه خپلو کښې فساد نیکۍ بربادوی.(٣) ( ابوداود وغیره ).

**بهترین تجارت:**- بزار کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ حضرت ابوایوب انصاری رضي الله عنه ته اوفرمائیل چه نن څه تاته یو تجارت ښایم.خلق چه کله جنګ کوی نو په هغوی کښې صلح کوه. هر کله چه یو بل نه خفه شی نو دوی یوبل سره پخلا کوه. الله ﷻ فرمائی چه څوك داسې نیکې خبرې د رب د رضا دپاره خلوص او نیك نیت سره اوکړی نو هغه ته به اجر عظیم ورکوم.(٤)

**قوله تعالی: وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ**

چه کوم کس غیر شرعی طریقه باندې عمل کوی چه شریعت یو طرفته وی او دې بل طرفته وی او فرمان رسول ﷺ څه بل څه وی اودده څه بل غرض وی ،حالانکه ده ته حق معلوم وی ، دلیل ورته معلوم وی ، بیا هم درسول الله ﷺ نه مخالف روان وی او د مسلمانانو صفا خلاف کوی ، نومونږ هم هغه په بده اوخرابه لار سموؤ. اوبیا ده ته هغه ښه اوبد معلوم شي او تر دې چه دې د جهنم مینځ ته ورپریوزی.دمومنانو دلارې نه علاوه بله لار تلاش کول د رسول الله ﷺ سره شقاوت کول دی.لیکن کله کله د حضرت نبی کریم ﷺ د خبرې صفا خلاف وی او کله د هغه څیز خلاف چه د هغې باره کښې ټول امت محمدیه متفق وی او الله ﷻ دې ددۀ دشرافت او کرامت په وجه د خطا نه بچ ساتې دې. دې باره کښې ډیر احادیث مبارکه دی او مونږ هم احادیث الاصول کښې د دوی لویه حصه بیان کړې ده. بعضې عالمان خو ددې متواترې معنوی قائل دی.حضرت امام شافعی رحمه الله د غور وفکر کولو نه ددې آیت مبارک نه د امت په اتفاق په دلیل باندې استدلال کړې دې.حقیقت کښې هم دې باره کښې بهترین او قوی څیز دې.بعضې نورو امامانو په دې باندې دلالت مشکل اودوه رازونو والا آیت هم ګرزولې دې .

(١) سنن ترمذی کتاب الزهد باب : ٦٣ ح/٢٤١٢، ابن ماجة: ٣٩٧٤)-
(٢) احمد : ٤٠٣/٦، صحیح بخاری کتاب الصلح باب لیس الکاذب الذی یصلح بین الناس : ٢٦٩٢، صحیح مسلم: ٢٦٠٥)-
(٣) ابوداود کتاب الادب باب فی اصلاح ذا الیمین : ٤٩١٩)-
(٤) مسند البزار : ٢٠٦٠)-

قوله تعالى: نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ۗ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴿۱۱۵﴾

غرض داسې کولو والو ته الله تعالى هم رسۍ سسته پرېږدي لکه فرمان دې چه ﴿سَنَسْتَدْرِجُهُمْ﴾ او ﴿فَلَمَّا زَاغُوْٓا﴾ او ﴿نَذَرُهُمْ﴾ يعنې مونږ دوی په بې خبرنې کښې په مزه مزه زياتوو. کله چه دوی بې لارې شی نومونږ هم ددوئ زړونه کاږه کړو. مونږ دوی لره ددوی په سرکشۍ کښې حيران پرېږدو. او آخر د دوی دا کارونه دوی جهنم ته رسوی. لکه فرمان دې چه د ظالمانو دخپلو ملګرو سره يو ځائې حشر اوکړنې او لکه فرمائې چه کله ظالمان اور اووينی نو وائې به دې کښې به داخليدل وي. ليکن ددوی به هېڅوک نه وئ چه دوی ددې نه نې بچ کړی.

| |
|---|
| اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ |
| بيشکه الله \| نهٔ ببنی |
| .................الله ﷻ خوبس يوشرک نه ببنی |
| اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ |
| دا چې شريك جوړ کړې شی \| دهغه سره \| او ببنی \| هغه \| چې سوا وی \| ددې نه\| دپاره دهغه چا |
| اوددې نه سوا هرڅه (ګناه) معاف کوی\| .................چې چاته نې (معاف کول) خوښ شی |
| يَّشَآءُ ۚ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًاۢ |
| چې اوغواړی \| اوڅوك چې\| شريك جوړ کړی\| دالله سره \| نوبيشکه \| بې لارې شو \| په بې لارې کيدو |
| اوچاچې الله ﷻ سره شريک جوړ کړو\|.................نوهغه په ډيره لرې ګمراهئ |
| بَعِيْدًا ﴿۱۱۶﴾ اِنْ يَّدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اِنٰثًا ۚ وَاِنْ يَّدْعُوْنَ |
| لرې سره \| نهٔ رابلی دوئ \| بې دهغه (الله) نه \| مګر \| ښځې بتانې \| اونهٔ رابلی دوئ |
| سره ګمراه شوا .................دوئ الله ﷻ پريخودې دې او ديوڅو زنانه څيزونو عبادت کوی |
| اِلَّا شَيْطٰنًا مَّرِيْدًا ﴿۱۱۷﴾ لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَقَالَ |
| مګر\| شيطان \| سرکشه \| چې لعنت کړې دې په هغه باندې\| الله\| اووئيلې ووٴ هغه |
| اوصرف د هغه نافرمانه شيطان عبادت کوی \| چې الله ﷻ پرې لعنت کړې دې \| .................اوشيطان |
| لَاَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيْبًا مَّفْرُوْضًا ﴿۱۱۸﴾ وَّلَاُضِلَّنَّهُمْ |
| چې خامخا به نيسم زهٔ \| د بندګانو ستا نه\| حصه \|مقرر کړې شوې\| اوخامخا به بې لارې کوم زهٔ هغوئ |
| خوالله ﷻ ته ونيلی ووا چې ستادبندګانونه به ضرورمقرره حصه اخلم\| اوهغوئ به ضرور بې لارې کوم |
| وَلَاُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ |
| اوخامخا به زهٔ په اميدونو کښې اچوم هغوئ\| اوخامخا به زهٔ حکم کوم هغوئ ته \| نو خامخا به اوڅيری هغوئ |
| اودوی به په (دنياوی قسم قسم) طمع اواميدونو کښې ساتم\| اوورته به حکم کوم نو د څاروۍ غوږونه به |
| اٰذَانَ الْاَنْعَامِ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللّٰهِ ۚ |
| غوږونه\| دڅاروۍ \|اوخامخا به زهٔ حکم کوم هغوئ ته\|نوخامخا به بدلوی هغوئ \| پيداوښت د الله |
| څيرې کوی ئ\|اوورته به حکم کوم (چې دالله پيداوښت بدلوئ) نو د الله په پيدائش کښې به بدلون راولی |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | يَّتَّخِذِ | الشَّيْطٰنَ | وَلِيًّا | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | فَقَدْ | خَسِرَ | |
| اوهغه څوك | چي اونيسي | شيطان | دوست | بې | دالله نه | نوبه تحقيق سره | نقصان ني اوكړو |
| اوچا چي د الله ﷻ نه سوا شيطان دوست جوړ کړو ...............نو بیشکه هغه به ښکاره تاوان سره | | | | | | | |
| خُسْرَانًا | مُّبِيْنًا ﴿۱۱۹﴾ | يَعِدُهُمْ | وَيُمَنِّيْهِمْ | وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ | | | |
| نقصان | ښكاره | هغه وعده کوي دوئ سره | او امیدونه اچوي دوئ ته | او نۀ کوي وعدې دوئ سره شيطان | | | |
| تاواني شو | شيطان د دوئ سره وعدې کوي | او د دروغو طمعې ورکوي | او شیطان خو دوئ سره صرف د | | | | |
| اِلَّا | غُرُوْرًا ﴿۱۲۰﴾ | اُولٰٓئِكَ | مَاْوٰىهُمْ | جَهَنَّمُ | وَلَا يَجِدُوْنَ | عَنْهَا | |
| مگر | دهوکه | داکسان چي دي | ځائې ددوی | جهنم دې | اونۀ به مومي دوئ | دهغې نه | |
| دهوکې نه ډکې وعدې کوي | دد غه خلقو ځائې دوزخ دې | .........اوددې ځائې نه به خلاصې | | | | | |
| مَحِيْصًا ﴿۱۲۱﴾ | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | سَنُدْخِلُهُمْ | | | |
| څۀ طريقه دخلاصې | او هغه كسان | چي ايمان راوړي | او عمل اوكړي نيك | نو داخل به كړو مونږ هغوئ | | | |
| بيانۀ مومي | اوچا چي ايمان راوړې دې | او نیک کارونه کوي | نو هغوئ به مونږ داسې باغونو ته | | | | |
| جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَآ | اَبَدًا | |
| داسې باغونو ته | چي بهيږي به | لاندې دهغې نه | نهرونه | چي هميشه به اوسيږي | په هغې كښې | اتل ترتله | |
| داخل کړو | چي دهغې (د بنګلو) لاندې به ولې بهيږي | او دوئ به په هغې كښې هميشه هميشه دپاره وي | | | | | |
| وَعْدَ اللّٰهِ | حَقًّا | وَمَنْ | اَصْدَقُ | مِنَ اللّٰهِ | قِيْلًا ﴿۱۲۲﴾ | | |
| داوعده د الله ده | حقه | او څوك دي | زيات رښتيني | دالله نه | په خبرو كښې | | |
| دادالله ﷻ حقه وعده ده | او د الله ﷻ نه سوا بل څوک زیاته رښتني خبره کولې شي | | | | | | |

قوله تعالى: اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ

**د شرک نه سوا نوره هره ګناه معاف كيږي:-** ددې سورت په شروع کښې د رومبې آيت متعلق مونږ پوره تفسير کړې دې. او هلته ددې آيت متعلق احاديث هم بيان شوي دي. حضرت علي ﷺ به فرمائيل چه ماته ددې آيت مبارك نه هيڅ يو آيت مبارك زيات محبوب نه دې (۱)(ترمذي). مشركان د دنيا او آخرت د نيكو نه محرومه کړې شوي دي. او حق لارې نه لرې پريوځي. هغوئ خپل نفس او خپل دواړه جهانونه برباد کړي دي. دوی د مشرکانو ښخو عبادتګار دي.

قوله تعالى: اِنْ يَّدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اِنٰثًا

**د اناث په تفسير كښې اقوال:-** ①حضرت كعب رحمه الله فرمائي چه هر صنم سره يو جنيه ښځه ده. ②حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه ﴿اِنٰثًا﴾ نه مراد بتان دي. دا قول نورو مفسرينو هم بيان كړې دې. ③حضرت ضحاك رحمه الله قول دې چه مشركانو به د فرښتو عبادت كولو. اوهغوئ ته به ني د الله ﷻ لونړه وئيلې اووئيل به ني چه ددوی د عبادت نه څمونږ اصل غرض د الله ﷻ نزديكت حاصلول دي. او ددوی

---

۱) الترمذي : ۳۰۳۷۔

تصویرونه به نې د ښځو شکلو سره جوړول. بیا به نې حکم کولو او تقلید به نې کولو او وئیل به نې چه دا صورتونه د فرښتو دی چه دالله ﷻ لونړه دی.دا تفسیر آیت ﴿اَفَرَءَیۡتُمُ اللّٰتَ﴾ مضمون کښې ښه شان سره ملاویږی.اوهلته د دوی دبتانو نومونه هم الله ﷻ خودلې دی چه دا ښه انصاف دې چه هلکان خو ستاسو اوجینکۍ خما.اوآیت کښې دی چه ﴿وَجَعَلُوا الۡمَلٰٓئِکَةَ الَّذِیۡنَ هُمۡ عِبٰدُ الرَّحۡمٰنِ اِنَاثًا﴾دې خلقو د الله ﷻ غلامانې فرښتې ګنړلې دی.او بل ځاې کښې دی چه الله ﷻ کښې او جناتو کښې نسبونه راوکاږی.

④حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه ددې نه مراد مردګان دی.⑤حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه هر بې روح څیز اناث دې که هغه لړګې وی او که هغه کاڼړی وی.لیکن دا قول غریب دې.

قوله تعالی:: وَاِنۡ یَّدۡعُوۡنَ اِلَّا شَیۡطٰنًا مَّرِیۡدًا﴿۱۱۷﴾

**د شرک حکم کونکې شیطان دې:-** بیا ارشاد دې چه اصل کښې دوی د شیطان تابعداری کوی ځکه چه هغه دوی ته دا لار ښانسعته کوی او اصل کښې دوی هم دهغه منی.لکه فرمان دې چه ﴿اَلَمۡ اَعۡهَدۡ اِلَیۡکُمۡ﴾ ائې بنی آدم آیا تاسو ماسره وعده نه وه کړې چه د شیطان عبادت به نه کوۍ؟ ددې وجې به فرښتې د قیامت په ورځ صفا وائی چه ځمونږ د عبادت دعویدار اصل کښې د شیطان پنجه کښې انخته وو. الله ﷻ شیطان دخپل رحمت نه یو طرفته کړو او بهر نې کړو. هغه هم ذمه داری اخستې وه چه د الله بندګان به ډیرکسان دهوکه کوی.

قوله تعالی:: وَقَالَ لَاَتَّخِذَنَّ مِنۡ عِبَادِکَ نَصِیۡبًا مَّفۡرُوۡضًا﴿۱۱۸﴾

**څومره خلق به شیطان سره جهنم ته ځی؟:-** حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه په هرو زور کښې به نهه سوه اویوکم سل (۹۹۹)خپل ځان سره جهنم ته بوځی او یو به بچ شی او هغه به د جنت مستحق شی.

قوله تعالی:: وَلَاُضِلَّنَّهُمۡ وَلَاُمَنِّیَنَّهُمۡ وَلَاٰمُرَنَّهُمۡ فَلَیُبَتِّکُنَّ اٰذَانَ الۡاَنۡعَامِ

**د شیطان د ګمراهۍ لارې:-** شیطان اوئیل چه ①څه به هغوۍ د حق نه اړوم. ②او دوی ته به امیدونه ورکوم چه دوی به توبه نه اوباسی.③خواهشاتو پسې به روان وی.④مرګ به نې هیر کړې وی.⑤د نفس غلامان به وی ⑥او آخرت نه به لرې وی.⑦د څناورو غوږونه به کټ کوی. ⑧او په هغې کښې به سوری کوی ⑨او دالله ﷻ نه سوا به د نورو د نوم تلقین ورکوم

قوله تعالی:: وَلَاٰمُرَنَّهُمۡ فَلَیُغَیِّرُنَّ خَلۡقَ اللّٰهِ

**دالله په مخلوق کښې دبدلون تفسیر:**①دالله ﷻ جوړ کړې شوی صورتونه خرابول به ورته ښایم،لکه څناورخصی کول.لکه یوبل حدیث مبارك کښې ددې نه هم ممانعت راغلې دې چه (شاید ددې نه مراد ددې نه نسل منقطع کولو غرض سره داسې کول وی ) یو معنی دا هم کړې شوې ده چه مخ باندې ستنې سره سیوری کول،دا په صحیح بخاری کښې هم ممنوع دې.او ددې په کولو الله ﷻ لعنت کړې دې.([1])

② حضرت ابن مسعود ﷺ نه صحیح سند سره مروی دی چه ستنې سره سیوری کولو والا سړی اوښځې دتندی ویښته اوښکلو والا سړی او ښځو باندې چه د حسن او ښانست دپاره د الله ﷻ شکلونه خرابوی.په دوی دالله ﷻ لعنت دې.څه دې په دوی ولې لعنت اونه کړم؟ چه په کومو رسول الله ﷺ لعنت کړې دې ، اودا په کتاب الله کښې موجود دې.بیا دوی آیت مبارك ﴿وَمَاۤ اٰتٰىکُمُ الرَّسُوۡلُ فَخُذُوۡهُ﴾ اولوستلو. ([2])

③ بعضونورو مفسرینو نه مروی دی چه ددې نه مراد دالله ﷻ دین بدلول دی ،لکه بل آیت مبارك کښې دی چه ﴿فِطۡرَتَ اللّٰهِ الَّتِیۡ فَطَرَ النَّاسَ عَلَیۡهَا ؕ لَا تَبۡدِیۡلَ لِخَلۡقِ اللّٰهِ﴾ یعنی خپل مخ قائم اوساته د الله ﷻ دین

---

[1]) صحیح مسلم کتاب اللباس باب النهی عن ضرب الحیوان فی وجهه : ۲۱۱۶ )-

[2]) صحیح بخاری کتاب للباس باب المتفلجات للحسن: ۵۹۳۱، صحیح مسلم: ۵۵۷۱ )-

طرفته، دا د الله ﷻ فطرت دې چه په دې نې ټول انسانان پیدا کړي دي. د الله ﷻ خلق کښې هیڅ بدلون نشته دي.

**په دریم تفسیر د ابن کثیر رحمه الله تبصره:-** ددې نه مخکښې جملې لره چه کله د امر معنی کښې واخستې شي نو دا تفسیر صحیح دې. یعنی د الله ﷻ فطرت مه بدلونئ. ما چه خلق په کوم فطرت پیدا کړي دي په هغې نې پریږدئ.

**خلق په فطرت اسلامي پیدا کیږي:-** صحیحین کښې دي چه هر ماشوم په فطرت پیدا کیږي لیکن بیا د ده مور پلار دې یهودي یا نصراني یا مجوسي جوړوي. لکه څنګه چه د څیلئ بچې صحیح سالم او بې عیبه وي. خو بیا خلق د ده غوږونه غیره پریکړي او دا عیب دار کړي.(۱)

**خلق په یو دین پیدا شوي وو:-** صحیح مسلم کښې دي چه الله ﷻ فرمائي چه ما خپل بندګان په یو دین پیدا کړي دي، لیکن شیطان راغلو او دوی نې اوغلول. بیا ما په دوی خپل حلال حرام کړل.(۲)

څوک چې شیطان دوست جوړوي هغوی خپل نقصان کوي، د کوم نقصان چې هیڅکله تلافي نشي. څکه چه شیطان دوی ته شنه باغونه ښائي. او دوئ ته د فلاح وبهود د دوی غلطه لاربښائي او دوی دوئ ته دهوکاورکوي، او هغه اصل کښې ډیر غټ فریب او صفا دهوکاباز دې.

قوله تعالی: یَعِدُهُمْ وَیُمَنِّیهِمْ ۖ وَمَا یَعِدُهُمُ الشَّیْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا ۝

**دقیامت په ورځ د شیطان خپلو تابعدارو ته تقریر:-** نو د قیامت په ورځ به صفا اووائي چه د الله تعالی وعدې رښتوني وې. او څه خو وعده خلاف یم. څما تاسو باندې هیڅ زور نه وو. څما آواز آوریدو سره تاسو مست او بې عقل شوئ. اوس ماته ولې بدرد وائی خپل ځان ته بدرد اووائي. دشیطان وعدو لره صحیح ګڼړلو والا، د هغه ورکړې شوي امیدونو لره پوره کولو والا آخر به جهنم ته داخلیږي اوهلته ددوی خلاصي مشکل دې.

قوله تعالی: وَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ

**د نیکانو خلقو د جزاء بیان:-** د دې بدبختو د ذکر کولو نه پس اوس د نیکو خلقو حال بیانوي چه ما په زړه سره مني. او بدن سره څما تابعدار وي. څما په احکامو عمل کوي. ما چه کومو څیزونو نه منع کړې دي د هغې نه منع اوسي. څه به دوی ته خپل نعمتونه ورکړم. دوی به جنت ته داخل کړم چه په هغې کښې به نهرونه بهیږي چه دوی به په کښې پخپله روان وي اوچه چرته غواړي نو بوځي به ئې. او په هغې کښې به زوال، انتقال او نقصان نه وي. د الله ﷻ دا وعده اټل او رښتوني او یقیني ده. د الله ﷻ نه به زیاته رښتیا خبره د چا وي. د هغه نه سوا هیڅوک معبود نشته، هغه برحق دې اوهغه نه سوا بل څوک مربي نشته.

**د نبي کریم ﷺ خطبه:-** حضرت نبي کریم ﷺ خپله خطبه کښې اوفرمائیل چه د ټولو نه زیاته رښتیا خبره د الله ﷻ کلام دې. اوډټولو نه زیات بهتر هدایت د محمد ﷺ هدایت دې. او ټولو کارونو کښې د ټولو نه زیات خراب کار دین کښې نوې خبره راویستل دي او هره داسې خبره بدعت ده. او هر بدعت ګمراهي ده او هره ګمراهي جهنم ته داخلونکې ده.(۳)

| لَیْسَ | بِاَمَانِیِّکُمْ | وَلَآ اَمَانِیِّ | اَهْلِ الْکِتٰبِ ؕ | مَنْ | یَّعْمَلْ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| نه ده | په آرزوګانو ستاسو | اونه په آرزوګانو | داهل کتابو | هغه څوک | چې اوکړي |
| نه ستاسو په آرزوګانو کار کیږي | | اونه داهل کتابوپه آرزوګانو کار کیږي | | ......... (قانون دادې) چا چې | |

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب ما قیل فی اولادکم المشرکین : ۱۳۸۵، صحیح مسلم: ۲۶۵۸، ترمذی : ۲۱۳۸)-

(۲) صحیح بخاری کتاب الجنة باب الصفات التی یعرف بها فی الدنیا: ۲۸۶۵)-

(۳) صحیح مسلم کتاب الجمعة باب تخفیف الصلاة والخطبة : ۸۶۷، نسائی : ۱۵۷۸، ابن ماجة: ۴۵، واللفظ للنسائی -

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سُوْٓءًا | يُّجْزَ | بِهٖ | وَلَا يَجِدْ | لَهٗ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | وَلِيًّا | |
| بدکار | بدله به ورکړې کیږی | دهغې | اواوبه نهٔ مومی | دخان دپاره | ماسوا دالله نه | څوک دوست | |

بدکاراوکړو| دهغې سزا به ورکولې شی | اودالله ﷻ په مقابله کښې به هیڅوک دخان ملګرې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَّلَا نَصِيْرًا﴿۱۲۳﴾ | وَمَنْ | يَّعْمَلْ | مِنَ الصّٰلِحٰتِ | مِنْ ذَكَرٍ | اَوْ اُنْثٰى | |
| اونهٔ مددګار | اوهغه څوک | چې اوکړی | نیک عملونه | که نارینه وی | اوکه زنانه وی | |

اومددګاراونهٔ مومی| اوڅوک چې نیک کارونه کوی برابره خبره ده که نارینه وی او که زنانه وی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَهُوَ مُؤْمِنٌ | فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ | الْجَنَّةَ | وَلَا يُظْلَمُوْنَ | |
| اوهغه ایماندار وی | نو دغه کسان به داخلیږی | جنت ته | او ظلم به او نهٔ کړې شی په هغوی | |

خوچې مومن وی | ........ نودغه کسان به جنت ته داخلیږی | ...............او په دوئ باندې به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نَقِيْرًا﴿۱۲۴﴾ | وَمَنْ | اَحْسَنُ دِيْنًا | مِّمَّنْ | اَسْلَمَ | |
| په قدر د پردې د زړی دخرما | اوڅوک دې | ډیربهتر په لحاظ ددین سره | دهغه چانه | چې هغه حواله کړو | |

ذره برابر هم ظلم نه شی کولې | اودهغه چانه ښکلې دین د چا کیدې شی | چې خپل ځان د الله تعالی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَجْهَهٗ | لِلّٰهِ | وَهُوَ | مُحْسِنٌ | وَّاتَّبَعَ | مِلَّةَ | اِبْرٰهِيْمَ | حَنِيْفًا |
| ځان خپل | الله ته | اوهغه | نیکی کونکې وو | اوپیروی ئې اوکړه | دطریقې | دابراهیم | یو مخیزی |

تابعدار کړی|اوپه اخلاص سره نیک کارونه کوی|او د ابراهیم ﷺ چې یومخیزې وو د ملت تابعداری کوی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاتَّخَذَ | اللّٰهُ | اِبْرٰهِيْمَ | خَلِيْلًا﴿۱۲۵﴾ | وَلِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ |
| اونیولې وو | الله | ابراهیم ﷺ | په دوستئ سره | اوالله لره دی | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی |

اوالله ابراهیم ﷺ په خالصې دوستئ سره نیولې وو| .......................اودآسمانونو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | فِي الْاَرْضِ | وَكَانَ اللّٰهُ | بِكُلِّ شَيْءٍ | مُّحِيْطًا﴿۱۲۶﴾ | |
| اوهغه | چې په زمکه کښې دی | او دې الله | په هر څیز باندې | احاطه کونکې | |

اوزمکې ټول څیزونه صرف د یو الله ﷻ دی| ............ اوالله ﷻ په هرڅیز احاطه کونکې دې

**قوله تعالی:: لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ وَلَآ اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ**

**د مسلمانانو په اهل کتابو فضیلت** :-حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه مونږ ته ذکر شوی دی چه اهل کتابو او مسلمانانو کښې مشهور شو،اهل کتاب په دې خبره خپل فضیلت ښکاره کولو چه خمونږ نبی ﷺ ستاسو نبی ﷺ نه مخکښې دې اوخمونږ کتاب هم ستاسو نه مخکښې دې اومسلمانانو به وئیل چه خمونږ نبی خاتم النبیین ﷺ دې اوخمونږ د مخکښې ټولو کتاب فیصله کونکې دې.نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو. اودمسلمانانو په نور دین والو فضیلت بیان شو.

**دامام مجاهد قول**:- حضرت مجاهد رحمه الله نه مروی دی چه عربو اووئیل چه نه خو به مونږ د مرګ نه پس ژوندی کیږو اونه به مونږ باندې څه عذاب وی.

**دایت مفهوم:**-د ایت مضمون دا دې چه صرف اظهار کولو سره او دعوی کولو سره صداقت او حقانیت نه ثابتیږی ،بلکه ایماندار هغه دې چه د هغه عمل صفا وی او عمل ئې شاهد وی او دالله ﷻ دلیل د دوی لاسونو کښې وی ،نو نه ستاسو خواهشات اودعوې څه وقعت لری اونه د اهل کتابو خواهشات اواوچتې خبرې.د نجات دارومدار اقوال نه دی بلکه د الله ﷻ فرمانبرداری او د رسولانو تابعداری ده ، څوك چه بدی کوی نو دا ناممکن ده چه دوی د دې بدئی په وجه خلاصې بیا مومی. بلکه ذره ذره نیکی او بدی به دوی په خپلو سترګو د قیامت په ورځ وینی.

**د مصیبت په شکل کښې دګناه سزا ملاویدل:**- دې آیت مبارك سره صحابه کرام ﷺ ډیر زیات پریشانه شو تردې چه حضرت ابوبکرصدیق ﷺ اوفرمائیل .چه یارسول الله ﷺ نجات به. څنګه وی ؟ ځکه چه د یو یو عمل بدله به ضروری وی ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ دې تا اوبښی انې ابوبکر ﷺ ! دا جزا هغه ده چه کله ستا د بیمارئی په صورت کښې وی اوکله د څه تکلیف په وجه او کله د صدمې په وجه او کله د غم او پریشانئی په وجه او کله د څه مصیبت په شکل کښې،نودا ټول مصیبتونه او تکلیفونه چه په تا راځی نو داستا د ګناهونو سزا ده .[1]( مسند احمد )

**مصیبت د ګناه وجه ده:**-او یو روایت کښې حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه هرې بدئی کولو والا به دنیا کښې د هغې بدله مومی.([2]) ابن مردویه کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ اوفرمائیل چه ګورئی کوم ځائې کښې چه حضرت عبدالله بن زبیر ته پهانسی ورکړې شوې ده هلته تاسو مه ځئ غلام نه هیر شو.اود حضرت عبدالله نظر په ابن زبیر ﷺ پریوتو او وې فرمائیل په الله قسم ترکومې چه خما معلومات دی خما ګواهی ده چه ته روژه دار او مونځګزار او رشته ساتونکې وې او خما د الله تعالی نه امید دې چه تاسو نه کومه غلطی اوشوه د هغې بدله تاسو ته دنیا کښې درکړې شوه. اوس به تاسو باندې د الله ﷻ عذاب نه وی.بیا ئې حضرت مجاهد ﷫ طرفته اوکتل او وې فرمائیل چه ما د حضرت ابوبکرصدیق ﷺ نه آوریدلی وو چه هغوئ فرمائیل ما د حضرت نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه کوم سړې بدی کوی نو د هغې بدله هغه ته په دنیا کښې ملاویږی.([3])

بل روایت کښې دی چه کله حضرت عبدالله بن عمر ﷺ حضرت ابن زبیر ﷺ په دار ختلو اولیدو نو وې فرمائیل انې ابوخبیب! الله ﷻ دې په تا رحم اوکړی ما ستا دپلار نه دا حدیث مبارك آوریدلې دې([4])ابن مردویه کښې دی چه حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په موجودګئ کښې دا آیت نازل شو.هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ دا واورولو نو حضرت ابوبکرصدیق ﷺ خفه شو اوهغوئ ته معلوم شو چه هرکله د هرعمل بدله به ملاویږی نو بیا نجات مشکل دې.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واوره صدیق ! تاته اوستاسو ملګرو ته خو به په دنیاکښې بدله ملاویږی او ددې مصیبتونو په وجه به ستاسو ګناهونه معاف کیږی اودقیامت په ورځ به پاك صاف پاسئ.خو چه کوم نور خلق دی دهغوئ ګناهونه جمع کیږی د قیامت په ورځ به هغوئ سزا مومی.([5])دا حدیث مبارك ترمذی هم روایت کړې دې او وئیلی ئې دی چه ددې راوی موسی بن عبیده ضعیف دې.او دویم راوی مولی بن سباع مجهول دې.او نورو طریقو سره هم دا روایت ماحصل مروی دې.

---

[1]) احمد: ۱۱/۱)-
[2]) احمد: ۶/۱ )-
[3]) ابو یعلی :۱۸ )-
[4]) مسند البزار : ۲۲۰۵)-
[5]) ترمذی : کتاب تفسیر القران الکریم باب ومن سورة النساء : ۳۰۳۹)-

**هم دا مضمون د عائشې په حدیث کښې:-** یو بل حدیث مبارك کښې دی چه حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها اوفرمائیل یارسول الله ﷺ! مونږ باندې دا آیت مبارك ډیر زیات بوج غورزوی.نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د مومن دا بدله هغه ده چه مختلفو ضورتونو پریشانو او تکلیفونوسره ده ته په دنیا کښې ملاویږی.([1])

**هرمصیبت دمومن دپاره د ده د ګناه بدله ده.-** اویوحدیث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل تردې چه مومن خپل څه نقد رقم په جیب کښې کیږدی او بیا دضرورت په وخت کښې چه دې کله هغه تلاش کوی اوهغه ملاونشی او دې بیا جیب کښې لاس بنکته کړی نو دې لره وخت کښې چه ده ته کوم تکلیف رسی نودې سره دده ګناهونه معاف کیږی.اودا هم دده د بدو سزا ده. اوداشان ددنیادامصیبتونه دې داسې صفا جوړوی چه په ده به قیامت کښې څه بوج نه وی.لکه څنګه چه سره زرپه بټۍ کښې پخولونه پس راویستلې شی نوداشان به دوی ددنیا نه پاك اوصفا الله ﷺ طرفته ځی([2])

**هرمصیبت د مومن دپاره اجر دې:-** ابن مردویه کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ نه دې آیت مبارك باره کښې تپوس اوشو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مومن ته په هر څیز کښې اجر ورکولې شی ، تردې چه دمرګ سختی هم.)

**تکلیفونه د ګناهونومعاف کیدو ذریعه ده:-** مسند کښې دی چه کله د بنده ګناهونه زیات شی او ددې د ختمولو دپاره څه نیك اعمال نه وی نو الله په ده غم راولی ، اودې سره د ده ګناهونه معاف کیږی.([3])

**ازغې هم تکلیف دې:-** سعید بن منصور وائی چه کله صحابه کرام رضی الله عنهم دې آیت مبارك سره پریشان شو. نو حضرت نبی کریم ﷺ دوی ته اوفرمائیل چه صحیح اوسئ او یو خائی اوسئ ، د مسلمان هریو تکلیف دده دپاره په دنیا کښې کفاره ده تر دې چه ازغی تکلیف هم.([4])او یو روایت کښې دی چه صحابه کرام رضی الله عنهم په ژړا شو او غم کښې وو چه حضرت نبی کریم ﷺ دوی ته دا اوفرمائیل.

**د کعب بن عجره عجیبه رضی الله عنه دعا:-** یو سړی حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه خمونږ په دې بیمارو مونږ ته څه ملاویږی ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا ستاسو د ګناهونو کفاره ده. ددې آوریدو سره حضرت کعب بن عجره رضی الله عنه دعا اوکړه چه یاالله تر مرګه پورې ما نه تبه لرې نه کړې خو حج اوعمرې او جهاد نه محروم پاتې نشم. د دوی دا دعا قبوله شوه اوکله چه به د دوی بدن ته چا لاس هم یوړو نو ددوی به تبه وه ([5])(مسند احمد).

**په چا افسوس پکار دې؟:-** حضرت نبی کریم ﷺ ته یو خل اووئیلې شو چه آیا د هرې بدئی بدله به ملاویږی ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آو. هم ددې هومره او ددې په شان.لیکن د هرې نیکئ بدله به لس چنده شی ، نو په هغه افسوس دې چه د هغه بدئی د نیکو نه زیاتې شی ( ابن مردویه ).

**د حسن رحمه الله په نیز د بدئ نه مراد:-** حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد کافر دی .لکه یو بل آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ﴾

**دبدئ نه مراد شرک دې:-** .حضرت ابن عباس رضی الله عنه او حضرت سعیدبن جبیر رضی الله عنه فرمائی چه دلته د بدئی

---

[1]) ابوداود کتاب الجنائز باب عیادة النساء : ۳۰۹۳)-

[2]) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة البقرة : ۲۹۹۱ )-

[3]) احمد : ۱۵۷/٦ )-

[4]) صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب ثواب المومن فیما ...: ۲۵۷٤ ترمذی : ۳۰۳۸)-

[5]) احمد: ۲۳/۳ وسنده حسن)-

نه مراد شرك دئ.داسې سړئ به دالله ﷻ نه سوا بل څوك ولي او مددګار نه مومي. خودا بله خبره ده چه دئ توبه اوباسي .

**صحیح قول:-** حضرت امام ابن جریر ﷫ فرمائي چه صحیح خبره هم دا ده چه دا آیت مبارك دهرې بدئی باره کښې دې .لکه څنګه چه احادیث مبارکه تیرشو ، والله اعلم.

**قوله تعالى: وَمَن يَعْمَلْ مِنَ الصَّٰلِحَٰتِ مِن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ**

**د نیکو اعمالو بدله جنت دې:-** د بدو عملونو د سزا ذکر کولو نه پس اوس د نیکو عملونو د اجر بیان کوی.د بدئی سزا خو به یا په دنیا کښې ورکړې کیږی او بنده دپاره دا ښه ده ، او یا به آخرت کښې ورکولې شی،الله ﷻ دې د دې نه مونږ محفوظ اوساتي.مونږ د الله ﷻ نه سوال کوو چه یاالله ﷻ مونږ ته په دواړو جهانونوکښې عافیت راکړې ، اومونږته معافي اوعافیت راکړې ، اومونږ د خپلې ناراضګۍ اوغصې نه په امن کښې اوساتې.نیك اعمال الله ﷻ خوښوی.اوپه خپل احسان او کرم سره دا قبلوی.هغه د هیڅ یو سړې یا ښځې عمل نه ضائع کوی خو په دې شرط چه هغه ایماندار وی.دا نیك خلق به هغه ذات خپل جنت ته داخلوی.او د دوی نیکو کښې به هیڅ کمې نه کیږی.

**قوله تعالى: وَلَا يُظْلَمُونَ نَقِيرًا**

**د قران د درې مشکلو لغاتو حل:-** نقیر دکهجورې د ګټکی په شا چه کوم وړوکې شان کرخه وی هغې ته وائی.فتیل دګټکی منیځ کښې چه کوم وړوکئ پوستکئ ته وائی. دا ددې دواړو په مینځ کښې وی ، او قطمیر دهغې د مینځ والا پورته لفافې ته وائی، دا درې واړه الفاظ په دې موقع په قران پاك کښې راغلی دی.

**قوله تعالى: وَمَنْ أَحْسَنُ دِينًا مِّمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُۥ لِلَّهِ**

بیا فرمائي چه دهغه نه ښه دین د چاکیدې شی چه خپل اعمال هغه دپاره کوی .ایماندارئی او ښه نیت سره د هغه د فرمان مطابق د هغه احکام اومنی.او هغه محسن یعنی دشریعت پابند ،حق دین او هدایت باندې چلیدو والا د رسول ﷺ حدیث باندې عامل هم وی دهر نیك عمل د قبلیدو دپاره دواړه خبرې شرط دی یعنی اخلاص او د وحی مطابق کیدل .د خلوص مطلب دا دې چې دعمل نه مراد صرف د الله ﷻ رضا وی .او صحیح کیدل دا دی چه د شریعت مطابق وی.نو ظاهر خو د قران پاك او حدیث موافق سره صحیح کیږی او باطن په نیت سره ښه کیږی. که دې خبرو کښې یو هم نه وی نو هغه عمل فاسد دې .چه اخلاص په کښې نه وی نو منافقت راځی.اوکه د خلقو د رضا دپاره او هغوی ته د خودنې دپاره وی..او چه کوم عمل دسنت مطابق نه وی نو هغه قابل قبول نه دې او که په دې ضلالت او جهالت وی نو دا ددې دواړو(جهالت او ضلالت) مجموعه ده. سره عمل هم د قبولیت نه پاتې کیږی.او چونکه د مومن عمل ریاکارئی نه پاك وی او د شریعت خلاف هم نه وی ، ددې وجې دده عمل ښه وی .او د الله ﷻ نه خوښ وی.او دده جزا دا وی چه دې سره دده د نور ګناهونو معاف کیږی .

**قوله تعالى: وَٱتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ حَنِيفًا**

**دابراهیم ﷺ تابعدار څوک دې؟:-** ددې وجې دې نه پس فرمائي چه د ملت ابراهیمی تابعداری اوکړئی.یعنی د حضرت نبی کریم ﷺ په نقش قدم تلونکی چه تر قیامته پورې به وی.لکه بل یو آیت مبارك کښې فرمائی چه ﴿إِنَّ أَوْلَى ٱلنَّاسِ بِإِبْرَٰهِيمَ﴾ .یعنی ابراهیم ﷺ ته نزدې دی هغه خلق چه کوم دهغوی حکم منی اود دې نبی اکرم ﷺ.او یوبل آیت مبارك کښې دی چه ﴿ ثُمَّ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ ﴾ یعنی بیا مونږ ستا طرفته وحی اوکړه چې د ابراهیم حنیف ملت تابعداری اوکړئی چه مشرك نه وو.

**د حنیف معنی:-** حنیف وائی قصد سره شرك نه بې زاری کونکې او حق طرفته متوجه کیدونکې چه بل څوك ئې منع نه کړی او دده څوك لرې کولو والا نه وی.

**ابراهیم ﷺ ته د خلت مقام ملاویدو سبب:-** بیا د حضرت خلیل الله د اتباع تاکید او ترغیب دپاره د هغوئ وصف بیانوی چه هغه دالله ﷻ دوست وو. یعنی بنده چه د ترقئ دپاره داعلی نه اعلی درجې ته رسیدې شی هغې ته اورسیدو. د خلت د درجې نه هیڅ یو درجه لویه نشته دې ، دا د محبت اعلی مقام دې په کومه وجه چې حضرت ابراهیم ﷺ عروج ته رسیدلې دې. هغه د هغوی کامل اطاعت دې لکه چه فرمان دې چه ﴿وَإِبْرَٰهِيمَ ٱلَّذِى وَفَّىٰٓ﴾ یعنی هغه ابراهیم ﷺ چه کوم حکم ورته شوې وو هغه یې پوره کړې وو. هغوی هیڅ کله نې دالله ﷻ د مرضئ نه مخ وانړولو ، هیڅکله د عبادت نه ستړې نه شو، هیڅ یو څیز هغه د الله ﷻ د عبادت نه منع نه کړو. اویو آیت مبارک کښې دی چه ﴿وَإِذِ ٱبْتَلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٍ فَأَتَمَّهُنَّ﴾ چه څنګه څنګه مو په هغه آزمېښت اوکړو هغه هغوئ پوره کړو. چه څه الله ﷻ اوفرمائیل هغه هغوئ پوره کړل. فرمان دې چه حضرت ابراهیم ﷺ دیکسوئ رنګ کښې د شرك نه بچ شوې وو اوخمونږ تابع شوې وو. حضرت معاذ ﷺ یمن کښې چه کله دسحر په مونځ کښې دا آیت مبارك اولوستو نو یو سړی اوونیل چه ﴿لقدقرت عین امابراهیم﴾ د حضرت ابراهیم ﷺ سترګې یخې شوې.[1]

**دخلت مقام ملاویدو په سبب کښې دویم قول:-** بعضې خلق وائی چه ﴿خلیل الله﴾ د لقب وجه دا وه چه یو خل دقحط په موقع دوی خپل یو دوست ته مصر یا موصل ته ورغلو چه د هغه خائی نه څه غله راوړی. درې خائې کښې ورته هیڅ هم ملاؤ نشو ، خالی لاسونه واپس شو. هرکله چه خپل کلی ته نزدې ورغلو نوخیال نې راغلو چه د دې شګې نه بورئی ډکې کړم اوکور ته ئې یوسم چه کور والو ته څه تسلی خو اوشی که نه. نوددې نه نې بورئی ډکې کړې او په خناورو نې واچولې. دالله ﷻ قدرت سره هغه شګه په ریښتیا اوړه شو. دوی خو کور ته تلو سره څملاستل او دوی خو هسې هم ستړې شوې وو. نو سترګې نې ورغلې. د کور والو د دوی نه بورئی واختسې او په هغې کښې بهترین اوړه وو. اوړه نې واغږل او روټئ نې پخې کړې. هرکله چه دوی پاسیدل او په کور کښې نې تول خوشحاله اولیدل او روټئ پخول نې اولیدل نو تعجب سره ئې اوونیل چه دا اوړه چرته نه راغلل ؟ تاسو ترینه روټئ پخونې. هغوئ اوونیل چه دا هم تاسو د خپل دوست نه راوړی وو. نو دوی پوهه شو او وې فرمائیل چه دا ما خپل دوست الله ﷻ نه راوړی دی. نو الله ﷻ هم دوی خپل دوست جوړ کړل او دوی ته نې خلیل الله نوم ورکړو.

**په دې واقعه د حافظ ابن کثیر ﷫ تبصره:-** لیکن ددې صحت اوېدې واقعه کښې لږ شان تامل دې. زیات نه زیات دا دی چه دا د بنی اسرائیلو روایت دې. او دې ته مونږ صحیح نه وایو. او دې ته دروغ هم نشو ونیلې. حقیقت دا دې چه دوی ته د القب په دې وجه ملاؤ شو چه ددوی په زړه کښې د الله ﷻ محبت ډیر زیات وو او ددوی په زړه کښې اطاعت او فرمانبرداری وه. په خپل عبادت سره نې الله تعالی خوشحاله کړې وو. حضرت نبی کریم ﷺ هم خپله آخری خطبه کښې دا فرمائیلی وو چه ائې خلقو ! که ما په زمکې والوکښې څوك دوست جوړولې نو ابوبکر بن ابوقحافه به مې جوړ کړې وې ،بلکه ستاسو ملګرې حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ خلیل دې.[2] ( بخاری او مسلم) اویو روایت کښې دی چه الله ﷻ څنګه حضرت ابراهیم ﷺ خلیل جوړ کړې وو ، دا شان ئې څه هم خلیل جوړ کړم.[3]

**محمد ﷺ حبیب الله وو:-** یوځل حضرات صحابه کرام ﷺ د دوی انتظار کښې ناست وو. ذکرئې کولو، یو ونیل چه تعجب دې چه الله ﷻ خپل مخلوق کښې حضرت ابراهیم ﷺ خپل خلیل جوړ کړو ، بل اوونیل چه ددې نه هم زیاته مهربانی نې په حضرت موسی ﷺ اوکړه چه هغه سره ئې پخپله خبرې اوکړې

---

[1]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب بعث ابی موسی ومعاذ بن جبل الی الیمن : ۴۳۴۸ )-
[2]) صحیح بخاری کتاب فضائل اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم سدوا الابواب : ۳۶۵۴ صحیح مسلم: ۲۳۷۲ باختلاف یسیر )-
[3]) صحیح مسلم کتاب المساجد باب النهی عن بناء الجمات علی القبور : ۵۳۲)-

اوهغه ته ئې كليم اوونيل.يو اونيـل چـه حضرت عيسى ﷺ خو روح الله كلمـة الله دې ، يو اوونيل چه حضرت آدم صفى الله او دالله ﷻ خوښ دې.هركله چه حضرت نبى كريم ﷺ بهر تشريف راوړلو نو سلام ئې واچولو او دا خبرې ئې واوريدلې نو وې فرمائيل چه بيشكه ستاسو خبرې صحيح دى ، ابراهيم خليـل الله دې ، موسـى ﷺ كليم الله دې ، او حـضرت عيسـى ﷺ كلمـة الله دې ، اوحضرت آدم ﷺ صفى الله دې او دا شان محمد مصطفى ﷺ دې.واورئى څه حقيقت بيانوم څه د فخر په طور ئې نه وايم چه څه حبيب الله يم.څه د ټولو نه رومبې شفاعت كونكې يم. اود ټولو نـه مخكښې به څما شفاعت قبليږى.او د ټولونه مخكښې به د جنت دروازه هم زه ټكوم .الله ﷻ به څما دپاره جنت بيرته كوى اوما به دې كښې داخلوى.او ماسره به مومنان فقيران وى ، د قيامت د ټولو نـه زيات اكرم او عزت والا زه يم. دا په طور د فخر نه دى بلكه په طور د حقيقت ښكاره كولو تاسو ته وايم.([1])

دا حديث دې سندسره غريب دې ليكن ددې بعـضې شواهدموجود دى.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائى آيا تاسو په دې تعجب كونى چه خلت ابراهيم ﷺ دپاره وو. او كـلام حضرت موسـى ﷺ دپاره وو. او ديدار حضرت محمد ﷺ دپاره ، صلوات الله وسلامه عليهم اجمعين (مستدرك حاكم ). ([2])دغه شان روايت دانس بن مالك ﷺ او نورو ډيرو صحابه كرامو ﷺ او تابعينو او سلفو او خلفو نه مروى دى.

**ابراهيم ته د خلت مقام ملاويدو بل قول:-** ابن ابى حاتم كښې دى چه د حضرت ابراهيم ﷺ عادت وو چه ميلمنو سره به ئې خوراك كولو. يو ورځ دوى د ميلمه په تـلاش كښې اووتلو ليكن دوى ته څوك ملاؤ نشو. كله چه واپس راغلل او وې كتل نو يو سړې په كور كښې ولاړ دې.تپوس ئې ترې اوكړو چه ته څوك ئې ؟ وې ونيل چه څه ملك الموت يم ،څه الله تعالى يو بنده ته رالیږلې يم چه هغه ته زيرې وركړم چه هغه الله تعالى خپل خليل جوړ كړيدې.دې آوريدو سره حضرت ابراهيم ﷺ اوفرمائيل چه ماته ضرور اووايه چه هغه بنده څوك دې ؟ قسم په الله ﷻ كه هغه سړې ډير لرې هم وى خوزه به هغه سره ضرور ملاقات كوم ، او بيا به څه خپل ژوند د هغه په قدمونو كښې تيروم.دې آوريدو سره حضرت ملك الموت اوونيل چه هغه سړې تاسو پخپله يئ.دوى تپوس اوكړو چه دا ريښتيا دى ؟ فرښتې ورته اوئيل چه آو هغه تاسو يئ .دوى بيا تپوس اوكړو چه تاسو به ماته دا اووائې چه په څه وجه الله ﷻ څه خپل خليل جوړكړم ؟ فرښتې اوونيل په دې وجه چه تاسو هر چا تـه وركړه كونى او پخپله چا نـه څه نه غواړئى .

**د خلت لقب ملاويدو باندې د ابراهيم حالت بدليدل:-** او يو روايت كښې دى چه هركله حضرت ابراهيم ﷺ لره الله ﷻ خپل خليل جوړ كړو او دا ممتاز او مبارك لقب ئې ورته وركړو نو په هغه وخت كښې هم د هغوئ زړه كښې د الله ﷻ ويره اوهيبت پريوتو. د هغوى زړه داسې په درزار شو چه د لرې نه هم د دوى د زړه درزار آوريدو شو.اوداسې وو لكه څنگه چه فضا كښې مارغان پرواز كوى.صحيح حديث مبارك د حضرت نبى كريم ﷺ باره كښې هم راغلى دى.چه په كوم وخت كښې بـه د الله ﷻ ويره په دوى غالبه شوه د دوى د ژړا آوازو نـه بـه لرې او نزدې خلقو داسې آوريدو لكه چه كټوئى آواز كوى او دوى به كوشش كولو چه دا ضبط كړى.([3])

قوله تعالى:: وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ

**د زمكې او اسمانونو مالک صرف يو الله دې:-** بيا فرمائى چه په زمكه اوآسمان كښې څه دى هغه ټول دالله ملكيت كښې دى او د هغه غلامئ كښې دى اود هغه پيدا شوى دى.چه څنگه او كله الله تعالى په دوى

---

[1]) ابن مردويه )-

[2]) حاكم : ۶۵/۱)-

[3]) ابوداود كتاب الصلاة باب البكاء فى صلاة : ۹۰٤ ، وسنده صحيح نسائى : ۱۲۱۵)-

کښې تصرف کول غواړي نو بغیر د څه روك ټوك نه او مشورې نه او بغیر د چا د شرکت نه او مدد نه هغه کوی.هیڅوك نشته دی چه هغه لوئې ذات د دې ارادې نه منع کړی.هیڅوك نشته دې چه د هغه لوئې ذات په حکم کښې رکاوټ شی. هیڅوك داسې نشته دې چه د هغه مرضی بدله کړی .هغه د عظمت خاوند دې.او عادل صاحب د حکمت ،د لطف او کرم خاونداو د رحم مالک دې او صمد ذات دې .دهغه لوئې ذات علم په هر وړوکی او لوئې څیز باندې شته.د پټ نه پټ او وړوکی نه وړوکې او لږې نه لږې څیز هم د هغه نه پټ نه دې.خمونږ نظرونو نه چه کوم پټ دی ، د هغه پاك ذات علم کښې ټول ښکاره دی.

وَيَسۡتَفۡتُونَكَ | فِي ٱلنِّسَآءِۖ | قُلِ | ٱللَّهُ | يُفۡتِيكُمۡ
اوتپوس کوی ستا نه دا خلق | په باره دښځو کښې | اووایه | چې الله | فتوی درکوی تاسو ته
اوخلق ستانه دښځو په باره کښې تپوس کوی| (ته) ورته اووایه چې الله ﷻ تاسو ته

فِيهِنَّ | وَمَا | يُتۡلَىٰ | عَلَيۡكُمۡ | فِي ٱلۡكِتَٰبِ
په باره د هغوئ کښې| اوهغه حکم هم دریادوی | چې لوستلې شی | په تاسو باندې | په کتاب کښې
دهغوئ باره کښې حکم درکوی| اوهغه حکمونه(درته یادوی)چې مخکښې په دې کتاب کښې

فِي يَتَٰمَى ٱلنِّسَآءِ | ٱلَّٰتِي | لَا تُؤۡتُونَهُنَّ | مَا | كُتِبَ
په باره دیتیمانو جینکو کښې | هغه | چې نهٔ ورکوئ تاسو هغوئ ته | هغه| چې فرض شوې دې
دیتیمانو جنیکوباره کښې اوروليې شوی وو| کومو ته چې تاسو هغه حقونه نهٔ ورکوئ کوم چه الله تعالی

لَهُنَّ | وَتَرۡغَبُونَ | أَن تَنكِحُوهُنَّ | وَٱلۡمُسۡتَضۡعَفِينَ
دپاره دهغوئ| او رغبت کوئ تاسودې کارته چې| په نکاح کړئ هغوئ| او په باره د کمزورو کښې
دهغوی دپاره مقرر کړې دی| او تاسودهغوی سره دنکاح کولو شوق ساتئ| اوهغه حکمونه چې د کمزورو

مِنَ ٱلۡوِلۡدَٰنِ | وَأَن | تَقُومُواْ | لِلۡيَتَٰمَىٰ | بِٱلۡقِسۡطِۚ
دوړو هلکانو نه| اودا چې حکم کوی الله| چې قائم اوسئ| په حق دیتیمانو کښې| په انصاف سره
ماشومانو په باره کښې شوی وو | اودا خبره چې دیتیمانو کارونه په انصاف سره کوئ

وَمَا تَفۡعَلُواْ | مِنۡ خَيۡرٍ | فَإِنَّ ٱللَّهَ | كَانَ | بِهِۦ | عَلِيمٗا
چې کوئ تاسو| دنیکئ نه | نو بیشکه چې الله | دی | په هغې | خبردار |
اوهره نیکی چې تاسو کوئ هغه الله ﷻ ته ډیره ښه معلومه ده| ..........................

**قوله تعالی:: وَيَسۡتَفۡتُونَكَ فِي ٱلنِّسَآءِۖ**

**د ایت شان نزول:-** صحیح بخاری کښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ددې نه مراد هغه کس دې چه د هغه پرورش کښې څوك یتیمه جینئ وی او دې د هغې ولی او وارث وی ،مال کښې ورسره شریك شوې وی ،او اوس غواړی چه دې یتیمې جینئ سره څه نکاح اوکړم ، او د دې په وجه بل خائې کښې واده نه منع شی ،د داسې سړی باره کښې دا آیت مبارك نازل شوې دې.[1]

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ( ویستفتونک فی النساء ) : ۴۶۰۰) صحیح مسلم: ۳۰۱۸، ابوداود: ۲۰۶۸،۲)-

**د دې ايت نه پس د يتيمانو باره کښې د بل ايت نزول:**- يو روايت کښې دی چه د دې ايت مبارك د نازليدو نه پس کله چه بيا خلقو د حضرت نبی کريم ﷺ نه د يتمې جينئ متعلق سوال اوکړو نو الله ﷻ آيت ﴿يَسْتَفْتُوْنَكَ﴾ الخ نازل کړو. فرمائی چه دې آيت مبارك کښې چه دا فرمائيلې شوی دی چه ﴿وَمَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ فِى الْكِتٰبِ﴾قرآنی رسم الخط ته واړوه﴾ددې نه مراد ړومبې آيت ﴿وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِى الْيَتٰمٰى﴾ الخ دی.

**د ايت مذکوره په شان نزول کښې بل روايت:**- ددوی نه دا هم منقول دی چه ديتيمې جينئ ولی او وارث چه کله د دوی مال کم اووينی يا دوی ښکلې نه وی نو بيا دوی سره نکاح نه کوی او که مال ورسره زيات وی او ښکلې هم وی نو دوی ته د نکاح رغبت کوی.ليکن دې حال کښې چه ددې جينکو به هيڅ آسره نه وه د دوی مهراوحقوقو کښې به ئې کمې کولو. نو الله تعالی دوی منع کړل چه کله تاسو دوی ته پوره مهر او پوره حقوق نه ورکوئی نو دوی سره نکاح مه کوئی.[1]

**د ايت مقصد:**- مقصد دادې چه داسې يتيمه جينئ چه هغې سره د هغې د ولی نکاح جائز وی نو هغه دې سره نکاح کولې شی خو په دې شرط چه دې ته به هغه شان مهر ورکوی چه کوم د دې قبيلې نورو ښځو ته ورکولې شی اوکه دا نشی ورکولې نو ده ته پکار دی چه دې سره نکاح نه کوی.ددې سورت شروع کښې د دې مضمون ړومبی آيت هم دا مطلب دې اوکله داسې هم کيږی چه دې يتيمې جينئ سره د دې ولی نکاح ګوی ،اګر چه دې سره دده نکاح کول حلاله ده. خو بياهم دې غواړی چه د دې نکاح بل چا سره هم اونکړی ځکه که داسې اوکړی نو د دې جينئ ټول مال هال به دده د قبضې نه اوځی.نو د داسې غلط کار نه دې آيت کښې منع کړې شوې ده.

**د ايت مذکوره د شان نزول بل روايت:**داهم مروی دی چه په جاهليت کښې دا دستور وو چه د يتمې جينئ ولی به کله دا جينئ خپل ولايت کښې اخسته نو په دې ئې يوه جامه اچوله.بيا به د چا مجال نه وو چه هغې سره به ئې نکاح کړې وې.اوکه هغه به ښائسته وه نو دې سره به ئې پخپله نکاح کوله او ددې مال به ئې هم قبضه کړو. اوکه هغه به ښکلې نه وه او مالداره به وه نو د دې نکاح به ئې بل ځائې کښې نه کوله. هغه غريبه به هم دغه شان مړه شوه. او ده به د هغې مال قبضه کړو. ددې نه الله تعالی منع اوفرمائيله.

حضرت ابن عباس ﷺ نه دې سره دا هم مروی دی چه د جاهليت خلقو به واړه هلکان او وړې او لوئې جينکئ وارثانې نه ګنړلې .دا رسم هم قران پاك ختم کړو ،او هر يو ته ئې د هغه حصه ورکړه او وې فرمائيل چه هلکان او جينکئ اګر چه واړه وی يا لوئې وی ، هغوئ ته ضرور حصه ورکوئی.خو جينئ ته نيمه او هلك ته پوره يعنی د دوؤ جينکو برابره.او د يتيمو جينکو باره کښې د انصاف حکم دې چه کله د جمال اومال والو سره تاسو پخپله نکاح کوئی نو بيا هغه يتيمانو سره هم نکاح کوئی چه په جمال او مال کښې کمې وی.

وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا

بيا فرمائی چه يقين اوکړئی چه ستاسو د عملونو نه الله ﷻ خبر دې.نو تاسو ته پکار دی چه د خير کارونه کوئی ، حکم منئ او د نيکی بدلې حاصلې کړئی.

| | |
|---|---|
| اِمْرَاَةٌ | وَاِنِ |
| يوه ښځه | او که چرې ا |
| اوکه چرې يوه ښځه | |

[1] صحيح بخاری کتاب الشرکة باب شرکة اليتيم واهل الميراث : ۲۴۹۴، صحيح مسلم: ۳۰۱۸، عن عائشه ﷺ مطولا)-

خَافَتْ | مِنْ بَعْلِهَا | نُشُوْزًا | اَوْ اِعْرَاضًا | فَلَا جُنَاحَ

ویریدله | دخاوند خپل نه | دبدسلوکۍ دهغه نه | یا دمخ اړولو د هغه نه | نو نشته گناه

دخاوند د بدسلوکۍ یا بې پرواهۍ نه ویریدله | ..........نو په هغوی دواړو باندې هیڅ گناه نشته چه

عَلَيْهِمَآ | اَنْ يُّصْلِحَا | بَيْنَهُمَا | صُلْحًا | وَالصُّلْحُ | خَيْرٌ

په دې دواړو باندې | چې اوکړي دواړه | په خپل منځ کښې | صلح | اوصلح | بهتر ده

هغوی دواړه په خپل مینځ کښې (دحقوقو په اداکولو) کښې صلح اوکړي | اوصلح په هرکار کښې ښه ده

وَاُحْضِرَتِ | الْاَنْفُسُ الشُّحَّ | وَاِنْ تُحْسِنُوْا | وَتَتَّقُوْا | فَاِنَّ اللّٰهَ | كَانَ

اوحاضر کړې شوې دي انفسونه | حرص ته | اوکه تاسو احسان اوکړئ | او اوویریږئ | نو بیشکه الله | دې

اوزړونه په لږ څه باندې زر تنگیږي | اوکه تاسوخلقو سره ښه سلوک اوکړئ | اودالله ﷻ نه اوویریږئ نو الله پاک

بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | خَبِيْرًا ۝ | وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا | اَنْ تَعْدِلُوْا

په هغه کارونو چې کوئ ئې تاسو | خبردار | اوهرگزنه لرئ تاسوطاقت | چې عدل اوکړئ تاسو

ستاسو د کارونو نه بې خبره نهٔ دې (خبر دې نو بدله به درکړي) | او د ښځو مینځ کښې انصاف کول

بَيْنَ النِّسَآءِ | وَلَوْ حَرَصْتُمْ | فَلَا تَمِيْلُوْا | كُلَّ الْمَيْلِ

په منځ دښځو کښې | اگر چه ډیر حرص اوکړئ تاسو | نومهٔ گرځوئ مخ تاسو | په پوره مخ گرځولو سره

ستاسو دوس خبره نهٔ ده | اگر که تاسو ډیر اوغواړئ نو (دومره بس ده چې) یوې ښځې ته دومره مهٔ مائله کیږئ

فَتَذَرُوْهَا | كَالْمُعَلَّقَةِ | وَاِنْ تُصْلِحُوْا | وَتَتَّقُوْا | فَاِنَّ اللّٰهَ | كَانَ

چې پریږدئ تاسو هغه | پشان دزوړندې شوې ښځې | اوکه تاسواصلاح اوکړئ | او ویریدئ (دالله نه) | نو بیشکه الله | دې

چې بلهٔ په شان د زوړندې پریږدئ | اوکه تاسو ښه سلوک ساتئ او د الله ﷻ نه ویریږئ | نو الله ﷻ

غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا ۝ | وَاِنْ يَّتَفَرَّقَا | يُغْنِ اللّٰهُ | كُلًّا | مِّنْ سَعَتِهٖ

بښونکې | رحم کونکې | اوکه جدا شول دواړه | نو بې پروا به کړي الله | هر یو | په لوئې رحمت خپل سره

بښونکې مهربان دې | اوکه ښځه خاوند دواړه یوبل نه جدا شي | نو الله به پخپل قدرت سره هریو دبل نه بې پرواه کړي

وَكَانَ اللّٰهُ | وَاسِعًا | حَكِيْمًا ۝

اودې الله | اخاوند دفراخۍ | اوصاحب د حکمت |

او الله ﷻ دفراخۍ او دحکمت خاوند دې | ..........

**قوله تعالی: وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا**

**خاوند ته خپلو ډیرو بیبیانو کښې د انصاف تاکید** :-الله ﷻ دخاوند اوښځې حالات او د دوی احکام بیانوی. کله سړې د دې نه خفه شي اوکله ورسره مینه کوی ، اوکله ترې جدا شي. نو ړومبی حالت کښې کله چه ښځې ته د خپل خاوند د خفگان خیال وی او دده خوشحالولو دپاره خپل ټول حقوق یا خاص حق نه خپل خاوند ته معاف کړي. لکه خپل خوراك څښاك ورته پریږدی یا ورته د شپې حق معاف کړي نو دواړو دپاره جائز دی.بیا ددې رغبت ورکوی چه صلح بهتر ده.

**د یو روایت مطابق د ایت شان نزول:-** حضرت سوده بنت زمعه رضي الله عنها چې کله چه د ډیرعمر شوه نو ورته معلومه شوه چه حضرت نبی کریم ﷺ دا جدا کوی نو وې وئیل چه خه د خپل نمبر حق حضرت عائشه رضي الله عنها ته ورکوم. نو هم په دې صلح اوشوه. اوحضرت نبی کریم ﷺ دا قبول کړه.ابو داود کښې دی چه دې باندې دا آیت مبارك نازل شو. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی ښځه خاوند په کومه خبره راضی وی نو هغه جائز ده.([1])

دوی فرمائی چه د حضرت نبی کریم ﷺ د وصال په وخت کښې د حضرت نبی کریم ﷺ نهه بیبیانې وې.او په دوی کښې خضرت نبی کریم ﷺ اته نمرې تقسیم کړی وو. ([2]) بخاری اومسلم کښې دی چه حضرت سوده رضي الله عنها ورځ به هم حضرت نبی کریم ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها ته ورکوله.([3])د حضرت عروه رحمه الله قول دې چه حضرت سوده رضي الله عنها ته زیات عمر کښې دا معلومه شوه چه حضرت نبی کریم ﷺ دا پریږدی نو خیال ئې اوکړو چه د حضرت نبی کریم ﷺ حضرت صدیقه رضي الله عنها سره ډیر زیات محبت دې ،که خه خپل نمبر هغې ته ورکړم نو څه پته چه حضرت نبی کریم ﷺ په دې راضی شی اوخه د حضرت نبی کریم ﷺ بیبیانو کښې ترآخره پاتې شم. ([4])

حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوی چه حضرت نبی کریم ﷺ به خپلو بیبیانو کښې برابره درجه ساتله. عام طور حضرت نبی کریم ﷺ هره شپه خپلو بیبیانو ته راتلو خو دوی سره به نې لاس نه ملاولو، اوآخر کښې چه به دوی کومې بی بی سره شپه تیرول غوښتل نو هلته به لاړو او هلته به ئې شپه تیره کړه. بیا ئې د حضرت سوده رضي الله عنها واقعه بیان کړه چه پورته تیره شوه ،([5]) ( ابو داود).معجم ابوالعباس نه یو مرسل حدیث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ حضرت سوده رضي الله عنها ته طلاق اولیږلو اودا حضرت عائشه رضي الله عنها سره ناسته وه. هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ تشریف راوړو نو وې فرمائیل په تاسو دې د الله ﷻ قسم وی چه هغه ذات تاسو باندې خپل کلام نازل کړې دې او خپل مخلوق کښې ئې تاسو خوښ او بهتر جوړ کړئی ، تاسو ماته رجوع اوکړئی ، ځما عمر زیات شوې دې ،ماته د سړی خاص خواهش نشته ،لیکن خه دا غواړم چه خه د قیامت په ورځ ستاسو بیبیانو کښې پورته شم. حضرت نبی کریم ﷺ دا منظور کړل او رجوع نې اوکړه. بیا حضرت سوده رضي الله عنها اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! خه خپل نمبر اوشپه ستاسو محبوبې حضرت عائشه رضي الله عنها ته هبه کوم.

بخاری شریف کښې دی چه ددې آیت مبارك نه مراد دا دې چه یو بوډنی ښځه چه خپل خاوند ته گوری چه هغه دې سره محبت نه ساتی بلکه دا جدا کول غواړی او دا اووائی چه خه خپل حق پریږدم خو ما مه جدا کوه. نو دا آیت دواړو ته اجازت ورکوی.([6])هم دا صورت په هغه وخت کښې هم دی چه کله د چا دوه ښځې وی اودې سره د هغې د بدشکلئ او بوډا والی په وجه محبت نه وی او دا جدا کول ئې غواړی.اودا ښځه د څه مصلحتونو او محبت په وجه جدا کیدل نه غواړی .نو د دې حق دې چه دا خپل ټول حقوق یا بعضې حقوق معاف کړی .او خاوند دا خبره منظوره کړی اودا دې جدا نکړی.

**د عمرفاروق رضي الله عنه نه په دې مسئله کښې تپوس:-** ابن جریر کښې دی چه یو سړی حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه سوال اوکړو ( اودوی هغه د هغه د بې هوده خبرو په وجه ) خوښ نه کړل او وې فرمائیل چه دې کوږد

---

[1]) ترمذی کتاب التفسیر القرآن باب ومن سورة النساء : ۳۰۴۰)-

[2]) صحیح بخاری کتاب النکاح یآب کثرة النساء : ۵۰۶۸، صحیح مسلم: ۱۴۶۵، من طریق ابن جریج)-

[3]) صحیح بخاری کتاب النکاح باب المراة تهب یومها من زوجها : ۵۱۱۲، صحیح مسلم: ۱۴۶۳)

[4]) سنده حسن الی عروع وله شواهد وهو بها صحیح)-

[5]) ابوداود: کتاب النکاح باب فی القسم بین النساء : ۲۱۳۵، وسنده حسن)-

[6]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النساء باب ( وان امراة خافت من بعلها ) : ۴۶۰۱، صحیح مسلم: ۳۰۲۱)-

باندې اووهي: بیا هغه د یو بل ایت باره کښې سوال اوکړو نو دوی اوفرمائیل چه اوّ دا خبرې د پوښتنې کولو دی .ددې نه داسې صورت مراد دې لکه چه د یوسړی ښځه وی او هغه بوډئ شوې وی ،اود دې اولاد نه کیږی ،ده د اولاد د خاطره یو ځوانې ښځې سره نکاح اوکړه ،بیا دا دواړه په یو څیز باندې اتفاق اوکړی نو داجائز دی.(١)

**دعلي ﷺ نه په دې مسئله کښې تپوس:-** حضرت علي ﷺ نه چه کله دا سوال اوشو نو دوی اوفرمائیل چه ددې نه مراد هغه ښځه ده چه هغه د خپل خاوند په نظر کښې د بدصورتني ، بدخلقۍ ، ګندګۍ ، یا بوډوالی په وجه ښه نه وی اودهغې دا خوښه نه وی چه ددې خاوند دا پریږدی ، نو دا دې ورته خپل ټول ، نیم مهر معاف کړی .یا دې ورته خپل نمبر معاف کړی وغیره.نو داشان صلح کولې شی.(٢) د سلف امامانو نه هم دا تفسیر مروی دې.بلکه تقریبًا په دې اتفاق دې زما په خیال په دې کښې څه خلاف نشته ، والله اعلم.

**دایت په شان نزول کښې بل روایت:-** دمحمد بن مسلمه ﷺ لور د حضرت رافع بن خدیج ﷺ کور کښې وه. د بوډاتوب یا په څه بله وجه ددوی هغه خوښه نه وه تردې چه د طلاق ورکولو اراده ئې اوکړه. په دې هغې اووئیل چه تاسو ماته طلاق مه راکوئی ،ته چه څه غواړې نوهغه ماته منظور دی.نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو. (٣)

**د رافع بن حدیث واقعه په بل روایت :-** په دې دواړو آیتونو کښې دهغه ښځې ذکر دې. چه د هغې نه د هغې خاوند خفه وی. هغه ته پکار دی چه دې خپلې ښځې ته اووائی که ته طلاق غواړې نو چه تاته طلاق درکړم. اوکه غواړې نو دا خبره دې خوښه کړې چه د ده په کور کښې پاتې شی او د مال او د نمبر په تقسیم کښې دې ته په دویمه ښځه ترجیح ورکړی.نو اوس ده ته اختیار دې چه دویم شق منظور کړی نوشرعی طور خاوند دپاره جائز دی چه دې ته نمبر ورنکړی او چه کوم مهر وغیره هغه پریخودې دې هغه خپل ملکیت اوګڼړی.د حضرت رافع بن خدیج انصاری ﷺ ښځه چه بوډئ شوه نو هغه یو ځوانې ښځې سره نکاح اوکړه او بیا ئې دې سره ډیرزیات محبت اوکړو او دې ته ئې په رومبئ ښځه ترجیح ورکړه. آخر دا تنګه شوه او طلاق ئې اوغوښتلو. بیا عدت ته نزدې ئې واپس کړو.لیکن بیا هغه حال اوشو چه ځوانې ښځې سره ئې زیات محبت وو اوهغې طرفته مائل وو. هغې بیا طلاق اوغوښتلو. دوی ورته دوباره طلاق ورکړو. بیا واپس شوه او هم دا نقشه بیا وه. بیا ورته هغې قسم اوکړو چه ماته طلاق راکړه .نو دوی ورته اوفرمائیل چه دا په دریم ځل طلاق دې که ته غواړې نو څه به ئې درکړم.اوکه غواړې نو هم دا شان اوسیږه. هغې سوچ کولو نه پس جواب کښې اووئیل چه ماته هم داشان منظور ده.نوهغه هم دا شان د خپلو حقوقو نه دستبرداره شوه او هم داشان اوسیده. (٤)

**د حافظ ابن کثیر رحمه الله تبصره:-** ددې جملې چه صحیح خیره ده یو مطلب دا دې چه د خاوند خپلې ښځې ته د اختیار ورکول که ته غواړې نو دا شان اوسیږه چه ستا حقوق به د بلې ښځې سره برابر نه وی اوکه ته غواړې نو طلاق واخله دا بهتردی ددې نه چه هسې بلې ته په دې ترجیح ورکړی .لیکن ددې نه ښه مطلب دا دې چه ښځه خپل حق پریږدی اوخاوند دې ته طلاق ورنکړی او خپلو کښې یو ځائې اوسیږی.د طلاق ورکولو او اخستلو نه بهتردی.لکه چه حضرت نبی کریم ﷺ پخپله حضرت سوده رضي الله عنها

---

(١) الطبری : (١٠٦٨٤)-

(٢) الطبری : (١٠٥٨٠)-

(٣) حاکم : (٣٠٨/٢)-

(٤) حاکم : (٣٠٨/٢)-

سره کړې وو چه هغه نې خپل زوجیت کښې اوساتله او هغې خپله ورځ حضرت عائشه رضي الله عنها ته هبه کړه.د حضرت نبی کریم ﷺ په دې فعل کښې هم د خپل امت دپاره یو بهترینه نمونه ده که ستاسو ورسره موافقت نه وی نو بیا هم طلاق مه ورکوئی.د الله تعالی په نیز صلح افتراق نه بهتر ده د دې وجې دلته نې اوفرمائیل چه صلح بهتره ده.بلکه د ابن ماجه حدیث مبارك کښې دی چه الله تعالی ته په ټولو څیزونو کښې د ټولو نه ناخوښه څیز طلاق دې.([1])

قوله تعالی:: وَإِنْ تُحْسِنُوا وَتَتَّقُوا

**بیبیانو سره د احسان کولو حکم:-** بیا فرمائی چه ستاسو احسان او تقوی یعنی د ښځې نه د خفګان په صورت کښې هغې ته معافی کول ، او د ناخوښئ باوجود هغې ته پوره حق ورکول ، نمبر کښې ، لین دین کښې،برابر کول،دا بهترین عمل دې او دا الله تعالی ته ښه معلوم دې.او په دې باندې هغه ښه بدل ورکوی.

قوله تعالی:: وَلَنْ تَسْتَطِيعُوا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ

**په بیبیانو کښې د انصاف کولو حکم:-** بیا ارشاد دې اګر چه تاسو غواړئی چه تاسو خپلو ډیرو بیبیانو کښې عدل او انصاف اوکړئی نو دا تاسونشئ کولی.ځکه که تاسو نمبر مقررکړئی خو بیاهم شهوت او جماع وغیره کښې برابري څنګه کولی شئ ؟ ابن ملیکه فرمائی چه دا آیت مبارك د حضرت عائشه رضي الله عنها باره کښې نازل شوې دې.حضرت نبی کریم ﷺ هغې سره ډیرزیات محبت کولو. په دې وجه یو حدیث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ به صحیح طور د ښځو مینځ کښې مساوات کولو. خو بیا به نې هم د الله تعالی نه دعا کوله چه یاالله دا هغه تقسیم دې چه ځما په وس کښې وو،اوس چه کوم څیز زما د وس نه بهر دې یعنی د زړه مینه نوما په هغه مه ملامته کوه. ([2])( ابوداود). ددې اسناد صحیح دی.لیکن امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه دا بل سند سره مرسلاً مروی دې اوزیات صحیح دې.

قوله تعالی:: فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ

یو طرف ته میلان مه کوئ:- بیا فرمائی چه بالکل یو طرفته مه کیږه چه بله زړونده پریږدئ او هغه نه خاوند والا پاتې شی اونه بې خاونده. که تاسو د دوی نه مخ اړوئی خودا ستاسو بی بی ده. نه خو دې ته طلاق ورکوئ چه دا بل چا سره نکاح اوکړی اونه د دې حقونه پوره ادا کوئی چه کوم د ښځې او خاوند ترمینځه وی.چه د چا دوه ښځې وی بیا هغه بالکل یو طرفته وی نو د قیامت په ورځ الله تعالی ته پیش کیږی .نو دده نیم بدن به شل وی ( احمد وغیره). ([3])امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث مبارك مرفوع طریقې سره سوا د همام د حدیث مبارك نه نشی پیژندې.

قوله تعالی:: وَإِنْ تُصْلِحُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَحِيمًا

**دخپل پوره کوشش باوجود بعضې تقصیر حکم:** بیا فرمائی که تاسو دخپلو کارونو اصلاح کونی او څومره چه ستاسوپه اختیار کښې وی دښځو مینځ کښې عدل اوانصاف او برابری کوئی،او هره حال کښې دالله ﷻ نه ویریږئی،نو که تاسو په څه وخت کښې یو طرفته مائل شئ،نو هغه به الله ﷻ معاف کړی.

قوله تعالی:: وَإِنْ يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِنْ سَعَتِهِ

بیا دریم حالت بیانوی که د جوړ هیڅ صورت نه وی. نو دواړه دې جدا شی ، نو الله ﷻ به هر یو د بل بې نیازه کړی.هغې ته به ددې نه ښه خاوند او ده ته به هغې نه ښه ښځه الله تعالی ورکړی. دالله ﷻ

---

[1]) ابوداود کتاب الطلاق باب فی کراهیة الطلاق : ۲۱۷۸ وسنده ابن ماجة: ۲۰۱۸)-

[2]) ابوداود کتاب النکاح باب فی القسم بین النسا : ۲۱۳٤، وسنده صحیح ترمذی : ۱۱٤۰، نسائی : ۳۳۹۵ ابن ماجة ۱۹۷۱)-

[3]) احمد : ۲٤۷/۲، ابوداود کتاب النکاح باب القسم بین الناس : ۲۱۳۳ ترمذی : ۱۱٤۱ ابن ماجة: ۱۹۶۹)-

فضل ډير وسيع دی او هغه ذات ډير لوئي احسان والا دی او دی سره سره هغه حکيم ذات دی ، ټول کارونه ، ټول تقديرونه ، اوپوره شريعت د حکمت نه سراسر ډک دی.

| |
|---|
| وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ |
| اوخاص الله لره دی \| هغه څه \| چې په آسمانونو کښې دی |
| \| ..............او هرڅه چې په آسمانونو کښې دی |
| وَمَا فِي الْاَرْضِ ط وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ |
| اوهغه \| چې په زمکه کښې دی \| اوبه تحقيق سره \| هدايت کړې وو مونږ \| هغه کسانو ته \| چې ورکړې شوې وو کتاب |
| اوکه په زمکه کښې دی \| ټول دالله ﷻ دی \| اوستاسونه وړاندې چې چاته کتاب ورکړې شوې وو |
| مِنْ قَبْلِكُمْ وَاِيَّاكُمْ اَنِ اتَّقُوا اللّٰهَ ط وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ |
| مخکښې ستاسونه \| او خاص تاسوته هم \| ددې خبرې چې \| او ويريږئ دالله نه \| اوکه چرې تاسو انکار کوئ \| بيشکه |
| مونږ هغوئ ته هم وتيلی وو \| اوتاسو ته هم وايو چې دالله ﷻ نه ويره کوئ \| ........اوکه نه منئ (نوهغه منئ) |
| لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ط وَكَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا |
| الله دپاره دی \| هغه څه \| چې په آسمانونو کښې دی \| او هغه \| چې په زمکه کښې دی \| اودې الله \| بې پروا |
| هرڅه چې په آسمانونو کښې دی اوکه په زمکه کښې دی ټول دالله ﷻ دی \| اوالله ﷻ بې پرواه دې |
| حَمِيْدًا ۝ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ط وَكَفٰى بِاللّٰهِ |
| ستايلې شوې \| اوالله لره دی \| هغه چې په آسمانونو کښې \| اوهغه چې \| په زمکه کښې دی \| اوکافی دې الله |
| هرتعريف نې شوې دی \| اودآسمانونو او زمکې هرڅه دالله ﷻ دی \| او الله د کارسازئ دپاره کافی دی |
| وَكِيْلًا ۝ اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَاْتِ بِاٰخَرِيْنَ ط |
| کارساز \| که اوغواړی هغه \| نو لرې به کړی تاسو \| ائي خلقو \| اورابه ولی \| نور خلق |
| ............که الله ﷻ اوغواړی نو ائي خلقو تاسوبه فنا کړی \| او (ستاسو په ځائې) نورخلق به راولی |
| وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ۝ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا |
| او دې الله \| په دې کار باندې \| پوره قدرت لرونکې \| هغه څوک چې وی \| چې غواړی \| ثواب ددنيا |
| اوالله ﷻ په هرڅه قدرت لری \| ............څوک چې (په خپل عمل سره) صرف ددنيا بدله غواړی |
| فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ط وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ۝ |
| نو دې دالله سره \| ثواب د دنيا \| اودآخرت \| اودې الله \| اوريدونکې \| ليدونکې |
| نو الله ﷻ سره ددنيا بدله هم شته او دآخرت هم \| او الله ﷻ اوريدونکې دې اوهرڅه وينی |

قوله تعالىٰ: وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ط

**د الله ﷻ قدرت کامله** :- الله ﷻ خبر ورکوی چه د زمکې او اسمان مالك صرف الله ﷻ دی.فرمائی چه کوم احکام تاسو ته درکولې شی چه دالله ﷻ نه ویریږئی او د هغه پاك ذات وحدانیت اومنئ او د هغه عبادت کوئی او دنورچا عبادت مه کوئی،هم دا احکام تاسونه مخکښې اهل کتابو ته ورکړې شوی وو.اوکه تاسو کفر کوئی (نود الله ﷻ به څه اوکړئی )هغه خو د زمکې اوآسمان تنها مالك دی.لکه حضرت موسی ؑ چه خپل قوم ته ونیلی وو که تاسو او په مخ د زمکې ټول انسانان کفر اوکړی نو بیا هم الله ﷻ بې پروه او لائق د تعریف دی.اوبل ځائې کښې فرمائی چه ﴿فَكَفَرُوا وَتَوَلَّوا وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ۚ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ﴾ یعنی هغوئ کفر اوکړو او مخ ئې واړولو ، الله ﷻ د هغوی نه بې نیازه شو ، اوالله ﷻ ډیر زیات بې نیاز او د تعریف لائق دی.د خپلوبندګانو نه غنی دی.او ټولو کارونو کښې ئې تعریف شوې دی. دآسمان او زمکې هرڅیز مالك دی.اودهرکس ټولو عملونو باندې ګواه دی.اودهرڅیز هغه په خپله عالم او شاهد دی.هغه قادر ذات دی ، که تاسو د هغه ذات نافرمانی اوکړه نو هغه به تاسو برباد کړی اونور خلق به آباد کړی.لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَاِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ۙ ثُمَّ لَا يَكُوْنُوْٓا اَمْثَالَكُمْ﴾ یعنی که تاسومخ واړولو نو الله ﷻ به تاسو بدل کړی اوستاسونه سوا به بل قوم راولی چه ستاسو پشان به نه وی. بعضې سلفو نه منقول دی چه په دې آیت مبارك غوراوکړئی او سوچ پرې اوکړئی چه ګناهګار بندګان دالله ﷻ په نیز څومره زیات ذلیل او خوار دی ؟ او په آیت مبارك کښې ئې دا هم فرمائیلی دی چه الله ﷻ باندې داکار مشکل نه دی.

**قوله تعالی:** مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۭ

بیافرمائی چه ائې هغه کسانو چه د چا پوره قصد او پوره کوشش صرف د دنیا دپاره دې ، نو هغوئ دې پوهه شی چه د دواړو جهانونو ښیګړې صرف د الله ﷻ په قبضه کښې دی.نو کله چه د ده نه دواړه طلب کړئ نو هغه به تاسو ته دواړه درکوی ، او هغه به تاسو بې پرواه کړی او آسوده به مو کړی.

**د مومنانو دعا:**- اوبل ځائې ارشاد دې چه بعضې هغه خلق دی چه وائی ائې الله ﷻ امونږ ته دنیا راکړه ، دهغوئ هیڅ حصه نشته دې په آخرت کښې.اوداسې هم شته چه دعا کوی نو وائی چه ائې الله ﷻ ! مونږ ته دنیا کښې نیکی راکړې او آخرت کښې هم نیکی راکړې او د جهنم د اور نه مو اوساتې.دا ده چه دوی ته به د دوی د عملونو پوره پوره حصه ورکولې شی.اوبل ځائې کښې ارشاد دې چه کوم کس د آخرت د پټی اراده ساتی،مونږ به د هغه پټی کښې زیاتې کوو.اویو آیت مبارك کښې دی چه ﴿مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَاۗءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ ۚ يَصْلٰىهَا مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا﴾ یعنی چه کوم سړې د دنیا طلب کوی نومونږ چه چاته څه ورکوو نو هغه په دنیا کښې ورکوو.

**د ابن جریر په نیز د ایت مطلب:**- امام ابن جریر رحمه الله ددې آیت دا معنی بیان کړې ده چه کومو منافقانو به ددنیا تلاش کښې ایمان قبول کړې وو،نو هغوئ ته دنیاورکړې شوه یعنی مسلمانیدو سره هغوئ ته غنیمت ملاؤ شو.لیکن آخرت کښې د هغوی دپاره الله ﷻ چه کوم اور تیار کړې دې هغه به دوی ته هغه ځائې کښې ملاویږی.یعنی د جهنم اور اود هغه ځائې سخت عذاب.

نودامام صاحب رحمه الله په نیز مذکوره آیت د آیت ﴿مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا﴾ پشان دی.هیڅ شك نشته دې چه ددې آیت معنی خو په ظاهره هم دا ده.لیکن رومبې آیت مبارك هم دې معنی کښې اخستل غور طلب امردې.ځکه چه ددې آیت مبارك الفاظ خو صفا وائی چه د دنیا او آخرت نیکی ورکول دالله ﷻ لاس کښې دی نوهر سړی ته پکار دی چه هغه خپل تلاش په یو څیز نه خرچ کوی بلکه د دواړوڅیزونو د حاصلولو کوشش دې کوی چه څوك تاسو ته دنیا درکوی نو هغه د آخرت مالك هم دې.دا به ډیره ناراستی وی چه تاسو خپلې سترګې بندې کړئی او ډیرو ورکونکو نه لږ اوغواړئی.نه بلکه تاسو د دنیا او آخرت لوئې لوئې کارونو او بهترین کارونو حاصلولو دپاره کوشش کوئی.خپل نصب العین مو

صرف دنيا جوړه كړې ده.اوچت همت سره او ډير كوشش سره او دنظر په وسعت سره دا ښه ژوند تيرولو كوشش كوه.

يادساتئ چه د دواړو جهانونو مالك صرف الله ﷻ دې.هرنفع او نقصان صرف د هغه په لاس كښې دې .هيڅوك هغه لوئې ذات سره د شراكت كولو دپاره نشته ذې .او د هغه ذات كارونو كښې مداخلت كولو والا هيڅوك نشته دې.سعادت او شقاوت هم د هغه د ذات تقسيم دې.د خزانو كنجيانې هم هغه لوئې ذات خپل لاس كښې اخستې دى .هغه هر يو مستحق ګنړئ او چه د څه هغه مستحق دې ، هغه ته رسى.تاسو لږغوراوكړئ چه تاسو ته چه د آوريدو قوت دركړې دې دهغه دآوريدوقوت به څومره زيات وى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَآيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | كُوْنُوْا | قَوّٰمِيْنَ | بِالْقِسْطِ | |
| اې هغه كسانو | چې ايمان موراوړې دې | شئ | تل محكم ودريدونكي | په انصاف سره | |
| اې دايمان خاوندانو په انصاف باندې قائم دائم ولاړ اوسيږئ | | | | | |
| شُهَدَآءَ | لِلّٰهِ | وَلَوْ عَلٰٓى | اَنْفُسِكُمْ | اَوِ الْوَالِدَيْنِ | وَالْاَقْرَبِيْنَ |
| ګواهي كونكې | خاص الله لره | اګر كه وي | خلاف دنفسونو ستاسو | ياد مور او پلار | او د خپلوانو |
| اود الله ﷻ دپاره ګواهئ وركوئ اګر كه(داګواهي) دخپلوخانونو، دمور پلار يا خپلوانو خلاف وى | | | | | |
| اِنْ يَّكُنْ | غَنِيًّا | اَوْ فَقِيْرًا | فَاللّٰهُ اَوْلٰى | بِهِمَا | فَلَا تَتَّبِعُوا |
| كه وي | مالدار | يا غريب | نو الله تعالى زيات خير خواه دې | د دې دواړو | پس مۀ ځئ تاسو |
| كه هغه مالداروى اوكه غريب | هرحال كښې الله تعالى تاسو نه زيات د هغوى خيرخواه دې نو د خپل نفس په | | | | |
| الْهَوٰٓى | اَنْ تَعْدِلُوْا | وَاِنْ | تَلْوٗٓا | اَوْ تُعْرِضُوْا | |
| په خواهشاتو پسې | چې بې انصافي اوكړئ | اوكه | تاسو واړوئ ژبې خپلې | يامخ واړوئ دربنتياونه | |
| تابعدارې كښې تاسو د انصاف نه منع نۀ شئ | چې عدل پريږدئ | اوكه تاسوژبې واړوئ | ياد ګواهئ نه ډډه اوكړئ | | |
| فَاِنَّ | اللّٰهَ | كَانَ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | خَبِيْرًا ﴿١٣٥﴾ |
| نو بيشكه چې | الله | دې | په هغه كارونو | چې كوئ ئې تاسو | خبردار |
| نوالله ﷻ ستاسود كارونونه ښۀ خبردې | ........................ | | | | |

**قوله تعالى:: يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ**

**الله ﷻ ايماندارو ته حكم وركوى چه عدل او رينښتونى ګواهى پټول جائز نه دى اګر چه د چا خلاف وى** ؛ انصاف باندې مضبوطيا سره اوسئ.ددې نه يو انچ هم اخو ديخوا نشئ ، هسې نه چه د چا د ويرې په وجه يادچا دلالچ په وجه يا د چا د خوشامدئى په وجه يا چا په د رحم په وجه يا د چا د سفارش په وجه انصاف پريږدئى.ټول يو خانې شئ او عدل جارى اوساتئ.يو بل سره دى معامله كښې مدد اوكړئى ، اودالله ﷻ مخلوق كښې عدالت قائم كړئ. دالله ﷻ دپاره ګواه جوړ شى.لكه څنګه چه بل ځائې كښې دى چه ﴿ وَاَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ﴾ يعنى ګواهئ دالله ﷻ د رضا دپاره وركړئى چه هغه بالكل صفا او رينښتونې وى.بدلون په كښې مه راولئ.اومه دا پټوئى.صفا صفا رينښتونې ګواهئ وركوئى.اګر چه هغه پخپله ستاسو خلاف وى. تاسو د حق ګواهئ نه مخ مه اړوئى.او يقين اوساتئى چه الله ﷻ د خپل اطاعت

کونکو او د غلامانو د خلاصی صورتونه راوباسی.څه په دې موقوف نه ده چه تاسو ددې نه د دروغو گواهی: په ذریعه خلاصې حاصل کړئی.اگر چه دا رینښتونې گواهی: د مور پلار خلاف وی ، اگر چه دا رینښتونې گواهی د رشته دارو نقصان باره کښې وی.لیکن تاسو رینښتیا بالکل مه پریږدئی.گواهی صفا ورکوئی.خکه چه حق په هر چا باندې حاکم دې.د گواهی: ورکولو وخت د مالدار او غریب خیال مه ساتئ: خو په غریب باندې رحم کوئی.د هغوئ مصلحتونه الله ﷻ ته ښه معلوم دی.تاسو هر صورت کښې او هر حالت کښې رښتونې گواهی: ورکوئی.د چا بدو کښې مه راخئ هسې نه چه پخپله درنه بد اوشی.کـه تاسو چاسره دښمنی کوئی یاعصبیت کوئی اوتاسو کښې دقومیت جراثیم وی نوداسې حالت تاسوته پکار دی چې عدل او انصاف نه کار واخلئ. بلکه هر حال کښې او هر وخت کښې د انصاف لمن نیسئ:لکه بل ځائې کښې دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَىٰٓ أَلَّا تَعْدِلُوا۟ ۚ ٱعْدِلُوا۟ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾ یعنی دیو قوم دشمنی دې تاسو لره د عدل نه په خلاف کولو آماده نکړی،عدل کوئی او هم دا تقوی ته نزدې دی.

**دعبدالله بن رواحه ﷺ کردار:-** حضرت نبی کریم ﷺ حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ چه کله خیبر والوته د هغوئ دپټواو باغونو اندازې لگولو دپاره اولیږلو نو هغوئ دوی ته رشوت ورکولو چه تاسو مقدار کم اوښائې.نوحضرت عبدالله بن رواحه ﷺ ورته فرمائی چه واورئی!د الله ﷺ نبی ماته د ټول مخلوق نه زیات عزیز دې او تاسو ماته د سپو او خنزیرانو نه کم یئ:نوددې باوجود چې زما د حضرت نبی کریم ﷺ سره محبت دې.او تاسوسره مې دشمنی ده داناممکن ده چه څه عدل پریږدم او انصاف نه لرې شم.ددې آوریدو سره هغه دهغه خلقواووئیل چه هم دې سره خو زمکه اوآسمان قائم دی.دا پوره حدیث به د سورة مانده تفسیر کښې انشاء الله راشی.

**قوله تعالی::** وَإِن تَلْوُۥٓا۟ أَوْ تُعْرِضُوا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا۝

بیا فرمائی که تاسو شهادت کښې تحریف اوکړو ، غلطی مو اوکړه ، دواقعې خلاف مو کار اوکړو .ډیر په کمزوری آواز مو پیچیده الفاظ اوئیل ،واقعات مو کم یا زیات کړل ، یا مو څه پټ کړل یا مو څه زیات بیان کړل،نویاد ساتئ: الله ﷻ غوندې خبر لرونکی مخکښې دا چال نشی چلیدې ، ددې بدله به هلته مومئ ، او ددې سزا به هلته ملاویږی.د حضرت نبی کریم ﷺ ارشاد دې چه بهترین گواه هغه دې چه د تپوس کولو نه مخکښې رینښتونې گواهی ورکړ ی.[1]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ | ءَامِنُوا۟ | بِٱللَّهِ | وَرَسُولِهِۦ | وَٱلْكِتَٰبِ ٱلَّذِى | نَزَّلَ |
| انې هغه کسانو چې ایمان موراوړې دې | ایمان راوړئ | په الله | اودهغه په رسول | اوپه کتاب هغه باندې | اچې نازل کړې دې الله |

انې د ایمان خاوندانو په الله ﷻ (په رښتیا او په اخلاص سره ) ایمان راوړئ | اودهغه په رسول هم او په هغه کتاب چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلَىٰ رَسُولِهِۦ | وَٱلْكِتَٰبِ ٱلَّذِىٓ | أَنزَلَ | مِن قَبْلُ |
| په رسول خپل باندې | او په هغه کتاب باندې | چې په یوخل نازل کړې دې الله | مخکښې |

پخپل رسول نې نازل کړې دې | اوپه هغه کتاب چې ددې نه وړاندې نازل شوې دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَن | يَكْفُرْ | بِٱللَّهِ | وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ | وَكُتُبِهِۦ |
| او هغه څوك | چې انکار نې اوکړو | دالله نه | اودفرښتو دهغه نه | او دکتابونو دهغه نه |

اوچا چې دالله ﷻ (دوحدانیت ) نه ..........اودالله ﷻ د فرښتو نه ........... او دکتابونونه

[1]) صحیح مسلم کتاب اقضیة باب بیان خیر الشهود : ۱۷۱۹.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَرُسُلِهٖ | وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ | فَقَدْ | ضَلَّ | ضَلٰلًا | بَعِيْدًا۝ |
| اودرسولانو دهغه نه | اودورځ داخرت نه | نو په تحقیق سره | ګمراهه شو | په ګمراهۍ | لرې سره |

اود الله ﷻ د پیغمبرانو نه او دآخرت نه انکار اوکړوا نوهغه په ګمراهۍ کښې ډیرلرې لاړدې

**قوله تعالى:: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْ نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ**

**مسلمان چې ایماندار دې هغه ته دایمان راوړلو مطلب:-** ایمان والوته حکم کیږی چه ایمان کښې پوره پوره داخل شئ: ټول احکام ، ټول شریعت لره دایمان جزئیات اومنئ: دا خیال دې ستاسونه وی چه خه تحصیل حاصل دې نه. بلکه تکمیل کامل دې چه ایمان مو راوړې دې نو اوس په دې قائم اوسئ: که الله تعالى منئ نو څنګه چه هغه تاسوته وائی نوهغه شان ئې اومنئ: هم دا مطلب دې دهر مسلمان ددې دعا چه مونږ ته د صراط مستقيم هدايت اوکړه. یعنی مونږ په هدایت لره ثابت قدم او مدام اوساته په دې کښې مونږ مضبوط کړه او مونږ ته په کښې زیاتوالې راکړه. داشان دلته هم مومنانو ته په خپل ذات اقدس اوپه رسول الله ﷺ باندې دایمان راوړلو وائی.او آیت مبارک کښې ایماندارو ته خطاب دې او فرمائی چه دالله تعالى نه ویریږئی او په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړئی.

**دنزل او انزل مصداق:-** د رومبی کتاب نه مراد قران پاک دې.او ددې نه مخکښې کتاب نه مراد ټول نبیانو باندې چه کوم کتابونه نازل شوی دی .هغه دی.د قران دپاره لفظ ﴿ نزل ﴾ استعمال شوې دې.او د نورو کتابونودپاره ﴿ انزل ﴾څکه چه قران پاک په مزه مزه وخت په وخت لږ لږ نازل شو او باقی پوره یو ځل باندې نازل شوی دی.

وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا بَعِيْدًا۝

بیافرمائی چه کوم سړې په الله تعالى باندې د هغه په فرښتوباندې، دهغه په کتابونو باندې ، دهغه په رسولانوباندې، په آخرت باندې کفر اوکړی هغه هدایت نه لرې شو.او ډیرلرې پریوتلو. په ګمراهۍ کښې د یو نه بل طرفته لاړو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | ثُمَّ | كَفَرُوْا | ثُمَّ اٰمَنُوْا | ثُمَّ كَفَرُوْا |
| بیشکه هغه کسان | چې ایمان ئې راوړوا | بیا ئې | کفر اوکړوا | بیائې ایمان راوړوا | بیا ئې کفر اوکړو |

بیشکه چا چې ایمان راوړو | بیامنکر شوا بیا ئې ایمان راوړوا او بیا منکر شو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ ازْدَادُوْا | كُفْرًا | لَّمْ يَكُنِ | اللّٰهُ | لِيَغْفِرَ | لَهُمْ | وَلَا | لِيَهْدِيَهُمْ |
| بیا زیات شول | په کفر کښې | نۀ دې | الله | چې اوبښی | هغوئ | اونۀ چې | اوښائ هغوئ ته |

او بیا ئې په انکار کولو کښې زیاتې اوکړوا نو الله به هغوئ هیڅ کله اونۀ بښی | اونۀ به هغوئ ته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سَبِيْلًا۝ | بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ | بِاَنَّ | لَهُمْ | عَذَابًا | اَلِيْمًا۝ | الَّذِيْنَ |
| نیغه لار | زیری ورکړه منافقانو ته | چې بیشکه دې | دهغوئ دپاره | عذاب | دردناك | هغه منافقان |

سمه لار اوښائی | دې منافقانو ته خبرورکړه چې د دوئ دپاره دردناک عذاب مقرر دې | هغه کسان

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَتَّخِذُوْنَ | الْكٰفِرِيْنَ | اَوْلِيَآءَ | مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ | اَيَبْتَغُوْنَ |
| چې نیسی | کافران | دوستان | سوا د مومنانو نه | آیا طلبوی |

چې د مسلمانانو نه سوا کافران دوستان جوړوی | آیا دوئ د کافرانو نه

عِندَهُمُ الْعِزَّةَ فَإِنَّ الْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ۝ وَقَدْ

ددې کافرانو سره | عزت | نوبیشکه | عزت | خاص الله لره دي | ټول | او په تحقیق سره

عزت غواړي | ..................خوبیشکه هرقسم عزت د الله ﷻ سره دي | او یقینا

نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ

نازل کړې دي | په تاسو باندې | په دې کتاب کښې | دا حکم | چې کله | واورئ تاسو | آیتونه د الله

الله تعالی په تاسو باندې کتاب (قرآن) کښې دا حکم نازل کړې دې اچې کله واورئ چې د الله ﷻ آیتونو

يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ

چې انکار کولې شی | د هغې نه | اوتوقې کیږی | په هغې پورې | نومهٔ کینئ تاسو | دهغوئ سره

نه انکار کولې شی |......... او وریورې توقې کولې شی | .....................نوهغوئ سره مهٔ کینئ

حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ۚ إِنَّكُمْ

تردې پورې | چې مشغول شی هغوئ | په داسې خبره کښې | چې بدله وی دهغې نه | بیشکه تاسو

ترڅوچې هغوئ په بله خبره کښې مشغول نشی | که تاسو داسې اوکړو (یعنی په قرآن پورې د توقو کولو

إِذًا مِّثْلُهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِينَ

په دغه وخت کښې | پشان دهغوئ یئ | بیشکه الله | یوځائې جمع کونکې دې | منافقانو لره

باوجود هم په هغه مجلس کښې ناست پاتې شوې) نو دهغوئ په شان به شئ | بیشکه الله ﷻ به منافقان

وَالْكَافِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ۝

او کافرانو لره | په دوزخ کښې | په جمع سره |

او کافران ټول په دوزخ کښې راجمع کړی |

قوله تعالی:: إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا

**کافرو سره موالاتو کښې عزت نشته دګناه مجلس کښې کنیاستل هم ګناه ده :-** ارشاد دې چه څوك ایمان راوړی اوبیا مرتدشی ،بیا مومن شی او بیا کافر شی ، بیا په خپل کفر باندې کلك ولاړ وی او هم په دې حالت کښې مړ شی نو نه خو دده توبه قبلیږی او نه دده د بښنې څه امکان شته.او نه دده خلاصې شته او نه به دې کامیاب شی او نه به الله ﷻ دې اوبښی او نه به دې نیغې لارې ته راولی.علی ﷺ چه به ددې آیت مبارك تلاوت اوکړو.نو فرمائیل به ئې چه مرتدته دې درې خل اووئیلې شی چه توبه اوباسه

قوله تعالی:: الَّذِينَ يَتَّخِذُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ۚ

بیا فرمائی چه دا د منافقانو حال دې چه ددوی په زړونو باندې مهر لګولې شی، بیا دوی مومنان پریږدی او کافرو سره دوستانه کوی.یو طرفته په ظاهره مومنانوسره ملاؤ وی او بل طرفته کافرو سره کینی او مومنانو پورې خنداګانې کوی.او وائی چه مونږ هغوئ ( مسلمانانو) نه بې قوف جوړ کړی دی، اصل کښې مونږ تاسو سره یو.نوالله ﷻ د دوی اصلی مقصد دوی ته پیش کوی او د دوی ناکامی بیان فرمائی چه تاسو غواړئی چه دوی سره ستاسو عزت وی،دوی تاسوته دهوکه درکوی ، اوتاسو غلطی کښې اخته ئې.واورئی د عزتونو مالك صرف الله ﷻ دې ، هغه وحده لاشریك دې ، هغه ذات چه چاته

غواړي نو عزت ورکوي.او يو آيت مبارك کښې دي چه ﴿مَن كَانَ يُرِيدُ الْعِزَّةَ﴾ او فرمائي چه ﴿فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ﴾ يعنی عزت الله ﷻ سره دې او دهغه د رسول ﷺ او دمومنانو سره ليکن دا منافقان خلق نه پوهيږي. مقصد دا دې چه حقيقي عزت غواړنې نو د الله تعالى نيکو بندګانو سره يو ځاني شي او د هغه عبادت طرفته راشي او د هغه پاك ذات نه د عزت غوښتونکي جوړ شي.دنيا او آخرت کښې به هغه تاسو ته عزتمند جوړ کړي.

مسند احمد کښې د امام احمدبن حنبل رحمه الله دا حديث په دې ځائې کښې د ياد ساتلو دې چه حضرت نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم کس د غرور او فخرپه طور خپل عزت ظاهرولو دپاره خپل نسب خپل کافر پلار نيکه سره وي او نهوپوري اورسي نو هغه به هم هغوئ سره لسم جهنمي دې.(١)

قوله تعالى: ﴿وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ﴾

**دګناه په مجلس کښې کيناستل ګناه ده:-** بيا فرمان دې چه هر کله تاسو منع کړې شوني چه په کوم مجلس کښې دالله ﷻ د آيتونونه انکار کولې شي او هغوئ پورې خنداګانې کولې شي نو په هغې کښې مه کينئ ، بيا هم كه تاسو داسې مجلسونو کښې کينئ نو ياد ساتئ چه ځما په نيز به تاسوهم د هغه سره شميرلې شئ.تاسو به هم د هغوئ په ګناهونو کښې شريك يئ.لکه يو بل حديث مبارك کښې دی چه په کوم دسترخوان شراب نوشي کيږي نو په دې يو داسې سړی ته کيناستل نه دی پکار چه هغه په الله ﷻ او په ورځ د قيامت ايمان لري.(٢) دې آيت مبارك کښې چه دکوم ممانعت ذکر دې هغه د سورة انعام مکي ، دا آيت دې چه ﴿وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي اٰيٰتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾ يعنی هرکله چه تاسو دوی اوګورئ چه ځما په آيتونو کښې غوتې لګولو دپاره کينې نو دوی نه مخ واړوه.

**د پورتنی ايت د نسخې قول:-** حضرت مقاتل بن حيان رحمه الله فرمائي چه ددې آيت حکم ﴿إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ﴾ دالله ﷻ ددې فرمان ﴿وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَلٰكِن ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ﴾ سره منسوخ شوې دې.يعنی متقيانو باندې د دوی د حساب هيڅ بوج نشته دې.ليکن نصيحت دې.څه تعجب دې چه دوی بچ شي.

قوله تعالى: ﴿إِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِينَ وَالْكٰفِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا﴾

**منافقان به کافرانو سره يوځائې په جهنم کښې وي:-** بيا دالله ﷻ فرمان دې چه الله ﷻ ټول منافقان او ټول کافران جهنم کښې داخلونکې دې يعنی څنګه چه دا منافقان د دی کافرو په کفر کښې دلته شريك دی دقيامت په ورځ به دوی جهنم کښې هميشه دپاره اودهغه ځائې سختو عذابونو کښې ورسره هم شريک وی.د هغه ځائې سزاګانو او قيدوبند کښې ،طوق اوځنځيرونو کښې ، دګرمواو ترخو اوبو څکلو کښې اودپيپ او وينو څکلو کښې به هم دوی سره شريک وی ، او د دائمی سزا اعلان به ټولو ته اورولې شي.

| | |
|---|---|
| يَتَرَبَّصُونَ | الَّذِينَ |
| چې انتظار کوی | هغه منافقان |
| دوئ ستاسوپه باره کښې (په تاسو) د(بدو) حالاتو انتظار کوی | |

(١) احمد: ١٣٤/٤ )-
(٢) ترمذی کتاب الادب باب ماجاء فی دخول الحمام : (٢٨٠١)-

بِكُمْ ج فَإِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللهِ قَالُوْٓا اَلَمْ نَكُنْ

په باره ستاسو کښې | نو که چرې وه | تاسو لره | فتح | د طرفه د الله نه | نو وایي | آیا نهٔ وو مونږ

.........که تاسو ته الله ﷻ (په دشمن) کامیابي درکړي | نو دوئ به (تاسو) ته وایې چې آیا مونږ

مَّعَكُمْ ج وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ لا قَالُوْٓا اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ

تاسو سره | او که چرې وي | کافرانو لره | څه حصه | نو وایي | آیا نهٔ وو قادر شوي مونږ

تاسو سره ملګري نه وو څه؟ | او که کافر غالب شي | نو (هغوی ته) وائي چې آیا مونږ په تاسو غالب کیدونکي نهٔ وو؟

عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ط فَاللهُ يَحْكُمُ

په تاسو | او بچ کړي مو نهٔ وئ تاسو | د مومنانو نه | نو الله | به فیصله کوي

خو سره د دې مونږ تاسو د مسلمانانو نه بچ کړئ | او الله ﷻ به د قیامت په ورځ ستاسو په مینځ کښې فیصله کوي

بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ط وَلَنْ يَّجْعَلَ اللهُ لِلْكٰفِرِيْنَ

په منځ ستاسو کښې | په ورځ د قیامت | او هرګز نهٔ ده | ګرځولي الله | دپاره د کافرانو

........ | او هیڅرې به الله ﷻ کافرانو ته د مسلمانانو په مقابله کښې ........

عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ع

په مومنانو باندې | لاره د غلبې

غلبه ورنکړي | ..........

قوله تعالی: الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ

**د منافق مونځ او د منافق مثال:-** د منافقانو باطني ذکر دې چه د مسلمانانو د بربادئ او د پستئ په تلاش کښې دی. موقع ګوري، کله چه یو جهاد کښې مسلمانان کامیاب شئ او د الله ﷻ مدد سره په دوی غالب شي نو دوی ملګرتیا کولو دپاره راشي او وائي چه مونږ هم ستاسو ملګري یو. او کله که الله ﷻ د مسلمانانو د آزمیښت دپاره دوی مغلوب کړي لکه چه په احد کښې شوي وو ، اګر چه انجام کښې حق غالب شو ، نو دوی هغوئ ورخی او وائي چه پټ په پټه خو مونږ ستاسو مرسته کوو. او هغوی (مسلمانانو) ته نقصان رسوو. دا خمونږ چالاکي ده چه ددې په وجه تاسو غالب شوئي. دا د دوی کارونه دی چه په دوؤ کشتو باندې پښې ایږدی. دوی نه د دین شو اونه د سادین. دوی خپل مکر خپل ځان دپاره د فخر باعث ګنړي. خو دا د دوی د بې ایمانئ او کم یقینئ دلیل دې. د دوی دا کچه رنګ به ترکومې پورې وي. ترکومې به تش ډهولونه غږوي ؟ د کاغذ کشتئ به ترکومې روانه وي ؟ وخت به راشي چه دوی به خپلو کړو باندې پښیمانه شي. په خپل بې وقوف توب به لاسونه مروړي. په خپلو کرتوتونو باندې به اوښکې تویوي. کله چه د الله ﷻ ریښتوني فیصله واوري نو دوی به ناامیده شي. ددې رازونه به ښکاره شي او پټ به ئې هم ښکاره شي ، چه د دوی د ننه زړه کښې څه دی هغه به بهر راوځي. ددوی د اپالیسی او حکمت عملي او مصلحت او اقتضائې موقع به زر ترزره د ویرې په صورت کښې مخکښې راشي. او دوی به د عالم الغیب په بې پناه عذابونو کښې راګیر شي. ناممکن ده چه کافرانو ته به الله ﷻ په مسلمانانو لار ورکړي.

**دعلی ﷺ په قول کښې د سبیلا مطلب:-** حضرت علی ﷺ نه یوسړی ددې د مطلب تپوس اوکړو نو دوی اولنئ جملې سره یو ځائې اولوستلو. مطلب دا وو چه د قیامت په ورځ به داسې نه وی.

**د سبیل دریم مفهوم:-** داهم مروی دی چه د سبیل نه مراد حجت دې خوددې ظاهری معنی اخستو کښې هم څه مانع نشته دې .یعنی دا ممکن نه ده چه الله ﷻ اوس دوی ته ترقیامت پورې یو داسې صورت جوړ کړی .چه کافر دومره غلبه حاصله کړی چه مسلمانان بالکل ختم شی،دا بله خبره ده چه دوی ته د دنیاپه لحاظ سره په څه وخت کښې کامیابی حاصله شی.خو انجام به دمسلمانانو بهتر وی .دنیا کښې هم او آخرت کښې هم.

**دالله مدد د مسلمانانو سره دې:-** دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ یعنی مونږ د خپلورسولانواوایماندارو مدد په دنیا کښې ضرور کوو. او ددې په معنی کښې یو لطافت داهم دې چه منافقانو ته د مسلمانانو د ذلت او ددوی د بربادنی انتظار وو،نودوی مایوسه کړې شو چه الله تعالٰی به هیڅ کله هم کافران په مسلمانانو غالب نکړی .تاسو مه خوشحالیږئ.هغوئ چه دکومې ویرې د مسلمانانو سره ملګرتیا نه کوله هغه ویره ئې هم زائله کړه. چه تاسودا اونه ګڼړئ چه ګنی مسلمانان به ختم شی.

**دایت استدلال:-** هم ددې مطلب وضاحت آیت ﴿فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾ کښې شوې دې.ددې آیت کریمه نه حضرات علماء کرامو په دې خبره استدلال کړې دې چه مسلمان غلام په کافر خرڅول جائز نه دی.ځکه چه په دې صورت کښې یو کافر ته په یو مسلمان غالب کول دی او په دې کښې د مسلمان ذلت دې.چه کومو بعضې ذی علم دا سودا جائز کړې ده. هغوئ ددې حکم کوی چې دا دې دخپل ملکیت نه آزاد کړی.

إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَهُوَ

| بیشکه منافقان | دهوکه کوی | دالله سره|حالانکه هغه

دامنافقان الله ﷻ سره دهوکه کوی | (حال دا چې په حقیقت کښې) دوئ

خَادِعُهُمْ وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَىٰ

ګتکه ورکوونکې دې هغوی ته| اوهرکله چې| اودریږی دوئ| مانځه ته |نواودریږی دوئ| سست

الله په دهوکه کښې غورزولی دی| ......... اوکله چې مونځ ته اودریږی نو سست اودریږی

يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٤٢﴾ مُّذَبْذَبِينَ

خودنه کوی دوئ|خلقو ته | اونهٔ یادوی دوئ| الله لره| مګر | لږ | حال داچې حیران پریشان دی

خلقو ته ځان ښائی| اوډیر کم خلق الله یادوی | دوی دکفر اواسلام په مینځ کښې دی

بَيْنَ ذَٰلِكَ لَا إِلَىٰ هَٰؤُلَاءِ وَلَا إِلَىٰ هَٰؤُلَاءِ ۚ وَمَن

په منځ کښې | نهٔ دی د دوی (مسلمانو) سره | اونهٔ دی د دوی (کافرانو) سره | اوهغه څوک

........ نهٔ سم یوخوا دی اونهٔ بل خوا(نهٔ مسلمانان دی اونهٔ کافران)|او چا لره چې

يُضْلِلِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا ﴿١٤٣﴾

چې بې لارې کړی هغه لره | الله | نوتهٔ هرګز نه شې موندلې| دپاره دهغه | لاره |

الله ﷻ بې لارې کړی | د هغوئ دپاره به تهٔ هیڅ کله سمه اونهٔ مومې|

**قوله تعالى: إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ**

**منافقان الله سره دهوکه نشي کولې:-** د سورة بقرة په شروع کښې هم آيت ﴿يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ﴾ په دې مضمون تير شوې دې.دلته هم دا بيان کيږي چه دا ناپوهه منافقان د خپل رب په مخکښې چالونه چلوي. چه څه ددوي په سينو کښې پټې خبرې دي او زړه کښې ئې پټ رازونه دي د هغې نه الله ﷻ ښه خبر دی .کم فهمې: کښې پراته دي چه څنګه په دنيا کښې ددوي چال چليدو او خپل ځان ئې مسلمانانو کښې ګرځولو ،نو دغه شان به الله تعالى سره هم د دوي مکرفريب چليږي.نو قران پاك کښې دي چه د قيامت په ورځ به داخلق هم الله ﷻ ته د خپل يو رنګئ قسمونه خوري لکه څنګه چه دلته خوري ، ليکن د هغه عالم الغيب په مخکښې داهرڅه نا کاره او کارآمد نه دي.الله تعالى هم دوي په دهوکه کښې ساتلې دي.هغه ذات دوي ته مهلت ورکوي ، ددوي کبر زياتوي ، دوي ښه خوشحاله دي ، او خپل ځان دپاره دابنه ګنړي.دقيامت په ورځ به د دوي هم دا حال وي چه مسلمانان به نور کښې روان وي او دوي به ورته آوازونه کوي چه صبر اوکړئ مونږ هم درسره خو. جواب کښې به ورته اوونيلې شي چه (دنيا ته واپس شئ او (هلته په دنيا کښې د ايمان) رڼا تلاش کړئ او هغه راوړئ.دوي به واپس شي او په (د مسلمانانو او منافقانو په) مينځ کښې به پرده راشي. مسلمانانو طرفته به رحمت وي او دوي طرفته به عذاب وي.حديث مبارك کښې دي چه څوك بيانوي يعنى د چا عيب بيانوي نو الله ﷻ به هم هغه ته وائي يعنى دهغه عيب به بيانوي. او چه څوك رياکاري کوي نوالله ﷻ به هم هغه ته ښائي.[1]

**دمنافقانو انجام:-** او حديث مبارك کښې دي چه په دې منافقانو کښې به هغه خلق هم وي چه په ظاهره به الله تعالى ددوي باره کښې اووائي چه دوي جنت ته داخل کړئ خو فرښتې به دوي دوزخ ته داخل کړي.الله ﷻ دې مونږ خپله پناه کښې اوساتي .

**قوله تعالى: وَإِذَا قَامُوْٓا إِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى**

**د منافقانو د مونځ کيفيت:-** بيا ددې منافقانو د بدذوقئ بيان کيږي چه د مونځ په شان بهترين عبادت کښې هم د دوي نصيب نشته دې.ځکه چه دوي کښې نيك نيتي ، حسن عمل ، حقيقي ايمان ، او رينښتوني يقين نشته.حضرت ابن عباس ﷺ ستړي شوي بدن مونځ ادا کيدو ته مکروه وئيل او هغوئ به فرمائيل چه پکار دي چه مونځ ښه په ذوق و شوق ، او رضا او خوشحالئ او پوره رغبت ،او انتهائي توجو سره مونځ ته اودريږي او دا يقين دې ساتي چه دده آواز الله ﷻ آوري.دده طلب پوره کولو ته تيار دې.داخو شو د هغه منافقانو ظاهري حالت چه ستړي او تنګ زړه سره هسې وخت تيرولو دپاره مونځ ته راځي .خو د دوي اندروني حالت دادې چه د اخلاص نه په ميلونو لرې دي.د دوي رب سره هيڅ تعلق نشته.ددې شهرت دپاره چه دوي ته خلق مونځګزار اووائي او د دوي ايمان ظاهرشي ، دوي مونځ په دې وجه کوي .دې خلقوته به څه ملاؤ شي چه ددوي په زړونوکښې د بتانو مينه ده ؟ همدا وجه ده چه په هغه مونځونوکښې چې په کومو کښې به دوئ يوبل کم ليدل دوئ به هغې کښې غير حاضر وو.لکه دسحر او ماسختن مونځ کښې .

**په منافقانو باندې ګران مونځ :-** بخاري او مسلم کښې دي چه حضرت نبى کريم ﷺ فرمائي چه ټولو نه زيات ګران مونځ په منافقانو دماسختن او سحر دې.که دا خلق ﷺ د زړه نه ددې مونځونو د فضيلت قائل وې نو ډير لرې نه به راتلل او ضرور به راتلل.خما خو اراده کيږي چه تکبير اووايم او بل څوك په خپل ځائې امامت دپاره مقرر کړم او مونځ پرې شروع کړم اوڅه خلقو نه لرګي واخلم اود هغه خلقو

[1]) صحيح بخاری کتاب الرقاق باب الرياء والسمعة : ۶۴۹۹، صحيح مسلم: ۲۹۸۷)-

کورونو ته لاړشم چه کوم خلق جمع کښې نه شامليږي او لرګی ددې خلقو د کورونو نه ګیر چاپیره واچوم او حکم اوکړم چه د دوی کورونه اوسوزوئی.(۱)

**دماشومانو په وجه د کورونو سزولو نه منع کیدل:-** یو روایت کښې دی چه په الله قسم که دوی ته ددې خبرې امید وی چې مونږ ته به ډیر هډوکي یا دوه ښکرونه ملاوشي نو دوی به په منډه راتلل.خو دوی سره دالله ﷺ د ثوابونو هیڅ قدر نشته.(۲)که ماته د ماشومانواو ښځو خیال نه وې نو ما به ددوی کورونه سوزولې وې.(۳)

**د الله تعالی اهانت کونکې مونځګذار:-** ابویعلی کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه کوم سړې د خلقو موجودګئ کښې مونځ ښه طریقې سره کوی خو کله چه څوك نه وی نو مونځ ښه طریقې سره نه کوی.دا هغه خلق دی چه دوی د خپل رب اهانت اوکړو.(۴)

وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا

**ډیرکم الله یادوی:-** بیا فرمائی چه دا خلق د الله ﷺ ذکر هم ډیر کم کوی.یعنی مونځ کښې د دوی زړه نه لږی.دوی چه څه وائی نوپه هغې نه پوهیږی.بلکه غافله زړه او بې پرواه نفس سره مونځ کوی.حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه دا دمنافقانو مونځ دې .دا دمنافقانو مونځ دې.دا دمنافقانومونځ دې چه ناست دې او نمر طرفته ګوری تردې چه کله هغه ډوبیږی نو شیطان خپل دواړه ښکرې دده ګیر چاپیره کړې .او زر زر څلور رکعته اوکړی.اوپه هغې کښې دالله ﷺ ذکر برائې نام کوی (مسلم وغیره)

قوله تعالی:: مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَٰلِكَ لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ

**دمنافقانو تذبذب:-** دامنافقان حیران او پریشان دی.د ایمان او کفر په مینځ کښې ددوی زړه مضطرب دی.نه په صفا زړه مسلمانانو سره دی او نه کافرو سره.کله ددوی په زړونوکښې د اسلام نور اوپرقیږی او کله په دوی د کفر تیرې راشي او دوی دایمان نه یو طرفته شی. نه خو د حضرت نبی کریم ﷺ صحابه کرام ﷺ طرفته دی اونه یهودیانو طرفته.حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه د منافق مثال داسې دې لکه د دوو رمو مینځ کښې د چیلئ ، کله هلته چغې وهلی بئ بئ کوی یعنی چغې وهی او دې رمې طرفته زی او کله بل طرفته..دوی لا دا فیصله نه ده کړې چه دوی سره لاړ شو اوکه هغوئ سره.(۵)یو روایت کښې دی چه ددې پشان یو حدیث د حضرت عبید بن عمیر ﷺ دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ مخکښې بیان کړو خو په هغې څه الفاظ کم زیات وو .نوحضرت عبدالله ﷺ خپل آوریدلی الفاظ دوباره اونیل چه نه داسې نه ده ،بلکه اصل حدیث داسې دې. اوپه دې حضرت عبید ﷺ خفه شو ( ممکن دی چه یوبزرګ یو شان او بل شان الفاظ آوریدلی وی ).(۶)

**دمومن ،کافراومنافق مثال:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه د مومن ،کافر او منافق مثال د هغه درې کسانو په شان دې چه یو دریاب ته لاړل .اویو خو ددې په غاړه ولاړ پاتې شو ، دویم منزل مقصودته اورسیدو ، او دریم چه کله مینځ ته اورسیدو نو یو طرفته او بل طرفته ده ته خلقو آوازونه شروع کړل چه چرته د هلاکیدو دپاره لاړې ، واپس شه ، بل طرف والو ورته آواز ورکړو چه راشه څما په شان او منزل مقصود

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الاذان باب وجوب صلاة الجماعة :٦٤٤، صحیح مسلم: ٦٥١)-
(۲) احمد: ٣٦٧/٢ )-
(۳) مسند ابی یعلی : ٥١١٧)-
(۴) صحیح مسلم کتاب المساجد باب استحباب التکبیر بالعصر : ٦٢٢)-
(۵) صحیح مسلم کتاب صفات المنافقین : ٢٧٨٤)-
(۶) احمد : ٣٢/٢،)-

ته اورسه ، نيمه لار دې وهلې ده. اوس حيران شوې کله يو طرفته ګورې او کله بل طرفته.تذبذب کښې ولاړ وی چه چرته لاړشم او چرته نه ؟ په دې کښې يو زبردسته چپه راغله او دې نې يوړو او غوټو وهلووهلو سره مړ شو. نو کوم چه درياب نه پورې وتل هغه مسلمان دې.او په غاړه ولاړ کافر دې او چپو کښې ډوبيدونکوې منافق دې.

**دمنافق بل مثال**:- اوحديث مبارك کښې دی چه دمنافق مثال دهغه چيلۍ په شان دې چه په يو غونډۍ نې چيلۍ اوليدې چه شنوشنو وخوکښې څريږی.دا ورته هم نزدې ورشی او هسې هغه وابنه بوټی کړی او واپس لاړه شی.اوبيا بلې غونډۍ ته لاړه شی.([1])

قوله تعالی:: وَمَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا

بيا فرمائی چه څوک الله ﷻ د حق لارې نه بې لارې کړی نو د هغه ولی مرشد څوك نشی کيدې ؟ هغه ذات چه څوك ګمراه کړی نوهغوئ ته به لار څوك ښائی ؟ الله ﷻ دا منافقان د دوی د بدترين عمل په وجه د سمې لارې نه بې لارې کړی دی.او اوس نه څوك دوی په سمه لار راوستې شی او نه دوی ته خلاصې ورکولې شی.دالله ﷻ دمرضئ نه خلاف څوك کولې شی.هغه په ټولو حاکم دې.په هغه د هيچا حکومت نشته دې .

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا | لَا تَتَّخِذُوا | الْكٰفِرِيْنَ | اَوْلِيَآءَ | مِنْ دُوْنِ

انې هغه کسانو چې ايمان موراوړې دې | مۀ نيسئ | کافران | دوستان | په ځائې

انې دايمان خاوندانو تاسود مسلمانانو نه سوا د کافرو سره دوستانه مۀ کوئ

الْمُؤْمِنِيْنَ | اَتُرِيْدُوْنَ | اَنْ تَجْعَلُوْا | لِلّٰهِ | عَلَيْكُمْ | سُلْطٰنًا

د مومنانو | آيا تاسو غواړئ | دا خبره چې اوګرځوئ | الله لره | په ځان خپل | حجت

بلکه صرف مسلمانان سره دوستی کوئ آيا تاسودا غواړئ چې دخپل ځان خلاف د الدله ﷻ

مُّبِيْنًا ﴿۱۴۴﴾ | اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ | فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ | مِنَ النَّارِ | وَلَنْ

ښکاره | بيشکه منافقان به وی | په درجه لاندې کښې دی | د اور | اوهرګز به او نۀ

ښکاره دليل قائم کړئ | دايقين اوساتئ چې منافقان به ددوزخ په لاندې درجه کښې پراتۀ وی

تَجِدَ | لَهُمْ | نَصِيْرًا ﴿۱۴۵﴾ | اِلَّا الَّذِيْنَ | تَابُوْا | وَاَصْلَحُوْا

مومې تۀ | دپاره دهغوئ | مددګار | مګر هغه کسان | چې توبه اوباسی | اواصلاح اوکړی دعمل خپل

اوتۀ به هيڅوک ددوئ مددګار او نۀ مومې البته څوک چې توبه اوباسی او خپله اصلاح اوکړی

وَاعْتَصَمُوْا | بِاللّٰهِ | وَاَخْلَصُوْا | دِيْنَهُمْ | لِلّٰهِ | فَاُولٰٓئِكَ

اومنګلې خښې کړی | په دين دالله | اوخالص کړی | دين خپل | الله لره | نودغه خلق

اودالله ﷻ دين مضبوطياسره اونيسی | اوخپل دين خالص دالله دپاره کړی | نودغه کسان

---

[1]) الطبری : ۱۰۷۳۷)-

| |
|---|
| مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ۝ |
| مومنانو سره دي \| او \| زر \| به \| ورکړي \| الله \| مومنانوته \| بدله \| لويه |
| به مومنانوسره ملګري وي \| اومومنانو ته به الله ﷻ ډیرلوئي اجر ورکړي ............ |
| مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ اِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ |
| څه کوي \| الله \| په عذاب ستاسو \| که شکراوباسئ تاسو \| اوايمان راوړئ \| اودي الله |
| الله ﷻ تاسونه په عذاب درکولو څه کوي اخو که تاسو شکر اوباسئ اوايمان راوړئ \| اوالله تعالیٰ |
| شَاكِرًا عَلِيْمًا ۝ |
| قدردان \| پوهه |
| ډیرقدردان او په هرڅه پوهه دي |

**کافرو سره دوستئ کول منع دي**:- الله مسلمانان ددې خبرې نه منع کوي او فرمائي ورته چه کافرو سره دوستئ مه کوئي ، هغوئ سره د زړه محبت مه ساتئي ، هر وخت هغوئ سره ناسته پاسته مه کوئي ، د مسلمانانو رازونه هغوئ ته مه ښکاره کوئي،اوهغوئ سره پټ تعلقات مه ساتئ.لکه څنګه چه بل آيت مبارك کښې دي چه ﴿لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ﴾ مومنانو ته پکار دي چه دمومنانونه سوا کافروسره دوستئ نه ساتي ، داسې کولو والا دالله ﷻ په نيز دهيڅ ښيګړې مستحق نه دې.خوکه صرف دبچ کولو په طور وي او ظاهر داري وي نو بله خبره ده.الله ﷻ تاسو د خپل ذات مبارك نه ويروي.يعنی که تاسو د هغه نافرمانئ کوئی نو تاسو ته پکار دی چه د هغه د عذاب نه ويريږئی.

**د سلطان لفظ معنی**:- ابن ابی حاتم کښې حضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه مروی دی چه حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه په قران پاك کښې چرته هم د سلطان لفظ وی نو هلته ددې نه مراد حجت دې.يعنی که تاسو مومنان پريښودل او کافرو سره مو دوستئ جوړه کړه نو ستاسو دا فعل به کافی ثابت شي او پوره دليل به وی ددې خبرې چه تاسو ته الله ﷻ سزا درکړي.ډير مفسرينو ددې آيت مبارك هم دا تفسير بيان کړې دې.

**قوله تعالى**:: اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ ۚ

**د درك لفظ معنی**:- بيا دمنافقانو د انجام ذکر کيږي چه هغوئ به ددې خپل سخت کفر په وجه د جهنم د ټولو نه لاندې طبقه کښې داخليږي .﴿ درك ﴾ مقابل دې د درجې.جنت کښې درجې دی يو نه يو اعلی.او دوزخ کښې درك دی يو نه يو لاندې.

**په جهنم کښې د منافقانو دعذاب کيفيت**.- حضرت ابوهريره ﷺ فرمائي چه دوی به د اور صندقونو کښې بندولې شي او جهنم ته به اچولې شي.او دوی به سوزلې شي.حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائي چه دا صندوق به داوسپنې وی چه اور لګيدوسره به اورشی اودا به څلورو وارو طرفونونه بالکل بند وی.او ددوی د مدد کولو دپاره به هيڅوك نه وی چه دوی جهنم نه راوباسی.يا د دوی په عذابونوکښې څه کمې اوشي.

**قوله تعالى**:: اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَاَصْلَحُوْا وَاعْتَصَمُوْا بِاللّٰهِ

خو دوی کښې چه څوك توبه اوباسی او پښيمانه شی او په رښتونی زړه سره نفاق پريږدی او د رب تعالی نه د خپلو ګناهونو معافی اوغواړی ، بيا خپلو عملونو کښې اخلاص پيدا کړی.اوصرف د الله ﷻ د رضا دپاره نيك عملونه اوکړی ، ريا کاری په اخلاص بدله کړی ، دالله ﷻ دين لره مضبوطيا سره

اونیسی ، نوبیشکه الله ﷻ ددوی توبه قبلوی.اودوی به رینبنتونو مسلمانانو کښې داخل شی.او دوی ته به اعلی اجر ورکړی.

ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه خپل دین خالص کړنی نو دې دپاره به لږ عمل هم کافی وی.[1]

قوله تعالی:: مَا يَفْعَلُ اللَّهُ بِعَذَابِكُمْ إِنْ شَكَرْتُمْ وَآمَنْتُمْ

بیا ارشاد فرمائی چه الله ﷻ غنی اوبې نیاز دې.هغه بندګانو ته سزا ورکول نه غواړی ، خو کله چه دا بندګان ګناه کوی نو دوی ته سزا ورکول ضروری دی.نو فرمائی که تاسو خپل اعمال ښه کړنی او په الله ﷻ اود هغه په رسول ﷺ باندې ایمان راوړنی نوهیڅ وجه نه ده چه الله ﷻ تاسو ته عذاب درکړی.هغه پاك ذات خو د وړو وړو نیکو هم قدردان دې.چه څوك د هغه شکرادا کوی نو هغه پاك ذات د هغه عزت افزائی کوی.هغه پاك ذات پوره او صحیح علم والا دې.هغه ذات ته معلومه ده چه د چا عمل د اخلاص او قبولیت اوقدر والا دې.هغه عظیم ذات ته معلومه ده چه په کوم زړه کښې ایمان قوی دې او کوم یو زړه ایمان نه خالی دې.چه کوم ایمان او اخلاص والا دی هغوئ ته به مکمله حصه ورکوی اوبدله به ورکوي ( الله ﷻ دې مونږ ته دایمان او اخلاص دولت رانصیب کړی او بیا ددې اجراو ثواب راکړی .......... آمین ).

( الحمد لله دپنځمې پارې پښتو ترجمه ختمه شوه .)

---

[1] حاکم : ۳۰۶/۴)-

| |
|---|
| لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ ؕ |
| نه خوښوي \| الله \| اوچت آواز \| په بده \| خبره \| مګر \| دهغه چانه \| چې ظلم پر شوې وي |
| الله ﷻ ته دا خوښه نه ده چې څوک په بده وینا آواز اوچت کړي\| خو په چا چې زياتي شوې وي |
| وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا ۝ اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ |
| او دي \| الله \| ښه اوريدونكي\| ښه پوهه په پټ او ښكاره\| كه \| تاسو ښكاره كوئ\| نيكي \| يا پټوئ هغه |
| او الله هرڅه اوري په هرڅه عالم دي \| كه تاسو په ښكاره نيكي كوئ\| او كه په پټه ئې كوئ |
| اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا ۝ |
| يا عفوه كوئ \| د بدئ نه \| نو بيشكه الله دي \|عفوه كونكي \| قدرت لرونكي\| |
| يا دخلقو بدي معاف كوئ\|نو بيشكه الله ﷻ معاف كونكي په هرڅه قادر دي\| |

لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ

**د ظالم ظلم بيانول جائز دي:-** حضرت عبدالله ابن عباس ددې آيت مبارك تفسير كښې فرمائي چه د يو مسلمان دپاره جائز نه دي چه هغه بل مسلمان دپاره بد دعا اوكړي.خو چه په چا ظلم شوې وي نو هغه كه ظالم ته خيرې كوي نو داجائز دي.او كه هغه په دې صبر اوتحمل اوكړي نو فضيلت په دې كښې دې (١)

**ظالم ته خيرې نه كول غوره دي:**ابوداوُد كښې دي چه حضرت عائشه ﷞ نه غلو څه څيز پټ كړ نو حضرت عائشه هغوي دپاره بددعا كوله نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه ولې د هغه بوج سپكوې ؟ (٢)

**ظالم ته دعا كول پكار دي:-** حضرت حسن ؓ فرمائي چه هغه دپاره بد دعا نه دي كول پكار ،بلكه دا دعا كول پكار دي چه ﴿اللهم اعني عليه واستخرج حقي منه﴾ يعني اې الله ﷻ ! په غل ما سره مدد اوكړې او د هغه نه څما حق واخلې.(٣)

**ظالم ته د هغه د ظلم نه زياته سزا نه دي وركول:**دوى نه په يو روايت كښې د اهم مروي دى اګر چه مظلوم ته ددې اجازت دې چه ظالم ته سزا وركړي خو داخيال ساتل پكاردي چه دحق نه تجاوزاونه كړي.

**بهتان لګونكي باندې بهتان نشي لګولې:-** عبدالكريم بن مالك جزري ؒ د دې آيت مبارك تفسير كښې فرمائي چه كنځلو كولو والا ته يعني بدردونيلو والا ته ته بد ونيلې شې.خو چه كوم سړې بهتان اوتړي نو په هغه پورې بهتان مه تړنې.

**دظالم نه بدله اخستل جائز دي:-** يو بل روايت كښې دي چه ﴿وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهٖ فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِّنْ سَبِيْلٍ﴾ (٤) يعني كوم مظلوم چې دخپل ظالم نه بدله اخستلو دپاره هغه سره ظلم اوكړى نو په هغه هيڅ مواخذه نشته دې.

**دجګړې ګناه په هغه چا ده چه د جګړې شروع هغه اوكړي:-** ابوداوُد كښې دى چه نبي كريم ﷺ فرمائي چه د ددوو كنځلو كونكو وبال په هغه چا دې چه كوم ابتداء كړې وي.خو كه مظلوم د حد نه تير شو نو بله خبره ده .(١)

---

(١) الطبري : ٣٤٤/٩.

(٢) ابوداود كتاب الوتر باب الدعاء: ١٤٩٧، احمد: ٤٥/٦.

(٣) الطبري : ٣٤٤/٩.

(٤) الشورى: ٤١.

**دکوربه شکایت کولو اجازت**:- حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه یو سړی بل کره میلمه شي او کوربه د میلمه حق ادا نکړي نو دا جائز دی دې خلقوته د خپل کوربه شکایت اوکړي،تر کومې چه هغه د ده حق ادا نکړي.

**دمیلمستیا حق**:- ابو داؤد او ابن ماجه وغیره کښې دی چه صحابه کرام رضی الله عنهم نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته شکایت اوکړوچه نبی کریم صلی الله علیه وسلم تاسو مونږ چرته لیږنی نوهلته داسې کیږی چه دهغه خائې خلق خمونږ میلمستیانه کوی.نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل که هغه ستاسو میلمستیا دخپل وس مطابق کوی نو خیر دې ګنی تاسودهغه نه د خپل میلمستیا حق اخلئ.([2])

**دمیلمستیا اهمیت**:- مسند احمد کښې یو حدیث مبارك کښې دی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمان دې چه کله یو مسلمان یواهل قبیله کښې میلمه شی اوټوله شپه تیره کړی اوهغه خلق دده دمیلمستیا څه حق ادا نکړی نوپه هر مسلمان ددې مسلمان نصرت کول ضروری دی دهغه سړی د مال نه د هغه د پتې په قدر دې د ده میلمستیا اوکړی.([3])د مسند یو حدیث مبارك کښې دی چه د میلمستیا شپه په هر مسلمان واجب ده. که یو مسافر تر سحره پورې محروم پاتې شی نو دا د دې کوربه په ذمه قرض دی،که ادا کوی نې او که باقی نې ساتی ([4])

**دمیلمستیا حکم**:- ددې احادیثو په وجه د امام احمد رحمه الله مذهب دې چه میلمستیا واجب ده.

### درې ورځو پورې میلمستیا واجب اوبیا صدقه ده

**مسلك حنفی**:- ملا علی قاری رحمه الله په شرح د مشکاة کښې فرمائیلی دی چه درې ورځو پورې میلمستیا کول واجب وو خو بیا د زکاة په وجوب سره منسوخ شو یا دا چې اوس هم واجب خو نه دی بلکه د واجب پشان دی او د درې ورځو نه پس صدقه ده که میلمستیا ورکوی نو وردې کړی اوکه نه ورکوی نه هم ورته اجازت دې (مرقاة المفاتیح باب الضیافة)

**دګوانډی د تکلیف نه بچ کیدو یوه طریقه**:- ابوداؤد وغیره کښې دی چه یو سړې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شو او عرض نې اوکړو چه یارسول الله صلی الله علیه وسلم ! ماته خما ګوانډی ډیر زیات تکلیف راکوی.نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته اوونیل چه خه لاړ شه او یو کار اوکړه چه خپل ټول مال اواسباب د کور نه بهر راوباسه. ده هم داسې اوکړل او ټول مال او اسباب نې د کور نه راوویستو او لار کښې کیناستو. اوس چه به څوك په لار تیریدو نو ده نه به نې تپوس کولو چه څه خبره ده ؟ نو ده به ورته ونیل چه ما ته خما ګوانډی تکلیف راکوی او ما تنګوی.نو هر سړی به هغه ته بد رد ونیل،چا به ونیل چه الله ﷻ دې هغه تباه کړی،چا به ونیل چه الله ﷻ دې ورسره پوهه شی،هرکله چه ګوانډی ته د دې رسوائی حال معلوم شو نو ده ته راغلو او ورته نې اوونیل چه خپل کو رته خه،په الله قسم خه به تر مرګه پورې تاته هیڅ تکلیف نه درکوم.([5])

قوله تعالی: إِن تُبْدُوا خَيْرًا أَوْ تُخْفُوهُ أَوْ تَعْفُوا عَن سُوءٍ

**الله ته پټ او ښکاره برابر دی**:- بیا ارشاد دې چه انې خلقو که تاسو یو نیکی په ښکاره کونی او که په پته نې کوئی، که تاسو باندې چا ظلم کړې وی او تاسو هغه ته معافی کونی نو الله ﷻ سره تاسو دپاره

---

[1]) ابوداود کتاب الادب باب المستبان : ٤٨٩٤، ترمذی : ١٩٨١، کتاب البروالصلة: باب النهی عن السباب : ٢٥٨٧.

[2]) صحیح بخاری کتاب المظالم باب قصاص المظلوم اذا وجد مال ظالمه : ١٧٢٧، ابوداود : ٣٧٥٢، ابن ماجه: ٣٦٨٧.

[3]) احمد: ١٣٧/٤، ابوداود کتاب الاطعمة باب ماجاء فی الضیافة : ٣٧٥١، وه حسن،حاکم: ١٣٢/٤.

[4]) احمد: ١٣٣/٤، ابوداود کتاب الاطعمة باب ماجاء فی الضیافة : ٣٧٥٠، وسنده صحیح،ابن ماجه: ٣٦٧٧، مشکل الآثار : ٣٩/٤.

[5]) ابوداود کتاب الادب باب فی حق الجوار : ٥١٥٣، وسنده حسن،حاکم : ١٦٠/٤، ابن حبان : ٥٢٠، الادب المفرد: ١٢٤.

ډیر لوئي اجر دي او لویه درجه ده. هغه پخپله هم معاف کولو والا دي.او د بندګانو ورته دا عادت هم خوښ دي د انتقام په اخستلو باندې د قدرت باوجود بیا دې هم معاف کول کوي.

**د قدرت باوجود الله معافي کول:-** یو روایت کښې دی چه عرش اوچتونکې فرښتې د الله تعالی تسبیح کوي.بعضې خو وائی چه ﴿سبحانك على حلمك بعد علمك﴾ ائې الله ﷻ ستا ذات پاك دې،ته د علم باوجود بردباري او چشم پوشی کوې.بعضې وائی چه ﴿سبحانك على عفوك بعد قدرتك﴾ ائې الله ﷻ ستا ذات پاك دې،ته د قدرت نه باوجود معاف کونکې یې.

**درې قیمتي خویونه:-** صحیح حدیث مبارك کښې دی ①چه صدقه او خیرات سره مال نه کمیږي، ② عفواومعافئ سره الله ﷻ عزت زیاتوی. ③او چه کوم سړې د الله ﷻ حکم سره تواضع او عاجزی اوکړي نو الله ﷻ د ده مرتبه او عزت زیاتوی .(1)

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ أَنْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللَّهِ

بیشکه هغه کسان چې کفرکوني دالله | اودرسولانو دهغه | اوغواړي | چې بیلتون اوکړي | په منځ دالله

دالله ﷻ اودهغه دپیغمبرانو نه انکارکوي| ......اوداغواړي چې دالله تعالی اوپه پیغمبرانو باندې ایمان

وَرُسُلِهِ وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ

اودرسولانودهغه کښې | اووائي | چې مونږ ایمان راوړو | په ځینو | اومنکران کیږو

راوړو کښې فرق اوکړي| اودا وائی چې په بعضو ایمان راوړو او په بعضو نهٔ راوړو

بِبَعْضٍ ۚ وَيُرِيدُونَ أَنْ يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ۝

په ځینو |اوغواړي هغوئ | چې | اونیسي | په منځ ددې کفر اواسلام کښې| یوه لار (بله)

......اودا غواړي چې دکفر اوایمان ترمینځه (بله) لار اختیار کړي

أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا ۚ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ

دا کسان چې دی |هم دوئ| کافران دی | په حقه سره | اوتیارکړې دې مونږه| دپاره دکافرانو

همدغه خلق یقیني کافران دي| اومونږد کافرانو دپاره رسوا کونکې عذاب

عَذَابًا مُهِينًا ۝ وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ

عذاب |رسواکونکې | اوهغه کسان|چې ایمان ئې راوړې دې| په الله | او په رسولانودهغه

تیار کړې دې |اوچا چې په الله اودهغه په پیغمبرانو باندې ایمان راوړو

وَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ أُولَٰئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ

اواونهٔ کړو فرق هغوئ|په منځ دیو کښې| ددوئ نه |نودغه کسان چې دی| زر به |اورکړي الله هغوئ ته

او د هغوی په مینځ کښې هیڅ فرق نه کوي|نو داسې خلقو ته به الله ﷻ دهغوئ

(1) صحیح مسلم کتاب البر باب استحباب العفو والتواضع : ۲۵۸۸، ترمذی : ۲۰۲۹، احمد: ۲/۲۳۵، ابن حبان ۳۲۴۸، ابن خزیمه: ۲۴۳۸، بیهقی: ۴/۱۷۸، السنن الکبری : ۱۸۷/۴، شعب الایمان : ۳۴۱۱، البغوی : ۱۶۳۳، دارمي: ۱۶۸۶.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أُجُورَهُمْ | وَكَانَ | اللهُ | غَفُورًا | رَّحِيمًا ﴿١٥٢﴾ | |
| اجرونه دهغوئ | اودي | الله | معاف كونكي | رحم كونكي | |
| اجرونه وركړي \| اوالله ﷻ معاف كونكي رحم كونكي دي \| | | | | | |

قوله تعالى: :إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللهِ وَرُسُلِهِ

**ديوپيغمبر نه انكار د ټولو نه انكار دي**:- دې آيت مبارك كښې بيانيږي چه څوك يو نبى هم اونه مني نو هغه كافر دي. ①يهودو به دحضرت عيسى ﷺ اوحضرت محمد نه سوا نور ټول نبيان عليهم السلام منل. ②عيسايانو د افضل الرسل، خاتم الانبياء حضرت محمد صلى الله عليه وسلم نه سوا په نورو نبيانوعليهم السلام ايمان لرلو ③سامرى د حضرت يوشع ﷺ نه پس د هيچا د نبوت قائل نه وو. حضرت يوشع ﷺ د حضرت موسى ﷺ خليفه وو ④د مجوسيانو متعلق مشهور دى چه هغوئ به خپل نبى زردشت منلو. خو هركله چه هغوئ د هغه د شريعت نه منكر شو نو الله ﷻ هغه شريعت اوچت كړو. والله اعلم.

قوله تعالى: :وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللهِ وَرُسُلِهِ

**د پيغمبرانو په مينځ كښې فرق كول**:- نو هم دا خلق دي چه دوى د الله ﷻ او د هغه رسولانو مينځ كښې تفريق كړي دي. يعني يو نبى ئې اومنلو او بل نبى ئې او نه منلو. دا څه د الله ﷻ د طرفه دليل په وجه نه وو ځكه چې دوى ته وئيلى شوى وو چه تاسو صرف په خپل نبى ايمان راوړئ، بلكه صرف د خپل نفسانى خواهشاتو په وجه وو. او د جوش او تعصب او د خپل پلار نيكه د تقليد په وجه وو. د دې نه داهم معلومه شوه چه د يو نبى نه منلو والا د الله تعالى په نيز د ټولو نبيانو نه منلو والا دي. په دې وجه چه نورنبيان كه ئې منلي نو دا نبى به ئې هم منلي. نو د دې نه معلومه شوه چه دوى كوم يو نبى مني هغه هم د څه لالچ او غرض په وجه مني. د دوى شريعت د منلو او نه منلو ترمينځه دي. دا يقيني او حتمي كافران دي. په هيڅ يو نبى هم د دوى شرعي ايمان نشته دي. بلكه تقليدي او تعصبي ايمان دي. اودا قابل قبول نه دي. نود دې كافرانو دپاره به د اهانت او رسوائي والا عذاب وي. ځكه چه په چا ئې ايمان نه راوړو او د هغوئ توهين ئې كولو د هغې بدله همدا ده چه د دوى دې هم توهين اوشي. اودوى به د دې د ذلت والا عذاب كښې واچولې شي. كه د دوى د ايمان نه راوړلو وجه د غور او فكر نه كول وى او د دې وجې دوى د نبوت تصديق نه وى كړي، اوكه د دې وجې وى چه حق ورته ښكاره شوخود دنيوى غرض په وجه ئې مخ اړولې وى او د نبوت انكارئې كړي وى ،لكه څنګه چه د يهودو عالمانو كړي وو د حضرت محمد ﷺ باره كښې چه صرف د حسد په وجه حضرت نبى كريم ﷺ د نبوت نه منكر شو. او د حضرت نبى كريم ﷺ مخالفت او عداوت ته ئې ملا اوتړله. نو دوى باندې الله ﷻ د دنيا ذلت واچولو. اود دوى دپاره د آخرت سزا هم تياره ده.

قوله تعالى: :وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللهِ وَرُسُلِهِ

**دامت محمدي تعريف**:- بيا د امت محمديه ﷺ تعريف كيږي چه په الله ﷻ دايمان راوړلو نه پس په ټولو نبيانو عليهم السلام هم ايمان لرى او هغه هم بلاتفريق. د الله ﷻ په دې آخرى كتاب باندې ايمان راوړلو نه پس د الله ﷻ نور كتابونه هم مني. لكه څنګه چه يو آيت مبارك كښې دى چه ﴿كُلٌّ آمَنَ بِاللهِ﴾، بيا دوى دپاره چه كوم اجر جميل تيار شوي دي هغه هم بيانوى چه دا به ددوى د كامل ايمان په وجه دوى ته ملاويږى. كه د دوى نه څه ګناه اوشي نو الله ﷻ به هغه معاف كړى. او په دوى به د رحمت باران اووروى.

يَسۡـَٔلُكَ أَهۡلُ ٱلۡكِتَٰبِ

اتپوس کوی ستا نه| دااهل کتاب

دااهل کتاب (نن) ستانه داغواړي

أَن تُنَزِّلَ عَلَيۡهِمۡ كِتَٰبٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِۚ فَقَدۡ سَأَلُواْ

چې ته نازل کړې | په دوی باندې| يو کتاب | د آسمان نه |نو په تحقيق سره |اتپوس کړې وو دوی

چې دوی باندې د آسمان نه يو کتاب رانازل کړه| اوحال دادې چې دوی

مُوسَىٰٓ أَكۡبَرَ مِن ذَٰلِكَ فَقَالُوٓاْ أَرِنَا ٱللَّهَ جَهۡرَةٗ

دموسی نه |ډير لوئ | ددغه تپوس نه| نو وئيلي وو دوی| چې اوښايه مونږ ته | الله | ښکاره

موسی ﷺ نه ددې نه لويه مطالبه کړې وه | ورته ئې وئيلي وو چې مونږ ته الله ﷻ څرګند اوښايه

فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلصَّٰعِقَةُ بِظُلۡمِهِمۡۚ ثُمَّ ٱتَّخَذُواْ ٱلۡعِجۡلَ مِنۢ بَعۡدِ

نواونيول دوئ لره| يوتندر دبجلئ|په سبب دظلم ددوئ |بيا اونيوو هغوئ | سخی لره | روستو

نوددې سرکشئ په وجه پرې تندر راپريوتوابيادوئ سخی معبود جوړ کړلو

مَا جَآءَتۡهُمُ ٱلۡبَيِّنَٰتُ فَعَفَوۡنَا عَنۡ ذَٰلِكَۚ وَءَاتَيۡنَا

دهغې نه | چې راغلې وې هغوئ ته |ښکاره نښې |نو معافی اوکړه مونږه | ددغې ګناه |اوورکړو مونږ

اوحال دادې چې دوئ ته ښکاره نښې راغلې وې|نومونږ ورته داګناه هم معاف کړه

مُوسَىٰ سُلۡطَٰنٗا مُّبِينٗا ١٥٣ وَرَفَعۡنَا فَوۡقَهُمُ ٱلطُّورَ بِمِيثَٰقِهِمۡ

موسی ته| فرمان | ښکاره | اوبورته کړو مونږ | دپاسه دهغوئ | طور(غر) | د لوظ اخستلو د پاره

اوموسی ﷺ ته موښکاره فرمان ورکړې وؤ| اومونږ ددوئ دپاسه کوه طور پورته کړوا چې وعده ترې واخلو

وَقُلۡنَا لَهُمُ ٱدۡخُلُواْ ٱلۡبَابَ سُجَّدٗا وَقُلۡنَا لَهُمۡ

اواوئيل مونږه | هغوئ ته | چې ننوځئ | په دروازه | سجده کونکی | اواوئيل مونږه | هغوئ ته

اوورته موحکم اوکړوا چې (دفلسطين ښار)دروازې ته سرټيټی داخل شئ | اودا حکم مو ورکړې وؤ

لَا تَعۡدُواْ فِي ٱلسَّبۡتِ وَأَخَذۡنَا مِنۡهُم مِّيثَٰقًا غَلِيظٗا ١٥٤

مه اوړئ دحدنه| په ورځ د خالی کنبې |اوراخستله مونږه| دهغوئ نه| وعده | محکمه

چې دخالی په ورځ دحدنه تجاوز مه کوئ |اودا مو ترې پخه وعده اخستې وه

قوله تعالى: يَسۡـَٔلُكَ أَهۡلُ ٱلۡكِتَٰبِ أَن تُنَزِّلَ عَلَيۡهِمۡ كِتَٰبٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِۚ

**داهل کتابو د ګستاخئ تپوسونه:-** يهوديانو دالله ﷻ رسول ﷺ ته اووئيل چه څنګه حضرت موسی ﷺ د الله ﷻ د طرفنه توراة ليکلې شوې راوړې وو،تاسو هم آسمانی کتاب ليکلې شوې راوړنی،دا هم مروی دی چه هغوئ وئيلی وو چه مونږ ته دې الله ﷻ خط راوليږی چه مونږ تا اومنو.د هغوی دا سوال هم په طور د مذاق او بدنيتئ او کفر وو. لکه څنګه چه اهل کتابو دغه شان سوال کړې وو کوم چې په سورة

سبحان کښې مذکور دي چه ترڅو پورې د عربو زمکه د دریابونو او ښه زرخیزه ،شاداب او بنګلې
نشي نو مونږ په تا ایمان نه راوړو .بیا الله ﷻ خپل رسول حبیب ﷺ ته د تسلئ په طور فرمائي چه تاسو د
دوی په بې ځایه سوالونو او سرکشئ مه خفه کیږئ ،د دوی دا بد عادت پخواراسې دې.دوی دغه شان
بې هوده سوال د حضرت موسی ﷺ نه هم کړې وو چه مونږ ته دې الله ﷻ اوښایه تکبر ،سرکشئ او
فضول سوالونو انجام دوی کتلې دې.یعنی په هغوئ د آسمان نه تندر راپریوتې وو لکه څنګه چه سورة
بقره کښې ددې تفصیل تیر شوې دې.اوګورئ آیت ﴿وَإِذْ قُلْتُمْ يَا مُوسَىٰ لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى اللَّهَ جَهْرَةً﴾ یعنی کله
چه تاسو اووئیل چه ائې موسی ! مونږ په تا هرګز ایمان نه راوړو ترڅوچې مونږ په خپلو سترګو الله ﷻ
اونه وینو.نو تاسو آسمانی تندر اونیوئ او د یوبل مخکښې تول هلاک شوئ.بیا هم مونږ ستاسو د
مرګ نه پس تاسو ژوندي کړئ چه تاسو شکراوباسئ.

**قوله تعالی:: ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ**

**دخخی عبادت کول:-** بیا فرمائي چه د ډیرو نښو کتلو نه پس دوی د خخی عبادت شروع کړې وو. مصر
کښې د خپل دښمن فرعون د حضرت موسی ﷺ مقابله کښې هلا کیدل،دده ټول درباریان مړه
کیدل،او ددوی د سمندر نه پورې وتل هم ددوی دسترګو مخکښې شوی وو،خو چه کله دوی لږ لرې
لاړل نو یو بت پرست قوم ئې اوکتل نو دوی خپل پیغمبر ته اووئیل چه زمونږ دپاره هم داسې یو معبود
جوړ کړه. د دې پوره بیان په سورة اعراف او سورة طه کښې هم شته. حضرت موسی ﷺ الله تعالی سره
مناجات کوی.ددوی د توبې قبلیدو دا صورت راوخې چه کومو خلقو د سخی عبادت نه دې کړې
هغوئ دې هغه خلق قتل کړی چه کومو د سخی عبادت کړې دې.هرکله چه قتل شروع شو نو الله ﷻ د
دوی توبه قبوله کړه او مړګان ئې دوباره ژوندی کړل.نو دلته فرمائي چه مونږ دوی ته معافی اوکړه.او
داعظیم جرم مو اوبخښلو او حضرت موسی ﷺ ته مو ظاهری حجت او غلبه ورکړه.

**قوله تعالی:: وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّورَ بِمِيثَاقِهِمْ**

**د دوی په سرونو د کوه طور پورته کول:-** اوکله چه خلقو د توراة د منلو نه انکار اوکړو،اود حضرت
موسی ﷺ د تابعدارئ نه روستو شو،نود دوی په سرونو مو طور غر رازوړند کړو،او دوی ته مو
اووئیل چه اوس اووائې تاسو احکام منئ او که دا غر دربانديې درغوزار کړم ؟ نودا ټول په سجده
پریوتل او فریاد ئې شروع کړو او د الله ﷻ د احکامو منلو پخه وعده ئې اوکړه. په زړه کښې ئې دومره
ویره وه چه په سجده کښې ئې هم د سترګو ګوټونو کښې کتل چه هسې نه غر رابانديې راپریو ځې او
ورلاندې ښخ شو،بیا غر اوچت کړې شو. د

**قوله تعالی:: وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا**

**د قول او فعل بدلول:-** بیا دوی د بلې سرکشئ بیان کیږی چه قول او فعل دواړه ئې بدل کړل،دوی ته
حکم شوې وو چه د بیت المقدس دروازې ته د سجدې حالت کښې (سرټیټې) داخل شئ او ﴿حطة﴾
وائې یعنی ائې الله ﷻ خمونږ ګناهونه معاف کړه،خکه چه مونږ جهاد پرینښودو او ستړی کیناستو او د
دې په سزا کښې څلویښت کاله په میدان تیه کښې حیران وپریشان وو،خو دوی خپل کمینه توب دلته
هم اوخودلو،او د خپلو څنګونونو په سر دروازې ته داخل شو او ﴿حنطة فی شعرة﴾ ئې وئیل یعنی دغنمو
دانه په وړی کښې ده

**قوله تعالی:: وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوا فِي السَّبْتِ**

**دخالی د ورځې بې حرمتی کول:-** بیا یو بل شرارت اوګورئ چه د خالی د ورځې د تعظیم او تکریم دوی
نه وعده اخستې شوې وه،او کلك عهد ورسره شوې وو. خو دوی د دې هم مخالفت اوکړو او نافرمانی
ئې اوکړه اود حرمت لرې کولو حیلې ئې راوویستې لکه څنګه چه سورة اعراف کښې بیان دې.اوګورئ

آيت ﴿وَاسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ﴾ الخ. يو حديث مبارك كښې دى چه يهودونه الله ﷻ خاص د خالى د ورځې د تعظيم وعده اخستې وه(١) دا پوره حديث مبارك به په سورة سبحان كښې آيت ﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ﴾ تفسير كښې انشاء الله راشي.

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

نو په سبب دماتولو دهغوئ | وعدې خپلې لره | اودكفر كولو دهغوئ | په آيتونو | دالله سره

آخر د دوى د بې لوظئ په وجه او د الله ﷻ د آيتونو نه د انكاركولو په وجه

وَقَتْلِهِمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَّقَوْلِهِمْ قُلُوْبُنَا

اودقتلولودهغوئ | پيغمبرانو لره | په ناحقه | او(په سبب) ددې ويناء دهغوئ | اچې زړونه زمونږه

او د پيغمبرانو په ناحقه د قتلولو په وجه او د دې ويناء په وجه چې زمونږ زړونه

غُلْفٌ ؕ بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ

په پردو كښې پټ دى | بلكه مهروهلې دې الله | په هغې | په سبب دكفردهغوئ | انو نۀ راوړى ايمان هغوئ

غلافونو كښې پټ دى (ځكه ايمان نه راوړو) (داسې نه ده) بلكه ددوئ دكفرپه وجه پرې الله ﷻ مهر اولګولو او

اِلَّا قَلِيْلًا ۪ وَّبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلٰى مَرْيَمَ بُهْتَانًا

مګر | لږ | اوپه سبب دكفركولودهغوئ | اودوئيلودهغوئ | په مريم باندې | د بهتان

ډيروكمو خلقو په كښې ايمان راوړو | اوبيادوئ په كفر كښې مخكښې لاړل | او په بى بى مريم ئې

عَظِيْمًا ۙ وَّقَوْلِهِمْ اِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيْحَ عِيْسَى ابْنَ

لوئې | او په سبب دوئيلو دهغوئ | چې بيشكه وژلې دې مونږه | مسيح | عيسى | خوئ

لوئې بهتان اولګولو | اوپه خپله ئې اووئيل چې مونږ عيسى ځوئ

مَرْيَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ۚ وَمَا قَتَلُوْهُ وَمَا صَلَبُوْهُ وَلٰكِنْ

دمريم | رسول د الله | حالانكه نۀ كړو | قتل هغوئ هغه لره | اونۀ ئې په دار كړو هغه لره | ليكن

دمريم قتل كړې دې | چې هغه دالله رسول دې | اوحال دادې چې نه ئې وژلې دې | اونه ئې په سولئ كړې دې بلكه

شُبِّهَ لَهُمْ ؕ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا

معامله شكمنه كړې شوه | دپاره دهغوئ | اوبيشكه هغه كسان | چې اختلاف ئې كړې دې

خبره پرې ګډه وډه شوې وه | ........................ اوكومو كسانو چې په دې باره كښې اختلاف كړې وۀ

فِيْهِ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ؕ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ

په حق دعيسى كښې | خامخا په شك كښې دى | دشان دهغه نه | نشته هغوئ لره | په دې باندې | څه علم

هغوئ ټول په شك كښې اخته دى | ......................... د دوى په اصل واقعه هيڅ علم نشته

---

(١) ترمذی كتاب الادب باب ماجاء فی قبلة اليد والرجل : ٢٧٣٣، وسنده حسن.

إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ﴿١٥٧﴾ بَلْ رَّفَعَهُ اللَّهُ

مگر| صرف پیروی ده |د گمان |اونهٔ کړو قتل هغویٔ هغه لره|په یقین سره|بلکه پورته کړو هغه لره الله

صرف په گمان پسې روان دی|او یقینی خبره دا ده چه هغوی عیسی قتل کړې نه وؤ| بلکه الله خان ته خېژولی دې

إِلَيْهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٥٨﴾ وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ

طرف خپل ته| او دې الله|الویٔ طاقت والا | حکمت والا | او نشته | داهل کتابو نه هیڅوک

او الله ﷻ په هرڅا غالب او د حکمت خاوند دې | او په اهل کتابو کښې به هیڅوک پاتې نهٔ شی

إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ

مگر | خامخا به ایمان راوړی|په هغه باندې | مخکښې| دمرگ دهغه نه| او په ورځ دقیامت

مگر دهغه دمرگ نه مخکښې به پرې ایمان راوړی | ......................او دقیامت په ورځ به پرې

يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ﴿١٥٩﴾

به وی هغه | په هغویٔ | گواه |

هغه گواهی ورکوی|

قوله تعالی:: فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَاقَهُمْ

**د یهودیانو مختلفې نافرمانۍ:-** داهل کتابود گناهونو بیان کیږی چه د هغې په وجه هغویٔ د الله ﷻ د رحمت نه لرې پریوتل، ملعون او مطرود شول① اول خو د هغویٔ وعده خلافی چه کومې وعدې هغوی الله ﷻ سره کړې وې په هغې قائم پاتې نشو② او بل دالله ﷻ د آیتونو یعنی حجت او دلیلونو او نبیانو او معجزو نه انکار او کفر③ دریم په ناحقه دالله ﷻ د نبیانو قتل کول، د الله ﷻ د نبیانو یو لوئې جماعت د دوی دلاسه قتل شوی وو.

قوله تعالی:: وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا غُلْفٌ ۚ بَلْ طَبَعَ اللَّهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ

**د یهودو په زړونو د پردو کیدل:** ④څلورم ددوی دا خیال او دا قول چه خمونږ زړونه په غلافونو یعنی پردو کښې دی، لکه څنگه چه مشرکانو وئیلی وو چه ﴿وَقَالُوا قُلُوبُنَا فِي أَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُونَا﴾ ای نبی ستا دعوت نه خمونږ زړونه په پرده کښې دی .او داهم وئیلې شوی دی چه ددوی ددې قول مطلب دادې چه خمونږ زړونه د علم لوښی دی ،هغه د علم او عرفان نه ډك دی.سورة بقره کښې ددې مثال تیر شوی دې.الله ﷻ د دې تردید کوی او فرمائی چه داسې نه ده بلکه الله ﷻ د دوی په زړونو مهر لگولې دې څکه چه دوی خپل کفر کښې پاخه شوی دی.نود رومبی تفسیر مطابق مطلب دا شو چه دوی به عذر کولو چه خمونږ زړونه غلاف کښې دی او په دې وجه د نبی خبرې نشی یادولې. دوی ته جواب ورکړې شو چه داسې نه ده بلکه ستاسود کفر په وجه ستاسو زړونه مسخ شوی دی.اودویم تفسیر په بناء خو جواب ښکاره دې.دسورة بقره تفسیر کښې د دې پوره وضاحت او تشریح تیره شوې ده. نو د نتیجې په طور نې اوفرمائیل چه ددوی زړونه د سرکشۍ او کفر په وجه ایمان نه راوړی.

قوله تعالی:: وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيمًا

**په بی بی مریم د زنا تهمت لگول:-** ⑤بیا ددوی پنځم عظیم جرم بیانیږی چه دوی په سیده مریم علیها السلام باندې د زناکارئی غوندې بدترین او شرمناك تهمت اولگولو. او دائې وئیل چه هم د دې زناکارئی نه حضرت عیسیٰ ؑ پیدا شو. بعضې د دې نه یو قدم نور هم مخکښې لاړل او وې وئیل چه

دا بدکاری دحیض په حالت کښې شوې وه. په هغوئ دې د الله ﷻ غضب وي چه هغوئ نه د الله ﷻ نیک بندګان هم بچ نشو.

قوله تعالی: ﴿وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ﴾

**دعیسی علیه السلام د قتل دعوی:-** بیا د دوی شپږمه ګناه بیانیږی چه دوی د خندا او مسخرې په طور دا هم وائی چه مونږ حضرت عیسی علیه السلام قتل کړې دې،لکه څنګه چه مشرکانو نبی کریم ﷺ ته ونیل چه انې (نبی ﷺ) په تاسو خو قران پاك نازل شوې دې،تاسو خو لیونی یې.

**دعیسی علیه السلام اسمان ته د پورته کیدو واقعه:-** پوره واقعه دا ده چه کله الله ﷻ حضرت عیسی علیه السلام ته نبوت ورکړو او وې لیږلو او دوی ته ئې لوئې لوئې معجزې ورکړې،لکه پیدائشی ړوند بینا کول،برص والا ښه کول،مړی ژوندی کول،د ښاورې مارغان باندې پوك وهل او هغه ژوندی کول وغیره،نو په دې یهودیان ډیر غصه شو او دوی مخالفت ته ملا اوتړله،او دوی ته ئې رنګ په رنګ تکلیفونه رسول شروع کړل،او د دوی ژوند ئې تنګ کړو. او په یو کلی کښې هم دوی ته خو ورځې آرام نصیب نه شو. ټول عمر ئې خپلې مور بی بی سره په ځنګلونو او بیابانو کښې تیر کړو او بیا هم دوی ته آرام رانغلو او دوی د هغه زمانې د دمشق بادشاه ته ورغلل،هغه مشرك وو او د ستورو عبادت به ئې کولو،ددې مذهب والو ته په هغه وخت کښې یونان ونیلې کیدلو.دلته چه راغلل نو دې بادشاه ته ئې ډیر زیات فریاد اوکړو او بادشاه ئې د حضرت عیسی علیه السلام خلاف اولمسولو او وې ونیل چه دا ډیر مفسد سړې دې.خلق لمسوی،او ورځ په ورځ نوې نوې فتنې ولاړوی.امن کښې خلل اچوی او خلقو ته بغاوت ښائی وغیره. بادشاه د بیت المقدس ګورنر ته اولیکل چه حضرت عیسی علیه السلام ګرفتار کړه اوهغه په سولې اوخیژوه. اود ده په سر د ازغو تاج کیږده او خلقو ته د ده نه نجات ورکړه. ده د بادشاه فرمان واورولو او څو یهودیان ئې ځان سره واخستل او دهغه مکان محاصره ئې اوکړه په کوم کښې چې حضرت روح الله علیه السلام وو.حضرت عیسی علیه السلام سره په هغه کښې دیارلس یا دولس یا زیات نه زیات اولس کسان وو. د جمعې په ورځ د مازیګر نه پس دوی محاصره اوکړه او د خالی د شپې پورې دوی د کور محاصره جاری ساتلې وه هرکله چه حضرت عیسی علیه السلام د امحسوس کړل چې اوس خو به هغوئ فوځیان دې مکان ته داخلیږی او دوی به ګرفتاروی او یا به دوی(عیسی علیه السلام) پخپله بهر ته راوځی .نوحضرت عیسی علیه السلام اوفرمائیل چه په تاسو کښې دا څوك کولې شی چه د هغه سره مشابهت زما سره اوشی یعنی د هغه صورت الله ﷻ خما په شان کړی. اوهغه دوی ګرفتار کړی او الله ﷻ ماته خلاصې راکړی نو څه د هغه د جنت ضامن یم.دې آوریدو سره یو ځوان اوونیل چه ماته منظور ده.خو حضرت عیسی علیه السلام هغه د دې قابل اونه ګنړلو او هغه په دویم ځل اوونیل خو هر ځل به همدا کس پاسیدو،نو بیا حضرت عیسی علیه السلام دا منظور کړل او څه ګوری چه د هغه شکل د حضرت عیسی علیه السلام په شان شو. بالکل دا معلومیده چه داحضرت عیسی علیه السلام دې او د چت طرفنه یو روشندان جوړ شوء او په حضرت عیسی علیه السلام باندې پرکالی راغله،اودا شان هغه آسمان ته پورته کړې شو. لکه څنګه چه قران کښې دی چه ﴿إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ﴾ یعنی څه وخت چه الله ﷻ اوفرمائیل چه انې عیسی ! څه تا لره پوره پوره اخستو والا یم الخ .کله چه حضرت عیسی علیه السلام آسمان ته پورته کړې شو نو دا خلق د کور نه بهر راووتل. د یهودو یو جماعت دا بزرګ صحابی چه د ده شکل د حضرت عیسی علیه السلام په شان وو اوونیولو او دې ئې حضرت عیسی علیه السلام اوګنړلو او د شپې شپې ئې دې په سولې اوخیژولو اودده په سر ئې د ازغو تاج کیخودو.اوس یهودو خوشحالئ کولې چه مونږ حضرت عیسی علیه السلام قتل کړو او زیاته عجیبه خبره دا ده چه دعیسایانو جماعت هم یهودو سره متفق وو.(یعنی چه دوی عیسی علیه السلام ته پهانسی ورکړې ده) خو صرف هغه خلق نه وو چه کوم حضرت عیسی علیه السلام سره په هغه مکان کښې وو،او هغوئ ته یقینی طور

معلومه وه چه حضرت عیسیٰ ﷺ اسمان ته پورته کړې شوې دې.اودا فلانې سړې دې چه د حضرت عیسیٰ ﷺ په بدله کښې شهید شوې دې،باقی عیسایانو هم یهودو سره متفق وو. بیا تر دې نې اووئیل چه دحضرت عیسیٰ ﷺ موربی بی هم د سولئ لاندې ناسته وه او ژړل ئې.او دا هم وائی چه هغې ده سره خبرې هم اوکړې،والله اعلم.

**قوله تعالی:: وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ**

**د عیسیٰ ﷺ د قتل او پهانسی کیدو تردید:-** اصل کښې دا ټولې خبرې د الله ﷻ د طرفنه په خپلو بندګانو دامتحان دپاره دی اودا د هغه پاك ذات د حکمت تقاضا ده. نو دا غلطی الله ﷻ واضح کړه او ښکاره ئې کړه او د حقیقت نه ئې خپل بندګان آګاه کړل اود خپل ټولو نه بهتر رسول ﷺ په خوله مبارکه ئې په خپل پاك او بهترین کلام کښې داحقیقت واضح کړو چه حضرت عیسیٰ ﷺ هیڅ‌ا نه دې قتل کړې او نه ئې په سولئ خیژولې دې،بلکه د کوم سړی شکل اوصورت چه د حضرت عیسیٰ ﷺ په شان کړې شوې ووهغه ئې حضرت عیسیٰ ﷺ اوګنړلو.چه کوم یهود د دوی د قتل قائل دی هغوئ ټول په ټوله په حیرت او پریشانئ کښې اخته دی دوی سره هیڅ دلیل نشته او نه دوی ته څه علم شته دی.صرف په هوائی خبرو باندې یقین کوی او دوی سره هیڅ دلیل نشته،ددې وجې نې بیا دې اوفرمائیل چه روح الله ﷺ چا نه دې قتل کړې،بلکه الله ﷻ خپل خاص بنده او خپل روح خپل خان ته پورته کړې دې،الله ﷻ غالب دې،د هغه قدرتونه د بندګانو په فهم کښې نه راځی،او د هغه د نعمتونو بیخ ته او د هغه دکارونو بیخ ته هیڅوك نشی رسیدلې.چه کوم بنده ته الله ﷻ روح ونیلی ووهغه ئې خپل ځان ته اوبللو.

**د عیسیٰ ﷺ د بعضې ملګرو کفر:-** حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ فرمائی چه کله الله ﷻ حضرت عیسیٰ ﷺ آسمان ته اوچتول اوغوښتل نو دی کورته راغلل،په هغه وخت کښې ددوی کور کښې دولس حواریان وو،ددوی دسر نه اوبه څڅیدلې،دوی اوفرمائیل چه په تاسو کښې بعضې داسې دی چه په ما ئې ایمان راوړې دې خو دولس دولس ځل به ما باندې کفر کوی.بیا حضرت عیسیٰ ﷺ اوفرمائیل چه په تاسو کښې څوك دا خوښوی چه هغه ځما په شان کړې شی او هغه ځما په ځائې قتل کړې شی او هغه جنت کښې ځما ملګرې شی.په دې روایت کښې دا هم دی چه د حضرت روح الله د پیشن ګوئی مطابق بعضو په دوی باندې دولس دولس ځل کفر کړې وو.

**دعیسایانو درې ډلې:-** بیا د عیسایانو درې فرقې شوې.① یعقوبیه ② نسطوریه ③ مسلمان.یعقوبیه وئیل چه خپله الله تعالی مونږ کښې وو او تر کومې چه ئې غوښتل نو وو او بیا چه کله ئې اوغوښتل نو آسمان ته اوختو. د نسطوریه عقیده وه چه د الله ﷻ ځوئې مونږ کښې وو او څه مودې پورې ئې مونږ کښې اوساتلو او بیا ئې خپل طرفته پورته کړو.اود مسلمانانو عقیده وه چه د الله ﷻ رسول مونږ کښې اوترکومې چه ئې غوښتل نو مونږ کښې وو اوبیا ئې آسمان طرفته پورته کړو. د دې رومبو دوؤ فرقو زور ډیر زیات شواو دا دریمه فرقه ئې په مخه راواخسته او تنګول ئې شروع کړل.تر دې چه دوی کمزوری شواوالله ﷻ پیغمبر آخر الزمان حضرت محمد ﷺ مبعوث کړو او اسلام ئې غالب کړو. ددې اسناد بالکل صحیح دی[1] او نسائی کښې هم د حضرت امیر معاویه ﷺ نه د امنقول دی.دغه شان په سلفو کښې هم د ډیرو بزرګانو هم دا قول دې.

**دوهب بن منبه رحمه الله روایت:-** وهب بن منبه رحمه الله فرمائی چه کله شاهی سپاهیانو او یهودو په حضرت عیسیٰ ﷺ حمله اوکړه او محاصره ئې اوکړه نو هغه وخت کښې دوی سره اولس حواریان وو. دې خلقو چه کله دروازې بیرته کړې او وې کتل نو ټول خلق د حضرت عیسیٰ ﷺ شکل کښې وو ،دې کتلو سره

[1]) ابن ابی حاتم : ١١١٠/٤.

دي خلقو اوونیل چه تاسو خلقو په مونږ جادو کړي دي.اوس خو یا حقیقي عیسیٰ ﷺ مونږ ته حواله کړئي یا به مونږ تاسو ټول قتل کړو. دې آوریدو سره حضرت عیسیٰ ﷺ اوفرمائیل چه څوك شته دي چه جنت کښې ځما ملګرې جوړ شي او دلته ځما په ځاني په سولې اوخیژي ؟ یو صحابی دې دپاره تیار شو او وې نیل چه اني چه حضرت عیسیٰ ﷺ خه یم.نو داسلام دښمنانو هغه ګرفتار کړو او هغه نې قتل او بیا خوشحالیدل چه مونږ حضرت عیسیٰ ﷺ قتل کړو. حالانکه داسې نه وو شوی بلکه هغوئ مغالطه کښې اوالله ﷻ خپل رسول خان ته اوبللو.

**دعیسی ﷺ د پهانسۍ بل روایت:-** تفسیر ابن جریر کښې دی چه کله الله ﷻ حضرت عیسیٰ ﷺ ته القا اوکړه چه هغه دنیا نه واپس کیدو والا دې،نو په دې باندې دوی ډیر پریشانه شو او په دوی د مرګ ویره راغله.حضرت عیسیٰ ﷺ خپل حواریانو ته دعوت ورکړو او خوراك ئې تیار او ټولو ته ئې اوونیل چه نن شپه تاسو ټول راځئ ځما تاسو سره څه ضروری کار دې .هرکله چه حواریان راغلل نو دوی په خپل لاس خوراك تیار کړو او ټول کار ئې په خپل لاس اوکړو. هرکله چه خوراك نه فارغ شو نو بخپله ئې د هغوئ لاسونه وینځل او په خپله کپړه ئې اوچ کړل. دا هغوی ته ښه اونه لګیدل او ښه ورته معلوم نشو.خو دوی اوفرمائیل چه واورئ ! نن شپه چه څه کوم که چا ددې نه څه منع کړم نو ځما به هغه سره هیڅ واسطه نه وی.نو ټول معتقدین خاموش شو او کله چه دوی د دې عزتناکو کارونو نه فارغ شو نو وې فرمائیل چه ګورئ ستاسو په نیزخه د ټولو نه زیات مرتبې والا یم،خود دې باوجود بیا هم ما ستاسو خدمت اوکړو. دا په دې وجه چه تاسو ځما په سنتو عاملان شئ.خبردار ! تاسو کښې دې هیڅوك خپل رور د ځان نه کم نه ګڼړی.بلکه هر مشر دې د کشر خدمت کوی لکه څنګه چه ما ستاسو خدمت اوکړو. او تاسو سره ځما یو خاص کار دې او د هغې دپاره تاسو ما رابللي یئ،هغه هم واورئ چه نن شپه به تاسو ټول زما دپاره خشوع او خضوع سره دعا کوئ چه الله ﷻ ځما اجل روستو کړی.نوټولو دعاګانې اوکړې خود خشوع اوخضوع وخت راتلو نه مخکښې مخکښې په هغوئ باندې داسې خوب راغلو چه د هغوئ د خولو نه یو لفظ هم اونه وتلو .حضرت عیسیٰ ﷺ هغوئ بیدارول او یو یو ته به ئې حرکت ورکولو ر(خوزول به ئې) او ورته به ئې وئیل چه په تاسو څه اوش ؟ چه یوه شپه هم ویخ نشئ پاتې کیدئ او زما مدد نه کئ ټولو جواب ورکړو اې پیغمبره مونږ په خپله حیران یو چه دا څه کیږی یوه شپه نه بلکه څو څو شپې مونږ د ویخ پاتې کیدو عادی یو خو الله پوهیږی چه نن څه وجه ده چې خوب راګیر کړی یو د دعا او زمونږ په مینځ کښې څه قدرتی رکاوټ پیدا شوې دې بیا حضرت عیسیٰ ﷺ اوفرمائیل بیا به ګډبه پاتې نشی او ګډې به ختمې شی غرض دا چه اشارو او کنایو کښې ئې د صورت حال اظهاراوکړو او بیا ئې اوفرمائیل چه ګورئ تاسو کښې به یو سړې د سحر د چرګ اذان کولو نه مخکښې په ما باندې درې ځل کفر کوی،او د څو درهمو په قیمت به ما خرڅ کړی او ځما قیمت به اوخوری.اوس دا خلق بهر ر اووتل او یو طرف او بل طرفته لاړل.یهودیان په دې تلاش کښې وو او هغوئ شمعون حواری اونیلو او وې ونیل چه دا هم د هغوئ ملګرې دې.خو شمعون اوونیل چه دا غلطه ده خه دهغه ملګرې نه یم،په دې باور ورکولو ئې هغه پریښودو.مخکښې چه لاړو نو دې یو بل جماعت سره یو ځاني شو او د هغوئ نه ئې هم په دې انکار ځان خلاص کړو. په دې چرګ بانګ اوونیلو او ده ډیر زیات افسوس کولو او غمګین وو. سحر یو حواری یو یهودی سره ملاویږی ورته وائی که تا ته د حضرت عیسیٰ ﷺ معلومات درکړم نو ماته به څه راکوې ؟ نو هغه ورته اوونیل چه دیرش درهمه.نو ده دیرش درهمه واخستل او د حضرت عیسیٰ ﷺ معلومات ئې ورکړل.د دې نه وړاندې هغوی په شبه کښې وو. نو هغوئ ګرفتار کړو او رسو کښې ئې بوتلو او د طعنې په طور ئې ورته ونیل چه تاخو به مړی ژوندی کول،جنات به دې تښتول،لیونی به دې ښه کول،اوس څه خبره ده چه خپل ځان هم نشې بچ

کولي ،دا رسئ هم نشي شلولي،دا به ئي ونیل او په دوی به ئي ازغی اچول،دغه شان بې درد سره ئي راښکل او چه کله ئي دی لرګی ته راوستو نو دوی ئي په سولئ خیژول نو په هغه وخت کښي الله ﷻ خپل نبی ؑ خان ته اوبللو او هغوی کښي ئي بل سړي چه د دوی مشابه وو،په سولئ اوخیژولو بیا اووه ورځي پس حضرت مریم علیها السلام او هغه ښځه چه چاته حضرت عیسیٰ ؑ د جن نه نجات ورکړي وو هغه خائي ته راغلي او فریادونه ئي کول،نو دوی ته حضرت عیسیٰ ؑ راغلو او ورته ئي اوونیل چه تاسو ولي ژاړئی ؟ ځه خو الله ﷻ خپل خان ته بللي یم،ماته د دوی تکلیفونه نه رارسي .نو په دي هغوئی په شبه کښي شو. او دا ئي ورته اوونیل چي ځما حواریانوته اووایه چه ماسره فلانی خائي کښي ملاقات اوکړي.کله چه دا زیري حواریانوته ملاؤ شو نو هغوئ یولس په یولس هغه خائي ته لاړل. کوم حواری چي حضرت عیسیٰ ؑ خرڅ کړي وو هغه ئي هغه خائي کښي اونه لیدو. حضرت عیسیٰ ؑ تپوس اوکړو چي هغه څه شو نو هغوی ورته خبر ورکړو چه هغه د شرم او ندامت نه خودکشي اوکړه. حضرت عیسیٰ ؑ اوفرمائیل چه که هغه توبه ویستلي وي نو الله ﷻ به دهغه توبه قبوله کړي وي،بیا ئي اوفرمائیل چه داکوم بچي تاسو سره دي د ده نوم یحیی دي.اوس دا ستاسو ملګري دي.واورئی سحر به ستاسو ژبي بدلي شي .هرسړي به د خپل خپل قوم ژبه وائي.نو هغه ته پکار دی چه خپل قوم ته لاړشي او هغوئ ته ځما دعوت اورسوی او الله ﷻ نه ئي ویروی.دا واقعه ډیره غریبه ده.

**د حواریانو نومونه**:د ابن اسحاق قول دي چه کوم بادشاه د حضرت عیسیٰ ؑ د قتل کولو دپاره فوج لیږلي وو د هغه نوم داؤد وو. حضرت عیسیٰ ؑ په هغه وخت کښي ډیر زیات پریشان وو. هیڅوك به د خپل مرګ نه داسي پریشانه او فکرمند نه وو چه څومره حضرت عیسیٰ ؑ په هغه وخت کښي وو. تردي چه وي فرمائیل چه ائي الله ﷻ ! که ته د چا نه هم د مرګ پیاله لري کولو والا یي نو ځما نه ئي لري کړه. او تردي چه د ویري په وجه د هغوئ د بدن نه وینه روانه شوه. په هغه وخت کښي دوی سره په هغه کور کښي دولس حواریان وو. دهغوئ نومونه دا دی ① فرطوس ② یعقوبس ③ ربدانجس (داد یعقوب رور وو) ④ اندار ابلیس ⑤ فیلبس ابن یلما ⑥ منتا ⑦ یعقوب بن خلقا یا ⑧ نداوسیس ⑨ قتابیا ⑩ لیودس ⑪ طوماس ⑫ وکریایوطا .⑬ بعضي وائی چه دا دیارلس کسان وو. اود هغه دیارلسم نوم سرجس وو اوهغه دعیسیٰ ؑ په بشارت باندي خپل خان په سولئ خیژول منظور کړی وو

**دعیسیٰ ؑ د ګرفتارئ دپاره چاپې وهل**:- هرکله چه حضرت عیسیٰ ؑ آسمان ته پورته کړي شو او باقي خلق دیهودودلاسه قیدیان شو نو کله چه دوی شمیر کولو یو په کښي کم وو .د یو کس دکمي په وجه په دوی کښي اختلاف پیدا شو. اوس چه به دي خلقوپه کوم جماعت چاپه وهله او هغه به ئي ګرفتارولو نو حضرت عیسیٰ ؑ به ئي نه پیژندو. نو لیودس وکریایوطا دیرش درهمه واخستل او دوی ته ئي اوونیل چه څه ځم او چه د تولو نه مخکښي د چا نه بوسه واخلم نوتاسو پوهه شئ چه هغه حضرت عیسیٰ ؑ دي.هرکله چه دوی دننه لاړل نو په هغه وخت کښي حضرت عیسیٰ ؑ پورته کړي شوي وو. او حضرت سرجس د حضرت عیسیٰ ؑ صورت کښي موجود وو. هغه لاړو او وعدي مطابق ئي د حضرت سرجس نه بوسه واخسته او هغه ئي ګرفتارکړو. د دي ارتکاب نه پس دا حواری ډیر زیات نادم شواو دي نه پس ئي خان پهانسی کړو. اودي نصرانیانوکښي ملعون شو.

**پهانسی شوي څوك وو؟**:- بعضي وائی چه دده نوم لیووس وکریا یوطا وو. دي چه څنګه هم دحضرت عیسیٰ ؑ کورته د پیژندګلو د پاره داخل شونو حضرت عیسیٰ ؑ پورته کړي شو او د ده صورت د حضرت عیسیٰ ؑ په شان شوي وو او هم دي خلقو ګرفتار کړو. ده ډیري چغي اووهلي چه څه عیسی نه یم،څه ستاسو ملګري یم،ماتاسو ته دعیسیٰ ؑ معلومات درکړی وو.خودا چا آوریدل ؟ آخرهم دي ئي پهانسی کړو.اوس الله تعالی ته علم دي چه دعیسیٰ ؑ مشابهت کښي سرفروشي کولو والا مومن

صادق سرجس وو یا وکرویایوطا منافق حواری وو. د حضرت مجاهد رحمه الله قول دی چه حضرت عیسی علیه السلام مشابهت چا سره کړې شوې وو هغه په سولئ اوخیژولې شو او حضرت روح الله علیه السلام الله ﷻ ژوندې آسمان ته پورته کړو.ابن جریر رحمه الله فرمائی چه دعیسیٰ تشبیه ددوی ملګرو باندې اچولې وې وه.

**قوله تعالی: وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ**

دعیسیٰ علیه السلام د وفات نه مخکښې به ټول اهل کتاب په دوی ایمان راوړی.دې نه پس بیان کیږی چه د روح الله علیه السلام د مرګ نه مخکښې به ټول اهل کتاب په دوی ایمان راوړی او د قیامت په ورځ به ګواه وی.ابن جریر رحمه الله فرمائی چه ددې تفسیر کښې ډیر اقوال دی :

① **دعیسیٰ علیه السلام د مرګ نه مخکښې**:- اول قول دا دې چې د حضرت عیسیٰ علیه السلام د وفات نه مخکښې یعنی کله چه به حضرت عیسیٰ علیه السلام د دجال قتل کولو دپاره دوباره زمکې ته راشی.نو په هغه وخت کښې به ټول مذهبونه ختم شی او صرف ملت اسلامیه چه اصل کښې دین حنیف دې دا به پاتې شی.حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه ﴿مَوْتِهِ﴾ نه مراد د حضرت عیسیٰ علیه السلام مرګ دې (۱). ابو مالك رحمه الله فرمائی چه کله حضرت عیسیٰ علیه السلام تشریف راوړی نو په هغه وخت کښې به ټول اهل کتاب په هغوئ ایمان راوړی(۲).د حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه نه یو بل حدیث مبارك کښې دی چه خاص یهودی کښې به یو هم باقی پاتې نشی. حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه نجاشی او دده ملګری.د دوی نه مروی دی چه په الله قسم چه حضرت عیسیٰ علیه السلام اوس هم الله تعالی سره ژوندې موجود دې.هرکله چه دوی زمکې ته راکوز شی نو په هغه وخت کښې به اهل کتابو کښې یو هم باقی پاتې نه وی چه په دوی ایمان راونړی.ددوی نه رضي الله عنه چه کله ددې آیت مبارك د تفسیر باره کښې تپوس اوشو نو وې فرمائیل چه الله ﷻ حضرت عیسیٰ علیه السلام خپل خان ته بللې دې.اود قیامت نه مخکښې به حضرت عیسیٰ علیه السلام دې حیثیت سره زمکې ته رالیږی چه هر نیك اوبد به په حضرت عیسیٰ علیه السلام ایمان راوړی. د حضرت قتاده رحمه الله او حضرت عبدالرحمان رحمه الله وغیره نه هم دا تفسیر شوې دې.اوهم دا قول حق دې.او همداتفسیر بالکل صحیح دې.انشاء الله دالله ﷻ مدد او دهغه توفیق سره به مونږ ددې دلائل بیان کړو.

② **دکتابی د مرګ نه مخکښې**:- دویم قول دا دې چه هر کتابی به د خپل مرګ نه مخکښې په دوی ایمان راوړی.ځکه چه د مرګ په وخت کښې حق او باطل ټولو باندې واضح کیږی.نو هر کتابی یعنی اهل کتاب د دې فانی دنیا نه د تلو نه مخکښې مخکښې د حضرت عیسی علیه السلام باور کوی.حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه هیڅ یو یهودی تر هغه پورې نه مری تر کومې چه هغه په حضرت عیسیٰ علیه السلام باندې ایمان نه وې راوړئی.د حضرت مجاهد رحمه الله هم دا قول دې بلکه د حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه نه تردې پورې مروی دی که د یو کتابی څټ پرې کړې شی نو د ترهغه وختـه پورې دهغه ساه نه اوخی چه ترڅو پورې هغه په حضرت عیسیٰ علیه السلام باندې ایمان راونړی. او د اونه وائی چه حضرت عیسیٰ علیه السلام د الله ﷻ بنده اورسول دې .د حضرت ابی قرآت کښې﴿قبل موتهم﴾ دې. حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس اوشوچه فرض کړه څوك د دیوال نه راپریوزی او مړ شی ؟ نو وې فرمائیل چه بیا هم په دې مینځ کښې دې ایمان راوړی.حضرت عکرمه رحمه الله ،محمد بن سیرین ضحاك رحمه الله او حویریه رحمه الله نه هم دا منقول دی.یو قول حضرت امام حسن رحمه الله نه هم داشان مروی دې چه دهغې مطلب د سابقه قول په تائید کښې کیدیشی.او د حضرت عیسیٰ علیه السلام د مرګ نه مخکښې هم کیدې شی.

(۱) الطبری : ۹/۳۸۰.
(۲) ایضا.

③ دریم قول دا دې چه اهل کتابو نه هیڅوك نشته مګر هغه به په نبی کریم ﷺ مرګ نه مخکښې ایمان راوړی.حضرت عکرمه رحمه الله هم دا فرمائی.

**صحیح قول:-** ابن جریر رحمه الله فرمائی چه په دې ټولو کښې زیات صحیح قول ړومبې دې چه کله حضرت عیسٰی علیه السلام قیامت ته نزدې آسمان نه لاندې تشریف راوړی نو په هغه وخت کښې به هیڅ یو اهل کتاب په دوی د ایمان راوړلو نه بغیر پاتې نشی.فی الواقع د امام صاحب دا فیصله حق بجانب ده. ځکه چه دلته آیتونو نه صفا ظاهر دی اصل مقصد د یهودو دا فیصله غلطه ثابتول دی چه مونږ حضرت عیسٰی علیه السلام په سولئ خیژولې دې.اودا شان چه کوم جاهلو عیسایانو دا ونیلې دی د هغوئ قول هم باطل ثابتول دی.نو الله ﷻ خبر ورکوی چه په حقیقت کښې نه خو حضرت عیسٰی علیه السلام مقتول شوې دې او نه مصلوب شوې دې بلکه دوی په شك کښې اخته کړې شو. اوهغوئ د حضرت عیسٰی علیه السلام هم شکل قتل کړو. خو دوی ته په خپله هم دا معلومه نه شوه چه الله ﷻ حضرت عیسٰی علیه السلام خپل خان ته اوبللو اوهغه ژوندې دې.او اوسه پورې ژوندې دې او قیامت ته نزدې به راکوزیږی.لکه څنګه چه صحیح متواتر احادیثو کښې دی.مسیح دجال به قتل کړی،صلیب به مات کړی،خنزیر به قتل کړی،جزیه به نه قبلوی،اعلان به اوکړی چه یا اسلام قبول کړئی یا تورې سره مقابله اوکړئی.نو آیت کښې خبر ورکوی چه ټول اهل کتاب به د دوی په لاس ایمان را وړی.او یو به هم باقی پاتې نشی چه اسلام نه روستو شی یا څنګه چه جاهل یهودیان او نصرانیان مراد اخلی او دا منی چه دوی په سولئ خیژولې شوی دی،دوی به د حقیقی مرګ نه مخکښې په دوی ایمان راوړی.او کوم کارونه چه دوی د دوی موجودګئ کښې کړی دی یا به کوی هغه به د قیامت په ورځ په دوی ګواه وی،یعنی آسمان ته د پورته کولو نه مخکښې کارونه چه کوم دوی کړی دی هغه ټول به د دوی د نظرونو مخکښې شی اوالله ﷻ ته به دوی پیش کړی.

اوددې تفسیر کښې چه کوم دوه اقواله دی هغه هم د واقعې اعتبار سره بالکل صحیح او درست دی.د مرګ د فرښتې راتلو نه پس د آخرت د رښتیاؤ او دروغو احوالو معائنه کیږی.هم په هغه وخت کښې هر سړی ته رښتیا اودروغ معلوم شی او پوهه شی.خو هغه ایمان د الله ﷻ په نیزمعتبر نه دې،ددې سورة په شروع کښې دی چه ﴿وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّىٰ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ﴾ بل ځائې کښې فرمان دې چه ﴿فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَحْدَهُ﴾ یعنی کوم خلق د مرګ راتلو پورې په بدو عملونوکښې مصروف وی دهغوئ توبه قبوله نه ده.او چه کوم خلق دالله ﷻ عذاب کتلو سره ایمان راوړی نود هغوئ ایمان به هم هغوئ ته هیڅ نفع نه ورکوی. نو د دواړو آیتونو مخکښې اینبودلو سره مونږ دا ونیلې شو چه د مخکښې دوؤ قولونو دکومو چه امام ابن جریر رحمه الله تردید کړې دې هغه صحیح نه دی،په دې وجه امام صاحب فرمائی چه ړومبی دواړه اقوال که د دې ایت په تفسیر کښې صحیح اومنلې شی نو د دې نه دا لازمیږی چه د هیڅ یو یهودی یا نصرانی خپلوان به دده وارثان نه وی،ځکه چه هغوئ خو به په حضرت عیسٰی علیه السلام او حضرت محمد ﷺ باندې ایمان راوړې وې او مرشوې به وی او دده وارثان خو یهود اونصرانیان دی. حالانکه د مسلمان وارث کافر نشی کیدې.

**د حافظ ابن کثیر تبصره:-** خومونږ دا وایو چه دا په هغه وخت کښې دی چه کله داسې وخت کښې ایمان راوړې چه د الله تعالی په نزد معتبر وی.نه داسې وخت کښې چه ایمان راوړل بالکل بې فائدې وی. د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه قول باندې که ژور نظر واچولې شی چه د دیوال نه دراپریوتلو په وخت کښې،د درنده خوړلو په وخت کښې،د تورې د چلیدو په وخت کښې هغه ایمان راوړی،نو صفا ظاهر دی چه د داسې حالت ایمان مطلق نفع نه ورکوی.لکه څنګه چه د قران پورتنی آیتونو نه صفا ظاهر دی.والله اعلم.

خما خیال سره خو دا بالکل صفا ظاهره ده که د دې ایت مبارك د رومبی تفسیر دواړه اقوال معتبر اومنلی شی.نوهیڅ اشکال نه پیدا کیږی.هغه په خپل ځائې صحیح دی .خود دې آیت مبارك نه صحیح مطلب هغه دې چه کوم رومبی قول کښې دې،نود دې نه مراد دا دې چه حضرت عیسیٰ ﷺ آسمانونو کښې ژوندې موجود دې او قیامت ته نزدې به راکوزیږی.او وائی به چه یهود او نصاری دواړه دروغژن دی،او چه کوم افراط تفریط دوی کړې دې هغه به باطل اوګرځوی.یو طرفته د یهودیانو ملعون جماعت دی چه هغوئ حضرت عیسیٰ ﷺ د دوی د عزت نه ډیر زیات اوغورزولو،او د دوی حق کښې نې داسې ناپاکې خبرې اوکړې چه د دې نه هر انسان نفرت کوی.بل طرفته نصرانیان دی چه هغوئی د دوی مرتبه دومره اوچته کړه چه هغه په دوی کښې نه وه،د دې نې هم اثبات اوکړو او مقام نبوت نه نې مقام ربوبیت ته اورسولو،دکوم نه الله ﷻ بالکل پاك دې.

**حضرت عیسیٰ ﷺ به قیامت ته نزدې دوباره راځی:-** اوس هغه احادیث واورئی چه په هغې کښې بیان دې چه حضرت عیسیٰ ﷺ به آخره زمانه کښې قیامت ته نزدې آسمان نه زمکې ته راکوزیږی او الله وحده لاشریك عبادت طرفته به خلق رابلی.

**دعیسیٰ ﷺ کارونه:-** صحیح بخاری ټول امت منلی او دا قبلوی،په دې کښې حضرت امام بخاری ﷫ کتاب ذکر انبیاء کښې حدیث راوړې دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په هغه ذات قسم چه د هغه په قبضه کښې خما ساه ده نزدې ده تاسو کښې به حضرت عیسیٰ به مریم ﷺ نازل شی،عادل حاکم به جوړشی او صلیب به مات کړی،خنزیر به قتل کړی او جزیه به ختمه کړی،مال به دومره زیات شی چه د ابه څوك نه خوښوی،یو سجده کول (١) به دنیا او مافیها نه بهتره وی. د دې حدیث مبارك تلاوت کولو نه پس د دې حدیث مبارك راوی حضرت ابوهریره ﷛ د شهادت په طور قرآنی آیت مبارك ﴿وَإِنْ مِّنْ﴾ آخر پورې تلاوت کړو.

صحیح مسلم کښې هم دا حدیث مبارك شته دې او بل سند سره هم دا روایت بخاری اومسلم شریف کښې مروی دې.په هغې کښې دی چه سجده به صرف د رب العالمین دپاره وی او په دې آیت مبارك کښې ﴿قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ نه پس فرمان دې چه ﴿قبل موت عیسیٰ بن مریم﴾،بیا دا د حضرت ابوهریره ﷛ درې ځل ونیل هم دی.

**د عیسیٰ ﷺ حج اوعمره:-** د مسند یو حدیث مبارك کښې دی چه حضرت عیسیٰ ﷺ به میدان فج روحا کښې حج او عمره دواړو دپاره لبیك وائی (٢). دا حدیث مسلم کښې هم دې (٣).

**د مال زیاتیدل:-** د مسند یو بل حدیث مبارك کښې دی چه حضرت عیسیٰ ﷺ به راکوزیږی او صلیب به ماتوی او خنزیر به قتلوی او مونځ به باجماعت وی،اود الله ﷻ لار کښې به مال دومره زیات ورکولې شی چه څوك اخستو والا به نه وی.خراج به پریږدی،روحاء ته به لاړشی اوهلته به حج یا عمره کوی یا به دواړه یو ځائې کوی. بیا حضرت ابوهریره ﷛ دا آیت مبارك تلاوت کړو.خو د دوی شاګر د حضرت حنظله خیال دې چه حضرت ابوهریره ﷛ اوفرمائیل چه د حضرت عیسیٰ ﷺ د انتقال نه مخکښې به په دوی ایمان راوړی،ماته نه دی معلوم چه دا ټول د حدیث الفاظ دی اوکه د حضرت ابوهریره ﷛ خپل (٤)

---

١) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب عیسیٰ بن مریم : ٣٤٤٨، صحیح مسلم: ١٥٥، ترمذی : ٢٢٣٣، ابن ماجه: ٤٠٧٨، ابن حبان: ٦٨١٨، احمد: ٢/٢٤٠، مسند حمیدی: ١٠٩٧، شرح مشکل الآثار: ١٠٣، الشریعة للآجری :٣٨٠، الایمان لابن منده: ٤١١.

٢) احمد:٢/٢٤٠،وسنده صحیح،ابن حبان : ٦٨٢٠ بیهقی :٢/٥، مسندحمیدی :١٠٠٥، ددې سنددمسلم په شرط صحیح دې

٣) صحیح مسلم کتاب الحج،باب اهلال النبی صلی الله علیه وسلم وهدیه : ١٢٥٢.

٤) احمد: ٢/٢٩٠، وهو صحیح بالشواهد.

صحیح بخاری کښې دی چه په هغه وخت کښې به څه وی چه حضرت مسیح بن مریم ﷺ نازل شی او ستاسوامام به هم ستاسو نه وی(۱).

**دعیسی ﷺ پیژندګلو:-** ابوداود او مسند احمد وغیره کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انبیاء کرام ټول د یو پلار اولاد د رونړو پشان دی، میاندې ئې جدا جدا او دین ئې یودې. عیسی بن مریم ته زیات نزدې څه یم، ځکه چه د هغوئ او ځما ترمینځه بل نبی نشته دې .او یقینی طورهغه به نازلیږی. نو تاسو هغه اوپیژنئی. سور سپین رنګ ئې دې، درمیانه قد ئې دې، دوه مصری کپړې به ئې ترلې وی، د دوی سرنه به اوبه ځاځی، اګر چه لوند به نه وی. صلیب به مات کړی، خنزیر به قتل کړی، جزیه به نه قبلوی، خلق به اسلام طرفته رابلی، د هغوئ زمانه کښې به ټول ملتونه ختم شی، صرف اسلام به باقی پاتې شی. د هغوئ زمانه کښې به الله تعالی مسیح دجال هلاك کړی. بیا به زمکې باندې امانت واقع شی. تردې چه تور ماران به اوښانو سره، شرمخان غواګانو سره، او شرمخان به چیلو سره څری او ماشومان به مارانو سره لوبې کوی. او دوی ته به هیڅ نقصان نه رسوی، څلویښت کاله پورې به وی بیا به وفات شی او مسلمانان به د حضرت عیسی ﷺ جنازه ادا کوی (۲).

**عیسی ﷺ ته د نبی ﷺ نزدیکت:-** دابن جریر روایت کښې دی چه دوی به خلقو سره په اسلام جهاد کوی. ددې حدیث مبارك یو ټکړه صحیح بخاری کښې هم ده. او یو روایت کښې دی چه دټولو نه زیات نزدې دنیا او آخرت کښې حضرت عیسی ﷺ ته څه یم (۳).

**دعیسی ﷺ مسلمانانو ته امامت ورکول:-** صحیح مسلم کښې دی چه قیامت به ترهغه پورې قائم نه شی چه ترکومې چې رومیان اعماق یا دابق (د دوو ځایونو نومونه دی) کښې کوز نشی او د دوی مقابلې دپاره مدینې نه لښکر رانشی، او دوی به په هغه وخت کښې په مخ د زمکې ټولو نه زیات الله ﷻ ته خوښ بندګان وی. هرکله چه صفونه جوړ شی نو رومیان به اووائی چه مونږ تاسوسره جنګ نه کوو، مونږ کښې چه کوم خلق بې دینه شوی دی مونږ هغوئ سره جنګ کول غواړو، تاسو مینځ نه لرې شئ. خومسلمانان به اووائی چه والله د انشی کیدې چه مونږ تاسو ته خپل کمزوری مسلمانان رونړه پریږدو. نو جنګ به شروع شی او د مسلمانانود دې لښکر دریمه حصه به اوتښتی .

د دې خلقو توبه به الله ﷻ بالکل نه قبلوی .او دریمه حصه به شهیدان شی. اودوی به د الله تعالی په نزد ټولو نه زیات افضل شهیدان وی. خو آخری دریمه حصه به فتح اومومی او غالب به شی. بیا به دوی هیڅ فتنه کښې نه پریوځی. قسطنطنیه به فتح کړی، او دوی به لا خپلې تورې په زیتونو (د زیتون په ونو) کښې زړوندکړی او مال د غنیمت به تقسیموی، چې په دې دوران کښې به یو شیطان چغې کړی چه ستاسو په بچو دجال راغلو او د ده دا دادروغ به مسلمانان رښتیا اوګنړی اود دې ځائې نه به اوځی. شام ته به اورسی او دښمنانوسره به دجنګ کولو دپاره صفونه جوړوی چه بل طرفته به د مونځ دپاره اقامت اوشی .او حضرت عیسی ﷺ به نازل شی .اودوی ته به امامت ورکوی. هرکله دښمن دوی اوګوری نو داشان به ویلې شی لکه څنګه چه اوبوکښې مالګه ویلې کیږی. که حضرت عیسی ﷺ دوی

---

(۱) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب نزول عیسی بن مریم علیه السلام: ۳۴۴۹، صحیح مسلم: ۱۰۰، مصنف ابن عبدالرزاق: ۲۰۸۴۱، الاسماء والصفات للبیهقی: ۸۹۵.

(۲) ابوداود کتاب الملاحم باب خروج الدجال: ۴۳۲۴، باختلاف یسیر وسنده حسن احمد: ۴۰۶/۲، بهذه الالفاظ، حاکم: ۵۹۵/۲، ابن حبان ۶۸۲۱، مصنف عبدالرزاق: ۲۰۸۴۵.

(۳) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی (واذکرفی الکتاب مریم اذ انتبذت من اهلها) ۳۴۴۳، صحیح مسلم: ۲۳۶۵.

ته اوګوري نو دوی به ټول ختم شي. اوالله ﷻ به د دوی په لاس دوی قتل کړي،او دوی به په خپله حربه (نیزه) خلقو ته د دجال وینه اوښائي(١).

**دعیسیٰ ؑ دنیا ته دوباره راتګ:-** مسند احمداو ابن ماجه کښې دي چه نبی کریم ﷺ اوفرمائيل ما د معراج په شپه حضرت ابراهیم ؑ ،حضرت موسی ؑ او حضرت عیسیٰ ؑ او لیدل،خپلو کښې مو یو بل سره د قیامت باره کښې خبرې اترې کولې. حضرت ابراهیم ؑ خپله لاعلمي ظاهر کړه،اودغه شان حضرت موسی ؑ هم،حضرت عیسیٰ ؑ اوفرمائيل چه دالله تعالی نه سوا د قیامت راتلو صحيح وخت خو هیڅوا ته نه دې معلوم خو ما سره چه څما رب کومه وعده کړې ده هغه دا ده چه دجال به راوځي او هغه سره به دوه ښاخونه وي.هرکله چه ما اوګوري نو داسې به ویلې کیږي لکه څنګه چه فولاد ویلې کیږي. نو الله ﷻ به هغه هلاك کړي کله چه هغه ما اووینی.تردې چه هر یو کاڼړي او ونه به هم وائي چه ائې مسلمانه ! راشه د ایوکافر څما په شا پټ دې،دې قتل کړه. نوالله تعالی به دوی هلاك کړي او خلق به امن اوامان سره خپلو خپلو کورونو ته لاړ شي.

**دیاجوج ماجوج راوتل:-** او دې نه پس به یاجوج اوماجوج راوځي ،اوهرطرفته به منډې وهي، ټول ښارونه به ویران کړي. چه په کوم څيز تیر شي نو هغه به هلاکوي او چه په کومو اوبو تیر شي نو هغه به ټولې اوڅکي،خلق به بیا ماته راشي،څه به الله تعالی نه دعا اوغواړم او الله ﷻ به دا ټول تباه کړي.او د دوی لاشونونه به هوا خوره شي،بدبو به ترې خوره شي،بیا به دومره باران اوشي چه دا ټول لاشونه به یوسی او په سمندر به لاهوشي.نو په هغه وخت کښې داسې د قیامت راتګ وی لکه څنګه چه د حامله ښځې خلقو ته نه وی معلومه چه سحر به ددې ماشوم پیدا کیږي یا به ماښام ددې ماشوم پیدا کیږي،د شپې به پیدا کیږي او که د ورځې ؟(٢)

**په مسلمانانو سختئ راتلل:-** مسند احمد کښې حضرت ابونضره ﷺ فرمائي چه مونږ حضرت عثمان بن ابوالعاص ﷺ سره د جمعې مونځ اوکړو او دې دپاره راغلو چه خپل لیکلې شوې قران پا ك دوی ته اوښايو،هرکله چه د جمعې وخت راغلو نو دوی مونږ ته اوفرمائيل چه غسل اوکړئ،بیائې خوشبو راوړه اومونږ اولګوله،بیا جمات ته راغلو او یوسړي سره کیناستو. او هغه مونږ ته د دجال والا حدیث مبارك بیان کړو. بیا حضرت عثمان بن ابوالعاص راغلو او مونږ اودریدو ،بیا ټول کیناستل،دوی اوفرمائيل چه ما نبی کریم ﷺ نه دا آوریدلی دی چه د مسلمانانو به درې ښارونه شي.یو د دوؤ سمندرونود یو ځائې کیدو په ځائې باندې،یو په حیره باندې،او یو شام کښې.بیا به خلقو باندې درې ویرې راشي.بیا به دجال راوزي.دې به رومبی ښار طرفته لاړشي او د هغه ځائې خلق به دریو حصو کښې تقسیم شي .یو حصه به اووائي چه مونږ د ده مقابله کوو او ګورو چه څه کیږي.دویمه حصه به د کلي خلقو سره یوځائې شي.اودریم جماعت به بل ښار ته لاړ شي او دوی ته به نزدې شي.دجال سره به اویا زره کسان وی او د هغوئ په سرونو به تاجونه وي.اوهغوئ کښې به اکثر یهود او ښځې وي.د دې ځائې مسلمانان به یو غار کښې پناه واخلي.د دوی چه کوم څناور څریدو دپاره تلي وی هغه به هم هلاك شي. په دې وجه به د دوی مصیبتونه زیات شي او د اولږې د وجې به د دوی حالت خراب شي تر دې چه په دوی کښې به یو کس د خپلې لیندې (په کوم کښې چې غشی کیخودې شي او ویشتلې شي) د غشې وتلو ځائې وریت کړي او هغه به اوخوري. هرکله چه دوی په سختئ کښې وی نو دوی ته به د سمندر نه آواز اوشي چه ائې خلقو تاسو ته مدد راغلو،دې آواز آوریدو سره به دا خلق خوشحاله شي څکه چه آواز نه به دوی ته معلومه وی چه دا د یو پوهه سړي آواز دې.بالکل د سحر مونځ په وخت

---

١) صحیح مسلم کتاب الفتن باب فی فتح قسطنطنیه وخروج الدجال ونزول عیسیٰ بن مریم : ٢٧٩٧، ابن حبان: ٦٨١٣.

٢) احمد: ٣٧٥/١، ابن ماجه کتاب الفتن باب فتنة الدجال وعیسیٰ بن مریم : ٤٠٨١، وسنده صحیح،حاکم : ٤٨٨/٤.

کښې به حضرت عيسى ؑ نازل شي. د هغوئ امير به حضرت عيسى ؑ ته اووائي چه انې روح الله ؑ ! تاسو مخکښې شئ او مونځ راکړئي. خوحضرت عيسى ؑ به اووائي چه د دې امت بعضې خلق د بعضو اميران دي.نوهم دهغوئ امير به مخکښې شي او مونځ به ورکړي. د فارغيدو نه پس به حضرت عيسى ؑ خپله نيزه لاس کښې واخلي او دجال پسې به روان شي.دجال چه دوی ؑ اوګوري نو د فولاد په شان په ويلې کيږي.دوی ؑ به هغه په سينه اووهي او دې سره به هغه هلاك شي. او د هغه ملګري به شکست اوخوري او تيښته به اوکړي.خوهغوئ ته به يوځائې کښې هم پناه نه ملاويږي.تردې چه هغوئ به د يو ونې په شا پټ شي او هغه ونه به وائي چه انې مسلمانه دا دې يو کافر خما شاته پټ دې،اودغه شان کاڼړی به هم وائي([1]).

**د دجال لويه فتنه:-** د ابن ماجه په روايت کښې دي چه نبي کريم ﷺ دې خپلې خطبې زياته حصه د دجال په واقعه بيانولو کښې تيره کړې وه.او په هغې کښې دا هم وو چه د دنيا د اول نه واخله تر آخره پورې د دې نه زياته لويه فتنه بله نشته دي.ټولو نبيانو عليهم السلام خپل خپل امتونه د دې نه ويرول.څه ټولو کښې آخر کښې يم او تاسو ټولو کښې آخرى امت يئ.او هغه به يقينى طور تاسو کښې راځي.که خما په موجودګئ کښې راغلو نو څه به هغه سره ګورم.او که خما نه پس راغلو نو هر سړې دې د دې نه خپل خپل ځان بچ کوي.څه الله ﷻ د هر مسلمان خليفه جوړوم. هغه به د شام او عراق ترمينځه راوځي او ښه به ګرځي. خلقو ! انې دالله ﷻ بندګانو ! ګورئې تاسو ثابت قدم اوسئ.واورئ ! څه تاسو ته د هغه يوداسې صفت ښايم چه هغه هيڅ يو نبي خپل امت ته نه دې خودلې.هغه به په شروع کښې دعوې کوي چه څه نبي يم خو ياد ساتئ چه خما نه پس به بل نبي نه راځي.او بيا به هغه د دې نه هم ورتيرشي او وائي به چه الله يم.نوتاسو ياد ساتئ چه الله ﷻ هيڅوك په خپلو سترګو نشي ليدلې. خو د مرګ نه پس د الله ﷻ ديدار کيديشي. او واورئ هغه به کاڼړې وي او ستاسو رب کاڼړې نه دې.او د هغه د دواړو سترګو مينځ کښې به کافر ليکلې شوې وي او هغه به هر تعليم يافته او غيرتعليم يافته لوستلې شي.هغه سره به اور وي او باغ به ورسره وي.د هغه باغ به اصل کښې دوزخ وي او د هغه اور به اصل کښې جنت وي.واورئ ! تاسو کښې چه څوك هم هغه اور ته واچوي نو هغه دې الله تعالى ته فرياد کوي او د سورة کهف رومبي آيتونه دې تلاوت کوي. د هغه اور به امن او سلامتيا والا شي.لکه څنګه چه خليل الله ؑ باندې د نمرود اور شوې وو. د هغه يو فتنه به دا هم وي چه هغه به يوبانډيچي ته اووائي که څه ستا مور پلار راژوندي کړم،نو بيا خو به ته ما رب منې که نه.نو هغه به اقرار اوکړي.دې کښې به دوه شيطانان د ده پلار او مور په شکل کښې ظاهر شي او ده ته به اووائي چه ځويه ! هم دا ستا رب دې او ته دې اومنه،او د هغه به يو فتنه دا هم وي چه هغه په يوسړي مسلط کړې شي اوهغه به دې آره کوي او دوه ټکړې به ئې کړي، بيا به خلقو ته وائي چه تاسو دې کس ته ګورئ چه دې بيا ژوندې کوم.خو بيا به هم دې وائي چه خما رب د ده نه سوا بل دې.نودې به هغه راپورته کړي او دا خبيث به هغه ته اووائي چه ستا رب څوك دې،هغه به جواب کښې اووائي چه خما رب الله ﷻ دې،او ته د الله ﷻ دښمن يې. په الله ﷻ قسم اوس خو ماته مخکښې نه هم زيات يقين اوشو. (چې ته دجال يې)

**ددجال په ټوله دنيا چکرلګول:-** بل سند سره مروي دي چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا مومن به خما د امت لوې درجې والا جنتي وي.حضرت ابوسعيد خدري ؓ فرمائي چه د دې حديث بيانولو سره خمونږ خيال وو چه دا سړې به حضرت عمر بن خطاب وي،د دوی د شهادت پورې خمونږ هم دا خيال وو. نبي کريم ﷺ فرمائي چه د ده به يوفتنه دا هم وي چه هغه آسمان ته د اوبو ورولو حکم اوکړي او آسمان نه به باران اوشي،اوهغه به زمکې ته حکم اوکړي او زمکې نه به پيداوار راوځي. د ده به يو فتنه دا هم

---

[1]) احمد: ٢١٦/٤، ابن ابي شية: ٦٥٠/٨، وسنده ضعيف طبراني : ٨٣١٠، مجمع الزوائد: ٣٤٢/٧، حاكم : ٤٧٨/٤.

وي چه هغه به يو قبيلې ته ورشي او هغوئ به دې اونه مني،هم په هغه وخت كښې به د هغوئ ټول خيزونه برباد او هلاك شي،اودغه شان به دې بلې قبيلې ته ورشي او هغوئ به دې اومني،هم په هغه وخت به د آسمان نه باران اوشي او زمكې نه ميوې زرغونې شي.اود هغوئ ځناور به مخكښې نه زيات څاربه او پنيوالا شي. د مكې او مدينې نه سوابه هغه د ټولې زمكې چكر لګوي. هركله چه د مدينې خ اوكړي نو په هره لار كښې به فرښتې توري په لاس ولاړې وي نودې به د سنجه(د يو ځائې نوم دې) اخرى حد ضريب احمر(داهم د يو ځائې نوم دې ) كښې پاتې شي. بيا به مدينه كښې درې زلزلې راشي،او دې سره به ټول منافقان سړي او منافقانې ښځې د ده لښكر كښې شاملې،اومدينه به دا كنده خلق ځيلې سينې نه اوباسى،لكه څنګه چه بټئ د اوسپنې نه خيرې اوزنګ لرې كوي،د دې ورځې نوم به يوم الخلاص وي.

**د عيسىٰ ﷺ د راكوزيدو باره كښې تفصيلي حديث:-** ام شريك ﵂ نبي كريم ﷺ نه تپوس كوي چه يا رسول الله ﷺ ! په هغه ورځ به عرب چرته وي،نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه اول به هډو وي نه او كه وي نو اكثريت به بيت المقدس كښې وي ،اود دوى امام به يو نيك سړې وي او هغه به دوى ته د سحر مونځ وركوي.او دې كښې به حضرت عيسىٰ ﷺ راكوزيږي.دا امام به روستو شي چه حضرت عيسىٰ ﷺ مخكښې شي او امامت وركړي خو حضرت عيسىٰ ﷺ به د هغه په ملا لاس كيږدي او فرمائي به چه مخكښې شه او مونځ وركړه،اقامت ستا دپاره شوې دې،نو هم د دوى امام به مونځ وركړي.د مونځ نه په فارغيدو به حضرت عيسىٰ ﷺ حكم اوكړي چه دروازې بيرته كړئي،دروازې به بيرته كړې شي،هلته به دجال اويازره لښكر سره موجود وي ،اود هغوئ په سرونو به تاجونه او د هغوئ تورې وي.دجال چه كله حضرت عيسىٰ ﷺ اوګوري نو داسې به ويلې كيږي لكه څنګه چه مالګه اوبو كښې ويلې كيږي.او يو دم به شا كړي او تښتي به.حضرت عيسىٰ ﷺ به اووائي چه الله ﷻ مقرر كړې دي چه نه به څما دلاسه يو ګزار خوري،اودا نشي بدليدې.نو حضرت عيسىٰ ﷺ به دې مشرقي باب لد سره اونيسي او يهوديان به تښتي اومنتشر به شي،خو هغوئ ته به د سر پټيدو ځائې هم نه ملاويږي هره ونه،هر كاڼې،هر ديوال او هر ځناور به وائي چه انې مسلمانه ! دا دې يو يهودي ما سره پټ شوې دې،راشه او دې قتل كړه. خو د ببول ونه د يهودو ونه ده دا به نه وائي.نبي كريم ﷺ فرمائي چه دې به څلويښت كاله وي.يوكال به د نيم كال برابر وي،يوكال به د مياشتې برابر وي،او يوه مياشت به د هفتې برابره وي،او باقي ورځې به د ٠شراره په شان وي.سحر به سړې يو دروازې نه روان شي او لا به بلې دروازې ته نه وي رسيدلې چه ماښام به شي.خلقو تپوس اوكړو چه بيا به مونږ په هغه لنډو ورځو كښې مونځ څنګه كوو؟ نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه اندازه كوئي لكه څنګه چه دې لويو ورځوكښې اندازه كوئي.نبي كريم ﷺ فرمائي چه بيا به حضرت عيسىٰ ﷺ څمونږ امت كښې بادشاه وي،عادل به وي،انصاف كولووالا به وي،امام به وي ،صليب به مات كړي،خنزير به قتل كړي،جزيه به لرې كړي،صدقه به پريښودې شي . په چيلئ او اوښ د محنت كار نشي كولې.حسد او كينه به ختمه شي.د هر زهريله ځناور زهر به ختم شي.ماشومان به خپلې ګوتې د مارانوخولو كښې وركوي.او دا ماران به دوى ته هيڅ تكليف نه وركوي،شرمخانوسره به هلكان لوبې كوي،او دوى ته به هيڅ نقصان نه وركوي.شرمخانړ به چيلو سره داسې ګرځي لكه څنګه چه د دوى شپونكې وي.ټوله زمكه به اسلام او اصلاح نه داسې ډكه شي لكه څنګه چه يو لوښې د اوبو نه تر سره پورې ډك وي،د ټولو به يوكلمه شي. د الله تعالى نه سوا به دهيڅ عبادت نه كيږي او هرقسمه جنګ به بند شي.قريش به خپل ملك واخلي.زمكه به لكه د سپينو زرو روښانه شي،او څنګه بركتونه چه د حضرت آدم ﷺ زمانه كښې وو هغه شان به بيا شي.يوډلې دپاره به د انګور يوه غنچه كافي وي.يو انار به دومره وي چه يوډله به تې

اوخوری او دوی به ښه ماړه شي. غوایان به دومره دومره قیمت ملاویږي.او اس به په څو روپو ملاویږي (ډیره ارزانی به شي ) ، خلقو تپوس اوکړو چه د دې قیمت به ولې کم وی ؟ وې فرمائیل چه په تولو زمکه به کر کیږي .د دجال د ظاهریدو نه به درې کاله مخکښې سخت قحط وی په ړومبی کال به د باران دریمه حصه د الله ﷻ په حکم اونه شي.او د زمکې پیدوار به هم دریمه حصه کم شي.بیا په دویم کال به الله ﷻ آسمان ته حکم اوکړی چه د باران دوه حصې کمې کړه.اوهم دا حکم به زمکې ته هم اوشي چه خپل پیداوار دوه حصې کم کړه. په دریم کال به د آسمان نه یو څاڅکی باران هم او نشي او نه به زمکې نه پیداوار کیږي.ټول څناور به دې سره هلاك شي خو کوم چې الله ﷻ نه غواړي (هغوی به د هلاکت نه بچ شي)، خلقو تپوس اوکړو چه بیا به هغه وخت کښې خلق څنګه ژوندي وی ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د دوی غذا به په هغه وخت کښې لااله الاالله اوالله اکبر اوسبحان الله اوالحمدلله وی.

امام ابن ماجه رحمه الله فرمائی چه څما استاد د خپل استاد نه آوریدلی دی چه دا حدیث مبارك ددې قابل دې چه د بچو استاد دې دا بچو ته هم اوښائی لکه ورته دې اولیکی چه دوی ته یاد وی (١). دا حدیث مبارك خو دې سند سره غریب دې خود دې د بعضو ټکړو شواهد نورو احادیثو کښې ملاویږي (٢) ددې حدیث پشان یو بل حدیث مبارك حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه نه مروی دې.هغه هم دلته ذکرکوو.

صحیح مسلم کښې دی چه یو ورځ سحر نبی کریم ﷺ د دجال ذکر اوکړو او داسې ئې پورته او لاندې کړو چه مونږ اوګڼړل چه ګنی هغه دلته د مدینې دقجورو په باغونو کښې موجود دې.بیا چه کله مونږ واپس کیدو نو نبی کریم ﷺ خمونږ د مخونه نه معلومه کړه او تپوس ئې اوکړو چه څه خبره ده ؟ مونږ ورته بیان کړل (چه زمونږ دا ویره شوه چه دجال به اوس راوځی)، نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د دجال نه علاوه خو ماته په تاسو ډیره ویره ده. که هغه څما په موجودګئ کښې راوتلو خو څه به هغه سره پوهیږم اوکه څما نه پس راوتو نو هر مسلمان به هغه سره پخپله پوهیږي.څه خپل خلیفه په هر مسلمان الله ﷻ جوړوم. هغه به څوان شي،او د هغه یو سترګه به راوتې وی،بس داسې اوګڼړئ چه د عبدالعزی بن قطن په شان به وی.تاسو کښې چه څوك هم هغه اوګوری نو هغه ته پکاردی چه د سورة کهف ړومبی آیتونه تلاوت کړی.هغه به د شام او عراق مینځ کښې ظاهریږي یو څوا بل څوا به ګرځی. انې د الله ﷻ بندګانو ښه ثابت قدم اوسئ.مونږ تپوس اوکړو چه هغه به څومره موده وی ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څلویښت ورځې.یو ورځ به د یوکال برابره وی،یو ورځ به د یوې میاشتې،اویوه ورځ به د یو هفتې برابره وی،اوباقی ورځې به ستاسو د معمول د ورځو مطابق وی.بیا مونږ تپوس اوکړو چه کومه ورځ د کال برابر وی نو په هغې کښې به مونږ مونځ د یوې ورځې کوو اودا به کافی وی که نه.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نه بالکل اندازه به لګوئی .(نو په اندازه سره به په دغه یوه ورځ کښې د یو کال مونځونه کوئ) مونږ تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ اد هغه د رفتار تیزی به څومره وی ؟نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه داسې به وی لکه څنګه چه وریځې بادونونه سره روانې وی.یو قوم به خپل طرفته راوبلی هغوئ به دې رب اومنی او په هغوئ به آسمان نه باران اووروی. او د زمکې نه به میوې او فصل زرغون کړی د هغوئ څناور به ښه څاربه او ښه پیځ ورکونکی شی.یو قوم ته به ورشی اوهغوئ به دې رب نه منی او انکار به اوکړی،دې چه د هغه خانې نه واپس شی نو د ده لاس کښې به هیڅ نه وی.دې به په شاړه زمکه اودریږي او وانی چه د زمکې خزانو بهرته راوځئ ،نو ټولې به د شاتو د مچو په شان بهر راوځی. دې به یو څوان راوبلی او هغه به قتل کړی او هغه به دومره دومره لرې ګزار کړی

---

(١) ابن ماجه کتاب الفتن باب الفتن الدجال وخروج عیسیٰ بن مریم.وخروج یاجوج وماجوج : ٤٠٧٧.

(٢) صحیح بخاری حواله سابق: ٢٩٢٦.



،بیا به هغه ته اواز اوکړي نو هغه به ژوندي په خندا راپاسي او ده ته به راشي.بیا به الله ﷻ مسیح ابن مریم اولیږي او هغه به د دمشق مشرق طرف ته میناري سره راکوزیږي او دوه څادرې به ئې اچولې وي او د دوؤ فرښتو په وزرو به ئې لاسونه ایښودي وي،هر کله چه سر ټیټ کړي نو د دوی ﷺ د سرنه به څاڅکي پریوزي.اوکله چه سر ټیټ کړي نو د دوی ﷺ په سر کښې به هغه قطرې لکه د غمو پرقیږي.چه کوم کافر پورې د دوی ﷺ ساه رسي نو هغوئ به مړشي او د دوی ساه به هغه پورې رسي چه تر کومې نظر لګی.دوی ﷺ به دجال پسې شي او باب لد سره به هغه قتل کړي.بیا به هغه خلقو ته واپس راشي چه کوم الله ﷻ د دې فتنې نه بچ کړي وي. د دوی په مخونو به لاس راکاږي او دوی ته به د جنت د درجو زیرې ورکړي.بیا د الله ﷻ د طرفنه نه حضرت عیسیٰ ﷺ ته وحي راشي چه څه خپل بندګان لیږم او دهغوئ مقابله هیڅوک نشي کولې.نو ته خمادا خاص بندګان طور طرفته بوځه.

**د یاجوج ماجوک راوتل** :- بیا به یاجوج او ماجوج راوځي او هر طرفته به خواره شي.د دوی رومبئ ډله به په بحیره طبریه راشي اود هغې ټولې اوبه به اوڅکي.هرکله چه دوی نه پس بله ډله راشي نو دا به داشان اوچ وي چه هغه به اووائي چه دې کښې ګنې هډو اوبه نه وې.حضرت عیسیٰ ﷺ او د هغوئ ملګري به هلته داسې بند وي چه دوی ته غوښې یوسر هم که ملاویږي نودا به ښه ګنړي،لکه څنګه چه تاسو ته نن سل دیناره خوښ دي.بیا به حضرت عیسیٰ ﷺ او مومنان د الله تعالی نه دعاګانې کوی ،اوالله ﷻ به په هغوئ د څټ بیماري راولي .او دې سره به دا ټول فنا شي.بیا به حضرت عیسیٰ ﷺ او دوی ملګري زمکې ته راکوز شي خو په زمکه به یو لیشت ځائې هم د دوی دلاشونو نه خالي نه وي اوهر طرفته به بدبوئي وي.بیا به دالله تعالی نه دعاګانې کوي او د بختي اوښانو د څټ برابر مارغان به راشي او د دوی لاشونه چه چرته الله تعالی غواړي نو هلته به ئې یوسي. بیا به باران اوشي او ټوله زمکه به لکه د تلی پاکه شي.بیا به زمکې ته حکم اوشي چه خپلې میوې راوباسه او خپل برکتونه ښکاره کړه. په هغه ورځ به یو انار د یوې ډلې دپاره کافي وي.او ټول به د دې د پوستکی لاندې آرام کولې شي.د یو اوښې پئ به ټول کور نشي څکلې .بیا به الله ﷻ یو ښکلې هوا راولي چه د خلقو د ترخونو لاندې به تیره شي او دې سره به ټول مړ شي او صرف بدخلق به پاتې شي.اوهغوئ به خپلو کښې لکه د خرونو په شان جنګونه کوي.په دوی به قیامت راشي .([1])

مسند احمد کښې یو حدیث مبارک دې هغه به مونږ د سورة انبیاء آیت ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتۡ يَأۡجُوجُ وَمَأۡجُوجُ﴾ تفسیر کښې بیانوو. انشاء الله.

صحیح مسلم کښې دی چه یو سړې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ ته راغلو او ورته ئې اووئیل چه دا څه خبره ده چه ماته رارسیدلې ده چه تاسوفرمائې چه قیامت به تردې راشي.عمرﷺاوفرمائیل سبحان یا نې لا اله الا الله اووئیل او بیائې اوفرمائیل خما خو زړه غواړي چه څه تاته یو حدیث هم اونه وایم ما خو دا وئیلي وو چه تاسو به لږ وخت پس غټ غټ کارونه اووینئ؛بیت الله شریف به اوسیزلې شي،اودا به وي او هغه به وي وغیره. بیا د نبی کریم ﷺ فرمان دې چه دجال به راوځي او خما امت کښې به څلویښت ورځې ایسار وي.ماته معلومه نه ده چه څلویښت ورځې یا څلویښت میاشتې یا څلویښت کاله ،بیا به الله ﷻ عیسیٰ بن مریم اولیږي،او د حضرت عیسیٰ ﷺ صورت د عروه بن مسعود ﷺ په شان دې.دوی ﷺ به هغه تلاش کړي او هغه به قتل کړي.بیا به خلق داسې وي چه دوؤ کسانو کښې به

[1]) صحیح مسلم کتاب الفتن باب ذکر الدجال : ٢٩٣٧، احمد: ١٨١/٤. ددوی نه علاوه دا روایت مختصر دې خایونو کې هم موجود دې : ابوداود : ٤٣٢١. ترمذی : ٢٢٤٠، السنن الکبری : ٨٠٢٤، معجم الصحابة : ١٦٣/٣، عمل الیوم واللیلة : ٩٤٧.

عدوات نه وي.بیا به د شام د طرفه یوه یخه هوا اوچلیږي .اوټول ایمان والا به دې سره وفات شي چه د چا په زړه کښې د ذرې برابر هم ایمان وي او اګر چه هغه د یو غر په غار کښې وي،هغه به هم وفات شي.بیا به بدترین خلق باقي پاتې شي.او هغوئ به د مارغانو په شان سپك او د درندګانو په شان دروند دماغ والا وي.په دوی کښې به د ښه او بدهلو تمیز نه وي.شیطان به دوی ته د انسان په شکل راشي او دوی به بت پرستئ طرفته مائل کړي.خو په هغوئ به په دې حالت کښې هم د رزق دروازې بیرته وي،او دوی به ښه د آرام ژوند تیروي، بیا به شپیلئ پوک وهلی شي اوخلق به غوزارېږي،یو سړې به وی چه خپل اوښ ته د اوبو څکولو دپاره به حوض صحیح کوي،ټولو نه مخکښې به هغه د شپېلۍ آواز واوري. او دې سره به ټول خلق بې هوشه شي.د دې ټولو د فناکیدو نه پس به الله ﷻ یو میاشت باران اوورَوي او دا به د پرخې په شان وي.دې سره به دوباره جسمونه پیدا شي او بیا به دوباره شپیلۍ اووهلې شي،او ټول به راپاسي،بیا به اوونیلې شي چا ائې خلقو رب طرفته څئ،دوی نه به تپوس کولې شي .او بیا به اوفرمائیلې شي چه د جهنم حصه راوباسئ،تپوس به اوشي چه څومره نه څومره ؟جواب به ورکړې شي چه هرو زرو نه نهه سوه او یو کم سل،همدا ورځ ده چه بچی به بوډاګان کړي او هم دا ورځ ده چه په دې کښې به پنډلئ پرانیستې شي([1])مسند احمد کښې دی چه ابن مریم ﷺ به باب لد یا لد طرفته مسیح دجال قتل کوي ([2]).

په ترمذی شریف کښې ،،باب لد،، دې.او دا صحیح حدیث مبارك دې([3]).دې نه پس امام ترمذی د څو نورو صحابه کرام ﷺ نومونه اخستی دی چه هغوئ نه هم دې باب کښې احادیث مروی دی.نودې نه مراد هغه احادیث دی چه په هغې کښې د دجال مسیح لاس سره قتل کول ذکر دی.صرف د دجال د قتل کولو احادیث خو بې شمیره دی.او د هغې جمع کول مشکل دی.

**دقیامت لس نښې**:- مسند احمد کښې دی چه د عرفې نه د راتلو په وخت کښې نبی کریم ﷺ د خپلو صحابه کرام ﷺ یو مجمعې سره تیر شو او په هغه وخت کښې هغوئ د قیامت ذکر کولو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تر کومې لس خبرې نه وي نو تر هغه به قیامت نه قائمیږي.① نمر د مغرب طرف نه راختل② د لوګی راتلل ③ دابة الارض راوتل ④ دیاجوج او ماجوج راوتل ⑤ د عیسی بن مریم ﷺ نازلیدل ⑥ د دجال راتلل ⑦ درې خانې کښې د زمکې شلیدل په مشرق کښې ⑧ په مغرب کښې ⑨او په جزیره عرب کښې ⑩او د عدن نه یو اور راوتل چه دا به خلق شړي او یو طرفته به ئې راجمع کړي.هغوئ به دې اور سره شپه هم تیروي او د غرمې به هغوئ آرام هم کوي،([4]). دا حدیث مبارك مسلم او سنن کښې دې([5]). او حضرت حذیفه بن اسید غفاری ﷺ نه موقوفاً هم مروی دې.والله اعلم.

نود نبی کریم ﷺ د امتواترحدیث مبارك چه دابوهریره ﷺ،حضرت ابن مسعود ﷺ،حضرت عثمان بن العاص ﷺ،حضرت ابوامامه ﷺ،حضرت نواس بن سنان ﷺ،حضرت عبدالله بن عمر ﷺ،حضرت مجمع بن جاریه ﷺ،حضرت ابوشریحه ﷺ،حضرت حذیفه اسید ﷺ نه مروی دی.دا صفا دلالت کوي چه حضرت عیسی ﷺ به نازلیږي.دې سره داهم بیان دې چه څنګه به نازلیږي او چرته به نازلیږي،او په

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الفتن باب خروج الدجال ومکثه فی الارض :::الخ : ٢٩٤٠.

[2]) احمد : ٤٢٠/٣، عبدالرزاق : ٢-٨٣٥.

[3]) ترمذی کتاب الفتن باب ماجاء فی قتل عیسی بن مریم الدجال : ٢٢٤٤، وهو حسن.

[4]) احمد : ٦/٤، وهو صحیح ابن حبان : ٦٨٤٣، مسند حمیدی : ٨٢٧، طبرانی : ٣٠٣٣، شرح السنة : ٤٢٥٠ الاحاد والمثانی : ١٠١٣، مسندالطیالسی : ١٠٦٧ ددې روایت سند صحیح دې.

[5]) صحیح مسلم کتاب الفتن باب فی الایات التی تکون قبل الساعة: ٢٩٠١، ابوداود : ٤٣١١، ترمذی : ٢١٨٣، السنن الکبری للنسائی : ١١٣٨٠،ابن ماجه : ٤٠٤١ مختصرا.

کوم وخت کښې به نازليږي، يعني د سحر مونځ د اقامت په وخت کښې د شام ښار د دمشق شرقي مناره باندې به راکوزيږي.په هغه زمانه کښې يعني ٧٤١ هجري کښې د جامع اموي ميناره ډيره مضبوطه جوړه کړې شوې ده. ځکه چه دا په اور سيزلې شوې ده او دا اور لګولو والا غالبا ملعون عيسايان وو. څه معلومه ده چه هم دا هغه ميناره وي چه په دې به حضرت مسيح ؑ نازليږي.او خنزيران به قتل کوي او صليب به ماتوي،اوجزيه به ختموي،او د دين اسلام نه سوا به بل دين نه قبلوي،لکه څنګه چه د بخاري اومسلم شريف احاديثو کښې تير شو. چه په هغې کښې صادق اومصدوق پيغمبر ﷺ دا خبر ورکړې دې،او دا ئې ثابت کړې دی،چې دا به هغه وخت وي چه کله ټولې شك شبهې ختمې شی،او خلق به د حضرت عيسى ؑ په ماتحتئ کښې اسلام قبول کړي.لکه څنګه دې آيت مبارك کښې فرمان دې چه ﴿وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ يو قرات کښې ﴿لَعِلْمٌ﴾ دې يعني د مسيح ؑ نازليدل د قيامت يو غټه نښه ده يعني د قيامت نزديکت.ځکه چه حضرت عيسى ؑ به د دجال راتلو نه پس تشريف راوړي. اوهغه به قتل کوي لکه څنګه چه صحيح حديث مبارك کښې دی چه الله ﷻ هيڅ يو بيماري داسې نه ده پيدا کړې چه د هغې علاج نه وي(١).هم د حضرت عيسى ؑ په وخت کښې به ياجوج او ماجوج راوزي او د دوی ؑ دعا سره به الله ﷻ هغوئ ختم کړي.قران پاك د دوی د راوتلو هم خبر ورکوی چه ﴿وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ يو قرات کښې ﴿لَعِلْمٌ﴾ دې يعني د مسيح ؑ نازليدل د قيامت يو غټه نښه ده يعن﴿حَتّٰٓى اِذَا فُتِحَتْ يَاْجُوْجُ وَمَاْجُوْجُ وَهُمْ مِّنْ كُلِّ حَدَبٍ يَّنْسِلُوْنَ ۝ وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ﴾ يعني دهغوئ راوتل هم د قيامت د قرب دليل دې.

**دعيسى ؑ صفتونه**:- اوس د حضرت عسى ؑ صفتونه واورئ.رومبی دوؤ حديثونوکښې د حضرت عيسى ؑ صفتونه بيان شوی دی.بخاري او مسلم شريف کښې دی چه حضرت موسى ؑ سره مې ملاقات اوکړې شو،هغوئ درميان قد وو .صفا ويښتو والا وو. لکه څنګه چه د شنو قبيلې خلق وي. اوحضرت عيسى ؑ سره مې هم ملاقات اوکړو ،هغه سورسپين،او ميانه قد والا وو. داسې معلوميدل لکه چه اوس د حمام نه راوتلې وی.ما حضرت ابراهيم ؑ هم اوليدل،هغه بالکل ځما په شان وو.(٢) د بخاري يو بل روايت کښې دی چه حضرت عيسى ؑ سورسپين،ګالګوتې ويښتو والا او پلن او اوږد وو. حضرت موسى ؑ غنم رنګئ او بدن ئې نيغ او نيغ ويښتووالا وو لکه د زطئ قبيلې خلق چه وی (٣). دا شان دوی ؑ ددجال صورت هم بيان کړې دې،د هغه ښئ سترګه کانړئ ده،لکه راوتلې انګور. نبی کريم ﷺ فرمائی چه ماته کعبې سره خوب کښې اوخودلې شو. چه يو غنم رنګئ دې اود هغه د سرزلفې تراوږو پورې وې.صفا ويښتو والا دې او د هغه د سر نه اوبه څڅيدلې،د دوؤ سړو په اوګو ئې لاسونه ايښودی اوطواف ئې کولو. ما تپوس اوکړو چه دا څوك دی ؟ نو ماته اووئيلې شو چه دا مسيح بن مريم ؑ دې.ما ده پسې يو سړې اوليدو چه د هغه ښئ سترګه کانړئ وه،د ابن قطن په شان وو،ويښته ئې ډير سخت وو ،هغه هم د دوؤ سړو په اوګو لاسونه اچولی وو اود بيت الله شريف طواف ئې کولو. ما تپوس اوکړو چه دا څوك دی نو ماته اووئيلې شو چه د مسيح دجال دې.(٤)
بخاري شريف يو بل روايت کښې دی چه حضرت عبدالله رضی الله عنه نه مروی دې په الله قسم چه نبی کريم ﷺ دا نه دی وئيلی چه د حضرت عيسى ؑ شکل سور دې.بلکه نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چه هغه غنم

---

١) صحيح بخاری کتاب الطب باب ماانزل الله داء الاانزال
٢) صحيح بخاری کتاب احاديث انبياء باب قول ا لله تعالى (واذکر فی الکتاب مريم اذانتبذت من اهلها....) :٣٤٣٨، صحيح مسلم: ١٦٨.
٣) صحيح بخاری حواله سابق : ٣٤٣٩،صحيح مسلم : ١٦٩.
٤) صحيح بخاری کتاب احاديث انبياء باب قول ا لله تعالى (واذکر فی الکتاب مريم اذانتبذت من اهلها....) : ٣٤٤٠صحيح مسلم: ١٦٩.

رنګې دي .بيا نې پورته حديث مبارك بيا ن كړل.حضرت زهري رحمه الله فرماني چه ابن قطن د قبيله خزاعه يو سړې وو چه په جاهليت كښې مړ شوې وو(١)
هغه حديث مبارك تير شويدې په كوم كښې چې بيان دې چه مسيح عليه السلام به د خپل نزول نه پس څلويښت كاله ژوندې وى.بيا به وفات شى.او مسلمانان به د دوى د جنازې مونځ ادا كوى(٢) خود مسلم يو حديث مبارك كښې دى چه حضرت عيسىٰ عليه السلام به اووه كاله پورې وى والله اعلم.د ابن عساكر اوبعضو قول دې چه هركله دوى عليه السلام آسمانونو ته لاړو نو په هغه وخت كښې د دوى عليه السلام عمر يو نيم كال وو،د ابالكل غلط دى،او رد قول دې. حافظ ابوالقاسم رحمه الله خپل تاريخ كښې د بعضو سلفو نه هم دا نقل كړى دى چه دوى عليه السلام به د نبى كريم ﷺ حجره مباركه كښې نبى كريم ﷺ سره دفن كيږى. (٣)الله اعلم.

بيا ارشاد دې چه دوى به د قيامت په ورځ په هغوئ ګواه وى،يعنى په دې خبره چه د الله ﷻ رسالت دوى رسولې وو.اوپخپله دوى د الله تعالى د عبوديت اقرار كړې وو لكه د سورة مائده په آخر كښې دى چه ﴿واذقال الله﴾ نه تر ﴿الحكيم﴾ پورې دې.يعنى د دوى دګواهئ هلته ذكر شته دې او د الله ﷻ د سوال.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَبِظُلْمٍ | مِّنَ الَّذِيْنَ | هَادُوْا | حَرَّمْنَا |
| انو په سبب دظلم | دهغه كسانو | چي يهوديان شوي دي | حرام كړل مونږه |
| نود هغه كسانو دظلم اوزياتي په وجه چي يهوديان شوي دي | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِمْ | طَيِّبٰتٍ | اُحِلَّتْ | لَهُمْ | وَبِصَدِّهِمْ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ |
| په دوئ باندي | پاك خيزونه | هغه چي حلال كړې شوي وؤ | ددوئ د پاره | اوپه سبب دمنع كولو د دوئ | دلارې دالله نه |
| مونږ په هغوئ پاكيزه حلال شوي رزقونه حرام كړل | اوپه دې وجې چې دالله ﷻ دلارې نه ډير | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَثِيْرًا ﴿١٦٠﴾ | وَّاَخْذِهِمُ | الرِّبٰوا | وَقَدْ نُهُوْا | عَنْهُ |
| ډير | او په سبب داخستلو ددوئ | سود لره | او حال دا چي منع كړې شوي وؤ دوئ | ددغه سود نه |
| خلق منع كوي | اوپه دې وجه چې سودونه اخلي | حالانكه دوئ دسود اخستونه منع كړې شوي وؤ | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاَكْلِهِمْ | اَمْوَالَ النَّاسِ | بِالْبَاطِلِ ط | وَاَعْتَدْنَا |
| اوپه سبب دخوړلو ددوئ | مالونود خلقولره | په باطلې طريقې سره | اوتيار كړې دي مونږه |
| اوپه دې وجه چې دخلقو مالونه په ناحقه خوري | اومونږ په دوی كښي د كافرانو دپاره دردناك عذاب | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِلْكٰفِرِيْنَ | مِنْهُمْ | عَذَابًا | اَلِيْمًا ﴿١٦١﴾ | لٰكِنِ الرّٰسِخُوْنَ | فِي الْعِلْمِ |
| دپاره دكافرانو | ددوئ نه | عذاب | دردناك | اليكن كوم خلق چي پاخه دي | په علم كښي |
| تيار كړې دي | ......خوپه دوئ كښي چي څوک په عمل كښي پاخه شوي دي | | | | |

---

١) صحيح بخارى حواله سابق : ٣٤٤١، صحيح مسلم: ١٧١ ،بدون قول الزهرى.
٢) ددې روا يت تخريج د آيت ١٥٩ لاندې تير شوې دې.
٣) مجمع الزوائد : ٢٠٦/٨، ترمذى كتاب المناقب باب سلوا الله لى الوسيلة : ٣٦١٧ وسنده حسن.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنۡهُمۡ | وَالۡمُؤۡمِنُوۡنَ | يُؤۡمِنُوۡنَ | بِمَآ | اُنۡزِلَ | اِلَيۡكَ |
| ددوی نه | اومومنان خلق | هغوئ ایمان راوړی | په هغه تعلیم | چي نازل کړې شوې دې | تاته |

او مومنان دی | هغوئ په هغه کتاب هم ایمان راوړی کوم چه په تاباندې نازل شوې دې .............

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَآ | اُنۡزِلَ | مِنۡ قَبۡلِكَ | وَالۡمُقِيۡمِيۡنَ | الصَّلٰوةَ | وَالۡمُؤۡتُوۡنَ | |
| او په هغه | چي نازل کړې شوې دې | مخکښي ستانه | اوقائیمونکی | مانځه لره | او ورکونکی | |

او په هغه (کتابونو) هم ایمان راوړی | چي ستانه وړاندې نازل شوی دی | اومونځونه کوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الزَّكٰوةَ | وَالۡمُؤۡمِنُوۡنَ | بِاللّٰهِ | وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ ؕ | اُولٰٓئِكَ | |
| زکاة لره | اوایمان راوړونکی | په الله | او په ورځ د آخرت | دغه ټول کسان چي دی | |

اوزکوة ورکوی | اوپه الله ﷻ اوپه ورځ د آخرت ایمان لری | ........................دغه شان کسانو ته به

| | | |
|---|---|---|
| سَنُؤۡتِيۡهِمۡ | اَجۡرًا عَظِيۡمًا ﴿١٦٢﴾ | |
| زر به ورکړو مونږ هغوئ له | اجر | لوئ |

مونږ ډیرلوئ اجرورکړو |

قوله تعالى:: فَبِظُلۡمٍ مِّنَ الَّذِيۡنَ هَادُوۡا حَرَّمۡنَا

**د سزا په طور الله تعالى حلال څزونه حراموی:-** ددې آیت مبارك دوه مطلبونه کیدیشی. یو دا چه دا حرمت قدرتی وی یعنی مقدرات الهی کښې دا وو چه دا خلق به خپل کتاب بدل کړی او په دې کښې به تحریف اوکړی. او حلال څیزونه به په خپل ځان حرام کړی. صرف د خپل تشدد او خپلې سختئ په وجه. دویم دا چه حرمت شرعی دې یعنی د تورات د نزول نه مخکښې چه بعضې څیزونه په دوی حلال وو او د تورات راتلو په وخت کښې هغه د دوی د بدکارو په وجه هغه حرام کړې شو. لکه فرمان دې چه ﴿كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيۡٓ اِسۡرَآءِيۡلَ﴾ الخ یعنی د اوښ غوښه او پئ چه حضرت اسرائیل عليه السلام په خپل ځان حرام کړی وو. ددې نه سوا ټول طعامونه د بنی اسرائیلو دپاره حلال وو بیا تورات کښې په دوی بعضې څیزونه حرام شو لکه سورة انعام کښې فرمائی چه ﴿وَعَلَى الَّذِيۡنَ هَادُوۡا حَرَّمۡنَا﴾ الخ، اومونږ په یهود هر نوك والا څیز حرام کړو. او د غوښانو او ګډو چیلو وازګه چه بیله وی مونږ په دوی حرامه کړه. دا ځکه چه دوی باغیان او د رسول مخالفت کونکی او اختلاف کونکوی وو. نودلته هم بیانیږی چه د دوی د ظلم او زیاتئ په وجه او د الله ﷻ د لارې نه یو طرفته کیدو په وجه او نورو ته د دهوکه کولو په وجه چه د دوی پخوانې عادت وو، د رسولانو د دښمنئ په وجه، چې هغوی به ئې قتلول، هغوی به دروغژن ګنړل، هغوی سره به ئې مقابله کوله، او رنګ په رنګ حیلې او بهانې به ئې تلاش کولې، سود به ئې خوړل اودا حرام وو، او نور دغه شان د خلقو مالونو وهلو پسې شوی وو. او دا به دوی ته معلومه وه چه الله تعالى دا حرام کړی دی. دا به ئې ښه په زړورتیا کول. په دې وجه په هغوئ حلال څیزونه هم حرام شو. ددې کفارو دپاره دردناك عذاب تیار شوې دې.

قوله تعالى:: لٰكِنِ الرّٰسِخُوۡنَ فِى الۡعِلۡمِ مِنۡهُمۡ

**په اهل کتابو کښې د مضبوط ایمان خاوندان:-** خودوی کښې چه کوم پوخ ایمان والا او په ریښتیا ئې اسلام قبول کړې دې. ددې جملې تفسیر سورة آل عمران کښې تیر شوې دې. او چه کوم ایمان دار دی دوی خو قران پاك او ټول کتابونه منی. حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه دې نه مراد حضرت

عبدالله بن سلام، حضرت ثعلبه بن سعید، حضرت زید بن سعید، اوحضرت اسید بن عبید ﷺ دی چه
اسلام ئې قبول کړې وو. او نبی کریم ﷺ ئې نبی منلې وو.

**د قراءت وضاحت:-** مخکښې والا جمله ﴿وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَوٰةَ﴾ د ټولو امامانو قراءت کښې او د ابی بن کعب مصحف کښې داشان دی، خو د علامه ابن جریر رحمه الله د ابن مسعود ﷺ په مصحف کښې ﴿وَالْمُقِيمُونَ الصَّلَوٰةَ﴾ دې صحیح قرات ړومبې دې، چه کومو خلقو دې ته د کتاب غلطی وئیلې ده د هغوئ قول غلط دې. بعضې خو وائی چه د دې نصبی حالت د مدح په وجه سره دې لکه ﴿وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَوٰةَ﴾ کښې چه دی، او کلام عرب کښې او شعرونوکښې برابر قاعده موجود ده. بعضې وائی چه دا په ړومبئ جمله عطف دې یعنی ﴿وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوا وَالصَّابِرِينَ﴾ اود عربو په کلام کښې او په اشعارو کښې دا قاعده برابرموجود ده بعضې وائی چه دا په راروانه جمله باندې عطف دې یعنی ﴿يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ﴾ یعنی هغوئ په ده هم ایمان راوړی او په مونځ قائمولو هم د دوی ایمان دې یعنی دا واجب او برحق منی او یا دا مطلب دې چه د دې نه مراد فرشتې دی یعنی هغوئ په قران باندې، او د الله تعالی په کتابونو باندې او فرشتو باندې ایمان راوړی. امام ابن جریر همدا خوښوی، خو په دې کښې د سوچ ضرورت دې، والله اعلم.

قوله تعالی: وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَوٰةَ وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ

**د اهل کتابو مؤمنانو نور صفتونه:-** او زکوة ورکونکی دی، یعنی د مال او ځان زکاة ورکوی دا دواړه مراد کیدیشی، والله اعلم. او صرف الله ﷻ د عبادت لائق دې، او د مرګ نه پس ژوند باندې هم د دوی ایمان دې چه د هر نیك او بد عمل جزا اوسزا به ورته ملاویږی. همدا خلق دی چه دوی ته مونږ اجر عظیم ورکوو. اوجنت به ورکوو.

| |
|---|
| إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا |
| بیشکه مونږه \| وحی کړې ده \| تاته \| لکه څنګه چې |
| انې پیغمبره مونږ تاته هغه شان وحی کړې ده \| لکه څنګه چې مو |
| أَوْحَيْنَا إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ |
| وحی کړې وه مونږه \| نوح ﷺ ته \| اوپیغمبرانو ته \| روستو دهغه نه \| اووحی اوکړه مونږه \| ابراهیم ﷺ ته |
| نوح ﷺ اودهغه نه پس نوروپیغمبرانو ته وحی کړې وه \| ..............اومونږ ابراهیم ﷺ ته |
| وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَعِيسَىٰ |
| اواسماعیل ﷺ \| اواسحاق ﷺ \| او یعقوب ﷺ ته \| او اولاد (دیعقوب ﷺ) ته \| او عیسی ﷺ ته |
| اواسماعیل ﷺ ته، او اسحاق ﷺ ته، اویعقوب ﷺ ته او د دوی اولاد ته او عیسی ﷺ ته |
| وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ وَسُلَيْمَانَ ۚ وَآتَيْنَا دَاوُودَ |
| اوایوب ﷺ ته \| اویونس ﷺ ته \| او هارون ﷺ ته \| اوسلیمان ﷺ ته \| او ورکړو مونږ \| داود ﷺ ته |
| اوایوب ﷺ ته، او یونس ﷺ ته، او هارون ﷺ ته او سلیمان ﷺ ته وحی کړې وه \| اومونږ داود ﷺ ته |
| زَبُورًا ۝ وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَاهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا |
| زبور \| او نورهغه رسولانو ته \| چې بیان کړې دي مونږ دهغوئ \| تاته \| مخکښې ددې نه \| او هغه رسولانو ته |
| زبور ورکړې وو \| اوهغه پیغمبرانوته موږ وحی لیږلې وه \| چې مخکښې موتا ته دهغوئ ذکر کړې دې |

| |
|---|
| لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ۚ وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا ﴿١٦٤﴾ |
| چې نه دي کړي مونږ بیان دهغوئ\| تاته \| اوخبرې اوکړې الله\|دموسی سره\| په خبروکولوسره |
| اودهغې پیغمبرانو چې دهغوئ ذکر مودرته نه دې کړې \| اوالله ﷻ موسی ﷺ سره خاص خبرې کړې دي |
| رُسُلًا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ |
| (راولیږل مونږ)رسولان\|زیری ورکونکي\|اویرونکي\|دپاره ددې چې نه وي\|خلقو لره\| په الله باندې |
| داټول پیغمبران(نیکانوته)زیرې ورکونکي اود(بدو) نه ویرونکي رالیږلي شوي ووا چې دپیغمبرانو راتلو نه پس خلقو |
| حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٦٥﴾ |
| څه دلیل\| روستو \| درسولانو نه\| او دې الله \| غالب قوي\| حکمت والا \| |
| سره دالله په وړاندې هیڅ عذر پاتې شي\|اوالله ﷻ غالب او صاحب د حکمت دی\| |

**قوله تعالى:** إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَىٰ نُوحٍ

**یو شان نزول:** - حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ فرمائي چه سکن او عدي بن زید اووئیل چه انې محمد ﷺ مونږ نه منو چه حضرت موسی ﷺ نه پس الله ﷻ په یو انسان څه نازل شوي دي (١) په دې باندې دا آیتونه نازل شو. حضرت محمدبن کعب قرظي ﷫ فرمائي چه کله آیت ﴿يَسْأَلُكَ أَهْلُ الْكِتَابِ﴾ پورې نازل شو اود یهودو د بدوعملونو شیشه د دوی مخکښې کیخودې شوه نو هغوئ صفا اووئیل چه په یو انسان الله ﷻ یو کلام نه دې نازل کړې نه په حضرت موسی ﷺ او نه په حضرت عیسٰی ﷺ او نه په بل نبي ﷺ باندې.نبي کریم ﷺ په هغه وخت کښې تکیه لګولې ناست وو،نبي کریم ﷺ خپله حوبه (هغه کپړه په کومه چې د کیناستو په وخت پنډۍ او خیټه اوتړي او ځان راټینګ کړي یعني نبي کریم ﷺ په دغه وخت کښې احتبا کړې وه) او وې فرمائیل الله تعالی په هیڅ چا کتاب نه دې نازل کړې؟ نوالله ﷻ آیت مبارك ﴿وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ﴾ نازل کړو،خو دا قول د سوچ کولو قابل دې ځکه‌چه دا آیت مبارك په سورة انعام کښې دې .او دا مکي دې او د سورة نساء پورتني آیت مبارك مدني دې .اودا د هغې رد کښې دې،څه وخت چه هغوئ وئیلي وو چه آسمان نه یو کتاب تاسو راوړئ.نود دې جواب کښې اوفرمائیلې شو چه حضرت موسی ﷺ نه هغوئ د دې نه هم زیات لوئې سوال کړې وو. بیا ئې د هغوئ عیبونه بیان کړل،د دوی روببي او اوسني عیبونه ئې ښکاره کړل،

**د وحی کول:** - بیا فرمائي چه الله ﷻ خپل بنده او رسول حضرت محمد ﷺ طرفته هم دا وحی نازله کړې وه. لکه څنګه چې مو نورو نبیانو علیهم السلام طرفته کړې وه. زبور د هغه کتاب نوم دې کوم چې په حضرت داود ﷺ باندې نازل شوې وو. د دې نبیانو علیهم السلام قصې به په سورة قصص کښې انشاء الله بیانوو.

**د پیغمبرانو شمار:** - بیا فرمائي چه ددې آیت یعنی مکي سورة نه مخکښې دډیرو نبیانو علیهم السلام ذکر تیر شوې دې.او د ډیرو نه دې شوې.د کومو نبیانو علیهم السلام نومونه چه د قران پاك لفظونوکښې راغلي دي هغه دادي.① حضرت آدم ② ﷺحضرت نوح ③ ﷺحضرت ادریس ④ ﷺحضرت هود ﷺ،⑤حضرت ابراهیم ﷺ،⑥حضرت لوط ﷺ ⑦، حضرت اسماعیل ﷺ ⑧،

(1) الطبری : ٩/ ٤٠٠. ددې سند کښې محمد بن ابی محمد مجهول راوی دې.(الضعفاء والمتروکین لابن جوزی: ٩٢/٣ رقم: ٣١٧٩).

حضرت اسحاق ﷺ ⑨، يعقوب ﷺ، ⑩حضرت يوسف ﷺ ⑪، حضرت شعيب ﷺ ⑫،حضرت موسى ﷺ ⑬ حضرت هارون ﷺ ⑭حضرت يونس ﷺ ⑮حضرت داوٌد ﷺ ⑯حضرت سليمان ⑰حضرت اليسع ﷺ ⑱حضرت زكريا ﷺ ⑲ حضرت عيسى ﷺ ⑳حضرت يحيى ﷺ.او په قول د اكثرو مفسرينو حضرت ذوالكفل ﷺ،حضرت ايوب ﷺ او حضرت الياس ﷺ او د دې ټولو سردار حضرت محمد دې.او نو ډيرداسې رسولان هم دي چه د هغوئ ذكر قران پاك كښې نه دې شوې.

**د پيغمبرانو د شمير متعلق حديث**:- هم په دې وجه د نبيانو او مرسلينو تعداد كښې اختلاف دې.دې باره كښې مشهور حديث مبارك د حضرت ابوذر نه دې چه هغه په تفسير ابن مردويه كښې داسې دې چه ما د نبى كريم ﷺ نه تپوس اوكړو.چه د نبيانو عليهم السلام تعداد څومره دې ؟ نو وې فرمائيل چه يو لاك څليرشت زره.ما تپوس اوكړو چه په دوى كښې رسولان څومره دى ؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه درې سوه ديارلس،ډيرلوئې تعداد. ما بيا تپوس اوكړو چه د ټولو نه مخكښې څوك دې ؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه حضرت آدم ﷺ.ما اووئيل چه هغه هم رسول وو ؟ نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه آو،الله تعالى هغه په خپل لاس پيدا كړو ،بيا ئې په هغه كښې خپل روح پوك وهلو ،بيا ئې درست كړو او بيا ئې صحيح كړو.بيا نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه انې ابوذر څلور پيرئنى دى.حضرت آدم ﷺ،حضرت شيث ﷺ،حضرت نوح ﷺ او حضرت خنوخ ﷺ.اود ده مشهور نوم ادريس ﷺدې.هم ده خپل قلم سره خط اوليكلو.څلور عربيان دى.حضرت هود ﷺ،حضرت صالح ﷺ،حضرت شعيب ﷺ او ستاسو نبى حضرت محمد ﷺ،اې ابوذر ! بنى اسرائيلو كښې ټول نه ړومبى نبى حضرت موسى ﷺ دې .او آخرى نبى حضرت عيسى ﷺ دې.ټولو نبيانو عليهم السلام كښې ړومبې نبى حضرت آدم ﷺ دې او آخرى نبى ستاسو نبى حضرت محمد ﷺ دې (1)

**په داسې قسم رواياتو باندې د حافظ** رحمه الله **تبصره**:- دا پوره حديث كوم چې ډير اوږد دې حافظ ابوحاتم رحمه الله په خپل كتاب الانواع والتقاسيم كښې روايت كړې دې او په دې ئې د صحت نشان لګولې دې.خو د دوى خلاف امام ابوالفراج ابن جوزى رحمه الله دا بالكل موضوع ګرځولې دې. او ابراهيم بن هاشم رحمه الله د دې يو راوى باندې د وضاع كيدو وهم كوى.حقيقت دا دې چه دآئمه تعديل او جرح كښې ټولو په ده باندې ددې حديث په وجه كلام كړې دې.والله اعلم.

خودا حديث مبارك بل سند سره حضرت ابو امامه ﷺ نه هم مروى دې .(2)اوپه هغې كښې معان بن رفاعه سلامى ضعيف دې.او على بن يزيد هم ضعيف دې.او قاسم بن عبدالرحمان هم ضعيف دې.

او يو حديث مبارك ابويعلى كښې دې چه الله تعالى اته زره نبيان ليږلى دى،څلور زره بنى اسرائيلو طرفته او څلور زره نورو خلقو طرفته (3). دا حديث مبارك هم ضعيف دې او دې كښې زيد اود ده استاذ قاشى هم ضعيف دې.والله اعلم.د ابويعلى يو بل حديث مبارك كښې دى چه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه اته زره نبيان عليهم السلام خما رونړه تير شوى دى.دوى نه پس حضرت عيسى ﷺ راغلو (4)او يو حديث مبارك كښې دى چه خه داته زره نبيانو عليهم السلام نه پس راغلې يم.او په دې كښې څلور زره خو بنى اسرائيلو كښې وو .(5)دا حديث مبارك دې سند سره غريب ضرور دې خو د دې

---

(1) ابن حبان : ٣٦١، وسنده ضعيف جدا حلية الاولياء : ١٦٦/١،

(2) احمد: ٢٦٥/٥، ٢٦٦، طبرانى : ٧٨٧١، مجمع الزوائد : ١٥٩/١،

(3) مسند ابى يعلى : ٤١٣٢. مجمع الزوائد: ٢١٠/٨،

(4) مسند ابى يعلى : ٤٠٩٢. مجمع الزوائد : ٢١١/٨.)

(5) حلية الاولياء : ١٦٣/٣،

تول راویان معروف دی،او سند کښې ئې هیڅ ویره نشته دې،د احمد بن طارق نه سوا خکه چې د دوی باره کښې ماته هیڅ عدالت یا جرح نه ده ملاؤ شوې،والله اعلم.

**د یو لاکهه څلیرشت زره پیغمبرانوتعداد روایت:** - حضرت ابوذر غفاری ؓ والا اوږد حدیث مبارك د نبیانو علیهم السلام باره کښې دې هغه هم واورئ. دوی ؓ فرمائی چه څه مسجد نبوی ﷺ ته راغلم،نبی کریم ﷺ یواځې مسجد نبوی کښې ناست وو. څه هم نبی کریم ﷺ سره کیناستم ما اوونیل یارسول الله تاسو مونږ ته د مونځ کولو حکم کړې دې نو مونځ څه څیز دې ؟نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا بهترڅیزدې نو که زیات مونځ کوې اوکه کم مونځ کوې ما اوونیل چه یارسول الله ﷺ کوم اعمال بهتر دی.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په الله تعالی ایمان راوړل،د هغه لار کښې جهاد کول.ما اوونیل یارسول الله ﷺ کوم یو مومن افضل دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ټولو نه ښه اخلاقووالا.ما اوونیل یارسول الله ﷺ کوم یو مسلمان غوره دې،نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د هغه دلاس او ژبې نه نور مسلمانان سلامت وی.ما تپوس اوکړو چه کوم یو هجرت افضل دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بدعملونه پرینبودل.ما تپوس اوکړو چه کوم یو مونځ بهتر دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوږد قنوت والا. ما تپوس اوکړو چه کومه یوه روژه بهتر ده ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه فرض کفایت کونکې دی اوالله تعالی سره د دې ډیر اجر او ثواب دې .ما تپوس اوکړو چه کوم یو جهاد افضل دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د یو کس آس هم زخمی کړې شی او دې پخپله هم زخمی شی .ما تپوس اوکړو چه کوم یو غلام آزادول زیات افضل دی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د کوم یو قیمت زیات وی او مالك ته زیات خوښ وی .ما تپوس اوکړو چه کومه یوه صدقه افضله ده ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د کم مال والا صدقه کولوکښې کوشش کول او دا پټه ورکول.ماتپوس اوکړو چه قرآن پاك کښې اوږد آیت کوم یو دې ؟ حضرت نبی کریم صلی الله بیا علیه واله وسلم اوفرمائیل چه آیت الکرسی.بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ائې ابوذر ! اووه آسمانونه د کرسئ مقابله کښې داسې دی لکه یو حلقه د یو میدان مقابله کښې.او دعرش فضیلت په کرسئ داسې دې لکه دوسیع میدان په حلقه باندې.ما اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! انبیاء علیهم السلام څومره دی ؟نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه یو لاك څلریشت زره. ما اوونیل چه په دوی کښې رسولان څومره دی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه درې سوه دیارلس یو ډیر غټ جماعت.ما تپوس اوکړو چه ړومبی څوك وو؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه حضرت آدم ؑ.ما اوونیل چه هغه هم رسول او نبی وو؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آؤ الله تعالی هغه خپل لاس سره پیدا کړې وو ، او خپل روح ئې هغه کښې پوك وهلو او هغه ئې صحیح جوړ کړو. بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واورئ څلور پیرئ دی. ❶ حضرت آدم ؑ ❷ حضرت شیث ؑ ❸ حضرت خنوخ ؑ او هم دا حضرت ادریس ؑ دې او هم دوی ؑ ټولو نه مخکښې قلم سره لیکل اوکړل ❹ او حضرت نوح ؑ.او څلور عرب دی. ❶ حضرت هود ؑ ❷ حضرت شعیب ؑ ❸ حضرت صالح ؑ ❹ او ستاسو نبی ﷺ.ټولونه مخکښې رسول حضرت آدم ؑ دې او ټولو نه آخری رسول حضرت محمد ﷺ دې.ماتپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ الله تعالی څومره کتابونه نازل کړی دی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه یو سل څلور.حضرت شیث ؑ باندې پنځوس صحیفې او حضرت خنوخ ؑ باندې دیرش صحیفې حضرت ابراهیم ؑ باندې لس صحیفې او حضرت موسی باندې تورات،حضرت عیسی ؑ باندې انجیل او حضرت داؤد ؑ باندې زبور او حضرت محمد ﷺ باندې فرقان. ما اوونیل یارسول الله ﷺ ! دحضرت ابراهیم ؑ صحیفو کښې څه وو؟

**د ابراهیم د صحیفو نصیحتونه:** - نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په هغې کښې دا وو ائې بادشاه مسلط په تا څه اوشو،ته خو غرورکښې مبتلا شوې،ماته مال جمع کولو او یوځائې کولو دپاره نه وې لیږلې بلکه

دې دپاره مې لیږلې وې چه ته د مظلوم اواز خما نه لرې کړې (یعنې چه هغه فریاد اونه کړي) که هغه راورسي نو خه به هغه نه رد کوم اګر چه هغه مظلوم کافر ولې نه وی .او په هغې کښې مثالونه هم وو عاقل باندې لازم دی چه هغه خپل وختونه تقسیم کړې،یو وخت کښې د خپل نفس حساب کوی په وخت کښې دې د الله ﷻ صفتونو کښې غورکوی،یو وخت کښې دې د خپل معاش فکر کوی .عاقل ته پکار دی چه دریو څیزونو نه سوا خپل ځان نورو څیزونو کښې نه اخته کوی.یا خو د آخرت توښه یا حصول معاش،یا غیر حرام څیزونو سره سرور او لذت.عاقل ته پکار دی چه خپل وخت ته ګوری او خپل کار کښې مشغول اوسی .د خپلې ژبې حفاظت کوی،چه کوم سړې خپل قول خپل فعل سره یوشان کوی،هغه به ډیرې کمې خبرې کوی او دا به تاسو ته نفع درکوی.

**دموسی د صحیفو عبرتونه:-** ما تپوس اوکړو چه د حضرت موسی ﷺ صحیفو کښې څه وو؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه سراسر عبرتونه وو. ماته تعجب دې په هغه سړی چه ده ته د مرګ پته وی او بیا هم دې مست وی،په تقدیر یقین ساتی او بیا هم هانې هانې کوی،د دنیا بې ثباتی ورته معلوم وی اوبیا هم دې په دې اطمینان کوی،د قیامت د ورځې حساب ورته پته وی اوبیا هم دې بې عمله وی .

**د پخوانو کتابونو مضامین په قران کښې:-** ما تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ د مخکښې نبیانو کتابونو کښې چه څه وو دهغې نه څه په دې کتاب کښې شته دې چه کوم خونږ لاس کښې دې ؟نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اووایه ﴿قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى﴾ د سورة آخره پورې.

**څو اهم نصیحتونه:-** ما اووئیل چه یارسول الله ﷺ ماته وصیت اوکړئی .نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه قران پاك او ذکر الله کښې مشغول اوسه،دا به ستا په آسمانونو کښې د ذکرکولو او زمکه کښې د نور باعث وی .ما بیا اووئیل یارسول الله ﷺ ! نور هم اوفرمائې.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خبردار ! ډیر مه خانده خکه چه دا زړه مړ کوی،اود مخ نور لرې کوی .ما اووئیل چه نور زیات وصیت راته اوکړئی .نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه جهاد کښې زیات مشغول اوسه،خما د امت رهبانیت درویشی ده. ما اووئیل چه څه نور وصیت اوکړئی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د نیکئ د خبرې نه سوا خپله خوله بند ساته .دې سره شیطان تښتی،او د دینی کارونو تائید به وی .ما اوئیل چه څه نور اوفرمائې .نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خپل ځان نه لاندې درجې والا خلقو ته ګوره،او د خپل ځان نه اوچتې درجې والا خلقوته نظر مه کوه. دې سره به ستاپه زړه کښې د الله ﷻ د نعمتونو قدر وی.ما اووئیل چه ماته نور زیات نصیحت راته اوکړی.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مسکینانو سره محبت کوه او هغوئ سره کینه. دې سره به تاته د الله تعالی نعمتونه لوئی معلوم شی.ما اووئیل چه نور وصیت راته اوکړئی،نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه رشته دارو سره تعلق ساته اګر چه هغوئ تاسره تعلق نه ساتی. مااووئیل چه نور څه وصیت اوفرمائې .نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه حق وایه اګر چه تراخه وی. ما د نور وصیت غوښتنه اوکړه نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د الله ﷻ باره کښې د ملامته کولو د ملامتیا ویره مه کونی .ما اووئیل چه یارسول الله څه نور اوفرمائې .نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په خپلو عیبونو نظر اچوه او د نورو عیبونه مه لټوه .بیا نبی کریم ﷺ خما په سینه لاس مبارك کیخود او وې فرمائیل چه اې ابوذر!د تدبیر برابر هیڅ عقل مندی نشته دې او حرامو نه د بچ کیدو برابر هیڅ پرهیزګاری نشته دې ،او د ښه اخلاقو پشان هیڅ نسب نشته دې . مسند احمد کښې دا حدیث مبارك څه کمی سره دې (١)

**د دجال نورې نښې:-** حضرت ابوسعید خدری ﷺ تپوس کوی چه آیا خارجیان هم د دجال قائل دی ؟ خلقو اووئیل چه نه .وې فرمائیل چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه څه د زرو بلکه دې نه هم د زیاتو نبیانو ختمیدو والا یم.هر نبی خپل امت د دجال نه ویرولو.خو ماته الله ﷻ هغه علامت خودلې دې چه

---

(١) احمد : ١٧٨/٥.

هغه نې بل ځاته نه دی خودلی وې فرمائیل واوره ! هغه کانړې دې او رب داسې نښې کیدې .د هغه نبي ستركه راوتلې ده او کانړئ ده ،او پورته وتلې ده،لکه چه د چونې په دیوال د چا پوزه ځونړ پروت وی ،اود هغه ګسه سترګه د پرقیدونکی ستوری پشان ده. هغه ته تولی ژبې ورخی او هغه سره به د جنت صورت وی،او دوزخ صورت به ورسره هم وی (١) يو حدیث مبارك كښې راغلی دی چه د يو لاك نبیانو علیهم السلام خاتمه په ما شوې ده. بلکه ددې نه هم زيات

قوله‌تعالى:: ﴿وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾

**د موسی ﷺ الله ﷻ سره کلام کول** :- بیا فرمائی چه حضرت موسی ﷺ سره پخپله الله ﷻ خبرې کړې دی دا د هغه خصوصیت دې چه کلیم الله وو، يو سړې ابوبكر بن عیاش ته راغلو او ونیل چه يو سړې دا جمله داسې وائی ﴿وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾ (٢) یعنی موسی ﷺ الله ﷻ سره کلام کړی دې .په دې دوی ډيرزيات غصه شواو وې فرمائيل چه دابه چرته کافر ونیلې وی.ماد اعمش نه او اعمش ديحيى نه او یحیی دعبدالرحمان نه او عبدالرحمان دعلی ﷺ نه اوعلی ﷺ دنبی کریم ﷺ نه روایت کړې دی ﴿وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾(٣) غرض د دې سړی معنوی او لفظی تحریف باندی دوی غصه شو.کیدیشی چه دا معتزلی وی ځکه چه د معتزلو هم دا عقیده وه چه نه الله تعالی چا سره کلام کړې نه موسی ﷺ او نه نور چا سره .

**د یومعتزلی لاجوابه کول**:- يو معتزلی دیو بزرګ مخکښې دا آیت مبارك كښې﴿ وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾ اولوستو نوهغوئ ورته بدرد اوونیل او وې ونیل چه بیا به په دې آیت مبارك بې ایمانی څنګه کوې چه ﴿وَلَمَّا جَاءَ مُوسَىٰ لِمِيقَاتِنَا وَكَلَّمَهُ رَبُّهُ﴾ یعنی موسی ﷺ خمونږ په وعده راغلو او د ده رب ورسره کلام اوکړو، مطلب دا دی چه دلته دا تاویل اوتحریف نه چلیږی.

ابن مردویه کښې حدیث مبارك دې چه نبی كريم ﷺ اوفرمائیل کله الله ﷻ حضرت موسی ﷺ سره کلام اوکړو هغه به هغه میرې هم لیدو چه کوم به په تیاره کښې روان. (٤) دا حدیث مبارك هم غریب دې.اوددې اسناد صحيح نه دی اوپه قول د حضرت ابوهریره ﷺ کله چه موقوفاً ثابت شی نو ډیر ښه وی.مستدرك حاکم وغیره کښې دی چه کلیم الله ﷺ سره چه کله الله ﷻ خبرې اوکړې نو هغه د وړئ څادر او د وړئ پرتوګ او د غیر مذبوح خر د څرمنې څپلئ اغوستې وې.(٥)

**د موسی ﷺ سره د خبرو تعداد**:- حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ فرمائی چه الله ﷻ حضرت موسی ﷺ سره يو لاك څلوینبت زره خبرې کړې وې .اودا ټول وصیتونه وو. بیا به حضرت موسی ﷺ د خلقو خبرې نه آوریدې ځکه چه په غوږونو مبارکوکښې به ئې هم د دې خبرو ګونج وو.(٦) ددې اسناد هم ضعیف دی. بیا په دې کښې انقطاع هم ده. يو اثر ابن مردويه وغیره کښې هم دې.

حضرت جابر ﷺ فرمائی چه د طور په ورځ کله چه الله ﷻ حضرت موسی ﷺ سره خبرې کړې وې.اوپه کومه ورځ ئې ورته آواز کړې وونو دهغې صفت ددې کلام د صفت نه جدا وو. نو حضرت موسی ﷺ د

---

(١) احمد: ٦٩/٣،

(٢) مجمع الزوائد :١٢/٧، المعجم الاوسط للطبرانى : ٨٦٠٣،.

(٣) مجمع الزوائد : ٢٠٣/٨.

(٤) مجمع الزوائد :٢٠٣/٨،.

(٥) حاکم: ٣٧٩/٢، ترمذی کتاب اللباس باب ماجاء فى لبس الصوف: ١٧٣٤،.

(٦) المعجم الاوسط : ٣٩٤٩،،

دې راز معلومول اوغوښتل.الله تعالی ورته اوفرمائیل چه اې موسی اما خو لا د لسوزرو ژبو برابر قوت سره کلام کړې دې،حالانکه ماته د ټولو ژبو قوت حاصل دې.بلکه د دې نه هم زيات.

**د الله ﷻ کلام څنګه وو؟**: بنی اسرائیلو چه کله د دوی ﷺ نه د الله تعالی د صفت کلام آوریدو باره کښې تپوس اوکړو نو دوی ﷺ اوفرمائیل چه څه هيڅ نشم وئیلې.نو هغوئ ورته اووئیل چه ښه ده: څه تشبيه خو بیان کړه. نو دوی ﷺ اوفرمائیل چه تاسو به د تندر آواز آوریدلې وی،هغه د دې مشابه وو خو د دې پشان نه وو.([1]) د دې راوی فصل رقاشي ضعيف دې.او دې ډير زيات ضعيف دې .

**د الله د اواز تشبیه**:-حضرت کعب ﷺ فرمائی چه کله الله ﷻ حضرت موسی ﷺ سره کلام اوکړو سوا دخپل کلام نه،نو حضرت کلیم الله ﷺ اوفرمائیل چه یا الله ﷻ داستا کلام دې ؟ الله ﷻ اوفرمائیل چه نه اونه ته خما د کلام طاقت لرلې شې .حضرت موسی ﷺ اوفرمائیل یا الله ﷻ ! ستا مخلوق کښې ستا آواز د چا په شان دې،نو الله ﷻ اوفرمائیل چه نه،سوا د سخت تندر نه. دا روايت هم موقوف دې.اوښکاره دا ده چه حضرت کعب ﷺ به د مخکښې کتابونو نه روايت کولو. او په هغې کښې د بنی اسرائیلو حکایتونه او هر رنګه صحیح او غیر صحیح روایتونه وو. هم د الله رسول دې چه د الله ﷻ تابعداری کونکو او دهغه رضا لټونکو ته دجنتونو زیرې ورکوی او دالله ﷻ نافرمانی کونکو او هغه لوئې ذات دروغ ګرونکو ته عذاب اوروی

قوله تعالي:: رُسُلًا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ

بیا فرمائی چه الله خپل کتابونه نازل کړی دی او خپل رسولان ئې رالیږلی دی .او هغوی ته ئې خپل مرضی او نامرضی معلومه کړې ده. دا په دې وجه چه د چا څه حجت یا عذر پاتې نشی. لکه یو بل آیت مبارك کښې فرمائی چه ﴿رُسُلًا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ﴾ یعنی که مونږ دوی د دې نه مخکښې په خپل عذاب هلاکول نو دوی به وئیلې شوې چه ائې زمونږ ربه ! تا مونږ ته رسولان ولې نه وو رالیږلی،چه مونږ د هغوئ خبرې آوریدلې وې او د دې ذلت او رسوائی نه بچ شوي وې.ددې پشان یو آیت مبارك دا دې چه ﴿وَلَوْلَا أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌ﴾

**الله ډير غيرتی دې**:- صحیح بخاری او مسلم شریف کښې یو حدیث مبارك دې حضرت نبی کریم صلی الله علیه واله سلم اوفرمائیل د الله ﷻ نه زيات غيرتی هيڅوك نشته.په دې وجه الله ﷻ ټولې بدنې حرامې کړې دی. که هغه پټې وی او که ښکاره وی،او داسې هيڅوك هم نشته دې چه هغه ته خپل مدح د خپل ځان نه زياته خوښه وی .هم دا وجه ده چه هغه خپله مدح پخپله کړې ده. او داسې هيڅوك نشته دې چه هغه ته د الله ﷻ نه زيات عذر خوښ وی .هم دا وجه ده چې الله تعالی.نبیان علیهم السلام زيرې ورکونکی او ویرونکی لیږلی دی.([2]) بل روايت کښې دا الفاظ هم دی چه په دې وجه الله ﷻ کتابونه او رسولان علیهم السلام اولیږل ([3]).

| |
|---|
| لٰكِنِ اللّٰهُ |
| لیکن الله |
| خورکه دوئ نه منی نو څه اوشو(الله |

[1] ) مجمع الزوائد :٢٠٤/٨، البزار: ٢٣٥٣.

[2] ) صحيح بخاری کتاب التفسير باب قوله تعالی(ولاتقربوا ماظهر منهاومابطن): ٤٦٣٦، صحيح مسلم: ٢٧٦٠، ترمذی:٣٥٣، السنن الكبرى للنسائی:١١١٧٣، ابن حبان: ٢٩٤، احمد: ٣٨١/١، ابن ابی شيبة: ٢٤٧/١، عبدالرزاق: ١٩٢٥.

[3] ) صحيح بخاری کتاب التوبة باب غيرة الله تعالی وغيرة وتحريم الفواحش: ٢٧٦٠

يَشْهَدُ | بِمَآ | اَنْزَلَ | اِلَيْكَ | اَنْزَلَهٗ | بِعِلْمِهٖ

ګواهي کوي | په هغه څيز | چې نازل کړې نې دې | تاته | چې نازل کړې نې دې هغه | په علم سره

په دې خبره ګواه دې | چې تاته کوم حکمونه رالیږلې شوي دي | هغه ئې په خپل کامل علم سره رالیږلي دي

وَالْمَلٰٓئِكَةُ | يَشْهَدُوْنَ | وَكَفٰى | بِاللّٰهِ | شَهِيْدًا (۱۶۶) | اِنَّ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا

او فرښتې هم | ګواهي کوي | اوکافي دې | الله | په ګواهئ سره | بېشکه هغه کسان | چې انکار ئې اوکړو

اوفرښتې هم په دې خبره ګواهي کوي | او صرف د الله ﷻ ګواهي هم کافي ده | چا چې انکار کړې دې

وَصَدُّوْا | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | قَدْ ضَلُّوْا | ضَلٰلًاۢ | بَعِيْدًا (۱۶۷)

او منع ئې کړل خلق | د لارې د الله نه | يقينا چې بې لارې شو دحق نه | په بې لارې کيدوا | لرې سره

اودالله ﷻ دلارې نه خلق منع کوي | ..................هغوئ دسمې لارې نه ډېرلرې تلي دي

اِنَّ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَظَلَمُوْا | لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ | لِيَغْفِرَ

بېشکه هغه کسان | چې دکفر په لاررروان شو | اوظلمونه ئې شروع کړل | نو نۀ دې الله | چې اونيسي

چا چې انکار کړې دې | اوپه خلقو ظلمونه کوي | الله ﷻ به هغوئ هيڅ کله اونۀ بخښي

لَهُمْ | وَلَا | لِيَهْدِيَهُمْ | طَرِيْقًا (۱۶۸) | اِلَّا | طَرِيْقَ | جَهَنَّمَ | خٰلِدِيْنَ

هغوئ لره | او نۀ | اوښائي هغوئ ته | لار | مګر | لار | ددوزخ | چې تل به وي

اونۀ به هغوئ ته سمه لار اوښائي | ..................البته د دوزخ لار به ورته اوښائي چې هميشه

فِيْهَآ | اَبَدًا | وَكَانَ | ذٰلِكَ | عَلَى اللّٰهِ | يَسِيْرًا (۱۶۹) | يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ

په هغې کښې | هميشه | اودې | دا کار | په الله باندې | آسان | ائې خلقو

دپاره به په کښې پراتۀ وي | اودا کار خو الله ﷻ ته ډېر آسان دې | ..................ائې خلقو!

قَدْ | جَآءَكُمُ | الرَّسُوْلُ | بِالْحَقِّ | مِنْ رَّبِّكُمْ | فَاٰمِنُوْا

په تحقيق سره | راغلې دې تاسو ته | رسول | دحق سره | دطرفه درب ستاسو نه | نو ايمان راوړئ

تاسو ته پيغمبر دالله ﷻ دطرفنه دحق تعليم راوړې دې | ..................نو په دې يقين اوکړئ

خَيْرًا لَّكُمْ | وَاِنْ تَكْفُرُوْا | فَاِنَّ | لِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ

دابهتره ده ستاسو دپاره | اوکه انکار کوئ تاسو | نو بېشکه | الله لره دي | هغه څۀ | چې په آسمانونو کښې دي

خکه چې په دې کښې ستاسو خير دې | اوکه انکار کوئ نو هرڅه چې په آسمانونو کښې دي

وَالْاَرْضِ | وَكَانَ اللّٰهُ | عَلِيْمًا | حَكِيْمًا (۱۷۰)

اوپه زمکه کښې دي | اودې | الله | په هر څيز پوهه | حکمت والا |

او په زمکه کښې دي هغه ټول دالله ﷻ دي | اوالله ﷻ په هرڅه پوهه اودحکمت خاوند دې |

**قوله تعالى:: لَٰكِنِ ٱللَّهُ يَشۡهَدُ بِمَآ أَنزَلَ إِلَيۡكَۖ أَنزَلَهُۥ بِعِلۡمِهِۦۖ**

الله تعالى او فرښتې د پيغمبر د رسالت ګواه دی • مخکښې آيتونوکښې د نبی کریم ﷺ د نبوت ثبوت وو او د نبی کریم ﷺ دنبوت د منکرانو رد وو. په دې وجه دلته فرمائی چه څه خلق تا دروغژن ګڼړی، او ستا مخالفت کوی، خو الله ﷻ پخپله ستا د رسالت ګواه دې، هغه لوئې ذات فرمائی چه هغه خپل کتاب قران مجيد په تا نازل کړې دې .چې باطل هغې ته ورتلې نشی په دې کښې د هغه خيزونو علم دې چه په هغې هغه پاك ذات خپل بندګان خبر کړی دی يعنی دليلونه، هدايت او فرقان او د الله ﷻ د رضامندنی او خفګان احکام او د تيرو شوو او راتلونکو خبرو علم او د الله ﷻ هغه مقدس صفتونه خو نه يو نبی ته معلوم دی او نه يوې مقربې فرښتې ته سوا د دې نه چه هغه پاك ذات ئې ورته پخپله اوښائی .ارشاد ې چه ﴿وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيۡءٖ مِّنۡ عِلۡمِهِۦٓ﴾ او په بل ځائې کښې فرمان دې چه ﴿وَلَا يُحِيطُونَ بِهِۦ عِلۡمٗا﴾.

حضرت عطاء بن سائب چه به کله د حضرت ابوعبدالرحمان سلمی رحمه الله نه قران پاك لوستو نو دوی به فرمائيل چه تا د الله ﷻ علم اخستې دې .نو نن ستا نه هيڅوك غوره نه دی سوا د هغه چا نه چه ستا نه ئې عمل زيات وی. بيا دوی آيت ﴿انزله بعلمه﴾ تر آخرې پورې تلاوت کړو..

**قوله تعالى:: وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ يَشۡهَدُونَۚ**

بيا فرمائی چه د الله ﷻ شهادت سره د فرښتو شهادت هم دې چه تا لره راغلی دې، چه کومه وحی په تا نازله شوې ده هغه بالکل رښتونې او سراسر حق ده. د يهودو يو جماعت نبی کریم ﷺ ته راغلو نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائيل په الله ﷻ قسم ماته ښه معلومه ده چه تاسو ته ځما د رسالت علم دې خو هغه خلقو انکار اوکړو نو الله ﷻ دا آيت مبارك نازل کړو[1].

**قوله تعالى:: إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ**

بيا فرمائی چه کومو خلقو کفر اوکړو او د حق اتباع ئې اونه کړه بلکه نور خلق ئې هم د حق لارې نه منع کړل نو دوی د صحيح لارې نه جدا شو. اود حقيقت نه جدا شو. او هدايت نه بې لارې شو. دا خلق چه خمونږ د آيتونو نه منکر دی، ځمونږ کتاب نه منی، په خپل ځان ظلم کوی، ځمونږ لارې نه خلق منع کوی، چه کوموکارونو نه مونږ منع کړې ده هغې نه نه منع کيږی، ځمونږ د احکامو نه مخ اړوی، مونږ به دوی معاف نکړو.او نه به دوی خير طرفته راولو. اودوی ته به د جهنم لار ښايو. او دوی به په دې کښې هميشه وی.

**قوله تعالى:: يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدۡ جَآءَكُمُ ٱلرَّسُولُ بِٱلۡحَقِّ مِن رَّبِّكُمۡ فَـَٔامِنُواْ خَيۡرٗا لَّكُمۡۚ**

انې خلقو!تاسوته ستاسو رسول د الله ﷻ حق راوړې دې، تاسو په ده ايمان راوړئ، د دې اطاعت اوکړئ ،هم دا ستاسو دپاره بهتره ده.که تاسو کفر کونی نو الله ﷻ ستاسو نه بې نياز دې.نه ستاسو ايمان دوی ته څه فائده ورکولې شی او نه ستاسو کفر څه ضرر ورکولې شی.د زمکې او آسمانونو ټول څيزونه د هغه ملکيت کښې دی.هم دا قول د حضرت موسی ﷺ خپل قوم ته وو که تاسو او په مخ د زمکې ټول څيزونه په کفر کولو راجمع شی نو د الله ﷻ هيڅ نقصان نشئ کولئی.هغه د ټولو جهانونو نه بې پرواه دې.هغه عليم ذات دې، هغه ته معلوم دی چه دهدايت لائق څوك دی اود ضلالت لائق څوك دی ؟ هغه حکيم ذات دې، د هغه ذات قول، د هغه ذات فعل، د هغه ذات شرع ټول په ټوله د حکمت نه ډك دی .

| يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ | لَا تَغۡلُواْ | فِي دِينِكُمۡ | وَلَا تَقُولُواْ | عَلَى ٱللَّهِ | إِلَّا ٱلۡحَقَّۚ | إِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| انې اهل کتابو | مه اوځئ دحد نه | په دين خپل سره | او مه وايئ | په الله باندې | مګر حق | بيشکه |
| انې اهل کتابو پخپل دين کښې دحد نه مه تيريږئ او الله ﷻ ته د حقې خبرې نه سوا بل نسبت مه کوئ | | | | | | |

---

[1] ) الطبری:٩/٩ • ٤ ،

| |
|---|
| الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللَّهِ وَكَلِمَتُهُ ۚ أَلْقَاهَا |
| مسیح \| عیسی \| خوي \| دمریم\|رسول دالله دي\| فرمان دي دهغه\|چي اولیږلو الله دغه فرمان |
| خبره داده چي عیسی دمریم خوني دي \| اودالله ﷻ رسول دي \| او دهغه حکم دي \| چي الله ﷻ |
| إِلَىٰ مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِّنْهُ ۖ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۖ |
| مريم ته \| او روح دي\| دطرفه دالله نه\|نو ايمان راوړئ \| په الله \| اوپه رسولانو دهغه |
| مریم ته راولیږلو\|اودالله ﷻ دطرفه یوروح دي\| نو په الله ﷻ اودهغه په پیغمبرانو باندي ایمان راوړئ |
| وَلَا تَقُولُوا ثَلَاثَةٌ ۚ انتَهُوا خَيْرًا لَّكُمْ ۚ إِنَّمَا اللَّهُ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ |
| اومه وایئ \| دري \| منع شئ \|دابهتره ده\|ستاسودپاره \|بیشکه الله\|معبود دي\| اکي یو |
| اودامه وائي چي خدایان دري دی \|دد ي نه منع شئ\|هم په دي کښي ستاسو خیردي\|معبود صرف یو الله دي |
| سُبْحَانَهُ أَن يَكُونَ لَهُ وَلَدٌ ۘ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ |
| پاك دي هغه \|ددي خبري نه چي وي\| هغه لره \| خوني \| هغه لره دي\|هغه هرڅه\| چي په آسمانونو کښي دي |
| هغه ددي نه پاک دي چه څوک دي د هغه خوني شی \| د آسمانونو او د زمکي هر څه |
| وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿١٧١﴾ |
| اوهغه هر څه چي په زمکه کښي دي \| اوکافی دي \| الله \| په حیثیت دخبر اخستو دهغي\| |
| د هغه مخلوق دی \| .................. اوددي ټولود ساتني دپاره صرف الله ﷻ کافی دي \| |

قوله تعالى: يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ

د عیسایانو خپل دین کښي غلو کول:- الله ﷻ اهل کتاب د زیاتنی او د حد نه د تیریدو نه منع کوی.عیسایان د حضرت عیسیٰ ﷺ باره کښي د حد نه تیر شوی وو، د هغوی د نبوت نه تیرشو او هغه ني د الله مقام ته رسولي وو .د اطاعت په ځاني ني عبادت کولو. د دین بزرګانو باره کښي هم د دوی عقیده خرابه وه. او چه کوم د حضرت عیسیٰ ﷺ دین کښي عالمان او عاملان وو هغه ني محض معصومان ګنړلي وو. او دا خیال ني کولو چه څه د دین امامان اووائی د هغي منل خمونږ په ذمه ضروري دی،ربښتیا دروغ،حق او باطل،هدایت اوضلالت لره د تللو مونږ ته هیڅ حق نشته دي او ددي ذکر د قران پاک آیت مبارك کښي موجود دي چه ﴿اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ﴾

د نبی کریم ﷺ خپل امت ته تعلیم:- مسند احمد کښي دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمانیل ماته داسي د حد نه زیات مه ګورئی لکه څنګه چه یهود او نصرانیانو زیات کتلی وو. څه خو صرف یو بنده یم،نو تاسو ما عبدالله او رسول منئ .([1]) دا حدیث مبارك بخاري وغیره کښي هم دي ([2]).

د نبی کریم ﷺ په باره کښي دغلو نه ممانعت:- د مسندیو حدیث مبارك کښي دی چه یو سړي نبی کریم ﷺ ته اووئیل چه ائي خمونږ سرداره ! او ائي د سردار خویه ! ائي خمونږ ټولو نه بهتره ! او ائي بهتر هلکه!نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه ائي خلقو دخپلو خبرو پخپله بنه خیال ساتئ،هسي نه چه تاسو

[1]) احمد: ٢٣/١، وهو صحیح بالشواهد داروایت صحیح درجه کښي دي

[2]) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی(واذکر فی الکتاب مریم اذانتبذت من اهلها....)٣٤٤٥،

شيطان غلط كړى.څه محمد بن عبدالله يو بنده يم.څه د رب غلام يم ،او د هغه رسول يم.په الله ﷻ قسم زه نه غواړم تاسو ما زما د مرتبې نه زيات اوچت كړئ [1].

**قوله تعالى:: إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللَّهِ وَكَلِمَتُهُ**

**عيسى عليه السلام دالله بنده او رسول وو:-** بيا فرمائى چه افتراء مه تړنى،او الله ﷻ دپاره اولاد او ښځه مه مقرر كونى،الله ﷻ د دې نه پاك دې د دې نه لرې دې،د دې نه اوچت او بالا دې،د هغه په لوئې او عزت كښې هيڅوك شريك نشته دې،او د هغه نه سوا څوك معبود نشته اونه څوك رب .مسيح عيسى بن مريم عليهم السلام رسول دې،هغه د رب غلامانوكښې دې.اود هغه پاك ذات مخلوق دې،هغه صرف دكن په كلمه .پيدا شوې دې او دا كلمه حضرت جبريل عليه السلام حضرت مريم عليها السلام ته راوړې وه،او د رب ﷻ اجازت سره پوك وهلې وه. نو حضرت عيسى عليه السلام بغير پلار نه دې كلمې سره پيدا شو او هم دې خصوصيت سره دوى ته كلمة الله اوونيلې شو. د قران پاك يو بل آيت مبارك كښې دى چه ﴿مَا الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُولٌ﴾ يعنى مسيح بن مريم صرف يو رسول دې،د ده نه مخكښې هم رسولان تير شوى دى،د ده مور ريښتونې ده،دوى دواړو به خوراك كولو.اويو آيت مبارك كښې دى چه ﴿إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِنْدَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ﴾ يعنى د عيسى عليه السلام مثال د الله تعالى په نيز د آدم عليه السلام پشان دې اوهغه د ښاورې نه پيدا كړې شوې وو او ورته اوفرمائيلې شو چه شه نو هغه شو .دقران پاك يو بل آيت مبارك كښې دى چه ﴿وَالَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا﴾ يعنى اوهغې د خپلې شرمګاه حفاظت اوكړو او مونږ په كښې روح پوك وهلو او پخپله د دې او د دې دبچى دپاره مو نښه جوړه كړه. او يو ځائې كښې فرمائى چه ﴿وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا﴾ نه د سورت د آخره پورې د حضرت عيسى عليه السلام باره كښې يوبل آيت مبارك كښې دى چه ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ﴾ يعنى هغه خمونږ بنده وو،او په هغه مونږ انعام كړې وو.نوددې دا مطلب نه دې چه پخپله حضرت عيسى كلمه شو بلكه د رب د كلمې نه حضرت عيسى عليه السلام پيدا شو .امام ابن جرير رحمه الله ﴿وَإِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ﴾ تفسير كښې چه څه ونيلى دى دهغې مراد صحيح دې چه د الله تعالى كلمه چه دحضرت جبريل عليه السلام معرفت سره پوك وهلې شوې وو.دې نه حضرت عيسى عليه السلام پيدا شو.

**عيسى عليه السلام دالله بنده ګڼړلو صله:-** صحيح بخارى كښې دى چه چا د الله ﷻ د يو اولاشريك كيدو او د حضرت محمد ﷺ د رسول او بنده كيدو او د عيسى عليه السلام د رسول اوبنده كيدو ګواهى وركړه او دا ئې اومنل چه دوى عليه السلام د الله كلمه وه چه كومه حضرت مريم طرفته وركړې شوې وه،او د الله تعالى پوك وهلې شوې روح وو،او چا چه جنت او دوزخ اومنلو،كه هغه په هر څنګه عملونو كښې اخته وى،الله تعالى باندې دې چه دې جنت ته داخل كړى [2].

اويو روايت كښې دومره زيات دى چه د جنت اتو دروازو نه چه په كومه دروازه باندې داخليدل غواړى نو داخل به شى [3] .لكه څنګه چه ئې په آيت او حديث كښې حضرت عيسى عليه السلام ته ﴿رُوحٌ مِنْهُ﴾ ونيلى دى.همدا شان د قران پاك يو آيت مبارك كښې دى چه ﴿وَسَخَّرَ لَكُمْ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مِنْهُ﴾ يعنى هغه مسخر كړل ستاسو دپاره څه چې په آسمانونوكښې دى او څه چې په زمكه كښې دى ټول په ټوله خپل طرفته يعنى د خپل مخلوق نه او د خپل طرف نه. هم دا مطلب د ﴿رُوحٌ مِنْهُ﴾ دې.يعنى د خپل مخلوق اودخپل پاك روح نه نو لفظ من تبعيض دپارنه نه دې لكه د ملعون نصرانيانو چه خيال دې چه

---

[1]) احمد:١٥٣/٣، وسنده صحيح.السنن الكبرى للنسائى:١٠٠٧٨، ابن حبان:٦٢٤٠، دلاالنبوة:٤٩٨/٥.

[2]) صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى (ياأهل الكتاب لاتغلوا فى دينكم....):٣٤٣٥، صحيح مسلم:٢٨، احمد:٥١٥/٥، ابوعوانه:٩، الايمان لابن منده:٤٤، شرح السنة:٥٥، مسندالبزار:٢٦٨٢.

[3]) صحيح بخارى كتاب حواله سابق،ابن حبان:٢٠٧، عمل اليوم والليلة:١١٣٠.

حضرت عیسیٰ ﷺ د الله تعالی یو جز وو. بلکه من د ابتداء دپاره لکه چه بل ایت مبارك کښې دی.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه ﴿رُوْحٌ مِّنْهُ﴾ نه مراد ﴿رَسُوْلٌ مِّنْهُ﴾ دې او خلق وائی چه ﴿محبی منه﴾ لیکن زیات ظاهر رومبې دې.یعنی دوی ﷺ پیدا کړې شوی وو. روح چه پخپله د الله ﷻ مخلوق دې،نو دوی ته روح الله ونیل داسې دی لکه ناقة الله او بیت الله چه ونیلې شوی دی.یعنی صرف د شرافت د اظهار دپاره خپل طرفته ئې نسبت کړې دې. او حدیث مبارك کښې هم دی چه خپل رب ته اود هغه کور ته ځم

**قوله تعالی:: فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ خ وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ**

**الله د وحدانیت حکم :-** بیا فرمائی چه تاسو ددې یقین اوکړئی چه الله ﷻ واحد دې،دهغه ښځه او بچی نشته دې،او یقین اوکړئی چه حضرت عیسیٰ ﷺ د رب غلام دې،د الله ﷻ مخلوق او برگزیده رسول دې.تاسو درې مه وائې یعنی حضرت عیسیٰ ﷺ او مریم رب سره شریك مه جوړوئی.الله ﷻ د شرکت نه پاك دې.سورت مائده کښې الله ﷻ فرمائی چه ﴿لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ﴾ یعنی څوك چه وائی چه الله ﷻ دریو کښې دریم دې نو هغه کافر شو. الله ﷻ هم یو دې،د هغه نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته،د سورة مائده آخر کښې دی چه د قیامت په ورځ به حضرت عیسیٰ ﷺ نه تپوس اوکړې چه تا خلقوته د خپل او د خپلې مور د عبادت حکم کړې وو ؟ هغه به صفا انکار اوکړی.

د نصرانیانو دې باره کښې څه ضابطه نشته دې.هغوئ بې لارې دی .او خپل خان په خپله بربادوی.په دوی کښې بعضې خو حضرت عیسیٰ ﷺ الله ﷻ گنړی او بعضې ئې د الله ﷻ شریك گنړی او بعضې ورته د الله ﷻ ځوئې وائی.ریښتیا خو دا دی که چرته لس نصرانیان راجمع شی نو د دوی خیالات به یوولس وی.

**د نصرانیانو درې ډلې:-** سعید ابن بطریق اسکندری چه په ۴۰۰ هجرئی کښې تیر شوې دې،هغه او هغه بعضو عالمانو ذکر کړې دی چه د قسطنطنیه بادشاه قسطنطین په زمانه کښې د هغه د نصرانیانو اجتماع اوشوه،او په هغه ځائې د دوؤ زرو نه زیات لاټ پادریان وو. بیا دومره اختلاف پیدا شو چه اویا کسانو نه زیات هم په یوه خبره متفق نه وو. د لسو یو عقیده وه او د شلو بل خیال وو،اوځلویښتو به نور څه ونیل،او شپیته به بل طرف روان وو،غرض په زرګونو تعداد کښې په مشکله درې سوؤ اتلس کسان په یو قول جمع وو. بادشاه هم دا عقیده قبوله کړه او باقی ئې پرېښودل .او هم د دې تائید اونصرت ئې اوکړو.او د دوی دپاره ئې کلیسې او ګرجې جوړې کړې .او کتابونه ئې اولیکل،او قوانین ئې جوړ کړل.هم دې ځائې کښې دوی د امانت کبری مسئله راپورته کړه اودا اصل کښې بدترین خیانت دې.دې خلقو ته ملکانیه وائی.بیا دوباره د دوی اجتماع اوشوه او په هغه وخت کښې چه کومه فرقه وجود کښې راغله د هغې نوم یعقوبیه وو. بیا په دریم ځل یو اجتماع اوشوه او د دې نه چه کومه یو فرقه جوړه شوه د هغې نوم نسطوریه دې.دا درې واړه فرقې اقانیم ثلثه حضرت عیسیٰ ﷺ دپاره ثابتوی.په دوی کښې هم خپلو کښې اختلاف دې.او هر یو بل ته کافر وائی .اوخمونږ په نیز خو دا درې واړې کافرې فرقې دی.

**قوله تعالی:: اِنْتَهُوْا خَیْرًا لَّكُمْ**

الله ﷻ فرمائی چه د دې نه منع شئ،او دا ستاسو دپاره بهتر دی.الله ﷻ خو یو دې،هغه توحید والا دې د هغه ذات د اولاد نه پاك دې ټول څیزونه د هغه مخلوق دی .اودهغه ملکیت کښې دی .ټول د هغه په غلامئ کښې دی او ټول د هغه په قبضه کښې دی.هغه په هر څیز وکیل دې .نو بیا مخلوق دهغه ښځه او بچی څنګه کیدیشی ؟ بل آیت مبارك کښې دی چه ﴿بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَنّٰى يَكُوْنُ لَهٗ وَلَدٌ﴾

هغه ذات خوبه اول خل د اسمان او زمکې پيدا کونکې دې .دهغه خوني څنګه کيديشي ؟ سورة مريم
کښې ﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا﴾ نه تر ﴿فَرْدًا﴾ پورې هم ددې تفصيل سره انکار فرمائيلې دی.

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ | الْمَسِيْحُ | اَنْ يَّكُوْنَ | عَبْدًا لِّلّٰهِ | وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ
هيڅ کله عار نۀ ګڼړي | مسيح | دا خبره چې شي | بنده د دپاره دالله | او نۀ | فرښتې
مسيح (حضرت عيسیؑ) هيڅکله دا شرم نه کوی | چې هغه ته دې دالله بنده اووئيلې شي | اونه هغه فرښتې

الْمُقَرَّبُوْنَ ط وَمَنْ | يَّسْتَنْكِفْ | عَنْ عِبَادَتِهٖ | وَيَسْتَكْبِرْ | فَسَيَحْشُرُهُمْ
مقر بې | اوڅوك | چې عار اوکړی | ادبندګۍ دهغه نه | اوتکبر اوکړی | نوزر به راجمع کړی الله دوئ
چې مقربې دی | اوڅوک چې دالله ﷻ عبادت کښې شرم کوی | اوکبر کوی | نو زر ده چې الله ﷻ

اِلَيْهِ | جَمِيْعًا ۝ فَاَمَّا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ
طرف خپل ته | ټول | نوهغه کسان | چې ايمان ئې راوړې دې | اوکړې ئې دی | نيك عملونه
به ټول خلق دقيامت په ورځ راجمع کړی | نوچا چې ايمان راوړې وی | او نيک کارونه ئې کړی وی

فَيُوَفِّيْهِمْ | اُجُوْرَهُمْ | وَيَزِيْدُهُمْ | مِّنْ فَضْلِهٖ ج | وَاَمَّا الَّذِيْنَ
نوپوره به ورکړی الله هغوئ ته | بدلې دهغوئ | اوزيات به ورکړی هغوئ ته | دفضل خپل نه | اوهغه کسان
نوهغوئ ته به خپلې خپلې بدلې پوره پوره ورکړی | اودخپل فضل نه به ورله زياتې هم ورکړی | اوچا چې

اسْتَنْكَفُوْا | وَاسْتَكْبَرُوْا | فَيُعَذِّبُهُمْ | عَذَابًا | اَلِيْمًا ۙ
چې عار ګڼړلې وی | اوتکبر يئ کړې وی | نو عذاب به ورکړی هغوئ ته | عذاب | دردناك
(دالله ﷻ بندګی) شرم ګڼړلې وی | او کبر ئې کړې وی | نوهغوئ ته به دردناک عذاب ورکړی

وَّلَا يَجِدُوْنَ | لَهُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | وَلِيًّا | وَّلَا نَصِيْرًا ۝
او اوبه نۀ مومی | هغوئ دپاره دځان | سوا دالله نه | څوك دوست | اونۀ څوك مددګار
او دخپل ځان دپاره به دالله ﷻ نه سوا بل څوک ملګرې يامددګار اونۀ مومی

قوله تعالیٰ: لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ط

**حضرت عيسیؑ او ټولې فرښتې د الله ﷻ بندګی کوی:-** مطلب دا دې چه مسيح ؑ او بهترينې فرښتې هم د الله ﷻ د بندګۍ نه تکبر او ډډه نه کوی .اونه د دوی د شان سره لائق دی.بلکه چه څومره مرتبه کښې نزدې وی نو هغه هومره د رب عبادت کښې زياتې وی.بعضو خلقو ددې آيت مبارك نه دا استدلال کړې دې چه فرښتې د انسانانو نه افضل دی .خو اصل کښې د دې څه ثبوت دې آيت مبارك کښې نشته دې .په دې وجه دلته د ملائکه عطف په مسيح دې او د استنکاف معنی منع کول دی،او فرښتو کښې دا قدرت په نسبت د حضرت مسيح ؑ زيات دې،په دې وجه ئې دا اوفرمائيل.او په منع کولو باندې زيات قادر کيدلونه افضيلت نه لازميږی .او دا هم وئيلې شوی دی چه څنګه حضرت مسيح ؑ ته خلقو سجدې کولې دغه شان به ئې د فرښتو هم عبادت کولو. دې نه ثابته شوه چه تاسو چاته سجدې کونی هغوئ د الله ﷻ عبادت کوی.بيا تاسو دوی ته څنګه سجدې کونی ؟ او آيت کښې دی چه ﴿بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ﴾او هم په دې وجه دلته فرمائی چه څوك د هغه پاك ذات د عبادت نه مخ

وارړوي او سرکشي اختيار کړي نو هغه به هم هغه ذات طرفته واپس کيږي.او دخپل خان باره کښې به د هغه فيصله واوري او چه څوك ايمان راوړي او څوك نيك عمل کوي نو هغه ته به پوره بدله ورکولې شي.او زياتي فضل دا دې چه کوم خلق د دوزخ قابل دي په هغوی کښې به هم د چا دپاره د دوی شفاعت قبلولې شي چې دوی سره ئې ښه کړې وي (١) خو ددې سند ثابت نه دې.البته که دا د ابن مسعود ﷺ قول باندې حمل کړې شي نو صحيح ده.

قوله تعالى: وَمَن يَسْتَنكِفْ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ إِلَيْهِ جَمِيعًا

**الله د بندګئ نه د تکبر کولو سزا:-** بيا فرمائي چه کوم خلق دالله ﷻ دعبادت نه مخ واړوي او دې نه کبر اوکړي نو دوی ته به الله تعالى دردناك عذاب ورکوي.او دوی به د الله تعالى نه سوا بل څوك ولي يا مددګار نه مومي.لکه څنګه چه بل آيت مبارك کښې دي چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ﴾ يعنې کوم خلق چې د الله ﷻ د عبادت نه تکبر اوکړي هغوئ ذليل او حقير جهنم ته تلونکي دي.يعنې دوی ته به د دوی د تکبر او انکار بدله ملاويږي.اودوی به ذليل اوخوار جهنم ته داخليږي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَاأَيُّهَا النَّاسُ | قَدْ جَاءَكُم | بُرْهَانٌ | مِّن رَّبِّكُمْ | وَأَنزَلْنَا |
| ائې خلقو | راغلې دې تاسو ته | دليل | دطرف درب ستاسو نه | اونازل کړې دې مونږه |
| ائې خلقو! تاسو ته دالله ﷻ دطرفنه ښکاره دليل راغلې دې | | | | اوتاسو ته مو |
| إِلَيْكُمْ | نُورًا | مُّبِينًا ۝ فَأَمَّا الَّذِينَ | آمَنُوا بِاللَّهِ | وَاعْتَصَمُوا |
| تاسو ته | نور | ښکاره | نو هغه کسان چې ايمان ئې راوړو په الله باندې | اومنګولې ئې ښخې کړې |
| ښکاره رڼرا د نبی کريم په صورت کښې) راليږلې ده | | | نو چا چې په الله ﷻ ايمان راوړو | او دهغه په احکامو |
| بِهِ | فَسَيُدْخِلُهُمْ | فِي رَحْمَةٍ | مِّنْهُ | وَفَضْلٍ |
| په هغه | نو زر به داخل کړي الله هغوئ | په رحمت کښې | دطرفه خپل نه | او په مهربانئ کښې |
| ......ئې منګلې ښخې کړې | | نو الله ﷻ به ئې په خپل رحمت او فضل کښې داخل کړي | | |
| وَيَهْدِيهِمْ | إِلَيْهِ | صِرَاطًا | مُّسْتَقِيمًا ۝ | |
| اواوبه ښائي هغوئ ته | طرف خپل ته | لاره | نيغه | |
| اوپه سمه نيغه لار به ئې روان کړي | | | | |

قوله تعالى: يَاأَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُم بُرْهَانٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَأَنزَلْنَا إِلَيْكُمْ نُورًا مُّبِينًا

**قرآن لا جواب او برهان او واضح نور دې:-** الله ﷻ ټولو انسانانو ته فرمائي چه څما د طرفه کامل دليل او د عذر معذرت ختمونکې او شك او شبه جدا کونکې او برهان ستاسو طرفته نازل شوې دې .اومونږ تاسو طرفته ښکاره نور او ښکاره رڼرا نازله کړې ده. او دې سره د حق لاره ښکاره طور واضحه کيږي .ابن جريج رحمه الله وغيره فرمائي چه ددې نه مراد قران پاك دې(٢).اوس چه کوم خلق ايمان راوړي،اوتوکل او بهروسه کوي،او دې پورې انخلي،اود هغه پاك ذات سرکار کښې نوکري کوي،او مقام عبوديت اومقام توکل باندې قائم وي او ټول کارونه هم هغه پاك ذات ته سپاري،اودا هم کيدشي

(١) المعجم الاوسط:٥٧٦٦، والمعجم الكبير:١٠٤٦٢، السنة لابن ابى عاصم:٨٤٦.
(٢) الطبرى:٤٢٨/٩.

چه په الله تعالی ایمان راوړی او د الله تعالی کتاب ښه محکم اونیسی نو الله ﷻ به په هغه خپل رحم
اوکړی.او په ده به خپل فضل نازل کړی اودې به نعمتونو او خوشحالو والا جنت ته داخل کړی.د دو
ثوابونه به زیات کړی،اود ده درجې به اوچتې کړی،او دې به خپل نیغې لارې او صفا لارې طرفته
راولی. اودا لار به هیڅ خانې کښې کږه اوتنګه نه وی. نومومن دنیا کښې صراط مستقیم باندې وی او
د اسلام په لار وی،اوپه آخرت کښې د جنت او سلامتیا په لار وی د تفسیر شروع کښې یویوره حدیث
مبارك تیر شوې دې په هغې کښې د نبی کریم ﷺ فرمان دې چه د الله ﷻ نیغه او مضبوطه رسی قران
دې ([1]).

يَسْتَفْتُوْنَكَ ط قُلِ
| غواړی خلق فتوی ستانه| اووایه
| انې پیغمبره ﷺ دوی ستانه(د کلاله باره) کښې تپوس کوی| ورته اووایه

اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلٰلَةِ ط اِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ
چې الله | فتوی درکوی تاسو ته | په کلاله کښې| که یو داسې سړې امړ شی | چې نۀ وی | هغه لره
چې الله ﷻ درته د کلاله حکم ښائی | که یوسړې بې اولاده (اوبې مورپلاره) مړ شی

وَلَدٌ وَّلَهٗٓ اُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ ج وَهُوَ يَرِثُهَآ
اولاد |اوړی هغه لره|یوه خور|نوده هغې لره| نیمه |دهغې مال| چې پریښې وی|او ورور| میراث وړی دخور
اودهغه یوه خور وی |نونیم میراث دهغې دې |اوکه خور بې اولاده مړه شی |نو رور به ئې دټول مال مالک وی

اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهَا وَلَدٌ ط فَاِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثٰنِ
که چرې نۀ وی |هغې لره| اولاد |نوکه چرې | وی |دوه |نودی هغوئ دواړو لره|په دریو کښې دوه حصې
نوکه د مړی وارثان دوه خویندې وې |نوهغوئ به د ټول میراث نه دریو

مِمَّا تَرَكَ ط وَاِنْ كَانُوْٓا اِخْوَةً رِّجَالًا وَّنِسَآءً
دهغه مال نه | چې پریښې وی مړی|اوکه چرې | وو | اوروڼه خویندې | نارینه | اوښځې
کښې دوه برخې اخلی | ..................اوکه ډیر روڼه خویندې وی ..........................

فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ط يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ
نو ده حصه دپاره دنارینه| په برابر| دحصې | ددوؤ ښځو | بیانوی | الله | تاسو ته
نوبیا به دسړی یوه حصه دښځو د دوؤ حصو برابر وی | الله ﷻ تاسو ته خپل حکمونه بیانوی

اَنْ تَضِلُّوْا ط وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ع
چې بې لارې نۀ شئ| او الله | په هر | څیز | عالم دې
چې تاسو بې لارې نۀ شئ| اوالله ﷻ په هرڅه ښه پوهه دې

[1] م ترمذی کتاب فضائل القرآن باب ماجاء فی فضل القرآن:٢٩٠٦،.

**قوله تعالى: يَسْتَفْتُونَكَ ۖ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ ۚ**

**د ايت شان نزول**:- حضرت براء ﷺ فرمائي چه سورتونو كښې د ټولو نه آخرى سورت سورة برات نازل شوې دې او آيتونو كښې ټولو نه آخرى آيت ﴿يَسْتَفْتُونَكَ﴾ نازل شوې دې ([1])حضرت جابر بن عبدالله ﷺ فرمائي چه زه خپله بيمارئى كښې بې هوشه پروت ووم،او دې كښې د الله رسول ﷺ ځما پوښتنې ته راغلو،نبى كريم ﷺ اودس اوكړو او هغه اوبه ئې په ما واچولې او زه په هوش كښې راغلم .او ما اووئيل يارسول الله ﷺ ! د وارثانو لحاظ سره زه كلاله يم،ځما ميراث به څنګه وى ؟ نو په دې الله ﷻ آيت د فرائضونازل كړو([2]).

**د كلاله د لفظ په باره كښې اختلاف**:-مخكښې دا بيان تير شوې دې چه لفظ كلاله ماخوذ دې اكليل نه چه دځلورو وارو طرفونو نه ګيروى①اكثرو عالمانو وئيلى دى چه كلاله هغه دې چه دكوم مرده نمسى نه وى②اوبعضو دا هم قول دې چه دڅا خامن نه وى.لکه آيت مبارك كښې دى چه ﴿لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ﴾

**د كلاله په باره كښې د حضرت عمر قول**:- حضرت عمر ابن خطاب ﷺ ته چې كومې مشكلې مسئلې راغلې وې هغې كښې يو دا هم وه.بخارى او مسلم شريف كښې دى چه حضرت عمر فاروق ﷺ اوفرمائيل چه د دريو ځيزونو متعلق ځما خواهش نيمګړې پاتې شوې دې.ځما خواهش وو كه نبى كريم ﷺ ځمونږ په هغې كښې رهنمائى كړې وې نو مونږ به هغې طرفته رجوع كړې وې.①نيكه،②كلاله ③اود سود ابواب ([3]).

اويوبل روايت كښې دى چه حضرت عمر فاروق ﷺ فرمائي چه دكلاله باره كښې ما د نبى كريم ﷺ نه ځومره سوالونه كړى دى د نورو مسائلو باره كښې ما دومره نه دى كړى تر دې چه نبى كريم ﷺ زه په خپله ګوته مباركه په سينه كښې اووهلم او دائې اوفرمائيل چه تالره د ګرمئ هغه آيت كافى نه دې چه كوم د سورة نساء آخر كښې دې .([4]) او يو حديث مبارك كښې دى كه ما دې باره نبى كريم ﷺ نه خپل اطمينان كړې وې نو دا به مادپاره د سرو اوښانو نه زيات بهتر وو([5]). د نبى كريم ﷺ ددې فرمان مطلب دادې چه دا آيت دګرمئ موسم كښې نازل شوې وو([6]).والله اعلم.

**دعمرﷺ د افسوس وجه**:- او چونكه نبى كريم ﷺ د دې پوهيدو طرفته رهنمائى كړې وه او په دې كښې ئې كفايت خودلې وو،اوس فاروق اعظم نه د دې د معنې تپوس كول هير شو او په هغې ئې اظهار افسوس كولو.تفسير ابن جرير ﷺ كښې دى چه جناب فاروق اعظم نبى كريم ﷺ نه دكلاله باره كښې سوال اوكړو نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ دا نه دى بيان كړى،نو دا آيت مبارك نازل شو.

حضرت ابوبكرصديق ﷺ خپله خطبه كښې اوفرمائيل چه كوم آيت د سورة نساء شروع كښې د فرائضو باره كښې دې،هغه د ولد او والد دپاره دې،او دويم آيت مبارك د ښځې او خاوند دپاره دې اود هغه

---

[1]) صحيح بخارى كتاب التفسير باب(يستفتونک قل الله يفتيكم فى الكلالة.....):٤٦٠٥ صحيح مسلم:١٦١٨، ابوداود:٢٨٢٨، ترمذى:٣٠٤٤، مسندابى يعلى:١٧٤٣.

[2]) صحيح بخارى كتاب المرضى باب ضوء العائد للمريض:٥٦٧٦، صحيح مسلم:١٦١٦، ابوداود:٢٨٨٦، ترمذى:٢٠٩٧.

[3]) صحيح بخارى كتاب الاشربة باب ماجاء فى ان الخمر ماخامر العقل من الشراب:٥٥٨٨، صحيح مسلم:٣٠٣٣، ابن حبان:٥٣٥٣.

[4]) صحيح مسلم كتاب الفرائض باب ميراث الكلالة:١٦١٧، السنن الكبرى للنسائى:١١١٣٥. احمد:١٥/١، ابويعلى :١٨٤، ابن حبان:٢٠١٩.

[5]) احمد:٣٨/١..

[6]) ابوداود:٢٨٨٩، ترمذى:٣٠٤٥، احمد:٢٩٣/٤.

خویندو باره کښې دې چه کومې د مور نه وی او چه کوم آیت مبارك باندې سورة نساء ختمیږی هغه د سکه رونړو خویند باره کښې دې.اوهغه رحمی رشته عصبه کښې چلیږی. (ابن جریر)

**د ،،هلك،، معنی:-** ددې آیت مبارك ﴿هلك﴾ معنی ده مړ شو ،لکه چه فرمان دې چه ﴿كُلُّ شَيۡءٍ هَالِكٌ﴾ یعنی هر څیز فنا کیدونکې دې سوا د ذات ربانی نه چه همیشه باقی پاتې کیدونکې دې.لکه یو بل آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَيَبۡقَىٰ وَجۡهُ رَبِّكَ ذُو ٱلۡجَلَٰلِ وَٱلۡإِكۡرَامِ﴾یعنی هر یو څیز چه په دې دې فانی دې،اوستا درب ذات باقی دې او هغه د جلال اوکرم خاوند دې.

**قوله تعالی: ﴿وَهُوَ يَرِثُهَآ إِن لَّمۡ يَكُن لَّهَا وَلَدٞ﴾**

**د کلاله خور ته نیمه حصه ملاویدل:-** بیا فرمانی چه د هغه ولد نه وی،ددې نه بعضو خلقو دا دلیل نیولې دې چه په کلاله کښې د پلار نه کیدل شرط نه دی،بلکه چه د چا اولاد چې نه وی هغه کلاله دې.په روایت د ابن جریر رحمه الله حضرت عمر ابن خطاب رضی الله عنه نه مروی دې خو صحیح قول د جمهورو دې او د حضرت صدیق رضی الله عنه فیصله هم دا ده چه د هغه نه والد وی اونه ولد او د دلالت هم د دې آیت مبارك نه پس چې کوم الفاظ دی. د هغې نه هم کیږی په کوم کښې چې فرمانی ﴿وَلَهُۥٓ أُخۡتٞ فَلَهَا نِصۡفُ مَا تَرَكَ﴾ یعنی چې د ده خور وی نوخور لره د ټول پریخودې شوی مال نیم په نیمه حصه ده.

**د پلار په وجود کښې د خور محرومتیا:-** اوکه خور پلار سره وی نو پلار دا د میراث نه محرومه کولی شی.او دې ته اجماعی طور هیڅ نه ملاویږی .نو ثابته شوه چه کلاله هغه دې چه د هغه ولد نه وی او دا خو د نص نه ثابت دی.اوپلار ئې هم نه وی اود اهم د نص نه ثابتیږی.خو د لږ غور نه پس څکه چه د خور نیمه حصه د پلار موجودګئ کښې نه کیږی .بلکه هغه دورئې نه محرومه وی. حضرت زید بن ثابت نه د دې مسئلې باره کښې تپوس کیږی چه یوښځه مړه شی او د دې یو خور او خاوند دې.نو دوی اوفرمانیل چه نیمه به خاوند ته ورکړی او نیمه به خور ته.هرکله چه د دوی نه د دې دلیل اوپوښتلې شو نودوی اوفرمانیل چه څماموجودګئ کښې نبی کریم ﷺددې مسئلې داصورت فرمانیلې وو([1]) (احمد).

**د لور په وجود د خور محرومتیا:-** حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه او حضرت ابن زبیر رضی الله عنه نه ابن جریر کښې منقول دی چه د دواړو فتوی د هغه مړده باره کښې چه یو لور او یو خور پریږدی دا وه چه په دې صورت کښې به خور محرومه وی. اودې ته به هیڅ نه ملاویږی څکه چه د قرآن دې آیت مبارك کښې د نیمې حصې ملاویدو صورت بیان شوې دی چه د مړده اولاد نه وی او دلته اولاد شته.

**د لور په وجود کښې د خور عدم محرومتیا:-** لیکن جمهور ددې خلاف دی،هغوئ وائی چه دې صورت کښې به هم لور ته نیمه حصه ملاویږی.په سبب د فرضو او نیمه به خور ته ملاویږی.په سبب د عصبه.اسود رحمه الله وائی چه حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ زمانه کښې فیصله اوکړه چه نیمه به جینئ ته اونیمه خور ته ملاویږی ([2]).

صحیح بخاری کښې یو روایت کښې دی چه حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه د لور او نمسئ او خور باره کښې فتوی ورکړې وه چه نیمه به لور ته او نیمه خور ته بیا ئې اوفرمانیل چه لږ خو ابن مسعود رضی الله عنه ته هم ورشه،چې هغه هم ماسره موافقت کوی.خو هرکله چه ابن مسعود رضی الله عنه نه سوال اوشو او د حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه فیصله ورته واورولې شوه نو دوی اوفرمانیل چه بیا خو به څه ګمراه شم،اوهدایت یافته خلقو نه به شمیر نه یم.واورئې دې کښې څه هغه فیصله کوم چه کومه نبی کریم ﷺ کړې ده. نیمه به لور ته او شپږمه حصه به نمسئ ته او دوه ثلثه پوره شو او چه کوم باقی پاتې شی هغه خورته .نوموړ

---

[1] ) احمد:٥/١٨٨، مجمع الزوائد :٤/٢٢٨،

[2] ) صحیح بخاری کتاب الفرائض باب میراث الاخوات مع البنات عصبة:٦٧٤١.

بیا واپس شو او حضرت ابوموسی اشعری ﷺ ته مو دا خبرورکړو، نوویې فرمائیل چه په تاسو کښې ترڅو پورې دا علامه موجود وی نو ځمانه تپوس مه کوئی.(۱)

**قوله تعالی:: وَهُوَ يَرِثُهَا إِن لَّمْ يَكُن لَّهَا وَلَدٌ**

**د رور د کلاله خور نه میراث اوړل:-** بیا فرمان دې چه دا به د هغه وارث وی که د ده اولاد نه وی یعنی رور د خپلې خور په ټول میراث کښې وارث دې.په دې صورت کښې چه هغه کلاله مړه شی یعنی د هغې اولاد نه وی اونه ئې پلار وی ،ځکه چه د پلار موجودګئ کښې خو رور ته به میراث کښې هیڅ نه ملاویږی.څوکه رور سره بل څوك حصې والا وارث وی لکه خاوند یا مور یا رور نو ده ته به د هغې حصه ملاویږی.او د باقی مال وارث به رور وی.

صحیح بخاری کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی فرائض د دوی اهل سره یو ځائې کړئی او چه کوم باقی پاتې شی نو هغه د هغه سړی دی چه د ټولو نه ورته زیات نزدې وی (۲).

**قوله تعالی:: فَإِن كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ**

**د دوو خویندو نه د زیاتو صورت:-** بیا فرمائی که خویندې دوه وی نو هغې ته به د متروکه مال نه دوه ثلث ملاویږی .هم دا حکم د دوؤ نه د زیاتو خویندو هم دې.هم ددې ځائې نه یو جماعت د دوؤ لونړو حکم کړې دې .لکه چه د دوؤ نه د زیاتو خویندو حکم د لونړو حکم سره دې.او د هغه آیت مبارك الفاظ دا دی چه ﴿فَإِن كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ﴾

**وَإِن كَانُوا إِخْوَةً رِّجَالًا وَنِسَاءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ**

**درونړو او خویندو د جمع ګیدو په صورت کښې حکم:** بیا فرمائی که رور او خور دواړه وی نو د سړی حصه به د دوؤ ښځو برابر وی.داحکم د عصباتو هم دې.که هلك او که نمسی وی یا رور وی هرکله چه په دوی کښې سړې یا ښځه دواړه موجود وی نو څومره چه دوو ښځو ته ملاویږی نو دومره به یو سړی ته ملاویږی.

**د احکامو بیانولو حکمت:-** الله ﷻ خپل فرائض بیان فرمائی.خپل حدونه مقرروی،خپل شریعت واضح کوی،چه هسې نه تاسو دهوکه شئ،الله ﷻ د ټولو کارونو د انجام نه واقف دې ،اود هر مصلحت نه دانا.د بنده ګانو خیرخواه دې،د مستحق د استحقاق پیژندونکې دې.

د ابن جریر ﷫ روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ او صحابه کرام چرته په سفر روان وو ،د حذیفه ﷺ د اوښ سر نبی کریم ﷺ پسې چې کوم صحابی ناست وو د هغه کجاوې سره برابر وو،او د حضرت عمر فاروق ﷺ د سورلئ د حذیفه ﷺ سره روستو دویم کس سره برابر وو اودا آیت مبارك نازل شو.نو نبی کریم ﷺ حضرت حذیفه ﷺ ته دا آیت مبارك واورولو، او حضرت حذیفه ﷺ حضرت فاروق اعظم ﷺ ته او دې نه پس حضرت عمرفاروق ﷺ چه کله دا آیت مبارك و اوریدو او دې باره کښې ئې سوال اوکړو نو وې وئیل چه په الله قسم ته ناپوهه ئې،ځکه چه ماته نبی کریم ﷺ آورولې وو م دغه شان ما تاته واورولو. په الله قسم ما په دې کښې هیڅ زیاتی نه ده کړې.حضرت عمرفاروق ﷺ به فرمائیل چه ائې الله ﷻ ! اګر چه تا ظاهر کړې دی مګر ما باندې نه دی ظاهر شوی .(۳) خو دا روایت منقطع دې.هم ددې روایت یو بل سند کښې دی چه حضرت عمر فاروق ﷺ دوباره دا سوال د خپل خلافت په زمانه کښې کړې وو.

---

۱) صحیح بخاری کتاب الفرائض باب میراث ابنة ابن مع ابنة:۶۷۳۶. ابوداود :۲۸۹۰. ترمذی:۲۰۹۳.

۲) صحیح بخاری کتاب الفرائض باب میراث الولد من ابیه وامه:۶۷۳۲، صحیح مسلم:۱۶۱۵، ترمذی:۲۰۹۸.

۳) الطبری

**دکلاله په باره کښې د عمرﷺ عدم تشفي:-** او یو حدیث مبارك کښې دی چه حضرت عمرفاروق ﷺ نبی کریم ﷺ نه تپوس کړی وو چه یارسول الله ﷺ ! د کلاله میراث به څنګه تقسیمیږی ؟ په دې باندې الله ﷺ دا آیت مبارك نازل کړو ،خو د حضرت عمرفاروق ﷺ پوره تشفي نه وه شوې.خکه نې خپلې لور او د نبی کریم ﷺ بی بی حضرت حفصه ﷺ ته فرمائیلي وو چه کله نبی کریم ﷺ خوشحاله وی نو ته د دې تپوس اوکړه. نو حضرت حفصه ﷺ یوورخ هم دغه شان موقع اوموندله او تپوس نې اوکړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه شاید ستا پلار تاته د دې د تپوس کولو هدایت کړې دې.خما خیال دې چه هغه به دا معلوم نکړې شی.حضرت عمرفاروق ﷺ چه کله دا واوریدل نو وې فرمائیل چه هرکله نبی کریم ﷺ دا اوفرمائیل نو اوس څه دانشم معلومولې.

اویو روایت کښې دی چه د حضرت عمر فاروق ﷺ په حکم چه کله حضرت حفصه ﷺ سوال اوکړو نو نبی کریم ﷺ ورته په یو پاڼره دا آیت مبارك په چا اولیکلو ،بیا نې اوفرمائیـل چه عمر ﷺ تاته د دې د تپوس کولو وئیلی دی ؟ خما خیال دې چه هغه به دا صحیح نه کړی.آیا هغه ته دګرمئ هغه آیت مبارك یاد نـه دې (یعنی هغـه ایت چې د ګرمـئ په موسم کښې نـازل شـوې وو) چـه کـوم پـه سورة نساء کښې دې،اوهغه کافی نه دې څه ؟ ﴿وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَالَةً﴾ بیا چه کله نبی کریم ﷺ نـه خلقو سوال اوکړو نو هغه آیت نازل شو چه کوم د سورة نساء په اخرکښې دې.اودا حدیث مبارك مرسل دې.

یو ځل حضرت عمرفاروق ﷺ صحابه کرام ﷺ جمع کړل او یو تکړه نې راوخسته چه هم نن دکلاله باره کښې فیصله کوم چه په پرده کښې هم ښځو ته هم معلومه شی،نو په هغه وخت کښې کور کښې یو مار راووتلو ،او ټول خلق خواره شو.نو عمر فاروقﷺاوفرمائیـل کـه د الله ﷺ د دې د پوره کولو اراده وې نو دا به نې پوره کړې وې.ددې اسناد صحیح دی (١).

**په درې مسئلو کښې د عمرﷺ عدم تشفي:-** مستدرك حـاکم کښـې دی چـه حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل چه درې مسئلې که ما د نبی کریم ﷺ نه پوښتلې وې نو دا به ماته د سرو اوښانو د ملاویدو نه زیات خوښ وو① یو خودا چه نبی کریم ﷺ نـه پس به خلیفه څوك وی؟②دویم دا چه کوم خلق د زکوة قائل وی خو وائی چه مونږ به نې تاته نـه درکوو،نو دوی سره د جنګ کول څنګه دی؟③دریم د کلاله باره کښې(٢)او یو حدیث مبارك کښې د زکوة نه ورکونکو په ځائې د سودی مسئلو بیان دې (٣).

حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ فرمائی چه د حضرت عمرفـاروق ﷺ آخری وخت کښـې مـا د دوی نه واوریدل چه قـول هغـه دې چه کـوم ماواوریدو ؟ چې تپـوس مـو تـرې اوکړو چه هغـه څـه دی ؟ نو وې فرمائیل چه کلاله هغه دې چه د چا اولاد نه وی (٤).

**د شیخینو اختلاف:-** او یو روایت کښې دی چه حضرت عمرفاروق ﷺ فرمائی چه خما او د حضرت ابوبکرصدیق ﷺ مینځ کښې دکلاله باره کښې اختلاف پیدا شو او خبره هم هغه وه چه کومه ما وئیله.حضرت عمرفاروق ﷺ خپل سکه رونړه او چه کوم د مور نه وی (او د پلا نه وی) جمع شی نو دائې ثلث کښې شریك کړی وو، اوحضرت ابوبکر صدیق د دې خلاف وو.ابن جریر کښې دی چه خلیفة المسلمین حضرت عمرفاروق یو رقعه باندې د نیکه د میراث او کلاله باره کښې څه اولیکل ،بیا نې استخاره اوکړه،او څه وخت چې نې آرام اوکړو،او د الله ﷺ نه نې د دې دعا اوکړه،چه انې الله ﷺ ! که

---

١) الطبری :٤٣٩/٩.

٢) حاکم:٣٠٣/٢/٢،

٣) حاکم:٣٠٤/٢.

٤) حاکم:٣٠٣/٢ وسنده صحیح.

ستا په علم کښې په دې کښې بهتري وی نو دا جاري کړه. بیا چه کله دوی زخمی شو نو دوی دا رقعه راوغوښته او هیڅوک ته د دې علم او نشو چه په دې کښې ئې څه لیکلی وو،بیا ئې پخپله اوفرمائیل چه ما په دې کښې د نیکه او کلاله باره کښې لیکلی وو.او ما استخاره کړې وه،بیا څما خیال اوشو چه تاسو هم په دې پریږدم چه په څه تاسویې.

ابن جریر کښې دی چه عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل د کلاله په باره کښې چې زه د حضرت ابوبکرصدیق ﷺ نه خلاف کوم نو ماته شرم راځي او د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ فرمان وو چه کلاله هغه ده چه د چا ولد نه وی،او هم په دې د جمهور صحابه کرام ﷺ او تابعین رحمهم الله او آئمه دین دی.هم دا حال د څلور وارو امامانو او اووه واړه فقهاؤ دې،او هم په دې باندې قران پاک دلالت کوی لکه څنګه چه الله ﷻ واضح کړی دی او فرمائي چه ستاسو دپاره مو ښکاره بیانونه کړی دی چه تاسو ګمراه نه شئ،او الله ﷻ ته هر څیز ښه معلوم دې.والله اعلم.(الحمدلله) دسورة نساء تفسیر ختم شو الله تعالی دې قبول کړی.

## د سوره مائده تفسیر

**د سورة د نزول وخت:**- حضرت آسماء بنت یزید ﷺ فرمائي چه ما د نبی کریم ﷺ د اوښې عضباء واګې نیولې وې چه په نبی کریم ﷺ سورة مائده پوره نازله شوه. نزدې وه چه په دې بوج سره د اوښې پښې ماتې شوې وې ([1]) (مسند احمد).

اویو روایت مبارك کښې دی چه په هغه وخت کښې نبی کریم ﷺ سفر کښې وو .او د وحی د بوج نه معلومه شوه چه ګنې د اوښې پښې ماتې شوې ([2]) (ابن مردویه).اویو روایت کښې دی چه کله د اوښې د طاقت نه زیات بوج په اوښه راغلو نو نبی کریم ﷺ دې نه کوز شو ([3]). (مسند احمد).

**سورة مائده اخرې سورت دې:**- ترمذی شریف کښې یو روایت کښې دی چه ټولو نه آخری سورة چه په نبی کریم ﷺ نازل شوې دې هغه سورة ﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ﴾ دې([4]).

مستدرك حاكم کښې دی چه حضرت جبیر بن نفیر فرمائي چه څه حج ته لاړم،هلته د حضرت عائشه بنت صدیق ﷺ خدمت کښې حاضر شوم نو حضرت عائشه ﷺ ماته اووئیل چه ته د سورة مائده تلاوت کوې ؟ ما ورته اووئیل چه آو. وې فرمائیل چه واوره ! ټولو نه آخری سورة هم دا دې.په دې کښې چه کوم څیز حلال ګورې نو هغه حلال اوګنړه او په دې کښې چه کوم څیز حرام اومومې نو هغه حرام اوګنړه.([5]).

مسند احمد کښې هم دا روایت دې او په هغې کښې دی چه بیا ما دوی نه د نبی کریم ﷺ د اخلاقو باره کښې تپوس اوکړو نو دوی ﷺ اوفرمائیل چه د نبی کریم ﷺ د اخلاقو مکمل نمونه قران پاك دې.د اروایت نسائی کښې هم دې ([6])

---

[1]) احمد:٦/٤٥٥، طبرانی :٢٠/١٩٩، مجمع الزوائد:٧/٤٣.

[2]) الدرالمنثور :٢/٤٤٦، دلائل النبوة :٧/٤٥،.

[3]) احمد: ٢/١٧٦، مجمع الزوائد:٧/١٣.

[4]) ترمذی کتاب التفسیر القران باب ومن سورة المائدة:٣٠٦٣، وسنده حسن حاکم:٢/٣١١.

[5]) حاکم:٢/٣١١ وسنده صحیح السنن الکبری للنسائی: ١١١٣٨، امام دې ته صحیح وئیلی دی.

[6]) احمد:٦/١٨٨، وسنده صحیح السنن الکبری للنسائی:١١١٣٨، دلاالنبوة:١١٨، فضائل القرآن:ص/١٢٨ ددې روایت سند صحیح درجه کښې دې

| آیاوتونه | سورة مائده مدنی دې | رکوعګانې |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ١٢٠ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ١٦ |

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْٓا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ ۵ اُحِلَّتْ لَكُمْ

ائي هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | پوره کړئ | ټولې وعدې | حلال کړې شو | ستاسو دپاره

ائي مومنانو! خپلې وعدې پوره کوئ | ...................... تاسودپاره د څاروؤ

بَهِيْمَةُ الْاَنْعَامِ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ

ټول څریدونکې څاروې | دڅناورو | ما سوا د | هغې نه | چې لوستې به شي | په تاسو باندې

ټول قسمونه حلال دی | ...................مګر د کومو بیان چې به وړاندې تاسو ته اوشي

غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ط اِنَّ اللّٰهَ

مګر حلال مه ګڼړې | ښکار | حال دا چې تاسو | احرام تړونکې يئ | بیشکه الله

خوځان دپاره ښکار حلال مه ګڼړئ چې تاسود احرام حالت کښې یئ | بیشکه الله ﷻ

يَحْكُمُ مَا يُرِيْدُ ۞ يَآيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا

حکم کوی | دهغه څه | چې غواړی | ائي هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | مه ګڼړئ حلال

چې څه غواړی هغه حکم کوی | ائي دایمان خاوندانو دالله ﷻ د نښو نښانو بې حرمتي مه کوئ

شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَآئِدَ

نښې د الله | اونه میاشتې د حرمت | اونه څاروی دقربانۍ | اونه پټې والاڅاروی

اونه د معززو میاشتو | اونه دقربانۍ د څاروؤ | اونه د هغه څاروی چې (دالله ﷻ دنامې) پټې ورته اچولې شوې وی

وَلَآ آمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ

اونه قصد کونکې | محترم کورته | حال دا چې غواړی هغوئ | فضل | درب خپل نه

اونه هغه کسان چې بیت الحرام (کعبې) ته روان وی | دخپل رب فضل خوشحالی لټوی ..........

وَرِضْوَانًا ط وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ط وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ

او د (هغه) رضا | اوکله چې | احرام ختم کړئ تاسو | نو بیا ښکار کوئ تاسو | اونه دې کړی باعث تاسو

..........اوهر کله چې د احرام پابندی ختمه شي | نو بیا ښکار کولی شئ | او (خیال ساتئ) چې یوه ډله چې

شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا م

دشمنی دیو قوم | چې هغوئ منع کړی یئ تاسو | د مسجد حرام نه | په دې خبره چې زیاتې اوکړئ تاسو

تاسوئې دمسجدحرام نه منع کړی یئ د هغوئ کردار دې تاسو په ظلم کولو باندې اماده نکړی

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَتَعَاوَنُوا | عَلَى الْبِرِّ | وَالتَّقْوَىٰ | وَلَا تَعَاوَنُوا |
| اومدد کوئ | ادیوبل سره په نیکئ کښې | او په تقوی کښې | اومهٔ کوئ مدد د یو بل سره |
| اود نیکئ اوپرهیزګارئ په کارونوکښې یوبل سره مدد کوئ | او دګناه او | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى الْإِثْمِ | وَالْعُدْوَانِ | وَاتَّقُوا اللَّهَ | إِنَّ اللَّهَ | شَدِيدُ |
| په ګناه | او په زیاتی کښې | او اوویریږئ دالله نه | بیشکه الله | ډیر سخت دې |
| دظلم په کارونو کښې هیڅ‌چاسره مددمهٔ کوئ | اوداللهﷻ نه ویره کوئ | بیشکه اللهﷻ | | |
| الْعِقَابِ ۝٢ | | | | |
| په عذاب کښې | | | | |
| سخت عذاب ورکونکې دې | | | | |

**مؤمنانو ته خطاب:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه یو سړی حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته اوونیل چه تاسو ماته څه خاص وصیت اوکړئی.دوی رضی الله عنه ورته اوفرمائیل چه کله ته په قران کښې د ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ لفظ واورې نو زر دا په غور او توجه سره واوره.خکه چه دې نه پس به د څه نه څه ښیګړې حکم وی یا به د څه بدئ نه د منع کیدو حکم وی

حضرت زهری رحمه الله فرمائی چه چرته هم اللهﷻ ایمان و الو ته حکم کړې دې نو دې حکم کښې نبیﷺ هم شامل یم.حضرت خیثمه رحمه الله فرمائی چه توراة کښې د﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ په ځائې ﴿يَاأَيُّهَا الْمَسَاكِينُ﴾ دی،

**دعلی رضی الله عنه په فضیلت کښې موضوعی اثر:-** په یو روایت کښې دی کوم چه حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه په نوم سره بیان شوې دې چه چرته هم ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ دی نو ټولو موقعو کښې ددې ټولو ایمان والو سردار شریف او امیر حضرت علی رضی الله عنه دې.د نبی کریمﷺ په صحابوکښې هر یو ته زورنه ورکړې شوې دد.سوا د حضرت علی رضی الله عنه نه چه هغه په هیڅ خبره کښې کښې زورنه نه ده ورکړې شوې.

**د روایت تضعیف:-** یاد ساتئ چه د اثر بالکل غلط دې او ددې الفاظ منکر دی او د دې سند هم صحیح نه دې.حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائی چه د دې راوی عیسیٰ بن راشد مجهول دې،دده روایت منکر دې.څه وایم چه دغه شان ددې بل راوی علی بن بذیمه اګر چه ثقه دې مګر د اعلی درجې شیعه دې،بیا د ده داسې روایت چه دده د خاص خیال تائید کوی څنګه د قبلیدو لائق دې ؟ نو یقینی طور به هغه دې کښې ناقابل قبول وی.دې روایت کښې دا دی چه ټول صحابه کرام رضی الله عنهم زورلې شوی دی سوا د حضرت علی رضی الله عنه نه،دې نه مراد د دوی هغه آیت مبارك دې چه په هغې کښې اللهﷻ خپل نبیﷺ ته سرګوشئ کولو نه مخکښې د صدقې کولو حکم کړې دې.نو ډیرو نه زیاتو مفسرینو ونیلی دی چه په دې باندې عمل صرف حضرت علی رضی الله عنه کړې دې .او بیا دا فرمان نازل شو چه ﴿ءَأَشْفَقْتُمْ أَنْ تُقَدِّمُوا﴾ الخ،خو دا غلط دی چه آیت کښې صحابه کرام رضی الله عنهم زورلې شوی دی،بلکه اصل کښې دا حکم په طور د وجوب نه وو بلکه اختیاری امر وو. دې باندې عمل کولو نه مخکښې اللهﷻ دا منسوخ کړو نو حقیقت کښې هیچا نه ددې اختلاف نه دی شوې،بیا دا خبره غلطه ده چه حضرت علی رضی الله عنه په هیڅ خبره نه دې زورلې شوې.د سورة انفال آیت مبارك اوګورئی.په هغې کښې هغه ټول صحابه کرام رضی الله عنهم زورلې شوی وو چه کومو د بدری قیدیانو دپریښودلو او ددوی نه د فدیه اخستلو مشوره ورکړې وه.اصل کښې سوا د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه نه باقی د ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم هم دا مشوره وه،نودا د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه

نه سوا نورو تولو ته دی.او په دوی کښې حضرت علی ﷺ هم دې.نو دا ټولې خبرې په دې خبره ښکاره دلیل دې چې دا اثر بیخی ضعیف او واهی دې،والله اعلم،

**د ابن حزم ﷺ په کتاب کښې د مائدې ایت:-** ابن جریر کښې دی چه حضرت محمد بن سلمه ﷺ فرمائی چه کوم کتاب نبی کریم ﷺ حضرت عمر بن حزم ﷺ ته لیکلې ورکړې وو او هغه نې نجران ته لیږلې وو،دا کتاب ما حضرت ابوبکر ابن حزم ﷺ سره لیدلې وو،او دا مې لوستلې وو،او په دې کښې د الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ احکام وو،په هغې کښې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَوۡفُواْ بِٱلۡعُقُودِ﴾ نه تر ﴿إِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ﴾ پورې لیکلې شوی وو ([1]).

ابن ابی حاتم کښې دی چه د حضرت عمر بن حزم ﷺ نمسی حضرت ابوبکربن محمد اوفرمائیل چه مونږ سره دا کتاب چه کوم حضرت عمروبن حزم ﷺ لیکلې وو هرکله چه نې هغه یمن ته د دین خورولو او احادیثو خودلو او زکوة وصولولو دپاره لیږلې وو،په هغې کښې د وعدې او د حکم کولو احکام وو،او په هغې کښې د ﴿بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ﴾ نه پس لیکلې شوی وو چه دا کتاب د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ د طرفنه دې،اې ایمان والو ! وعدې پوره کړئی،دا وعده د حضرت محمد ﷺ د طرفنه حضرت عمرو بن حزم ﷺ دپاره ده هرکله چه دوی نې یمن ته لیږل،دوی ته رسول الله ﷺ خپلو کارونوکښې د ویرولو حکم کړې وو. یقیناً الله ﷻ هغوی سره دې څوك چې د هغه نه ویرېږی او احسان او نیکی کوی ([2]).

**د عقود نه مراد:-** حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ وغیره فرمائی چه عقود نه مراد عهد دې ([3])،ابن جریر ﷺ په دې باندې اجماع بنائی که هغه قسمیه عهد وی او که وعدې وی ټول پوره کول فرض دی ([4]).

**دابن عباس ﷺ قول:-** حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ نه دا هم مروی دی چه عهد پوره کولو کښې د الله ﷻ حلال لره حلال ګنړل او حرام لره حرام ګنړل د هغه د فرائضو پابندی کول د هغه د حد بندو خیال ساتل د څه خبرې خلاف نه کول یو حد نه ماتول څه حرام کار نه کول دا ټول شامل دی اولولې آیت ﴿وَٱلَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهۡدَ ٱللَّهِ﴾ لره ﴿سُوٓءُ ٱلدَّارِ﴾ پورې.

حضرت ضحاك ﷺ فرمائی چه مراد ترې دا دې چه د الله ﷻ حلال،د الله ﷻ حرام،او د هغه وعدو لره چه د ایمان نه پس ستاسو په ذمه دی،پوره کول د الله ﷻ د طرفنه فرض دی.د فرائضو پابندی،د حلال او حرام عقیده ساتل وغیره وغیره.

حضرت زیدبن اسلم ﷺ فرمائی چه دا شپږ وعدې دی.د الله ﷻ د وعدو خپلو کښې یوشان والی قسمیه عهد،دشرکت عهد،دتجارت عهد،دنکاح عهد،قسمیه عهد،محمد بن کعب ﷺ وائی چه پنځه دی.چه په دې کښې د جاهلیت د زمانې قسمونه او شرکت تجارت او وعدې شاملې دی.

**خرڅونکی او اخستونکی ته د اختیار مسئله:-** کوم خلق وائی چه اخستلو خرڅولو نه پس تر اوسه پورې چه خرڅونکې او اخستونکې لا جدا شوی نه وی نو بیا هم د واپس کولو اختیار نشته دې.هغوی خپل دلیل دا آیت ګنړی.امام ابو حنیفه ﷺ،او د امام مالك ﷺ هم دا مذهب دې.خود امام شافعی ﷺ او امام احمد بن حنبل ﷺ ددې خلاف دی او جمهور علماء هم ددې خلاف دی.

اودلیل کښې هغوئ دا صحیح حدیث پیش کوی .اودا په صحیح بخاری کښې د حضرت ابن عمر ﷺ

[1] ) الطبری:٩/٤٥٤.

[2] ) دلائل النبوة: ٥/٤١٣، وهوحسن

[3] ) الطبری: ٩/٤٥٠.

[4] ) ایضا :٩/٤٤٩،

نه مروی دي چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اخستونکي او خرڅونکي ته د سودا واپس کولو اختیار شته دې تر کومې چه جدا شوی نه وی (۱).د صحیح بخاری شریف په یو روایت کښې داسې دي چه هرکله دوه سړو خرڅول او اخستل اوکړو نو دوی ته د یو بل نه د جدائۍ کیدو پورې اختیار دې (۲).دا حدیث مبارك ښکاره او صریح دلیل دې چه دا اختیار د اخستلو او خرڅولو نه پس دې،آو دا دې د د بیع لازمیدو کیدو نه خلاف نشي ګنړلې بلکه دا شرعی طور د دې مقتضی دی .نوددې پوره کول هم ددې آیت مبارك ماتحت ضروری دی.

**صرف په ایجاب او قبول باندې بیع مکمل کیږی د مجلس اختتام ضروری نه دې**

**مسلک حنفی:-** حافظ رحمه الله چې امام ابوحنیفه رحمه الله ته کوم نسبت کړې دې دا صحیح دې چه کله په مجلس د عقد کښې عقد پوره شی نو بیا بائع یا مشتری ته اختیار نشته اګرچې لامجلس باقی وی ځکه چه کوم حدیث امام شافعی رحمه الله وغیره ذکر کوی د هغې نه مراد تفرق بالابدان نه دې بلکه تفرق بالاقوال دې یعنی چې د خرڅولو او اخستلو خبره ختمه شی نو بیع منعقده شوه چاته د واپس کولو اختیار نشته (تسهیل الهدایه شرح هدایه (۳۵۱۵)-

**قوله تعالی:: أُحِلَّتْ لَكُم بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ**

**دحلالو ځناورو ذکر:-** بیا فرمائي چه ځناور،چارپایان،ستاسو دپاره حلال کړې شوی دی یعنی اوښ، غوا، چیلۍ وغیره.ابوالحسن رحمه الله،حضرت قتاده رحمه الله وغیره نه هم دا قول منقول دې.ابن جریر رحمه الله فرمائی چه عربو کښې د دې د لغت مطابق هم دا دی.

**د مذبوحې په خیټه کښې د بچی حکم:-** حضرت ابن عمر رضی الله عنه، حضرت ابن عباس رضی الله عنه وغیره بزرګانو هم د دې آیت نه استدلال کړې دې چه کومه حلاله ماده ذبح کړې شی او د دې د خیټې نه بچې راوخی اګر چه مړ وی نوبیا هم هغه حلال دې (۳).ابوداود او ترمذی اوابن ماجه کښې دی چه صحابه کرامو رضی الله عنهم د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه کله اوښ یا غوا یا چیلۍ ذبح کړې شی او د دې د خیټې نه بچی راوخی نو مونږ هغه خورو که نه ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که غواړئی نو خورئی ځکه چه د دې ذبیحه ددې د مور ذبیحه ده (۴). امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وئیلی دی.ابوداود کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خیټه کښې دننه د بچی ذبح دده د مور ذبح ده.(۵)

**قوله تعالی:: إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ**

**د «ما یتلی» نه مراد:-** بیا فرمائی مګر هغه چه ستاسو مخکښې به بیان شی.① حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه د دې مطلب مردار او وینه اود خنزیر غوښه ده. (۶) ② حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه د دې نه مراد پخپله مړ شوې ځناور او هغه ځناردې چه د هغه په ذبیحه باندې د الله ﷻ نوم نه وی اخستې شوې (۷).

**د حافظ رحمه الله رائې:-** پوره علم خو الله ﷻ ته دې. خو په ظاهره دا معلومیږی چه د دې نه مراد د الله ﷻ فرمان ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ﴾ الخ دې.① یعنی تاسو باندې مرداره ② او وینه ③ او د خنزیر غوښه حرامه

---

۱) صحیح بخاری کتاب البیوع باب اذا لم یوقت الخیار هل یجوز البیع: ۲۱۰۹، صحیح مسلم: ۱۵۳۱، ابوداود: ۳۴۵۷. احمد:۷۳/۲،

۲) صحیح بخاری کتاب البیوع باب اذا خیر احدهما صاحبه بعدالبیع فقد وجب البیع :۲۱۱۲ صحیح مسلم:۱۵۳۱، ابوداود: ۳۴۵۷.

۳) الطبری:۴۵۵/۹.

۴) الطبری:۴۵۶/۹.

۵) ابوداود حواله سابق : ۲۸۲۸.

۶) الطبری:۴۵۸/۹.

۷) ایضا

کړې شوې ده ④او هرهغه څیز چې په هغې د الله تعالی د نوم نه سوا د بل چا نوم واخستې شی ⑤او چه د کوم مرغۍ خپه کړې شی، ⑥او کوم چې په وهلو سره مړ شوې وی. ⑦او کوم چې د یوبورته ځائې نه راوغورزیږی. ⑧اوکوم چې تکر وهلو سره مړ شی، ⑨او کوم چې څیرونکی ځناور اوخوری. ⑩نو دا هم چارپایانو کښې دې.خو دې وجوهاتو سره د احرامیږی.

په دې وجه دې نه پس فرمائی چه تاسو کوم یوذبح کړئی او چه کوم ځناور په بت خانو کښې ذبح کړې شی هغه هم حرام دې اوداسې حرام چه په هغې کښې هیڅ یو څیز هم حلال نه دی د دې وجه په دې باندې استدلال نه دې شوې ،او حلال سره نه د دې هیڅ ذکر نه دې شوې نو دلته هم دا فرمائی چه ځناور چارپایان ستاسودپاره حلال دی.اود بعضو ذکر راځی چه هغه د بعضو وجوهاتوپه بناء حرام دی.او د دې نه پس جمله د حالیت په بناء منصوب ده،مراد د انعام نه عام دې.بعضې هغه چه په انسانانو کښې اوسیږی،لکه اوښ،غوا،چیلۍ او بعضې هغه چه ځنګلی دی.لکه نیل اوسۍ غوا او ځنګلی خرنو په ساتلی شوی ځناورو کښې نې دا مخصوص کړل چه کوم بیان شو او وحشی ځناورو کښې د احرام حالت کښې هر یو ښکار کول منع دی.د ا هم ونیلې شوی دی چه دې نه مراد مونږ ستاسو دپاره چارپایان هر حال کښې حلال کړی دی.

قوله تعالی:: يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُحِلُّواْ شَعَٰٓئِرَ ٱللَّهِ

**دالله د نښو احترام کول:-** نو تاسو د احرام حالت کښې د ښکار کولو نه منع شۍ.اودا حرام اوګڼړئی.ځکه چه د الله تعالی هم دا حکم دې.او د هغه پاك ذات په هر حکم کښې حکمت وی.اودغه شان د هغه هر ممانعت کښې هم حکمت دې.الله ﷻ چه د څه اراده اوکړی نو د هغې حکم کوی اې ایمان والو ا د الله ﷻ د نښو توهین مه کوئی.یعنې د حج د مناسکو او عمرې وغیره صفا مروه،د قربانۍ د ځناور او اوښ اود الله ﷻ حرام کړې شوی هر څیز. د حرمت والامیاشتو توهین مه کوئی.ددې ادب کوئی،د دې لحاظ ساتئی،د دې تعظیم کوئی ،او دې کښې خصوصیت سره د الله ﷻ د نافرمانونه بچ اوسۍ.او دې مبارکو میاشتو کښې خپل دښمن سره پخپله جنګ مه کوئی.لکه ارشاد دې چه ﴿يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلشَّهْرِ ٱلْحَرَامِ﴾ الخ یعنی اې نبی ﷺ ستانه د حرمت والا میاشتو باره کښې تپوس کوی د جنګ په حقله نو ته ورته اووایه چه په دې کښې جنګ کول ګناه ده.او په یو بل آیت مبارك کښې دی چه د میاشتو شمیر د الله ﷻ په نیز دولس دی.

**څلورمیاشتې معززې دی:-** صحیح بخاری کښې دی د حضرت ابوبکر صدیق ﷛ نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ د حجة الوداع په موقع اوفرمائیل چه زمانه واپس داسې طرز ته راغله څنګه چې په اول کښې وه .چه کومه ورځ الله ﷻ آسمان او زمکه پیداکړی وو. کال د دولسو میاشتو دې.او دې کښې څلور میاشتې حرمت والا دی.درې خو پرله پسې دی یعنی ذی القعده،ذی الحجه،او محرم اوڅلورمه رجب،اودې ته د قبیله مضر رجب ونیلې شی.اودا د جمادی الاخراو شعبان په مینځ کښې وی ([1]).

**په معززو میاشتو کښې د جنګ حکم:-** ددې نه دا هم معلومه شوه چه د دې میاشتو حرمت تر قیامته پورې دې.لکه څنګه چه سلفو د یو جماعت مذهب دې.د آیت مبارك تفسیر کښې حضرت عبدالله ابن عباس ﷛ وغیره نه منقول دی چه دې میاشتو کښې جنګ کول مه حلالوئی.خود جمهور دا مذهب دې چه دا حکم منسوخ شوې دې.او حرمت والا میاشتو کښې هم د اسلام دښمنانو سره جهاد کول هم جائزدی.د هغوئ دلیل دالله ﷻ دا فرمان دې چه ﴿فَإِذَا ٱنسَلَخَ ٱلْأَشْهُرُ ٱلْحُرُمُ فَٱقْتُلُواْ ٱلْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ﴾ یعنی هرکله چه حرمت والا میاشتې تیرې شی نو مشرکان قتل کړئی چه چرته نې هم تاسو مومۍ.

---

[1]) صحیح بخاري کتاب بدء الخلق باب ماجاء فی سبع ارضین:۳۱۹۷، صحیح مسلم:۱٦۷۹.

اودې نه مراد دلته د دې څلورو میاشتو تیریدل دي، کله چه دا تیرې شي چه کومې په هغه وخت کښې وې نو اوس دې نه پس برابر جهاد جاري دې.او قران پاك بیا کومه یو میاشت نه ده خاص کړې بلکه امام ابوجعفر رحمه الله خو په دې اجماع نقل کوی چه الله ﷻ مشرکانو سره جهاد کول هر وخت هره میاشت کښې جاري ساتلې دې.دوی فرمائي چه هم داشان په دې اجماع هم ده که یو کافر د حرم د تولو ونوپوستکی په ځان واچوی نو مونږ به هغه دپاره امن نه کنړو. که مسلمانانو ورته پخپله ددې نه مخکښې امن نه وی ورکړې.ددې مسئلې پوره بحث دلته نشی کیدې،

**په معززو میاشتو کښې هم کافرانو سره جنګ کول جائز دې**

**مسلک حنفي:**- په اشهرالحرم کښې د کافرانو سره د جهاد نه کولو حکم اوس منسوخ شوې دې بلکه په ټولومیاشتو کښې دوی سره جهاد کولی شی دا د جمهورو عالمانو مذهب دې باقي دا خبره چه په کوم آیت سره په دې میاشتو کښې د حرمت حکم منسوخ شوې دې نو ددې د تفصیل دپاره اوګورئ.[1]

**قوله تعالی:: وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَائِدَ**

بیا فرمائي چه د ﴿هدی﴾ او ﴿قلائد﴾ بې حرمتي هم مه کوئی،یعنی بیت الله شریف ته قربانئ لیږلو نه مه مانع کیږئ.ځکه چه په دې کښې دالله تعالی نښې او تعظیم دې.او قربانئ دپاره چه کوم اوښ حرم ته لیږئ نو د دې په غاړه کښې د غاړکئ اچولو نه هم مه منع کیږئ،چه د دې نښې نه ئې هرڅوك اوپیژنی چه دا فی سبیل الله لیږلې شوې ده. اوس به دې ته څوك په بدنیت لاس نه لګوی.بلکه د دې کتلو سره د نورو هم شوق پیدا کیږی چه مونږ د الله ﷻ د نوم څاروی دې ته اولیږو. او دې صورت کښې به تاسو ته هم ثواب ملاویږی.ځکه چه څوك هدایت طرفته بل څوك راوبلې نو هغه ته هم اجر ملاویږی کوم اجر چه د دې منلو والا ته ملاویږی.او الله ﷻ به د هغه اجر کښې هیڅ کمې نه راولی.بلکه هغه ته به د خپل طرفنه اجر ورکوی.

**د نبی کریم ﷺ د قربانئ څاروی:**- نبی کریم ﷺ چه کله حج دپاره تشریف یوړو نو نبی کریم ﷺ وادی عقیق یعنی ذوالحلیفه کښې شپه تیره کړه،سحر خپلو نهو بیبیانو ته ورغلو او بیا ئې غسل اوکړو،خوشبو ئې اولګوله او دوه رکعته مونځ ئې ادا کړو،او د خپل قربانئ څاروی په کوب باندې ئې نښه اولګوله. اود هغه په غاړه کښې ئې غاړکئ واچوله،او د حج او عمرې دپاره ئې احرام اوتړلو. قربانئ دپاره نبی کریم ﷺ ځان سره ډیر خوش رنګ، څورب،او ځوانان اوښان اخستی وو. لکه څنګه چه قران پاك کښې دی چه کوم سړې د الله ﷻ د احکامو تعظیم اوکړی،د هغه زړه تقوی والا دې.

**د تعظیم یو صورت:**- د بعضو سلفو فرمان دې چه تعظیم دا هم دې چه د قربانئ ځناور په ښه شان سره اوساتلې شی .او دوی ته ښه خوراك ورکړې شی.اودوی ښه مضبوط او ښه څورب کړې شی.حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه فرمائي چه مونږ ته نبی کریم ﷺ حکم اوکړو چه کله مونږ د قربانئ څاروی اخلو نو د دوی سترګې او غوږونه ښه ګورو.[2] (رواه اهل السنن).

**دحرم د ونو کټ کولو ممانعت وجه:**- مقاتل بن حیان فرمائي چه د جاهلیت په زمانه کښې چې کله خلق خپل وطن نه وتلی وو او د حرمت میاشتې به نه وې نو دوی به خپل ځان په وینبتو او ورنی کښې انغښتی وو او حرم کښې چه کوم مشرکان اوسیدل هغوئ خپل ځانونه د ونو پانړوکښې پټ کړی وو. دې سره به عامو خلقو دوی ته امن ورکولو او دوی به ئې نه وهل.نو الله ﷻ دوی د حرم د ونو کټ کولو نه منع کړل.

---

[1] (معارف القران تفسیر مفتی محمد شفیع رحمه الله (٥١٩١١)-

[2] ) ابوداود کتاب الضحایا باب یکره من الضحایا: ٢٨٠٤، ترمذی:١٤٩٨، نسائی:٤٣٧٧، ابن ماجه:٣١٤٢.

﴿وَلَآ آٰمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّن رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا﴾
بیا فرمائی چه کوم خلق د بیت الله شریف ارادې سره وتلی وی هغوئ سره جنګ مه کوئ، دلته چه څوک هم را غلل نو هغه امن کښې شو. نو څوك چه دې ارادې سره وتلی وی د هغوئ نیت د الله ﷻ د فضل تلاش کول او د رضامندنې تلاش کول وی.نو اوس دې مه ویرونې، دده عزت او ادب کونی،اوهغه بیت الله شریف نه مه منع کوئی.د بعضو قول دې چه د الله ﷻ فضل تلاش کولو نه مراد اخستل اوخرڅول دی،لکه یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ﴾ یعنی د حج په زمانه کښې تجارت کولو کښې هیڅ ګناه نشته دی.رضوان نه مراد حج کولو کښې د الله ﷻ مرضی تلاش کول دی،ابن جریر رحمه الله وغیره فرمائی چه دا آیت حطم بن هند بکری باره کښې نازل شوی دې.دې سرې د مدینې په صحراګانو باندې قبضه کړې وه. بیا راتلونکی کال دې د عمرې ارادې سره راتلو چه د بعضو صحابه کرامو ﷺ زړه کښې راغلل چه دې منع کړې،نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو.
امام ابن جریر رحمه الله په دې مسئله اجماع نقل کړې ده.که یو مشرك د مسلمانانو په امان کښې نه وی نو اګر چه هغه د بیت الله شریف ارادې سره روان وی.یا بیت المقدس ته نې د تلو اراده وی.د ده قتل کول جائز دی.دا حکم د دوی حق کښې منسوخ شوې دې،والله اعلم.
**مشرکان به د حرم نه منع کولې شی:-** خو چه کوم سرې الحاد خورولو دپاره روان وی د شرك اود کفر اراده نې کړې وی نو هغه به منع کولې شی. حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ فرمائی چه مخکښې به مومنانو او مشرکانو ټولو حج کولو. او الله ﷻ منع فرمائیلې وه چه هیڅ مومن یا کافر به نشی منع کولې.خو دې آیت مبارك نه پس دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ﴾ یعنی مشرکان بالکل نجس دی،هغوئ دې د دې کال نه پس مسجد حرام ته نه راځی.بل ځائې کښې فرمان دې چه ﴿مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُوا مَسَاجِدَ اللَّهِ﴾ یعنی مشرکانو بالکل د الله ﷻ کورونو آبادونکی نه دی بل ځائې کښې فرمان دې چه ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ یعنی د الله تعالی کورونه خو هغه خلق آبادوی کوم چې په الله ﷻ او د قیامت په ورځ ایمان لری.
**مشرکانو سره د جنګ کولو اجازت:-** نو مشرکان د جماتونو نه منع کړې شو حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه ﴿وَلَا الْقَلَائِدَ وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ﴾ منسوخ شوې دې .د جاهلیت په زمانه کښې چه به کله یوسړې د خپل کور نه د حج ارادې سره اووتلو نو هغه به ځان د ونو په پانړو پټ کړو نولاړ کښې به ده ته چا څه نه ونیل.بیاچه به کله واپس کیدو نو دوېښتو هار به نې اچولواو دې به محفوظ وو. په هغه وخت کښې مشرکان بیت الله شریف نه نه وو منع شوی.نو مسلمانانو ته حکم اوشو چه هغوئ دې د حرمت والا میاشتو کښې جنګ نه کوی.او نه دې بیت الله شریف (حرم) سره جنګ کوی،بیا دا حکم منسوخ شو چه مشرکانو سره جنګ کوئی چه چرته هم تاسو دوی مومئ.ابن جریر رحمه الله فرمائی چه د قلائد نه مراد هم دا دې چه کوم هار به نې حرم شریف نه د راتلو په وخت کښې اچولو او د دې په وجه به دوی په امن کښې وو،عربو کښې ددې تعظیم کیدو،او چه چا به ددې خلاف اوکړل نو هغه ته به ډیر بدرد ونیلې کیدل.او شاعرانو به د هغه هجو کوله.
**قوله تعالی:** ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾
بیا فرمائی چه کله تاسو احرام پرانیزئی نو بیا ښکار کولې شئ.احرام کښې د ښکار ممانعت وو. اوس احرام نه پس بیا ددې اجازت ملاؤ شو. کوم حکم چې د ممانعت نه پس اوشی نو هغه حکم نه ثابتیږی (یعنی هغه حکم د وجوب دپاره نه وی بلکه د اباحت دپاره وی)، کوم چې د ممانعت نه مخکښې په اصل کښې وو یعنی که وجوب اصلی وو نو د ممانعت نه پس به امر هم د وجوب دپاره وی.اودغه شان مستحب اومباح لره، اګر چه بعضو ونیلی دی چه داسې امر د وجوب دپاره وی.خو د دواړو جماعتونو

خلاف د قران پاك ايتونه موجود دي.نو صحيح مذهب چه هغې سره ټول دليلونو كښې موافقت راشي هغه دې كوم چې موئړ ذكر كړو علماء كرامو هم دا اختيار كړې دې.والله اعلم.

**د محرم د حلاليدو نه پس ښكار كول مباح دي واجب نه دي**

**مسلك حنفي**:-دلته د احرام نه پس د ښكار كولو حكم د اباحت دپاره دې د وجوب دپاره نه دې په باندې دامت اجماع ده (تفسير مظهري ۴۷/۳).

**قوله تعالى**: وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ أَنْ صَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ أَنْ تَعْتَدُوا

**انصاف مه پريږدئ**:- بيا فرمائي چه كوم قوم تاسو دحديبيه په كال مسجد حرام نه منع كړې وې نوتاسو دوى سره د دښمنۍ كولو په وجه او قصاص اخستلو ته د اماده كيدو په وجه د الله تعالى د حكم نه مه وړاندې كيږئ چه ظلم او زياتي اوكړئ بلكه هيڅ يو وخت كښې هم انصاف د لاس نه مه غورزوئ. دغه شان هغه آيت مبارك هم دې په كوم كښې چې فرمائيلې شوى دى چه تاسو دې د يو قوم دشمنى په انصاف نه كولو آماده نكړي.عدل كوئ،عدل تقوى ته نزدې دى.

د بعضو سلفو قول دې اگر چه څوك تاسو سره ستاسو په باره كښې د الله تعالى نافرمانى اوكړي خو تاسو ته پكار دى چه تاسو د هغه باره كښې د الله ﷻ نافرمانى اونكړئ.د عدل په وجه آسمان قائم دې.

**د ايت شان نزول**:- نبى كريم ﷺ او د نبى كريم ﷺ ملگرى ﷺ چه كله مشركانو د بيت الله شريف د زيارت كولو نه منع كړل او حديبيه نه ئې مخكښې پرې نښودل نو هم دې غم كښې صحابه كرام ﷺ واپس راروان وو،او دائې وئيل چه كوم يو مشرقى مشرك دوى ته ملاؤ شي نو دوى به هم هغه د بيت الله شريف د زيارت كولو نه منع كوى لكه څنگه چه د هغوئ جماعت دوى منع كړل.نو دې باندې دا آيت مبارك نازل شو([1]).

**د شنان وضاحت**:- د﴿شَنَآنُ﴾ معنى بغض دې.بعضې عربو دې ته شنان هم وئيلې دى.خو هيڅ يو قارى نه هم دا قرات ندې شوې.خو عربوشعرونو كښې شنان هم راغلې دې.بيا الله ﷻ ايمان والو ته د نيكۍ په كارونو كښې يوبل سره د مدد كولو حكم فرمائى.،،بر،، وائى نيكئ كولو ته،اوتقوى وائى بدئ پريښودو ته اومسلمانان د گناهونو كولو او د چا سره په حرامو كارونو كښې د مدد كولو نه منع كوى.

وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

**د اثم او عدوان فرق**:- ابن جرير رحمه الله فرمائى چه الله تعالى د كوم كار د كولو حكم كړې دې او انسان هغه نه كوى نو دا اثم دې،او دين كښې چه كوم حدونه الله تعالى مقرر كړى دى،او كوم فرائض الله ﷻ د خپل جان او مال باره كښې مقرر كړى دى د هغې نه مخكښې تلو ته عدوان وائى([2])

**دظالم سره هم مدد كوه**:-دمسند يو حديث مبارك كښې دى چه دخپل رور سره مددكوه اگر چه هغه ظالم وى،نو نبى كريم ﷺ نه سوال اوشو چه يارسول الله ﷺ! د مظلوم كيدو صورت كښې خو مدد كيږى دا خو صحيح دى خود ظالم كيدو صورت كښې به څنگه مدد كوؤ ؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه هغه د ظلم كولو نه منع كړې چه ظلم اونكړى.هم دا د هغه سره مددكول دى ([3]). دا حديث مبارك صحيح بخارى او صحيح مسلم كښې دې ([4]).

**د خلوت نه جلوت افضل دې**:- مسنداحمد كښې دى چه كوم مسلمان خلقو سره گډون كوى او د هغوئ په

---

[1] ) الطبرى:٩/٤٧٢.

[2] ) الطبرى :٩/٤٧٨،

[3] ) ايضا :٩/٤٩٠،

[4] ) احمد :٩٩/٣ صحيح بخارى كتاب الاكراه باب يمين الرجل لصاحبه انه اخوه اذا خاف عليه القتل اونحوه:٦٩٥٢،

تکلیفونو صبر کوی نو هغه مسلمان زیات اجر والا دي د هغه مسلمان نه چه کوم خلقو سره ګډون نه کوی اود هغوئ په تکلیفونو صبر نه کوی .[1]

**د نیکئ دلالت کونکی اجر:-** مسندبزار کښې دی چه ﴿الدال علی الخیرکفاعله﴾[2] یعنی کوم سړي چه د نیکئ خبره کوی اونورو ته هدایت کوی هغه د نیکئ کونکی په شان دي،امام ابوبکر بزار دا بیان فرمائی چه دا حدیث مبارك صرف هم دي سند سره مروی دي.خو څه وایم چه د دې شاهد دا صحیح حدیث مبارك دې چه کوم سړي خلق هدایت طرفته رابلی نو هغه ته به د هغه ټولو خلقو د اجر برابر ثواب ملاویږی چه کوم قیامت پورې راځی،اود ده تابعداری کوی اود هغه خلقو ثواب کښې به هیڅ کمې نه راځی .او کوم سړي چې ګناه کوی او خلق ګناه طرفته رابلی نو تر قیامته پورې چه څومره خلق ګناهونه کوی نو د هغه ټولو ګناهګار به وی،د هغه ټولو چې څومره ګناهونه وی. هغه هومره به دده وی .اود هغه خلقو ګناه کښې به څه کمې نه راځی [3].

**ظالم سره د مدد قباحت:-** طبرانی کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی کوم سړې چې یو ظالم سره لاړشی چه هغه سره مدد اوکړی او هغه ته معلوم وی چه دې ظالم دې نو هغه په یقین سره د اسلام نه خارج دې [4].

<table>
<tr><td>حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ</td></tr>
<tr><td>| حرام کړې شوا په تاسو باندې| مرداره | اووینه | اوغوښه دخنزیر</td></tr>
<tr><td>| په تاسو باندې حرام کړې شوې ده مرداره اووینه او دخنزیر غوښه</td></tr>
<tr><td>وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ</td></tr>
<tr><td>اوهغه ځناور | چې آواز شوې وی | دغیر الله | په هغې باندې |اومړئ خفه مړ ځناور|او وهلې شوې مړځناور</td></tr>
<tr><td>اوهغه چې د الله ﷻ نه سوا دبل چا په نوم حلال شوې وی |او چې مرئ ئې خفه شوې وی|او چې دګزار نه مړشی</td></tr>
<tr><td>وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا</td></tr>
<tr><td>او رغبتې مرځناور|اودښکرپه ډغره مرځناور|اوهغه ځناور | چې وې خوری| درنده | بغیردهغې نه</td></tr>
<tr><td>او چې راوغورزیږی|او چې بل ځناورئې په ښکراووهی اومړشی|او چې یودرنده ترې نه خوراک کړې وی|بغیر دهغې نه</td></tr>
<tr><td>ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَأَنْ</td></tr>
<tr><td>چې حلال ئې کړئ تاسو| اوهغه ځناور| چې ذبحه کړې شوې وی| په درباربانديې|اوداهم ناجائز دی</td></tr>
<tr><td>چې تاسوژوندې موندې وی|اوحلال کړې مو وی | اوهغه چې د بتانو په نوم ذبح شوې وی| او دا چه</td></tr>
</table>

---

[1] ) احمد:٥/٣٦٥، ترملی: کتاب صفة القيامة باب ‌فی فضل المخالطة: مع الصبر علی اذی الناس:٢٥٠٧، وهو صحيح. ابن ماجه: ٤٠٣٢، الادب المفرد:٣٨٨ بيهقی: ٨٩/١٠.

[2] ) مسند البزار:١٥٤، ترمذی کتاب العلم باب ماجاء ان علی الخير كفاعله: ٢٦٧٠، وهو صحيح ابوداود:٥١٢٩، بتصرف يسير مشكل الآثار:٤٨٤/١.

[3] ) صحيح مسلم كتاب العلم باب من سن سنة حسنة اوسنة ومن دعا الی هدی اوضلالة:٢٦٧٤، ابوداود:٤٦٠٩.

[4] ) الطبری:٢٢٧٢/١.

تَسْتَقْسِمُوْا بِالْاَزْلَامِ ط ذٰلِكُمْ فِسْقٌ ط اَلْيَوْمَ

چې تاسو قسمتونه معلوم کړئ | په غشو د فال سره | دا ټول کارونه ستاسو | فسق دي | نن ورځ

د جوارئ په غشو تقسیم کوئ | دا ټول د ګناه کارونه دی | نن ورځې کافران

يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ

نا امیده شو | هغه کسان | چې کافران دی | د دین ستاسو نه | نو تاسو مۀ ویریږئ د هغوئ نه

ستاسو د دین (تباه کولو) نه پوره پوره مایوس شوی دی | نو د هغوئ نه مه ویریږئ

وَاخْشَوْنِ ط اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ

او ویریږئ زما نه | نن ورځ | مکمل کړو ما | د پاره ستاسو | دین ستاسو | او تمام کړو ما | په تاسو باندې

او زما نه ویریږئ | نن ما ستاسو دین کامل کړو | او خپل نعمتونه مې در باندې پوره کړل

نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا ط فَمَنِ اضْطُرَّ

نعمت زما | او راضي شوم زۀ | د پاره ستاسو | په اسلام | په حیثیت د دین سره | او څوك چې | مجبور شي

او اسلام مې ستاسو د پاره غوره دین منتخب کړو | ..........نو څوك چې د لوږې نه مجبوره شي

فِيْ مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ لا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝۳

په لوږه کښې. | حال دا چې نۀ وی | مائل | ګناه ته | بیشکه الله | بښونکې | مهربان دې

..........چه ګناه ته ئې میلان نۀ وی (او دغه غوښې او خوری) نو الله بښونکې مهربان دې

**قوله تعالى:: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ**

**د مردارې حرمت:-** په دې آیتونو کښې الله ﷻ د هغه څه بیان فرمائی چه د کومو خوراك الله ﷻ حرام کړی دی. دا خبرد هغه ځیزونو د نه خوړلو حکم کښې شامل دې. میت هغه دې چه پخپله مړشی. نه خو هغه ذبح شی او نه ښکار کړې شی. د هغې خوراك په دې وجه حرام کړې شوې دې چه د هغې وینه نقصانی ده. او هغه په دې کښې پاتې شی. او کله چه دا ذبح کړې شی نو هغه د دې نه اوځی. او دا وینه د دین او بدن د پاره نقصانی ده. خو دا یاد ساتئ چې هر مردار حرام دې.

**د کب حلت:-** خو مهې نه. ځکه چه موطا امام مالك رحمه الله، مسند شافعی رحمه الله، مسند احمد رحمه الله، ابوداؤد، ترمذی، نسائی، ابن ما جه، صحیح ابن خزیمه او صحیح ابن حبان کښې حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ نه د سمندری اوبو باره کښې د مسئلې تپوس اوشو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د هغې اوبه پاکې دی او د هغې مردار حلال دې (١).

**د ملخ حلت:-** د غه شان که مولخ هم په خپله مړ شوې وی نو هغه هم حلال دې. د دې دلیل کښې حدیث مبارك راځی. د دم نه مراد دم مسفوح یعنی هغه وینه چه د ذبح کولو په وخت کښې اوبهیږی.

**قوله تالی:: وَالدَّمُ**

**د ابن عباس رضی الله عنه فتوی:-** حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه نه سوال اوشو چه آیا توري مونږ خوړې شو؟ نو حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چه آو. خلقو اووئیل چه هغه خو وینه ده. نو حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چه صرف هغه وینه حرامه ده چه کومه د ذبح کولو په وخت کښې اوځی.

---

(١) ابوداود كتاب الطهارة باب الوضوء بماء البحر:۸۳، وسنده صحيح. ترمذی: ٦۹، نسائی: ۳۳۳، ابن حبان: ۳۸٦.

حضرت عائشه صدیقه ﷺ فرمائي چه صرف بهیدلې وینه حرامه ده.حضرت امام شافعي ﷺ حدیث مبارك راوړې دې نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه څمونږ دپاره دوه قسمه مردارې او دوه وینې حلالې کړې شوی دی.کب او مولخ،کلیجی او توري (١).

دا حدیث مبارك مسند احمد ،ابن ماجه،دار قطني،اوبیهقي کښې عبدالرحمان بن زید بن اسلم نه مروی دې.اودې ضعیف دې.حافظ بیهقي فرمائي چه عبدالرحمان سره اسماعیل بن ادریس او عبدالله هم روایت کوی.څه وایم چه دا دواړه ضعیف دی.خودا ده چه د دوی په ضعف کښې کمې بیشې شته دې.سلیمان بن بلال ﷫ هم دا حدیث روایت کړې دې.اوهغه ثقه دې،لیکن دا روایت بعضو په ابن عمر ﷺ باندې موقوف کړې دې.

**د وینې حرمت:**- حافظ ابوزرعه رازی فرمائي چه زیات صحیح د هغه صحیح موقوف کیدل دی.ابن ابی حاتم کښې حضرت صدی بن عجلان نه مروی دی چه څه نبی کریم ﷺ خپل قوم طرفته اولیږلم چه هغوئ ته د اسلام احکام پیش کړم .څه چه هغه ځائې ته اورسیدم نو خپل کار کښې مشغول شوم،یو ورځ اتفاقي طور د وینې یو ډکه پیاله یو سړی راوړه او ماته مخامخ کیناستو،او ده اونورو حلقه جوړه کړه او دا وینه ئې څکله،او ماته ئې اووئیل چه رازه صدی ته هم اوڅکه.ما اووئیل چه تاسو څه غلط کارکونی،څه خو دهغه خلقونه راغلې یم چه چاددې خوراك حرام کړې دې.نوهغه ټول ماته متوجه شو اووې وئیل چه پوره خبره اوکړه نوما ورته هم دا آیت مبارك ﴿إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ﴾ تلاوت کړو (٢).

**د صحابي ﷺ کرامت:**- دا روایت ابن مردویه کښې هم دې،په هغې کښې دې نه پس دی چه څه هغه ځائې کښې تر ډیره پورې اوم،اوهغوئ ته مې د اسلام پیغام رسولو. خو هغوئ ایمان قبول نه کړو. یوه ورځ چه کله څه ډیر سخت تږې اوم ،اواوبه راته بالکل نه ملاویدې نو ما اوبه اوغوښتلې،اوما اووئیل چه د تندې د وجې څما حال ډیر خراب دې.لږې اوبه راکړئی.خو هیچا ماته اوبه رانکړې ،او وې وئیل چه مونږ تا هم دا شان زوراوو تر دې چه ته مړ شې.څه ډیر غم کښې وم.او په سره ګرمئ کښې مې په کانړو خپله کمبل غوړولې وه.او په مخ مې اچولې وه اودې میدان کښې پروت ووم. چه په دې کښې څما سترګې ورغلې.خوب کښې ګورم چه یو سړی سره یو جام دې او په هغې کښې بهترینې او خوندناك او مزیدار د څکلو څیزدې،هغه سړې ماته راغلو او ماته ئې لاس کښې جام راکړو،ما ښه په مړه خیټه اوڅکل،او دې کښې مې سترګې پرانیستې شوې.نو په الله ﷻ قسم ماته تنده نه وه،بلکه د هغه نه تردې وخت پورې ماته د تندې تکلیف نه دې راغلې.بلکه داسې وئیل پکار دی چه څه نه یم تږئی شوې.کله چه څه بیدار شوم نو دې خلقو خپلو کښې اووئیل چه آخر دا ستاسو د قوم سردار دې،ستاسو میلمه دې،دغه شان بې رخی هم صحیح نه ده. دا صحیح نه دی چه مونږ ده ته یو ګوټ اوبه هم نه ورکوؤ.نو دا خلق ما ته راغلل او څه ئې راوړل،ما اووئیل چه اوس ماته هیڅ حاجت نشته دې.څما رب ما باندې اوڅکول .دا ئې اوئیل او هغوئ ته ئې خپله ډکه خیټه اوخودله.دده دې کرامت کتلو سره هغه ټول مسلمانان شول (٣).

**د اعشی قصیده:**اعشی خپله قصیده کښې څه ښه وئیلی دی چه مردار ته نزدې مه ورځې:او د یو څناورړګ وهلو نه پس چه کومه وینه راوځی هغه مه څکئ،اوبت خانو باندې څه مه اچونې،او د الله تعالی نه سوادبل چا عبادت مه کونی صرف د الله ﷻ عبادت کونی.

---

(١) احمد: ٢/٩٢، ابن ماجه: كتاب الاطعمة باب الكبد والطحال: ٣٣١٤،

(٢) طبراني :: ٨٠٧٤، مجمع الزوائد: ٩/٣٨٩،

(٣) حاكم: ٣/٦٤١، طبراني :٨٠٩٩.

قوله تعالى: وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ

**د خنزير د غوښې حرمت:-** د خنزير غوښه حرامه ده كه هغه ځنګلي وي او كه ساتلي شوي لفظ ﴿لحم﴾ كښې شامل دى. د دې ټول اجزاء چه په دې كښې وازګه هم داخل ده، نو د ظاهريه (يوه ډله ده) پشان داسې تكلفاتو كولو څه حاجت نشته دې اويه بل آيت مبارك كښې ﴿فَإِنَّهُ رِجْسٌ﴾ دى. په كښې د ،،ه،، ضمير خنزير ته راجع دې نو مطلب دا دې چه دده ټول اجزاء حرام دى. حقيقت كښې دا خبره د لغت نه بعيده ده، چې مضاف اليه طرفته داسې موقعو باندې ضمير ګرځى ،بلكه صرف مضاف د ضمير مرجع وى، نو ښكاره خبره هم دا ده چه لفظ لحم شامل دې ټولو اجزاء ته د عربو د لغت مفهوم او عام عرف هم دا دې.

**د خنزير د ټولو اجزاؤ د حرمت دپاره استدلال:-** د صحيح مسلم حديث مبارك كښې دى چه شطرنج كولو والا خپل لاسونه د خنزير په غوښه كښې وهي[1] خيال اوكړنى چه صرف ګوتې ورا وړل شرعى لحاظ سره څومره قدرې د نفرت قابل دى. نو بيا د دې د خوراك په حرمت كښې هيڅ شك پاتې نشو. او په دې كښې دلالت دې چه لفظ لحم شامل دې ټول اجزاؤ ته كه هغه وازګه وى او كه بل څه.

**د مردارې وازګه هم حرامه ده:-** او بخارى او مسلم شريف كښې دى چه نبى كريم ﷺ فرمائى چه الله ﷻ مرداره، خنزير اود بتانو تجارت منع فرمائيلې دې نو تپوس اوشو يارسول الله ﷺ! د مردارې د چربۍ باره كښې څه ارشاد دې ؟ هغه په كښتو باندې اچولې شى، په څرمنو لګولې شى، اود ډيوې بلولودپاره هم پكار راوستلې شي. نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه نه نه هغه حرام دى[2].

قوله تعالى: وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ

**د مردارې، وينې او ما اهل لغيرالله حرمت:-** صحيح بخارى كښې دى چه ابوسفيان هرقل ته اووئيل چه هغه نبى ﷺ مونږ د مردارې او وينې نه منع كوى[3]، اوهغه ځناور هم حراموى په كوم چې د ذبح كولو په د وخت كښې د الله ﷻ نوم و انخستې شى او دبل چا نوم پرې واخستې شى. الله ﷻ په خپل مخلوق دا فرض كړى دى چه هغوئ دې د الله تعالى په نوم ځناور ذبح كوى، نو كه څوك د دې نه البته كار كوى او د الله ﷻ د پاك نوم په ځاى د بل چا نوم واخلى يعنى د بت وغيره نوم واخلى اګر چه هغه په يو مخلوق كښې وى نو يقيناً هغه ځناور بالاجماع حرام دى.

**د متروک التسميه ځناور حكم:-** خو چه د كوم ځناور د ذبح كولو په وخت كښې بسم الله وئيل پاتې شى كه د هغه په هيره وى او كه په قصد سره وى نو هغه حرام دې كه حلال؟ په دې كښې د عالمانو اختلاف دې اوددې بيان به انشاء الله په سورة انعام كښې راشى.

**د ځلورو څيزونو حرمت:-** حضرت ابوالطفيل رضي الله عنه فرمائى چه د حضرت آدم عليه السلام د وخت نه واخله تر اوسه پورې دا څلور څيزونه نن پورې حرام دى، په هيڅ يو وخت كښې دا حلال شوى نه دى. ① مرداره ② وينه ③ د خنزير غوښه ④ دالله ﷻ نه سوا د بل د په نوم څيزذبح كول. البته د بنى اسرائيلو د ګناهونو په وجه بعضې غير حرام څيزونه په هغوئ حرام شوى وو. بيا د حضرت عيسى عليه السلام په ذريعه هغه دوباره حلال كړې شو. خو بنى اسرائيلو دوى ربښتونى اونه ګڼړل او د دوى عليه السلام مخالفت نې اوكړو. (ابن ابى حاتم) دا اثر غريب دې.

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الشعر باب تحريم اللعب بابزد شير: ٢٢٦٠، الادب المفرد: ١٢٧١، ابوداود: ٤٩٣٩، ابن ماجه: ٣٧٦٣، ابن حبان: ٥٨٧٣.

[2]) صحيح بخارى كتاب البيوع باب بيع الميتة والاصنام: ٢٢٣٦، صحيح مسلم: ١٥٨١، ابوداود: ٣٤٨٦، ترمذى: ١٢٩٧، ابن ماجه: ٢١٦٧، بيهقى: ١٢/٦.

[3]) صحيح ابن عوانة: ١٩٢/٤.

**د علي ؓ د دور خلافت يوه واقعه:-** حضرت علي چه کله د کوفې حاکم وو نو په هغه وخت کښې د قبيله ابن نائل يو سړی چه شاعروو او نوم ئې بنو رباح وو،د فرزدق نيکه غالب سره ئې مقابله شوه،او دا مقرر شوه چه دواړه به مخامخ کيږي اود سلو سلواوښانو پړی به شلوی،نو د کوفې په شا د اوبو خانې ته راغلل،اوهرکله چه هلته اوښان راغلل نو دوی خپلې توري راوويستې.اود اوښانو پړی ئې پريکول شروع کړل.او خودنې ئې کولې ،او دواړه فخر او رياکانی کښې مشغول شو. هرکله چه کوفيانو ته معلومه شوه نو په خپلو خچر او خرو سواره شو او د غوښې اخستلو دپاره راغلل،په دې کښې حضرت علي ؓ په سپينه خچر سور راغلو او دا آواز ئې اوکړو چه دا غوښه مه خورئی دا خناور ﴿وَمَآ أُهِلَّ لِغَيۡرِ ٱللَّهِ بِهِۦ﴾ کښې داخل دی.(ابن ابی حاتم)،دا اثر هم غريب دې.خو ددې د صحت شاهد هغه حديث مبارك دې چه نبی کريم ﷺ د اعرابو پشان مقابله کولو کښې پړی شلولو نه منع فرمائيلې ده.([1]) بيا ابوداود فرمائی چه محمد بن جعفر ؒ دا حديث په حضرت عبدالله ابن عباس ؓ باندې موقوف کړې دې.

📖 دابوداود يو بل حديث مبارك کښې دی چه حضرت عبدالله ابن عباس ؓ هغه دواړه سړی د خوراك کولو نه منع کړی وو چه کومو خپلو کښې يو بل باندې سبقت اخستل او مقابله کول او رياکاری کول غوښتل ([2])

**قوله‌تعالی:: وَٱلۡمُنۡخَنِقَةُ**

① ﴿منخنقة﴾ چه د کومو خناورو مرئی خپه کړې شی که دا په قصدوی او که نه،يا دده مرئی ماته کړې شی.لکه تړی ئې وې او دا اوتښتی او د ده مرئی په پړی تيزندی شی او دې ئې راکاږی او هغه مړ شی دا حرام دی.

**قوله‌تعالی:: وَٱلۡمَوۡقُوذَةُ**

② ﴿موقوذة﴾. چه چا يو خناور په لرګی وغيره داسې څيز سره اووهلو چه هغه تيره نه وو او هغه مړشو نو دا حرام دې.جاهليت کښې داهم دستور وو چه خناور په تيزندئی وژلې شو اودا به خوړلې شو. نو قران پاك دا سې خناور حرام اوګرځول.

**په پس طرف د ښکار لګيدلو حکم:-** صحيح سند سره مروی دی چه حضرت عدی بن حاتم ؓ د نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو چه يارسول الله ﷺ ! څه معراض سره ښکار کوم نو د دې څه حکم دې ؟نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کله ته دا اوولې او هغه خناور زخمی شی نودا خوړلې شي.اوکه دا په لندوالی اولګی نو هغه خناور د مرئی خپه کيدو حکم کښې دې.د امه خوره.([3]) نبی کريم ﷺ داسې خناور کښې فرق کړې دې چه کوم په لندوالی اولګی په تيز او نوکدار څيز سره. اول ئې حرام او دونم ئې حلال کړې دې.د فقهاء کرامو په هم نيز دا مسئله اتفاقی ده،

**په تيره څيز د خناور لګيدلو حکم:-** خو په دې کښې اختلاف شته دې چه کله يو داسې څيز سره ا ولګی چه هغه زخمی کونکې وی او دې سره ورته تکليف اورسی،او هغه د هغې د بوج او پلنوالی سره مړ شی نو آيا دا خناورو حلال دې حرام؟ امام شافعی ؒ نه دې کښې دوه قولونه دی.يو خو د حرمت دې ددې پورتنی حديث په وجه.او دويم حلالوالی د سپی د ښکار د حلت په وجه،ددې مسئلې پوره تفصيل اوګورئی :

---

[1] ) ابوداود كتاب الضحايا باب ماجاء في الاكل معاقرة الاعراب: ٢٨٢٠، بيهقی:٩/٣١٣.

[2] ) ابوداود كتاب الاطعمة باب فی طعام المتبارين: ٣٧٥٤، وهو صحيح

[3] ) صحيح بخاری كتاب الذبائح باب صيد المعراض :٥٤٧٦، صحيح مسلم: ١٩٢٩، ابوداود:٢٨٥٤، ترمذی:١٤٦٧، نسائی: ٤١٩١، ابن ماجه:٣٢٠٨.

**فصل**

**د سپي د ښکار حکم:-** دعالمانو په دې کښې اختلاف دې چه کله يو سړی خپل سپي ښکار دپاره پريښود او سپي دا ښکار په خپلو وهلو او خپل بوج سره اووهلو اوزخمي ئې نه کړو يا ده ته ئې دومره تکليف ورکړو چه هغه مړشو او زخمي نه شو نو آيا هغه حلال دې که نه ؟ په دې کښې دوه قولونه دي،يو دا چه دا حلال دې ځکه چه د قران پاك الفاظ عام دي، ﴿فَكُلُوا۟ مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ﴾ يعنى هغه چه کوم ښناور راونيسي تاسو هغه خوړلې شئ: دغه شان حضرت عدي ﷺ وغيره صحيح حديث هم عام دی،د امام شافعي ﷺ ملګرو د امام صاحب ﷺ دا قول نقل کړې دې او متاخرينو ددې صحت کړې دې ،لکه امام نووی ﷺ او رافعي ﷺ شو،

**د حافظ ابن کثير ﷺ رائې:-** خه وايم چه اګرچه دا وئيلې شي خو د امام صاحب ﷺ د کلام نه دا ښکاره نه معلوميږی،اوګورئی ،،کتاب الام او مختصر،، دې دواړو کتابونو کښې هغوی فرمائيلي دی چه دواړه معانی د دې احتمال لری (يعنی حلت او حرمت) او بيا ئې د هرې يوې معنى وجه بيان کړې ده نو دهغه ملګرې شافعيانو د هغوی نه دا په دې مسئله کښې مطلقا دواړه قولونه نقل کړي دی

خو مونږ په ډيره مشکله صرف دا وئيلې شو چه په دې بحث کښې امام شافعي ﷺ د حلت کوم قول نقل کړې دې د هغې ئې لږ وضاحت کړې دې خوپه دواړو قولونو د حلت او حرمت کښې ئې ديو قول هم تصريح نه ده کړې او نه ئې په يقين سره يو قول کړې دې

**دامام ابوحنيفه ﷺ نه يو روايت:-** اوابن الصباغ د امام ابوحنيفه ﷺ نه په روايت د حسن بن زياد سره د حلاليدو قول نقل کړې دې،او نورڅه ئې نه دی نقل کړې.او امام ابن جرير ﷺ خپل تفسير کښې دا قول حضرت سلمان فارسی ﷺ،حضرت ابوهريره ﷺ،حضرت سعد بن وقاص ﷺ او حضرت ابن عمر فاروق ﷺ نه نقل کړې دې خودا ډير زيات غريب دې.او اصل کښې د دې بزرګانو نه صراحت سره دا اقوال نه دی نقل شوی دا صرف خپل تصرف دې،والله اعلم.

**د حرمت قول:-** دويم قول دادې چه هغه حلال نه دې،د حضرت امام شافعي ﷺ د دوو اقوالو نه يو قول دا دې او مزني ﷺ دا خوښ کړې دې،او د ابن الصباغ د قول نه هم د دې ترجيح ښکاری.والله اعلم.او ابويوسف ﷺ او امام محمد ﷺ هم دا د ابوحنيفه ﷺ نه روايت کړې دې او د امام احمدبن حنبل ﷺ نه هم دا قول مشهور دې اودا د صحيح کيدو سره زيات مشابه دې،والله اعلم ..ځکه چه دا د اصولی قاعدو مطابق دې.او د شريعت د اصولو سره زيات مناسب دې

**د ښکاری سپی ښکار زخمی کيدل د حلت دپاره ضروری دی**

**مسلک حنفی:-** دا خبره ضروری ده.چه ښکاری ښناور ښکار زخمي هم کړی.ګنی که زخم نه وی.او ښاروې مړ شوې وی.نو دا به حلال نه وی.او که زخمي کړې ئې وی.او ښکار مړشی.نو حلال دې.او دې زخم ته به د ذکاة اضطراری مرتبه ورکولې شی.او په ذکاة اضطراری چه د بدن په کومه حصه کښې هم زخم اولګی.دا کافی دې.خو دا خبره ضروری ده.چه کومه آله استعمال کښې راشی.هغه ښکار طرف ته منسوب وی.او نسبت کول د استعمال په اعتبار سره وی.نو سپی او باز هم د ښکار دپاره آلې دی.دده د طرفه استعمال يعنی لګيدل ضرور پکار دی.دا د تسهيل الهدايه شرح هدايه عبارت دې د دې عبارت نه دا معلومه شوه چه د احنافو په نيز په ذکرشوې صورت کښې کوم چې حافظ ابن کثير ﷺ ذکر کړې دې ښکار حرام دی (تسهل الهدايه ١٧، ٤٤٠)-

**د حرمت دليل:**ابن الصباغ د حرمت دپاره د حضرت رافع بن خديج ﷺ د حديث نه دليل نيولې دې هغوئ اووئيل چه يارسول الله ﷺ ! مونږ صبا دښمنانو سره مقابله کوونکی يو،او مونږ سره چړې نشته دې،نو

آیامونږ تیز بانړس سره ذبح کولې شو ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم څیز نه وینه اوبهیږی او دې باندې د الله ذکر اوشی نو دا خورئی (۱).الخ (بخاری ومسلم).

**اعتبار عموم د الفاظو لره وی:-** دا حدیث مبارك اگر چه د یو خاص واقعه په موقع راغلې دې،خو حکم کښې د عامو الفاظو پشان دې،لکه څنګه چه د علماء اصول او فروع وینا ده،د دې دلیل هغه حدیث مبارك دې کوم کښې چې کله نبی کریم ﷺ نه تپوس اوشو چه د شهدو د ګبین څه حکم دې ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هرهغه د څکاك څیز چه نشه راولی نو هغه حرام دې.(۲)

**استدلال:-** نو دلته سوال دې د شهدو دګبین باره کښې،خو د جواب الفاظ عام دی.او مسئله هم ددې نه عامه اوګنړلې شوه.دغه شان دا پورتنې حدیث مبارك دې اگر چه سوال د یوې خاص طریقې سره د ذبح کول تعین دې خو د جواب الفاظ دې طریقې ته اود دې نه سوا عامو صورتونو ته هم شامل دې.د الله د رسول ﷺ دا هم یوه خاص معجزه ده چه الفاظ لږ او معنی ئې زیاتې دی.

ددې په ذهن کښې د اچولو نه پس،اوس غوراوکړئی چه د سپې د تکلیف نه چه کوم ښکار مړشی یا دده د بوج په وجه د کوم ښکار ساه اوخی،نودده وینه په څه څیز سره نه ده وتلې،نو د دې حدیث مبارك د مفهوم په بناء هغه نشی حلالیدې،

**اعتراض:-** نو دې باندې دا اعتراض کیدیشی چه د دې حدیث د سپې د ښکار د مسئلې سره هیڅ تعلق نشته دې،ځکه چه سائل د ذبح کولو د یو خاص آلې طرفته اشاره کړې وه،د هغه سوال د دې څیز باره کښې نه وو چه کوم سره ذبح کړې شی،په دې و چه نبی کریم ﷺ د دې نه غابښونه او نوکونه مستثنی کړل (۳) او وې فرمائیل چه سوا د نوکونو او غابښونو .اود دې استثناء وجه درته وایم هغه دا غابښونه خوهډوکې دې،او نوکونه د حبشیانو چړې دی،او دا قاعده ده چه مستثنی د مستثنی منه د جنس نه وی .ګنی متصل به نه وی نو ثابته شوه چه سوال د ذبحې د اله په باره شوې وو.نواوس څه دلالت ستاسو په قول باقی پاتې نشو،

**جواب:-** نو د دې جواب دا دې چه د نبی کریم ﷺ جوابی جملې ته اوګورئی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم څیز نه وینه اوبهیږی او دې باندې د الله ﷻ نوم هم واخستې شو نو هغه خورئی،دا ئې اونه فرمائیل چه دې سره ئې ذبح کوئی،نو د دې جملې نه دوه حکمونه یو ځائې معلومیږی،د ذبح کولو د آله حکم هم او پخپله د ذبح کولو حکم هم.اودا چه د دې ځناور وینه په یو داسې آله سره بهیدل ضروری دی چه د نوکونو او غابښونونه سوا وی.

**دویم مسلک:-** ، دویم مسلك د مزنی رحمه الله دې،هغه دا د تیر په باره کښې ښکاره تصریح راغلې ده که په لښالی لګیدلې وی اومړ شوې وی نو هغه مه خوره او که په تیرۀ لګیدلې وی مړ شوې وی نو دا خوره،اود سپې باره کښې اطلاق احکام دی نوچوکه موجب یعنی ښکار په دواړو ځایونو کښې یو دې نو د مطلق حکم به هم په مقید باندې حمل کولې شی اگر چه سبب جدا جدا وی لکه څنګه چه د ظهار په وخت د غلام آزادول مطلق دی .هغه به محمول کولې شی،د قتل په کفاره کښې دغلام په آزادولو کوم چې د ایمان په قید سره مقید دې ،یعنی د کفاره د قتل خطاء کښې د مومن غلام آزادول دی او د ظهار په کفاره کښې د مطلق غلام آزادولو ذکر دې نو د ظهار د کفارې مطلق غلام به د قتل د کفارې په مقید

---

۱) صحیح بخاری کتاب الشرکة باب من عدل عشرة من الغنم بجزور فی القسم: ۲۵۰۷، صحیح مسلم: ۱۹۶۸، ترمذی: ۱۴۹۱.

۲) صحیح بخاری کتاب الاشربة باب الخمرمن العسل وهو البتع: ۵۵۸۵، صحیح مسلم: ۲۰۰۱، ابوداود: ۳۶۸۲.

۳) صحیح بخاری کتاب الذبائح والصید باب التسمیة علی الذبیحة ومن ترک متعمدا: ۵۴۹۸، صحیح مسلم: ۱۹۶۸.

غلام باندې حمل کولې شي چه غلام مومن دې ازشاه فیصل، بلکه ددې نه زیات ضرورت د ښکار په مسئله کښې دې.
دادلیل په هغه خلقو ډیر لوئې حجت دې چه د دې قاعدې اصل مني او چونکه د دې قاعدې مسلم کیدو کښې څه اختلاف نشته دې،نو ضروري ده چه یا خودې هغوئ دا اومني ګني یو مضبوط جواب دې ورکړي،
ددې نه علاوه دا ډله دا هم وئیلې شي چه چونکه دا ښکار سپي دخپل ثقل په وجه وژلې دې او دا ثابته ده چه کله غشي په خپل پلنو باندې ښکار اوژني نو دا حرامیږي.نو دې باندې قیاس کولو سره د سپي دا ښکار هم حرام شو.دواړو کښې دا خبره مشترکه ده چه دواړه د ښکار آلات دی او دواړو په خپل بوج او زور سره ښکار وژلې دې.اوآیت مبارك عموم د دې معارض نشي کیدې.ځکه چه عموم باندې قیاس مقدم دې لکه څنګه چه د څلورو وارو امامانو اوجمهورو مسلك دې اودا مسلك ډیر ښه دې.
دویمه خبره داده چه د الله ﷻ فرمان دې چه ﴿فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ﴾ یعني ښکاري سپي چه کوم ځناور راونیسي نو د هغې خوراك ستاسو دپاره حلال دې.دا عام دې دې ته هم شامل دې.چه کوم ئې زخمي کړې وي او د دې نه سوا ته هم، خو اوس چې په کوم صورت کښې بحث دې هغه خو یا هغه دې چې وهلې شوې وي یا د دې حکم کښې وي یا ئې مرئ خپه شوې وي یا ددې حکم کښې،
**وجوه ترجیح**:- بهرصورت ددې آیت مبارك تقدیم به په دې وجوه سره به ضرور وي،① اول دا چه شارع ﷺ د دې آیت مبارك حکم د ښکار حالت کښې معتبر ګنړلی دی ځکه چه عدي بن حاتم ﷺ ته د الله ﷻ رسول ﷺ هم دا اوفرمائیل که هغه په پلنوالي لګیدلې وي نو د هغه مرئي خپه شوې ده هغه مه خورئي.ترکومې چه ځمونږ علم دې مونږ ته معلومه ده چه یو عالم دا نه دی وئیلي چه مرئي خپه کولو سره وژلي شوې وي نو د ښکار حالت کښې معتبر وي اوکه ښکر یا وهلو سره وژلي شوې وي نو دا به معتبر نه وي،نو د کوم صورت چه دې دلته بحث کیږي دې ځناور ته حلال وئیل اجماع ماتول دی .اودې ته هیڅوك جائز نه شي وئیلې.بلکه اکثر عالمان دې ته ممنوع وائي.
② دویم دا چه آیت ﴿فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ﴾ خپل عموم باندې باقي نه دې او په دې باندې اجماع ده،بلکه د آیت نه مراد صرف حلال حیوان دې،نو د دې عامو الفاظو نه هغه حیوان چه د هغې خوراك حرام دې بالاتفاق اووتل،اودا قاعده ده چه عموم محفوظ مقدم وي،په عموم غیر محفوظ باندې ،
③ یوتقریرپه مسئله کښې بل واورئي چه داشان ښکار د مردارې په حکم کښې دې،ځکه چه د دې وینه او د دې رطوبات په دې کښې پاتې شو ،نو چه په کومه وجه مردار حرام دې هم هغه وجه دلته هم موجوده ده،نوپه دې قیاس سره هم دا حلال نه دې.
④ یو بله وجه هم واورئي چه د حرمت ایت بالکل محکم دې،په دې کښې په هیڅ شان هم د نسخ دخل نشته ،اونه په کښې څه تخصیص شته.هم دغه شان ایت تحلیل هم محکم کیدل پکار دی ،یعني د الله ﷻ فرمان چه ﴿يَسْئَلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ ۖ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ﴾ خلق تاسو نه تپوس کوي چه دوی دپاره څه حلال شوي دی نو ته ورته اوایه چه ټول پاك څیزونه ستاسو دپاره حلال دی.هرکله چه دواړه آیتونه محکم اوغیر منسوخ دی نو یقیناً دې کښې تعارض نه دی کیدل پکار.
نوحدیث د دې د بیان دپاره ازده کول پکار دی اوددې شهادت د غشي واقعه ده چه په هغې کښې دا بیان دې چه په دې کښې دا صورت داخل دې.یعني چه هغه په خپل تیزئي طرفنه زخمي کړي نو ځناور به حلال وي ځکه چه هغه طیبات کښې راغلو.دې سره حدیث مبارك کښې د اهم بیان شویدې چه آیت تحریم کښې کوم یو صورت داخل دې ؟یعني هغه صورت چه په هغې کښې دځناور مرګ د غشي

لنډوالی سره شوې وی هغه حرام شوې دې،او هغه به نه شی خوړلې.په دې وجه چه هغه وقیذ دې او وقیذ د تحریم یو حصه ده .
هم دغه شان که ښکاری سپی ښناور په خپل بوج ،زور او نیولو سره وژلې وی نو هغه به ﴿نطیح﴾ یعنی د وهلو او ښکرسره د وهلو په حکم کښې وی،او حلال به نه وی .خو که داښې زخمی کړې وی نو هغه د آیت تحلیل حکم کښې دې،اویقیناً حلال دې.
**اعتراض:**- په دې که دا اعتراض اوکړې شی که دا مقصود وې نو د سپې ښکار کښې هم تفصیل کولې شو.او فرمائیلې به شو که هغه ښنار اوشلوی یا زخمی کړی نو حلال به وی اوکه زخمی ئې نه کړی نو حرام،به وی
**جوابونه:**- ① نو ددې جواب دا دې چه چونکه د سپی بغیر د زخمی کیدو نه قتل کول ډیر کم وی ،د ده عادت دانه وی ،بلکه دا وی چه په خپلو پنجو او نوکارو سره ئې اوژنی یا دواړو سره ډیرکم،کله کله داسې کیږی چه هغه په خپل زور او بوج سره ښناور اوژنی،په دې وجه د دې ضرورت نه وو چه د دې حکم بیان کړې شی ،②او دویمه وجه دا هم ده چه کله چه آیت تحریم کښې دمیتة،منخنقة،موقوذة،متردیة،او نطیحة حرمت موجود دې نو د دې پیژندونکو ته د مخکښې نه د داسې قسم ښکار حکم بالکل ظاهر وو ،په غشی او معراض کښې ئې دا حکم په دې وجه بیان کړو چه هغه عام طور خطا کوی،د هغه سرې د لاس نه چه قادرنه وی یعنی نښه خطا کوی نو په دې وجه د دې دواړو احکام تفصیل سره بیان شو،والله اعلم.
گورئی چه چونکه د سپی ښکار کښې دا احتمال وو او ممکن دی چه هغه سپې د ښکار کولو نه پس د دې ښکار نه څه خوړلی وی،ځکه دا حکم ئې صراحت سره بیان اوفرمائیلو او ارشاد اوشو که هغه ئې پخپله اوخوری نو تاسو دا مه خورئی ممکن ده چه ده دا خپل ځان دپاره رانیولې وی (١)دا حدیث مبارك صحیح بخاری او مسلم کښې موجود دې.او داصورت داکثرو حضراتوپه نیز د آیت تحلیل د عموم نه مخصوص دې،او د دوی قول دې چه کوم یوښکار سپې اوخوری نودهغې خوراك حلال نه دې.
حضرت ابو هریره ﷺ او حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ نه هم دا حکایت شوې دې .د حضرت حسن او د حضرت شعبی رحمه الله او نخعی رحمه الله هم دا قول دې،او هم دغه شان د حضرت ابوحنیفه رحمه الله او ددوی دواړه صاحبان (امام ابویوسف او امام محمد) او احمدبن حنبل رحمه الله او مشهور روایت کښې امام شافعی رحمه الله هم په دې تلې دې.
ابن جریر رحمه الله په خپل تفسیر کښې د علی ،سعید ،سلمان رحمه الله ،ابوهریره ﷺ ، ابن عمر او عبدالله ابن عباس ﷺ نه دا نقل کړی دی اگر چه سپی د دې ښکار نه څه خوړلی وی نو د دې خوراك جائز گنړی.بلکه حضرت سعید ﷺ ،حضرت سلمان ﷺ ،حضرت ابوهریره ﷺ وغیره خو فرمائی اگر چه سپې نیم خوړلې وی نو بیا هم د دې ښکار خوړل جائز دی،امام مالك رحمة الله هم خپل قدیم قول کښې دې طرفته تلی دې،او قول جدید کښې ئې دواړو اقوالو طرفته اشاره کړې ده.لکه څنګه چه ابونصر ،ابن الصباغ وغیره ونیلی.
سنن ابی داود کښې په قوی سند سره مروی دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کله ته خپل سپې پریږدې او د الله تعالی نوم دې اخستې وی نو هغه خورئی اگر چه هغه سپې د دې نه خوراك کړې وی، اوخورئی هغه څیز کوم چې ستا لاس ستاطرفته واپس کړی (٢). نسائی کښې دا روایت دې.

---

(١) صحیح بخاری کتاب الذبائح والصید باب اذا اکل الکلب:٥٤٨٣، صحیح مسلم:١٩٢٩.
(٢) ابوداود: کتاب الضحایا باب فی الصید:٢٨٥٢، وهو حسن

تفسیر ابن جریر کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کله چه یو سړی خپل سپی ښکار دپاره پریخود او هغه ښکار اونیولو او د هغې نه ئې څه غوښه اوخوړه نو تاته اختیار دې چه باقی خناورخپل خوراك کښې راولې .[1]

په دې کښې دومره علت دې چه موقوفًا د حضرت سلمان رضی الله عنه د قول نه مروی دې چه جمهورو هغه حدیث په دې باندې مقدم کړې دې په کوم کښې چې دی که نیم نې خوړلې وی نو هم نې ته خوره او د ابوثعلبه رضی الله عنه وغیره حدیث ته نې ضعیف ونیلی دی.

بعضې عالمانو دا حدیث په دې خبره محمول کړې دې چه دا حکم په هغه وخت کښې دی چه کله سپې ښکار اونیولو او تر ډیره نې د خپل مالك انتظار اوکړو اوهرکله چه هغه رانغلو نو د اولږې په وجه هغه ښکار نه سپې څه اوخوړل.دې صورت کښې دا حکم دې چه باقی غوښه دې مالك اوخوری ځکه چه دې حالت کښې دا ویره نه وی چه شاید ښکاری سپې ته نې لا تربیت نه وی ورکړې.ممکن دی چه ده خپل خان دپاره ښکار کړې وی.په خلاف د دې چه دې سپی دا ښکار اونیولو نو ده هغه خوړل شروع کړو، نو ده ته معلومه شوه .چه ده خپل خان دپاره ښکار کړې دې.والله اعلم.

**که سپی د ښکار نه خوراک کړې وی هغه حرام دې**

**مسلك حنفي:**- د نورو امامانو پشان د احنافو هم دا مذهب دې کله چه سپې د ښکار نه خوراك اوکړی نو هغه ښکار سپی د خان دپاره کړې دې د هغې خوراک جائز نه دې اوکه سپی د ښکار کولو نه پس د هغې نه خوراک اونکړی نو په دې صورت کښې د هغې خوراک جائز دې لکه څنګه چه په قرآن پاک کښې دی (تفسیرمظهری ۵۸۱۳)۔

**د ښکاری مارغه خوړلې شوی ښکار حکم:**- اوس پاتې شو ښکاری مرغان نو امام شافعی رحمه الله صفا وائی چه دا د سپی په حکم کښې دی،نو که دې ښکار کښې اوخوری نوښکار خوړل د جمهورو په نیز خو حرام دې او د بعضو په نیز حلال دې. خو د مزنی رحمه الله مختار قول دا دې اګر چه ښکا ری مارغه دښکار غوښې خوړلې وی،بیاهم هغه حرام نه دی.هم دا مذهب د ابوحنیفه رحمه الله او احمد بن حنبل رحمه الله دې.په دې وجه چه مارغان په وهلو ټکولو سره د سپو په شان سمولې شی .اوهغوئ تعلیم نشی حاصلولې ، هر کله چه هغه اونه خوړلې شی.نو دلته د ا خبره معاف ده. اوځکه چه دا نص هم د سپو باره کښې وارد شوې دې د مارغانو باره کښې نه دې.

**که ښکاری مارغه د ښکار نه خوراک کړې وی هغه حلال دې**

**مسلك حنفي:**- اوکه ښکاری مارغه د خپل ښکار نه څه اوخوری نو هغه به حلال وی لکه څنګه چه حافظ ابن کثیر رحمه الله ابوحنیفه رحمه الله ته نسبت کړې دې (تفسیرمظهری ۵۸۱۳)۔

📖 شیخ ابوعلی په ،،افصاح ،، کښې فرمائی چه هرکله مونږ دا فیصله اوکړه چې د هغه ښکار خوړل حرام دی د کوم نه چې ښکاری سپی خوړل کړې وی نود کوم ښکار نه چه ښکاری مرغئ خوراک اوکړی په هغې کښې دوه وجې دی.خو قاضی ابوالطیب ددې فرع او ددې ترتیب نه انکارې کړې دې.ځکه چه امام شافعی دا دواړه برابر لفظونو کښې ساتلی دی ﴿والله سبحانه وتعالی اعلم﴾.

**قوله تعالی:** وَالْمُتَرَدِّيَةُ

**③ د متردیة حرمت:** ﴿مُتَرَدِّيَةُ﴾ هغه ده چه دغر یا یو اوچت ځائې نه راوغورزیږی او مړشی،هغه خناور هم حرام دې.حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه هم دا فرمائی[1] حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه دا هغه دی چه کوهی کښې پریوزی ([2])۔

---

[1]) الطبری:

قوله‌تعالى::وَالنَّطِيحَةُ

**③ د نطيحة حرمت:-** ﴿نطيحة﴾ هغه ده چه هغه بل ښناور ښکر سره اووهی او د دې تکليف نه مړه شی اګر چه زخمی شوې هم وی،او اګر چه ددې نه وينه هم وتلې وی بلکه صحيح د ذبح په ځائې لګيدلې وی.او دې نه وينه وتلې وی.

**د نطيحة اعرابی تشريح:-** دا لفظ معنی کښې مفعول يعنی منطوحه دې،دا وزن په کلام د عربو کښې عام طور د ،،ة،، نه،بغير راغلې دې لکه ﴿عين،کحيل اوکف اوخضيب﴾،په دې مواقع کښې ﴿کحيلة﴾ او ﴿حضيبة﴾ نه شی وئيلې.په دې ځائې کښې ،،ة،، په دې و جه راوړلې شوې ده چه دلته د دې لفظ استعمال قائمقام د اسم دې.لکه د عربوکلام کښې چې دی چه ﴿طريقة طويلة﴾،بعضې نحوی وائی چه تا، تانيث دلته راوړې شويده چه په رومبی ځل په تانيث دلالت کوی په خلاف د ﴿کحيل﴾ او﴿حضيب﴾ ځکه چه هلته تانيث د کلام په ابتدائی لفظ سره معلوميږی.

قوله‌تعالى::وَمَآ أَكَلَ السَّبُعُ

**د درنده خوړلی ښناور حرمت:** ⑤﴿مَآ أَكَلَ السَّبُعُ﴾ نه مراد هغه ښناور دې چه په هغې باندې زمرې يا ليوه يا سپې وغيره حمله اوکړی اوددې څه حصه اوخوری او په دې وجه هغه مړ شی نو د دې ښناورو خوراک هم حرام دې.اګرچه ددې نه وينه وتلې وی بلکه د ذبح کولو په ځائې ترينه وينه وتلې وی.خو ددې باوجود په اجماع سره داحرام دې.اهل جاهليت به دداسې ښناور باقی حصه خوړله.الله ﷻ مومنانو ددې نه منع کړل

قوله‌تعالى::إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ

**د حلت صورت:-** اوبيا فرمائی مګر هغه چه تاسو ئې ذبح کړئی،يعنی چې مرئ خپه شوې وی يا ښټ ئې مات شوې وی يا د پورته نه راپرې وتی وی يا په ښکر سره لګيدلې وی يا ئې څه سره ډغره وهلې وی يا د ځيرونکو ښناورو خوړلې شوې وی، که په دې حالت کښې تاسو تـه مـلاو شی چه په هغې کښې ساه وی او تاسو په هغې د الله ﷻ نوم واخلئ او په چاړۀ ئی ذبح کړئی،نو بيا دا ښناورستاسو دپاره حلاليږی.

**د علی ﷺ قول:-** حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ ،سعيد بن جبير ﷺ،حسن رحمه الله او سدی رحمه الله فرمائی ([3])حضرت علی ﷺ نه مروی دی که تاسو دا په دې حالت کښې اوموموئی چه د چاړې راښکلو په وخت کښې هغې نه ساه اوخی يا پښې اوخوزوی،يا سترګې اوړپوی،نو بيشکه دا ذبح کوئی او خورئی يئ.

ابن جرير کښې د دوی نه مروی دی چه کوم ښناور وهلې شوې وی يا پورتـه نـه راپريوتې وی،يا وهلې شوې وی ،او په دې کښې روح باقی وی،او تاسو تـه پـه دې حالت کښې مـلاؤ شی چه پښې او لاسونه پړقوی نو تا سو دا ذبح کولې او خوړلې شئ.([4])

حضرت طاوس رحمه الله ،حضرت حسن رحمه الله ،حضرت قتاده رحمه الله او حضرت عبيد بن عمير رحمه الله ،ضحاك او ډيرو حضراتو نه مروی دی چه د ذبح کولو په وخت کښې که څه حرکت هم د دې ښناور ظاهرشی چه د هغې نه دا معلومه شی چه په دې کښې ساه شته دې نو هغه حلال دی ([5]).

**د جمهورو مذهب:-** د جمهور فقهاو هم دا مذهب دې.د دريواړو امامانو هم داقول دې.امام مالك رحمه الله د هغه چيلئ باره کښې چه هغه يو ځيرونکی ښناور اوخوری اود دې کولمې راوزی نو فرمائی چه خما

---

[1] ) الطبری:٤٩٨/٩،

[2] ) ايضا

[3] ) الطبری:٥٠٤/٩.

[4] ) الطبری: ٥٠٣/٩،

[5] ) ايضا

خيال دې چه دا دې ذبح نه کړې شي.په دې کښې به د څه څيز ذبح وي.يو ځل د دوی نه سوال اوشو که درنده حمله اوکړي او د چيلۍ خيټه اوشلوی نو آيا د دې چيلۍ ساه وتلو نه مخکښې مخکښې دا ذبح کولې شي.دوی اوفرمائيل که بالکل آخره پورې رسيدلې وی،نو خما رائې ده چه دادې اونه خوړلې شي او که په اطرافو کښې وی نو دې کښې هيڅ باك نشته .نو هغه صاحب اووئيل چه درنده په دې حمله کړې وی ،اودا ئې اونيوله او دې سره د دې ملامانه شوه،نو دوی اوفرمائيل چه ماته د دې خوراك خوښ نه دې .څکه چه د دې دومره غټ زخم نه پس دا ژوندۍ نشي پاتې کيدې.دوی نه بيا تپوس اوشو چه خيټه ئې ورته اوشلوله نو د دې څه حکم دې ؟ نو وې فرمائيل چه خما دا رائې ده چه دا دې اونه خوړلې شي .دا د امام مالك رحمه الله مذهب دې.خو چونکه آيت مبارك عام دې،په دې وجه امام صاحب چه کوم صورتونه مخصوص کړي دي،په دې باندې څه خاص دليل پکار دې.والله اعلم.

**د ښکارۍ ځناورد زخمي کولو نه پس په ذبحې سره ښکار حلاليږي**

**مسلك حنفي:-** کوم ځناور چې درنده اوخوری او د هغې نه ساه نه وی وتلې او په دغه حالت کښې ذبح شي نو په ذبح کولو سره هغه حلال شو او که درنده ئې داسې مات کړی چه د مذبوح پشان شي نو په روستو ذبحه کولو سره هغه نه حلاليږي بلکه هغه د مردارې پشان دې (تفسير مظهری (٥٠١٣)-

**د بانړس د ذبح حکم:-** بخاری او مسلم کښې حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه نه مروی دی چه ما نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چه يارسول الله ﷺ ! مونږ سبا دښمن سره جنګ کولو والا يو،او مونږ سره به چړې نه وی نو آيا مونږ بانړس سره ذبح کولې شو،نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم څيز نه وينه توبولې شي او په دې باندې د الله تعالی نوم واخستې شي نو دا خورئ.سوا د غاښونو او نوکونو نه،څکه چه غاښ هډوکې دې او نوکونه د حبشيانو چړې دی ([1]).

**کوم ځناورچې په غاښ يا نوک سره ذبح شي هغه حلال دې**

**مسلك حنفي:-** امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی که غاښ يا نوك داسې ويستلې شوې وی يعنی د بدن نه جدا کړې شوې وی اوتيرۀ وی نوکه په هغې باندې ذبح اوشی هغه به حلاله وی څکه چه په حديث کښې د وينې توبولو شرط راغلې دې چې وينه تونې شي نو خورئ؛باقي پاتې په حديث کښې چه د غاښ او نوك کومه استثناء راغلې ده نوهغه په داسې صورت کښې چه غاښ پس وی تيرۀ نه وی څکه نبی کريم ﷺ د هډوکی سره تشبيه ورکړې ده او باقي پاتې شوه د نوك استثناء نو دا په دې وجه چه حبشو به نوك ويستلې نه وو او په هغې به ئې ذبح کوله نو څکه نبی کريم ﷺ د نوك استثناء اوکړه ([2]).

**د مرۍ نه سوا د بل ځائې ذبحې حکم:-** مسند احمد او سنن کښې دی چه نبی کريم ﷺ نه تپوس اوشو چه آيا ذبح صرف حلق او ګورګرو سره کيږی ؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل که تا د دې په پتون کښې زخم لګولې وی نو دا کافی دې ([3]). دا حديث مبارك خو صحيح دې خو دا حکم په هغه وخت کښې دې چه کله صحيح طور سره په ذبح کولو قادر نه وی.

**قوله تعالی:** ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ﴾

**د بت په نوم د ذبحې حکم:-** نصب باندې چه کوم ځناور ذبح کړې شی نو هغه هم حرام دې.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا د عبادت ځايونه د کعبې ګير چاپيره وو([4]).ابن جرير رحمه الله اوفرمائيل چه دا

---

[1]) بخاری مسلم حواله مخکښې تيره شوې ده.

[2]) (تفسيرمظهری (٥١١٣)-

[3]) احمد:٤/٣٣٤، ابوداود کتاب الضحايا: باب فی ذبيحة المتردية:٢٨٢٥، ترمذی: ١٤٨١، نسائی: ٤٤١٢، ابن ماجه:٣١٨٤، تاريخ الکبير:٢/١/٢٢. دارمی:٢/٩، مسند ابی يعلی :١٥٠٣.

[4]) الطبری:٩/٥٠٨،

درې سوه شپیته بتان وو د جاهلیت د زمانې،عربو به د دې مخکښې خپل خناور ذبح کول او په دې کښې به چه کوم بیت الله ته نزدې وو په هغې به ئې د دې خناورو وینه شیندله، او غوښه به ئې په دې بتانو باندې آویزانده کوله (١) نو الله ﷻ دا کار په مومنانو باندې حرام کړو،او د دې خناورو خوراك ئې هم حرام کړو،اګر چه د دې خناورو د ذبح کولو په وخت کښې بسم الله وئیلې شوې وی،خکه چه دا شرك دې او دا الله تعالی او د الله رسول ﷺ حرام کړې دې.او هم دا لائق دی او د دې جملې نه هم دا مطلب دې خکه چه د دې نه مخکښې ددې حرمت بیان شوې دې چه د الله تعالی نه سوا د نورو په نوم باندې ذبح کړې شی.نوهغه حرام دی

قوله تعالی::وَأَن تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ

**په غشو د تقسیمولو حرمت:**- د ﴿ازلام﴾ نه مراد تقسیمول دی دا حرام دی او د جاهلیت په زمانه کښې د عربو دا دستور وو.هغوئ به درې غشی اینښودی وو ،یو باندې به ئې لیکلی وو چه ﴿افعل﴾ یعنی اوکړه،په دویم به ئې لیکلی وو چه ﴿لاتفعل﴾ یعنی مه کوه.او دریم به خالی وو. بعضې وائی چه یو باندې به ئې لیکلی وو چه ماته خما د رب تعالی حکم دې،په دویم به ئې لیکلی وو چه مانه د رب ممانعت دې.دریم به خالی وو. په هغې کښې به هیڅ نه وو لیکلې شوی.هغه خلقو به په طور د قرعه اندازئی دا غشی استعمالول،یعنی چه کله به هغوئ ته په څه کار کښې شك شو نو دا غشی به ئې راوویستل،که دوی ته به حکم وو چه دا کار اوکړه نو هغه کار به ئې کولو اوکه حکم به وو چه کار مه کوه نو هغه کار نه به منع شو. که خالی غشئ به راووتلو نو بیا به ئې دوباره قرعه اندازی کوله. ازلام جمع د زلم،

اوبعضې زلم هم وائی.د استقسام معنی د دې غشو نه د دې تقسیمول طلب کول دی .د قریشو د تولو نه لونې بت هبل وی چې په خانه کعبه کښې دننه په کوهی باندې لګیدلې وو او په هغه کوهی کښې به د خانه کعبې مال او هدیې خلقو جمع کولې د دغه بت سره اووه (٧) غشی وو چه په هغې څه لیکلې شوی وو. چه په کوم کار کښې به د دوی اختلاف پیدا شو نو دا قریش به دلته راغلل او د دې غشو نه به ئې یو غشئ واخستو او چه په هغې به څه لیکلې شوی وو هغه به ئې کول. (٢)

**په خانه کعبه کښې د ابراهیم ؑ مجسمه:**- بخاری شریف او مسلم شریف کښې دی چه کله حضرت نبی کریم ﷺ کعبې ته داخل شو نو هلته د حضرت ابراهیم ؑ او حضرت اسماعیل ؑ مجسمې نقش کړې شوې وې ،اود هغوئ لاسونو کښې غشی وو. حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ دې دوی تباه کړی دوی ته ښه معلوم دی چه د دې بزرګانو هیڅ کله هم فال نه دې کتلې (٣).

**د سراقه بن مالك ؓ په غشو پال نیول:**- صحیح حدیث مبارك کښې دی چه سراقه بن مالك بن جعشم چه کله نبی کریم ﷺ او حضرت ابوبکرصدیق ؓ تلاش کولو دپاره اووتلو چه هغوئ اونیسی او د مکې کافرانو ته ئې حواله کړی او په هغه وخت کښې نبی کریم ﷺ مدینې ته هجرت کولو. نو ده دغه شان قرعه اندازی اوکړه. دده بیان دې چه په رومبی خل هغه غشئ راووتلو چه خما د مرضئ خلاف وو .ما بیا غشی ګډ کړل او غشې مې راوویستلو نو دې خل هم هغه غشې راووتلو.په کوم کښې چې وو چې ته هغه (نبی کریم ﷺ) ته څه نقصان نشی رسولې. ما بیا اونه منل او په دریم خل مې فال راوویستلو نو دې خل هم هغه غشې راووتلو. خو ما د دې هیڅ پرواه اونکړه او د انعام حاصلولو په لالچ کښې اووتلم. دې

---

(١) ایضا

(٢) الطبری: ٥١٣/٩

(٣) صحیح بخاری کتاب الحج باب من کبر فی نواحی الکعبة:١٦٠١، ابوداود :٢٠٢٧، احمد:٣٣٤/١.

وخت پورې سراقه مسلمان شوې نه وو، ده د نبي كريم ﷺ هيڅ اونكړل او دې نه پس دې اسلام كښې داخل شو.([1])

**د فال حرمت:-** ابن مردويه كښې دي چه نبي كريم ﷺ فرمائي هغه سړې د جنت اوچت مقامات نشي حاصلولې چه څوك كهانت كوي يا فال ګوري يا د څه بدفالئ په وجه سفر نه واپس شي.([2])

**دغشو رواج په فارسيانو كښې:-** حضرت مجاهد رحمه الله هم دا فرمائيلي دي عربو به د دې غشو په ذريعه او فارسيانو او روميانو د پانسو په ذريعه جواري كوله. نودا په مسلمانانو باندې حرام كړې شوه. ممكن دي چه د دې قول مطابق مونږ داسې اووايو چه دا خو د استخارې دپاره وو خو كله كله به نې د دې سره جواري هم كوله والله اعلم.

**د جوارئ وغيره حرمت:-** ددې سورت په آخر كښې الله ﷻ جواري هم حرامه كړه. او وې فرمائيل چه انې ايمان والو شراب، جواري، بتان، غشي پليت دي او شيطاني كارونه دي.تاسو دې نه بچ اوسئ نو تاسو ته به نجات حاصل شي.شيطان خودا غواړي چه تاسو كښې د دې په ذريعه دشمني او بغض پيدا كړي دغه شان دلته هم فرمائي چه د غشو نه تقسيم غوښتل حرام دي.ددې كار كول فسق او ګمراهي ده او جهالت او شرك دې.

**دغشو په ځائې د استخاره حكم:-** ددې په ځائې مومنانو ته حكم اوشو چه كله تاسو ته په خپل څه كار كښې شك شي نو تاسو استخاره كوئي.د هغه پاك ذات عبادت كوئي،اود هغه نه خير غواړئي. مسنداحمد.

**د استخارې دعا:-** بخاري او سنن كښې مروي دي چه حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه فرمائي چې مونږ ته به نبي كريم ﷺ څنګه د قران پاك سورتونه خودل نودغه شان به نې مونږ ته په خپلو كارونو كښې داستخارې حكم كولو. نبي كريم ﷺ به فرمائيل چه كله تاسو كښې چاته څه كار كول وي نو هغه ته پكار دي چه استخاره كوي،نودوه ركعته نفل دې اوكړي او بيا دې دا دعا اووائي چه :

اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا أَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلَا أَعْلَمُ وَأَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ اللّٰهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذَا الْأَمْرَ خَيْرٌ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي أَوْ قَالَ فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ فَاقْدُرْهُ لِي وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذَا الْأَمْرَ شَرٌّ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي أَوْ قَالَ فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ فَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاصْرِفْنِي عَنْهُ وَاقْدُرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ رَضِّنِي بِهِ([3])

(ترجمه) " انې الله ﷻ ! زه ستا نه ستا د علم په ذريعه خير غواړم او ستا د قدرت په وسيله ستا نه قدرت غواړم،او زه ستا د ډير لوئې فضل طلب كوم،يقيني ته په هر څيز قادر نې او زه محض مجبور يم او ته د پوره علم خاوند يې او زه بيخي بې علمه يم.هم ته نې چه ټولې د غيبو خبرې تاته معلومې دي.انې خما ربه ! كه ستا په علم كښې دا كار خما دپاره بهتر وي نو ته دا خما دپاره اوكړه.اوما دپاره دا آسان كړې .او په دې كښې مادپاره هر رنګه بركت واچوې .اوكه ستا په علم كښې دا كار زما د دين او دنيا او د انجام په لحاظ سره خراب وي نو دا خما نه لرې كړې او ماد دې نه لرې اوساتې اوما دپاره چه چرته هم خير اوبركت وي نو مالره نې مقرر كړه. بياما په دې راضي كړه.د دعا دا الفاظ مسند احمد

---

[1]) صحيح بخاري كتاب مناقب الانصار باب هجرة النبي ﷺ واصحابه الى المدينة :٣٩٠٦، احمد:١٧٥/٤، ابن حبان : ٦٢٨٠.

[2]) مجمع الزوائد: ١١٨/٥، تمام الرازي فى الفوائد:١٦٨/٢، مسند الشامين.:٢١٠٤.

[3]) صحيح بخاري كتاب التهجد باب ماجاء فى دعاء الاستخارة،ابوداود :٥٣٨، ترمذي:٤٨٠، نسائي:٨٠/٦، ابن ماجه: ١٣٨٣.

کښې دی (1). چه ﴿هذاالامر﴾ چرته دي، هغه ځائې کښې د خپل کار نوم واخله، لکه که نکاح وی نو ﴿هذاالنكاح﴾ سفر وی نو ﴿هذاالسفر﴾ که تجارت وی نو ﴿هذه التجارة﴾ وغيره. بعضو روايتونو کښې ﴿خيرلي في ديني﴾ نه ﴿امري﴾ پورې په ځائې دا الفاظ دی چه ﴿خيرلي في عاجل امري واجله﴾. امام ترمذی رحمه الله دې حديث مبارك ته حسن غريب وائي.

**قوله تعالى:** ﴿اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ﴾

**دکافرانو نااميده کيدل:-** ① بيا فرمائي چه نن کافر ستاسو د دين نه مايوسه شو يعنی د دوی اميدونه بناورې شو چه دوی ستا په دين کښې څه کمې زياتې اوکړی. او خپل دين ستا په دين کښې ګډوډ کړی. نو صحيح حديث مبارك کښې دی چه شيطان خو ددې نه مايوسه شوې دې چه مسلمانان په جزيره عرب کښې د ده عبادت اوکړی. خودې به په دې کوشش کښې وی چه مسلمانان خپلو کښې يو بل سره واچوی (2). ② دا هم کيدېشی چه د مکې مشرکان د دې نه مايوسه شی چه مسلمانانو سره يو ځائې شی. ځکه چه د اسلام احکامو په دوی کښې ډير لوئې فرق راوستې دې. په دې وجه د الله ﷻ ارشاد دې چه مومنان دې صبر کوی او ثابت قدم دې اوسی او د الله ﷻ نه دې سوا د بل چا نه نه ويريږی. او نه دې د کافرانو د مخالفت پرواه کوی. او الله ﷻ به دوی دنيا او آخرت کښې کامياب کړی

**قوله تعالى:** ﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا﴾

**د دين اسلام تکميل:-** بيا د خپل افضل او بهترين نعمت ذکر کوی چه ما ستاسو دين هر رنګ مکمل او کامل کړو. تاسو ته به د دې دين نه سوا د بل دين احتياج نه وی. اونه به تاسوته د دې نبی ﷺ نه سوا د بل نبی ﷺ احتياج وی. الله ﷻ ستاسو نبی ﷺ خاتم النبين جوړ کړې دې، او هم دې نې ټول انسانانو اوجناتو طرفته ليږلې شوې دې. حلال هغه دی چه کومو ته دې حلال اووائی او حرام هغه دی چه کومو ته دې حرام اووائی. دين هغه دې چه کوم دې مقرر کړی او د دوی ﷺ ټولې خبرې حق او صداقت والا دی. اوپه دې کښې هيڅ قسمه دروغ او اختلاف نشته. لکه د الله ﷻ فرمان دې چه ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا﴾ يعنی ستا د رب کلمه پوره شوه اودا په خبر ورکولو کښې رينښتونې ده او حکم او منع کښې عدل والا ده. د دين مکمل کول تاسو باندې خپل لوئې نعمت کول دی. څه پخپله ستاسو په دې دين او اسلام خوشحاله يم، د دې وجې تاسو هم په دې خوشحاله اوراضی اوسی: د الله ﷻ دا دين خوښ دين دې، دا نې خپل افضل رسول ته ورکړل او دې نې په خپل اشرف کتاب پيغمبر جوړ کړو

**دابن عباس ﷺ روايت:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه الله ﷻ ستاسو دپاره دين اسلام کامل او مکمل کړې دې. او خپل نبی اومومنانوته نې د دوی کامل والې په خپل کلام کښې خودلې دی. اوس د پاتې دنيا پورې د څه زياتې: محتاج نه دې. دا الله ﷻ پوره کړې دې او تر قيامته پورې به دا نه ناقص کيږی په دې باندې الله تعالى خوشحاله دې اوکله هم خفه کيدونکې نه دې

**په احکامو کښې اخری ايت:-** سدی رحمه الله فرمائي چه دا آيت مبارك د عرفې په ورځ نازل شوې دې. دې نه پس د حرام او حلال هيڅ حکم نه دې نازل شوې. دی نه په واپس کيدو د الله رسول ﷺ وفات شو.

حضرت اسماء بنت عميس ﷺ فرمائي چه دې حج کښې څه هم نبی کريم ﷺ سره اوم. مونږ روان وو چه په دې کښې د حضرت جبريل ﷺ تجلی اوشوه او نبی کريم ﷺ په خپله اوښه مبارکه ټيټ شو. وحی نازليدل شروع شو. اوښې د وحی د بوج طاقت نه لرلو. ما هم په هغه وخت کښې خپل څادر په نبی کريم ﷺ واچولو.

---

(1) احمد: ٣/٣٤٤، وسنده صحيح (الموسوعة الحديث: ٥٦/٢٣) بخاری: ١١٦٢.

(2) صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين باب تحريش الشيطان وبعثه سراياه لفتنة الناس: ٢٨١٢، ترمذی: ١٩٣٧ احمد: ٣/٣١٣ مسند ابی يعلی: ٢٠٩٥.

**د حضرت عمر ﷺ فراست:-** ابن جریر وغیره فرمائي چه دې نه پس نبي کریم ﷺ یواتیا ورځو پورې ژوندي وو. هر کله چه د حج اکبر په ورځ دا آیت مبارك نازل شو نو حضرت عمرفاروق ﷺ په ژړا شو نبي کریم ﷺ ترې تپوس اوکړو نو حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل چه مونږ خو لا د دین نور زیاتي په امید کښې وو اوهغه کامل شو نو دستور دا دې چه د کمال نه پس نقصان شروع کیږي ،نو نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه رښتیا دي . د دې معنی (چې د کمال نه پس زوال وي) شهادت ددې حدیث نه ثابتیږي چه په هغې کښې د نبي کریم ﷺ ارشاد دې چه اسلام د پردیسئ او غریبئ نه شروع شوې دې او نزدې ده چه دا به غریب شي.نو د غریبانانو دپاره خوشخبري ده (١).

**د تکمیل دین ایت د نزول ورځ او مقام:-** مسند احمد کښې دي چه یو یهودي حضرت فاروق اعظم ﷺ ته اووئیل چه تاسو چې کوم آیت مبارك ﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ﴾ وائې که په مونږ یهودیانونازل شوې وې نو په دې ورځ به مونږ اختر کولو. حضرت عمر فاروق ﷺ اوفرمائیل چه ماته د الله ﷻ فضل سره علم دې چه دا آیت مبارك په دوی ﷺ باندې کله او په کوم وخت کښې نازل شوې دې.دا د عرفې په ورځ د جمعې په ماښام نازل شوې دې .اومونږ ټول په هغه وخت کښې په میدان عرفه کښې وو(٢). ټول سیرت والا په دې خبره متفق دي چه د حجة الوداع په ورځ د عرفې ورځ د جمعې په ورځ وه. او روایت کښې دي چه حضرت کعب ﷺ حضرت عمرفاروق ﷺ ته اوفرمائیل اوحضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل چه دا آیت مبارك مونږ دپاره د دوؤ اخترونو په ورځ نازل شوې دې .

**د ایت نزول په عرفه او جمعه کښې:-** د حضرت ابن عباس ﷺ نه ئې چه کله د دې آیت مبارك تلاوت واوریدونو یهودو هم دا وئیلي وو. نو په دې حضرت ابن عباس ﷺ اوفرمائیل چه مونږ دپاره خو دا آیت مبارك د دوؤ اخترونو په ورځ نازل شوې دې .دا اختر ورځ هم وه او د جمعې ورځ هم وه.(٣)

حضرت علي ﷺ نه مروي دي چه دا آیت مبارك د عرفې په ورځ ماښام نازل شوې دې.حضرت امیر معاویه بن ابي سفیان ﷺ په منبر باندې دا پوره آیت مبارك تلاوت کړو او وې فرمائیل چه دا آیت مبارك د جمعې په ورځ عرفه کښې نازل شوې دې.

**د اسلامي تاریخ اهم واقعات په کومه ورځ:-** حضرت سمره ﷺ فرمائي چه په هغه وخت کښې نبي کریم ﷺ په موقف باندې ولاړ وو. حضرت ابن عباس ﷺ نه مروي دي چه ستاسو نبي ﷺ د ګل په ورځ پیدا شو،د ګل په ورځ د مکې نه اووتلو او هم د ګل په ورځ مدینې ته داخل شو ،دا اثر غریب دې.او د دې سند ضعیف دې.

مسنداحمد کښې دي چه نبي کریم ﷺ د ګل په ورځ پیدا شو او د ګل په ورځ نبي جوړ کړې شو.د ګل په ورځ د هجرت ارادې سره مکې نه اووتلو او هم د ګل په ورځ مدینې ته اورسیدو. اوهم د ګل په ورځ وفات شو. حجر اسود ئې هم د ګل په ورځ ایښودې وو.(٤) په دې کښې دسورة مائده د ګل په ورځ نازلیدل ذکر نه دې.خما خیال دې چه حضرت ابن عباس ﷺ به وئیلي وي چه دا آیت مبارك ددوؤ اخترونوپه ورځ نازل شوې دې.نو د دوؤ دپاره هم لفظ د اثنین دې.او د ګل ورځې ته هم اثنین وائي.دې کښې راوي ته شك شوې دې.والله اعلم.

---

(١) الطبري:٥١٩/٩،

(٢) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان ان الاسلام بدا غریبا سیعودا غریبا:١٤٥. ابن ماجه:٣٩٨٦، احمد:٣٨٩/٢، مسند ابي یعلی :٦١٩٠.

(٣) احمد:٢٨/١، صحیح بخاري کتاب الایمان باب زیادة الایمان ونقصانه: ٤٥، صحیح مسلم:٧٠١٧، نسائي:٤٩٢٦. بیهقي:١١٨/٥.

(٤) احمد: ٢٧٧/١، مجمع الزوائد: ٢٠١/١، ددې سند کښې ابن لهیعه مختلط راوي دې.

**د تكميل دين ايت په وخت نزول كښې دوه ضعيف قولونه:-** په دې كښې دوه اقواله نور هم دي. يو خو دا چه دا ورځ خلقو ته معلومه نه ده. دويم دا چه دا آيت مبارك د غدير خم په ورځ نازل شوې دې. په كومه ورځ چې نبى كريم ﷺ د حضرت على ﷛ باره كښې فرمائيلى وو چه د چا مولا خه يم د هغه مولا على دې. نو ګويا چه د ذوالحجه اتلسم تاريخ شو. او دوى ﷛ د حجة الوداع نه واپس راتلل. خو ياد ساتئ دا دواړه قولونه بالكل صحيح نه دى او بې شك و شبه قول دا دې چه دا آيت مبارك د عرفې په ورځ نازل شوې دې. امير المومنين حضرت عمر بن خطاب او امير المومنين حضرت على بن ابى طالب او د اسلام ړومبي بادشاه حضرت امير معاويه بن ابى سفيان ﷛ او ترجمان القران حضرت عبدالله بن عباس ﷛ او حضرت سمره بن جندب ﷛ نه هم دا مروى دى. او هم دا حضرت شعبى ﷫ حضرت قتاده ﷫ او حضرت شهر ﷫ وغيره ائمه وائى او هم دا قول مختار د ابن جرير دې.

**قوله تعالى:** فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ

**د مجبورئ په وخت كښې د حرامو خوړلو اباحت:-** بيا فرمائى چه كوم يو سړې دې حرامو څيزونو كښې د يو څيز په استعمال ته مجبور او بې بس شى نو هغه د داسې اضطرار حالت كښې هغه په كار راوستې شى. الله ﷻ غفور رحيم دې او هغه ته معلوم دى چه د هغه بنده د هغه حد نه تير نشو. بلكه هغه دا د مجبورئ او بې بسئ حالت كښې داسې اوكړل نو الله ﷻ به دې معاف كړى.

**په رخصت باندې عمل كولو حيثيت:-** صحيح ابن حبان كښې دى چه حضرت عمر فاروق ﷛ نه مرفوعاً مروى دى چه الله ﷻ د كومو څيزونو اجازت وركړې دې. او بندګان په هغې عمل كوى نو الله پرې داسې خوشحاليږى لكه څنګه چې د هغه خلقو نه خوشحاليږى كوم چې د الله ﷻ د نافرمانئ نه ځان ساتى (¹) مسند احمد كښې دى چه كوم سړې د الله ﷻ وركړې شوې رخصت نه قبلوى نو په هغه د عرفات د غر هومره ګناه ده. (²)

په دې وجه فقهاء كرام وائى چه په بعضو صورتونو كښې مرداره خوړل واجبيږى. لكه يو سړې د اولږې حالت كښې داسې حالت ته اورسى چه د مرګ خطره وى ورته. او كله دا جائز وى. او كله مباح. البته په دې كښې اختلاف شته دې چه كله د اولږې حالت كښې حلال څيز نه وى نو حرام صرف دومره خوړلې شى چه دې پرې بچ شى يا په مړه خيټه خوراك هم كولې شى. بلكه ځان سره هم ايښودې هم شى. ددې د تفصيل ځائې د احكامو كتابونه دى.

**په اضطرارى حالت كښې درې حرام موجوديدل:-** په دې مسئله چه كله يو سړې اوږې وى او هغه د اضطرار حالت كښې وى، (او په داسې حالت كښې ده ته درې حرام څيزونه ملاويږى) يو مرداره وى دويم د بل چا د خوراك څيز وى دريم په حالت د احرام كښې ښكار موجود وى نو داوس دار درې واړه څيزونه حرام دى نودې به څه كوى ①آيا مرداره به خورى ؟ ②او كه د احرام حالت كيدو باوجودې به ښكار كوى اوچې كله پرې د اسانئ وخت راشى چې بيا د دې جزا يعنى فديه وركړى، ③او كه د بل څيز به بغير دهغه د اجازت نه خورى او كله چه په ده آسانى شى نو هغه به ورته واپس كوى. په دې كښې د امام شافعى نه دوه اقوال دى.

**تنبيه:-** دا هم ياد ساتئ چه د مردارې خوراك كوم شرط عوامو كښې مشهور دې چه كله سړې د دريو ورځو نهروى نو بيا حلال دى. دا بالكل غلط دى بلكه كله چه اضطرار اوبې قرارى او مجبورى وى نو په هغې كښې د هغه دپاره مرداره خوراك حلال دى.

---

¹) احمد: ١٠٨/٢ وسنده حسن، ابن حبان: ٢٧٤٢، شعب الايمان: ٣٨٩٠، تاريخ بغداد: ٣٤٧/١٠.

²) احمد: ٧١/٢.

**کوم د اولوړې حالت دی؟:-** مسند احمد کښې دی چه خلقو نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! مونږ داسې خائې کښې اوسیږو چه هلته مونږ ته د فقر او فاقې نوبت راځي.نو زمونږ دپاره مرداره خوړل کوم وخت کښې جائز دی .؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کله سحر مابښام ملاؤ نشي او نه درته سبزی ملاؤ شي نو تاته اختیار دې (١). ددې حدیث مبارك یو سند کښې ارسال هم دی خو د مسندوالا مرفوع حدیث مبارك د شیخینو په اسناد او شرطونو صحیح دې .

ابن عون رحمه الله فرمائی چه حضرت حسن ﷺ سره د حضرت سمره ﷺ کتاب وو،اوهغه به نې د هغوئ مخکښې لوستلو. په هغې کښې دا هم وو چه سحر مابښام نه ملاویدل.هغه سړی نبی کریم ﷺ نه دا هم پوښتلې وو چه حرام خوړل کله حلالیږی ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ترڅوپورې چې ته په پینو سره د خپلو بچو خیټه مړه نه کړې او ترڅو پورې چه د هغوئ (د خوراک) سامان رانشي (٢).

یو اعرابی نبی کریم ﷺ نه د حرامو باره کښې سوال اوکړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ټول پاك څیزونه حلال او ټول ګنده څیزونه حرام دی.خو که د دې محتاج شې نو دا خوړلې شې.ترڅومې چه ته د هغې نه بې احتیاجه نشې. نو دې سړی بیان تپوس اوکړو چه هغه محتاجی کومه یوه ده؟ چې په هغې کښې زما دپاره حرام څیزونه حلال شي او هغه مالداری کومه ده چې د هغې په وجه زما دپاره د هغې نه منع کیدل پکار وی نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته صرف د شپې خپلو بچو ته پې ورکولې شې نو ته د حرامو څیزونو نه پرهیز کوه (٣).

ابوداؤد کښې دی چه حضرت شیخ نجیع ﷺ نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! مونږ دپاره د مردارې خوراك کله حلال دې ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاته خوراك کښې څه ملاویږی ؟ نو هغه اوونیل چه سحر صرف یو پیاله پئ او د مابښام صرف یو پیاله پئ؛ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هم دا دې.او بل به کومه اولږه وی،نو دې حالت کښې نبی کریم ﷺ هغه ته د مردارې د خوراك اجازت ورکړو.(٤) د حدیث مبارك مطلب دا دې چه سحر مابښام د پینو یو پیاله ملاویدل کافی نه وو. اولږه به نې باقی وه.نو په دې وجه د هغه دپاره مرداره خوراك حلال کړې شو چه هغه په مړه خیټه خوراك اوکړی .بعضې خلق دا دلیل جوړوی اووائی چه د اضطرار په حالت کښې په مړه خیټه خوراك کولې شی.او(څوك چې دا قید لګوی چې) دومره خوراك چه دده ځان پرې بچ شی دا قیدنه دې.(بلکه ځان مړولې هم شی) والله اعلم.

**د ضرورت نه د زیاتو خوړلو دلیل:-** د ابوداود یو بل حدیث مبارك کښې دی چه یو سړې د خپل اهل وعیال سره راغلو او حره کښې ایسار شو. د یوسړی اوښه ورکه شوې وه نو ده ته نې اوونیل که چرته څااوښه دې اولیده نو هغه اونیسه ،اتفاق سره دااوښه هغه ته په لاس ورغله.نو ددې مالك ئې تلاش کولو خو هغه ورته ملاؤ نشو او دا اوښه بیماره شوه.نو د هغه سړی بی بی اوونیل چه مونږ اوړی یو دا ذبح کړه.خو هغه به انکار کولو. اوآخر اوښه مړه شو نو د ده ښځې ده ته اوونیل چه ددې نه څرمن اوباسه او دا ټکړې ټکړې کړه مونږ نه به پکار شی.خو دې بزرګ ورته اوونیل چه څه داسې هم نشم کولې خوکه د الله نبی ﷺ اجازت راکړی نو (بیا صحیح ده). نو دې د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضرشو او ټوله قصه نې بیان کړه. نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه تاسره بل څه د خوراك دپاره شته دې که نه ؟ نوهغه سړی اوونیل چه نه.نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه بیا نې ته خوړلې شې.نو

(١) احمد:٥/٢١٨ .
(٢) داروایت مرسل دې.
(٣) الطبری :٩/٥١٤،،
(٤) ابوداود کتاب الاطعمة باب فیمن اضطر الی المیتة:٣٨١٧، بیهقی :٩/٣٥٧. شرح السنة:٢٩٠٠.

دې نه پس نې اوښې والا سره ملاقات شو. نو هغه ورته اوونیل چه تا هغه ولې نه ذبح کوله چه خوړلې دې وې.نو دې بزرګ صحابي ورته اونیل چه ماته شرم راتلو. (١)دا حدیث مبارك دلیل دې د هغه خلقو دپاره چه کوم واتي چه د اضطرار په وخت کښې مرداره په مړه خیټه خوړل بلکه خپل ځان سره ایښودل هم جائز دی .والله اعلم.

قوله تعالى: غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ

**د حرام خوړلو اجازت کښې یو قید:-** بیا ارشاد دې چه دا حرام د اضطرار په وخت کښې د دې وجې مباح دی چه یو ګناه طرفته تاسو لاړ نشئ.نو په دې وجه دا مباح کوی او نورو دپاره خاموشي ده. لکه څنګه چه سورة بقره کښې دی چه ﴿فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ یعني چه کوم سړې بې قراره شي سوا د باقي اوحد نه تیریدونکی نه نو په هغه هیڅ ګناه نشته دې الله بخښونکې او مهربان دې.دې آیت نه په دې استدلال کیږي چه کوم سړې د الله ﷻ نافرماني کښې سفر کښې کوی نو هغه ته د شریعت اجازتونو کښې هیڅ یو اجازت نشته دې.څکه چه اجازتونه د ګناه په وخت کښې جائز نه دی.والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَسْـَٔلُونَكَ | مَاذَآ | أُحِلَّ | لَهُمْ | قُلْ |
| تپوس کوی خلق ستانه | چې کوم کوم څیز | حلال کړې شوې دې | دپاره دهغوئ | ورته اووایه |
| دوی ستانه تپوس کوی چې دوی دپاره کوم کوم څاروی حلال شوی دی| ............... ورته اووایه | | | | |
| أُحِلَّ | لَكُمُ | الطَّيِّبَٰتُ | وَمَا | عَلَّمْتُم |
| حلال کړې شوی دی | ستاسو دپاره | ټول پاك څیزونه | اوهغه | چې تاسو خودلي دی |
| ستاسو دپاره ټول پاکیزه څیزونه حلال دی اا وکوم ښکاری څناور چې تاسوعادت کړې وی | | | | |
| مِّنَ الْجَوَارِحِ | مُكَلِّبِينَ | تُعَلِّمُونَهُنَّ | مِمَّا | |
| ښکاری څناورو ته | ښکار باندې وررپریښودو د پاره | چې تعلیم ورکوئ تاسو دوی ته | دهغه علم نه | |
| اوبیا تاسوئې په ښکار پسې پریږدئ | اود هغه تعلیم (د ښکار طریقه) مو ورته خودلې وی | کومه چه | | | |
| عَلَّمَكُمُ | اللَّهُ | فَكُلُوا | مِمَّآ | أَمْسَكْنَ | عَلَيْكُمْ |
| چې ښودلې دې تاسو ته | الله | نوخورئ | دهغه ښکارنه | چې اونیسي هغوئ | دپاره ستاسو |
| الله ﷻ تاسوته خودلې ده | نو کوم ښکار چې هغوئ ستاسو دپاره راونیسي هغه خورئ شئ | | | | |
| وَاذْكُرُوا | اسْمَ اللَّهِ | عَلَيْهِ | وَاتَّقُوا اللَّهَ | إِنَّ اللَّهَ | سَرِيعُ |
| اویاد وئ تاسو | نوم د الله | په هغه باندې | اویره کوئ دالله نه | بیشکه الله | ازراخستونکي دې |
| (او د وررپریخودلو په وخت) کښې پرې دالله ﷻ نوم اخلئ | اودالله ﷻ نه وبریږئ | ............ الله ﷻ | | | |
| الْحِسَابِ | | | | | |
| دحساب | | | | | |
| زرحساب اخستونکي دې | | | | | |

---

(١) ابوداود کتاب الاطعمة باب فیمن اضطر المیتة: ٣٨١٦ وسنده صحیح .

**يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ**

**ماقبل سره ربط:** ددې نه مخکښې الله ﷻ نقصان رسوونکو او د خبيث څيزونو د حرمت بيان فرمائي که هغه نقصان جسماني وي اوکه ديني وي او که دواړه وي بيا ئې د ضرورت د حالت هم ذکر اوکړو. لکه فرمان دې چه ﴿وَقَدْ فَصَّلَ لَكُم مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ﴾ يعنې د ټولو حرامو ځناورو بيان ستاسو مخکښې تفصيل وار راغلو مګر دا چه تاسو دې طرفته مجبوره شئ؛ يعنې دهغې خوراک ته مجبوره شئ؛ نودې نه پس ارشاد د حلال څيزونو باره کښې تپوس کولو والاته فرمائي چه ټول پاک څيزونه ستاسو دپاره حلال دي. سورة اعراف کښې د نبي کريم ﷺ دا صفت بيان شوې دې چه پاک څيزونو ته ئې حلال ونيلي دي او پليت څيزونوته ئې حرام ونيلي دي.

**د آيت شان نزول:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه د قبيله طائي دوه سړو حضرت عدی بن حاتم ﷺ او حضرت زيد بن مهلهل ﷺ نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چه مړ ځناور خو حرام شوې دې نو حلال څه دی؟ نو دا آيت مبارک نازل شو.

**پاک څيزونه حلال دي:-** ① حضرت سعيد ﷺ فرمائي چه ذبح شوی ځناور حلال اوطيب دی ② مقاتل ﷺ فرمائي چه هر حلال رزق طيبات کښې داخل دې. ③ امام زهری ﷺ نه سوال اوشو چه د دوائي په طور د متيازو څکل څنګه دی ؟ نو جواب کښې ئې اوفرمائيل چه هغه طيبات کښې داخل نه دی. ④ حضرت امام مالک ﷺ نه تپوس اوشو چه د هغه خاورې خرڅول څنګه دی کومه چې خلق خوری. نو وې فرمائيل هغه په طيبات کښې داخل نه ده. او ستاسو د ښکاری سپو ښکار هم حلال دی. لکه د تربيت يافته سپی او شکری وغيره کړې شوې ښکاری. هم دا مذهب د جمهور او تابعينو او آئمه کرامو دی

**قوله تعالى:: وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ**

**د کومو ځناورو ښکار حلال دې؟:-** حضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه ښکار سپی ،باز،آسونه،شکری وغيره هر هغه مارغه چه هغه ته د ښکار کولو تعليم ورکولې شي (١) او نورو هم ډيرو بزرګانو نه دا نقل دی چه څيرونکی ځناور او داسې مارغان چه کومو ته تعليم ورکړې شوی وی د هغې په ذريعه ښکار کول حلال دی.

**د مارغانود ښکار کراهت:-** ① خو حضرت مجاهد ﷺ نه مروی دی چه هغه د ټولو ښکاری مارغانو ښکارته مکروه ونيلی دی. او دليل کښې دا آيت مبارک وائي چه ﴿وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ﴾ ② سعيد بن جبير ﷺ نه هم دغه شان روايت شوې دې ③ حضرت ضحاک ﷺ اوحضرت سدی ﷺ نه هم داقول په ابن جريرير کښې نقل دې.

**د ابن عمر ﷺ قول :-** حضرت ابن عمر ﷺ فرمائي چه باز وغيره مارغان چه کوم ښکار اونيسی که هغه تاسو ته ژوندی ملاو شی نو هغه ذبح کولو نه پس خورئی .(٢)

**دجمهورو مذهب:-** خود جمهور اهل اسلام دا فتوی ده چه د ښکار سپو په ذريعه کوم ښکار اوشی د هغې اود ښکاری مارغانو يو حکم دې. ځکه چه هغویٰ هم د سپو پشان په خپلو پنجو سره ښکار نيسی. نو په دې کښې د فرق کولو هيڅ خبره نشته دې. د څلورو واړو امامانو هم دا مذهب دې. امام ابن جرير ﷺ هم دا خوښوی.

**د جمهورو دليل:-** اوددې دليل کښې دا حديث مبارک راوړی حضرت عدی بن ابی حاتم نبی کريم ﷺ

---

(١) الطبری :٥٤٨/٩، بيهقی: ٢٣٥/٩،

(٢) الطبری :٥٤٩/٩،

نه دباز د ښکار باره کښې تپوس اوکړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم ځناور هغه ستا دپاره راونیسی نو هغه خوره (١).

**د امام احمد رحمه الله په نیزد تور سپی استثناء :-** امام احمد رحمه الله ددې نه د تورو سپو ښکار هم مستثنی کړې دې. ځکه چه د دوی په نیز د دې قتل کول واجب دی. او د دې ساتل حرام دی. ځکه چه صحیح مسلم کښې حدیث مبارك کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مونځ درې ځیزونه ماتوی، خر، ښځه، او تورسپی. په دې باندې حضرت ابی رضی الله عنه سوال اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! د تور سپې څه خصوصیت دې؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه شیطان دی (٢).

بل حدیث مبارك کښې دی چه دوی د سپو وژلو حکم کړې دې او بیا ئې اوفرمائیل چه د دوی سپو سره څه واسطه ؟ دې سپو کښې تور سپې وژنئ (٣). ښکارۍ ځناورو ته جوارح وائی اودا په دې وجه چه جرح کسب او کمائی ته وائی لکه عرب وائی چه ﴿فلان جرح اهله خیرا﴾ یعنی فلانې سړی خپل اهل وعیال دپاره خیر حاصل کړو. او عرب وائی چه ﴿فلان لاجارح له﴾ یعنی د فلانی سړی هیڅ ګټه نشته دې. قران پاك کښې هم لفظ دجرح دکسب او ګټې اوحاصلولو په معنی کښې استعمال شوې دې. فرمان دې چه ﴿وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم بِالنَّهَارِ﴾ یعنی تاسو چه د ورځې کوم خیر حاصلوئی د هغې هم الله ﷻ ته پته ده. ددې آیت کریمه د نازلیدو وجه په مسند ابن ابی حاتم کښې داده چه نبی کریم ﷺ د سپو د قتل کولو حکم ورکړو اودا قتل کول شروع شو نو خلق راغلل او نبی کریم ﷺ نه ئې تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! چه تاسود کوم امت د قتل کولو حکم کړې دې د هغې نه مونږ دپاره څه فائده حلاله ده؟ نو نبی کریم ﷺ خاموش شو، دې باندې دا آیت مبارك نازل شو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه یو سړې خپل سپې یو ښکار پسې پریږدی او هغه ﴿بسم الله﴾ هم اووائی او بیا هغه ښکار اونیسی نو ترکومې چه هغه نه وی خوړلې نودې (ښکار پسې پریخودونکې سړې) دې هغه خوری (٤).

**د سپو د قتل کولو حکم:-** ابن جریر کښې دی چه حضرت جبریل علیه السلام دننه راتلو اجازت اوغوښتلو. نو نبی کریم ﷺ هغه ته د راتلو اجازت ورکړو خو هغه بیا نه راتلو. نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه ائې د الله ﷻ قاصده مونږ خوتاته اجازت درکړې دې. بیا ولې نه راځې. نو په دې هغوئ علیه السلام اوفرمائیل چه مونږ هغه کور ته نه ځو چه په کوم کښې سپې وی. نو نبی کریم ﷺ حضرت ابورافع رضی الله عنه ته حکم اوکړو چه د مدینې ټول سپی دې اووژلې شی. حضرت ابورافع رضی الله عنه فرمائی چه څه لاړم او ټول سپی مې اووژل. یو بوډنی سره یوسپې وو چه هغه د هغې په لمن پورې انختو. او د فریاد په طور د هغې مخکښې په غپیدو شو. ما ته په هغه رحم راغلو او ما هغه پریښودو او راغلم او نبی ﷺ ته مې خبرورکړو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه هم مه پریږدئی. څه واپس لاړم اوهغه مې هم قتل کړو. اوس خلقو نبی کریم ﷺ نه دې باره کښې تپوس اوکړو چه تاسود کوم امت د قتل کولو حکم کړې دې د هغې نه مونږ دپاره څه فائده شته اوکه نه ؟ نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿يَسْئَلُونَكَ﴾ الخ.(٥)

یو روایت کښې دا هم دی چه حضرت ابورافع رضی الله عنه د مدینې سپې قتل کولو نه پس د مدینې چاپیر چل ته اورسیدو اود مسئلې تپوس کولو والو نومونه هم په هغې کښې شته دې. یعنی حضرت عاصم بن

---

١) الطبری :٩/ ٥٥٠، ترمذی: کتاب الصید باب ماجاء فی صید البزاة:١٤٦٧..

٢) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب قدر مایستر المصلی....: ٥١٠،.

٣) صحیح مسلم کتاب الطهارة باب حکم لوغ الکلب: ٢٨٠، ابوداود : ٧٤، ابن ماجه: ٣٢٠، احمد: ٨٦/٤.

٤) حاکم: ٢/ ٣١١،).

٥) حاکم : ٢/ ٣١١، طبرانی : ٩٧١، مجمع الزوائد: ٤٣/٤،.

عدی ﷺ،حضرت سعید بن خیثمه ﷺ،حضرت عویمر بن ساعده ﷺ.محمد بن کعب قرظی ﷫ فرمائي چه د آیت مبارك شان نزول د سپو قتل دي.

**د سپي خوراک کړی ښکار حرمت:-** د ﴿مُكَلِّبِينَ﴾ لفظ ممکن دی چه د ﴿عَلَّمْتُمْ﴾ ضمير يعنی د فاعل نه حال وی او ممکن دی چه د جوارح يعنی د مفعول حال وی يعنی تاسو چه کومو سپو ته تربيت ورکړې وی هغوئ خپلو پنجو او نوکونو سره ښکار کوی.د دې نه دا استدلال هم کولي شی چه کله يو ښکاری ښکاری ښکار خپل خان له راونيسی او هغه مړ کړی نو هغه به حلال نه وی.لکه څنګه چه د امام شافعی ﷫ دوه اقوالو کښې يو قول دې اود عالمانو د يوې ډلې خيال دې.هم په دې وجه فرمائی چه تاسو هغوئ ته څه خودلي وی چه کوم تاسو ته الله ﷻ خودلی دی.يعنی کله چه تاسو هغوئ پريږدئ نو خی اوکله چه تاسوهغوئ منع کړئ نو منع شی.ښکار ستاسو دپاره اونيسی چه تاسو ورشئ اوهغه ښکار راواخلئ.او هغه دا ښکار خپل خان دپاره نه وی کړې.په دې وجه دې نه پس فرمائی چه ښکاری خناور تربيت يافته وی او هغه د خپل پريښودونکی دپاره ښکار کړې وی.اوده هم د پريښودو په وخت کښې د الله ﷻ نوم اخستې وی.نو هغه ښکار به مسلمانانو دپاره حلال وی اګر چه هغه مړ شوې وی.په دې باندې اجماع ده.

**د سپی پريخودو په وخت کښې بسم الله وئيل:-** ددې آيت مبارك د مسئلې مطابق بخاری اومسلم کښې دا روايت دې چه حضرت عبدالله بن سلام ﷺ اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ ! څه د خپل سپی د پريښودو په وخت کښې د الله ﷻ نوم مبارك اخلم.نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم خناور هغه راونيسی نو ته هغه خوره اګر چه هغه مړ شوې وی.خودا ضرور دی چه هغه سره د ښکار کولو په وخت کښې بل سپې نه وی ځکه چه تا خپل سپې د الله ﷻ نوم سره پريښودې دې بل دې بسم الله سره نه دې پرېښودې.مااووئيل يارسول الله ﷺ ! څه نوکدار لرګی سره ښکار کوم.نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل که هغه خپل تيرۀ طرف سره زخم جوړ کړی نو ته هغه خوره.اوکه بل سره اولګی نو ته هغه مه خوره ځکه چه هغه ويشتلې شوی دې ([1]).

بل روايت کښې دا الفاظ دی چه کله ته خپل سپې پريږدې نو د الله ﷻ د نوم ذکر کوه،بيا که هغه تالره ښکار راونيسی او تاته راورسی او مارغه تاته ژوندې راورسوی نوهغه ذبح کړه او که هغه سپی قتل کړې وی او د دې نه ئې څه خوړلی نه وی نو ته هغه هم خوړلې شې.ځکه چه د سپې ښکار کول ددې ذبح کول دی ([2]).

اويو روايت کښې دا الفاظ هم دی که هغه ترې خوړلې وی نو بيا هغه مه خورئ.ماته ويره ده چه هسې نه هغه د خپل خان دپاره ښکار کړې وی.([3]) هم دا د جمهورو دليل دې.اوحقيقت کښې د امام شافعی ﷫ صحيح مذهب هم دا دې چه کله سپی ښکار اوخوری نوهغه مطلقًا حراميږی.په دې کښې هيڅ تفصيل نشته دې .لکه څنګه چه حديث مبارك کښې دی .

**د سپی خوراک کړی ښکار حلت:-** خو د سلفو ديو جماعت قول دې چه دا مطلقًا حلال دې .د هغوئ دلائل دادی چه : حضرت سلمان فارسی ﷺ فرمائی چه ته خوړلی شې اګر چه ددې نه سپی يوه حصه خوړلې وی.حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ فرمائی اګر چه يو ټکړه باقی پاتې وی نو ته هغه خوړلی شې.حضرت سعدبن ابی وقاص ﷺ نه يو بل روايت کښې دی اګر چه دوه حصې ئې خوړلې وی نو بيا

---

[1]) صحيح بخاری کتاب الذبائح باب اذا وجد مع الصيد کلبا آخر:٥٤٨٦، صحيح مسلم :١٩٢٩، ابوداود:٢٨٤٧، ترمذی:١٤٦٧، ابن ماجه:٣٢٠٨.

[2]) صحيح بخاری کتاب الذبائح باب الصيد اذا غاب عنه يومين اوثلاثة:٥٤٨٤، ابن حبان:٥٨٨٥، بيهقی:٩/٢٣٦.

[3]) صحيح بخاری کتاب الذبائح باب اذا اکل الکلب وقول تعالی (يسئلونک ما احل لهم) :٥٤٨٣، صحيح مسلم:١٩٢٩.

هم ته هغه خوړلې شي.حضرت ابو هریره ﷺ نه هم دا فرمان نقل دې.حضرت عبدالله بن عمر فرمائي چه کله ﴿بِسۡمِ اللهِ﴾ اووائې او تا خپل تربیت یافته سپې د ښکار دپاره پریښودو نو کوم ښکار چه هغه ستا دپاره راونیسی نوته هغه خوره که سپې د هغې نه خوراك کړې وی او که نه.حضرت علی ﷺ او حضرت ابن عباس ﷺ نه هم دا مروی دی.حضرت حسن بصری رحمه الله او حضرت عطاء رحمه الله نه هم مختلف اقوال مروی دی.حضرت زهری رحمه الله ،حضرت مالك رحمه الله ،حضرت ربیعه رحمه الله نه هم دا روایت کړې شوې دې.هم دې طرفته حضرت شافعی رحمه الله خپل ړومبی قول کښې تلې دې.اوخپل نوی قول کښې نې هم دې طرفته اشاره کړې ده.

حضرت سلمان فارسی ﷺ نه د حضرت ابن جریر رحمه الله یو مرفوع حدیث کښې نقل کړی دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کله یو سړې خپل سپې ښکار دپاره پریږدی او بیا ښکار په دې حالت کښې اومومی چه د دې نه سپی څه خوراك کړې وی نو چه کوم باقی پاتې وی هغه خوړلې شي .دا قول د ابن جریر رحمه الله دې حدیث مبارك کښې نظر شته دې.اود سعید راوی د حضرت سلمان فارسی ﷺ نه آوریدل معلوم نه دی.او نور ثقه راویان دې ته مرفوع نه وائی بلکه د حضرت سلمان فارسی ﷺ قول نې ښائی دا قول هم صحیح دې خو د دې معنی او مرفوع کیدو کښې حدیثونه هم مروی دی.

**دیو اعرابی څو اهم تپوسونه:-** ابو داود کښې دی چه حضرت عمرو بن شعیب رحمه الله خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه روایت کوی چه یو اعرابی نبی کریم ﷺ ته اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! ماسره تربیت یافته ښکاری سپی دی،د هغوئ د ښکار باره کښې څه فتوی ده؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم ښکار هغوئ ستا دپاره راونیسی نوهغه ستادپاره حلال دی.نو هغه اوونیل هغه ذبح کړم او که نه ؟. اوکه ددې نه سپی خوړلې وی نو بیا هم ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل اګر چه د دې نه سپې خوراك کړې وی .هغه بل سوال اوکړو چه څه خپل غشی سره ښکار کوم د دې څه فتوی ده ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته هغه هم خوړلې شې.وې فرمائیل که هغه ماته ژوندې ملاؤ شی او څه هغه ذبح کړم نو بیا هم او که غشی لګیدوسره هغه مړشی نو بیا هم ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که ته هغه اونه وینې او تلاش کولو سره ملاؤ شی نو بیا هم په دې شرط چه دې کښې د بل سړی د غشی نښه نه وی.هغه بل سوال اوکړو چه د ضرورت په وخت کښې د مجوسیانو د لوښو استعمال څنګه دی ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته هغه اووینځه نو بیا هغې کښې خوراك کولې شې (١). دا حدیث مبارك نسائی کښې هم دې.

د ابوداود بل حدیث مبارك کښې دی چه کله تا خپل سپې دالله ﷺ نوم سره پریښودې وی نو ته د هغه ښکار خوړلې شې.اګر چه دې سپی هغې نه څه خوراك کړې وی،اوستا لاس چه کوم یو ښکار ستا دپاره راوړې وی نو ته هغه هم خوړلې شې .(٢) ددې دواړو احادیثو سندونه ډیر زیات اعلی او بهتر دی .اویو حدیث مبارك کښې دی چه ستا تربیت یافته سپې چه ستا دپاره کوم ښکار راوړی نو ته هغه خوړلې شې .حضرت عدی ﷺ تپوس اوکړو اګر چه دې نه هغه څه خوړلی وی ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بیا هم.نود دې آثارو او احادیثو نه ثابتیږی اګر چه ښکاری سپې د دې نه څه خوراك کړې وی.نو دا باقی ښکار ښکاری خوړلې شی.دسپی وغیره ښکار ته د حرام نه ویونکو دا دلائل دی.

**دریم درمیانی مذهب:-** یوبل جماعت ددې دواړو جماعتونو مینځ کښې دې.هغوئ وائی که ښکار کولو سره دې کیناستو او دانې خوړل شروع کړو نو باقی حرام شو اوکه ښکار نیولو نه پس نې د خپل مالك انتظار اوکړو او د ډیروخت تیریدو نه پس نې خپل مالك اونه موندو او د اولږې په وجه ده هغه ښکار

---

١ ) ابوداود كتاب الصيد باب في الصيد:٢٨٥٧، وسنده حسن دارقطني:٤/٢٩٣.

٢ ) ددې تخریج آیت نمبر٤ کښې تیر شوې دې.

اوخوړلو نو باقي حلال دي..د حضرت عدي ﷛ حديث مبارك په رومبئ خبره باندې محمول دی او ابو د ثعلبه حديث مبارك په دويمه خبره محمول دې.دا فرق ډير ښه دي .اوپه دې سرع دوه قسمه صحيح احاديث مبارك جمع كيږي.استاد ابوالمعالي جويني ﷫ په خپل كتاب نهايه كښې دا خواهش كړې وو چه كاش په دې كښې څوك تفصيل اوكړي.نوالحمد لله دا تفصيل خلقو اوكړو.

**څلورم قول**:- په دې مسئله كښې څلورم قول هم دې.هغه دا چه د سپي ښكار شوي ښكار خو حرام لكه څنګه چه حضرت عدي ﷛ والا حديث مبارك كښې دی .او د شكري وغيره ښكار حرام نه دې ځكه چه هغه خوراك سره تعليم قبلوی .

حضرت ابن عباس ﷛ فرمائي كه مارغان خپل مالك ته راواپس شی او وږلي ني نه دې بيا راغلو او ددې وزرې ئې اوخوړلې اوددې نه ئې غوښه اوخوړله.نو ته ئې خوره د حضرت ابراهيم نخعي ﷫،حضرت شعبي ﷫،حماد بن ابی سليمان ﷫ نه هم دا نقل دی.

د هغوئ دليل د حضرت ابن ابی حاتم والا حديث مبارك دې چه حضرت عدي ﷛ د نبي كريم ﷺ نه تپوس اوكړو خلق سپو او بازونو سره ښكار كوی نو آيا دا خموتر دپاره حلال دی كه نه ؟نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه كوم ښكاری څناور ښكار حاصلولو والا تربيت يافته وی اوهغه ستادپاره ښكار راونيسی او تا په هغې دالله تعالى نوم اخستې وی نو ته هغه خوړلې شې.بيا ئې اوفرمائيل چه تا كوم يو سپې دالله تعالى نوم سره پريښودې وی او هغه يو څناور راونيسی نو ته هغه خوره. ما اووئيل كه هغه ئې وژلې وی.نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل اګر چه وژلې ئې وی.خو دا شرط دې چه د دې نه ئې خوراك نه وی كړې.ما اووئيل كه چرې دې سپې سره نور سپي هم يوځائي شوی وی نوبيا ؟ نو وې فرمائيل چه بيا دا مه خوره تركومې چه تاته د دې پوره اطمينان اونشی چه دا ستا سپی ښكار كړې دې ما اووئيل چه مونږ خلق غشو سره هم ښكار كوو دې كښې كوم يو حلال دې ؟ نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه كوم يو غشي زخم جوړ كړی او تا په هغې د الله تعالى نوم اخستې وی نو هغه خوره. د دلالت وجه دا ده چه سپي كښې د خوراك شرط دوی بيان كړو او باز كښې ئې بيان نه كړو.نو دې دواړو كښې فرق ثابت شو. والله اعلم.

**قوله تعالى**::وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ

**د ښكاری سپی پريخودو په وخت كښې بسم الله وئيل**:- الله ﷻ فرمائي چه تاسو خورئی چه كوم حلال څناور تاسو لره راونيسی.او تاسود دوی د پريښودو په وخت كښې د الله ﷻ نوم اخستې وی.لكه څنګه چه د حضرت عدي ﷛ او حضرت ثعلبه والا حديث مبارك كښې دی.په دې وجه حضرت امام احمد ﷫ وغيره امامانو دا شرط لګولې دې چه د ښكاری دپاره د سپي دپريښود په وخت كښې او د غشی ويشتلو په وخت كښې ﴿بِسْمِ اللهِ﴾ وئيل شرط دی .د جمهور مشهور مذهب هم دا دې چه ددې حديث مبارك نه مراد د څناور د پريښودو وخت دې.

**د ښكاری سپی پريخودو په وخت كښې بسم الله هيريدل**:- حضرت ابن عباس ﷛ نه مروی دی چه د خپل ښكاری څناور پريښودو په وخت كښې ﴿بِسْمِ اللهِ﴾ وائي.خوكه هيره شی نو هيڅ باك نشته دې .[1]

بعضې خلق وائي چه د مرداري خوراك په وخت كښې ﴿بِسْمِ اللهِ﴾ وئيل پكاردی لكه څنګه چه بخاری شريف اومسلم شريف كښې حضرت عمر بن ابوسلمه ﷛ نه د نبي كريم ﷺ فرمان دې چه دالله ﷻ نوم واخله او خپل ښی لاس سره د خپلې مخې نه خوره.[2]

---

[1] الطبری :٥٧١/٩.

[2] صحيح بخاری كتاب الاطعمة باب التسمية على الطعام والاكل باليمين:٥٣٧٦، صحيح مسلم:٢٠٢٢، ترمذی:١٨٥٧.

**د نو مسلم مسلمان د مذبوحې حکم:-** صحیح بخاری شریف کښې د حضرت عائشه ﷞ نه حدیث مروی دې چه څه نوی مسلمانان مونږ لره غوښه راوړي اومونږ ته د دې علم نه وي چه په دې نې د الله تعالی نوم اخستې دې اوکه نه ؟ نو مونږ دا خورو او که نه ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاسو پخپله د الله ﷻ نوم واخلئ اودا خورئ.

**د خوراک په اول کښې بسم الله هیرېدل:-** مسند کښې دی چه نبی کریم ﷺ شپږو صحابه کرام ﷺ سره خوراک کولواودې کښې یو بانډیچی راغلو او د دې نه ئې دوه نمړئی اوچتې کړې.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که ده ﴿بِسْمِ اللهِ﴾ ونیلې وې نو دا خوراک به ستاسو ټولو دپاره کافی وو. تاسوکښې چه څوک هم خوراک دپاره کینی نو ﴿بِسْمِ اللهِ﴾ ضرور وائې.که اول کښې هیره شی اوبیا درته یاده شي نو ﴿بِسْمِ اللهِ اوله واخره﴾ وایه (١). هم دا حدیث منقطع سند سره ابن ماجه کښې هم دې (٢). بل سند سره دا حدیث مبارک ترمذی ،نسائی او مسنداحمد کښې دې او امام ترمذی ﷫ دې ته حسن ونیلې دې (٣).

جابربن صبح ﷛ فرمائی چه ما حضرت مثنی بن عبدالرحمان سره یو سفراوکړو. د هغه دا عادت وو چه خوراک شروع کولو نه اول کښې به ئې ﴿بِسْمِ اللهِ﴾ ونیله او آخری نمړئی سره به ئې ﴿بِسْمِ اللهِ اوله واخره﴾ ونیل.ما ترې د دې باره کښې تپوس اوکړو نو هغه راته د امیه بن مخشی ﷛ حدیث بیان کړو چه نبی کریم ﷺ یو کس اولیدو چه هغه شروع کښې بسم الله اونه ونیل،تردې چه هغه آخرته اورسیداو وې ترکومې چه ده بسم الله نه وه ونیلې،ده چه کله بسم الله اوونیله نو شیطان هغه خوراک قې کړو او ټول خوراک ئې خپلې ختېټې نه بهر کړو.(٤) (مسنداحمد ،ابوداود).

**په خوراک کښې د شیطان شرکت کول:-** حضرت حذیفه ﷛ فرمائی چه مونږ نبی کریم ﷺ سره خوراک کولو چه په دې کښې یو جینئ په پریوتو پریوتو راغله لکه چه څوک ورته دیکې ورکوی.او چه څنګه پیاله کښې ئې لاس دننه کړو،نو نبی کریم ﷺ د هغې لاس اونیولو او یو اعرابی هم دغه شان راغلو او بغیر بسم الله نه خوراک کوی نو شیطان هغه خوراک خپل ځان دپاره حلالوی.هغه خو رومبی دې جینئ سره راغلو خو ما د هغه لاس اونیولو اوبیا دې بانډیچی سره راغلو خو ما د هغه لاس هم اونیولو. په هغه الله مې دې قسم وی چه د چا په قبضه کښې ځما ساه ده چه د شیطان لاس ځما لاس کښې د دې دواړو لاسونو مینځ کښې وو.(٥) (مسلم ابو داوٗد ،نسائی).

**کورته د داخلیدو په وخت بسم الله ونیل:-** مسلم ابو داوٗد ، نسائی او ابن ماجه کښې دی چه کله انسان خپل کور ته ځی او یا خوراک کوی اود الله ﷻ نوم واخلی نو شیطان وائی چه ائې شیطانانو ! نه خو ستاسو دپاره د شپې تیرولو ځائې شته دې اونه د شپې خوراک،اوکله چه دې خپل کور ته ځی او بسم الله اونه وائی نو شیطان وائی چا تاسو د شپې تیرولو اود شپې د خوراک کولو ځائې بیاموندو.(٦)

---

١) صحیح بخاری کتاب الذبائح والصید باب ذبیحة الاعراب ونحوهم:٥٥٠٧، ابوداود:٢٨٢٩، ابن ماجه:٣١٧٤.

٢) احمد:١٤٣/٦، وسنده ضعیف،وهو صحیح بالشواهد، دارمی :٢٠٢٠، ابن حبان:٥٢١٤، داروایت بشواهد حسن دي.

٣) ابوداود کتاب الاطعمة: باب التسمیة علی الطعام:٣٧٦٧، وسنده صحیح ترمذی:١٨٥٨.

٤) احمد:٣٣٦/٤، ابوداود کتاب الاطعمة: باب التسمیة علی الطعام:٣٧٦٨، وسنده حسن عمل الیوم واللیلة:٢٨٢.

٥) احمد:٣٨٣/٥، صحیح مسلم: کتاب الاشربة باب آداب الطعام والشراب واحکامها:٢٠١٧. ابوداود: ٣٧٦٦.

٦) صحیح مسلم حواله سابق: ٢٠١٨، ابوداود:٣٧٦٥، ابن ماجه:٣٨٨٧، احمد:٣٨٣/٣، عمل الیوم واللیلة:١٧٨ ابن حبان:٨١٩.

**په ګډه خوراک کولو کښې برکت:-** ابوداود او ابن ماجه کښې دی چه یو سړې د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او شکایت ئې اوکړو چه کله مونږ خوراك کوؤ نو مونږ نه مړیږو، نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه تاسو به بیل بیل خوراك کوئی. تاسو په ګډه خوراك کوئی او بسم الله وائې. په دې کښې به دالله ﷻ د طرفنه برکت اچولې شی (١).

| |
|---|
| اَلْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ۖ وَطَعَامُ |
| نن ورځ \| حلال کړې شوی دی \| دپاره ستاسو \| ټول پاك څیزونه \| اوخوراك |
| نن ورځ تاسودپاره ټول پاکیزه څیزونه حلال کړې شو \| .......او د |
| الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ ۠ وَطَعَامُكُمْ |
| دهغه کسانو \| چې ورکړې شوې دې کتاب \| حلال دې \| ستاسودپاره \| اوخوراك ستاسو |
| اهل کتابوخوراک ستاسودپاره حلال دې \| اوستاخوراک د هغوئ دپاره جائز دې |
| حِلٌّ لَّهُمْ ۡ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ |
| حلال دې \| دپاره دهغوئ \| او پاکدامنې ښځې \| د مومنانو نه \| او پاکدامنې ښځې |
| اوپاکدامنې مسلمانانې ښځې ستاسو دپاره حلالې دی \| ..............او پاکدامنې ښځې د |
| مِنَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ إِذَآ |
| دهغه کسانونه \| چې ورکړې شوې دې ورته کتاب \| مخکښې ستاسو نه \| هرکله چې |
| هغه کسانو نه چې ستاسو نه وړاندې ورته کتاب ورکړې شوې دې \| هله |
| اٰتَيْتُمُوْهُنَّ أُجُوْرَهُنَّ مُحْصِنِيْنَ |
| ورکړئ تاسوهغوئ ته \| مهرونه دهغوئ \| چې نکاح کونکی یئ |
| چې تاسوورته مهرونه ورکړئ \| اودنکاح په بند کښې ئې راګیرې کړئ، ستاسودپاره په نکاح کولوسره حلالې دی، |
| غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ وَلَا مُتَّخِذِيْٓ أَخْدَانٍ ۖ وَمَنْ يَّكْفُرْ |
| نۀ چې شهوت پوره کونکی یئ په زنانه سره \| اونۀ نیونکی یئ دپټې یارانې \| اوچا چې انکار اوکړو |
| دانه چې ښکاره زنا ورسره کوئ \| یا ورسره پټې پټې یارانې ساتئ \| ..............اوچا چې د |
| بِالْإِيْمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهٗ ۡ وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ |
| د ایمان \| نو ضائع شو \| عمل د هغه \| او هغه به \| په آخرت کښې وی |
| ایمان راوړلو نه پس کفراوکړو \| نویقینا دهغه عملونه ضائع شو \| اوهغه به په آخرت کښې |
| مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝٥ ع |
| د تاوانیانو نه \| |
| د تاوانیانو نه وی \| |

(١) احمد:٥٠١/٣، ابوداود: کتاب الاطعمة: باب الاجتماع علی الطعام:٣٧٦٤.

**اَلۡيَوۡمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ**

**دپاکوڅیزونو حلت**: دحلال اوحرام دبیان نه پس په طورد خلاصه بیان فرمائی چه ټول پاك څیزونه حلال دی

**وَطَعَامُ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡـكِتٰبَ حِلٌّ لَّـكُمۡ**

**د اهل کتابو د ذبیحې حکم**:- بیا دیهود او نصرانیانو د ذبح شوی ځناور حلت بیان فرمائی.حضرت ابن عباس ﷺ،حضرت ابو امامه رحمة الله عليه،حضرت مجاهد رحمة الله عليه،حضرت سعید بن جبیر رحمة الله عليه،حضرت عکرمه رحمة الله عليه،حضرت حسن رحمة الله عليه،حضرت مکحول رحمة الله عليه،حضرت ابراهیم نخعی رحمة الله عليه،حضرت سدی رحمة الله عليه،حضرت مقاتل بن حبان رحمة الله عليه دا ټول هم دا وائی چه د طعام نه مراد د دوی خپل لاس سره ذبح شوي ځناور دي.او د هغې خوراك مسلمانانو دپاره حلال دې او د عالمانو په دې اجماع ده چه د هغوئ ذبیحه خوړل دپاره حلاله ده. ځکه چه هغوئ هم غیرالله دپاره ذبح ناروا ګڼړي.اود ذبح کولو په وخت کښې دالله ﷻ نه سوا د بل چا نوم نه اخلی .اګر چه د هغوئ عقیدې د الله ﷻ په نیز باطلې او سراسر غلطې دی .او د هغې نه الله ﷻ پاك اومنزه دې.

**د اهل کتابو د وازګه حکم**:- صحیح حدیث کښې د حضرت عبدالله بن مغفل ﷺ بیان دې چه ما ته په جنګګه خیبر کښې د وازګه نه ډك یو مشك ملاؤ شو ،ما دا قبضه کښې واخستو او ما اونیل چه ددې نه به نن هیچا ته څه نه ورکوم.ما چه کله یو خوا بل خوا نظر واچول نو نبی کریم ﷺ ماسره خوا کښې ولاړ وواوخندل نې(١) ددې حدیث مبارك نه دا هم استدلال کولې شی چه د مال غنیمت نه د خوراك ځکاك څیز نه د تقسیم نه مخکښې اخستل جائز دی.اودا استدلال د دې حدیث مبارك نه صفاښکاره دې .د دریو واړو مذهبونو فقهاء کرامو په مالکیانو باندې خپل دا سند پیش کړې دې. او وئیلی نې دی چه تاسو خو دا وائې چه داهل کتاب صرف هغه خوراك په مونږ حلال دې چه کوم د هغوئ دپاره حلال دې،دا غلط دی.تاسو اوګورئی چه یهودیانو به چربئ ته حرامه ونیلې او مسلمانان دا خوری .خو دا د یو سړی واقعه ده خو دې سره دا هم کیدیشی چه دا چربی چه کومې ته یهود حرامه وائی یعنی د ملا چربی،کولمو سره لګیدلې چربی ،اوهډوکی سره لګیدلې چربی.وی

**دیهودو وریته شوې چیلئ نبی کریم ﷺ خوړی**:- ددې نه هم زیات دلالت والا هغه حدیث مبارك دې چه د خیبر والو نبی کریم ﷺ ته یوه وریته شوې چیلئ تحفه کښې ورکړه. او هغوئ ددې د شا غوښه زهر آلود کړې وه.اوهغوئ ته معلوم وو چه نبی کریم ﷺ د شا غوښه خوښوی .هرکله چه نبی کریم ﷺ هغه د شا غوښه خپلو غاښونومبارکو کښې اونیوله نو هغه غوښې پخپله اوونیل چه ما کښې زهردی .نو نبی کریم ﷺ هغه زر توکړه او د هغې زهرو اثردنبی کریم ﷺ مخکښې غاښونو کښې پاتې شو.نبی کریم ﷺ سره بشر بن براء ﷺ هم وو چه د دې اثر په وجه ددې فانی دنیا نه لاړو. اود هغه په قصاص کښې هغه ښځه قتل کړې شوه چه کومې په دې کښې زهر ګډ کړی وو. د هغې نوم زینب وو. (٢) د دلالت وجه دا ده چه نبی کریم ﷺ خپلو ملګرو سره ددې غوښه خوړلو پخه اراده کړې وه. اودا تپوس نې نه وو کړې چه د دې کومه چربی تاسو حرامه ګڼړئی هغه مو اوښکلې ده که نه.

**د یهودی د وازګې حکم**:- اوپه حدیث مبارك کښې دی چه یو یهودی د نبی کریم ﷺ خدمت اقدس کښې د اوربشو روټئ او زړه اوچه چربی پیش کړه .(٣)

---

(١) صحیح بخاری کتاب کتاب فرض الخمس باب ما یصیب من الطعام فی ارض الحرب :٣١٥٣، بدون (تبسم) صحیح مسلم:١٧٧٢، ابوداود:٢٧٠٢.

(٢) صحیح بخاری کتاب الهبة با قبول الهدیة من المشرکین:٢٦١٧، صحیح مسلم: ٢١٩٠، مختصرا ابوداود:٤٥٠٨.

(٣) احمد:٣/٢١٠، صحیح بخاری کتاب البیوع باب شراء النبی ﷺ بالنسیئة:٢٠٦٩، بدون ذکر الیهودی

**يو ضعيف قول:-** حضرت مكحول رحمه الله فرمائي چه په كوم څيز د الله تعالى نوم وانخستې شى نو د هغې خوراك حرام كيدو نه پس الله ﷻ په مسلمانانو رحم اوكړو او دا ئې منسوخ كړل او داهل كتابو ذبح شوى ځناور ئې حلال اوګرځول. د ا ياد ساتئ چه د اهل كتابو ذبيحه حلاليدو سره دا ثابت نه ده چه په كوم ځناور د الله ﷻ نوم وانخستې شى نو هغه دې حلال وى.ځكه چه هغوئ په خپلو ذبيحو د الله ﷻ نوم اخستو. خو مشركانو چه به كومه غوښه خوړله هغه به ئې په ذبيحه نه موقوف كوله. بلكه مړ ځناور به ئې هم خوړل. په خلاف داهل كتابو.

دغه شان سامره ، صائبه ، او د ابراهيم او شيث وغيره پيغمبرانو د دين مدعيانو حكم دې لكه څنګه چه د عالمانو د دوو ډلو نه د يوې ډلې قول دې دغه شان د عربو نصرانيان لكه بنو تغلب،تنوخ بهرا ،جذام،لخم،عامله او د دې په شان نور د جمهورو په نيز ددوى دلاس ذبيحه به نه شى خوړلې.

حضرت على ﷺ فرمائي چه د بنو تغلب د لاس ذبح شوې غوښه مه خورئ ،ځكه چه هغوئ خو په نصرانيت كښې سوا د شرابو نه بل څيز نه وو اخستې.خو سعيد بن مسيب او حسن رحمه الله د بنو تغلب دلاس ذبيحه خوړلو كښې هيڅ باك نه ګڼړلو.

**د مجوسيانو د ذبيحې حكم:-** باقي پاتې شو مجوسيان نو اګر چه ددوى نه جزيه اخستې شوې ده.ځكه چه دوى دې مسئله كښې يهوديانو او نصرانيانو سره يو شان كړې دى .او د هغوئ تابع كړې شوى دى .خود دوى ښځو سره نكاح كول او د دوى دلاس ذبيحه خوړل ممنوع ده.

**دابوثور رحمه الله د حلت قول:-** خو ابو ثور رحمه الله او ابراهيم بن خالد كلبى رحمه الله چه دوى د امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله ملګرى وو ،ددې خلاف دى .هركله چه هغوئ دا قول اوكړل (چې د مجوسيانو ذبيحه حلاله ده) نو نورو خلقو كښې ددې شهرت اوشو.

**د دې قول ترديد:-** نو فقهاء كرامو د دې قول سخت ترديد اوكړو.تردې چه حضرت امام احمدا بن حنبل خو اُوونيل چه ابوثور خو په دې مسئله د خپل نوم په شان دې.يعنى دغوئى پلار .ابوثور به د يوحديث عموم مخكښې اينسودې وى او دا مسئله به ئې ونيله په هغې كښې دى چه مجوسيانو سره د اهل كتابو پشان سلوك كوئى .(¹) اول خو دا روايت دې الفاظو سره ثابت نه دې بل دا چه دا روايت مرسل دې خو صحيح بخارى كښې صرف دومره دى چه د هجر مجوسيانو نه نبى كريم ﷺ جزيه واخسته .(²) ددې ټولو نه علاوه مونږ وايو چه د ابو ثور پيش شوې حديث كه مونږ صحيح اومنو نو بيا هم مونږ ونيلې شو چه د دې په عموم سره هم په دليل د مفهوم مخالف كوم چې د دې ايت نه معلوميږى داهل كتابو نه سوا د نورو دين والو ذبيحه زمونږ دپاره حرامه ثابت شوې ده.

**قوله تعالى::** وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ

**د مسلمانانو ذبيحه د اهل كتابو دپاره حلاله ده.-** بيا فرمائي چه ستاسو ذبيحه د هغوئ دپاره حلال ده.يعنى تاسو هغوئ ته خپله ذبيحه وركولې شئ.دا د دې خبرې امر نه دې چه د دوى په دين كښې ستاسو ذبيحه حلاله ده. خو زيات نه زيات دومره ونيلې شى چه دا د دې خبرې خبردې چه هغوئ ته هم د هغوئ په كتاب كښې د دې حكم وركړې شوې دې چه دكوم ځناور ذبح د الله ﷻ په نوم وى نوهغه خورئى.عام ددې نه چه د ذبح كونكې هم د دوى نه وى يا د دوى نه سوا بل څوك وى خو زياته ظاهره خبره ړومبئ ده.يعنى دا چه تاسو ته اجازت دې چه تاسو په دوى خپلې ذبيحې اوخورئى.لكه څنګه چه تاسو د هغوئ د لاس ذبيحې خورئى .دا به داسې وى لكه د بدل په طور.لكه څنګه چه نبى كريم ﷺ

---

¹) مؤطاامام مالک: ١/٢٧٨ وسنده ضعيف وللحديث شواهد بيهقى :٩/١٨٩.

²)صحيح بخارى كتاب الجزية والموادعة: باب الجزية والموادعة مع اهل الذمة الحرب:٣١٥٧، ابوداود:٣٠٤٣، ترمذى:١٥٨٧.

عبدالله بن سلول منافق په خپل قمیص مبارك كښې په كفن كړې وو. او ددې وجه بعضو حضراتو دا وئیلي دي چه هغه د نبی کریم ﷺ تره حضرت عباس رضی الله عنه ته خپل قمیص وركړې وو. كله چه مدینې ته راغلو نو دوی ئې بدل خلاص كړو.(١) خو یو حدیث مبارك كښې دي چه د مومنانو نه سوا د نورو سره ناسته پاسته مه كوئی او نه دې ستاسو نه څوك خوراك اوكړي سوا پرهیزګارو خلقو نه (٢). نو دا دې ته دې بدل اونه ګنړلې شي .لكه څنګه چه نبی کریم ﷺ د ابی بن سلول ته خپل قمیص وركړو څكه چه هغه امیرحمزه رضی الله عنه ته كفن وركړې وو او نبی کریم ﷺ دهغه بدل خلاص كړې ووبلكه ، كیدیشي چه دا حدیث مبارك د استحبابی حكم او افضیلت په طور سره وي،والله اعلم.

**قوله تعالى:: وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ**

**د اهل كتابو پاكدامنو سره د نكاح حكم:** بیا ارشاد دې چه پاكومومنانو ښځوسره نكاح كوئی ،اودا ستاسو دپاره حلال كړې شوی دی.دا په طور د تمهید دې څكه چه د دې نه پس فرمائی چه ستاسو نه مخكښې چاته كتاب وركړې شوې وو په هغوئ كښې عفیفه ښځوسره نكاح كول ستاسو دپاره حلال دی .

**د محصنات نه ازادې ښځې مراد اخستل:-** دا قول هم دې چه د محصنات نه مراد آزادې ښځې دی .یعنی وینځې نه وی .دا قول حضرت مجاهد رحمه الله طرفته منسوب دې او د حضرت مجاهد رحمه الله الفاظ دادی چه د محصنات نه مراد حرائردي .او هركله چه داسې دی نوچرته چه د دوی د قول نه دا مطلب اخستې شی چه وینځې د دې نه خارج دی

**دمحصات نه د پاكدامنو ښځو كیدلو ترجیح:-** نو هلته دا معنی هم اخستې شی چه پاكدامنې حیا والا.لكه څنګه چه دوی نه بل روایت كښې هم دا الفاظ نقل دی.(چې په ایت كښې د محصنات نه پاكدامنې ښځې مراد دی ازمترجم) جمهور هم دا وائی او هم دا صحیح دی.هسې نه ذمی كیدو سره غیر عفیفه هم شاملې شي او د فساد باعث جوړ شي.او د دې خاوند فضول او خراب شي.نو په ظاهره دا معلومیږی چه د محصنات نه مراد دلته حیاء والا او بدكارئی نه بچ شوې اخستې شی.لكه څنګه چه بل آیت مبارك كښې دی چه ﴿غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ وَلَا مُتَّخِذِيْٓ اَخْدَانٍ﴾

د علماء او مفسرینو په دې كښې اختلاف دې چې آیا دا آیت هرې عفیفه كتابیه ښځې شامل دې ؟كه هغه آزاده وی اوكه وینځه وی ؟ ابن جریر رحمه الله د سلفو یو جماعت نه دا نقل كړی دی .اوهغوئ وائی چه ﴿الْمُحْصَنٰتُ﴾ نه مراد پاك دامنې دی،یو قول كښې دا هم دی چه د اهل كتابو نه مراد اسرائیلی ښځې دی .دامام شافعی رحمه الله هم دا قول دې.

**د محصنات نه ذمی ښځې مراد كیدل:-** اودا هم وئیلې شوی دی چه د دې نه مرادې ذمی ښځې دی سوا د آزادو ښځو نه .او دلیل دا آیت مبارك دې چه ﴿قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ یعنی تاسو هغوی سره جنګ كوئی چه كوم په الله جل جلاله او په ورځ د قیامت ایمان نه ساتی.نوعبدالله بن عمر رضی الله عنه به نصرانی ښځو سره نكاح كول جائز نه ګنړل .اودا به ئې فرمائیل چه د دې نه به لوئې شرك بل كوم یو وی چه دا وائی چه د دې رب عیسی علیه السلام دې(٣)او په دې وجه دا مشركانې دی اونص قران كښې موجود دی چه ﴿وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ﴾ یعنی مشركو ښځو سره نكاح مه كوئی تر كومې چه دوی ایمان راوړی،

**مشركانو سره د نكاح حرمت حكم نزول تاریخ:-** ابن ابی حاتم كښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دی چه كله مشركو ښځو سره د نكاح نه كولو حكم نازل شو نو صحابه كرام د دوی نه روستو شو ،تردې چه

---

١) صحيح بخاری كتاب الجنائز هل يخرج الميت من القبر واللحد: ١٣٥٠، صحيح مسلم:٢٧٧٣.

٢) ابوداود كتاب الادب باب من يؤمر ان يجالس:٤٨٣٢، وسنده صحيح.

٣) صحيح بخاری كتاب الطلاق باب قول الله تعالى(ولاتنكحوا المشركات حتى يؤمن ولا مة مؤمنة.....) ٥٢٨٥.

د دې نه پس والا آیت مبارك کښې د اهل کتابو پاکو ښځو سره د نکاح کولو اجازت ملاؤ شو. نو صحابه کرامو ﷺ هم اهل کتابو ښځوسره نکاح کول شروع کړل او د صحابه کرامو د یو جماعت نه داسې نکاح هم د دې آیت مبارك په بنیاد باندې ثابته شوې ده .نوګویا چه مخکښې د سورة بقره آیت کښې ممانعت وو خو دویم آیت مبارك دا مخصوص کړل.دا به په هغه وخت کښې منلې کیږي چه کله د ممانعت والا آیت مبارك حکم کښې دوی هم داخل وو.ګنې دې دواړو آیتونوکښې هیڅ معاوضه نشته دې. ځکه چه نور هم په ډیرو آیتونو کښې ئې دوی د عامو مشرکینو جدا بل بیان کړې دی.لکه چه یو آیت مبارك کښې دي چه ﴿لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ او ﴿وَقُل لِّلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ﴾

قوله تعالی: إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ

**اهل کتابو ښځوته مهر ورکول:-** بیا فرمائي چه کله تاسو دوی ته د دوی مقرر مهر ورکړئي او خپل نفس بچ کړئي او تاسو د دوي مهر ادا کولو والا یئ.حضرت جابر بن عبدالله،حضرت عامر شعبي ﷫، حضرت ابراهیم نخعي ﷫ ،اوحضرت حسن بصري ﷫ نه همدا فتوی ده چه کله یو سړي یو ښځې سره نکاح اوکړه او د دخول نه مخکښې دې بدکاري اوکړه نو ښځه خاوند به جدا کولې شي.او چه کوم مهر خاوند ښځې ته ورکړې وو هغه به واپس اخستې شي.(ابن جریر).

مُحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَافِحِينَ وَلَا مُتَّخِذِي أَخْدَانٍ

**د سړو د پاکدامنۍ شرط:-** بیا فرمائي چه تاسو پاك دامن او حیادار اوسئ او په ښکاره او پټ بدکاره کیږئي مه .د ښځودپاره چې ئې څنګه د پاکدامنۍ او عفیفه کیدو شرط لګولې وو،سړو دپاره هم ئې اولګولو.اودې سره ئې دا هم اوفرمائیل هغوئ ښکاره بدکار نه وي.چه یو خوا بل خوا بدکارئي کښې ځږي .اونه داسې وي چه خاص تعلق سره بدکاري کوي .په سورة نساء کښې هم داسې تیر شوي دي.

**دزناکار سړي سره د پاکدامنې د نکاح حکم:-** حضرت امام احمد ﷫ هم دې طرفته دې چه زانیه ښځې سره دیو نیك سړي نکاح جائز نه ده.او هم دا حکم د دوي په نیز دیو سړي هم دې چه د بدکاره سړو نکاح نیکو ښځوسره جائز نه ده .ترکومې چه هغوئ رینښتونې توبه اونه باسي .اود دې رذیل کار نه منع نشي .او ددوی دلیل هغه حدیث پاك دې چې په هغې کښې دی چې کوم زاني په کوړو وهلې شوې وي نو هغه خپل ځان پشان ښځې سره نکاح کولې شي ([1]).

**د حضرت عمر ﷜ اراده:-** حضرت عمرفاروق ﷜ یو خل اوفرمائیل خما اراده ده چه کوم مسلمان بدکاري اوکړي نو خه د هغه نکاح یو پاکدامنې ښځې سره اونکړم. په دې حضرت ابي بن کعب ﷜ عرض اوکړو چه ئې امیر المومنین ! شرك د دې نه ډیر زیات لوئې دې د دې باوجود بیا هم د مشرك توبه قبوله ده .دا مسئله به مونږ د آیت ﴿الزَّانِي لَا يَنكِحُ إِلَّا زَانِيَةً﴾ په تفسیر کښې پوره بیان سره ذکر کوو. انشاء الله.

قوله تعالی: وَمَن يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ

**د مرتد د اعمالو ضائع کیدل:-** د آیت په خاتمه کښې د کافرانود اعمالو د تباهۍ بیان دې او دا چې هغوئ په آخرت کښې نقصان موندونکي دي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | إِذَا | قُمْتُمْ |
| ائې هغه کسانو | چې ایمان موراوړې دې | کله چې | اودریږئ تاسو |

| ائې دایمان خاوندانو؛ کله چې تاسو مونځ ته اودریږئ (یعنی د مانځه اراده اوکړئ) |
|---|

[1]) ابوداود کتاب النکاح باب فی قوله تعالی (الزاني لا ینکحها الا زان): ٢٠٥٢، وسنده صحیح،احمد: ٣٢٤/٢،مشکل الآثار: ٤٥٤٨.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَى الصَّلٰوةِ | فَاغْسِلُوْا | وُجُوْهَكُمْ | وَاَيْدِيَكُمْ | إِلَى الْمَرَافِقِ |
| مانځه ته | نواووينځئ | مخونه خپل | اولاسونه خپل | دڅنګلو پورې |

نو خپل مخونه اووينځئ! .................. او خپل لاسونه ترڅنګلو پورې اووينځئ؛

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَامْسَحُوْا | بِرُءُوْسِكُمْ | وَاَرْجُلَكُمْ | إِلَى الْكَعْبَيْنِ ؕ |
| اومسح اوکړئ | په سرونو خپلو | اواووينځئ تاسو خپلې پښې! | دپړکو پورې |

اوپه خپلو سرونوباندې مسح اوکړئ! او ترګيټوپورې خپې اووينځئ؛

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ | كُنْتُمْ | جُنُبًا | فَاطَّهَّرُوْا ؕ | وَإِنْ | كُنْتُمْ مَّرْضٰى |
| او که چرې | وئ تاسو | په جنابت کښې | نو پاکی حاصله کړئ | او که چرې | وئ تاسو بيماران |

اوکه په حالت د جنابت کښې يئ؛ نو خپل ځانونه په ښه شان پاکوئ! ......... او که مريضان يئ؛

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَوْ عَلٰى سَفَرٍ | اَوْ جَآءَ | اَحَدٌ مِّنْكُمْ | مِّنَ الْغَآئِطِ | اَوْ لٰمَسْتُمُ |
| ياوئ په سفر کښې | ياراغې | يوله تاسو نه | دبولو نه | يا جماع اوکړئ تاسو |

اوياپه سفر کښې يئ؛ يا په تاسو کښې يوکس لونې اودس ماتې (غټ بولو) ته لاړ شی! يا ښځو سره جماع

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| النِّسَآءَ | فَلَمْ تَجِدُوْا | مَآءً | فَتَيَمَّمُوْا | صَعِيْدًا طَيِّبًا | فَامْسَحُوْا |
| دښځوسره | اواونۀ مومئ | اوبۀ | نو قصد اوکړئ | دخاورې پاکې | نو مسحه اوکړئ |

اوکړئ! اوتاسو اوبه بيانۀ مومئ؛ نو دپاکې خاورې نه کار واخلئ! ..................اود هغې نه په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِوُجُوْهِكُمْ | وَاَيْدِيْكُمْ | مِّنْهُ ؕ | مَا يُرِيْدُ اللّٰهُ | لِيَجْعَلَ |
| په مخونو خپلو | او په لاسونو خپلوا | دهغې نه! نۀ غواړی الله | | چې مقرر کړی |

خپلو مخونو اولاسونوباندې مسح اوکړئ! .............................. الله ﷻ نه غواړئ چې تاسو په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْكُمْ | مِّنْ حَرَجٍ | وَّلٰكِنْ | يُّرِيْدُ | لِيُطَهِّرَكُمْ | وَلِيُتِمَّ |
| په تاسو | څه تنګی! | ليکن | غواړی | چې پاک کړی تاسو | او چې تمام کړی |

مشقت کښې واچوی! هغه خودا غواړی چې تاسوپاک کړی! اوچه خپل نعمتونه په تاسو باندې

| | | | |
|---|---|---|---|
| نِعْمَتَهٗ | عَلَيْكُمْ | لَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ ۞ |
| نعمت خپل | په تاسو باندې | دپاره ددې چې تاسو | شکر ګزار جوړشئ! |

پوره کړی! ............ دې دپاره چې تاسو شکر اوباسئ؛

قوله تعالٰی: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ

**اودس کله فرض کيږی ؟** ① اکثر مفسرينو نيلی دی چه د اودس حکم په هغه وخت کښې دې چه کله سړې بې اودسه وی. ② يو جماعت وائی چه کله تاسو اودريږئ يعنی خوب نه پاسئ. ددې دواړو اقوالو تقريبا يومطلب دې ③ او بعضې حضرات وائی چه آيت مبارك عام دې. اوپه خپل عموم باندې به وی. خو چه څوك بې اودسه وی نود هغه دپاره اودس کول واجب دی. او چه څوك اودس کښې وی نو هغه دپاره

اودس کول مستحب دي ③د يوجماعت خيال دي د اسلام شروع کښې د هر مونځ دپاره د اودس کولو حکم وو. خو بيا دا حکم منسوخ شو.

**دنبی کریم ﷺ د هر مونځ دپاره اودس کول:-** مسنداحمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ به هر مونځ دپاره نوې اودس کولو. د مکې د فتح په ورځ نبی کریم ﷺ اودس اوکړو او په جرابو نې مسح اوکړه. اوهم په دې يو اودس نې ډير مونځونه ادا کړل. دې کتلو سره حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ! نن خو تاسو هغه کار اوکړو چه د نن نه وړاندې مو نه وو کړې. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه ما په هيره داسې اونکړل بلکه په قصد سره مې داسې اوکړل. (¹)

**دنبی کریم ﷺ په يو اودس زيات مونځونه کول:-** ابن ماجه وغيره کښې دی چه حضرت جابر بن عبدالله به يو اودس سره ډير مونځونه کول، دې کتلو سره حضرت فضيل بن مبشر ﷺ سوال اوکړو چه آيا دا تاسو خپلې رائې سره کونې؟ نو وې فرمائيل چه نه بلکه ما نبی کریم ﷺ په دې کتلې دې (²).

**ابن عمر ﷺ د هر مونځ دپاره اودس کول:-** مسند احمد وغيره کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ به د هر مونځ دپاره نوې اودس کولو. که اودس به نې مات شوې وو او که نه. ددوی خوئې حضرت عبيدالله ﷺ نه سوال اوشو چه د دې سند څه دې؟ نو وې فرمائيل چه حضرت اسماء بنت زيد بن خطاب ونيلی دی. هغې ته حضرت عبدالله بن حنظله ﷺ ونيلی دی چه فرښتو ورته غسل ورکړې وو چه نبی کریم ﷺ به هر مونځ دپاره تازه اودس کول او دا دوی ته حکم شوې وو. که اودس به نې باقی وو اوکه نه. خوپه دې کښې ئې شان تکليف وو نو د اودس په ځانې د مسواك کولو حکم اوشو. خو چه کله اودس مات شی نو مونځ دپاره اودس کول ضروری دی. ددې کتلو سره د حضرت عبدالله ﷺ خيال دې چه چونکه په ما کښې قوت دې نو په دې وجه زه د هر مانځه دپاره اودس کوم. ترآخره پورې د دوی هم دا حال وو (³).

ﷺ ددې يو راوی حضرت محمدبن اسحاق ﷺ دې خو هغوئ صراحت سره ﴿حدثنا﴾ ونيلی دی پدې وجه د تدليس ويره هم ختمه شوه. خود ابن عساکر روايت کښې دا الفاظ نشته دې. والله اعلم.

دحضرت عبدالله ﷺ په دې فعل او ددې په هميش والی نه دا ثابتيږی چه مستحب ضرور دی او هم دا مذهب دجمهورو دې. ابن جريرکښې دی چه خلفاء ﷺ هم به د هرمونځ په وخت کښې اودس کولو. حضرت علی ﷺ به هرمونځ دپاره اودس کولو او دليل کښې به نې دا آيت مبارك پيش کولو. يو ځل هغوئ دماسپخين مونځ ادا کړواو بيا د خلقو يو ډلې ته ورغلل، بيا ئې اوبه راغوښتلې او دوی مخ لاس وينځل او بيا نې په سر مسح اوکړه او پښې نې وينځلې، او وې فرمائيل چه دا اودس دې د هغه چا چه بې اودسه نه وی. يوځل دوی يو خفيف اودس اوکړو او داښې فرمائيلی وو. حضرت عمر فاروق ﷺ نه هم دغه شان مروی دی.

ابوداؤد طيالسی کښې د حضرت سعيد بن مسيب قول دې چه اودس مات شی نو بغير اودسه پاتې کيدل زياتې دې، اول خودا قول د سندلحاظ سره غريب دې او دويم دا چه د دې نه مراد هغه سړې دې چه دې ته واجب وائی او چه څوك دې ته مستحب وائی نو هغه عامل باالحديث دې. بخاری اوسنن وغيره کښې مروی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ به هر مونځ دپاره نوې اودس کولو. يو انصاری دحضرت انس ﷺ نه چه دا واوريدل نو وې ونيل چه تاسو خلقو به څه کول؟ نو وې فرمائيل چه په يو اودس به مو ډير مونځونه کول ترکومې چه به اودس مات شوې نه وو (⁴).

---

¹) صحيح مسلم کتاب الطهارة باب جواز الصلوات کلها بوضوء واحد :٢٧٧، ترمذی:٦١، ابن ماجه: ٥١٠، احمد:٣٥٠/٥.

²) ابن ماجه: کتاب الطهارة باب الوضوء لکل صلاة والصلوات کلها بوضوء واحد:٥١١.

³) ابوداود کتاب الطهارة باب السواک :٤٨، وسنده حسن،احمد:٢٢٥/٥.

⁴) صحيح بخاری کتاب الوضوء من غير حدث: ٢١٤، ابوداود :١٧١، ترمذی:٦٠، احمد:١٣٢/٣، ابن ماجه:٥٠٩.

ابن جرير كښې د نبى كريم ﷺ فرمان مروى دې چه كوم كس اودس دپاسه اودس اوكړى نوهغه دپاره لس نيكئ ليكلې كيږى (١). ترمذى وغيره كښې هم دا حديث مبارك روايت كړې شوې دې او امام ترمذى دې ته ضعيف وئيلى دى.

يوه ډله وائى چه د ايت نه صرف دومره مقصود دې چې د بل كار په وخت كښې اودس كول واجب نه دى.صرف مونځ دپاره د دې وجوب دې.دا فرمان په دې وجه دې چه د نبى كريم ﷺ سنت مبارك وو چه د اودس ماتې نه پس به ئې يو كار نه كولو. تركومې چه به ئې بيا اودس اونكړو. ابن ابى حاتم وغيره كښې يو ضعيف اوغريب روايت دې چه نبى كريم ﷺ به كله د متيازو كولو اراده فرمائيله نو مونږ به دوى ته وئيل خو دوى به هيڅ نه وئيل .مونږ به سلام كولو خو نبى كريم ﷺ به جواب نه راكولو. ترڅو چه دا آيت مبارك نازل شو.(٢)ابوداؤد كښې دى چه يو ځل نبى كريم ﷺ پاخانې نه راووتلو او نبى كريم ﷺ ته خوراك مخكښې كړې شو نو مونږ ورته اووئيل كه تاسو وائې چه مونږ ستاسو دپاره د اودس اوبه راوړو. نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه د اودس كولو حكم خو ماته صرف مونځ دپاره دې(٣)امام ترمذى رحمه الله دې حديث ته حسن وائى.او يو روايت كښې دى چه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل څه خو څه مونځ نه كوم چه اودس اوكړم .(٤)

## چې اودس وى نو د هرمانځه دپاره اودس فرض نه دې

**مسلک حنفى:**- د احنافو په نيز هم په يو اودس باندې زيات مونځونه كولى شى ترڅو چې بې اودسه شوې نه وى او د هرمانځهٔ دپاره اودس كول اګرچه اودس ئې وى دا استحبابى خبره ده واجب نه ده (درس ترمذى لشيخ الاسلام مفتى تقى عثمانى مدظله العالى (٢٢۴/١١)-

د آيت مبارك دا الفاظ چه كله تاسو مونځ دپاره اراده اوكړئ نو اودس كوئى.ددې نه د علماء كرامو يو جماعت دا استدلال كړې دې چه په اودس كښې نيت واجب دې .د كلام مطلب دادې چه مونځ دپاره اودس كوئى لكه چه عرب وائى چه كله ته امير اوګورې نوپاسه اودريږه.نوددې مطلب دا دې چه اميردپاره اودريږه.د بخارى اومسلم يوحديث مبارك كښې دى چه داعمالو دارومدار په نيت دې اوهرسړى دپاره هغه دى چه د كوم دې نيت اوكړى .(٥)

## په اودس كښې نيت شرط نه دې

**مسلک حنفى:**- د احنافو په نيز د اودس دپاره نيت كول سنت دې واجب نه دې ځكه چه اوبه پخپله پاكونكې دى كه څوک د پاكولو نيت كوى او كه نه كوى (كذا فى عامة المتون شاه فيصل غفرله)-

د اودس كولو نه مخكښې بسم الله وئيل مستحب دى.ځكه چه يو مضبوط او صحيح حديث مبارك كښې دى چه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه د هغه سړى اودس ندې شوې چه څوك د اودس په شروع كښې بسم الله اونه وائى .(٦)

## د اودس نه وړاندې بسم الله وئيل سنت ده فرض نه ده

**مسلک حنفى:**- احناف وائى چه د اودس نه وړاندې بسم الله وئيل سنت ده او په پورتنى حديث كښې چې دا راغلى دى چه دده اودس اونشو نه د دې مطلب دا دې چه كامل اودس ئې اونشو هغه اودس ئې اونه شو

---

١) ابوداود كتاب الطهارة باب الرجل يجدد الوضوء من غير حدث:٦٢، ترمذى:٥٩.

٢) الطبرى

٣) ابوداود كتاب الاطعمة باب فى غسل اليدين عند الطعام:٣٧٦٠، وسنده صحيح ؟

٤) صحيح مسلم كتاب الحيض باب جواز اكل المحدث الطعام:٣٧٤، احمد:٢٢٢/١..

٥) صحيح بخارى كتاب بدء الوحى باب كيف كان بدء الوحى الى رسول الله :١،صحيح مسلم:١٩٠٧.

٦) ابوداود كتاب الطهارة باب فى التسمية على الوضوء:١٠١، وهو حسن،ابن ماجه:٣٩٩.

په کوم باندې چې گناهونه معاف کيږي د دې تاويل مثال داسې دې لکه د نبی کريم ﷺ په يو بل حديث کښې دی ﴿لاصلاة لجار المسجد الافی المسجد﴾ يعنی د جمات د گاونډي د جمات نه بغير (په کور کښې) مونځ نه کيږي حالانکه که يو کس په کور کښې مونځ اوکړي نو مسئله دا ده چه د هغه مونځ اوشو بلکه هلته د نبی کريم ﷺ مراد دا دې چه دده مونځ په کامله طريقه باندې اونشو.نو دغه شان د بسم الله په حديث کښې هم مونږ دا تاويل کوو از شاه فيصل غفرله)- دا هم ياد ساتئ چه داودس لوښي کښې لاس اچولو نه مخکښې ددې وينځل مستحب دی .اوکله چه خوب نه بيدار شی نو د دې سخت تاکيد راغلې دې بخاری او مسلم کښې د نبی کريم ﷺ فرمان دې چه تاسو کښې څوك هم د خوب نه پاسی نو په لوښي کښې دلاس وهلو نه مخکښې دې خپل لاس درې ځله وينځی. معلومه نه ده چه دده لاسونه د شپې په وخت کښې چرته وو(١).

## د خوب نه په راپاسيدو د لاسونو وينځل سنت دی

**مسلک حنفی:**- په هر حال په اودس کښې د ټولو نه رومبې سنت دا دې.چه کله متوضی د خوب نه رابيدار شی.نوهغه دے دواړه لاسونو په لوښي کښې د داخلولونه وړاندې درے ځله اووينځی .اود وينځلوطريقه دا ده.① که اوبه ئې په وړکی لوښي کښې ايخې وی.نوبه گس لاس دے راپورته کړی.او په ښی لاس دے واچوی.اوبيا دے په ښی لاس سره په گس باندې اوبه واچوی.②اوکه لوښے دومره غټ وو.چه د هغې پورته کول ممکن نه وو.نو وړکے لوښے دے واخلی.او په هغې دے ترے اوبه راوباسی.او بيا دے په خپل گس لاس سره په ښی لاس اوبه واچوی.او په ښی لاس سره دے په گس لاس اوبه واچوی. ③اوکه وړوکے لوښے نه وی.نود گس لاس گوتے دے جوختے کړی.او د غټ لوښي نه دے اوبه راواخلی.په ښی لاس دے واچوی.تلے به په اوبو کښې نه داخلوی.او بيا دے په ښی لاس سره اوبه راواخلی.او گس لاس دے اووينځی.(تسهيل الهدايه (٥٥\١) تاليف احقر العباد شاه فيصل)-

د مخ حد د فقهاء په نيز په پلن والی کښې د سر د ويښتو د راوتلوځائي نه ترد لاندې ځنې اوږيرې پورې دې .او په پلنوالی کښې د يو غوږ نه تربل غوږ پورې دې.په دې کښې اختلاف دې چه د دواړو اړخونود تندی د ويښتو ځائې حکم کښې دی يامخ کښې ؟

**په اودس کښې د ږيرې وينځلو حکم:**- اود ږيرې زوړند ويښته د مخ د وينځلو په فرضيت کښې شامل دی که نه ؟ په دې کښې دوه اقواله دی.يو خو دا چه په دې اوبه تيرول واجب دی ځکه چه د مخ مخامخ کولو په وخت کښې دا هم مخامخ کيږي.يوحديث مبارك کښې دی چه نبی کريم ﷺ يو کس اوليدو چه ږيره ئې پټه کړې وه .نو نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه دا پرانيزه دا هم مخ کښې داخله ده حضرت مجاهد رحمه الله هم فرمائی چه د عربو محاوره کښې داسې دی چه کله د بچی ږيره راوزی نودوی وائی چه (طلع وجهه) نومعلومه شوه چه د عربو کلام کښې ږيره د مخ حکم کښې ده او لفظ ﴿وجه﴾ کښې شامل ده .که ږيره گنړه وی نو دې کښې خلال کول مستحب دی .د حضرت عثمان رضی الله عنه داودس ذکرکوی او راوی وائی چه دوی د مخ وينځلو په وخت کښې درې ځله خلال کړې وو. او بيائې اوفرمائيل چه څنګه تاسو څه په اودس کولو اوليدم نو دغه شان ما نبی کريم ﷺ په اودس کولو ليدلې دې.دا روايت امام بخاری رحمه الله او امام ترمذی رحمه الله ذکر کړې دې اودې ته ئې حسن ونيلی دی (٢).

---

(١) صحيح بخاری کتاب الوضوء باب الاستجمار وترا:١٦٢، صحيح مسلم:٢٣٨، ابوداود:١٠٣،احمد:٢٤١/٢، ابن حبان:١٠٦١.

(٢) ترمذی کتاب الطهارة باب ماجاء في تخليل اللحية:٣١، وسنده حسن

ابوداود کښې دی چه نبی کریم ﷺ به داودس په وخت کښې یو چونګ اوبه واخستې او په خپله خند مبارکه به ئې اچولې او د خپلې ږیرې مبارکې خلال به ئې کولو.اودا به ئې فرمائیل چه ماته خما رب تعالی دغه شان حکم کړې دی (١).

حضرت امام بیهقی رحمه الله فرمائی چه د ږیرې خلال کول د حضرت عمار رضی الله عنه،حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها،حضرت ام سلمه رضی الله عنها،حضرت علی رضی الله عنه نه مروی دی اوددې د ترک کولو اجازت حضرت ابن عمر رضی الله عنه او حسن بن علی رضی الله عنه او نخعی رحمه الله اود تابعینو رحمهم الله یو ډلې ورکړې دې

## د ږیرې خلال سنت دې

**مسلک حنفی:-** امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی.چه د ږیرے خلال کول هم سنت دی.دلیل دا دے چه جبرنیل علیه السلام نبی ﷺ ته د ږیرے دخلال حکم کړې وو.صاحب دعنایه دا الفاظ نقل کړی دی. ﴿قال علیه السلام نزل علی جبرئیل علیه السلام وأمرني أن أخلل لحيتي إذا توضأت﴾ نبی ﷺ فرمائی.چه جبرنیل علیه السلام ماته راغلو.اووے فرمائیل:کله چه اودس کوې.نو دخپلے ږیرے خلال کوه! (تسهیل الهدایه شرح هدایه (٢١١١).

**د خولې وینځل او پوزه کښې اوبه اچول:-** صحاح وغیره کښې نقل دی چه نبی کریم ﷺ به کله اودس کولو نو خوله مبارکه کښې به ئې اوبه اچولې او پوزه کښې به ئې اوبه اچولې.د امامانو په دې کښې اختلاف دې چه دا دواړه اودس اوغسل کښې واجب دی یامستحب دی ؟ امام احمد رحمه الله او امام مالك رحمه الله دې ته مستحب وائی او ددوی دلیل د سنن هغه حدیث مبارك دې چه په هغې کښې زر زر مونځ کونکو ته د نبی کریم ﷺ دا فرمان مروی دې چه اودس اوکړنې چه څنګه تاسو ته الله تعالی د اودس کولو حکم کړې دی .(٢) دامام ابوحنیفه رحمه الله مسلك دادې چه دا په غسل کښې واجب دی او اودس کښې نه دی.یو بل روایت کښې دامام احمد رحمه الله نه مروی دی چه پوزه کښې اوبه اچول خو واجب دی او خوله کښې اوبه اچول مستحب دی (٣).څکه بخاری او مسلم کښې د نبی کریم ﷺ فرمان دې چه څوك اودس کوی نو پوزه کښې دې اوبه اچوی.او یوروایت کښې دی چه تاسو کښې څوك اودس کوی نو هغه دې خپله پوزه کښې اوبه اچوی او په بنه شان سره(٤)

اومسنداحمد اوبخاری شریف کښې دی چه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه چه اودس کولو نو مخ ئې اووینځلو او یو چونګ اوبه ئې واخستې او هغه ئې خوله کښې واچولې او پوزه ئې صفا کړه او یو چونګ اوبه ئې واخستې او خپل ښې لاس ئې وینځلو،او یو چونګ اوبه ئې واخستې اوخپل کس لاس ئې وینځلو،او بیا ئې په خپل سر مسح اوکړه.بیا ئې د اوبو یو چونګ ډك کړو او خپله ښې پښه ئې وینځله او بیا ئې یو چونګ اوبه واخستې او خپله ګسه پښه ئې اووینځله .او بیائې اوفرمائیل چه ما د الله تعالی پیغمبر ﷺ په داسې اودس کولو لیدلې دې .(٥)

## خوله او پوزه کښې اوبه اچول په اودس کښې سنت او غسل کښې فرض دی

**مسلک حنفی:-** د احنافو په نیز خوله کښې اوبه اچول او پوزه کښې اوبه اچول په اودس کښې سنت دی او په غسل کښې فرض دی پوره تفصیل د احقر شاه فیصل په کتاب تسهیل الهدایه شرح هدایه کښې اوګورئ (١١٧٥).

---

(١) ابوداود كتاب الطهارة باب تخليل اللحية:١٤٥.

(٢) ابوداود كتاب الصلاة باب من لا يقيم صلبه في الركوع والسجود:٨٦١، وسنده صحيح ترمذی:٣٠٢.

(٣) صحيح بخاری كتاب الوضوء باب الاستنثار في الوضوء:١٦١، صحيح مسلم:٢٣٧، ابن ماجه:٤٠٩. احمد:٤٠١/٢.

(٤) صحيح بخاری كتاب الوضوء باب الاستجمار وترا:١٦٢، صحيح مسلم:٢٣٧، ابوداود:١٤٠، احمد:٢٧٨/٢، ابن حبان:١٤٣٩.

(٥) صحيح بخاری كتاب الوضوء باب غسل الوجه باليدين من غرفة واحدة: ١٤٠، احمد:٢٦٨/١.

**په اودس کښې د څنګلو وينځلو فرضيت:-** ﴿الى المرافق﴾ نه ﴿مع المرافق﴾ دې لکه فرمان دې چه ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَهُمْ إِلَىٰٓ أَمْوَٰلِكُمْ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا﴾ يعنى تاسو د يتيمانو مالونه خپلو مالونوسره مه خورئى دا ډيره لويه ګناه ده. دغه شان دلته هم دى چه لاسونه ترڅنګلو پورې نه بلکه څنګلو سره وينځئ. دار قطنى وغيره کښې دى چه نبى کريم ﷺ به کله اودس کولو نو پخپلو څنګلو به ئې اوبه تيرولې (١). خو ددې په دوه راويانو کښې کلام دې والله اعلم.

**د څنګلو نه پورته حصه وينځل:-** اودس کوونکى لره مستحب دى چه د څنګلو نه پورته خپل لاسونه هم اووينځى ځکه چه بخارى اومسلم کښې روايت دې چه نبى کريم ﷺ اوفرمائيل ځما د امت د اودس ځايونه به د قيامت په ورځ پړقيږى او پدې به ددوى پيژندګلو وى.نو تاسو چه څومره کولې شئ نوخپل پړق تر پورته پورې بوزئى (٢)صحيح مسلم کښې حديث مبارک دې چه مومن ته به ترهغه ځايه پورې ګالې اچولې شى چه ترکومې د ده داودس اوبه رسيدلې(٣).

**په ،،بروسکم،، کښې د باء وضاحت:-** ﴿بِرُءُوسِكُمْ﴾ کښې چه کومه ﴿ب﴾ ده ددې الصاق يعنى يو ځائ کولو دپاره کيدل خو زيات ظاهر دى او تبعيض يعنى څه حصې دپاره کيدل د سوچ اوفکر محتاج ده بعضې اصولى حضرات فرمائى چه چونکه آيت مبارک کښې اجمال دې په دې نوچه سنتو ددې کوم تفصيل کړيدې هغه بهتردې.اوسنت ته به رجوع کول وى .حضرت عبدالله بن زيد بن عاصم صحابى ﷺ ته يو سړى اووئيل چه تاسو مونږ ته اودس اوښائې نو دوى اوبه راوغوښتلې او خپل دواړه لاسونه ئې دوه دوه ځل اووينځل ،بيا ئې درې ځل خوله کښې اوبه واچولې او پوزه کښې ئې اوبه واچولې.درې ځل ئې خپل مخ اووينځلو،بيا ئې څنګلو سره لاسونه دوه دوه ځل وينځل.بيا ئې په دواړو لاسونو د سر مسح اوکړه.د سر د شروع د حصې نه ترلاندې نرم څټ پورې.او بيا د هغه ځائې نه واپس شو.بيا ئې خپل دواړه لاسونه وينځل (٤) (بخارى اومسلم) حضرت على ﷺ نه هم د نبى کريم ﷺ د اودس طريقه هم داسې مروى ده(٥)ابوداود کښې دى چه دمعاويه ﷺ،حضرت مقداد ﷺ نه هم داسې مروى دى.

**د سر د مسحې فرضيت:-** دا احاديث دليلونه دى په دې باندې چه د پوره سر مسح کول فرض ده.هم دا مذهب د حضرت امام مالک ﷺ او حضرت امام احمد ﷺ.او هم دا مذهب د هغه ټولو حضراتو دې چه کوم دا آيت مبارک مجمل منى.اوددې حديث مبارک بيان ورته معلوم دې.د حنفيانو خيال دې چه د څلورمې حصې سر مسح کول فرض ده اودا د سر د شروع حصه ده .او خمونږ ملګرى وائى چه فرض صرف دومره دې چه په هغې د فرض اطلاق کيږى .

ددې هيڅ حد نشته دې.که په څو ويښتو هم مسح اوشوه نو فرضيت پوره شو. ددې دواړو جماعتونو دليل د حضرت مغير بن شعبه ﷺ والا حديث دې چه نبى کريم ﷺ مونږ نه روستو پاتې شو او څه هم نبى کريم ﷺ سره روستو پاتې شوم.هرکله چه دوى قضاء حاجت اوکړل نو ځما نه ئې اوبه اوغوښتلې . ما ورته لوټه راوړه.نبى کريم ﷺ خپل دواړه مړوندونه مبارک اووينځل.بيا ئې مخ مبارک اووينځلو. بيا

---

(١) دارقطنى:١/٨٣،

(٢) صحيح بخارى كتاب الوضوء باب فضل الوضوء والغر المحجلون من آثار الوضوء:١٣٦، صحيح مسلم:٢٤٦، احمد:٢/٤٠، ابن حبان:١٠٤٦، بيهقى:١/٥٧.

(٣) صحيح مسلم كتاب الطهارة باب تبليغ الحلية حيث يبلغ الوضوء :٢٥٠ احمد:٢/٣٧١. ابن حبان:١٠٤٥.

(٤)صحيح بخارى كتاب الوضوء باب مسح الراس كله:١٨٥،صحيح مسلم:٢٣٥،ابوداود:١١٨،ترمذى:٣٢، ابن ماجه:٤٣٤، ابن حبان:١٠٨٤

(٥) ابوداود كتاب الطهارة باب صفة الوضوء النبى ﷺ وسنده صحيح.

ئې د څنګلو نه جامې لرې کړې او تندی سره ئې په نزدې ويښتو او پټکی باندې مسح اوکړه او په دواړه جرابو هم (١).(مسلم وغيره).

ددې جواب امام احمد رحمه الله اوددوی ملګری دا ورکوی چه د سر په ابتدائی حصه باندې مسح کولو سره باقی پټکی باندې مسح کولو سره د ټول سر مسح اوشوه. او ددې ډير مثالونه احاديثو کښې دی.

نبی کريم ﷺ به په پټکی او جرابو باندې مسح کوله. نو هم دا غوره ده.او په دې کښې بالکل ددې خبرې هيڅ دلالت نشته چه د سر په بعضې حصه باندې يا صرف د تندی په ويښتو باندې دې مسح اوکړی اوددې تکميل دې په پټکی نه وی،والله اعلم.

**د سر د څلورمې حصې مسح فرض ده**

**مسلک حنفی:**- د سر مسح کول په اتفاق سره فرض ده.ځکه چه ددے ثبوت په نص صريحی سره دې خو په فرض مقدار کښې اختلاف دې.① داحنافو عالمانوپه نزد د سر د څلورمے حصې مسح کول فرض ده.که د سر د مخکښنۍ حصې وی او که د روستنۍ او که د ښی طرف څلورمے حصې وی اوکه د ګس طرف (تسهيل الهدايه شرح هدايه (١١/٥٢)-

**د سرد مسحې تعداد:**- بيا په دې کښې اختلاف دې چه د سر مسح به درې ځل وی يا يو ځل ؟ د امام شافعی رحمه الله اول مذهب دې (يعنی مسح به درې ځله وی) او امام احمد رحمه الله دويم مذهب دې.(يعنی مسح به يو ځل وی)

**د يوځل مسح کولو دلائل:**- دلائل دا دی.عثمان بن عفان رضي الله عنه اودس دپاره کينی او په خپلو دواړو لاسونو درې ځله اوبه اچوی.ددې وينځلو نه پس بيا خوله کښې اوبه اچوی او پوزه کښې اوبه اچوی.بيا درې ځل مخ وينځی.بيا درې درې ځل دواړه لاسونه څنګلو سره وينځی.اول ښې اوبيا ګس.بيا دسرمسح کوی او بيا پښې درې درې ځل وينځی.اول ښۍ او بيا ګسه.او بيا ئې فرمائی چه ما نبی کريم ﷺ په داسې اودس کولو ليدلې دې او اودس نه پس نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه څوك څما پشان داسې اوکړی اوبيا دوه رکعته مونځ ادا کړی او په زړه کښې خبرې اونکړی (دنيوی خيالات رانولی) نو د هغه ټول مخکښنی ګناهونه معاف شی(٢)بخاری اومسلم او ابو داود کښې هم دې روايت کښې دسرمسح کولو سره داالفاظ هم دی چه دسرمسح دې يو ځل اوکړې شی(٣)علی رضي الله عنه نه هم داشان مروی دی (٤)

**د درې ځل مسحې کولو دليل:**- او چه کوم خلق د سر مسح درې ځل ګنړی هغوئ د هغه حديث مبارك نه دليل نيسی چه درې درې ځل ئې د اودس اندامونه اووينځل (٥). حضرت عثمان رضي الله عنه نه مروی دی چه نبی کريم ﷺ اودس اوکړو او بيا داشان روايت دې او په هغې کښې په خوله کښې او پوزه کښې د اوبو اچولو ذکرنشته دې .او په هغې کښې دی چه بيا دوی درې ځل د سر مسح اوکړه او درې ځل ئې خپلې پښې وينځلې .او بيا ئې اوفرمائيل چه ما نبی کريم ﷺ په داسې اودس کولو ليدلې دې .او بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه څوك داسې اودس اوکړی نو دا کافی دی.(٦) خو حضرت عثمان رضي الله عنه نه چه کوم روايت په صحاح کښې مروی دې په هغې کښې د سرمسح يو ځل ثابت ده.

---

(١) صحيح مسلم كتاب الطهارة باب المسح على الناصية والعمامة:٢٧٤، ابوداود:١٥٠، ابن ماجه:١٣٢٦، احمد:٢٤٨/٤، ابن حبان:١٣٤٧، بيهقي:٥٨/١.

(٢) صحيح بخارى كتاب الوضوء باب الوضوء ثلاثاثلا:١٥٩، صحيح مسلم: ٢٢٦ ابوداود:١٠٦.

(٣) ابوداود كتاب الطهارة باب صفة الوضوء :١٠٨،

(٤) بوداود كتاب الطهارة باب صفة الوضوء :١١١، وسنده صحيح،نسائي:٩٢.

(٥) صحيح مسلم كتاب الطهارة باب فضل الوضوء الصلاة عقبة:٢٣٠.

(٦) بوداود كتاب الطهارة باب صفة الوضوء :١١١، وسنده حسن

**د سر مسح یو ځل مسنون ده**

**مسلک حنفي:-** داحنافو په نیز د سر مسح یوځل ده پوره تفصیل دپاره اوګورئ (تسهیل الهدایه ١/٧٥)-

**د پښو وظیفه وینځل دی:-** ﴿اَرْجُلَكُمْ﴾ دلام زبر سره عطف دې ﴿وُجُوْهَكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ﴾ باندې ماتحت دې د وینځلو حکم کښې حضرت ابن عباس رضي الله عنه به هم دا ونیلو او هم دا به ئې فرمائیل .. .([1]) حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه، حضرت حسن رحمه الله، حضرت مجاهد رحمه الله، حضرت ابراهیم رحمه الله، حضرت ضحاك رحمه الله، حضرت سدی رحمه الله، حضرت مقاتل بن حیان رحمه الله، حضرت زهری رحمه الله، حضرت ابراهیم تیمی رحمه الله، وغیره نه هم دا قول نقل دې.اوهم دا قرات دې ([2]). اودا بالکل ظاهر دی چه پښې وینځل پکار دی.هم دا فرمان د سلفو دې .

**د اودس کښې د ترتیب حکم:-** اوهم ددې ځانې نه جمهورو د اودس ترتیب خودلې دې او په دې ئې استدلال کړې دې.صرف حضرت ابوحنیفه رحمه الله ددې خلاف دې او هغوئ اودس کښې ترتیب شرط نه ګڼړی.د دوی په نیز که څوك اول پښې اووینځی او بیا د سر مسح اوکړی او بیا لاسونه اووینځی اوبیا مخ اووینځی نودا هم جائز دی.ځکه چه آیت قرانی د دې آیتونو د وینځلو حکم کړې دې .د واو دلالت په ترتیب باندې نه کیږی.

**دجمهورو جوابونه:-** ① ددې جوابونه جمهورو ډیر ورکړی دی.یوخودا چه ﴿ف﴾ ترتیب باندې دلالت کوی.د آیت مبارك الفاظو کښې مونځ کونکی ته د مخ وینځلو حکم ﴿فَاغْسِلُوْا﴾ نه کیږی .نو د مخ کم ازکم اوله حصه وینځل خوددې لفظونو نه ثابت شو. اوس دې نه د اندامونو وینځلو ترتیب د اجماع نه ثابت دې .او په هغې کښې خلاف نظر نشته دې.بیا چه ﴿ف﴾ د تعقیب دپاره ده اود ترتیب مقتضی ده اوپه یو بل داخله شوې ده نو د دې یو ترتیب منلو سره د بل د ترتیب انکار څوك هم نه کوی .بلکه یا خو ټول په ټوله د ترتیب قائل دی یا یو هم د ترتیب قائل نه دې.نو دا آیت مبارك یقینی طور په دی حجت دې چه د بل نه ترتیب منکردی.

②دویم جواب دادې چه واؤ ترتیب باندې دلالت نه کوی دا هم مونږ نه منو. بلکه دا ترتیب باندې دلالت کوی ځکه چه د نحویانو یو جماعت اود بعضو فقهاء کرامو مذهب دې نو بیادا څیز هم قابل غور دې چه بالفرض د لغت لحاظ سره ددې دلالت په ترتیب باندې هم نه کیږی خو شرعی طور چه کومو څیزونو کښې ترتیب کیدیشی په هغې کښې د دې دلالت د هغې په ترتیب باندې کیږی.صحیح مسلم شریف کښې حدیث مبارك دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم کله د بیت الله شریف طواف نه پس باب صفا نه اووتلو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا آیت ﴿اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ﴾ تلاوت کولو او وې فرمائیل چه څه د هغې نه شروع کوم چه کوم الله تعالی مخکښې بیان فرمائیلی دی.نو صفا نه ئې سعی شروع کړه. ([3])

نسائی کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حکم ورکول هم مروی دی .([4]) د هغې نه شروع کړه چې کومې نه الله تعالی د شروع کولو بیان کړې دې. ددې اسناد هم صحیح دی او د دې نه دا خبره معلومه شوه چه د کوم ذکر مخکښې وی هغه مخکښې کول او چه د کوم ذکر روستو وی هغه روستو کول واجب دی .نو ثابت شو چه داسې موقعو باندې شرعی طور ترتیب ثابت وی.والله اعلم .

---

[1]) الطبری:١٠/٥٥.

[2]) الطبری:١٠/٥٥،

[3]) صحیح مسلم کتاب الحج باب حجة النبی صلی الله علیه وسلم :١٢١٨، ابوداود:١٩٠٥، ابن ماجه:٣٠٧٤.

[4]) السنن الکبری للنسائی:٣٩٦٨، وسنده صحیح :

③دریم جماعت جواب کښې وائي چه د لاسونو دڅنګلو سره د وينځلو حکم اود پښو د وينځلو حکم مينځ کښې د سر د مسح کولو حکم بيانول صفا دليل دې د دې امر چه ددې نه مراد ترتيب باقي ساتل دی ګنی کلام به ئې داسې نه الټه کولو.

④ يو جواب د دې دا هم دې چه ابو داود وغيره کښې صحيح سندسره مروی دی چه نبی کريم ﷺ داودس اندامونه يو يو ځل اووينځل او بيا ئې اوفرمائيل دا اودس دې او د دې نه بغير الله ﷻ مونځ نه قبلوی .اوس دوه صورتونه دی چه ياخو دې اودس کښې ترتيب وو يا نه وو. که اوونيلې شی چه د نبی کريم ﷺ دا اودس ترتيب سره وو يعنی يو نه پس ئې بل اندام وينځلې دې نو معلوم شو چه کوم اودس کښې تقديم او تاخير وی او ترتيب په کښې نه وی او په هغې کوم مونځ اوکړې شی نوهغه مونځ نه قبليږی .نو ترتيب واجب او فرض دې .اوکه دا اومنلې شی چه په دې اودس کښې ترتيب نه وو بلکه صرف د اندامونو وينځل وو ،مخکښې پښې وينځل وو ،بيا خوله کښې اوبه اچول وو ،بيامسح،بيا مخ وينځل وغيره نو عدم ترتيب به واجب شی.خوددې قائل امت کښې يو هم نشته دې.نوثابت شو چه اودس کښې ترتيب فرض دې .

**په اودس کښې ترتيب سره د اند امونو وينځل سنت دې**

**مسلک حنفي:-** د اودس په فرض اندامونوکښې د ترتيب مسئله مختلف فيه ده.① داحنافو عالمانو ﷭ په نزد د اودس په فرض اندامونوکښې ترتيب سنت دې.

① او زمونږ دليل دا دې.چه د اُودس دفرض اندامونوپه مينځ کښې "واو" ذکر دې.او داهل لغت په دې اجماع ده.چه واؤ د مطلق جمع دپاره راځی.نوکه مونږ دا هم تسليم کړو.چه فاء دپاره د تعقيب راځی.نوددې مطلب به دا وی.چه د څلوروواندامو د مجموعې وينځل به مانځه ته په اودريدوباندې مرتب وی.داسې نه چه په څلورواندامونوکښې به ترتيب وی. حالانکه کلام دڅلورواندامو په ترتيب کښې دې.اوبه څلورو اندامونوباندې واو داخل دې.او هغه د ترتيب فائده نه ورکوی.نوځکه مونږ وايو.چه د اودس په فرض اندامونو کښې ترتيب فرض نه دې.خو چه نبی ﷺ د قرآن پاك د ذکرکړی ترتيب موافق اودس کړې دې.نوځکه به په اودس کښې ترتيب سنت وی فرض نه.

دلته يو اشکال دې.هغه دا چه واو دپاره د جمع دې.په دې باندې د صاحب هدايه داجماع دعوی ټيك نه ده.ځکه چه بعضې حضرات واو مفيد د ترتيب ګڼړی.او بعضې مفيد د قران (اتصال)ابوعلی فارسی ذکرکړی دی.چه د نحويانو په دې باندې اجماع ده.چه واو دمطلق جمع دپاره دې.د نحو امام سيبويه په خپل کتاب کښې په اوولس ځايونو کښې ذکر کړی دی.چه واو د مطلق جمع دپاره راځی.نود علامه مرغينانی په دې باندې اعتماد کړې دې.او د اجماع دعوی ئې کړې ده.او د څو کسانو اختلاف مانع د اجماع نه دې. (تسهيل الهدايه (١\٦٧)-

**په پښو د مسحې کول:-** د آيت ددې جملې يو قرات بل هم دې.﴿وَأَرْجُلَكُمْ﴾ دلام زير سره او هم ددې نه شيعه حضراتو د په خپل قول دليل نيولې دې چه په پښو مسح کول واجب دی.ځکه چه د هغوئ په نيز د دې عطف د سر په مسح دلالت کوی .د بعضو سلفو نه هم څه داسې اقوال په دليل کښې دی چه د هغې نه د مسح د قول قائليت معلوميږی.

**په پښو د مسحې کولو دلائل** ① په ابن جريرکښې دی چه موسی بن انس د حضرت انس ﷺ نه د خلقو موجودګئ کښې اووئيل چه حجاج په اهوازکښې خپله خطبه کښې د اودس او طهارت احکامو کښې اووئيل چه مخ لاس وينځئ اود سرمسح کوئی او پښې وينځئ ځکه چه عام طور په پښو باندې پليتی پريوځی.نو د پښو تلی اود پښو شاکانې اوګيټئ ښه طريقې سره وينځئ.نو حضرت انس ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ رينبتونې اوحجاج دروغژن دې .الله ﷻ فرمائی چه ﴿وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ﴾ او د حضرت



انس ﷛ عادت وو چه كله به ئې د پښو مسح كوله نو دا به ئې بالكل لمدولې .هم د دوى نه مروى دى چه قران پاك په پښو د مسح كولو حكم دې .حضرت قتاده ﷫ نه هم دا مروى دى .او د نبى كريم ﷺ سنت د پښو وينځل دى.

② حضرت ابن عباس ﷛ نه مروى دى چه په اودس كښې دوه ځيزونه وينځل دى او په دوو باندې مسح كول دى. ③ ابن علقمه ﷫،ابوجعفر ﷫،محمد بن على ﷫،او يو روايت كښې د حضرت حسن ﷛ او حضرت جابر بن زيد او يو روايت كښې ④د حضرت مجاهد ﷫ نه هم دا شان مروى دى.⑤حضرت عكرمه ﷫ په پښو مسح كوله. ⑤شعبى ﷫ فرمائى چه د حضرت جبرئيل ﷺ په معرفت د مسح حكم نازل شو.ددوى نه دا هم مروى دى چه آيا تاسو نه گورئى چه د كومو ځيزونو د وينځلو حكم وو په هغې خو د تيمم په وخت كښې د مسح كولو حكم اوشو اوچه په كومو ځيزونو د مسح كولو حكم ووهغه بالكل پريښودې شو.⑥حضرت عامر ﷫ ته چا اوئيل چه حضرت جبرئيل ﷺ په پښو دمسح كولو حكم راوړې وو نو دوى اوفرمائيل حضرت جبرئيل ﷺ د مسح حكم سره نازل شوې وو. نو دا ټول آثار بالكل غريب دى او محمول دى په دې چې د دې حضراتو د مسحې نه مراد معمولى شان وينځل دى،ځكه چه سنت رسول نه ثابت دى چه د پښو وينځل واجب دى،

**د جر د قراءت وجه:-** ياد ساتئ چه (په ارجلكم) د زيرقرات خوياد مجاورت د كلام په وجه دې لكه څنگه چه دعربو كلام دې چه﴿جحرضب خرب﴾كښې اود الله ﷻ كلام كښې چه ﴿عَٰلِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ﴾. د عربو په لغت كښې دا دواړه الفاظو ته يو شان اعراب وركول زيات زيات مونده شوى دى .حضرت امام شافعى ﷫ د دې يو توجيه بيان كړې ده چې دا حكم په هغه وخت كښې دې چه كله په پښو جرابې وى .بعضې وائى چه د مسح نه مراد لږ شان وينځل دى.لكه څنگه چه بعضو روايتونو كښې سنتو نه ثابت دى.الغرض د پښو وينځل فرض دى .اوددې نه بغير به اودس مكمل نه وى.آيت مبارك هم دادى او احاديثو كښې هم دا شان دى.لكه څنگه چه به مونږ اوس دا نقل كړو انشاء الله.

**د مسحې نه مراد غسل خفيف دې:-** بيهقى كښې دى چه حضرت على بن ابوطالب ﷛ د ماسپښين مونځ نه پس بيټك كښې ناست وو او ترمازيگره پورې د خلقو كارونو كښې مشغول وو. اوبه ئې راوغوښتلې او د اوبو يو چونگ سره ئې د خولې اود سر او د دواړو لاسونو او پښو مسح اوكړه او بيا اودريدل او بچ شوې اوبه ئې اوڅكلې.اوبيا ئې اوفرمائيل چه خلق په ولاړه اوبه څكل مكروه گڼرى او ما نبى كريم ﷺ په داشان كولو ليدلې دې اونبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه دا اودس دې د هغه چا چه بې اودسه نه وى ([1]). (بخارى)

**د شيعگان غلطى:-** په شيعه گانو كښې چې كومو كسانو د موزو مسح داسې گرخولې ده لكه څنگه چې جرابو مسح كوى دې خلقو يقينا غلطى كړې ده او خلق ئې په گمراهئ كښې اچولې دى دغه شان هغه خلق هم گمراه دى چه مسح او وينځل دواړه جائز گرخوى.

**ابن جرير ﷫ ته په پښو د مسحو كولو د نسبت ترديد:-** اوچه كومو خلقو د امام ابن جرير ﷫ متعلق خيال كړې دې چه هغوئ د احاديثو په بناء د پښو وينځل او د آيت قران په بناء په پښو مسح كول فرض كړى دى ،د هغوئ دا تحقيق غلط دې صحيح نه دې.تفسير ابن جرير خمونږ لاسونو كښې موجود دې د هغوئ دكلام خلاصه دا ده چه د پښو مږل واجب دى او اندامونوكښې دا واجب نه دى ځكه چه پښې په زمكه باندې د ښاورې نه ډكې شى نو ددې وينځل ضرورى دى چه دې پورې څه لگيدلې وى چه هغه لرې شى .خو ددې مږلو دپاره هغه د مسح لفظ راوړې دې .اوهم په دې وجه بعضو ته دا شك شوې دې .

[1]) صحيح بخارى كتاب الاشربة باب الشرب قائما:٥٦١٥، ابوداود:٣٨١٨، الشمائل:٢١٠، احمد:٧٨/١،

اوهغوئ دا ګڼړي چه د مسح او غسل تر مينځه دا شان جمع کوي حالانکه ددې هډو څه معنی نشته دې .مسح خو غسل کښې داخل ده که مقدم وي اوکه موخر .نو حقيقت کښې د امام صاحب رحمه الله اراده هم هغه ده چه کومه ما ذکر کړې ده او په دې د نه پوهيدو په وجه اکثر فقهاء کرامو دا مشکل ګڼړې دې .ما چه بار بار غور اوکړو نو ما باندې دا صفا ظاهر شو چه امام صاحب رحمه الله دواړو قراتونو کښې جمع تلاش کوي .نو د زير قرات يعني مسح خو محمول کوي په ﴿دلك﴾ باندې يعني ښه طريقې سره په صفا کولو او د زبر والا قرات په غسل باندې يعني وينځلو باندې.نو هغوئ وينځل او مږل دواړه واجب ګڼړي.چه زير والا او زبر والا دواړو قراتونو باندې په يو ځل عمل اوکړې شي.

**هغه احاديث چه د ښپو وينځل ضروري ګرځوي:-** اوس هغه احاديث واورئی چه په هغې کښې د ښپو وينځل ضروري دی.امير المومنين حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه ،امير المومنين حضرت علی بن ابی طالب رضي الله عنه ،حضرت ابن عباس رضي الله عنه ،حضرت امير معاويه رضي الله عنه،حضرت عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه ،حضرت مقداد بن معد يکرب رضي الله عنه والا روايات مخکښې بيان شوی دی چه نبی کريم ﷺ د اودس کولو په وخت کښې خپلې ښپې مبارکې اووينځلې يو يو ځل يا دوه دوه ځل يا درې درې ځل.دعمرو بن شعيب حديث مبارك کښې دی چه نبی کريم ﷺ اودس اوکړو او خپلې ښپې مبارکې ئې يو ځل اووينځلې .او بيا ئې اوفرمائيل چه دا اودس دې او ددې نه بغير الله ﷻ مونځ نه قبلوی ([1]). بخاری اومسلم کښې دی چه يو ځل يو سفر کښې حضرت نبی کريم ﷺ روستو پاتې شوې وو ،هرکله چه نبی کريم ﷺ راغلل نو مونږ زر زر اودس کولو ځکه چه د مازيګر وخت په تيريدو وو.مونږ زر زر په خپلو ښپو هسې اوبه اچولې نو نبی کريم ﷺ ډير په اوچت آواز اوفرمائيل چه خپل اودسونه کامل کړئی پونډې به په اورکښې سوځی (يعنی کومې پونډې چې اوچې پاتې شوی وی هغه به په اور کښې سوځوی) ([2]). يوبل حديث مبارك کښې دی چه د پونډو دپاره او تلو دپاره ويل دې د اور نه ([3])(بيهقی وحاکم).اويو روايت کښې دی چه ګيټو دپاره ويل (هلاکت) دې د اور نه([4]) (مسند احمد) د يو سړی په ښپه کښې نبی کريم ﷺ د يو درهم هومره ځائې اوچ کتلو سره نبی کريم ﷺ اوفرمائيل خرابی ده پونډو دپاره د اور نه (مسنداحمد) ابن ماجه وغيره کښې دی چه څه خلقو اودس کول او د هغوئ پونډو ته په ښه طريقه اوبه نه وې رسيدلې نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل پونډو دپاره د اور نه خرابی ده .([5]) مسند احمد کښې هم د نبی کريم ﷺ دا الفاظ راغلی دی.ابن جرير رحمه الله کښې دوه ځل د نبی کريم ﷺ دا الفاظ وارد دی.راوی حضرت ابوامامه فرمائی چه بيا په جمات کښې يو هم داسې شريف او وضيع پاتې نشو چه هغه به خپلو پونډو ته ښه نه کتل .([6]) او يو حديث مبارك کښې دی چه نبی کريم ﷺ يو کس اوليدو چه مونځ ئې کولو او دهغه په پونډه کښې د يو درهم هومره ځائې اوچ پاتې شوې وو. نو نبی کريم ﷺ هم دا اوفرمائيل،او بيا خو دا حالت وو چه د چا په ښپه کښې به لږ شان ځائې هم اوچ پاتې شو نو هغه به پوره اودس کولو.([7])

[1]) ددې تخريج مخکښې تير شوې دې

[2]) صحيح بخاری کتاب الايمان باب من رفع صوته بالعلم :٦٠، صحيح مسلم:٢٤١، ابوداود: ٩٧، ابن ماجه:٤٥٠، احمد:١٩٣/٢، ابن حبان:١٠٥٥، بيهقی:٦٨/١.

[3]) حاکم:١٦٢/١، احمد:١٩١/٤،.

[4]) احمد:٣٦٩/٣، وسنده صحيح.

[5]) احمد:٣٩٠/٣، وهو صحيح بالشواهد، مسندالطيالسی: ١٧٩٧، ابن ابی شيبة:٢٦/١، مسند ابويعلی:٢٠٦٥

[6]) الطبری : ٧٣/١٠،

[7]) طبرانی : ٨١٠٩، مجمع الزوائد:٢٤/١، الطبری :٧٤/١٠).

نو ددې احادیثو نه ثابته شوه چه د پښو وینځل فرض دی که ددې مسح کول وی نو نبی کریم ﷺ به د لږ ځاني په اوچ پاتې کیدو دومره وعید او بیا د جهنم د اور وعید نه فرمانیلو. ځکه چه مسح کښې لږ لږ ځاني ته لاس رسول داخل نه دی.نو بیا خو د پښو د مسح هم هغه صورت وی چه کوم په جرابو د مسح کولودې .هم دا ځیز امام ابن جریر ؒ د شیعه حضراتو مقابله کښې پیش کړې دې .صحیح مسلم کښې حدیث مبارك دې چه نبی کریم ﷺ یو کس اولیدو چه هغه اودس اوکړو اودهغه په پښه کښې د نوك برابر یوځاني اوچ پاتې شوې وو نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه واپس شه او په ښه طریقې سره اودس اوکړه.(1)بیهقی وغیره کښې هم دا حدیث مبارك دې.مسند کښې دی چه دوی یو مونځگزار په مونځ اولیدو چه د هغه په پښه دیو درهم هومره ځانې اوچ پاتې شوې دې نو دوی ورته د اودس د بیا کولو حکم اوکړو(2).

حضرت عثمان ؓ نه چه د نبی کریم ﷺ کومه طریقه نقل ده په هغې کښې دا هم دی چه نبی کریم ﷺ د گوتو مینځ کښې خلال هم اوکړو. سنن کښې دی چه حضرت صبره ؓ نبی کریم ﷺ نه د اودس باره کښې تپوس اوکړو نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه اودس ښه کامل کوه او پوره کوه،د گوتو مینځ کښې خلال کوه ،او پوزه کښې اوبه اچوه،خو که د روژې په حالت کښې نې نو دا بله خبره ده .(3)

**په اودس کولو د اندامونو گناهونه رژیدل:-** مسند اومسلم وغیره کښې دی چه حضرت عمرو بن عبسه ؓ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ ! ماته د اودس باره کښې خبر راکړه. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم یو کس د اودس اوبه واخلی او خوله کښې ئې واچوی او پوزه کښې ئې واچوی،نو د ده د خولې نه او پوزې نه گناهونه رژیږی.اودې پوزه سونړکوی او مخ وینځی لکه څنگه چه دالله حکم دې نو دده دمخ گناهونه اوبرې گناهونه،دې اوبو سره اورژیږی .بیا چه دې مسح کوی نو د ده دسر گناهونه ددې د ویښتو نه اوبه څځیدو سره اورژیږی.اوبیا چه دې کله خپلې پښې د اللهﷻ د حکم مطابق تر گیټو پورې اووینځی نو دده د گوتو نه د اوبو تلو سره دده گناهونه معاف کیږی .بیا چې دې اودریږی او دالله ﷻ حمد و ثناء بیان کړی او دوه رکعته مونځ اوکړی نو دې د گناهونونه دا سې پاك شی لکه چه دې نن پیدا شوې وی.ددې آوریدوسره حضرت ابو امامه ؓ حضرت عمرو بن عبسه ؓ ته اووئیل چه ښه غور اوکړه چه دوی څه فرمانی.نبی کریم ﷺ نه دوی هم دغه شان آوریدلی دی.آیا دا ټول هر څه انسان په یو مقام باندې حاصلوی.حضرت ابوامامه ؓ اوفرمائیل چه انې عمرو ؓ ! زه بوډا شوې یم،زما هډوکی وراسته شوی دی،زما مرگ نزدې دې ،ماته څه فائده چه زه به دالله په رسول ﷺ باندې دروغ تړم .یو ځل نه ،دوه ځل نه،درې ځل نه ،ما دا د نبی کریم ﷺ نه اووه ځل بلکه ددې نه هم زیات آوریدلی دی.د دې حدیث مبارك سند بالکل صحیح دې.

د صحیح مسلم دویم سند والا حدیث مبارك کښې دی چه بیا دې خپلې دواړه پښې وینځی لکه څنگه چه دالله ﷻ حکم دې .(4) نو ثابته شوه چه دقران پاك حکم د پښو وینځلو دې.ابو اسحاق سبیعی ؒ حضرت علی ؓ نه په واسطه د حضرت حارث ؓ روایت کړې دې چه دوی اوفرمائیل دواړه پښې گیټو ددې نه وینځئ لکه څنگه چه تاسو ته حکم شوی دې.

دا هم معلومه شوه چه په کوم روایت کښې حضرت علی ؓ نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ خپل دواړه قدمونه خپل پیزار مبارك کښې لامده کړل.نوددې نه مراد په پیزار مبارك کښې لرشان وینځل

---

1) صحیح مسلم کتاب الطهارة باب وجوب استیعاب جمیع اجزاء محل الطهارة:۲۴۳.
2) احمد: ۱۴٦/۳، ابوداود کتاب الطهارة باب تفریق الوضوء:۱۷۳، وهوصحیح،ابن ماجه:٦٦٥، مسندابویعلی : ۲۹۴۴.
3) ابوداود کتاب الصیام باب الصائم یصب علیه الماء من العطش ویبالغ فی الاستنشاق:۲۳٦٦، وسنده صحیح ترمذی:۷۸۸.، ابن ماجه:۴۰۷.
4) احمد:۱۱۲/۴، صحیح مسلم: کتاب الصلاة المسافرین باب اسلام عمرو بن عبسه:۸۳۲.

دي .اوکه پیزار اوچپل وغیره په پښو وي نو پښې وینځلې شي .غرض دا چه دا حدیث مبارك هم د وینځلو دلیل کېږي دي.البته ددې نه څه وسوسه او وهم هغه خلقو ته کیږي چه کوم خلق حد نه تیریږي دغه شان بل حدیث مبارك کښې دي چه نبی کریم ﷺ د یو قوم په هغه ځائې کښې اودس مات کړو چه کوم ځائې به هغوئ خپل ګند اچولو(چې پښتو کښې ورته ډیران وائي)، او بیا ئې اوبه راوغوښتلې اوخپل پیزار مبارك ئې مسح کړل .([1]) خو دا حدیث مبارك نورو سندونو سره مروی دې .اوپه هغې کښې دی چه نبی کریم ﷺ په خپلو جرابو مسح اوکړه ([2]) نو په دې کښې داسې جمع کیدیشي چه جرابې ئې پښو کښې وې .او په هغې نعلین مبارك وو. او په دې دواړو نبی کریم ﷺ مسح اوکړه. هم دا مطلب د دې حدیث مبارك دې.

مسند احمد کښې اوس بن ابواوس نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ ځما په مخکښې اودس اوکړو اوپه خپلو پڼړو مبارکو ئې اودس اوکړو او مونځ ته اودریدل.هم دا روایت بل سند سره مروی دې،په هغې کښې د نبی کریم ﷺ د ګند په ځائې اودریدل او اودس ماتول او بیا اودس کول او په پڼړو مبارکو اودواړو پښو مسح کول ذکر دی([3])

**د امام ابن جریر رحمه الله تاویل**:-امام ابن جریر رحمه الله دا حدیث راوړې دې اوبیا فرمائی چه دا محمول دی په دې باندې چه په هغه وخت کښې د نبی کریم ﷺ رومبې اودس وو نوبیو مسلمان دا څنګه قبلولې شي چه دالله ﷻ په فریضه کښې او د پیغمبر ﷺ په سنتو کښې دې تعارض وی.اوالله ﷻ یو څه اووائی او پیغمبر ﷺ بل څه وائی.نود نبی کریم ﷺ دوامی فعل نه د نبی کریم ﷺ پښې وینځل په طور فرض ثابت دی .او د آیت مبارك صحیح مطلب هم دا دې.نو چه د چا غوږونو ته د الله ﷻ دا حکم اورسی نو په هغه دالله ﷻ حجت پوره شو. چونکه د زور قرات نه د پښو وینځل او د زیرقرات نه هم په دې باندې محمول کول د فرضیت قطعی ثبوت دې

**په جرابو مسح کول**:- په دې وجه بعضو سلفو دا هم وئیلی دی چه دې آیت مبارك سره په جرابو مسح کول منسوخ شو. اګر چه یو روایت حضرت علی رضی الله عنه نه داشان مروی دې.خو د هغې ا سناد صحیح نه دی.بلکه د دوی نه پخپله صحت سره ددې خلاف ثابت دی .او چه د چا هم دا خیال دې نو د هغوئی دا خیال صحیح نه دې.بلکه ددې آیت مبارك د نازلیدو نه پس نبی کریم ﷺ نه په جرابو مسح کول ثابت دی په په مسنداحمد کښې د حضرت جریر بن عبدالله بجلی رحمه الله قول دې چه د سورة مائده نازلیدو نه پس مسلمان شوې وو چې د خپل اسلام راوړو نه پس ما پیغمبر ﷺ په جرابو په مسح کولو لیدلی وو([4]).
بخاری او مسلم کښې دی چه حضرت جریر رضی الله عنه اودس مات کړو او بیا ئې په خپلو جرابو مسح اوکړه،ددوی نه تپوس اوشو چه تاسو داسې ولې کونی ؟ نو وې فرمائیل چه هم داشان ما نبی کریم ﷺ هم لیدلې دې ([5]).

د حدیث راوی حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی چه خلقو ته به دا حدیث ډیر عجیبه معلومیږی ځکه چه د حضرت جریر اسلام راوړل د سورة مائده نه پس وو. د احکامو په لویو لویو کتابونو کښې په جرابو مسح کول د نبی کریم ﷺ نه ثابت دی .

---

[1] ) الطبری: ۱۰/۷۵،
[2] ) صحیح مسلم کتاب الطهارة باب المسح علی الخفین :۲۷۳، ابوداود:۲۳، ترمذی:۱۳، ابن ماجه: ۳۰۶.
[3] ) احمد:۸/٤، معرفة الصحابة:۹۷۸، طبرانی :۶۰۷،
[4] ) احمد:٤/۳٦۳، وهو صحیح بالشواهد،
[5] ) صحیح بخاری کتاب الصلاة باب صلاة فی الخفاف:۳۸۷، صحیح مسلم:۲۷۲، ابوداود:۱٥٤، ترمذی:۹۳ ابن ماجه:٥٤۳، احمد:٥/۳٦٤، ابن حبان:۱۳۳٦.

اوس د مسح موده وغيره .د هغې د ذکر کولو دا ځائې نه دې .د احکامو کتابونوکښې ددې تفصيل موجود دې.

## په سختو جرابو باندې مسح کول جائز ده

**مسلک حنفي:-** د احنافو عالمانو په خپل مينځ کښې په جورابو باندې مسح کولو کښې اختلاف دې امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه په جورابو باندې مسح جائز نه ده مګر دا چه مجلدې وی يعنی لاندې باندې ترې څرمن لګيدلې وی يا منعلې وی يعنی لاندې ترې څرمن لګيدلې وی او صاحبين فرمائی چه په جورابو باندې مسح جائز ده خو چې سختې وی.يعنی که جوربين د داسې ډبلې کپړې وی.چه بغير د تړلو نه په پنډۍ باندې ايساريږی.اوپه هغے کښې مزل کول اوسفر کول ممکن وی.نودا جوربين د موزو مشابه شوې.نولکه څنګه چه په موزو مسح جائزده.دغه شان به په دے هم جائزوی.اوپه دې کښې د صاحبينو قول راجح دې يعنی په جرابو باندې مسح جائز ده خوچې سختې وی او تګ په کښې کولې شی (تسهيل الهدايه (١/١٧)

**د رافضيانو ترديد:-** رافضيانو هم په دې کښې اختلاف کړې دې او ددې هغوئ سره هيڅ دليل نشته دې.صرف جهالت او ضلالت دې.پخپله د حضرت علی رضی الله عنه يو روايت صحيح مسلم کښې دې ([1]). خو روافض هغه نه منی.لکه څنګه چه د حضرت علی رضی الله عنه په هغه حديث مبارک کښې چې په مسلم او بخاری کښې دې د نکاح متعه ممانعت ثابت دې ([2]).خو شيعه حضرات دا مباح ګڼړی.هم داشان دا آيت مبارك د دواړو په وينځلو دلالت کوی .اوهم دا امر د نبی کريم ﷺ متواتر احاديثو نه ثابت دی.خو شيعه حضرات ددې مخالف دی.فی الواقع دې مسائلو کښې ددوی لاسونه د دليل نه خالی دی.والله

**د شيعه ګانو بله غلطه نظريه:-** دغه شان دې خلقو د آيت مبارك او سلف صالحينو دکعبين باره کښې هم خلاف کړې دې ،هغوئ وائی چه دهر قدم په شا يو ګيټئ وی،نو ددوی په نزد هر قدم کښې يو کعب يعنی ګيټئ وی .اود جمهورو په نزد دګيټئ هغه هډوکی چه دپنډئی او قدم په مينځ کښې راوتلی وی هغه کعبين دی .د حضرت امام شافعی رحمه الله فرمان دې چه د کومو کعبينو ذکر دلته شوې دې دا د ګيټئ دوه هډوکی دی چه يو طرفته او بل طرفته لړ شان ښکاره دی او هم په يو قدم کښې کعبين دی،او دخلقو په عرف کښې هم د ادی.اود حديث مبارك دلالت هم په دې باندې دی.

بخاری او مسلم کښې دی چه حضرت عثمان رضی الله عنه د اودس کولو په وخت کښې خپله ښئ پښه کعبينو سره اووينځله،بيا ئې ګسه پښه اووينځله،([3])دغه شان بخاری شريف کښې تعليقا په صيغه د جزم او صحيح ابن خزيمه او سنن ابو داود کښې دی چه خمونږ طرفته متوجه کيدو نه پس نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه خپل صفونه درست کړئی،درې ځل ئې دا اوفرمائيل،او بيا ئې قسم اوخوړو چه په الله قسم تاسو خپل صفونه درست کوئی ګنی الله ﷻ به ستاسو زړوه کاږه کړی.حضرت نعمان بن بشير رضی الله عنه راوی وائی چه دا اوشو چه هر سړی به د خپل ملګری ګيټئ سره ګيټئ او او اوګې سره اوګه يو ځائې کوله،([4])ددې روايت نه صفا معلومه شوه چه کعبين د هغه هډوکی نوم نه دې چه د قدم شا طرفته وی.ځکه چه د هغې يو ځائې کول د دوؤ سړو دپاره ممکن نه دی.بلکه دا هغه دوه هډوکی دی چه د پنډئی په خاتمه کښې دی ،او هم دا د اهل سنت مذهب دې.

---

[1] ) صحيح مسلم کتاب الطهارة باب التوقيت فى المسح على الخفين:٢٧٦.

[2] ) صحيح بخارى كتاب النكاح باب نهى النبى ﷺ عن نكاح المتعة اخيرا: ٥١١٥، صحيح مسلم :١٤٠٧، ترمذى:١٧٩٤، ابن ماجه:١٩٤١، ابن حبان:٤١٤٠ بيهقى:٢٠١/٧.

[3] ) صحيح بخارى كتاب الوضوء باب الوضوء ثلاثا ثلاثا:١٥٩

[4] )صحيح بخارى كتاب الاذان باب الزاق المنكب المنكب والقدم بالقدم فى الصف تعليقا قبل حديث:٧٢٥، ابوداود:٦٦٢ دارقطنى:٢٨٢/١.

ابن ابی حاتم کښې يحيى بن حارث نه منقول دی چه د زيد کوم ملګری شيعه قتل شوی وو هغوی ما کتلی وو ،نود هغوی ګيتې مې د دقدم په شا اوليدې ،دا د دوی لږ قدرتی سزا وه چه د دوی د مرګ نه پس ظاهره شوه ،او د حق دمخالفت او د حق د پټولو سزا ورته ملاؤ شوه.

**قوله تعالى::** وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَىٰ

**دتيمم حكم:-** دې نه پس د تيمم صورتونه اود تيمم طريقه هم بيان شوې ده،ددې پوره تفسير په سورة نساء کښې تيرشوې دې،په دې وجه دې ځائې کښې نه بيانيږی .د تيمم د آيت شان نزول هم هلته بيان شوې دې.

**دعائشې ﷺ هار روکيدل:-** خوامیرالمومنين فی الحديث حضرت امام بخاری ﷫ ددې آيت متعلق په خصوصيت سره يو حديث مبارك نقل کړی دی هغه واورئ. حضرت عائشه ﷞ بيان فرمائی چه خما د غاړې هار په بيداء کښې پريوتو ،مونږ مدينې ته داخليدو والا وو چه نبی کريم ﷺ خپله سورلی اودروله او خما په غيږ کښې ئې خپل سرمبارك کيخودو او اوده شو.په دې کښې خما پلار حضرت ابوبکرصديق ﷜ راغلو او ما ته په غصه شو چه تا هار ورك کړو او خلق دې ايسار کړل.او په ما ئې څوکنډارې لګولې اودې سره ماته تکليف کيدو،خو په دې خيال نه خوزيدم چه د نبی کريم ﷺ خوب کښې به خلل راشی.هرکله چه نبی کريم ﷺ پاسيدو او د سحرد مونځ وخت شو او اوبه تلاش کړې شوې نو اوبه ملاؤ نشوې په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو. حضرت اسيد بن حضير اوفرمائيل چه اَئې آل ابوبکر ! الله ﷻ تاسو خلق بابرکت پيدا کړی يئ،تاسو دوی دپاره تول په تولو بابرکت يئ([1]).

**قوله تعالى::** مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ

**په امت باندې اسانتيا:-** بيا بيان فرمائی چه الله ﷻ تاسو باندې څه تنګی نه راولی بلکه تاسو دپاره دين آسانوی.سخت او مشکل کوی ئې نه ،حکم خو دا وو چه تاسو اوبو سره اودس کوئی خو کله چه اوبه نه وی يابيماری وی نو تاسوته د تيمم کولو اجازت دی.باقی احکام د احکامو په کتابونو کښې اوګورئ.بلکه د الله ﷻ غوښتنه دا ده چه هغه تاسو پاك کړئی او تاسو ته پوره پوره نعمتونه درکړی.چه تاسو د هغه په رحمت باندې شکر ادا کړئی او د هغه په توسيع احکام اود هغه ذات په رحمت اواجازت باندې د هغه شکر ادا کړئی .

**د اودس نه پس دعا كول:-** د اودس د ذکر کولو نه پس د الله رسول ﷺ يو دعا اوکړه اوهغه د دې آيت مبارك ماتحت ده.مسند سنن او صحيح مسلم کښې د عقبه بن عامر ﷜ نه روايت دې چه مونږ به نمبر په نمبر اوښان څرول،څه په خپل نمبر کښې دماسختن په وخت کښې لاړم نو څه ګورم چه نبی کريم ﷺ ولاړ دې خلقو ته څه فرمائی ،چه هرکله څه هلته اورسيدم نو ما دا واوريدل چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم کس په ښه شان اودس اوکړی او بيا دوه رکعته مونځ اداکړی نو دده دپاره جنت واجب شو. ما اووئيل چه واه واه دا څه ښه خبره ده،خما نه مخکښې يو صاحب ناست وو ،هغه چه دا واوريدل نو وې وئيل چه د دې نه مخکښې نبی کريم ﷺ کومه خبره کړې ده هغه ددې نه هم بهتره ده.ما چه کله غور اوکړو نو هغه حضرت عمرفاروق ﷜ وو.وې فرمائيل چه ته اوس اوس راغلې ستا نه مخکښې چه نبی کريم ﷺ څه فرمائيلی دی (هغه دادی) چه کله يو سړې ښه شان سره اودس اوکړی بيا ﴿اشهدان لااله الا الله واشهدان محمدا عبده ورسوله﴾ اووائی نو دده دپاره د جنت اته واړه دروازې بيرته شی.چه په کومه داخليدل غواړې نوداخل دې شی ([2]).

---

[1] ) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة المائدة باب قوله(فلم تجدا ماء فتيمموا صعيدا طيبا):٤٦٠٨.

[2] ) صحيح مسلم کتاب الطهارة باب الذکر المستحب عقب الوضوء:٢٣٤، ابوداود: ١٦٩، باب الخروج الخطايا مع ماء الوضوء: ٢٤٤، ترمذی :٢،مؤطا امامالک:٣٢/١، احمد: ٣٠٣/٢، ابن حبان: ١٠٤٠.

**په اودس د ګناهونو معاف کیدل:-** اویو روایت کښې دي چه کله ایمان او اسلام والا اودس دپاره کینی نو کله چه دې مخ وینځي نو د سترګو ټول ګناهونه اوبو سره یا د اوبو آخري څاڅکي سره لاړشي .دغه شان دلاسونو د وینځلو په وخت کښې دلاسونو ټول ګناهونه لاړشي او دغه شان د پښو وینځلو سره د پښو ټول ګناهونه لاړ شي او دې دګناهونو نه بالکل پاک شي .(١)

ابن جریر کښې دي چه کوم سړې اودس اوکړي او کله دې خپل لاسونه یا پښې وینځي نو دده ګناهونه لرې شي،دمخ وینځلو سره دده نه ګناهونه لاړشي ،د سر مسح کولو سره د ده ګناهونه لاړشي،د پښو وینځلو سره ددې ګناهونه لاړشي.بل سند کښې دسر د مسح ذکر نشته دې .(٢)ابن جریر کښې دي چه کوم سړې ښه شان سره اودس اوکړي اومونځ دپاه اودریږي نو دده د غوږونو نه،دده دلاسونو نه ،دده د سترګو نه او دده د پښو نه ټول ګناهونه جدا شي (٣)صحیح مسلم شریف کښې دي چه اودس نیم ایمان دې.الحمدلله ونیلو سره د نیکۍ چابړې ډک شي،قران یا ستا د موافقت دپاره دلیل دې یا ستا خلاف دلیل دې،هر سړې سحر سحر د خپل نفس خریدو فروخت کوي،نو یا خو خپل ځان آزاد کړي یا هلاک کړي(٤) اوحدیث مبارك کښې دي چه د حرام مال صدقه الله ﷻ نه قبلوي ،اوبې اودسه مونځ نه قبلیږي (٥).(صحیح مسلم). دا روایت ابوداود ،طیالسي،مسند احمد ،نسائي،ابن ماجه کښې هم دي (٦).

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | وَاذْكُرُوْا |
| | | | | | او یاد کړئ |
| | | | | | اود الله تعالی هغه |
| نِعْمَةَ اللهِ | عَلَيْكُمْ | وَمِيْثَاقَهُ | الَّذِيْ | وَاثَقَكُمْ | |
| نعمت دالله | په تاسو باندې | او وعده د هغه | هغه | چې محکموالې کړې دې الله ستاسو سره | |
| نعمتونه یاد کړئ | اکوم چې ئې په تاسو کړې دی | اوستاسو نه یې چې | کومه پخه وعده اخستې ده(هغه مه هیروئ) | | |
| بِهٖٓ | إِذْ قُلْتُمْ | سَمِعْنَا | وَاَطَعْنَا | وَاتَّقُوا اللهَ | إِنَّ اللهَ |
| په هغې | ایعنی کله چې اوونیل تاسو | اوریده مونږ | او اومنله مونږ | او اویریږئ دالله نه | بیشکه الله |
| څه وخت چې تاسو اوؤنیل چې مونږ واوریدل او مونږ اومنل | | | | او الله ﷻ نه ویره کوئ | او الله ﷻ |
| عَلِيْمٌ | بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۞ | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | كُوْنُوْا | |
| ښه عالم دې | په رازونو د زړونو | ائې هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | اوسیږئ | |
| دزړونو په پټو خبرو هم خبر دې | | ائې دایمان خاوندانو | دالله دپاره | | |

(١) احمد:٢٣٤/٤، ددې سند صحیح لغیره درجه کښې دې

(٢) احمد:٢٣٤/٤، ددې سند صحیح لغیره درجه کښې دې

(٣) الطبری : ٨٦/١٠، احمد: ٢٥٢/٥، وسنده ضعیف.وهو صحیح بالشواهد مجمع الزوائد: ٢٢٣/١.

(٤) صحیح مسلم کتاب الطهارة باب فضل الوضوء: ٢٢٣، ترمذی : ٣٥١٧، عمل الیوم واللیلة: ١٦٩، ابن ماجه: ٢٨٠، احمد:٣٤٢.

(٥) صحیح مسلم کتاب الطهارة : باب وجوب الطهارة للصلاة :٢٢٤، ترمذی: ١، احمد:٢٠/٢، بیهقی :٤٢/١.

(٦) احمد:٧٤/٥، ابوداؤد: کتاب الطهارة: باب فرض الوضوء:٥٩، وسنده صحیح،نسائی: ١٣٩، ابن ماجه:٢٧١.

قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ

محكم ولاړ|دپاره دالله| گواهي كونكي| په انصاف سره|اونه دي كړي باعث تاسو | دشمني

په سمه لاړ قائم اوسئ| او په انصاف سره گواهي وركوئ| او ديوې ډلې دشمني دې تاسو

قَوْمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعْدِلُوْا اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى

ديو قوم| په دې خبره| چې اونه كړئ انصاف تاسو| انصاف كوئ| دا انصاف | زيات نزدې دې| تقوى ته

په ظلم كولو باندې آماده نكړي| هميشه انصاف كوئ| ............داكار پرهيزگارۍ ته ډيرنزدې دې

وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ وَعَدَ اللّٰهُ

اواووېرېږئ دالله نه| بيشكه الله| خبردار دې| په هغو عملونو| چې كوئ ئې تاسو| وعده كړې ده الله

اوالله ﷻ نه وېرېږئ| بيشكه الله ﷻ ستاسو دټولو اعمالونه خبر دې| ...............الله هغه خلقو سره

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ

دهغه كسانو سره| چې ايمان راوړي| او عمل اوكړي نيك| دې دهغوئ دپاره | مغفرت

چې ايمان ئې راوړې دې| او نيك عملونه كوي دبښنې ................اود دلوئې بدلې

وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ

اوبدله| لويه |اوهغه كسان| چې كفر ئې اوكړو| اودروغ ئې اوگڼړل|آيتونه زمونږ| دغه كسان

وعده كړې ده| ....... اوچا چې انكار كړې دې| اوزمونږ آيتونه ئې دروغ گڼړلي دي|دغه كسان

اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ

ملگري د دوزخ دي| اې هغه كسانو |چې ايمان موراوړې دې| يادكړئ |احسان د الله

جهنميان دي| ............اې مومنانو ! دالله ﷻ هغه احسان يادكړئ| څه وخت چې يوې

عَلَيْكُمْ اِذْ هَمَّ قَوْمٌ اَنْ يَّبْسُطُوْٓا اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ

په تاسو| چې كله اراده اوكړه| يو قوم| چې را اوږده كړي| تاسو ته | لاسونه خپل

يوې ډلې په تاسو باندې د لاس اوچتولو اراده اوكړه ......................................

فَكَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَعَلَى اللّٰهِ

نو منع كړل الله |لاسونه دهغوئ| ستاسو نه | او اووېرېږئ دالله نه | او خاص په الله باندې

نوالله دهغوئ لاسونه ستاسونه بندكړل| اوالله ﷻ نه وېره كوئ| او په الله ﷻ باندې دې

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ

توكل كار دې| مومنانو لره|

مومنان بهروسه اوكړي

قوله تعالى:: وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمِيثَاقَهُ الَّذِي وَاثَقَكُم بِهِ إِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا

**د عدل او انصاف حکم** -الله تعالى دا عظيم دين او خپل رسول ﷺ راوليږل او الله ﷻ په دې امت ډير لوئي احسان اوكړو او اوس ورته هغه يادوى، اوددې وعدې د مضبوطولو هدايت ورته كوى. اودا وعده مسلمانانو دالله ﷻ د پيغمبرد تابعدارئى او مدددكولو، دين باندې د قائم اوسيدو، ددې د قبلولو او نورو ته د دې درسولو وه. د اسلام راوړلو په وخت كښې به هرمومن ددې د بيعت كولو اقرار كولو، نو د صحابه كرام ﷺ الفاظ دى چه مونږ نبى كريم ﷺ نه بيعت اوكړو چه مونږ به آورو اومنو به .كه زړه مو غواړى اوكه نه. اګرچه مونږ ته نورو باندې ترجيح وركړې شى اودا چې د يو لائق سړى نه به مونږ يو كار نه اخلو يعنى هغه به د خپلې عهدې او منصب نه نه معزوله كوو. (١)

**دايمان راوړلو ترغيب:-** ①دالله ﷻ ارشاد دې چه تاسو ولې ايمان نه راوړئى ؟ حالانكه تاسو ته د الله رسول ﷺ د ايمان راوړلو دعوت دركوى اوهغه ستاسو نه وعده اخستې ده كه تاسو ته يقين وى. ②داهم وئيلې شوى دى چه دې آيت مبارك كښې يهودو ته يادولې شى چه ستاسو نه د نبى كريم ﷺ د تابعدارئى وعدې اخستې شوى دى، بياددې څه مطلب چه تاسو نبى كريم ﷺ نه منئ ؟ ③دا هم وئيلې شوى دى چه د حضرت آدم ﷺ د شا نه د راتلو په وخت كښې چه الله ﷻ ستاسو نه كومه وعده اخستې وه هغه ورته يادوى اودا ئې فرمائيلى وو چه آيا څه ستاسو رب نه يم ؟ ټولو اقرار كړې وو چه مونږ په دې باندې ګواه يو .ليكن ړومبې قول زيات صحيح دې. حضرت سدى رحمه الله او حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ نه هم دا مروى دى، او امام ابن جرير رحمه الله هم دې ته مختار وئيلى دى. په هر حال كښې انسان ته پكار دى چه د الله ﷻ نه ويريږى، ځكه چه الله ﷻ د زړونو او سينو رازونو نه ښه واقف دې.

قوله تعالى:: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ

**په اولاد كښې عدل كول:-** اې ايمان والو ! خلقو ته د خودنې دپاره نه بلكه د الله ﷻ دپاره په حق قائم اوسئ او عدل سره صحيح ګواه جوړ شئ. بخارى او مسلم شريف كښې د حضرت نعمان بن بشير ﷺ نه روايت دې چه ځما پلار ماته يو عطيه راكړې وه، ځما مور عمره بنت رواحه رضي الله عنها اووئيل چه څه به تر هغه وخت پورې مطمئنه نشم چه ترڅو ته په دې نبى كريم ﷺ ګواه نكړې .ځما پلار د نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شو او ټوله واقعه ئې ورته بيان كړه نو نبى كريم ﷺ تپوس اوكړو چه آيا تا خپل ټول اولاد ته هم دغه شان عطيې وركړې ده ؟ نو هغه اووئيل چه نه، نو نبى كريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه د الله ﷻ نه ويريږه اوخپل اولاد كښې عدل كوه او څه ظلم ګواه نه جوړيږم. نو ځما پلار هغه صدقه واپس كړه. (٢)

قوله تعالى:: وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَىٰ أَلَّا تَعْدِلُوا ۚ اعْدِلُوا

**د دشمنئ په وجه د عدل نه نه اوړيدل:-** بيا فرمائى چه د دښمنئ په وجه د عدل نه مه روستو كيږئى. كه دوست وى اوكه دښمن وى تاسو ته پكار دى چه د عدل نه كار واخلئ؛ دا تقوى ته زيات نزدې دې

قوله تعالى:: هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ

**د هو د ضمير مرجع:-** .د ﴿هو﴾ ضمير مرجع باندې دلالت فعل كړې دې. لكه ددې مثال قران پاك كښې نوروځايونوكښې هم شته .اوكلام عرب كښې هم شته دې، لكه بل ځائې كښې فرمائى چه ﴿وَإِن قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا فَارْجِعُوا ۖ هُوَ أَزْكَىٰ لَكُمْ ۚ﴾ يعنى كه تاسويوكور ته د تلو اجازت اوغواړئى اواجازت درته ملاؤ

---

(١)صحيح بخارى كتاب الفتن باب قول النبى ﷺ سترون بعدى اموراتنكروها:٧٠٥٦، صحيح مسلم: ١٨٤٠، احمد:٣٢١/٥، بيهقى :١٤٥/٨.

(٢) صحيح بخارى كتاب الهبة باب الاشهاد فى الهبة :٢٥٨٧، صحيح مسلم: ١٦٢٣، مؤطا امام مالك: ٧٥١/٢، ابن حبان: ٥١٠٠، بيهقى :١٧٦/٦.

نشي،بلکه اوونیلې شي چه واپس شئ نو تاسو واپس لاړشئ اوهم دا ستاسو دپاره زیاته پاکي ده.نو دلته هم د ﴿هو﴾ ضمیر مرجع مذکور نه دې خو د فعل دلالت موجود دې،یعنی واپس کیدل .هم داشان پورتنی آیت مبارك کښې یعنی عدل کول،دا هم یاد ساتئ چه دلته د ﴿أَقْرَبُ﴾ صیغه داسې موقع باندې ده چه بل طرفته هیڅ څیز نشته دې،لکه څنګه چه آیت مبارك کښې دی چه ﴿أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَأَحْسَنُ مَقِيلًا﴾ او لکه څنګه چه د حضرت عمر فاروق ﷺ وینا چه ﴿انت افظ واغلظ من رسول الله صلی الله علیه وسلم﴾ ([1]) دالله ﷻ نه ویریږه هغه ستا د عملونونه باخبردې،هغه به ستا خیر او شر پوره بدله درکوي.هغه پاك ذات ایمان والو،نیکانو خلقو سره د دوی دګناهونو بخښلو او دوی ته د اجر عظیم ورکولو او د جنت ورکولو پوره وعده کړې ده.یعنی دوی به دا اصل کښې جنت د الله ﷻ په فضل سره حاصلوی .خو د رحمت د توجه سبب به د دوی نیك اعمال وی،نو حقیقت کښې هر لحاظ سره قابل تعریف او قابل ستائش الله ﷻ دې .اودا ټول هرڅه د الله ﷻ فضل اوکرم دې .دحکمت او عدل تقاضا هم دا وه چه ایماندارو او نیکانو خلقو ته جنت ورکړی،او کافران جهنم ته اولیږي،نو هم داشان به کیږي.

قوله تعالی: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾

**د ایت شان نزول:**- اوبیا خپل یو بل نعمت وریادوی، د هغې تفصیل دا دې حضرت جابر ﷺ فرمائی چه نبی کریم ﷺ یو ځائې کوز شو او خلق یو خوا بل خوا د سیورو تلاش کښې شو،نبی کریم ﷺ خپله وسله اوویستله او یو ونې ته نې زوړنده کړه،یو اعرابی راغلو او هغه د نبی کریم ﷺ توره خپل لاس کښې واخسته،او د نبی کریم ﷺ مخکښې اودریدو او وې ونیل چه اوس وایه تا به څما نه څوك خلاصوی ؟ نو نبی کریم ﷺ جواب کښې اوونیل چه الله ﷻ.هغه بیا دا سوال اوکړو او نبی کریم ﷺ ورته بیا هم دا جواب ورکړو،په دریم ځل جواب سره دده لاس نه تورا اوغرزیده.نو نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته آواز اوکړو،اوکله چه هغوئ راغلل نو نبی کریم ﷺ ورته ټوله واقعه بیان کړه،اعرابی په هغه وخت کښې هم موجود وو. خو نبی کریم ﷺ د هغه نه هیڅ بدله وانخستله. حضرت قتاده ﷺ فرمائی چه څه خلقو په دهوکه نبی کریم ﷺ قتل کول غوښتل او هغوئ د اعرابی د دې دپاره لیږلې وو.خو الله ﷻ هغه ناکام او نامراد کړو ([2])،فالحمد لله.

ددې اعرابی نوم صحیح احادیث کښې غورث بن حارث راغلې دې .حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه یهودیانو نبی کریم ﷺ او د نبی کریم ﷺ د ملګرو د قتل کولو ارادې سره په خوراك کښې زهر ګډ کړل او دوی ته نې دعوت ورکړې وو خو الله ﷻ په دې نبی کریم ﷺ خبر کړو. او دوی ټول بچ شو. دا هم ونیلې شوی دی چه کعب بن اشرف او دده یهودی ملګرو نبی کریم ﷺ خپل کور ته رابلل او دوی ته نې تکلیف رسول غوښتلی وو.

**د نبی کریم ﷺ د قتل مختلفې منصوبې:**- ابن اسحاق ﷺ فرمائی چه ددې نه مراد د نبی نضیر هغه خلق وو چه کومو د ژرندې کانړې د پورته قلعې نه په نبی کریم ﷺ راغورزول غوښتلی وو.او نبی کریم ﷺ د عامری خلق د دیت اخستو دپاره هغوئ ته ورغلې وو او نو دې شریرانو عمرو بن حجاش بن کعب په دې کار کولو راضی کړې وو.خو الله ﷻ لار کښې نبی کریم ﷺ د دې شریرو د شرارت نه خبر کړل.نبی کریم ﷺ خپلو اصحابو ﷺ سره واپس شو. هم د دې ذکر په دې آیت مبارك کښې دې .مومنانو ته پکار دی چه

[1] ) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق: باب صفة ابلیس وجنوده: ٣٢٩٤، صحیح مسلم: ٢٣٩٦.

[2] ) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الرقاع: ٤١٣٥، صحیح مسلم: ٨٤٣، بتصرف یسیر:،عبدالرزاق : ١٨٥/١. احمد: ٣٦٤/٣، ابویعلی : ١٧٧٨، ابن حبان: ٣٨٨٣.

به الله ﷻ بهروسه اوساتی .کفایت کولو والا او حفاظت کولو والا صرف هغه الله ﷻ دي .دې نه پس نبی کریم ﷺ دالله ﷻ په حکم د بنو نضیر محاصره اوکړه اوڅه خلق ئې قتل کړل او باقی جلاوطن کړې شو.

وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ۚ

| اوپه تحقیق | اخستلي وه الله | پخه وعده | دنبی اسرائیلو نه

او الله ﷻ د بنی اسرائیلو نه پخه وعده اخستې وه

وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا ۖ وَقَالَ اللَّهُ إِنِّي مَعَكُمْ ۖ

اواولیږل مونږه | دهغوئ نه | دولس | مشران | اواووئیل الله | بیشکه زه | ستاسو سره یم

اومونږ په دوی دولس سرداران مقرر کړې وو| اوالله ﷻ ورته وئیلی وو| چې زه تاسو سره مل یم

لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَوٰةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكَوٰةَ وَآمَنتُم بِرُسُلِي

که چرې | قائم اوساتو تاسو مونځ | او ورکړو تاسو زکاة | اوایمان راوړو تاسو | په رسولانو زما -

که تاسومونځ کوئ | ..................... او زکاة ورکوئ | او زما په پیغمبرانو ایمان راوړئ

وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّأُكَفِّرَنَّ

او مدد مو اوکړو دهغوئ |اوقرض مو ورکړو | الله له | قرض | ښه |نوخامخا به زه لرې کړم

اودهغوئ مدد کوئ | او الله تعالی ته موقرض حسنه ورکړو | نومونږ به ستاسو نه

عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّـٰتٍ تَجْرِي

ستاسو نه | گناهونه ستاسو |اوخامخا به زه داخل کړم تاسو|داسې باغونو ته| چې بهیږی به

ستاسوگناهونه اوړوو| اوتاسو به داسې باغونو ته داخل کړوا چې دهغې لاندې به

مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَـٰرُ ۚ فَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ مِنكُمْ

لاندې د هغې نه | نهرونه| نو هغه څوك | چې انکار ئې اوکړو| روستو ددې نه | ستاسونه

(څلور قسمه) ولې بهیږی | اوچا چې ددې نه پس هم کفر اوکړو

فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيلِ ﴿١٢﴾ فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَـٰقَهُمْ

نو په تحقیق| اورکه یې کړه | نیغه | لار | نوپه سبب| دماتولودهغوئ| دپخې وعدې دهغوئ

نویقینا هغه د نیغې لارې نه بې لارې شو | ......بیافقط دوعدې دماتولو په وجه مونږ په دوئ

لَعَنَّـٰهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَـٰسِيَةً ۖ يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ

لعنت اوکړو مونږ په هغوئ | اوگرځول مونږه | زړونه دهغوئ | سخت |بدلوی هغوئ | خبره

لعنت اوکړو | او د دوی زړونه مو سخت کړل | (نو اوس په توراة کښې تحریف کوی،کلمې دخائې نه

عَن مَّوَاضِعِهِۦ ۙ وَنَسُوا۟ حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا۟

دخایونو خپلو نه |او هیره کړې ده هغوئ | یوه حصه | دهغې نه | چې نصیب شوې وؤهغوئ ته

بې خایه کوی| او چې کوم نصیحت ورته شوې وؤ| دهغې لویه حصه ئې هیره کړې ده

بِهٖ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ اِلَّا قَلِيْلًا

په هغې سره|اوهمیشه به نې تهٔ| چې خبریږې به تهٔ|په یوخیانت سره |دهغوی نه| سوا د |لږو کسانو

اوهمیشه به تهٔ ددوی په خیانتونو خبریږې | ........مګر لږ کسان په کښې داسې دی چې (ددې عیب نه)بچ دی

مِّنْهُمْ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ۝

دهغوی نه|نومعاف کړه |هغوی |او مخ اوګرځوه | بیشکه الله | خوښوی | احسان کونکی

نودوی معاف کړه| اوسترګې پرې پټې کړه | بیشکه الله تعالی نیکان خلق خوښوی

وَمِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰٓى اَخَذْنَا مِيْثَاقَهُمْ

او دهغه کسانونه | چې وئیلی وؤ هغوی | چې بیشکه مونږه | نصاری یو|اخستلی وه مونږه| پخه وعده دهغوی

(دغه شان) مونږ دهغې کسانونه هم وعده اخستې وه | چې وئیل یې مونږ عیسایان یو

فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ص فَاَغْرَيْنَا

نوهیره کړه هغوی|ډیره حصه|دهغه سبق نه|چې نصیب شوې وه هغوی ته|په هغې سره| نواوکرله مونږه

نوهغوی د هغه تعلیم لویه حصه هیره کړه په کوم چې ورته نصیحت کولې شو | ............نومونږ

بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ؕ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ

په مینځ دهغوی کښې| دشمنی |اوبغض وکینه| ورځې دقیامت پورې| او زر به | خبر ورکړی هغوی ته

ددوی په مینځ کښې ترقیامته پورې دشمنی او کینه واچوله| .............اوډیر زر به ورته

اللّٰهُ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ۝

الله | په هغه کارونو | چې وؤ هغوی | چې کول به نې

الله ﷻ د دوی د عملونو خبر ورکړی|

**قوله تعالی:: وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۚ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا**

**سابقه ایاتونو سره ربط:-** پورته آیتونو کښې الله ﷻ خپلو مومنانو بندګانو ته د وعدو پوره کولواو په حق د ولاړې اوسیدو ،دعدل اود شهادت حکم ورکړې وو ،او دې سره ئې ورته خپل ظاهری او باطنی نعمتونه هم ورپه یاد کړی وو. نواوس دې آیتونو کښې د دوی نه مخکښې اهل کتابوسره چه کومه وعده شوې وه هغه یادوی ددې حقیقت اوکیفیت بیانوی بیا چه کله هغوی الله ﷻ سره کړې وعدې ماتې کړې نود هغوی څه حال وو ،د دې بیانولو سره مسلمانان د وعده خلافئ نه منع کوی .

**د دولسو سردرانو نومونه:-** ددوی دولس سرداران وو. یعنی د دولسو قبیلو دولس سرداران وو چه دوی به د هغوی نه بیعت کولو ،دوی دالله اورسول فرمانبردار وو ،او دکتاب الله اتباع کوونکی پاتې شوی وو .هرکله چه موسی ﷺ سرکشو سره د جهاد دپاره تلو نو دوی کښې ئې یویو سردار منتخب کړې وو .د روبیل قبیلې سردار شامون بن رکون وو. اودشمعونیانو سردارشافاط بن حری وو ،د یهوذا کالب بن یوفنا ،داتین میخائیل بن یوسف ،د افرایم یوسف بن نون او د بنیامین قبیلې سردار فلطم بن وفون او زبون جدی بن شوری او منشا جدی بن موسی او د دان خملائیل بن حمل او اشار ساطور وو ، د

نفتالي بحر اویساخر کالایل دتوراة په څلورم جزء کښې دبنی اسرائیلو د قبیلو د سردارانو نومونه مذکور دی .اوهغه ددې نومونو نه لږ شان مختلف دی. والله اعلم.
د موجوده توراة نومونـه دادی.بنوروبیـل بانـدې یـصور بـن سـادون،بنو هاشـم بانـدې شـموال بـن صورشکی،بنو یهوذا باندې حشون ابن عمیاذاب،بنو یساخر باندې شال بن صاعون،بنو بولون باندې الیاب بن حالوب،بنو افرایم باندې منشا بن عمنهور،بنو منشا باندې حملیانل،بنو بنیامین باندې ابیدن،بنو دان باندې جعیذر،بنو اشار بادندې تحایل،بنو کان باندې سیف بن دعوابیل،بنو نفتالی باندې اخبرع.
**د لیلة العقبه د شرکاوو نومونه:-** دا یاد ساتئ چه «لیلة العقبة» کښې چه کله نبی کریم ﷺ انصارو نه بیعت اخستې وو نو په هغه وخت کښې هم د دوی سرداران دولس وو. درې د قبیله اوس حضرت اسید بن حضیر ﷺ،حضرت سعد بن خثیمه ﷺ او حضرت رفاعه بـن عبدالمنذر ﷺ.بعضو روایتونوکښې ددوی په ځاې د حضرت ابوالهیثم بن تیهان ﷺ نوم دې.اونهه سرداران د قبیله خزرج وو،ابو امامه اسعد بن زراره ﷺ،حضرت سعد بن ربیع ﷺ،حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ،حضرت رافع بن مالك بن عجلان ﷺ،حضرت براء بن معرور ﷺ،حضرت عباده بن صامت ﷺ،حضرت سعد بن عباده ﷺ،حضرت عبدالله بن عمرو بن حرام ﷺ،حضرت منذر بن عمر بن حنیش ﷺ،دې سردارانو د نبی کریم ﷺ نه د آوریدو او د منلو بیعت کړې وو.
**د امت د خلفاوو تعداد:-** حضرت مسروق رحمه الله فرمائی چه مونږ خلق حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ سره ناست وو،دوی په هغه وخت کښې مونږ ته قران پاك خودلو،یو سړی سوال اوکړو چه تاسو نبی کریم ﷺ نه تپوس کړې دې چه ددې امت به څومره خلفاء وی ؟ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ اوفرمائیل چه کله نه عراق ته راغلې یم نو ستا نه سوا هیچا د اسوال نه دې کړې،مونږ دې باره کښې نبی کریم ﷺ نه سوال کړې وو نو نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه دولس به وی.په شمیر د بنی اسرائیلو د نقیبانو وه.([1]) دا روایت د سند لحاظ سره غریب دې.
خو د حدیث مضمون د بخاری او مسلم شریف عبارت نه هم ثابت دې.جابر بن سمره ﷺ فرمائی چه ما د نبی کریم ﷺ نه آور یدلی دی چه د خلقو کار به چلیږی ترکومې چه د دوی ولیان دولس نه شی،بیا نبی کریم ﷺ یو لفظ اوونیلو خو هغه ما واو نریدو،نوما خلقو نه تپوس اوکړو چه نبی کریم ﷺ دا بل کوم یو لفظ اوونیلو نو خلقو اوونیل چه دا ټول به د قریشو نه وی([2]).
**دولس خلفاء به کله وی:-** صحیح مسلم کښې ددې حدیث مبارك هم دا مطلب دې چه دولس خلفاء به نیك بخت وی چه په حق به قائم وی اوخلقو کښې به عدل کوی.ددې نه دا ثابت نه دی چه دا به پرله پسې وی،نو څلور خلفاء خو پرله پسې شو،حضرت ابوبکر صدیق ﷺ،حضرت عمرفاروق ﷺ،حضرت عثمان ﷺ،حضرت علی ﷺ،او چه د چا خلافت د نبوت طریقه وو په هغه دولسو کښې حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله دې.بنو عباس کښې هم بعضې داشان خلفاء تیر شوی دی او د قیامت نه مخکښې مخکښې د دوی شمیر دولس پکاردې .او هم په دوی کښې حضرت امام مهدی رحمه الله هم دې چه د هغه بشارت احادیثو کښې راغلې دې،د هغه نوم به د نبی کریم ﷺ نوم سره یو شان وی،دهغه د پلار نوم به د نبی کریم ﷺ د پلار د نوم په شا ن وی. زمکه کښې به عدل اوانصاف راشی .اوددوی نه مخکښې به ډیر زیات ظلمونه شوی وی.اوددې نه د شیعه حضراتو امام منتظر مراد نه دې.د هغه خو هډو حقیقت نشته دې اونه د هغه څه وجود شته دې بلکه دا خو صرف د شیعه حضراتو وهم او خیال

[1]) احمد : ٣٩٨/١، مسند ابی یعلی :٥٠٣١، مسندالبزاز: ١٥٨٦، طبرانی : ١٠٠٣١، مجمع الزوائد: ١٩٣/٥.
[2]) صحیح بخاری کتاب الاحکام باب : ٧٢٢٢، صحیح مسلم : ١٨٢١، ابوداؤد: ٤٢٧٩.

دي.اونه ددې حديث مبارك نه د شيعه حضراتو د فرقې اثنا عشريه مراد ده. دا حديث په ائمه باندې محمول كول هم دشيعه حضراتو جوړه كړې شوې خبره ده. اودا د هغوئ دكم عقلئ او د جهالت نښه ده.

**د شيعه ګانو د دولسو امامانو د عقيدې ترديد:-** توراة كښې د حضرت اسماعيل ﷺ بشارت سره دي چه د دوی نسل كښې به دولس لوئي سرې وي.د دې نه مراد هم د دې قريشو دا دولس بادشاهان مراد دي. خوچه كوم يهوديان مسلمانان شوی وو او هغوئ په خپل اسلام كښې كچه او دې سره جاهل هم وو ،هغوئ د شيعه ګانو غوږ كښې دا خبره اچولې وه اوهغوئ ددې نه مراد ددوی دولس امامان اخستی وو ،ګنې احاديثو كښې ددې نه صفا خلاف موجود دی.

**قوله تعالى:: وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّیْ مَعَكُمْ ؕ لَىٕنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَاٰتَیْتُمُ الزَّكٰوةَ وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِیْ**

**د يهوديانو د وعدې ماتول:-** اوس دهغه وعدې ذكر كيږی چه كومه الله ﷻ يهودو نه اخستې وه چه تاسو به مونځ كونی،زكوة به وركوئی،د الله ﷻ درسولانو تصديق به كوئی،د هغوئ مدد به كونی،اودالله ﷻ مدد او نصرت به هغوی سره وی .ددوی ګناهونه به معاف وی .او دوی به جنتيانو كښې داخل وی .مقصد به حاصل شی او د دوی نه به ويره لرې شی .خو كه د دې وعدې نه بيا هم واوړيدل او ددې خلاف ئې اوكړو نو دوی به حق نه لرې شی .وزك او لرې به پريوځی .نوهم داشان اوشو،دوی ميثاق مات كړو او وعده ئې ماته كړه،نو په دوی باندې دالله ﷻ لعنت اوشو. هدايت نه لرې شو،د دوی زړونه سخت شو،د وعظ او پندو نصيحت نه خروب نه شو، ددوی پوهه ختمه شوه.دالله ﷻ خبرو كښې ئې تاويلونه شروع كړل،چه كوم حقيقت مراد وو هغې نه ئې كلام الله كښې خلاف اوكړو او ددې نه ئې نور نور مطلبونه واخستل،او د الله ﷻ نوم به ئې اخستو او هغه مسائل به ئې بيانول چه كوم دوی ته الله ﷻ نه وو خودلی. اوتردې چه د دوی دلاسونو نه دالله ﷻ كتاب پريوتواو دوی نه صرف بې عمله بلكه بې رغبته هم شو. د دين اصل چه كله ددوی د لاسونو نه پريوتو نو بيا فروعی عمل څنګه قبليدې شی ؟ د عمل ختميدو په وجه نه د دوی زړونه صحيح شو اونه د دوی فطرت صحيح شو،او نه د دوی اخلاص پاتې شو اودوی مكاری او دهوكه خپله طريقه جوړه كړه،د نبی ﷺ او صحابه كرام ﷺ خلاف نوی نوی محاذونه پرانيستې كيدل.بيا دالله ﷻ نبی ته حكم اوشو چه تاسو په دې سترګې پټې كړنی هم دا معامله دوی سره ښه ده لكه څنګه چه حضرت عمرفاروق ﷺ نه مروی دی چه څوك تاسره دالله ﷻ د فرمان خلاف اوكړی نو دوی د الله ﷻ د حكم ماتحت كړنی،په دې كښې يو لوئې مصلحت دا وو چه ممكن دی چه د دوی زړونه صحيح شی او دوی ته هدايت نصيب شی .او حق طرفته راشی. الله ﷻ احسان كونكو سره دوستی كوی .يعنی د نورو د بدسلوكئ نه چشم پوشی كوی او نيك سلوك كولو والا د الله ﷻ دوست دې .حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه د معاف كولو حكم د جهاد آيت مبارك سره منسوخ شوې دی [1].

**قوله تعالى:: وَمِنَ الَّذِیْنَ قَالُوْۤا اِنَّا نَصٰرٰۤی اَخَذْنَا مِیْثَاقَهُمْ**

بيا ارشاد دې چه ددې نصرانيانونه هم مونږ وعده اخستې وه چه كوم رسول راځی دوی به په هغه ايمان راوړی.د هغه مدد به كوی،اود هغه خبره به آوری،خو دوی هم د يهوديانو په شان وعده خلافی اوكړه،اوددې سزا كښې مونږ دوی كښې خپلو كښې دشمنی واچوله چه ترقيامته پورې به جاری وی.دوی كښې فرقې فرقې جوړې شوې چه يو بل ته ئې كافر وئيل .اوخپلو عبادت خانو ته هم نه راځی.ملكانيه فرقه،يعقوبيه فرقې او يقوبيه فرقې ته ښكاره كافر وئيل.داشان نورې فرقې هم وې دوی ته د دوی داعمالو په وجه پوره تنبيه وركړې شوه .دوی هم د الله ﷻ نصيحتونه هيركړل .اوالله ﷻ

---

[1]) الطبری: ١٣٤/١٠

باندې نې تهمتونه اولګول، او وې وئيل چه د الله تعالى ښځه او اولاد شته دې، دوى به د قيامت په ورځ ډېر خراب رانيولې شى. الله ﷻ واحد فرد ﴿الصَّمَدُ ۚ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ۚ وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ ﴾ دې.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَاَهْلَ الْكِتٰبِ | | | | | | | قَدْ |
| انې اهل كتابو | په تحقيق سره | | | | | | |
| انې اهل كتابو! يقينا | | | | | | | |
| جَآءَكُمْ | رَسُوْلُنَا | يُبَيِّنُ | لَكُمْ | كَثِيْرًا | مِّمَّا | كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ | |
| درغلې دې تاسو ته | رسول زمونږ | چې بيانوى | تاسو ته | ډېرې | هغه خبرې | چې تاسو به پټولې | |
| تاسو ته زمونږ رسول راغلې دې او دكتاب هغه ډېرې خبرې نې درته ښكاره كړې دى | | | | | | | |
| مِنَ الْكِتٰبِ | وَيَعْفُوْا | عَنْ كَثِيْرٍ | قَدْ جَآءَكُمْ | مِّنَ اللّٰهِ | نُوْرٌ | | |
| د كتاب نه | او معافى كوى | د ډېرو (خبرو) نه | راغلې ده تاسو ته | د طرفه د الله نه | رڼا | | |
| كومې چې به تاسو پټولې او ډېرې داسې دى چې هغه نې نه بيانوى تاسو ته دالله ﷻ د طرفه يو رڼا راغلې ده | | | | | | | |
| وَّكِتٰبٌ | مُّبِيْنٌ | يَّهْدِىْ | بِهِ | اللّٰهُ | مَنِ | | |
| اوراغلې دې داسې كتاب | چې واضحه دې | چې ښايې | په هغې سره | الله | هغه چا ته | | |
| اوبوروښانه كتاب راغلې دې ........................ ددې په ذريعه الله ﷻ هغه چا ته | | | | | | | |
| اتَّبَعَ | رِضْوَانَهٗ | سُبُلَ السَّلٰمِ | وَيُخْرِجُهُمْ | مِّنَ الظُّلُمٰتِ | | | |
| چې پيروى كوى | د رضا د هغه | لارې د سلامتيا | او راوباسى هغوى لره | د تيارو نه | | | |
| دسلامتيا لارې ښائى چې چاته نې خوښه شى ........................ او هغوى د (كفر) د تيرونه | | | | | | | |
| إِلَى النُّوْرِ | بِإِذْنِهٖ | وَيَهْدِيْهِمْ | إِلٰى صِرَاطٍ | مُّسْتَقِيْمٍ | | | |
| رڼا ته | په حكم خپل سره | او هدايت كوى د هغوى | لارې | انيغې ته | | | |
| د (هدايت) رڼا ته راوباسى او په نيغه لار نې قائم ساتى | | | | | | | |

قوله تعالى: يَاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيْرًا مِّمَّا كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ

**د اهل كتابو علمى بد ديانتى:-** فرمائى چه رب تعالى خپل اوچتې مرتبې والا رسول حضرت محمد ﷺ هدايت او حق دين سره ټول مخلوق طرفته ليږلې دې، معجزې او روښانه دليلونه نې دوى ته وركړى دى چه كومې خبرې يهوديانو او نصرانيانو بدلې كړې وې، تاويلونه نې كړى وو. او نور مطلبونه نې جوړ كړى وو، او دالله ﷻ په ذات نې بهتان لګولو. د كتاب الله كومې حصې چه نې خپل خلاف موندې، هغه به نې پټولې، دا ټول هغه رسول ښكاره كړل، اوچه د كومو د بيان ضرورت شته دې دوى هغه نه بيانوى. مستدرك حاكم كښې دى چه چا د رجم د مسئلې انكار اوكړو نو هغوى لاعلمى سره قران پاك نه انكار اوكړو. نو دې آيت مبارك كښې هم د دې رجم پټولو ذكر دې. (١)

(١) حاكم: ٤/٣٥٩، امام حاكم دې ته صحيح وئيلى دى او امام ذهبى ددې موافقت كړې دې. صحيح ابن حبان الاحسان: ٤٤١٣ والسنن الكبرى للنسائى: ٧١٦٢، وسنده حسن.

**قوله تعالى:: قَدْ جَاۤءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّكِتٰبٌ مُّبِيْنٌ**

**د قران پاک صفتونه:-** بیاد قران عظیم باره کښې فرمانی چه هم هغه لونې ذات په نبی کریم ﷺ باندې خپل کتاب نازل کړو .اودغه قران هغه خلقو ته دسلامتیا لار ښانی چه کوم حق منی .خلق د ظلم نه منع کوی.اونور طرفته ئې بوځی او صراط مستقیم طرفته د دوی رهنمانی کوی.ددې کتاب په وجه د الله ﷻ انعامات حاصلول اود هغه د سزا ګانو نه بچ کیدل آسان شوی دی.دا ضلالت ختمونکې اوهدایت واضح کونکې کتاب دې .

| |
|---|
| لَقَدْ كَفَرَ |
| یقینا چې \| کفر اوکړو \| |
| بیشکه هغه کسان چې کافران دی |
| الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ؕ قُلْ فَمَنْ |
| هغه کسانو\| چې وایی \| چې بیشکه الله\| هم دا \| مسیح \| ځوئې دمریم دې\| اووایه ائې نبی \| نو څوک به |
| وائی چې الله ﷻ هم دغه مسیح دمریم ځوئې دې \|............. ورته اووایه چې څوک داسې شته دې |
| يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ اَرَادَ اَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ |
| طاقت اولری\| د الله د مقابلې \|څه قدرله \| که اوغواړی \| چې هلاک کړی \| مسیح |
| چې د الله ﷻ په مقابله کښې اختیاراولری \| که الله ﷻ اوغواړی چې مسیح |
| ابْنَ مَرْيَمَ وَاُمَّهٗ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا ؕ وَلِلّٰهِ مُلْكُ |
| ځوئې د مریم \| او مورد هغه \|اوهغه څوك\| چې په زمکه کښې دی \| ټول \|اوالله لره ده\| بادشاهی |
| دمریم ځوئې اودهغه مور اود زمکې ټول خلق هلاک کړی \|............. د اسمانونو اود |
| السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ؕ يَخْلُقُ مَا |
| داسمانونو \|او د زمکې \|اودهغه ځیزونو\| چې په منځ ددواړ کښې دی\| پیداکوی \| هغه څه |
| زمکې تر مینځه دټولو ځیزونو اختیار د الله سره دې \|............. څه چې اوغواړی پیدا کوی ئې |
| يَشَاۤءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ۞ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى |
| چې اوغواړی\|او الله\| په هر ځیز باندې \| قادر دې \| او وائې یهودیان \| اوعیسایان |
| اوالله ﷻ په هرڅه کامل قدرت لری \|............. اویهود (خانله)اونصاری (خانله)دا دعوی کوی |
| نَحْنُ اَبْنٰۤؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّاۤؤُهٗ ؕ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ |
| چې مونږه\| ځامن یو\| د الله \|اودوستان یو د هغه \| ورته اووایه\|نو ولې \| عذاب درکوی تاسو له |
| چې مونږ دالله ﷻ ځامن او نزدې خلق یواورته اووایه چې تاسوته بیا ولې په ګناهونوسزاګانې درکوی |
| بِذُنُوْبِكُمْ ؕ بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ؕ يَغْفِرُ |
| په ګناهونو ستاسو\| بلکه \| تاسو \|انسانان یئ\| دهغه مخلوقاتو نه \| چې الله پیدا کړی دی\| بخښنه کوی |
| (داسې نه ده ) بلکه تاسوهم هغه شان عام انسانان ئې څنګه چې دالله ﷻ نورمخلوق دې \| چاته چه الله |

لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

هغه چاته| چي اوغواړي| اوسزاورکوی| هغه چاته| چي اوغواړي|او الله لره دي| ملکیت | د اسمانونو

اوغواړي نوبښنه اوکړي |او چاته چي اوغواړي نوعذاب ورکړي| اوپه اسمانونو او زمکه او د دي په مینځ

وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۫ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿۱۸﴾

او د زمکي |او هغه چي په منځ د دي دواړو کښي دی | اوخاص هغه ته | ورتلل دی |

کښي چي څه دی ټول د الله ملکیت دي| او الله ﷻ ته واپس تګ دي |

قوله تعالی:: لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ؕ

**حضرت عیسی ؑ او ددوئ مور ته اله وئیلو والا کافر دی :-** الله تعالی د عیسایانو دکفر بیان کوی چي هغوئ دالله تعالی مخلوق تـه دالله درجه ورکړي وه .الله تعالی شرک نه پاک دي ټول څیزونه د هغه محکوم اومقهوردی.هریوڅیزد هغه حکومت اوملکیت کښي دي.داسي هیڅوک نشته دي چي هغه د هغه د ارادي نه منع کړی .داسي څوک نشته دي چي د هغه د مرضئ خلاف څه خبره اوکړی .که هغه ذات عیسی ؑ اود هغه مور او په مخ د زمکي هرڅه تباه کول غواړی نو د چا مجال چي د هغه مخي ته راشی.هغه د ټولو موجوداتو اومخلوقاتو خالق دي .دټولو مالک او ټولو حکمران دي .څه چي غواړی نوهغه کوی .هیڅ یوڅیز دهغه د اختیار نه بهر نه دي .هغه نه څوک تپوس کولو والا نشته .د هغه سلطنت اومملکت ډیر وسیع دي. د هغه عظمت او عزت ډیر اوچت دي.هغه عامل اوغالب دي .څنګه چي غواړی نوهغه شان کوی ،د هغه د قدرتونو هډو انتها نشته.

قوله تعالی:: وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ؕ

د نصرانیانو دتردید نه پس اوس د یهودو او نصریانیانو بیا تردید بیانیږی چي دوی په الله تعالی باندي یو دروغو اوتړلو اوهغه دا چي مونږ دالله تعالی ځامن او محبوب یو.مونږ د نبیانو علیهم السلام اولاد یواومونږ دالله تعالی نیازبین یو.خپل کتاب نه به ئي نقل کول چي الله تعالی د بنی اسرائیلو باره کښي فرمائیلی دی چي [انت ابنی بکری] بیا تاویلونه کوی او ددي مطلب الټه کوی او وائی چي هر کله هغوئ د الله تعالی ځامن شو نو مونږ هم د الله تعالی ځامن اوعزیز یو.حالانکه دوی کښي به چي کوم عقل منداو صاحب دین وو هغوئ به دوئ پوهه کول چي د دي لفظونو نه مراد صرف بزرګی ظاهرول دی،د دي نه مراد رشته داری نه ده.هم ددي پشان آیت به نصرانیانو خپلو کتابونو کښي نقل کولو چي حضرت عیسی ؑ به فرمائیل [ انی ذاهب الی ابی وابیکم] ددي نه هم مراد سکه پلار نه وو بلکه هم د هغوئ محاوره کښي دا لفظ د الله تعالی دپاره راتلو.نو ددي مطلب دا شو چي خپل اوستاسو رب طرفته ځم.اوهغوئ د دي نه بل څه مطلب اخستلو اودي آیت کښي چي کوم نسبت عیسی ؑ طرفته شوي دي هغه ئي ټول امت طرفته کولو.خو هغه خلقو خپله باطله عقیده کښي چي کوم نسبت حضرت عیسی ؑ ته کولو هغه ئي خپل ځان ته نه کولو.نو دا لفظ صرف د عزت دپاره وو بل څه دپاره نه وو. الله تعالی دوئ ته جواب ورکوی که د اصحیح وی نو بیا تاسو تـه الله تعالی ولي ستاسو په کذب،کفر،بهتان اوافتراء باندي سزا درکوله.یو صوفی دیو فقیه نه تپوس اوکړو چي آیا قران پاک کښي دا هم دی چي حبیب خپل حبیب ته عذاب نه ورکوی.هرکله چي هغه سره د دي جواب نه وو نو هغه دا آیت مبارک تلاوت کړو.دا ډیر بهترین قول دي.

**د الله په خپلو بندګانو مهربانی:-** هم ددي دلیل د مسند احمد دا حدیث پاک دي چي یو ځل حضرت نبی کریم ﷺ خپلو صحابه کرام ﷺم سره په لار تیریدل،دوئ یو وړوکي ماشوم اولیدو چي په لار کښي نې

لوبې کولې. هرکله چې د هغه مور دا اوليدل چې يوه ډله راروانه ده اوهسې نه چې هغوئ په دے پښې کيږدي.نوچغې ئې کړې څما بچې،څما بچې،منډه ئې کړه او خپل بچې ئې زرخپله غيږه کښې راپورته کړو. په دې باندې صحابه کرامو اوفرمائيل چې يارسول الله ﷺ دا ښځه خو به داخپل بچې هيڅ کله هم اور ته غوزار نکړي. حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې دا بالکل صحيح دهٔ ،الله تعالی هم خپل بندګان جهنم ته نه داخلوی.([1])

ديهودو جواب کښې فرمائی تاسو هم د نورو انسانانو پشان انسانان يئ،تاسو ته په نورو فضيلت نه دې حاصل.الله تعالی په خپلو بندګانو باندې حاکم دې.اوهم هغه د دوی په باره کښې ريښتونې فيصله کوی .هغه ذات چې چاته اوغواړی نو بخښنه ورته کوی او چې چاته اوغواړی نو خپل ګرفت کښې ئې رانيسی.د هغه د هيڅ حکم څوک رد نشی کولې.هغه خپلو بندګانو سره ډير زر حساب کونکې دې.زمکه اوآسمان او د دې مينځ کښې مخلوق ټول د هغه ملکيت کښې دی،د هغه ذات په دباؤ کښې دی.ټول به هغه طرفته واپس کيږی.هغه ذات به په بندګانو کښې فيصله کوی. هغه ذات ظالم نه دې بلکه عادل دې.نيکانو ته به نيکی او بدانو ته به بدی ورکوی.

**د ايت شان نزول:-** نعمان بن آصا ،بحری بن عمرو او شاس بن عدی ،دا ديهوديانو لوئې لوئې علماء وو، دوئ حضور نبی کريم ﷺ ته راغلل،دوئ ئې ډير پوهه کړل او آخر ئې د عذاب نه ډير ويرول.نو دوئ اووئيل چې ائې نبی کريم ﷺ ته مونږ ويروې ؟ مونږ خو د الله تعالی ځامن او نيازبين يو. هم دا به نصرانيانو هم وئيل. نو دا آيت مبارک نازل شو. دې خلقو خپل ځان نه داخبره هم مشهوره کړې وه چې الله تعالی حضرت اسرائيل عليه السلام طرفته وحی کړې وه چې ستا خوا کښې چې کوم ځوئې دې دا ځما داولاد نه دې.ددهٔ اولاد به تر څلويښتو ورځو پورې جهنم کښې وی.دې موده کښې به اور دوئ لره پاک کړی.اوددوئ ګناهونه به اوسيزی. بيا به يوه فرښته آواز اوکړی چې د اسرائيل اولاد کوم يو سنت شوې وی هغه دې راوزی.هم دامعنی ده د هغه قول چې کوم قران پاک کښې مروی دې چې دوئ به وئيل چې مونږ به څو ورځې په شمير جهنم کښې اوسيږو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ | | | | |
| ائي اهل کتابو | | | | |
| ائي اهل کتابو! | | | | |
| قَدْ جَآءَكُمْ | رَسُوْلُنَا | يُبَيِّنُ | لَكُمْ | عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ |
| په تحقيق راغلي دې تاسو ته | رسو ل زمونږه | چې بيانوی | تاسو ته | روستو د ډيرې مودې د بنديز د رسولانو نه |
| تاسوته زمونږ پيغمبر راغلي دې | ادين حکمونه درته بيانوی | په داسې وخت کښې چې د مودې راسې دپيغمبرانو راتلل بند وو | | |
| أَنْ تَقُوْلُوْا | مَا جَآءَنَا | مِنْۢ بَشِيْرٍ | وَّلَا نَذِيْرٍ | فَقَدْ |
| چې بياچرته اونه وايئ تاسو | چې نه وو راغلي مونږته | څوک زيرې ورکونکې | اونه څوک ويرونکې | انوپه تحقيق سره |
| چې تاسودا اونه وائې | چې مونږ ته څوک زيرې راکونکې يا ويرونکې نه وو راغلي | نو بيشکه | | |

[1] )احمد:٣/١٠٤، مسندابي يعلى : ٣٧٣٧، مجمع الزوائد: ٢١٢/١٠.

| جَاءَكُمْ | بَشِيرٌ | وَّنَذِيرٌ | وَاللَّهُ | عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيرٌ ﴿١٩﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| راغی تاسو ته | زیری ورکونکی | او ویرونکی | او الله | په هر څیز باندی | قادر دی |

تاسو ته زیری ورکونکی او ویرونکی راغلی دی او الله ﷻ په هر څه قادر دی ا

**قوله تعالى: يَاأَهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءَكُمْ رَسُولُنَا**

**د فطرة الوحی زمانه**:- دې آیت مبارك کښې الله ﷻ یهودیانو او نصرانیانو ته خطاب کوی او فرمائی چه ما تاسو ټولو طرفته خپل رسول لیږلې دې. او هغه خاتم الانبیاء دې. د هغه نه پس به بل هیڅ رسول نه راځی. دوی ﷺ د ټولو نه روستو دې. اوګورئ د حضرت عیسیٰ ﷺ نه پس ننه پورې نبی نه دې راغلې. د فترت الوحی د دې اوږدې مودې نه پس رسول راغلل، بعضې وائی چه دا موده شپږ سوه کاله وه، بعضې وائی چه پنځه نیم سوه کاله (١) بعضې وائی چه پنځه سوه څلویښت کاله وه، څوك وائی څلور سوؤ نه څه زیاته وه. ابن عساکر کښې دی چه حضرت عیسیٰ ﷺ آسمان ته د تللو او خمونږ د رسول ﷺ په مینځ کښې نهه سوه اودرې دیرش کاله فاصله وه. خوږومبې قول د شپږو سوؤ کالو دې. بعضې وائی چه د شپږو سوو او شلو کالو موده وه. په دې دواړو قولونو کښې دا شان تطبیق هم کیدیشی چه ړومبې شمسی حساب سره وی او دویم قول قمری حساب سره وی. په دې شمیر کښې هردرېو سوؤ کالو پسې تقریباً د اتو کالو فرق راځی. ددې وجې د اهل کهف قصه کښې دی چه ﴿وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلَاثَ مِائَةٍ سِنِينَ وَازْدَادُوا تِسْعًا﴾ هغه خلق خپلو غارونو کښې تر درې سوؤ کالو پورې وو او نهه سوؤ کالو نه نې نور زیات کړل. شمسی حساب سره چه کومه موده د دوی د غار معلومه وه هغه درې سوه کاله وه او نهه چه ورسره زیات شی نو دا قمری حساب سره پوره شو. ددې آیت نه معلومه شوه چه د حضرت عیسیٰ ﷺ نه چه د بنی اسرائیلو آخری پیغمبر وو تر حضرت محمد ﷺ پورې چه علی الاطلاق خاتم النبیین وو د فترت وحی زمانه وه یعنی دې مینځ کښې هیڅ نبی نه دې راغلې.

**نبی کریم ﷺ اخری پیغمبر دې**:- صحیح بخاری شریف کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل د حضرت عیسیٰ ﷺ په نسبت د نورو خلقو نه زه زیات اولی یم. ځکه چه څما او د ده په مینځ کښې بل نبی نشته دې(٢) په دې کښې په هغه خلقو هم رد دې چه خیال کونی چه ددې دواړو جلیل القدر پیغمبرانو مینځ کښې یونبی تیر شوی دی. او د هغه نوم خالد بن سنان وو(٣) لکه څنګه چه قضاعی وغیره کښې حکایت دی. مقصد دا دې چه خاتم الانبیاء دالله ﷻ حبیب په هغه وخت کښې دنیا ته تشریف راوړو چه کله د رسولانو تعلیم ختم شوې وو. د هغوئ لارې ختمې شوی دی. دنیا توحید هیر کړې وو. ځائې په ځائې د مخلوق عبادت کیدلو. نمر ته، سپوږمئ ته او اور ته سجدې کولې شوې. د الله ﷻ دین بدل شوې وو. د دنیا ګوټ ګوټ د سرکشئ او طغیانئ نه ډك وو. عدل او انصاف بلکه انسانیت هم فنا شوې وو. د جهالت او تیرو دور وو. د څو نفسونو نه علاوه په مخ د زمکې د الله ﷻ څوك نوم اخستونکې نه وو. نو معلومه شوه چه د الله ﷻ په نیز د نبی کریم ﷺ جلالت او عظمت ډیر زیات وو. او نبی کریم ﷺ ته چه الله ﷻ کوم رسالت ورکړې وو هغه معمولی رسالت نه وو.

**د نبی کریم ﷺ ذمه واریانې**:- مسند احمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ خپله خطبه کښې اوفرمائیل چه

---

(١) صحیح بخاری کتاب مناقب الانصار باب اسلام سلمان الفارسی ﷺ : ٣٩٤٨.

(٢) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی(واذکر فی الکتاب مریم ......):٣٤٤٢، صحیح مسلم: ٢٣٦٥، احمد: ٣١٩/٢، ابن حبان : ٦١٩٥.

(٣) حاکم : ٥٩٩/٢..

خما د رب حکم دې چه څه تاسو ته هغه خبرې اوښايم چه د هغې نه تاسوخبر نه يئ؛او نن ماته الله تعالی خودلی دی.فرمائی چه ما خپلو بندګانو ته څه ورکړی دی هغه مې ورته حلال کړی دی،ما خپل ټول بندګان موحدين پيدا کړی‌وو ،خوبياشيطان دوی ته راغی او دوی لمسوی او خما حلال څيزونه په دوی حراموی،او شيطان دوی ته وائی چه دوی دې ما سره بغيرد څۀ دليل نه شرك اوكړی،واورئی ا الله ﷻ زمكې والو ته اوكتل او ټول عرب اوعجم ئې خوښ نه كړل،سوا د هغه څو بنی اسرائيلو نه چه كوم په توحيد قائم وو اوبيا ئې ماته اوفرمائيل چه ما ته په دې وجه پيغمبرجوړكړې اوليږلې چه څه به تا امتحان اوكړم او ستا په وجه د نورو امتحان اوكړم.ما په تا هغه كتاب نازل كړې دې چه هغه اوبه نشی وينځلې او هغه په ناسته او په ملاسته وائې.بيا ماته الله ﷻ حكم اوكړو چه څه قريشو ته د الله ﷻ پيغام اورسوم.ما اووئيل چه ائې الله ﷻ دوی خو به زما سر مات كړی او د روټئ په شان به ئې كړی،نو الله ﷻ اوفرمائيل چه ته دوی اوباسه لكه څنګه چه ته دوی ويستې وې،ته دوی سره جهاد اوكړه تاسره به مدد كولې شی،ته په دوی باندې خرچ اوكړه په تا به خرچ كولې شی،ته دوی سره مقابلې دپاره لښكر اوليږه مونږ به د دې په پنځه چنده زيات لښكردرليږو.خپل فرمانبرداروا خله اوخپلو نافرمانو سره جنګ اوكړه.جنتيان خلق په درې قسمه دی.عادل بادشاه،هغه كس چه د ښه كارونو توفيق ورته ملاو شوې وی صدقه خيرات كونكې ،رحم كونكې ،نيزدې مسلمان سره نرمی كونكې،د غربت باوجود حرامو نه بچ كيدونكې چې صاحب عيال هم وی.

اوجهنميان خلق په پنځه قسمه دی.هغه سفلی خلق چه بې دينه او خوشامندګروی اوماتحت وی،چی د هغوی آل اواولاد مال دولت نه وی اوهغه خائن خلق دهغوئ غاښونه وړوكی نه په وړوكی څيز باندې هم تيز وی(يعنی په معمولی څيز كښې هم خيانت كوی ) او په وړوكو څيزونو كښې هم د خيانت نه نه منع كيږی اوهغه خلق چه كوم سحر ماښام خلقو ته او ددوی اهل و عيال ته دهوكه وركوی ،اوبخيل با نې اوفرمائيل چه كذاب يعنی بدزبانه وی ([1]).

داحديث مسلم شريف كښې اونسائی شريف كښې هم دی. مقصد دادې چه د نبی كريم ﷺ د بعثت په وخت كښې دنيا كښې ريښتونې دين نه وو. الله ﷻ د نبی كريم ﷺ په وجه خلق د تيرو نه اوګمراهو نه راوويستل او په صحيح لاره ئې راوستل او دوی ته ئې روښانه او واضح دليلونه وركړل،ځكه چه د خلقو عذر ختم شی،او دوی دا اونه وائی چه مونږ ته څوك نبی نه وو راغلې او نه راته چا زيرې راكړې وواونه ئې مونږ ويرولی وو.نود كامل قدرتونو خاوند الله ﷻ خپل بركزيده پيغمبر ﷺ ټولې دنيادپاره هدايت راوليږلو،هغه خپلو فرمانبردارو ته زيات ثواب وركولو باندې نافرمانو ته عذاب وركولو باندې زيات قادردی.

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى

اوكله چې|اووئيل| موسی

اوهغه وخت يادكړئ | چې موسی ﷺ

لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَعَلَ

قوم خپل ته| ائې زماقومه| يادكړئ | نعمت د الله| په تاسو | هركله چې | پيداكړل هغه

خپل قوم ته اووئيل | چې تاسوته الله ﷻ كوم نعمتونه دركړی دی هغه يادكړئ | ځكه چې په

[1] ) احمد: ١٦٢/٤، صحيح مسلم كتاب الجنة باب الصفات التی يعرف بها فی الدنيا اهل الجنة واهل النار: ٢٨٦٥، السنن الكبرى للنسائی:٨٠٧١. ابن حبان : ٦٥٣ عبدالرزاق: ٢٠٨٨، بيهقی : ٢٠/٩٠.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيكُمْ | أَنْبِيَآءَ | وَجَعَلَكُمْ | مُّلُوكًا | وَّاٰتٰكُمْ | مَّا | لَمْ يُؤْتِ | |

په تاسو کښې | پيغمبران |او جوړنې کړئ تاسو | بادشاهان |او ورنې کړل تاسو ته |هغه هرڅه | چې نۀ وۀ ورکړې شوی

تاسو کښې ئې پيغمبران راليږلي دي | او تاسو ئې بادشاهان کړئ | او تاسو ته ئې هغه څه درکړي دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَحَدًا | مِّنَ الْعٰلَمِينَ ﴿٢٠﴾ | يٰقَوْمِ | ادْخُلُوا | الْأَرْضَ | الْمُقَدَّسَةَ |

هيچا نه |د مخلوقاتو نه | اې زما قومه | ننوځئ | زمکې | پاکې ته

چې نور مخلوق ته ئې نه دي ورکړي | اې زما قومه دې پاکې زمکې (شام) ته داخل شئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّتِي | كَتَبَ | اللّٰهُ | لَكُمْ | وَلَا تَرْتَدُّوا | عَلٰى أَدْبَارِكُمْ |

هغه زمکه| چې ليکلې ده| الله | ستاسو د پاره |او مۀ ځئ واپس تاسو | په شاګانو خپلو باندې

چې الله ﷻ ستاسو حصه کښې ليکلې ده | .................او په خپلو شاګانو باندې مه ګرځئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَتَنْقَلِبُوا | خٰسِرِينَ ﴿٢١﴾ | قَالُوا | يٰمُوسٰى | إِنَّ فِيهَا |

ګنې نو او به ګرځئ تاسو| زيان کاران |او وئيل هغوئ | اې موسى | بيشکه په هغې کښې

ګنې نامراده به شئ | .................هغوئ اوؤئيل چې اې موسى عليه السلام په دې زمکه کښې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَوْمًا | جَبَّارِينَ | وَإِنَّا | لَنْ نَّدْخُلَهَا | حَتّٰى | يَخْرُجُوا | مِنْهَا |

خلق دي | زورور | او مونږه| هرګز نۀ ننوځو هغې ته| تر هغې پورې| چې اوځئ هغوئ | د هغې نه

يو ډير مضبوط قوم اوسيږي| او مونږ دې ته هيڅکله نۀ داخليږو| ترڅو چې هغوئ د دې نه بهر شوی نه وی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنْ | يَّخْرُجُوا | مِنْهَا | فَإِنَّا | دٰخِلُونَ ﴿٢٢﴾ | قَالَ | رَجُلٰنِ |

نو که چرې| او وتل هغوئ |د هغې نه|نو بيشکه بيا مونږه| ننوتونکي يو | او وئيل | دوۀ سړو

که هغوئ د دې نه بهر شي | نو بيا مونږ د دې داخليدو ته تيار يو| په هغوئ کښې دوۀ کسانو اووئيل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنَ الَّذِينَ | يَخَافُونَ | أَنْعَمَ اللّٰهُ | عَلَيْهِمَا | ادْخُلُوا |

د هغه کسانو نه | چې ويريدل | چې انعام کړې وۀ الله | په هغوئ دواړو باندې | ورننوځئ

چې د الله ﷻ نه ويريدل | او الله ﷻ پرې انعام کړې وۀ| چه د دغه خلقو په مقابله کښې د دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِمُ | الْبَابَ | فَإِذَا | دَخَلْتُمُوهُ | فَإِنَّكُمْ | غٰلِبُونَ |

په دې جبارانو | په دروازه | نو کله چې او ورننوځئ تاسو په دروازه | نو بيشکه هم تاسو | به غالبان يئ

ښار دروازې ته داخل شئ | نو کله چې داخل شئ غالب به شئ .................

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَعَلَى اللّٰهِ | فَتَوَكَّلُوا | إِنْ | كُنْتُمْ | مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٣﴾ | قَالُوا | يٰمُوسٰى | إِنَّا |

او خاص په الله باندې |بهروسه ساتئ |که چرې |يئ تاسو| مومنان | او وئيل هغوئ |اې موسى | بيشکه مونږه

او په الله ﷻ بهروسه کوئ | که تاسو مومنان يئ | هغوئ اووئيل چې اې موسى بيشکه مونږ

لَنْ نَّدْخُلَهَآ اَبَدًا مَّا دَامُوْا فِيْهَا فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ

هرګزنهٔ ننوځو دغه ښارته|هيڅکله|ترڅو چې وی هغوئ | په هغې کښې|پس لاړشه | تهٔ | اورب ستا

دې ښارته نه داخليږو | ترڅو چې په کښې هغوئ اوسيږی | نو ته او ستا رب دواړه ورشئ

فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ ﴿۲۴﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّيْ لَآ اَمْلِكُ

اوجنګ اوکړئ دواړه|بيشکه مونږ به| دلته | ناست يو |اووئيل موسیٰ|اې ربه زما|بيشکه زهٔ|نهٔ لرم اختيار

او جنګ ورسره اوکړئ | مونږ به دلته ناست يو| (موسیٰ) اووئيل چې اې زماربه! زهٔ خو صرف د خپل ځان او د خپل

اِلَّا نَفْسِيْ وَاَخِيْ فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۵﴾ قَالَ

مګر|دځان خپل|اودرور خپل|نوجدائی اوکړه|په منځ زمونږه|اوپه منځ| دقوم |فاسق کښې |اووئيل الله

ورور واکمند يم|............ نوزمونږ او ددې نافرمانه قوم ترمينځه فيصله اوکړې | .........الله ﷻ اووئيل

فَاِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً يَتِيْهُوْنَ

نو بيشکه دغه زمکه | حرامه کړې شوی ده | په هغوئ باندې| څلويښت | کاله | سرګردان به ګرځی

چې دا ملک ترڅلويښتو کالوپورې په دوئ حرام دې | ............................اوپه زمکه به

فِي الْاَرْضِ فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۶﴾

هم په زمکه کښې|نومهٔ خفه کيږه تهٔ | په قوم | فاسق باندې

سرګردان ګرځی | ........نو تهٔ ددې نافرانه قوم په حال مهٔ خفه کيږه |

قوله تعالی:: وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ

**مسلسل نبيان ليږل دالله ﷻ رحمت دې:-** حضرت موسی کليم الله ؑ خپل قوم ته دالله ﷻ نعمتونه وريادول او دوی نې دالله ﷻ اطاعت طرفته مائل کول .ددې بيان کيږی اوفرمائی چه دالله ﷻ نعمت يادکړئ چه هغه پاك ذات تاسو کښې هم ستاسو نه يو نه پس بل نبی راوليږلو. حضرت ابراهيم ؑ نه پس هم په دوی کښې نبوت مسلسل رارواں وو. دې ټولو نبيانو عليهم السلامو تاسو ته د الله ﷻ دعوت درکولو. دا سلسله په حضرت عيسیٰ ؑ ختمه شوه او په آخر کښې خاتم الانبياء حضرت محمد ﷺ ته نبوت کامله ورکړې شو. نبي کريم ﷺ د اسماعيل ؑ په واسطه د حضرت ابراهيم ؑ اولاد نه وو.اوحضرت نبی کريم صلی الله عليه واله وسلم د خپل ځان نه مخکښې رسولانو او نبيانو نه بهتر وو.الله ﷻ دې په نبی کريم ﷺ باندې درود وسلام اوليږی.اوتاسو نې بادشاهان جوړ کړنې.يعنی تاسو ته نې خادمان درکړل.ښځې نې درکړې.کورونه نې درکړل.په هغه وخت کښې چه څومره خلق وو په هغه ټولو کښې نې تاسوته ټولو نه زيات نعمتونه درکړل.دا خلق د دومره ورکړې نه پس دوی ته بادشاهان اووئيلې شو.

حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ؓ نه يو سړی تپوس اوکړوچه آيا څه فقراء اومهاجرينو کښې نه يم؟دوی ورته اوفرمائيل چه ستا ښځه شته دې ؟هغه اووئيل چه آو.آيا ستا کور شته دې ؟ هغه اووئيل چه شته دې.نوبيا خو ته غنی يې.ده اووئيل چه هسې خوزما خادم هم شته دې.نودوی ورته اوفرمائيل

چه بیا خو ته د بادشاهانو نه ئې (١)حضرت حسن بصري رحمه الله فرمائي چه سورلئ او غلام ملك دې.او بني اسرائیلو کښې به داسې خلقو ته ملوك وئیلې کیدل.د حضرت قتاده رحمه الله په قول د خادمانو اول اول رواج بنواسرائیلو ته ورکړې شوې وو(٢)یومرفوع حدیث مبارك کښې دی چه دې خلقو کښې به چا سره خادم (٣)،سورلئ او ښځه وه نو هغوئ ته به ئې بادشاه وئیلو.یوروایت کښې دی چه کوم سړې په دې حالت کښې صبا کړې چه د ده بدن صحیح سلامت وی،اودده نفس امن وامان کښې وی،او د ټولې ورځې د کافی کیدو هومره مال هم ورسره وی نو دا داسې ده لکه چه دده دپاره ټوله دنیا راغونده کړې شوې ده. (٤)

**بني اسرائیلو ته په ټولو خلقو فضیلت:-** په هغه وخت کښې چه کوم یونانی قبطی وغیره وو هغوئ نه دوی اشرف جوړ کړې شوی وو. اوآیت کریمه کښې دی چه مونږ بني اسرائیلو ته کتاب،حکم نبوت،او پاکه روزی ورکړې وه او په ټولو مو فضیلت ورکړې وو. حضرت موسی علیه السلام ته چه هرکله هغوئ د مشرکانو په موجودګئ کښې د رب جوړولو اووئیل نوددې جواب کښې حضرت موسی علیه السلام د الله ﷻ فضل بیان کړواو وې فرمائیل چه هغه پاك ذات تاسو ته په ټول جهان فضیلت درکړې دې.

**د بني اسرائیلو د فضیلت وضاحت:-** په ټول جهان د فضیلت مطلب هم دا دې چه د هغه وخت په ټولوخلقوباندې ئې فضیلت درکړې دې. ځکه چه ثابت شوې امردې چه دا امت د هغوئ نه افضل دې،څه شرعی حیثیت،څه احکام د شریعت،څه د نبوت حیثیت،او څه بادشاهت، عزت، مملکت، دولت،حشمت،او مال او اولاد وغیره حیثیت سره،پخپله قران پاك فرمائي چه ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ او فرما ئي چه ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ دا هم وئیلی شوی دی چه بنواسرئیلو سره په دې فضیلت کښې امت محمد ﷺ هم شامل خطاب کړې شوې دې.اودا هم وئیلې شوی دی چه په بعضو امورو کښې هغوئ ته فی الواقع علی الاطلاق فضیلت ورکړې شوې وو،لکه من اوسلوی نازلیدل،د وریځو سیورئ کیدل،وغیره وغیره،چه دا خلاف عادت څیزونه وو.دا قول خو د اکثرو مفسرینو دې لکه څنګه چه مخکښې بیان شو چه د دې نه مراد د دوی د زمانې والوباندې فضیلت ملاویدل مراد دی.والله اعلم.

**قوله تعالی:** ﴿يَٰقَوْمِ ٱدْخُلُوا۟ ٱلْأَرْضَ ٱلْمُقَدَّسَةَ ٱلَّتِى كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمْ﴾

بیا بیان کیږی چه اصل کښې بیت المقدس د دوی د نیکه حضرت یعقوب علیه السلام په زمانه کښې ددوی قبضه کښې وو.اوکله چه هغه خپل اهل وعیال سره حضرت یوسف علیه السلام له مصر ته لاړو نو دلته د عمالقه قوم په دې باندې قبضه کړې وه. هغوئ ډیر زیات مضبوط او تکړه وو. اوس حضرت موسی علیه السلام خپل قوم ته فرمائي چه تاسوبه دوی سره جهاد کوئی الله ﷻ به تاسو په دوی غالب کړی.او ستاسو به بیا په دې ځائې قبضه راشی.خو دوی نامردی اوخودله او بزدله شول.د دې په سزا دوی په وادی تیه کښې حیران او پریشان دخانه بدوشو په شان اوسیدل.

**د مقدسې زمکه نه مراد:-** د ،،مقدسة،، نه پاك مراد دی. ①حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه دا د ،،طور،، او دې سره چه کومه زمکه د هغې ذکر دې.②په یو بل روایت کښې د اریحه ذکر دې.خودا

(١) مسلم کتاب الزهد باب الدنيا سجن للمومن وجنة للكافرين: ٢٩٧٩.

(٢) دې روایت کښې ابن لهیعه مختلط راوی دې (التقریب: ٤٤٤/١ ،رقم: ٥٧٤)، نو پدې وجه دا روایت ضعیف دې

(٣) الطبری: ١٦٣/١٠.

(٤) ترمذی کتاب الزهد : باب في الوصف من حيزت الدنيا: ٢٣٤٦. وسنده حسن ابن ماجه : ٤١٤١.

درست نه دي خکه چه نه خود اريحا فتح کول مقصود وو.او نه د دوی په لار کښې وو. خکه چه دوی د فرعون د هلاکت نه پس د مصر ښار ته راغلی وو.او بيت المقدس ته تلل.③اوکيدي شی چه دا هغه مشهور ښار وو کوم چې طور کښې د بيت المقدس مشرق طرفته واقع وو.

**د ليکلو مطلب:**-الله ﷻ دا ستاسو دپاره ليکلی دی،ددې مطلب دا دې چه ستاسو پلار اسرائيل سره الله ﷻ وعده کړې وه دا به ستا د اولاد په ايماندارو خلقووراثت کښې راځی.تاسو په خپله مه مرتد کيږئ يعنی د جهاد نه مخ مه اړوئ گنی تاسو به ډير نقصان کښې شئ.هغوئ جواب کښې اووئيل چه تاسو کوم ښار ته د تلو اود کوم ښار خلقو سره د جهاد کولو حکم کوئ مونږ ته معلوم دی چه هغوئ ډير زيات طاقتوراوجنگجو دی.مونږ د هغوئ مقابله نشو کولې او ترکومې چه هغوئ هلته موجود دی مونږ هغه ښار ته نشو تلې.که هغه خلق د هغه ځائې نه لاړ شی نو بيا مونږ تلې شو. گنی ستاسو حکم منل خمونږ د طاقت نه بهر دی.

**د جاسوسئ دپاره دولس کسان ليږل:**- د حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ بيان دې چه کله حضرت موسی ﷺ اريحه ته اورسيدو نو دوی دولس جاسوسان مقرر کړل.د بنو اسرائيلو د هرې قبيلې نه ئې يو يو جاسوس واخستو او هغه ئې اريحا ته اوليږلو چه صحيح خبر راوړی. هرکله چه دا خلق هلته لاړل نود هغوئ د جسامت او قوت نه ويريدل. دوی ټول په يو باغ کښې وو چه په دې کښې د باغ والا د ميوې شوکولو دپاره راغلو. هغه ميوې شوکولو شوکولو کښې د دوی د قدمونو نښو پسې راغلو او دوی ته راورسيدو او دوی ئې ميوژ سره په خپلو پنډ کښې اوتړل او لاړو د بادشاه مخکښې ئې د ميوې هغه پنډ پرانيستو. او دوی ټول په هغې کښې وو. بادشاه ورته اووئيل چه اوس خو به تاسو ته خمونږ د طاقت اندازه شوې وی،ځئ واپس لاړشئ اوخپلو خلقو ته اووائې.نودوی لاړل او خپلو خلقو ته ئې هرڅه اووئيل او بنی اسرائيلو ډير اويريدل.خو ددې سند صحيح نه دی.

**دعمالقهٔ قوت:**- بل روايت کښې دی چه په دې دولسو خلقو کښې يو سړې ئې اونيولو او هغه ئې په خپل څادر کښې اوتړلو او ښار ته ئې يوړو او د خلقو مخکښې ئې پريښودو. هغه تپوس اوکړو چه تاسو کوم خلق يئ؟ هغوئ ورته اووئيل چه مونږ د حضرت موسی ﷺ د قوم خلق يو او ستاسو خبر اخستلو دپاره ليږلې شوی وو. هغوئ دوی ته يو انگور ورکړو او ورته ئې اووئيل چه ځئ لاړشئ او خپلو خلقو ته دا اوښائې او ورته اووائې چه دا خمونږ ميوې دی.هغوئ چه کله قوم ته واپس شو نو خپل قوم ته ئې ټول حالات اوونيلو.اوس موسی ﷺ دوی ته د جهاد کولو او ښار ته د داخليدلو حکم اوکړو خو دوی صفا انکار اوکړو. چې ته او ستا رب دې لاړشی او جنگ دې اوکړی مونږ د دې ځائې نه نه خوځو.

**د عمالقو قدونه:**- حضرت انس ﷺ يو بانړس واخستو اوهغه ئې ناپ کړو اوهغه پنځوس گزه وو او هغه ئې په زمکه کښې ښخ کړو او وې فرمائيل چه د عمالقو قدونه دومره وو.

**اسرائيلی روايات:**- مفسرينو دلته اسرائيلی روايات ډير بيا ن کړی دی. چه دا خلق ډير زيات طاقتور وو،غټ او اوږده وو،په دوی کښې عوج بن عنق بنت آدم ﷺ هم وو اود هغه قد درې زره درې سوه او درې ديرش گزه وو. او پلن والی کښې د هغه بدن درې گزه وو. خو دا ټولې خبرې هسې واهيات دی،ددې په ذکرکولو کښې حيا مانع ده. بيا د صحيح حديث خلاف هم دی. نبی کريم ﷺ فرمائی چه الله ﷻ حضرت آدم ﷺ شپيته لاسه اوږد پيدا کړې وو. اوتر نن د مخلوق قدونه کميږی.(١)

**دحافظ** رحمه الله **تنقيدی تبصره:**- په دې اسرائيلو روايتونوکښې دا هم دی چه عوج بن عنق کافر او ولدالزنا وو. دې په طوفان نوح کښې وو اوحضرت نوح ﷺ سره په کشتئ کښې نه وو سور شوې.او اوبه دده

[1]) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب خلق آدم وذريته: ٣٣٢٦، صحيح مسلم: ٢٨٤٨، احمد: ٣١٥/٢، ابن حبان: ٦١٦٢، بيهقی : عبدالرزاق : ١٩٤٣٥،

ځنګونونو پورې هم نه وې رارسیدلې، خو دا هم محض لغو او بالکل دروغ خبره ده بلکه د قران پاك خلاف ده. قران پاك کښې د حضرت نوح ﷺ دعا موجود ده او په هغې کښې دی چه ائې الله ﷻ په مخ د زمکې یو کافر هم بچ پاتې نشي. اودعا قبوله وه هم او داسې اوشو. قران پاك کښې دی چه مونږ حضرت نوح ﷺ او د هغه کشئ والو ته نجات ورکړو او بیا مو باقي ټول کافر هلاك کړل پخپله د قران پاك وینا ده چه په کومو خلقو رحمت شوې دې د هغه خلقو نه سوا به نور ټول خلق هلاك شي. دا یو تعجب دې د حضرت نوح ﷺ خپل ځوئي چه ایماندار نه وو هم بچ نه شو او عوج بن عنق چه ولد الزنا وو بچ شو دا ډیره د عقل نه خلاف خبره ده. بلکه مونږ خو د دې هډو قائل نه یو چه عوج بن عنق هم یو سړې وو. والله اعلم.

**د موسی ﷺ د قوم بزدلي:-** هرکله چه بني اسرائیلو د خپل نبي اونه منل او په مخامخ ئې د هغه سره سختې خبرې اوکړې او بې ادبي ئې اوکړه البته په هغوی کښې دوه سړي وو چه هغوئ ته الله ﷻ پوهه او عقل ور کړې وو، هغوئ دا خلق پوهه کړل او دالله ﷻ نه ئې اویرول. دا دوه کسان ویریدل چه هسې نه د بني اسرائیلو د سرکشئ په وجه الله ﷻ په دوی عذاب نازل کړي. یو قرات کښې د ﴿يَخَافُونَ﴾ په ځائې ﴿يُخَافُونَ﴾ دې. ددې نه مراد دا دی چه د دې دواړو بزرګانو په قوم کښې عظمت او عزت وو. دیو نوم حضرت یوشع بن نون وو او د بل نوم کالب بن یوفنا وو. هغوئ اووئیل که چرې تاسو په الله ﷻ بهروسه کوئی او د هغه د رسول ﷺ اطاعت کوئی نو الله ﷻ به تاسو په دې دښمنانو غالب کړي. او پخپله به ستاسو مدد او تائید اوکړي. اوتاسو به دې ښارته غلبې سره داخل شئ تاسو خو دروازې پورې لاړ شئ هم تاسو به غالب یئ دې نامردو خپل رومبې جواب ښه مضبوط کړو او وې وئیل چه د دې جبار قوم په موجودګئ کښې خمونږ یوقدم مخکښې تلل هم ممکن نه دی. حضرت موسی ﷺ او حضرت هارون ﷺ دوی ډیر پوهه کړل تر دې چه د هغوئ مخکښې ئې ډیره عاجزي اوکړه خو د دې کتلو سره حضرت یوشع ﷺ او حضرت کالب ﷺ خپلې کپړې اوشلولې او دوی ئې ډیر زیات ملامته کړل خودا بدنصیبه نور هم په غضب شول بلکه د اهم وئیلې شوی دی چه دوی دا دواړه بزرګان په کاڼو شهیدان کړل. او دوی ډیره بدتمیزي اوکړه. اوهیڅ بې هیڅ د رسول په مخالفت راولاړ شول.

**د صحابه کرامو جانثاري:-** ددوی دې حال کتلو نه پس د محمد ﷺ د صحابو حال اوګورئ چه هرکله نهه سوه یا زر کافران د خپلې قافلې بچ کولودپاره لاړل، خوقافله په بل طرف تلې وه، خو هغوئ د خپل طاقت او قوت په وجه نبي کریم ﷺ ته د نقصان رسولو نه بغیر واپس تلل په خپلو امیدونو اوبه اچول اوګڼل او د اسلام اود مسلمانانو د ختمولو ارادې سره مدینې ته راغلل. بل طرفته چه نبي کریم ﷺ ته معلومه شوه نو صحابه کرام ئې راجمع کړل او ورته ئې اووئیل چه تاسو اووائې څه کول پکار دی؟ الله ﷻ د دې ټولو نه خوشحاله شو. هغوئ خپل مالونه، خپل اولاد، او خپل ځامن د نبي کریم ﷺ مخکښې پیش کړل او وې وئیل چه نبي کریم ﷺ مالك دې، نه خو مونږ تعداد ته ګورو او نه غلبې ته ګورو، او نه په اسبابو خمونږ نظر دې، بلکه مونږ د نبي کریم ﷺ په فرمان قربان یو. ټولو نه مخکښې حضرت ابوبکرصدیق ﷺ داشان خبرې اوکړې. بیا مهاجرینو کښې ډیرو داشان تقریرونه اوکړل، خو بیا هم دوی اوفرمائیل چه تاسو خپله رائې ښکاره کړئ د نبي کریم ﷺ مقصد دا وو چه د انصارو د زړه اراده معلومه کړي. ځکه چه دا ځائې د هغوئ وو اوهغوئ شمیر کښې هم زیات وو.

**د سعدبن معاذ ﷺ تقریر:-** په دې حضرت سعد بن معاذ انصاري ﷺ پاسیدو او وې فرمائیل چه ستاسو مقصد د انصارو د زړه اراده معلومول دي. هغه اووئیل چه واورئ یارسول الله ﷺ! په هغه الله ﷻ قسم چه هغه تاسو حق سره رسول رالیږلې ئې، که تاسو مونږ د سمندر په غاړه اودروئی او اوائې چې په دې کښې ځانونه ډوب کړئ نو مونږ به دې کښې روستو نشو. تاسو به اوګورئ چه په مونږ کښې به یو هم

د سمندر په غاړه نه وی ولاړ. انې نبی کریم ﷺ تاسو د خپل دښمن مقابلې دپاره بیشکه مونږ بوځئ؛تاسو به اوګورئی چه مونږ په جنګک کښې ثابت قدم اوصبر والا یو. تاسو ته به معلومه شی چه مونږ د الله ﷻ حکم منلو والا یو،تاسو د الله ﷻ نوم واخلئ او روان شئ؛تاسو به مطمئن شئ چه کله تاسو خمونږ بهادری او استقلال اوګورئی. دې آوریدو سره د الله رسول ﷺ ډیر خوشحاله شواو د انصارو دا خبرې ورته ښه معلومې شوې.

**د مقداد انصاری تقریر:-** یو روایت کښې دی چه د بدر د جنګک په وخت کښې نبی کریم ﷺ مسلمانانو نه مشوره و اخسته. حضرت عمرفاروق رضی الله عنه څه اووئیل او بیا انصارو څه اووئیل که چرې تاسو خمونږ آوریدل غواړئی نو واورئی امونږ د بنی اسرائیلو په شان نه یو چه ته اوستا رب دې لاړ شی او جنګک دې اوکړی اومونږ به دلته په قلار ناست یو. بلکه خمونږ جواب دا دې چه تاسو د الله تعالی مدد سره جهاد ته روان شئ؛مونږ جان ومال سره یو.حضرت مقداد انصاری رضی الله عنه هم اودریدو او دا نې اوفرمائیل (١)ابن مسعود رضی الله عنه به فرمائیل چه د حضرت مقداد رضی الله عنه دې قول سره الله ﷻ ډیر زیات خوشحاله شوې وو. هغوئ اووئیل چه یارسول الله ﷺ ! د جنګک په وخت کښې به تاسو اوګورئی چه ستاسو ګس او ښی طرفته به هم مونږ یو،کاش چه ماته څه داسې موقع په لاس راشی چه څه نبی کریم ﷺ خوشحاله کړې شم .(٢)

**د حدیبیه په مقام د مقداد رضی الله عنه جانثارانه جمله:-** په یو بل روایت کښې د حضرت مقداد رضی الله عنه دا قول د حدیبیه په ورځ مروی دې،کله چه مشرکانو نبی کریم ﷺ په لار کښې د عمرې کولو نه منع کړې وو. اود قربانئ ځاروی حرم ته هم اونه رسیدل. نو دوی اووئیل چه څه د خپلې قربانئ ځاروی سره بیت الله شریف ته تلل غواړم.حضرت مقداد بن اسود رضی الله عنه اووئیل چه مونږ د موسی علیه السلام د ملګرو په شان نه یو،دا خو هغوئ اوکړل چه خپل نبی علیه السلام ته ئې اوفرمائیل چه ته او ستا رب دې لاړشی او جنګک دې اوکړی، مونږ خو دلته ناست یو،مونږ خو وایو چه یارسول الله ﷺ تاسو ځئ؛ د الله ﷻ مدد دې تاسو سره وی،او مونږ ټول ستاسو ملګری یو.دې آوریدو سره نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم هم د جانثارانو پشان وعدې شروع کړې.که په دې روایت کښې د حدیبیه ذکر محفوظ وی نو کیدې شی چه د بدر په ورځ هم نبی کریم ﷺ دا فرمائیلی وی،والله اعلم.

**د موسی علیه السلام د خپل قوم نه بې زاری:-** حضرت موسی علیه السلام دې آوریدو سره خپل امت ته ډیر زیات غصه شو. دوی نه ئې د بیزارئ اظهار اوکړو چه انې رب العالمین ! ماته خو په خپل ځان او په خپل رور اختیار دې،نو ته اوس د دې فاسقانو او خما په مینځ کښې فیصله اوفرمائې. الله ﷻ دا دعا قبوله کړه او وې فرمائیل چه او س به دوی د دې ځائې نه ترڅلویښتو کالو پورې نه ځی. او په وادی تیه کښې به حیران اوپریشان ګرځی. په هیڅ شان به د دې حدودو نه بهر نه اوځی.

**په میدان تیه کښې خارق العادة حالات:-** دلته هغوئ ډیر عجیبه او خلاف عادت کارونه اوکتل،①لکه په دوی د وریځې سیورئی کیدل،②د من و سلوی نازلیدل،③د یو کلك کاڼړی نه چه کوم دوی سره وو اوبه راوتل،④حضرت موسی علیه السلام دا کاڼړی په همسااووهلو او ددې نه دولس چینې راووتلې.او هریو قبیلې ته یویو چشمه روانه شوه. دې نه سوا بنی اسرائیلو هغه نورې ډیرې معجزې اوکتلې.هم دې ځائې کښې توراة نازل شواوهم دې ځائې کښې د الله ﷻ احکام نازل شو وغیره وغیره. هم دې میدان کښې دوی ګرځیدل راګرځیدل خودوی ته د وتو هېڅ لار معلومه نشوه. او په دوی باندې د وریځې سیورئی اوشو او دوی ته من اوسلوی راغله.

(١) احمد: ٣١٤/٤،صحیح البخاری : ٤٢٠٩.
(٢) احمد:٣٨٩/١. صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المائدة باب قوله تعالی (فاذهب انت و ربک فقاتلا انا ههنا قاعدون): ٤٦٠٩.

**د موسى ﷺ وفات:-** د فتون اوږد حديث مبارك كښې د حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ نه مروى دې.دې نه درې كاله پس حضرت موسى كليم الله ﷺ هم وفات شو. بيا د حضرت موسى ﷺ خليفه حضرت يوشع بن نون نبى جوړ كړې شو.دې دوران كښې ډير بني اسرائيل وفات شوى وو. بلكه دا هم ونيلې شوى دى چه صرف حضرت يوشع ﷺ اوحضرت كالب باقى پاتې شوى وو.

**د سنة قراءتى وضاحت:-** بعضې مفسرين په ﴿سَنَة﴾ تام وقف كوى.او ﴿أَرْبَعِينَ سَنَةً﴾ د نصب په حالت كښې منى.او د دې عامل ﴿يَتِيهُونَ فِي الْأَرْضِ﴾ ښانى.

**د يوشع بن نون په مشرئ كښې بيت المقدس فتح كيدل:-** ددې څلويښت كاله مودې تيريدو نه پس چه كوم خلق باقى وو هغوئ يوشع ﷺ خان سره واخستل او د نورو غرونو نه هم ورسره خلق شامل شو او د بيت المقدس محاصره ئې اوكړه، د جمعې په ورځ چه كله د فتح كيدو وخت راغلو نو دښمنانو حوصلې اوبائيللې،او په دې كښې نمر ډوب شو،او د ډوبيدو نه پس د خالى د ورځې د تعظيم په وجه جنګ نشو كيدې،نو ددې وجې د الله ﷻ نبى اوفرمائيل چه ائې نمره ته هم د الله ﷻ غلام ئې،اوځه هم د هغه محكوم يم،ائې الله ﷻ ادې لږ شان ايسار كړه. نو د الله ﷻ په حكم سره نمر ايسارشو او دوى بيت المقدس فتح كړو. د الله ﷻ د طرفنه حكم اوشو چه دې ښارته دې داسې حالت كښې داخل شى چه دوى سجده كونكى وى اودوى به ﴿حطة﴾ وائى،يعنى ائې الله ﷻ څمونږ ګناهونه معاف كړه. خو هغوئى د الله ﷻ قول بدل كړو او په ځنګونونو ئې تګ شروع كړو او په ژبه ئې ﴿حبة فى شعرة﴾ ونيل او ښار ته داخل شو نور تفصيل د سورة بقره په تفسير كښې تير شوې دې.

**د بيت المقدس په فتح كښې مال غنيمت:-** بل روايت كښې دومره زياتوالې دې چه دوى ته دومره د غنيمت مال حاصل شو چه دوى دومره مال كله كتلې هم نه وو.د الله ﷻ د فرمان مطابق دائې په اور كښې د سيزولو دپاره يوړو،خو اور دې اونه سيزلو،نو د دوى نبى حضرت يوشع بن نون دوى ته اوفرمائيل تاسو په دې كښې څه پټ كړې دى،نو د هرې قبيلې سرداردې څما په لاس بيعت اوكړى.نود يو قبيلې د سردار لاس د الله ﷻ د نبى لاس سره انختو.دوى ورته اوفرمائيل چه هغه د خيانت څيز تاسره دې،لاړشه اوهغه راوړه،نوده ورته د غوا يو سر پيش كړو. اود هغې سترګې د ياقوتو وې،او غاښونه ئې د موتيانو وو،هركله چه دا نور مال سره واچولې شو نو اوس اور دا اوسيزلو.

امام جرير ﷫ هم د اقول خوښ كړې دې.﴿أَرْبَعِينَ سَنَةً﴾ كښې ﴿فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ﴾ عامل دې .او د بنى اسرائيلو هم دا جماعت هم په دې ميدان تيه كښې سرګردانه ګرزيدو .بيا دا خلق يوشع بن نون ﷺ اووتل او بيت المقدس ئې فتح كړو. ددې دليل د مخكښې يهودو د علماء اجماع ده چه عوج بن عنق حضرت كليم الله ﷺ قتل كړې وو. نوكه دده قتل د عمالقو د جنګ نه مخكښې وى نو هيڅ وجه نه وه چه بنى اسرائيلو به د جنګ نه انكار كړې وې ؟ نو معلومه شوه چه دا واقعه د تيه نه د تلو نه پس شوې ده. د يهود د عالمانو دا اجماع ده چه بلعام بن باعوراء د عمالقو د قوم مدد اوكړو او ده په حضرت موسى ﷺ بددعا اوكړه،دا واقعه هم د دې ميدان د تلو نه پس شوې وه. څكه چه دې نه مخكښې جبارينو ته د حضرت موسى ﷺ او د دوى د قوم نه هيڅ ويره نه وه. د ابن جرير هم دا دليل دې،هغه وائى چه د حضرت موسى ﷺ عصا لس ګزه اوږده وه. اود حضرت موسى ﷺ قد هم لس ګزه اوږد وو.اوحضرت موسى ﷺ لس ګزه ټوپ اووهلو او عوج بن عنق ئې په عصا په ځنګونونو اووهلو او هغه مړشو.دده د جثې نه د نيل ونه جوړه شوې وه. اودې ته ټول كال اهل نيل راتلل.

**د بنى اسرائيلو د بې خوندئ ذكر:-** نوف بكالى وائى چه دده تخت درې سوه ګزه وو. بيا الله ﷻ خپل نبى ﷺ ته تسلى وركړه او وې فرمائيل چه ته په خپل قوم بني اسرائيلو باندې غم مه كوه دوى هم د دې جيل خانې مستحق دى.په دې واقعه كښې په يهود غصه او زورنه ده اود دوى دمخالفو د خرابو او بدو

بیان دي.دوی د الله ﷻ دښمنان دي ،دسختۍ په وخت کښې دوی دالله ﷻ په دین قائم نه پاتې کیږي.د رسولانو نه مني.جهاد نه تیښته کوي.د الله ﷻ د کلیم اوبزرګ په موجودګۍ کښې دوی د وعدې،او د موسی ﷺ د حکم هیڅ پرواه نه کوله،شپه ورځ به ئې معجزې کتلې،د فرعون بربادی ئې په خپلو سترګو کتلې وه،او ددې لا ډیره موده هم نه وه تیره شوې. الله ﷻ د خپل بزرګ او کلیم سره د نصرت او فتح وعدې کړې وې ،خودا خلق په خپله بزدلۍ کښې مره شول.اونه صرف انکار بلکه ډیر په سختۍ سره ئې انکار اوکړو.د الله ﷻ د نبی بې ادبی ئې اوکړه،او صفا جواب ئې ورکړو ،حالانکه په خپلو سترګو ئې کتلی وو چه د فرعون پشان جابر بادشاه ئې د هغه د سامان او لښکر سره تباه کړې وو او ډوب کړې ئې وو. خو بیا هم د دې کلی خلقو په الله ﷻ بهروسه نه کوله اونه ئې د هغه حکم نه منلو.حالانکه دوی خو د فرعون په لسمه حصه هم نه وو. دوی خپل ځان د رب محبوب ګنړل.خو حقیقت د دې خلاف وو. دوی د رب په نظر کښې پریوتی وو. نو ټول تعریفونه هغه رب دپاره دی.چې د هغه رب فرمانبرداری د ټولو نیکو کنجی ده.

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ
او اولوله| په دوی باندې
او دوی ته د

نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ
قیصه| ددواړو ځامنو |دآدم ﷺ | په حقه سره | کله چې | اوکړه دواړو| قربانی| نوقبوله کړې شوه
آدم ﷺ د دوؤ ځامنو رښتونې قصه واوروه | ..........کله چې دواړو قربانی اوکړه |نو د یو قربانی قبوله

مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ ط قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ ط
دیوددې دواړو نه |اوقبوله نۀ کړې شوه | دبل نه |اووئیل هغه (قابیل)|چې خامخابه زۀ قتل کړم تا
شوه د بل قربانی قبوله نشوه| ............ او(قابیل) اووئیل چې زه به دې مړ کړم

قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ ۝ لَئِنْ بَسَطْتَ إِلَيَّ
اووئیل(هابیل)|چې بیشکه| قبلوی الله| دپرهیزګارانونه | که چرې| را اوږد کړو تا | ماته
نو(هابیل)اووئیل چې بیشکه الله ﷻ د پرهیزګارو قربانی قبلوی | که ته ماته د قتل په اراده لاس رااوږد

يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ ج
لاس خپل | دپاره ددې چې مړ کړې ما| خونۀ یم زۀ| غزونکې|دلاس خپل | تاته |چې مړ کړم تا
کړې| خوزۀ به بیاهم تاپسې خپل لاس نه در اوږدوم| ............چه زه تا قتل کړم

إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ۝ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ تَبُوءَ
بیشکه زۀ| ویریږم |دالله نه | چې پالونکې دمخلوقاتو دې|بیشکه زۀ| غواړم | چې اخته شې تۀ
بیشکه زۀ دالله ﷻ نه ویریږم| چې دمخلوق پروردګار دې | ..........زه داغواړم چې ته زما

بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ج وَذَٰلِكَ جَزَاءُ
په ګناه زما| اوپه ګناه خپلې سره| نوشې به تۀ | د ملګرو | د اور نه | او دا | جزا ده
اوخپله ګناه په سرباندې بار کړې | او دوزخی شې | ..................اودا بدله د

الظّٰلِمِیْنَ ﴿٢٩﴾ فَطَوَّعَتْ لَهٗ نَفْسُهٗ قَتْلَ اَخِیْهِ فَقَتَلَهٗ فَاَصْبَحَ

د ظالمانو| نو آسان کړل | ده ته | نفس خپل| وژل درورخپل انومړي یې کړو هغه| نو اوګرځیدو

دظالمانو ده| نوخپل نفس دې د خپل وروور د قتل دپاره تیارکړو| او هغه ني قتل کړو| نوهغه په

مِنَ الْخٰسِرِیْنَ ﴿٣٠﴾ فَبَعَثَ اللّٰهُ غُرَابًا یَّبْحَثُ فِی الْاَرْضِ

دزیانکارانو نه| نو راولیږو | الله | یوکارغه | چې کنده ني کنستله | په زمکه کښې

زیانکارانو کښې شامل شو| بیا الله ﷻ یو کارغه راولیږلو| چې زمکه ني اوکنیستله د دې دپاره

لِیُرِیَهٗ کَیْفَ یُوَارِیْ سَوْءَةَ اَخِیْهِ ط قَالَ یٰوَیْلَتٰۤی

چې اوښائی هغه ته| چې څرنګې| پټه کړی امړه جثه|د وروورخپل |اوونیل (قابیل)|انې افسوس دې مالره

چې هغه ته طریقه اوښائی چې دخپل وروور لاش به څنګه پټوی | چې دا ني اولیدل نو هغه اوونیل چې

اَعَجَزْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ فَاُوَارِیَ سَوْءَةَ اَخِیْ ج فَاَصْبَحَ

آیا عاجز شم زهٔ| چې شم زهٔ| پشان | د دې کارغهٔ |چې پټه کړم| مړه جثه|د وروور خپل| نو شو

انې کاش زه ددې کارغه پشان(هوښیار)وې| اودخپل وروور د لاش د خښولوانتظام مې کړې وې| نو بخپلو کړو

مِنَ النّٰدِمِیْنَ ﴿٣١﴾

دپښیمانو خلقو نه|

ډیرپښیمانه شو |

**د هابیل اوقابیل واقعه:**-په دې قصه کښې د حسد او بغض سرکشۍ او تکبر انجام بیان شوې دې کوم چه دحضرت آدم ﷺ د دوؤ ځامنو ترمینځه اوشو. اویو په په دوی کښې بې ګناه اووژلې شواو جنت کښې نې ځان دپاره ځائې بیاموندو.اودویم دې په ظلم اوزیاتی سره او بې قصوره قتل کړو او خپل دواړه جهانونه نې تباه کړل.

**دادم ﷺ په وخت کښې د خور سره د نکاح حکم:**- فرمائی چه انې نبی ﷺ ! دوی ته د حضرت آدم ﷺ د دواړو ځامنو قصه بیان کړه،او د دوی نومونه قابیل اوهابیل وو.چونکه په هغه وخت کښې د دنیا ابتدائی حالت وو په دې وجه داسې به وو چه دحضرت آدم ﷺ کره به د یو حمل نه یو هلك او یوه جینۍ پیدا کیدل.اوبیا به دویم حمل نه هم داشان کیدل.دیو حمل جینۍ به د بل حمل هلك ته په نکاح کولې شوه. د هابیل خور ښکلې نه وه او دقابیل خور ښکلې وه. نو قابیل غوښتل چه خپلې خور سره نکاح اوکړی. حضرت آدم ﷺ د دې نه منع کړل.آخر دا فیصله اوشوه چه تاسو دواړه د الله ﷻ لار کښې څه خیرات اوکړئ چه د چا خیرات قبول شو نو د ابد هغه ته په نکاح کولې شی.د هابیل خیرات قبول شو او بیا هغه اوشو چه دقران پاك په آیتونوکښې شته دې.

د مفسرینواحوال واورنی.د حضرت آدم ﷺ د صلبی اولاد نکاح کولو قاعده چه کومه پورته بیان شوه ددې د بیانولو نه پس مروی دی چه مشر قابیل به کرکیله کوله. او هابیل به څناور څرول.د قابیل خورد هابیل په نسبت ډیره ښکلې وه. هرکله چه د هابیل د نکاح دقابیل خورسره دکیدلوارادہ اوشوه نو قابیل انکار اوکړواو خپله نکاح نې دې سره کول غوښتل.حضرت آدم ﷺ د دې نه منع کړو. اوس دې دواړو خیرات اومنلو چه د چا خیرات قبول شی نود هغه نکاح به دې سره کیږی.حضرت آدم ﷺ په

هغه وخت کښې مکې ته لاړو چه اوګوري چه څه کیږي ؟الله ﷻ حضرت ادم ﷺ ته اوفرمائيل چه تاته پته ده چه په زمکه څما یوکورهم دې ؟ حضرت آدم ﷺ اوفرمائیل چه نه. حکم اوشو چه ته هلته لاړ شه،حضرت آدم ﷺ آسمان ته اووئیل چه ته څما د بچو حفاظت کوه.خو ده انکار اوکړو.زمکې ته ئې اووئیل خودا هم انکاری شوه. غرونو ته ئې اووئیل خو هغوئ هم انکاری شو. قابیل ته ئې اووئیل،هغه ورته اووئیل چه څه لاړشه،تاسو چه راشئ نو خوشحاله به یې:اوس هابیل یو ښکلې څورب ګډ د الله ﷻ په نوم ذبح کړواو مشر رور د خپل پټی څه حصه.اور راغلواود هابیل نذر ئې یوړو. اودا په هغه زمانه کښې د قبلیدو نښه وه. اودقابیل نذر قبول نه شو. د ده پټې هم د اشان پاتې شو.ده دالله ﷻ لار کښې ورکولو نه پس په دې کښې ښه ښه فصلونه کرلی وو. قابیل د دې نه مایوسه شوې وو چه د ده خور به د ده نکاح کښې نه راځی په دې وجه ئې خپل رور ته د قتل کولو دهمکی ورکړې وه. ده اووئیل چه الله ﷻ د تقوی والو قربانی قبلوی. په دې کښې څما څه قصوردې ؟یو روایت کښې دا هم دی چه دا ګډ غټیدو اوهم دا هغه ګډدې چه حضرت ابراهیم ﷺ د خپل څوئې په بدل کښې قربانی کړې وو.
یو روایت کښې دی چه هابیل خپلو څناوروکښې مرغوب او محبوب څناور په خوشحالئ د الله ﷻ لارکښې ذبح کړې وو. اود دې خلاف قابیل دخپل پټی نه خراب او ردی څیز په نه زړه د الله ﷻ لار کښې ورکړې وو. هابیل په طاقت او صحت کښې د قابیل نه ښه وو. خود الله ﷻ د ویرې ئې د خپل رور ظلم اوزیاتې برداشت کړو.د مشر رور قربانی چه قبوله نشوه نوده حضرت ادم ﷺ ته اووئیل چه ستاهابیل خوښ دې په دې وجه تا دهغه دپاره دعا اوکړه اودهغه قربانی قبوله شوه. اوس ده په زړه کښې واچول چه دا آزغی به د مینځ نه اوباسم. د موقعې په انتظار کښې وو، یو ورځ اتفاقی طور د هابیل په راتلوکښې وخت ډیر اولګیدو.نودهغه د رابللو دپاره حضرت آدم ﷺ قابیل اولیږلو.ده څان سره پټه یو چاړه واخستله،هم په لاره کښې د دواړو رونړو ملاقات اوشو. نوده ورته اووئیل چه څه به تا وژنم.ستا قربانی قبوله شوه او څما قربانی قبوله نشوه،په دې هابیل اووئیل چه ما ښه او بهترین څیز د الله ﷻ په لار کښې خرچ کړې وو. الله ﷻ د متقیانو نیکی قبلوی.په دې هغه نور هم په غصه شو اوهغه ئې په چاړه اووهلو.د هابیل دا وینا په خوله کښې پاتې شوه چه ته به الله ﷻ ته څه جواب ورکوې ؟ الله ﷻ ستا نه د دې ظلم بدله ډیره په خرابه طریقه اخلی.د الله ﷻ نه ویریږه اوما مه قتل کوه خودې ظالم دې ته اونه کتل اودا خپل رور ئې اوژلو.
قابیل خپلې خور سره د نکاح کولو یو وجه دا هم بیان کړې وه چه مونږ دواړه جنت کښې پیداشوی یو.اودوی دواړه په زمکه پیدا شوی دی.په دې وجه هم څه ددې حقدار یم. دا مروی دی چه قابیل غنم د الله ﷻ لار کښې صدقه کړې وو. او هابیل غوا قربانی کړې وه. په هغه وخت کښې څوك مسکین نه وو چه صدقه ئې ورکړې وې نو په دې وجه د آسمان نه به اور راتلو او دا به ئې سیزله. او دا د قبولیت نښه وه.دې فوقیت سره چه کومه کشر رور ته حاصل شو اومشر رور هسې پاتې شو ،نوده په قتل پسې شو ،اوهم دغه شان دواړو رونړو قربانی کړې وه،

**د هابیل د قتل وجه څه وه؟**:- د نکاح د اختلاف ختمولو وجه نه وه. د قرآن پاك د ظاهری الفاظو تقاضا هم دا ده د خفګان وچه قربانی وه نورڅه نه وو.اود دې درج شوئ روایتونو نه خلاف هم دې چه قابیل د الله ﷻ لار کښې پټې ورکړې وو او دا قبول شو ،خومعلومیږی چه په دې کښې د راوی حافظه صحیح نه ده اودا د مشهورې خبرې خلاف ده.والله اعلم.

**متقیان به جنت ته څی**:- الله ﷻ د هغه چا عمل قبلوی چه خپل کار کښې د هغه نه ویره کوی.حضرت معاذ ﷺ فرمائی چه خلق به د قیامت میدان کښې وی،اودې کښې به یواواز کونکې آوازاوکړی چه پرهیزګار چرته دی ؟ نو د الله ﷻ نه ویریدونکی به اودریږی.او دالله ﷻ دلاس لاندې به جمع شی،الله ﷻ

به د دوی نه پرده کوی اونه به ددوی نه مخ اړوی.د حدیث راوی حضرت ابوعفیف رحمه الله نه تپوس اوشو چه متقیان څوك دی ؟ نودوی اوفرمائیل چه متقیان هغه خلق دی چه څوك شرك نه او بت پرستی نه خان بچ ساتی او د الله ﷻ عبادت کوی، نوبیا به دا ټول خلق جنت ته خی.

**قابیل ته د هابیل جواب:-** چه دکوم نیك بخت قربانی قبوله شوې وه هغه د خپل زور دې ارادې آوریدو سره اووئیل چه خیر ته څه غواړې نوهغه اوکړه خه به ستا په شان نه کوم. بلکه خه به صبر کوم. ته خپه زوراوطاقت کښې زیات نې خونیکی؛ او تواضع او پرهیزګارنی په وجه نې اوفرمائیل چه ته په کناه کولو آماده نې خو خه به ددې جرم ارتکاب اونه کړم. خه خو د الله ﷻ نه ویریږم او هغه د ټول جهان رب دې.

**قاتل او مقتول دواړه جهنمیان:-** صحیحینو کښې دی چه کله دوه مسلمانانو توری واخستې او یو بل پسې وراندې شو نو قاتل اومقتول دواړه جهنمیان دی.صحابه کرامو رضی الله عنهم اوفرمائیل چه قاتل خو ټیک ده.خو مقتول ولې ؟.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل خکه چه هغه هم د خپل ملګری په قتل کولو حریص وو(١).

**د فتنې نه ډډه کول:-** حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په هغه وخت کښې اووئیل چه کله حضرت عثمان ذوی النورین رضی الله عنه دښمنانو ګیر کړې وو چه خه ګواهی ورکوم چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل نزدې به یوه فتنه راشی،ناست به د ولاړ نه بهتروی،او ولاړ به د تلونکی نه بهتر وی. او تلونکې به د منډې وهونکی نه بهتروی،چا تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! که څوك خما کور ته هم راشی اوما قتل کوی ؟نووې فرمائیل چه بیا هم د حضرت آدم عليه السلام د خونی په شان شه.(٢)

**دفتنې په وخت کښې د نبی کریم ﷺ ارشادات:-** یو روایت کښې د دې واقعې نه پس د دې آیت مبارك تلاوت کول هم مروی دی (٣). حضرت ایوب سختیانی رحمه الله فرمائی چه په دې امت کښې د ټولو نه مخکښې چا په دې آیت مبارك عمل کړې دې هغه حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه دې.یو خل نبی کریم ﷺ په یو خناور سور وو او نبی کریم ﷺ پسې حضرت ابوذر رضی الله عنه وو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انې ابوذر دا خو اووایه چه کله په خلقو داسې فاقې راشی چه دوی د مسجد نه کور ته هم نه شی تلې؛نو ته به څه کوې ؟ ما اووئیل چه څه د الله ﷻ اودهغه د رسول ﷺ حکم وی.وې فرمائیل صبر کوه.بیانې اوفرمائیل چه کله وینې توېږی یعنی جنګ وی او تردې چه د شګې کانړی هم وینه کښې ډوب شی نو ته به څه کوې ؟ نوما هم هغه جواب ورکړو.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خپل کور کښې کینه او دروازې بندې کړه. وې فرمائیل اګر چه زه کوز نشم ؟ نو وې فرمائیل چه ته هغه خلقوته لاړشه چه کومو کښې اوسیدې او هم هلته اوسیږه.ما عرض اوکړو چه خه خپله وسله ولې وانخلم.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بیا خو به ته هم هغه خلقو سره شامل شې.بلکه که تاد تورې شړنګار پریشانه کوی نو ته هم په خپل مخ کپړا واچوه چه ستا اوخپل ګناهونه هلته یوسم (٤).

**دحذیفه رضی الله عنه په جنازه کښې:-** حضرت ربعی رحمه الله فرمائی چه مونږ د حضرت حذیفه رضی الله عنه جنازه کښې وو،نودې کښې یو صاحب اووئیل چه ما ددې مرحوم نه آوریدلی دی چه دوی د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی که تاسو خپلو کښې جنګونه کوئی نو زه به د ټولو نه لرې کور ته لاړشم او دروازې به بندې

(١) صحیح بخاری کتاب الفتن باب اذا لتقی مسلمان بسیفهما:٧٠٨٣، صحیح مسلم: ٢٨٨٨، ابوداود: ٤٣٦٨، احمد: ٤٦/٧، ابن حبان : ٥٩٤٥، بیهقی : ١٩٠/٨.

(٢) ترمذی کتاب الفتن باب ماجاء انه تکون فتنة القاعد فیها خیر من القائم : ٢١٩٤. وهو صحیح.احمد: ١٨٥/١، مسند ابی یعلی: ٧٥٠.

(٣) ابوداود کتاب الفتن : باب النهی عن السعی فی الفتنة: ٤٢٥٧، وهو حسن

(٤) احمد:١٤٩/٥، ابوداود کتاب الفتن باب النهی عن السعی فی الفتنة: ٤٢٦١ وهو حسن.

کړم او هلته به کينم.که هلته هم څوك راغلل نو څه به ورته اووايم چه زما او خپله ګناه په خپل سرواخله.
نوزه به د حضرت آدم په دوو ځامنو کښې دهغه چا پشان کيږم چه کوم يو بهتر وو، اودا به اووايم چې
څه خوغواړم چه ته څما اوخپله ګناه په خپل سرکيږدې يعنی ستا هغه ګناهونه چه د دې نه مخکښې وو
او څما د قتل ګناه هم په خپل ځان بار کړې[١].
دامطلب هم د حضرت مجاهد رحمه الله نه مروی دې چه څما ګناهونونه به هم ستا په غاړه وی او څما د قتل
ګناه به هم ستا په غاړه وی خو ددوی نه يو قول د مخکښې په شان هم مروی دې. ممکن دی چه دا
دويم قول ثابت نه وی.هم په دې وجه بعضې خلق وائی چه قاتل د مقتول ټول ګناهونه په خپل
سراخلی.اوددې معنی يو بل حديث مبارك هم ده.خوددې څه اصل نشته دې.
بزارکښې يو حديث مبارك کښې دی چه بې قصوره قتل ټول ګناهونه ختموی.اګرچه دا حديث پورتنۍ
معنی کښې نه دې.نوپه دې وجه دا هم صحيح نه دې.او د دې روايت مطلب دا هم دې چه د قتل د
تکليف په وجه الله ﷻ د متقول ټول ګناهونه معاف کوی.اوس هغه په قاتل طرفته متوجه کيږی.دا خبره
ثابت نه ده. ممکن دی چه بعضې قاتلان داسې هم وی،چې قاتل به د قيامت په ورځ قاتل تلاش
کوی،او دده د ظلم مطابق به دده نه نيکئ اخلی.نوممکن دی چه ټول ګناهونه د بعضو قاتلانو په سر
شی.ځکه چه د ظلم دداسې بدلې اخستلو خبره د حديث مبارك نه هم ثابت ده. اوظاهره ده چه قتل د
ټولو نه لونې ظلم او ټولو نه خراب دې.والله اعلم.
امام ابن جرير رحمه الله فرمانی چه ددې جملې صحيح مطلب دا دې چه څه غواړم چه ته خپل ګناهونه او
څمادقتل ګناه په خپل سرواخلې.ستاګناهونو سره دا يو ګناه بله هم زياته شی.د دې مطلب بالکل دا نه
دې چه څما ګناهونه دې هم ستا شی.ځکه چه د الله ﷻ فرمان دې چه هر عامل ته د هغه د عمل سزا او
جزاملاويږی. بيا دا څنګه کيديشی چه د مقتول د ټول عمر ګناهونه په قاتل انبار شی اود هغه د
ګناهونوپه وجه دې راونيولې شی؟ باقی پاتې شوه چې هابيل خپل رور ته دا خبره ولې اوکړه ؟ ددې
جواب دا دې چه ده ورته په آخری ځل نصيحت اوکړو اودی نې ويرولو چه د دې کار نه منع شه،ګنی
ګناهګار به شې اوجهنم ته به اورسې ځکه چه څه ستا د مقابلې نه يم او ټول بوج به په تا راشی.اوهم ته
به ظالم شې اود ظالمانو ځاې جهنم دې.د دې باوجود هم هغه ته خپل نفس دهوکه ورکړه او حسد او
تکبرکښې راغلو اوخپل رور نې قتل کړو.

**هابيل په څۀ قتل شوې وو؟:-** ① هغه شيطان په دې قتل آماده کړواو هغه د خپل نفس آماره پيروی
اوکړه.اوهغه نې په اوسپنه اوژولو.②يوروايت کښې دی چه ده خپل څناور غر ته بوتلې وو.دې په تلاش
کولو هلته اورسيدو اويوغټ کاڼړی نې راوچت کړو اوهغه نې په سراووهلو او هابيل په هغه وخت
کښې ملاست وو. ③بعضې وائی چه درنده په شان نې تکړې تکړې کړو د ده مرئی نې خپه کړه او ساه
نې ترې اوويستله.

**د شيطان قابيل ته د قتل طريقه خودل:-** دا هم وئيلې شوی دی چه هرکله شيطان دې اوليدو چه ده ته د
قتل کولو طريقه نه ورځی اود هغه مرئی نې خپه کوله نودې ملعون شيطان يو څناور راونيولو اود هغه
سرئې په يو کاڼړی کيخوداوبل کاڼړی سره نې د هغه سر چخنړې کړو. دې کتلو سره هغه هم خپل رور
داشان اوژولو.دا هم مروی دی چه ترډغه وخته پورې په مخ زمکې قتل نه وو شوې ،نو قابيل خپل رور
راواچولو اوکله به نې د هغه سترګې بندې کړې اوکله به نې په څپيړو او څوکانو وهلو. دې کتلو سره
هغه لعين ده ته راغلو اوده ته نې اووئيل چه دده سر چخنړې کړه.هرکله چه هغه داشان اوکړل نو دا

[١]) مسندالبزار:: ١٥٤٥، وسنده حسن مجمع الزوائد: ٢٢٦/٦، الطبقات: ٦٦/٢، اخبار اصبهان : ٣٦/٢.

لعین په منډه منډه حضرت حوا علیها السلام ته راغلو او ورته ئې اوونیل چه قابیل خو هابیل قتل کړو.دې تپوس اوکړو چه قتل څنګه وی ؟ نودې لعین اوونیل ورته اوونیل چه نه اوس هغه خوراك کولې شی اونه څه څکلې شی او نه خبرې کولې شی او نه ګرزیدې شی.وې ونیل چه شاند مرګ ورته راغلې وی. هغه اوونیل چه آو مرګ.اوس مور بی بی په چغو شوه،په دې کښې حضرت آدم ﷺ راغلو،تپوس ئې اوکړو چه څه خبره ده ؟ خو دې ورته هیڅ جواب ورنکړو.حضرت آدم ﷺ دوباره سوال اوکړو خو دې ورته د غم په وجه هیڅ اونه اوونیل.ده ورته اوونیل چه ته او ستا لونړا به ښه په غم کښې وی او څه او څما خامن به ددې نه بری یو.قابیل خساره او نقصان کښې شو.اود هغه دنیا اوآخرت دواړه تباه شول.

**دهرقتل سزا به قابیل ته ملاویږی:-** نبی کریم ﷺ فرمائی چه کوم انسان په ظلم سره قتل کړې شی نو دده د قتل بوج به د حضرت آدم ﷺ د دې ړومبې خوې په غاړه وی.ځکه چه هغه په ناحقه قتل کړې وو([1])حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه د قاتل د پښې یو پتون په هغه ورځ زورند کړې شی او دده مخ نمر طرفته وی،دده ګرزیدو سره به ګرزی او په یخنۍ او ګرمۍ کښې اور او واوره کښې دې معذب دې.

حضرت عبدالله ﷺ نه مروی دی چه د جهنم د اور نیمه حصه به دده په سر وی.تولو ته لونې معذب په هم دې وی.د زمکې د هر قتل ګناه به دده په سروی. ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی چه په ده باندې اوپه شیطان په دهر قتل بوج وی.

هرکله چه قابیل خپل رور هابیل اووژولو نو دا ورته معلومه نه وو چه ده سره څه اوکړی.او څنګه دې پټ کړی.نوالله ﷺ دوه کارغان راولیږل او دواړه خپلو کښې رونړې وو.دوی خپلو کښې د ده په مخکښې په جنګ شوې اویو بل اووژلو،او بیائې یوکنده اوکنیسته اوهغه ئې دې کښې ښخ کړو او ده دپاسه ئې ښاوره واچوله.دې کتلو سره د قابیل په پوهه کښې هم دا ترکیب راغلو اوهم دغه شان ئې اوکړل.

حضرت علی ﷺ نه مروی دی چه یوکارغه پخپله مړه شوې وو بل کارغه دې مړکارغه دپاره کنده اوویستله اوهغه ئې په دې کښې ښخ کړو.

دا هم مروی دی چه قابیل تول کال د خپل رور لاش په خپله شا ګرزولو،بیا د کارغه په کتلو ده خپل نفس ملامته کولو چه ما دومره هم اونه کړل. دا هم ونیلې شوی دی چه د قتل کولو نه پس دې ډیر پښیمانه وو اولاش ئې ګرزولو او خپله غیره کښې ئې ایښودې وو،او دا په دې وجه چه په مخ د زمکې د تولو نه ړومې قتل هم دا وو.

اهل تورات وائی چه کله قابیل خپل رور هابیل قتل کړو نو الله ﷺ هغه نه تپوس اوکړو چه ستا په رور هابیل باندې څه اوشو ؟ ده اوونیل چه څه څه خبر یم ؟ څه خو د ده سرپرست نه اوم. الله ﷺ اوفرمائیل چه ستا د رور قتل ما ته فریاد کوی او په تا څما لعنت دې.اوتا په دې زمکه د خپل رور وینه اوڅکوله،نو اوس چه ته څه په دې زمکه کار کوې نوتاته به هغه هیڅ نه درکوی چه تر کومې ته په دې کښې سرګردانی اونکړې.ده خو دا کار اوکړو خو په دې ډیر زیات پښیمانه شو. نقصان باندې پښیمانتیا ګویا په عذاب باندې عذاب دې.

**قابیل او هابیل د ادم ﷺ خامن وو:-** په دې قصه کښې د مفسرینواقوال په دې خبره متفق دی چه دا دواړه دحضرت آدم ﷺ صلبی خامن وو. او هم دا د قران پاك د الفاظو نه صفا معلومیږی.او د حدیث مبارك نه هم دا معلومیږی چه په مخ د زمکې کوم یو قتل کیږی نو ددې یو حصه بوج او ګناه به د حضرت آدم

---

[1]) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب خلق آدم وذریته: ٣٣٣٥، صحیح مسلم: ١٦٧٥، ترمذی : ٢٦٧٣، ابن ماجه: ٢٦١٦، احمد: ٣٨٢/١، ابن حبان : ٥٩٨٣، بیهقی : ١٥/٨، ابن ابی شیبة: ٣٦٤/٩، عبدالرزاق : ١٩٧١٨، مسند حمیدی : ١١٨، السنن الکبری للنسائی: ١١١٤٢.

ﷺ په دې خونې وی. ځکه چه هم ده د ټولونه مخکښې د قتل کولو طریقه ایجاد کړې وه.(١)
**یوضعیف قول:-** خودحضرت حسن بصری رحمه الله قول دې چه دا دواړه د بنی اسرائیلو نه وو. قربانی تولو نه مخکښې په دوی کښې راغله او په مخ د زمکې د ټولو نه مخکښې د حضرت آدم ﷺ انتقال شوی وو. خو دا قول تامل طلب دې اوددې سندهم صحیح نه دی. یومرفوع حدیث مبارك کښې دی چه دا واقعه په طور دیو مثال ده. تاسو ددې نه ښه واخلئ او خراب پریږدئ. دا حدیث مبارك مرسل دې(٢).
**د هابیل د قتل نه پس د ادم ﷺ غم:-** وائی چه حضرت آدم ﷺ د دې غمه ډیر تکلیف کښې وو. اویو کال پورې دوی خندلی نه وو آخر فرښتو دده دغم لرې کیدو او دده د خندا دپاره دعا اوکړه. حضرت آدم ﷺ په هغه وخت کښې ونیلی وو چه ښار اوددې ټول څیزونه متغیر شو. د زمکې رنگ بدل او دا ډیره بدصورته شوه. د هریوڅیز مزه ختمه شوه اود مخونو کشش هم ختم شو. په دې دوی ته جواب ورکړې شو چه دې مرده د دې ژوندی کس هم خپل ژوندتباه کړو اوچه مقتول کوم گناهونه کړی وو د هغې بوج هم دقاتل په سرشو.
**قابیل ته په دنیا کښې سزا:-** په ظاهره معلومیږی چه قابیل ته هم په هغه وخت سزا ورکړې شوه. نو وارد شوی دی چه دده پنډئی دده پتون سره زوړنده کړې شوه. اودده مخ نمر طرفته شو.اوهم د نمر سره به د ده سره تاویدو. یعنی چه کوم طرفته به نمر وو هغه طرفته به دده مخ تلو.
حدیث مبارك کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څومره گناهونه ؟دده دی،د چا گناهونه دی زر به په دنیا کښې ده ته سزا ورکړې شی او بیا آخرت کښې به ده ته زبردست عذاب ورکولې.او په دې کښې د ټولونه لویه گناه سرکشی او قطع رحمی ده.(٣) اوبه قابیل کښې دا دواړه څیزونه جمع دی.﴿فانا لله وانا الیه راجعون﴾

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ ۚ | كَتَبْنَا | عَلٰى بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ | اَنَّهٗ | مَنْ قَتَلَ | |
| په سبب ددې | الیکلې وؤ مونږه(تورات کښې) | په بنی اسرائیلو باندې | اچې بیشکه | اچا چې مرکړو | |
| | | ا ددې وجې نه مونږ بنی اسر ائیلو ته دا حکم ورکړې وؤ | ا چې چا یونفس | | |
| نَفْسًاۢ | بِغَيْرِ | نَفْسٍ | اَوْ فَسَادٍ | فِى الْاَرْضِ | فَكَاَنَّمَا قَتَلَ |
| یونفس | بې دعوض | دبل نفس نه | یابې دفسادخورولونه | په زمکه کښې | نولکه چې امږه کړل هغه |
| | | دبل نفس دبدلې نه بغیر یا د زمکې په مخ دفساد کولونه بغیر قتل کړو | نوگویا چې هغه | | |
| النَّاسَ | جَمِيْعًا ؕ | وَمَنْ اَحْيَاهَا | فَكَاَنَّمَآ اَحْيَا | النَّاسَ | جَمِيْعًا ؕ |
| خلق | ټول | اوچا چې ژوندې کړوهغه | نولکه چې ژوندی کړل هغه | خلق | ټول |
| | | ټول خلق قتل کړل ا اوچا چې یو نفس ژوندې بچ کړو ا نوگویا هغه ټول خلق ژ وندی کړل | | | |
| وَلَقَدْ | جَآءَتْهُمْ | رُسُلُنَا | بِالْبَيِّنٰتِ ؗ | ثُمَّ | اِنَّ |
| اوپه تحقیق سره | راغلی وؤ هغوئ ته | رسولان زمونږه | دواضحه نښنوسره | بیا | بیشکه |
| | | اوزمونږپیغمبرانو دوئ ته څرگندې نښې راوړې وې ا .................خو ددې باوجود | | | |

---

١) ددې تخریج مخکښې صفحو کښې تیر شوې دې.
٢) الطبری : ١٠/١٢٩.
٣) ابوداود کتاب الادب باب فی النهی عن البغی : ٤٩٠٢، وسنده صحیح ترمذی : ٢٥١١، ابن ماجه : ٤٢١١،

كَثِيرًا مِّنْهُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ فِي الْأَرْضِ لَمُسْرِفُونَ ۝ إِنَّمَا جَزٰؤُا

ډیر خلق| دهغوئ نه| روستو ددې نه |په زمکه کښې | خامخا زیاتی کونکی دی | بیشکه | سزا

په دوئ کښې ډیر خلق دزمکې په مخ زیاتې کوی| بیشکه د هغه کسانو سزا کوم چې

الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللّٰهَ وَرَسُولَهٗ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ

دهغه کسانو| چې جنګ کوی|د الله سره|اودرسول دهغه سره|اوکوشش کوی | په زمکه کښې

دالله او د رسول سره جنګ کوی| او دزمکې په مخ دفساد کولو کوشش کوی

فَسَادًا أَنْ يُّقَتَّلُوْٓا أَوْ يُصَلَّبُوْٓا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ

د پاره دفساد| چې قتل دې کړې شی هغوئ| یادې په سولئ کړې شی|یادې پرېکړې شی|لاسونه دهغوئ

نو دهغوئ سزا دا ده | چې هغوئ قتل کړې شی| یا په سولئ کړې شی | یاترې لاسونه اوپښې

وَأَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ۚ ذٰلِكَ لَهُمْ

اوخپې دهغوئ| مخالفې |یا دې اوشړلې شی | دزمکې نه |دا(سزا) ده| دپاره دهغوئ

ادل بدل کټ کړې شی | اویا د وطن نه اوشړلې شی | .................... د دوی دپاره دا شرمندګی

خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝ إِلَّا الَّذِينَ

رسوائی ده|په دنیا کښې|اوده دهغوئ دپاره| په آخرت کښې | سزا | لویه |مګر هغه کسان

په دنیا کښې ده| او په آخرت کښې دوئ دپاره لوئې عذاب تیار شوې دې | البته څوک چې

تَابُوْا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهِمْ ۚ فَاعْلَمُوْٓا أَنَّ اللّٰهَ

چې توبه اوباسی|مخکښې ددې نه | چې تاسو قادر شئ| په هغوئ باندې | نو پوهه شئ| چې بیشکه الله

ددې نه وړمبې چې تاسو پرې قابو بیا مومئ توبه اوباسی | .................نو پوهه شئ چې الله ﷻ

غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝

ښونکې مهربان دې |

بخښونکې او مهربان ذات دې |

قوله تعالی:: مِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ ۚ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ أَنَّهٗ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ

**دانسان قدرو قیمت ::** فرمان دې چې د حضرت آدم علیه السلام د ځوئې بې د ځه وجې نه قتل کولو په وجه موږ اسرائیلو ته صفا صفا اووئیل او دهغوئ کتاب کښې مو اولیکل اوهغوئ دپاره مو شرعی حکم اوکړو چې چا قتل اوکړو او هغه مقتول ځه قتل نه وو کړې او نه ئې په زمکه کښې فساد کړې وو نو دا داسې ده لکه چې هغه ټول خلق قتل کړل. هغه دپاره د رب په نزد ټول مخلوق یو شان دې اوچې څوک د بې قصوره سړی د قتل کولو نه منع شی اودا حرام اوګڼړی نودا داسې دی لکه چې هغه ټول مخلوق بچ کړو. خکه چې ټول خلق به داشان سلامتیا سره اوسیږی.

**د محاصرې په وخت کښې د عثمان رضی الله عنه قول:-** هرکله چې باغیانو د حضرت عثمان رضی الله عنه نه ګیره واچوله نو حضرت ابوهریره رضی الله عنه هغوئ ته ورغلو اوورته ئې اووئیل چې ځه ستاسو طرفنه ستاسو مخالفینو سره

جنګ اوکړم. تاسو ګورئ چې اوبه د ورخه تیرې دی.دې اوریدو سره حضرت عثمان ﷺ اوفرمائیل چې آیا ته په دې خبره راضی يئ چې ته هغه خلق قتل کړې په کومو کښې چې څه هم يم. حضرت ابوهريره ﷺ اوفرمائیل چې نه.حضرت عثمان ﷺ اوفرمائیل چې واوره يو کس قتل کول داسې دی لکه چې ټول قتل کړې.څه واپس لاړشه څماخواهش دې چې الله تعالی تاته اجر درکړی سزا نه.دې نه پس دوی واپس شو او جنګ ئې اونه کړو.مطلب دا دې چې د قتل شروع کول ددنیا دتباه کولو باعث دی.اوددې نه منع کیدل د خلقو د ژوند سبب دې.

حضرت سعید بن جبیر رحمه الله فرمائی چې د يو مسلمان وينه حلالونکې د ټولو خلقو قاتل دې.اود يو مسلمان وينې بچ کونکې داسې دی لکه چې هغه ټول مسلمانان بچ کړل.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چې څوک يو نبی يا يو عادل بادشاه قتل کړی نو په هغه دټولې دنيا د خلقو دقتل ګناه ده.اود نبی او د عادل بادشاه لاس مضبوطونکې د دنیا د بچ کونکو پشان دې.(ابن جرير) اويو روايت کښې دی چې بغير د څه ګناه نه د چا قاتل د جهنم حقدار شی او دا داسې دی لکه چې ټول ئې وژلی وی.

حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چې څوک يو مومن بې وجې قتل کړی نو هغه جهنمی،د رب دښمن،ملعون اود سزا مستحق دې.بيا که دې ټول خلق هم اووژنی نو ددې نه به زياد عذاب بل څه وی ؟ څوک چې د قتل نه روستو شو يعنی قتل ئې اونکړو نو ددهٔ طرفنه د ټولو خلقو ژوند محفوظ دې .(١) عبدالرحمان رحمه الله فرمائی چې ديو قتل بدله ددهٔ وينه حلاله شوه.دا نه چې ډيرو لره قتل کړی،هرکله چې دې د قصاص قابل شو اوچې څوک دې بچ کړی يعنی ولی قاتل ته معافی اوکړی نودا داسې دی لکه چې دهٔ ټولو خلقو ته معافی اوکړه. اوددې دا مطلب هم بيان شوې دې چې چا يو انسان بچ کړو.لکه يو کس ډوبيدو اودهٔ بچ کړو،يو سوزيدو اودهٔ بچ کړو،څوک ئې د هلاکت نه بچ کړل.مقصد دا دې چې خلق د ناحق قتل نه منع کول اود خلقو خيرخواهی او امن وامان طرفته ئې رابلل.

حضرت حسن رحمه الله نه تپوس اوشو چې بنی اسرائيل څنګه ددې حکم مکلف وو (چې څوک به نه قتلوی) مونږ هم يو ؟ نو وې فرمائيل چې بالکل هم داسې ده .په الله قسم د بنی اسرائيلو وينه زمونږ د وينې نه زياته قيمتی نه وه.نود يو سړی بې د څه وجې قتل کول داسې دی لکه چې دټولو دقتل بوج په خان کړی اوکه څوک يو کس بچ کړی نو دا د ټولو د بچ کولوبرابر دی.

يو ځل حمزه بن عبدالمطلب ﷺ رسول الله ﷺ ته درخواست اوکړو چې يارسول الله ﷺ ماته يو داسې خبره اوکړئ چې هغې سره څما ژوند ښهٔ آرام سره تير شی.حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ته څوک قتل کول غواړې که څوک بچ کول؟ جواب ئې کښې اوفرمائيل چې بچ کول نو حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې بس هميشه خپله اصلاح کوه .(٢)

قوله تعالى: وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ

بيافرمائی چې دوئ ته زمونږ پيغمبر ﷺ واضح دليلونه راوړی دی .اوهغه سره واضح احکامات او ښکاره معجزې دی.خو ددې نه پس هم خلق د خپلې سرکشئ نه او جنګ وجدال نه نه منع کيږی.د بنو قينقاع قبيلې يهود ،بنوقريظه او بنو نضير ته وغيره ته پام اوکړئ چې اوس او خزرج ته يو ځائې شو او يو بل سره ئې جنګونه کول او جنګ نه پس به ئې بيا د قيديانو فديې ورکولې او هغوئ به ئې راخلاصول.او د مقتول ديت به ئې اداکولو. نو په دې قرآن پاک دوئ پوهه کړل چې ستاسو نه دا وعده اخستې شوې وه چې تاسو به نه د خپلو قتل کوئ او نه به د نورو. خوتاسو د پخې وعدې اومضبوط

(١) ابوداود كتاب الادب باب النهى عن البغى : ٤٩٠٢.

(٢) احمد: ١٧٥/٢.

عهد نه پس هم بيا ددې خلاف اوکړل فديې مو ورکړې او ويستل هم حرام وو. د دې ځه مطلب چې تاسو يو حکم منئ اوبل نه منئ. دداسې خلقو سزا دا ده چې دنيا کښې به رسوا او خوار وي اودوئ لره به آخرت کښې سخت عذاب وي او الله تعالى ستاسو د اعمالو نه غافل نه دې.

**قوله تعالى:** إِنَّمَا جَزَٰٓؤُاْ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَسۡعَوۡنَ فِي ٱلۡأَرۡضِ

**په زمکه کښې د فساد خورولو سزا:-** د محاربة معنى د حکم برعکس، خلاف کول، مخالفت کول. اوددې نه مراد کفر، ډاکه اچول، په زمکه فساد خورول او داشان رنګ په رنګ فسادونه خورول دي. تردې چې سلفو داوئيلي دي چې سکه ماتول هم په زمکه د فساد خورولو پشان دي. د قرآن پاک يو بل آيت مبارک کښې دي چې هرکله دوئ د يو کار مشران شي نو فساد په کښې کوي. اوو پټي او نسل تباه کوي. الله تعالى فساد نه خوښوي.

**د ايت شان نزول:-** ① دا آيت مبارک د مشرکانو باره کښې نازل شوې دې. ځکه چې په هغې کښې دا هم دي چې کله داسې سړې د مسلمانانو د ګرفتارولو نه مخکښې توبه اوکړي نو په هغه هيڅ مواخذه نشته دې. ددې خلاف چې کله مسلمانان داسې کارونه اوکړي او هغه اوتښتي اوکافرانو سره يوځائې شي نو په هغه به شرعي حد جاري کيږي.[1] حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چې دا آيت مبارک د مشرکانو باره کښې نازل شوې دې. بيا چې په دوی کښې مسلمانان څوک ګرفتار کړي اوددې نه مخکښې مخکښې دې توبه اوباسي نو چې په باندې دده د کار په وجه ثابت شو هغه دده نه نشي لرې کيدلې.

① حضرت ابي ﷺ نه مروي دي چې د اهل کتابو يوې ډلې سره حضرت نبي کريم ﷺ معاهده کړې وه خو هغوئ هغه ماته کړه او فساد ئې شروع کړو. په دې الله تعالى خپل نبي ﷺ ته اختيار ورکړو که ته غواړې نو دوې قتل کړه. اوکه غواړې نو ددوی لاس او پښه مخالف پرې کړه (يعنى ښې لاس او ګسه پښه يا ګس لاس او ښئ پښه).[2]

② حضرت سعد ﷺ فرمائي دا د حروريه خوارجو باره کښې نازل شوې دې. صحيح دادې چې څوک هم داکار اوکړي نو هغه د پاره دا حکم دې. په بخاري اومسلم کښې دي چې د عکل قبيلې اته سړي د حضرت نبي کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شونو نبي کريم ﷺ هغوئ ته اوفرمائيل که تاسو غواړئ نو زمونږ شپونکو سره لاړشئ او تاسو ته به د اوښانو متيازې ملاويږي. کله چې هغوئ روغ شول نو هغوئ هغه شپونکي اووژل او اوښان ئې روان کړل. کله چې حضرت نبي کريم ﷺ ته د دې خبر ملاؤ شو نو حضرت نبي کريم ﷺ صحابه کرامو ته حکم اوفرمائيلو چې هغوئ پسې لاړشئ او وې نيسئ. نو هغوئ ګرفتار کړې شو. او د حضرت نبي کريم ﷺ مخکښې پيش کړې شو. بيا د هغوئ لاس پښې پرې کړې شوې. او سترګو کښې ورته ګرم سلايان راښکلې شو. اوپه نمر واچولې شو او مړۀ شو.

**د عرنيينو سزا:-** مسلم کښې دي چې ددې خلقو تعلق يا عکل قبيلې سره وو يا عرينه سره. دوئ به اوبه غوښتلې خو دوئ ته به نه ملاويدلې. د هغوئ مرهم پټئ اوکړې شوه. ځکه چې هغوئ غلا هم کړې وه او قتل ئې هم کړې وو. ايمان نه پس ئې بيا کفر اختيار کړې وو. اوحضرت نبي کريم ﷺ سره ئې جنګ هم کړې وو. هغوئ د شپونکو سترګو کښې ګرم سلايان هم ويلې کړي وو. هغه وخت کښې د مدينې آب وهو ښه نه وه. د برسام بيماري خوره وه. حضرت نبي کريم ﷺ هغوئ پسې شل آسونو والا ليږلي وو. اويو

---

[1] الطبری : ۲۴٤/۱۰.

[2] الطبری : ۲۴۳/۱۰.

رهبر وو چې هغوئ به ددوئ رهبري کوله (١)، د مرګ په وخت کښې د هغوئ دا حالت وو چې هغوئ داولړې د وجې زمکه څټله.د هغوئ باره کښې دا آيت مبارک نازل شو.(٢)
يو ځل حجاج حضرت انس ﷺ نه تپوس اوکړو چې حضرت نبی کريم ﷺ د ټولو زياته سخته سزا کومه ورکړې وه نو هغوئ ورته دا واقعه بيان کړه.په دې واقعه کښې دا هم دی چې دا خلق بحرين نه راغلی وو او د بيمارئی په وجه د دوی رنګونه زيړ شوی وو او وخيټې ئې غټې شوې وې.نو حضرت نبی کريم ﷺ هغوئ ته دا اووئيل چې تاسو لاړ شئ او اوښانو کښې اوسيږئ او د هغوئ متيازې څکئ.(٣)

**دحجاج چالاکی:-** حضرت انس ﷺ فرمائی چې بيا ما اوکتل حجاج دا روايت د خپلو ظلمونو دپاره دليل جوړ کړو.بيا خه ډير پښيمانه شوم چې ما دا حديث پاک هغه ته ولې بيان کړو؟ او يو روايت کښې دی چې هغوئ د څلورو کسانو تعلق عرينه قبيلې سره وو او دريو کسانو عکل قبيلې سره. دا ټول روغ رمټ شو.اويو روايت کښې دی چې دوئ لارې هم بندې کړې او دوئ زناکار هم وو(٤) کله چې دوئ راغلی وو نو دوئ سره د غريبئ د دلاسه هيڅ نه ووصرف جامې ئې په بدن وې.دوئ قتل کولو نه پس خپل وطن ته روان شول.

**د يوې جملې ترديد:-** حضرت جرير ﷺ فرمائی چې دوئ بس خپل قوم ته رسيدنکی وو چې ګرفتار کړې شو. هغوئ به اوبه غوښتلې او حضرت نبی ﷺ به ورته فرمائيل چې اوس به تاسو ته د اوبو بدله کښې د جهنم اور ملاويږی.دې روايت کښې دا هم دی چې په سترګو کښې ورتـه سلايان وهل دالله تعالی خوښ نشو. دا حديث پاک ضعيف او غريب دې.خو ددې نه معلوم شو چې ددې مرتدانو ګرفتارولو پسې کوم لښکر ليږلې شوې وو دهغوئ سردار حضرت جرير ﷺ وو. او دې روايت دا فقره منکره ده چې الله تعالی ته د هغوئ سترګو کښې سلايان وهل خوښ نشو خکه چې په صحيح مسلم کښې موجود دی چې هغوئ شپونکو سره هم داشان کړی وو. نودا د هغوئ بدله اود هغوئ قصاص وو چې کوم دوئ هغه (شپونکو) سره کړې وو. (٥) نوهم هغه سلوک هغوئ سره اوکړې شو. والله اعلم.
او يو روايت کښې دی چې ددې خلقو تعلق د بنی فزاره قبيلې سره وو. دې واقعې نه پس حضرت نبی کريم ﷺ هيچا ته دا سزا نه وه ورکړې.(٦) اويوروايت کښې دی چې د حضرت نبی کريم ﷺ يو غلام وو چې د هغه نوم يسار ﷺ وو. دې ډير
ښه مونځګزار وو. په دې وجه حضرت نبی کريم ﷺ هغه آزاد کړې وواو خپلو اوښانو سره ئې ليږلې وو. دهٔ به د هغوئ نګرانی کوله.هغه هم دې مرتدانو قتل کړې وو او د هغه سترګو کښې ئې ازغی منډلی وو او اوښان ئې ترينه تښتولی وو. چې کوم لښکر هغوئ ګرفتار کړی وو هغوئ کښې يو حضرت کرزبن جابر فهری ﷺ هم وو چې ډير بهادر وو.(٧)

---

(١) صيحح بخاری کتاب المغازی باب قصة عکل وعرينة : ٤١٩٢، صحيح مسلم : ١٦٧١، ابوداود: ٤٣٦٦، ترمذی : ٢٠٤٢، نسائی : ٤٠٣٠.

(٢) ترمذی کتاب الطهارة باب ماجاء فی بول مايؤکل لحمه: ٧٢ وسنده صحيح،نسائی : ٤٠٣٩.

(٣) دې روايت کښې سلام بن ابی الصهبان مجروح دې او ددې شاهد صحيح بخاری :صفحه ٥٦٨٥ باندې موجود دې.اوددې په و جه دا روايت حسن دې.

(٤) الطبری: ١٠/٢٥٠،.

(٥) صحيح مسلم کتاب القسامة : باب حکم المحاربين والمرتدين: ١٦٧١.

(٦) عبدالرزاق: ١٨٥٤١،.

(٧) طبرانی : ٦٢٢٣، مجمع الزوائد: ٦/٢٩٤،.

**د عرنيينو ګرفتاري:-** حافظ ابوبکر ابن مردويه رحمه الله د دې روايت ټول طريق راجمع کړي دي ، الله تعالى دې هغوئ ته جزائې خير ورکړي. ابوحمزه بن عبد الکريم رحمه الله نه د اوښانو د متيازو باره کښې سوال اوشو نو هغوئ ورته د هغه شورشيانو قصه بيان کړه. هغې کښې دا هم دي چې دې منافقانه طور سره ايمان قبول کړې وو. او حضرت نبی کريم ﷺ ته ئې شکايت کړې وو چې د مدينې منورې آب و هوا موافق نه ده هر کله چې حضرت نبی کريم ﷺ ته د هغوئ د قتل او دهوکې او فساد علم شو نو حضرت نبی کريم ﷺ اعلان اوکړو چې ائې د الله لښکره پورته شه. دې آواز آوريدو سره مجاهدين پورته شو او هډو د يو پل انتظار ئې اونه کړو او دې مرتدډاکونو او شورشيانو پسې روان شو. د هغوئ ليږلو نه پس حضرت نبی کريم ﷺ پخپله هم هغوئ پسې روان شو. هغه خلق خپل ځائې ته رسيدنکې ووچې صحابه کرامو ؓ هغوئ نه دائره واچوله او هغوئ کښې چې څومره ګرفتار شو هغوئ ئې د حضرت نبی کريم ﷺ مخکښې پيش کړل. د هغوئ سزا دا وه چې هغوئ د اسلامی حکومت حدودو نه بهر کړې شو. هغوئ ته دې نه پس عبرتناکې سزاګانې ورکړې شوې او دې نه پس حضرت نبی کريم ﷺ چاته هم داسې سزا ورنکړه چې په هغې کښې د هغه د بدن اندامونه پرې کړې شوې وی. بلکه حضرت نبی کريم ﷺ د دې نه منع اوفرمائيله. اودې نه ئې هم منع اوفرمائيل چې څوک څناورو سره داسې عمل اوکړو.

**بعضې نور اقوال:-** ځينې روايتونو کښې دی چې د قتل نه پس هغوئ اوسيزلې شو. (١) ځينې وائی چې دا د بنو سليم کسان وو. د ځينو بزرګانو قول دې چې هغوئ ته حضرت نبی کريم ﷺ کومه سزا ورکړې وه هغه د الله تعالى خوښه نشوه. اودې آيت مبارک سره ئې هغه منسوخ کړه. د هغوئ په نزد دې آيت کښې حضرت نبی کريم ﷺ د هغه سزا نه منع کړې شو. ﴿عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ﴾ (٢) او ځينې وائی چې حضور نبی کريم ﷺ د مثله کولو يعنی لاس، پښه، پوزه او غوږ پريکولو نه منع فرمائيلې ده. دې حديث پاک سره دا سزا منسوخ شوه. خو دا ډيرد تامل خبره ده.

**د نسخې تاريخ:-** بيا دې کښې دا خبره د غور طلب ده چې د ناسخ د تاخير دليل څه دی ؟ ① ځينې وائی چې دا واقعه د اسلام د حدودو قائميدو نه مخکښې وه. دا هم صحيح نه معلوميږی. بلکه د حدودو تقرر کيدو نه پس واقعه معلوميږی. ځکه چې د دې حديث پاک راوی حضرت جرير بن عبد الله ؓ دې اوهغوئ د سورة مائده د نازليدو نه پس اسلام قبول کړې وو. ② ځينې وائی چې حضور ﷺ د هغوئ په سترګو کښې سلايان راښکل غوښتل خو دې کښې دا آيت مبارک نازل شو اوحضور ﷺ خپله اراده منسوخ کړه. خو دا هم درست نه دی. ځکه چې په بخاری او مسلم کښې دا لفظ دې چې حضور ﷺ د هغوئ سترګو کښې د سلايانو راښکلو حکم اوکړو. محمد بن عجلان رحمه الله فرمائی چې حضور نبی کريم ﷺ هغوئ ته کومه سزا ورکړه د هغې په انکار کښې دا آيتونه نازل شو. او په هغې کښې د صحيح سزا بيان شوې دې. چې په کومه سزا کښې د قتل کول او د لاس، پښې په خلاف پريکولو حکم باندې مشتمل دې. اوتاسو اوګورئ چې دې نه پس د چاسترګو کښې سلايان وهل ثابت دی (٣) ③ خو اوزاعی رحمه الله وائی چې دا صحيح نه دی چې دې آيت مبارک کښې حضور ﷺ ته په هغه کار تنبه ورکړې شوه کوم حضور نبی کريم ﷺ کړې وو. خبره داده چې څه هغه کسانو کړې وو هغوئ ته د هغې بدله ورکړې شوه. اوس چې کوم آيت مبارک نازل شو په هغې کښې چې کوم خاص حکم د داسې خلقو باره کښې ورکړې شوې دې اوپدې کښې سترګو کښې د سلايانو وهلو حکم نشته دې.

---

(١) الطبری: ١٠/٢٤٦.
(٢) الطبری: ١٠/٢٥٣.
(٣) الطبری: ١٠/٢٦٣.

**د باغیانو د سزا ذکر:**- ددې ایت مبارک جمهور علماء کرامو دا دلیل نیولی دې چې د لارې بندل او جنګ کول او ښارونو کښې جنګ کول یو برابر دی. ځکه لفظ ﴿وَيَسۡعَوۡنَ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَسَادًا﴾ دې. دا امام مالک رحمه الله، اوزاعی رحمه الله، لیث رحمه الله، امام شافعي رحمه الله هم دا مذهب دې. شوریان که په ښار کښې داسې فتنه جوړه کړي یا د ښار نه بهر وی نو د هغوئ داسزا ده. بلکه امام مالک خو تر دې پورې وائي چې یو کس بل لره د هغه په کور کښې داسې دهوکې سره قتل کړي نو هغه به نیولې شي او هغه سره چې څومره مال وی هغه به ترې اخستې شي او هغه به قتل کولې شي. او داکار به د وخت امام پخپله کوی، د مقتول خپلوان به ئې نه کوی. بلکه که هغوئ ورته معافي کول غواړی نو بیا هم د دوی اختیار کښې نشته دې. بلکه دا جرم بې واسطې د اسلامی حکومت دې. د امام ابوحنیفه رحمه الله دا مذهب نه دې بلکه هغه وائي چې محاربه به هغه وخت کښې منلې کیږی چې کله څوک د ښار نه بهر داسې فساد اوکړی. ځکه چې ښار ته مدد رسول ممکن دی. لارو کښې دا خبره ممکن نه ده. چې کومه سزا د محاربینو بیان شوې ده د هغې باره کښې حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې کوم کس په مسلمانانو پسې توره راوچته کړي یا لارو دپاره خطره جوړه شي نو امام المسلمین ته دا اختیار حاصل دې چې دې سزاګانو کښې ورته کومه سزا ورکوی نو ورکولې شي.([1]) او هم دا د ډیرو قول دې. او دا شان اختیار داسې نورو آیتونو کښې هم موجود دې. لکه کله چې یو محرم ښکار اوکړی نو دې بدله د ښکار برابر قربانی یا مساکینو ته خوراک ورکول یا ددې برابر روژې نیول دی. د بیمارئی یا د سر د تکلیف په وجه د احرام حالت کښې د سر خرئیلو او خلاف احرام کار کولو والا فدیه کښې هم روژې یا صدقه یا د قربانئ بیان دې. د قسم کفاره کښې هم د درمیانه درجې خوراک لسو مسکینانو ته ورکول یا هغوئ ته جامې ورکول یا یو غلام آزادول دی. نو چې څنګه دلته ددې صورتونو بیان دې او په دې کښې د خوښې اختیار دې، نو دا شان د محارب مرتد خلقو سزا هم یا خو قتل دې یا لاس پښه ادل بدل پریکول دی یا جلاوطنی ده.

**د جرم د نوعیت په اعتبار د سزا بدلیدل:**- او د جمهورو قول دې چې دا آیت مبارک د ډیرو احوالو باره کښې دې. ① هر کله یو ډاکو قتل و غارت دواړه اوکړی نو ددهٔ سزا په دار کول او څټ ئې پریکول دی. ② او چې کله ئې صرف قتل کړې وی نو بیا د قتل بدله صرف قتل دې. ③ او که صرف مال ئې اخستې وی نو د هغه لاس پښه به ادل بدل پریکولې شي. ④ او که لارو کښې ئې خطرې پیدا کړې وی او خلقو کښې ئې و یره پیدا کړې وی او څه ګناه ئې نه وی کړې او هغه اونیولې شي نو بیا صرف جلاوطني ده.([2]) داکثرو ائمه کرامو او سلفو هم دا مذهب دې.

**د محاربیو د مختلفو جرمونو مختلف حکمونه**

**مسلک حنفي:**- که محاربینو د مسلمان یا د ذمي مال واخستل او قتل ئې نه وی کړې نو امام به د دوی لاسونه او پښې ادل بدل کټ کړی د حد قائمولو دپاره او که په اولیاؤ کښې څوک عفو اوکړی نو د هغوی عفوې ته به نشی کتلې او که محاربینو قتل او مال اخستل دواړه کړی وی نو په دې صورت کښې د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف په نیز امام ته اختیار دې که غواړی نو د دوی لاسونه او پښې دې ادل بدل کټ کړی او قتل دې کړی او پهانسی دې کړی یعنی درې واړه سزاګانې جمع کولې شي او که غواړی نو قتل دې کړی او که غواړی نو پهانسی دې کړی البته امام محمد رحمه الله فرمائی چه قتلولې به شي یا به پهانسی کولې شي او لاسونه پښې به ئې نشي کټ کولې د تفصیل دپاره اوګورئ (تفسیر مظهری (١١٨١٣).

[1] )الطبرى: ٢٦٣/١٠.
[2] )البغوى فى التفسير: ٧٨٨.

**د قتلولو په سزا کښې اختلاف:-** بیا بزرګانو دې کښې هم اختلاف کړې دې چې په سولئ اوخیژولې شي اوکه هم د اسې اوږدې تږې پریخودې شي چې مړ شي یا په نیزه وغیره سره قتل کړې شي ؟ یا اول قتل کړې شي او بیا په سولئ کښې زوړند کړې شي؟ چې د ټولو خلقو دپاره عبرت شي. او آیا تر درې ورځو پورې په سولئ پریخودلې شي .؟ یا هم داشان پریخودلې شي.

**د جزئیاتو د اختلاف نه ذکر کولو وجه:-** خود تفسیر دا موضوع نه ده چې مونږ داسې جزئي اختلافاتو کښې پریوځو چې د هریو دپاره دلیلونه راغونډو. خو یو حدیث پاک کښې تفصیلي سزاده که د هغې سند صحیح وي. هغه دا چې کله حضور نبي کریم ﷺ حضرت جبریل ﷺ نه دمحاربینو باره کښې تپوس اوکړو نو حضرت جبریل ﷺ اوفرمائیل چې چا مال پټ کړو او لارې ئې خطرناکې جوړې کړې نودهغوئ لاس خو دې دغلا بدله کښې پریکړې شي. اوپښه دې بدامنئ په بدله کښې او چا ت قتل اوکړو نو هغه قتل کړئي. اوچې چا قتل هم اوکړی او لارې ئې هم پرخطر کړې نو هغه په سولئ اوخیژوئ.(١)

**قوله تعالی:: اَوْيُنْفَوْامِنَ الْاَرْضِ ؕ**

**جلا وطني:-** فرمان دې چې د زمکې نه دې جدا کړې شي یعنی هغوئ دې تلاش کړې شي او په هغوئ دې حد قائم کړې شي .یا که هغه د دارالاسلام نه اوتښتي او یا دې د یو ښار نه بل ښار او د بل نه دې بل ته اولیږلې شي یادا چې هغه بیخی د اسلامی سلطنت نه بهر کړې شي. شعبي رحمه الله خو به ویستلو. او عطاء خراساني فرمائي چې یو لښکر نه دې بل لښکر ته اولیږلې شي. اوداسې دې څو څو کاله په لړزان ګرځولې شي. خو د دارالاسلام نه دې بهر نکړې شي. ابو حنیفه رحمه الله اوددوئ ملګری فرمائي چې دې دې په جیل خانه کښې واچولې شي. د اسې خلق به دنیا کښې ذلیل او رسوا او آخرت کښې لوئي لوئي عذابونو کښې وي. د آیت مبارک دا ټکړه د هغه خلقو تائید کوي چې کوم وائي چې دا آیت مبارک د مشرکانو باره کښې نازل شوې دې. او د مسلمانانو باره کښې هغه صحیح حدیث دې چې حضرت نبی کریم ﷺ زمونږ نه هغه شان وعدې اخستې وې چې څنګه ئې ښځو نه اخستې وې. چې مونږ به الله تعالی سره شریک نه جوړوؤ ، غلا به نه کوؤ ،زنا به نه کوؤ ، خپل اولاد به نه قتلوو ،د یو بل نافرماني به نه کوو ،څوک چې دا وعده پوره کړې نو الله تعالی به ددې اجر ورکړي. اوڅوک چې په دې یو ګناه اوکړي او بیاه هغه ته سزا ورکړې شي نو دا سزا به هغه دپاره کفاره شي. اوکه الله تعالی ددهٔ پرده پوشي اوکړه نو ددهٔ معامله الله تعالی سره ده. که عذاب ورکوی اوکه بخښنه ورته کوی.(٢)

اویوحدیث پاک کښې دی چې چا یو ګناه اوکړه اوبیا الله تعالی په هغه پرده واچوله نو دالله تعالی ذات اودهغه رحم ډیر اوچت دې که هغه معاف کوی اوکه په دې جرم باندې سزا ورکوی.(٣) که دې دنیا کښې بې سزا نه مړشي نودهغه ورځې سزاګانې باقی دی. او په دې وخت کښې د هغې تصور هم محال دې. خوکه توبه ورنصیب شي نو دا بیله خبره ده.

**د مفسد فی الارض د توبې ویستلو نه پس د سزا حکم:-** بیا د توبه کونکو باره کښې فرمائي. ددې اظهار خو دې صورت کښې بالکل واضح دې چې دا آیت مبارک د مشرکانو باره کښې نازل کړې شوې اومنلې شي .خوکه یو مسلمان محارب وي اوهغه د ګرفتاریدو نه مخکښې مخکښې توبه اوباسی نو

---

(١) الطبری : ٢٧٦/١٠.

(٢) صحیح مسلم: کتاب الحدود باب الحدود وکفارات لاهلها: ١٧٠٩.

(٣) احمد: ٩٩/١. ترمذی کتاب الایمان باب ماجاء لایزنی الزانی وهو مؤمن: ٢٦٢٦.

د هغه نه خود سولئ او پښې کټ کولو سزا به ختمه شي خو د لاس کټ کولو سزا بـه ختميږي کـه نـه پـه دې کښې دعلماء کرامو دوه اقوال دي.

**مفسدچې مسلمان وی د هغه حکم:**-د آيت ظاهری الفاظو نه هم دا معلوميږی چې ټول به ورته معاف شي د صحابه کرامو ﷺ عمل هم پدې دې. جاريه بن بدتيمي بصری په زمکه کښې فساد اوکړو ،مسلمانانو سره ئې جنګ اوکړو ،دې باره کښې حضرت علی ﷺ تـه څو قريشو سفارش اوکړو ، پـه هغوئ کښې حضرت حسن بن علی ﷺ ،حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن جعفر ﷺ هم وو .خو حضرت علی ﷺ هغه ته د امن ورکولو نه انکار اوکړو. هغوئ سعيد بن قيس همدانی رحمه الله ته راغلو ،هغوئ دوئ خپل کور ته راوستل.هغه حضرت علی ﷺ تـه ورغلو اور ورتـه ئې اووئيل چې تاسو «دهغه کس باره کښې »اووائې چې الله تعالی اودهغه رسول ﷺ سره جنګ اوکړی او پـه زمکـه کښې د فساد خورولو کوشش اوکړی.بيا ئې دا آيتونه مبارک تلاوت کړل چې ﴿قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ﴾ نودوئ اوفرمائيل چې داسې سړی دپاره به امن ورکړم. حضرت سعيد ﷺ اوفرمائيل چې دا جاريه بن بدر دې (1) نوجاريـه دې نه پس دهغه په مدح کښې اشعار هم اووئيل.

**دابوموسی اشعری ﷺ عمل:**- کوفه کښې يو جمات کښې د مراد قبيلې سړې حضرت ابو موسی اشعری ﷺ ته راتلو اودې وخت کښې فرض مونځ شوې وو او وې وئيل چې ائې کوفې امير محترمه ! خما تعلق مرادی قبيلې سره دې او څه فلانې ځوئې د فلانـی يم،مـا الله تعـالی اود هغـه رسـول ﷺ سره جنګ اوکړو ،په زمکه کښې د شورش خورول کوشش مې اوکړو ،خو ستاسو په قبضه کښې راتلونه مخکښې ما توبه اوويسته اوس څه ستاسونه پناه غـوارم.پـه دې حضرت ابوموسـی اشـعری ﷺ پورتـه شـو او وې فرمائيل چې اې خلقو ! اوس تاسو ددهٔ د توبې نه پس دهٔ سره هيڅ قسمه بدی مه کوئی.کـه دې رښتونې وی نو الحمدلله اوکه دروغژن وی نو ددهٔ ګناه بهٔ دې هلاک کړی.داسړې خو تـر يـو مـودې پـورې بالکل صحيح وو.خو بيا شورشی جوړشو اوالله ﷺ دې د دهٔ دګناهونو په وجه هلاک کړل . او دې اووژلې شو.

**د علی اسدی ﷺ د بغاوت نه توبه:**- علی نومې يو اسدی سړی هم د جنګ لارې کښې خطر واچولې او خلق ئې قتل کړل،مال ئې لوټ کړو ،د لښکرامير ډير ځل ګرفتارول اوغوښتل خو دې پـه لاس نـه راتلو. يو ځل دې په ځنګل کښې وو او يو سړی د قران پاک تلاوت کولو او دهٔ آوريدو او چې کلـه هغـه سړی دا آيت مبارک اووئيلو چې ﴿قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا﴾ نودې اودريدو او وې وئيل چې ائې دالله بنده ماتـه داآيت مبارک بيا اووايه. هغه بيااووئيلو ،د الله تعالی ددې آيت مبارک آوريدو نه پس هغـه فرمائی چې : ائې خما ګناهګار بندګانو خما د رحمت نه مه نااميده کيږئ،څه په ټولو ګناهونو بخښلو قادر يم. څه غفور اورحيم يم.دې سړی زر زر خپله توره تيکی کښې ورکړه او د زرهٔ دکومې نه ئې توبه اوويستله او سحر نه مخکښې مخکښې مدينې منورې ته اورسيدو.غسل ئې اوکړو او مسجدنبوی ﷺ کښې د سحر مونځ ئې په جمع اداکړو. اوحضرت ابوهريره ﷺ سره چه کوم خلق ناست وو هغوئ سره دې هم کيناستو. هرکله چې رڼا شوه نو خلقودې اوپيژندو چې دا خو مفرور اود سلطنت باغی علی اسدی دې.پورتـه شـو چې هغه ګرفتار کړی.هغه اووئيل چې خما رونړو واورئی،تاسو ما نشئ ګرفتـارولئ،دې نـه مخکښې چې تاسو مـا ګرفتـار کړئـی مـا توبـه ويستلې ده اوپوره توبې ويستلو نه پس تاسوتـه راغلې يم.حضرت ابوهريره ﷺ اوفرمائيل چې دې رښتيا وائی او دې ئې د لاس نه اونيول او مروان بن حکـم تـه ئې پيش کړو. دې په هغه وخت کښې د امير معاويـه ﷺ طرفنـه د مدينې ګورنړ وو. هلتـه چې اورسيدو نـو وې

---

(1) الطبری : ۲۸۰/۱۰.

فرمانيل چې دا علي اسدي دې دهٔ توبه ويستلې ده او په دې وجه تاسو اوس دهٔ سره هيڅ نشئ کولی نو هيڅ هم هغه سره هيڅ اونه کړل هر کله چې د مجاهدينو يو جماعت روميانو سره د جهاد کولو دپاره لاړو نو دې هم هغوئ سره وو. ددوی کشتئ سمندر کښې روانه وه چې مخې کښې ورته د روميانو کشتئ راغله دهٔ خپله کشتئ پريخودله اود روميانو کشتئ ته ورغلو او هغوئې وژل شروع کړل هغوئ ددهٔ مقابله اونه کړې شوه او ټول پورته شو او کشتئ کښې يو طرفته شو، دې سره د کشتئ بوج يو طرفته شو نو په دې وجه کشتئ التـه شوه او هغه ټول روميان هلاک شو او حضرت علي اسدي رحمه الله هم شهيد وشو.[1] (الله تعالی دې پرې رحمتونه نازل کړی) آمين.

**محارب کښې د ګرفتارئ نه وړاندې توبه اوباسی هغه معاف دې**

**مسلک حنفی:** که محارب او فسادی کس ددې نه وړاندې چه امير هغه ګرفتار کړی او دهغه په قابو کښې راشي دې پخپله توبه اوباسی او د توبې نه پس حکومت ته په لاس راشي نو په ده باندې به حد نشی قائمولې دا حکم د عامو حدودو د حکم نه مختلف دې ځکه چه هغه جرمونه کوم چې موجب د حد وی که هغه عدالت ته اورسی نو په توبې ويستلو سره هغه نه معاف کيږی اګرچې اخروی سزا په توبې ويستلو سره معاف کيږی خو د باغی حکم داسې نه دې (بتغير تفسير مظهری ۱۳ ۲۰۱).

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا | ٱتَّقُوا ٱللَّهَ | وَٱبۡتَغُوٓا | إِلَيۡهِ
| اې هغه کسانو | چې ايمان موراوړي دې | او ويريږئ د الله نه | او اولټوئ | هغه ته
اې د ايمان خاوندانو! د الله ﷻ نه اوويريږئ | اودهغه دربار کښې

ٱلۡوَسِيلَةَ | وَجَٰهِدُوا | فِي سَبِيلِهِۦ | لَعَلَّكُمۡ | تُفۡلِحُونَ ﴿٣٥﴾
ذريعه | او کوشش او کړئ | په لاره دهغه کښې | بنانيرېی چې تاسو ته | کاميابی نصيب شی
دکاميابئ وسيله اولټوئ | او دهغه په لار کښې کوششونه او کړئ | چې کامياب شئ

إِنَّ ٱلَّذِينَ | كَفَرُوا | لَوۡ | أَنَّ لَهُم | مَّا
بيشکه هغه کسان | چې انکار نې او کړو | که چرې وې | دهغوئ دپاره | هغه څه
بيشکه چا چې کفر او کړو | که چرته هغه ټول څه چه په مخ د زمکې دی هغه او د هغې پشان نور هم

فِي ٱلۡأَرۡضِ | جَمِيعٗا | وَمِثۡلَهُۥ | مَعَهُۥ | لِيَفۡتَدُوا
چې په زمکه کښې دی | ټول | او په مثل دهغې | ورسره نور | د پاره ددې چې فديه او کړی
د دوی ملکيت شی | او دوی په هغې سره د قيامت د ورځې دعذاب نه فديه ورکول اوغواړی

بِهِۦ | مِنۡ عَذَابِ | يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ | مَا تُقُبِّلَ | مِنۡهُمۡۖ | وَلَهُمۡ
په هغې سره | د عذابه | دورځې د قيامت نه | نو قبول به نه کړې شی | دهغوئ نه | او وی به دهغوئ دپاره
نو بيا به هم د دوی نه قبول نشی | ........................ او دوئ دپاره

عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴿٣٦﴾ | يُرِيدُونَ | أَن يَخۡرُجُوا | مِنَ ٱلنَّارِ | وَمَا هُم | بِخَٰرِجِينَ
عذاب دردناك | غواړی به هغوئ | چې اوځی | د اور نه | او نهٔ به وی هغوئ | وتونکی
دردناک عذاب تيار شوې دې | دوئ به غواړی چې ددوزخ نه راوځی | خو د هغې نه به وتيدونکې نه وی

[1] (المظهری : ۲٤٨/١٠

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنۡهَاۖ | وَلَهُمۡ | عَذَابٌ | مُّقِيمٌ ۝٣٧ |
| دهغې نه | او وي به دهغوئ دپاره | عذاب | هميشه |

.........او دوئ دپاره د هميشه عذاب مقرر دي|

**د وسيلې تفسير**:- د تقوى حکم کيږي او هغه هم اطاعت سره. مطلب دادې چه الله ﷻ کومو کارونو نه منع کړې ده هغې نه لرې اوسئ، الله ﷻ طرفته قربت يعنى نزديکت تلاش کړئ.هم دا معنى د وسيلې د حضرت عباس ﷜ نه منقول ده.([1]) حضرت مجاهد رحمه الله، حضرت ابووائل رحمه الله، حضرت حسن رحمه الله، حضرت ابن زيد رحمه الله او ډيرومفسرينونه هم دا نقل دي.حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه د الله ﷻ اطاعت اود هغه پاك ذات د مرضئ اعمالو سره نزدې شئ.([2])

ابن زيد رحمه الله دا آيت هم اولوستلو چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱبۡتَغُوٓاْ إِلَيۡهِ ٱلۡوَسِيلَةَ﴾ يعنى چه کومو ته دوى آوازونه کوى هغوئ خو پخپله د رب په نزديکت پسې لګيدلى دى. آئمه کرامو چه د وسيلې کومه معنى په دې آيت کښې کړې ده په هغې ګويا د مفسرينو اجماع ده.په دې کښې د يو هم خلاف نشته دې .امام ابن جرير رحمه الله په دې يو عربى شعر هم نقل کړې دې. په هغې کښې وسيله د قربت او نزديکت په معنى کښې استعمال شوې ده.

**د وسيلې نور معانى**:- د وسيلې معنى د هغه څيزهم ده چه د هغې په ذريعه مقصود طرفته رسيدلې شى. او وسيله د جنت د هغه اعلى او بهترين مقام نوم هم دې چه کوم د رسول الله ﷺ ځائې دې.عرش ته ډير زيات نزدې هم دا درجه ده.

**د وسيله په جنت کښې مقام دې**:- د صحيح بخارى شريف يو حديث مبارك کښې دي چه کوم سړې آذان واورى او ﴿**اللهم رب هذه الدعوة التامة**﴾ اووائى نو د هغه دپاره ځما شفاعت حلاليږى.([3]) د مسلم يو حديث مبارك کښې دى چه کله تاسو آذان واورئ نو څه چه موذن وائى نوهغه تاسو هم وايئ،بيا په ما درود اووايئ.د يو درود بدله کښې به تاسو باندې الله ﷻ لس رحمتونه نازل کړى.بيا تاسو د الله ﷻ نه ځما دپاره وسيله اوغوارئ.هغه د جنت يوه درجه ده چه صرف يو بنده ته به ملاويږى. ځما اميدې چه هغه بنده څه يم.نو چا چه ځما دپاره وسيله اوغوښتله نوهغه دپاره ځما شفاعت واجب شو.([4])

مسند احمد کښې دى چه کله درود وايئ نو زمادپاره وسيله هم غوارئ.تپوس اوکړې شو چه يارسول الله ﷺ وسيله څه څيز دې ؟ نو حضرت نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا د جنت يو اعلى مقام دې او دا به صرف يو کس ته ملاويږى. او زما اميد دې چه هغه به هم څه يم ([5]).

طبرانى کښې دى چه تاسو د الله ﷻ نه دعا کوئ چه ماته وسيله راکړى اوچه کوم سړې په دنيا کښې زمادپاره د وسيلې سوال کوى نو د قيامت په ورځ هغه دپاره ځما شفاعت واجب شو.([6])

اويو حديث مبارك کښې دى چه په جنت کښې د وسيلې نه زياته لويه درجه بله نشته دې .نوتاسو د الله ﷻ نه ځما دپاره د وسيلې دعا کوئ ([1])اويوغريب اومنکر حديث کښې دومره زياتې دې چه په دې

---

[1] ) الطبرى: ٤٣/٩.

[2] ) الطبرى: ٢٩١/١٠.

[3] ) صحيح بخارى كتاب الاذان باب الدعاء عندالنداء: ٦١٤، ابوداود: ٥٢٩، ترمذى ٢١١، ابن ماجه: ٧٢٢، احمد: ٣٥٤/٣، ابن حبان: ١٦٨٩.

[4] ) صحيح مسلم كتاب الصلاة باب استحباب القول مثل قول المؤذن لمن سمعه: ٣٨٤. ترمذى: ٣٦١٤. احمد: ١٦٨/٢.

[5] ) احمد: ٣٦٥/٢، ترمذى: كتاب المناقب: باب سلوالله لى الوسيلة: ٣٦١٢. وهو صحيح

[6] ) المعجم الاوسط : ٦٣٧، وسنده حسن،مجمع الزوائد: ٣٣٣/١.

وسیله کښې به تاسو سره نورڅوك وی. نو حضرت نبی اکرم ﷺ د حضرت فاطمه رضي الله عنها اود حسن او حسین نوم واخستو.
یوبل ډیرغریب روایت کښې دی چه حضرت علي رضي الله عنه د کوفې په منبر اوفرمائیل چه په جنت کښې دوه موتیان دی، یو سپین او بل زیړ،زیړ خو د عرش لاندې دې اومقام محمود د سپین موتی دې.او په دې اویا زره بالا خانې دی،او په دې کښې هریو کوردرې درې میله دې.د دې کړکئ او دروازې او تخت وغیره ګویا د یو جرړې نه دی.د دې نوم وسیله دې اودا حضرت محمد ﷺ اود هغوی د اهل دپاره دې.
**دجهاد حکم:-** تقوی یعنی ممنوعاتو نه د منع کیدلو حکم او د حکم منلو نه پس فرمائی چه د هغه پاك ذات په لار کښې جهاد کوئی مشرکانو اوکفارو سره چه کوم د هغه پاك ذات دښمنان دی.د هغه پاك ذات د دین نه جدا دی.د هغه لوئې ذات د نیغې لارې نه په بل مخ روان دی.دوی قتل کړئی،داسې مجاهدین بامراد دی.فلاح او شرافت دوی دپاره دې.د جنت اعلی نعمتونه او بالاخانې ددوی دپاره دی. دوی به هغه جنت ته ځی چه چرته مرګ اوفوت نشته دې.او هلته به همیشه خوانی او ابدی صحت اودوامی عیش وعشرت وی.
**دکافرانو د جهنم نه د خلاصی دپاره فدیه ورکول غوښتل:-** د خپلو دوستانو نیك انجام ذکرکولو نه پس اوس د خپلو دښمنانو خراب حالت بیانوی چه دوی به داسې سخت او خراب عذاب کښې وی چه په دې وخت کښې که دوی د ټولې زمکې مالکان هم وی او بلکه دومره دوی سره نوره هم وی او دا ټول هر څه ددې په بدل کښې ورکړی چه د دې عذاب نه خلاصې بیا مومی،خوکه داسې اوشی نو بیا هم د دوی نه دا فدیه نشی قبلولې بلکه ددوی دپاره چه کوم عذاب دې هغه دوامی او ابدی دې لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه یو جهنمی به راوستلې شی اوهغه نه به تپوس اوشی چه ائې ابن آدم ! چه اووایه ستا ځائې ښنګه دې ؟ نوهغه به اووائی چه سخت اوبدترین.نودده نه به تپوس اوشی چه ددې نه د بچ کیدودپاره ته څه خرچ کول غوارې ؟ نودې به اووائ چه د ټولې زمکې برابر سره زر ورکړم او د دې ځائې نه مې خان خلاص شی نو دا به هم ډیر ښه وی.الله ﷻ به اوفرمائی چه ته دروغژن نې ما خو ستا نه ددې نه هم کمه غوښتنه کړې وه خو تا هیڅ ورنکړل.بیا به حکم اوشی اودې به جهنم ته اوغورزولې شی ([1]) (مسلم)
**دمسلمانانود جهنم نه راوتل:-** یوخل حضرت علي رضي الله عنه د نبی کریم ﷺ دا فرمان بیان کړوچه یو قوم به جهنم نه راوویستلې شی او جنت کښې به داخل کړې شی.نو په دې د دوی شاګرد حضرت فقیر رحمه الله تپوس اوکړو چه د دې آیت قرآنی مطلب دې چه ﴿يُرِيدُونَ أَن يَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ﴾ یعنی دوی به جنهم نه آزادیدل غواړی خو دوی به نشی آزادیدلې.نو دوی اوفرمائیل چه ددې نه مخکښې آیت ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ اووایه.د کوم نه چې ښکاره واضحه ده چه دا کافران خلق دی اودوی به هیڅ کله نه راوځی.([2]) (مسنداحمد وغیره).
**د نبی کریم ﷺ په شفاعت د جهنم نه ازادی:-** دویم روایت کښې دی چه د زید هم دا خیال وو چه د جهنم نه به هیڅ څوک نه راوځی ځکه د دې په آوریدو سره هغه حضرت جابر رضي الله عنه ته اووئیل چه ماته په نوروخلقو افسوس نشته دې خو په تاسو صحابه راته افسوس دې چه تاسوهم د قران پاك خلاف وائې.په

---

[1]) احمد: ٨٣/٣ ح/١٨١٨٣)
[2]) صحیح بخاری کتاب الرقاق : باب من نوقش الحساب عذب: ٦٥٣٨، صحیح مسلم: ٢٨٠٥، احمد: ٢١٨/٣. ابن حبان: ٧٣٥١.
[3]) احمد: ٣٣٠/٣، صحیح مسلم: کتاب الایمان باب ادنی اهل الجنة منزلة فیها: ١٩١.

هغه وخت کښې څه غصه شوې ووم. په دې باندې څه د هغه ملګرو اورتلم. خو حضرت جابر ﷺ ډير زيات حليم الطبع وو. هغوئ ټول منع او څه نې پوهه کړم چه په قرآن پاك کښې د چا د جهنم نه د نه راوتلو ذکر دې هغه کفاردی، آيا تا قرآن پاك نه دې لوستې ؟ ما ورته اووئيل چه ماته ټول قرآن پاك ياد دې، بيا د قرآن پاك آيت کښې دا نشته دې چه ﴿وَمِنَ الَّيۡلِ فَتَهَجَّدۡ بِهِۦ نَافِلَةً لَّكَ﴾، په دې کښې دمقام محمود ذکر دې. هم دا مقام شفاعت دې. الله ﷻ به بعضې خلق د ګناهونو په وجه جهنم ته داخل کړی. او چه ترکومې غواړی نو دوی به جهنم کښې ساتی. بيا چه کله اوغواړی نو دوی به راوباسی. حضرت زيد ﷺ فرمانی چه دې نه پس خما خيال صحيح شو.

**د طلق بن حبيب د جهنم نه د چا د راوتلو انکار:-** حضرت طلق بن حبيب رحمه الله وائی چه څه هم د شفاعت نه منکر ووم تر دې چه حضرت جابر ﷺ سره مې ملاقات اوشو. اود خپلې دعوې په ثبوت کښې مې ورته هغه آيتونه اووئيل چه په کومو کښې په جهنم کښې د هميشوالی بيان دې ،نو هغوئ اوفرمائيل چه ائې طلق ! چه آيا ته خپل ځان په کتاب الله او سنت رسول ﷺ کښې خما نه بهتر ګڼرې ؟ واوره تا چه څومره آيتونه اووئيل هغه ټول د اهل جهنم باره کښې دی، يعنی د مشرکانو دپاره، اوکوم خلق چې به راوخی هغوئ به هغه خلق وی چه کوم مشرکان نه وی خو ګناهګار وی. د ګناهونو په وجه نې سزا اوخوړله او بيا د جهنم نه راوويستلې شو. حضرت جابر ﷺ دا ټول هرڅه اوفرمائيل ا اودې نه پس ئې خپلوغوږونو طرفته اشاره اوکړه اووې فرمائيل چه دا دواړه دې کاڼړه شی که ما دا د رسول الله ﷺ نه نه وی آوريدلی چه جهنم ته د داخليدو نه پس به هم خلق ددې نه راوويستلې شی. او دوی به جهنم نه آزادکړې شی. د قرآن پاك دا آيتونه چه ته څنګه وائې داسې ئې مونږ هم وايو. ([1])

وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوٓا

| اوغل سړې اوغله ښځه چې ده | نو پريکړئ (تاسو)

|اوغل که نارينه وی اوکه زنانه نو د دواړونه

اَيۡدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَالًا

لاسونه دهغوئ دواړه|دپاره د سزا ورکولو|په هغه عمل|چې کړې دې هغوئ دواړو|دپاره دعبرتناکې سزا

لاسونه کټ کړئ او دا د هغوی دعمل بدله ده | او دا سزا د الله تعالی د طرفه مقرر شوې ده

مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيۡزٌ حَكِيۡمٌ ﴿٣٨﴾ فَمَنۡ تَابَ مِنۡۢ بَعۡدِ

دطرفه دالله نه| اوالله| غالب دې|دحکمت خاوند دې |نوهغه څوك | چې توبه ئې اوويستله | روستو د

............ الله ﷻ غالب دې اوصاحب د حکمت دې | نوڅوک چې دزياتې کولونه پس توبه اوباسی

ظُلۡمِهٖ وَاَصۡلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوۡبُ عَلَيۡهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

ظلم خپل نه|اواصلاح ئې اوکړه |نوبيشکه الله| به توبه قبلوی| د هغه | بيشکه الله

اوخپله اصلاح اوکړی | نو بيشکه الله ﷻ به ورته خپل رحمت متوجه کړی | بيشکه الله ﷻ

---

[1]) احمد: ٣/٣٥٥،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ؀ | اَلَمْ تَعْلَمْ | اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ | مُلْكُ السَّمٰوٰتِ | |
| بښونكې | مهربان دې | آيا تاته معلومه نهٔ ده | چې بيشكه الله لره ده | بادشاهي دآسمانونو | |
| بښونكې اومهربان دې آيا تاته دا معلومه نهٔ ده چې د آسمانونو او د زمكې | | | | | |
| وَالْاَرْضِ ط | يُعَذِّبُ | مَنْ يَّشَآءُ | وَيَغْفِرُ لِمَنْ | يَّشَآءُ ط | |
| اودزمكې | هغه عذاب وركوى | هغه چاته چې اوغواړي | اوبښنه كوى هغه هغه چاته | چې اوغواړي | |
| بادشاهي صرف دالله ﷻ ده چاته چې اوغواړي نو سزا وركوى او چاته چې اوغواړي نو بښنه ورته كوى | | | | | |
| وَاللّٰهُ | عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ | قَدِيْرٌ ؀ | | | |
| اوالله | په هر څيز باندې | قادردې | | | |
| اوالله ﷻ په هرڅيز قادر دې | | | | | |

**دغلا نصاب او د دې شرطونه** :- دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه قرات كښې ﴿فَاقْطَعُوْٓا اَيْدِيَهُمَا﴾ دې ليكن دا قرات شاذدې.اګرچه عمل په دې دې ليكن هغه عمل ددې قرات په وجه نه دې بلكه د نورو دلائلو په وجه دې.

**دغلا د حد طريقه پخوانۍ وه**:- د غل د لاس د پريكولو طريقه د اسلام نه مخكښې هم وه. اسلام دا تفصيل وار منظم كړه. دغه شان د قسامت ديت فرائضو مسائل هم مخكښې وو خوغيرمنظم او نيم ګړې.اسلام دا پوره او درست كړل.يو قول دا هم دې چه د ټولو نه مخكښې دويك نومې خزاعى سړى نه قريشو دغلا په الزام كښې دده لاس كټ كړې وو.ده د كعبې غلاف پټ كړې وو.اودا هم ونيلې شوى دى چه غلو ده سره اينبودې وو.

**په مطلق غلا د لاس كټ كولو حكم**:- د بعضو فقهاء كرامو خيال دې چه د غلا د څيز هيڅ حد نشته دې لږ وى اوكه ډير،محفوظ ځائې نه نې كړې وى اوكه غير محفوظ ځائې نه،په هر صورت كښې به د دې سزا لاس كټ كول وى.حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروى دى چه دا آيت مبارك عام دې.خو ممكن دى چه د دې قول هم دا مطلب وى او نور مطلبونه هم وى.يو دليل ددې حضراتو دا حديث هم تير شوې دې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ دې په غل باندې لعنت اوكړى چه انډا(هګۍ) هم پټوى اود ځان نه لاس پريكوى.رسۍ نې هم پټوى اولاس نې كټ كولى شى (1)

**د موجب حد غلا مقدار**:- دجمهورو مذهب دې چه د غلا د مال حد مقرر دې اګر چه ددې د حد په تقرر كښې اختلاف دې. ① حضرت امام مالك رحمه الله فرمائى چه درې درهمه سكې والا خالص يا ددې قيمت يا زيات چه څه څيز هم وى نو په دې به لاس كټ كولې شى.

**د مالكى مذهب دلائل**:- ① صحيح بخارى اومسلم كښې د نبى كريم ﷺ نه ديو ډهال په پټيدو د غل دلاس پريكول مروى دى.اوددې قيمت هم دومره وو.(2)

② حضرت عثمان رضی الله عنه د اترنج د غل لاس پريكړى وو اود هغې قيمت درې درهمه وو(3).د حضرت عثمان رضی الله عنه دا فعل اګر چه د صحابه كرامو رضی الله عنهم اجماع سكوتى ده او ددې نه دا ثابتيږى چه د ميوې د غل لاس به كټ كولې شى.خوحنفيه دا نه منى اوددوى په نيز د غلا د مال قيمت به لس درهمه ضرورى وى

---

(1) صحيح بخارى كتاب الحدود باب لعن السارق اذالم يسم: ٦٧٨٣.
(2) صحيح بخارى كتاب الحدود باب لعن السارق اذالم يسم: ١٦٨٦.
(3) مؤطا امام مالک،كتاب الحدود باب مايجب فيه قطع:٢/٨٣٢،

**شافعي مسلک:-** په دې کښې د شوافعو اختلاف دې دپاؤ دينار په تقرر کښې دامام شافعي رحمه الله فرمان دې چې پاؤ دينار د قيمت څيز وي يا زيات.

**دمذهبي شافعي دليل:-** ①ددوی دليل د بخاری او مسلم حديث مبارک دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه د غل لاس د پاؤدينار يا چه ددې نه زيات وی کټ کول پکاردی .[1]

②د مسلم يو حديث مبارک کښې دی چه د غل لاس دې پرې نکړې شی مګر يو پاؤ دينار کښې.[2] نو دا حديث مبارک ددې مسئلې صفا فيصله کوی.اوچه کوم حديث کښې د دريو درهم ذکردې چه حضرت امام بخاری رحمه الله پرې دلاس پريکولو حکم کړې دې هغه ددې خلاف نه دې.ځکه چه په هغه وخت کښې دينارددولسو درهمو وو. نو اصل څلورمه حصه ديناردې درهم نه.

حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه،حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه،حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه هم دا فرمائی.حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله،حضرت ليث رحمه الله،حضرت ابن سعد رحمه الله،حضرت اوزاعی رحمه الله،حضرت امام شافعی رحمه الله،حضرت اسحاق بن حضرت راهويه رحمه الله،حضرت ابوثور رحمه الله،حضرت ابوداود ابن علی ظاهری رحمه الله نه هم دا قول نقل دې.يو روايت کښې حضرت امام اسحاق بن راهويه رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله نه مروی دی اګر چه ربع دينار وی اوکه درې درهمه وی دواړو کښې د لاس پريکولو نصاب دې.

③ مسنداحمد کښې يو حديث مبارک کښې دی چه په څلورمه حصه دينار باندې لاس پريکړئ.ددې نه په کم نه.په هغه وخت کښې دينار د دولسو درهمو وو. دڅلورمه حصه دينار نه درې درهم جوړ شو.

④ نسائی کښې دی چه د غل لاس دې د ډهال د قيمت نه په کم پرې نکړې شی.حضرت عائشه رضی الله عنها نه تپوس اوکړې شی چه د ډهال څه قيمت دې ؟ نو وې فرمائيل چه پاؤ دينار.نو د دې ټولو احاديثو نه صفا صفا ظاهريږی چه د لسو درهم شرط لګول غلط دی،والله اعلم.

**د احنافو مسلک:-** امام ابوحنيفه رحمه الله اوددوی ملګری وائی چه په کوم ډهال باندې د نبی کريم ﷺ په زمانه کښې د غل لاس کټ شوې وو،د هغې قيمت لس درهمه وو، ابوبکر بن ابی شيبه کښې دوی موجود دی او عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه،عبدالله بن عباس رضی الله عنه او عبدالله بن عمرو رضی الله عنه مخالفت کوی.او د حدود باره کښې احتياط باندې عمل کول پکاردی.اواحتياط زياتې کښې دې.د دې وجې مونږ لس درهمه مقرر کوو.

**دعلی بن مسعود رحمه الله مسلک :-** بعضې سلف وائی چه لس درهمه يايودينار دې.علی ابن مسعود رضی الله عنه ابراهيم نعی رحمه الله او ابوجعفر نه همددا مروی دی.

**د غلا نصاب لس درهمه دې**

**مسلک حنفی:-** د سرقه (غلا) نصاب لس دراهم دی او يا يو دينار دې يا د کوم څيز قيمت چې دې ته رسيږی (تفسيرمظهری (۱۲۹۱۳)-

سعيد بن جبير رحمه الله فرمائی چه پنځه واړه ګوتې دې نه پريکوی مګرد پنځو دينارو يا پنځوسو درهمو قيمت برابرد غلا مال کښې دې (پريکوی).

**مسلک ظاهريه:-** د ظاهريه مذهب دا دې چه په هر لږ ډير څيز به لاس پريکولې شی.

---

[1] ) صحيح بخاری کتاب الحدود باب لعن السارق اذا لم يسم: ٦٧٨٣. صحيح مسلم: ١٦٧٨.

[2] ) صحيح بخاری کتاب الحدود باب قول الله تعالى : والسارق والسارقة فاقطعوا ايديهما،وفی کم يقطع: ٦٧٩٥. صحيح مسلم: ١٦٨٦، ابوداود: ٤٣٨٥، ترمذی: ١٤٤٦، نسائی: ٧٦/٨، ابن ماجه: ٢٥٨٤

**دجمهورو جوابونه:-** ①دوی ته جمهور دا جواب ورکوی چه اول خو دا اطلاق منسوخ شوې دې،خو جواب صحيح نه دې،خکه چه د تاريخي نسخې هيڅ يقين نشته دې.②دويم جواب دادې چه داندې (هګۍ) نه مراد د اوسپنې هګۍ ده او د رسۍ نه مراد د کشتو قيمتي رسۍ ده.③ دريم جواب دا دې چه دا فرمان په اعتبار د نتيجې سره دې يعنې د دې ورو ورو معمولي معمولي څيزونو غلا شروع کوي،آخرکار قيمتي څيزونه پټوي.اولاس ترې کټ شي.④اودا هم کيدې شي چه دا فرمان د نبی کريم ﷺ په طور د واقعې وی،د جاهليت په زمانه کښې به په هر وړوکی څيز هم لاس پريکولې شو.نو ګويا نبی کريم ﷺ په طور افسوس اوغل شرمنده کوی اوفرمائی چه څنګه ذليل او بې وقوفه انسان دې چه د معمولي څيز دپاره د خپل لاس نه محروم شي.

**د ابوالعلاء معری اعتراضونه:-** مذکوردې چه ابوالعلاء معری چه کله بغداد ته راغلو نو هغه دې باره کښې ډير اعتراضونه شروع کړل اود ده زړه کښې دا خيال وو چه څما د دې اعتراض جواب هيڅ سره نشته دې.نو ده يو شعراووئيلو که لاس پريکوئی نوديت ئې پنځه سوه درهمه ورکړنې او بيا هم دا لاس دپاؤ دينارغلا کښې پريکړنې.دا يوداسې تناقض دې چه څمونږ پوهه کښې نه راځی بس زمونږ دپاره چپ اوسيدل پکار دی او څمونږ مولا دې مونږ د جهنم نه بچ کړی.خو کله چه دا بکواس مشهور شو نو علماء کرامو ده ته جواب ورکول غوښتل خو دې اوتښتيدو.

**جواب:-** بيا جواب مشهور شو.قاضی عبدالوهاب رحمه الله جواب ورکړو چه تر کومې لاس امين وو نو تر هغه ثمين يعنې قيمتي وو اوکله چه خائن شو نو ده غلا اوکړه نودده قميت کم شو. بعضې بزرګانو دا تفصيل سره بيان کړې دې چه ددې نه دشريعت کامل حکمت ظاهريږی.او د دنيا امن وامان قائميږی.چه څوک د چا لاس بې وجې پريکړی نو په هغه ئې جرمانه کيخوده چه خلق د دې خراب کار نه منع شی.هلته هم دا حکم مناسب وو.د غلا په لړ څيز دده د پريکولو حکم ئې ورکړو چه دې سره د غلو دروازه بنده شی.نودا خو عين حکمت دې.که په غلاکښې هم د دومره رقم قيد لګولې شو نو د غلا انسداد به نه کيدو. دا بدله ده د دوی دکرتوتونو،مناسب مقام هم دادې چه په دې اندام سره ده نورو ته نقصان رسولې دې.هم دې اندام باندې سزا وه چه دوی ته عبرت حاصل شي،او نورو ته هم تنبيه وی.

**د غل توبه قبليدل:-** الله تعالی خپل انتقام کښې غالب دې اوخپلو حکمونو کښې حکيم دې.چه کوم سړی ګناه نه پس توبه اوباسی اوالله ﷻ طرفته رجوع اوکړی نو الله ﷻ هغه معاف کوی.خو که د چا نه ئې په غلا مال اخستې وی نودا دهغه سړی حق دې،نوهغه صرف توبه کولو سره نه معاف کيږی تر څو چه هغه ته خپل مال ورنکړی.يا ددې بدله کښې پوره قميت ادانکړی.د جمهور آئمه کرام هم دا قول دې.صرف امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه کله په غلا کښې لاس پريکړې شو او مال تلف شوې وی نو ددې بدله ورکول په غل ضروری نه دی.

**د لاس کټ کيدو نه پس غل د مال ضامن نه دې**

**مسلک حنفی:-** چې کله د غلا په حد کښې د غل لاس کټ کړې شی نود لاس کټ کولو نه پس غل د هغه مال ضامن نه دې کوم چې ده پټ کړې وی خکه چه د هغې سزا ده ته ملاؤ شوه نو چې سزا ملاؤ شوه نو د مال واپس کول باقی پاتې نشو (تفسيرمظهری ١٣٦/٣).

**د غل توبه ويستل په عهد نبوی کښې:-** دارقطنی وغيره کښې يو مرسل حديث مبارک دې چه يو غل نبی کريم ﷺ ته راوستې شو،اوهغه څادر پټ کړې وو. نبی کريم ﷺ ورته اووئيل چه څما خيال دې چه تا به غلا نه وی کړې.هغه اووئيل يارسول الله ﷺ ما غلاکړې ده.نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دې بوځئ او ده لاس پريکړنې.هرکله چه دده نه لاس پريکړې شو او واپس راوستې شو نو نبی کريم ﷺ ورته

اوفرمائيل چه توبه اوباسه. نوهغه توبه اوويسته. نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه الله ﷻ ستا توبه قبوله کړه. (۱)

**د عمربن سمره ﷺ د غلا اقرار:-** ابن ماجه کښې دی چه عمر بن سمره ﷺ نبی کريم ﷺ ته راغلواو وی فرمائيل يارسول الله ﷺ ما غلا کړې ده.نو تاسو ما پاك کړئ، ما د فلانئ قبيلې والو اوښ پټ کړې دې. نبی کريم ﷺ هغه قبيلې والو پسې سړې اوليږلو اوتپوس ئې ترې اوکړو نو هغوئ اووئيل چه اُوْ زمونږ يو اوښ چا پټ کړې دې. نبی کريم ﷺ حکم اوکړو اود هغه لاس پريکړې شو. هغه نه چه کله لاس پريکړې شو نو ده اووئيل چه ياالله شکردې چه تا دې خما د بدن نه جدا کړو.يا الله ﷻ تاخو به خما ټول بدن جهنم ته بوتلو. (۲)

**په عهدى نبوى کښې د غلا حد جارى کول:-** ابن جرير کښې دی چه يو ښځې څه کالې پټ کړو. هغه خلقو دا نبی کريم ﷺ ته پيش کړه. نبی کريم ﷺ ددې د ښى لاس پريکولو حکم ورکړو. هرکله چه لاس پريکړې شو نو هغه ښځې اووئيل چه يارسول الله ﷺ ! آيا خما توبه قبوله شوه. نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه ته داسې پاکه شوې لکه چه نن پيدا شوې ئې.نودې باندې دا آيت مبارك نازل شوچه ﴿فمن تاب﴾ الخ (۳).

**د حد په بدله کښې د فديې اخستلوممانعت:-** مسنداحمد کښې دومره زياتوالې دې چه په هغه وخت کښې هغه ښځې اووئيل چه مونږ ددې فديه ورکولو ته تياريو.خو نبی کريم ﷺ دا قبول نه کړل او ددې دلاس پريکولو حکم ئې اوکړو.(۴)

**د حد په باره کښې سفارش نه قبلول:-** دا ښځه د مخزوم قبيلې وه.او دا واقعه بخارى او مسلم کښې موجود ده (۵). دا د يو لوې کورنئ ښځه وه.خلقو کښې ددې ډير لوئې فکرشو. او اراده ئې اوکړه چه د نبی کريم ﷺ نه دې باره کښې څه واورى.دا واقعه غزوه فتح کښې شوې وه. بالآخر دا اوشو چه حضرت اسامه بن زيد ﷺ چه د رسول الله ﷺ ډير زيات خوښ وو.هغه ددې ښځې باره کښې نبی کريم ﷺ ته اووئيل.حضرت اسامه ﷺ چه کله د دې سفارش اوکړو نو نبی کريم ﷺ په دې ډير خفه شو اوغصه کښې ئې اووئيل چه انې اسامه ! ته د الله ﷻ حدودو کښې ديو حد باره کښې سفارش کوې.اوس خو اسامه ﷺ ډير زيات ويريدو او وې وئيل چه خمانه ډيره لوه خطا اوشوه،تاسو خما دپاره استغفار اوکړئ. د ماښام په وخت کښې نبی کريم ﷺ يو خطبه اووئيله اوپه دې کښې ئې د حمدوثناء نه پس اوفرمائيل چه ستاسو نه مخکښې خلق هم د دې خصلت په وجه تباه شوی وو چه کله به هغوئ کښې يو شريف اولوئې سړی غلا اوکړه نو هغه به ئې پريښودو ،اوکله چه به يو معمولی سړی غلا اوکړه نو په هغه به ئې دالله ﷻ حد جارى کولو. په الله قسم چه د چا په قبضه کښې خما روح دې،که فاطمه بنت محمد ﷺ هم غلا اوکړی نو زه به د هغې لاس هم پريکوم. بيا ئې حکم اوکړو چه د دې لاس پريکړئ.حضرت عائشه صديقه ﷺ فرمائی چه بيا دې بی بی صاحبې توبه اوکړه او پوره اوپخه توبه ئې اوکړه او نکاح ئې اوکړه.بيا دا ماته د څه کار دپاره راغلې وه او ماددې د حاجت باره کښې نبی کريم ﷺ ته وئيلی وو. (۶)

---

۱) شرح المعانى الاثار: ۲/۱۰۲.

۲) ابن ماجه كتاب الحدود باب السارق يعترف : ۲۵۸۸.

۳) الطبرى : ۲۹۹/۱۰.

۴) احمد: ۱۷۷/۲

۵) صحيح بخارى كتاب الحدود باب كراهية الشفاعة فى الحد اذا رفع الى السلطان:۶۷۸۸، صحيح مسلم: ۱۶۸۸.

۶) صحيح بخارى كتاب المغازى باب: ۵۴، صحيح مسلم: ۱۶۸۸، ابوداود: ۴۳۷۳.

مسلم كښې دی چه يوې ښځې به خلقو نه څيزونه قرض اخستل،او بيا به دا منكره كيده. نبی كريم ﷺ ددې لاس پرېكولو حكم اوكړو (١).اويوروايت كښې دی چه دې به كالی دا شان اخستل او ددې دلاس پرېكولو حكم حضرت بلال ؓ ته شوې وو.(٢)

كتاب الاحكام كښې داسې ډير احاديث وارد دی چه غلا سره تعلق ساتی.فالحمدلله.دټولو مملوكانو مالك د ټول كائناتو بادشاه،رېښتونې حاكم،الله ﷻ دې.اودهغه يوحكم هم څوك نشی روستو كولې.او د هغه ذات هيڅ يو اراده څوك نشی بدلولې.چه څوك بخښل غواړی نو وې بخښی او چه چاته عذاب وركول غواړی نو عذاب وركړی.په هرڅيز قادردې.د هغه پاك ذات قدرت كامله او قبضه رېښتونې ده.

يَاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ
| انې رسوله | په غم كښې دې نهٔ اچوي تا لره|هغه كسان
انې پيغمبره ! ته دهغه كسانو په كار غم مهٔ كوه
يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اٰمَنَّا
چې تيز كوششونه كوی |په كفر كښې | دهغه كسانو نه |چې وائی| مونږه ايمان راوړې دې
چې هغوئ كفر ته په تيزئ سره ورځی | هغه كسان چې په خله وائی چې مونږ ايمان راوړې دې
بِاَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِنْ قُلُوْبُهُمْ ۛ وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ۛ
تش په خلوخپلو|اونهٔ وی ايمان راوړې| زړونو د هغوئ | او هغه كسان |چې يهوديان دی
خوددوئ په زړونو كښې ايمان نشته | ..........او هغه كسان چې يهوديان دی
سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۙ
حال دا چې ډير اوريدونكی دی ستا|د پاره د دروغو |اوريدونكی دی | دپاره دبل قوم
ددوئ داحال دې چې دروغو سره عادت دی | اودهغه نوروخلقو دپاره چې تاسوته كله
لَمْ يَاْتُوْكَ ۭ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ مِنْۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ ۚ
چې لانهٔ دی راغلي تاته | چې بدلوی | كلمې |پس دمقرر والی دهغې نه | په ځايونو خپلو كښې
راغلې نهٔ وی جاسوسی هم كوی| اودالله ﷻ كلمې دځانې نه بې ځايه كوی (تحريف لفظی په كښې كوی)
يَقُوْلُوْنَ اِنْ اُوْتِيْتُمْ هٰذَا فَخُذُوْهُ وَاِنْ لَّمْ تُؤْتَوْهُ
وايئ | كه دركړې شو تاسو ته | دا حكم | نو واېئ خلئ | او كه چرې| درنهٔ كړې شو تاسو ته هغه
خلقوته وائی كه تاسوته(تحريف شده) حكم اوكړې شی | نو قبول نې كړئ | اوكه درنهٔ كړې شی نو
فَاحْذَرُوْا ۭ وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ
نو ځان اوساتئ اومهٔ نې منئ |اوهغه څوك| چې اراده اوكړی الله| په فتنه كښې د اچولو د هغه
ځان ترې نه اوساتئ | ..........او چې الله ﷻ دچادخرابولو اراده اوكړی

١) صحيح مسلم كتاب الحدود باب قطع السارق الشريف وغيره والنهى عن الشفاعة فى الحدود:١٦٨٨.
٢) نسائى كتاب قطع السارق باب مايكون حرزا ومالايكون : ٤٨٩٣، وهو صحيح.

فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ

نو نهٔ شی لرلې اختیار تهٔ(نو نشی مالك کیدې ته)| دپاره دهغه| دالله نه دخلاصولو| هیڅ قدرله

نو د هغه په باره کښې تهٔ د الله ﷻ په مقابله کښې هیڅ وس نشی لرلې

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ ؕ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا

داکسان هغه خلق دی| چې اراده اونهٔ کړه الله| چې پاك کړی| زړونه دهغوئ| دپاره دهغوئ| په دنیا کښې

داهغه کسان دی چې الله ﷻ ددوئ زړونه پاکول نه غواړی | د دوئ دپاره په دنیا کښې

خِزْيٌ ۚۖ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۞ سَمّٰعُوْنَ

شرمندګی ده | اودې دهغوئ دپاره | په آخرت کښې | عذاب | لوئ | ډیراوریدونکی دی

رسوائی ده | او په آخرت کښې ورله لوئې عذاب مقرر دې |ادا خلق د دروغو خورولو په خاطر جاسوسی کونکی

لِلْكَذِبِ اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ ؕ فَاِنْ جَآءُوْكَ فَاحْكُمْ

دروغو لره | خوړونکی دی | حرامو لره | نو که چرې|راشی هغوئ تاته |نو فیصله اوکړه

دی | غټ حرام خواره دی |که تاسوته په (مقدمه کښې) راشی| نو(که ستاخوښه وی)نو ددوئ مینځ کښې فیصله اوکړه

بَيْنَهُمْ اَوْ اَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ وَاِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ

په مینځ دهغوئ کښې | یا مخ اوګرځوه | دهغوئ نه | اوکه تهٔ مخ اوګرځوې | د هغوئ نه

او یا ترې مخ واړوه (د دوی په مینځ کښې د فیصلې کولو نه انکار اوکړه) |اوکه ته ددوئ نه مخ واړوې

فَلَنْ يَّضُرُّوْكَ شَيْـًٔا ؕ وَاِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ

نو هرګز ضرر نهٔ شی رسولې تاته |هیڅ قدرله| اوکه فیصله کوې تهٔ| نوفیصله اوکړه |په منځ دهغوئ کښې

نودوئ تاته هیڅ نقصان نشی رسولې | او که ددوې په مینځ کښې فیصله کوې | نو بیا په

بِالْقِسْطِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۞ وَكَيْفَ يُحَكِّمُوْنَكَ

په انصاف سره | بیشکه الله |خوښوی| انصاف کونکی |اوڅرنګې به|هغوئ منصف جوړ کړی تالره

انصاف سره فیصله کوه | بیشکه الله تعالی انصافدار خلق خوښوی| اودوئ په تاڅنګه فیصله کوی

وَعِنْدَهُمُ التَّوْرٰىةُ فِيْهَا حُكْمُ اللّٰهِ ثُمَّ

حال دا چې موجود دې دهغوئ سره| تورات | چې شته په هغې کښې| حکم د الله | بیا

حال دادې چې دوئ سره تورات شته | او په هغې کښې دالله ﷻ احکام لیکلې شوی دی | بیا

يَتَوَلَّوْنَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ وَمَآ اُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ ۞ اِنَّآ اَنْزَلْنَا

مخ اړوی هغوئ| اروستو دهغې نه | اونهٔ دی |هغوئ | ایمان لرونکی|بیشکه مونږه| نازل کړو

دوئ د هغې نه مخ اړوی | خبره داده چې په دوئ کښې بیخی ایمان نشته | ............بیشکه مونږ

التَّوْرٰىةَ فِيْهَا هُدًى وَّنُوْرٌ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّوْنَ

توراة | چې په هغې کښې وه | لارښودنه | اورڼا وه | چې فيصلې به کولې | په هغې سره | پيغمبرانو

تورات نازل کړې دې | او په هغې کښې هدايت اورڼا وه | تولو پيغمرانو چې

الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا لِلَّذِيْنَ هَادُوْا وَالرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ

هغه | چې مسلمانان وو | هغه کسانو ته | چې يهوديان وو | او دغسې ربانيانو | اوعالمانو هم

دالله ﷻ تابع وو ددې کتاب مطابق يهوديانو دپاره فيصلې کولې | اودغه شان بزرگانو اوملايانو هم

بِمَا اسْتُحْفِظُوْا مِنْ كِتٰبِ اللّٰهِ وَكَانُوْا

په سبب دهغې | چې طلب دحفاظت شوې وو دهغوئ نه | دالله دکتاب | اووو هغوئ

خکه چې هغوئ د الله ﷻ دکتاب ذمه وار کړې شوی وو| ............ او پخپله په دې

عَلَيْهِ شُهَدَآءَ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا

په هغې باندې | گواهان | انو مه ويريږئ | دخلقو نه | اواوويريږئ زمانه | اومه اخلئ

خبره گواهان شوی وو| ............ نو دخلقو نه مه ويريږئ| او زما نه ويريږئ | ............ او زما په

بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

په آيتونو زما | قيمت | لږ | اوچا چې | اونهٔ کړو حکم | په هغه | چې نازل کړې دې الله

ايتونو د دنيا لږ قيمت مهٔ اخلئ| اوڅوک چې دالله ﷻ دقانون مطابق فيصله نهٔ کوی

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٤٤﴾

نودغه کسان | هم هغوئ دی | کافران |

نوهم دغه کسان کافران دی |

**د يهوديانو مذمت:-** دې ايتونو کښې دهغه خلقو مذمت بيانيږی چه څوک رانې او قياس او خواهش نفسانی د الله ﷻ په شريعت مقدم کوی. دوی دالله ﷻ اورسول ﷺ د اطاعت نه اوخی او کفر طرفته منډې وهی. اگر چه دا خلق د ايمان زبانی دعوې کوی ليکن ددوی زړه د ايمان نه خالی دی. د منافقانوهم دا حالت وو چه په ژبه کره او په زړه کوتړه وو، اوهم دا خصلت د يهوديانودې چه داسلام او اهل اسلام دښمنانان دی. دوی دروغ ښه مزې سره آوری. اودا د زړه نه قبلوی. خو دوی د رښتياؤ نه تښتی بلکه نفرت ترې کوی. اوچه کوم خلق د نبی کريم ﷺ مجلس ته نه راځی نو دوی يو څه بل څه وائی. دوی ستا طرفته دجاسوسئ دپاره راځی. بيا نالائقی دا کوی چه خبره بدلوی، مطلب يو وی او دوی بل څه واخلی. ارادې ئې دا وی که تاسود دوی دخواهش مطابق خبره اوکړئ نو وې منی اوکه د طبيعت خلاف وی نو لرې کوی يې.

**د ايت شان نزول:-** اواوونيلې شوی دی چه دا آيت دهغه يهودو باره کښې نازل شوې وو چه کوم يو بل قتل کړی وو. او بيا ئې اووئيل چه ځئ نبی کريم ﷺ ته ورځو، که د ديت اوجرمانې حکم اوکړی نو منظور به ئې کړو. اوکه د قصاص بدله ئې اوونيله نونه ئې منو. خو زياته صحيح خبره دا ده چه هغوئ

یوزناکار راوستې وو. دهغوئ کتاب توراة کښې حکم دا وو چه واده شوې زانی به سنګسار کولې شی. خو هغوئ دا بدل کړې وو. اوهغوئ به سل کوړې اووهلو او بیا به ئې دده مخ تور کړو او په خر به ئې سور او رسوا به ئې کړو او بیا به یې پریښودو. هرکله چه هجرت نه پس دوی کښې څوك د زناکارنې په جرم کښې اونیولې شو نو دوی اوونیل چه راځئ نبی کریم ﷺ ته ورځو ا ودنبی کریم ﷺ نه ددې باره کښې تپوس کوو ،که نبی کریم ﷺ هم د اووفرمائیل چه کوم مونږ وایونو هغه به قبول کړو، او دا به د الله مخکښې هم خمونږ سندوی. که د رجم کولو ئې اوفرمائیل نو هغه به نه منو. نوهغوئ راغلل او نبی کریم ﷺ ته ئې ددې ذکر اوکړو چه خمونږ یو سړی اوښځې دا بدکاری کړې ده. د هغوئ باره کښې تاسو څه وائې ؟ نبی کریم ﷺ ورته اوونیل چه ستاسو په توراة کښې د دې څه حکم دې ؟ نو هغوئ اوونیل چه مونږ خو هغه رسوا کوؤ اوپه کوړو ئې وهو اوبیا ئې پریږدو، دې آوریدو سره حضرت عبدالله بن سلام ﷺ اوفرمائیل چه تاسو دروغ وائې. توراة کښې د سنګسارولو حکم دې. راوړنی توراة پیش کړنی. هغوئ تورات راووړ او د رجم په حکم ئې لاس کیخودو اوددې نه روستو او مخکښې ئې ټول عبارت بیان کړو. حضرت عبدالله ﷺ پوهه شونو دوی ورته اوونیل چه خپل لاس لرې کړنی. لاس ئې لرې کړو نود سنګسارولو آیت موجود وو. اواوس خو هغوئ هم اقرار اوکړو. بیاد نبی کریم ﷺ حکم سره زانی سنګسارکړې شو. حضرت عبدالله ﷺ فرمائی چه مااوکتل چه هغه زانی به ددې ښځې دبچ کولو دپاره ددې مخکښې راتلو چه دا په کانړو اونه لګی .([1]) (بخاری ومسلم)

**یهودی ته رجم ورکول:-** اویو بل سند سره مروی دی چه مونږ دده مخ تور کړو او څه ئې اووهواو بیا ئې پریږدو. اودآیت مبارك دظاهریدو نه پس هغوئ اوونیل چه هم دا حکم دې. لیکن مونږ خودا پټ کړې وو. چه څه ونیلې کیدل نوهغوئ د رجم په آیت باندې لاس ایښودې وو. هرکله چه د هغوئ لاس اخواکړې شو نو آیت ښکاره شو. ددې دواړو د رجم کولو په وخت کښې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ هم موجود وو.

**یهودو د رجم ولې پټ کړې وو:-** اویوروایت کښې دی چه دې خلقو خپل کسان اولیږل او نبی کریم ﷺ ئې راوبللو. دخپلې مدرسې په ګدئی یې نبی کریم ﷺ کینولو او چه چا د نبی کریم ﷺ مخکښې توراة ونیلو([2]) هغه د توراة لونی عالم وو. اویو روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ هغه ته قسم ورکړې وو چه ته په توراة کښې د زانی دپاره څه سزا مومې ؟ نو هغه هم دا جواب ورکړې وو. خو یو ځوان خاموش ولاړ وو او هیڅ ئې اونه ونیل. نبی کریم ﷺ هغه ته اشاره اوکړه اوهغه ته ئې هم قسم ورکړو او ورته ئې اوونیل چه ته اووایه .هغه اوونیل چه تاسو داسې قسمونه راکونی نو څه به دروغ اونه وایم. واقعی توراة کښې د دې خلقو په ذمه سنګساری دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بیا دارښتیا رښتیا اووایه چه رومبې رومبې دا د رجم تاسو په چا باندې نه وو جاری کړې ؟ او ولې مو نو وو جاری کړې؟ هغه اوونیل چه خمونږ دیو بادشاه رشته دار چه یولونې سړې ووهغه زنا کړې وه. د هغه د عظمت او دبادشاه د هیبت په وجه نه وورجم کړې او هغه ئې پریښودې وو. بیا یوعام سړی زنااوکړه اوهغه ئې رجم کول غوښتل خو دا هغه ټول قوم اوونیل چه یا خودا مخکښې سړې هم رجم کړنی یا دې هم پریږدنی. نوبیا مونږ ټول یو ځائې شو او دا مو اوونیل چه د رجم کولو په ځائې دا قسمه څه سزا مقرر کړو. نو نبی کریم ﷺ د توراة حکم جاری کړو. اوهم دې باره کښې دا آیت ﴿إِنَّآ أَنزَلْنَا الخ﴾ نازل شو. نو نبی کریم ﷺ هم د دې احکاموجاری کیدو کونکو کښې دې ([3]) (احمد ابوداود).

---

[1] ) صحیح بخاری کتاب الحدود باب احکام اهل الذمة واحصانهم اذا نوا......) ٦٨٤١، صحیح مسلم: ١٦٩٩.
[2] ) ابوداود کتاب الحدود باب فی رجم الیهود یین: ٤٤٤٩، وهو حسن.
[3] ) ابوداود حواله بالا رقم: ٤٤٥٠.

**د نبی کریم ﷺ په یهودی زانی د رجم حکم جاری کول:-** مسند احمد کښې دی چه یو سړی د یو یهودی مخ تور کړې وو او بوتلو ئې، اوهغه ئې په کوړو هم وهلو. نو نبی کریم ﷺ هغه راوغوښتلو او تپوله خبره ئې ترې واوریده. هغه اوونیل چه ده زنا کړې ده. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آیا تاسو زانی ته دا سزا ورکوئی؟ هغه اوونیل چه آو. نبی کریم ﷺ دهغوئ یو عالم راوبللو اوقسم ئې ورکړو چه اووایه، د زانی څه حکم دې؟ نوهغه اوونیل که تاسو داسې قسم نه وې را کړې نو ما به بالکل نه وو ونیلی. اصل خبره داده چه څمونږ په نیز د زنا کارنی سزا هم سنګسارول خو مالدارو او شریفانو خلقو کښې دا بیماری زیاته شوې وه.

او مونږ هغوئ ته دا قسمه سزا ورکول مناسب اونه ګنړل. نو په دې وجه به مو هغوئ پریښودل. اود الله ﷻ حکم نه پریښودو دپاره مو داسې اوکړل چه غریبانانو اوکم حیثیت والا خلقو ته مو رجم ورکولو. بیامونږ رائې واخسته چه راځئ یو داسې سزا مقرر کړو چه په شریف او غیر شریف، مالدار اوغریب ټولو باندې یو شان جاری شی. نو څمونږ په دې اجماع اوشوه چه مخ به ئې توروو. او کوړې به ورته ورکوو. دې آوریدو سره نبی کریم ﷺ حکم اوکړو چه دا دواړه سنګسار کړئی. نو هغوئ رجم کړې شو. او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ائې الله ﷻ ! څه رومبې کس یم چه ما ستا مړحکم ژوندې کړو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ لَا يَحۡزُنكَ﴾ نه تر ﴿فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ﴾.

**د نبی کریم ﷺ دوو یهودیانو عالمانو ته قسم ورکول:-** هم ددې یهودیانو باره کښې یو بل آیت مبارك کښې دی چه د الله ﷻ نازل شوی حکم مطابق فیصلې نه کولو والا ظالمان دی. او یو بل آیت مبارك کښې دی چه دا فاسقان دی ([1]). (مسلم وغیره). اویو روایت کښې دی چه د زنا واقعه په فدك کښې شوې وه. او دهغه ځائې یهودو نبی کریم ﷺ ته لیکلی وو. اودنبی کریم ﷺ نه ئې معلوم کړی وو. چه کوم یو عالم دهغوئ راغلې وود هغه نوم ابن صوریا وو. دده یوسترګه کانړئ وه اوده سره یو بل عالم هم وو. هرکله چه نبی کریم ﷺ دې دواړو ته قسم ورکړو نو دوی قبول کړل. نبی کریم ﷺ هغوئ ته ونیلی وو چه ستاسو دې په الله ﷻ قسم وی چه کوم ذات بنی اسرائیلو دپاره په اوبو کښې لارې جوړ کړې وې. او په هغوئ ئې د وریځې سیورې کړې وو. او هغوئ ئې د فرعونیانو نه بچ کړی وو. او په هغوئ ئې من اوسلوی نازل کړې وه. دې قسم سره هغوئ دواړه ویخ شواو وې ونیل چه دا خو ډیر زبردست قسم دې. په دې موقع دروغ ونیل صحیح نه دی. نو وې ونیل چه یارسول الله ﷺ ! توراة کښې موجود دی چه خراب نظر سره کتل هم د زنا په مثل دی. او غاړه ورکول اوبوسه اخستل هم. که ددې څلور ګواهان وی چه ددوی دخول اوخروج ئې داسې کتلی وی لکه څنګه چه سلائی رنجړومه کښې ورکولې شی نو بیا رجم واجب دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هم دا مسئله ده. بیائې حکم اوکړو اوهغه کسان ئې رجم کړل. نودی باندې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿فَإِن جَآءُوكَ﴾ الخ، ([2]) (ابوداود وغیره)

یوروایت کښې دی چه دوه عالمان د نبی کریم ﷺ خدمت کښې پیش شو. دا دواړه د صوریا ځامن وو. په یهودیانو کښې د حد نه قائمولو وجه ئې دا بیان کړې وه چه کله مونږ کښې سلطنت باقی پاتې نشو نو خپل کسان وژل مومناسب اونه ګنړل. بیا نبی کریم ﷺ ګواهان راوغوښتل او ګواهی ئې واخستله. هغوئ بیان اوکړو چه مونږ دا دواړه په دې خراب کار په خپلو سترګو لیدلی دی لکه څنګه چه رنجړومه کښې سیلئ ورکوی.

---

[1]) صحیح مسلم، کتاب الحدود باب رجم الیهود اهل الذمة فی الزنی : ۱۷۰۰. ابوداود : ٤٤٤٧.

[2]) ابوداود کتاب الحدود باب رجم الیهود بین: ٤٤٥٢،

**د توراة او اهل توراة راغوښتلو کښې حکمت:**-اصل کښې د توراة وغيره راغوښتل او د هغوئ عالمان راغوښتل دا ټول په هغوئ الزام ثابتول وو ،په دې وجه نه وو چه هغوئ ددې د منلو مکلف وو. بلکه پخپله دنبي کريمﷺ فرمان واجب العمل دې. ددې نه خو يو مقصد د نبي کريمﷺ د رښتينوالي اظهار ووچه دوی دالله ﷻ د وحی نه معلوم کړل چې د هغوئی توراة کښې هم د رجم حکم موجود دې او هم داسې اوشو. او بله ددوی رسوائي چه هغوئ د انکارنه پس بيا اقرار اوکړو. اودا دنيا ته ظاهره شوه چه دا خلق دالله ﷻ د فرمان پټولو والا او په خپل رائې قياس کولو والا دی.اوپه دې وجه دا خلق په صدق دل سره نبي کريمﷺ ته نه راتلل چه د نبي کريمﷺ حکم اومنی بلکه صرف په دې وجه راغلی وو چه نبي کريمﷺ به هم د خپلې اجماع مطابق اومومی (چه زانی ته به کوړې ورکړی او مخ به ئې تور کړی) گنی بالکل به ئې نه قبلوی.نو ددې وجې فرمان دې الله ﷻ چې څوک گمراه کړی نو هېڅوک ددوی په لارې کولو والا نشته دې.الله ﷻ د دوی د گنده زړونو د پاکولو اراده نه لری.دوی به په دنيا کښې ذليل او خواروی او په آخرت کښې به په اور کښې وی.دوی باطل طرفته غوږ ايږدی اوهغه آوری.په رنړا ورځ رشوت خوری.نو ددوی نجس زړونه به څنګه پاك شی ؟ اوالله ﷻ به ددوی دعاگانې څنګه قبولې کړی ؟ که دوی تاسوته راشی نو تاسو ته اختيار دې که د دوی فيصلې کوې اوکه نه کوې.اوکه ددوی نه مخ واړوې نو بيا هم دوی ستا څه نشی کولې. ځکه چه دوی د حق اتباع نه کوی بلکه خپلو خواهشاتو پسې روان دی.بعضې بزرگان وائی. چه دا آيت مبارك منسوخ شوې دې په دې آيت سره چه ﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ أَنْزَلَ اللهُ﴾ (١)

بيا فرمائی که ته دوی کښې فيصله کوې نو عدل او انصاف سره کوه،اگر چه دوی پخپله ظالمان دی. او عدل نه تښتيدونکی دی،او پوهه شه چه الله ﷻ عدل کوونکو خلقو سره محبت ساتی.بياد دوی خباثت او بدباطنی اوسرکشی بيانوی.چې يو طرفته خو دوی کتاب الله پريښودې دې،او د دې د حقانيت اوتابعدارئی حقانيت پخپله قائل دی.بل خوا دوی هغه طرفته تيتيږی چه هغه نه منی او وائی چه دا دروغ دی.او بيا په دې کښې هم د دوی نيت بد دې ځکه چه دا وائی که چرې د هغه (محمد ﷺ) د طرفنه زمونږ دخواهش مطابق حکم ملاؤ شونو منو به ئې گنی به به ئې منو.نو فرمائی چه دوی به څنګه ستاسودحکم منل اوکړی؟دوی خو توارة هم پريښودې دې او په هغې کښې د الله ﷻ د حکم اقرار هم نه کوی. خو بيا هم دوی بې ايمانی کوی او ددې نه مخ اړوی.

**د توراة حقانيت:**بيادهغه توراة مدح اوتعريف بيانوی چه کوم هغه په خپل رسول موسی بن عمران ﷺ باندې نازل کړې وو .اوپه هغې کښې هدايت او نورانيت وو اونبيانو عليهم السلامو هم پدې باندې فيصله کوله،يهودوکښې ئې هم د دې احکام جاری ساتلی وو او د دوی د تحريف نه بچ وو او عابدان علماء اواحباريعنی د علم والا خلق هم ددې په طريقه روان وو. ځکه چه هغوئ ته دا پاك کتاب سپارلې شوې وو.اوددې د اظهاراو په دې د عمل کولو دوی ته حکم شوې وو. اوهغوئ په دې باندې شاهداو گواه وو. نواوس تاسو ته پکاردی چه دالله تعالی نه سوا دبل چا نه او نه ويريږئی.په قدم قدم اوپه هروخت کښې دالله ﷻ ويره خان سره ساتئ:او خما آيتونه په لږ قيمت مه خرڅوئی.او پدې پوهه شئ چه څوك دالله ﷻ حکم نه منی نو هغه کافردی.پدې کښې دوه اقواله دی چه روستو به بيان شی انشاء الله.

**دويم شان نزول:**- ددې آيتونو يو بل شان نزول هم واورئی.حضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه داسې خلقو ته ئې يو آيت مبارك کښې کافر اوبل کښې ظالم او دريم کښې فاسق ونيلی دی.خبره داده چه د يهودو دوه ډلې وې يو غالبه او دويمه مغلوبه.دوی کښې خپلو کښې دا فيصله شوې وه که غالبه فرقې

---

(١) الطبری: ١٠/ ٣٣٠.

يو عزت والا سړي د مغلوبې فرقې يو ذليل سړې قتل کړې نو هغه به پنځوس (۵۰) وسق ديت ورکوی.اوکه ذليل خلقو کښې يو سړې راپاسی او دوی عزت والا خلقو کښې څوك اووژنی نو سل (۱۰۰) وسق ديت به ورکوی.هم دا رواج کښې راروان وو. هرکله چه مدينې منورې ته راغلو نو دې نه پس يوواقعه داسې اوشوه چه د دې لاندې يهودو نه يوکس د پورته يهودو يو کس اوژلو.د هغه خانې نه سړې راغلو چه سل وسق راکړئی.ددې طرفنه جواب ورکړې شو چه دا بالکل ناانصافی ده ځکه چه مونږ دېو قبيلې اوديو دين او ديو نسب اوديو ښار والا يو،بيا خمونږ کم اوستاسو زيات ولې دې.اوسه پورې خومونږ ستاسو نه مجبور وو او دا ناانصافی مو په نه زړه برداشت کوله.خو هر کله چه د حضرت محمد ﷺ په شان عادل بادشاه راغلو نو مونږ به تاسوته هغه هومره ديت درکوو چه څومره تاسومونږ ته راکوئی.پدې خبره يوبل سره په جنګك شو.آخر دا خبره اوشوه چه ددې جنګك فيصله نبی کريم ﷺ ته سپارو.خوهرکله چه اوچتې کورنئ خلقو خپلو کښې په دې مشوره اوکړه نوددوی پوهانواووئيل چه ګورئی ددې نه روستو شئ چه نبی کريم ﷺ د څه ناانصافئ حکم اوکړی.دا بالکل زياتې ده چه مونږ زيات اخلو اولږ ورکوو. اوواقعی دې خلقو دا منظور کړل.اوس چه تاسو نبی کريم ﷺ حاکم او ثالث مقررکړې دې نويقيناً به دې ستاسو حق خوری.چااووئيل چه ښه ده داسې اوکړئی چه څوك پټ نبی کريم ﷺ ته واستوئی چه تاسو به ددې متعلق څه فيصله کوئی؟ که هغه خمونږ موافقت کښې وو خو صحيح ده او لاړشئ دهغوئ نه حق واخلئ.اوکه خلاف وه نو بيا جدا جدا سهی.نو هغوئ د مدينې منورې څوکسان جاسوسان نبی کريم ﷺ ته اوليږل.دلته رارسيدو نه مخکښې الله ﷻ خپل نبی ﷺ ددې دواړو ډلو د ارادو نه خبر کړې وو.([1]) (ابوداود).

اويوروايت کښې دی چه دا دوه قبيلې بنو نضير او بنو قريظه وې.د بنو نضير پوره ديت وو او د بنو قريظه نيم.نبی کريم ﷺ د دواړو د برابر ديت فيصله اوکړه.او يو روايت کښې دی که قريظی به يو نضری قتل کړو نو هغه نه به ئې قصاص اخستلو.ليکن د دې خلاف کښې قصاص نه وو،سل وسق ديت وو.([2])

**تطبيق:-** دا ډير ممکن ده چه يو طرفته دا واقعه شوې وی اوبل طرفته د زنا قصه شوې وی.او د دې تفصيلی بيان تير شوې دې.اودې دواړو په باره کښې دا آيتونه نازل شوی وی.والله اعلم.خويوخبره بله هم ده چه هغې سره دې شان نزول ته نور هم تقويت ملاويږی.هغه دا چه دې نه پس فرمائی چه ﴿وَكَتَبۡنَا عَلَيۡهِمۡ فِيهَآ﴾ يعنی مونږ يهوديانو باندې توراة کښې دا حکم فرض کړې وو چه د جان بدل کښې جان،د سترګې بدله کښې سترګه الخ. والله اعلم.

**قوله تعالیٰ:** ﴿وَمَن لَّمۡ يَحۡكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ﴾

**دالله د حکم نه خلاف فيصله کول:-** بياهغوئ ته کافر اووئيلې شو چه د الله ﷻ حکم اودهغه شريعت د وحی مطابق فيصلې اوحکم نه کوی.اګر چه د شان نزول اعتبارسره د مفسرينو په قول دا داهل کتابو په باره کښې دی.خو د حکم اعتبار سره دهرسړی باره کښې دې.دبنواسرائيلو باره کښې نازل شوا او ددې امت هم دا حکم دې.([3])

**د قران خلاف فيصله کول کفر دې:-** ①حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائی چه رشوت حرام دې اورشوت اخستو نه پس د يو شرعی مسئلې خلاف فتوی ورکول کفردې.②حضرت سدی ﷺ فرمائی چه چا د.

---

[1]) احمد: ۲۴۶/۱، ابوداود کتاب القضاء باب فی القاضی يخطئ: ۳۵۷۶. وسنده حسن.

[2]) ابوداود کتاب القضاء باب الحکم بين اهل الذمة: ۳۵۹۱..

[3]) الطبری: ۳۵۶/۱۰.

وحي الهي خلاف فتوى وركړه د دې باوجود چه دې په دې پوهه وو نوهغه كافردې. ③ حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه چا دالله ﷻ دفرمان انكار اوكړو نو دهغه دا حكم دې،نو چه چا انكار خواونه كړو خو ددې مطابق ئې فيصله هم اونه كړه نو هغه ظالم او فاسق دې .[1] كه هغه اهل كتاب وي اوكه نور خوك④حضرت شعبي رحمه الله فرمائي چه په مسلمانانوكښې چاد كتاب الله خلاف فيصله اوكړه هغه كافر دې.اوكه يهودو كښې داسې اوكړي نو هغه ظالم دې.اوكه نصرانيانو كښې داسې اوكړي نو هغه فاسق دې.⑤حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه د هغه كفردې آيت مبارك سره دې.

**دا كفر.كوم نوعيت دې؟** ①حضرت طاؤس رحمه الله فرمائي چه د هغه كفردهغه كفر په شان نه دې چه هغه بالكل دالله ﷻ اود هغه رسول ﷺ اود هغه د فرښتو نه منكر وي. ②حضرت عطاء رحمه الله فرمائي چه د ده كفرد عامو كافرانو د كفر نه كم دې.داشان د ظلم اوفسق هم ادنى اواعلى درجات دي.[2] دې كفرسره هغه د ملت اسلام نه مخ اړولووالا نه دې. ③ حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه ددې نه مراد هغه كفر نه دې چه كوم طرفته تاسو ځئ.[3]

وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَآ
| اوليكلې وؤ مونږ| په هغوئ باندې | په دې كښې
| اومونږ دوئ ته په تورات كښې حكم وركړې وؤ

أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ ۙ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنْفَ
چې بيشكه نفس| په بدله دنفس كښې | اوستركه په بدل دستركې كښې| اوپوزه
چې دځان بدله كښې ځان ، دستركې بدله كښې ستركه ، دپوزې

بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ ۙ وَالْجُرُوحَ
په بدل دپوزې كښې | اوغوږ | په بدل دغوږ كښې | اوغاښ | په بدل دغاښ كښې | اوزخمونه
بدله كښې پوزه ، اود غوږ بدله كښې غوږ اود غاښ بدله كښې غاښ دې|اوباقي ټولو زخمونه په برابرى

قِصَاصٌ ۚ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ ۚ
په قصاص دى|نو څوك چې معافي اوكړي|ددغي(زخم)|نو دغه عفوه|كفاره ده|دپاره دهغه(د گناهونو)
دى| ........نوچاچې بدله اخستل معاف كړل | نوهغه به ورله كفاره اوگرځي

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۞
اوهغه څوك| چې فيصله اونه كړه|په هغه قانون|چې نازل كړې دې| الله|نودغه كسان چې دى| هغوئ | ظالمان دى
اوڅوك چې دالله ﷻ د حكم مطابق فيصلې نه كوي | ..........نو هم دغه كسان ظالمان دى

**د يهوديانو په تورات كښې تحريف**:- يهوديانوته سزا اورولې شي چه دوى په كتاب كښې په ښكاره لفظونوكښې كوم حكم وو دهغې خلاف كوى او سركشي او بې پرواهئ سره دا پريږدي.نضري يهوديان

---

[1] ) ايضا : ٥٩٧/٤.
[2] ) ايضا: ٥٩٥/٤.
[3] ) حاكم: ٣١٣/٢.

دقریظې یهودیانو په بدله کښې قتل کوی لیکن د قریظه یهودیان د بنو نضیر په بدله کښې نه قتلوی.بلکه دوی نه دیت اخلی اودوی پریږدی.هم داشان هغوئ واده شوی زانی حکم هم بدل کړې دې.اوددې صرف د شرمولو،رسوا کولو او وهلو نه پس پریږدی.ځکه نې هلته دوی ته کافراوونیل او دلته نې دانصاف نه کولو په وجه ظالم اوونیل.داسې یوحدیث هم دې. نبی کریم ﷺ نه ﴿وَالْعَيْنَ﴾ هم مروی دی .(١) (ابوداود وغیره)

**قاعده:-** دعلماء کرامو قول دې چه مخکښې شریعتونه که خمونږ دپاره په طور د تقریر بیان کړې شی اومنسوخ شوې نه وی نوهغه خمونږ دپاره هم شریعت دې.لکه څنګه چه دا احکام ټول په ټوله خمونږ شریعت کښې دی.امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې مسئله کښې دری مسلکونه دی.①یو خو هغه چه کوم بیان شو ② یو ددې خلاف ③یو دا چه ابراهیمی شریعت صرف باقی او جاری دې نور څه نه.

**د ښځې او سړی په قصاص کښې دوه مذاهب:-** ①ددې د آیت عموم نه دا استدلال هم کړې شوې دې چه ښځه د سړی بدله کښې هم قتل کولې شی.ځکه چه دلته لفظ د نفس دې چه سړی او ښځې دواړو دپاره دې.اویوحدیث مبارک هم دې چه سړې به د ښځې د وینې بدله کښې قتلولې شی .(٢) او یو حدیث مبارک کښې دی چه د مسلمانانو وینې خپلو کښې برابرې دی (٣)②د بعضو بزرګانونه دا هم نقل دی چه کله سړې یوه ښځه قتل کړی نو د دې بدله کښې به دې نشی قتل کولې.بلکه صرف دیت به ورکولې شی.لیکن دا دجمهورو د قول خلاف دې.

**د ښځې په قصاص کښې به سړې قتل کولې شی**

**مسلک حنفی:-** د احنافو په نیز به د ښځې په مقابله کښې سړې قصاص کولې شی (التفسیرات الاحمدیة صفحه ٥٠).

امام ابوحنیفه رحمه الله خو فرمائی چه د ذمی کافر بدله کښې به هم مسلمان قتلولې شی.اود غلام بدله کښې به آزاد هم قتلولې شی.خودا مذهب د جمهورو خلاف دې.بخاری او مسلم کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه مسلمان به دکافر به بدله کښې نشی قتل کولې (٤). اود سلفو ډیر آثاردې باره کښې موجود دی په هغې کښې دی چه هغه د غلام قصاص آزاد نه نشی اخستې.احادیث هم دې باره کښې مروې دی.لیکن صحت ته نه رسی.امام شافعی رحمه الله خو فرمائی چه په دې مسئله کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله خلاف اجماع ده.خو په دې خبرو سره د دې قول بطلان نه لازمیږی،ترکوم وخته پورې چه د آیت عموم خاص کولو والا زبردست ښکاره دلیل ثابت نه وی.

**د ذمی په قصاص کښې به مسلمان قتل کولې شی**

**مسلک حنفی:-** د دې مسئلې پوره تفصیل د سورة بقرې په دویمه پاره ایت القصاص لاندې تیر شوې دې هلته نې اوګورئ

**د اصیلې غاښونه د وینځې د غاښونو په بدله کښې قصاص کول:-** بخاری او مسلم کښې دی چه د حضرت انس بن نضر رضی الله عنه ترور ربیع د یوې وینځې غاښونه مات کړل.اوس خلقو ددې نه معافی غوښتله خودې نه منله.دا معامله نبی کریم ﷺ ته راغله. نبی کریم ﷺ ورته د بدل اخستلو حکم ورکړو. دې باندې

---

١) ابوداود کتاب الحروف والقرات : ٣٩٧٦،
٢) نسائی کتاب القسامة باب ذکر حدیث عمرو بن حزم فی العقول واختلاف الناقلین له : ٤٨٥٧،.
٣) ابوداود کتاب الجهاد: باب فی السریة ترد علی اهل العسکر: ٢٧٥١، وهو حسن.
٤) صحیح بخاری کتاب الدیات باب لایقتل المسلم بکافر: ٦٩١٥، ابوداود : ٤٥٠٦، ابن ابی شیبة: ٢٩٤/٩. ترمذی : ١٤١٣.

حضرت انس بن نضر ﷛ اوفرمائيل چه آيا ددې دې مخامخ غاښونه مات کړې شي؟ نونبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه آو انې انس ! د رب کتابونوکښې د قصاص حکم موجود دی.دې آوریدو سره نبي اوفرمائيل چه نه نه اې دالله رسوله ﷺ ! په هغه الله قسم چه هغه ته حق سره راليږلې نې،د هغه غاښونه به نشی ما تولې.نو هم داسې اوشو چه هغه خلق راضی شو او قصاص ئې پریښودو بلکه معاف ئې کړو. په هغه وخت کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه د الله ﷻ بعضې بندګان داسې دی که هغوئ په خدا قسم اوخوری نو الله ﷻ هغه پوره کوی.دویم روایت کښې دی چه مخکښې هغوئ معافی نه وه کړې او نه يې دیت منظور کړې وو.(١)

**دغریبانانو غلام معاف کول:-** نسائی وغیره کښې دی چه د یوغریب جماعت غلام نه د یو مالدار جماعت غلام غوږ پریکړې وو،دا خلق راغلل او نبی کریم ﷺ ته ئې عرض اوکړو چه مونږ خلق فقیران یو مونږ سره هیڅ نشته دې،نو نبی کریم ﷺ په دوی هیڅ جرمانه اونه لګوله (٢).

**دمعافئ وجوهات:-** ①کیدیشی چه دا غلام بالغ نه وو ②اوکیدیشی چه نبی کریم ﷺ دیت ورته د خپل خان نه ورکړې وی ③اودا هم کیدیشی چه هغوئ ئې د معاف کولو سفارش کړې وی.

**په اندامونو کښې قصاص:-** حضرت ابن عباس ﷛ فرمائی د نفس بدله کښې به نفس قتل کولې شی،د سترګې ویستلو والا سترګه به ویستلې شی، د پوزې پریکولو والا به پوزه پریکولې شی،د غاښ ماتوونکی والا غاښ به ویستلې شی،او زخم بدله به هم اخستې شی (٣). په دې کښې آزادمسلمان ټول برابر دی.سړی او ښځې یوحکم کښې دی.کله چه دا کارونه قصدسره شوی وی. په دې کښې غلامان هم خپلو کښې برابردی.ددوی سړی هم او ښځې هم.

**قاعده:-** ①د اندامونو پریکول کله خود جوړ نه وی په دې کښې قصاص واجب دې،لکه لاس،پښه،تلې وغیره،لیکن کوم زخم چه په جوړ نه وی بلکه هډوکی باندې وی د هغې باره کښې حضرت امام مالك ﷫ فرمائی چه په دې کښې هم قصاص شته دې.خو پټون کښې او ددې په شان نورو اندامونوکښې خکه چه د خطرې ځایونه دی.②ددې برخلاف حضرت امام ابوحنیفه ﷫ اوددوی دملګرو مذهب دې چه په هیڅ هډوکی کښې قصاص نشته دې سوا دغاښ نه ③اود امام شافعی ﷫ په نیز مطلق هډوکی کښې قصاص نشته دې.دحضرت عمر فاروق ﷛،حضرت علی ﷛ نه هم مروی دی.او عطاء ﷫، شعبی ﷫، حسن بصری ﷫، زهری ﷫، ابراهیم نخعی ﷫ اوعمربن عبدالعزیز ﷫ هم دا وانی.اودې طرفته دی. سفیان ثوری ﷫ او لیث بن سعد ﷫ هم او امام احمد ﷫ هم دا قول زیات خوښ کړې دې.

**د احنافو دلائل:-** ①د امام ابوحنیفه ﷫ دلیل هم هغه دې چه کوم انس ﷛ والا روایت کښې دی.چه په هغې کښې دربیع دغاښ دقصاص ورکولوحکم نبی کریم ﷺ کړې وو.لیکن اصل کښې د دې روایت نه دامذهب هم ثابت نه دې خکه چه په دې کښې دا الفاظ دی چه دده مخکښې غاښونه ئې مات کړی وو اوکیدیشی چه بغیردماتولو نه غورزیدلی وی.دې حالت کښې قصاص اجماع سره واجب دې.②ددوی د دلیل پوره حصه هغه ده چه کومه ابن ماجه کښې ده چه یو سړی دبل سړی د څنګل لاندې توره اووهله اودې سره دهغه سړی مروند کښې لاس مات شو. دا مقدمه نبی کریم ﷺ ته راغله، نبی کریم ﷺ حکم اوکړو چه دیت دې ورکړئي ،هغه اووئیل چه څه قصاص غوارم، نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه دا واخله الله

---

(١) صحیح بخاری کتاب الصلح باب الصلح فی الدیة: ٢٧٠٣، صحیح مسلم: ١٦٧٥، ابوداود: ٤٥٩٥.
(٢) ابوداود کتاب الدیات باب جنایة العبد یکون للفقراء : ٤٥٩٠،
(٣) الطبری : ٣٦٠/١٠.

ﷺ به تالره په دې کښې برکت واچوی.اونبی کریم ﷺ قصاص اونه فرمائیلو(١) لیکن داحدیث مبارك بالکل ضعیف دې،ددې یو راوی هشتم بن قران عکلی اعرابی ضعیف دې،ددوی په حدیث حجت نشی قائمولې،دویم راوی ئې نمران بن جاریه اعرابی هم ضعیف دې.

**په غاښونو کښې که ممکن وی قصاص شته**

**مسلک حنفی:-** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په غاښونو کښې به هم قصاص داسې جاری کیږی لکه څنګه چې په هغه صورت کښې په غاښونو کښې قصاص لازمیږی کله چه د وېخ نه غاښ اوباسی (تفسیرمظهری ١٥١١٣).

**دزخمونو د قصاص وخت:** بیا وائی چه زخمونو قصاص د دې روغیدو نه مخکښې اخستل جائز نه دی.اوکه مخکښې واخستې شی بیا زخم درست شی نو هېڅ بدله به نه شی ورکولې.ددې دلیل امام احمد والاحدیث مبارك دې چه یو سړی د بل سړی په ښکون کښې زخم راوستو،هغه نبی کریم ﷺ ته راغلو اووې ونیل چه څه بدله غواړم. نبی کریم ﷺ ورته ورکړه.دې نه پس بیا هغه راغلو اووې ونیل چه یارسول الله ﷺ! څه ګوډ یم،نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ماخومنع کړې وې،لیکن تا اونه منل.اوس ستاددې ګوډوالی هېڅ بدله نشته دې.بیا نبی کریم ﷺ دزخمونو دروغیدونه مخکښې بدله اخستل منع کړل(٢).

**په زخمونو کښې که مماثلت کیدې شی نو قصاص شته ګنې نشته**

**مسلک حنفی:-** د زخمونو په قصاص کښې دا مسئله ده چې ترکومو پورې مماثلت او یوشان والې کیدې شی نو قصاص به اخستې شی اوکه مماثلت او یوشان والې نشی کیدې نو قصاص به نشی اخستې مثلاً که د چا لاس په پیوند کښې مات شی نو په پیوند کښې به د جانی لاس هم ماتولی شی اوکه د پیوند نه بغیر په بل ځائې کښې مات شوې وی نو په دې صورت کښې مماثلت ممکن نه دې نو قصاص به نشی اخستې د زخمونو د قصاص دپاره تفصیلی احکامو دپاره اوګورئ (تفسیرمظهری ١٤٩١٣).

**د زخم د قصاص نه پس د مرګ واقع کیدو په صورت کښې د دیت حکم؟** ① که یو کس بل کس زخمی کړواودده بدله واخستې شوه اودې کښې دې مړ شو نو په هغه هېڅ نشته دې.حضرت امام مالك رحمه الله،حضرت امام شافعی رحمه الله،حضرت امام احمد رحمه الله اودجمهور صحابه کرام او تابعین نه هم دا قول نقل دې.② د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې چه په ده باندې د ده د مال نه دیت واجب دې.③ بعضې نور بزرګان فرمائی چه دده دمور پلار طرفنه درشته دارو په مال کښې واجب دی④ بعضې نور حضرات وائی چه ددې د بدلې په قدرخوساقط دی باقی هم د ده مال کښې واجب دی.

**د قصاص په اخستلو د مرګ واقع کیدل موجب حد نه دې**

**مسلک حنفی:-** د زخم د قصاص نه پس د مرګ واقع کیدو په صورت کښې په هغه چا باندې څه نشته د چا دپاره چه قصاص اخستې شوې وی لکه څنګه چه حافظ ابن کثیر رحمه الله امام ابوحنیفه رحمه الله ته نسبت کړې دې (شاه فیصل غفرله).

**دقصاص معاف کولو نه پس حکم:-** بیا فرمائی چه کوم سړې قصاص معاف کړی او په طور د صدقې هغه خپله بدله معاف کړی نو د زخمی کوونکی کفاره اوشوه.اوچه څوك زخمی شوې دې د هغه به

---

(١) ابن ماجه کتاب الدیات باب ما لا قودفیه: ٢٦٣٦،
(٢) احمد: ٢١٧/٢، مجمع الزوائد: ٢٩٥/٦،دې روایت کښې محمد اسحاق مدلس راوی دې اودهغې دسماع صراحت نشته دې.

ثواب اوشي. چه دا د الله ﷻ په ذمه دې. بعضو داهم وئيلي دي چه دا كفاره د زخمي دپاره ده يعنى دده ګناه هم ددې زخم په مقدار سره الله ﷻ بخښي. يومرفوع حديث مبارك كښې راغلي دي كه د څلورمې حصې برابر خيژوي. اوده هغه معاف كړو نو دده څلورمه حصه ګناه به معاف كړي. كه دريمه حصه وي نو درې حصې ګناهونه به ئې معاف شي اوكه پوره وي نو پوره ګناهونه به ئې معاف شي.

**د انصاري قريشي ته معافي كول:-** يوقريشي يوانصاري په زوره ديكه كړو او دې سره د هغه مخكښې غاښونه مات شو. حضرت معاويه ﷺ ته دا مقدمه راغله اوكله چه هغه ډير غصه شو نودوي اوفرمائيل چه خه لاړه شه تاته اختيار دې، حضرت ابودرداء ﷺ هم هلته ناست وو وې فرمائيل چه ما نبي كريم ﷺ نه آوريدلي دي چه دكوم مسلمان بدن ته څه تكليف اورسي اوهغه صبراوكړي او بدله وانخلي نوالله ﷻ دده درجې اوچتوي، او د ده ګناهونه معاف كوي، دې انصاري دې آوريدو سره اووئيل چه دا رښتيا دي، دا تاسو پخپله د نبي كريم ﷺ نه آوريدلي دي، دوي ﷺ اوفرمائيل چه څمادې غوږونو آوريدلي دي او څمازړه يادكړي دي. هغه اووئيل چه بيا خو ته ګواه اوسه چه ما خپل مجرم معاف كړو. حضرت معاويه دې آوريدو سره ډير زيات خوشحاله شو اوهغه ته ئې انعام وركړو([1]) (ابن جرير).

ترمذي كښې هم دا روايت دې ليكن په قول د امام ترمذي دا غريب دې. د ابوسفر د ابو درداء نه آوريدل ثابت نه دي. اوروايت كښې دي چه هغه درې چنده ديت وركولو ليكن دې راضي نشو، دې كښې د حديث مبارك الفاظ دا دي چه كوم كس وينه يا دې نه كم معاف كړي نوهغه دده د پيدائش نه واخله ترمرګه پورې دده كفاره ده، مسند احمد كښې دي چه دكوم كس په بدن څه زخم اولګي اوهغه ئې معاف كړي نو الله ﷻ د هغه هم دومره ګناهونه معاف كوي.

د الله ﷻ د حكم مطابق فيصله نه كولو والا ظالم دې ([2]). مخكښې تير شوي دي چه كفر د كفر نه كم دې. ظلم كښې فرق دې (څه زيات او څه كم) دې. او فسق كښې هم درجې دي.

| |
|---|
| وَقَفَّيْنَا عَلَىٰٓ اٰثَارِهِمْ بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا |
| اواوليږلو مونږه \| روستو دهغوئ نه \| عيسى ﷺ \| ځوي \| د مريم \| اچې تصديق كونكې وؤ \| دهغه څه |
| بيا مونږه دغه پيغمبرانو نه ورستو عيسى دمريم ځوئي راوليږلوا چې هغوى د هغه كتابونو تصديق كونكې |
| بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ ۖ وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ فِيْهِ هُدًى |
| چې دهغه د وړاندې موجود وؤ \| دتورات نه \| اوورکړو مونږ هغه له \| انجيل \| اچې په هغې كښې الاربنودنه وه (حق ته) |
| وؤ \| كوم چې د تورات نه وړاندې تير شوي وؤ \| اومونږ هغه ته انجيل وركړوا چې په هغې كښې هدايت |
| وَّنُوْرٌ ۙ وَّمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَهُدًى |
| اورڼا وه \| اوتصديق كونكې وؤ \| دهغه څه \| چې په هغه وخت كښې موجود وؤ \| دتورات نه \| اوهدايت وؤ |
| اورڼا وه \| اود تورات تصديق ئې كولو كوم چې دهغه وړاندې وؤ \| .......... اودغه انجيل د پرهيزګارانو |
| وَّمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ۞ وَلْيَحْكُمْ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَآ |
| اونصيحت وؤ \| دپاره دپرهيزګارانو \| اوفيصله دكوي \| اهل \| د انجيل \| مطابق دهغه قانون |
| دپاره هدايت اونصيحت وؤ \| ..........اوزمونږ داحكم وؤ چې دانجيل منونكي دي دهغې مطابق |

[1] ) ترمذي : كتاب الديات باب ماجاء في العفو: ١٣٩٣، ابن ماجه: ٢٦٩٣.

[2] ) الطبري: ٣٣٢/١٠.

أَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِ ۭ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ

چي نازل کړي دي الله | په هغه کښي|او هغه څوك| چي فيصله اونه کړي| په هغه قانون| چي نازل کړي دي الله

فيصله کوی | او څوک چي دالله ﷻ دحکم مطابق فيصله نه کوی

فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٤٧﴾

نودغه کسان| هم هغوئ دی| فاسقان |

نوهم دغه کسان نافرمان دی |

**داسمانی کتاب انجيل څه خصوصيات** :- د بنی اسرائيلو د نبيانو عليهم السلام نه پس مونږ عيسی عليه السلام اوليږلو،هغوی په تورات باندې ايمان ساتلواوددې داحکامو مطابق ئې فيصلې کولې،مونږ دوی ته هم خپل انجيل ورکړو.اودې کښې د حق هدايت وو اود شبهات او مشکلاتو وضاحت وو،اومخکښې کتابونو سره موافقت وو.خوڅو مسائل چه په هغې کښې يهوديان مختلف وو،د هغې ښکاره فيصلې په هغې کښې موجود وې.لکه قران پاك کښې بل ځائې کښې دی چه حضرت عيسی عليه السلام اوفرمائيل چه ستاسو دپاره به بعضې هغه څيزونه حلال کړم چه کوم په تاسو حرام شوی دی.ددې وجې د علماء کرامو مشهوره مقوله ده چه انجيل د توراة بعضې احکام منسوخ کړی وو.انجيل نه د پاکو خلقو دپاره رهنمائی اوپندونصيحت کيدو چه هغوئ دې نيکئ طرفته رغبت اوکړی اودبدئی نه دې بچ اوسی.

**په اهل الانجيل کښې اختلاف د قراءت**:- ﴿أَهْلُ الْإِنْجِيْلِ﴾ هم لوستلې شوې دې،دې صورت کښې به ﴿وَلِيَحْكُمْ﴾ کښې لام د ﴿كَيْ﴾ په معنی کښې وی.مطلب به دا وی چه مونږ حضرت عيسی عليه السلام ته انجيل په دې وجه ورکړې وو چه هغوئ خپله زمانه کښې خپل منونکی په دې روان کړی او دې لام ته دامر لام دې اوګنړلې شی.او مشهور قراة ﴿وَلْيَحْكُمْ﴾ لوستې شی نو معنی به دا وی چه دوی ته پکار دی چه د انجيل احکامو باندې ايمان راوړی اوهم د دې مطابق حکم اوکړی.لکه بل آيت مبارك کښې دی چه ﴿قُلْ يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ لَسْتُمْ عَلٰى شَيْءٍ﴾ يعنی ائې اهل کتاب ترکومې چې تاسو په انجيل اوتوراة باندې اوچه څه دالله ﷻ طرفنه نازل شوی دی باندې قائم پاتې نشئ نوتاسو په هيڅ معتبر دين باندې نه يئ.او آيت کښې دی چه ﴿اَلَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا﴾ چه کوم خلق ددې رسول نبی امی ﷺ تابعداری کوی او دده صفت په توراة کښې ليکلې شوې مومی.هغه خلق چه کوم کتاب الله او د خپل نبی ﷺ فرمان مطابق حکم نه کوی نو هغوئ دالله ﷻ د اطاعت نه خارج دی.د حق پريښودونکی اود باطل عاملان دی. دا آيت د نصرانيانو په حق کښې دې. لکه څنګه چې د آيت نه ظاهريږی اومخکښې هم بيان شوی دی.

وَأَنْزَلْنَآ إِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ

| او رااوليږو مونږ| تاته ائې محمد ﷺ| کتاب | دحق سره

اومونږ تاته داکتاب درکړې دې | چې حقې خبرې کوی

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ

چې تصديق کونکې دې|دهغه څه| چې موجود دی په وړاندې د دهٔ|د کتاب نه | اومحافظ دې |په هغه کتاب

اودمخکينی کتاب تصديق کوی | ............................ او د هغې حفاظت کوی

فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ

نو فیصلي کوه|په منځ ددوئ کښې| مطابق دهغه قانون | چې نازل کړې دې الله| او مه کوه پیروی

نوائې پیغمبره ﷺ ته ددوئ مینځ کښې دالله ﷻ دحکم مطابق فیصله کوه| او ته د هغې حقې لارې مقابله کښې

اَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ؕ لِكُلٍّ جَعَلْنَا

دخواهشاتو ددوئ|دهغه څیزونو نه | چې راغلې دې تاته|د حکم د الله نه | مقرر کړې دې مونږ ه د هر یو د پاره

د دوی دخواهشاتو تابعداری مه کوه | کومه چې تاته راغلې ده | ............ مونږ په تاسو

مِنْكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ اُمَّةً

ستاسو نه|یو شریعت|اویوه لاره دعمل|او که غوښتلې الله |نو خامخا به نې جوړ کړې وئ تاسو| امت

کښې د هریوې ډلې دپاره یو خاص شریعت او خاص لار مقرر کړې ده | او که الله ﷻ ته منظوره وې نو

وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ لِّيَبْلُوَكُمْ فِیْ مَآ اٰتٰىكُمْ

یو الیکن بیل نې کړئ | دپاره ددې چې ازمائي تاسو | په هغه څه کښې | چې درکړې نې دی تاسو لره

تاسو ټول به نې یوه ډله کړې وئ | خو هغه داغواړي چې پخپلو احکامو سره ستاسو امتحان اوکړي

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ

نو وړاندې شئ | نیکوته | الله ته | واپس تلل دی ستاسو | دټولو | نو خبر به کړې تاسو ل

نو نیکو کارونو کښې وړاندې شئ | آخر تاسو ټول به الله ﷻ ته واپس کیږئ | نو هغه به تاسو د هغه خبرې

بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ۙ﴿٤٨﴾ وَاَنِ احْكُمْ

په هغه څه| چې وئ تاسو|په هغې کښې | چې اختلاف به موکولو| اودا چې | فیصله کوه

خبر درکړې په کومه کښې چه تاسو اختلاف کولو| او انې (پیغمبره) ددوئ مینځ کښې د

بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ

په منځ ددوئ کښې|مطابق دهغه قانون| چې نازل کړې دې الله | او مه کوه پیروی | دخواهشاتو ددوئ

دالله ﷻ د کتاب (قرآن) مطابق فیصله اوکړه| ............اوددوئ د خواهشاتو تابعداری مکوه

وَاحْذَرْهُمْ اَنْ يَّفْتِنُوْكَ عَنْۢ بَعْضِ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

اویره کوه ددوئ نه| چې په فتنه کښې وانه چوی تا لره| دځینې |هغه هدایت نه| چې نازل کړې دې الله

اود دوی نه ویره کوه چې دداسې فیصلې نه دې اونه ګرخوی چې الله ﷻ تاته رالیږلې وی

اِلَيْكَ ؕ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ

تا ته | نو که چرې| مخ واړوي دوئ| نو پوهه شه | چې بیشکه | اراده لرې الله | چې

که دوئ دحقې لارې نه مخ واړوی | نو پوهه شه چې الله ﷻ داغواړي چې

يُصِيبَهُم بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ

اورسوی دوی ته سزا|په سبب دخینو|گناهونو ددوی| اوبیشکه | زیات | دخلقو نه

دوی ته د بعضي گناهونوسزا (په دنیا کښې هم) ورکړي| اوربښتیاخبره داده چې په دوی کښې ډیرخلق

لَفَاسِقُونَ ﴿٤٩﴾ أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ

خامخا فاسقان دی |آیا نو فیصلې | دجاهلیت | غواړی دوی| او څوک دی| زیات ښهٔ| دالله نه

فاسقان دی| نوآیا دوی دجاهلت دوختونو فیصلې غواړي|اوحال دادې چې څوک په الله ﷻ یقین ساتی دهغوی

حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴿٥٠﴾

په فیصلو کولو کښې|دپاره دهغه قوم|چې یقین لري|

په نزد دالله ﷻ نه بهتره فیصله دچانشی کیدې |

**د قران پاک صداقت**:- د توراة اوانجیل تعریف او ثناء نه پس اوس د قران پاك بزرگی بیانیږی چه مونږ دا حق او صداقت سره نازل کړې دې.دا په یقین سره دیو الله ﷻ طرفنه دې.اوهم دهغه پاك ذات کلام دې.داکتاب ټول مخکښې کتابونه حق منی او په هغه کتابونوکښې هم ددې قران پاك صفت بیان شوې دې.اوپه هغې کښې دا بیان هم دې چه دا پاك اوآخری کتاب په آخری او افضل رسول ﷺ باندې نازل شوې دې.نوهر عقل مند سړې په دې یقین ساتی اودا منی لکه فرمان دې چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مِن قَبْلِهِ﴾ کومو کسانو ته چې ددې کتاب نه مخکښې علم ورکړې شوې وو،هرکله چه د هغوئ مخکښې د دې تلاوت اوکړې شی نو دوی په زنو باندې په سجده پریوځی.او زبانی اقرار کوی چه خمونږ د رب وعده ربښتونې ده.اوهغه ربښتونې شوې ده. هغه چه د مخکښې رسولانو په ذریعه کوم پیغام ورکړې وو هغه پوره شو.اوآخری رسول د ټولو رسولانو سرتاج راغلو. اوداکتاب د مخکښې ټولو کتابونو امین دې.یعنی دې کښې چه څه موجود دی هغه مخکښې کتابونوکښې موجود وو.اوس که څوك اووائی چه فلانی مخکښې کتاب کښې دا موجود وو نو دا به غلط وی.دا د هغوئی ربښتونې گواهی اوهغه گیرولو والا دې.او هغه مخکښې کتابونوکښې چه څه موجود نه ووهغه ټول په دې کښې موجود دی .په دې وجه هم دا په ټولو حاکم او مقدم دې.اود دې د حفاظت کفیل پخپله الله ﷻ دې.لکه څنگه چه الله ﷻ فرمائی چه ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴿٩﴾﴾

**دویم تفسیراودهغې ضعف**:- بعضوونیلی دی چه ددې نه مراد دا دې چه نبی کریم ﷺ امین دې ددې کتاب.واقع کښې دا قول ډیر صحیح دی لیکن ددې آیت مبارك تفسیر گرخول صحیح نه دی بلکه د عربیت اعتبار سره هم دا غور طلب دې.صحیح تفسیر ړومبې دې.امام ابن جریر رحمه الله هم حضرت مجاهد رحمه الله نه دا قول نقل کړې دې او فرمائی چه دا ډیره لرې خبره ده بلکه صحیح نه ده ددې وجې د ﴿مهیمن﴾ عطف مصدق باندې دې.نودا هم د دې څیزصفت دې چه د کوم صفت مصدق لفظ وو. که چرې د حضرت مجاهد رحمه الله معنی صحیح اومنلې شی نو عبارت بغیرد عطف نه پکار وو.

قوله تعالى:: فَاحْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ

**نبی کریم ﷺ ته د کتاب الله مطابق فیصلې کولو حکم**:- نوائې نبی ﷺ ! تاسو په دې ټولو کښې دالله ﷻ دکتاب احکام خواره کړئی.که عرب وی اوکه عجم ،که خوانده وی اوکه ناخوانده.دالله ﷻ نازل شوی نه دالله ﷻ وحی مرد ده. که هغه ددې کتاب په صورت کښې وی اوکه د الله تعالی د مخکښې احکاموپه صورت کښې وی کوم چې نې د نبی کریم ﷺ دپاره مقرر کړی وو. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ددې آیت مبارك نه مخکښې نبی کریم ﷺ ته آزادی ورکړې شوې وه که غواړې نو دوی کښې فیصلې

اوکړه اوکه غواړې نومه کوه.خو دې ایت مبارك دا حکم ورکړو چه دالله ﷻ د وحی مطابق فیصلې کول ضروری دی (١).

**دهر امت دپاره لار او طریقه**:- ددې بدنصیبو جاهلانو په وجه چه کوم احکام رانج شوی دی اوددوی په وجه نې کتاب الله شاته غورزولې دې،خبردار انې نبی ﷺ ! تاسو خو ددوی خوښې پسې ځئ خو چه حق پرې نړدئی.دوی کښې هریودپاره مونږ لار او طریقه جوړه کړې ده.دیو څیز طرفته ابتداء کولو ته شرعه وائی.منهاج لغت کښې واضحې او آسانې لارې ته وائی. نوددې دواړو لفظونو هم دا تفسیر زیات مناسب دې،

**د شریعتونو په اصولو کښې اتفاق**:- مخکښې چه څومره شریعتونه دالله ﷻ د طرفنه وو هغه ټول په توحید خو متفق وو البته وړه وړه احکامو کښې لږ شان مخکښې روستوو.لکه حدیث مبارك کښې دی چه مونږ ټول نبیان علیهم السلام ناځکه رونړه یو. څمونږ د ټولو یودین دې (٢).هریو نبی توحید باندې لیږلې کیږی او هر آسمانی کتاب کښې د توحید بیان دې،ددې ثبوت او هم دې طرفته دعوت ورکولې کیږی.لکه قران پاك کښې فرمائی ستا نه مخکښې چه څومره هم رسولان مونږ لیږلی دی هغه ټولو طرفته مونږ وحی کړې وه چه څما نه سوا هیڅ معبود نشته دې تاسو ټول صرف هم څماعبادت کوئی،اوآیت کښې دی چه ﴿ولقدبعثنا﴾ مونږ هریو امت ته د نبی په خوله اوونیل چه د الله ﷻ عبادت کوئی اودهغه نه سوا د نورو عبادت نه بچ اوسئ.

**په احکامو کښې اختلاف**:- خو احکامو کښې اختلاف ضرور شوې دې.یو څیز په یوه زمانه کښې حرام وو او بیا حلال شو یا ددې برعکس،یا یوحکم کښې تخفیف وو او اوس تاکید اوشو،یا ددې خلاف،اودا هم حکمت او مصلحت اوحجت ربانی سره، توراة لکه یو شریعت دې،انجیل یو شریعت دی،قران پاك یو مستقل شریعت دې چه هرې زمانې د فرمانبرداراو د نافرمانو امتحان واخستې شی.البته توحید تولو زمانوکښې یوشان وو.اوددې جملې معنی داده چه انې امت محمدی ﷺ ! تاسوکښې هریو سړی دپاره مونږ خپل کتاب قران پاك نازل کړې دې او دا مو شریعت او طریقه ګرزولې دې.تاسو ټول ته پکار دی چه ددې اقتداء او تابعداری اوکړئی.دې صورت کښې د ﴿جعلنا﴾ نه پس ضمیر محذوف به صحیح قول رومبې دې او ددې دلیل دادې چه ددې نه پس فرمان دې که الله ﷻ غوښتلې نو تاسو ټول به نې یو امت کړې وې . نومعلومه شوه چه راتلونکې خطاب صرف دې امت ته نه دې بلکه ټولو امتونوته دې اوپه دې کښې د لله ﷻ د کامل او ډیر لوئې قدرت بیان دې که هغه پاك ذات غوښتلې نو ټول به نې یو امت او په یو دین کړې وې او هیڅ یووخت کښې به هیڅ تبدیلی نه وې.خو دالله ﷻ د حکمت تقاضا ده چه جدا جدا شریعتونه نې مقرر کړی،یو نه پس بل نبی اولیږی اودمخکښې نبی بعضې احکام روستنی نبی دپاره بدل کړی تردې چه ټول مخکنی دینونه د نبی کریم ﷺ نبوت سره منسوخ شو. او نبی کریم ﷺ ټول مخلوقات ته اولیږلې شو. او خاتم الانبیاء اولیږلې شو.

**دشریعتونو په اختلاف کښې امتحان**:- دا مختلف شریعتونه صرف ستاسود آزمیښت دپاره وو چه تابعداروته جزا او نافرمانو ته سزا ورکړې شی.دا هم ونیلې شوی دی چه تاسو باندې آزمیښت اوکړی په هغه څیز کښې چه کوم تاسوته درکړې شوې دې یعنی کتاب،نو تاسو ته پکار دی چه نیکو اوخیرات طرفته په منډه راشئ.تاسوته پکار دی چه دالله ﷻ اطاعت اوشریعت ته مخکښې راشئ.اوتاسوته پکار

١) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی (واذکر فی الکتاب مریم....) : ٣٤٤٣، صحیح مسلم: ٢٢٦٥.
٢) الدرالمنثور ٣/١٠٠،

دي چه داخري نبي ﷺ كتاب اوشريعت د زړه نه اومني؛ انې خلقو استاسو دټولو مرجع اوماوى او ستاسو د واپس كيدل صرف الله ﷻ طرفته دى. هلته به تاسوته ستاسو داختلاف اصليت اوښائي. رښتونوته به د هغوئ بهتره ميوه ملاؤ شي، او بدانوته به د هغوئ د تكذيب اوسركشئ او خواهش نفساني كښې مبتلا كيدو په وجه سزا وركولې شي. چه حق فعل طرفته حق پسې انښلي. او مقابله كوى. ضحاك رحمه الله وائي چه مراد د حضرت محمد ﷺ امت دي. خواول قول اولى دي.

قوله تعالى: ﴿وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُوكَ عَنۢ بَعْضِ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ إِلَيْكَ﴾

بيا دوميى خبرې نورتاكيد كيږى اوددې خلاف كولو نه منع كيږي، او فرمائي چه هسې نه تاسو ددې مكار اوكذاب اوكافر په خبرو كښې راشئ او د الله ﷻ حكم نه واوړئ. كه دوى ستا احكامونه مخ واړوى اودشريعت خلاف اوكړى نو پوهه شه چه ددوى د غلطو په وجه به الله ﷻ دوى باندې څه عذاب راولى. نو په دې وجه د دوى نه توفيق واخستې شو. اكثر خلق فاسقان دى، يعنى د حق اطاعت نه خارج دى، د الله ﷻ ددين خلاف، اوهدايت نه لرې دى، لكه فرمائي چه ﴿وَمَآ أَكْثَرُ ٱلنَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ﴾ يعنى اګرچه ته حرص كوې اوغواړې خو دوى كښې زيات خلق مومنان نه دى. اوفرمائي چه ﴿وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِى ٱلْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ يعنى كه ته په زمكه كښې دزياتو خلقو اومنې نودوى به تا د الله ﷻ د لارې نه واړوى.

**د ايت شان نزول:-** ديهودو څولوئي لوئي سردارانو او عالمانو خپلو كښې يو جرګه اوكړه او د نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شو او عرض ئې اوكړو چه تاسوته معلوم دى چه ﷺ كه مونږ تاسو اومنو نو ټول يهود به ستاسو نبوت اقراراوكړى اومونږ ستاسو منونكي يو. خوتاسو صرف دومره اوكړئ چه زمونږ او زمونږ دقوم مينځ كښې يو تنازعه اود هغې فيصله خمونږ مطابق اوكړئ. نبى كريم ﷺ انكار اوكړو اوهم دې باندې دا ايت مبارك نازل شو. (١)

ددې نه پس الله په هغه خلقو انكاركوى چه كوم دالله ﷻ د حكم نه يو طرفته شي. او په هغوئ كښې ټولې ښيګړې موجود وى. اوددا سې پاك حكم نه واوړى او د رائې اوقياس طرفته، او خواهش نفساني طرفته. او ددوى د احكامو تپتيدوطرفته شي چه كوم خلقو دخپل دليل او بغيردشريعت نه پيدا كړى دى لكه څنګه چه جاهليت او ضلالت والو به خپلې مرضئ سره حكم او احكام جارى كول. او لكه څنګه چه به تاتاريانو د ملك معاملاتو كښې د چنګيز احكامو پيروى كوله چه كوم الياسق پيدا كړى وو. هغه ديرمجموعى داحكامو دفترونه وو چه مختلفو شريعتونو اومذهبونونه راوويتسې شوى وو. هغه د يهوديت، نصرانيت اواسلاميت وغيره ټولواحكامو مجموعه وه. او بيا په دې كښې ډيراحكام هغه هم وو چه هغه صرف خپل عقل او د وخت لحاظ سره ايجاد كړې شوى وو. او په هغې كښې د خپلو خواهشاتو منل هم وو. اوهم دا مجموعه د دوى اولاد كښې قابل عمل شوې وه. او هم دې ته ئې كتاب اوسنت باندې د فوقيت او تقديم وركړو. اوحقيقت كښې داسې كولووالا كافران دى. اودوى سره جهاد واجب دې. تردې چه واپس د الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ طرفته راشي. او په څه وړه يا لويه معامله كښې يا سفلي معامله كښې سوا د كتاب اوسنت نه بل څه حكم اونه منى. الله ﷻ فرمائي چه دوى د جاهليت د احكامو اراده كوى، او د الله ﷻ د حكم نه منډې وهى. يقين والو دپاره به د الله ﷻ نه بهتر حكمران او كارفرمان څوك وى، الله ﷻ نه زيات عدل اوانصاف والا احكام د چا دى ؟ايماندار اوكامل يقين والو ته ښه معلوم دى او داهم منى چه د هغه احكم الحاكمين او ارحم الراحمين نه زيات ښه او صفا او آسان

(١) الطبرى: ٣٩٣/١٠.

احکام اوقواعد دهیڅ نشي کیدې.هغه په خپل مخلوق دومره مهربان دې څومره چه مور په خپل اولاد مهربانه وي.هغه پوره او پوخ علم والا او کامل اوعظیم الشان قدرت والا او عدل اوانصاف والا دې.

حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه دالله ﷻ فیصلې نه بغیر چه کومه فتوی ورکړې شي د هغه فتوی د جاهلیت فتوی ده. یو سړي حضرت طاؤس رحمه الله نه تپوس اوکړو چه څه خپل اولاد کښې یو ته زیات او بل ته کم ورکولې شم ؟ نو دوی هم دا آیت مبارك تلاوت کړو.طبراني کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه د ټولو نه غټ دښمن هغه دې چه هغه په اسلام کښې د جاهلیت طریقه او چال تلاش کړي او بې وجې څوك قتل کړي.دا حدیث بخاري شریف کښې هم څه قدرې زیات موجود دې (١).

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ |
| ائې هغه کسانو\| چې ایمان موراوړې دې\| مه نیسئ |
| ائې ایماندارو ! تاسو دهغه کسانو سره ............ |
| ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ وَمَن |
| یهودیان\| اوعیسایان \|دوستان خان له\|خینې ددوئ\| دوستان دي\| دخینو \| اوچا چې |
| دوستی مه کوئ چې یهودیان او نصاري دی \| دوئ دیو بل دوستان دی\| اوکه په تاسو کښې څوك |
| يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ إِنَّ ٱللَّهَ |
| دوستی اوکړه\| ددوئ سره ستاسو نه\| نو بیشکه چې هغه\|هم دهغوئ نه دې \| بیشکه چې الله |
| دوئ سره دوستی ساتی \| نودهغوئ دله کښې به شمیرلې شی \| ............الله ﷻ |
| لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝ فَتَرَى ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم |
| هدایت نه کوی \| قوم ظالم ته \|پس وینې ته\| هغه کسان \|چې په زړونو دهغوئ کښې |
| ظالمان خلق دهدایت نه محروم ساتی\| خکه خو ته وینې ګورې چې دچاپه زړونو کښې |
| مَّرَضٌ يُسَٰرِعُونَ فِيهِمْ يَقُولُونَ نَخْشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا |
| مرض دې\| چې هغوی منډې وهی\|د هغوی طرف ته\| وائی \| چې مونږه ویریږو\| چې اوبه رسیږی مونږ ته |
| (دنفاق)مرض دې \| هغوئ په منډه منډه دغې خلقو کښې ورننوځی\| او وائی چې مونږ ویریږو چې دمصیبت په |
| دَآئِرَةٌ ۚ فَعَسَى ٱللَّهُ أَن يَأْتِىَ بِٱلْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِۦ فَيُصْبِحُوا۟ |
| یوه حادثه\|نونزدې ده چې الله به\| راولی \| فتحه \| یا بل حکم \| دطرف خپل نه\|نو شی به هغوئ |
| چکر راګیرنه شو\| زرده چې الله ﷻ به تاسوته فتح درکړی \| یابه د خپل طرفه بله څه حکم اوکړی \| نو دوی |
| عَلَىٰ مَآ أَسَرُّوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ نَٰدِمِينَ ۝ وَيَقُولُ |
| په هغه منافقت باندې\| چې پټ ساتلې دې هغوئ\| په زړونو خپلو کښې\| شرمنده \| اووائی به |
| چې خپلوزړونو کښې کوم نفاق پټولو په هغې به پښیمانه شی \| ............او تاته هغه کسان وائی کوم |

(١) صحیح بخاری کتاب الدیات باب من طلب دم امرئ بغیر حق : ٦٨٨٢.

| |
|---|
| الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ |
| هغه کسان \| چې ایمان ئې راوړې وی \| آیا دا \| هغه کسان دی \| چې قسمونه خوړل دوی \| په الله باندې |
| چې مسلمانان دی \| چې ښه دا هغه کسان دی \| چې د الله ﷻ په نوم به ئې غټ غټ قسمونه خوړل |
| جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ ۙ اِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ؕ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ |
| سخت \| قسمونه خپل \| چې بیشکه دوی \| خامخا ستاسو سره دی \| عبث شو \| عملونه د دوی |
| ...... چې مونږ (یعنی دوی) تاسو سره ملګری یو \| د دوی ټول کوششونه ضائع شو |
| فَاَصْبَحُوْا خٰسِرِيْنَ ۞ |
| نو شول دوی \| نقصانیان \| |
| اودوی نامراده پاتې شو |

**د اسلام دښمنانو سره د دوستۍ ممانعت:**-د اسلام دښمنانو یهودو اونصاری سره الله ﷻ د دوستۍ کولو نه منع فرمائی، او فرمائی چه دوی هرګز ستاسو دوستان نشی کیدې. ځکه چې ستاسو دین سره د دوی بغض او دښمنی ده. خو خپلو سره د دوی دوستۍ او محبتونه دی. ځما په نیز چه څوك هم دوی سره محبت ساتی نوهغه د هغوئ نه دې. حضرت عمر ﷺ، حضرت ابوموسی اشعری ﷺ ته په دې خبره تنبیه اوکړه او دا آیت مبارک ئې ورته واورولو([1]) حضرت عبدالله بن عتبه ﷺ اوفرمائیل چه اے خلقو! تاسو له پکار دی چه ددې نه بچ شئ هسې نه چه تاسونه پخپله هم معلومه نه وی او تاسو یهودیان یا نصرانیان جوړ شوی یئ. مونږ پوهه شو چه ستاسو مراد د دې آیت مبارك نه هم دا مضمون دې.([2])

د حضرت ابن عباس ﷺ نه دعربو د نصرانیانو دلاس د ذبیحې باره کښې تپوس اوشو. نودوی هم دا آیت مبارك تلاوت کړو. چه د کومو خلقو زړه کښې خیرې دې هغوئ خو پټ په پټه دوی سره سازباز او محبت اومودت ساتی او بهانه دا کوی که چرې مسلمانانو باندې دا خلق غالب شو نو مونږ به زیات خراب کړی نو په دې وجه مونږ دوی سره میل ملاپ ساتو. مونږ دې ولې چا سره په جنګ شو؟ الله ﷻ فرمائی ممکن دی چه الله ښکاره مسلمانان غالب کړی. مکه هم ددوی په لاس فتح شی. فیصلې او حکمونه هم ددوی چلیږی، حکومت د دوی پښو ته راولو، یا الله ﷻ څه ځیز دوی طرفته رانازل کړی. یعنی یهود اونصاری مغلوب کړی او دوی ذلیل کړی اوددوی نه د جزیه اخستلو حکم مسلمانانو ته ورکړی. بیا دا منافقان چه نن دوی سره کینی، دوی ته به شا کوی، خپلو کښې به سره ښکیږی، او په دې خپله چالاکۍ به دوی اوښکې تویوی، د دوی د پردې کارونه به ښکاره شی، او څنګه چه دننه یعنی حقیقت کښې وو هغه شان به د بهرنه په نظر راشی. په هغه وخت کښې به مسلمانان د دوی په مکارتوب باندې تعجب کوی او وائی به چه اوګورئ چه دا هم هغه خلق دی چه دوی به لوئې لوئې قسمونه خوړل اومونږ ته به ئې یقین راکولو چه دوی خمونږ ملګری دی، دوی نه هغه لاړل چه څه دوی کول. او برباد شو.

﴿وَيَقُوْلُ﴾ خو د جمهورو قرات دې. یو قرات بغیر د واو نه هم دې، د اهل مدینه هم دا قرات دې ﴿يَقُوْلُ﴾ دې نو مبتداء دې او دویم قرات ددې ﴿يَقُوْلُ﴾ نو دا (به ﴿فَعَسَى﴾) باندې عطف وی یا ﴿وَاَنْ يَقُوْلُ﴾ دې.

---

[1]) الدرالمنثور ۳/۱۰۰،

[2]) ابن ابی حاتم : ۱۱۵۲/۴ .

**د ایت شان نزول:**- نود اهل مدینه په نیزددې ایتونو شان نزول دادې چه د جنګ احد نه پس یوسړي اووئیل چه څه دې یهودی سره دوستی کول غواړم چې په موقع ماته فائده راکړي.بل اووئیل چه څه فلانی نصرانی ته ورځم هغه سره دوستی کوم اوځه به د هغه مدد کوم.نودې باندې دا آیتونه نازل شو.
حضرت عکرمه ﷺ فرمائی چه د لبابه بن عبدالمنذر ﷺ باره کښې دا آیتونه نازل شوی دی اونبی کریمﷺ دې بنوقریظه طرفته لیږلې وو نو هغوئ تپوس کړې وو چه رسول الله ﷺ به مونږ سره څه کوی ؟ نوده ورته په اشارې سره په مرئی لاس راښکلو یعنی تاسو به قتل کړی.یو روایت کښې دی چه دا آیتونه د عبدالله بن سلول باره کښې نازل شو.
حضرت عباده بن صامت خو نبی کریمﷺ ته اوفرمائیل چه څما ډیرو یهودو سره دوستی ده خوددې ټولودوستئ پریږدم.زماد پاره دالله اود هغه د رسول ﷺ دوستی کافی ده. دې باندې دی منافق اووئیل چه څه مخکښې روستو د سوچ کولو عادی یم،څه به دا اونکړې شم.پته نشته چه په کومه موقع څه کیږی ؟نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه ائې عبدالله !ته د عباده نه ډیر نقصان کښې پاتې شوې.نویه دې باندې دا آیتونه نازل شو.
یوروایت کښې دی چه کله بدر کښې مشرکانو ته شکست اوشو نو بعضو مسلمانانو هغه یهودیانوته اووئیل چه کوم دوی سره ملاویدل چه هم دا ستاسودپاره بهتردی.ددې نه مخکښې تاسو دا حق دین قبول کړئی.هغوئ جواب ورکړو چه په څو قریشو چه په جنګ کښې د جنګ د فنونو نه خبر نه وو. فتح حاصلولو نه پس هسې نه مغروره شئ،مونږ سره مو که معامله راغله نو معلومه به شی چه جنګ دې ته وائی.دې باندې د حضرت عباده ﷺ اود عبدالله بن ابی په مینځ کښې هغه خبرې اترې اوشوې چه کومې پورته بیان شوې.هرکله چه دیهودو دې قبیلې سره د مسلمانانو جنګ اوشو نودالله ﷺ فضل سره غالب شو. نواوس عبدالله دوی ته اووئیل چه یارسول الله ﷺ څما دوستانو په معامله کښې ما باندې احسان اوکړئی،داخلق د خزرج ملګری وو.نبی کریمﷺ دوی ته هیڅ جواب ورنکړو. ده بیا اووئیل نونبی کریمﷺ دده نه مخ واړولو. دې په نبی کریمﷺ پورې انختلو. نبی کریمﷺ غصه کښې اووئیل چه ما پریږده. هغه اووئیل چه نه یارسول الله اخده به دې هیڅ کله نه پریږدم ترڅو چه تاسو دده باره کښې احسان اوکړئی،دده ښه پوره غټ جماعت دې.اونن پورې داخلق څما طرفداردی اودوی به ټول په یوورځ فناشی نوماراتلوونکی مصیبتونه ویروی.آخرنبی کریمﷺ اوفرمائیل چه څه هغه ټول ستادپاره دی.
اویوروایت کښې دی چه کله د بنو قینقاع یهودیانو سره نبی کریمﷺ جنګ اوکړو اوالله ﷺ هغوئ ته شکست ورکړو. عبدالله بن ابی خو د نبی کریمﷺ نه مخکښې د دوی ملګرې وو. او عباده بن صامت ﷺ ددې باوجود چه د دوی حلیف وو لیکن هغوئ ددوی نه صفا برات اوکړو. نودې باندې دا آیتونه نازل شو. ﴿هُمُ الْغٰلِبُوْنَ۝﴾ پورې (١).
مسنداحمد کښې دی چه ددې منافق عبدالله بن ابی بیمارپرسئ دپاره نبی کریمﷺ تشریف یوړو نو نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه ماته ډیرځل ددې یهودو سره د محبت کولونه منع کړې نې نوده اووئیل چه سعدبن زراره هغوئ سره دښمنی کوله هغه هم مرشو(٢).

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَرْتَدَّ | مَنْ | اٰمَنُوْا | يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ |
| چې واوړیدو | هغه څوک | چې ایمان مو راوړې دی | ائې هغه کسانو |
| ائې دایمان خاوندانو که په تاسو کښې څوک دخپل .......... | | | |

(١) ابن هشام: ٣/٥٢.
(٢) احمد: ٥/٢٠١، ابوداود کتاب الجنائز باب فی العیادة: ٣٠٩٤.

مِنۡكُمۡ عَنۡ دِيۡنِهٖ فَسَوۡفَ يَاۡتِى اللّٰهُ بِقَوۡمٍ يُّحِبُّهُمۡ

ستاسو نه | د دين خپل نه | نو زر به | راولي الله | داسې قوم | چې محبت به کوي (الله ) دهغوئ سره

دين نه واوړي | نو الله ﷻ به نور داسې ډير خلق راپيدا کړي | چې هغوئ به دالله ﷻ خوښ وي

وَيُحِبُّوۡنَهٗۤ ۙ اَذِلَّةٍ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ اَعِزَّةٍ

او محبت به کوي هغوئ دالله سره | نرم به وي | په مؤمنانو باندې | سخت به وي

او الله ﷻ به د هغوئ خوښ وي | د مسلمانانو دپاره به نرم وي | او د کافرانو دپاره به سخت وي

عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ ۡ يُجَاهِدُوۡنَ فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَلَا يَخَافُوۡنَ لَوۡمَةَ

په کافرانو باندې | کوشش به کوي | په لاره دالله کښې | اونه به ويريږي | د ملامتيا

........ او د الله ﷻ په لار کښې به جهاد کوي | او د ملامتګر د ملامتيا نه به نه ويريږي

لَآئِمٍ ؕ ذٰلِكَ فَضۡلُ اللّٰهِ يُؤۡتِيۡهِ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ

دملامت کونکی نه | دا | فضل دالله دې | چې ورکوی دا | هغه چاله | چې رضائي شي | او الله

..........دا دالله ﷻ فضل دې | چې چاته ئې خوښ شي ورکوی ئې | ..............او بيشکه الله ﷻ

وَاسِعٌ عَلِيۡمٌ ۞ اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُوۡلُهٗ وَالَّذِيۡنَ

فراخه دې | پوهه دې په هرڅه | بيشکه | دوست ستاسو الله دې | او رسول دهغه دې | او هغه کسان

ډير د وسعت مالک دې او په هرڅه پوهه دې | په حقيقت کښې خو ستاسو ملګرې الله او دهغه رسول

اٰمَنُوا الَّذِيۡنَ يُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤۡتُوۡنَ الزَّكٰوةَ وَهُمۡ

چې ايمان ئې راوړې دې | هغه | چې قائيموی | مونځ | او | ورکوی | زکاة | او هغوئ

او هغه مومنان دی | چې په پابندئ سره مونځونه کوی | ............. او زکاة ورکوی | او هم دوی

رٰكِعُوۡنَ ۞ وَمَنۡ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ وَالَّذِيۡنَ

رکوع کونکی دی | او ځوک چې دوستی کوی | دالله سره | او د رسول دهغه سره | او دهغه کسانو سره

الله ﷻ ته سرټيټوی | ............. او ځوک چې الله ﷻ سره او د هغه رسول سره او

اٰمَنُوۡا فَاِنَّ حِزۡبَ اللّٰهِ هُمُ الۡغٰلِبُوۡنَ ۞ ع

چې ايمان ئې راوړو | نو بيشکه | ډله دالله | هم هغوئ غالب دی

**مرتد هم خپل نقصان کوي:-** الله ﷻ چه قادر او غالب دې ،خبر ورکوی که څوک د دې پاک دين نه مرتدشی نو هغه به دا اسلام قوت کم نکړی.الله ﷻ به د داسې خلقو بدله کښې داسې خلق د دې دين په خدمت کښې مامور کړی.چې د دوی نه به هر حيثيت سره ښه وی.لکه يو آيت مبارک کښې دی چه ﴿وَاِنۡ تَتَوَلَّوۡا﴾ او آيت ﴿اِنۡ يَّشَاۡ يُذۡهِبۡكُمۡ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَاۡتِ بِاٰخَرِيۡنَ ؕ﴾ او بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿اِنۡ يَّشَاۡ يُذۡهِبۡكُمۡ وَيَاۡتِ بِخَلۡقٍ جَدِيۡدٍ﴾ مطلب دادې چې د دې ټولو آيتونو چه کوم بيان اوشوا وارتداد وائی حق پرېښودو ته او باطل طرفته تلو ته.

محمدبن کعب رحمه الله فرمائی چه دا آیت دقریشودسردارانو باره نازل شوې دې.حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه د صدیق رضی الله عنه خلافت کښې چه کوم خلق اسلام نه روستو شوی وو د هغوئ حکم په دې آیت کښې دې.چه د دوی په بدله کښې د کوم قوم ورکولو وعده کولې شی دا اهل قادسیه دی یا قوم سبا دی یا اهل یمن دی اوددوی تعلق د کنده او سکون قبیلو سره دې.

یو ډیرغریب مرفوع حدیث مبارك کښې مخکښې بیان شوی دی. چه دوی حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه طرفته اشاره کړې ده او فرمائیلی ئې دی چه دا د دوی قوم دې .([1]) ددی کامل ایمان والوصفت بیانیږی چه دوی خپلو دوستانو یعنی د مسلمانانو مخکښې دوی بالکل نرم وی او د کافرو مقابله کښې دوی مضبوط،دهغونی دپاره تندر اوپه هغوئ تیز دی.لکه فرمائی چه ﴿أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ﴾،د نبی کریم ﷺ صفتونو نه دی چه نبی کریم ﷺ ضحوك وو ،قتال وو یعنی ددوستانو مخکښې خندا خوشحالئ والا او ددښمنانو دپاره سخت او جنګ کوونکې وو.

**دمسلمانانو صفات:-** چه کوم ریښتونی مسلمانان وی نو هغوئ د جهاد نه مخ نه اړوی،نه شا کوی،نه ستړی کیږی،نه بزدله کیږی،او نه آرام غواړی،نه د څه مروت دپاره راخی،نه ورته د چا دملامتیا ویره وی،دوی برابر د الله ﷻ اطاعت کښې مشغول وی،دالله ﷻ دښمنانو سره جنګ کوی،دنیکئ حکم کولو کښې،د بدو نه منع کولوکښې مشغول اوسی.

**داووه خبرو حکم:-**حضرت ابوذر رضی الله عنه فرمائی چه ماته څما خلیل د اووه (۷) خبرو حکم کړې دې ①مسکینانو سره د محبت کولو اودوی سره دکیناستو② د نیاوی امورو کښې خپل ځان نه کم درجې والاخلقو ته دکتلو اوخپل ځان نه چه کوم خلق پورته وی هغوئ ته د نه کتلو ③ د صله رحمئ کولو اګر چه نور ئې نه کوی ④ او چانه د سوال نه کولو ⑤ اود حق خبرې د بیانولو اګر چه هغه تریخه لګی ⑥ ددین معاملاتو کښې د ملامته کونکی د ملامتیا نه نه ویریدل ⑦ کثرت سره لا حول ولا قوة الا بالله ونیل ځکه چه دا کلمه دعرش د لاندې د خزانه خنی ده .([2]) (مسند احمد).

اویو روایت کښې دی چه ما نبی کریم ﷺ نه پنځه ځل بیعت کړې دې.اوماته نبی کریم ﷺ د اووه خبرو حکم کړې دې او زه الله ﷻ په خپل ځان ګواه کوم چه څه به دالله ﷻ د دین باره کښې د یویډ هیڅ پراوه اونه کړم. نبی کریم ﷺ څه راوغوښتلم او وې فرمائیل چه آیا څما نه به د جنت بدله کښې بیعت اوکړې ؟مادامنظور کړل او لاس مې وراوږد کړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د چا نه څه مه غواړه،ماوونیل ډیره ښه ده، اګر چه کوړه هم وی یعنی که هغه غوزاره شی نو هم پخپله د سورلئ نه راکوزشه ([3]).(مسند احمد).

**د چا نه ویره نه دی کول پکار:-** نبی کریم ﷺ فرمائی چه د خلقو د هیبت په وجه د حق نه مه اوړه.یاد ساته چه نه څوك تا مرګ ته نزدې کولې شی اونه ستا نه رزق لرې کولې شی ([4]).

**د نهی عن المنکر حکم:-** اوګورئی دامام احمد سند. فرمائی چه کله خلاف شرع کار اوګورې یا ئې واورئ نو خپل ځان کمزوری کتلو سره خاموش مه پاتې کیږه. الله ﷻ به ددې تپوس کوی. په هغه وخت

[1]) حاکم: ٣١٣/٢، وسنده صحیح.مجمع الزوائد: ١٦/٧ ابن ابی شیبة: ١٢٥/١٢، الطبقات: ١٠٧/٤.

[2]) احمد: ١٥٩/٥، المعجم الاوسط: ٥٦٣٥، وسنده حسن

[3]) احمد: ١٧٢/٥،.

[4]) احمد : ٥٠/٣، المعجم الاوسط: ٢٧٢٥، مجمع الزوائد: ٢٦٥/٧.

کېښې به لنسان جواب ورکړي چه خه خلقو نه ویریدم (١) نو الله ﷻ به اوفرمائی چه خه د دې زیات حقدار ووم چه ته خما نه ویریدې وې .(٢) (ابن ما جه)

**دوس نه زیات بوج اوچتولو ممانعت:**- یوبل صحیح روایت کېښې دی چه د مومن دپاره نه دی پکار چه خپل ځان پخپله په ذلت کېښې واچوی. صحابه کرام ﷺ تپوس اوکړو چه دا څنګه ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تکلیفونه په خپل سر واخلی او ددې په ده کېښې طاقت نه وی .(٣)

**قوله تعالی: ﴿فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ﴾**

**دالله فضل په بعضو کیږی:**- بیافرمائی چه دالله ﷻ فضل دې چه چاته غواړی نو ورکوی یعنی دکامل ایمان دا صفتونه خاص دالله ﷻ ورکړه ده،هم د دې دوی ته توفیق ملاویږی.د هغه فضل ډیر وسیع دې،هغه کامل علم والا دې،هغه ته ښه معلوم دی چه د دې ډیر لوئې نعمت مستحق څوك دې ؟

**دوستی چا سره پکار ده؟:**- بیاارشاد دې چه ستاسو دوستان کافران نه دی بلکه حقیقت کېښې تاسو ته پکاردی چه الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ اومومنانو سره دوستی اوساتئ.مومن هم هغه دې چه په چا کېښې دا صفتونه وی چه هغوئ د مونځ پوره پابند وی او دا د اسلام یو اعلی او بهترین رکن دې اوصرف دالله ﷻ حصه ده،اوزکوة ورکوی اودا د الله د ضعیف اومسکین بندګانو حق دې،

**د قول تردید:**- ددې آخری جملې باره کېښې بعضو خلقو ته وهم شان شوې دې چه دا ﴿وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ﴾ نه حال واقع دې یعنی د رکوع حالت کېښې زکوة ورکوی.دا بالکل غلط دی،که دا اومنلې شی نو دا به ښکاره ثابت شی چه د رکوع حالت کېښې زکوة ورکول افضل دی.حالانکه هېڅ یو عالم د دې قائل نه دې.دې وهم والو خلقو دلته یو واقعه بیان کړې ده چه حضرت علی ﷺ د مونځ رکوع کېښې وو چه یو سائل راغلو نو دوی ورته خپله ګوتمه ورکړه دمومنانو ﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ نه مراد په قول د عتبه ﷺ ټول مسلمانان اوحضرت علی ﷺ دې. نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو.یومرفوع حدیث کېښې هم د ګوتمې واقعه ده.اوبعضو نورو مفسرینو هم دا تفسیرکړې دې. لیکن سند د یو هم صحیح نه دې.رجال هم ثقه او ثابت نه دی.نوداواقعه بالکل غلطه اوغیر ثابت ده.اوصحیح نه ده.

**صحیح شان نزول:**- صحیح هغه دی چه کوم مونږ مخکښې بیان کړل چه دا ټول آیتونه د حضرت عباده بن صامت ﷺ باره کېښې نازل شوی دی.هرکله چه هغوئ ښکاره یهودو سره دوستی پرېښوده نو الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ او ایمان والو خلقو سره په دوستئ راضی شو.د دې وجې د دې ټولو آیتونوآخرکېښې فرمان اوشو چه کوم سړې الله اود هغه رسول او مومنانو سره دوستی ساتی نو هغه د الله ﷻ لښکرکېښې شامل دې.او هم دا دالله ﷻ لښکر غالب دې لکه د الله تعالی فرمان دې چه ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾ الخ، یعنی الله ﷻ لیکلی دی چه خه او خما رسول به غالب وی.الله ﷻ باندې او په آخرت باندې ایمان راوړونکی خو دالله ﷻ او د رسول دښمنانو سره هیڅ کله دوستی کونکی اونه مومی،اګر چه هغه پلار وی،یا خونې،یا رور او د خاندان او قبیلې خلق وی.هم دا خلق دی چه د دوی په زړونو کېښې الله ﷻ ایمان لیکلې دې او خپل روح سره ئې د دوی تائید کړې دې.دوی به الله ﷻ هغه جنتونو ته داخل کړی چه هغې لاندې نهرونه بهیږی،اودوی به هلته همیشه وی.دوی نه الله ﷻ راضی دې.دوی د الله ﷻ نه خوشحاله وی.هم دا د الله ﷻ لښکر دې او د الله ﷻ لښکر فلاح موندونکې دې.نو څوك چه د الله ﷻ

---

١) ابن ماجه کتاب الفتن باب المر والنهی عن المنکر :٤٠٠٨، احمد: ٧٣/٣،

٢) ابن ماجه کتاب الفتن باب قوله تعالی (یاایهاالذین امنوا علیکم انفسکم ) :٤٠١٧، وسنده حسن.

٣) ترمذی کتاب الفتن باب لایعترض من البلاء لما لا یطیق : ٢٢٥٤.

اودهغه د رسول ﷺ او دمومنانو په دوستئ راضي وي نو هغه دنیاکښې کامیاب دې او اخرت کښې فلاح موندونکي دي.هم ددې وجې نې دا آیت مبارك په دې جمله ختم کړو.

| |
|---|
| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا |
| ائې هغه کسانوچې ایمان موراوړې دې\|مه نیسئ\|هغه کسان \| چې نیولې دې هغوئ \|دین ستاسو په توقو |
| ائې مسلمانانو هغې خلقوسره دوستی مه کوئ \| ............ چې ستاسو دین پسې توقې |
| وَّلَعِبًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ |
| اولوبو سره\| دهغه کسانونه\|چې ورکړې شوې دې ورته\| کتاب \| مخکښې ستاسونه |
| اومسخرې کوی \| که ستاسونه مخکښې اهل کتاب دی (نو دوی سره هم دوستی مکوئ) |
| وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۵۷﴾ وَاِذَا |
| او کافران \| دوستان \| او اوویریږئ \| دالله نه \| که چرې یئ تاسو \| مؤمنان \| اوهرکله چې |
| اوکه کافران دی \|اودالله ﷻ نه ویره کوئ \| که تاسو په سچه مسلمانان یئ \| ............اوچې |
| نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ |
| رابلئ تاسو \| مانځه ته \|نو نیسی دوی اذان لره \| په توقو\| اولوبو سره\|دالوبې توقې\|په سبب ددې چې دوئ |
| تاسو دمونځ دپاره آذان کوئ \|نو دوی په هغې پسې توقې اومسخرې کوی \| داځکه چه دوئ |
| قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ﴿۵۸﴾ |
| داسې قوم دې \| چې نه لری عقل \| |
| دعقل نه کار نه اخلی |

**د غیرمسلمو سره د محبت ممانعت:-** الله ﷻ مسلمانانو ته غیرمسلمو سره د محبت نه نفرت باره کښې وانې اوفرمائی چه آیاتاسودهغه چا سره دوستئ کوئی چه کوم ستاسو د طاهر او پاك دین پورې خنداکوی اودا نې هسې لوبې توقې ګڼړلی دی.

**د ،،من،، اعرابی تشریح:-** ﴿مِن﴾ بیان د جنس دپاره دې لکه ﴿مِنَ الْاَوْثَانِ﴾ کښې.بعضو ﴿وَالْكُفَّارَ﴾ لوستی دی او عطف نې پرې کړی دی.بعضو ﴿وَالْكُفَّارِ﴾ لوستې دې اود ﴿لَا تَتَّخِذُوا﴾ نې معمول جوړ کړې دې نو تقدیر د عبارت ﴿وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ﴾ به وی.کفارو نه مراد مشرکان دی .د حضرت ابن مسعود ؓ قرات کښې ﴿وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا﴾ دی.

الله ﷻ نه ویریږئی اودوی سره دوستی مه کوئی که تاسو رینښتونی مسلمانان یئ.دوی خو تاسو سره،او الله ﷻ سره او ستاسو دین سره دښمنی کوی.لکه فرمائی چه ﴿لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ﴾ چې مومنان پریږدی او کافرانو سره دوستی کوی نودالله ﷻ د طرفنه هغه سره هیڅ ښیګړه نشته دې.خو که د هغوی (د ضرر نه ) نه بچ کیدل مقصود وی نو دا بله خبره ده.او الله ﷻ تاسود خپل ذات نه ویروی.اوتاسو به الله ﷻ طرفته رجوع کوئی.داسې دا اهل کتاب او مشرکان هم په هغه وخت کښې تاسو پورې خندا کوی.کله چې تاسو مونځونو دپاره اذان کوئ حالانکه دا دالله ﷻ د ټولونه زیات خوښ عبادت دی.لیکن دا بې وقوف دومره هم نه پوهیږی ځکه چه دوی د شیطان تابعدار دی او د دې اهل کتابو مشرکانو دا حالت دې چه کله دوی د آذان آواز واوری نو دوی خپلو غوږونو کښې ګوتې ورکړی او تښتی.او هغه ځائې ته ځان

رسوی چه کوم خانې داذان اواز نشی اوریدې او دې نه پس دوی بیا راځی.بیا تکبیر اوریدو سره دوی ددې ختمیدو سره واپس راځی او خپلو وسوسو اچولو کښې اخته شی.او انسان ته د یو خوا بل خوا غلطې خبرې وریه یاد کوی.تردې چه دوی ته ددې هم خبرنه وی چه مونځ څو رکعته دې ؟ هرکله چه داسې اوشی نو دوه سجده سهوه دې اوکړی (١). (متفق علیه)

امام زهری ؒ فرمائی چه د اذان ذکر قران پاك کښې دلته هم دې،بیا نې هم دا آیت تلاوت کړو .(٢)

**دیو نصرانی په اور سوزیدل:-** یونصرانی چې به په اذان کښې کله «أشهدُ أن محمدا رسول الله» واوریدل نو ونیل به نې چه دروغژن دې اوسوزی.یوځل د شپې دده نوکرې کور کښې اور بل کړې وو،یو بڅرنی والوتو اودې سره پخپله ټول کور اوسوزیدو.

**دنبی کریم ﷺ په خبرور کولو ایمان راوړل:-** دفتح مکه په کال نبی کریم ﷺ حضرت بلال ؓ ته کعبه کښې د اذان کولو حکم ورکړو.دې ته نزدې ابوسفیان بن حرب،عتاب بن اسیداوحارث بن هشام ناست وو. عتاب اوونیل خما مور پلار باندې الله ﷻ احسان اوکړوچه د دې آذان آوریدو نه مخکښې نې ددې دنیا نه فنا کړل ځکه چه دا خو غصه ورکونکې آواز دې.حارث اوونیل که ما دا ربښتیا ګنړلې نو منلې به مې وې.ابو سفیان اوونیل چه څه خو د ژبې نه هیڅ نه اوباسم.ماته ویره ده چه هسې نه داکانړی هغوی ته خبر ورکړی.دوی لا خبرې نه وې ختمې کړې چه په دې کښې نبی کریم ﷺ راغلل او وې فرمائیل چه په دې وخت کښې تاسو دا خبرې اوکړې.ددې آوریدو سره عتاب او حارث اوونیل چه مونږ ګواهی ورکوو چه ته د الله ﷻ رسول نې.ځکه چه دلته څوك څلورم څوک نشته دې چه ګنی مونږ دا ګمان اوکړو چه هغه به دا تاسو ته ونیلی وی.(سیرة محمدبن اسحاق).

حضرت عبدالله بن محیریز ؒ چه کله د شام سفر ته روانیدل نو حضرت ابومحذوره ؓ چه هغه سره دوی د خپلې یتمیئ ورځې تیرې کړې وې چه هلته به ستاسو د اذان متعلق به خما نه خلق تپوس کوی.نو تاسو خوماته خپل واقعات اووانې.وې فرمائیل چه واوره کله چه نبی کریم ﷺ حنین نه واپس راتلو نو لاره کښې مونږ خلق یو ځائې کښې وو اودمونځ وخت شو اود نبی کریم ﷺ موذن اذان اوونیلو. مونږ هغه پسې خنداوتوقې شروع کړې چه هسې نه خمونږ غوږونو کښې د دې آذان راشی،یو سپاهی راغلو اومونږ نې دوی ته بوتلو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاسو کښې د ټولو نه اوچت آواز د چا وو ؟ ټولوما طرفته اشاره اوکړه.نو نبی کریم ﷺ نور ټول پرېښودل او څه نې ایسار کړم او وې فرمائیل چه پاسه او اذان اووایه.په الله قسم په هغه وخت کښې د رسول الله ﷺ د ذات نه زیات خراب څیز ماته بل څه نه وو د دې وجې چه هغوی راته د اذان کولو حکم کولو خو بې بس ولاړ اوم. نو بیا ماته پخپله نبی کریم ﷺ آذان اوخودلو او نبی کریم ﷺ ماته خودل اوما ونیلو (بیا آذان پوره شو) هرکله چه آذان نه فارغ شوم نونبی کریم ﷺ ماته یو تهیلئ راکړه چه په هغې کښې چاندی وه،بیا نې خپل لاس مبارك خما په سر کیخودو او تر ملا نې راښکلو.

**دابومحذوره ؓ ایمان راوړل:-** بیافرمائی چه الله ﷻ دې تا برکتناک کړی. دې سره زما په زړه کښې چه د رسول الله ﷺ خلاف کومه دشمنی وه هغه اووتله. او ددې په ځاې خما زړه کښې نبی کریم ﷺ سره محبت پیدا شو.ما خواهش اوکړو چه د مکې موذن نبی کریم ﷺ ما جوړکړی. نبی کریم ﷺ خما دا

---

(١) صحیح مسلم کتاب السهو باب اذا لم یدرکم صلی ثلاثا اواربعا سجدتین : ١٢٣١.

(٢) ابن ابی حاتم : ١١٦٤/٤.

درخواست منظور کړو اوخه مکې ته لاړم او هلته ګورنر حضرت عتاب بن اسید سره مې ملاقات اوکړو اود موذن فرائض ئې ماته اوسپارل .([1])

**د ابومحذوره ﷺ نوم:-** د حضرت ابومحذوره ﷺ نوم سمره بن معیر بن لوذان وو. د نبی کریم ﷺ خلورو موذنانو کښې یو دوی هم وو. او ډیر وخت پورې دوی د مکې موذن پاتې شو.

| |
|---|
| قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّآ |
| اووایه ائې نبی \| ائې اهل کتابو \| آیا تاسو کینه لرئ \| زمونږ سره |
| دوئ ته اووایه چې اهل کتابو تاسو زمونږ نه نور څه بد نه ګڼئ |
| اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا |
| صرف په دې خبره \| چې ایمان راوړې دې مونږه \| په الله باندې \| اوپه هغه کتاب باندې \| چې نازل شوې دې \| مونږ ته |
| خو بس دا چې مونږ په الله ﷻ باندې ایمان راوړې دې \| اوپه هغه کتاب چې مونږ ته نازل شوې دې |
| وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ ۙ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ ۝ قُلْ هَلْ |
| اوپه هغه \| چې نازل شوې وؤ \| مخکښې \| اوبیشکه \| زیات له تاسو \| فاسقان دی \| اووایه \| آیا |
| اوپه هغه کتاب چې زمونږنه مخکښې نازل شوې دې \| اوپه تاسو کښې اکثرخلق نافرمان دی \| ائې پیغمبره ورته اووایه |
| اُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ مَنْ |
| زهٔ خبر درکړم تاسو ته \| په زیات خراب انسان \| ددې نه \| په لحاظ دانجام \| په نزد د الله \| هغه څوک دې |
| چې آیا تاسو ته حال بیان کړم \| چې دالله ﷻ په نیز د دې (فسق) نه زیات خراب انجام د چا دې \| دهغه چا چې |
| لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ |
| چې لعنت کړې دې په هغه \| الله \| اوغضب ئې کړې دې \| په هغه \| اوجوړ کړې ئې دی \| دخینو دهغوئ نه |
| الله ﷻ پرې لعنت کړې وی \| ..........او غضب ئې پرې کړې وی \| ..................او چې دچا نه ئې |
| الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيْرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوْتَ ؕ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا |
| شادوګان \| اوخنزیران \| اوبندګی ئې اوکړه د شیطان \| هم دا کسان \| ډیر بد دی \| په لحاظ دمرتبې سره |
| شادوګان اوخنزیران جوړ کړې دی \| او چې دشیطان عبادت کوی \| دداسې خلقوځائې ډیربدترین دې |
| وَّاَضَلُّ عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ ۝ وَاِذَا جَآءُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا |
| او ډیر بې لارې دی \| دنیغې لارې نه \| اوهرکله چې \| راشی تاسو ته \| وائی \| چې ایمان راوړې دې مونږه |
| اودسمې لارې نه ګمراه شوې دی \| .........کله چې دا خلق تاسو ته راشی \| نو وائی چې مونږ ایمان راوړې دې |

---

[1]) احمد: ٤٠٩/٣، صحيح مسلم كتاب الصلاة باب صفة الاذان: ٣٧٩، ابو داود: ٥٠٣، مختصرا بيهقي: ٣٩٣/١. نسائي: ٦٣٣.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَدْ | دَّخَلُوْا | بِالْكُفْرِ | وَهُمْ | قَدْ خَرَجُوْا | بِهٖ ؕ | وَاللّٰهُ | |
| اوحال دا چې بې شکه | دوئ ننوتی وؤ | دکفر سره | اودوئ | بیشکه وتلی دی | ددې سره | اوالله | |

خو حقیقت دادې چې په حالت د کفر کښې راغلی وؤ | اوهم په حالت د کفر کښې واپس لاړل | اودوی چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَعْلَمُ | بِمَا | كَانُوْا | يَكْتُمُوْنَ ۝ | وَتَرٰى | كَثِيْرًا | مِّنْهُمْ |
| ښه پوهه دې | په هغه څه | چې وؤ دوئ | چې پټول به ئې | اوته وینې | ازیات خلق | ددوئ نه |

څه پټوی هغه الله تعالی ته ډیرښه معلوم دې |..........اوته به په دوئ کښې ډیرکسان وینې ګوري چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يُسَارِعُوْنَ | فِى الْاِثْمِ | وَالْعُدْوَانِ | وَاَكْلِهِمُ | السُّحْتَ ؕ | لَبِئْسَ |
| چې منډې وهی | په ګناه کښې | اوپه ظلم کښې | اوپه خوړلو د دوی (کښې) | احرامو لره | خامخا بد دې |

ګناه او ظلم او حرامو خوړلو ته به په منډه منډه ورځی |...........اودا ډیر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ ۝ | لَوْلَا | يَنْهٰىهُمُ | الرَّبّٰنِيُّوْنَ | وَالْاَحْبَارُ |
| هغه | چې وؤ دوئ | چې کول به ئې | ولې | نه منع کوی دوئ لره | عالمان | اوپوهان |

بدکارونه دی کوم چې دوئ کوی |..........ددوئ عالمان او پوهه خلق ولې دوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ | وَاَكْلِهِمُ | السُّحْتَ ؕ | لَبِئْسَ | مَا | |
| د دوی د ګناه د خبرو نه | اودخوړلو ددوئ | حرامو لره | اخامخا ډیر بد دې | هغه کار | |

دګناه د خبرو نه او د حرام خوړولو نه منع کوی |...........حقیقت دا دې | چې دوی ډیربد

| | |
|---|---|
| كَانُوْا | يَصْنَعُوْنَ ۝ |
| چې دی دوئ | چې کوی ئې |

کارونه کوی

**داهل کتابو مسلمانانو سره د بغض وجه:-** حکم کیږی چه کوم اهل کتاب ستا د دین پوری توقې کوی هغوئ ته اووایه چه تاسو مونږ سره کومه دشمنی جوړ کړې ده ددې وجه ددې نه سوا نشته دې چه مونږ په الله ﷻ اودهغه په کتابونو ایمان راوړو. نو اصل کښې دا وجه د بغض نه وه او نه ددې سبب مذمت وو.دا استثناء منقطع ده او آیت کښې دی چه ﴿وَمَا نَقَمُوْا مِنْهُمْ﴾ یعنی صرف په دې وجه هغوئ (کافرانو) دوئ(مسلمانانو) سره دښمنی کړې وه چه الله ﷻ عزیز اوحمید نې منلو. اولکه یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَمَا نَقَمُوْا اِلَّا اَنْ اَغْنٰىهُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ یعنی هغوئ صرف په دې وجه چه الله ﷻ په خپل فضل سره او رسول الله ﷺ ورته مال ورکړې دې اوهغوئ نې غنیان کړی دی. بخاری او مسلم کښې حدیث مبارك دې چه ابن جمیل هم ددې بدله اخلی اودې فقیر وو اوالله تعالی هغه غنی کړو([1]).

**زیات خلق فاسقان دی:-** اودا چه تاسوکښې اکثرد صراط مستقیم نه جدا اوخارج دی.تاسو چه څمونږ باره کښې ګمان کوئ نو راشئ چه څه تاسو ته اووایم چه الله ﷻ سره بدلې مونکو کښې څوك بدتردې او هغه تاسو یئ څکه چه دا خصلتونه تاسو کښې موندې شی.

[1]) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب قول الله تعالی (وفی الرقاب والغارمین وفی سبیل الله) : ۱٤٦۸، صحیح مسلم: ۹۸۳.

**په يهوديانو مختلف عذابونه:-** يعنى په چا چه الله تعالى لعنت كړې دې دخپل رحمت نه ئې لرې كړې دى. په هغوئ عذاب نازل شو، په هغوئ غصه شو، داشان چه دې نه پس نه راضى كيدو او په هغوئ كښې ئې دبعضو شكلونه بدل كړل او هغوئ نه ئې شادوګان او خنزيران جوړ كړل.ددې پوره بيان په سورة بقره كښې تير شوې دې. نبى كريمﷺ نه سوال اوشو چه دا شادوګان او خنزيران هم هغه وو ؟ نبى كريمﷺ اوفرمائيل چه په كوم قوم باندې عذاب نازل شى نو د هغوئ هيڅ نسل باقى نه پاتې كيږى.ددې نه مخكښې هم شادوګان او خنزيران وو.داروايت مختلفو الفاظوكښې صحيح مسلم او نسائى كښې بيان شوې دې (١).

مسندكښې دى چه د جناتو يوقوم نه ماران جوړكړې شوى وو. لكه څنګه چه شادوګان اوخنزيران جوړ كړې شوى وو (٢).دا حديث مبارك غريب دې.

اوپه دوى كښې بعضې د غير الله ﷻ عبادت كونكى شو. يو قرات كښې اضافت سره طاغوت په زيرسره هم دې.يعنى دوې ئې د بتانو غلامان جوړ كړل.حضرت بريده اسلمى رحمه الله به دا ﴿عابد الطاغوت﴾ لوستلو.ابوجعفر قارى رحمه الله نه ﴿وعُبِدَالطاغوتُ﴾ هم منقول دې.بيا دې معنى كښې لرې والې دې.ليكن فى الواقع لرې والې نه دې.مطلب دادې چه تاسو هغه يئ چه په هغوئ كښې د طاغوت عبادت كړې شوې وو.الغرض اهل كتاب باندې الزام لګولې شى چه مونږ باندې څوعيب لګوئى حالانكه مونږ موحدين يوصرف ديوالله ﷻ برحق منونكى يو او تاسو خو هغه يئ چه تاسو كښې دا ټولې خبرې موندې شى.ددې وجې ئې خاتمه كښې اوفرمائيل چه هم دا خلق د قدرومنزلت په اعتبار سره خراب دى او د راستئ اعتبار سره ډير لرې پريوتى دى.دې افعل التفضيل كښې بل طرفته هيڅ نشته دې. دلته هډو مشاركت نشته لكه آيت كښې دى چه ﴿أَصْحٰبُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَّأَحْسَنُ مَقِيْلًا﴾

**د منافقانو د ايمان نفى:-**بيادمنافقانو يو بدخصلت بيانيږى چه په ظاهره خو دوى د مومنانو سره د ايمان اظهار كوى خو ددوى باطن دكفر نه ډك دې.دوى چه كله تاسو ته راشى نو دكفر حالت كښې وى او كله چه تاسو نه ځى نو د كفر حالت كښې ځى.ستا خبرې او ستا نصيحتونه په دوى هيڅ اثر نه كوى.دا پرده دارى به د دوى څه پكار راشى.چه چا سره دوئ مخامخ كيږى هغه عالم الغيب دې،د زړونو رازونه ورته ښه معلوم دى،دوى چه كله هلته لاړشى نو دوى ته به پوره پوره بدله ملاويږى.ته ګورې چه دوى ګناهونو باندې،حرام كارونو باندې،او باطلو خلقو سره په حرام مال څنګه چيټې وهى.د دوى عملونه ډير خراب دى.د دوى اولياء يعنى عابدان عالمان اود دوى علماء دوى ددې خبرې نه ولې نه منع كوى ؟ اصل كښې ددې عالمانو اوپيرانو عملونه هم خراب دى.حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائى چه د عالمانو او فقيرانو دپاره د دې آيت نه زيات سخت آيت په قران پاك كښې نشته.

**دعلى رضی الله عنه خطبه:-** حضرت ضحاك ا نه هم داسې منقول دى چه حضرت على رضی الله عنه خپله خطبه كښې د الله ﷻ د حمد وثناء نه پس اوفرمائيل چه ائې خلقو اتاسو نه مخكښې خلق په دې وجه هلاك شو چه هغوئ به بدئى كولې او د دوى عالمان او الله والا خلق خاموش وو. هركله چه دا عادت دوى كښې خور شو نو الله ﷻ دوى ته رنګ په رنګ سزا ګانې وركړې.نو تاسو ته پكار دى چه دنيكئ حكم كونى او د بدئى نه منع كوئى،دې نه مخكښې چه تاسو باندې هم هغه عذاب راشى چه ستاسو نه مخكښې خلقو باندې

(١) صحيح مسلم كتاب القدر باب بيان ان الاجال والارزاق وغرها: ٢٦٦٣، احمد: ٤١٣/١.
(٢) احمد: ٣٤٨/١، وسنده صحيح طبرانى:١١٩٤٦، مسند ابى يعلى:٢٣٣٢، ابن حبان : ١٠٨٠، داروايت موقوف صحيح دې.

راغلي وو. یقین اوکړئ که تاسو د نیکئ حکم نه کوئ اود بدئ نه منع نه کوئ نو ستاسو روزئ به کمې شي اونه به تاسوله مرګ نزدې رازي.

**دنهي عن المنکر نه کولو وعید:-** دنبي کریم ﷺ فرمان دې چه په کوم قوم کښې دالله ﷻ نافرمانئ کیږي او هغه خلق د قدرت نه باوجود دا خلق منع نه کړي نو الله تعالی په ټولو عذاب نازلوی (١). (مسند احمد) ابوداود کښې دی چه دا عذاب به ددوی دمرګ نه مخکښې په دوی راځی (٢). ابن ماجه کښې هم دا روایت شته (٣).

وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُولَةٌ ۚ غُلَّتْ

اووایئ | یهودیان | چې لاس دالله | تړلي شوي دې | او دې تړلي شی

اویهودیان وائی چې دالله ﷻ لاسونه تړلي شوی دی | تړلی خو...............

اَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا ۘ بَلْ يَدٰهُ

لاسونه ددوئ | اولعنت کړې شوې دې په دوئ | په سبب دهغه | چې وائی دوئ | بلکه | دواړه لاسونه د هغه

ددوئ لاسونه دی | او د دې وینا کولو په وجه په دوئ باندې لعنت ونیلي شوې دې | بلکه دالله ﷻ

مَبْسُوطَتٰنِ ۙ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ ۚ وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ

فراښه دی | خرچ کوی | څنګه چې | غواړي هغه | اوخامخا زیاتوی | ډیرو خلقو لره | د دوئ نه

لاسونه خو پرانیستي دی | چې څنګه غواړی هغه شان خرچ کوی | حقیقت دادې چې تاته دالله ﷻ دطرفنه

مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۚ

هغه کلام | چې نازل کړې شوي دې | تاته | دطرفه درب ستانه | په سرکشئ سره | اوپه کفر سره

کوم کتاب نازل شوي دې | هغه په دوئ کښې دډیروخلقو دپاره دسرکشئ اوکفرسبب ګرځیدلي دې

وَاَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۚ

اواچولي ده مونږه | په منځ ددوئ کښې | دشمنی | اوبغض | دورځې دقیامت پورې

او دوې په سزا کښې، مونږ ددوئ په منځ کښې ترقیامته پورې دښمنی اوبغض واچولو

كُلَّمَآ اَوْقَدُوا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ ۙ وَيَسْعَوْنَ

هرکله چې | بل کړو دوئ | وور | دپاره دجنګ | مړکړو هغه | الله | اوکوشش کوی دوئ

چې کله هم دوئ دجنګ اور بل کړی | نو الله ﷻ به ني مړ کوی | ...............اودوئ کوشش کوی

فِي الْاَرْضِ فَسَادًا ۚ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ۞ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ

په زمکه کښې | دفساد | اوالله | نه خوښوی | فساد کونکی | اوکه بیشکه | اهل کتابو

چې دزمکې په مخ فساد خور کړی | او فسادیان خودالله ﷻ بالکل ناخوښه دی | کچرې دې اهل کتابو

---

(١) احمد: ٣٦٣/٤، المعجم الكبير : ٢٣٧٩

(٢) ابوداود كتاب الملاحم باب الامر والنهى : ٤٣٣٩،

(٣) ابن ماجه كتاب الفتن باب المر والنهى عن المنكر : ٤٠٠٩ وهو حسن.

آمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ
ایمان راوړي وي | اوتقوی ئې اختیار کړې وې ئانو خامخا به لرې کړې وې مونږه | دهغوئ نه | ګناهونه دهغوئ
ایمان راوړي وې |او پرهیزګاران جوړ شوي وې | نو مونږ به دوئ نه ګناهونه معاف کړې وۀ
وَلَاَدْخَلْنٰهُمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝ وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا
اوخامخا به داخل کړي وې مونږ هغوئ لره | جنتونو | دنعمتونو ته |اوکه | بیشکه دوئ | قائم کړې وې
اودوئ به مودنعمتونو ډکوباغونوته داخل کړی وۀ |............ او که چرې دوئ
التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ
توراة | اوانجیل | اوهغه | چې نازل کړې شوې دې | دوئ ته | دطرفه درب ددوئ نه
په تورات او په انجیل اوپه هغې کتابونو چې د الله ﷻ دطرفنه ورته راغلی دی قائم ولاړ وې
لَاَكَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ ط مِنْهُمْ
نوخامخا به ئې خوراك کولې | دپاس خپل نه | او د لاندې | د پښو خپلو نه | ځینی ددوئ نه
نودبره نه به پرې رزق راوريدلو | او دښکته نه به ورته راټوکیدو |............ په دوئ کښې
اُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ط وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُوْنَ ۝
څه خلق دی | انصاف والا | اوزیات | ددوئ نه | ډیر بد عمل دې |هغه | چې کوی ئې دوئ
یوۀ ډله په سمه لار هم روانه ده | خوزیات خلق په کښې ډیر بدکاره دی

**دیهودیانو الله ته د بخل نسبت کول:-** الله تعالی د ملعونیانو یهودیانو یو خباثت بیانوی چه دوی به الله ﷻ ته بخیل ونیلو. هم دا خلق الله ﷻ ته فقیر هم وائی. دالله ﷻ ذات د دې ناپاکې مقولې نه ډیر زیات اوچت دې، دوی وائی چې د الله ﷻ لاسونه تړلې شوی دی، ددې نه د دوی مطلب دا نه وو چه لاسونه ئې تړلې شوی دی. بلکه مراد ددې امر نه بخل وو. هم دا محاوره قرآن پاك کښې بل ځائې کښې هم شته دې، فرمائی چه ﴿وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً اِلٰى عُنُقِكَ﴾ یعنی خپل لاسونه خپل څټ سره مه تړه اومه ئې د حد نه زیاتی خوروئې چه بیا تاسوته سترې اوپښیمانه شې. دنوبخل نه اواسراف نه الله ﷻ په دې آیت مبارك کښې منع اوکړه. دملعون یهودیانو د لاس تړلې شوی نه دا مراد وو. فنخاص نومې یهودی دا ونیلی وو (١) اوهم ددې ملعون هغه دویم قول هم وو چه الله ﷻ فقیردې اومونږ غنیان یو. او په دې حضرت ابوبکرصدیق ﷺ هغه وهلې وو. یو روایت کښې دی چه شناس بن قیس همدا ونیلی وو. نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو اوارشاد اوشو چه بخیلان او بزدل اوکنجوسان هم دا خلق دی. نو یو بل آیت مبارك کښې دی که دوی مالکان جوړ شی نو چا ته به هیڅ ورنکړی. بلکه دوی خو د نورو د نعمتونوپه کتلو سره سوزی. دا ذلیله خلق دی. بلکه دالله ﷻ لاسونه خواره دی، هغه ذات ډیر څه خرچ کوی. دهغه لوئې ذات فضل فراخه دې. د هغه بخشش عام دې. د هر څیز خزانې دهغه په لاس کښې دی. هرنعمت دهغه طرفنه دې. ټول شپه ورځ هر وخت هرڅائې دهغه د ذات محتاج دی. فرمائی چه ﴿وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ﴾

---

(١) الطبری : ١٠/٤٥٣.

﴿وَإِن تَعُدُّواْ نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا إِنَّ الْإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ﴾ يعنى تاسوچه څه اوغوښتل الله ﷻ هغه تاسوته درکړل.که تاسودالله ﷻ نعمتونه شميرني نونه شئ شميرلى.يقينى طورانسان ډيرلوئي ظالم دې بې حدناشکره دې

**دالله په خزانو کښې کمی نه راځي:-** مسند (فيصل تفسير هم داشان دى) کښې يو حديث د ،چه د الله ﷻ لاس ډک دې او شپه ورځ خرچ د هغه خزانه نشى کمولې.د شروع نه واخله تر نن پورې چه څه هم هغه خپل مخلوق ته ورکړى دى نودې سره د هغه په خزانه کښې هيڅ کمې نه دې راغلې.د هغه عرش مخکښې په اوبه باندې وو.اود هغه لاس کښې فيض دې يا قبضه ده، هم هغه ذات اوچت دې،د هغه فرمان دې چه خلقو ا تاسو خما لار کښې خرچ کړئ تاسوته به درکولې شى.بخارى اومسلم کښې هم د احديث دې([1]).

قوله تعالى: ﴿وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا﴾

**د مسلمانانو کاميابى د کافرانو د حسرت سبب دې:-** بيافرمائى چه دالله تعالى نعمتونه څومره په تا زياتيږى نو دومره به ددې شيطانانو حسد او کفر زياتيږى. هم داشان چه څنګه د مومنانو ايمان او ددوى تسليم و اطاعت زياتيږى.لکه څنګه چه بل آيت مبارك کښې دى چه ﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِينَ آمَنُوا هُدًى وَشِفَاءٌ﴾ ايمان والو دپاره خود اهدايت او شفاء ده.اوبې ايمانه ددې نه رانده اوکانړه دى. هم دا خلق دى چه دلرې لرې نه آوازونه کوى.او آيت کښې دى چه ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ مونږ هغه قرآن پاك نازل کړې دې چه مومنانو دپاره شفاء اورحمت دې او ظالمان په نقصان کښې نور هم زياتوى.

قوله تعالى: ﴿وَأَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾

**ترقيامته به د يهودو کينه ختمه نشى:-** بياارشاد دې چه ددوى د زړونونه به ترقيامته پورې خپلو کښې بغض او کينه لاړه نشى.خپلو کښې د يوبل وينې څکى.ناممکن ده چه دوى په حق ولاړ پاتې شى او دوى خوپه خپل دين کښې فرقې فرقې دى.جنګونه دښمنئ خودوى کښې راروانې دى اوجارى به وى. دوى اکثردجنګ سامان تياروى،هر طرفته اورخور کړى،خوهرځل دوى ته شکست ملاويږى.ددوى مکر هم دوى ته التيه شى.دامفسدان خلق دى اودالله ﷻ دښمنان دى.هيڅ يومفسدالله ﷻ خپل دوست نه جوړوى.

قوله تعالى: ﴿وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْكِتَابِ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ﴾

**دايمان په وجه د برکتونو نزول:-** که دوى باايمان او باکردار جوړشى نومونږ به دوى نه تولې ويرې لرې کړو او دوى به د دوى مقصد ته اورسوو. که دوى دا قرآن پاك اوانجيل اوتوراة اومنى ځکه چه توراة او انجيل منل په دې قرآن پاك منلو والو باندې لازم دى.او د دې صحيح تعليم هم دادې چه دا قرآن پاك ريښتونې دې او ددې اودنبى آخرالزمان تصديق مخکښنو کتابونوکښې موجود دې.نوکه دوى دا خپل کتابونه بغيرد تحريف او تبديل نه اولولى نو هم دا دوى ته داسلام دهدايت فرمان ورکوى او دا حضرت محمد ﷺ وائى.دې صورت کښې به الله ﷻ دوى ته ددې فائدې هم ورکړى.اودآسمان نه به اوبه هم اووروى.زمکې نه به پيداوار پيدا کړى.په دوى به آسمان نه او زمکې نه برکتونه نازل کړى.لکه بل آيت مبارك کښې دى چه ﴿وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْكِتَابِ آمَنُوا وَاتَّقَوْا﴾ يعنى که دې کلو والو ايمان راوړې وې او پرهيزکارى نې کوله نومونږ به دوى باندې آسمان نه برکتونه نازل کړى وو.اويو آيت مبارك کښې دى چه ﴿ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِي النَّاسِ﴾ يعنى دخلقو د بدو په وجه په اوچه او لمده کښې فساد ښکاره شواوهم دا ددې معنى کيدې شى چه بغير د مشقت او مشکل نه به مونږ دوى ته د برکت نه ډکې روزئ ورکړو.

---

[1]) صحيح بخارى كتاب التوحيد : باب (كان عرشه على الماء) : ٧٤١٩، صحيح مسلم : ٩٩٣، احمد: ٣١٣/٢، ابن حبان : ٧٢٥.

**د یو قول تضعیف:**-بعضو ددې جملې مطلب داهم بیان کړې دې چه دا خلق داسې کولو سره حیرانیږی. خو دا قوال د سلفو خلاف دی.

**د دنیا نه به قرانی علوم ختم شی:**- ابن ابی حاتم کښې یو خائې کښې اثر وارد شوې دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نژدې ده چه علم به اوچت کړې شی،دې آوریدوسره حضرت زیاد بن لبید رضي الله عنه عرض اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! دا څنګه کیدې شی چه علم به اوچت کړې شی.مونږ خو قرآن پاك زده کړواو خپلو بچو ته مواوخودلو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه افسوس ! چه ما خوته د ټولې مدینې والو نه زیات پوهه ګنړلې.ته نه ګورې چه یهودیان او نصرانیان هم خپلو بچو ته توراة اوانجیل ښائی خو د دوی په څه کار راغلو اودوی د الله جل جلاله احکام پریښودل.بیا نبی کریم ﷺ هم دا آیت مبارك تلاوت کړو. داحدیث مسند کښې هم دې چه نبی کریم ﷺ د یو څیز بیان اوکړو چه دا خبره به د علم د تلو په وخت کښې وی. دې باندې حضرت ابن لبید رضي الله عنه اووئیل چه دا به څنګه وی ؟ مونږ خو قرآن پاك لوستې دې او خپلو بچو ته ئې ښایو.اوهغوئ به ئې خپلو بچو ته ښائی.اوداسې به داسلسله تر قیامته پورې جاری وی. دې باندې نبی کریم ﷺ جواب کښې هغه څه اوفرمائیل کوم چه مخکښې بیان شو([1]).

**قوله تعالی:**:﴿مِنْهُمْ أُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ﴾

**په اهل کتابو کښې معتدله ډله:**- بیا فرمائی چه په دوی کښې یو ډله میانه رو هم ده.خو اکثر بدعمله دی.لکه فرمان دې چه ﴿وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ﴾ د حضرت موسی علیه السلام قوم کښې یوه ډله په حق اوهدایت باندې اوپه عدل اوانصاف باندې قائم دی.اود حضرت عیسیٰ علیه السلام د قوم باره کښې فرمان دې چه ﴿فَـَٔاتَيْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنْهُمْ أَجْرَهُمْ﴾ په دوی کښې ایماندارو خلقو ته مونږ ددی ثواب ورکړو اودلته دانکته خیال کښې ساتل پکار دی چه د دوی بهترینه درجه مینځنئ بیان شوه اودې امت (محمدی) بهترینه درجه دریمه ده .(نومعلوه شوه ) چه دې (مینځئ درجې ) باندې یو دریمه درجه اوچته هم شته

فرمائی چه ﴿ثُمَّ أَوْرَثْنَا ٱلْكِتَـٰبَ ٱلَّذِينَ ٱصْطَفَيْنَا﴾ بیا مونږ د خپل کتاب وراثان خاص خاص بندګان جوړل کړل.په دوی کښې خو بعضې په خپلو نفسونو ظلم کوی اوبعضې میانه رودی.او بعضې دالله جل جلاله په حکم منلو کښې نیکو کښې وړاندې تلونکی دی.هم دا لوئې فضل دې.نوددې امت دا درې واړه ډلې جنت ته داخلیدو والا دی.

**د امت محمدی درې اویا ډلې:**- ابن مردویه کښې دی چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم مخکښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د حضرت موسی علیه السلام دامت یو اویا ډلې شوې او په هغې کښې به یو جنتی وی اوباقی به دوزخی.د حضرت عیسیٰ علیه السلام امت دوه اویا ډلې وې.چه په هغې کښې یو جنتی او باقی یو اویا دوزخی. خما دا امت به ددې دواړو نه زیات شی.ددوی به هم یو ډله جنت ته خی او باقی دوه اویا ډلې به جهنم ته.خلقو تپوس اوکړو چه هغه څوك دی؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه جماعتونه جماعتونه.یعقوب بن یزید رحمه الله فرمائی چه هرکله حضرت علی بن ابی طالب رضي الله عنه داحدیث بیانولو نو دقرآن پاك دا آیت مبارك ﴿وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّقَوْا۟﴾ او ﴿وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِٱلْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ﴾ ئې لوستلواو فرمائیل به ئې چه ددې نه مراد دحضرت محمد ﷺ امت دې .([2]) لیکن دا حدیث دې لفظونو کښې او دې سند سره بې حده غریب دې.اواویا نه زیاتو فرقو والا حدیث ډیرو

---

[1] ) احمد: ٤/١٦٠، ابن ماجه: کتاب الفتن باب ذهاب القرآن والعلم : ٤٠٤٨،

[2] ) مسند ابی یعلی : ٣٦٦٨، مجمع الزوائد: ٢٦١/٧،

سندونو سره مروی دي لکه څنګه چه مونږ بل ځاني کښې بیان کړې دی، فالحمد لله.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰٓأَيُّهَا الرَّسُوْلُ | بَلِّغْ | مَآ | أُنْزِلَ | إِلَيْكَ | مِنْ رَّبِّكَ ط |
| اني رسوله | اورسوه | هغه | چې نازل کړې شوې دې | تاته | دطرفه درب ستانه |
| اني پیغمبره ﷺ په تا چې دخپل رب دطرفه کوم (احکام) نازل شوی دی | هغه ټول خلقو ته اورسوه | | | | |
| وَإِنْ | لَّمْ تَفْعَلْ | فَمَا بَلَّغْتَ | رِسٰلَتَهٗ ط | وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ | مِنَ النَّاسِ ط |
| اوکه چرې | اونه کړو تا | نو اونه رسوؤ تا | پیغام دهغه | والله به بچ کوی تا | د خلقو نه |
| اوکه چرې داکار دې اونه کړلو | نو دالله یوحکم به دې هم نه وی رسولې | والله به تا دخلقو (دشر) نه بچ ساتی | | | |
| إِنَّ اللّٰهَ | لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ | الْكٰفِرِيْنَ ۝ | | |
| بیشکه الله | نه ښائی لار | قوم | کافرته | | |
| بیشکه الله کافرو ته سمه لار نه ښائی | | | | | |

**نبی کریم ﷺ د پیغام رسولو حکم:-** الله تعالی خپل نبی ﷺ ته د رسول ښکلي خطاب ورکوی او آواز ورته کوی او الله ﷻ ورته حکم کوی چه دالله ﷻ ټول احکام اورسوه. نبی کریم ﷺ هم داشان اوکړل. صحیح بخاری کښې حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه تاته څوك اووائی چه نبی کریم ﷺ د الله ﷻ یو نازل شوې حکم پټ کړې دې نو پوهه شه چه هغه دروغژن دې. الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته حکم کړې دې. بیانې هم دا آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو. دا حدیث دلته مختصر دې او بل ځائې کښې اورډ دې (١).

**نبی کریم ﷺ د الله تعالی ټول حکمونه رسولی دی:-** بخاری شریف اومسلم شریف کښې دی که نبی کریم ﷺ د الله ﷻ یو حکم لره پټولو والا وې نو دا آیت مبارك به نې پټ کړې وې. ﴿وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيْهِ﴾ (٢) یعنی تا په خپل زړه کښې هغه پټولو چه کوم الله ﷻ ظاهرونکې وو. او ته به د خلقو نه ویریدلې. حالانکه الله ﷻ زیات حقدار دې چه ته دهغه نه ویره اوکړې. حضرت ابن عباس ﷺ ته چا اووئیل چه خلقوکښې داخبره مشهوره ده چه تاته نبی کریم ﷺ څه داسې خبرې کړې دی چه هغه د نورو خلقو نه پټې دی. نو حضرت ابن عباس ﷺ هم دا آیت مبارك اولوستلو او وې فرمائیل چه په الله ﷻ قسم نبی کریم ﷺ زه دالله ﷻ د هیڅ یو داسې څیز وارث نه یم جوړ کړې. (ابن ابی حاتم).

**دعلی ﷺ په صحیفه کښې.-** صحیح بخاری کښې دی چه حضرت علی ﷺ نه یو سړی تپوس اوکړو چه تاسره د قرآن پاك نه علاوه د وحی بل څه څیز شته ؟ نو حضرت علی ﷺ اوفرمائیل چه په هغه الله ﷻ قسم چه تخمونه نې رازرغون کړی دی او خلق نې پیداکړی دی چه هیڅ نشته د هغه فهم او پوهه سوا چه کوم الله ﷻ یو سړې ته ورکړی. اوڅه چه په دې صحیفه کښې دی. هغه تپوس اوکړوچه صحیفې کښې څه دی ؟ دوی ﷺ اوفرمائیل چه د دیت مسائل دی، د قیدیانو دپرېښودو احکام، اودا دی چه مسلمان دې د کافر بدله کښې د قصاص په طور قتل نکړې شی (٣).

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المائده (یاایها الرسول بلغ ما انزل الیک من ربک) : ٤٦١٢، مطولا صحیح بخاری : ١٧٧، ترمذی: ٣٠٦٨، احمد: ٤٩/٦، ابویعلی: ٩٠٠.

[2]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب معنی قول الله تعالی (ولقد راه نزلة اخری......).

[3]) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الحراسة فی الغزوانی فی سبیل الله : ٢٨٨٥، صحیح مسلم: ٢٤١٠، السنن الکبری للنسائی: ٨٨٦٧، احمد: ١٤١/٦، ابن حبان : ٦٩٨٦.

**د امام زهری قول:-** صحیح بخاری کښې د حضرت زهری رحمه الله فرمان دې چه دالله ﷻ د طرفنه رسالت دې او د پیغمبر ﷺ طرفنه تبلیغ دې اوخمونږ په ذمه قبلول او تابع فرمان کیدل دی (١).

**په خطبه دحجة الوداع کښې د نبی کریم ﷺ فرمان:-** نبی کریم ﷺ دالله ﷻ ټولې خبرې اورسولې.د دې ګواه د نبی کریم ﷺ ټول امت دې چه واقعی نبی کریم ﷺ د امانت پوره حق ادا کړو اوډټولو نه چه کوم لوئې مجلس وو هغې کښې ټولو د دې امر اقرار کړې دې یعنی د حجة الوداع په موقع باندې په خطبه کښې چه په کوم وخت کښې د نبی کریم ﷺ مخکښې څلویښت زره صحابه کرام رضی الله عنهم د جماعت شکل کښې موجود وو. صحیح مسلم کښې دی چه نبی کریم ﷺ په دې خطبه کښې خلقو ته اوونیل چه تاسو نه به الله ﷻ خما باره کښې تپوس کوی نو اووائې تاسو به څه جواب ورکونې،ټولو اوونیل چه خمونږ ګواهی ده چه تاسو تبلیغ اوکړو اود رسالت حق مو ادا کړو. اوخمونږ مو پوره خیر خواهی اوکړه، نبی کریم ﷺ لاس اوسرمبارك آسمان طرفته اوچت کړل او خلقو طرفته راټیټ شو او وې فرمائیل چه ائې الله ﷻ ما اورسول (٢)، ائې الله ﷻ ما اورسول ؟

**د نبی کریم ﷺ درې ځله ایا ما اورسول وئیل:-** مسنداحمد کښې داهم دی چه نبی کریم ﷺ په دې خطبه کښې تپوس اوکړو چه ائې خلقو ! دا کومه ورځ ده ؟ خلقو اوونیل چه حرمت والا.تپوس نې اوکړو چه ائې خلقو دا کوم ښاردې ؟ جواب ورکړې شو چه حرمت والا.وې فرمائیل دا کومه میاشت ده ؟ جواب ورکړې شو چه حرمت والا.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو وینې او ستاسو مالونه یو بل باندې داسې حرام دی لکه څنګه چه ددې ورځې،ددې ښاراو ددې میاشتې حرمت دې.بیا نبی کریم ﷺ بار بار دا وئیل بیا نې خپله ګوته مبارکه آسمان طرفته اوچته کړه او وې فرمائیل اې الله ﷻ ! آیا ما اورسول. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه په الله ﷻ قسم دا دالله ﷻ نه نبی کریم ﷺ ته وصیت وو.بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ګورئی هرحاضر کس دې دا غائب کس ته اورسوی.ګورئی هسې نه خما نه پس کافران شئ چه دیو بل څټونه وهئ.دا امام بخاری رحمه الله هم روایت کړې دې (٣).

**قوله تعالی:: وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ**

بیافرمائی که تاسو د الله ﷻ احکام بندګانو ته اونه رسولو نوتا درسالت حق ادا نکړو. بیا د دې چه کومه سزا ده هغه ظاهرده که یوآیت دې هم پټ کړو نو رسالت دې مات کړو. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه کله دا حکم نازل شو چه څه نازل شوی دی هغه اورسوه نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څه یوازې یم اودا ټول یوځائې کیږی نو څه څنګه اوکړم. نو دویمه جمله نازله شوه که تا اونه کړل نو تا د رسالت حق ادا نه کړو.

**قوله تعالی:: وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ**

**د نبی کریم ﷺ د حفاظت ذمه واری:-** بیا فرمائی چه د خلقو نه ستا بچ کول خما په ذمه دی.ستا حافظ اوناصر څه یم.بې فکره اوسه،ستا دوی هیڅ نشی کولې.ددې آیت مبارك نه مخکښې نبی کریم ﷺ خپله پهره ساتله.خلق د نبی کریم ﷺ په نګرانئ مقرر وو. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه یوه شپه نبی کریم ﷺ بیدار وو خوب ورته نه ورتلو نوما اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! نن څه خبره ده ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کاش نن یو نیك بخت صحابی خما نګرانی کړې وې.دا خبره کیده چه ما د وسلې آواز واوریدو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څوك ئې ؟ جواب ملاؤ شو چه څه سعد بن مالك یم. نبی کریم ﷺ

---

١) ترمذی: کتاب تفسیر القرآن باب ومن سوة المائدة: ٣٠٤٦ وسنده حسن.

٢) طبرانی (١١٦٦٣)، بنحوه.

٣) دې روایت کښې ابومعشر نجیح السندی ضعیف راوی دې.(ددې حواله تیره شوې ده).

اوفرمائیل چه څنګه راغلې نې ؟ هغه اوونیل چه د ټوله شپه نبی کریم ﷺ چوکیداری اوکړم دې نه پس نبی کریم ﷺ ښه په آرام اوده شوتر دې چه خنړاری آواز نې راغلو[1].
بخاری او مسلم کښې یوروایت کښې دی چه دا واقعه د دویم هجرنی ده.ددې آیت مبارك نازلیدو سره نبی کریم ﷺ د خیمې نه سر رابهر کړو او چوکیدارو ته نې اوفرمائیل چه ځئ؛ لاړشئ؛اوس خه دالله ﷻ پناه کښې راغلې یم،ستاسود چوکیدارنې هېڅ ضرورت نشته دې .[2]
یوروایت کښې دی چه ابوطالب به نبی کریم ﷺ سره یو نه یو کس لیږلو.هرکله چه دا آیت مبارك نازل شو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بس تره اوس ماسره هیڅوك مه لیږه. خه دالله ﷻ پناه کښې راغلم [3].
لیکن دا روایت غریب دې.اومنکر هم دې.دا واقعه خو د مکې مکرمې شوه. او دا آیت مبارك د مدینې منورې د آخری دور دې.

**په مکی دورکښې د نبی کریم ﷺ حفاظت**:- په دې کښې هیڅ شك نشته دې چه په مکه کښې هم دالله ﷻ مدد د خپل رسول ﷺ سره وو. اګرچه دښمنانو سره هر رنګ اسباب موجود وو،هر رنګ وسلې نه پوره وو،خوبیا هم د مکې سردارانو د نبی کریم ﷺ یو ویښته قدرې ته هم نقصان اونه رسولو.د رسالت په رومبنی زمانه کښې د خپل تره ابوطالب په وجه د نبی کریم ﷺ ښه حفاظت کیدو اوابوطالب د قریشو سردار اوبااثر سړې وو. د هغه به زړه کښې الله ﷻ د دوی محبت اچولې وو.دا محبت طبعی وو شرعی نه وو.که دا شرعی وې نو قریش به نبی کریم ﷺ سره دده د خان هم دښمنان وو. ددوی د انتقال نه پس الله ﷻ د انصارو زړونو کښې نبی کریم ﷺ سره شر عی محبت پیدا کړو. نبی کریم ﷺ هم هغوئ ته تشریف یوړو.

**دنبی کریم ﷺ خلاف د یهودو سازشونه**:- اوس خو یهودیانواومشرکانو هم خپې سپې کړې او ډیرو ډیرو سامانونو سره اووتل.خو بیا بیا ناکامه کیدو نه پس دهغوئ امیدونه لاهو شو. اوچه څومره پټ سازشونه دوی کړی وو هغه هم الله ﷻ په دوی الټه کړل.یو طرفته دوی جادو کوی او بل طرفته سورة معوذتین نازلیږی او ددوی جادو ختموی یو طرفته هغوئ د زرګونوترکیبونه کوی او د چیلئ په غوښه کښې زهر ګډوی او نبی کریم ﷺ ته دعوت ورکوی او دا د نبی کریم ﷺ مخکښې ایږدی اوبل طرفته الله ﷻ خپل حبیب د دوی دې دهوکې نه خبروی.اونورهم داسې واقعات د نبی کریم ﷺ ژوند مبارك کښې راځی.

**د بانډیچې د شر نه د نبی کریم ﷺ حفاظت**:- تفسیر ابن جریر کښې دی چه یو سفر کښې نبی کریم ﷺ د یوې ونې دسیوری لاندې قیلوله (دغرمې خوب) کوله او حضرات صحابه کرامو ﷺ د خپل عادت مطابق په هرمنزل داسې سیورنې تلاش کولو او هغه به ئې نبی کریم ﷺ دپاره پریښودو.یو بانډیچی راغلو اوپه هغه وخت کښې د نبی کریم ﷺ توره په ونه کښې زوړند وه. هغه نې راواخسته او نبی کریم ﷺ ته ئې په غصه اوئیل اوس وایه تا به څما نه څوك بچ کوی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ به ما ستا نه بچ کوی.هم په هغه وخت کښې د بانډیچی لاس په رپیدو شواوتوره د هغه د لاس نه غوزاره شوه. اوهغه ونې سره وهلې اووهلې شو او د هغه دماغ ذره ذره شو. اوالله ﷻ دا آیت مبارك نازل کړو.

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الحراسة فی الغزوانی فی سبیل الله : ۲۸۸۵، صحیح مسلم: ۲٤۱۰، السنن الکبری للنسائی: ۸۸٦۷، احمد: ٦/۱٤۱، ابن حبان : ٦۹۸٦

[2]) ترمذی: کتاب تفسیر القرآن باب ومن سوة المائدة: ۳۰٤٦ وسنده حسن.

[3]) طبرانی (۱۱٦٦۳)، بنحوه.

**په يوه بله موقع د نبی کريم ﷺ حفاظت:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه کله نبی ﷺ بنی انمار سره غزا اوکړه، اوذات الرقاع کهجوروباغ کښې نبی کريم ﷺ يوکوهی کښې پښې زوړندې کړې وې. اود بنو نجاريو حارث نومې سړی وو. دې سړی اووئيل چه ګوره اوس څه نبی کريم ﷺ قتل کوم نو خلقو اووئيل چه څنګه ؟ وې وئيل چه څه به په څه بهانه نبی کريم ﷺ توره واخلم او بيا به يو وار سره نبی کريم ﷺ اووهم. دې نبی کريم ﷺ ته نزدې راغلو او اخوا ديخوا خبرې ئې کولې او نبی کريم ﷺ نه ئې توره اوغوښتله. نبی کريم ﷺ هغه ته توره ورکړه. ليکن کله چه توره دده لاس ته راغله نو دده لاسونه په رپيدو شو او توره دده دلاس نه اوغورزيده نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ستا اوستا دبدو او ارادو تر مينځه الله ﷻ حائل شو. او دا آيت نازل شو.(1) دغورث بن حارث همداسې واقعه مشهوره ده.

**د نبی کريم ﷺ د عصمت بله واقعه:-** ابن مردويه کښې دی چه د صحابه کرامو ﷺ عادت وو چه په سفر کښې به ئې کوم ځائې پړاؤاو کولونو د نبی کريم ﷺ دپاره به ئې ګڼړ سيوری والا ونه تلاش کوله اوپرېښودله چه نبی کريم ﷺ ددې سيوری لاندې آرام اوفرمائي.

يو ورځ نبی کريم ﷺ هم داشان يو ونې لاندې آرام کولو او اوده شو او د نبی کريم ﷺ توره هم دې ونه ته زوړنده وه. يو سړې راغلو او دا توره ئې لاس کښې واخسته او وې وئيل چه اوس وايه تا به څما نه څوك بچ کړی ؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ به مې بچ کړی. په هغه دومره هيبت راغلو حکم منلوته تيار شو اوتوره ئې دده لاس نه پريوتله. اوالله ﷻ دا آيت مبارك نازل کړو﴿وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ (2)

مسند احمد کښې دی چه نبی کريم ﷺ ديو غټ سړی خيټې طرفته اشاره اوکړه او وې فرمائيل که دا(غټوالی) ددې ځائې نه سوا په بل ځائې وې نو ستا دپاره به بهتروې ،يوسړی صحابه کرام ﷺ اونيولواونبی کريم ﷺ ته راوستو اووې وئيل چه ده ستا د قتل اراده لرله. هغه په رپيدو شو. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه مه ويريږه ته خو به اراده اوکړې ليکن الله ﷻ به هغه نه پوره کوی (3). بيا فرمائی چه ستا په ذمه صرف تبليغ دې،هدايت د رب ﷻ په ذمه دې،هغه به کافر ته هدايت اونکړی،نو ته رسوه حساب کولو والا الله ﷻ دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ | | | | |
| اووايه | ائې اهل کتابو | | | | |
| ائې پيغمبره ﷺ دوی ته ښکاره اووايه | | | | | |
| لَسْتُمْ | عَلٰى شَيْءٍ | حَتّٰى | تُقِيْمُوا | التَّوْرٰىةَ | وَالْاِنْجِيْلَ |
| نۀ يئ تاسو | په هيڅ څيز باندې اترهغې پورې | | چې قائم کړئ تاسو | تورات | او انجيل |
| چې تاسو په هيڅ دين باندې نه يئ ............ترڅو چې په تورات او انجيل باندې عمل اونکړئ | | | | | |

1) دې روايت کښې موسی بن عبيده الربذی راوی ضعيف دې.(الميزان : ٢١٣/٤ رقم: ٨٨٩٥) خو بخاری (٢٩١٣) وغيره کښې ددې آيت مبارک د نزول نه بغير ددې معنی روايت موجود دې.

2) ابن حبان الموارد: ١٧٣٩، وسنده حسن. داروايت دحسن درجه کښې دې.(ابن کثير تحقيق عبدالرزاق: ٥٨١/٢).

3) احمد: ٤٧١/٣، طبرانی : ٢١٨٥، شعب الايمان : ٥٦٦٦، السنن الکبری للنسائی: ١٠٩٠٣، مجمع الزوائد: ٢٢٧/٨.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَآ | اُنْزِلَ | اِلَيْكُمْ | مِّنْ رَّبِّكُمْ ط | وَلَيَزِيْدَنَّ |
| اوهغه چي | نازل کړې شوې دي | تاسو ته | د طرفه درب ستاسو نه | اوخامخابه زياتوي |

اوپه هغه کتاب عمل اونکړئ کوم چه تاسو ته ستاسو د رب د طرفه نازل شوې دې او کوم کتاب

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَثِيْرًا | مِّنْهُمْ | مَّآ | اُنْزِلَ | اِلَيْكَ | مِنْ رَّبِّكَ | طُغْيَانًا |
| زياتوخلقو لره | ددوئ نه | هغه | چي نازل کړې شوې دي | تاته | د طرفه درب ستا نه | د جهته دسرکشۍ نه |

چي تاته راغلي دي هغه به ددوئ ډيرو کسانو دپاره د زياتې سرکشۍ او د لوئي کفر ..............

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّكُفْرًا ۚ | فَلَا تَاْسَ | عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٦٨﴾ | اِنَّ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا |
| اودکفرنه | نومه کوه افسوس | په قوم کافر باندې | بيشکه هغه کسان | چي ايمان ئې راوړې دي |

سبب اوګرځي نوته په دې کافرو باندې هيڅ کله افسوس مه کوه بيشکه څوک چي مؤمنان دي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | هَادُوْا | وَالصّٰبِـُٔوْنَ | وَالنَّصٰرٰى | مَنْ | اٰمَنَ | بِاللّٰهِ |
| اوهغه کسان | چي يهوديان دي | اوصابيان دي | اوعيسايان دي | څوک چي | ايمان راوړي | په الله باندې |

يا يهوديان دي يا صابيان دي يا نصاري دي په دوئ کښې چي څوک هم په الله ﷻ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ | وَعَمِلَ صَالِحًا | فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ | يَحْزَنُوْنَ ﴿٦٩﴾ |
| اوپه ورځ دآخرت باندې | اوعمل ئې اوکړو نيك | نو نشته ويره په هغوئ باندې | اونۀ به هغوئ | غمژن کيږي |

او په ورځ دآخرت ايمان راوړي اونيک عمل کوي نوپه هغوئ باندې نه څۀ ويره شته اونه غمژن شي

**د اهل کتابو د ايمان راوړو شرطونه:-** الله ﷻ فرمائي چه يهوديان او نصارى په هيڅ يو دين نه دي ترکومې چه دوى په خپل کتابونو او په الله تعالى او د الله ﷻ په کتابونو ايمان راونړى.ليکن ددوى خودا حالت دې چه څومره قرآن پاك نازليږى نودومره د دوى سرکشى اوکفر زياتيږى.نو اې نبى ﷺ اددې کافرو د وجې حسرت او افسوس مه کوئى اومه خپل ځان فکرمندکوې ؟

**دصابيانو تعريف:-** ① صابيان د نصرانيانواو مجوسيانو بې دينه جماعت ته وائى اوصرف مجوسيانوته هم.اودا يوه ډله وه چه د فرښتو عبادت به ئې کولو.② وهب رحمه الله فرمائى چه دوى به الله ﷻ يومنلو،په هيڅ شريعت عمل کوونکى نه وو. دوى کښې د کفر ايجاد نه وو شوې.دوى عراق سره متصل اوسيدل.بکوثى به وئيل نبيان به ئې منل،هرکال به ئې ديرش روژې نيولې،اويمن طرفته به ئې مخ کولو.شوا روزکښې به ئې پنځه مونځونه کول.ددې نه سوا نور اقوال هم دى.

مخکښې د دوؤ جملو نه پس د دوى ذکر راغلې وو،په دې وجې رفع سره عطف راغلو.دې ټولو خلقو ته الله ﷻ فرمائى چه امن وامان والا بې ويرې هغه خلق دى چه په الله ﷻ په ورځ د قيامت ايمان راوړى او نيك عملونه کوى.اودا ناممکن دى ترکومې چه دوى په دې آخرى نبى ايمان راونړى چه ټولو جناتو او انسانانو ته رسول ليږلې شوې دې.نو په نبى کريم ﷺ ايمان راوړو والا به راتلونکى ژوند کښې د خطراتو نه بې ويرې وى اوددوى ځيزونو په پريښودوبه دوى ته هيڅ افسوس او حسرت نه وى.ددې جملې تفصيلى تفسير په سورة بقره کښې تيرشوې دې.

لَقَدْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَاَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ رُسُلًاؕ

به تحقيق سره|واخستله مونږه|پخه وعده | دبنی اسرائيلونه | اواوليږل مونږه | هغوئ ته | ډير رسولان

مونږ دبنی اسرائيلونه پخه وعده اخستې وه | .................اوډير پيغبران موورته ليږلي وو

كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُهُمْ ۙ فَرِيْقًا

هركله چې به | راغې هغوئ ته|يو رسول|دهغه حكم سره | چې نۀ خوښوؤ| نفسونودهغوئ| ځينى ني

كله چې به يوپيغمبر دوئ ته دالله ﷻ داسې احكام راوړل| چې هغه به ددوئ دخواهشاتوخلاف وؤ

كَذَّبُوْا وَفَرِيْقًا يَّقْتُلُوْنَ ۝ وَحَسِبُوْٓا اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ

دروغ اوګڼړل| اوځينى به ني| وژل |اوګمان ني اوكړو| چې نۀ | به وى | هيڅ فتنه

نوځوک بۀ ني دروغژن ګڼړل |اوځوک به ني قتل كړل| اوددوئ دا ګمان وؤ چې دوئ ته به هيڅ سزا نشى وركولى

فَعَمُوْا وَصَمُّوْا ثُمَّ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوْا

نوړاندۀ شوا اوكاڼړۀ شو | بيا | رجوع اوكړه الله| په هغوئ | خوبيا | ړاندۀ شو هغوئ

نوځانونه ني نور هم ړاندۀ كاڼړه كړل |..........بيا الله ﷻ دوئ معاف كړل |خوبياهم په دوئ كښې

وَصَمُّوْا كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ۝

اوكاڼړۀ شوا ډير | هغوئ نه | اوالله | اليدونكې دې | دهغه كارونو| چې كوى ني دوئ |

ډيروكسانو خانونه ړاندۀ كاڼړۀكړل |........اوالله ﷻ ددوئ كارونه وينى ګورى

**د يهوديانواو نصرانيانو وعده خلافى:-** الله ﷻ د يهوديانو نه وعده اخستې وه چه هغوئ به دالله ﷻ په احكامو عامل كوى او وحى به پابندى وى.ليكن هغوئ هغه وعده ماته كړه او خپله رائې ني قائمه كړه اوخپلو خواهشاتو پسې روان شو،كتاب الله كښې هغوئ هغه خبرې د خپلې خوښې مطابق اومنلې او چه كومې كښې به ددوئ دمنشاء خلاف وې هغه ني ترک كړې هغه ني ترک كړل او نه صرف دومره بلكه د ډيرو رسولانو خلاف شو او هغوئ ني دروغژن اوګرځول،او ډير ني قتل كړل ځكه چه هغوئ كوم احكام راوړى وو هغه د دوى د رائې اوقياس مطابق نه وو. د دومره لوئې ګناه كولو نه پس هم بې فكره كيناستل او دومره پوهه شو چه مونږ دپاره به هيڅ سزا نه وى.خو دوى ته زبردسته روحانى سزا ملاوشوه يعنى هغوئ د حق نه ډير لرې كړې شو.او د حق نه ړانده او ګونګيان كړې شو. چه نه حق واورى او نه چې هدايت اوګورى او هغه اووينى .ليكن بيا هم الله ﷻ په دوى مهربانه شو او دې نه پس دوى كښې اكثر داسې شو چه د حق نه ړانده اوحق آوريدو نه محروم شو. الله ﷻ ددوى عملونو نه خبرې دې اوهغه ته معلوم دى چه څوک د كوم څيز مستحق دې.

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ؕ

يقينا كفر اوكړو| هغه كسانو| چې وې وئيل| چې بيشكه الله | هم دغه| مسيح | خوئ | دمريم دې

بيشكه هغه كسان پاخه كافران شوى دى چې وائى بيشكه هم د ا مسيح بن مريم خدائې دې

وَقَالَ الْمَسِيحُ يٰبَنِىٓ إِسْرَآءِيلَ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّي
اوحال دا چې ونیلی وؤمسیح | اچې ائي بنی اسرائیلو| بندګی کویٔ | دالله | چې رب زمادې
اوحال دادې چې مسیح ؑخو دویٔ ته ونیلی وؤ| چې دالله ﷻ عبادت کویٔ| چې زماهم رب دې
وَرَبَّكُمْ ۚ إِنَّهُ مَنْ يُشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ
اورب ستاسودې|بیشکه | هغه څوك| چې شریك جوړوی | دالله سره| نو حرام کړوالله
اوستاسوهم رب دې | څوک چې الله ﷻ سره شریک جوړ کړی | نو الله ﷻ پرې
عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوٰهُ النَّارُ ۖ وَمَا لِلظّٰلِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ ۝
په هغه باندې | جنت | اوځاي دهغه | وور دې | اونشته دې| دپاره دظالمانو| هیڅوك مددګار
جنت حرام کړې دې| اودهغویٔ ځاي به دوزخ وی | او د ظالمانو دپاره به هیڅوک مددګار نه وی
لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوٓا إِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ۘ وَمَا
یقینا| چې کفراوکړو| هغه کسانو| چې ونیل ئې| بیشکه الله|دریم دې |ددریو نه| اوحال دا چې نشته
هغه کسان په یقین سره کافران شول| چې هغویٔ دا اوونیل چې الله ﷻ دریو کښې یو دې | حال دادې چې
مِنْ إِلٰهٍ إِلَّآ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ وَإِنْ لَّمْ يَنْتَهُوا عَمَّا يَقُولُونَ
هیڅوك لائق دعبادت| مګر| معبود| یو |اوکه چرې|نهٔ شومنع دویٔ|دهغه خبرو نه| چې دویٔ ئې وائی
دالله ﷻ نه بغیر بل څوک معبود نشته | اوکه دویٔ ددې خپلو ویناګانونه منع نهٔ شول
لَيَمَسَّنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ أَفَلَا
نو خامخا به رسیږی | هغه کسانو ته | چې کفر ئې کړې دې | ددویٔ نه | عذاب |دردناك | آیا
نوچا چې په دویٔ کښې کفر اختیار کړې وی | هغویٔ ته به دردناک عذاب اورسیږی |............ آیا
يَتُوبُونَ إِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُونَهُ ۚ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ مَا
نونهٔ اوباسی توبه دویٔ| الله ته | اومعافی نهٔ غواړی دهغه نه | اوالله | بښونکې | مهربان دې |نهٔ دې
دویٔ الله ﷻ ته توبه نهٔ اوباسی| اونهٔ ترې نه دخپلو ګناهونو بخښنه غواړی| اوالله ﷻ بښونکې او مهربان دې
الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُولٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۚ
مسیح اخوئي | دمریم | مګر یو رسول دې | تیر شوی دی | مخکښې دهغه نه|نور ډیر رسولان
دحضرت مریم خوئي مسیح ددې نه سوا هیڅ نه دې چې دالله رسول دې |دهغه نه مخکښې ډیرپیغمبران تیرشوی دی
وَأُمُّهُ صِدِّيقَةٌ ۖ كَانَا يَأْكُلَانِ الطَّعَامَ ۗ انْظُرْ كَيْفَ
اومور دهغه | رښتینې ښځه وه | وؤ دواړه | چې خوړوبه ئې | طعام | اوګوره | څرنګې
اودهغه مور ډیره رښتینې ښځه وه | اودواړو به دنورو خلقو پشان خوراک کولو | اوګوره چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نُبَيِّنُ | لَهُمُ | الْاٰيٰتِ | ثُمَّ انْظُرْ | اَنّٰى | يُؤْفَكُوْنَ ۝ |
| بیانوؤ مونږه | دوئ ته | نښې | بیا اوګوره | چې کوم خوا | دوی اړولی روان دی |

مونږ دوئ ته څنګه ښکاره نښې بیانوؤ! خو بیا اوګوره چې دوئ کوم طرفته اړولی روان دی!

**د عیسیٰ ﷷ عبدیت:-** د نصرانیانو د فرقو یعنی د نسطوریه، یعقوبیه او ملکیه د کفر حالت بیانیږي چه دوی به حضرت عیسیٰ ﷷ ته الله وئیلو اومنلوبه ئې. الله ﷻ ددوی د قول نه پاك او منزه دې. مسیح خو دالله ﷻ بنده وو. کله چه هغه په دنیاکښې قدم کیخودو نود هغه دتولونه رومبئ کلمه دا وه چه ﴿انی عبدالله﴾ څه دالله ﷻ بنده یم. هغوئ دا نه وو وئیلي چه څه الله یم یا دالله تعالی ځوئې یم، بلکه د خپلې بندګئ اقرار ئې کړې وو. اودې سره ئې فرمائیلي وو چه څما او ستاسودټولو رب الله ﷻ دې. صرف د هغه عبادت کوئی. په نیغه او صحیح لار تګ کوئی اوصحیح لارداده اوهم دا قول ئې د خپلې ځوانئ نه پس عمر کښې کړې وو چه دالله ﷻ عبادت کوئی، هغه سره چه څوك په عبادت کښې شریك جوړوی نو په هغه جنت حرام دې. د هغه دپاره جهنم واجب دې. لکه د قران پاك یو بل آیت مبارك کښې دی چه الله ﷻ شرك نه معاف کوی. هرکله چه جهنمیان د جنتیانو نه خوراك څکاك اوغواړی نو اهل جنت به هم دا جواب وی چه دا دواړه څیزونه په کافرو حرام دی. نبی کریم ﷺ یو منادی په ذریعه آواز اوکړو چه جنت ته به صرف اسلام او ایمان والا داخلیږی (١).

د سورة نساء آیت ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ﴾ تفسیر کښې هغه حدیث هم بیان شوې دې چه په هغې کښې دی چه د ګناهونو درې دیوانه دی. په هغې کښې یو هغه دې چه هغه الله ﷻ هیڅکله نه بخښی اوهغه الله تعالی سره شرك دې (٢). حضرت عیسیٰ ﷷ هم خپل قوم ته دا وعظ کړې وو او فرمائیلي ئې وو چه داسې ناانصافو مشرکانو دپاره هیڅوك مددګار نشته دې.

**قوله تعالی:** لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ

**د عیسایانو د تثلیث د عقیدې رد:-** اوس د هغوی کفر بیانوی چه الله ﷻ ئې د دریو نه یو منلو. یهودیان عزیر ﷷ او عیسایانو عیسیٰ ته د الله ﷻ ځوئې وائی. او الله ﷻ به ئې د دریو خدایانو نه یو منلو. خو داآیت صرف د هغه نصرانیانو باره کښې دی چې هغوی پلارځوئې، اوهغه کلمه چه د پلار د طرفنه ځوئې طرفته وئیلې شوې وه الله ﷻ منی بیا ددې دریو واړو مقررولو کښې ډیر زیات اختلاف دې اوهرې فرقې به بلې ته کافر وئیلو. اوحق دا دې چه ټول په ټوله کافر وو. حضرت مسیح ﷷ او ددوی مور بی بی او الله ﷻ یو شان مثل. هم د دې بیان د دې سورة آخر کښې دې چه د قیامت په ورځ به الله ﷻ اوفرمائی چه آیا عیسیٰ ﷷ تاسو ته وئیلي وو چه ما او څما مور هم الله اومنئ. هغوئ به صفا انکار اوکړی. اود خپلې لا علمئ او بې ګناهئ اظهار به اوکړی. زیات ظاهر قول هم دا دې، والله اعلم.

اصل کښې دعبادت لائق الله ﷻ نه سوا نور څوك نشته دې، د ټول کائناتو اود کل موجوداتو معبود برحق هم هغه ذات دې، که دوی د دې خپل کفریه قول نه منع نشو نو یقینًا دوی به دردناکو عذابونو ته وراوغوزولی شی.

**قوله تعالی:** اَفَلَا يَتُوْبُوْنَ اِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُوْنَهٗ

بیا الله ﷻ د خپل کرم او بخشش او انعام او لطف اورحمت بیان کوی او د دوی د دومره سخت جرم او دومره سختې بې حیائی او کذب او افتراء دوی ته د رحمت دعوت ورکوی او فرمائی چه اوس هم ما طرفته راشئ نو تاسو به ټول معاف کړم. او تاسو به د رحمت د لمنې لاندې راولم. حضرت مسیح ﷷ د

---

(١) صحیح مسلم کتاب الایمان باب غلظ تحریم الغلول وانه لایدخل الجنة الاالمومنون: ١١٤.

(٢) احمد: ٢٤٠/٦.

الله ﷻ بنده او رسول وو ،لکه ځنګه چه دده په شان رسولان مخکښې هم تیر شوی دی.لکه چې فرماني
چه ﴿ان هو الا عبد﴾ هغوئ ځمونږ بنده وو ،مونږ په هغوئ رحمت کړې وو. اود بنی اسرائیلو دپاره مو:
قدرت نښه جوړه کړې وه.

**بی بی مریم نبی نه وه:**- دعیسٰی ؑ مور بی بی مومنه او ریښتونې وه.ددې نه معلومه شوه چه نبیه نه
وه ځکه چه دا مقام د وصف دې،نو ددې چه کوم بهترین وصف وو هغه ئې بیان کړو ،که نبیه وې نو په
دې موقع د هغې بیان ډیرزیات ضروری وو.

**دابن حزم ؒ رائې:**- دابن حزم ؒ وغیره خیال دې چه ام اسحاق ؑ اوام موسی ؑ اوام عیسٰی ؑ
نبیانې وې اودلیل دا ورکوی چه فرښتو حضرت ساره ؓ اوحضرت مریم ؓ ته خطاب اوکلام کړې وو ،
د موسی ؑ د مور نسبت کښې فرمائیلی دی چه ﴿وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰى﴾ مونږ د موسی ؑ مور بی بی
طرفته وحی اوکړه چه ته دې ته پئ ورکړه. لیکن د جمهورو مذهب ددې خلاف دې،هغوئ وائی چه
نبوت صرف سړو کښې پاتې شوې دې.لکه قران پاك کښې فرمان دې چه ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا﴾
الخ،ستا نه مخکښې مونږ صرف سړو ته د پیغمبرئ انعام ورکړې وو. شیخ ابوالحسن اشعری ؒ خو په
دې اجماع نقل کړې ده،

**قوله تعالى: كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ**
بیافرمائی چه مور اوځوئې دواړه د خوراك څکاك محتاج وو.اوظاهره ده چه دننه څې هغه به بهر
راوزی. (کنایه ده د قضاء حاجت نه) نو ثابته شوه چه هغه هم د نورو پشان بنده وو. الوهیت په هغه کښې
نه وو. اوګوری مونږ دوی ته څنګه خپل حجتونه بیانوو. بیا هم د کتلو باوجود دوی څنګه تښتی
راتښتی ؟ څنګه ګمراه مذهب اخلی.او څنګه په الله تعالی پورې ردی او بې دلیله قول تړی.

<table>
<tr><td>قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ؕ</td></tr>
<tr><td>اووایه ایا تاسو عبادت کوئ|ماسوا دالله نه|دهغه چا|چې اختیار نۀ لری|دپاره ستاسو | د ضرر |اونۀ دنفعې</td></tr>
<tr><td>ورته اووایه ایا د الله نه سوا د هغه چا عبادت کوئ چې نۀ تاسو ته نقصان درکولې شی اونۀ فائده</td></tr>
<tr><td>وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝٧٦ قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا</td></tr>
<tr><td>اوالله | هم هغه | ښه اوریدونکې | ښه پوهه دې |ورته اووایه | ائې اهل کتابو |مۀ اوړئ دحدنه</td></tr>
<tr><td>اوالله ﷻ هرڅه اوری او په هرڅه پوهه دې |......... ورته اووایه چې ائې اهل کتاب تاسو</td></tr>
<tr><td>فِيْ دِيْنِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا</td></tr>
<tr><td>په دین خپل کښې | په ناحقه | اومۀ کوئ پیروی| د خواهشاتو | د قوم |چې بې لارې شوی دی</td></tr>
<tr><td>ددین په مسئلو کښې هیڅ بیځه زیاتې مۀ کوئ |اودهغه چاد خواهشاتو تابعداری مکوئ|چې د وړاندې نه ګمراه دی</td></tr>
<tr><td>مِنْ قَبْلُ وَاَضَلُّوْا كَثِيْرًا وَّضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ ۝٧٧ ع</td></tr>
<tr><td>د مخکښې نه |اوبې لارې کړې ئې دی | نور ډیر خلق| او ګمراه شو | د نیغې لارې نه</td></tr>
<tr><td>اونور ډیر خلق ئې بې لارې کړی دی |اوپخپله هم د سمې لارې نه بې لارې شوی دی</td></tr>
</table>

**د نفع او نقصان مالک صرف الله ﷻ دې:**- الله دهغه معبودانو دعبادت نه منع کوی چه کوم دالله ﷻ نه سوا
دی چه دې ټولو خلقو ته اووایه چه کوم ستاسو نه د ضررلرې کولو او نفع درکولو لږ طاقت هم نه لری.
نو تاسو دهغې عبادت ولې کوئی؟ د ټولو خبرو آوریدونکې،د ټولو څیزونو نه باخبره ذات هیروئی اود
هغه څیزونو عبادت طرفته څئ چه کوم نه آوریدې شی او نه کتلې شی.اونه تاسو ته ضرر درکولې شی
اونه نفع،نوداسې څیزونو پسې تګ کومه عقل مندی ده ؟ ائې اهل کتاب ! د اتباع حق د حدونو نه

مخکښې مه ځئ؛ چه د چا عزت کولو حکم اوشو نو د هغه هومره عزت کوئی. الله تعالی انسانانوته د نبوت درجه ورکړې ده هغوئ د الوهیت درجې ته مه رسوئی. تاسو دحضرت عیسیٰ ﷺ باره کښې هم غلطی کوئی. اود دې هیڅ وجه نشته دې، ددې نه سوا چه تاسود خپلو پیرانو، مرشدانو استاذانو او امامانو لار خپله کړې ده، هغوئ پخپله هم ګمراه دی بلکه ګمراه کوونکی دی، د استقامت اوکله چې دوئ د عدل لار ئې پریښودې وه دهغې زمانه تیره شوه. اودوئ چې کله نه بدعتونو او ضلالت کښې اخته شوی وونوهغې هم ډیره زمانه شوې وه.

**د بنی اسرائیلو د یو عابد دهوکه کیدل:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه دوی کښې یو سړې وو چه هغه دالله ﷻ د دین ډیر زیات پابند وو. څه زمانه پس شیطان دې دهوکه کړو چه څه مخکښې خلقو کړی ووهغه ته هم کوې، په دې کښې څه دی ؟ددې په وجه خو به نه په عامو خلقو کښې ستا قدر وی او نه به دې څه شهرت وی، تاته پکار دی چه څه نوې ایجاد اوکړې، هغه خلقو کښې خورکړې، ته اوګوره چه خلقو کښې څومره شهرت پیدا کیږی. اوځنګه ځائې په ځائې ستا تذکرې کیږی. نوهغه هم داسې اوکړل. د هغه بدعتونه خلقو کښې خواره شول. او ډیرو خلقو د هغه تقلید کولو. او بیا دې په خپلو کړو ستومانه شو، ده ملك پریښودو، او خانله ئې دالله ﷻ عبادت شروع کړو. لیکن د الله ﷻ طرفنه ده ته جواب کښې اووئیلې شو که صرف ځما خطا وې نو ما به معاف کړې وې تا خو عام خلق هم ګمراه کړی دی او په غلط لار دې لګولی دی. چه په کومه لار هغوئ مری نو هغوئ به ستا په سر بوج وی. څه ستا توبه نه قبلوم. نود داسې خلقو باره کښې دا آیت مبارك نازل شو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لُعِنَ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | مِنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ | عَلٰى لِسَانِ | |
| لعنت اووئیلې شو | په هغه کسانو | چې د کفر لارئې خپله کړه | دبنی اسرائیلو نه | په ژبه | |
| دبنی اسرائیلو په هغه کسانو باندې لعنت وئیلې شوې دې (اودا (لعنت) په ژبه د | | | | | |
| دَاوٗدَ | وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ؕ | ذٰلِكَ | بِمَا | عَصَوْا | وَّكَانُوْا |
| دداود | اودعیسی خوی د مریم | دا | په دې وجه اوشوا | چې نافرمانی ئې کړې وه | او وو هغوئ |
| داود ﷺ او عیسی ﷺ کړې شوې وو | خکه چې دوئ نافرمانی کړې وه | ..............او | | | |
| يَعْتَدُوْنَ ۞ | كَانُوْا | لَا يَتَنَاهَوْنَ | عَنْ مُّنْكَرٍ | فَعَلُوْهُ ؕ | |
| چې زیاتې ئې شروع کړې وو | وو هغوئ | چې نه به ئې منع کول یوبل | دهغه بد کارنه | چې کوو به هغوئ هغه | |
| دحدنه وړاندې تیرشوی وو | دوئ چې کوم بد کارونه کول | دهغې نه په هیڅ شان نه منع کیدل | | | |
| لَبِئْسَ | مَا | كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ۞ | تَرٰى | كَثِيْرًا | مِّنْهُمْ | يَتَوَلَّوْنَ |
| ډیر بد وو | هغه کار | چې کوو به هغوئ | ته وینې | ډیرخلق | دهغوئ نه | چې دوستی کوی هغوئ |
| دوئ چه کوم کارونه کول هغه ډیربد وو | ته به په دوئ کښې ډیرکسان وینې چې هغه کسانو سره دوستی کوی | | | | |
| الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا ؕ | لَبِئْسَ | مَا | قَدَّمَتْ لَهُمْ | اَنْفُسُهُمْ |
| دهغه کسانوسره | چې کافران دی | یقینا چې ډیربد دې | هغه انجام | چې مخکښې ولیږلو خان د پاره | نفسونو دهغوئ |
| کوم چه کافران دی | ...........دوئ چې کوم عمل خان دپاره مخکښې لیږلې دې هغه ډیرخراب دې | | | | |

أَنْ سَخِطَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خَٰلِدُونَ ۝ وَلَوْ كَانُوا

چې په غضب شو الله | په هغوئ باندې | او په عذاب كښې به هغوئ | هميشه وى | او كه چرې | وو هغوئ

الله ﷻ ورته په قهر شوې دې | او دوئ به تېول عمر په عذاب كښې وى | .............. او كه چرې دوى

يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ

چې ايمان ئې راوړې وې | په الله باندې | او په نبى باندې | او په هغه څيز | چې نازل شوې وو | هغه ته

په الله ﷻ او په رسول ﷺ او هغه كتاب چه په هغه باندې نازل شوې دې ايمان راوړې وې

مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاءَ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَٰسِقُونَ ۝

نونه به وؤ نيولى دوى | كافرانو لره | دوستان | ليكن | ډير خلق | د هغوئ نه | فاسقان دى

نو كافرانو سره به ئې ملگرتيا نه كوله | او په دوئ كښې زيات خلق نافرمان دى

**بنى اسرائيلو د لعنت اسباب:-** ارشاد دې چه د بنى اسرائيلو پخوانى كافر ملعون دى. حضرت داود ؑ او حضرت عيسىٰ ؑ په ژبه د هغوئ په زمانه كښې دوى معلون شوى وو، ځكه چه دوى دالله ﷻ نافرمان وو. اوالله ﷻ په مخلوق به ئې ظلم كولو. انجيل، توراة، زبور او قران پاك تېول په دوى باندې لعنت وائى. دوى په خپله زمانه كښې يو بل په غلطو كارونو ليدل اويو طرفته به كيناستل. حرام كارونه او گناهونه به ئې ښكاره كول. اوهيڅوك يو بل لره منع كونكى نه وو. دا وود هغوئ بدترين كار.

**د نهى عن المنكر تاكيد:** مسند احمد كښې د نبى كريم ﷺ فرمان دې چه بنو اسرائيلو كله ړومبې ګناهونه شروع شو نو ددوى عالمانو دوى منع كړل. هر كله چه دوى او كتل چه دوى نه منع كيږى نو هغوئ دوى جدا نه كړل بلكه هغوئ سره به كيناستل اوخوراك څكاك به ئې ورسره كولو. الله ﷻ ددوى زړونو كښې كينه او عداوت واچولو. او د حضرت داود ؑ او حضرت عيسىٰ ؑ په خوله ئې په دوى لعنت اوكړو. ځكه چه هغوئ نافرمان او ظالمان وو. ددې بيان په وخت كښې نبى كريم ﷺ تكيه لګولې وه او بيا رانيغ شو او كيناستلو، او وې فرمائيل چه نه نه، په الله ﷻ قسم ستاسو دپاره ضرورى دى چه خلق دشريعت نه خلاف خبرو نه منع كړئ. اود شريعت پابند كوئى به ئې ([1]).

**په بنى اسرائيلو كښې اولنۍ خرابى:-** د ابوداود يو حديث مبارك كښې دى چه د ټولو نه ړومبۍ خرابى په بنى اسرائيلو كښې دا داخله شوې وه چه يو سړى به شريعت نه خلاف څه كار كولو نو هغه به ئې منع كولو. هغه ته به وئيل چه د الله ﷻ نه اوويريږه اودا غلط كارونه پريږده، دا حرام دى. ليكن كه دا سړى به منع نشونو ده سره به خلقو خوراك څكاك كولو اوده سره به ئې ميل جول ساتلو. په دې وجه ټولو كښې تنګ دلى راغله. بيا نبى كريم ﷺ دې سره ټول آيت مبارك تلاوت كړو او وې وئيل چه په الله قسم په تاسو باندې فرض دى چه د نيكو خبروهر چاته حكم كوئى اودخرابو خبرو نه ئې منع كوئى. ظالم د هغه دظلم نه منع كوئى، او هغه مجبوره كوئ چه حق ته راشى ([2]) ترمذى او ابن ماجه كښې هم دا حديث مبارك موجود دې ([3]) ابو داود وغيره كښې ددې حديث مبارك آخر كښې داهم دى كه تاسو داسې كوئى نو الله ﷻ به ستاسو زړونه هم يو بل سره مسخ كړى او تاسو باندې به هم خپل عذاب نازل كړى. ([4])

---

[1] ) احمد: ١/٣٩١،

[2] ) ابوداود كتاب الملاحم باب الامر والنهى : ٤٣٣٦،

[3] ) ترمذى كتاب التفسير القرآن باب ومن سورة المائدة: ٣٠٤٨،

[4] ) ابوداود كتاب الملاحم باب الامر والنهى : ٤٣٣٧،

لکه څنګه چه پورته نازل شو. دې باره کښې نور هم ډیر احادیث دی، هغې نه څه واورئ. حضرت جابر ﷺ والا حدیث مبارك خود آیت ﴿لَوْلَا يَنْهٰهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ﴾ تفسیر کښې تیر شوې دې. ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ﴾ الخ. تفسیر کښې به د ابوبکرصدیق ﷺ اوابوثعلبه ﷺ احادیث راشی انشاء الله.

**د نهی عن المنکر پریخودو انجام:**- مسند احمد او ترمذی کښې دی چه یا خو تاسو د نیکئ او ښیګړې حکم کوئ اود بدئ نه منع کوئ یا به الله ﷻ تاسو باندې خپل طرفنه عذاب نازل کړی، بیا به تاسو هغه نه د عاګانې غواړئ او هغه به نه قبلیږی .( ¹ )

**د نهی عن المنکر درې درجې:**- ابن ماجه کښې دی چه د نیکئ حکم کوئ او بدئ نه منع کوئ ددې نه مخکښې چه ستاسو دعاګانې قبلیدونه مخکښې مخکښې بندې شی.( ² ) صحیح حدیث مبارك کښې دی چه تاسو کښې څوك د شریعت نه خلاف کار اوګوری نو په ده فرض دی چه هغه خپل لاس سره منع کړی او که د دې طاقت ئې نه وی نوخولې سره دې منع کړی، که ددې طاقت ئې هم نه وی نو زړه سره دې بد اوګڼړی او داډیرضعیف ایمان دې ( ³ ) (مسلم).

**د عذاب عمومیت:**-مسنداحمد کښې دی چه الله ﷻ خاصو خلقو د ګناهونو په وجه عام خلق په عذاب کښې نه اچوی لیکن په هغه وخت کښې چه بدئ په دوی کښې خورې شی.اوهغوئ ددې نه باوجود قدرت نه انکار نه کوی.په هغه وخت کښې الله ﷻ ټول خلق په عذاب کښې ګرفتاروی( ⁴ ).

ابوداود کښې دی چه په کوم ځائې کښې دالله ﷻ ګناهونه شروع شی، څوك چه هلته وی او د هغه خلاف شرع کارونونه ډډه کوی.

**د مبلغ او غیرمبلغ مثالونه:**- یو روایت کښې دی چه څوك د دې انکارکوی د هغوئ مثال دهغه چا پشان دې چه هلته حاضر نه وی او چې څوک په دې ګناهونو راضی وی. اګرچې هلته موجود نه وی د هغوئ مثال دهغه چا پشان دې چه هلته حاضر وی (⁵)ابوداود کښې دی چه د خلقو عذرونه ترکومې پورې ختم شوې نه وی هغوئ به نه هلاکیږی ( ⁶ )ابن ماجه کښې دی چه نبی کریم ﷺ خپله خطبه کښې اوفرمائیل چه خبردار هیڅوك دې د حق خبرې نه منع نه کوی. د دې حدیث بیانولو نه پس حضرت ابوسعید خدری ﷺ په ژړا شو او وې فرمائیل افسوس په داسې موقعو باندې د خلقو هیبت مونږ اومنلو( ⁷ ).

**افضل جهاد:**- ابوداود ،ترمذی،او ابن ماجه کښې دی چه افضل جهاد د ظالم بادشاه مخامخ حق خبره کول دی ( ⁸ ).

ابن ماجه کښې دی چه جمره اولی سره د نبی کریم ﷺ مخکښې یو سړې راغلو او د نبی کریم ﷺ نه ئې سوال اوکړو چه د ټولو نه افضل جهاد کوم یو دې.نبی کریم ﷺ خاموش وو.بیا نبی کریم ﷺ جمره ثانیه ته راغلل نو هغه سړی بیا هغه سوال اوکړو. خوبیا هم نبی کریم ﷺ خاموش وو. هرکله چه جمره عقبه باندې کاڼړی ویشتل او په سورلئ باندې د سوریدو نو تپوس ئې اوکړو چه هغه تپوس کولو والا

---

[1] ) احمد: ٣٧٧/٥، ترمذی کتاب الفتن باب ماجاء فی الامر بالمعروف والنهی عن المنکر : ٢١٦٩، وهو حسن.

[2] ) ابن ماجه کتاب الفتن باب الامر بالمعروف والنهی عن المنکر :٤٠٠٤، وهو حسن احمد: ١٥٩/٦.

[3] ) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان کون النهی عن المنکر من الایمان : ٤٩، ابوداود: ١١٤٠، ترمذی: ٢١٧٢، ابن ماجه: ١٢٧٥، احمد: ١٠/٣ ابن حبا: ٣٠٦.

[4] ) احمد: ١٩٢/٤، ،الزهد: ١٣٥٢، المعجم الکبیر: ٣٤٤.

[5] ) ابوداود کتاب الملاحم باب الامر والنهی عن المنکر : ٤٣٤٥، وسنده حسن.

[6] ) ابوداود حواله سابق. ٤٣٤٧، وسنده حسن.

[7] ) ترمذی: کتاب الفتن باب ماخبر النبی ﷺ ٢١٩١، مطولا.ابن ماجه: ٤٠٠٧، حاکم: ٥٠٦/٤، مسند الطیالسی : ٢١٥٦.

[8] ) ابوداود کتاب الملاحم باب الامر والنهی : ٤٣٣٧، وهوحسن ابن ماجه: ٤٠١١.

چرته دې ؟ هغه سړی اونیل چه یارسول الله ﷺ ا څه حاضر یم.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د ظالم مخکښې حق خبره کول افضل جهاد دې (١).

**خپله بې عزتی کول**:- ابن ماجه کښې دی چه تاسوکښې هیچا ته نه دی پکار چه خپله بې عزتي اوکړي. خلقو تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ هغه څنګه ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خلاف شرع کاراوګوري اودې څه او نه وائي.د قیامت په ورځ به د ده نه تپوس کیږي چه په فلانئ موقع ته ولې خاموش وې ؟ دې به جواب ورکړي چه د خلقودویرې د لاسه.الله ﷻ به اوفرمائي چه څه د ټولونه زیات حقدار ووم چه خمانه دې ویریره کړې وې (٢).

یوروایت کښې دې چه کله الله ﷻ ده ه د خپل طرف نه د جواب تلقین اوکړي نو به اووائي چه ستانه خما امید وو (چې ته به راته په دې نه منع کولو عذاب رانکړې) اود خلقو نه ویریدم(٣)مسند احمد کښې دی چه مسلمانان دپاره خپل ځان په خپله ذلیل کول نه دی پکار. خلقو تپوس اوکړو چه څنګه ؟ وې فرمائیل هغه تکلیفونه په خپل سر اخستل چه دکومو د برداشت طاقت ئې نه وی.(٤)

**امربالمعروف کله پریخودې شي؟**:-ابن ماجه کښې دی چه نبی کریم ﷺ نه سوال اوشو چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر کله پرېښودې شي ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په هغه وخت کښې چه کله په تاسو کښې هغه څیز ظاهرشي کوم چې ستاسونه مخکښې خلقو کښې ظاهر شوی وو. مونږ تپوس اوکړو چه هغه څه څیز وو؟وې فرمائیل ①چه دکمینه سړې سلطنت چلوی② په لویو سړو کښې بدکاری راشي،③رذیلانو کښې علم راشي.حضرت زید ﷺ وائي چه په رذیلانو کښې د علم راتلو نه مراد فاسقانوکښې علم راتلل دی (٥)ددې حدیث مبارك شاهد ابوثعلبه ﷺ والا حدیث مبارك دې چه ددې آیت ﴿لایضرکم﴾ تفسیر کښې به راشي إنشاء الله.

تَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۞

**د منافقانو کافرانو سره دوستی**:- بیا فرمائي چه ته اکثر منافقان اوګورې چه هغوئ به کافرانو سره دوستئ کوی،د هغوئ ددې فعل په وجه یعنی مسلمانانو سره د دوستئ پرېښودو او کافرانو سره د دوستئ کولو په وجه هغوئ ځان دپاره خرابه ذخیره جمع کوی.هم په دې وجه به ددوی په زړونوکښې نفاق پیدا شي. اوپه دې وجه به په دوی باندې دالله ﷻ عذاب نازل شي. او په قیامت کښې د دائمی عذاب بیان هم مخکښې راځي.

**د زنا شپږ خرابئ**:- ابن ابی حاتم کښې دی چه ائې مسلمانانو اد زناکارئی نه ځان اوساتئی دې سره شپږ خرابئ راځي.درې دنیاکښې اودرې آخرت کښې.(ددنیا درې دادی)① دې سره دعزت او وقار رونق او تازګی لاړه شي.② دې سره فقر او فاقه راځي.③ دې سره عمر کمیږي. دآخرت درې خرابئ دا دی.① دالله ﷻ غضب ② د حساب اوکتاب سختی اوبرائی ③ د جهنم خلود.بیا نبی کریم ﷺ دا آخری جمله تلاوت اوفرمائیله.(٦) دا حدیث ضعیف دې والله اعلم.

**قوله تعالی**: وَلَوْ كَانُوْا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالنَّبِيِّ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوْهُمْ اَوْلِيَآءَ

---

(١) ابن ماجه کتاب الفتن باب الامر بالمعروف والنهی عن المنکر: ٤٠١٢، وسنده حسن.

(٢) ابن ماجه کتاب الفتن،باب الامر بالمعروف والنهی عن المنکر : ٤٠٠٨.

(٣) ابن ماجه کتاب الفتن ،قوله تعالی (یاایهاالذین امنوا علیکم انفسکم ) ٤٠١٧.

(٤) احمد: ٤٠٥/٥، ترمذی کتاب الفتن وسنده حسن باب لایعترض من البلاء لایطیق : ٢٢٥٤. ابن ماجه: ٤٠١٦.

(٥) ابن ماجه کتاب الفتن ،قوله تعالی (یاایهاالذین امنوا علیکم انفسکم ) ٤٠١٥. وسنده حسن.

(٦) شعب الایمان : ٥٤٧٥، حلیة الاولیاء :١١١/٤، الموضوعات: ١٠٧/٣.

بیا فرمانی که دې خلقو په الله تعالی، د هغه په رسول ﷺ او په قران پاك پوره پوره ایمان راوړې وې نو بالکل به نې کافرو سره دوستی نه کولې او چپ په چپ به وو او دې خلقو سره به نې میل جول نه ساتلو.او نه به نې ریښتونی مسلمانانو سره دښمنئ ساتله.اصل خبره دا ده چه په دوی کښې اکثر خلق فاسقان دی.یعنی الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ اطاعت نه خارج شوی دی.د هغه د وحی اود هغه د پاك کلام دآیتونو مخالف شوی دی .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَتَجِدَنَّ | اَشَدَّ النَّاسِ | عَدَاوَةً | لِّلَّذِيْنَ | اٰمَنُوا |
| خامخا به تهٔ بیا مومې | زیات سخت خلقو نه | په دشمنی کښې | دهغه کسانو سره | چې ایمان نې راوړې دې |
| تهٔ به مسلمانانو سره په دشمنئ کولو کښې د ټولونه زیات ............ | | | | |
| الْيَهُوْدَ | وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا | وَلَتَجِدَنَّ | اَقْرَبَهُمْ | |
| یهودیان | او(بل) هغه کسان چې مشرکان دی | اوخامخا به تهٔ بیا مومې | د ټولو نه زیات نزدې | |
| یهودیان او مشرکان بیامومې ............ اومسلمانانو سره په دوستئ | | | | |
| مَّوَدَّةً | لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا | الَّذِيْنَ | قَالُوْا | اِنَّا |
| په محبت کښې | دهغه کسانو سره چې ایمان نې راوړې دې | هغه کسان | چې وائی | بیشکه مونږ |
| ساتلو کښې به د ټولو نه نزدې هغه کسان مومې چې ځان ته ............ | | | | |
| نَصٰرٰى | ذٰلِكَ | بِاَنَّ | مِنْهُمْ | قِسِّيْسِيْنَ |
| نصاری یو | دا | په دې وجه | چې بیشکه ځینی دهغوئ نه | عبادت گزاره عالمان دی |
| نصاری وائی ځکه چې په دوئ کښې عالمان | | | | |
| وَرُهْبَانًا | وَّاَنَّهُمْ | لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٨٢﴾ | | |
| اودنیا پرېښې فقیران دی | اوبیشکه هغوئ | تکبر لوئی اوغرورنهٔ کوی | | |
| اودرویشان موجود دی ............ اودوئ تکبر نهٔ کوی | | | | |

**د نجاشي او د هغه د ملګرو بیان:-** دا ایت مبارك اودې نه پس څلور ایتونه د نجاشي اود هغه د ملګرو باره کښې نازل شوی دی.هرکله چه حبشه کښې د هغه مخکښې حضرت جعفر طیار بن ابی طالب ؓ قران پاك اولوستلو نودهغه د سترګو نه اوښکې روانې شوې.او دومره ئې اوژړل چه د هغوئ ږیرې لمدې شوې.خو دا یاد ساتئ چه دا آیتونه په مدینه منوره کښې نازل شوی دی.اود حضرت جعفر ؓ دا واقعه د هجرت نه مخکښې ده. دا هم مروی دی چه دا آیتونه د هغه وفد باره کښې نازل شوی دی چه کوم وفد نجاشئ نبی کریم ﷺ طرفته رالیږلې وو چه تاسو هغوئ سره ملاقات اوکړئ اود نبی کریم ﷺ صفات او حالات معلوم کړئ.اود نبی کریم ﷺ کلام واورئ.هرکله چه دوی راغلل او نبی کریم ﷺ سره ملاؤ شو اود نبی کریم ﷺ د ژبې مبارکې نه ئې دا کلام واوریدو نو د هغوئ زړونه نرم شو اوډیر زیات ئې اوژړل.اواسلام ئې قبول کړو.اوچه واپس شو نو نجاشی ته ئې ټول حالات اووئیل (۱). نجاشی خپل سلطنت پرېښود اونبی کریم ﷺ طرفته ئې هجرت اوکړو خو په لاره کښې وفات شو. خو صحیح روایاتو نه ثابت دی چه هغه په حبشه کښې خپل سلطنت کښې وفات شوې وو. د هغه د وفات په

۱) الطبراني: ۱۰/ ۵۰۰.

ورځ نبی کریم ﷺ صحابه کرام ﷢ ته د هغه د وفات خبر ورکړې وو. اود هغه غائبانه د جنازې مونځ ئې کړې وو (١).

**د دې کسانو شمار:** بعضو روایتونو کښې دی چه په دې وفدکښې خو اووه (٧)عالمان وو او پنځه زاهدان وواو یا پنځه عالمان او اووه زاهدان وو. بعضې وائی چه دا ټول پنځوس کسان وو.او ویلې شوی دی چه د شپیتونه لږ زیات وو. یو قول کښې دا هم دی چه دا اویا کسان وو. والله اعلم.حضرت عطاء ﷫ فرمائی چه د دا صفتونه په دې آیت مبارك کښې بیان شوی دی هغه اهل حبشه وو. هرکله چه مسلمانان مهاجرین دوی ته اورسیدل نو دوی ټول مسلمانان شوی وو(٢)حضرت قتاده ﷫ فرمائی دوی مخکښې په دین عیسوی قائم وو. لیکن هرکله چه هغوئ مسلمانان اوکتل اوقران پاك ئې واوریدو نو مسلمانان شول.

دابن جریر فیصله دا ټول اقوال صحیح کوی او فرمائی چه دا آیتونه د هغه خلقو باره کښې نازل شوی دی چه په چا کښې دا اوصاف وی.که هغه د حبشې وی یادبل چرته وی. دیهودیانو چه د مسلمانانو سره کومه دښمنی ده د هغې وجه دا ده چه په هغوئ کښې دسرکشئ او انکار ماده زیاته ده.او په قصد به ئې کولو.اودضد نه به په ناحق ولاړ وو.د حق مقابله کښې کلك ولاړ دی.حق پرستو ته په سپک نظر ګوری اوهغوئ سره کینه او بغض ساتی.د علم رنړا دوی سره نشته دی.د علماء تعداد په دوی کښې ډیرکم دی.اودعلم او ذی علم وقعت د دوی په زړونو کښې نشته.هم دا وجه وه .چه دوی ډیر نبیان قتل کړی وو.اودحضرت محمد ﷺ د قتل کولو اراده ئې هم کړې وه.اویو ځل نه بلکه باربار ئې نبی کریم ﷺ ته زهر ورکړل.په نبی کریم ﷺ ئې جادو اوکړو اود خپل ځان په شان باطل خلق ئې خپل ځان سره یوځائې کړل په نبی کریم ﷺ باندې ئې حمله اوکړه. لیکن الله ﷻ هرځل هغوئ نامراد اوناکام کړل

**د یهودیانو مسلمانانو سره دشمنی:-** ابن مردویه کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه کله به هم یو یهودی یو مسلمان یواخې اولیدو نو د هغه په زړه کښې به د هغه دقتل کولو قصد پیدا کیدو. یو بل سند سره هم دا حدیث مروی دی لیکن هغه هم ډیر غریب دی.

**عیسایان مسلمانانو ته د یهودو په نسبت نزدې دی:-** خومسلمانانو سره دوستئ کښې ډیر نزدې هغه خلق دی چه په خپله نصرانیان دی.دحضرت مسیح ﷺ په ریښتیا تابعداردی.دانجیل په اصلی او صحیح طریقه قائم دی،په دوی کښې یوحد پورې مسلمانانو سره اواسلام سره محبت دې،دا په دې وجه چه په دوی کښې نرم دلی ده لکه څنګه چه الله ﷻ ارشاد فرمائیلې دې.﴿وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً﴾ یعنی کوم خلق چه د حضرت عیسیٰ ﷺ تابعداردی د هغوئ په زړونو کښې مونږ نرمی او رحم اچولې دې.د هغوئ په کتاب کښې حکم دې چه تاسو ته څوک یو مخ څپیړه درکړی نو بل مخ ورته راواړونی.د دوی په شریعت کښې هیڅ جنګ نشته.

**مسلمانانو سره دحق پرستو عیسایانو د دوستئ وجه:** دلته ددوی د دوستئ وجه دابیانوی چه په دوی کښې خطیبان او واعظان دی.د ﴿قسیس﴾ او﴿قس﴾ جمع﴿قیسین﴾ده او د﴿سوس﴾ هم ده﴿رهبان﴾ د ﴿راهب﴾جمع ده. راهب عابد ته وائی.دا لفظ مشتق دې درهب نه او د رهب معنی ده ویره اوخوف،لکه څنګه چه د ﴿راکب﴾ جمع ﴿رکبان﴾ ده. او د ﴿فارس﴾ جمع ﴿فرسان﴾ ده .امام ابن جریر ﷫ فرمائی چه کله ﴿رهبان﴾ د واحد دپاره راخی.نود دې جمع ﴿رهابین﴾ راخی. لکه ﴿قربان﴾ او ﴿قرابین﴾ او ﴿جوزان﴾ او ﴿جوازین﴾او کله د دې جمع ﴿رهابنة﴾ هم راخی. دعربو شعرونو کښې هم لفظ د ﴿رهبان﴾ واحد دپاره

---

(١) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب الصفوف علی الجنازة: ١٣١٨، صحیح مسلم : ٩٥١.

(٢) الطبران : ٥٠١/١٠.

راغلي دي. حضرت سلمان ﷺ ته یو سړي ﴿قسیسین ورهبانا﴾ وائی اوددې معنی دریافت کوی نو هغه ورته فرمانی چه ﴿قسیسین﴾ په خانقاهونو او غیرآباد خایونو کښې پریږده، ما ته نبی کریم ﷺ ﴿صدیقین و رهبانا﴾ ونیلی دی (١) (بزار وابن مردویه) الغرض ددوی درې اوصاف بیان شو. په دوی کښې د علماء کرامو کیدل، د عابدانو کیدل، په دوی کښې تواضع او عاجزی.

(الحمد لله) د تفسیر ابن کثیر شپږمې پارې ترجمه ختمه شوه.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذَا | سَمِعُوْا | مَآ | اُنْزِلَ | اِلَى الرَّسُوْلِ | تَرٰٓى | اَعْيُنَهُمْ |
| او کله چی | واوری هغوئ | هغه کلام | چی نازل شوې دې | رسول ته | ته وینې | سترګی دهغوئ |

اوچې کله هغه کلام واورې چې پیغمبر ته نازل شوې دې | ........... نو ته وینې چه ددوئ سترګې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَفِيْضُ | مِنَ الدَّمْعِ | مِمَّا | عَرَفُوْا | مِنَ الْحَقِّ | يَقُوْلُوْنَ | رَبَّنَآ |
| چی بهیږی | داوښکو نه | په وجه ددې | چی پیژندلي دي هغوئ | حق | وایې هغوئ | اې ربه زمونږه |

داوښکو نه ډکې شی | خکه چې حق خبره ئې پیژندلې ده (چه قرآن دې) | ...... وائی چې ائې ربه زمونږه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اٰمَنَّا | فَاكْتُبْنَا | مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٨٣﴾ | وَمَا لَنَا | لَا نُؤْمِنُ |
| ایمان راوړې دې مونږه | نواولیکه مونږه | دګواهی کونکوسره | اوڅه شوی دی په مونږ | چی ایمان به نه راوړو مونږ |

مونږ ایمان راوړې دې | نومونږه ګواهی کونکو کښې شمیر کړه | او آخر مونږ ولې ایمان نه راوړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِاللّٰهِ | وَمَا | جَآءَنَا | مِنَ الْحَقِّ | وَنَطْمَعُ | اَنْ يُّدْخِلَنَا |
| په الله باندې | اوپه هغې څه | چی راغلي دي مونږ ته | چه حق دې | اوحال دا چی طمع لرو | چې داخل به کړی مونږ |

په الله ﷻ باندې او چې کوم حق مونږ ته راغلې هغه ولې نه منو؛ هرکله چې دا طمع ساتو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَبُّنَا | مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٤﴾ | فَاَثَابَهُمُ | اللّٰهُ | بِمَا | قَالُوْا |
| رب زمونږ | دنیکانو خلقو سره | نوورکړه بدله هغوئ ته | الله | په سبب دهغه | چی ونیلی وو هغوئ |

چې الله ﷻ به مونږ دنیکانو په ډله کښې شامل کړی | ............ ددې وینا په وجه به ورته الله ﷻ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | وَذٰلِكَ | جَزَآءُ |
| جنتونه | چی بهیږی | لاندې د هغې نه | نهرونه | چی همیشه به وسیږی | په هغې کښې | او دا | بدله ده |

داسې باغونه ورکړی | چې دهغې لاندې به ولې بهیږی او تل ترتله به په هغې اوسیږی | او بیشکه هم دغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٨٥﴾ | وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَكَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِنَآ | اُولٰٓئِكَ |
| دنیکانو خلقو | اوهغه کسان | چی انکار ئې اوکړو | اودروغ ئې اوګنړل | آیتونه زمونږه | دغه کسان |

دنیکانو بدله ده | اوچا چې انکار اوکړوا اوزمونږ آیتونه ئې دروغ اوګنړل | ............ نوهم دغه خلق

---

(١) مجمع الزوائد: ١٧/٧، طبرانی: ٦١٧٥، هشیمی وائی چې دې روایت کښې یحیی بن عبدالحمید الحمانی او نصیر بن زیاد ضعیف راویان دی. اوګورئی (مجمع الزوائد حواله بالا).

| |
|---|
| أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَحِيمِ |
| خاوندان \| ددوزخ دي \| |
| دوزخيان دي |

قوله تعالى: وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ

**اهل ایمان چه کله قرآن اوري نو د هغوی زړونه نرم کیږي :-** اوچه کله به هغوی په رسول الله ﷺ باندې نازل شوې وحي اوري نو ته به هغوی ته ګورې چه سترګې به نې د اوښکونه ډکې وي. خکه چه هغوی بشارت پیژندلې دې چه د محمد ﷺ د بعثت سره متعلق هغوی په خپلو کتابونوتورات او انجيل کښې کتلې وه. نو هغوی اونيل چه اې ربه مونږ په محمد ﷺ باندې ایمان راوړې دې مونږ هم په هغه ټولګی کښې شامل کړه چا چه ګواهي ورکړې او ایمان نې راوړې دې. عبدالله بن زبير ﷺ وائي چه دا آيت د نجاشي اوهغه دملګرو متعلق نازل شوې.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي ﴿مَعَ الشَّاهِدِينَ﴾ نه حضرت محمد ﷺ اودهغه امت مراد دې. چا چه د خپل نبي د پاره ګواهي ورکړې ده چه نبي د تبليغ حق ادا کړې دې اود رسول الله ﷺ نې هم ګواهي ورکړې ده چه هغه د تبليغ فرضه ادا کړې ده.[1] حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه ﴿تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ﴾ نه هغه کرونده ګرې مراد دی کوم چه حضرت جعفر ﷺ بن ابی طالب سره د حبشه نه راغلي وو او چه کله رسول الله ﷺ قرآن واورولو نو هغوی ایمان راوړلو او د هغوی په سترګوکښې اوښکې راغلې. رسول الله ﷺ هغوی ته اوفرمائيل چه کله تاسو خپل وطن ته لاړشئ نو واپس به خپل مذهب ته خو نه اوړئ؟[2] هغوی ونيل چه مونږ به د دې خپل دين چرې هم نه اوړو. نو الله ﷻ د هغوی دا وينا داسې بيان اوفرمائيله﴿وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا جَاءَنَا مِنَ الْحَقِّ وَنَطْمَعُ أَن يُدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصَّالِحِينَ﴾ يعنی آخر مونږ ولې ایمان راونړو په الله ﷻباندې اود هغه په وحي باندې . زمونږ بالکل خواهش دې چه زمونږ رب مونږ د صالحينو په قوم کښې داخل کړي. دا نصاری خلق وو د چا ذکر چه الله ﷻداسې فرمائيلې دې. چه په اهل کتابو کښې داسې خلق هم شته چه د دې نه وړاندې نې هم په انجيل ایمان راوړې وو او چه کله به قرآن په هغوی باندې تلاوت کولې شو نووئيلې به نې چه دا د الله ﷻد طرف نه حق دې. مونږ خود اول نه مسلمانان يو[3] په دې وجه دلته الله ﷻ فرمائي چه د دوی د دې اعتراف په سبب به دوی له جنتونه ورکولې شي. په کوم کښې چه به د اوبو چينې بهيږي، دا د هغوی د ایمان او تصديق صله او بدله ده. هغوی به په دې جنتونو کښې د هميشه د پاره وي د هغه ځاې نه به د يو ساعت د پاره نه اوځي. د حق اتباع کونکو هم دغه بدله ده.څنګه چه هم هغوی وي او چرته چه هم وي او يا چا سره هم چه وي هغوی د دې بدلې حقدار دی. دې نه پس د بدبختانو خبر ورکولې شي چاچه کفر کړې او زمونږ آياتونه نې دروغ ګڼړلي هغه ټول دوزخيان دي.

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحَرِّمُوا۟ طَيِّبَٰتِ مَآ |
| \|اې هغه کسانو\|چې ایمان مو راوړې دی\| مۀ حراموئ تاسو\| پاك څیزونه\| هغه |
| انې دایمان خاوندانو الله ﷻ چې ستاسودپاره کوم پاکيزه څیزونه حلال کړي دي\| |

[1] حاکم : ۳۱۳/۲، وصححه الحاکم
[2] المعجم الكبير : ۱۲٤۵۵،
[3] ۲۸ القصص : ۵۲، ۵۳.

أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴿۸۷﴾

چې حلال کړي دي الله|ستاسو دپاره||اومه اوړئ دحد نه |بیشکه چې الله |نه خوښوي|دحد نه اوړیدونکي

هغه په ځان مه حراموئ او د حد نه بهر مه اوځئ بیشکه زیاتی خور خلق د الله ﷻ نه دي خوښ

وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي

اوخورئ| دهغې رزق نه|چې درکړې دې تاسو ته الله|حلال پاك||اوځان ساتئ دنافرمانۍ| دالله نه | هغه

اوالله ﷻ چې تاسوته کوم پاك څيزونه درکړي هغې نه خورئ| اودهغه الله ﷻ نه ويريږئ په کوم چه

أَنْتُمْ بِهِ مُؤْمِنُونَ ﴿۸۸﴾

چې تاسو| په هغه| ایمان لرونکي یئ |

تاسوایمان راوړې دې|

قوله تعالى:: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ

**دخپل طرف نه یوڅیزحلال یاحرام کولو ممانعت:-** د حضرت ابن عباس ؓ نه روایت دې چه دا آیت د نبي ﷺ صحابه کرام په یوه ډله کښې نازل شوهغوی وئیلې وو چه مونږ خپل اندامونه پریکوو او ترك شهوت کول غواړو او داسې د راهبانو غوندې به اخوادیخوا ګرځو او د دنیا نه به بالکل بې پرواه شو. نبي کریم ﷺ ته چه کله دا خبر اورسیدلو نو هغوی ئې راوغوښتل او تپوس ئې ترې اوکړو چه تاسو داسې وئیلي دي نو هغوی اووئیل چه او زمونږ داسې اراده ده. نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه ګورئې زه روژه هم ساتم او نه ئې افطار کوم. د شپې مونځ هم کوم او اوده کیږم هم، ښځو سره نکاح هم کوم او راهب جوړشوې هم نه ګرځم، څوك چه زما په طریقه روان شو هم هغه زما نه دې او څوك چه زما طریقه اختیار نه کړي هغه زمانه نه دې.(۱)

**درهبانیت اختیارولو اراده ښکاره کول:-**حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه بعض صحابه کرامو د رسول الله ﷺ دکورنی پټ عملونو باره کښې د بعض بیبیانو نه د څه سوالونو تپوس اوکړو(نود حضرت ﷺ د شپې ورځې د عبادت حال به ور معلوم شوې وی) نو په هغوی کښې یو کس اووئیل چه د نن نه به غوښه نه خورم، چا وئیل چه زه به کله هم ښځې ته نزدې نه شم، چا وئیل په زمکه به خاورو کښې اوده کیږم چرې به هم په بستره اوده نه شم. دا خبر حضور ﷺ ته اوشو نو هغوی ﷺ اوفرمائیل چه په دې خلقو څه چل شوې؟ څوك دا وائي څوك هغه وائي. زه خو روژه نیسم اوافطار هم کوم، اوده کیږم هم او مونځ هم کوم. غوښه هم خورم اونکاح هم کوم. څوك چه زما د طریقې نه اخوا شو هغه زما نه نه دې(۲)د حضرت ابن عباس ؓ نه روایت دې چه یو سړې حضور ﷺ له راغلو او وئې وئیل چه زه کله غوښه خورم نو ډیر زیات شهوت راپیدا کیږي په دې وجه ما په خپل ځان غوښه حرامه کړه، نو دا آیت نازل شو د ایمان خاوندانو د الله ﷻ حلال کړې شوی څیزونه په ځان مه حرامه وئی.

**دځان خصی کولو اجازت غوښتل:**(۳)حضرت عبدالله بن مسعود ؓ فرمائی چه مونږ نبی کریم ﷺ سره په جنګ کښې د اوږدې مودې راسې وو او مونږ سره ښځې نه وې. کله چه مونږ ته اوسیدل ګران معلوم

(۱) الطبری : ۵۱۸/۱۰ بدون الاية.
(۲) صحیح بخاری کتاب النکاح باب الترغیب ق النکاح : ۵۰۶۳، صحیح مسلم: ۱۴۰۱، احمد: ۲۴۱/۳، ابن حبان: ۱۴.
(۳) ترمذی کتاب تفسیر القرآن ،ومن سورة المائدة : ۳۰۵۴،.

شول نومونږ دحضور ﷺ نه تپوس اوکړو چه ایا مونږ خانونه خصیان کړو چه هډو خواهش مو نه پیدا کیږی نوهغوی ﷺ مونږ منع کړلو او مونږ ته نې د یوې کپړې یا یوې جوړې په عوض د یو موقتی نکاح اجازت راکړو، بیا حضرت عبدالله ﷺ دا آیت تلاوت کړو اې د ایمان خاوندانو د الله ﷻ حلال کړې شوی ځیزونه په ځان مه حرامه ونی[1]خو داواقعه د نکاح متعه دحرام ګرځولو نه وړاندې ده. والله اعلم.

**دکهیر خوړلونه قسم کول**:-حضرت عبدالله بن مسعودﷺ له د یوخ شوې کهیر تحفه راغله، خلق یوځاۍ کیناستل او خوراك نې کولو نو یو سړې د مجلس نه اخوا شو. حضرت عبدالله ﷺ اوفرمائیل راشه اوخوره نو هغه ونیل چه زما خو د دې د خوړلو نه قسم کړې. هغوی اوفرمائیل راشه اوخوره قسم مات کړه او کفاره ورکړه، بیائې دا آیت تلاوت کړو. (۲)

**دملیمه دمیلمستیا خیال ساتل**:- وانی چه عبدالله بن رواحهﷺ یو میلمه ته دعوت ورکړو لیکن د حضور ﷺ په مجلس کښې د حصاریدو په وجه ناوخته شو. کور ته چه راغلونو معلومه شوه چه په میلمه نې انتظارکړې دې او خوراك نې پرې نه دې خوړلې نو ښځې ته غصه شو او ونی ونیل زما د پاره تامیلمه اوږې اوساتلو په ماباندې نن خوراك حرام دې. ښځې ونیل چه په ما باندې هم حرام دې زه نې هم نه خورم. میلمه چه دا اوکتل نو هغه ونیل چه په ما باندې هم حرام دی زه نې هم نن نه خورم. حضرت عبدالله ﷺ چه دا اوکتل نو ډیر پریشانه شو او بیائې لاس وروړاندې کړو او خوراك ئې شروع کړو، او ونی فرمائیل چه بسم الله اووائې او تیول شروع کړئی. دا خبر حضرت ﷺ ته اورسیدو نو دا آیت نازل شو. دا حدیث اثر منقطع ګنړلې شی.صحیح بخاری کښې هغه حدیث کوم کښې چه د صدیق اکبرﷺ واقعه اود هغه د میلمه ذکر دې هغه هم د دې په شان ده (۳)،

**د جائز ځیز حرامولو نه پس د هغې په خوراک د کفارې د وجوب حکم**:- ① دحلالو حرامول او د حرامو حلاول هم یو قسم له قسم دې. هغه او دا دواړه قصې د دې خبرې دلیل دې ځنګه چه د امام شافعی رحمه الله وغیره علماؤ مسلك دې چه چا په خپل ځان باندې یو لباس خوراك یا ښځه پریخودل او یا څه ځیز حرام کړو نو هغه حرامیږی نه اونه د هغې کفاره شته، ځکه چه الله ﷻ اوفرمائیل د الله ﷻ حلال کړې شوې ځیز په خپل ځان به مه حرامه ونې. هم دغه خو وجه ده چه چا په خپل ځان باندې غوښه حرامه کړې وه هغه ته نبی اکرم ﷺ د کفارې ورکولو حکم نه وو ورکړې. ② خو امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمانی چه چا په ځان باندې خوراك لباس یا څه بل څه ځیز حرام کړونود قسم کفاره به ادا کوی. ځکه چه کله یو سړې د قسم په ذریعه د یو ځیز پریخودل په ځان لازم کړل نو چه ځنګه د قسم کفاره لازم راځی دغه شان به بغیرد قسم نه د مجرد تحریم نه هم غیرلازم ته لازم ګرځولو په وجه د ده نیول پکار دی چه د کفارې په صورت کښې کیدی شی. حضرت ابن عباس ﷺ هم داسې فتوی ورکړې ده. هغوی فرمانی چه د الله ﷻ د قول نه هم دا معلومیږی. ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ﴾ او وې فرمائیل ﴿قَدْ فَرَضَ اللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ﴾ یعنی اې نبی د خپلو بیبیانو د خوشحالولو دپاره الله ﷻ چه کوم ځیزونه په تاباندې حلال کړی دی هغه ولې په خپل ځان باندې حرام کوې. الله ﷻ غفور او رحیم دې.

**د حلال ځیز نه قسم ماتول او د قسم کفاره ورکول دی**

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر : باب ﴿ یاایهاالذین امنوا لاتحرموا طیبات ماأحل الله لکم﴾ : ۴۶۱۵. صحیح مسلم ۱۴۰۴. بیهقی : ۷۹/۷. ابن حبان : ۴۱۴۱.

[2] حاکم : ۳۱۳/۲.

[3] صحیح بخاری کتاب الادب باب مایکره من الغضب والجزع عند الضعف : ۶۱۴۰. صحیح مسلم: ۲۰۵۷.

**مسلک حنفي:**- داحنافو په نیز د حلال ځیز نه قسم خوړلو نه پس په ده باندې د قسم ماتول واجب دی او چې قسم مات کړی نو د قسم کفاره به ورکوی (معارف القرآن ۱۸/۴۹۹)۔

بیا فرمائي چه الله ﷻ په تاسو باندې فرض کوی چه خپل قسمونه مات کړئی. دلته د پورته ذکر شوی آیت ذکر کولو نه پس د قسم د کفارې ذکر اوفرمائیلو. د دې نه دا خبره ثابته شوه چه د یمین یعنی قسم ذکر نه هم وی او په خپل خان نې حرام کړی وی نو بیا هم د کفارې حقدار کیدو کښې په منزله د قسم دې. والله اعلم. د مجاهد رحمه الله نه روایت دې چه بزرګان صحابه لکه عثمان بن مظعون رضی الله عنه او عبدالله بن عمر رضی الله عنه اراده اوکړه چه ترک دنیا اوکړی. ځانونه خصیان کړی او د ټاټ نه علاوه بل هیڅ وانه غوندی، نو مذکوره آیت نازل شو، د کوم په آخر کښې چه داسې اوفرمائیل چه په الله ﷻ باندې مو ایمان راوړې نود هغه نه اوویریږئی.

د حضرت عکرمه رضی الله عنه نه روایت دې چه عثمان بن مظعون رضی الله عنه او علی رضی الله عنه بن ابی طالب، ابن مسعود رضی الله عنه، مقداد بن اسود رضی الله عنه، سالم مولی ابوحذیفه رضی الله عنه، دوی د ترک دنیا اراده اوکړه: په کوروکښې کیناستل، ښځې پریخودې، ټاټونه نې واغوستل، د خوراک ښناك ټول ښه ښه ځیزونه نې په خپل خان حرام کړل، د بنی اسرائیلو د راهبانوغوندې خوراك ښناك نې اختیار کړو، د خصی کیدو اراده نې اوکړه، اتفاق نې اوکړو چه ټوله شپه به مونځونه کوو، ټوله ورځ به روژې ساتو، نو دا آیت نازل شو چه د الله ﷻ پاك ځیزونه په خپل خان مه حرام کوئی، د حدنه مه وړاندې کیږئی، مونږ داسې خلق هیڅ کله نه خوښوو، دا د مسلمانانو طریقه نه ده چه د ښځو نه جدا اوسیدل، ښه خوراك ښناك او ښه لباس پریخودل، ټوله شپه ویښیدل، ټوله ورځ روژه نیول، خصی کیدل دا ټول غلطې طریقې دی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه په تاسو باندې ستاسو د نفس هم حق دې. کله نفلی روژه ساته اوکله مه ساتئ، کله مونځ کوه او کله اوده کیږه، که زمونږ دا طریقه دې پریخوده نو زمونږ نه نه ئې. دې اوریدو سره ټولو اووئیل اې الله مونږ د دې خپلو ارادو نه بچ کړې او د وحی د اتباع توفیق راکړې.

نبی کریم ﷺ یو وخت کښې تذکیر او تنبیه کولو سره پاسیدو او صرف د الله ﷻ د عذاب نه نې ویرول اوکړه نو د نبی کریم ﷺ په صحابه کرامو کښې لس کسان وو چه په هغې کښې حضرت علی رضی الله عنه هم وو. عثمان بن مظعون رضی الله عنه هم وو. وئی وئیل که چرې نصاری او راهبان په خپل خان باندې عیش او آرام په خپل خان حرام کولې شی نومونږ خود هغوی نه د دې زیات حقدار یو. بعض خلقو په خان غوښه او چربی حرام کړه، بعض خوب او بعضې ښځې حرام کړې. ابن مظعون رضی الله عنه په خپل خان باندې ښځه حرام کړې وه، نه به دې کورته تلو او نه به نې بی بی ده ته راتله. اوس د هغه بی بی حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ته راغله. حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها سره د نبی کریم ﷺ نورې بیبیانې هم ناستې وې. حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها تپوس اوکړو اې حولاء دا په تا څه چل شوې چه د مخ رنګ دې زیړ دې. نه ګمنزه شته او نه دې کمسئ کړې دی، نه دې تیل مخلی دی اونه د عطر لګولی دی؟ نو هغې وئیل چه ګمنز او تیل کولو باندې به څه اوکړم، زما خاوند نه په ما راپریوزی او نه زما نه لړه شان کپړا اوچتوی. ټولو چه دا خبره واوریده نو په خندا شوې. په دې کښې رسول الله ﷺ تشریف راوړو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه دا ټولې ولې خاندئې؟ نو هغوی اووئیل اې رسول الله ﷺ دا حولاء داسې وائي. نو هغوی ﷺ عثمان بن مظعون رضی الله عنه راوغوښتو اوورته نې اوفرمائیل تا څه کړی. هغه وئیل ما دا عیش د الله ﷻ دپاره پریخې دې چه د عبادت د پاره خاص شم بلکه زما خو اراده ده چه خپل خان خصی کړم. حضور ﷺ اوفرمائیل ستا دې په الله باندې قسم وی چه داسې اونه کړې زر کور او بی‌بی سره ملاوشه. هغه وئیل اې رسول الله ﷺ زما خو روژه ده. حضور ﷺ اوفرمائیل روژه ماته کړه. هغه دا

تولي خبرې پوره کړې. اوس حولاء حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها لت راغله. کمنزه، رانجه او عطرلګولي، حضرت عائشه صدیقه رضی‌الله عنها په خندا کښې تپوس اوکړو حولاء څه چل اوشو هغې ونیل پرون هغه راغلي وو. حضور ﷺ عثمان ﷺ ته فرمائیل داسې هیڅ کله مه کوه دا په دین باندې ډیر لوئ زیاتې دې. اود قسم د کفارې ادا کولو حکم ئې ورکړو او وئی فرمائیل چه الله ﷻ ستاسو په لغو قسمونونیول نه کوی. اودا ده که قسم مو اوتړلو نو نیول یه کوی﴿وَلَا تَعْتَدُوْا﴾ معنی هم احتمال کیدې شی چه مباحات په خپل ځان حراموولوسره په خپلو نفسونو تنګی مه کوئی. دا هم احتمال دی چه دا مراد وی چه حلال حرام مه جوړوئی اود حلال نه فائده اوچتولو کښې د حد نه زیاتې مه کوئی. حلال هم د کفایت مطابق حاصلوئی د ضرورت نه زیات نه. اوفرمائیلې شوی دی‌چه ﴿كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا﴾ خورئی څکئی خو په خوراك څښاك کښې د ضرورت نه زیات مه خرچ کوئی. فرمائی چه مؤمن هغه سړې دې چه په خرچ کولو کښې اسراف نه کوی نه بخل کوی، بلکه د اعتدال په لار وی. الله ﷻ نه د افراط اجازت ورکړې نه د تفریط. هم په دې وجه ئې فرمائیلی دی:﴿وَلَا تَعْتَدُوْا﴾ بیانې اوفرمائیل چه په هر حالت کښې حلال او پاك خورئی او په خپلوټولو امورو کښې د الله ﷻ نه ویریږئی. د هغه د اطاعت او مرضئی اتباع کوئی اود مخالفت او عصیان نه منع شئی.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ

نهٔ نیسی تاسو | الله | په لغوه سره | په قسمونو ستاسو کښی

الله ﷻ تاسو په عبث قسمونو باندې نهٔ نیسی

وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ۚ فَكَفَّارَتُهٗٓ

خو | نیسی تاسو | په هغې سره | چې کلك کړی وی تاسو | قسمونه | نو کفاره دداسې قسم

خو په هغه قسمونونیسی چې کوم تاسو په قصد سره خوړلی وی | نو دداسې قسم ماتولو کفاره داده

اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ

خوراك ورکول دی | لسو | مسکینانو ته | د درمیانه درجې | هغه خوراك | چې خوروئ ئې تاسو |

چې لسو مسکینانو ته داسې ډوډئ ورکړئ | چې کوم درمیانه حال خوراک تاسو په خپل

اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ۭ فَمَنْ

په بال بچ خپل باندې | یا جامه اغوستل دی هغوئ ته | یا آزادول دی | د یوغلام | نو هغه څوك |

اهل باندې خوروئ | یا دلسو مسکینانو ته جامې ورکړئ | یا یومرئ آزاد کړئ | ..........نوڅوک چې

لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ۭ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا

چې وې نهٔ موندل‌انو روژې نیول دی | درې | ورځې | دا | کفاره ده | دقسمونو ستاسو | کله چې

ددې طاقت نه لری | نو هغه دې درې روژې اونیسی | داستاسو دقسمونو کفاره ده|......... کله چې

حَلَفْتُمْ ۭ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ ۭ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ

قسم اوخورئ تاسو | اوحفاظت کوئ | دقسمونوخپلو | دارنګې | بیانوی الله | تاسو ته |

تاسوقسم اوکړئ (اوبیاهغه مات کړئ) | اودخپلو قسمونو حفاظت کوئ | دغه شان الله تاسو ته خپل حکمونه بنائی

| | | | |
|---|---|---|---|
| آیٰتِهٖ | لَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ ﴿٨٩﴾ | |
| آیتونه خپل | دپاره ددې چې تاسو | شکر اوباسئ | |

چې تاسو شکر گزار جوړشئ!

قوله تعالی: لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ
په لغوقسمونو باندې کفاره نشته «لیمین لغو» کوم ته چه د دروغو قسمونه یاد تکیه کلام قسمونه وئیل پکاردی ددې ذکر په سورة بقره کښې تیرشوې، ددې د سردوباره کولو ضرورت نشته ① داسې قسمونه سرې بغیر د ارادې نه په خپلو خبرو کښې کوی، د الله ﷻ قسم، داد امام شافعی رحمه الله قول دې ② د نورو قول دا دې چه داسې لغو په هزل (ټوقو) کښې کولې شی یادمعصیت په موقع هم کولې شی ③ د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمد رحمه الله قول دې چه د گمان غالب په صورت کښې هم اوکړې شی نو هغه به د یمین لغو په تعریف کښې راځی. یا د غصې په وخت کښې یا د هیرې په صورت کښې قسم خوړلې وی ④ اودا هم وئیلې شوی دی چه د خوراك څښاك او لباس د پریخودو متعلق قسم وی نو هم په دې استدلال سره هغه قابل غیرمواخذه دې چه ﴿لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ﴾ خو صحیح خبره دا ده چه بغیرد ارادې نه د ژبې نه کوم قسم راوځی هغه یمین لغو دې قسم اود هغې کفاره ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ۚ﴾ یعنی که د قسم خوړلو په اراده او نیت ئې قسم خوړلې وی نو الله ﷻ به نې رانیسی ﴿فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ﴾ یعنی په قصد باندې قسم ماتولو کفاره لسو مسکینانو ته خوراك ورکول چاسره چه د خپل محتاجئی د حاصلولو څه لار نه وی، او درمیانه غونډې خوراك ورکول پکار دی کومه چه تاسو گټئی اوپه خپل عیال باندې خورونې. دا اوسط غذا روټئی او پیئی یا روټئی او ترکاری ده. حضرت ابن عباس رضی الله عنه بیان کړې دې چه بعض خلقو په خپلو بچو باندې د حیثیت نه هم خرا خوراك کوی اوبعض د حیثیت نه هم زیات، په دې وجه الله ﷻ اوفرمائیل چه درمیانه قسم وی نه په هغې کښې تنگی وی اونه په خرچ کښې زیاتې کړې شوې وی. ابن عمر رضی الله عنه فرمائی هغه خوراك روټئی غوښه یا روټئی پیئی، روغن یا سرکه وغیره ده یا روټئی اوکهجورې وغیره دی. ابن جریر رحمه الله فرمائی چه د اوسط نه مراد د خوراك کمې زیاتې دې.
نوعلماؤ دخوراك په مقدارکښې اختلاف کړې دې. حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه سحر او مابنام لسو مسکینانو باندې اوخوړلې شی. محمد بن سیرین رحمه الله وائی چه هم یو وخت کافی دې. یعنی روټئی او غوښه، که غوښه نه وی نو روټئی او روغن یا سرکه او په مړه خیټه اوخوړلې شی. بعض وائی چه هر یو ته نیم صاع غنم یا کهجورې ورکړې شی یعنی تقریباً پنځه پاوه. امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی که غنم وی نو نیم صاع او که نوره غله وی نو یو صاع. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی رسول الله ﷺ یو صاع کهجورو کفاره ورکړې وه او هم دغه حکم ئې خلقو ته هم ورکړې وو او که کهجورې نه وی نو نیم صاع غنم.([1]) بیاابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل یو مد غنم یعنی ٥٦ تولې سالن سره ابن عمر رضی الله عنه، زید بن ثابت رضی الله عنه، مجاهد رحمه الله او محمد ابن سیرین رحمه الله وغیره هم دغه مراد اخستې دې.
امام شافعی رحمه الله وئیلې دی چه د قسم په کفاره کښې مقدار مد النبی ﷺ واجب دې یعنی هم دغه شپږ پنځوس تولې غنم لیکن د ترکارئی څه قید نشته. دلته امام شافعی رحمه الله دلیل اخستې دې د نبی اکرم ﷺ د دې حکم نه کوم چه هغوی ﷺ یو سړی ته ورکړې وو د چا نه چه په حالت د رمضان د روژې د جماع

[1]) ابن ماجه کتاب الکفارات باب کم یطعم فی الکفارة الیمین: ۲۱۱۲.).

عمل شوې وو چه شپيتومسکينانو ته په يو داسې پيماه سره غنم ورکړه کوم کښې چه پنځلس صاع ځائ کړې شي(۱)چه هريو ته يويو مُد ملاؤ شي.دابن عمر ﷺ نه مروي دي چه نبي اکرم ﷺ د قسم کفاره يو مد غنم گرځول. احمدبن حنبل رحمه الله وائي چه واجب ډك مدغنم يا دوه مده بغيرد غنمو. والله اعلم.

**په کفاره د قسم کښې د غنمو نيم صاع او نور اجناس پوره صاع ورکول دي**

**مسلک حنفي:-** داحنافو مسلک هم دا دې ځنګه چې حافظ ابن کثير رحمه الله ذکر کړې دې يعني دغنمو نيم صاع چې د موجوه وزن سره پوه کم دوه کلو جوړيږي دومره غنم به ورکړي يا به د دې قيمت په کفاره کښې ورکړي اوکه د غنمونه علاوه بله غله ورکوي نو بيا به پوره يو صاع يعني درې نيم کلو ورکوي (شاه فيصل غفرله) د الله ﷻ قول دې ﴿ أَوْكِسْوَتُهُمْ ﴾ امام شافعي رحمه الله وائي که چرې دې لسو کښې هر يو ته دومره کپړا ورکړې شي چه په کومه د لباس اطلاق کيدې شي نو کافي ده. لکه يو قميص يوه پاجامه يا يو پټکئ او څادر. د ټوپئ باره کښې اختلاف دې چه صرف ټوپئ کافي ده که نه. بعض وائي جائز ده او دليل د دې حديث نه اخلي چه د عمران بن حصين ﷺ نه سوال اوکړې شو نو وئ فرمائيل چه که يوځوسرې ستاسو اميرله راشي اوهغه هريو ته يوه يوه ټوپئ وريسر کړي نوتاسووائي چه لباس ئې ورکړو.نو﴿كِسْوَتُهُمْ﴾ کښې ټوپئ هم راغله. ليکن د دې سند ضعيف دې. حضرت امام مالك رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي چه هر يو ته دومره لباس ورکول ضروري دي څومره چه په مانځه کښې لباس اغوستل ضروري دي. ښځې او سړي ته د هغه د شرعي ضرورت مطابق ورکول. والله اعلم. د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه هرمسکين ته يوه عبا ورکړې شي يا يوه شمله. مجاهد رحمه الله وائي چه پورتنې لباس يا لاندينې لباس کوم چه خوښ وي ورکولې شي. ابراهيم نخعي رحمه الله فرمائي چه داسې لباس کوم چه ملحفه او څادرونوباندې مشتمل وي ورکول پکار دي يعني لحاف او څادر وغيره نه چه صرف جانګې قميص او پړونې وغيره. دې ته لباس جامع نشي وئيلې. سعد بن المسيب رحمه الله وائي عمامه کوم چه د سر نه تاوهي او عباده کوم چه په بدن باندې اغوندی د جامع لباس په تعريف کښې دی. ابن سيرين وائي چه دوه دوه کپړې ورکړې شي. ابوموسي قسم خوړلې وو نو دوه کپړې په کفاره کښې ورکړې وې. د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه مروي دی چه ﴿كِسْوَتُهُمْ﴾ نه د هرمسکين د پاره يو عبامراد ده او دا حديث غريب دې.

**په کفاره د قسم کښې هرمسکين ته يوه جامع ورکول دي**

**مسلک حنفي:-** په کفاره د قسم کښې داحنافو په نيز هرمسکين ته يوه جامه ورکول دي لنګ يا څادر يا قميص يا چغه يا شړئ اود امام محمد رحمه الله نه روايت دې چې پرتوګ او پټکې په کفاره د قسم کښې جائزنه دی (احکام القرآن للجصاص ۲۴۷/۲).

﴿أَوْتَحْرِيرُرَقَبَةٍ﴾ يا دې يو غلام آزاد کړې شي. امام ابوحنيفه رحمه الله مطلق غلام مراد اخلي که کافر غلام آزاد کړې شي يا مسلمان. امام شافعي رحمه الله او نور فقهاء وائي چه مؤمن غلام آزادول ضروري دی لکه چه د قتل په کفاره کښې د مؤمن غلام قيدکول دی. په دې صورت کښې خو به اتحاد موجب موجود وي سره ددې چه اتحاد سبب نه وي.دمعاويه بن حکم د حديث نه معلوميږي اوپه صحيح مسلم کښې هم دی چه د ابن حکم سلمي په ذمه يو غلام آزادول وو نو هغه يو حبشي وينځه راوستله نو رسول الله

(۱)صحيح بخاری کتاب الصوم باب اذا جامع فی رمضان ولم يکن له شئ فتصدق عليه فليکفر......:۱۹۳۶. صحيح مسلم: ۱۱۱۱. ۱۶۵.

ﷺ دهغه نه تپوس اوکړو الله ﷻ چرته دې نو هغه جبش ونیل په اسمان کښې،بیائې تپوس اوکړو زه څوك یم؟هغې ونیل تاسو د الله ﷻ رسول نې،نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اودامؤمن دې دا آزادولې شئی.(۱)

**په کفاره د قسم کښې د کافر غلام ازادولو جواز**

**مسلك حنفی:-** لکه څنګه چې حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائیلی دی چه په کفاره د قسم کښې د احنافو په نیز کافر غلام آزادول هم جائز دی آحنافو ته دا نسبت صحیح دی او د دوی دلیل د ایت آطلاق دې یعنی په قران کښې مطلق غلام ازادول دی دکافر او دمسلمان قید په کښې نشته نو دکتاب الله آطلاق به په خپل آطلاق باندې پریخودې شی او د کافر غلام ازادول به هم جائز وی (تفسیر مظهری ۱۹۳/۳).

اوس په دې دریو قسم کفارو کښې چه کومه کفاره ورکړې شی نو کفاره به ادا کړې شی. په قرآن کښې اولنې د آسانئې ذکر دې، د دې نه پس درجه په درجه یعنی خوراك ورکول ډیر آسان دی د لباس ورکولونه، بیا لباس ورکول ډیر آسان دی د غلام آزادولونه. غرض دا چه د ادنی نه د اعلی طرف ته قدم اوچت کړې شوې دې. د ټولو نه په آخرکښې دی چه که مکلف په دې ټولوکښې په یو هم قادر نه وی نو ﴿فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ﴾ درې ورځې روژې دې اونیسی.ابن جبیر رحمه الله اوحضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چا سره چه درې درهمه هم وی نو هغه دې خوراك ورکړی ګنی روژې دې اونیسی. د بعض متاخرینو علماؤ نه نقل دی چه د هغه د پاره جائز دی چه چا سره د ضروریاتو یا مایحتاج الیه نه علاوه څه زیاتی څیز نه وی کوم چه هغه د قسم په کفاره کښې ورکړی یعنی روژې اونیسی. ابن جریر رحمه الله دا هم ونیلی دی چه هغه دومره غریب وی چه د خپل خان او خپل بال بچ د هغه ورځې د خرچې نه علاوه څه نه لری. اوس د علماؤ اختلاف په دې کښې هم دې چه پرله پسې درې روژې ساتل واجب دی که مستحب، او آیا جدا جدا ئې هم ساتلې شی؟ امام شافعی رحمه الله وائی چه پرله پسې ساتل واجب نه دی او امام مالك رحمه الله هم دغه وائی ځکه چه حکم مطلق دې هیڅ قید نشته. لکه څنګه چه د رمضان روژې مسلسل قضا شی نو دهغې هم مسلسل قضاساتلو ضرورت نشته.ځکه ﴿ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ یو مطلق آیت دې.د امام شافعی رحمه الله یو ځای کښې د پرله پسې د وجوب صراحت دې. د احنافو او حنابله هم دغه قول دې او هغه د دې روایت په بنا چه د ابی بن کعب رضی الله عنه قراءت دې ﴿فصیام ثلثة ایام متتابعات﴾ اصحاب ابن مسعود رضی الله عنه به هم دغه شان لوستلو د دې باوجود چه دا قراءت په تواترسره ثابت نه دې. لیکن کم نه کم خبرواحد ضرور دې یا د صحابه کرامو د تفسیرنه د دې ثبوت ملاویږی. د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه کله د کفارې آیت نازل شو نو حذیفه رضی الله عنه اوفرمائیل چه یا رسول الله ﷺ مونږ په دې دریواړو کښې په یو اختیارولو کښې آزادیو؟نو هغوی ﷺ اوفرمائیل چه اوکه غواړې نو غلام آزاد کړه یا چاته لباس ورکړه یا پرې خوراك اوکړه او چه څه هم نه وی نو درې ورځې پرله پسې روژې اونیسه، دا حدیث غریب دې. ﴿ ذَٰلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ إِذَا حَلَفْتُمْ﴾ داد قسم شرعی کفاره ده﴿ وَاحْفَظُوا أَيْمَانَكُمْ﴾ یعنی کفاره ادا کولو نه بغیر مه پاتې کیږه، الله ﷻ داسې په وضاحت سره خپل آیاتونه بیانوی دې د پاره چه تاسو شکر اداکړئ.

**د قسم د کفارې په روژو کښې تسلسل او پرله پسې والې ضروری دې**

**مسلك حنفی:-** لکه څنګه چه حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائیلی دی هم دغه شان ده چه د احنافو په نیز د قسم په کفاره کښې چې کومې روژې نیولې شی هغه به پرله پسې نیسی ځکه چې دابی رضی الله عنه د قراءت د وجې چې په هغې کښې د ﴿متتابعات﴾ یعنی پرله پسې والې قید راغلې دې بله دا چې په دې کښې آحناف څه یواځې نه دی بلکه د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه مجاهد ابراهیم نخعی قتاده او طاوس رحمهم الله نه

(۱)صحیح مسلم کتاب المساجد باب تحریم الکلام فی الکلام نسخ ماکان من اباحته: ۵۳۷. ابو داود: ۹۳۰. احمد:۴۴۷/۵. بیهقی : ۵۷/۱۰ ابن حبان: ۱۶۵.

هم د پرله پسې والی قید نقل دی (احکام القران للجصاص ۲۴۷/۲)۔

| |
|---|
| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِنَّمَا |
| اې هغه کسانو \| چې ایمان موراوړی دی \| بیشکه |
| ائې دایمان خاوندانو بیشکه |
| الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ |
| شراب \| اوجواری \| اوبتان \| اوغشی دفال \| پلیتی ده \| دکار \| دشیطان نه \| |
| شراب اوجواری اوبتان اوپالونه ټول ناپاک څیزونه دی \| .................اودا د شیطان کارونه دی |
| فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝ اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ |
| نوخان اوساتئ ددی نه\|دپاره ددی چی تاسو \|کامیابی بیا مومئ \| بیشکه \| غواړی \| شیطان |
| نوددی نه خان بچ اوساتئ \| چی تاسو ته نجات ملاؤ شی \| .................شیطان خو داغواړی چی |
| اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِى الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ |
| چی واچوی \| په منځ ستاسو کښی \| دشمنی \| اوبغض \| په ذریعه دشرابو\| اودجواری \| |
| ستاسو مینځ کښی دشرابو او جواری په وجه دشمنی اوبغض پیدا کړی \| .................. |
| وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ ۝ |
| او منع کړی تاسو \| دذکر دالله نه \| او د مانځه نه \|نو آیایئ تاسو\| منع کیدونکی \| |
| اوتاسو دالله ﷻ دحکم نه اودمونځ نه منع کړی \| .................نوتاسو به ګنی اوس هم منع نه شئ |
| وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاحْذَرُوْا فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ |
| اوحکم اومنئ دالله\|او حکم منئ درسول \|اوخان اوساتئ \| نوکه چری\| مخ واړلو تاسو \| |
| دالله ﷻ حکم اومنئ \| اودرسول ﷺ حکم اومنئ \| اود مخالفت نه خان ساتئ \| نوکه چری تاسو مخ اوګرځولو |
| فَاعْلَمُوْا اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ۝ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ |
| نوپوهه شئ \| چی بیشکه ده\|په رسول زمونږه \|رسول دی \| ښکاره \| نشته \| په هغه کسانو |
| نوپه دی پوهه شئ \| چی زمونږ د پیغمبر کار صرف احکام رسول دی \| په هغه خلقو باندی هیڅ ګناه نشته |
| اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْا |
| چی ایمان ئی راوړو \| اوعمل ئی اوکړو \| نیک \|څه ګناه \|په هغه شرابو کښی\|چی خوړلی ئی وو مخکښی |
| چی کوم ایمان راوړی\|او نیک کارونه کوی \| هغوی چی مخکښی څه خوړلی وو\| دهغی به هیڅ تپوس نه کیږی |
| اِذَا مَا اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ثُمَّ |
| په دی شرط\| چی خان اوساتی آئنده د شرابونه\| اوبه ایمان ټینګ پاتی شی\|اوکوی کارونه نیک \| بیا |
| دابهٔ حکم به په هغه وخت کښی چی بیا دپاره تری نه خان اوساتی \|اونیک کارونه کوی \| ........او بیا هم |

اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاَحْسَنُوْا ط وَاللّٰهُ

خان تینګ اوساتی دشرابو نه | اواومنی | بیا | پرهیز کوي | اونیك کړي تول عملونه خپل | اوالله

پرهیزګار پاتې شي | اوداالله ﷻ حکمونه اومني | او خپله لار سمه اوساتي | اوبیشکه الله ﷻ

يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۹۳﴾ ع

خوښوی انیك عمله خلق |

ته نیکان خلق خوښ دی |

**قوله تعالي:** يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ

**دَ شرابواو جوارئي حرمت:-** الله ﷻ خپل مؤمن بندیګان د شرابو څکلونه او جوارئي وغیره نه منع کوي د حضرت علي ﷺ نه مروي دي چه شطرنج هم يو قسم جواري ده. د مجاهد رحمه الله او طاوس رحمه الله نه مروي دي چه هرڅیز په کوم کښې چه د قمار لګیدل وي جواري ده تردې چه د ماشومانو شرط لګولو سره میرګاټي او کانچې وغیره لوبې کول جواري ده.[1] د اسلام راتلو پورې دا جواري د جاهلیت په زمانه کښې په خصوصیت سره کیدله.خو الله ﷻ مسلمانان د خرابو اخلاقونه منع کړل، په اهل جاهلیت کښې بالعموم دا جواري به داسې وه چه د يوې چیلئ یا دوو بکرو غوښه به د شرط په توګه خرڅولې شوه.
زهري رحمه الله فرمائي چه جواري به داسې کیدله چه په مالونو او میوو باندې به غشي غورزولې شو او دغه شان د جوارئي په ذریعه به په هغې قبضه کولې شوه. حضور ﷺ اوفرمائیل چه د غشو په ذریعه کومه لوبه کولې شي هم دغه جواري ده. دغه شان په کوم څیز سره چه لوبې کولې شي او په وهلوسره ګټلې کیږي هغه هم قمار دې. او کیدې شي چه د دې نه دا مراد وي چه د شطرنج لوبه حرام ده. او دغه شان د چوسر، خکه چه په دې کښې ګیټنې وهلوسره ګټلې شي.
حضور اکرم ﷺ فرمائیلي چه څوك شطرنج یا چوسر کوي هغه خپل لاس د سور په غوښه کښې واچولو اودهغه په وینه کښې ورډوب کړو.[2] د ابوموسی اشعري ﷺ روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیلي هغه د الله ﷻ باغي دې[3] عبدالرحمن رحمه الله وائي چه ما د خپل پلار نه اوریدلي چه حضور ﷺ فرمائیل چه څوك د چوسر لوبه کوي او مانځه ته اودریږي د دې مثال داسې دې چه څوك په پیپ او خنزیر په وینه اودس اوکړي اومانځه ته اودریږي[4] د شطرنج باره کښې خو حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ فرمائي چه دا د چوسر نه هم خراب دې او هغه دا په قمار او میسر کښې شمیري. امام مالك رحمه الله امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمد رحمه الله د دې د حرام کیدلو قائل دی خو امام شافعي رحمه الله دا مکروه ګڼړي.

**چې جواري په کښې نه وي نو د شطرنج جواز**

---

[1]) الطبری : ۳۲۲/٤.

[2]) صحیح مسلم کتاب الشعر باب تحریم اللعب بالنرد شیر: ۲۲٦۰. الادب المفرد ، ۱۲۷۱ ابوداود کتاب الادب ابن ماجه:۳۷٦۳. احمد ۳٥۲/٥. ابن حبان: ٥۸۷۳

[3]) ابوداود کتاب الادب باب فی النهی عن اللعب النرد : ٤۹۳۸. ابن ماجه ، ۳۷٦۲، احمد: ۳۹۷/٤، مسند ابی یعلی ، ۷۲۹۰. مؤطا امام مالك : ۹٥۸/۲ الادب المفرد: ۱۲٦۹. حاکم : ٥۰/۱. بیهقی: ٥۱٤/۱۰.

[4]) احمد : ۳۷۰/٥، مسند ابی یعلی : ۱۱۰٤. مجمع الزوائد : ۱۱۳/۸ .

**مسلک حنفي**:-که د شطرنج سره جواري وي نو بيا خو د ټولو فقهاؤ په نيز داحرام دي اوکه جواري ورسره نه وي نو بيا هم د زياتو فقهاؤ په نيز حرام دي البته د امام ابويوسف رحمه الله نه د جوارئ د نشتوالي په صورت کښې اباحت منقول دي (حلال و حرام از مولانا خالد سيف الله رحماني صفحه ۲۴۳).

**انصاب او ازلام**:-ابن عباس رضی الله عنه او نورګڼو صحابه کرام رضوان الله اجمعين فرمائي چه انصاب هغه کانړوته وائي په کوموچه مشرکانو قربانيانې کوي او بتانو ئې چراوهي.او ازلام هغه غشوته وائي کوم چه تقسم کوي او فالونه پرې راوباسي.الله ﷻ فرمائي چه دا د شيطاني اعمالو ګندګي ده اود ټولونه خراب عملونه شيطاني عملونه دي. د دې دپاره اې زما بنديګانو د دغه ګندګئ نه بچ شئ نو تاسو به خلاصې بيامومئ.دا عبارت درومبئ سره يوځائ کړئ چه اسلام قائم شي. د الله ﷻ ارشاد مبارک دې د شيطان مقصد د هميشه نه دا وي چه په خمر اوميسر کښې مو اخته کړي او په تاسوکښې بعض او دښمني پيدا کړي اود الله ﷻ د ذکر او مونځ نه تاسو غافل کړي نو اوس به هم د دغه خبرو نه منع کيږئ.دا د الله ﷻ د طرف نه زبردسته تنبيه او ويرول دي.

**دَشرابوحرمت دَاحاديثو په رنړا کښې**:- د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه د شرابو حرمت درې ځل راغلې دې. کله چه حضور ﷺ مدينې ته تشريف راوړلو نو خلقو به شراب څکل. د جوارې مال به ئې خوړلو. د حضور ﷺ نه دې باره کښې سوال اوکړې شو نو دا وحی نازل شوه چه تانه د شرابو او جوارئ باره کښې تپوس کوي نو دوی ته اووايه چه په دې کښې فائده خو شته ليکن ډيره کمه، او د دې په مقابله کښې نقصانات ډير زيات دي. نوخلقو ونيل چه فائدې کمې اونقصانات ئې زيات خودلی حرام ئې نه دی ونيلي.نو شراب ئې څکل. يوه ورځ داسې اتفاق اوشوچه يو مهاجر صحابي د ماښام په مانځه کښې د نشې په حالت کښې قرآن غلط ملط او ګډوډ کړو. نو دا آيت نازل شو چه اې مؤمنانو د نشې په حالت کښې مونځ مه ادا کوئ ترکومې چه تاسو په هوش کښې نه ئې چه تاسو څه لولئ او څه نه. دا آيت د رومبی نه ډيرسخت وو نو خلقو په مانځه کښې شراب څکل پريخودل. خوبيابه ئې هم برابر څکل څکه چه واضح حکم د ممانعت نه وو.يوه ورځ په شرابوکښې مست يو سړی مونځ کولو نو د ممانعت صفا حکم نازل شو اې خلقو شراب،جواري، فالونه او غشي دا ټول د شيطان ګنده عملونه دی زر دې نه منع شئ نوکيدې شی چه خلاصې بيامومئ نو خلقو اوونيل چه اې ربه مونږ منع شو. بيا خلقو د حضور ﷺ نه د هغه خلقو باره کښې تپوس اوکړو چه د ممانعت د حکم نه اول د الله ﷻ په لارکښې قتل شوی وو نو دا آيت نازل شو. چه کومو خلقو ايمان راوړلې وو او نيک عملونه ئې کړي وو نو د ممانعت اول چه هغوی کوم حرام خوړلی وو هغوی باندې به الزام نشی لګولې. حضرت ﷺ اوفرمائيل چه که د هغوی په ژوند کښې په هغوی باندې دا حرام کړې شوې وې نو هغوی به هم دا پريخې وې لکه څنګه چه تاسو پريخودل.( [1] )

ابوميسره رحمه الله نه روايت دی چه د تحريم خمر آيت نازليدو نه اول حضرت عمر رضی الله عنه دا دعا غوښتې وه اې الله! د شرابو د حرمت باره کښې مونږ ته خپله وحي راوليګه نو دا آيت نازل چه په دې کښې نقصان ډير او فائده کمه ده.کله چه حضرت عمر رضی الله عنه ته دا آيت واوروليې شو نو هغه بيا دا دعا اوکړه اې الله! کافي او شافي حکم نازل کړې نو په سورة النساء کښې دا آيت نازل شو چه اې مؤمنانو د نشې په حالت کښې مانځه ته مه نزدې کيږئ.نود حضور ﷺ مؤذن ﴿ حی علی الصلوة﴾ نه پس دا آواز اوکړو چه د نشې په حالت کښې د مونځ کولو ممانعت راغلو. حضرت عمر رضی الله عنه ته بيا دا آيت واوروليې شو نو هغه بيا اوونيل

---

[1] ) احمد: ۳۵۱/۲ وسنده ضعيف.

چه اې الله! بيان کافي او شافي نازل کړې. نو په سورة مائده کښې دا ايت نازل شو چه شراب بالکل حرام دی او بالکل منع شئ. نو حضرت عمر ﷺ اوونيل چه منع شو اې الله مونږ منع شو.(١)
دبخاري او مسلم نه ثابت دی چه حضرت عمر بن الخطاب ﷺ د رسول الله ﷺ په منبر باندې ودرکوله او وئی فرمائيل اې خلقو شراب حرام کړې شو او د دې پنځوخيزونو کښې د کوم نه چه هم جوړ شي هغه شراب دي. انګور، کهجور، شهد، غنم، اوربشې او د خمر لفظ عام دې په هر هغه خيز باندې چه عقل پټ کړي.(٢) حضرت عمر ﷺ فرماني د تحريم خمر په وخت کښې د انګورو شراب چالونه وو.(٣)
يو بل حديث دا هم دې چه د شرابو متعلق کله رومبنی وحي راغله نو عامه مشهورتيا اوشوه چه شراب حرام کړې شو. خلقو ونيل يا رسول الله ﷺ لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائيلي دی چه په دې کښې نفع هم ده نو مونږ له نفع اوچتول پکار دی. حضور ﷺ خاموش پاتې شو نو چه کله دونم آيت نازل شو نو بيا مشهوره شوه چه شراب حرام شو نو خلقو وئيل چه يارسول الله ﷺ مونږ خوني په مانخه کښې نه څکو، نوحضور ﷺ بيا خاموش شو. ليکن چه کله دا آيت نازل شو چه دا د شيطان عمل دې دې نه منع شئ نو حضرت صفا اوفرمائيل چه شراب حرام کړې شو.(٤)
يوبل حديث دې چه د ابن عباس ﷺ نه مروی دې چه د قبيله ثقيف يا قبيله دوس نه يو سړې د حضرت دوست وو. هغه د مکې دفتح په ورخ حضور ﷺ سره ملاؤشو اودشرابو يومنګې حضور ﷺ په تحفه کښې پيش کړو. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ولي تاته پته نشته چه الله ﷻ شراب حرام کړی دی نو هغه سړې خپل غلام طرف ته متوجه شو او وئي ونيل چه دا بازار ته يوسه او خرڅ ئې کړه. حضرت اوفرمائيل چه چا شراب حرام کړې دی هغه د دې خرڅول او اخستل هم حرام کړی دی. نو هغه خپل غلام ته حکم اوکړو چه دا د ښارنه بهر يوسه او دا منګې واړوه.(٥)
يوبل حديث دحضرت تميم داری ﷺ نه مروی دې چه هغه به هرکال حضور اکرم ﷺ له د شرابو يو منګې تحفة راليګلو. نو چه کله شراب حرام شو او هغه د خپل عادت مطابق منګې راوړلو نوحضرت مسکې شو او وئی فرمائيل چه تاپسې شراب حرام کړې شوی دی نو هغه عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ زه به دا خرڅ کړم اوپيسې به ترلاسه کړم. نوحضور ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ دې په يهودو لعنت اوکړی چه په هغوی باندې دغوا او بکرئ چربی حرام کړې شوې وه نو هغوی به هغه ويلی کوله او روغن به ئې خرڅولو. الله ﷻ شراب او د دې قيمت هر څه حرام کړی دی.(٦) بالکل هم داسې يو حديث د عبدالرحمن ﷺ بن غنم نه روايت دې کوم کښې چه معنًا څه فرق نشته. دغه شان يو بل حديث هم دې چه د ابن کيسان پلار دحضرت په زمانه کښې د شرابو تجارت کولو. هغه د تجارت په غرض د شرابو منګې د شام نه راوړل اوحضور ﷺ له ئې هم يو منګې راوړلو او وئی ونيل چه يارسول الله ﷺ ستاسودپاره مې ډير ښکلی شراب راوړی دی. نوحضور ﷺ اوفرمائيل اې کيسان! دا خوتاپسې شاته حرام کړې شوی دی. هغه

---

(١) ابوداود کتاب الاشربة باب تحريم الخمر : ٣٦٧٠، ترمذی: ٣٠٤٩. وسنده ضعيف دابو اسحاق مدلس دسماع صراحت نشته دې عمرو بن شرجيل دعمر ﷺ نه دې آوريدلي. احمد: ٥٢/١.
(٢) صحيح بخاری کتاب الاشربة باب ماجاء فى ان الخمر ماخامر العقل من الشراب : ٥٥٨٨. صحيح مسلم : ٣٠٣٢. ابوداود : ٣٦٦٩، ترمذی : ١٨٧٤، ابن حبان : ٥٣٥٣.
(٣) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة المائدة باب قوله ﴿ انما الخمر والميسر والانصاب والازلام ...... ﴾ : ٤٦١٦.
(٤) مسند الطيالسی: ١٩٥٧، وسنده ضعيف ، ددې سند کښې محمدبن ابی حميد ضعيف راوی دې
(٥) صحيح مسلم ،کتاب المساقاة باب تحريم بيع الخمر: ١٥٧، احمد: ٢٣٠/١. مسند ابی يعلى: ٣٥٣٥، بيهقی: ١٢/٦، دارمی : ٢١٠٣
(٦) احمد: ٢٢٧/٤، والطبرانی فی الکبير: ١٢٧٥، وسنده حسن وله شاهد فی صحيح مسلم: ١٥٧٩. مجمع الزوائد : ٨٨/٤،

تپوس اوکړو چه حضرت زه دا خرځ کړم؟په دې باندې حضرت نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چه د دې قیمت همحرام دې.نوکیسان ؓ هغه منګی واخستل اولته نې ورکړه اوتول دتجارت شراب نې اوبهیول.(١)
دحضرت انس ؓ نه روایت دې چه ما ابوعبیده ؓ اود هغه نورو ملګرو باندې شراب څکول او تردې چه نزدې وه چه هغوی شراب نشه کړی چه په دې کښې چا اوونیل چه تاسو ته پته نشته چه شراب حرام کړې شو، خلقو ونیل چه مونږ به انتظار کوو او تحقیق به کوو نو نورو صحابه کرامو اوونیل چه نه، انس! څه چه ستا په منګی کښې پچ دی هغه ټول واړوه. د الله ﷻ قسم چه اوس به مونږ بیا نه څکو. دا د کهجورو او أوربشو شراب وو.(٢) هغه وخت انس ؓ او د هغه ملګری دحضرت طلحه ؓ په کورکښې وو. آواز کونکی آواز اوکړو نو ونې ونیل چه اوخه اوګوره او واوره، نو معلومه شوه چه شراب حرام کړې شوی دی.دمدینې په کوڅوکښې شراب بهیدل. بعض خلقو ونیل چه د هغه خلقو به څه کیږی چه شراب نې څکل او په جهاد کښې شهیدان شو. نو آیت نازل شو چه کومو مؤمنانو نیك عمل کولو او مړه شوی دی په هغوی باندې هیڅ ګناه نشته.(٣)
حضرت انس ؓ فرمائی چه ما په خلقو شراب څکول، د خلقو سرونه د نشې نه ړقیدل چه آواز کونکی د شرابو د حرمت آواز اوکړو نوهریو راتلونکی خپل شراب واړول او منګی مات کړل. بعضو اودس اوکړو او بعضو غسل اوکړو. بعض د ام سلیم نه خوشبو اولګوله بیا جمات ته راغله، نبی کریم ﷺ د شرابو د حرمت آیت تلاوت کړو.یوی سړی حضرت قتادهؒ ته اوونیل چه تا د حضرت انس ؓ نه دا اوریدلی دی اوچا د حضرت انس ؓ نه تپوس اوکړو چه تا د رسول الله ﷺ نه اوریدلی؟ نو حضرت انس ؓ اوفرمائیل چه او، نه حضرت ﷺ دروغ وائی نو مونږ دروغ وایو بلکه مونږ ته خو پته هم نشته چه دروغ څه څیز دې؟(٤)
عبدالله بن عمرو ؓ وائی چه نبی کریم ﷺ عام شراب، د أوربشو او غنمو شراب، شطرنج، چوسر، د موسیقئی ټول آلات حرام کړی دی.اوصرف په ما باندې صلوة وتر واجب کړی دی. رسول الله ﷺ فرمائی چه زماد طرف نه څوك د دروغو حدیث جوړکړی او وړاندې کړی هغه ځائ دوزخ دې. حضور ﷺ د غبیره ونې نه رانیکونکی شراب هم حرام ګرځولی او هرنشه ورکونکې څیز نې حرام فرمائیلې دې.(٥)
حضرت ابن عمر ؓ فرمائی چه حضور ﷺ فرمائیلی د شرابو په لسو متعلقاتو باندې لعنت، پخپله په شرابو لعنت، پخپله څکونکی او په نورو څکونکی باندې لعنت،په څرڅونکی او اخستونکی باندې لعنت، شراب صفاکونکی، شراب جوړونکی، شراب اوچتونکی او اوړونکیباندې او چه د چا طرف ته نې اوړی او دشرابو په قیمت خوړونکی، په دې ټولو لعنت.(٦)
حضرت ابن عمر ؓ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ د یوې باړې طرف ته اووتلو، زه د هغوی ﷺ نبی طرف ته ووم، ابوبکر ؓ د وړاندې طرف نه راغلو نو زه روستوشوم، حضرت ابوبکر ؓ د حضور نبی طرف ته شو، نو زه ګس طرف ته شوم، په دې کښې حضرت عمر ؓ راتلونکې ښکاره شو نو زه اړخ ته شوم،

(١) احمد: ۱۸۱/۳،صحیح بخاری کتاب الاشربة باب (من رای ان لا یخلط البسر والتمر..) ٥٦٠٠، صحیح مسلم: ۱۹۸۰.
(٢) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المائدة باب ( لیس علی الذین امنوا وعملو الصالحات جناح فیما طعموا) : ٤٦٢٠. صحیح مسلم : ۱۹۸۰، ابوداود: ۳٦۷۳، احمد: ۲۲۷/۳، بیهقی : ۲۸٦/۸.
(٣) الطبری : ۲٤/۷.
(٤) احمد: ۱٦٥/۲.
(٥) احمد :۱۷۱/۲، وابوداود : ۳٦۸٥، وهو حدیث حسن.
(٦) ابوداود کتاب الاشربة باب العصیر للخمر : ۳٦۷٤، وسنده حسن ابن ماجه : ۳۳۸۰، احمد:۲٥/۲، مسندابی یعلی : ٥٥۹۱.

حضرت عمر ﷺ کس طرف ته شو، نو حضور ﷺ دې بارې ته راغلو چه د کورونو شاته د اوښانود تړلو خایٔ وو،هلته د شرابو يوه مشکيزه ښکاره شوه. ابن عمر ﷺ فرمائی چه حضور ﷺ زه راوغوښتم، يوه چاړه ئې راکړه اووئی فرمائيل دامشکيزه اوڅيره، وئی فرمائيل چه په شرابو باندې،دشرابو څکونکو باندې، شراب اوړو راوړو والاباندې، صفاکونکی او جوړونکی باندې اود دې قيمت خوړلووالا ټولو باندې لعنت دې. هم (١)د حضرت ابن عمر ﷺ نه روايت دې يوه ورځ حضور ﷺ صحابه کرامو سره د مدينې بازار ته لاړو، هلته د شرابو مشکيزې کيخودې وې چه د شام نه راوړلې شوې وې. زما په لاس کښې چاړه وه، مانه حضور ﷺ چاړه واخستله او بيا چه څومره مشکيزې د هغوی ﷺ په وړاندې وې ټولې اوڅيرلې. بيائې ماته چاړه راکړه او خپلو اصحابوته ئې اوفرمائيل چه ده سره لاړشئ او د ده امداد اوکړئ او ماته ئې حکم راکړو چه په بازار کښې يوه داسې مشکيزه پرينږدې کومه چه دې څيرلې نه وی او شراب دې نه وی بهيولې. نو ما هم داسې اوکړل.(٢)

د يزيد خولانی رحمه الله نه روايت دې چه د هغه تره شراب خرڅول او ډير باخير او مالدار سړې وو. ما هغه د شرابو خرڅولو نه منع کړو، هغه واونه ريده، چه زه ګله مدينې ته راغلم نو د ابن عباس ﷺ نه مې د شرابو اود هغې د قيمت باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائيل چه شراب اود هغې قيمت حرام دې. بيائې اوفرمائيل چه اې امت محمد ﷺ که ستاسو د کتاب نه پس بل کتاب راتلې يا ستاسو د نبی نه پس بل نبی راتلونکې وو نوستاسو د ګناهونو او سرکشوبه په هغې کښې داسې ذکر کيدو لکه څنګه چه د مخکينو ګناهګارانو امتونوذکر چه ستاسو په قرآن مجيد کښې دې او هغوی رسوا شوی دی. خو اوس د الله ﷻ دوئم کتاب نه دې راتلونکې په دې وجه ستاسو رسوائی د قيامته پورې اوځنډولې شوه د الله ﷻ قسم! دا د هغه خلقو نه هم اهمه رسوائی ده.

ثابت رحمه الله فرمائی چه ما دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه د شرابو د قيمت باره کښې تپوس اوکړو، نو وئی وئيل واوره، زه په جمات کښې رسول الله ﷺ سره ووم هغوی ډډه لګولې وه ناست وو، وئی فرمائيل چه چا سره شراب دی راوړئی، خلقو راوړل، چا منګې راوړو چا مشکيزه راوړه چا څه او چا څه،حضور ﷺ اوفرمائيل چه ټول شراب د بقيع په ميدان کښې راجمع کړئی نوماته خبر اوکړئی.هم داسې اوکړې شو. اوس حضور راپاسيدو او زه هم هغوی ﷺ سره لاړم، د هغوی ښی طرف ته اوم، حضور په ما باندې سهارا اخستې وه، په دې کښې حضرت ابوبکر ﷺ ملاؤشو، حضرت زما په ځایٔ حضرت ابوبکر ﷺ واخستو او زه ئې کس طرف ته کړم، بيا په تلوکښې حضرت عمر ﷺ ملاؤ شو حضرت عمر ﷺ حضور ﷺ خپل کس طرف ته کړو او زه ئې شاته کړم. دې وخت کښې حضور ﷺ د شرابو ذخيرې ته اورسيدو او وئی فرمائيل خلقو تاسوته پته ده چه دا څه دی؟ جواب ورکړې شو چه او يا رسول الله! دا شراب دی. وئی فرمائيل چه تاسو رښتيا وائيو بيائې د شرابو په لسو متعلقاتو لعنت اوفرمائيلو، بيا حضور ﷺ يوه چاړه راوغوښتله او ښه ئې تيره کړه، بيائې ټولې مشکيزې اوڅيرلې. خلقو وئيل چه دې کښې خو نفع هم وه. نو هغوی ﷺ اوفرمائيل چه او، زه د الله ﷻ د غضب نه ويريدلو سره داسې کوم. په شرابو کښې د الله ﷻ ناراضګی ده.حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل چه راکړه زه دا ټولې مشکيزې څيری کوم نو حضرت اوفرمائيل چه زه پخپله دا ضائع کوم.(٣)دحضرت سعد ﷺ نه روايت دې چه د شرابو باره کښې څلور آياتونه نازل شو. بيا هغه حديث بيانوی چه يوانصاری زمونږ دعوت اوکړو، مونږ هلته

---

(١) احمد: ٢/٧١، والبيهقی: ٢٨٧/٨، وهو حديث حسن

(٢) احمد: ١٣٢/٢،.

(٣) حاکم: ١٤٤/٤، وصححه ووافقه الذهبی وسنده حسن وانظر اتحاف المهرة: ٢٨١/٨، مشکل الآثار: ٣٣٤٢؛ بيهقی: ٢٨٧/٨.

ښه شراب اوڅکل، دا د شرابود حرام والی نه وړاندې ذکر دې.کله چه مونږښه نشه شو نوخپل مينځ کښې موفخر کولو. انصارو وئيل چه مونږ غوره يو او قريشو وئيل مونږ غوره يو.يو انصاري د اوښ يو لوئ هډوکې راوړو اوسعد ئې په پوزه اووهلوپه څه سره چه دسعد د پوزې هډوکې مات شو. هم په دې وجه د شرابوحرمت نازل شو کوم چه مسلم بيان کړې دې.([1])

حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه د شرابو د حرمت دا وجه وه چه د انصارو دوو قبيلوښه شراب اوڅکل کله چه ښه مست شو نو په يو بل ئې لاسونه اوچتول شروع کړه. چه کله نشه کوزه شوه نود چا په مخ زخم وو نو د چا په سر باندې زخم راغلې وو د چا نه ږيره شوکيدلې وه، چا وئيل چه زما نه فلانی ملګری زه زخمی کړې يم، نو د يو بل دښمنان شو او سره د دې چه اول ئې په خپل مينځ کښې ښه مينه وه څه کينه ئې نه وه. وئيل به ئې چه که دې زما همدردوو نو زه به ئې نه زخمی کولم، دغه شان دښمنی زياته شوه نو بس الله ﷻ د شرابو حرمت نازل کړو، خلقو وئيل چه د هغه مړو به څه کيږي نو وحی نازل شوه چه کومو مؤمنانو نيک عمل کړې او مړه شوی دی په هغوی هيڅ ګناه نشته.([2])

ابوبريده رضي الله عنه د خپل پلار نه روايت کوی چه مونږ په يوه غونډئی ناست وو شراب مو څکل. مونږ درې يا څلور کسان وو د شرابو منګې پروت وو او جام چليدلو چه زه راپاسيدم او نبی اکرم ﷺ له راغلم نو هغه وخت د شرابو د حرمت آيت نازل شو، زه زر خپلو ملګرو له راغلم او وحی مې ورته واوروله. بعضو شراب څکلې وو او بعضو څه څکلی وو او څه باقي پاتې وو، د چا خلې سره شراب لګيدلی وو، دا اوريدو سره ټول خپل شراب په زمکه توئې کړل. او آخری آيت ﴿فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ﴾اوريدو سره ئې اووئيل ﴿انتهينا ربنا﴾ اې ربه مونږ منع شو([3]) په صحيح بخاری کښې د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې چه د جنګ احدپه ورځ سحرخلقو شراب څکلې وو او په جنګ کښې هم په هغه ورځ شهيدان شو، دا د تحريم خمر نه وړاندې خبره ده ([4])نو اکثرو يهوديانو وئيل کوم خلق چه قتل شوی دی د هغوی په خيټوکښې شراب وو نودا آيت نازل شوچه نيک عمل کونکو مؤمنانو باندې هيڅ ګناه نشته چه د تحريم خمر نه ئې وړاندې شراب څکلی.

د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې چه يو سړی د خيبر نه مدينې ته شراب راوړل چه دلته ئې خرڅ کړي چه کله مدينې ته راورسيدو نو يو مسلمان ورته اووئيل چه شراب خو حرام کړې شوی دی نو هغه لاړو او په يوه غونډئی کيخودل او په کپړا ئې پټ کړل. بيا نبی اکرم ﷺ له راغلو چه آيا شراب حرام کړې شوی دی؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه او، هغه وئيل چه زه مال واپس کړم؟ حضور ﷺ جواب ورکړو چه شرابوکښې د اوړلو هم صلاحيت نشته نو هغه اووئيل چه زه ئې هغه سړی ته ورکړم چه د هغه څه معاوضه ادا کړې شی؟ نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه داسې هم نه. هغه اووئيل چه په دې تجارتپ کښې د يتيمانو مال هم لګيدلې دې چه زما په پالنه کښې دی. حضور ﷺ اوفرمائيل چه کله د بحرين مال راشی نو ته ماله راشه نو زه به د هغې نه ستا ديتيمانو معاوضه درکړم. بيا د شرابو د حرمت په مدينه کښې اعلان اوکړې شو.يوسړی وئيل چه يارسول الله ﷺ مونږ ته د شرابو د لوښونه د فائدې اوچتولو

---

[1]) احمد : ۱۸۱/۱، وهو صحيح ابن حبان : ۶۹۹۲، مسند البزار: ۱۱۴۹. مسند الطيالسی : ۲۰۸، ابوعوانه : ۱۰۴/۴، بيهقی : ۲۶۹/۶، داروايت مختصرا صحيح مسلم : ۱۷۴۸، ترمذی : ۳۱۸۹، کښې موجود دې.

[2]) المعجم الکبير : ۱۲۴۵۹، حاکم : ۱۴۲/۴، بيهقی : ۲۸۵/۸، السنن الکبری : ۱۱۱۵۱، مجمع الزوائد: ۱۸/۷، وسنده حسن .

[3]) الطبری: ۵۷۲/۱۰، وسنده ضعيف

[4]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة المائدة باب قوله ﴿ انما الخمر والميسر والانصاب والازلام ......﴾ : ۴۶۱۸.

اجازت راکړه. حضور ﷺ اوفرمائيل دلوښو خلې کولاؤ کړئ شراب اوبهيوئې نو دومره شراب اوبهيولې شو چه بنکته زمکو کښې شراب اودريدل.(١) حضرت ابوطلحه ؓ د حضور ﷺ نه سوال اوکړو چه زما د پالنې لاندې يتيمان دى چه هغوى ته په وراثت کښې شراب ملاؤ دى، حضرت اوفرمائيل توئى کړه ټول توئى کړه، ابوطلحه ؓ اووئيل چه مونږ به د دې نه سرکه جوړه کړو؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه نه.(٢) مسلم ابوداؤد او ترمذى ټولو د دې تائيد کړې دې. دحضرت عبدالله بن عمر ؓ نه روايت دې چه ﴿ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلۡخَمۡرُ وَٱلۡمَيۡسِرُ وَٱلۡأَنصَابُ وَٱلۡأَزۡلَٰمُ رِجۡسٞ مِّنۡ عَمَلِ ٱلشَّيۡطَٰنِ فَٱجۡتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ﴾ چه هم دغه آيت په تورات کښې هم دې. الله ﷻ حق په دې وجه نازل کړې چه باطل نابود او ختم کړى. او تنګک ټکور آلات بربط، ستار، سارنګى دوپړئى ډولکى او دمسې وغيره داټول باطل کړى. الله ﷻ دخپل عزت قسم خورى وائى چه د حرمت نه پس څوک دا خپلوى زه به د قيامت په ورځ هغه تږى ساتم او چه څوک دا پريږدى زه به په هغوى د جنت د پاکو چينو نه شراب څکوم.(٣)

دحضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ؓ نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيلى چه چا د نشې د وجه يو وخت مونځ بيلو نو داسې ده لکه چه د ټولې دنيا دولت ده ته حاصل وو او هغه ترې نه په زور واخستې شو، او چا چه د نشې په وجه د څلورو وختو مونځ بيلو نو اوس د الله ﷻ حق دې چه ده باندې ﴿طينة الخبال﴾ اوڅکى. خلقو وئيل دا ﴿طينة الخبال﴾ څه څيز دې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه دوزخيانو نه نچوړ شوې ګندګى.(٤)

دحضرت ابن عباس ؓ نه روايت دې حضرت فرمائيلى دى چه په عقل باندې پرده اچونکى څکونکې څيز خمر دې او هر نشه ورکونکې څيز حرام دې. کوم سړې چه نشه ورکونکې څيز اوڅکى د هغه څلويښت ورځې مونځ نه قبليږى. خو که هغه توبه اوکړى نو توبه به ئې قبوله شى او که په څلورم خل ئې شراب اوڅکل نود الله ﷻ دا حق شته چه په ده باندې ﴿طينة الخبال﴾ اوڅکى. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ﴿طينة الخبال﴾ د دوزخيانو نوونه دى. او چا چه په يو ماشوم باندې شراب اوڅکل کوم چه حرام او حلال نه پيژنى نو په هغه سړى باندې به هم ﴿طينة الخبال﴾ څکولې شى.(٥) حضرت ابن عمر ؓ نه روايت دې چا چه په دنيا کښې شراب اوڅکل او توبه ئې اونه کړه نو په آخرت کښې په هغه شراب حرام دى.(٦) حضور ﷺ فرمائيلى دى چه هر نشه ورکونکې څيز خمر دې او حرام دې. څوک چه ټول عمر شراب څکى او مړشو او توبه ئې اونه کړه نوهغه به د جنت د شرابو نه بالکل محروم وى.(٧) حضور ﷺ فرمائيلى دى چه درې سړى دى چه هغوى ته به الله ﷻ د قيامت په ورځ نه ګورى يو د خپل والدين نافرمانه اولاد، دوئم

---

(١) مسندابي يعلى : ١٩٩٤، وسنده حسن عيسى بن جاريه حسن الحديث وثقه الجمهور مجمع الزوائد : ٩٢/٤.
(٢) صحيح مسلم كتاب الاشربة باب تحريم تخليل الخمر ١٩٨٣، احمد: ١١٩/٣، ابوداود : ٣٦٧٥، ترمذى: ١٢٩٢، مسندابي يعلى : ٤٠٤٥
(٣) ابن ابي حاتم : ١١٩٦/٤.
(٤) احمد: ١٧٨/٢ وسنده حسن بيهقى : ٣٨٩/١. حاكم: ١٤٦/٤.
(٥) ابوداود كتاب الاشربة باب ماجاء في السكر : ٣٦٨٠. وسنده حسن بيهقى : ٢٨٨/٨.
(٦) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة المائدة باب قوله ﴿ انما الخمر والميسر والانصاب والازلام ......﴾ :٥٥٧٥، صحيح مسلم : ٢٠٠٣. احمد : ٩٢/٢. موطا امام مالك : ٧٤٦/٢. بيهقى : ٢٨٧/٨.
(٧) صحيح مسلم كتاب الاشربة باب بيان ان كل مسكر خمر : ٢٠٠٣، ابوداود: ٣٦٧٩، ترمذى : ١٨٦١، ابن حبان: ٥٣٦٦.

مدام شراب څکونکې اودریم احسان کونکې چه اضباطنه کوی[1] هغوی ﷺ فرمائیلی چه د احسان اضباطنه کونکې، دمورپلار نافرمانه اوهمیشه شراب څکونکې دادریواړه به چرې هم جنت ته نه ځی.[2]
دحضرت عثمان بن عفان ﷺ نه روایت دې چه د شرابو نه ډیر ځان بچ کونئ ځکه چه دادټولو خرابو جرړه ده. یوه واقعه واورئ چه تاسو نه وړاندې زمانه کښې یو سړې ډیر عبادت کونکې وو. د خلقو نه ځان له لرې او جدا په خپله عبادت خانه کښې به ئې عبادت کولو. د یوې بدکاره ښځې په هغه نظر وو هغې خپله نوکره هغه پسې اولیګله چه د یوې ګواهئ په بهانه ئې راوغواړه، هغه غریب راغلو. کله چه هغه یوې دروازې نه رادننه شو نو هغه به وریسې د بهر نه بنده کړې شوه. تر دې چه هغه دغه بدکاره ښځې له راورسیدو. هغې سره یو ماشوم او د شرابو منګې پروت وو. هغې دې شیخ ته اووئیل چه په الله ﷻ باندې قسم چه ته ما هیڅ ګواهئ له نه ئې راغوښتې بلکه دې له چه یا خو به ته ماسره شپه تیروې، یابه دا ماشوم قتل کوې او یا به دا شراب څکې. هغه شیخ دامناسب اوګنړل چه د دې دواړو ګناهونو نه شراب څکل آسانه ګناه ده، نو هغه شراب اوڅکل.اوس هغه په جام پسې جام غوښتلو، تر دې چه د شرابو په نشه کښې هغه ماشوم هم قتل کړو او هغه ښځې سره ئې شپه هم تیره کړه. په دې وجه د شرابو نه بچ شئ دا د ټولو ګناهونو جرړه ده. شراب او ایمان په یوځائ نه شی جمع کیدې.که شراب وی نو ایمان به نه وی اوکه ایمان وی نوشراب به نه وی[3] په بخاری او مسلم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه کله زناکار زنا کوی نو هغه مؤمن نه پاتې کیږی او غل چه کله غلا کوی نو مؤمن نه پاتې کیږی او چه شرابی کله شراب څکی نو مؤمن نه پاتې کیږی[4] کله چه د قبلې د بدلیدو آیت نازل شو نو خلقو وئیل یا رسول الله ﷺ هغه خلق چه مړه شوی دی او بیت المقدس طرف ته ئې مخ کړې وو اومونځونه ئې کړی وو دهغوی به څه کیږی؟نو وحی نازل شوه چه دهغوی عبادت به نه ضائع کیږی.[5]

دحضرت اسماء بنت یزید رضی الله عنها نه روایت دې چه نبی اکرم ﷺ فرمائیلی چا چه شراب اوڅکل الله ﷻ د هغه نه څلویښت ورځې خفه وی. که هغه مړشو نو کافر مړشو اوکه توبه اوکړی نو الله ﷻ به ئې توبه قبوله کړی.[6] حضور ﷺ فرمائیلی چه کله دا آیت نازل شو چه د حرمت نه وړاندې په څکونکو باندې به الزام نه شی لګولې نو ماته اووئیلې شوچه په تاباندې هم څه الزام نشته.[7] حضور ﷺ اوفرمائیل چه د جوارئ نه بچ شئ او د چوسر او شطرنج نه بچ شئ دا دواړه د عجم جواری ده.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اللّٰهُ | لَيَبْلُوَنَّكُمُ | اٰمَنُوْا | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ |
| الله | خامخا به امتحان کوی په تاسو | ایمان موراوړې دی | اې هغه کسانوچې |
| | | الله ﷻ تاسوباندې امتحان کوی | انې دایمان خاوندانو! |

[1] نسائی کتاب الزکوة باب المنان بما اعطی : ۲۵۶۳، وسنده حسن، احمد: ۱۳۴/۲، بیهقی : ۲۸۸/۸، حاکم: ۱۴۶/۱، ابن حبان : ۵۶.
[2] احمد: ۴۴/۳، وسنده ضعیف وهو حسن بالشواهد انظرمسند احمد: ۱۳۴/۲، وسنده حسن ، السنن الکبری : ۴۹۲۰، ابویعلی : ۱۱۶۸
[3] بیهقی : ۲۸۷/۸، وسنده حسن ، النسائی : ۵۶۶۹.
[4] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المائدة باب قوله ﴿ انما الخمر والمیسر والانصاب والازلام ......﴾ : ۵۵۷۸، صحیح مسلم ۵۷، ابوداود : ۴۶۸۹، ترمذی : ۲۶۲۵، احمد: ۲۸۶/۲، ابن حبان : ۱۸۶، بیهقی : ۱۸۶/۱.
[5] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المائدة باب قوله ﴿ انما الخمر والمیسر والانصاب والازلام ......﴾ : ۴۶۱۸.
[6] احمد: ۴۶۰/۶، وسنده حسن مجمع الزوائد : ۶۹/۵.
[7] صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب من فضائل عبدالله بن مسعود وامه: ۲۴۵۹، ترمذی: ۳۰۵۳،مسند ابی یعلی، ۵۰۶۴،

بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ

په یو څیز سره| چه ښکار دې| اچې رسي به هغه ته| لاسونه ستاسو| او نیزې ستاسو| د پاره د دې چې معلوم کړي

دهغې لږ ډېر ښکار په باره کښې کوم ته چه ستاسو لاسونه او نیزې وررسی| دا د دې د پاره چه الله ته په علم

اللَّهُ مَنْ يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ

الله| اچې څوك| ایریږی دهغه نه| په نالیدلو| نو هغه څوك| اچې واوړیدو دحد نه| پس د دې نه خبرداری نه

ظاهري سره هغه څوک معلوم شی| چه دهغه نه په غیب هم ویریږی| نو څوک چې د دې حکم نه پس زیاتي اوکړي

فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ

نو دی هغه د پاره| عذاب| درد ناك| ای هغه کسانو| چې ایمان موراوړی دي| مهٔ قتلوئ تاسو ښکار

نو هغه د پاره دردناکه سزا مقرر ده| ....... ائي د ایمان خاوندانو! تاسو ښکار مه وژنئ په

وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ۚ وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ

او حال دا چې تاسو| په احرام کښې یئ| او هغه چا چې قتل کړو ښکار| ستاسو نه| په قصد| نو پری بدل واجب دي

داسې حالت کښې چې تاسو احرام کښې یئ| او چا چې قصد سره ښکار اووژلو نو دهغې بدله

مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِنْكُمْ

برابر دهغې| اچې نې قتل کړې دې| د چارپانو نه| فیصله به کوی| په هغې سره| دوه عادلان سړی| ستاسو نه

دهغې ښکار په شان یو څاروې دې| اچې ستاسو دوه انصاف کونکی به دهغې فیصله کوی

هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ

په داسې حال چې دا نذرانه به| رسیدونکی وی| کعبې ته| یا کفاره ده| طعام| دیو څو مسکینانو

او دا نذرانه بهٔ کعبې ته رسولې شی| یا د هغې کفاره په مسکینانو باندې ډوډئ خورول دی

أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا لِيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِ ۗ عَفَا اللَّهُ

یا په برابر دهغه| روژې نیول دی| د پاره د دې چې اوڅکی| عذاب| دعمل خپل| معافی اوکړه الله

او یا دهغې مناسب روژې ساتل دی| دا د دې د پاره چې دخپل خپل عمل سزا اوڅکی| ........ الله ﷻ

عَمَّا سَلَفَ ۚ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ ۗ

دهغه څه| اچې مخکښې څه شوی دی| او هغه څوك| اچې دوباره نې اوکړو دا کار| نو بدل به واخلی الله| دهغه نه

دهغې کړو معافی اوکړه| او که اوس هم څوک دا کار اوکړی| نو الله ﷻ به ترې بدله اخلی

وَاللَّهُ عَزِيزٌ ذُو انْتِقَامٍ ۝

او الله| غالب دې| خاوند د بدلې اغستلو دې|

او الله ﷻ غالب دې| او بدله اخستئ شی|

**قوله تعالي:** يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللَّهُ مَنْ يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ ۚ

**په حالت د احرام کښې د ښکار حکم:**-حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه الله ﷻ تاسو ازميښت کوی د ښکارپه ممانعت سره که هغه کمزوري ښکار وی یا وړوکې چه اوګوری چه په حالت د احرام کښې تاسو د دې ښکار نه بچ کيږئ که نه. تر دې که خلقو غوښتلې نو دا ښکار به نې په لاسونو هم رانيولې شو. الله ﷻ هغې ته د نزدې کيدو هم ممانعت اوکړو. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه وړوکې ښکار او بچې په لاسونو هم نيولي شو د هغوی ځايونوته به راتله اود دې نه وړاندې چانه وو ليدلی. په حالت د احرام کښې د هغې ښکار نه ممانعت کړې شوې وو دې د پاره چه ثابته شي چه په ښکاره او پټه څوك تابعداری کوی اوڅوك نه کوی.لکه چه الله ﷻ فرمائيلی دی﴿إِنَّ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِالْغَيْبِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ﴾ څوك چه د الله ﷻ نه ويريږی او په غيبوباندې ايمان لري د هغوی د پاره بښنه او اجرکريم دې. دلته الله ﷻفرمائيلی دی چه اوس دينه پس څوك نافرمانی اوکړی د هغه د پاره دردناك عذاب دې خکه چه هغه د الله ﷻ د حکم مخالفت اوکړو.

بيافرمائي چه په حالت د احرام کښې ښکار مه کوئ.دا نهی په معنوی لحاظ سره حلالوځناورو اود هغوی بچو ته هم شآمله ده.اونه خوړونکوته هم شآمليږی.ليکن د امام شافعي رحمه الله په نيز دغيرماکول ښکارکول د احرام والادپاره جائز دې.خوجمهو علماؤ داسې ښکار ته هم جائز نه وآئی او څوك نې مستثنی کړی نه دی.

**محرم دپاره د حرامو ځناورو د ښکار حرمت**

**مسلک حنفی:**- داحنافو په نيز باندې لکه څنګه چه د محرم دپاره د حلالو ځناورو ښکار حرام دې دغه شان پرې د حرامو ځناورو ښکار هم حرام دې (احکام القرآن للجصاص (۲۵۸/۲)).

دې نه علاوه چه بخاری او مسلم کښې د حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی پنځه څيزونه فاسق دی. په احرام کښې هم هغه قتل کولې شی خکه چه دا تکليف ورکوونکې ځناور دی. کارغه، تپوس، لړم، مږه او چك لګونکې سپې.([1]) حضرت ابن عمر ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه دا پنځه قتل کول د محرم دپاره ګناه نه ده.([2])

حضرت ايوب رحمه الله فرمائي چه ما د حضرت نافع رحمه الله نه تپوس اوکړو چه د مار څه حکم دې؟ نو حضرت نافع رحمه الله اوفرمائيل چه د مار په وژلو کښې څه شك دې؟د علماؤ په دې کښې اختلاف نشته. امام مالك رحمه الله امام احمد رحمه الله او نورو علماؤ غاپونکې سپی سره ليوه، ځناور ازمري او پړانګ هم شامل کړې دې خکه چه د دې ضرر خو د سپي نه هم زيات دې.والله اعلم.

زيد بن اسلم رحمه الله او سفيان رحمه الله وائی چه د هرحمله کونکې ځناورحکم د سپی حکم کښې شامل دې د کوم تائيد چه د دې حديث نه کيږی، چه رسول الله ﷺ کله عتبه بن ابی لهب ته بددعاکړې وه نو فرمائيلې وو چه يا الله په ده باندې په شام کښې خپل يوسپې مسلط کړې نو په مقام زرقاء کښې هغه يو ليوه شلولې وو.

اوکه ددې نه علاوه هغه چرته بل ځناور قتل کړی نو فديه به ورکول وی لکه سوسمار، لومبړه او کفتار وغيره. مالك رحمه الله فرمائي چه هم دغه حکم د دې پنځو ځناورو د بچو هم او د شلونکو ځناورو د وړوبچو هم،که محرم قتل کړل نو فديه به ورکوی که ځناور غيرماکول يا د هغه واړه بچی ئې قتل کړې وی، خکه چه په دې کښې د لوئ وړوکی څه قيد نشته او غيرماکول ځناور ته هم سبب شامل دې.حضرت

---

[1] صحيح بخاری کتاب بدء الخلق باب اذا وقع الذباب فی شراب احدکم فليغمسه...:۳۳۱۴، صحيح مسلم: ۱۱۹۸.

[2] صحيح بخاری حواله سابق : ۳۳۱۴،صحيح مسلم :۱۱۹۹، موطا امام مالك : ۳۵۶/۱.

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه محرم چك لګونکې سپې او لېوه هم قتل کولې شی ځکه چه لیوه هم خراب سپې دې.

## د محرم دپاره د ماتونکی ځناور قتل کولو جواز

**مسلک حنفی:-** د لیوه وغیره ماتونکی ځناور قتل کول ځکه جائز دی او په قاتل باندې جزاء نشته چه د کومو علت د وجې د سپی قتل کول جائز وو هغه ضرر اوتکلیف دې اودا وجه او علت په لېوو او درنده کښې هم شته نو د دې وجې د محرم دپاره د دې قتل کول جائز دی (شاه فیصل غفرله).

خوکه د دې دواړو نه علاوه نې بل ځناور قتل کړو نو فدیه به ورکوی. او که چرته بل ځناور حمله اوکړی نو قتل کولې شی فدیه ورکول ضروری نه دی. دا د امام اوزاعی رحمه الله اوحسن بصری رحمه الله قول دې. امام زفر رحمه الله فرمائی چه فدیه به ورکوی که د حملې کولو په وجه نې قتل کړې وی. بعض خلق وائی چه د کارغه نه هغه کارغه مراد دې د کوم په شا او خیټه چه سپین والې وی توروالې نه وی. د جمهورو مذهب دادې چه دکارغه نه هرعام کارغه مراد دې ځکه چه په لفظ کښې څه قید نشته. امام مالك رحمه الله فرمائی چه کله کارغه حمله اوکړی یا څه تکلیف اورسوی نومحرم صرف په هغه وخت کښې هغه قتل کولې شی بغیروجه نه وی. مجاهد رحمه الله اونورخلق وائی چه قتل کونی مه بلکه پاره نې کړنی او والوزونی دحضرت علی رضی الله عنه نه هم یو روایت داسې دې. د ابوسعید رضی الله عنه نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیلی چه مار لړم او مږه دې هغه قتل کوی لیکن محرم دې کارغه الوزوی قتل کوی دې نه. چك لګونکې سپې مرداره خوړونکې او حمله کونکې ځناور محرم قتل کولې شی.[1]

د الله ﷻ ارشاد دې چه څوك په قصد سره په حالت د احرام کښې ښکار کوی هغه به د دې ښکار په شان بل یو څاروې په فدیه کښې ورکوی. د طاؤس رحمه الله نه روایت دې چه دا حکم د هغه سړی متعلق نه دې چاچه په خطا سره یو ځناور قتل کړې وی بلکه عمداً د قتل کولو قید دې او د ظاهری الفاظونه هم دغه معلومیږی. مجاهد رحمه الله وائی چه دلته د ﴿مُّتَعَمِّدًا﴾ نه مراد دا دې چه چا خپل د احرام حالت هیر کړې وی او د ښکار د قتل کولو اراده نې کړې وی ګنی د احرام حالت یادیدلو سره په اراده سره د ښکار قتل اوکړی نود دې ګناه خو د کفارې نه ډیره زیاته ده، د هغه خو احرام باطل کیږی. جمهور د دې خبرې قائل دې چه قصداً او په هیره سره قتل کونکې دواړه په کفاره ورکولو کښې برابر دی. زهری رحمه الله وائی چه د قرآن پاك نه خو دلالت کیږی چه عمداً قتل کونکی باندې، لیکن په حدیث کښې په هیرې سره قتل کونکی هم په دې کښې شامل دې. مطلب دا دې چه د قرآن پاك نه ثابته شوه چه دې به کفاره هم ورکوی او دې ګناهګار هم دې. لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائیلی چه دې به د خپلې ګناه سزا خوری خوچه کوم تیر شو نو معاف دې او که چا بیا داسې اوکړل نو الله ﷻ به ترې انتقام اخلی. د نبی ﷺ اوصحابه کرامو د احکامو نه هم ثبوت ملاویږی چه په خطا سره قتل کولو په صورت کښې هم به کفاره ورکوی لکه څنګه چه عمداً د قتل کولو په صورت کښې د قرآن پاك د حکم مطابق ورکولې شی ځکه چه که ښکار دې قتل کړو نو دا ښکار به ختمولې شی خو چه کله نې عمداً ختم کړې نو تاوان به ورکوې. او په خطاسره ختمولو کښې هم دغه حکم دې. فرق صرف دومره دې چه عمداً ښکار قتل کونکې د کفارې ورکولو سره ګناهګاهم دې لیکن د خطا والا ګناهګارنه دې.

## د محرم په قتل کښې قصد، خطا او هیره ټول برابر دی کفاره به لازمیږی

**مسلک حنفی:-** د احنافو په نیز هم که قتل په قصد یا په خطا یا په هیره سره وی په دې ټولو صورتونو کښې کفاره لازم ده البته په آیت کښې د ﴿عمدا﴾ قید په دې وجې لګیدلې شوې دې چې ددې نه

[1] ابوداود کتاب المناسک باب مایقتل المحرم من الدواب: ١٨٤٨، ترمذی: ٨٣٨، ابن ماجه: ٣٨٩، احمد: ٣/٣، بیهقی: ٥/٢١٠.

وړاندې آيت کښې دی ﴿وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ﴾ او دوباره چې څوک ښکار کوی نو دا معلومه ده چه هغه خو په خطا نه کوی بلکه په قصد سره ئې کوی نو ځکه الله د عمد قيد اولګولو (احکام القرآن للجصاص ۲۵۹/۲)۔

د الله ﷻ ارشاد دې ﴿فَجَزَآءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ﴾ بعضو جزاء مضاف جوړکړې اولوستلې دې، بعضو عطف کړخولې دې او ابن مسعود﷛ ﴿فَجَزَآءٌ﴾ په اضافت "ة" سره لولی، ليکن په هرقسم لوستلوکښې د امام مالک﷫، امام شافعی﷫، امام احمد﷫ او جمهورو دليل قائم پاتې کيږی. د ښکار شوی ځناور د مثل جزا په خپل ځائ واجب پاتې کيږی خو په دې شرط چه د هغه په شان يا هغه سره نزدې ساتونکې ځناوروی چه هم هغه ورکړی ګنی د هغې قيمت دې ورکړی. ليکن د امام ابوحنيفه﷫ په دې کښې اختلاف دې هغه فرمائی چه دښکارشوې قتل شوی ساتندونکې ځناورپه شان وی يا د غير ساتندونکې په هرصورت کښې د هغې د مثل ورکولوپه ځائ قيمت هم ورکی شی. اوهغه ښکاری ته اختيار دې که غواړی نو د هغې قيمت دې صدقه کړی يا د قربانئی يو ځناور دې واخلی ليکن حق دا دې چه صحابه رضی الله عنهم د مثل ورکولو کوم حکم لګولې دې هغه زمونږ د پاره ډير د اتباع قابل دې. هغوی حکم لګولې دې چه شترمرغ ښکار کړې شوې وو نو په کفاره کښې اوښ ورکړه اوځنګلی غوا په ښکار کښې کورنئی غوا او د هوسئی په ښکار کښې بکرئی. د صحابه کرامو رضی الله عنهم دا فيصلې په کتاب الاحکام کښې ټولې ذکر دی.خو چه چرته د ښکار مثل نه وی يعنی چه چرته د ساتلې شوې ځناورپه شان نه وی نو هلته ابن عباس﷛ حکم لګوی چه د دې قيمت دې مکې ته روان کړې شی، بيهقی د دې راوی دې.

**په ښکار کښې د مثل نه مراد قيمت دې**

**مسلک حنفی:** داحنافو هم دغه مسلک دې کوم چې ورته حافظ ابن کثير منسوب کړې دې چه په آيت کښې دمثل نه مراد قيمت دې داحنافودلائل په احکام القرآن للجصاص کښې کتلې شی دلته ئې وضاحت ضروری نه ګنړم څوک چې پرې خبريدل غواړی نو رجوع دې ورته اوکړی (احکام القران للجصاص ۲/۱۱۲)۔

**ښکار کونکې پخپله فيصله کونکې جوړيدې شی؟:**-د الله ﷻ قول دې ﴿يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ﴾ يعنی د دې کفارې فيصله کولو د پاره دوه عادل مسلمانان مقرر کړې شی چه دا فيصله اوکړی چه په مثلی ښکار کښې مثلی ځناور ورکړې شی يا په غير مثلی کښې قيمت ورکړې شی. که د علماؤ اختلاف دې نو صرف په دې کښې چه په دې دواړو فيصله کونکو کښې يو فيصله کونکې پخپله هم ښکاری جوړولې شی که نه ① يو قول دا دې چه نه شی جوړولې او دوئم قول دا دې چه جوړولې شی. دا د دې د پاره چه په دې صورت کښې خپل حکم هم په خپل ځان باندې نافذ کول لازميږی.اوپه دې کښې د متهم کيدو انديښنه ده.د امام مالک﷫ هم دغه قول دې ② دوئم قول دې چه جوړولې شی ځکه چه آيت عام دې په دې کښې د دې قسم څه قيد نشته. دا د امام شافعی﷫ او امام احمد﷫ قول دې.

**د اولنی قول دليل** د ړومبی قول دليل دا دې چه هم په يوه قضيه کښې دننه حاکم په خپله محکوم نه شی جوړولې. د ابن ابی حاتم حديث دې چه يو باندچې حضرت ابوبکر﷛ له راغلو او وئی وئيل ما د احرام په حالت کښې يوښکار کړې دې اوس په ما څه بدله ده. هغوی د ابی بن کعب﷛ چه خواکې ناست وو تپوس اوکړو چه وايه ته څه فيصله کوې؟باندچی وئيل چه زه خوتاله راغلې يم اوته درسول الله ﷺ خليفه ئې ليکن ته پخپله د بل نه تپوس کوې. نو ابوبکر﷛ اوفرمائيل چه ته ولې اعتراض کوې الله ﷻ پخپله فرمائيلی دی چه دوه کسان عادلان مسلمانان دې يوځائ شی نو يو حکم دې اولګوی. نو ما خپل

ملګری سره مشوره اوکړه. مونږ دواړه چه په کومه خبره متفق شو تاته به هم هغه فیصله واورو. دلته هم د دې خبرې احتمال وو نو چه کله صدیق اکبر ﷺ اوکتل چه باندچی خو جاهل دې اود عادلانو د مسئلې نه خبر نه دې نوپه پسته او نرمه لهجه سره ئې پوهه کړو خکه چه د جهل دارو تعلیم دې. خو که اعتراض کونکې صاحب علم وی نو

لکه څنګه چه ابن جریر رحمه الله بیان کوی چه د ابن جابر ﷺ نه روایت دې چه مونږ یو ځل د حج په اراده سره اووتلو اومونږ کله د سحر مونځ کولو نو په خپلو سورلو پسې به شاشاته تلو او خبرې به موکولې. یوه ورځ داسې اتفاق اوشو چه یوه هوسئی په نظر راغله. زمونږ یو ملګری هغه په کانړی اوویشتله او هغه مړه شوه.دې سړی مړه هوسئی پریخودله اوپه سورلئی سور شواو لاړو.مونږ په دې سړی سخت اعتراض اوکړو اوچه مکې ته راورسیدلونو زه حضرت عمر بن الخطاب ﷺ له راغلم او هغه ته مې ټوله واقعه بیان کړه. حضرت عمر ﷺ سره بل یو کس ناست وو تك سپین د چاندئی په شان روښانه،دا عبدالرحمن بن عوف ﷺ وو. حضرت عمر ﷺ هغه طرف ته متوجه شو څه خبرې ئې اوکړې بیانې د هغه سړی نه تپوس اوکړو،تا په قصد سره هغه مړه کړه که په خطا؟ هغه وئیل چه کانړې خو ما ارادة ویشتلې وو خود قتل اراده مې نه وه. حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه ارادةً او خطاءً دواړو صورتونوکښې کار تاته شوې دې. یوه بکرئی واخله هغه حلاله کړه او صدقه ئې کړه، اود هغې څرمن د کور په کارکښې راوله. اوس مونږ د هغه ځایٔ نه پاسیدو او خپل ملګری ته مې اووئیل د الله ﷻ د شریعت حدودو عزت کول ډیر اهمیت لری.څه تپوس چه تاکړې وو امیرالمؤمنین د هغې نه پخپله خبر نه وو تردې چه د خپل ملګری نه ئې تپوس اوکړو. اوس ته د معافې په توګه خپله اوښه ذبح کړه. کیدې شی چه ستاد دې جرم پوره والې اوشی.قبیصه وائی چه ماته دسورة مائده د عادلینو آیت هډو یاد نه وو. زما د دې مشورې خبر حضرت عمر ﷺ ته اورسیدو هغه دوره راواخسته او زما په ملګری ئې یوه کوره راخلاصه کړه او وئی وئیل چه ته په احرام کښې قتل کوې او په حکم کښې بې وقوف حاکم جوړوې، بیا ماته متوجه شو ما وئیل چه اې امیر المؤمنین که ته ما ناروا وهې نو دا ناروا وهل به زه معاف نه کړم. نو هغه اووئیل چه اې قبیصه بن جارته خوان ئې دکولاؤ زړه خاوند او ښه وینا کونکې ئې خوکه په یو خوان کښې نهه عادتونه هم ښه وی اوصرف یوخراب وی نو هم هغه یوپه ټولو باندې اوبه اړوی،دخوانئی دخطاګانو نه محتاط اوسیږه. ابن جریر الجلبی ﷺ فرمائی چه د احرام په حالت کښې ما د یوې هوسئی ښکار اوکړو. حضرت عمر ﷺ ته ما د هغې ذکر اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چه خپل دوه ملګری راوله چه هغه دواړه په تاباندې فیصله اوکړی. ما حضرت عبدالرحمن ﷺ او حضرت سعد ﷺ راوستل، هغوی فیصله اوکړه چه زه یو ښه چاق او تازه چیلې فدیه ورکړم. ابن جریر رحمه الله وائی چه اربد یوه هوسئی په حالت د احرام کښې چقنړی کړه او قتل ئې کړه بیا د فیصلې د پاره حضرت عمر ﷺ له راغلو، هغوی اوفرمائیل چه ما سره د فیصلې د پاره حاکم ته پخپله جوړشه، دواړو یوه ساتلې شوې بکرئ کفاره کښې مقرر کړه چه د کور اوبه او ګیا ئې خوړله او ښه تازه شوې وه. بیا حضرت عمر ﷺ د عادلینو والا آیت اولوستلو.

**محرم د ښکار په قیمت لګولو کښې پخپله حکم نشی جوړیدې**

**مسلك حنفی:-** ددې مسئلې دپاره چه آیا محرم پخپله حکم فیصله کونکې جوړیدې شی ما سره چې د حنفیانو کوم کتابونه دی هغه مې لټ په لټ کړل لیکن دا جزیه راته ملاو نشوه البته زه د خپلې اندازې نه دا وایم چې محرم چه په حالت د احرام کښې ښکار کړې وی نود هغې ښکار قیمت لګولو کښې دې پخپله فیصله کونکې نشی جوړیدې والله اعلم بالصواب

**دهرې زمانې حکمین پکاردی؟:-** دا واقعه د دې خبرې په جواز باندې دلالت کوی چه په راتلونکی وخت

کښې کله دیو مجرم نه داسې جرم اوشي نو هغه وخت دوه حکم پکار دی یا د صحابه کرامو رضی الله عنهم فیصلې چه د داسې مسئلو په وخت کښې شوی دی د هغې په رڼراکښې فتوی ورکولې شي. په دې کښې دوه قوله دی. امام احمد رحمه الله او امام شافعي رحمه الله وائي چه صحابه کرامو رضی الله عنهم په دې باره کښې کومې فیصلې کړې دی د هغې مثل دې اوکړې شي او دې دواړو هم هغه شرعي فیصله کرځولې ده د هغې نه انحراف مه کوئې. او په کومه مسئله کښې چه د صحابه کرامو حکم موجود نه وی نود خپلې زمانې عادلانو طرف رجوع اوکړئې. امام مالک رحمه الله او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي چه حکم به د خپلې خپلې زمانې په هریو فرد باندې جدا جدا لګولې شي او هم د خپلې زمانې عادلان به مقرر کولې شي که د صحابه کرامو څه حکم یا فیصله موجود وی اوکه نه څکه چه الله ﷻ د ﴿مِّنكُمْ﴾ لفظ استعمال کړې دې او د اولې زمانې صحابه په دې وخت کښې ستاسو د ډلې کسان خو نه دی.

**د ښکار په قیمت لګولو کښې د هرې زمانې خپل عادلان پکار دی**

**مسلک حنفي:-** صحابؤ چې په کوم څناورو کښې فیصلې کړې دی په هغې فیصله کول ضروری نه دی بلکه دهرې زمانې خپل عادلان پکار دی لکه څنګه چه د قرآن پاک د ظاهری نص نه معلومیږی څکه چه الله ﷻ داسې فرمائیلی دی چه ﴿مِّنكُمْ﴾ نو د ﴿مِّنكُمْ﴾ خطاب د صحابؤ په زمانه کښې هغوی ته وو او زمونږ په زمانه کښې مونږ ته دې او زمونږ نه پس زمانه کښې به هغه خلقو ته وی کوم چې په هغه وخت کښې وی دغه د قیاس تقاضا هم دا ده چه د ښکار قیمت د هغه زمانې په اعتبار سره اولګولې شی څکه چه د زمانې په تیریدو سره د پیسی حیثیت کمیږی اوخیزونه ګرانیږی نودیوې چیلې قیمت چې د صحابؤ په وخت کښې کوم وو هغه قیمت ئې نن نه دې بلکه د هغې نه ډیر زیات دې (تفسیرمظهری مع اضافه ۲۰۹۱۳)-

اود الله ﷻ قول ﴿هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ﴾ یعنی دا قربانی کعبه ته اورسونی، هم هلته ئې ذبح کړئې او هم د حرم په مسکینانو باندې د دې غوښه تقسیم کړئې. په دې خبره کښې د چا څه اختلاف نشته. تول په اتفاق سره دا رائې لری،

**قوله تعالی:** ﴿أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِ﴾

**په درې څیزونو کښې د اختیار حکم:-** د الله ﷻ ارشاد دې ﴿أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا﴾ یعنی که محرم د قتل شوی ښکار مثل بیانه مومی یا ښکار کړې شوی مقتول د دې قسم څناور نه وی چه کورنو څناورو سره یوشان والې اولری نو بیا د جزا اطعام او صیام باره کښې اختیار دې او په قرآن پاک کښې ﴿أَوْ﴾ هم د اختیار په معنی کښې راغلې دې اوهم دغه قول دامام مالک، امام ابوحنیفه، ابویوسف، محمد رحمهم الله دې اودشافعي رحمه الله هم یوقول داسې دې، داحمد رحمه الله هم دغه قول مشهوردې چه ﴿أَوْ﴾ د اختیار ورکولو په مقصد راوړلې شوې دې. ② او یوبل قول دا دې چه د اختیار په مقصد سره نه بلکه د ترتیب او سلسلې خودلو د پاره دې.

اود دې صورت به دا وی چې کوم ښکار قتل شوی وی د هغې قیمت به اولګوی اود قتل شوی ښکار تلافی اوشي. د ا د امام مالک، امام ابوحنیفه، حماد او ابراهیم رحمهم الله په نیز دی. (یعنی کوم کسان چې د تخییر قائلین دی دهغوی په نیز به د قتل شوی څناور قیمت اولګولې شی ازمترجم)

لیکن امام شافعي رحمه الله وائی کوم څناور چې ئې قتل کړی وی که د هغې پشان نه وو نو د هغې په مثل به اوګوری اودهغې قیمت به اولګوی بیا به هغه قیمت باندې طعام واخلی او هغه به صدقه کړی (یعنی د احنافو په نیز به براه راست د قتل شوی څناور قیمت اولګولې شی اود امام شافعي په نیز به د قتل شوی څناور د مثل قیمت اولګولی شی از مترجم)

**محرم ته د ښکار کولو په کفاره کښې د درې څيزونو نه د يو په ورکولو اختيار حاصل دې**

**مسلک حنفی:-** دامام ابوحنيفه به نيز باندې محرم ته اختيار دې چې په دې درې واړه څيزونو کښې ئې کوم خوښ وی په هغې سره دې کفاره ادا کړی (احکام القرآن للجصاص ۲۲۲\۲)۔

**مسکين ته به څومره غله ورکولې شی؟:-** ①اوهريومسکين ته دې يو مد يعنی ۵۶ تولې غله ورکړی. دا مسئله دامام شافعی او امام مالك رحمهم الله اود علماء حجاز په نيز ده. ②امام ابوحنيفه، امام ابو يوسف او امام محمد رحمهم الله فرمائی چه هر مسکين ته دې دوه مده ورکړې شی. ③امام احمد رحمه الله وائی چه غنم وی نو يو مد او که نوره غله وی نو دوه مده به ورکولې شی .نو که دا نشی ورکولې روژې دې اوساتی يعنی چه يو مسکين ته په ورځ کښې څومره خوراك ورکولې شی هغه هومره ورځې دې روژې اونيسی. دوئم قول دا دې چه د هرصاع په بدله کښې يوه روژه نيسی.نبی اکرم ﷺ کعب بن عجره ﷺ ته حکم ورکړې وو چه يو فرق غله په شپږو کسانو تقسيم کړه يا درې ورځې روژې اوساته. [1] يو فرق درې صاع وی او يو صاع ۲۲۵ تولې وی.

**د ښکار په قيمت به غله اخستې شی او مسکينانو ته به ورکولې شی**

**مسلک حنفی:-** داحنافو په نيز به د ښکار قيمت اولګوی اوبيا به په هغه قيمت باندې طعام واخلی او هر مسکين ته به نيم صاع غنم ورکړی (احکام القرآن للجصاص ۲۲۷\۲)۔

**د اطعام محل به کوم ځائې وی؟:-** اوس په دې کښې هم اختلاف دې چه کوم ځائ کښې پرې اوخوری. امام شافعی رحمه الله وائی چه هم په حرم کښې دې پرې اوخوری اودعطا رحمه الله هم دغه قول دې ②امام مالك رحمه الله وائی چه په هغه ځائ کښې دې اوخوری چرته چه ده ښکار قتل کړې وو يا هم هلته چرته نزدې. ③امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه د دې هيڅ تخصيص نشته چرته چه خوری، که حرم وی که غير حرم وی او که بل مقام وی.

**د ښکار په کفاره کښې د حرم د مسکينانو عدم تخصيص**

**مسلک حنفی:-** لکه څنګه چې حافظ رحمه الله ابوحنيفه رحمه الله ته نسبت کړې دې چه د دوی په نيز د خوراک کولو دپاره د حرم د مسکينانو تخصيص نشته بلکه د هرځائې په مسکينانو باندې ئې خوړلې شی نو دا نسبت صحيح دې (تفسير مظهری ۲۱۰\۳)۔

**دَ دې مسئلې متعلق دَ سلفو اقوال:-** ددې آيت متعلق د حضرت ابن عباس ﷺ قول دې چه کله محرم ښکار اوکړی نو هم هغه شان ښناور په هغه باندې لازم راځی، که د کفارې د پاره هم هغه شان څاروې ملاؤ نه شی نو د هغې قيمت به کتلې شی بيا به د خوراك اندازه لګولې شی بيا به د هر نيم صاع غلې په بدله کښې يوه روژه ساتلې شی. الله ﷻ کفاره د طعام او صيام په ذريعه مقرر کړې ده.

کله چه طعام وی نوهم ددې نه به کفاره ادا کولې شی. د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه د څاروې به کعبه ته ليګلې شی يا مسکينانوباندې دې اوخوړلې شی يا د هغې برابر دې روژې اوساتلې شی. کله چه محرم ښکار قتل کړو نو هم د هغې په شان څاروې په هغه لازميږی. که چا هوسئی يا د دې په شان څاروې قتل کړو نو په ده باندې بکرئی لازميږی چه مکې ته به ليګلې شی او ذبح کولې به شی.که داسې اونه شی نو شپږو مسکينانو باندې به خوراك کولې شی اوکه دا هم اونه شی نودرې روژې به نيسی.

[1] صحيح بخاری کتاب المحصر باب قول الله تعالى ﴿ او صدقة﴾ : ۱۸۱۵، صحيح مسلم: ۱۲۰۱.

که چا اوبښ یاد اوبښ په شان بل خناور قتل کړو نوبه هغه باندې غواواجب ده. که نه وی نو شلو مسکینانوباندې به خوراك کوی که دا هم نه وی نو شل روژې به ساتی. اوکه شترمرغ یاځنګلی خر ئې وژلې وی نو یوه اوښه به ده باندې واجب ده او که دا نه وی نو دیرشو مسکینانو باندې به خوراك کوی ګنې دیرش روژې به ساتی. ابن جریر رحمه الله هم دغه ونیلی دی لیکن دا ئې زیات کړی دی چه طعام به هریو ته یو یو مد ورکولې شی چه په ډکه خیټه ماره شی. عطاء رحمه الله اومجاهد رحمه الله فرمانی چه یو مد طعام د هغه سړی د پاره دې چه د قربانئ خاروې کعبې ته نشی رسولې. د سدی رحمه الله وینا ده چه په دې اختیارکښې دې د ترتیب لحاظ اوساتلې شی. او ابراهیم النخعی رحمه الله وائی چه هرقسم اختیار دې چه کومه کفاره ورکول غواړی.

د الله ﷻ ارشاددې ﴿لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِۦ﴾ دې د پاره چه هغه د خپلو کړو سزا بیاموسی. یعنی مونږ په هغه باندې کفاره په دې وجه واجب کړې ده چه زمونږ د حکم مخالفت ئې کړې چه دهغې سزا اوموسی. خو چه د جاهلیت په زمانه کښې څه شوی دی هغه دهغه سړی دپاره معاف دی چا چه په اسلام کښې بنه کارونه کړی.بیا ئې اوفرمانیل چه ﴿وَمَنْ عَادَ فَيَنتَقِمُ ٱللَّهُ مِنْهُ﴾یعنی اسلام کښې د راتلونه پس اوددې د ممانعت نه باوجود چا چه نافرمانی اوکړه الله ﷻ به دهغه نه انتقام اخلی او هغه دسرکشونه انتقام اخستونکې دې.خوچه په جاهلیت کښې څه شوی دی هغه معاف دی.اود دې سوال جواب هم په نفی کښې دې چه آیا امام د هغې څه سزا مقررولې شی؟یعنی امام ته د سزا ورکولو حق شته؟ دا ګناه د الله ﷻاود هغه د بنده په مینځ کښې ده. او ده ته د امام د سزا نه ورکولو باوجود به فدیه ضرور ورکول وی. دا ابن جریر رحمه الله روایت کړې دې. د دې مطلب دا شو چه الله ﷻ هم د کفارې په ذریعه انتقام اخلی او د انتقام به هم دغه صورت وی.

جمهور سلف اوخلف په دې متفق دی چه کله محرم ښکار قتل کړونو په ده باندې فدیه ورکول واجب شو. په ړومبئ دویمه او یادریمه خطا کښې هیڅ فرق نشته، که هرڅوځل ئې کړې وی. فعل خطا او فعل عمد ټول په حکم کښې برابر دی.د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې که د محرم نه خطا د ښکار په قتل کولو کښې اوشوه نو په ده باندې به د هرقتل په وخت کښې دا حکم صادر وی. لیکن که هغه دا قتل عمداً په ړومبی ځل کړې وی نو په هغه به داسزا وی او په دونم ځل به هغه ته ونیلې شی چه الله ﷻدې تانه انتقام واخلی. لکه چه پخپله هم الله ﷻ فرمانیلی دی چه دوباره اوکړی نو الله ﷻ به انتقام اخلی. امام حسن بصری رحمه الله فرمانی چه یو صاحب احرام کښې ښکار اوکړو په ده باندې د فدیه سزا مقرر کړې شوه، هغه بیا دا جرم اوکړو،دآسمان نه اُورراکوز شوبجلی پرې رابریوتله او هغه ئې اوسوزولو هم دغه معنی﴿فَيَنتَقِمُ ٱللَّهُ مِنْهُ﴾ ده. الله ﷻ په خپل سلطنت کښې غالب دې څوك هغه مغلوب کولې نه شی.که هغه انتقام اخستل اوغواړی نو څوك دې چه هغه منع کړی. ټول کائنات د هغه مخلوق دې، حکم خو بس هم دهغه چلیږی، سرکشانوته به هغه سزا خامخا ورکوی.د هغه د انتقام د صفت همدغه اقتضاء ده.

### د محرم د ښکار په قتل په هر ځل د کفارې لزوم

**مسلك حنفی**- مسئله هم دغه ده کومه چې حافظ رحمه الله ذکرکړې ده که محرم ښکار قتل کړو که په ړومبی ځل وی اوکه دوباره سه باره په هر ځل په ده کفاره واجبیږی برابره ده که دا قتل کول په قصد وی اوکه په خطاء وی اوکه په هیره وی (تفسیرمظهری ۳/۲۱۲)-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَطَعَامُهٗ | صَيْدُ الْبَحْرِ | لَكُمْ | اُحِلَّ | |

| حلال کړې شو | ستاسو دپاره | ښکار د سمندر | اوخوراك |
|---|---|---|---|

تاسو دپاره د درياب ښكار نيول او خوړل حلال دي

| مَا دُمْتُمْ | صَيْدُ الْبَرِّ | عَلَيْكُمْ | وَحُرِّمَ | وَلِلسَّيَّارَةِ | مَتَاعًا لَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|

دنفعي ستاسو | اودپاره دمسافرو | اوحرام کړې شوي دي | په تاسو باندې | ښکار دوچې | ترڅوچې يئ تاسو

دا ستاسو خوراکه ده (په کور هم) اودسفر په حالت کښې هم | او د اوچې ښکار منع دې | تاسو چې ترڅو

حُرُمًا ط وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿٩٦﴾ جَعَلَ اللّٰهُ

په حالت داحرام کښي | او ويريږئ د الله نه | هغه ذات | چې هم هغه ته به | تاسو جمع کولې شئ | جوړه کړه الله

احرام کښې يئ | او دهغه الله ﷻ نه ويريږئ چې کوم ته به تاسو واپس کيږئ | .................. الله ﷻ

الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ

کعبه يعنى كور دعزت | ذريعه دقيام | دپاره دخلقو | اومياشته عزتمنده | اودقربانۍ څاروی |

کعبه چې دعزت خانې دې | دخلقود قيام سبب ګرځولې شوې دې | اوهمداشان دحرمت مياشت اوقربانۍ څاروی

وَالْقَلَآئِدَ ط ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا

اواميل والا قرباني هم | دا كاردې | دپاره دې چې معلومه شي تاسوته | چې بيشكه الله | پوهيږي | په هغه

اوهغه څاوری چې پټې ورته پرتې وی | دا په دې چې بيشکه الله ﷻ ښه عالم دې | په هغه څه

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٩٧﴾

چې په آسمانونو کښې دی | او په هغه چې په زمکه کښې دی | او بيشکه الله | په هرڅيز باندې | ښه عالم دې

چې په آسمانونو او زمکه کښې دی | .................. او الله ﷻ په هرڅيز باندې علم لری

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٩٨﴾ ط

پوهه شئ | چې بيشکه الله | سخت ورکونکې دې | عذاب | او بيشکه الله | بښونکې | مهربان دې |

پوهه شئ چې الله ﷻ ډير سخت حساب اخستونکې دې | .................. او بښونکې او مهربان هم دې

مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ط وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ

نشته ذمه واري | په رسول باندې | مګر | رسول دی | او الله | پوهيږي | په هغه چې ښکاره کوئ ئې تاسو

د رسول ذمه واري صرف پيغام رسول دی | او الله ﷻ ته ستاسو ښکاره حالات هم معلوم دی

وَمَا تَكْتُمُوْنَ ﴿٩٩﴾

او په هغه | چې پټوئ ئې تاسو |

او ستاسو پټ حالات ورته هم معلوم دی |

**قوله تعالي:** اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ

**په احرام کښې دسمندري ښکار حکم:-** ستاسو د پاره د سمندرتازه ښکار حلال دې او کوم کبان چه اوچ کړې شي او د لارې توښه جوړولې شي هغه هم ستاسو د پاره او د اهل قافلې د پاره جائز دی. د حضرت ابن عباس ؓ نه روایت دې چه هغه ښکار چه ژوندې د سمندرنه حاصل کړې شي مراد دې. او لفظ (طعام) نه هغه مراد دې کوم چه سمندر وژلې وی اوغاړې ته نې غورزولې وی.حضرت ابوبکر صدیق ؓ فرمائی چه د طعام نه هر هغه څیز مراد دې کوم چه په سمندرکښې دی. حضرت ابوبکر ؓ خطبه ورکړه نو وئې فرمائیل چه سمندری ښکار ستاسود پاره حلال دې او نه ښکارشوې لیکن د سمندر راغورزونکې هغه هم ستاسود فائدې او د لارې د توښې څیز دې. ابن المسیب ؒ وائی چه سمندر خو ژوندې راغورزولې وی خو په اوچه باندې هغه مړ شوې وی نو دا طعام دې. عبدالرحمن ؒ سوال اوکړو چه سمندر ډیرمړه کبان په غاړه راغورزوی نوهغه مونږ خوړلې شونوابن عمر ؓ جواب ورکړوچه مه خورئی. کله چه عبدالله بن عمر ؓ کورته راغلو او قرآن نې کولاؤکړو او دا آیت نې اولیدلو ﴿وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ﴾ نو وئې وئیل چه لاړ شه او ورته اووایه چه خورئی خکه چه د سمندر څیز ته الله ﷻ طعام وائی. ابن جریر ؒ هم دغه وائی چه د طعام نه مراد هم د سمندر مړه کبان دی. حضور ﷺ هم دغه فرمائیلی دی چه د سمندر په چپوباندې مړه راغلی شوی کبان طعام دی.

متاع نه مراد منفعت اوقوت دې.سیاره جمع ده سیارده،عکرمه ؒ وائی چه کوم په سمندری مقاماتوکښې وی هغه خو تازه تازه ښکار کوی او چه کوم مړه شی نو هغه اوچ کړی او ذخیره نې ساتی اویا ښکار نې کړی او پریږدی او دا مسافران او دغاړې نه لرې اوسیدونکو دپاره د لارې د توښې کار ورکوی. جمهورو د مړ کب په حلال والی باندې د دې آیت نه استدلال کړې دې. امام مالک ؒ د حضرت جابر بن عبدالله ؓ نه روایت کړې دې چه نبی اکرم ﷺ د ساحل طرف ته یو لښکر اولیږلو. ابو عبیده بن جراح ؓ نې د دې امیر جوړکړو. دا درې سوه کسان وو او زه هم شامل ووم. مونږ هم په لار باندې وو چه توښه ختمه شوه. نو ابوعبیده ؓ حکم ورکړو چه د ټول لښکر نه توښه راجمع کړئی، ما سره په توښه کښې کهجورې وې، مونږ به د هغې نه هره ورځ لږې لږې خوړلې. آخر هغه ذخیره ختمه شوه اود رسد په توګه به مونږ ته یوه یوه کهجوره ملاویدله. مونږ پخپله اوس مرګ ته نزدې شو خو سمندرته راورسیدو.په ساحل باندې مو اوکتل چه یوکب د غونډۍ په شان اوږد او پلن پروت دې. زمونږ ټول لښکر هغه دیارلس ورځې اوخوړلو. ابوعبیده ؓ د ده دوه پوښتئی د کمان په شان د لګولو حکم اوکړو.د دې کمان لاندې یو په اوښه سور تیرشو اود هغې پورتنئی حصې ته اونه رسیدلو. حضرت جابر ؓ هم داسې بیان کوی چه د سمندر په ساحل باندې د یوې غونډنی په شان اوچت څه معلوم شو، چه اومو کتل نوهغه سمندری مخلوق مړپروت وو کوم ته چه عنبروائی.حضرت ابوعبیده ؓ اوفرمائیل چه دا خو مړ دې بیائې اوفرمائیل چه مونږ خو د رسول الله ﷺ قاصدان یود ولږې نه مجبور یو.تازه تازه غوښه ده ښه نې اوخورئی.مونږ هلته یوه میاشت حصار وو او مونږ درې سوه کسان وو، په خوراك خوراك ښه چاق شو. د هغه د سترګود حلقونه به مونږ ډك ډك منګی غواړی راویستل، دومره لوئ لوئ تکړې وې لکه د غوا.حضرت ابوعبیده ؓ د هغه په سترګه کښې دیارلس کسان کینولې وو. د هغه یوه پوښتئی دکمان په شکل کښې اودرولې وه نود لوئ نه لوئ اوښ د هغې لاندې تیرشو. غرض دا چه هغه کب دومره غټ وو،(۱) بیا مونږ د هغه غوښه اوچه کړه او د لارې توښه مو ترې جوړه کړه. کله چه مدینې ته اورسیدلو نوحضور ﷺ ته مو ذکر اوکړو نو وئې فرمائیل چه دا ستاسو د پاره د الله ﷻ د طرف نه رزق وو که تاسو سره څه وی نو راوړئی په مونږ باندې هم اوخورئی.مونږ حضور ﷺ ته څه

(۱)صحیح بخاری کتاب الشرکة فی الطعام...:۲٤۸۳، صحیح مسلم:۱۹۳۵،مؤطا امام مالک: ۹۳۰/۲، ابن حبان : ۵۲٦۲، بیهقی : ۲۵۲/۹

اولیکل هغوی تناول اوخوړل[1] اوپه یو روایت کښې دی چه دا لښکر حضورﷺ سره وو کله چه دا کب لیدلې شوې وو ،ځینې وائی چه نه،حضرت ﷺ ورسره نه وو اوهغه بله واقعه ده. څوك وائی چه نه واقعه هم یوه ده، په اوله واقعه کښې حضور ﷺ ورسره نه وو او هغه بله واقعه ده.بعض وائی چه نه هم یوه واقعه ده په ړومبنۍ واقعه کښې نبی اکرم ﷺ ورسره ووبیا چه کله حضورﷺ دویم لښکر اولیګلو نو د هغې امیر ابوعبیده ﵁ وو اودا واقعه هم د دې ابوعبیده ﵁ د لښکر وه. والله اعلم.

د ابوهریره ﵁ نه روایت دې چه یو سړی د حضور ﷺ نه سوال اوکړو یا رسول الله ﷺ مونږ سمندرکښې سفرکووا و لږې شان اوبه ځان سره ساتلې شو که په دې سره اودس اوکړو نو مونږ به تږې پاتې شو نو په دې صورت کښې مونږ په سمندرکښې اودس کولې شو؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل چه د سمندر اوبه پاکې دی اوددې مړ کب حلال دې[2]دصحابه کرامو رضی الله عنهم دیوې ډلې نه هم دغه روایت دې. ابو هریره ﵁ فرمائی چه مونږ حضور ﷺ سره په حج یا عمره کښې یوځای وو نود ملخانو یو لښکر سره مونږ مخامخ شو، مونږ به هغه په خپل لرګی وهلو او هغه به مړ مونږ ته راپریوتلو. مونږ خپل مینځ کښې اووئیل چه اوس به څه کوو مونږ خو د احرام په حالت کښې یو نوحضور ﷺ اوفرمائیل چه د سمندری ښکار ممانعت نشته.[3] نبی کریم ﷺ چه کله ملخانو ته بددعا کړې وه نو وئیلی وویا الله لوئ واړه ټول ملخان هلاك کړې د هغوی هګئی ضائع کړې او نسل ئې ترې زیات مه کړې چه دا زمونږ غله او فصلونه اوزمونږ باغونه او ونې تباه نه کړی. ته خو مجیب الدعوات ئې حضرت خالد﵁ اووئیل یا رسول الله ﷺ داخو هم لکه چه یو الهی فوځ دې ته د دوی د نسل ختمولو بددعا ولې کوې؟ هغوی اوفرمائیل چه دا ملخان هم د سمندر د کبانو د نسل نه دی. زیادﷺ بیان کوی چه ماته پخپله دې سړی بیان کړې دې چا چه د کب نه ملخ راپیدا کیدونکې لیدلې دې.[4] دا حدیث صرف ابن ماجه بیان کړې دې. ابن عباس ﵁ په احرام کښې د ملخانو ښکار کولو ممانعت کړې دې.ځینې فقهاؤ د دې آیت نه استدلال کړې دی چه ټول سمندری ځناورخوړلې شی او په دې کښې د هیڅ څیز استثناء نشته.بعضو چیندخان مستثنی کړی دی اود دې نه علاوه باقی جائز ساتلی. د حضرت عبدالله بن عمر﵁ نه روایت دې چه حضور ﷺ د چیندخ د وژلو ممانعت کړې دې او فرمائیلی دی [5] چه ددې آوازد الله ﷻ تسبیح دې [6]نورو وئیلی دی چه کب دې خوړلې شی خوچیندخه دې نه شی خوړلې.

**د کب نه سوا باقی ټول سمندری ځناور حرام دی**

**مسلک حنفی:-** د احنافو په نیز په سمندری ځناورو کښې د کب نه سوا نور ټول ځناور حرام دی په هغې کښې چیندخ هم دې ځکه که مردار وی نود دې آیت په وجه حرام دې چه ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ﴾ یعنی په تاسو باندې مرداره حرامه دا آیت عام دې که د وچې مرداره وی اوکه د سمندر البته صرف دوه مردارې حلالې دی دکوموا ستثناء چې په حدیث کښې راغلې ده نبی کریم ﷺ فرمائی ﴿احلت لنا میتتان الحوت والجراد﴾ یعنی دوه مردارې زمونږ دپاره حلالې دی یو کب اوبل ملخ ددې حدیث نه معلومیږی چه دلته د

[1]) صحیح مسلم کتاب الصید باب اباحة میتات البحر : ۱۹۳۵، صحیح بخاری : ٤۳٦۲، مختصرا ابوداود : ۳۸٤۰، احمد: ۳/۳۰۳،

[2]) ابوداود کتاب الطهارة باب الوضوء بما البحر : ۸۳، وسنده صحیح ترمذی : ٦۹، نسائی : ۳۳۳، ابن ماجه: ۳۸٦، احمد: ۲/۳٦۱.

[3]) ابو داود کتاب المناسک باب الجراد للمحرم: ۱۸۵٤، وسنده ضعیف جدا ترمذی : ۸۵۰، ابن ماجه: ۳۲۲۲، احمد: ۲/٤۰۷، ددی سند کښې اب،الهزم یزید بن سفیان ضعیف راوی دې (المیزان: ٤/٤۲۲،رقم: ۹۷۰۱،

[4]) ابن ماجه: کتاب الصید باب صید الحیتان والجراد: ۳۲۲۱، ترمذی : ۱۸۲۳،

[5]) ابوداود کتاب الطب باب فی الادویة المکروهة : ۳۸۷۱، وهو صحیح نسائی : ٤۳٦۰، احمد: ۳/٤۵٤.

[6]) ابوداود کتاب الاطعمة باب فی الطال من السمک : ۳۸۱۵،

مرداري نه ټولې مرداري مراد نه دي بلکه صرف د کب (مهاى) حلت تري مراد دي بله يوه خبره هم د احنافو د مذهب تائيد کوى هغه دا چه د مکې نه ،،جده،، په لږۀ فاصله کښې ده او په جده کښې سمندرشته خوپه ذخيره د احاديثو کښې دا ثابته نه ده چه نبى کريم ﷺ يا بل صحابى د کب نه سوا د سمندر بل ځناور خوړلي دي د دې نه معلومه شوه چه د کب نه علاوه د سمندر نور ځناور حرام دى (حلال اوحرام تاليف مولانا خالد سيف الله رحماني (صفحهٔ ۱۲۲، ۱۲۳)-
د دې دپاره په ماسواکښې اختلاف دې.ځينې وائى د اوچې کوم ځناور چه خوړلې شى د هغې په شان چه کوم د سمندر ځناوردى هغه دې خورى او چه د اوچې کوم ځناور نشى خوړلې نود سمندر هم د هغې په شان ځناوردې نشى خوړلې. دا ټول اختلافات د امام شافعى رحمه الله په مذهب دى. او امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه په سمندرکښې کوم کب مړ شى هغه دې نشى خوړلې لکه څنګه چه د اوچې مړځناور نشى خوړلې. خکه چه الله (ﷻ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ) فرمائيلي دى.رسول الله ﷺ نه روايت دې چه تاسو د سمندرنه کوم ښکار کړې وو هغه ژوندې وو بيا مړشونو خورئې اوکوم مړ کب چه د سمندر چپو غاړې ته راوړې وى هغه مه خورئى.([1]) جمهورو د اصحاب مالك رحمه الله شافعى رحمه الله او احمد رحمه الله نه د حديث عنبر په ذريعه د دې حديث نه استدلال کړې دې. چه د سمندر اوبه صفا دى اوددې مړشوې حلال دى.
په دې وجه هغه داسې کب هم جائز ګڼرى. رسول الله ﷺ فرمائيلى چه ځمونږ د پاره دوه مړه ځناور او دوه وينې جائز دى. دوه مړه ځناور خو کب او ملخ دې او دوه اينهٔ او تورى.

**په مردارو کښې صرف د کب حلت هم چې سمک طافى نه وى**

**مسلک حنفى**- داحنافو په نيز د سمندر ټول ځناور حرام دى سوا د کب نه ځکه چه د کب په حديث کښې استثناء راغلې ده يو د ملخ او بل د کب نو که د سمندر ټول ځناور حلال وې نبى کريم ﷺ به ولې صرف د دوو ځناور استثناء کوله او په کبانو کښې هم چه کوم کب په طبعى مرګ سره مړ شى يعنى بغير د ښکار کولو نه مړ شى نو که هغه د اوبو د سرډپاسه راشئ او خيټه ئې پورته وى نود احنافو په نيز هغه هم حرام دې ځکه چه په حديث کښې دې ته ،،سمک طافى،، وئيلې شوې دې او د دې د خوړولو نه ئې منع فرمائيلې ده (حلال او حرام تاليف خالد سيف الله رحمانى صفحه (۱۲۲)-

**د احرام په حالت کښې د اوچې د ښکار حکم**:- د الله ﷻ ارشاد دې(وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا) يعنى د احرام په حالت کښې تاسوله د اوچې ښکار کول حرام دى. که عمداً داسې کونى نو ګناهګار به هم ئې اوتاوان به هم ورکونې اوکه په خطا نه موکړې نو د تاوان ورکولو نه پس به سزا ختمه کړې شى ليکن د دې ښکار خوراك به حرام وى ځکه چه دا د ده په حق کښې د مردارې په مثال دې.

**په محرم ښکارى باندې د کفارې په تعدد کښې اختلاف**- ① د امام شافعى رحمه الله او امام مالك رحمه الله يو قول دا هم دې چه داحرام والا او غيراحرام والا ټولو دپاره ددې خوراك حرام دې. نو که هغه ښکارى د دې نه څه اوخورى نو په هغه به دوچنده فديه لازميږى، په دې کښې د علماؤ دوه اقوال دى. يوخودا چه دوچنده فديه لازميږى.دعطاء رحمه الله نه روايت دې که چرې محرم ښکارى دا ذبح کړى نو دوه کفارې به لازميږى.دعلماؤ د يوې ډلې مذهب خودا دې. ② بل قول دا دې چه په خوړونکى باندې به دويمه فديه نه لازميږى.دمالك بن انس رحمه الله هم دغه مذهب دې.ابوعمر وائى چه زناکار د حد وهلونه وړاندې بار بار وطى کړى وى نوپه ده باندې به صرف يوحد قائم کولې شى③ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى د خپل ښکارغوښه خوړلو باندې دخپل خوراك قيمت ورکول لازميږى د دې نه زيات نه ④ابوثور رحمه الله فرمائى

[1]) سوره بقره کښې ددې تخريج تير شوې دې

چه په داسې صورت کښې به په محرم صرف کفاره لازمیږي اود هغه ښکار نه خوړل دده د پاره حلال دي. لیکن زه ئې مکروه ګڼړم چه هغه د دې نه اوخوري ځکه چه حضور ﷺ فرمائیلي دي چه دا په حالت احرام کښې د اوچې ښکار په تاسو حلال دې په دې شرط چه تاسو پخپله د دې ښکار نه وي کړې اونه ستاسودپاره ښکارکړې شوی وی. د دې حدیث بیان به وړاندې راځي خود ښکاری دپاره د دې خوړل جائز ګرځول عجیبه خبره ده.

### د محرم د ښکار کولو نه پس د هغې نه د خوراک دوه صورتونه

**مسلک حنفي :-** که محرم په حالت د احرام کښې ښکار اوکړي.اود ښکار نه پس ئې د هغې نه خوراک اوکړو نو د دې دوه صورتونه دی که د ښکار کولو نه پس ئې کفاره ورنکړه او د هغې نه پس ئې خوراک اوکړو نوبله فدیه پرې نشته صرف یوه فدیه به ورکوی اوکه د ښکار کولو نه پس ئې فدیه ورکړه اود هغې نه پس ئې خوراک اوکړو نو په دې صورت کښې په ده باندې یوه فدیه لازمیږي او څومره خوراک چې ئې ترې کړې وی نو د هغې قیمت به ورکوی (معلم الحجاج تالیف سعید احمد مفتی مظاهرعلوم صفحه ۲۲۳).

اود غیر ښکاری دپاره د محرم دښکار باره کښې اختلاف دې. مونږ وړاندې بیان کړې دې چه جائز نه دی. لیکن څینې خلق غیر ښکاری دپاره د دې خوراك کولو ته جائز وائی او محرم او غیرمحرم ئې ټول یو شان ګرځولی دی.

### د محرم د ذبیحې یا ښکار د غیرمحرم دپاره حرمت

**مسلک حنفي:-** که محرم ښکاریا ذبحه اوکړي نو دهغه ذبیحه دغیرمحرم دپاره حرامه ده دې د هغې نه خوراک نشی کولې (تسهیل الهدایه شرح هدایه ۵۵۴/۲).

**دغیرمحرم ښکار خوړل د محرم دپاره :-** ①چه کله غیر محرم ښکار اوکړي او محرم ته ئې هدیه کړي نو څینې وائی چه د محرم د پاره مطلقًا جائز دی او په دې کښې هیڅ فرق نشته. که پخپله ئې د هغه د پاره ښکار کړې وی اوکه نه، د حضرت ابوهریره ﷺ نه د غیر محرم د ښکارباره کښې تپوس اوکړې شو چه د هغې خوړل د محرم د پاره حلال دی نو فتوی ئې ورکړه چه او خوړې شي. بیا حضرت عمر بن الخطاب ﷺ سره ملاقات اوشو نو هغه ته پته اولګیده نوهغه اووئیل که تاد دې خلاف فتوی ورکړې وه نو ما به تاله سزا درکوله. لیکن نورو خلقو به بالکلیه ناجائز ګڼړل. ابن عباس ﷺ او ابن عمر ﷺ به مکروه ګڼړل. ځکه چه د ﴿حُرِّمَ عَلَيْكُمْ﴾ آیت عام دی. حضرت علي ﷺ به د محرم د پاره د ښکار د غوښې خوړلوته مکروه ونیلې.②او امام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله وغیره وائی که غیرمحرم د محرم د پاره ښکار کړې وی نو محرم له د دې خوړل جائز نه دی. صعب بن جثامه ﷺ یو خل نبی اکرم ﷺ له یو ګورخر هدیه کښې لیګلې وو نو حضور ﷺ واپس کړې وو، نو چه کله هغوی ﷺ د لیګونکی په مخ باندې د خفګان آثار اولیدل نو ونی فرمائیل چه زه خونې صرف د محرم والی په وجه نه خورم. دا حدیث په بخاری او مسلم کښې [1] په ډیرو الفاظ سره دې. د دې وجه دا وه چه نبی اکرم ﷺ دا خیال کړې وو دا ئې صرف د هغه د پاره ښکار کړې وو، په دې وجه ئې واپس کړو او که یو ښکار د محرم د پاره نه وی کړې نو د محرم د پاره د دې خوراك جائز دې ځکه چه د ابوقتاده ﷺ په حدیث کښې دی چه هغه یو ګورخر ښکار کړې وو اوهغه محرم نه وو اود هغه ملګری محرم وو نو هغوی د دې

[1] صحيح بخارى كتاب جزاء الصيد باب اذا هدى للمحرم حمارا اوحشياحيالم يقبل : ۱۸۲۵، صحيح مسلم : ۱۱۹۳.



د خوراك نه منع شو اوحضرت ﷺ نه ئې تپوس اوكړو چه تاسو كښې يوكس ښكارى ته د ښكار د پاره ښكار خودلې وو ياد هغې په قتل كولو كښې مو څه امداد كړې وو؟ نو ملګرو ونيل چه نه، نو وئې فرمائيل چه بيا خو ئې خورئى او پخپله ئې هم اوخوړلو.(¹)د حضرت جابربن عبدالله ﷺ نه روايت دې چه حضرت ﷺ اوفرمائيل د اوچې ښكار ستاسو د پاره حلال دې په دې شرط چه تاسو پخپله په حالت د احرام كښې ښكار نه وى كړې يا ستاسو په وجه يا ستاسو په مقصد سره ښكار نه وى كړې شوې.(²) عامر بن ربيعه رحمه الله وائى چه ما حضرت عثمان بن عفان ﷺ چه كوم وخت هغه په عرج كښې وو او محرم وود سرما زمانه وه اومې كتلوچه هغوى خپل مخ په ارغوانى رنګ څادر پټ كړې وو. بيا د ښكار غوښه راوړلې شوه نو حضور ﷺ صحابو ته اووئيل چه تاسو ئې اوخورئې زه ئې نه خورم خکه چه دا ښكار زما په خاطر كړې شوې دې او ستاسو په خاطر نه دې كړې شوې.(³)

**د غيرمحرم ښكار د محرم دپاره جواز**

**مسلك حنفى:-** كه غيرمحرم كس ښكار اوكړلو.اوهغه ئې ذبح كړلو.اوبيا ئې په محرم باندې اوخوړلو.نوپه محرم باندې څه ضمان نه واجبيږى.خوپه دې شرط چه نه ورته محرم دلالت كړې وى.اونه ئې ورته حكم كړې وى (تسهيل الهدايه شرح هدايه (۵۵٦۱۲)-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلْ | لَّا يَسْتَوِى الْخَبِيْثُ | وَالطَّيِّبُ | وَلَوْ | اَعْجَبَكَ |
| اووايه | نهٔ برابريږى | ناپاك | اوپاك | اګر كه | تعجب درولى تاله |
| ادوئ ته اووايه چې پاك اوناپاك برابرنه دى | | اګر چې دناپاك څيزونو | | |
| كَثْرَةُ الْخَبِيْثِۚ | فَاتَّقُوا | اللّٰهَ | يٰۤاُولِى الْاَلْبَابِ | لَعَلَّكُمْ |
| ډيروالې دناپاكو | انواويريږئ اونافرمانئ مهٔ كوئ | ادالله نه | اې خاوندانو | دعقلونو | دپاره ددې چې تاسو |
| ډيروالې تاسو حيرانوى | اوائې دعقل خاوندانو الله ﷺ نه ويريږئ | ...........دې دپاره چې تاسو | | |
| تُفْلِحُوْنَ | يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا تَسْـَٔلُوْا | عَنْ اَشْيَآءَ |
| خلاصې بيا مومئ | اې هغه كسانو | چې ايمان موراوړې دې | امهٔ كوئ پوښتنه | په باره دهغه څيزونو كښې |
| كامياب شئ | انې دايمان خاوندانو ددا سې څيزونو باره كښې تپوسونه مه كوئ.......... | | | |
| اِنْ تُبْدَ | لَكُمْ | تَسُؤْكُمْۚ | وَاِنْ تَسْـَٔلُوْا | عَنْهَا |
| كه ښكاره شى | تاسو ته | نو په تكليف كښې به واچوى تاسو | اوكه تاسو تپوس اوكړو | په باره دهغې كښې |
| كه هغه تاسوته ښكاره كړې شى | نو تاسو به خفه كړى | .........اوكه تاسو په داسې وخت كښې تپوس كوئ | | |
| حِيْنَ | يُنَزَّلُ | الْقُرْاٰنُ | تُبْدَ | لَكُمْ | عَفَا اللّٰهُ |
| په هغه وخت كښې | چې نازلولې شى | قرآن | نوضروربه ښكاره كړې كيږى | تاسوته | معافى اوكړه الله |
| چې قران پاك رانازليږى | انوهغه بهٔ درته خواه مخواه ښكاره كولې شى | الله ﷺ تاسو ته معافى اوكړه | | |

(¹) صحيح بخارى حواله سابق : ۱۸۲۴۴، صحيح مسلم: ۱۱۹٦.
(²) ابوداود كتاب المناسك باب لحم الصيد للمحرم : ۱۸۵۱، .
(³) موطا امام مالك كتاب الحج باب ما لا يحل للمحرم كاله من الصيد : ۸۴، وسنده صحيح موقوف للطبرى : ۱/۲٦٦

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَنْهَا ؕ | وَاللّٰهُ | غَفُوْرٌ | حَلِيْمٌ ﴿١٠١﴾ | قَدْ | سَاَلَهَا | قَوْمٌ |
| دتپروتپوسونو | او الله | ښښونکې | صبرناك دې | په تحقيق سره | پوښتنه کړې وه دداسې خبرو | يو قوم |
| د الله ﷻ ښښونکې او برداشت کونکې دې ........... ستاسو په شان يو بل قوم هم تپوسونو کولو | | | | | | |
| مِّنْ قَبْلِكُمْ | ثُمَّ | اَصْبَحُوْا | بِهَا | كٰفِرِيْنَ ﴿١٠٢﴾ | | |
| وړاندې ستاسو نه | بيا | شول هغوئ | په هغې باندې | کافران | | |
| کوم چه ستاسو نه وړاندې وو او بيا د هغې خبرې په وجه کافر شو | | | | | | |

قوله تعالى:: قُلْ لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ

**په رزق حلال باندې قناعت:-** الله ﷻ حضور پاك ﷺ ته ارشاد فرمائي چه پاك او ناپاك دواړه نه شي برابريدلې سره د دې چه خبيث څومره ښه ولې نه وي. اې انسانه لږ شان حلال څيز چه فائده مند وي هغه د هغه کثير حرام څيز نه بهتر دې مضرت بخش وي لکه چه په حديث شريف کښې دی چه کم څيز او کفايت کونکې څيز ښه دې د کثير څيز نه کوم چه د الله ﷻ نه غافله کونکې دې. ثعلبه ابن حاطب الانصاري ﷺ اووئيل اې رسول الله ﷺ دعا اوکړنی چه ماله الله ﷻ ډير مال حال راکړي. حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه لږ مال د کوم چه ته شکر ادا کړې هغه د هغه کثير مال نه بهتر دې د کوم چه ته شکر ادا نه کړې.(١) نو اې د صحيح عقل خاوندانو د الله ﷻ نه اوويريږئ، د حرامو نه بچ شئ، په حلال باندې قناعت اوکړئ کيدې شي چه تاسو په دين او دنياکښې خلاصې بيامومئ.

قوله تعالى:: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ

**د بې ځايه سوالونو ممانعت:-** بيانې اوفرمائيل اې ايماندارو دداسې سوالونوتپوس مه کوئ که د هغې جوابونه ښکاره شي نو تاسو ته به سخت تکليف دراورسي. دا د الله ﷻ د طرف نه مؤمنانو بنديګانو نه خبرداري دې او غير فائده مند او مضر سوالونو تپوسونو نه ممانعت دې ځکه که چرې دا امور ظاهر شي نو د هغې په اوريدو به په دوی سختي تيرشي او خفګان به وراورسي. حضرت ﷺ اوفرمائيل چه څوك ماله د چا څه خبر مه رارسوئ زه غواړم چه هم تاسو ته مخامخ يم نو زما زړه به تاسو نه بالکل صفا وي اود چا د طرف نه به مې زړه کښې خفګان نه وي.(٢) حضرت انس بن مالك ﷺ فرمائي چه حضور ﷺ خطبه ورکړې وه چه داسې خطبه ما چرې هم نه وه اوريدلې. حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه که تاسو هغه څه پيژندل کوم چه زه پيژنم نو ډيرکم به مو خندل او ډير زيات به مو ژړل. نو صحابه کرامو رضي الله عنهم خپل مخونه پټ کړل او ژړلې. يو سړي پاسيدو تپوس ئې اوکړو اټې حضور نبی کريم ﷺ زما پلار څوك وو؟ وئيل فلانکې وو. نو دا آيت نازل شو چه ﴿لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ﴾ (٣)د حضرت انس بن مالك ﷺ نه روايت دې چه يوه ورځ بعضو صحابه کرامو د حضور ﷺ نه څه سوالونه اوکړل او په اصرار ئې اوکړل حضور ﷺ منبر له راغلو او وئې فرمائيل چه نن کومې خبرې زما نه تپوس کوئ نو اوکړئ زه به ستاسو ټول حالات بيان کړم. حضور نبی کريم ﷺ صحابه کرامو چه دا واوريدل نو ټول اوريدل چه څه نوې خبره ښکاره کيدونکې ده او ما چه کس طرف او ښي طرف کوم خوا هم کتل

---

(١) مسند ابي يعلى : ١/٢٩٥، وسنده حسن صحيح ابن حبان : الاحسان: ٣٣١٩، تهذيب الآثار ، مجمع الزوائد: ١٠/٢٥٦.

(٢) المعجم الكبير : ٧٨٧٣ مجمع الزوائد : ٧/٣١ ٢٢.

(٣) ابوداود كتاب الادب باب رفع الحديث من المجلس : ٤٨٦٠، ترمذی : ٣٨٩٦، احمد: ١/٣٩٥، مسند ابي يعلى : ٥٣٨٨.

صحابه کرامو خپل مخونه په کپړو پټول او ژړيدل. يو سړي پاسيدو څوك چه د خپل پلار باره کښې خلقو بدنام ګنړلو ونيل اې د الله ﷻ نبیﷺ زما پلارڅوك وو؟ حضور ﷺ اوفرمائيل حذافه وو، بيا حضرت عمرؓ اودريدو چه مونږ ته د هيڅ څيز د تپوس ضرورت نشته، الله ﷻ زمونږ رب دې، اسلام زمونږ دين دې، محمدﷺ زمونږ رسول دې. مونږ د څه فتنې د ښکاره کيدو نه پناه غواړو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د نن په شان ما چرې خير او شر ښکاره نه دې ليدلې. جنت او دوزخ زما په وړاندې داسې مجسم دی لکه چه د دې ديوال شاته دی. (١) د ابن حذافه په تپوس باندې ام عبدالله بن حذافه ونيل چه تانه ډير نالائق هلك ما نه دې ليدلې تاته څه پته ده چه د جاهليت په ورځو کښې به څه څه کيدل، فرض کړه که زه هم په هغه زمانه کښې په څه معصيت کښې اخته شوې ووم نو نن به د نبی کريم ﷺ په مبارکه ژبه د خلقو په وړاندې ستا په وجه رسوا کيدل وو. عبدالله ونيل چه که څوك حبشی غلام هم زماپلار ګرخيدلې وې نو ما به خپل ځان هم هغه طرف ته منسوب کولو. د حضرت ابوهريره ؓ نه روايت دې چه حضور ﷺ باهر راوتلو نو ډير په غصه کښې وومخ مبارك ئې تك سور وو. په منبر باندې کيناستو نو يو سړي تپوس اوکړو زما مړ پلار ګوم ځاځ کښې دې. حضور اوفرمائيل دوزخ کښې دې، بل سړي تپوس اوکړو زما پلار څوك دې؟حضور ﷺ اوفرمائيل ستا پلار حذافه دې عمر ؓ اودريدو او ونې ونيل بس کافی دی زمونږ د پاره الله ﷻ زمونږ رب دې، اسلام زمونږ دين دې او محمد ﷺ زمونږ رسول دې، قرآن زمونږ امام دې، يا رسول اللهﷺ مونږ جاهليت او شرك زمانې سره ډير نزدې يو هم الله ﷻ ته معلوم دی چه زمونږ پلاران نيکونه څوك وو، دې اوريدو سره د حضور ﷺ غصه سړه شوه او دا آيت نازل شو چه داسې سوالونه مه کوئی چه خبره ښکاره شی نو تاسو به خفه شئی.(٢)

په يو مرسل حديث کښې دی چه يوه ورځ حضور ﷺ په غصه کښې وو پاسيدو او ونې فرمائيل چه تپوس اوکړئی مانه چه څه تپوس کوئی چه درته ئې اوښايم، دې اوريدو سره د بنی سهم يو قريشی پاسيدو چه د هغه د پلار باره کښې پيغورونه کيدل تپوس ئې اوکړو حضرت زما پلارڅوك وو نو حضور ﷺ هغه هم د خپل پلار طرف ته منسوب کړو، حضرت عمرؓ پاسيدو ونې ونيل چه حضرت زمونږ خطا معاف کړئی الله ﷻ دې تاسو هم معاف کړی، هغه باربار درخواست اوکړو تردې چه د حضرت غصه سړه شوه ونې فرمائيل چه د زناکارې ښځې ځوئ به د پلار په ځاځ مورطرف ته منسو ب کولې شی او په زناکار باندې کاڼړی پريوزی. د حضرت ابن عباس ؓ نه روايت دې چه خلقو به د حضور ﷺ نه د ظرافت او خوش طبيعتئی د پاره هم تپوسونه کول چه زما پلارڅوك دې چا به ونيل چه زما ورکه شوې اوښه چرته ده نو د سوالونونه د ممانعت آيت نازل شو.

د حضرت علی ؓ نه روايت دې چه کله دا آيت نازل شو ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا﴾ چه ټم چا طاقت وی په هغه باندې حج فرض دې نو خلقو تپوس اوکړو چه يارسول اللهﷺ هرکال؟ نو هغه ﷺ خاموش شو نو دوباره تپوس اوکړې شو چه هر کال؟ هغویﷺ بيا خاموش شو نو په دريم خل تپوس اوشو نوونې فرمائيل چه کله چرې ما او اوکړل نو هرکال به په تاسو حج فرض شی. د څه چه تاسو طاقت نه لرئی او که ادا مو نه کړو نو کافران به شئی. نود سوالونو د ممانعت آيت نازل شو.(٣) يو بل سړی هم داسې تپوس کړې ووچه حج به هر کال کوو، نو نبی کريم ﷺ چغه اووهله چه چپ شه، يا ئې په هغه

(١) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة المائدة باب قوله ( لاتسئلوا عن اشيا ان تبدلکم تسؤکم) : ٤٦٢١، صحيح مسلم: ٢٣٥٩، ترمذی : ٣٠٥٨، احمد: ٣/٢١٠. مسندالطيالسی: ٢/٦٠.

(٢) الطبری :: ١١/١٠٣

(٣) ترمذی : کتاب الحج باب ماجاء کم فرض الحج : ٨١٤، وسنده ضعيف . وسنده منقطع.

باندې غصه اوکړه، څه وخته پورې چپ حصار وو بيائې اوفرمائيل چا سوال کړې وو، يوبانډچى اونيل چه ما سوال کړې وو نو حضرت نبى کريم ﷺ اوفرمائيل کم بخته که چرې ما او ونيلې وې نو هرکال د حج د فريضې نه به چا بچ کولې ښکاره خبره ده چه تاسو به نشو ادا کولې، تاسو نه وړاندې امتونه خو هم په دې هلاك شوى دى. که زه ستاسودپاره دنيا او مافيها هم حلال کړم او يو قدم ځاى حرام کړم نوهم د دې حرص به تاسو راګير کړى،(۱) خکه خو الله ﷻ فرمائيلى دى چه که ستاسو د سوالونو جوابونه درکړې شى نو په تاسو به ډير ګران پريوزى. الله ﷻ اوفرمائيل ﴿وَإِن تَسْـَٔلُوا۟ عَنْهَا حِينَ يُنَزَّلُ ٱلْقُرْءَانُ تُبْدَ لَكُمْ﴾ د قرآن د نازليدلو په وخت که تاسو څه تپوس کونى د څه نه چه تاسو منع شوې نې نو يقين ساتنى چه الله ﷻ به ستاسو په سوال رنړا واچوى نو بيا به څه کونى او دا خبره په الله ﷻ باندې آسانه ده. کوم چه تيرشوى دى نو هغه الله ﷻ معاف کړى دى الله ﷻ ډير ښښونکې او حليم دى. په دې وجه هيڅ يو نوې سوال بغيرضرورت نه مه کونى ګنى په جواب کښې به په تاسو سختى او تنګى راشى. او دا په خپل لاس باندې خان مصيبت کښې اچول دى.

په حديث شريف کښې دى چه د مسلمانانو د ټولو نه لوئ مجرم هغه دې د چاد سوال په وجه چه صرف د وضاحت د وجه هغه څيز حرام کړې شو او په خلقو باندې تنګى پيدا شوه. (۲) اوکه د قرآن يوه خبره د اجمال په توګه په پوهه کښې رانشى او تاسو پوهيدل غواړنى نو تپوس اوکړنى زه به نې بيان کړم. خکه چه تاسو د حکم پوره کولوکښې د هغې ضرورت لرنى. که په کتاب کښې څه ذکر نه وى او تاسو اوکړل نو ستاسو د عمل څه تپوس نشته، نو تاسو هم د يو سوال متعلق چپ اوسيږنى، لکه چه په صحيح حديث کښې دى حضور ﷺ فرمائيلى چه ما کوم بيان نه وىکړې هغه هم غير بيان شوې پريږدنى. د ډيرو سوالونو په وجه د انبياء عليهم السلام د حکم نه اختلاف کولو سره وړاندينى قومونه تباه شوى دى.(۳) حضور ﷺ فرمائيلى چه الله ﷻ فرائض مقرر کړى دا مه ضائع کونى اود عمل حدود نې مقررکړى د هغې نه وړاندې والې مه کونى او چه کومې خبرې حرام کړى هغه مه کونى. زه د څينو خبرو نه په قصد چپ پاتې شوم ،داپه تاسو باندې داقتضاء رحمت په وجه دى.زه دهيريدو په وجه خاموش نه يم په دې وجه هيڅ کله سوال مه کونى.(۴) بيا الله ﷻ اوفرمائيل چه د دې ممنوعه مسائلو تپوسونه تاسو نه وړاندې قومونوکړى وو جواب ورکړې شو نو د سختنى راتلو په وجه هغوى عمل اونه کړو نو کافران شو. خکه چه هغوى د هدايت غوښتلود پاره سوال نه کولو بلکه د ټوقو او مسخرو او عناد په وجه نې سوال کولو. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ما څه پريخودل تاسو هم هغه پريږدنى، او زه چه کوم حکم درکړم تاسو هغه پوره کونى. نصارى چه څنګه سوالونه کړى وو تاسو د هغې نه منع شنى. هغوى مانده غوښتې وه خو سره د هغې نې کفر اوکړو اود مانده قدر نې اونه کړو. د تپوس په ځاى پخپله زما د وينا انتظار کونى. ستاسو د تپوس نه بغير به قرآن پاك پخپله ستاسو د سوال د وضاحت د پاره نازل کړى شى. دحضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه دبحيره، وصيله، سائبه او حام متعلق سوالونوکولو ممانعت دې ګورنى﴿لَا تَسْـَٔلُوا۟ عَنْ أَشْيَآءَ﴾ نه پس ﴿مَا جَعَلَ ٱللَّهُ مِنۢ بَحِيرَةٍ وَلَا سَآئِبَةٍ﴾ وغيره دي.

---

(۱) الطبرى : ۱۱/۱۰۸.

(۲) صحيح بخارى کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة باب مايکره من کثرة السوال ومن تکلف مالا يعنيه : ۷۲۸۹، صحيح مسلم: ۲۳۵۸، ابوداود : ۴۶۱۰، احمد: ۱/۱۷۶، مسند ابى يعلى : ۷۶۱، ابن حبان: ۱۱۰.

(۳) صحيح بخارى کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة باب الاقتداء بسنن رسول الله صلى الله عليه وسلم : ۷۲۸۸، صحيح مسلم: ۱۳۳۷.

(۴) حاکم : ۴/۱۱۶، دار قطنى : ۴/۱۸۴، بيهقى : ۱۰/۱۳،

عکرمه رحمه الله فرمائی چه هغه خلقو به د معجزاتو باره کښې سوالونه کول د کوم چه ممانعت اوکړې شو قریشو به د نبی اکرم ﷺ نه باغونه او نهرونه غوښتل او وئیل به نې چه د صفاغر زمونږ د پاره د سرو زرو کړه وغیره وغیره لکه چه د یهودیانو مطالبات وو چه موسیٰ! د آسمان نه زمونږ د پاره کتاب نازل کړه الله ﷻ اوفرمائیل ﴿وَمَا مَنَعَنَآ أَن نُّرْسِلَ بِالْاٰيٰتِ﴾ کله چه مونږ د هغوی په غوښتنه باندې خپلې معجزې راولیګلې نو مخکینو خلقو تکذیب اوکړو، مونږ ثمودیانوته خپل روښانه دلیل ناقه یعنی اوښه ورکړه. هغوی دې سره ظلم اوکړو، زمونږ معجزې صرف د ویرولو د پاره راځی، هغه قسمونه خوری او بیانوی چه که ده سره کله هم معجزه راغله نو مونږ به ایمان راوړو، نو اې نبی اووایه چه معجزې د الله ﷻ په لاس کښې دی، تاته نه ده معلومه که معجزې که هم راشی نو دوی به ایمان نه راوړی مونږ د دوی زړونه اولټه کړی دی، په سترګو پردې اچولی دی. د وړاندینو په شان دوی هډو ایمان نه راوړی. مونږ دوی د دوی په سرکشو کښې نور هم بې لارې کوو، که مونږ په دوی باندې ملائکې هم نازل کړو مړی ژوندی شی او دوی سره خبرې اوکړی او هر مخکینې څیز راژوندې شی د دوی په وړاندې موجود شی نو بیا به هم دوی ایمان نه راوړی. اوکه الله ﷻ د چا د پاره اوغواړی نو ایمان به اختیار کړی لیکن اکثر خلق نه پوهیږی.

| |
|---|
| مَا جَعَلَ اللّٰهُ |
| نه ده \| مقرر کړی الله \| |
| اوالله ﷻ خو نه |
| مِنۡ بَحِيۡرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيۡلَةٍ وَّلَا حَامٍ ۙ وَّلٰكِنَّ الَّذِيۡنَ |
| \| هیڅ بحیره \| اونه سائبه \| اونه وصیله \| اونه حام \| خو \| هغه کسان\| |
| بحیره مقرر کړې ده\| او نه سائبه ......او نه وصیله ......اونه حام \|............... لیکن هغه کسان چې |
| كَفَرُوۡا يَفۡتَرُوۡنَ عَلَى اللّٰهِ الۡكَذِبَ‌ ؕ وَاَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡقِلُوۡنَ |
| چې کفرنې کړې دې\|تړی هغوی\| په الله باندې\| دروغ \| اوډیر دهغوی\| نه پوهیږی \| |
| کفرنې اختیار کړې دې \| په الله ﷻ دروغ تړی \| او په دوی کښې اکثر کم عقل دی \| |
| وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ تَعَالَوۡا اِلٰى مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوۡلِ |
| اوهر کله چې اوونیلې شی\|هغوی ته \| چې راشئ \| هغه حکم ته \|چې نازل کړې دې الله \|اوراشئ پیغمبر ته |
| اوهر کله چې دوی ته اوونیلې شی\|چې هغه کتاب راشئ چې الله ﷻ نازل کړې دې \|اودپیغمبر حکمونه اومنئ |
| قَالُوۡا حَسۡبُنَا مَا وَجَدۡنَا عَلَيۡهِ اٰبَآءَنَا‌ ؕ اَوَلَوۡ كَانَ |
| نووائی\|کافی ده زمونږ دپاره\|هغه طریقه\|چې موندلی دی مونږه\|په هغې باندې \|پلرونه خپل\|آیااګر که وو |
| نووائی چې زمونږ دپاره هغه طریقه کافی ده \|چې په کوموباندې زمونږ پلار نیکه ووا ........ اواګر چې |
| اٰبَآؤُهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ شَيۡـًٔا وَّلَا يَهۡتَدُوۡنَ |
| پلرونه دهغوی\| چې نه پوهیدل \| په هیڅ څیز \|اونه وو په سمه لار \| |
| ددوی پلار نیکه په هیڅ نه پوهیدل\| او دسمې لارې نه خبر هم نه ووا |

قوله‌تعالی:: مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ

**د بتانو په نوم پریخودلي شوي څناورو حقیقت:-** بحیره هغه خناور دی د کومو پنی چه نه شی لشلي او ونیل به ئې چه دا د بتانو په نوم دی. چا به دا پئی نه څکل. سائبه هغه خناور کوم چه د بتانو په نوم پریخودلي شوی وو په هغې به ئې نه سامان بارولو او نه به ئې سورلی کوله ابوهریره فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه عمرو بن عامر خزاعی مې په دوزخ کښې پرمخې رابنکونکې اولیدو هغه د ټولونه اول خناور د بتانو په نوم د پریخودلو طریقه جوړه کړې وه. او وصیله هغه اوښه ده د کومې نه چه په رومبی خل یو نر پیدا شو بیا پرله پسې دوه ښځې پیداشي، نو داسې اوښه به ئې هم د بتانو په نوم پریخودله او حام هغه نر اوښ دې د کوم د نسل نه چه ډیر بچی شوی وی او کله ئې نسل ډیر زيات شوې وی نود هغې نه به ئې نه د بار اوړلو کار اخستلو اونه د سورلنی، بتانو ته به ئې حواله کول.(١) دا ټول عمرو ایجاد کړی وو. نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چه ما. دوزخ اولیدلو چه یو اور بل اُور خوړلو عمرو په هغې کښې رابنکلي کیدو، هغه د ټولو نه اول د سائبه رسم جوړ کړو.(٢) رسول الله ﷺ اکثم بن الجونؓ ته فرمائیل چه اې اکثم ما عمرو بن لحی بن قمه په دوزخ کښې اولیدو تانه زیات د هغه بل څوک هم شکل نشته اونه د هغه نه زیات ستا بل څوک هم شکل شته بالکل هم ستا په شان معلومیږی اکثم اوونیل چه یارسول الله ﷺ! ستاسو ګمان دې چه د هغه دا مشابهت به زما د پاره مضر وی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه نه ته مومن ئې او هغه کافر. هم ده د ټولونه اول د ابراهیم ﷺ په دین کښې ورانې کړې وو، بحیره سائبه او د حام بدعتونه ئې راپیدا کړل. (٣) بت پرستی کول، سائبه جوړول دا هم ابوخزاعه عمرو بن عامر کړی دی. ما هغه په دوزخ کښې اولیدو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه د ابراهیم ﷺ په دین کښې د بدلون اچولو کار هم عمرو بن لحی کړې دې چه د بنی کعب د قبیلې وو هغه په دوزخ کښې دې اود هغه بدبوئی نورو دوزخیانو ته سخت تکلیف رسوی. ماته معلومه ده چه د بحیره پیدا کونکې هم دغه دې، خلقو وئیل یا رسول الله ﷺ هغه څوک دې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه د قبیله بنی مدلج یو سړې وو د هغه دوه اوښې وې هغه د دې دواړو غوږونه پریکړل، اول ئې د هغوی پئی څکل حرام کړل بیا ئې یوڅو ورځې پس څکل شروع کړل، هغه په دوزخ کښې دې او هغه اوښې هغه په خپلو خُلو باندې پریکوی او په پښوباندې چقنړی کوی (٤) همدغه د عمرو لحی بنی قمه خوئ دې د خزاعه په رئیسانو کښې وو، د قبیله جرهم نه پس د کعبه متولیت هم خزاعه ته ملاؤ شوې وو. په دین ابراهیمی کښې بدلون اچونکې، په حجاز کښې بت پرستی داخلونکې، خلقو د بتانو عبادت او نزدیکت طرف ته رابلونکې، د څناورو او څاروباره کښې د جاهلیت په زمانه کښې د ټولو نه اول بدعتونه راپیدا کونکې، د چا ذکر چه الله ﷻ په سورة انعام کښې فرمائیلې دې ﴿ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا ﴾ د پټونه چه څه پیداوار کیږی، یا د څارونه ، د هغې صرف یوه حصه به ئې د الله ﷻ په نوم کوله او باقی به ئې د بتانو په نوم کوله. بحیره هغه اوښې ته وائی چه د پنځو بچو پیدا کولونه پس کوم بچې پیدا کړی او هغه نر وی نو هغه حلال کړی او صرف سړی د هغې غوښه اوخوری، په ښځو د هغې غوښه حرامه وی اوکه هغه به ښځه وه نود هغې غوږ به ئې پریکولو او وئیل به ئې چه د دې نوم

---

(١) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المائدة باب قوله ( ماجعل الله من بحيرة ولا سائبة ولا وصيلة ولاحام) : ٤٦٢٣ صحیح مسلم : ٢٨٥٦ مختصرا ، احمد: ٢٧٥/٢.

(٢) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المائدة باب قوله ( ماجعل الله من بحيرة ولا سائبة ولا وصيلة ولاحام) : ٤٦٢٤

(٣) الطبری : ١١٨/١١ حاکم : ٦٠٥/٤

(٤) احمد: ٤٤٦/١، مجمع الزوائد : ١١٦/١ ددې حدیث پاک لغیره درجه کښې دې

حرامه وی اوکه هغه به ښځه وه نود هغې غوږ به ني پریکولو او ونیل به ني چه د دی نوم بحیره دی.[۱] سدی رحمه الله وغیره هم د دې سره نزدې نزدې بیان کړې دې. مجاهد رحمه الله وائی چه سائبه هغه بکرئی ته وائی په کومه چه د بحیرې تعریف صادق شی. لیکن د شپږو ښځو کیدونه پس چه اووم حمل یو یا دوه نران وی نو هغه به نې ذبح کول او صرف هم سړو به هغه خوړلې شوپه ښځو به د هغې غوښه حرامه وه. د محمدبن اسحاق قول دې چه سائبه هغه اوښه ده چه پرله پسې لس ښځې بچې راوړی نو دا د بت په نوم پریخودې شی په دې سورلی نشی کولې، د هغې ویښته نشی پریکولې، نه به د هغې پئی لښلې کیدل خوکه میلمه به راغلو نو د هغې پئې به نې پرې څکول. ابو روق وائی چه سائبه هغه اوښې اوګډې وغیره ته وائی چه کله سړې څه کار پسې اوځی او هغه کار پوره شی نو بیا به نې هغه خناور سائبه جوړولو اود بت په نوم به نې کولو د هغې اولاد به نې هم د بتانو په نوم باندې ګڼړلو. سدی رحمه الله وائی که یو سړې به د څه غرض د پاره وتلو یا به د بیمارئی نه جوړیدلو یا به د هغه په مال حال کښې څه زیاتې کیدلو نو خپل څه مال به نې د بتانو په نوم کولو اوکه داسې مال یا څاروی سره به چا غرض کولو نو هغه ته به نې سخته سزا ورکوله.

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه وصیله هغه بکرئی ده چه اووه بچی راوړی او اووم که چرې نر وی او مړ پیدا شوې وی نو هغه به صرف سړو خوړلو او ښځو به نشو خوړلې او په اووم حمل کښې که به ښځه وه نو هغه به ئې ژوندئی پریخودله او که په دغه حمل کښې به نر او ښځه دواړه پیدا کیدل نو دواړه به نې ژوندی پریخودل او ونیل به نې چه ښځې نر هم وصیله جوړ کړو. او اوس هغه هم په مونږ باندې حرام دې.[۲] سعید بن المسیب رحمه الله فرمائی چه وصیله هغه اوښه ده چه په ړومبی ځل او دونم ځل ښځه راوړی نو ونیل به نې چه متصل دوه ښځې پیدا شوې نود دونمې غوږ به نې پریکولو او هغه به نې د بتانو په نوم ګڼړلې.[۳] محمد بن اسحاق وائی چه وصیله هغه بکرئی ده چه په پنځو لنګونونو کښې لس ښځې بچی راوړی او په هر یو حمل کښې دوه دوه، هغه به نې پریخودله او چه د هغې به کوم اولاد هم کیدو، که نربه وو اوکه ښځه نو هغه به صرف سړو خوړلواو ښځو به نه خوړلو اوکه مړ به پیدا کیدو نودواړو به خوړلو. که د یو نر به لس بچی پیدا شونو هغه به ئې هم د بت په نوم کولو او پریخودلو. هغې ته به نې حام ونیل، په هغې به نې بار نه اوړلو، نه به نې د هغې ویښته پریکول، د هر یو پټی او هرې یوې چینې نه به دې څاروی ته د اوبو څکلو اجازت وو چابه هم نه منع کول.

مالك بن نضله رضی الله عنه وائی چه ما زړې خیرنې کپړې اغوستې وې. نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه تاسره څه مال شته؟ ما ونیل اوښان، چیلئی او اسونه (په ګڼړ شمیر کښې) وینځې غلامان هم دی. نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه الله جل جلاله تاته دولت هم درکړې نو په تاباندې د دولت نښې هم ښکاره کیدل پکار دی. او آیا ستا د اوښانو بچی د پوره غوږونو پیدا کیږی نو ماونیل چه او، لیکن څه د اوښانو بچی هم د پوره غوږونونه بغیر هم پیدا کیږی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه آیا تاسو د بعضو بچو په چاړه سره غوږونه پرې کوئی او وائې چه اوس دا بحیره شو. اوس دا په مونږ باندې حرام دی نو ما ونیل چه مونږ داسې هم کوو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه داسې هیڅ کله مه کوئی الله جل جلاله چه تاسو له څه درکړی دی ټول حلال دی حرام نه دی.[۴] الله جل جلاله فرمائیلی دی بحیره، سائبه، وصیله اود حام الله جل جلاله سره هیڅ سند نشته. د

[۱] تفسیر عبدالرزاق : ۱۹۱/۱، وسنده ضعیف
[۲] الطبری : ۱۲۹/۱۱
[۳] ابن ابی حاتم: ۲۲۲/٤
[۴] الطبری : ۱۳۲/۱۱، احمد: ۴۷۳/۳، وسنده صحیح

بحیرې غوږ پرې کوني د ښځو نه تاسو یوې ته هم په هیڅ حیثیت سره د دې بحیرې نه فائده نه ورکوني. سائبه د بتانو په نوم کوني. چیلئي چه کله اووم لنګون اوکړي نود هغې غوږونه اوښکرې پرې کوني او پریږدني. که هغه غواړې نو چه د کوم پټي نه څرن کوي او د کوم حوض نه اوبه اوڅکي هغه نه شي منع کولې. دې ته وصیله وائي. په حدیث کښې د دې الفاظوداسې تفسیر بیان کړې شوې دې. د الله ﷻ قول دې ﴿لٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ط﴾ دا کافران په الله ﷻ باندې دروغ وائي الله ﷻ دا څیزونه مشروع کړي نه دي اونه دا د الله ﷻ سره د نزدیکت سبب دې. دا د مشرکانو د خان نه خبرې دي. هغوی دا شرع جوړه کړې ده. او الله ﷻ سره نې د نزدیکت ذریعه ګڼړي. داخو به حاصل نه شي بلکه په دوی به نور وبال پریوزي. او چه کله دوی ته وئیلې کیږي چه د الله ﷻ د وحی طرف ته اود هغه د رسول طرف ته راشئ نو وائي چه مونږ د خپل پلار نیکه په طریقه باندې ټیک یو، آیا دوی نه پوهیږي چه د هغوی پلار نیکه هم باطل کیدلې شي. هغوی هم د حق نه کانړه او هدایت نه محروم کیدې شي. بیا تاسو د دې منل څنګه کولې شئ، رښتیا خو دا دی چه جاهل اوګمراه داسې وئیلی شي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ
اې هغه کسانو
انې دایمان
اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ
چې ایمان مو راوړې دې | لازم دې په تاسوفکر کول | دخانونوخپلو | نهٔ رسوی ضرر تاسو ته | هغه څوك
خاوندانو دخپل ځان فکر کوئ | دهغه خلقو ګمراه کیدو تاسو ته هیڅ نقصان نه رسوی چه کوم ګمراه
ضَلَّ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ ط اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ
چې بې لارې شوی دی | هر کله چې | تاسو پخپله په نیغه لاریئ | خاص الله ته دی | واپس تلل ستاسو
شوی دی | هله که تاسو په سمه لار باندې قائم یئ | ............ستاسو دټولو پیشی به الله ﷻ ته کیږی
جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۵﴾
دټولو | نو خبر به کړی تاسو | د هغه کارونونو | چې وئ تاسو | چې کول به مو
نو هغه به درته اوښائی | ............چې تاسو څه کارونه کړی دی

قوله تعالى: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ

د ﴿عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ﴾ تفسیر او ﴿امر بالمعروف ونهی عن المنکر﴾ الله ﷻ خپلو بندګانو ته حکم ورکوی چه تاسو په خپل ذات باندې صحیح اوسیږئ د نیکو د ممکن حده پورې کوشش کوئ. چا چه پخپله اصلاح اوکړه، که د لرې او نزدې ټوله دنیاکښې فساد به هیڅ تکلیف نه راځي. کله چه بنده په حلال او حرام کښې زما تابعداری اوکړی نو که څوك څومره هم ګمراه ولې نه وی هغه ته هیڅ نقصان نشته. تاسو ټول به د الله ﷻ طرف ته ورتلونکی نې، الله ﷻ به تاسو ته اوښائی چه تاسو ښه کول که بد مو کول، د چا چه عمل نیك وی هغه ته به ښه بدله ملاویږی او د چا چه عمل بد وی هغه ته به خرابه سزا

ملاویږي. ددې ایت د مفهوم نه دادلیل نه شي اخستې چه امربالمعروف اونهی عن المنکر ضروري پاتې نه شو. حضرت ابوبکر ﷺ اودریدو او د الله ﷻ حمد او ثناء ئې اوکړه، بیائې اوفرمائیل چه اې خلقو تاسو دا آیت لولئی خو د دې په مفهوم باندې دا نه پریږدئی. رسول الله ﷺ به فرمائیل چه کله څوک د ګناه څه خبره اووینی او هغه ته غیرت او غصه ورنه شي نوخدائ ګرانه ده چه الله ﷻ دواړو په عذاب کښې راکاږي.([1])اوس خلقواد دروغونه بچ شني، دروغ سړې د ایمان نه اخواکوی.

ابوامیه شعبانی ﷺ وائی چه ما ابو ثعلبه الخشنی ﷺ نه د دې آیت باره کښې تپوس اوکړو چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ﴾ نو هغه اوونیل چه تا والله د ډیر خبردار سړی نه تپوس او کړو، واوره! ما هم د رسول الله ﷺ نه د دې آیت باره کښې تپوس کړې وونو هغوی ﷺ اوفرمائیل چه تاسو خلق خپل خپل پټکې سنبالولو نه پس بې فکره مه کیننئ. امر بالمعروف او نهی عن المنکر برابر کوئی تر هغه وخته پورې چه خلق تنګ زړه او تنګ حوصله شي، زکوة نه ورکوی، د خواهشاتومنونکي وی، دنیا ته په آخرت باندې ترجیح ورکوی. هرسړې په خپله خپله رائې باندې کلك ولاړ وی. د ناصح هیڅ نه اوری، نو هغه وخت جدا او خان له شه، بې کاره په خپل حالت پریږده، هم ستاسو نه پس داسې زمانه راتلونکې ده چه په هغې کښې لګئې ټونبلې ناست خلق به په داسې مشکلاتوکښې وی لکه چه اُور ئې په لاس کښې نیولې دې. پخپله صحیح عمل کونکی ته به لکه د پنځوسو (۵۰) سړو د نیکو اعمالو برابر اجر ملاویږي. عرض اوکړې شو یا رسول الله ﷺ زمونږ د پنځوسو سړو که د هغوی د ډلې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه نه بلکه ستاسو د پنځوسو نیکانو سړو.([2])

د حضرت ابن مسعود ﷺ نه چا د دې آیت باره کښې تپوس اوکړو نوونی فرمائیل چه نن خو خیر ستا خبره هم منم لیکن نزدې یوه داسې زمانه راتلونکې ده چه ته به د خیر خبره کوې او هغوی به تا سره داسې داسې خراب سلوك کوی. هغه وخت چپ چاپ ګوره او هیڅ مه وایه. چه هغوی ګمراه شي نو په تاسو به هیڅ نقصان نه وی. عبدالله بن مسعود ﷺ سره خلق ناست وو نود دوو کسانو په مینځ کښې څه جګړه غوندې شروع شوه نو یو بل پسې د جنګ د پاره وړپاسیده، په حاضرینوکښې یوکس اوونیل چه زه وړپاسم او دواړه پوهه کوم. امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوم، خواکې ناست بل کس اوونیل چه ستا په څه، په خپل خائ کینه. الله ﷻ فرمائیلي ﴿عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ﴾ نو ابن مسعود ﷺ اوفرمائیل دې مه منع کوه، د دې آیت د عمل موقع دا نه ده قرآن چه څنګه نازل شوې نو نازل شوې دې. د بعضې آیاتونو د نازلیدو نه اول د هغې د تاویل وخت تیر شوې او بعض داسې آیاتونه دی چه د هغې تاویلونه د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې شوی او د بعضو تاویلونه د رسول الله ﷺ نه لږې ورځې پس شوی. د بعض تاویلونه به د دې زمانې نه پس او بعضې د قیامت په ورځ او چه کله قیامت راشي، او بعضې د قیامت په ورځ کله به حساب کتاب کولې شي. ترکومې چه ستاسو زړونه یوخائ دی او ستاسو جذبات یودی تاسو کښې جدا والی نشي پریوتلې. اود یو بل په بدو پسې نه ئې، دې وخت کښې امربالمعروف او نهی عن المنکر برابر کوئی. کله چه زړونه خراب شي، ډله بازی شروع شي یو بل سره د الله د پاره دښمنی ساتي. هغه وخت کښې بالکل د خلقو نه جدا او خان له اوسه، د دې آیت ئې هم دغه تفسیر بیان کړې دې، ابن جریر رحمه الله دا روایت کړې دې.

[1] ابوداود کتاب الملاحم باب الامر والنهي : ۴۳۳۸، وهو صحیح ترمذی : ۲۱۶۸، ابن ماجه : ۴۰۰۵، ابن حبان : ۳۰۴.

[2] ابوداود کتاب الملاحم باب الامر والنهي : ۴۳۴۱، وسنده حسن ترمذی : ۳۰۵۸، ابن ماجه : ۴۰۱۴، ابن حبان : ۳۸۵، بیهقی : ۹۲/۱۰.

ابن عمر ته اوونیلې شو چه اوس که ته کینې نو ښه به وی مه امر بالمعروف کوه او مه نهی عن المنکر. ځکه چه الله ﷻ خو داسې حکم ورکړې دې، نو ابن عمر ﷠ اوفرمائیل چه ماته دا حق نه دې حاصل اونه زما ملګروته، ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلی حاضر سړې جوړشه او غائبوته ئې اورسوه. مونږ د حاضر په حکم کښې یو او ته د غائب په حکم کښې. دا آیت د هغه خلقو په حق کښې دې چه زمونږ نه پس راتلونکی دی که هغوی ته څه اوونیلې شی نو قبول به ئې نه کړی. ابن عمر ﷠ له یو سړې راغلو تیز مزاج او تیزه ژبه ئې وه نو ونې ونیل اې ابا عبدالرحمن! شپږ سړی دی ټول د قرآن جید عالمان د خیر نه سوا هیڅ شریرالنفس نه دی، خو په یو بل باندې د شرك الزام لګوی، نو یو سړې پاسیدو ونیل د دې نه به زیات د شرارت النفس نور څه وی چه یو بل ته مشرك اووائی، نو هغه سړی اوونیل چه زه تانه تپوس نه کوم زه خو د شیخ یعنی ابن عمر ﷠ نه تپوس کوم. بیا ئې د عبدالله بن عمر ﷠ نه د مسئلې تپوس اوکړو چه داسې خلق به څه ګڼړو؟ نو ابن عمر ﷠ اوفرمائیل الله دې تاسره ښیګړه اوکړی آیا ته دا غواړې چه زه تاته حکم اوکړم چه لاړشه او هغه قتل کړه. تاله خو پکار وو چه هغوی ته نصیحت اوکړې. د دې بدو خبرو کولونه ئې منع کړه او که هغوی اونه منی نو په تا هیڅ ګناه نشته. ابومازن وائی چه زه د حضرت عثمان ﷠ په زمانه کښې مدینې ته لاړم. هلته یو څو مسلمانان ناست وو یو په کښې دا آیت اولوستلو ﴿عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ ۖ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ﴾ نو ابن مازن وائی چه خلق ددې آیت په مفهوم باندې ښه نه پوهیدل. جبیر بن نفیر وائی چه د رسول الله ﷺ صحابه ناست وو، زه هم موجود ووم خو زه د ټولو نه کم عمره ووم، د بحث موضوع وه امر بالمعروف او نهی عن المنکر. ما ونیل چه الله ﷻ نه دی فرمائیلی ﴿عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ ۖ﴾ نو ټول زما طرف ته متوجه شو او ونیل تاته پته نشته ته د آیت مطلب باندې ښه نه پوهیږې. ما په زړه کښې اوونیل چه افسوس ما خبره نه وې کړې. بیا هغوی خبرې کولې چه کله مجلس ختم شو نو ونې ونیل ته لا ماشوم ئې د آیت صحیح مصداق نه پیژنې. خوڅه عجیبه ده چه ته به داسې زمانه کښې ئې چه کله به خلق زړه تنګې شی، د نفساني خواهشاتو منل به کوی، هر سړې به په خپله رائې فخر کوی د چا به نه اوری. نو دا هم هغه زمانه ده، حسن بصری رحمه الله فرمائی د الله ﷻ شکر دې چه په تیروشوو مؤمنانو کښې هم او په موجوده مؤمنانو کښې هم داسې خلق شته چه هم هغوی سره منافق دی خو هغوی د دوی عمل خراب ګڼړی. کعب رحمه الله وائی چه دا زمانه به هغه وخت راځی چه کله د دمشق ګرجا راوغورزولې شی اوجمات به جوړولې شی. یعنی تعصب به زیات شی د دې آیت هم دا مطلب دې.

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ |
| اې هغه کسانو |
| انې |

| الْمُوتُ | حِينَ | الْوَصِيَّةِ | اثْنَانِ | ذَوَا عَدْلٍ | مِّنكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|

Better to keep one table. Actually let me restructure:

| أَمَنُوا | شَهَادَةُ | بَيْنِكُمْ | إِذَا | حَضَرَ | أَحَدَكُمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ایمان موراوړې دې | ګواهی شهادت | په منځ ستاسو کښې | کله چې | حاضر شی | یوته په تاسو کښې |
| دایمان خاوندانو ! ........هرکله چې په تاسو کښې چاته د هغه د مرګ وخت راشی | | | | | |
| الْمَوْتُ | حِينَ | الْوَصِيَّةِ | اثْنَانِ | ذَوَا عَدْلٍ | مِّنكُمْ |
| مرګ | په وخت | دوصیت کښې | ګواهی د دووکسانو | چه خاوندانو دعدل وی | او وی ستاسو نه |
| اودوصیت موقع وی نو دشهادت دپاره دې دوه کسان انصاف کونکی دې ستاسومینځ کښې مقرشی | | | | | |

أَوْ اٰخَرٰنِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنْتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ

یا دوه کسان نور | غیرله تاسونه | که چری | ایئ تاسو | چی سفرموکوؤ | په زمکه کښی |

یادبل قوم دوه کسان دي مقرر شی که (په دغه وخت کښې) تاسوپه سفر کښې یئ

فَأَصَابَتْكُمْ مُّصِيبَةُ الْمَوْتِ ۚ تَحْبِسُونَهُمَا مِنْ بَعْدِ الصَّلٰوةِ

نو اورسیدو تاسوته | مصیبت | دمرګ | حصاربه کړئ تاسو دواړو ګواهان | روستو دمانځه نه |

اوتاسو دمرګ پیغام راشی | ..............نودمونځ نه پس دواړه کسان (جمات کښې) ایسار کړئ ........

فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ إِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِي بِهٖ ثَمَنًا

نوقسم دي اوکړی دواړه | په الله باندې | که شکمن یئ تاسو | چی نهٔ اخلو مونږ | په دې قسم سره | مال

نو په الله ﷻ دې قسم اوخوری | چې مونږ دخپلې فائدې دپاره ګواهی نه خرڅوؤ |

وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ۙ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ ۙ اللّٰهِ إِنَّآ إِذًا

اګرکه | وی هغه | خاوند دخپلوئ | اونهٔ | پټوومونږ | ګواهی | دالله | بیشکه مونږ به یو | په دغه وخت کښی

اګرچې دا زمونږ دخپلو خلاف ولې نه وی | اودالله ﷻ ګواهی نه پټوؤ | ګنی په دغه وخت کښې به بیا

لَّمِنَ الْاٰثِمِيْنَ ﴿١٠٦﴾ فَإِنْ عُثِرَ عَلٰٓى أَنَّهُمَا اسْتَحَقَّآ

د ګنهګارانو څنی | بیا که چری | پته اولګیده | په دې خبره | چی دواړه | مستحق شوی دی

مونږ په ګناهګارو کښې شمیرشو | ........بیاکه معلومه شی چې دواړو کسانو خان په ........

إِثْمًا فَاٰخَرٰنِ يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ

دګناه | نودوه نور ګواهان دې | اودریږی | په ځائې ددغه دواړو | دهغه کسانو |

ګناه کښې اچولې دې | نو بیادې دهغوئ په ځائې دوه نور ګواهان اودریږی | دهغه کسانو نه

اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْاَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ

چې وهلې شوې وی حق | دهغوئ | چی هغه دواړه غوره وی په نسبت دهغوئ | نو قسم دې اوخوری دواړه

چې مخکښې ګواهانو دچا حق وهلې وو | .........او دواړه دې په الله ﷻ قسم اوخوری ........

بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ أَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَيْنَآ ۖ

په الله باندې | چی ګواهی زمونږه | زیاته په حقه ده | دګواهئ دهغوئ دواړو نه | اونهٔ دې کړې زیاتې مونږه

چې زمونږ شهادت دهغوئ دشهادت نه زیات صحیح دې | اومونږ په شهادت کښې زیاتې نه دې کړې

إِنَّآ إِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٠٧﴾ ذٰلِكَ أَدْنٰٓى أَنْ يَّأْتُوْا

بیشکه مونږ به یو | په دغه وخت کښی | د ظالمانو څنی | دا طریقه | ډیره نزدې ده | چی راتلل اوکړی داخلق

ګنی مونږ به ظالمانو کښې شمارشو | په دې چل زیات امید کیدې شی | ..........چی خلق به

بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَآ اَوْ يَخَافُوْٓا اَنْ تُرَدَّ

ګواهي ته | مطابق دحق دهغې | يا به اوېرېږي هغوئ | ددې خبرې نه چې | واپس به کړې شي |

شهادت صحيح صحيح اداکړي | يا به ددې نه اووېرېږي چې ..........

اَيْمَانٌ بَعْدَ اَيْمَانِهِمْ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا ۭ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي

قسمونه(زمونږ) | روستو دقسمونو دهغوئ نه | او اوېرېږئ | دالله نه || او اورېل کوئ || او الله | نهٔ ښاني نيغه لار

دهغوئ دقسمونو نه پس به ددوئ دقسمونو ترديد اوشي | او د الله ﷻ نه او وېرېږني || او واورئ چې الله ﷻ

الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ۝

خلقو | نافرمانو ته |

فاسقانو ته سمه نه ښائي

**قوله تعالي:** يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِيْنَ الْوَصِيَّةِ اثْنٰنِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ

**په سفر کښې د مړی وصيت کول:-** دا آيت مبارك په عزيز حکم باندې مشتمل دې او دا هم وئيلی شوی دی چه دامنسوخ دې. د نحوی ترکيب په حيثيت سره ﴿اثنان﴾ خبر دې ﴿شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ﴾ په جمله کښې د مبتداء حيثيت لری. ﴿شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ شَهَادَةُ اثنان﴾ دويم لفظ ﴿شَهَادَةُ﴾ دمضاف په حيثيت وو چه حذف کړې شو او مضاف اليه يعنی هم ﴿اثنان﴾ نې د هغې په ځای اوګرځولو. او دا هم وئيلې شوی دی ﴿يشهد اثنان﴾ اوګنړئی د ﴿ذواعدل اثنان﴾ صفت دې. د په معنی د ﴿عَدْلٍ مِّنْكُمْ﴾ نه ﴿من المسلمين﴾ مراد دې او بعضې وئيلی دی چه د ﴿کم﴾ نه وصيت کونکی مراد دی. د ﴿من غيرکم﴾ نه ﴿من غيرالمسلمين﴾ نه اهل کتاب مراد دی يعنی د موصی قبيلې دوه ګواهان او دوه د موصی قبيلې نه غير وی. ﴿ ضربتم فی الآرض﴾ نه مراد دا چه کله تاسو په سفرکښې نې او تاسو له مرګ راشی نو تاسو د مسلمانانونه دوه ګواهان وی او که مسلمانان نه وی نو غير مسلم صحيح دی. دلته د دې خبرې جواز راوخی چه په سفرکښې کله د وصيت په وخت کښې مسلمانان موجود نه وی نو ذميان هم ګواهان جوړولې شی. شريح وائی چه د سفر او وصيت د وخت نه سوا د يهودو او نصاری ګواهی بل يو وخت کښې جائز نه ده. (١) درې وارو امامانو په مسلمانانو باندې د ذمی ګواهی جائزنه ده ګنړلې او امام ابوحنيفه رحمه الله د ذمی ګواهی په ذمی باندې جائز ګرځوی. زهری رحمه الله وائی چه سنت طريقه هم دغه ده چه د کافر شهادت نه په سفرکښې جائز دې او نه په حضر کښې. د شهادت حق صرف مسلمان ته دې. ابن زيد وائی چه دا آيت هغه وخت نازل شو چه کله يو سړې مړ شو او هغه وخت هلته څوك مسلمان نه وو. د اسلام د شروع زمانه وه ټول ښارونه د جنګ ميدان وو، خلق کافر وو، د وراثت څه قانون نه وو. د وصيت مطابق به نې تقسيم کولو. بيا وصيت منسوخ شو او وراثت فرض شو او خلقو د وراثت قانون باندې عمل شروع کړو. ابن جرير رحمه الله دا روايت کړې دې. داځيز لړ د غور قابل دې. والله اعلم.

**د اهل ذمه ګواهی په خپل مينځ کښې يو بل باندې حجت دې**

(١) الطبری : ١٦٣/١١.

مسلک حنفی: - په ذمیانو کښې د بعض شهادت د بعض خلاف قبلولې شي. یعنی که یو ذمی د بل ذمی په خلاف گواهي ورکړي نو د هغه گواهي به مقبول وي. اګرچه د هغوی ادیان مختلف وي مثلاً د یهودي د نصراني خلاف، او د نصراني د یهودي خلاف گواهي ورکول جائز ده. (تسهیل الهدایه شرح هدایه ۷۴۸/۵)-

بیا په دې کښې اختلاف دې چه دا ﴿أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ﴾ نه څه مراد دې چه دواړه وصي وي یا گواه وي- ابن مسعود ﷺ فرمائي چه یو سړې په سفر وي او هغه سره مال وي نو که د مسلمانانو نه دوه کسان بیامومي نو خپله ترکه دې هغوی ته حواله کړي او دوه مسلمانان دې هم په دې گواهان کړي. نو دا خو د وصي جوړولو صورت وو او که ﴿من غیرکم﴾ نه مراد دا دې چه دا دواړه گواه وي او ښکاره سیاق د آیت مبارك هم دغه دې نو که دې دواړو سره دریم وصي نه وي نو په دې کښې دواړو کښې چه کله دا دواړه گواهانو کښې وصیة او شهادة دواړه اوصاف موندې شي لکه د تمیم داري او عدي بن بداء په قصه کښې چې ذکر دی کومې چې به انشاء الله راځي.

ابن جریر ﷫ یو اشکال پیش کړې دې چې کله دا دواړه گواهان وي نو په گواه باندې خو قسم نه وي لیکن دا به یو مستقل حکم گنړلې شي د نورو ټولو احکامو قیاس به په دې نه وي. دا یو خاص گواهي د یو خاص موقع د پاره ده. په دې کښې نورې ډیرې داسې خبرې دی چه په نورو احکامو کښې نشته. او چه کله شك وي نود دې آیت د احکامو مطابق په دې گواهانو قسم دې. دا دواړه گواهان د مانځه نه پس حصار کړه یعنی د ماز یگر د مانځه نه پس. او ابن عباس ﷺ وائي د دې دواړو گواهانو د مذهبي مونځ نه پس. مقصد دا چه دادواړه گواهان د مانځه نه پس راجمع شي او په اجتماع کثیر په موقع دا گواهي په عمل کښې راشي. ﴿ان ارتبتم﴾ که ستا شك وي چه هغوی به غلط بیان اوکړي یا به خیانت اوکړي نو په داسې صورت کښې دوی له قسم ورکړه. چه د دې فاني دنیا لړه شان گټه به مونږ د دروغو په قسم نه گټو. سره د دې چه زمونږ په قسم باندې زمونږ یو خپلوان ته نقصان ولې اونه رسي مونږ به د الله ﷻ گواهي نه پټوو. د گواهئ د امرداهمیت په سبب دشهادت اضافت د الله ﷻ طرف ته اوکړې شو. که مونږ په شهادت کښې تحریف او بدلون اوکړو او یا مودا ټول پټ کړو نو مونږ به د گناهګارانو نه شو. بیا که چرې د دواړو گواهانو یا وصیانو باره کښې تحقیق ثابت شو چه هغوی خیانت اوکړو او د مړي مال نې د هغه وارثانو ته رسولو کښې څه غبن اوکړو نوچه د چا حق وهلې شوې دې په هغې کښې دې د دوی په ځایٔ دوه گواهان اودریږي. ﴿اولیان﴾ دا د جمهورو قراءت دې اوحسن بصري ﷫ وغیره دې ته ﴿اولان﴾ لوستلو. دحضرت علي ﷺ بن ابی طالب نه روایت دې چه نبی اکرم ﷺ ﴿اولیان﴾ لوستلې وو. ابن عباس ﷺ به ﴿اولیین﴾ لوستلو. د جمهورو د قراءت ﴿اولیان﴾ په بنا په دې معنی دې چه کله په حصیح خبر سره د دې دواړو خیانت ښکاره شي نود ترکه د حقدارانو نه دې دوه کسان وارثان اودریږي او پکار دی چه دا دواړه د وارثانو نه د ټولونه نزدې وارثان وي. اود الله ﷻ قسم دې اوکړي او بیان دې اوکړي زمونږ شهادت د دوی د شهادت نه زیات صحیح دی. دې دواړو په حقیقت کښې خیانت کړې دې او په دې الزام کښې مونږ هیڅ زیاتې نه دی کړې. که مونږ د دروغو الزام لګولې وی نو مونږ به گناهګاران یو. الله ﷻ دې مونږ سره اوګوري. دا لکه چه د وارثانو طرف نه قسم دې لکه چه څنګه د مقتول وارثان قسم خوري چه کله د قاتل د طرف نه بې ایماني ثابتیږي لکه چې د احکامو په باب قسامت کښې مقرر دی او په حدیث نبوی کښې هم داشان وارد شوې دې په کوم چه دا آیت مبارك دلالت کوي.

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ﴾ آیت باره کښې تمیم داري ﷫ د مسلمانیدو نه پس د دې آیت باره کښې عدي بن بدا ﷫ د دې جرم مجرمان یو. دا وائي چه د دې گناه نه نور ټول خلق خلاص دی خو ولې زه او عدي بن بدا

دواړه نصرانیان وو. د اسلام نه اول به د شام طرف ته تل راتلل. د تجارت په غرض شام طرف ته راغلي وو، هغوی سره د بنی سهم غلام هم د تجارت د پاره راغلې وو د هغه نوم بدیل بن ابی مریم وو. هغه سره د تجارت د پاره یوه د سپینو زرو پیاله وه چه د شام د ملك د پاره ئې راوړلې وه او دا د هغه تجارت په مال کښې د ټولونه اهم څیز وو. بیمار شو نو دا دواړه ئې د وصیت ضامنان جوړ کړل چه د ده پاتې شوې مال به د هغه بال بچ ته رسوی. تمیم داری رضی الله عنه فرمائی چه کله هغه وفات شو نو هغه پیاله مونږ په یو زر درهم باندې خرڅه کړه او مونږ دواړو په خپل مینځ کښې پیسې تقسیم کړې او باقی مال مود هغه بال بچ ته اورسولو. هغه خلقو د پیالئی باره کښې تپوس اوکړو نو مونږ اووئیل چه څه وو هغه مونږ راورسول د پیالئی نه مونږ خبر نه یو. خو د رسول الله ﷺ مدینې ته په تشریف راوړو باندې کله چه زه مسلمان شوم نو زه هغه خلقو له راغلم او صحیح واقعه مې بیان کړه او هغوی له مې د خپلې حصې پنځه سوا درهم ورکړه او ورته مې اووئیل چه هم دومره رقم زما ملګری سره هم دې. دا خلق هغه راغلل نو نبي اکرم ﷺ حکم اوکړو چه د ده نه د ده په مذهب قسم واخلئی، هغه قسم اوخوړلو نو دا آیت نازل شو.(١)اوس عمرو ابن العاص اویو بل سړې راپاسیدو او قسم ئې اوخوړلو چه ﴿لَشَهَادَتُنَا أَحَقُّ مِن شَهَادَتِهِمَا﴾ نو د عدی نه پنځه سوه درهم واخستې شو او دا پیاله په مکه کښې اوموندې شوه. سوداګرانو ونیل چه مونږ دا د تمیم داری او عدی نه اخستې وه. نو د سهمی د اولیاءکرام نه دوه کسان پاسیدل او قسم ئې اخوړلو چه زمونږ قسم د ده د قسم نه رښتونې دې اودا پیاله زمونږ د ملګری ده. هم د هغوی باره کښې دا آیت نازل شوې وو(٢) او بیان اوکړې شو چه دا تحلی ف د مازیګر د مانځه نه پس شوې وه. دا څیز دلالت کوی په دې خبره باندې چه په سلف کښې د دې واقعې صحت مشهور او په عواموکښې متعارف دې. د دې صحت دلیل هم دې چې ابوجعفر بن جریر روایت کړې دې چې یو مسلمان پردَس کښې وفات شو او دهغه هلته هیڅوک نه وو. نو کوم چې مړۀ کیدل هغوئ اهل کتابونه دوه کسان ګواهان کړل. بیا دا دواړه کوفې ابو موسی اشعری رضی الله عنه ته راغلل. او هغوئ ته د مړګانو وصیت او ترکه پیش کړو. اشعری اوونیل چې همداشان یو واقعه نبی کریم ﷺ ته هم پیښه شوې وه. او اوس دا بله واقعه ده. دمازیګر مونځ نه پس هغوئ ته قسم ورکړو چې مونږ خیانت نه دې کړې. اونه مونږ دروغ وئیلی دی. اونه مونږ څه پټ کړی دی. اودا د متوفی د وصیت اوترکې مطابق دی. نو په دې وجه دهغوئ شهادت اومنلې شو. اوهم په دې شهادت باندې اشعری فیصله اوکړه(٣). دنبی کریم ﷺ زمانه کښې داشان واقعې نه مراد تمیم وعدی وو، او وئیلې شوی دی چې دتمیم داری واقعه اسلام د قبلولو نه وړاندې د نهمې هجرئی ده او ښکاره خبره ده چه د اشعری والا واقعه دونمه واقعه وه.

په دې آیت کښې حکم دې چه مړ کیدونکې دې د مرګ په وخت کښې وصی جوړ کړی او دوه مسلمانان دې ګواه اوګرځوی چه ده له څه اخستل دی او څه ورکول دی. دا خو د حضر په وخت کښې مسئله وه چه د دې آیت په بنا باندې وه چه ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ﴾او د سفر باره کښې دی چه ﴿أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ﴾چه کله څوك مسلمان د مرګ وخت کښې موجود نه وی نو د یهودیانو، نصاراؤ یا مجوسیانو نه دوه کسان واخلئی او هغوی ته دې وصیت اوکړی او د میراث مال دې ورحواله کړی. اوس که د مړی وارثانو وصیت صحیح اومنلو

(١) ترمذی کتاب التفسیر باب ومن سورة المائدة : ٣٠٥٩،

(٢) صحیح بخاری کتاب الوصایا باب قول الله تعالی ( یاایهاالذین امنوا شهادة بینکم اذا حضرت احدکم الموت) : ٢٧٨٠، ابوداود : ٣٦٠٦، ترمذی : ٣٠٦٠ دارقطنی : ١٦٩/٤.

(٣) ابوداود کتاب القضاء باب شهادة الذمة وفي الوصية في السفر : ٣٦٠٥،

خو ښه ده کنې نو مقتدر ته به مقدمه پيش کولې شي. اوس د الله ﷻ حکم دې چه ﴿ تَحۡبِسُونَهُمَا مِنۢ بَعۡدِ الصَّلَوٰةِ فَيُقۡسِمَانِ بِٱللَّهِ إِنِ ٱرۡتَبۡتُمۡ ﴾ يعنې که ستاسو د ده په صداقت کښې شك وي نو د مانخه نه پس ده ته د الله قسم ورکړئ. حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائي چه د مړي وارثانو انکار کړې وواو دا دواړه ګواهان ئې زورولې او ويرولې وو نو ابوموسی اشعري ﷺ دې دواړو ته دمازيګر د مانخه نه پس قسم ورکړو.
ما عرض اوکړو چه زمونږ د مونځ دوی سره څه قدر کيديشي دوی ته خو د دوی د مانخه نه پس قسم ورکړئ. نو دخپل مذهب په طريقه دمونځ نه پس دوئ قسم اوکړو چې مونږ د لږ شان مال دپاره خپل قسمونه نه خرڅوؤ سره ددې چې ديو خپلوان دپاره دې ولې نه وي. مونږ د الله ﷻ شهادت نه پټوؤ ګنې مونږ ګناهګار يو ، ستاسو ملګرې هم دغه وصيت کړې وواو هم دغه مال ئې پريخودې دې. دقسم کولو نه پس وړاندې امام هغوئ ته وئيلې وو که چرې تاسو پټ کړو يا تاسو خيانت اوکړو نو په خپل قوم کښې به تاسو رسوا شئ او بيا به هيڅ کله هـ ستاسو شهادت نشي قبلولې اوتاسو له به سزا هم درکولې شي. نو ﴿ذَٰلِكَ أَدۡنَىٰٓ أَن يَأۡتُواْ بِٱلشَّهَٰدَةِ عَلَىٰ وَجۡهِهَآ﴾ يعنې هم دغه يو صورت داسې دې چې ګواه خپله ګواهي دواقعې مطابق ساتلې شي او هغه ته به ويره وي چې چرې داسې اونه شي چې ددې مسلمانانو د دوباره قسمونو نه پس زمونږ اولنی قسمونه رد کړې شي . الله ﷻ فرمائي ﴿ فَإِنۡ عُثِرَ عَلَىٰٓ أَنَّهُمَا ٱسۡتَحَقَّآ إِثۡمٗا فَـَٔاخَرَانِ يَقُومَانِ مَقَامَهُمَا ﴾ يعنې که چرته معلومه شي چه هغوی په ناجائزه طريقه حق پټ کړې دې نو د هغوی په ځائ دې دوه نور کسان اودريږي د چا حق چه وهلې شوی وي چه د کافرانو ګواهي باطله ده او مونږ زياتې نه کوو. اوس به د کافرانو ګواهي ردکولې شي او د اولياء کرامو شهادت به قبلولې شي.
د دې آيت مقصد هم دغه حکم دې. اکثرو ائمه اوتابعينو او سلفو رضوان الله عليهم او امام احمد ﷫ وغيره هم دغه مسلك دې. او قوله ﴿ذَٰلِكَ أَدۡنَىٰٓ أَن يَأۡتُواْ بِٱلشَّهَٰدَةِ عَلَىٰ وَجۡهِهَآ﴾ يعنې د دې حکم شريعت هم د دغه وجې خوښ کړې شوې په بنا باندې دې چه ذمی ګواهانو ته دې قسم ورکړې شي ﴿أَوۡ يَخَافُوٓاْ أَن تُرَدَّ أَيۡمَٰنُۢ بَعۡدَ أَيۡمَٰنِهِمۡ﴾ څه عجبه خبره ده که دغه خلق د الله ﷻ د قسم د تعظيم د پاره اود رسوائې د ويرې چه وارثان په خپلو قسمونوباندې زمونږ قسمونه رد کړي نو بيا به مونږ ته سزا هم ملاويږي رښتيا اووائي. بيا فرمائي چه رښتيا وائې او د الله ﷻ نه اوويريږئ. د هغه خبره واورئ او د هغې تابعداري اوکړئ ګنې نامنونکو او فاسقانو ته خو الله ﷻ توفيق نه ورکوي او نه هغوی ته هدايت کوي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَوۡمَ | يَجۡمَعُ ٱللَّهُ | ٱلرُّسُلَ | فَيَقُولُ | مَاذَآ | |
| هغه ورځ | چې راجمع به کړي الله | ټول پيغمبران | نو اوبه وائي | چې څه | |
| په کومه ورځ چې الله ﷻ ټول پيغمبران راجمع کړي نوتپوس به ترې اوکړي | | | | | |
| أُجِبۡتُمۡ | قَالُواْ | لَا عِلۡمَ | لَنَآ | إِنَّكَ | أَنتَ عَلَّٰمُ ٱلۡغُيُوبِ ۝ |
| جواب ورکړې شو تاسوته | اوبه وائي هغوئ | نشته هيڅ علم | امونږته | بيشکه ته | هم ته ښه عالم ئې په پټو خبرو |
| چې تاسوته څه جواب درکړې شوې وو | هغوئ به اووائي مونږ ته هيڅ پته نشته | بيشکه ته په پټوخبروډيرخبردار ئې | | | |

قوله تعالی: ﴿يَوۡمَ يَجۡمَعُ ٱللَّهُ ٱلرُّسُلَ فَيَقُولُ مَاذَآ أُجِبۡتُمۡ﴾

**دَ قيامت په ورځ دَ پيغمبرانو نه پوښتنه:-** په دې آيت کښې اوخودلې شو چه د قيامت په ورځ به الله ﷻ پيغمبرانوته څنګه خطاب فرمائي، کومو قومونوته چه تاسو ليګلې شوی وئ هغوی د دين دعوت او تبليغ قبول کړې هم وو که نه. نوفرمائي ﴿ فَلَنَسۡـَٔلَنَّ ٱلَّذِينَ أُرۡسِلَ إِلَيۡهِمۡ وَلَنَسۡـَٔلَنَّ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ۝ ﴾ چه مونږ به د هغه

قومونونه هم تپوس کوو اودهغوی د پیغمبرانونه به هم تپوس کوو.بیا ارشاد فرمائی ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ۝ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝﴾ چه ستاسو په الله ﷻ قسم چه مونږ به د هغه ټولونه تپوس کوو چه په دنیا کښې ستاسو څه عمل وو. د رسولانو قول به وی ﴿لَا عِلْمَ لَنَا﴾ مونږ ته خو هیڅ پته نشته اودا به د هغه ورځ د هیبت په وجه وی چه د ویرې د وجه به د هغوی نه څه جواب نه جوړیږی نو وانی به چه مونږ ته هیڅ پته نشته. په هغه ورځ به عقلونه په ځائ نه وی او چه بیا کله د اطمینان سا واخلی نو د خپل قوم باره کښې به د واقعې مطابق ګواهی ورکوی. ولې په اولنی خل به د هغوی هم دغه قول وی چه یا الله مونږ ته څه پته ده ته عالم الغیب ئې ستا په مقابله کښې مونږ په څه پوهیدلې شو. په دې کښې هیڅ شک نشته چه دحسن ادب په لحاظ دادیر ښه جواب دې چه ستادعلم محیط په نسبت زمونږدعلم څه حقیقت دې.زمونږ د علم بنیاد خوصرف په ظاهر باندې دې او ستا علم خو د باطل خبر هم لری ځکه چه ته خو علام الغیوب ئې ته پوهیږې چه څه جواب هغوی ورکړې. اوس که د منافقت په وجه د چا عمل یا عقیده پاتې وی نو مونږ ته د هغې علم نشته هم ته پوهیږې.

| |
|---|
| إِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَالِدَتِكَ |
| کله چې\|اووائی الله \| اې عیسی\| ځویه \| دمریم \| یاد کړه\|نعمت زما\| په تاباندې \| اوپه مور ستا باندې |
| کله چې الله ﷻ اووائی چې عیسی ځوئې دمریم! ماچې کوم نعمتونه په تااوستاپه مورباندې کړی وو هغه یادکړه |
| إِذْ أَيَّدتُّكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ |
| کله چې\|ما مضبوط کړې وې ما\| په روح پاك (جبریل) سره \|تابه خبری کولې\|ادخلقو سره\|په زانګو کښې |
| کله چه ما په روح القدس سره ستا مدد کړی وو\|تاسو په زانګو کښې هم خلقو سره خبرې کولې |
| وَكَهْلًا وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ |
| اوپه زوړوالی کښې هم\| اوکله چې\|ماابنودو تاته \| کتاب \| اوحکمت \| اوتورات |
| اوپه بوډاتوب کښې هم \| ........اوماتاته.........کتاب..........اوحکمت.........او تورات |
| وَالْإِنجِيلَ وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ بِإِذْنِي |
| اوانجیل \|اوکله\| چې به تاجوړول\| دخټې نه \|په شان د شکل\| دمارغه \| په حکم زما سره\| |
| اوانجیل اوخودل\| اوکله چې به تا زما په حکم دخټې نه دمرغۍ شکل جوړولو |
| فَتَنفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِي وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ |
| نو تابه پوکې کولو\|په هغې کښې انو شو به \| مارغه \| په حکم زما سره\| او تاروغول\| مورزادی ړوند |
| او تا به په هغې کښې پوک وهلو\|نوهغه به زماپه حکم مرغۍ شوه\|اوتابه روغول مورزا ده ړانده خلق |
| وَالْأَبْرَصَ بِإِذْنِي وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِي |
| اوچې لاس خپې نې برګ وو \|په حکم زماسره\| اوکله چې\|به تارا ایستل \| مړی \| په حکم زماسره |
| اوزما په حکم دې جذامیان خلق روغول \|........او خما په حکم به دې مړی ژوندی کول |

وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ عَنكَ إِذْ جِئْتَهُم

اوكله چې|منع كړل ما| بنى اسرائيل | ستانه | څه وخت چې| راغلې ته هغوئ ته

اوڅه وخت چه ما بنى اسرائيل تاته د نقصان دررسولو نه بند كړل | په هغه وخت كله چې ورته تا

بِالْبَيِّنَٰتِ فَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا

| دښكاره ښښوسره|نواووئيل هغه كسانو|چې دحق نه منكروو|دهغوئ نه | چې نۀ دې دا | مگر |

ښكاره ښښې پيش كړې | نو كوم خلق چې كافران وو هغوئ اووئيل چې دا (معجزې) خو

سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝ وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّنَ أَنْ آمِنُوا بِي وَبِرَسُولِي

جادو | ښكاره | اوكله چې اشاره اوكړه ما| حواريانو ته |چې ايمان راوړئ|په ما |اوپه رسول زما

ښكاره باره جادودې| اوكله چې ما حواريانو ته (ستاپه خوله) اشاره اوكړه| چې په ما اوخماپه پيغمبرانو ايمان راوړئ

قَالُوٓا آمَنَّا وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُونَ ۝

اووئيل هغوئ | چې ايمان راوړو مونږ| اوگواه اوسه|چې بيشكه مونږ| مسلمانان يو|

نوهغوئ اووئيل | چې مونږ ايمان راوړئ دې | او ته گواه اوسه چې مونږ مسلمانان يو|

**قوله تعالي:** إِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَالِدَتِكَ

**په عيسى عليه السلام دَ الله جل جلاله دَ انعاماتوتذكره:**-دلته الله جل جلاله د هغه احساناتو تذكره فرمائى چه په عيسى بن مريم عليه السلام باندې كړې وو چه اې عيسى عليه السلام زمونږ هغه احسانات ياد كړه چه كوم معجزات او خوارق عادات مونږ تاته دركړې او ته مو د پلار نه بغير يواځې د مور نه پيدا كړې او ستاذات مو د خپل قدرت د كمال يوه ښښه اوگرځوله او ستا په مورباندې مو هم دا احسان اوكړو چه ته مو د هغې پاك دامنئى دليل جوړ كړې او چه كوم خراب الزام دې ظالمانو او جاهلانو تړلې وو د هغې نه مو ستا مور بچ كړه. تاته مو د حضرت جبرائيل عليه السلام په ذريعه امداد دركړو. ته مو په ماشوموالى او ځوانئى كښې هم نبى اود الله جل جلاله طرف ته رابلونكې جوړ كړې چه تا په زانگوكښې هم خبرې كولې اود مور د پاكوالى گواهى دې وركړه او د خپل بنده كيدو اعتراف دې اوكړو. په ماشوموالى او ځوانئى كښې دې هم خلقو ته تبليغ اوكړو. په لوئ عمر كښې خبرې كول خو څه عجيبه نه دى خو په زانگوكښې ستا خبرې كول څومره عجيبه وو. تاته مود كتاب تعليم دركړو، د تورات لوستل او ليكل مو دراوخودل كوم چه په موسى كليم الله باندې نازل شوې وو. په حديث كښې هم د توراة لفظ دې. دې نه تورات او هر نور كتابونه هم مراد دى. تابه د خاورې نه د مرغئى غوندې شكل جوړولو او زمونږ په حكم باندې به دې په هغې كښې پوكې وهلو نو هغه به يوه ژوندئى مرغئى جوړيدله او د الله جل جلاله په حكم به الوتله. د الله جل جلاله قول دې ﴿ وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ بِإِذْنِي ﴾ په سورت آل عمران كښې د دې بحث تيرشويدې، په دې وجه د دوباره ذكر كولو ضرورت نشته.﴿ وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِي ﴾يعنى تابه مړى رابلل نو هغه به د الله جل جلاله په حكم قدرت باندې ژوندى د قبرونونه راوتل. عيسى عليه السلام به چه كله د يو مړى د ژوندى كولو اراده كوله نو دوره ركعته مونځ به ئې كولو. په اول ركعت كښې ﴿ تَبَٰرَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ ﴾ او دوئم ركعت كښې ﴿ الٓمٓ ۝ تَنزِيلُ ﴾بيا به ئې د الله جل جلاله حمد او ثنا كوله، بيا به ئې د الله جل جلاله دا اووه نومونه لوستل ﴿ياقديم،ياخفى،

یادائم، یافرد، یاوتر، یااحد، یاصمد﴾ او که چرته سخته پریشانی به په وړاندې شوه نو دا اووه نومونه به نې اخستل او دعابه ئې کوله﴿ یاحی یاقیوم یاالله یارحمن یاذالجلال والاکرام یانورالسموات والارض ومابینهما ورب العرش العظیم یارب ﴾ دا ډیر اثر لرونکی نومونه دی. او زما هغه نعمتونه یاد کړه چه کله تا بنی اسرائیلو ته د نبوت دلائل راوړل او هغوی ته دروغژن اوګڼړلې او په تاباندې الزام اولګولو چه ته جادوګرئې او ستا قتلول او په سولئی کولو کوشش ئې اوکړو نو مونږ ته د هغوی نه بچ کړې. ته مو خپل طرف ته اوچت کړې. د هغوی د شر نه مو ته بچ کړې. دا ښیز دلالت کوی چه دا احسان په عیسی ﷺ باندې د هغوی د اوچتولو نه پس دې یا دا چه د قیامت په ورځ واقع کیدونکې دې. لیکن مستقبل د ماضی په صیغه باندې تعبیر کړې شوې دې ځکه چه الله ﷻ سره مستقبل هم د ماضی په شان یقینی واقع کیدونکې ښیز دې. دا د غیبو اسرار دی د کومو نه چه الله ﷻ حضرت محمد ﷺ خبر کړو. او چه کله مونږ حوارینوته وحی راولیږله چه په ماباندې او زما په رسول باندې ایمان راوړئې یعنی د حضرت عیسی ﷺ ملګری او امدادیان جوړشئی. دلته د وحی نه مراد په زړه کښې یوه خبره اچول دی لکه څنګه چه فرمائیلی شوی دی چه مونږ د حضرت موسی ﷺ مورته هم وحی لیږلې وه چه موسی ﷺ باندې پئې اوڅکوه. داسې الهام ته بغیر د اختلاف نه وحی وئیلې شویده. او فرمائیلی شوی دی چه مونږ د شاتو مچئی ته وحی لیږلې وه چه په غرونو کښې، ونو کښې خپل کورجوړکړئې او د خلقو په محلونو کښې. دغه شان حوارینوته هم الهام اوکړې شو نو حکم ئې اومنلو. او احتمال دې چه دا هم مراد وی چه مونږ ستا په ذریعه هغوی ته وحی اولیږله او هغوی مو په الله ﷻ باندې ایمان راوړلو طرف ته راوبلل نوهغوی قبول کړلو او وئې وئیل چه ﴿ اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ ﴾ یعنی اې پیغمبره! ګواه اوسیږه چه مونږ اسلام راوړلو.

اِذْ
په دې باره کښې یاد کړه کله
اویادکړه هغه وخت

قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ
چه اووئیل | حواریانو | اې عیسی | خوئې | دمریم | آیا | طاقت لری | رب ستا | چې نازل کړی
کله چې حواریانو اووئیل | چې انې عیسی ځوئې دمریم! آیا ستارب دا طاقت لری چې

عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ؕ قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١١٢﴾
په مونږ باندې | یوه خوانچه | داسمان نه | اووئیل هغه | اویریږئ دالله نه | که یئ تاسو | مومنان
چې مونږ ته د پورته آسمان نه خوانچه راولیږی | هغه اوفرمائیل چې دالله نه ویریږئ که تاسو مومنان یئ

قَالُوْا نُرِيْدُ اَنْ نَّاْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُنَا وَنَعْلَمَ
اووئیل هغوئ | غواړو مونږه | چې اوخورو مونږ | دهغې نه | اوچې مطمئن شی | زړونه زمونږه | اوچې معلومه شی مونږته
هغوئ اووئیل چې مونږ صرف داغواړو چې دهغې نه خوراک اوکړو او زړونو ته اطمینان حاصل شی او مونږ ته

اَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُوْنَ عَلَيْهَا مِنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿١١٣﴾ قَالَ
داخبره چې | ریښتیا وئیلی وو تا مونږته | اومونږ شو | په هغې باندې | دګواهانو نه | اووئیل
معلومه شی | چې تاته مونږ هرڅه ریښتیا وئیلی دی | اوپه دې خبره مونږ ګواهان شوا ........... اووئیل

عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ اَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ

عيسى| خوى | دمريم | اے الله | اربه زمونږه| نازل كړه| په مونږ باندې| خوا نچه| دآسمان نه |

عيسى خونې دمريم | چې اني زمونږه ربه په مونږ باندې يوه خوانچه دآسمان نه نازله كړه

تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا لِّاَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا وَاٰيَةً

چې شي| دپاره زمونږه| دخوشحالۍ موقع |دپاره دړومبنو زمونږه| اود روستو زمونږه| اويوه نښه وى

چې زمونږ دمخكښو او روستنو خلقو دپاره د خوشحالۍ موقع شى | او دغه شان چې يوه نښه هم

مِّنْكَ ۚ وَارْزُقْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ۝ قَالَ اللّٰهُ

|ستا دطرفنه| اوروزى راكړه مونږ ته | هم ته | بهتره | روزى وركونكي ئې | اوونيل| الله

ستادطرفه راشى | اومونږ لره روزى راكړه | اوته ډيربنه روزى وركونكې ئې | ........الله ﷻ ورته اوونيل

اِنِّيْ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ

زهٔ | نازلونكې يم دهغې | په تاسو باندې | نو هغه څوك| چې كفر كوى| وروستو (دهغې نه)| ستاسو نه

چې زه تاسوته خوانچه راليږم| .................خو ددې نه پس هم كه تاسو كښې چا انكار اوكړو

فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ

|نو بيشكه زهٔ | به عذاب وركوم هغه ته| داسې عذاب | چې نهٔ به وى وركړې ما هغه عذاب

نوزه به ورته داسې سخت عذاب وركوم| چې هغه شان عذاب ما

اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۝

هيچا ته | په مخلوقاتوكښې |

په دنيا كښې هيچا ته نه وى وركړې|دد

**قوله تعالي:: اِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ**

**دَ آسمان نه دَ مائده نازليدل:-** دلته د مائده قصه بيانولې شى په دې وجه د دې سورت نوم مائده كيخودې شو.په دې كښې هم الله ﷻ په خپل بنده او رسول حضرت عيسى عليه السلام باندې احسان څرګندونه كړې ده. يعنى دمائده د نازلولو دعا ئې قبوله كړيده چه د حضرت عيسى عليه السلام يوزبردسته معجزه اوحجت قاطعه دې بعضو امامانو بيان كړې دې چه داقصه په انجيل كښې ذكرنه ده اود مسلمانانو نه علاوه نصارى دې نه خبرنه وو. خو الله ﷻ د قرآن په ذريعه هغوى خبركړل. د الله ﷻ قول دې چه كله د عيسى عليه السلام متبعينو اوونيل چه اې عيسى عليه السلام! آيا ستاد رب نه دا كيديشى چه د آسمان يو تيار او جوړ شوې خوراك نازل كړى؟ دلته اكثرو قاريانو ﴿يَسْتَطِيْعُ﴾ لوستلې دې (يعنى ستا د رب نه دا ممكن دى؟) نور قاريان ﴿تَسْتَطِيْعُ﴾ لولى (يعنى آيا ستانه دا ممكن دى چه د خپل رب نه سوال اوكړې؟) مائده چه د طعام نه ډک دسترخوان ته وائى. د بعضو وينا ده چه د عيسى عليه السلام ملګرو د خپل حاجت او فقر په وجه داسوال كړې وو چه هره ورځ يو دسترخوان نازليږى كوم چه مونږ خورو او د عبادت د پاره طاقت حاصلولې شو. نو عيسى عليه السلام اوفرمائيل كه چرې تاسو ايمان لرئى نو د الله ﷻ نه اوويريږئى او داسې

سوال مه کوئی. د رزق په طلب کښې په الله ﷻ باندې یقین ساتنی. هسې نه چه هم دغه خیز ستاسو د پاره فتنه جوړشي. نو حواریانو ونیل چه مونږ د خوراك حاجت مندیو مونږ له د خوراك د پاره پکار دي. او چه کله مونږ د آسمان نه نازلیدونکې مائده اووینو نو زمونږ به پوره تسلی اوشي او په تا باندې به مو ایمان نورهم زیات شي او ستا د رسول کیدو به مو کامل یقین اوشي او مونږ به پخپله د دې ګواه شو چه دا د الله ﷻ د طرف نه یوه نښه ده اود عیسی ﷺ د نبوت او صداقت یو واضح دلیل دې. نو حضرت عیسی ﷺ دعا اوکړه چه اې الله د آسمان نه په مونږ باندې یوه مائده راکوزه کړې د هغې ورځې په یاد کښې به زمونږ مخکنی او روستنی خلق اختر کوی. سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه تکون لنا عیداً نه مراد دا دی چه مونږ به په هغه ورځ مونځ کوو. قتاده رحمه الله فرمائیلی دی چه دې نه مراد دا دې چه زمونږ نه پس راتلونکو د پاره به دا ورځ د یادګار جوړه شي. سلمان فارسی رضی الله عنه فرمائی دې د پاره چه زمونږ د ټولودپاره یو عبرت جوړشي او د رسالت د تصدیق د پاره دلیل کافی شي. او یا الله او په هره خبره باندې ستا د قدرت او زما د دعا د قبلیدو دلیل جوړشي دې د پاره چه خلق زما د رسالت تصدیق د خپل طرف نه بغیر د کلفت او تعجب نه ښکلې رزق راولیږه. ته خو خیرالرازقین ئې. الله ﷻ اوفرمائیل ښه ده زه خوانچه درلیږم خو که په دې باندې هم ستا قوم کفر اوکړواو مخالفت ئې اوکړو نو زه به هغوی ته داسې عذاب ورکړم چه چا به داسې عذاب نه وی څکلې. لکه چه الله ﷻ ارشاد اوفرمائیلو ﴿وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾ او ﴿إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ﴾ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه د قیامت په ورځ سخت عذاب چه په کوموخلقو وی هغه هم دا درې دی. منافقان خلق د مائدې د نازلیدلو نه پس هم کفر اوکړو او د فرعون قوم.

**د سلفوهغه روایتونه چه په حواریینوباندې د مائده د نزول سره متعلق دی:-** د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه حضرت عیسی ﷺ بنی اسرائیلو ته اوفرمائیل چه تاسو به دیرش ورځې روژې اوساتلې شئ. بیا به دالله ﷻ نه د مائده د نازلیدلو سوال کونې دې د پاره چه هغه ستاسو درخواست قبول کړې، ځکه چه اجرهغه خلقو ته ملاویږی چا چه پخپله هم عمل کړې وی. هغوی هم داسې اوکړل. دیرش ورځې روژې ئې اوساتلې او دې نه پس ئې اوونیل چه اې د خیر تعلیم ورکونکی عیسی! تاوئیلې وو چه عمل کونکوته د هغې اجر ضرور ملاویږی. تامونږ ته د دیرشو ورځو روژو ساتلو وئیلې وو او مونږ هم دغه شان اوکړل. که دیرش ورځې مونږ د چا نوکری کوونو هغه مونږ ته رزق یا تنخواه راکوی نو اوس به ستا الله په مونږ باندې مائده نازل کړی؟ حضرت عیسی ﷺ اوفرمائیل چه که چرې تاسو مؤمنان ئې نو د الله ﷻ نه اوویرېږئ. حوارییینو جواب ورکړو چه مونږ خو د خپل زړه تسلی غواړو او پخپله هم یقین کولو سره د نورو په وړاندې ګواه جوړیدل غواړو. لنډه دا چه د آسمان نه مائده نازل شوه چه په هغې کښې اووه کبان او اووه روټئی وې او د هغوی په وړاندې راغله اودریده کوم چه د شروع نه واخله ترآخره پورې ټولو خلقو اوخوړله.

د عمار بن یاسر رضی الله عنه نه روایت دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه په مائده کښې روټئی او غوښه وه او حکم وو چه په دې خیانت مه کوئی او د صبا د پاره ئې مه ایږدئی. خو خلقو خیانت اوکړو او د خپل خان د پاره ئې جمع کړل، د داسې خلقو شکلونه وران کړې شو بیزوګان او خنزیران ترې جوړ کړې شو.[1] او دا هم وئیلې شوی دی چه په هغې کښې د جنت میوې وې. وائی چه عمار بن یاسر رضی الله عنه د مانځه نه پس د متو والا د بنی عجل یو سړی ته اوونیل پوهیږې چه د بنی اسرائیلو مائده څنګه وه؟ خلقو به د هغې نه خوړل کول او هغه به ختمیدله نه. او ورته وئیلې شوې وو چه که تاسو په دې کښې خیانت نه

[1]) ترمذی کتاب تفسیر القرآن ومن سورة المائدة : ۳۰٦۱،

کوئی او د صبا د پاره جمع کول نه غواړئی نو دا به ستاسود پاره مدام وی. که تاسو ذخیره اوکړه نو داسې عذاب به درکړې شی چه چا ته به نه وی ورکړې شوې. ولې هم د رومبنی ورځې نه هغه پټول او خیانت ئې اوکړو. او اې دعربو خلقو تاسو هم د اوښانو او چیلو لکئی تاوولې یعنی په ډیر ذلیل حالت کښې وئی الله ﷻ د تاسو نه یو رسول پیدا کړو.تاسودهغه حسب اونسب پیژنئی. هغه تاسو ته خبرداری درکړو چه تاسو په عجمو هم غالب راتلونکی ئې او ډیر مالداره جوړیدونکې ئې. د عیسی ﷺ په شان ستاسو رسول هم تاسو منع کړئی چه د سرو او سپینو زرو ذخیره کول مه کوئی. د الله ﷻ قسم یوه ورځ داسی نه ده چه تاسو به دا خزانه نه زیاتوئی. ګورئی د حضرت عیسی ﷺ د قوم په شان چرته تاسو په دردناك عذاب کښې وانه چوی. اسحق بن عبدالله وائی چه په مائده کښې اووه کبان او اووه روټئی وې، خلقو اوخوړل او د صبا د پاره ئې هم اوچت کړل نو د مائده راتلل بند شو. ونیلی شی چه په هغې کښې هرقسم خوندوو او د جنت میوې وې، هره ورځ به نازلیدلې. هغه به څلور زره کسانو په خوړله او چه کله به اوخوړلې شوه نو هم دومره به موجود وه. د اوربشو روټئی به وه د ټولو خلقو د خوړلو نه پس به هم باقی پاتې کیدله. سعید بن جبیر رحمه الله وائی چه دچیلی دغوښې نه علاوه به هر څیز وو. عکرمه رحمه الله وائی د اوریژو روټئی به وې.

حضرت وهب او سلمان الخیر فرمائی چه کله د حضرت عیسی ﷺ نه د مائده سوال اوکړې شو نو هغه ته بدمعلوم شو او وئی وئیل د زمکې نه چه تاسو ته کوم رزق درکړې شوې دې هم په هغې صبراوکړئی اود آسمان نه د رزق نازلیدلوسوال مه کوئی ځکه چه دا به یوه معجزه وی او ثمودیانو چه څنګه د خپل نبی نه سوال کړې وو خو د سوال پوره کیدلو سره د کفر په وجه هغوی هلاك شوې وو، چرته تاسو سره هم داسې اونه شی خو هغوی اصرار کولو او چه کله حضرت عیسی ﷺ اوکتل چه د الله ﷻ نه د دعا کولو نه بله لار نشته نو خپله جبه ئې کوزه کړه او د تورو وینښتو قمیص او جبه ئې واغوستله کمبل ئې واغوسته،اودس ئې اوکړو او غسل ئې اوکړو صومعه شو، ډیر وخته پورې مونځ کولو بیا قبلې ته مخ شوې اودریدو. خپلې پښې ئې یوځائ کړئی او ګیټئی سره ئی ګیټئی ملاؤ کړه. ګوتې ئې نیغې اوساتلې، ښی لاس ئې په ګس لاس باندې کیخودو او د سینې د پاسه ئې اوتړل. سر ئې ښکته کړو او نظر ئې ټیټ کړو. د اننګونه ئې اوښکې بهیدلې او په ږیره باندې راتلې او په زمکه پریوتلې او د الله ﷻ نه ئې دعا غوښتله. اوس یو سوردسترخوان د دوو اوریځو په مینځ کښې د آسمان نه نازلیدل شروع شو. خلقو هغه د بره نه راپریوتونکی لیدل او خوشحالیدل خوحضرت عیسی ﷺ د ویرې ژړل. ځکه چه الله ﷻ شرط لګولو سره مائده نازل کړې وه چه که دې نه پس هم هغه ایمان راونړلو نو سخت عذاب به خوری. هغه د الله ﷻ نه دعا غوښتله چه اې الله ته دا رحمت جوړکړه او عذاب ئې مه جوړوه. څومره عجیبه خبرې کومې چه ما غوښتلې وې تاماته راکړئی اې الله مونږ شکر ګذار جوړکړه. اې الله د دې مائدې په سبب عضب جوړیدو نه زه پناه غواړم. دا سلامتیا او عافیت جوړ کړه. هغه دعا غوښتله چه خوان د هغه د حوارینو مخې ته اودریدو او د هغې نه داسې خوشبوئی راتله چه کله داسې خوشبوئی په بوئی کولو کښې نه وه راغلې. حضرت عیسی ﷺ او د هغه حوارینن د شکر په سجده کښې پریوتل ځکه چه داسې لوئی نښه اوعبرت ورکونکې څیز هغوی اولیدلو د کوم چه هغوی ته امید نه وو. یهودیانوداعجیبه امر لیدلو او د هغوی زړونه د غم او خفګان نه ډك وو. بیا هغوی په خپل مینځ کښې تاؤ راتاؤ شول او لاړل. اوس عیسی ﷺ اود هغه ملګری خوان له راغله په خوان باندې رومال پروت وو. حضرت عیسی ﷺ اوفرمائیل چه دې نه به رومال څوك اخواکوی؟ په مونږ کښې چه څوك په خپل نفس باندې د ټولونه ډیر مطمئن دې او د الله ﷻ په امتحان کښې د ټولو نه بهادر دې هغه دې رومال اخواکړی چه مونږ د الله ﷻ رزق اووینو او د هغه نوم اخستو سره ئې اوخورو. حوارینو ونیل اې روح

الله! تانه څوك د دې ډیر حقدار کیدیشی. دې اوریدو سره حضرت عیسی ﷺ پاڅیدو تازه اودس نې اوکړو، جمات ته راغلو مونځ نې اوکړو. د څه ساعت پورې اوژړل او الله ﷻ ته نې دعا اوکړه چه د مانده د کولاوولو اجازت راکړه او په دې کښې د قوم د پاره برکت او رزق راکړه. خوان له لاړو رومال نې ترې اوچت کړو چه وئی کتل نو په هغې کښې یو لوئ سور کړې شوې کب ایخودې وو چه د هغې په سرمن باندې نه څه ګرده شته او نه نې په غوښه کښې څه لشکه. غوړی ترې څڅیدو، په هغې کښې هرقسم سبزیانې هم دې بغیر دمولئی نه، د هغې د سرطرف ته سرکه او د لکئی طرف ته مالګه. د سبزو طرف ته پنځه روټئی دی چه په هغې کښې په یوه باندې د زیتون تیل دی او په بله کهجورې دی او پنځه انارونه دی. د حوارینو سردار شمعون اووئیل اې روح الله! دا زمونږ د دنیا خوراك دې که د جنت؟ نو عیسی ﷺ جواب ورکړو چه اوس هم هغه وخت نه دې راغلې چه دا کوم عجائبات ګورئی دې نه عبرت واخلئی اود دې سوالونه منع شئی. ماته ویره ده چه چرته دغه نښه ستاسو د عذاب سبب جوړ نه شی. شمعون وئیل نه د اسرائیلو د رب قسم، اې د ربښتونی مور ځویه! زما مقصد د دې خبرې نه څه سوال کول نه وو، نو عیسی ﷺ جواب ورکړو چه نه دا خوراك د دنیا دې او نه د د جنت دې. دا خو الله ﷻ هم په آسمان کښې په خپل قدرت باندې پیداکړې. هغه صرف کن فرمائی او د سترګو په رپ کښې هغه څیز پیداشی. د الله ﷻ نوم واخلئی او خورئی او شکر کونې الله ﷻ به نور هم ډیر درکړی ځکه چه هغه بدیع دې او قادر دې.

حواریانو وئیل چه مونږ غواړو چه په دې معجزه کښې یوه بله معجزه مونږ ته اوخودلې شی. نو حضرت عیسی ﷺ اوفرمائیل چه سبحان الله څه دا نشانی چه تاسو اولیدله کافی نه ده چه په دې کښې بیا د بلې نشانئی سوال کوئی. بیا عیسی ﷺ کب ته مخاطب شو او وئی فرمائیل اې کبه د الله ﷻ په حکم ژوندې شه. نو هغه وریت شوې کب د الله ﷻ په حکم راژوندې شو او تازه شو او په ترړقیدو شو. د زمری په شان نې خله کولاؤکړه او سترګې تاوولې او پړقیدلې. د هغه په بدن باندې ستارې هم راښکاره شوې. د دې په لیدو خلق اوویریدل. عیسی ﷺ اوفرمائیل چه تاسو خو یوه بله نشانی کتل غوښتل چه تاسو ته اوخودلې شوه نو اوویریدلئی. ماته اندیښنه ده چه دا تاسو څه کوئی دا به ستاسو د نیولو او فتنې سبب شی. اوس عیسی ﷺ کب ته اووئیل چه د الله ﷻ په حکم څنګه وې هم هغه شان شه نو هغه د اول په شان سورشو. خلقو اووئیل اې عیسی ﷺ! ته اول اوخوره بیا به مونږ خورو. عیسی ﷺ اوفرمائیل معاذالله چا چه مطالبه کړې وه هغوی له اول خوړل پکار دی. کله چه حوارینو اوکتل چه عیسی ﷺ نه خوری نو اوویریدل چه د مانده نازلیدل د ناخوښئی سبب دې اود دې په خوراك کښې اندیښنه ده نو منع شو. حضرت عیسی ﷺ فقیران غریبان او بیماران راوغوښتل او وئی فرمائیل خورئی. دا د الله ﷻ د طرف نه رزق دې او ستاسو د نبی د طرف نه دعوت دې او د الله ﷻ شکر ادا کړئی چه تاسو له نې دا درکړو. ستاسو د پاره مبارك دې او د نورو د پاره عقوبت دې. هغه ټولو د الله ﷻ نوم واخستو او وئی خوړلو. دیارلسو سوو ښځو او سړو او خوړلو او په ډکه خیټه پاڅیدل. بیا دا مانده د آسمان طرف ته لاړه اوخلق کتونکی پاتې شو. کومو فقیرانو چه اوخوړله هغه غنیان شو او بیماران جوړ شو او بیا دوی همیشه غنیان او جوړ وو او چه کومو حوارینر د خوراك نه انکار کړې وو هغوی سخت پښیمانه پاتې شو او ترمرګه پورې د خوراك ارمان د هغوی په زړونوکښې پاتې وو. اوچه د کله نه دا مانده نازله شوې ده نو د هر طرف نه بنی اسرائیل راپه منډه وو. غنیان، فقیران، لوئ واړه او روغ ناروغه ټول د خوراك د پاره لیواله وو. اوس حضرت عیسی ﷺ د ټولو نمبر مقرر کړو. یوه ورځ به چه څوك راتله او خوړله به نې هغه به بله ورځ نه راتلو، په مینځ کښې به نې یوه ورځ پریخودله نو راتله به. دغه شان څلویښت ورځې تیرې شوې او ټوله ورځ به د خوراك سلسله جاری وه. بیا به مانده د الله

ﷻ په حکم اسمان ته اوختله او تردې چه خلقو به د هغې سورې په زمکه باندې پریوتونکې لیدلو. الله ﷻ خپل نبی حضرت عیسی ؑ ته وحی راو لیږله چه په مائده کښې زما رزق د غریبانانو او یتیمانو او بیمارانو د پاره دې. د خیټورو د پاره نه دې. مالدارانو ته دا خبره خرابه اولږیدله نو خبرې جوړول ئې شروع کړل. پخپله هم په شك کښې پریوتل او نورنې هم په شك کښې اچول او غلطې خبرې خورول ئې شروع کړه. شیطان د هغوی په زړونو قبضه اوکړه او د خو خلقو په زړونوکښې ئې هم وسوسې واچولې هغوی ونیل چه اې عیسی ؑ دا مائده نازلیدل په ربښتیا د آسمان نه کیږی ځکه چه په مونږ کښې د ډیروخلقو شك دې. عیسی ؑ اوفرمائیل زما په الله ﷻ قسم دې تاسو هلاك شونې. تاسو نبی ته سوال کړې وو چه د الله ﷻ ته د مائدې دعا اوکړه او چه کله هغه دعا اوکړه او الله ﷻ په تاسو خپل رحمت او رزق نازل کړو. او تاسو ته ئې خپلې نښې او عبرتونه اوخودل نو تاسو انکار او شك اوکړو. اوس د عذاب زیرې واورئ چه تاسو به راګیر کړی. دا یوه بله خبره ده که الله ﷻ پخپله رحم اوکړی. نو الله ﷻ حضرت عیسی ؑ ته وحی اوکړه چه زه تکذیب کونکی نه پریږدم. څوك چه د مائده د نازلیدو نه پس کفر اوکړی ځکه چه د دې متعلق خو شرط هم دا وو چه هغوی ته به داسې عذاب ورکولې شی چه تراوسه پورې نه دې ورکړې شوې. دا شك کونکی چه کله په خپلو بسترو باندې سملاستل او د اوده کیدو په وخت کښې په خپلو خو شکلونوباندې وو خو په آخری شپه کښې الله ﷻ د هغوی نه خنزیران جوړ کړل او دوی په اسونو باندې په ګندګو او مردارو کښې ګرځیدل. دا ټول روایت ډیر حیرانونکې دې. ابوحاتم دا د بیل بیل ځائ نه ټکړه ټکړه رایوځائ کړې او بیان کړې دې. ما د دې سیاق او ترتیب برابرولو د پاره د واقعه په توګه رایوځائ کړو.

دا روایت خو دلالت کوی چه مائده رانازله شوې وه او د حضرت عیسی ؑ په دعا سره بنی اسرائیلو ته ملاؤشوې وه. ښکاره عبارت د قرآن نه دا اخستلې شی ځکه چه الله ﴿ﷻ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ﴾ فرمائیلې دې خو ویناکونکی دا هم وائی چه مائده هډو نازله شوې نه ده او الله ﷻ دا خبره د مثال په توګه فرمائیلې ده او بله دا چه کله هغوی ته د عذاب ویره اوخودلې شوه نو هغوی د دې د غوښتلو نه واوختل او وئی وئیل چه نه زمونږ مائده نه ده پکار. د مجاهد او حسن ؒ پورې د دې اسانید ډیر صحیح دی اود ټولو نه قوی دلیل دا دې چه نصاری د دې مائده نه هډو خبر نه دی او د هغوی په کتاب انجیل کښې چرته د دې ذکر هم نشته. که چرې مائده نازله شوې وه نو په انجیل کښې به ځائ په ځائ د هغې ذکر وو او یو ځل نه چه متواتر به ئې ذکر وو خو د جمهورو دا خیال دې چه مائده نازله شوې وه. ابن جریر ؒ هم دا خیال اختیار کړې دې ځکه چه الله تعالی ﴿اِنِّیْ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ﴾ فرمائیلې. د دې وعده او وعید حق دې او همدغه خبره صحیح معلومیږی. اهل تاریخ هم دغه لیکلی دی چه موسی بن نصیر نائب بنی امیه فتوح بلاد د مابنام په وخت کښې هلته مائده موندلې وه په کومو کښې چه مرغلې پیللې شوی وې او قسماقسم قیمتی کانړی په کښې ورخښ وو. نوامیر المؤمنین ولید بن عبدالملك ته هغه اولیږلې شوه دا مائده هم په لارکښې وه چه مړه شوه. اوس ئې دا د هغه رور سلیمان بن عبدالملك له اولیږله چه د هغې نه پس خلیفه شو. خلقو د هغې یاقوت او جواهرات کتلو سره ډیره حیرانتیا اوکړه او وئیلې شی چه دا مائده د سلیمان بن داؤد ؑ وه. والله اعلم.

**دَقریشوسوال او دَجبرائیل ؑ پیغام:-** دابن عباس ؓ نه روایت دې چه قریشو دنبی کریم ﷺ ته وئیلې وو چه د صفاغرزمونږ دپاره د سرو زروکړه نو مونږ به په تا ایمان راوړو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه څه ایمان به راوړنی؟ هغوی اووئیل او. په دې کښې جبرائیل ؑ راغلو او وئی وئیل الله ﷻ تاته سلام وائی. او فرمائی چه که ته غواړې نوترسحره به دصفاغر دسرو زرو شی خو که د دې نه پس ئې هم ایمان رانه وړو

نوسخت عذاب سره به مخ کولي شي اوکه ته غواړې چه زه ددوی توبه قبوله کړم اوېدوی باندې رحمت اوکړو نو داسې به بنه وی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه اې پروردګاره ستا توبه او ستا رحمت غواړو.[1]

| |
|---|
| وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ |
| او هرکله چې \| اووئیل الله \| اې عیسی \| خویه \| دمریم |
| (ددې احساناتو یادولو نه پس) الله ﷻ درته وائي چې ائې عیسی خوئې دمریم |
| ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ اللَّهِ ۖ |
| ایا تا \| ونیلي وو \| خلقو ته \| چې اونیسئ ما \| اومور زما \| دوه خدایان \| ماسوا دالله نه |
| ایاتاخلقو ته ونیلی وو \| چې دالله ﷻ نه سوا ماا وزما مور دواړه معبودان جوړ کړئ |
| قَالَ سُبْحَٰنَكَ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا |
| (نو) اوبه وائي عیسی \| پاکي ده تالره \| نه دی مناسب \| ما لره \| چې اووایم زه \| هغه خبره |
| هغه به اووائي چې پاکي تالره ده \| مادا څنګه ولي شو چې هغه خبره مې کړې وی |
| لَيْسَ لِي بِحَقٍّ ۚ إِن كُنتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ ۚ تَعْلَمُ |
| چې نشته \| ماته \| حق \| که وم زه \| چې ونیلې وې ما دا خبره \| نو بېشکه \| معلومه به وې تاته \| معلوم دی تاته |
| چې ماته ئې حق حاصل نه دې \| که ما ونیلې وې نو هغه به تا ته ضرور معلوم وې \| تاته بنه معلوم دی |
| مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ ۚ إِنَّكَ أَنتَ |
| هغه \| چې په زړه کښې زما دی \| اونه دی معلوم ماته \| هغه \| چې په ذات ستا کښې دی \| بېشکه ته \| هم ته |
| څه چې زما په زړه کښې دی \| او ماته هغه نه دی معلوم چې کوم ستا په علم کښې دی \| ......بیشکه ته |
| عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿١١٦﴾ مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ |
| بنه عالم ئې \| په پټو حقیقتونو \| نه دی ونیلی ما \| هغوئ ته \| مګر هغه \| چې حکم کړې وو تا ماته \| په هغې سره |
| په ټولو حقیقتونو ډیر بنه پوهیږې \| ماورته دهغې نه سوا هیڅ نه وو ونیلی \| چې څه تا ماته حکم کړې وو |
| أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ ۚ وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا |
| چې بندګي اوکړئ \| دالله \| چې رب زما دې \| اورب ستاسو دې \| اووم زه \| په هغوئ باندې \| نګران \| |
| (اوهغه دا) چې دیو الله ﷻ عبادت کوئ \| اوهغه زما او ستاسو رب دې \| اوزه ترې ترهغه وخته پورې خبر اوم |
| مَّا دُمْتُ فِيهِمْ ۖ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ ۚ |
| ترڅو چې وم زه \| په هغوئ کښې \| پس هرکله چې \| تا واپس اوغوښتلم زه \| نو وې ته \| هم ته \| نګران \| په هغوئ باندې |
| ترڅو چې زه په دوئ کښې موجودووم \| او کله چې تازه واپس راوبللم نو بیا صرف ته دهغوئ نه خبر وې |

---

[1] احمد: ٢٤٢/١، وهو حسن حاكم: ٢١٤/٢، المعجم الكبير: ١٢٧٣٦، البيهقي: ٨/٩.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَأَنْتَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ | شَهِيدٌ ﴿١١٧﴾ | إِنْ تُعَذِّبْهُمْ | فَإِنَّهُمْ | عِبَادُكَ | |
| اوته په هر څيز باندي انظرلرونكي ئي | اوس كه ته عذاب وركړي دوئ ته | انوبيشكه دوئ | ابندګان ستا دي | | |
| اوتاته د هر څه خبر شته دي ا ......... | كه ته دوئ ته سزا وركولي | نو داستا بندګان دي ........ | | | |
| وَإِنْ تَغْفِرْ | لَهُمْ | فَإِنَّكَ أَنْتَ | الْعَزِيزُ | الْحَكِيمُ ﴿١١٨﴾ | |
| اوكه ته معافي اوكړي | ادوئ ته | انوبيشكه ته هم ته | اغالب ئي | ادحكمت خاوند ئي ا | |
| اوكه ته دوئ معاف كړي ا نو بيشكه ته غالب اودحكمتونو خاوند يئ ا | | | | | |

**قوله تعالي:** ﴿وَإِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَأَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلٰهَيْنِ مِنْ دُونِ اللّٰهِ﴾

**دَ قيامت په ورځ دَحضرت عيسى عليه السلام نه جواب غوښتل:-** الله ﷻ به دقيامت په ورځ د هغه خلقو په موجودګئ كښې عيسى عليه السلام ته خطاب كوي چاچه عيسى عليه السلام اودهغه مورخدائ جوړكړي وو.داد نصارراؤ په څرګنده تهديد او توبيخ دي. قتاده رحمه الله په دې باندې د الله ﷻ د دې قول نه استدلال كړې دې. چه ﴿هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِينَ صِدْقُهُمْ﴾ يعنى دا هغه ورځ ده چه رښتونوته په د هغوى د رښتياؤ بدله ملاويږي. سدى رحمه الله وائي چه دا خطاب او جواب په دنيا كښې دې. ابن جرير رحمه الله د دې تصديق كوې چه د دې واقعه سره متعلق دې سره د دې چه عيسى عليه السلام آسمان ته اوچت كړې شوې وو. ابن جرير رحمه الله په دې باندې په دوه قسمه استدلال كړې دې. يو خودا چه كلام د لفظ ماضى يعنى ﴿قَالَ﴾ سره دې بل دا چه د الله ﷻ قول ﴿إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ﴾ يعنى كلام شرطيه دې نو دا خبره به هم په دنيا كښې شوى وى خو عذاب يا ښښنه د آخرت د شرط د پاره اوچت كړې شو. خو دا دواړه دليلونه غورغوښتونكى دى څكه كه لفظ ماضى دې نو څه اوشو د قيامت اكثر امور د ماضى په لفظ سره بيان كړې شوى دى د دې د پاره چه په وقوع او ثبوت باندې دليل كافى شى. د ﴿إِنْ تُعَذِّبْهُمْ﴾ شرطيه كلام سره د عيسى عليه السلام د هغه ګناهګارانونه ويزاره كيدل ښكاره كول او د الله ﷻ د مرضئ په هغوى كښې نافذ كيدل ظاهر كړې شوى دى او په شرط باندې د څه څيز متعلق كيدل د يوڅيز د واقع كيدلو د پاره نشى مقتضى كيدلې. په قرآنى آياتونوكښې د دې ډير مثالونه دى. د قتاده رحمه الله چه كوم بيان دې هغه ډير واضح دې چه د قيامت د ورځې خبرې اترې دى، دې دپاره چه د قيامت په ورځ د ټولو په وړاندې د نصارى راز ښكاره شى او تهديد او توبيخ ئې اوشى. د حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه نه روايت دې چه حضور ﷺ اوفرمائيل چه د قيامت په ورځ به انبياء عليهم السلام اود هغوى امتونه راؤغوښتې شى بيا به عيسى عليه السلام راؤغوښتې شى په هغه به د احسان څرګندونه اوكړې شى اوهغه به اقرار به اوكړې بيا به الله ﷻ دا پورتنې سوال اوكړى نو هغه به انكار اوكړى چه ما خپل امت ته د خپل عبادت نه وو ونيلى. اوس به نصارى راؤغوښتې شى هغوى نه به تپوس اوكړې شى هغوى به وائى چه او هم عيسى عليه السلام مونږ ته داسې حكم راكړې وو. د دې په اوريدو سره به د ويرې د عيسى عليه السلام د سر او بدن ويښته اودريږى. فرښتې به هغه ويښته اونيسى او دا نصارى به د الله ﷻ په وړاندې زر كاله پښې رايوځاى كړې شوى كينولې شى تر دې چه په هغوى باندې حجت قائم كړې شى او اصليت به د هغوى په وړاندې راشى. د دروغو په سزا كښې به صليب به د هغوى پيشوا جوړولې شى بيا به دا خلق د دوزخ طرف ته پاره كولې شى.[1] اود الله ﷻ قول دې ﴿سُبْحٰنَكَ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ﴾ په دې جواب كښې د حسن

[1]) الدرالمنثور: ۶۱۵/۲.

ادب څومره توفیق ورکړې شوې دې. د عیسی ﷺ په زړه کښې څومره ښه دلیل واچولې شو چه اې الله چه د کومې خبرې زما څه حق نشته نو داسې خبره به ما څنګه کوله.(ولوفرضنا) که چرې ما داسې ونیلې هم وی نو ته به خبردار ئې ځکه چه تانه خو څه خبره پټیدلې نشی. ته زما د زړه خبره پیژنې خوزه ستا اراده نه شم پیژندلې، د څه چه تاما ته حکم راکړې وو ما د هغې نه یو حرف هم زیات نه دې ونیلی. ما خو هم دا ونیلی ووچه د الله ﷻ عبادت کونې چه زما هم رب دې او ستاسو هم رب دې. زه چه ترکومې په دوی کښې ووم د دوی د اعمالو نګران ووم او چه کله نه تازه اوچت کړم نو بیا خو ته د هغوی د اعمالو نګران شوې او ته خو د هرې خبرې نګران ئې.

د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ مونړ ته خطبه راکوله نو ونی فرمانیل چه اې خلقو د قیامت په ورځ به تاسو بربنډ او بې جامو اوچتولې شئی لکه څنګه چه د پیدا کیدو په وخت وئې. د ټولونه اول به حضرت ابراهیم ﷺ ته جامې اغوستلې شی. بیا به زما د امت یوڅوخلق راوستلې شی کوم چه به د دوزخ د نشانې په توګه ګس طرف ساتلې شی نو زه به وایم چه دا خو زما امت دې نو ونیلې به شی چه ته نه پوهیږې چه تانه پس دې خلقو ستا سنت پریخودې وو او کوم کوم بدعتونه ئې روان کړی وو. نو زه به د یو صالح بنده په شان همدغه اووایم کوم چه حضرت عیسی ﷺ ونیلې وو نو ونیلې به شی چه تانه پس خلق مرتد او بدعتیان شوې وو.([1])

**د امت د ښښنې د پاره د حضور ﷺ منتونه او زارئې** :- قوله(إِن تُعَذِّبْهُمْ) الی آخره. دا د الله ﷻ د کلام په اراده متضمن دی چه هغه څه غواړی نو کوی او هغه د ټولونه تپوس کولې شی. نور دا د نصاراؤ د کلام نه په ویزارئې باندې مشتمل دې چا چه حضرت عیسی ﷺ د الله ﷻ شریك او اولاد، او حضرت مریم ئې بی بی ګرځولې وه نعوذبالله تعالی. د دې آیت لوئ شان دې. په حدیث کښې دی چه یوه شپه نبی کرم ﷺ تر سحره پورې دا آیت په مانځه کښې لوستلو.

د حضرت ابوذر نه روایت دې چه نبی اکرم ﷺ یوه شپه دا آیت لوستلو تردې چه په رکوع او سجده کښې ئې هم دا آیت اولوستلو. سحر چه کله ما د دې وجې تپوس اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمانیل چه ما د الله ﷻ نه چه ډیر لوئ دې د امت د شفاعت سوال کولو نو د شرك نه علاوه هغه د ټولو د ښښنې وعده اوکړه.([2])جسره بنت وجاجه نه روایت دې چه حضرت ابوذر ﷺ فرمانیل چه نبی اکرم ﷺ د ماسخوتن مونځ ورکړو نو د هغې نه پس خلقو خپل خان له خان له مونځونه کول. حضوراکرم ﷺ په خپل ځای باندې کیناستو چه کله خلق خپلو کورونوته لاړل نو بیا په مصله باندې راغلواو په مانځه کښې مشغول شو. اوس زه هم راغلم او هغوی پسې په مانځه اودریدم. هغوی ﷺ ښی طرف ته د اودریدو اشاره اوکړه نو زه ښی طرف ته شوم. بیا ابن مسعود ﷺ راغلو مونړ پسې شاته اودریدو نو حضور ﷺ ګس طرفته کیدو اشاره اوفرمانیله. اوس مونړ دریوارو خپل ځان له ځان له مونځ کولو. حضور ﷺ چه په مانځه کښې کوم یو آیت شروع کړو نو هم د هغې لوستوکښې ئې سحرکړو. ما حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ته اوونیل چه ټوله شپه هم د یو آیت لوستلو سبب د حضور ﷺ نه تپوس اوکړه. هغه اوونیل چه نه ترکومې حضور ﷺ پخپله بیان نه وی فرمانیلې نو زه تپوس نه کوم. ما زړه کلك کړو او تپوس می اوکړو یا رسول الله ﷺ زما مور پلار دې په تا قربان شی ټول قرآن پاك ستاسو په سینه کښې دې خو

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المائدة باب قوله ﴿ دکنت علیهم شهیدامادمت فیهم فلما توفیتنی .....﴾ : ٤٦٢٥، صحیح مسلم: ٢٨٦٠، ترمذی : ١٤٢٣.

[2]) احمد: ١٤٩/٥، نسائی: کتاب الافتتاح باب تردید الآیة: ١٠١١، ابن ماجه: ١٣٥٠.

تاسو د قران پاك صرف هم يو ايت لوستلو. كه په مونږ كښې چا داسې كولو نو مونږ به په هغه اعتراض كولو. نو هغوی ﷺ اوفرمائيل چه ما د امت د پاره د الله ﷻ نه دعا كوله. ما تپوس اوكړو د الله ﷻ د طرف نه څه جواب ملاؤشو نو اوفرمائيلې شو چه د كومې خبرې ماسره وعده شويده نو اكثر خو به مونځونه كول پريږدني اود الله ﷻ د رحمت بهانه به واخلني. ما اووئيل چه آيا خلقو ته د دې زيرې اونه رسوم؟ونې فرمائيل چه او اورسوه. زه لږ شان لرې تلې وم چه حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل يا رسول الله ﷺ كه خلقو ته دا خبره اورسولې شي نو عبادت به پريږدي. نو حضور ﷺ زه واپس راؤغوښتم هغه آيت دادې ﴿إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۖ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾[1]دا د حضرت عيسى ﷺ قول دې كوم چه نبى اكرم ﷺ تلاوت فرمائيلو.بيا حضور ﷺ خپل لاسونه اوچت كړل او ونې فرمائيل ﴿اللهم امتى﴾(اې ربه زما امت) او په چغوچغو ئې ژړل. الله ﷻ حضرت جبرائيل ﷺ راوليږلو او حضرت جبرائيل ﷺ راغلو د ژړا د سبب نې تپوس اوكړو. نو چه حضور ﷺ كوم جواب وركولو حضرت جبرائيل ﷺ ته نې وركړو نو الله ﷻ اوفرمائيل اې جبرائيل! لاړشه حضرت محمد ﷺ ته اووايه چه مونږ به ستا د امت باره كښې تا راضى كوو او زړه مه خفه كوه.[2] حذيفه ﷺ بن اليمان وائى رسول الله ﷺ يوځل ناوخته تشريف راؤړواو په سجده كښې راپريوتلو او دومره ساعت ئې تيركړو لكه چه روح ئې الوتې وى. بيا ئې چه كله د سجدې نه سر راواوچت كړو نو ونې فرمائيل زما رب زما د امت باره كښې ماسره مشوره كړې وه چه هغوى سره څه اوكړى؟ نو ما اووئيل چه اې ربه دا خو هم ستا بنديگان دى او هم ستا مخلوق دې. په دونم ځل نې تپوس اوكړو بيا ما هم دغه اووئيل نو الله ﷻ اوفرمائيل اې محمد ﷺ! زه به د امت باره كښې تا نه رسوا كوم. او ماته ئې اووئيل چه تاسره به او اويا زره امتيان ځى او دغه شان هر يو امتى سره به اويا زره امتيان وى او دا ټول به بغير حساب كتاب نه جنت كښې داخليږى. بيا ئې اووئيل چه غواړه تاته به دركولې شى نو ما حضرت جبرائيل ﷺ ته اووئيل چه څه الله ﷻ زما سوال پوره كول غواړى. نو حضرت جبرائيل ﷺ اوفرمائيل چه او الله ﷻ زه تاله هم دې غرض د پاره راليږلې يم. نو الله ﷻ ماته هر څه راكړه. زه په دې غرور او فخر نه كوم چه الله ﷻ زما ټول مخكى او روستى گناهونه معاف كړل او زه په زمكه صحيح سلامت ژوندې گرځم. اوماته ئې دا هم خصوصيت راوښيلو چه زما امت به په قحط نه مرى او نه به مغلوبه كيږى. الله ﷻ ماته كوثرراكړې. داپه جنت كښې يونهر دې چه زما حوض ته به رابهيږى او ماته ئې د عزت، نصرت، رعب، شان او شوكت خصوصيت راكړې دې چه زمادامت په وړاندې په خلقوباندې ديوې مياشت په اندازه اثر غورزوى. زه به جنت كښې د ټولو پيغمبرانو نه وړاندې داخليږم او زما د امت د پاره د غنيمت مال بالكل حلال گرځولې شويدې. او اكثر داسې څيزونه ئې حلال كړى دى چه زما نه په وړاندې امتونوباندې حلال نه وو او په مذهبى حيثيت سره زما په دين كښې هيڅ سختى نه ده كيخودې.[3]

| قَالَ اللّٰهُ هٰذَا | يَوْمُ | يَنْفَعُ | الصّٰدِقِيْنَ | صِدْقُهُمْ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو اوبه وائى الله دا | هغه ورځ ده | چې نفع وركوى | رښتنو خلقو ته | رښتيا وينا دهغوئ | دپاره د هغوئ |
| الله ﷻ به ورته اووائى دا | هغه ورځ ده | چې رښتينو خلقوته | به خپل رښتيا فائده وركړى | | دوئ دپاره داسې |

[1] احمد: ۱۷۰/۵، ابن ماجه: ۱۳۵۰.
[2] صحيح مسلم كتاب الايمان باب دعاء النبى ﷺ لامة وبكائه شفقة عليهم: ۲۰۲.
[3] احمد: ۳۹۳/۵.

جَنّٰتٌ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَآ اَبَدًا ؕ

باغونه دی چی بهیږی | لاندی دهغې نه | نهرونه | همیشه به وی | په هغې کښې | همیشه |

باغونه دی چې د هغې لاندې به ولې بهیږی | او دوئ به په هغې کښې همیشه وی | الله ﷻ دهغوئ نه راضی شو

رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِیْمُ ۝ لِلّٰهِ

راضی شو الله دهغوئ نه | اوراضی شو هغوئ دالله نه | دا | کامیابی ده | لویه | خاص الله لره ده

اوهغوئ دالله ﷻ نه راضی شو | ............ اودا ډیره لویه کامیابی ده | ............ د آسمانونو

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا فِیْهِنَّ ؕ وَهُوَ

بادشاهی | دآسمانونو | اودزمکې | اودهغه څه | چی په دې کښی دی | اوهغه |

اوزمکې اوددې مینځ کښې دټولو څیزونو اختیار صرف الله دپاره دې | ............ اوهغه

عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۝

په هر څیز باندې | قادر دې

په هرڅه قدرت لری

قوله تعالی:: قَالَ اللّٰهُ هٰذَا یَوْمُ یَنْفَعُ الصّٰدِقِیْنَ صِدْقُهُمْ ؕ

**د محشر په ورځ کامیابیدونکی:-** الله ﷻ دخپل بنده حضرت عیسی ؑ د خبرې جواب ورکوی کله چه هغه د نصاراؤ ملحدینو او کاذبینونه خپله ویزاری ښکاره کړې وه، فرمائی ﴿ هٰذَا یَوْمُ یَنْفَعُ الصّٰدِقِیْنَ ﴾ یعنی د نن ورځ د موحدینو د توحید د ورکولو ورځ ده چه د بهیدونکو نهرونو والا په جنت کښې به وی. نه به د هغه ځائ نه ویستلې شی او نه به د یوساعت د پاره جنت پریږدی. حضور ﷺ فرمائیلی دی چه په دغه ورځ به رب کریم جلوه افروز وی او فرمائی به غواړئی زه د ورکولو د پاره راضی یم. خلق به د هغه رضامندی غواړی نو فرمائی به چه هم زما رضامندئی تاسو زما کور ته راکوزکړی نې. اوغواړئی څه غواړنی. خلق به بیا د الله ﷻ رضامندی اوغواړی. فرمائی به چه ګواه اوسیږئی سبحانه تعالی ستاسو نه راضی دې[1] ﴿ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِیْمُ ۝﴾ دا ډیره لویه کامیابی ده. ﴿لِمِثْلِ هٰذَا فَلْیَعْمَلِ الْعٰمِلُوْنَ ۝﴾ عمل کونکو له هم داسې عمل پکاردې. ﴿وَفِیْ ذٰلِكَ فَلْیَتَنَافَسِ الْمُتَنٰفِسُوْنَ ۝﴾ اوهم ددې کوشش خلقوله پکاردې. هغه دهرڅیز خالق دې په هرڅیز باندې متصرف اوقادردې. ټول دهغه دغلبه اوقدرت لاندې دی. د هغه نه څوك مثال شته اونه دهغه څوك برابرشته اونه امدادی. دهغه نه پلارشته نه ځوئ نه ښځه. دهغه نه بغیربل هیڅ یو الله نشته.[2]

## د سورة انعام مکی سورة تفسیر

**دَ سورهٔ انعام فضائل:-** سورة انعام په مکه کښې په یوه شپه او په یو ځل نازل شوې. دا اویا زره فرښتو راوړې حاضرې شوې وې او تسبیح ئې لوستو. [3] اسماء بنت یزید وائی چه حضور ﷺ په ناقه باندې

[1] ابن ابی شیبة: ۱۵۰/۲

[2] ترمذی کتاب التفسیر القرآن باب ومن سورة المائدة : ۳۰۶۳، وسنده حسن لذاته وصححه الحاکم: ۳۱۱/۲. ووافقه الذهبی

[3] طبرانی : ۱۲۹۳۰،

سور وو او سورة انعام نازليدلو. ما د حضورﷺ د ناقې واګه نيولې وه. د وحي د بوج نه ناقه (اوښه) داسې ټيټه شولکه چه دهغې هډوکي به مات شي([1]) ملائکو زمکه اوآسمان راګير کړې وو. د سورة انعام د نازليدلو نه پس حضور نبي اکرمﷺ تسبيح لوستلې. فرمائيلې د دې سورة په مشايعت کښې فرښتو د آسمانه پورې راګير کړې وو([2]) دفرښتو ﴿سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم﴾ په آوازونو سره په زمکه او آسمان کښې يوه هنګامه وه. حضورﷺ هم دا تسبيح لوستلې.([3]) حضورﷺ فرمائيل چه ټول سورة انعام هم په يو ځل نازل شويدې. د اويا زره فرښتو په تسبيح او تحميد سره نازل شويدې.([4])

| آياتونه | سورة الانعام مکي دي | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| ۱۱۵ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۲۰ |
| | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دي | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَلْحَمْدُ | لِلّٰهِ | الَّذِيْ | خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | وَجَعَلَ |
| ټول تعريف | خاص الله لره دي | هغه (الله) | چې پيدائي کړل | آسمانونه | او زمکه | او پيدا ئې کړې |
| ټول تعريفونه الله ﷻ دپاره دي | هغه ذات چې آسمانونه او زمکه ئې پيدا کړې ده | ............او | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الظُّلُمٰتِ | وَالنُّوْرَ ط | ثُمَّ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | بِرَبِّهِمْ | يَعْدِلُوْنَ ﴿١﴾ |
| تيارې | او رڼا | بيا | هغه کسان | چې دحق نه ئې انکار کړې دي | درب خپل سره | برابروي |
| تيارې او رڼا ئې پيدا کړې ده | بياهم کافران (خپل بتان) د رب خپل سره برابروي | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| هُوَالَّذِيْ | خَلَقَكُمْ | مِّنْ طِيْنٍ | ثُمَّ قَضٰى | اَجَلًا ط |
| هغه ذات دې | چې ئې پيدا کړئ تاسو | دختې نه | بيائې مقرر کړه | يوه نيټه دمرګ |
| (الله ﷻ) هغه ذات دې چې تاسوئې د ښاورې نه پيدا کړئ | بيا ئې ستاسو دپاره دژوندون يو نيټه مقرر کړه | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاَجَلٌ | مُّسَمًّى | عِنْدَهٗ | ثُمَّ | اَنْتُمْ | تَمْتَرُوْنَ ﴿٢﴾ | وَهُوَاللّٰهُ |
| او يوبله نيټه دقيامت | مقرر ده | دهغه سره | بيا | تاسو | شک کوئ | او هم دغه الله دې |
| اويوه بله نيټه (دقيامت) هم هغه سره مقرر ده | بياهم تاسو شکونه کوئ | هم دغه يو الله ﷻ | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي السَّمٰوٰتِ | وَفِي الْاَرْضِ ط | يَعْلَمُ | سِرَّكُمْ | وَجَهْرَكُمْ |
| په آسمانونو کښې | او په زمکه کښې | هغه پوهيږي | په پټ حال ستاسو | او په ښکاره حال ستاسو |
| په آسمانونو او زمکه کښې دې | هغه ستاسو په ټولو پټو او ښکاره رازونو باندې پوهيږي | | | |

[1]) مجمع الزوائد : ۷/۲۰،
[2]) المعجم الاوسط : ٦٤٤٣، مجمع الزوائد:۷/۲۰
[3]) المعجم الاوسط : ٦٤٤٣، مجمع الزوائد:۷/۲۰
[4]) المعجم الصغير: ۱/۸۱،

| |
|---|
| وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُونَ ۝ |
| اوپوهيږي\| په هغه عملونو\|چي تاسوئې کوئ\| |
| اوستاسو هرقسمه کارونه ورته ښکاره دي \| |

**قوله تعالى:** اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ؕ۬ ثُمَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ یَعْدِلُوْنَ ۝

**دَ الله ﷻ قدرت كامله او انسان:-** الله ﷻ د خپل نفس كريمه تعريف كوى چه هغه آسمانونه او زمكې پيدا كړې لكه چه بنديګانوته حمد ښائى. په ورځ كښې رڼرا او په شپه كښې تياره د خپلو بنديګانود پاره فائده مندګرځوى. دلته دنور لفظ واحد راوړلې شويدې او ظلمات يعنى تيارې جمع راوړلې شوى دى. ځكه چه اشرف څيز هم واحد راوړلې شى. لكه چه د الله ﷻ قول دې ﴿ عَنِ الْیَمِیْنِ وَالشَّمَآىِٕلِ ﴾ او ﴿ وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِیْ مُسْتَقِیْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ۚ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِیْلِهٖ ؕ ﴾دلته هم يمين واحد دى او شمائل جمع دى او خپلې لارې ته ئې سبيل ونيلې واحد ئې راوړې ده او غلطو لاروته ئې سبل ونيلې جمع ئې راوړى دى. سره د دې چه بعض بنديګان كفر كوى اود هغه د پاره شريك او عديل ګرځوى. د هغه ښځه او بچى ګرځوى. الله ﷻ د دې خبرونه منزه دې. بيا فرمائى چه هغه تاسو د خاورو نه پيدا كړنې يعنى ستاسو پلار حضرت آدم ﷺ د خاورې نه جوړ شوې وو او هم خاورې د هغه د غوښې شكل اختيار كړو. بيا هم د هغه نه خلق راپيدا شو او په مشرق او مغرب كښې خواره شو. بيا حضرت آدم ﷺ خپل وخت پوره كړو اوبه خپل مقرر وخت باندې مرګ ته راورسيدو. د رومبى لفظ اجل نه حضرت حسن بصرى ﷺ په نيز د مرګ پورې د ژوندون وخت مراد دې. او د بل لفظ اجل نه د مرګ نه پس د دوباره ژوندى كيدو وخت مراد دې. اجل خاص دانسان روان عمر دې اود اجل عام نه مراد د ټولې دنيا عمر دې. يعنى د دنيا د ختميدو او زوال پذيركيدو پورې او د آخرت د كور د وخت راتلوپورې.

حضرت ابن عباس ﷺ او مجاهد ﷺ وائى چه د رومبى اجل نه مراد ددنيا موده ده او اجل مسمى نه مراد د انسان عمر تر مرګه پورې دې. لكه دا چه د الله ﷻ د دې قول نه ماخوذ دې ﴿ وَهُوَ الَّذِیْ یَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّیْلِ وَیَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ یَبْعَثُكُمْ فِیْهِ لِیُقْضٰۤى اَجَلٌ مُّسَمًّى ۚ ثُمَّ اِلَیْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ یُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ ﴾ يعنى هغه په شپه كښې تاسو مړه كوى او په ورځ كښې چه تاسو څه كوئى په هغې پوهيږى او په شپه كښې تاسو څه كولې نه شئى. يعنى په خوب كښې ئې چه د روح دقبض كيدو شكل كښې دې. او چه بيا رابيدارشئى نو خپلو ملګرو له لكه چه بيا واپس راشئى. او د هغه قول ﴿عنده﴾ معنى دا ده چه دغه وخت سوا د هغه نه بل څوك نه پيژنى. لكه چه يو بل ځائ كښې فرمائيلې دى چه د هغې علم هم الله ﷻ ته دې. هغه وخت د الله ﷻ نه بل څوك نه شى پيژندلې. او هم دغه شان دا د الله ﷻ قول دې چه اې نبى ﷺ تانه د قيامت باره كښې تپوس كوى چه كله به راځى؟ نو تاته د دې څه پته ده. د دې علم خو هم الله ﷻ ته دې.بيا په لاندينى آيت ارشاد دې چه تاسو دقيامت باره كښې شك كوئى، هم هغه د زمكو او آسمانونو مالك ستاسو په پټو خبرو باندې خبردار دې او په ښكاره خبرو هم. او تاسو چه څه كوئى د هغې نه ښه خبر دې. د دې آيت مفسرينو د رومبنى فرقې جهميه د قول نه په انكار باندې اتفاق كريدې. او بيا د دې آيت د تفسير متعلق د هغوى اختلاف هم دې. د جهميه دا قول دې چه دا آيت د دې خبرې حال دې چه الله ﷻ په هرځائ كښې پخپله موجود دې، يعنى په دې عقيده سره دا خبره ښكاره كيږى چه په هرڅيز كښې پخپله الله ﷻ موجود دې. صحيح قول دا دې چه په زمكو او آسمانونوكښې هم الله ﷻمنلې شى او هم د هغه عبادت كولې شى. او په آسمانونو كښې چه كومې فرښتې او زمكه كښې كوم انسانان دى ټول د هغه د الوهيت اقرار كوى. هغه ته الله ﷻ ونيلو سره رابلې خو پيريان او انسانان

کافر د هغه نه نه ویریږي. او هم دا آیت د الله ﷻ په دې قول منطبق کیږي چه هم هغه د اسمانونو الله ﷻ دی او هم هغه د زمکو الله ﷻ دې. مطلب دا چه کوم په آسمانونو کښې دی د هغې الله ﷻ او څه چه په زمکه دی د هغې الله تعالی. دا نه چه کوم په آسمانونو او زمکوکښې دی هم هغه الله ﷻ دې. هم په دې بنا باندې حکم دې چه هغه ستاسو پټ هم پیژني او ښکاره هم پیژني. دونم قول دا دې چه دېنه مراد دا دې چه الله ﷻ هغه ذات دی چه په زمکه او آسمان کښې هره یوه پټه او ښکاره خبره پیژني او د هغه قول ﴿يَعۡلَمُ فِي السَّمٰوٰتِ وَفِي الۡاَرۡضِ﴾ سره متعلق دې. نو د دې تقدیر هم داسې شو چه هم هغه الله ﷻ دې چه په زمکه او آسمان کښې ستاسو هره خبره پیژني او تاسو چه څه کوني د هغې علم لري. او دریم قول دا دې ﴿وَهُوَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوٰتِ﴾ دا وقف تام دی دې نه پس بیا د خبر شروع کیږي یعنی ﴿وَهُوَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوٰتِ﴾ مبتداء ده ﴿وَفِي الۡاَرۡضِ يَعۡلَمُ سِرَّكُمۡ وَجَهۡرَكُمۡ﴾ خبر دې. د ابن جریر رحمة الله علیه هم دغه مسلك دې. بیا په آخرکښې ارشاد دې چه هغه ستاسو ټول اعمالو باندې پوهیږي.

وَمَا تَاۡتِيۡهِمۡ مِّنۡ اٰيَةٍ مِّنۡ اٰيٰتِ

| اونه | راځې دوئ ته | یوه نښه | د نښو |

| دخلقو دا حال دې چې ورته یونښه د

رَبِّهِمۡ اِلَّا كَانُوۡا عَنۡهَا مُعۡرِضِيۡنَ ٤ فَقَدۡ كَذَّبُوۡا

د رب خپل نه| مګر | وی دوئ| دهغې نه |مخ اړونکی | نو په تحقیق سره | دروغ اوګنړل دوئ

خپل رب دطرفنه راشي | نو دوئ دهغې نه مخ اړوي | ......................یقینا دوئ هغه حق کتاب دروغ

بِالۡحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمۡ فَسَوۡفَ يَاۡتِيۡهِمۡ اَنۡۢبٰٓؤُا مَا

حق | کله چې | راغې دوئ ته | نو زربه | راشي دوئ ته| خبرونه | دهغه څيز|

اوګنړلو کوم چې دوئ ته راغلو | نو زرده چې دوئ ته به دهغه څیز باره کښې خبرونه راشي

كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ٥ اَلَمۡ يَرَوۡا كَمۡ اَهۡلَكۡنَا

چې وو دوئ|په هغې پورې|چې توقې به ئې کولې |آیا نهٔ ګوری دوئ| چې څومره| هلاك کړی دی مونږ

چې کوم پورې دوئ توقې کولې | ..................... دوئ نه ګوری چې ددوئ نه

مِنۡ قَبۡلِهِمۡ مِّنۡ قَرۡنٍ مَّكَّنّٰهُمۡ فِي الۡاَرۡضِ

| وړاندې ددوئ نه | داهل د زمانې نه | چې قدرت ورکړې وو مونږ هغوئ ته | په زمکه کښې

وړاندې مونږ څومره ډلې هلاکې کړې دی | چې د هغوئ دور دوران وو | او په مخ د زمکې

مَا لَمۡ نُمَكِّنۡ لَّكُمۡ وَاَرۡسَلۡنَا السَّمَآءَ عَلَيۡهِمۡ

هغه قدرت | چې نهٔ دې درکړې مونږ | تاسو ته | اولیږلې وو مونږه | باران | په هغوئ |

داسې طاقت ورکړې وو| چې تاسوته مونه دې درکړې | او مونږ په هغوئ باندې د پورته نه

مِّدۡرَارًا وَّجَعَلۡنَا الۡاَنۡهٰرَ تَجۡرِيۡ مِنۡ تَحۡتِهِمۡ

پرلپسې په شیبوشیبو |اوروان کړی وو مونږه| نهرونه |چې بهیدل به| لاندې د ونودهغوئ نه |

درحمت بارونه اوورول| اولاندې نه مو ورته ولې بهولې | (خوچې کله نافرمانه شو)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاَهْلَكْنٰهُمْ | بِذُنُوْبِهِمْ | وَاَنْشَاْنَا | مِنْۢ بَعْدِهِمْ | قَرْنًا اٰخَرِيْنَ۝ |
| نو هلاك كړل مونږ هغوی | په سبب د ګناهونو د هغوی | او پیدا كړل مونږ | روستو د هغوی نه | قومونه نور |

نو مونږ هغوی د هغوی د ګناهونو په وجه هلاک کړل او هغوئ نه پس مو نور قومونه پیدا کړل

**قوله تعالی:** وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ۝

**د معاندینو انجام:**- د مشرکانو معاندانو باره کښې الله ﷻ خبرورکوی چه کله د الله ﷻ یو آیات دوی له راشی یعنی څه معجزه یا د الله ﷻ په وحدانیت څه واضح دلیل یا د رسول الله ﷺ د صداقت څه نښه نودا خلق د هغې نه ډډه کوی او د هغې هیڅ پرواه نه کوی. او چه کله حق کله خبره هغوی له راغله نو د هغې نه ئې انکار اوکړو. د دې باره کښې به هغوی ته ډیر زر معلومه شی. دا خبره د هغوی د پاره د تهدید او سخت وعید ده څکه چه هغوی حق دروغ اوګڼړلو. اوس به د تکذیب نتیجه هغوی خامخا وینی. الله ﷻ هغوی پوهه کوی او ویروی چه ړومبنوخلقو هم چه د هغوی نه په طاقت او شمیر کښې زیات وو اوپه مالونواو اولادکښې هم زیات وو. دولت او حکومت هم ورته حاصل وو. بیاهم هغوی ته څنګه سخت عذاب رسیدلې وو. ددې قسم عذاب سره تاسو هم مخ کیدې شئی. آیا هغوی نه دی لیدلی چه الله ﷻ د هغوی نه وړاندې څومره قومونه هلاک کړې دی چه په دنیا کښې ئې ډیر لوئ طاقتونه لرل. هغه شان مالونه، اولاد، عمارتونه، شان اوشوکت تاسو ته حاصل هم نه دې. د آسمان نه به مونږ د هغوی د پاره اوبه راورولې اوهغوی چرته قحط سره نه وو مخ شوی، مونږ باغونه نهرونه او چینې ورکړې وې او په دې سره مقصد هغوی له صرف وخت ورکول وو او بیا د هغوی د ګناهونو او نافرمانو په سبب هلاك كړل او د هغوی په ځائ مو بیا نور قومونه آباد کړل. ړومبنی خلق خو د تلونکې ورخ په شان لاړل او قصې جوړې شوې. خود هغوی نه پس خلقو هم د هغوی په شان عمل اوکړو او په وړاندینوخلقو په شان دوی هم هلاك كړې شو.نو اې خلقو د دې خبرې نه اوویریږئ چه چرته تاسو هم داسې حالا تو سره مخ نه کړې شئ. تاسو سره د الله ﷻ کتل خو څه د هغوی نه زیات اهم کار نه دې. ستاسو رسول د چا چه تاسو تکذیب کوئی نو دې خودهغوی د رسول نه هم زیات د عزت والا دې. څکه چه که الله ﷻ ډیر احسان او مهربانی اونه کړی نو نوتاسو خو د زیات نیولو مستحق ئې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَوْ نَزَّلْنَا | عَلَيْكَ | كِتٰبًا | فِيْ قِرْطَاسٍ | فَلَمَسُوْهُ |
| او كه نازل كړې وې مونږ | په تا باندې | ليكلې كتاب | په كاغذ كښې | او مسه كړې ئې وې هغه |

اوکه مونږ په تاباندې په کاغذ کښې لیکلې شوې (کتاب) راکوز کړې وې انودوی به هغه مسح کړې وې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِاَيْدِيْهِمْ | لَقَالَ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْٓا | اِنْ هٰذَآ |
| په لاسونو خپلو | نو خامخا به ونیلې | هغه كسانو | چې انكار ئې كړې دې د حق نه | چې نه دې دا |

په خپلو لاسونو نو څوک چې حق نه منی انو هغوئ به بیاهم دا ونیلې اچې دا (قران چه تا ورته پیش کړې دې)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِلَّا | سِحْرٌ | مُّبِيْنٌ۝ | وَقَالُوْا | لَوْلَآ اُنْزِلَ | عَلَيْهِ | مَلَكٌ ؕ | وَلَوْ |
| مګر دې | جادو | ښكاره | او وائې دوئ | ولې نازله نه كړې شوه | په ده باندې | فرشته | او كه |

ښکاره باره جادو دې | اودوی دا وائی چه په ده باندې ولې فرشته نه نازلیږی | که مونږ هدو

أَنزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْأَمْرُ ثُمَّ لَا

نازله کړې وې مونږه| فرښته |نوخامخا به فیصله شوې وه| کار | بیا | به نۀ وۀ

فرښته راکوزه کړې وې | نو تړوله قصه به ختمه شوې وه | او بیا به هم ددې هومره

يُنظَرُونَ ۝٨ وَلَوْ جَعَلْنَاهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنَاهُ

ورکړې شوې مهلت ||او که ګرځولې وې مونږ دا پیغمبر |یوه فرښته|نو خامخا به ګرځولې وو مونږ هغه لره

مهلت نه وو ورکړې شوې | او که مونږ هغه و فرښته راکوزولې نو دسړي په شکل به مو راکوزولې

رَجُلًا وَّلَلَبَسْنَا عَلَيْهِم مَّا

په شکل دسړي ||او خامخا به په شك كښې اچولی وو مونږه | دوئ لره | هغسې شك كښې|

......... | ............اودغه شان بیا به هم په شک کښې پاتې شوی وو ادوئ لکه څنګه چې

يَلْبِسُونَ ۝٩ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ

چې اوس پکښې اخته دی دوئ | او خامخا توقې شوې دی | په پیغمبرانو پورې| مخکښې ستا نه |

اوس په شک کښې اخته دی | او (پیغمبره) ستانه مخکښې هم ډیرو پیغمبرانو پورې خندګانې شوی وې

فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا

نو چاپیره شو| دهغه کسانو نه اچې توقې به ئې کولې اپه دوئ پورې | هغه عذاب | چې وۀ دوئ

نو آخر چې کومو خلقو توقې کولې | په هغوئ باندې هغه عذاب واقع شو په کوم پورې چه به هغوی

بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ۝١٠ قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ

چې په هغې پورې به ئې | توقې کولې ||او وایه (دوئ ته) | چې او ګرځئ | په زمکه کښې

توقې کولې | ............................ورته او وایه چې دزمکې په مخ او ګرځئ

ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ۝١١

بیا اوګورئ | چې څنګه | وۀ | انجام د دروغو ګڼړونکو |

او بیا اوګورئ چې چا (پیغمبران) په دروغه ګڼړلی وو | دهغوئ څه حال شو

قوله تعالی:: وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ

**د مشرکانو ذهنیت او دصفادلائلو بیان:**-دمشرکانو د دښمنئ، مکابره او منازعه خبر ورکولو سره الله ﷻ فرمائي چه که مونږ په تاسو هم څه داسې کتاب نازل کړې وې چه په کاغذونولیکلې شوې وې کوم له چه هغوی لاس هم ورلې شو، هغه ئې د آسمان نه راکوزیدونکې لیدلې نو بیا به هم دې کافرانو وئیل چه دا خو ښکاره جادو دې. ځکه چه په محسوساتو کښې دننه هم د دوی د فساد خوښونکی طبیعت تقاضا ده چه که مونږ په دوی باندې د آسمان یوه دروازه هم کولاؤ کړو او په هغې کښې دوی پورته اوخیژی نو هم دا به وائی چه زمونږ سترګې خو ړندې کړې شوی دی او په دې باندې نظر بندی شویده یا لکه چه اوفرمانیلې شو چه که د آسمان ټکړې هم راپریوتونکی اووینی نو وائی به چه د اوریځو

تکړې دی. او بیا د هغوی دا هم وینا ده چه رسول الله ﷺ سره یوه فرښته ولې نه ده لېږېدلې. نو الله ﷻ فرمائی چه که داسې وې نو بیا خو خبره ختمه ده. هغوی به فرښته لیدلو باندې هم هغه د جادو خبره کوی. نو هغوی ته به د هغه وخت په شان په نیغه لار د راتلومهلت نه شی ورکولې، زر به د الله ﷻ عذاب راشی. او فرمائی چه په کومه ورځ هغوی ملائکه هم اووینی نو بیا د مجرمانود پاره هیڅ څه ښه خبرنشته. بیا په پورتنی آیات کښې ارشاد دې چه که مونږ انسان رسول سره فرښته هم نازلولې نو هغه به هم د انسان په شکل کښې هغوی ته په نظر راتله ځکه چه هغه خلقو سره خبرې اوکړیشی یا د هغې نه څه فائده حاصله کړیشی. او چه کله داسې کیدل نو خبره به په هغوی باندې شك منه کیدله، لکه ځنګه چه په بشری رسول کښې شك کوی. د بشری ملائکې باره کښې به هم دغه شك دوی راګیرول ځکه چه هغې به هم د انسان شکل او صورت لرلو. لکه ځنګه چه یوځائ کښې فرمائیلې شوی دی چه دآسمان نه خوبه مونږ فرښتې هغه وخت نازلولې چه کله په زمکه باندې فرښتې ګرځیدې راګرځیدې او چه کله داسې نه دی نود آسمان نه به ولې نازلولې شی. دا خو د الله ﷻ د طرف نه یو رحمت دې چه کله د مخلوق طرف ته یو رسول رالیږی نو هم د هغوی نه ئې رالیږی چه یو بل سره خبرې اوکړې شی اود هغه رسول نه فائده اخستل د هغه خلقو د پاره ممکن شی. لکه ځنګه چه الله ﷻ فرمائیلی دی چه په مؤمنانوباندې د الله ﷻ دا احسان دې چه د هغوی رسول هم د هغوی نه یوسړې دې چه هغوی ته د الله ﷻ آیاتونه پیش کوی او هغوی پاکوی ګنی نو هغوی به فرښتې ته د هغې د نور د وجه نه نظر هم نه وو اوچت کړې نو خبره به بیا هم په هغوی شکمنه وه. او اې نبی ﷺ تانه وړاندې هم نبیانو سره دا قسم ټوقې مسخرې کړیشوې وې. د دغه ټوقو مسخرو په وجه دغه قومونه هلاك شو. د دې آیت په ذریعه نبی اکرم ﷺ ته ډاډګیرنه ورکړې شوه که چرې چا ستاتکذیب اوکړو نو هیڅ پرواه مه کوه. بیا ئې مؤمنانو ته د خپل نصرت او ښه عاقبت وعده ورکړه او په آخره کښې ئې دا هم اوفرمائیل چه په دنیاکښې اوګرځئی او اوګورئی په مخکینو زمانو کښې چه چا د پیغمبرانو تکذیب کړې د هغوی د آبادو ځنګه کنډرې دی او د دنیا د عقوبت هغوی ته ځنګه عذاب ورکړې شو او په آخرت کښې به جدا عذاب ورکولې شی. او بیا رسولان او مؤمنان مونږه ځنګه بچ کړی وو.

| |
|---|
| قُلْ لِّمَنْ مَّا |
| \| اووایه \|چی د چا دی \|هغه څه \| |
| اورته اووایه چې دچا دی هغه څهٔ |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط قُلْ لِّلّٰهِ ط كَتَبَ |
| چی په آسمانونو کښی دی\|اوپه زمکه کښی دی\| اووایه \|چی خاص دالله دی\|لازم کړې دې الله\| |
| چې په آسمانونو کښې دی\|اوپه زمکه کښې دی \| اووایه چې دا هرڅه دالله ﷻ دی\|هغه په |
| عَلٰی نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ط لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰی يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ |
| په ځان خپل \| رحمت \| خامخا به ضرور راجمع کوی تاسو\| ورځ د قیامت ته\| چی نشته شك\| |
| خپل ځان رحم کول لازم کړی دی\| تاسوټول به ضرور دقیامت په ورځ یوځائې کړی\|په دې کښې هیڅ شك |

فِيْهِ ط اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝
په هغې کښې|هغه کسان|چې په تاوان کښې ئې اچولي دي|خانونو خپل |نو هغوی|ایمان نهٔ راوړي په دې
نشته دې|نو چا چې خان په نقصان کښې اچولي دي | هغوی ایمان راوړونکي نه دي ..........

وَلَهٗ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ط وَهُوَ
او خاص هغه لره دي| هغه څه چې اوسیږي| په شپه کښې| اوپه ورځ کښې| او هغهٔ د هر څه
او د شپې په تیاره کښې او د ورځې په رڼره کښې هر څه چې اوسیږي هغه ټول د الله ﷻ مخلوق دي| او هغه

السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝ قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا
اوریدونکي دې|اوبه هر څه پوهه دې | او وایه |چې آیا بغیر دالله نه| اونیسم | بل دوست |
هر څهٔ آوري او په هر څه پوهه دې | ....... ورته او وایه چې آیا زه بغیر د الله ﷻ نه خان د پاره بل دوست اونیسم

فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ط
چې پیدا کونکي|دي د آسمانونو |او د زمکې |او هغه روزي ورکوي|او نهٔ ورکړې کیږي هغه ته روزي
حال دا دې چې هغه زمکه او آسمانونه جوړ کړي دي| او (هر چاته) روزي ورکوي|او (د هیچانه) روزي نه غواړي

قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ
او وایه دوئ ته| چې بیشکه ماته | حکم راکړې شوي دې| چې شم زهٔ | اول | هغه څوک
ورته او وایه چې ماته خودا حکم شوي دې | چه زه د هر چا نه وړاندې اسلام قبول کړم ..........

اَسْلَمَ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ قُلْ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ
چې غاړه ئې اېښې وی|او چې مهٔ کیږه تهٔ | د مشرکانو څخه | او وایه |چې بیشکه| یریږم | که
.....او چې د مشرکانو په ډله کښې شامل نشې | ..........ورته او وایه چې زه د دې خبرې نه یریږم

عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ۝ مَنْ يُّصْرَفْ عَنْهُ
نافرمانی او کړم زهٔ|د رب خپل| د عذاب | د ورځې لوئې نه| هغه څوک| چې واړولې شو|د هغه نه |
که د خپل رب نافرمانی او کړم| د لوئې ورځې د عذاب نه | څوک چې په دغه ورځ د عذاب نه بچ کړې شو

يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ط وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ۝
په دغه ورځ| نو به تحقیق|رحم او کړو الله په هغه | او دا | کامیابی ده | ښکاره |
نو الله ﷻ په هغه لوئې فضل او کړو|.......... او دا لویه کامیابی ده | ..........

**قوله تعالی:** قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط قُلْ لِّلّٰهِ ط كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ط

**هم دَ زمکې او آسمان دَ مالک بندګی کوئ:-** خبر ورکولې شی چه الله تعالی (مالك السموت والارض) دې او هغه په خپل خان باندې رحمت ضروری ګرخولې دې. حضور ﷺ چه کله مخلوق راپیدا کړو نو په لوح

محفوظ کښې اولیکل چه زمارحمت به په غضب باندې غالب وی[1] ارشاد دې چه هغه به یقیناً قیامت په ورځ تاسو ټول راجمع کوی. دلته لام د قسم په توګه دې نولکه چه هغه قسم خوړلې دې چه په مقرره ورځ به هغه خپل ټول بندیګان راجمع کوی. مؤمنانوته خو په هغې کښې هیڅ شك نشته ولې کافران په شك کښې پراته دی. د حضور اکرم ﷺ نه تپوس اوشوچه هلته به چینې هم وی؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه دالله قسم هلته چینې دی. د الله ﷻ نیکان بندیګان انبیاء کرام به په خپلو خپلو حوضونو باندې وی. الله ﷻ به اویازره فرښتې راؤلیږی د چا په لاسونوکښې چه به د اور ډنډې وی او کافران به د انبیاء کرامو د حوضونو نه شړی. [2] دا حدیث غریب دې او په ترمذی کښې دې. حضور ﷺ فرمائیلی چه د هرنبی به یوحوض وی او زما دا امیددې چه زما په حوض به د ټولونه ډیره ګڼره وی. [3] الله ﷻفرمائی چه هغه خلقو کوم چه د آخرت په لحاظ په نقصان کښې دی همدغه دی چه ایمان نه راوړی اود آخرت ورځې نه نه ویریږی نه. بیا ئې اوفرمائیل چه کوم مخلقو په ورځ کښې اوسیږی یا په شپه کښې هغه ټول د هغه د تصرف لاندې دی او د هغه د انتظام لاندی دی. هغه د بندیګانو خبرې اوری اود هغوی حرکتونه اود زړه رازونه پیژنی. بیا د خپل رسول ﷺ په ذریعه توحید عظیم او شرع قویم راولیږله. فرمائی چه خلق نیغې لارې ته راؤبله او ورته اووایه چه آیا په آسمان او زمکه کښې د الله ﷻسوا بل څوك مالك جوړکړم. لکه څنګه چه فرمائیلی اووایه چه اې جاهلانو! آیا تاسو ماته حکم راکونی چه د الله ﷻ سوا د بل چا عبادت اوکړم. مطلب دا چه هغه فاطر السموات والارض دې. بغیر د نمونې نه هغه زمکې او آسمانونوته وجود ورکړو. هغه پریږدم اود نورو عبادت څنګه اوکړم. هغه ټولوته رزق ورکوی او هغه ته څوك هم رزق نه ورکوی سره د دې چه هغه د بندیګانو حاجت مند نه دې چه څه غرض ئې وی لکه چه فرمائی چه پیریان او انسانان ما د خپلې بندګئی د پاره پیداکړی دی. بعضو لایطعم لوستلې یعنی هغه پخپله څه نه خوری. د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه داهل قبا یو انصاری د حضور ﷺ دعوت اوکړو. مونږ ټول هم لاړو چه کله حضور ﷺ دخوراك نه فارغ شو نوونی فرمائیل چه د الله ﷻ شکر دې چه خوراك راکوی او پخپله څه نه خوری. په مونږ باندې احسان کوی خوراك راباندې کوی اوبه راباندې څکوی او زمونږ په بربنډ بدن باندې جامې راواغوستې. مونږ الله ﷻنشو پریخودې او د نعمت کفران نه شو کولې او نه د هغه نه بې پرواه کیدیشو. هغه د ګمراهئی نه بچ کړو او د زړه ړوندوالې نه ئې لرې اوساتلو. په ټولو مخلوقاتو باندې مونږ نه غوره والې راکړو.[4] اووایه اې نبی! چه ماته حکم راکړې شویدې چه د ټولو نه وړاندې مسلمان جوړشم او شرك اونه کړم. که زه د الله ﷻ نافرمانی اوکړم نود هغه لوئې ورځې د عذاب ویره ده. د قیامت په ورځ چه د چا نه عذاب اخوا شو په هغه باندې ډیر رحم اوشو او دا ډیره لویه کامیابی ده. لکه چه اوفرمائیلې شو چه د دوزخ نه لرې اوساتلې شو او جنت ته اولیږلې شو هغه ډیر کامیاب سړې دې.

| وَاِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ اِلَّا هُوَ ۭ وَاِنْ يَّمْسَسْكَ |
| --- |
| او که اورسوی تاته الله \| څه ضرر \| نونشته څوك لرې کونکې \| دهغې \| مګرهم هغه دې \| او که اورسوی تاته |
| او که الله ﷻ درته نقصان اورسوی \| نودهغه نه بغیر هیڅوک نشته چې هغه لرې کړی \| ..........او که څه |

---

[1] صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی﴿ ویحذرکم الله نفسه.....﴾:٧٤٠٤، صحیح مسلم: ٢٧٥١، ترمذی : ٣٥٤٣، ابن ماجه:٤٢٩٥.

[2] ابن مردویه.

[3] ترمذی کتاب صفة القیامة باب ماجاء فی صفة الحوض:٢٤٤٣، ، المعجم الکبیر : ٦٨٨١،

[4] حاکم :٥٤٦/١، النسائی فی الکبری : ١٠٣٣ الانوار للبغوی : ١٠٣٨، وهو حدیث حسن ابن حبان: ٥٢١٩. وهو حسن.

بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٧﴾ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ

ښه خير | نو هغه | په هر څه باندې | قادر دې | او هغه کامل اختيار لرونکې دې | پورته په |

خير درته اورسوي | نو هغه په هر څه قدرت لري | ......... او هغه پخپلو بندګانو باندې کامل

عِبَادِهٖ ؕ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿١٨﴾ قُلْ اَىُّ شَىْءٍ

بندګانو خپلو | او هغه صاحب دحکمت دې | خبردار دې | اووايه دوئ ته | چې کوم څيز |

قدرت لري | او هغه دحکمت خاوند دې | او په هر څه پوهه دې | ......... تپوس اوکړه چې دچا

اَكْبَرُ شَهَادَةً ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ شَهِيْدٌۢ بَيْنِىْ وَبَيْنَكُمْ ۚ

لوئ دې | په لحاظ دګواهۍ سره | ورته اووايه چې الله | ګواه دې | په منځ زما | او په منځ ستاسو کښې

ګواهي د ټولونه لويه ده | ورته اووايه چې الله ﷻ زما او ستاسو مينځ کښې ګواه دې

وَاُوْحِىَ اِلَىَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ

اووحی کړې شوې دې | ماته | دا | قران | دپاره ددې چې زۀ اويروم تاسو | په دې سره |

اودا قران پاک ماته د وحی په ذريعه راغلې دې | چې تاسو نه په دې سره اوويروم

وَمَنْۢ بَلَغَ ؕ اَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ

او هغه څوک | چې ورته اورسي دا قران | ايا بيشکه تاسو | خامخا ګواهي کولې شئ | دا چې بيشکه

او هرچاته چې اورسي هغه ټول (ويروم) | بنه تاسو کښې په رښتيا ګواهي ورکوئ | چې

مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰى ؕ قُلْ لَّآ اَشْهَدُ ۚ قُلْ اِنَّمَا

شته دالله سره | خدايان | نور | اووايه دوئ ته | نۀ کوم زۀ داګواهي | اووايه | خبره داده بله نۀ ده

دالله ﷻ سره نور خدايان هم شته | ورته اووايه چې زه دا ګواهي نشم ورکولې | ورته اووايه چې

هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّاِنَّنِىْ بَرِىْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ﴿١٩﴾

چې هغه | معبود | يو دې | او بيشکه زۀ | بيزاره يم | د هغه څيزونو نه | چې تاسو ئې شريکوئ

الله ﷻ خو بل صرف يو الله دې | او زه ستاسو د شرک کولو نه بالکل بيزاره يم

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا

هغه کسان | چې ورکړې دې مونږ هغوئ ته | کتاب | پيژني هغوئ دا خبره | لکه چې

چاته چې مونږ کتاب ورکړې دې | هغوئ دا (رسول) داسې ښه پيژني لکه څنګه چې

يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ۘ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ

پيژني هغوئ | ځامن خپل | هغه کسان | چې په نقصان کښې اچولي دي هغوئ | ځانونه خپل | نو هغوئ

خپل ځامن ښه پيژني | ......... کومو کسان چه خپل ځانونه په تاوان کښې اوچولی دی انو هغوی

| لَا يُؤْمِنُونَ﴿٢٠﴾ | وَمَنْ | أَظْلَمُ | مِمَّنِ | افْتَرَىٰ | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نه مني دا | اوڅوك دي | ډير ظالم | دهغه چانه | چي وتړي | په الله پوري | دروغ |
| منونكي نه دي | اودهغه چانه لوئي ظالم څوک كيدي شي | چي په الله ﷻ باندي دروغ اوتړي | | | | |

| أَوْ كَذَّبَ | بِآيٰتِهٖ | إِنَّهٗ | لَا يُفْلِحُ | الظّٰلِمُونَ﴿٢١﴾ |
|---|---|---|---|---|
| يا دروغ اوګڼري | ايتونه دهغه | بيشكه شان دا دي | چه نه مومي خلاصي | ظالمان خلق |
| ياد هغه راليږلي شوي نښنو ته دروغ اووائي | داسي ظالمان هيڅري نشي كاميابيدي | | | |

قوله تعالى:: وَإِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ إِلَّا هُوَ

**د نفع او نقصان مالک هم صرف يو الله دي** :- الله ﷻ خبر وركوي چه هغه د نفع او نقصان مالك دي او هغه په خپلو مخلوقاتوكښې چه څنګه غواړي تصرف كوي. د هغه حكمت نه څوك روستوغورزونكي شته او نه د هغه قضا څوك منع كونكې شته. كه هغه څه نقصان منع كړي نو څوك دجاري كولو والا نشته او كه خير جاري كړي نو څوك ئې د بندولو والا نشته. لكه چه فرمائي ﴿ مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۚ وَمَا يُمْسِكْ ۙ فَلَا مُرْسِلَ لَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴿٢﴾ ﴾ يعنى الله ﷻ چه چاله كوم رحمت وركول غواړي څوك ئې نه شي بندولې اود چانه چه ئې بند كړي هغه ته ئې څوك نه شي وركولې. نبى كريم ﷺ به فرمائيل(اللهم لامانع لما اعطيت ولامعطي لما منعت ولاينفع ذاالجد منك الجد) ([1]) هم ددې دپاره الله ﷻ فرمائيلي دي ﴿وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ ۚ﴾ يعنى الله ﷻ هغه ذات دې د چا د پاره چه د خلقو سرونه ټيټ شوي دي. په هر څيز باندې هغه غالب دې او د عظمت كبريائى او قدر اعلى په وړاندې ټول ښكته دي. د هغه په هركار كښې حكمت دې. هغه د څيزونو د مواضع نه خبر دې كه هغه څه وركوي نو حقدار ته ئې وركوي او چه بندوي نو د غير حقدار نه ئې بندوي. بيا فرمائي چه د ټولونه لوئ شهادت د چا شهادت دې. بيا فرمائي چه اووايه چه الله ﷻ ستاسو اود هغوى په مينځ كښې د ګواه په حيثيت دې. اودا قرآن كريم ئې زما طرف ته نازل كړې چه زه تاسو اوويروم او هغوى هم چاته چه دا قرآن وراورسي. لكه چه فرمائي ﴿ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ مِنَ الْاَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهٗ ۚ ﴾ يعنى د دې خلقو نه چه څوك كفر اختيار كړي نو دوزخ د هغوى د وعدې ځائ دې او چا ته چه قرآن وراورسي نو لكه چه هغه نبى كريم ﷺ سره ملاقات اوكړو. حضور ﷺ فرمائيلي دي چه چاته زما قرآن وراورسيدو نولكه چه ما هغه ته پخپله تبليغ اوكړو. حضور ﷺ فرمائيلي چه د الله ﷻ آياتونه نورو ته اورسوئى چاته چه د الله ﷻ د كتاب څه آيات اورسيدو نو د الله ﷻ حكم هغه ته اورسيدو.([2]) ربيع بن انس رحمه الله فرمائي چه د رسول ﷺ په منونكي باندې لازم دى چه هغه شان دې د اسلام دعوت وركوي لكه څنګه چه حضور ﷺ وركولو او داسې دې ويروي لكه چه حضور ﷺ به ويرول.د الله ﷻ ارشاد دې ﴿أَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُونَ أَنَّ مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً أُخْرٰى ۚ قُلْ لَّآ أَشْهَدُ ۚ﴾يعنى اې مشركانو! آياتاسو په رښتيا سره ګواهي وركونې چه الله ﷻ سره بل الله ﷻ هم شته. اووايه چه داسې ګواهي خو زه نه وركوم. لكه چه فرمائيلي شوي دي﴿فَإِنْ شَهِدُوْا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ ۚ﴾ كه چرې هغوى ګواهي وركړي هم نو اې نبى ته داسې ګواهي مه وركوه. ﴿ قُلْ إِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّإِنَّنِيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ﴿١٩﴾ ﴾بيا د اهل كتابو باره كښې فرمائي چه دوى قرآن او نبى اكرم ﷺ داسې پيژني لكه څنګه چه هغوى خپل اولاد پيژني ځكه چه د هغوى په كتابونوكښې د مخكينو پيغمبرانو باره كښې ليكلي دي چه دا ټول پيغمبران د حضرت محمد ﷺ د

---

[1] )صحيح بخارى كتاب الاذان باب الذكر بعد الصلاة : ۸۴۴، صحيح مسلم: ۵۹۳، ابوداود: ۱۵۰۵، احمد: ۲۵۰/۴.

[2] )تفسير عبدالرزاق: ۱۹۸/۱

وجه په وجود کښې راغلی دی. هغوی د حضرت محمد ﷺ نه په هرصفت کښې، د هغه د وطن، د هغه د هجرت، د هغه د امت د اوصافو، لنډه دا چه په خپلو کتابونو کښې دا ټولې خبرې بیا مومی. په دې وجه فرمانی ﴿اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ یعنی چه کومو خلقو خپلو خانونو ته نقصان رسولی دې همدغه خلق دی چه ایمان نه راوړی سره د یدې چه خبره واضحه ده. انبیاء کرامو د حضور ﷺ بشارتونه ورکړی دی اود پخوانی زمانی نه د هغوی ﷺ پیغمبری اودهغوی ﷺ د وجود پیشن ګونی ورکونکی راروان دی. ﴿وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ﴾ یعنی د هغه سړی نه لوئ ظالم څوك نشته چه په الله ﷻ باندې د دروغو تهمت اولګوی چه الله ﷻ هغه پیغمبرجوړکړې رالیږلې دې او بیا د هغه نه لوئ ظالم بل څوك دې چه د الله ﷻ آیاتونه، دلیلونه دروغ اوګڼړی. ﴿اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ﴾ دا مفتری او دروغژن به هیڅ کله خلاصې نه بیاهومی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَيَوْمَ | نَحْشُرُهُمْ | جَمِيْعًا | ثُمَّ | نَقُوْلُ | لِلَّذِيْنَ |
| اوهغه ورځ | چې به راجمع کړومونږدوئ | ټول | بیا به | اووایومونږه | هغه کسانوته |

اوپه کومه ورځ چې مونږ دوئ ټول راجمع کړو ..................بیا به مونږ د هغه کسانو نه تپوس اوکړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَشْرَكُوْٓا | اَيْنَ | شُرَكَآؤُكُمُ | الَّذِيْنَ | كُنْتُمْ |
| چې شرك ئې اختیارکړې دې | کوم ځائې دی | شریکان ستاسو | هغه | چې وئ تاسو |

چې مشرکان دی | چې ستاسو هغه جوړ کړی شریکان څه شول | چې تاسو د خپلو خانونو دپاره

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَزْعُمُوْنَ ﴿٢٢﴾ | ثُمَّ | لَمْ تَكُنْ | فِتْنَتُهُمْ | اِلَّآ اَنْ | قَالُوْا | وَاللّٰهِ |
| چې ګنړل به مو | بیا | به نه وی | عذر فتنه ددوئ | مګر دا | چې اووائی | قسم په الله |

خدایان ګرځولی وو | هغه وخت کښې به دوئ هیڅ فتنه نشی اوچتولې | خودومره به وائی چې زمونږ په الله قسم وی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَبِّنَا | مَا كُنَّا | مُشْرِكِيْنَ ﴿٢٣﴾ | اُنْظُرْ | كَيْفَ | كَذَبُوْا | عَلٰٓى |
| چې رب زمونږه دې | نه وو مونږه | مشرکان | اوګوره | څنګه ئې | دروغ اوونیل | په |

چې زمونږ رب دې | چه مونږ خو هیچرې شرک نه دې کړې | اوګوره څومره لوئې دروغ په خپلو خانونو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْفُسِهِمْ | وَضَلَّ | عَنْهُمْ | مَّا | كَانُوْا | يَفْتَرُوْنَ ﴿٢٤﴾ |
| خانونو خپلو باندې | اوورك شو | دهغوئ نه | هغه خدایان | چې وو دوئ | چې جوړول به ئې دخانه |

باندې وائی | ..............اودهغوئ ټول معبودان به ترې بیخی ورک شی.............

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمِنْهُمْ | مَّنْ | يَّسْتَمِعُ | اِلَيْكَ | وَجَعَلْنَا | عَلٰى |
| اوبعضې ددوئ نه | هغه څوك دی | چې غوږنیسی | تاته | اواچولی دی مونږ | په |

اوپه دوئ کښې بعضې داسې دی چې ستا خبرو ته غوږ اوږدی|................او مونږ دهغوئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلُوْبِهِمْ | اَكِنَّةً | اَنْ يَّفْقَهُوْهُ | وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ | وَقْرًا |
| زړونو ددوئ باندې | پردې | چې پوهه (نه) شی په دې | اوپه غوږونو ددوئ کښې | درونوالې دې |

په زړونو پردې لګولی دی | چې په هیڅ نه پوهیږی | اوپه غوږونو کښې ئې کوڼوالې دې

وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا ۚ حَتَّىٰ إِذَا

اوکه اووینی دوی| هرڅومره نښې| خوایمان نه راوړی| په هغې | تردې پورې | چې کله

اوکه دوی هرقسم نښې اووینی | خودوی په هغې ایمان نه راوړی | ..........تر دې چې کله

جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا

راشي دوی تاته| جګړه کوی تاسره | وائی | هغه کسان | چې کافران شوی دی | چې نه دی دا

راشي اوجګړې درسره کوی| نوځوک چې کافران دی هغوی (دهرڅه اوریدونه پس) دا وائی

إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٢٥﴾ وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ

مګر | قیصې دی | دپخوانو خلقو | اوهغوی | منع کوی خلق | ددې حق قبلولو نه |

چې داخو بس د پخوانو خلقو قصې دی | اوهغوی نور خلق هم د دې (حق دین) قبلولو نه منع کوی

وَيَنْأَوْنَ عَنْهُ ۖ وَإِنْ يُهْلِكُونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ

او په پخپله هم لرې کیږی | دهغې نه | اونه هلاکوی دوی | مګر | ځانونه خپل |

او پخپله همددې نه لرې ګرځی | اوپه دې طریقه دوی صرف خپل ځانونه هلاکوی (بل چاته نقصان نه رسوی)

وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٦﴾

اونه پوهیږی دوی |

اوپه دې نه پوهیږی |

قوله تعالی:: وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنْتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿﴾

**د قیامت په ورځ د مشرکانو اودهغوئ د شریکانو حال** :- مونږ چه کله د قیامت په ورځ هغه ټول راجمع کړو نود هغه بتانو باره کښې به دهغوی نه تپوس کووچه الله ﷻ نې پریښې وواوددوی عبادت نې کولو چه هغه ستاسو بتان چرته لاړل کوم چه تاسو د الله ﷻ شریك ګرځول. د الله ﷻ قول دې ﴿ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ فِتْنَتُهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوا وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿﴾ ﴾ یعنی د هغوی معذرت او احتجاج به هم دغه وی چه د الله ﷻ قسم مونږ خو مشرکان نه وو. د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه هغوی له یو سړې راغلو او وئې وئیل اې ابن عباس رضی الله عنه! تا واوریده چه الله ﷻ فرمانی ﴿ وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿﴾ ﴾ خو دا به څنګه وی؟ نو ابن عباس رضی الله عنه اوفرمانیل چه کله مشرکان اووینی چه د مونځ ګذارو نه علاوه بل هیڅ څوك جنت ته نه داخلیږی نو په خپل مینځ کښې به وائی راځئی چه مونږ د شرك نه انکار اوکړو. هغوی به د خپل مشرك کیدو نه انکاراوکړی نو الله ﷻ به د هغوی په ژبو باندې مهر اولګوی نو بیا به د هغوی پښې لاسونه پخپله ګواهی ورکوی او هیڅ خبره به نه شی پټولې. نو اې سړیه! اوس خو ستا په زړه کښې څه شك پاتې نه شو.په قرآن کښې یوه داسې خبره باقی نه ده پاتې چه وضاحت غواړی خو ته نه شې پوهیدلې او تاویل اوتوجیه نه شې کولې.

حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوفرمانیل چه دا آیت د منافقانوباره کښې نازل شوې خو دلته ته دا شك پیدا کیږی چه دا آیت خو په مکه کښې نازل شوې او مکه کښې منافقان چرته وو. نو دا د اسلام مقبول کیدلو او عام کیدلو نه پس مدینه کښې د هغوی یوه ډله پیدا شوه. د منافقانوباره کښې چه کوم آیت

نازل شوې هغه آیت مجادله دې یعنی ﴿يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ﴾ چه په کومه ورځ الله ﷻ هغوی په قیامت کښې راجمع کړی نو هغوی به د الله ﷻ قسم خوری او وائی به. نو همدغه شان د هغه خلقو باره کښې اوفرمائیل چه ﴿اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ﴾ گورئی چه هغوی سره د پوهې څنګه دروغ خبره اوکړه او چه د کومو بتانو هغوی عبادت کولو هغوی څنګه د هغې نه واوړیدل. د دې نه پس ارشاد دې چه دوی کښې بعضې ستا طرف ته غوږ ایږدی اوری خو مونږ د هغوی په زړونو پردې اچولی دی چه هغوی پوهه نه شی او د هغوی په غوږونو کښې مو کوڼتوب پیدا کړې او که هغوی د الله ﷻ کومه نشانی هم اووینی ایمان نه راوړی. هغوی د وحی اوریدو د پاره راځی خو دا اوریدل هغوی له هیڅ فائده نه ورکوی لکه څنګه چه الله ﷻ په یوبل مقام باندې فرمائیلی دی د دوی مثال د هغه څاروو دې چه د خپل ځرونکی آواز اوری خو په مطلب نې خاوری نه پوهیږی. بیا په مذکوره آیت کښې فرمائی چه آیاتونه دلیلونه او واضحه نښې هغوی ګوری لیکن د هغوی نه عقل شته او نه د انصاف نه کاراخلی نو بیا به څه ایمان راوړی. که په هغوی کښې لږ هم د ښیګړې صلاحیت وې نو الله ﷻ به هغوی له د اوریدو توفیق ورکولواوچه کله هغوی ستاخواله راشی نو حجتونه کوی او باطلې خبرو پیش کولو سره د حق په مینځ کښې بحث مباحثه شروع کوی او وائی چه کوم څه ته د وحی په نوم پیش کوې دا خو د مخکینو خلقو د کتابونو نه نقل دی. هغوی د نبی اکرم ﷺ نه خلق بندوی او پخپله هم د هغوی ﷺ نه لرې اوسیږی. د ﴿يَنْهَوْنَ﴾ په تفسیر کښې دوه قوله دی. یو خو دا چه د حق منل او د رسول تصدیق او د قرآن د انقیاد نه خلق منع کوی او پخپله هم د هغې نه لرې اوسږی. لکه دوه خراب کارونه کوی چه پخپله هم فائده نه اوچتوی او نور هم فائدې اوچتولو ته نه پریږدی. نو ابوطالب به هغوی بندول نو هم د هغوی متعلق دا آیت نازل شو. سعیدبن ابی هلال وائي چه دحضور ﷺ لس ترونه وو. په ښکاره د هغوی ﷺ ډیرهمدرد خوپه باطن کښې د هغوی ﷺ سخت خلاف وو. دې ټولو به د نبی کریم ﷺ د قتل نه خلق منع کول خو افسوس چه د ایمان دبرکت حاصلولو نه به پخپله محروم پاتې کیدل. ارشاد دې چه هغوی به په ناپوهئ کښې هم خپل ځانونه هلاك کول غوښتل اوهغوی په دې خبره هډو پوهیدل نه چه هم خپل ذات ته نقصان اوضرر رسوی.

وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ

او کاش چې اووینې ته | څه وخت چې | ودرولې شي دوئ | په اور باندې |

| او که چرې تاد دوئ هغه حالت اولیدو چې د دوزخ په غاړه به اودرولې شي

فَقَالُوْا يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ

نو اوبه وائي دوئ | اې کاش که مونږه | بوتلې شوې واپس | او دروغ او نه ګڼړلې مونږه | نښې

نو وائی به چې انې کاش داسې لاز جوړه شی چې مونږ دنیا ته واپس کړې شو | نو د خپل رب

رَبِّنَا وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ بَلْ بَدَا لَهُمْ مَّا

د رب خپل | او شوې مونږه | د مومنانو نه | بلکه | ښکاره به شی | دوئ ته | هغه حقیقت

نښوته به دروغ نه وایو | او صحیح مومنان به شو | په حقیقت کښې (هغوئ دا خبره څکه کوی چې)

كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ ۖ وَلَوْ رُدُّوْا

چې وو دوئ | چې پټولو به نې | مخکښې ددې نه | او که | واپس بوتلې شي دوئ دنیا ته |

هغوئ کوم څیز پټولو هغه ورته ښکاره شو | او که چرې دوی دنیا ته واپس کړې شي

لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ

نو خامخا به بیادوباره کوی | هغه کارونه | چی منع کړې شوي ووڅوی | دهغې نه |

نوبیابه هم هغه کارونه کوی | چې دکومو د کولو نه منع شوی وو ..........................

وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۲۸﴾ وَقَالُوْٓا اِنْ هِیَ اِلَّا حَيَاتُنَا

اوبیشکه چی دوئ | خامخادروغژن دی | اووائی | چه نهٔ دې ژوند | مګر | ژوندزمونږ |

اودوی باخه دروغژن دی | .........اودوئ وائی چې بل ژوند نشته | ............بس صرف دغه

الدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ﴿۲۹﴾ وَلَوْ تَرٰٓی اِذْ

ددنیادې | اونهٔ یومونږ | دوباره ژوندی کیدونکی | اوکاش | چې اووینې تهٔ | څه وخت چې |

ددنیا ژوند دې | اومونږ بهٔ دوباره (دقیامت په ورځ) نه پیدا کیږو | اوکه چرې ددوئ حالت اووینې کله چې

وُقِفُوْا عَلٰی رَبِّهِمْ ؕ قَالَ اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا

ودرولې شی دوئ | رب خپل ته | اوبه وائی الله | آیانهٔ دې | دا | په حقه سره | اوبه وائی دوئ

به دخپل رب مخامخ اودرولې شی | نو هغه به ترې تپوس کوی | چې ولې دا ژوندون حق نه دې | نودوئ به وائی

بَلٰی وَرَبِّنَا ؕ قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ

هوحق دې | قسم دې په رب خپل | اوبه وائی الله | نو اوڅکئ | عذاب | په سبب دهغې | چی وئ تاسو

ولې نه دې | بلکه زمونږ دې په رب قسم چه دا ژوند حق دې | نو الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې ښه نواوس د

تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۰﴾ ع

چی انکاربه موکولو |

خپل کفر په سبب عذاب اوڅکئ |

قوله تعالیٰ: وَلَوْ تَرٰٓی اِذْ وُقِفُوْا عَلَی النَّارِ فَقَالُوْا يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ رَبِّنَا

**کافران به د قیامت په ورځ څه وائی:-** الله ﷻ د کفاروحال بیانوی چه کله د قیامت په ورځ هغوی د أور په وړاندې اودرولې شی اود هغې طوقونه او زنځیرونه اووینې نو وائی به چه افسوس چه مونږ بیا دنیا ته واپس کړې شو نودا ځل به مونږ نیك عمل کوو او د رب آیاتونه به دروغ نه ګڼړو او ایمان به راوړو. الله ﷻ فرمائ چه نه بلکه دا خبره چه د کفر تکذیب او دښمنئ کومې خبرې هغوی په خپلوزړونوکښې پټې ساتلې وې هغه اوس ښکاره شوې. سره د دې چه په دنیاکښې یا په آخرت کښې هغوی د دې انکار کړې وی لکه څنګه چه اوس اوس الله ﷻ اوفرمائیل چه د دوی حجت صرف دا دې چه مونږ مشرکان نه وو. ګوره هغوی څومره دروغ خبرې جوړې کړې او دا هم احتمال دې چه اوس په دوی باندې دا ظاهره شوه چه په دنیا کښې د رسول ﷺ صداقت پیژندلوسره چه به هغوی ایمان نه راوړلو هم هغه وخت به دغه اعتراض کونکی بحث کښې دی یعنی سره د پوهې ایمان نه راوړل. دا څیز دلته راغلو ښکاره شو. په دنیاکښې دا راز نه وو ښکاره شوې. لکه څنګه چه موسی ؑ فرعون ته فرمائیلی وو چه اې فرعونه ته په ښه شان سره پوهیږې چه دا هم الله ﷻ نازل کړې دې. او الله ﷻ هم فرعون اود هغه د قوم متعلق اووفرمائیل چه هغوی خو په کولو سره انکار اوکړو ولې د هغوی په زړه کښې دا یقین وو چه دا زمونږ

د طرفنه ظلم او زیاتي دي. او دا هم احتمال شته چه دي نه مراد هغه منافقان وی چه د خلقو په وړاندې به ئې ایمان راوړلې وو لیکن په پټه به کافر وو. دا د کافرانو د هغه خبرې خبر ورکولې شي چه هغوی به ئې دقیامت په ورځ کوی. پدې کښې هیڅ شك نشته چه داسورت مکی دې اومنافقت دمدینې والاخلقو کښې ووياددې داطرافوپه بانډچیانوکښې نو بیا په مکی سورت کښې منافقان څنګه ذکر کیدې شي. څکه چه الله ﷻ په مکی سورت کښې هم د نفاق د واقع کیدو ذکر کړې دې اوهغه سورت عنکبوت دې فرمائي ﴿وَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنَافِقِينَ﴾ یعنی الله ﷻ د ایمان والا هم پیژني او منافقان هم. په دې بنا باندې اوونیلې شو چه منافقان کله د آخرت په کورکښې عذاب اووینې نو کفر او نفاق پټولو پس به په دوی دا خبره ښکاره شي چه زمونږ ایمان ظاهری ایمان وو. نو چه دا اوفرمائیلې شو چه پټولوبه ئې اواوس ښکاره شو نود دې مطلب دا دې چه هغوی دا کوم د دنیا طرف ته واپسی غواړې هغوی د ایمان سره د مینې او محبت په بنا باندې نه بلکه دعذاب اوقیامت ورځ په لیدوباندې چه د هغې نه اوویریدل چه اوس خو به دخپل کفر سزا ملاویږي. په دې وجه د دوزخ نه وقتی توګه باندې بچ کیدلو پاره د دنیا طرف ته واپسی غواړي. اوکه هغوی بیا دنیا ته هم واپس کړې شي نو بیا به هم کفر کوی او د هغوی دا وینا چه دا خل به تکذیب نه کوو او ایماندار به اوسیږو ټول غلط دی. هغوی خو وائي چه دا کوم ژوندون دې بس هم دغه ژوند دې، څوك به بیا راوچتولې شي. افسوس چه تاسو کتلې شوې چه هغوی د خپل رب په وړاندې څنګه نااميده ولاړ دی. الله ﷻ فرمائي چه دا د قیامت ورځ حق ده که نه؟ هغوی به وائي چه اې الله او ستا قسم ربښتوني دي. حکم به اوشي چه بیاخو د خپل کفر مزه اوڅکئ. آیا دا جادو دې که ستاسو د لیدلو طاقت نه وو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَدْ خَسِرَ | الَّذِينَ | كَذَّبُوا | بِلِقَاءِ اللَّهِ ط |
| یقینا په نقصان کښې پریوتل | هغه کسان | چې دروغ ئې اوګڼړلو | ملاقات دالله سره |
| بیشکه هغه خلق نقصان کښې دی چې خپل سره ملاقات ته دروغ وائي | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَتَّىٰ | إِذَا جَاءَتْهُمُ | السَّاعَةُ | بَغْتَةً | قَالُوا | يَا حَسْرَتَنَا |
| تردې پورې | کله چې راشي دوی ته | قیامت | ناساپه | نو اوبه وائي دوی | اې افسوس دې په مونږ باندې |
| کله چې به هغه وخت ناځاپه راشي | نو داخلق به اووائي چې ائې افسوس دې په مونږ باندې | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَىٰ مَا | فَرَّطْنَا | فِيهَا لا | وَهُمْ | يَحْمِلُونَ | أَوْزَارَهُمْ |
| په هغه څه | چې کمې کړې دې مونږه | په هغې کښې | حال دا چې دوی | به بار کړي وی | اپیتی دګناهونو خپلو |
| چه مونږ په دې معامله کښې څومره کوتاهی کړې ده | اودخپلو ګناهونوبار به ئې په خپلو شاګانو باندې بار کړې وي | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَىٰ ظُهُورِهِمْ ط | أَلَا | سَاءَ | مَا | يَزِرُونَ ۝ | وَمَا الْحَيَاةُ |
| په شاګانوخپلو باندې | خبردار اوګورئ | څومره بددی | هغه پیټی | چې دوی ئې بار کوی | اونه دې ژوندې |
| خبردار ډیر خراب بار ئې راخستې دې | ......... او ژوند ددې | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الدُّنْيَا | إِلَّا | لَعِبٌ | وَلَهْوٌ ط | وَلَلدَّارُ | الْآخِرَةُ | خَيْرٌ | لِلَّذِينَ |
| ددنیا | مګر | لوبې دی | اوتماشه ده | اوخامخاخانې داستوګنې | دآخرت | بهتردي | دپاره دهغه خلقو |
| دنیا هیڅ نه دې صرف یوه لوبه اوتماشه ده | اود آخرت ژوند د پرهیزګارانو خلقو دپاره | | | | | | |

| يَتَّقُوْنَ ؕ | اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝ |
|---|---|
| چی بچ کیدل غواړی دنقصان نه | نو تاسودعقل نه کارنه اخلئ |
| دپاره ډیر ښه دي | آیاتاسو دعقل نه کار نه اخلئ |

**قوله تعالي:** قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ ؕ

**دَ قیامت دَ منکرانو انجام:-** د الله ﷻ دمنکرانو اود هغوی د نامرادئی او مایوسئی ذکر کیږی چه کله ناڅاپی قیامت راشی نو په خپلو خرابواعمالو به د هغوی څنګه پښیمانتیا وی او وائی چه افسوس او ارمان چه مونږ دحق خلاف کوم زیاتی کړی وو د﴿فِيْهَا﴾ ضمیر محتمل دې چه د دنیا ژوندون او خپلو اعمالوطرفته واپسی وی او په خپلو شاګانو به ئې د خپلو ګناهونو بوج اوچت کړې وی تعجب دې چه دوی دا څومره خراب بوج اوچت کړیدې. قتاده رحمه الله ﴿يَزِرُوْنَ﴾ به ﴿يَعْمَلُوْنَ﴾ لوستلو. د ابومرزوق نه روایت دې چه کله کافران یا فاسقان د قبر نه اوچتیږی نو یو ډیر خراب شکل والا صورت به د هغه استقبال کوی. د هغه نه به ډیر خراب بوئی راځی. هغه کافر سړې به تپوس کوی چه ته څوك ئې؟ هغه صورت به ورته وائی چه ته ما نه پیژنې زه ستا د هغه خراب عمل شکل او صورت یم کوم چه به تا په دنیا کښې کولو. په دنیاکښې ډیرو ورځو پورې ته په ما سور وې اوس به زه په تا سور یم.ارشاد مبارك دې ﴿ وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ ؕ ﴾د سدی رحمه الله نه روایت دې چه کله یو ګناهګار قبرته داخلولې شی نود هغه مخې ته یو ډیر خراب شکل راوړاندې شی، تك تور رنګك، خراب بوئی خیرنې کپړې او هغه سره په قبر کښې اوسیږی نو هغه ورته ګوری او وائی چه ستا دا مخ څومره خراب دې نو هغه بدشکل به ورته وائی چه زه ستا دَ بد عمل عکس یم. هم داسې وو ستا عملونه او هم داسې بدبودار وو ستا ټول کارونه. هغه به وائې چه ته څوك ئې؟ نو ونیلې به شی زه ستا عمل یم. بیا به دَ قیامت پورې هغه ده سره په قبر کښې اوسیږی. په قیامت کښې به هغه ده ته وائی چه د خوندونو او شهوتونو په شکل کښې ته ما په دنیا کښې اوچت کړې وې په نن ورځ به ته ما اوچتوې. نو د هغه د بدو عملونو مجسمه به د هغه په شا سوره شی او هغه به د دوزخ طرف ته بوځی.[1] هم دا دَ دې آیت وضاحت دې. ارشاد دې چه د دنیا اکثر ژوند لوبې ټوقې دی او د پرهیزګارانود پاره خو صرف د آخرت کور دې.

| قَدْ نَعْلَمُ | اِنَّهٗ |
|---|---|
| یقینا معلومه ده مونږ ته | بیشکه شان دادي |
| انې پیغمبره مونږ ته ښه معلومه ده | چې بیشکه ددوی |

| لَيَحْزُنُكَ | الَّذِيْ | يَقُوْلُوْنَ | فَاِنَّهُمْ | لَا يُكَذِّبُوْنَكَ | وَلٰكِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| چی خامخا خفه کوی تا | هغه خبری | چی وائی ئې دوی | نو بیشکه دوی | نه دروغژن کوی تا | اوخولیکن |
| په خبرو ته غمژن کیږي | | خودوی تا ته دروغژن نه نه وائی | | | ......بلکه |

| الظّٰلِمِيْنَ | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | يَجْحَدُوْنَ ۝ | وَلَقَدْ | كُذِّبَتْ | رُسُلٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| داظالمان | د آیتونودالله نه | انکارکوی | اوبه تحقیق سره | دروغژن بللي شوی دی | پیغمبران |
| ظالمان دالله ﷻ دآیتونونه انکار کوی | | | اوستانه مخکښې ډیرپیغمبران دروغژن ګڼړلي شوی وو | | |

[1] الطبری: ۳۲۸/۱۱

مِّنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوْا عَلٰى مَا كُذِّبُوْا وَاُوْذُوْا

ورانديې ستانه|نوصبراوکړوهغوئ |په هغې|چې دروغ گنړلي شوي ووهغوئ | اوتکليف رسولي شوې ووهغوئ ته

خو په دروغژن کولو او په تکليف ورکولو باندې هغوئ صبر اوکړو |

حَتّٰٓى اَتٰىهُمْ نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ وَلَقَدْ

ترهغې پورې |چې راغې هغوئ ته |مدد زمونږه|اونشته هيڅوك بدلونكې | خبرو دالله لره| اوپه تحقيق سره

تردې چې زمونږ مددورته اورسيدو| اودالله ﷻ خبرې هيڅوک بدلولې نشي | ...............او د

جَآءَكَ مِنْ نَّبَاِى الْمُرْسَلِيْنَ ۝ وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ

راغلې دی تاته| دخبرونو | دپيغمبرانو نه | اوكه وی | گران | په تاباندې|

پخوانو پيغمبرانو بعضې حالات تاته رارسيدلي دی| اوکه داخبره په تاگرانه وی | چې

اِعْرَاضُهُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْاَرْضِ

مخ اړول ددوئ | نوكه | وس رسی ستا | چې اولټوې ته| يو سرنگ | په زمكه كښې|

ددې خبرو بې رخې برداشت کړې | نو كه وس دې كيږی نو په زمكه كښې يوسرنگ اولټوه

اَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَآءِ فَتَاْتِيَهُمْ بِاٰيَةٍ ۭ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ

يااندړپايه | په اسمانونو كښې | نوتۀ راوړه دوئ ته |يوه نښه | اوكه غوښتلې الله

يااسمان ته يوپوړئ اولگوه| او دوئ ته ديوې نښې راوړلو كوشش اوكړه | اوكه الله ﷻ غوښتل

لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ۝

نو خامخا به ئې جمع کړی وې دوئ|په هدايت باندې | نومۀ كيږه تۀ | د ناپوهانو نه |

نوټول به ئې په هدايت يوځائې کړی ووا........... نودناپوهه خلقو په شان مه كيږه

اِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ ؔ وَالْمَوْتٰى يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ

بيشكه| قبلوی بلنه دحق | هغه كسان| چې اوری | اومړی چې دی| راپورته به کړی هغوئ لره الله

هغه څوك حق قبلوی چې هغې ته غوږ نيسی| (اوپاتې شو)مړی نوهغوئ خوبه الله دقبرونونه راپورته کړی

ثُمَّ اِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ۝

بيا |خاص هغه ته | به واپس وروستې شئ |

بيا به هغه ته واپس پيش کړې شی |

قوله تعالٰی: وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ اِعْرَاضُهُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْاَرْضِ اَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَآءِ

**د حضور ﷺ حرص چه څوک دوزخ ته لاړنه شی:-** د قوم په تکذيب او مخالفت باندې الله ﷻ خپل حبيب پاك ﷺ ته تسلي ورکوی چه مونږ ته دهغوی دتکذيب اوستا دغمژن کيدوعلم دې لکه چه يو ځائ کښې ارشاددې مونږته دهغوی حرکت ښه معلوم دې ته غم مه کوه.اواوفرمائيلې شوچه که دوی ايمان رانوړی نوته ددوی په غم کښې خپل ځان ويلې کړې اوترکومې به په دوی باندې ارمان اوافسوس کوې؟

**دمکې د کفارو قلبي شهادت:-** بيا ارشاد کيږي چه هغوی په حقيقت کښې تا په کذب سره نه متهم کوی بلکه د حق سره د دښمنئ په وجه د الله ﷻ د آياتونوانکار کوی. هم د دې متعلق د حضرت علي ﷺ نه روايت دې چه ابوجهل نبي کريم ﷺ ته اووئيل چه مونږ خو تادروغ نه ګڼړوبلکه چه ته کوم دين وړاندې کوې هغه دروغ ګڼړو نو الله ﷻ دا آيت نازل کړو([1]).

د ابويزيدمدني رحمه الله نه روايت دې چه د نبي اکرم ﷺ او ابوجهل ملاقات اوشو. ابوجهل مصافحه اوکړه نو د هغه يوملګري اووئيل چه ته دې سړی سره مصافحه کوې؟ نو ابوجهل اووئيل د الله ﷻ قسم چه دا يقيناً نبي دې خو آيا مونږ تر اوسه پورې د عبدمناف نه ويريدلې يو؟

د ابوجهل د قصې باره کښې ونيلې شوی دی چه هغه د شپې په پټه د حضور ﷺ د قراءت اوريدو د پاره راغلو، دغه شان ابوسفيان بن صخر او اخنس بن شريق هم اود يو بل نه خبر نه وو ترسحر پورې درېواړو په پټه د حضور ﷺ نه قرآن اوريدلو. چه د ورځې رڼړا شوه نو درېواړه په واپسئ کښې په يوځائ کښې ملاؤ شو. هر يو بل ته اووئيل چه ته څنګه راغلې وې. اوس تولو فيصله اوکړه چه مونږ له د قرآن اوريدو د پاره نه دی راتلل پکار. هسې نه چه زمونږ په ليدو د قريشو ځوانان هم راشي او په ازميښت کښې پريوځي. چه کله بله شپه راغله نو هر يو دا ګمان اوکړو چه هغه دواړه به نه وی راغلي څه چه قرآن واوړو. لنډه دا چه سحر بيا د درېواړو په يوځائ ملاقات اوشو او د معاهدې په خلاف کولو سره هر يو بل ملامته کولو نو بيا ئې معاهده اوکړه چه دا څل به نه راځو. خو چه کله دريمه شپه شوه نو درېواړه بيا د حضرت ﷺ مجلس ته راغله نو بيا ئې سحر معاهده اوکړه چه بيا خو به هيڅ کله نه راځو. اوس اخنس بن شريق ابوسفيان له راغلو او وئې وئيل اې ابو حنظله! ستا څه خيال دې چه تا د حضرت محمد ﷺ نه کوم قرآن واوريدو د هغې باره کښې څه وائې؟ابوسفيان اووئيل اې ابوثعلبه! د الله ﷻ قسم ما چه کومې خبرې واوريدې هغه ښه پيژنم اودهغې چه کوم مطلب دې هغه هم پيژنم ليکن بعضې خبرې مې داسې اوريدلې دی چه د هغې مقصد او معنی باندې نه پوهيږم. نو اخنس اووئيل د الله ﷻقسم دغه حال زما هم دې. بيا اخنس د هغه ځائ نه لاړو او ابوجهل له ورغلو او وئې وئيل اې ابوالحکم! د محمد ﷺ نه چه دې څه اوريدلی دی ستا د هغې باره کښې څه رائې ده او څه دې اوريدلی دی؟ نو ابوجهل اووئيل چه مونږ او بنوعبدمناف د عزت مقام حاصلولوکښې هميشه په جنګ يو، هغوی دعوتونه اوکړل نو مونږ هم اوکړل. هغوی خير او سخاوت اوکړو نو مونږ هم اوکړو. تردې چه مونږ خو پښې يوځائ کړې ناست يو او وئې وئيل چه مونږ سره دالله ﷻ يوپيغمبردې په هغه د آسمان نه وحی نازليږی.نواوس مونږ دا خبره دکوم ځائ نه راوړو.د الله ﷻ قسم چه مونږ به په هغه ايمان نه راوړو اود هغه د پيغمبرئ تصديق به نه کوو او په خپل ځان به د هغه وړانديوالې نه منو. اخنس دې خبرې اوريدو سره لاړو.([2])

اود دې آيت باره کښې چه هغوی تا دروغ نه ګڼړی د الله ﷻ آياتونه دروغ ګڼړی سدی رحمه الله وائی چه د بدر په ورځ اخنس بن شريق بنی زهره ته اووئيل چه حضرت محمد ﷺ ستا خورينې دې ته د دې خبرې زيات حقدار ئې چه د خپل خورينې د طرف نه بنديز اوکړې که چرې هغه په حقيقت کښې نبي دې نو په نن ورځ بدرکښې تاله د هغه خلاف جنګيدل نه دی پکار. اوکه چرې هغه کاذب وی نو د خپل خورينې نه د منع کيدلو هم ته زيات حقدار ئې چه په هغه باندې حمله مه کوه او د جنګ نه لرې شه او د هغه امداد مه کوه. ښه ده اودريږه زه ابوالحکم سره ملاويږم. که هغه په حضرت محمد ﷺ باندې غالب شو

[1]) ترمذی کتاب تفسير القران باب ومن سورة الانعام : ۳۰۶۴،

[2]) ابن هشام : ۳۳۷/۱، دلائل النبوة :۲۰۶/۲

نو ته به بغیر د نقصان نه خپل وطن ته واپس کیږي او که په دې جنګ کښې حضرت محمد ﷺ غالب شو نو تا د خپل قوم خلاف هډو جنګ نه دې کړې نو په دې وجه د جنګ د شرکت نه ولې نه منع کیږې. هم د هغه ورځ نه د هغه نوم اخنس شو ګنې د هغه نوم "ابی" وو. اوس د اخنس او ابوجهل ملاقات اوشو اخنس ونیل ابوالحکم! ښه ده ماته دا خو اوښایه چه حضرت محمد ﷺ رښتونې دې که دروغژن؟ اوس دلته زما او ستا نه علاوه بل څوک اهل قریش نشته چه زمونږ خبره واوریدې شی. نو ابوجهل ونیل کم بخته! د الله ﷻ قسم چه حضرت محمد ﷺ خو رښتونې، چرې هم محمد ﷺ دروغ نه دی ونیلی خو خبره دا ده چه کله بنوقصی د جنهډې والا هم وی، د حج په ورځوکښې د سقایت اود کعبې د چابیانو حق هم هغه ته حاصل وی، بیا د هغه نبوت هم ټول اومنو نو د باقی قریشو د پاره څه پاتې شو. هم په دې وجه الله ﷻ اوفرمائیل چه هغوی تا دروغ نه ګڼړی بلکه د الله ﷻ آیانونه دروغ ګڼړی او محمد ﷺ خو هم آیت الله یعنی د الله ﷻ نښه ده.

اوداخبره چه ستانه دوړاند ینورسولانوهم تکذیب شویدې.هغوی صبراوکړو هغوی ته تکلیفونه اورسولې شو تردې چه هغوی ته زمونږ امداد اورسیدلو. په دې آیت کښې نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکړې شویده او هغوی ﷺ سره د امداد وعده کړې شویده لکه څنګه چه د نورو انبیاء کرامو امداد کړې شوې وو. تردې چه د قوم د تکذیب اود هغوی نه د سخت تکلیف د رسیدلونه پس وعده اوکړې شوه چه عاقبت ستاسو دې. په دنیاکښې هم د هغوی د پاره د الله ﷻ امداد راغلو لکه څنګه چه د آخرت نصرت حاصل شوې دې. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه د الله ﷻ خبره نه بدلیږی اود الله ﷻ د طرف نه چه د نصرت کومه وعده شویده هغه به خامخا پوره کیږی. لکه چه اوفرمائیلې شو ﴿ وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ ۚ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ ۚ وَإِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ ۞ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ۙ وَّأَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ۞ أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ ۞ فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ ۞ وَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ۙ وَّأَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ۞ سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۚ وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ۚ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞ ﴾ بیا اوفرمائیلې شو ﴿ كَتَبَ اللّٰهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِيْ ۗ إِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ ۞ ﴾ اود الله ﷻ قول دې ﴿ وَلَقَدْ جَآءَكَ مِنْ نَّبَإِي الْمُرْسَلِيْنَ ۞ ﴾ یعنی دپیغمبرانو واقعات خو تاته خودلې شوی دی اود هغوی په تاریخ کښې ستاسو د پاره اسوهٔ حسنه ده. بیا ارشاد باری تعالی دې ﴿ وَإِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ ﴾ که چرې په تاباندې د هغوی اعراض کول سخت تیریږی نو ته د هغوی څه علاج کولې شې. په زمکه کښې سرنګ اوکړنې او د هغه ځای نه د الله ﷻ نشانی راوباسنې یا په آسمان باندې پاوړنې اولګونې او اوخیژنې او د هغه ځای نه څه نښه راوړنې پیش کړنې. که کولې شنې نوداسې هم اوکړنې خو دوی به چرې هم ایمان نه راوړی. که الله ﷻ ته د هغوی ایمان راوړل منظور وو نو هغوی به ئې په هدایت باندې راجمع کړې وې په دې وجه په خبره پوهه شه او ناحقه غم مه کوه او ناپوهه مه جوړیږه لکه چه الله ﷻ اوفرمائیل ﴿ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَاٰمَنَ مَنْ فِي الْأَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا ۗ ﴾ که الله ﷻ غوښتل نو د زمکې ټولو اوسیدونکو به ایمان راوړې وې او د هدایت منونکی به وو. نو الله ﷻ خبر ورکړو چه ایمان خو هغه راوړی د چا د پاره چه نیک بختی د ازل نه مقرر شوې وی. اود الله ﷻ ارشاد دې ﴿ إِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ ۘ ﴾ اې محمد ﷺ! ستا په دعوت باندې خو به هغه خلق لبیک وائی څوک چه ستاخبره اوری اوپوهیږی. د الله ﷻ قول دې ﴿ وَالْمَوْتٰى يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ۞ ﴾ دا مړی به الله ﷻ بیا راپاڅوی بیا به د هغه طرف ته رجوع کوی. د "موتی" نه کافران مراد دی ځکه چه د هغوی زړونه مړه دی. په دې وجه الله ﷻ هغوی د ژوند په حالت کښې هم په مړو یاد کړل او د مړو په جوسو سره ئې تشبیه ورکړه. دا د هغوی د رسوائې او تذلیل په خاطر وو.

وَقَالُوۡا لَوۡلَا نُزِّلَ عَلَيۡهِ

او وائی خلق | چی ولې نازله نۀ کړې شوه | په دۀ باندې

اودوئ وائی چې دۀ ته ولې.........

اٰيَةٌ مِّنۡ رَّبِّهٖ ؕ قُلۡ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنۡ يُّنَزِّلَ اٰيَةً

یوه نښنه|دطرفه درب دهغه نه|ورته اووایه|چې بیشکه الله| قادردې |په دې| چې نازله کړي| یوه نښه

دالله ﷻ طرفه نښه نه راځی | ..................ورته اووایه چې الله ﷻ دنبي راکوزولو پوره پوره طاقت لري

وَّلٰكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ۝ وَمَا مِنۡ دَآبَّةٍ فِى الۡاَرۡضِ

لیکن | اکثرددوئ | نۀ پوهیږي |اونشته | یو زنده ځناور | په زمکه کښې |

خو اکثر خلق په دې نه پوهیږي | ..................اود زمکې په مخ هیڅ یو ساه لرونکې نشته

وَلَا طٰٓئِرٍ يَّطِيۡرُ بِجَنَاحَيۡهِ اِلَّاۤ اُمَمٌ اَمۡثَالُكُمۡ ؕ مَا

اونۀ یومارغه |چې الوزي | په دواړه وزرو خپلو | مګر |امتونه دي| په شان ستاسو| نۀ دې

اونه په هوا کښې داسې مارغان شته چې په وزرو الوزي | مګردا ټول ستاسو پشان امتونه دي

فَرَّطۡنَا فِى الۡكِتٰبِ مِنۡ شَىۡءٍ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمۡ يُحۡشَرُوۡنَ۝

پریښودې مونږه کمې |په کتاب کښې | دڅه څیز | بیا | ارب خپل ته | ورجمع کړې کیږي

مونږ ددې ټولو په نصیب لیکلو کښې هیڅ کمې نه دې کړې| اوبیابه دا ټول خپل رب ته واپس شي

وَالَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّبُكۡمٌ فِى الظُّلُمٰتِ ؕ

اوهغه کسان | چې دروغ ګڼري | آیتونه زمونږه | کاڼړه دي|اوګونګیان دي|په تیارو کښې پراتۀ دي |

اوچاچې زمونږ آیتونه دروغ اوګڼړل| هغوئ کاڼړه اوګونګیان او په رنګ رنګ تیرو کښې پراته دي

مَنۡ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضۡلِلۡهُ ؕ وَمَنۡ يَّشَاۡ يَجۡعَلۡهُ عَلٰى صِرَاطٍ

څوک چې غواړي الله | نوګمراه کوی هغه لره |اوڅوک چې غواړي | نو راونوی هغه| په لاره

الله ﷻ چې دچا باره کښې اوغواړي نوهغه ګمراه کوی | اود چا باره کښې چې اوغواړي نو هغه په

مُّسۡتَقِيۡمٍ۝

نیغه

سمه لار روان کړي

قوله تعالی:: وَقَالُوۡا لَوۡلَا نُزِّلَ عَلَيۡهِ اٰيَةٌ مِّنۡ رَّبِّهٖ ؕ قُلۡ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنۡ يُّنَزِّلَ اٰيَةً

**دَ معجزاتو صادریدل دَ الله ﷻ په مرضئ کیږی** :- د مشرکانو باره کښې ارشاد کیږی چه هغوی به ونیل چه مونږ څنګه غواړودغه شان یوه نښه یاخارق عادت خبره د الله ﷻ د طرف نه په تا ولې نه نازلیږی. مثلاً په زمکه کښې چینې روانیدل وغیره. نو ارشاد کیږی چه اووایه الله ﷻ خو په دې باندې قادر دې ولې دهغه حکمت د تاخیر مقتضی دې. خکه چه د هغوی د خوښې مطابق الله ﷻ څه نښه نازله کړی او

هغوی بیا هم ایمان رانوړی نو عذاب به پخپله په هغوی باندې نازل شی. ترمرګه پورې به هم ورته فرصت ملاؤ نشی لکه چه د مخکینو امتیانو سره او شو. اولکه چه د اهل ثمود مثال ستاسو په وړاندې دې. مونږ خو چه څه غواړو نښه ښکاره کولې شو او چه څه غواړو عذاب هم ورکولې شو.

**ځناور جدا امتونه اوډ محشرورځ:**- اوبیا اوفرمائیلې شو ﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ﴾ ځرونکی او دانسې ټولونکې ځناور، الوتونکی مرغئی هم ستاسو په شان قسم قسم دی. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه د دې ځناورو ډیر قسمونه دی د کومونومونه چه مشهور دی. قتاده رحمه الله فرمائی چه "طیر" یو امت دې. پیریان او انسانان هم یو یو امت دې او دا امتونه هم ستاسو په شان د الله ﷻ مخلوق دې. ﴿مَا فَرَّطْنَا﴾ الخ یعنی د ټولو علم الله ﷻ ته دې. چاته رزق ورکول هغه نه هیروی که هغه د اوچې وی که د لمدې. لکه چه ارشاد دې ﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا﴾ هغه د دوی نومونه شمیر او مقامات پیژنی، تردې چه د هغوی د حرکتونو نې هم احاطه کړې ده. اوفرمائی ﴿وَكَأَيِّنْ مِنْ دَآبَّةٍ لَا تَحْمِلُ رِزْقَهَا﴾ ډیرځا لرونکی دی چه د هغوی رزق ستا په ذمه نه دې، دوی ته او تاسو ټولوته هم الله ﷻ رزق ورکوی.

د حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې چه د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په زمانه کښې یو کال ملخان رانغله. هغوی تپوس اوکړو خو څه معلومات اونه شو. د هغوی خو ډیر تعلق وو نو په دې وجه نې عراق او شام وغیره ته خلق اولیږل چه معلومه کړی چه هلته ملخان راغلی. نو د یمن د طرف نه یو سړی څه ملخان راوړل او مخکښې کیخودل. حضرت عمر رضی الله عنه د هغې په کتو باندې درې ځل الله اکبر اووئیل او وئی فرمائیل چه رسول الله ﷺ فرمائیلی ووچه الله ﷻ په زرګونو مخلوقات پیدا کړی په کوموکښې چه شپږ سوه سمندری دی او څلور سوه د اوچې دی. د ټولو نه مخکې به الله ﷻ دا د ملخانو مخلوق هلاک کوی. بیا به وار په وار د مخلوقاتو د هلاکت دا سلسله داسې قائمه شی لکه د منکې دانې چه ماتیږی (١). ﴿ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ﴾ یعنی دې ټولو مخلوقاتو له به بیا مرګ راشی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه د بهائمو مرګ هم د هغوی حشر کیدل دی. په دې باره کښې یو بل قول دا دې چه دابهائم به هم دقیامت په ورځ راوچتولې شی. دغه شان اوفرمائیلې شو ﴿وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ﴾ یعنی بهائم به هم په محشر کښې راځی.

د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه روایت دې حضور اکرم ﷺ دوه چیلئی اولیدې چه یوه بله ئې په ښکرو باندې وهله وئی فرمائیل اې ابوذر! پوهیږې چه دوی ولې جنګ کوی. بیا حضور ﷺ اوفرمائیل الله ﷻ په دوی کښې ظالم پیژنی او په قیامت کښې به د دوی هم فیصله کوی. (٢) حضرت ابوذر رضی الله عنه فرمائی چه حضور ﷺ مونږ ته د الوتونکې مرغئی متعلق هم علم راکړې دې. (٣) حضور ﷺ اوفرمائیل چه دا بغیر ښکرو چیلئی به د قیامت په ورځ د ښکرورې چیلئی نه بدله اخلی (٤) ﴿إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ﴾ باره کښې حضرت ابوذر رضی الله عنه فرمائی چه د قیامت په ورځ به الله ﷻ بهائم ځناور او ترمرغوپورې راپیدا کړی. هریو به د بل نه خپله بدله واخلی بیا به اوفرمائی تاسو ټول خاورې شئی.

نوکافران به هم هغه وخت دا وائی ﴿يَا لَيْتَنِي كُنْتُ تُرَابًا﴾ افسوس چه مونږ هم خاورې شوې وې (٥). ﴿وَالَّذِينَ

---

(١) ابویعلی فی المسند الکبیر: مجمع الزوائد: ۳۲۲/۷،
(٢) احمد ۱۶۲/۵،
(٣) احمد: ۱۷۳/۵ .
(٤) زوائد مسند احمد: ۷۲/۱، مسند البزار: ۳۴۴۹.
(٥) حاکم: ۳۱۶/۲، وهو حسن.

﴿كَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ﴾ یعني چه کومو خلقو زمونږ آیاتونه دروغ گڼرلي دي هغوی د خپل جهالت کم علم او ناپوهنی په وجه د کڼرو او کونګیانو په شان دي او په تیارو کښې دي څه لیدي هم نه شي. نو اوس به داسې خلق په صحیح لار څنګه لارشي. لکه چه الله ﷻ په سورة بقره کښې فرمانی د دوی مثال د هغه سړي په شان دې چه اور بل کړي نو د خواوشا څیزونه ورته ښکاره شي او چه هغه وخت اور مړ شي او هغه په تیاره کښې پاتې شي اوهیڅ اونه لیدې شي. په دې وجه ئې اوفرمائیل ﴿مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضْلِلْهُ وَمَنْ يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ هغه چه څوك غواړي ګمراه ئې کړي او څوك چه غواړي نو په نیغه لار ئې کړي. هغه په خپل پیداوښ باندې د خپلې مرضئی مطابق متصرف دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلْ | اَرَءَيْتَكُمْ | اِنْ | اَتٰىكُمْ | عَذَابُ اللّٰهِ |
| اورته اووایه | څه رنګې ښکاری تاسوته | که | راشی تاسو ته | عذاب دالله |
| ورته اووایه چې فکراوکړئ که په تاسودالله ﷻ عذاب راشي | ............. | | | |
| اَوْ اَتَتْكُمُ | السَّاعَةُ | اَغَيْرَ اللّٰهِ | تَدْعُوْنَ | اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٤٠﴾ |
| یا راشي تاسو ته | قیامت | آیا بغیردالله نه بل څوك | رابلئ تاسو | که یئ تاسو رشتینی |
| یا په تاسو(ناڅاپه)آخری وخت راشی | نوآیاتاسوبه دالله ﷻ نه سوابل چاته آواز کوئ | که تاسوریښتونی یئ | | |
| بَلْ | اِيَّاهُ | تَدْعُوْنَ | فَيَكْشِفُ | مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ |
| بلکه | خاص هم هغه | رابلئ تاسو | ایبا لرې کوی | هغه مصیبت / چې تاسو رابلئ / هغې ته / که |
| بلکه هغه وخت کښې تاسوصرف یو الله ته آواز کوئی | نوکه الله اوغواړي نو هغه مصیبت به درنه لرې | | | |
| شَآءَ | وَتَنْسَوْنَ | مَا | تُشْرِكُوْنَ ﴿٤١﴾ | وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ |
| اوغواړي | اوهیروئ تاسو | هغه | چې شریك کوئ ئې تاسو | اوپه تحقیق سره الیږلی دی مونږ (پیغمبران) |
| کړي اوپه داسې موقع کښې درنه خپل شریکان هیرشی | ..............اومونږ لیږلو وو رسولان | | | |
| اِلٰى اُمَمٍ | مِّنْ قَبْلِكَ | فَاَخَذْنٰهُمْ | بِالْبَاْسَآءِ | وَالضَّرَّآءِ |
| ډیروقومونوته | وراندې ستا نه | نو اونیول مونږه هغوئ | په سختوسره | او په تکلیفونوسره |
| ډیروقومونو ته مخکښې ستانه | بیامونږ هغوئ په سختواو مصیبتونو کښې راګیر کړل | | | |
| لَعَلَّهُمْ | يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿٤٢﴾ | فَلَوْلَآ | اِذْ | جَآءَهُمْ بَاْسُنَا |
| دپاره ددې چې هغوئ | عاجزي اختیار کړي | انوولې نه وه | کله چې | اراغي هغوئ ته / عذاب زمونږ |
| دې دپاره چې عاجزي اختیار کړی | نوهرکله چې په دوئ باندې زمونږدطرفنه سختئ راغلې | | | |
| تَضَرَّعُوْا | وَلٰكِنْ | قَسَتْ | قُلُوْبُهُمْ | وَزَيَّنَ لَهُمُ |
| چې عاجزي ئې کوې وه | لیکن | سخت شو | زړونه دهغوئ | اوښائسته کړو / هغوئ ته |
| نودوئ ولې عاجزي اختیار نه کړه | بلکه ددوئ زړونه سخت پاتې شوا | ............. اودوئ ته | | |

| |
|---|
| الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۴۳﴾ فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا |
| شیطان \| هغه عملونه \| چې وو هغوئ \| چې کوول به ئې \| نو هر کله چې هیر کړو هغوئ \| هغه کار \| چې نصیحت شوې وو هغوئ ته |
| شیطان ورته د هغوی (بدعلمونه) ښانسته کړل \|..............نو هر کله چې دوئ نصیحتونه هیر کړل |
| بِهٖ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ؕ حَتّٰۤى اِذَا فَرِحُوْا |
| په هغې سره \| نو پرانستلې مونږ \| په هغوئ باندې \| دروازې \| د هر څیز \| تردې پورې \| چې کله \| خوشحاله شو |
| نو مونږ پرې د هر قسم خوشحالو دروازې پرانیستې \| ..............تردې چې دوئ ته مونږ څه ورکړې وو په |
| بِمَاۤ اُوْتُوْۤا اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَاِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ ﴿۴۴﴾ |
| په هغه څه \| چې ورکړې شوی وو هغوئ ته \| نو اونیول مونږ هغوئ \| ناساپه \| نو بیا وو هغوئ \| نا امیده دخیر نه |
| هغې خوشاله شول \| نو مونږ ناڅاپه راونیول \| او دوئ بالکل حیران پاتې شو |
| فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ؕ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ |
| نو پرې کړې شوا بیخ \| دقوم \| دهغه قوم \| چې ظلم ئې کړې وو \| او تعریف دي \| الله لره \| |
| نو د ظالم قوم بیخ پرې کړې شو \| ..............اوټول تعریفونه الله ﷻ لره دی |
| رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۵﴾ |
| چې رب دي \| دمخلوقاتو \| |
| چې دټول مخلوق پروردګار دي \| |

**قوله تعالي:**: قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ اَوْ اَتَتْكُمُ السَّاعَةُ اَغَيْرَ اللّٰهِ تَدْعُوْنَ

**دَ توحیدعقیده او دَ مکې مشرکان:-** الله ﷻ په خپل مخلوق کښې د هرقسم تصرف کولو قدرت لری. نه څوك د هغه حکم بدلولې شی او نه څوك د هغه حکمت روستوغورزولې شی. که د هغه نه غوښتنه اوکړې شی او هغه اوغواړی نوقبلوی. فرمانی چه تاسو نه پیژنئی چه ناڅاپی قیامت راشی او یا د الله ﷻعذاب نوتاسو د هغه نه علاوه بل څوك نه رابلئی ځکه چه پوهیږئی چه دا عذاب د الله ﷻ نه علاوه بل څوك نه شی واپس کولې. که تاسو غیرالله خپل رب جوړولوکښې رښتونی یئی نو ازمیښت اوکړئی اوګورئی بلکه تاسو به هم هغه الله رابلئی. بیا که هغه غواړی نو دغه عذاب به اخواکړی. په داسې وخت کښې تاسو خپل شریکان او بتان ټول هیروئی. په سمندرکښې که چرته په مشکل حال کښې راګیرشئ نود الله ﷻ نه علاوه باقی ټول شریکان هیروئی. تاسو نه وړاندې امتونوته هم مونږ پیغمبران لیږلی وو او چه کله هغوی تکذیب اوکړو نو مونږ د فقر او تنګدستئی په عذاب کښې راګیر کړل او په مرضونو او تکلیفونوکښې مو اخته کړل، دې دپاره چه هغوی هم الله ﷻ ته آواز اوکړی او هم د هغه طرف ته خشوع او خضوع اوکړی. بیا چه مونږ هغوی په عذاب کښې اخته کړو نو هغوی اثر ولې نه اخلی. خبره دا ده چه د هغوی زړونه د کاڼو شوی دی هیڅ اثر پرې نه کیږی. شیطان د هغوی شرکی او د دښمنئی اعمال د هغوی د سترګو په وړاندې ښه جوړکړې پیش کړې وی. نو چه کله هغوی زمونږ تنبیه هم هیره کړی او ایمان شاته اوغورزوی نو مونږ د رزق پوره دروازې په هغوی باندې کولاؤ کړو چه هغوی نورهم په سستیاکښې پریوزی. د الله ﷻ دسیاست نه هم د الله ﷻ پناه او چه کله هغوی ددنیا په

خوشحالوپه جاموکښې نه ځائیږی اوپخپلومالونواولادونواورزقونوکښې زمونږ نه غافل شی نو ناڅاپې په هغوی باندې عذاب راځی یا مرګ راځی په دې حالت باندې هغوی د هر یو خیر نه نااميده کیږی.

**تنګدستی او خوشحالی یو ازمیښت او موقع ورکول:-** حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه په چا باندې رزق زیات کړې شو هغه په دې خبره هڅو غور نه کوی خکه چه دا هم د الله ﷻ د طرف نه یو سیاست دې او په چا چه تنګ حالی وی هغه هم غور نه کوی چه د هغه ازمیښت کیږی او مهلت ورکړې شویدې. د کعبې په رب قسم کله چه د ګناهګارانو نیول مقصود وی نو په دنیاکښې هغوی خوشحاله ساتلې شی. قتاده رحمه الله فرمائی چه الله ﷻ ترهغه وخته پورې یو قوم هم نه دې رانیولې ترکومې چه نې په خپل نعمتونوکښې ښه مست کړې نه وی. دهوکه مه خورئی فاسق او ګناهګار خلق دهوکه خوری د ﴿اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ﴾ نه مرادد دنیامزې اوخوشحالی ده. د ابن عامر نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه کله ته څوك اووینی چه د هغه د ګناه سره الله ﷻ د دنیاعیش او مزې هغه له ورکړی دی نو یقین اوکړه چه دې د الله ﷻ د روستوالئ وخت تیروی. بیا حضور ﷺ همدغه آیت اولوستلو چه کله هغه مونږ هیرکړې نو هغه له د هرقسم عیش او مزې ورکړو او چه کله هغه په دې مغروره شی او بیا زمونږ موتې کښې راشی نو د هرقسم نه نااميده شی.[1] حضور اکرم ﷺ به فرمائیل چه کله الله ﷻ یو قوم باقی ساتل غواړی او هغوی له ترقی ورکول غواړی نو هغه له پاك دامنی او میانه روی ورکوی او د کوم قوم نه چه خپله رشته پریکول غواړی نو هغوی له فراخی ورکوی او د خیانت دروازه په هغوی باندې کولاووی او چه کله هغوی مغروره شی نو سمدستی هغوی رانیسی. نو په دې حال کښې هغه نااميده کینی نود هغه قوم نسیاً منسیاً شی د حمد سزاوار هم د الله ﷻ ذات دی.[2]

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | اَرَءَيْتُمْ | اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ | سَمْعَكُمْ | | | |
| اووایه | آیاوینئ تاسو | که واخلی الله | د اوریدو طاقت ستاسو | | | |
| اورته اووایه چې تاسوچرې په دې خبره فکر کړې دې چې الله ستاسوغوږونه | | | | | | |
| وَاَبْصَارَكُمْ | وَخَتَمَ | عَلٰى قُلُوْبِكُمْ | مَّنْ | اِلٰهٌ | غَيْرُ اللّٰهِ | |
| اودلیدلوطاقت ستاسو | اومهراولګوی | په زړونو ستاسو | نو څوك دی | (بل) خدائې | بې دالله نه | |
| اوسترګې واخلی او په زړونو درته مهر اولګوی نود الله ﷻ نه سوا بل څوک شته چې | | | | | | |
| يَاْتِيْكُمْ | بِهٖ | اُنْظُرْ | كَيْفَ | نُصَرِّفُ | الْاٰيٰتِ | |
| چې واپس درکړی تاسو ته | دغه قوتونه | اوګوره | څنګه | باربار پیش کوو مونږه | نښې | |
| دا څیزونه تاسو ته واپس راولی ......... اوګوره مونږ دوئ ته خپلې نښې په کومه کومه طریقه ښایو | | | | | | |
| ثُمَّ | هُمْ | يَصْدِفُوْنَ | قُلْ | اَرَءَيْتَكُمْ | اِنْ | اَتٰكُمْ |
| بیا | دوئ | ډډه کوی | اووایه | څنګه ښکاری تاسو ته | که | راشی تاسو ته |
| خوبیاهم دوئ دهغې نه ډډه کوی ورته اووایه چې تاسو چرته فکر کړې دې که په تاسو باندې | | | | | | |

[1] احمد: ۱۴۵/۴.
[2] مسند الفردوس ۹۷/۱ ابن ابی حاتم.

عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٤٧﴾

عذاب دالله | ناساپا | یا ښکاره | نه هلاکیږي | مګر | قوم | ظالمان

دالله ﷻ د طرفنه ناڅاپه یا په ښکاره عذاب راشي | نو آیا د ظالمانو نه سوا نور څوک به په کښې هلاکیږي !

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ فَمَنْ اٰمَنَ

اونه دی لیږلی مونږ | پیغمبران | مګر | زیری ورکونکی | اویرونکی | نو چاچي ایمان راوړو

او مونږ خو رسولان په دې غرض لیږلي | چې نیکانو ته زیري ورکړي | او بدان اوویروي | نو څوک د هغوئ خبره اومني

وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٤٨﴾

او اصلاح ئي اوکړه د عملانو | نشته یره | په هغوئ باندې | اونه به هغوئ | غمژن شي |

او خپله اصلاح او کړي | .........نو په هغوئ به نه ویره وي | .........او نه به غمژن شي ..........

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا

او هغه کسان | چې دروغ ئي اوګڼړل | آیتونه زمونږه | رسیږي به هغوئ ته | عذاب | په سبب د هغې

او څوک چې زمونږ آیتونو ته دروغ وائي | .............نو هغوئ ته د هغوی د بدو عملونو په وجه

كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿٤٩﴾

چې وو هغوئ | چې نافرماني به ئې کوله |

عذاب رسیږي | ..........................

**قوله تعالي:** قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَاَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِهٖ ؕ

**معاندینوته دَ حق وعظ:-** رسول الله ﷺ ته ارشاد فرمانی چه دې مکذبینو معاندینوته اووایه چه څه پته درته شته چه الله ﷻ ستاسو اوریدل او لیدل بندکړی کوم چه نې تاسو له درکړی دی لکه چه فرمانی ﴿ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ۙ ل﴾ او داهم احتمال دې چه د اوریدو او لیدو سره هغوی د شریعت د انتفاع نه محرومه کړی او د حق خبرې نه د فاندې اخستونه هغوی رانده او کانړه شی او هم دغه مطلب وو ﴿ وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ ﴾ لکه چه فرمانی ﴿اَمَّنْ يَّمْلِكُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ﴾ او ونې فرمائیل ﴿ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهٖ ﴾ یعنی که هغه ستاسو په زړونو باندې هم مهر اولګوی نو د الله ﷻ نه بغیر څوک دی چه دغه مهر مات کړی. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه لږ شان غور اوکړنی چه مونږ خپلې خبرې څنګه په وضاحت سره بیانوو چه د دې خبرې پوره دلیل وی چه د الله ﷻ نه علاوه بل څوک رب نشته او د الله ﷻ نه بغیر چه څومره معبودان دی ټول باطل دی. د دې واضحه څیز نه پس هم هغوی د حق د تابعدارئی نه خلق منع کوی او پخپله هم منع کیږی. څه پوهیږئی که د الله ﷻ عذاب تاسو راګیر کړی چه د هغې تاسو ته څه ګمان هم نه وی چه په کتلو کتلوکښې مخامخ راشی نو آیا د دې ګمراه قوم نه علاوه به بل څوک هلاک شی. خکه چه دا خلق الله ﷻ سره د شرك په سبب د هغه په ګرفت کښې دی خو هغه خلق به خلاصې بیامومی چه صرف د الله ﷻ عبادت کوی په هغوی باندې نه ویره شته او نه غم. لکه چه فرمانی ﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ کومو خلقو چه ایمان راوړو او خپل ایمان ئې په شرك سره خراب نه کړو د هغوی د پاره امن او آمان دې او هغوی لارر موندونکی دی . بیا ارشاد فرمائی چه مونږ خو پیغمبران د جنت

د زیری اود دوزخ نه د ویرې د پاره لیږو. هغوی نیکانو مؤمنانو بندیګانو ته زیرې ورکوی نو کفر او ګناه کونکو ته خبردارې هم ورکوی. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه څوك د زړه نه ایمان راوړی او د نبی په تابعدارنی کښې نیك عمل اوکړی نو په هغوی باندې د راتلونکی وخت هیڅ ویره نشته اود تیرشوی وخت په نسبت هیڅ ارمان او غم نشته ځکه چه د هغوی د وړاندینو الله ﷻ مالك دې. بیا فرمائی چه کومو خلقو زمونږ آیاتونه دروغ ګڼرلی هغوی به د خپل کفر او فسق په وجه عذاب سره مخ کیږی. ځکه چه هغوی د الله ﷻ د اوامرو نه آزاد جوړشوی دی اود هغه مناهی او د محارم کونکی شوی دی اود هغه حدود نې مات کړی دی.

>

قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِیْ

| اووایه | نهٔ وایم زهٔ | تاسو ته | چې ماسره دی

ائې پیغمبره) ورته اووایه چې تاسو زه دا نه وایم چې ماسره

خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَیْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّیْ

خزانې د الله | اونهٔ دا وایم | چې پوهیږم زهٔ | په غیبو | اونهٔ دا وایم زهٔ | تاسوته | چې زهٔ

دالله ﷻ خزانې دی | اونه (درته دا وایم چه) زه په غیبو باندې پوهیږم | اونه درته دا وایم چې زه

مَلَكٌ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا یُوْحٰٓی اِلَیَّ ۗ قُلْ هَلْ یَسْتَوِی

فرشته یم | نهٔ کوم تابعداری زهٔ | مګر | دهغې چې وحی کیږی | ماته | اووایه | آیا برابریدې شی

فرشته یم | زه صرف د هغې وحې تابعداری کومه چې ماته کولې شی |.......... ته ورته اووایه چې آیا

الْاَعْمٰی وَالْبَصِیْرُ ۗ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ۟ ع وَاَنْذِرْ بِهِ الَّذِیْنَ

ړوند | اوبینا | نو تاسو فکر نهٔ کوئ ! | اوویروه | په دې وحی سره | هغه کسان

ړونداوبینا دواړه برابر کیدې شی | نوتاسو دومره فکر هم نه کوئ | ته په دې (وحی) سره هغه کسان

یَخَافُوْنَ اَنْ یُّحْشَرُوْٓا اِلٰی رَبِّهِمْ لَیْسَ لَهُمْ

چې یریږی | چې جمع به کړې شی | رب خپل ته | په داسې حال کښې چې نهٔ به وی | دپاره دهغوئ

اوویروه چې دهغوئ په زړونو کښې دا ویره وی | چې الله ﷻ ته به داسې حال کښې پیش کیږی

مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِیٌّ وَّلَا شَفِیْعٌ لَّعَلَّهُمْ یَتَّقُوْنَ ۟ وَلَا

ماسوادهغه نه | څوك دوست | اونهٔ څوك شفاعت کونکې | شاید چې هغوئ | اویریږی دالله نه | اومهٔ

چه دهغه نه بغیر بهٔ نې څوک دوست نه وی | اونه به نې څوک سفارشی وی | نودوئ ته پکارده چې متقیان شی

تَطْرُدِ الَّذِیْنَ یَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِیِّ یُرِیْدُوْنَ

شړه تهٔ | هغه کسان | چې رابلی | رب خپل | په وخت د صبا کښې | اوپه وخت د بیګاه کښې | غواړی

اوهغه کسان دخان نه لرې مه شړه چې صبا بیګاه الله ﷻ لره یادوی |..............اوداغواړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَجْهَهٗ ؕ | مَا عَلَيْكَ | مِنْ حِسَابِهِمْ | مِّنْ شَيْءٍ | وَّمَا | مِنْ حِسَابِكَ |
| رضا دهغه | نشته په تاباندې | دحساب دهغوئ نه | هيڅ څيز | اونشته | دحساب ستا نه |

چې الله ﷻ راضی کړی | په تاباندې دهغوئ دحساب هيڅ بوج نشته | ......... او ستا د حساب

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِمْ | مِّنْ شَيْءٍ | فَتَطْرُدَهُمْ | فَتَكُوْنَ | مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ |
| په هغوئ باندې | هيڅ څيز | نوکه تا اوشړل هغوئ | نو شې به ته | دظالمانو نه |

په هغوئ څه بوج نشته | .........نوکه هغوئ دخان نه اوشړې نو زياتی کونکو کښې به شمير شې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكَذٰلِكَ | فَتَنَّا | بَعْضَهُمْ | بِبَعْضٍ | لِّيَقُوْلُوْٓا |
| اودغه شان | په امتحان کښې اچولې دی مونږه | بعضې دهغوئ نه | په بعضو نوروسره | دپاره ددې چې اووائې هغوئ |

اوداشان مونږ دوئ ديوبل په ذريعه په امتحان کښې اچولې دی | چې دوئ دا وينا اوکړی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَهٰٓؤُلَآءِ | مَنَّ اللّٰهُ | عَلَيْهِمْ | مِّنْۢ بَيْنِنَا ؕ | اَلَيْسَ اللّٰهُ |
| آيا داهغه خلق دی | چې احسان کړې دې الله | په هغوئ باندې | په منځ زمونږ کښې | آيا نهٔ دې الله |

چې آياهغه داخلق دی چې الله ﷻ په مونږ کښې په دوی باندې مهربانه کړی دی | ......... آيا الله ﷻ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِاَعْلَمَ | بِالشّٰكِرِيْنَ ۝ | وَاِذَا | جَآءَكَ | الَّذِيْنَ | يُؤْمِنُوْنَ |
| ښه پوهه | په شکر کونکو باندې | اوکله چې | راشی تاته | هغه کسان | چې ايمان راوړی |

شکرگزاربندگان ښه نه پيژنی | اوهرکله چې تاته هغه کسان راشی چې زمونږ په آيتونو ايمان راوړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِاٰيٰتِنَا | فَقُلْ سَلٰمٌ | عَلَيْكُمْ | كَتَبَ | رَبُّكُمْ | عَلٰى نَفْسِهِ |
| په آيتونوزمونږه | نواووايه سلامتيا دې | په تاسو | ليکلې دې | رب ستاسو | په خان خپل باندې |

.........نو ته ورته وايه سلامت اوسئ | ستاسو رب په خپل خان باندې رحمت لازم کړې دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الرَّحْمَةَ ۙ | اَنَّهٗ | مَنْ عَمِلَ | مِنْكُمْ | سُوْٓءًا ۢ بِجَهَالَةٍ |
| رحمت | بيشکه شان دادې | چاچې کړې وی | ستاسو نه | څه بد عمل په ناپوهتيا سره |

تاسو کښې چې څوک په ناپوهئ سره څه گناه اوکړی | .........

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ تَابَ | مِنْۢ بَعْدِهٖ | وَاَصْلَحَ | فَاَنَّهٗ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ |
| بيا اتوبه اوباسی | روستو دهغې نه | اونيك کړی عمل خپل | نوبيشکه چې هغه | بخښونکې | مهربان دې |

بياروستوتوبه اوباسی | .........اوخپله اصلاح اوکړی | نو بيشکه الله ﷻ بخښونکې او مهربان دې

**قوله تعالى:** قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ

ته دوی ته اووايه چه زه د دې دعوی **دَ غيبو او دَ خزانو مالک څوک دې :-** الله ﷻ فرمائی چه اې رسول ﷺ ته دوی ته اووايه چه زه د دې دعوی کله کوم چه ماسره د الله ﷻ خزانې خښې دی او نه زما د دې دعوی ده چه زه د غيبو خبرې پيژنم. د غيبوعلم خو صرف الله ﷻ ته دې. ماته په دې کښې صرف دومره معلوم دی څومره چه الله ﷻ راته

خودلي دی او نه زه یوه فرښته یم زه خو یو بشر یم. صرف دومره ده چه زما طرف ته د الله ﷻ وحی راځی ماته هغه د دې عزت رابښلې دې او احسان ئې کړیدې. په دې وجه زه د وحی نه علاوه د بل څیز تابعداری نه کوم اود وحی د حدودو نه یوه لویشت هم بهر نه اوځم. او ورته اووایه چه بینا او نابینا دواړه برابریدې شي یعني د حق منونکی او د دې نه ګمراه خلق دواړه یو شان کیدې شي؟ آیا تاسو په دې غور نه کوئې. لکه چه اوفرمائیلې شو، آیا هغه سړې چه په دې پوهیږي څه چه ستا طرف ته ستا د رب نه نازل شوی حق دی، په مثال د نابینا سړي کیدې شي؟

**قوله تعالى:-** وَأَنذِرْ بِهِ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَن يُحْشَرُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ

بیا ارشاد کیږي اې محمد ﷺ! د دې قرآن پاك په ذریعه ته هغه خلق اوویروه چاته چه د دې خبرې اندیښنه ده چه الله ﷻ ته به وړاندې کیږو. د دې خبرې ویره چه د الله ﷻ نه بغیر بل څوك ولی شته او نه به څوك د شفیع کار ورکړي. هغه خلق چه د الله ﷻ نه ویریږي اود حساب د ورځې اندیښنه لري. چاته چه دا ویره وی چه د الله ﷻ په وړاندې به اودریدل وی. په هغه ورځ د هغه د پاره نه څوك ولی شته او نه څوك شفیع چه شفاعت اوکړي او هغه د عذاب نه بچ کړي. دوی د هغه ورځې نه اوویره وه په کومه ورځ چه به د الله ﷻ نه بغیر د چاحکومت نه وی. کیدې شي چه هغوی د الله ﷻ نه اوویریږي او په دې دنیا کښې داسې عملونه اوکړي چه هغوی ته د قیامت په ورځ د عذاب نه خلاصې ورکړي اوکه ثواب ورته ملاوېږي نو چه دوچنده ملاوشي.

**د صحابه کرامو ﷺ حفاظت د عرش والا پخپله کوی:-** ارشاد دې چه کوم خلق سحر ماښام د الله ﷻ ذکرمخلصانه توګه باندې کوی نو داسې خلق د خان نه مه اخوا کوه بلکه خپل خاص دوستان ئې ګرځوه. لکه چه اوفرمائیلې شو﴿ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم ﴾ هغه خلق سحر ماښام د خپل رب عبادت کوی او د شپې ورځې مونځونه کوی لکه چه فرمائی﴿ وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ ﴾ او ارشاد کیږي چه دا خلق دا عمل مخلصانه او د الله ﷻ د پاره ئې کوی. اوارشاد دې چه نه به د هغوی حساب ستانه اخستې شي او نه به ستا حساب د هغوی نه اخستې شي. لکه څنګه چه د نوح ﷺ قول د هغه خلقو په جواب کښې چاچه وئیلې وو ښه مونږ په تا باندې ایمان راوړو ستا منونکی خو ټول د کمې درجې خلق دی، نو نوح ﷺ فرمائیلی وو چه ماته خو علم نشته چه هغوی څه کوی که تاسو ته څه پته وی نو ټیك ده اود هغوی خبره باندې الله ﷻ خبر دې او هم هغه د هغوی حساب کونکې دې. اې نبی ﷺ! که چرې ته دوی د خپل خان نه اخوا کړې نو د ظالمانونه به ګنړلې شې.

د حضرت ابن مسعود ﷺ نه روایت دې چه د قریشو یوه ډله د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه. هلته حضرت خباب ﷺ، حضرت صهیب ﷺ، حضرت بلال ﷺ او حضرت عمار ﷺ ناست وو نو هغه عزت دارو خلقو اووئیل اې محمد ﷺ! ستا د قوم د پاره دا خلق خوښ دی. هم دا هغه خلق دی چه تامونږ پریخودو او الله ﷻ په دوی باندې احسان اوکړو؟ اوس مونږ د دوی په ډله کښې څنګه شامل شو او ستا تابعداری څنګه کولې شو. ته دوی د خپل خان نه اخوا کړه نو بیا به مونږ ستا تابعداری اوکړو نو دا آیت نازل شوې وو[1]. په دې موقع الله ﷻ اوفرمائیل چه دغه شان مونږ بعضو لره د بعضو په ذریعه په فتنه او ازمیښت کښې واچول. د حضور ﷺ په اطرافوکښې هغه خلقو مؤمنان ضعیفان لیدلو سره د دوی سپکاوې کړې وو. حضور ﷺ ته ئې خان له وئیلې ووچه مونږ ستا په مجلس کښې شریکیدل غواړو، دا باندچیان عرب په خپل خان باندې زمونږ د غوره والی نه خبر دی. تاله د عربو خلق راځی مونږ ته شرم راځی چه هغه خلق مونږ د دې کمې درجې والا خلقو سره ووینی. کله چه مونږ تاسو له

[1]) احمد :۱/۴۲۰،

راشو نو تاسو دا خلق د خپل ځان نه پاځوئی او چه کله مونږ تاسو ته لاړشو نو ستاسو خوښه ده چه بیا نې ځان سره کینوئې. حضور ﷺ وئیل ښه ده نو دې خلقو وئیل چه په دې معاهده باندې یو دستاویز اولیکئې. حضور ﷺ کاغذ راوغوښتو او حضرت علی ؓ ئې د لیکلو د پاره راؤبللو دا ضعیفان مؤمنان په ګوټ کښې ناست وو او دا آیت نازل شو چه دوی د خپل ځان نه مه اخوا کوه دوی الله ﷻ یادوی. نو نبی کریم ﷺ هغه کاغذ د حضرت علی ؓ نه واخستو او لرې ئې اوغورزولو او هغه خلق ئې ځان سره رانزدې کړل.(١) دا حدیث غریب دې ځکه چه دا آیت مکی دې او اقرع بن حابس ؓ او حضرت عیینه ؓ د هجرت نه پس ایمان راوړلې دې.

حضرت سعد ؓ وائی چه دا آیت د نبی کریم ﷺ د شپږو صحابه کرامو بازه کښې نازل شویدې په کوموکښې چه حضرت عبدالله بن مسعود ؓ هم دې. مونږ به نبی کریم ﷺ ته د رسیدلو د پاره د یو بل نه وړاندې کیدو. هغوی ﷺ به مونږ ځان سره نزدې کینولو نو قریشو به وئیل چه مونږ پریږدې او دوی ځان سره نزدې کینوې. ارشاد دې چه مونږ ازمیښت کړی دی چه څوك په دوی کښې څنګه دی. د دې ازمیښت نتیجه دا وه چه د قریشو کافرانو به وئیل چه آیا همدغه خلق دی چه په مونږ باندې د احسان کولو په ځای الله ﷻ هم په دوی احسان کړیدې. (٢)خبره دا وه چه د تبلیغ د شروع په زمانه کښې زیات خلق هغه ښځې سړی او غلامان وو چه کمزورې او د کمې درجې خلق وو په امیرانو اوسردارانو کښې ډیرو کموخلقو ایمان راوړې وو. لکه چه د نوح ﷺ قوم نوح ﷺ ته وئیلی وو چه مونږ خو وینو چه ستا تابعداری کمزوری او د کمې درجې خلق کوی یو ممتاز او مخوریز سړی نه کوی. او دغه شان هرقل د روم د ملك د ابوسفیان نه تپوس کړې وو چه د قوم مالداران خلق د هغه منونکی دی که غریب خلق؟ نو ابوسفیان وئیلې وو چه زیات منونکی ضعیفان او کمزوری خلق دی نو هرقل وئیلې وو چه د رسولانو منونکی او هم داسې خلق وی.(٣) مطلب دا چه د مکې مشرکانو به په هغه کمزورو خلقو پورې توقې کولې او چه وس به ئې کیدو نو تکلیفونه به ئې وررسول. آخر الله ﷻ د دغه خلقو ولې د خیر طرف ته لار خودنه اوکړه. د کومې خبرې طرف ته چه دغه خلقو وړاندیوالې کړیدې نو که هغه د خیر ده نو الله ﷻ مونږ ولې پریخودو. اووئیل به ئې که د دې په منلوکښې خیر وو نو دوی به زمونږ نه وړاندې کیدل نه. لکه چه الله ﷻ اوفرمائیل چه کله په دوی باندې زمونږ واضحه آیاتونه تلاوت کیږی نو دا کافران مؤمنانوته وائی چه اوښائې په دواړو کښې ښه څوك دی او شریف د عزت خاوندان او دولتمند څوك دی؟ د دې په جواب کښې الله ﷻ فرمائی چه مونږ د دې نه وړاندې څومره داسې قومونه هلاك کړل چه د اوچتې درجې عزت والا شان او شوکت والا وو. او چه کومو خلقو دا وئیلی چه الله ﷻ دوی له په مونږ باندې ولې ترجیح ورکړه؟ نو د دې په جواب کښې فرمائی چه آیا الله ﷻ رښتونی شکرګذار نیك زړه او د ښه کردار خلق نه پیژنی؟ الله ﷻ هم هغه خلقو ته توفیق ورکوی ځکه چه الله ﷻ نیکانو خلقو سره وی. په صحیح حدیث کښې دی چه الله ﷻ ستاسو صورتونو او رنګونوته نه ګوری بلکه ستاسو زړونو او ستاسو عملونوته ګوری.(٤)

د حضرت عکرمه رحمه الله نه د دې آیت باره کښې روایت دې چه عبرت ورکړه هغه خلقو ته چاته چه د الله

---

١) الطبری : ۳۷۶/۱۱.

٢) حاکم :۳۱۹/۳، وابن حبان : ۶۵۳۹، وهوحدیث حسن ، ددې اصل صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب فی فضل سعید بن ابی وقاص ؓ: ۲۴۱۳ کښې موجود دې.

٣) صحیح بخاری کتاب بدء الوحی باب کیف بدء الوحی الی رسول الله ﷺ :۷ صحیح مسلم: ۱۷۷۳.

٤) صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب تحریم ظلم المسلم وخذله واحتقاره ودمه وعرضه وماله : ۲۵۶۴، احمد:۴۳۹/۲ ابن حبان: ۳۹۴.

ﷺپه وړاندې د راتلو اندیښنه وه چه د بنی عبدمناف یوځوشرفاء د کافرانو ابوطالب له راغله او ورته ئې اووئیل چه افسوس ستا وراره محمدﷺ زمونږ غلامان او نوکران د خپل خان نه اخوا کړې وې ځکه چه هغوی زمونږ غلامان او خادمان دی او دا خبره په مونږه ډیره سخته تیریږی. په داسې صورت کښې به مونږ د محمد ﷺ تابعداری اوکړو او د هغوی منل او تصدیق به اوکړو. ابوطالب حضور اکرم ﷺ له راغلو اود دې ذکر ئې اوکړو نو حضرت عمر بن الخطاب ﷺ اوفرمائیل بنه ده داسې هم اوکړنې معلومه به شی چه د دوی څه اراده ده او د دې نه پس به هغوی څه کوی. نو دا آیت نازل شو او تردې اوفرمائیلې شو چه ولې الله ﷻ شکر کونکی بندیګان نه پیژنی. د شکر ګذاره خلقو نه حضرت بلالﷺ، عماربن یاسرﷺ،سالم مولی ابی حذیفهﷺ،د صبیح اسید آزادکړې شوې، ابن مسعود ﷺ، مقداد بن عمروﷺ،مسعود بن القاریﷺ،واقدبن عبدالله حنظلیﷺ، عمرو بن عبدعمرو ﷺ، ذوالشمالین ﷺ،مرثدبن ابی مرثدﷺ او ابومرثد الغنویﷺ چه د حمزه بن عبدالمطلب حلیف وو او دا آیت د قریشو د کافرانو د سردارانو اود هغوی د حلیفانوباره کښې نازل شوې وو. کله چه دا آیت نازل شو نو حضرت عمر ﷺ پاڅیدو نبی اکرم ﷺ له راغلو اود خپلې غلطې مشورې معذرت ئې اوکړو. د الله ﷻ ارشاد اوشو چه کله زمونږ په آیاتونوباندې ایمان راوړونکی ستا خواله راشی نو هغوی ته اووایه چه په تاسو دې سلامتی وی. یعنی هغوی ته سلام اوکړه او د هغوی عزت زیات کړه او د الله ﷻ د فراخه رحمت زیرې ورکړه.اوهم په دې وجه فرمائیلې شوی دی چه الله ﷻ پخپل نفس کریمه باندې رحمت واجب ګرځولې دې.اوچه څوك تاسونه په ناپوهئ کښې څه ګناه اوکړی اوبیادهغې نه پس توبه اوکړی اود همیشه دپاره دهغه ګناه نه منع شی اواراده اوکړی چه بیابه داسې نه کوی نو الله ﷻ غفور او رحیم دې.

**د الله ﷻ د رحمت شان** :- د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلې چه کله الله ﷻپه مخلوق باندې خپل تقدیر قائم کړو نو چه په عرش باندې د هغه کتاب لوح محفوظ دې په هغې کښې اولیکل زما رحمت به زما په غضب باندې غالب وی.(١) حضور ﷺ اوفرمائیل چه کله د مخلوق باره کښې الله ﷻ د حکم نافذ کولو نه فارغ شی نو د عرش د تخت نه به کتاب راوباسی په کوم کښې چه به لیکلی وی زه ارحم الرحمین یم. بیا به یو موټې دوه مخلوق د دوزخ نه رابهر کړی چا چه به څه د خیر کار نه وی کړې اود هغوی د سترګو په مینځ په تندی به لیکلی وی عتقاءالله یعنی دا د الله ﷻآزاد کړې شوی دی. حضرت سلمان ﷺ د الله ﷻ د قول ﴿ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ﴾ باره کښې وئیلی دی چه مونږ په تورات کښې لیکلې لیدلی دی چه الله ﷻ زمکه او آسمان پیدا کړل او خپل سل رحمتونه ئې پیدا کړل او دا ئې د مخلوق د پیدا کولو نه اول پیدا کړل. بیا ئې مخلوق پیدا کړو اود دې رحمتونونه ئې یو رحمت د مخلوق په مینځ کښې تقسیم کړو او خپل خان سره ئې یوکم سل رحمتونه کیخودل. هم د دې یورحمت په وجه خلق په خپل مینځ کښې رحمت او مینه کوی مهربانی او کرم کوی او تګ راتګ ساتی. اوښې او غوا او چیلئی هم د دې رحمت نه برخه اخستې ده او خپلو بچو سره مینه کوی او په سمندرکښې دوه ماران یو بل سره یو ځای اوسیږی. د قیامت په ورځ به الله ﷻ دا ټول رحمتونه او خپل خان سره ساتلی شوی رحمتونه ټول په ګناهګارانو بندیګانو خرچ کوی. په دې مضمون کښې ډیر احادیث راغلی دی. د حضرت معاذ بن جبل ﷺ نه روایت دې چه آیا تاسو ته معلومه ده چه په بندیګانو د الله ﷻ څه حق دې؟ حق دا دې چه هم د هغه عبادت اوکړی او څوك د هغه شریك جوړ نه کړی. بیائې تپوس اوکړو چه د بندیګانو په الله ﷻ باندې څه حق دې؟ بیا ئې وئیل دا حق دې

(١) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی (ویحذرکم الله نفسه) :٧٤٠٤، صحیح مسلم: ٢٧٥١، احمد:٢/٣١٣.

چه الله ﷻ هغوی معاف کړي او په عذاب کښې راګیر نه کړي.(۱)

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَكَذٰلِكَ | نُفَصِّلُ | الْاٰيٰتِ | وَلِتَسْتَبِيْنَ |
| او هم دارنګې | مونږ په تفصیل سره بیانوو | آیتونه | او دپاره ددې چې ښکاره شي |

او مونږ دغه شان مونږ په تفصیل سره ننښې ښایو او د دې دپاره چې (د نیکانو خلقو نه)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۵۵﴾ | قُلْ | اِنِّيْ | نُهِيْتُ | اَنْ اَعْبُدَ |
| لاره دمجرمانو (دتابعدارونه) | او وایه | چې بیشکه زه | منع کړې شوې یم | چې بندګي او کړم |

دمجرمانو لار بالکل ښکاره شي | ته ورته او وایه چې بیشکه زه د هغه بتانو د عبادت نه منع کړې شوې یم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | تَدْعُوْنَ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | قُلْ | لَآ اَتَّبِعُ | اَهْوَآءَكُمْ |
| دهغوئ | چې تاسو ئې رابلئ | ماسوا دالله نه | او وایه | چې نۀ کوم زۀ تابعداري | د خواهشاتو ستاسو |

چې تاسوئې د الله نه سوا رابلئ | ..................ورته او وایه چې زه ستاسو د خواهشاتو تابعداري نه کوم

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَدْ ضَلَلْتُ | اِذًا | وَّمَآ اَنَا | مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ﴿۵۶﴾ |
| یقینا بې لارې به شم زۀ | په دغه وخت کښې | او نۀ به شم زۀ | د نیغې لارې موندونکونه |

که داسې مې او کړل نو ګمراه به شم | ................... او په سمه لار به پاتې نشم

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنِّيْ | عَلٰى بَيِّنَةٍ | مِّنْ رَّبِّيْ | وَكَذَّبْتُمْ بِهٖ |
| چې بیشکه زۀ | په ښکاره دلیل یم | د طرف درب خپل نه | او دروغ ګڼړلې دې تاسو هغه دلیل |

چې بیشکه زه د الله ﷻ د طرفنه په ښکاره دلیل باندې ولاړ یم | او تاسو هغې ته دروغ وایې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا عِنْدِيْ | مَا | تَسْتَعْجِلُوْنَ | بِهٖ | اِنِ الْحُكْمُ |
| نشته په اختیار زما کښې | هغه | چې تاسو تلوار کوئ | هغې ته | نۀ دې اختیار دفیصلې |

اوس د هغې (عذاب) اختیار زما په لاس کښې نه دې | چې د کوم راتلو ته تاسو تلوار کوئ | فیصله صرف

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اِلَّا لِلّٰهِ | يَقُصُّ | الْحَقَّ | وَهُوَ | خَيْرُ الْفٰصِلِيْنَ ﴿۵۷﴾ | قُلْ | لَّوْ اَنَّ |
| مګر الله لره دې | هغه بیانوي | حق | او هغه | بهترین فیصله کونکې دې | او وایه | که چرې بیشکه |

دالله ﷻ په لاس کښې ده | هغه حق خبرې بیانوي | او بهترین فیصله کونکې دې | ورته او وایه که چرې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عِنْدِيْ | مَا | تَسْتَعْجِلُوْنَ | بِهٖ | لَقُضِيَ | الْاَمْرُ بَيْنِيْ |
| وې په اختیار زما کښې | هغه څیز | چې تاسو تلوار کوئ | هغې ته | خامخا به شوې وه | فیصله په مینځ زما |

هغه عذاب زما په لاس کښې وې | چې د کوم راتلو ته تاسو تلوار کوئ | نو زما او ستاسو مینځ کښې به

(۱) صحیح بخاری کتاب التوحید باب ماجاء فی دعاء النبی ﷺ امته الی توحیدالله تبارک وتعالی :۷۳۷۳، صحیح مسلم: ۳۰، ترمذی : ۲۶۴۳، ابن ماجه: ۴۲۹۶.

وَبَيْنَكُمْ ۚ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالظّٰلِمِينَ (۵۸) وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ

په منځ ستاسو کښې | او الله | زيات عالم دي | په ظالمانو باندې | او دهغه سره دی | کنجياني د غيبو |

فيصله شوې وه | او الله ﷻ ته ظالمان ډير ښه معلوم دی | ...........او د غيبو کنجياني خو هغه سره دی

لَا يَعْلَمُهَآ إِلَّا هُوَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۚ

نه دی معلومې هغه | مگر | هغه ته | او پوهيږی هغه | په هغه څه | چی په وچه کښې | او په درياب کښې دی

دهغه نه بغير بل چاته نه دی معلومې | او د اوچې او لوندې ځيزونه ورته ښه معلوم دی |

وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمٰتِ الْأَرْضِ

او نه راغورزيږی | هيڅ يوه پاڼړه | مگر | هغه عالم وی په هغې | او نشته يوه دانه | په تيارو کښې | د زمکې

او دونې چې يوه پاڼړه هم راپريوځی | نو ددې علم هغه ذات سره وی | او د زمکې په تيرو کښې داسې دانه نشته

وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتٰبٍ مُّبِينٍ (۵۹)

او نشته لوند ځيز | او نه وچ ځيز | مگر | ليك دی په كتاب كښې | چی روښانه دې |

كه لونده وی او كه اوچه وی هر څه دهغه په پرانيسی كتاب كښې ليكلی شوی دی |

قوله تعالى:: وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْأٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِينَ سَبِيلُ الْمُجْرِمِينَ

**عذاب هم د الله ﷻ په خوښې سره نازليږی:** ارشاد دې چه څنګه وړاندې مونږ په دليلونو او ثبوتونو د رشداوهدايت وغيره طريقه واضحه کړه دغه شان هغه آياتو نه دکومو مخاطب چه محتاج دی په وضاحت سره بيانوی او ددې د پاره چه د مجرمانو لار کولاؤ مخې ته راشی. اې نبیﷺ! او وايه چه کومه وحی الله ﷻ زما طرف ته راليږلې ده هم په هغې باندې بصيرت لرونکې قائم يم او تاسو خو حق دروغ ګڼرلې.تاسو چه کوم عذاب د پاره تندی کوئی هغه زما د لاس خبره نه ده. حکم خو صرف د الله ﷻچليږی که هغه زر په تاسو عذاب راوستل اوغواړی نو زر به راشی او که هغه مهلت کول غواړی نو د خپل عظيم حکمت په وجه به تاسو ته مهلت درکړی اوهغه ته اختيار دې. په دې وجه اوفرمائيلې شو چه هغه حق طريقه اختياروی او هغه د حکمونو او قضا فيصله کولوکښې او د بنديګانوپه مينځ کښې حکم نافذ کولوکښې په حقه دې. ته ورته اووايه که زرعذاب راوستل زما په اختيارکښې وې نو چه تاسو د کوم عذاب حقدار ئې هغه به ما په تاسو ډير زر نازلولو او الله ﷻ خو د ظلم کونکونه ډير ښه خبر دې. که چرې دا اوونيلې شی چه په دې آيت کښې او هغه حديث کوم چه په بخاری او مسلم شريف نه ثابت دې په خپل مينځ کښې جمع او يو ځای کړې دې. يعنی هغه حديث کوم چه د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روايت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه يا رسول الله ﷺ د احد د ورځې نه به هم په تاسو سخته ورځ تيره شوې وی نو هغوی ﷺ اوفرمائيل اې عائشه ستاسو د دې نه سخت تکليف چه ماته راورسيدو هغه په يوم عقبه باندې رسيدلې دې کله چه ما ابن عبديااليل باندې خپل ځان پيش کړو نو هغه زما دعوت منظور نه کړو. زه ډير په خفګان روان شوم. مقام قرن ثعالب ته په رسيدو باندې زما حواس ټيك شو او ما سر اوچت کړو نو اومې کتل چه يوه اوريځ په ما باندې خوره ده او په هغې کښې حضرت جبرائيل ﷺ ښکاريدو او ماته وائي اې محمد ﷺ! ستا قوم چه تاته څه اوونيل الله ﷻاواوريدل. د غرونو ملائکه الله ﷻ تاسو ته راليږلې دې د پاره چه ته څه غواړې نو دې ته حکم کوه. د غرونو ملائکې هم آواز اوکړو او سلام ئې عرض کړو چه الله ﷻ زه تاسو له د دې د پاره راليږلې يم چه

ته حکم اوکړه نو دا دواړه غرونه به ستا په قوم باندې راوغورزوم. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زه امیدلرم چه الله ﷻ به د دې کافرانو د نسل نه داسې خلق هم راپیدا کړي چه مؤمنان به وي او هیڅ څیز به الله ﷻ سره شریك نه ګرځوي. (١) دا د مسلم شریف الفاظ دي چه فرښتې خپل عذاب وړاندې کړو نو حضور ﷺ دوی ته د مهلت ورکولو د پاره اوفرمائیل او په عذاب کښې تاخیر کولو خواهش اوکړو.
دې د پاره چه د هغوی د نسل نه مؤمنان پیدا شي.نو اوس دا شك پیدا کیږي چه په دې حدیث او د الله ﷻ په دې پورتنی قول کښې به تطابق څنګه پیدا کیږي. په مخکښنی قول کښې دي چه کوم عذاب تاسو غواړئ که زما په دې باندې قدرت وې نو زمونږ او ستاسو فیصله به هم په هغه وخت شوې وه او ما به هم هغه وخت په تاسو عذاب نازلولو او دلته د طاقت سره حضور ﷺ عذاب نه نازلوي.
دا شك داسې لرې کیدې شي چه آیت مبارك دلالت کوي په دې خبره باندې چه کوم عذاب هغوی طلب کوي نو په طلب کولوباندې عذاب واقع کیږي او په حدیث کښې دا ذکرنه دي چه حضور ﷺ عذاب طلب کړې وو بلکه فرښتې د خپل طرف نه د عذاب پیش کش کړې ووچه که ته غواړې نو چه دا په مکه کښې کوم دوه غرونه دي او جنوباً شمالاً ئې دوی راګیرکړې دي په دوی باندې راوّ غورزو ولې حضور ﷺ د نرمئی او تاخیرنه د کار اخستلو خواهش ښکاره کړو.
بیادالله ﷻ ارشاددې چه د غیبوخبرې د الله ﷻ نه سوا بل څوك نه پیژني. نبی کریم ﷺ فرمائیلی د غیبوپنځه خبرې دي او هغه دا چه اول د قیامت وخت د الله ﷻ نه سوا بل چاته نه دې معلوم. دویم د باران وریدل، دریم دا چه حمل کښې هلك دې که جینئی، څلورم دا چه صبا به کوم سړې څه کوي، پنځم دا چه یو سړې ته دا معلومه نه ده چه هغه به په کوم ځائ کښې مري. الله ﷻ د دې خبرونه خبردار دې.(٢) دحضرت عمر رضی الله عنه په حدیث کښې دي چه حضرت جبرائیل علیه السلام یو ځل د اعرابی په شکل کښې د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. د ایمان احسان او اسلام باره کښې سوالونه اوکړل نو نبی کریم ﷺ د جواب په ضمن کښې فرمائیلی وو چه د پنځو څیزونوعلم د الله ﷻ نه سوا بل چاته نشته. بیا ئې آیت تلاوت کړو ﴿ إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴾ اوبل قول ﴿ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ﴾ یعنی ددې علم کریم جمیع موجودات بری او بحری باندې محیط دې. د زمکې او آسمان یوه ذره د هغه نه پټه نه ده.(٣) صرصری څه ښه وینا کړې ده:﴿ فلایخفی علیه الذر امّا تراءی للنواظر اوتواری ﴾
**ترجمه:-** یعنی د الله ﷻ نه یوه ذره هم پټه نه ده، که کتونکوته یو څیز کولاؤ وي که پټ.
د الله ﷻ فرمان ﴿ وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا ﴾ چه کله هغه د جماداتو پورې حرکت پیژني نو بیا به د حیواناتو خاصکر د پیریانو او انسانانو حرکتونه او عملونه به څنګه نه پیژني او چه هغه مکلف هم دي. لکه چه فرمائي ﴿ يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ ﴾ په اوچه اولمده هره یوه ونه باندې یوه فرښته موکل ده چه د پاڼو پریوتو پورې یاداشات ساتي. په لوح محفوظ کتاب کښې د هرې لمدې او اوچې، د هرې نیغې او کږې خبرې او د زمکې په تیارو کښې د یوې یوې ذرې پورې لیکلی دي. په هره ونه بلکه د ستنې په سوم باندې هم یوه فرښته مقرر ده یعنی لیکی چه کله دا تازه شوه او کله اوچه شوه. حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چه الله ﷻ دوات پیداکړواو الواح یعنی تختئی ئې پیداکړې او په

(١)صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب اذا قال احدکم آمین والملائکة فی السماء فوافقت ...:۳۲۳۱، صحیح مسلم: ۱۷۹۵.
(٢)صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الانعام باب (وعنده مفاتح الغیب لا یعلمها الا هو) السنن الکبری:۷۷۲۸.
(٣)صحیح بخاری کتاب الایمان باب سؤال جبریل النبی ﷺ عن الایمان والاسلام....۵۰، صحیح مسلم : ۹، ترمذی : ۲۶۱۰.

دنیاکښې کیدونکې ټول امور ئې درج کړل چه څنګه مخلوق به پیدا کیږی، رزق به ورته حلال ملاویږی
که حرام، عمل به ئې نیك وی یا بد. د حضرت عمرو بن العاص ﷺ نه روایت دې چه د دری زمکې
لاندې او د ځلورمې د پاڅه پیریانو ښکاره کیدل غوښتل خو د هغې نور او رڼړا په یوه زاویه باندې هم
تاته نه شي ښکاره کیدې. دا د الله ﷻ خواتیم دی او په هرخاتم باندې یوه فرښته ده. الله ﷻ هره ورځ
یوې فرښتې ته فرمانی او رالیږی چه کوم خاتم تاته حواله دې د هغې حفاظت کوه.

وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ

اوهغه | هغه ذات دې چې اخلي روحونه ستاسو | په شپه کښې | اوعالم دې | په هغه | چې کوئ تاسو | په ورځ کښې | بیا

اوالله ﷻ هغه ذات دې چې دشپې ستاسوروحونه قبض کوی | اوتاسو د ورځې چې تاسو څه کوئ د هغه په علم کښې دی | بیا

يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى ۚ ثُمَّ اِلَيْهِ

واپس رالیږی تاسو | په هغې کښې | دپاره د دې چې پوره شي | نیټه | مقرره | بیا | خاص هغه ته

تاسو (سحر) د دنیاکاروبار دپاره راپورته کوی | دې دپاره چې مقرره نیټه پوره شي | .............. بیا

مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۶۰﴾

واپسی ده ستاسو | بیا | به خبرو درکړی تاسو ته | په هغه څه | چې وئ تاسو | چې کول به مو |

تاسوټول به هغه ته واپس کیږئ | اوتاسو به د هغه کارونو نه خبر کړی چې کوم تاسو کړی وی

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ؕ

اوهغه | پوره قدرت لری | دپاسه | دبندګانو خپلو | او رالیږی هغه | په تاسو باندې | ساتونکی فرشتې

اوهغه په خپلو بندګانو باندې کامل قدرت لری | اوستاسو د نګرانئ دپاره نګرانې فرشتې رالیږی

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ

تردې پورې | کله چې | راشی | یوتاسو ته | مرګ | نو اخلی روح د هغه | فرشتې زمونږه | اوهغوئ

تردې چې په تاسو کښې دچادمرګ وخت راشی | زمونږ رالیږلې (فرشتې) د هغه روح قبض کوی | اوهغوئ

لَا يُفَرِّطُوْنَ ﴿۶۱﴾ ثُمَّ رُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ؕ اَلَا

کمې نه کوی په کارخپل کښې | بیا | واپس بوتللې کیږی | الله ته | چې کارساز دهغوئ دې | حق | خبردار شئ

(پخپل کار کښې) هیڅ قسم کوتاهی نه کوی | بیا به داټول الله واپس شي | اوهغه په حقه ددوی مولا دې خبرشئ

لَهُ الْحُكْمُ ۟ وَهُوَ اَسْرَعُ الْحٰسِبِيْنَ ﴿۶۲﴾

هغه لره | اختیار دفیصلې دې | اوهغه | ډیرتیز دې | دټولو حساب کونکو نه |

چې حکم بس صرف دهغه ذات چلیږی | اوهغه په حساب اخستو کښې ډیرتیزدې |

**قوله تعالي:** وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى

**دَ وړوکی مرګ اولوئې مرګ بیان:-** الله ﷻ فرمائی چه هغه خپلو بندګانوته د شپې د اوده کیدو په وخت
مرګ ورکوی او دا وړوکې مرګ دې لکه چه فرمانی کله چه الله ﷻ اوفرمائیل اې عیسی ﷺ زه تاته

مرګ درکونکې یم او خپل طرف ته تا اوچتونکې یم او فرمائي چه الله ﷻ د مرګ په وخت کښې نفسونوته مرګ ورکوی او څوك چه د خوب په حالت کښې نه مری هغه داسې نفسونه وی چه په هغوی راتلونکې مرګ بندولې شی او په هغوی باندې دونم مرګ راالیږلې شی یعنی خوب او دا د مقرر مرګ پورې وی. په دې آیاتونوکښې ئې د دوو مرګونو ذکر کړې دې یو لونې مرګ او دونم وړوکې مرګ. بیا ارشاد دې چه هغه د شپې په وخت کښې تاسو ته مرګ درکوی تاسو د روزګار نه منع شنې او د ورځې په خپل روزګارکښې لګیا ئې او هغه ستاسو د ټولې ورځې اعمال پیژنې. دا یوه معترضه جمله ده چه په دې خبره باندې دلالت کوی چه د الله ﷻ علم په مخلوق باندې څنګه محیط دې. د شپې د آرام په حالت کښې او د ورځې د حرکاتو په حالت کښې. لکه چه فرمائي ﴿ سَوَآءٌ مِّنكُم مَّنْ أَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَن جَهَرَ بِهِۦ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۭ بِالَّيْلِ وَسَارِبٌۢ بِالنَّهَارِ ﴾ یعنی د پټو او ښکاره د شپې یا د ورځې د ټولو امورو هغه ته علم دې. او وئی فرمائیل ﴿وَمِن رَّحْمَتِهِۦ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوا۟ فِيهِ وَلِتَبْتَغُوا۟ مِن فَضْلِهِۦ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ یعنی دا د الله ﷻ رحمت دې چه ستاسو دپاره ئې شپه ورځ جوړه کړه، دې د پاره چه د شپې آرام اوکړئ او په ورځ کښې ګټه او خوراك اوکړئ. او وئی فرمائیل چه مونږ شپه ستاسو د پاره لباس جوړه کړه او ورځ د معاش دطلب کولو وخت. د دې د پاره په مذکوره آیت کښې فرمائي چه د شپې مو هغه مړه کوی او د ورځې چه کوم اعمال تاسو کړی وی په هغې باندې پوهیږی. بیا د دې ظاهری مرګ نه پس د ورځې بیا تاسو ژوندی ګرځیدونکی راپاڅوی. حضور ﷺ فرمائي چه هرانسان سره یوه فرشته وی کله چه هغه اوده شی نو د هغه نفس اخلی او الله ﷻ ته ئې اوړی. که الله ﷻ اوفرمائي چه بند ئې کړه نو بندوی ګنی نو بیا ئې د هغه په بدن کښې واپس کوی. ﴿وَهُوَ الَّذِى يَتَوَفَّىٰكُم بِالَّيْلِ﴾ همدغه مطلب دې. الله ﷻ فرمائي ﴿ لِيُقْضَىٰٓ أَجَلٌ مُّسَمًّى ﴾ یعنی د هر سړی مقرر وخت پوره کیدو باندې د هغه روح الله ﷻ ته رسولې شی. الله ﷻ هغه ته ښائي چه ته څه عمل کوې او بیا د هغې بدله ورکوی که خیر وی نو د خیر بدله او بد وی نو د بدو بدله. د الله ﷻ قول دې ﴿وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِۦ﴾ یعنی هغه په هر څیز باندې غالب دې او هرڅیز د هغه طرف ته ټیټ دې. هغه په انسان باندې ملائکه مقرر کړې ده چه د هغه هر وخت حفاظت کوی. لکه چه فرمائي د انسان وړاندې روستو فرښتې وی چه د الله ﷻ په حکم سره د هغه حفاظت کوی. لکه چه فرمائي ﴿وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَٰفِظِينَ﴾ او وئی فرمائیل ﴿ إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ ﴾ او بیا فرمائي چه کله په تاسو کښې چاته مرګ راشي نو زمونږ ملائکې د هغه روح قبض کوی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه د ملك الموت ډیرې فرښتې امدادی دی چه د بدن نه روح راکاږی او کله هغه روح حلق ته راورسی نو ملك الموت ئې قبض کړی او د دې ذکر د تفسیر په وخت کښې په آیت ﴿يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ﴾ کښې به وړاندې راشی. بیائې اوفرمائیل ﴿وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ﴾ یعنی هغه روح دمړکیدونکی په حفاظت کښې هیڅ کمې نه کوی. بیا دې هلته رسوی چرته چه د الله ﷻ مرضی وی. که هغه نیك وی نو په علیین کښې ځاې ورکوی اوکه ګناهګار وی نو په سجین کښې چه د دوزخ طبقه ده. د الله ﷻ پناه. بیا دا ملائکې دا روحونه د خپل حق مولا طرف ته ګرځوی.

**د نیک او بدروح انجام:-** دلته مونږ یوحدیث ذکرکوو کوم چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کړې دې چه حضرت نبی اکرم ﷺ فرمائیلی دی چه مړکیدونکی له ملائکه راځی نوکه هغه سړې نیك وی نو ورته وائی چه راشه دې پاکه نفسه ته په پاك بدن کښې وې د دنیا نه کامیاب راشه. تاته د جنت دروح او ایمان زیرې دې، الله ﷻ ستانه ناراضه نه دې. کله چه دا بار بار وائی نو روح د بدن نه راوځی هغه دا واخلی او آسمان ته خیژی. د آسمان دروازه د هغه د پاره کولاویږی. تپوس کیږی څوك دې؟ وئیلې کیږی چه د فلانکی روح دې نو د آسمان فرښتې وائی چه پخیر راغلې اې پاکه روحه ته پاك بدن کښې وې

تاته پخیر راغلي او هرکلي دې. تر دې پورې چه هغوی دغه روح هغه آسمان ته یوسی کوم ځائ چه الله پاك دې. اوکه هغه روح د بدکار روح وی نو ورته وائی اې په خبیث بدن کښې خبیث روحه راوځه خوار او ذلیل. تاته د حمیم او غساق زیرې دې او ستا د پاره د دغه وینو زوو او کرمو اوبو په شان نور هم عذابونه دی.دبار بارووینانه پس چه کله هغه راوځي نوهغه واخلی اوآسمان ته خیژی نو دروازه کولاویږی او تپوس کیږی چه څوك دې؟ونیلي شي چه فلانکې. نوفرښتي وائی لعنت دې وی په تا اې خبیث روحه! ستا د پاره به د آسمان دروازه نه کولاویږی بیا هغه روح د ځپل قبر طرف ته واپس کولې شي.(١)
دا حدیث غریب دې او احتمال دا دی چه دا مراد وی ﴿ثُمَّ رُدُّوٓا﴾ یعنی ټول مخلوق به د قیامت په ورځ د الله طرف ته مخ کړې شي او الله ﷻ به په انصاف سره حکم اوکړی لکه چه فرمائی ﴿قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ۝ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَاتِ يَوْمٍ مَعْلُومٍ﴾ اوبیا فرمائی ﴿وَحَشَرْنَاهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ أَحَدًا﴾ یعنی اولین او آخرین به ټول د قیامت په ورځ راجمع کولې شي. مونږ به ټول راوچتوو څوك به هم نه پریږدو. او الله ﷻ په چا هم ظلم نه کوی. هغه د حق خاوند دې، حکم صرف د هغه چلیږی او هغه به ډیر زر د ټولوحساب اخلي.

قُلْ مَنْ يُنَجِّيكُمْ
اووایه اڅوك | ابچ کوی تاسو
او ورته اووایه څوك دې

مِّنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ تَدْعُونَهٗ تَضَرُّعًا
دتیارو | دوچې نه | اودسمندرنه|چی دعاګانې غواړئ تاسودهغه نه| په عاجزئ سره |
چې تاسو د اوچې اوسمندر په تیرو کښې دعذاب نه بچ کوی | چې تاسوئې په عاجزئ

وَّخُفْيَةً لَئِنْ أَنْجٰنَا مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ۝
اوپه پټه سره|که چرې ابچ کړومونږه هغه|ددې مصیبت نه|نوخامخا به شومونږه|دشکرایستونکو نه
اوپټه رابلئ| دا وائي که مونږ ته ئې ددې عذاب نه نجات راکړونو مونږ به ضرور د شکرګزارخنی شوا

قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ مِّنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ
اووایه چې الله| بچ کوی تاسوا ددغه مصیبت نه | اودهرتکلیف نه | بیاهم تاسویئ |
ورته اووایه چې صرف الله ﷻ مو ددې عذابونواومصیبتونونه بچ کوی | .........اوبیا هم

أَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ۝ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰى أَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ
چې شریکان جوړوئ |اووایه | هغه | قادر دې | په دې:| چې راولیږی | په تاسو باندې |
تاسو هغه لره شریکان جوړوئ | ورته اووایه چې هغه دا قدرت لری چې په تاسو د پورته نه .........

عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ أَوْ يَلْبِسَكُمْ
عذاب | دپاسه ستاسونه | یا | لاندې | دخپوستاسونه | یا تقسیم کړی تاسو
عذاب نازل کړی | یا ستاسو د خپو لاندې نه درته عذاب راوباسی | یاتاسو ډلې ډلې کړی

(١) ابن ماجه کتاب الزهد ذکر الموت والاستعداد له: ٤٢٦٢؛ وسنده صحیح ، احمد: ٣٦٥/٢، السنن الکبری للنسائی: ١١٤٤٢، الشریعة للآجری : ص/٣٩٢، الایمان لابن منده: ١٠٦٨.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شِيَعًا | وَّيُذِيْقَ | بَعْضَكُمْ | بَأْسَ بَعْضٍ ط | اُنْظُرْ | كَيْفَ |
| په ډلو ډلو کښي | اواوڅکوي | بعضو تاسونه | طاقت دبعضو | اوګوره | څنګه |
| او یوې ډلې ته دبلې ډلې د طاقت زور اوښائی | | | ..................اوګوره مونږ څنګه | | |
| نُصَرِّفُ | الْاٰيٰتِ | لَعَلَّهُمْ | يَفْقَهُوْنَ ۝ | | |
| باربارپیش کوؤمونږه | نښې | ادپاره ددې چې هغوئ | پوهه شي په حقیقت | | |
| په جداجدا انداز خپل آیاتونه بیانوؤ | دې دپاره چې دوئ پوهه شي | ............ | | | |

قوله تعالی:: قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ مِّنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ اَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ۝

**مشرکانو به په سخت وخت کښې صرف الله ﷻ رابللو:-** الله ﷻ په خپلو بندیګانو باندې د احسان کولو ذکر فرمائی چه مونږ د اوچې او لمدې د تیارو د پریشان حالوته څنګه خلاصي ورکړو. هر کله چه د اوچې سختئی او د سمندرغولئی کښې راګیرشوی وو کوم ځائ چه مخالف هواګانې رواني وې او هغه وخت هغوی د دعا د پاره صرف یو الله ﷻ خاص کړې وو. لکه چه په یو مقام کښې فرمائیلی دی چه کله تاسو ته په سمندرکښې په یومقام کښې سختئی پیښیږی نو هغه وخت دوی ټول شریکان هیروی یو بت ورته نه یادیږی او که یادیږی نو صرف یو الله ﷻ رب العزت. د الله ﷻ قول دې چه ستاسو رب خو هم هغه یوالله دې چه په اوچه اولمده کښې تاسو ګرځوی او چه کله جهازونه په ښائسته او برابره هوا سره چلیږی نو ډیر خوشحاله اوسیږئی او چه کله مخالف هوا چلیږی او د هر طرف نه چپې تکرې ورکوی او یقین کیږی چه اوس خو په مرګ کښې راګیرشو نو ډیرپه اخلاص سره الله ﷻ رابلی چه اې الله ﷻ که د دې مصیبت نه تا مونږ ته خلاصي راکړه نو مونږ به ډیر شکر کونکی بندیګان جوړ شو. د الله ﷻ ارشاد دې چه د اوچې او لمدې په تیاروکښې تاسو ته نیغه لار څوك ښائی او ښکلې هواګانې د خپل رحمت نه څوك رالیږی. آیا الله ﷻ سره څوك بل الله ﷻ هم شته کوم چه تاسو شریك جوړکړی دی. او دا آیت مبارك چه د تیارو نه څوك تاسو ته خلاصي درکوی کوم چه تاسو پټ او ښکاره رابلئی چه که ته مونږ ته خلاصي راکړې نو مونږ به شکر کونکی جوړشو. اووایه چه هم الله ﷻ تاسو ته د هر درد او مصیبت نه خلاصي درکوی ولې تاسو بیا هم د خوشحالئی په وخت کښې بتان د هغه شریکان جوړونی. الله ﷻ په دې قادردې چه په تاسو عذاب راؤلیږی. لکه چه په سورة سبحان کښې دی هم ستاسو رب جهازونه په سمندرکښې چلوی چه تاسو دولت اوګټئی هغه په تاسو باندې رحیم او کریم دې. اوچه کله تاسو ته څه مصیبت دراورسی نو خپل ټول بتان هیر کړئی او هم الله ﷻ درته یاد شی. او چه کله د سمندر د خطرونه مو رابهرکړی او په اوچه مو اودروی نو د الله ﷻ نه ډډه کونې. انسان ډیر ناشکره دې. په زمکه باندې راتلونه پس ولې تاسو بې شوئې. که هغه غواړی نو تاسو په اوبوکښې د ډوبولو په شان په زمکه کښې خښولې نه شی. یا په تاسو باندې د آسمان نه کاڼړی راؤروی او بیا ستاسو هیڅ قسم امدادی نه وی. بیا هغه په تاسو باندې د سمندر سفر اوکړی او په مخالف هوا باندې تاسو غرقولې شی. الله ﷻ قادر دې که اوغواړی نو ستاسو د سر د پاځه یا ستاسو د پښولاندې په تاسو عذاب راؤلیږی. دا مشرکانو ته خطاب وو. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا خبردارې د امت محمدیه ﷺ دپاره دی.دلته مونږ یوڅو احادیث ذکر کوو چه هم دې سره متعلق دی یقین هم په الله ﷻ باندې دې. امام بخاری رحمه الله هم د دې پورتنی آیت باره کښې فرمائی ﴿يَلْبِسَكُمْ﴾ یعنی تاسو ډلې جوړیدو باندې په خپل مینځ کښې ډله بازی اوکړه او یو بل سره په جنګ شوئې. یعنی که الله ﷻ اوغواړی نو په داسې عذاب کښې هم تاسو اخته کولې شی.

**د نبی د امت دپاره د رحمت دعاګانې :-** د حضرت جابر بن عبدالله ﷺ نه روايت دې چه کله دا ايت نازل شو ﴿عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ﴾ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿اعوذبوجهك او تحت ارجلكم﴾ او په دې وخت کښې ئې هم اوفرمائيل ﴿اعوذبوجهك﴾ يعنی اې الله ستا پناه او چه کله ﴿أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا﴾ واورېدل نو ونی فرمائيل چه دا نسبتًا آسان دی (۱) دحضرت جابر ﷺ نه روايت دې چه کله دا آيت ﴿قُلْ هُوَ الْقَادِرُ﴾ نازل نو هغوی ﷺ اوفرمائيل ﴿اعوذبالله من ذلك﴾ بيا ﴿أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ﴾ اوريدو سره هم اوفرمائيل ﴿اعوذبالله﴾ بيا ﴿أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا﴾ اوريدوسره اوفرمائيل دا ډير آسان دې. که په دې باندې هم هغوی پناه غوښتله نو غوښتې شوه.
د حضرت سعدبن ابی وقاص ﷺ نه هم روايت دې چه د دې آيت په اوريدوسره حضور ﷺ فرمائيلې وو چه دا خبره کيږی او تراوسه پورې شوې نه ده. (۲)
يوحديث دحضرت سعدبن ابی وقاص ﷺ نه روايت دې چه مونږ نبی اکرم ﷺ سره روان شو او مسجد بنی معاويه ته راغلو، هلته هغوی ﷺ دوه رکعته اوکړل. مونږ هم حضور ﷺ سره مونځ اوکړو. بيا هغوی ﷺ تر ډير وخته پورې الله رب العزت سره په مناجات کښې مشغول وو بيائې اوفرمائيل ما د الله ﷺ نه د دريوخبرو درخواست کړې وو چه زما امت دې د فرعونيانو په شان غرقيدو سره تباه نه شی او د قحط نه دې هلاك نه شی اود هغوی په ډلوکښې دې جنګ نه وی. نواولننی دوه خبرې خو منظور شوې او دريمه خبره نامنظوره کړې شوه. (۳)
جابر ﷺ بن عتيك نه روايت دې چه مونږ له حضرت عبدالله بن عمر ﷺ مقام بنی معاويه ته راغلو چه د انصارو يو کلې دې او وئی وئيل چه تاسو ته پته ده چه ستاسو په دې جمات کښې نبی اکرم ﷺ کوم ځائ مونځ ادا کړې وو؟ما ونيل چه او نو يوطرف ته مې اشاره اوکړه. بيائې تپوس اوکړو چه هلته هغوی ﷺ د کومو دريو خبرو دعا کړې وه. ما وئيل چه او هغوی ﷺ دعا کړې وه چه زما په امت باندې څوك دښمن غالب نه وی او قحط دې هغوی هلاك نه کړی نو دا دواړه خبرې منظورکړې شوې. اودا دعا ئې هم کړې وه چه د دوی دې په خپل مينځ کښې جنګ نه وی نو دا دعا قبوله نه شوه. نوحضرت عبدالله بن عمر ﷺ اوفرمائيل چه تاصحيح اووئيل. د قيامته پورې به په مسلمانانوکښې جنګونه وی. (۴) دا حديث په صحاح سته کښې درج نه دې ليکن د دې اسناد جيد او قوی دی.
د حضرت معاذبن جبل ﷺ نه روايت دې چه زه رسول الله ﷺ له راغلم نو راته اووئيلې شو چه هغوی ﷺ اوس لاړل. چه چرته به تلم هلته به راته دا جواب کيدو چه اوس د دې ځايه لاړو. تردې چه ما حضور ﷺ په يوځائ کښې په مونځ کولو اوليدو. زه هم هغوی ﷺ سره مونځ کولو ته اودريدم. هغوی ﷺ ډير اوږد مونځ اوکړو. دمانځه نه پس ماتپوس اوکړويا رسول الله ﷺ! تاسو ډير اوږد مونځ اوکړو هغوی اوفرمائيل چه ما صلوة خوف اورغبت اداکولو. بياحضور ﷺ هغه ته دخپلودريودعاګانوذکر اوفرمائيلو. (۵)
د خباب بن ارت ﷺ د مولی بنی زهره نه روايت دې چه په بدرکښې نبی اکرم ﷺ سره حاضروو. وانی چه ما يوخل ټوله شپه حضور ﷺ سره مونځ کولو، نو چه کله هغوی مونځ اوکړو او سلام ئې اوګرځولو نو ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! نن خو تاسو داسې مونځ اوکړو چه ما کله هم نه وو ليدلې. هغوی ﷺ

---

(۱) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الانعام باب ( قول هوالقادر على ان يبعث عليكم عذابا من فوقكم.....): ۴۶۲۸، ترمذی: ۳۰۶۵، مسند ابی يعلی: ۱۹۸۲، ابن حبان: ۷۲۲۰.
(۲) ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الانعام: ۳۰۶۶،
(۳) صحيح مسلم کتاب الفتن باب هلاک هذه الامة بعضهم ببعض: ۲۸۹۰، احمد:۱/۱۷۵، مسندابی يعلی: ۷۳۴، ابن حبان: ۷۲۳۶.
(۴) احمد: ۵/۴۴۵، المؤطا امام مالک:۱/۲۱۶، وهو حديث صحيح، المعجم الکبير: ۱۷۸۱، مجمع الزوائد: ۷/۲۲۱.
(۵) ابن ماجه کتاب الفتن مايکون من الفتن: ۳۹۵۱، وهو صحيح، احمد:۵/۲۴۰، ابن خزيمه: ۱۲۱۸.

اوفرمائیل چه او داد امید او رجا مونځ وو د کوم نه پس چه ما د الله ﷻ نه د دریو خبرو درخواست کړې وودې نه پس پوره حدیث ذکردي.(۱)داپه صحاح سته کښې دنسائی په روایت کښې دي. ابو مالک رحمه الله فرمائی چه ما هغه ته اوویل اې نافع بن خالد خزاعی! چه دا حدیث تا د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه پخپله اوریدلې دې؟ نوهغه اوونیل چه او ما د هغه خلقو نه اوریدلې دې چا چه د حضور ﷺ د ژبې مبارکې نه پخپله اوریدلې وو.

د شداد بن اوس رضی الله عنه نه روایت دې حضور ﷺ فرمائیل چه زما د پاره د زمکې مشرق او مغرب رالنډکړې شو او دا چه زما امت به د دې ټولو مالک شی. او ماته دواړه خزانې راکړې شوی دی ، سپینه خزانه او سره خزانه هم. او ما دا هم سوال کړې وو چه اې الله! دې سره دې زما امت د قحط نه نه مری او نه دې په هغوی باندې څوك دښمن غالب وی چه ټول هلاك کړی او په هغوی کښې دې ګروپ بندی نه وی چه یو بل سره جنګ کوی. نو الله ﷻ اوفرمائیل اې محمد ﷺ! ما چه کوم تقدیر قائم کړې دې هغه خو به کیږی. ما ستا دواړه خبرې خو منظورکړې خو ستا امت کښې به بعضې، بعضو لره هلاکوی او یا به ئې قید کوی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ماته په خپل امت باندې څه ویره ده نو هغه د ګمراه امامانو او سردارانوده. کله چه یو خل زما په امت کښې توره روانه شوه نو بیا به نه اودریږی او تر قیامته پورې به د جنګ جګړو سلسله قائمه وی.(۲)

نافع بن خالدخزاعی رحمه الله دخپل پلار نه روایت کړیدې چه د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو نه وو او د بیعت رضوان تحت الشجر نه وو چه یوه ورځ نبی اکرم ﷺ مونځ اوکړو. خلق د حضور ﷺ نه چاپیره شوی وو. هغوی ﷺ لنډ مونځ اوکړو خو رکوع او سجده ئې کامل اوکړه او چه کله ئې جلسه اوکړه نو جلسه ئې ډیره اوږده وه تردې چه په مونږ کښې بعضې بعضو ته اشاره اوکړه چه کیدې شی په حضور ﷺ باندې وحی نازلیږی. حضرت ﷺ اوفرمائیل چه نه، ما صلوة رغبت او رهبت لوستلو. بیاد دې دریواړو خبرو پوره حدیث درج دې. چه هغوی دا حدیث واؤرولو نو ما اوونیل چه آیا ستا پلار د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دې؟ نو هغه اوونیل او د حضور ﷺ د ژبې مبارکې نه ئې اوریدلې دې او د خپلو دې لسو ګوتو برابر لس خل.(۳)

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیل چه ما د الله ﷻ رب العزت نه دعاکړې وه چه زما امت د څلورو څیزونو نه لرې اوساته. د دوو خبرو نه الله ﷻ زما امت بچ کړو او د دوو نه ئې بچ نه کړو. ما دعا کړې وه چه زما په امت دې د آسمان نه کاڼې راونوریږی او د اهل فرعون په شان دې په غرقیدو باندې نه هلاکیږی. په هغوی کښې دې ډله بازی نه وی او هغوی دې یوبل سره جنګ نه کوی نو الله ﷻ د کاڼو وریدو او غرقیدونه محفوظ ساتلو دعا قبوله کړه خو په خپل مینځ کښې ډله بازی او فرقې جوړیدل او جنګ جګړې باقی پاتې شوې.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه کله دا آیت نازل شو ﴿قُلْ هُوَ الْقَادِرُ﴾ نو نبی اکرم ﷺ پاڅیدو، اودس ئې اوکړو او دعا ئې اوغوښتله چه اې الله! زما په امت باندې د پورته او ښکته نه عذاب مه نازلوه او په هغوی کښې ډله بازئ او جنګ دې نه وی. جبرائیل علیه السلام راغلو او وئې وئیل اې محمد ﷺ! الله ﷻ ستا امت د آسمان نه د عذاب نازلیدلو اود ښکته نه د عذاب راخوتکیدلو نه محفوظ اوساتلو.

(۱) ترمذی : کتب الفتن باب ماجاء فی سؤال النبی ﷺ ثلاثا امته : ۲۱۷۵، وسنده صحیح . نسائی :۱۶۳۹.
(۲) احمد: ۴/۱۲۳، وهو حدیث صحیح مسندالبزار:۳۲۹۱.
(۳) المعجم الکبیر:۴۱۱۴، وهوحدیث حسن ، مسندالبزار: ۳۲۸۹، مجمع الزوائد:۷/۲۲۳.

د دې نه پس ډېر احاديث د دې په شان اود دې مضمون درج دی چه د هغې باربار ترجمه او تفسير د لوستونکی د پاره غيرضروری دی.
د آسمانی عذاب نه کانړی وريدل مراد دی اود پښولاندې د عذاب نه په زمکه کښې خښيدل مراددی. دا څلور څيزونه وو چه په هغې کښې دوه د نبی اکرم ﷺ د وفات نه پنځه ويشت کاله پس ښکاره کيدل شروع شويعنی په خپل مينځ کښې د رائې اختلاف او ډله بازی او د مسلمانانو په دوو ډلو کښې جنګ جګړه. د رجم او خسف نه امت محمديه ﷺ محفوظ او په امن کښې اوساتلې شو.
د دې آيت باره کښې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په جمات کښې په منبر د پاڅه په چغوچغو فرمائيل چه اې خلقو په تاسو د الله ﷻ آيت نازل شوې دې که د آسمان نه عذاب راغلو نو څوك به هم نه بچ کيږی. او که د پښو د لاندې عذاب راغلو نو تاسو به په زمکه کښې ورخښ کړې شئ او هلاك به شئ که په ډلوکښې تقسيم شوئې اوخپل مينځ کښې مو جنګ شروع شو نو دا به د ټولو نه خرابه خبره وی.
حضرت ابن عباس رضی الله عنه به فرمائيل چه په دې آيت کښې ﴿عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ﴾ نه خراب پيشوا مراد دی او ﴿تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ﴾ نه خراب خادمان مراد دی يا دا چه مالداران او غريبانان مراد دی.
ابن جرير رحمه الله فرمائی چه دا قول يوه توجيه لري خو اولنې قول اظهر او قوی دې. ابن جرير رحمه الله فرمائی چه د دې د صحت ګواهی د الله ﷻ دا قول ورکوی ﴿ أَأَمِنتُم مَّن فِي السَّمَاءِ آيا تاسو د دې نه محفوظ ئې چه الله ﷻ تاسو په زمکه کښې ورننه باسی او هغه راوچت شی او راوخوټيکيږی يا د دې خبرې نه بچ يئی چه د نورو قومونو په شان د آسمان نه کانړی راوريږی. ډير زر به تاسو پوهه شئ چه زما انديښنه او فرياد څومره صحيح وو. ([1]) او په حديث کښې دی چه دا د آسمان نه کانړی وريدل په زمکه کښې ورخښيدل او د شکلو ورانيدل دا ټول به په دې امت کښې وی او د قيامت د نښونه دی.([2]) د قيامت نه وړاندې به د دې آياتونو ظهور کيږی او ان شاء الله د دې ذکر به په خپله موقع راځی.
﴿أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا﴾ نه مرادمختلف فرقې دی.حضور ﷺ فرمائيلی دی چه زما امت به په درې اويا ډلوکښې تقسيميږی. د يوې فرقې نه بغير به نور ټولې د اُور او دوزخ وی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه په بعضو باندې به د بعضو قتل عذاب سره مسلط کړې شی. د الله ﷻ ارشاد دې ﴿انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ﴾ ګورئې چه مونږ څنګه په وضاحت سره او په تفسير سره باربار بيان کوو دې د پاره چه تاسو د الله ﷻ په آياتونو او دليلونوباندې غوراوکړئی اوپوهه شئی. زيدبن اسلم فرمائی چه کله﴿هُوَ الْقَادِرُ﴾ والا آيت نازل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زما نه پس کافران کيږئی مه چه په خپل مينځ کښې توری راواخلئی اود يوبل څټونه پرې کړئی. نو خلقو وئيل چه مونږ خو دا ګواهی ورکوو چه الله ﷻ يو دې او تاسو د الله ﷻ رسول يئې. حضور ﷺ اوفرمائيل چه او نو چا اووئيل چه داسې هيڅ کله هم نه کيږی چه مونږ يوبل قتل کړو سره د دې چه مونږ په صحيح معنوکښې مسلمانان يو، نودا آيت نازل شو([3]) چه ﴿وَكَذَّبَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۚ قُل لَّسْتُ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ﴾ يعنی ستاقوم به وحی دروغ ګڼړی سره د دې چه دا حق ده. نو ته ورته اووايه چه زه خو ستاسو ذمه وار نه يم، د هرې خبرې يووخت مقرر دې ډير زر به تاسو ته د حقيقت پته اولګی.

---

[1]) ابن مردويه والترمذی : ٢١٥٢.
[2])ترمذی كتاب الايمان باب ماجاء فی افتراق هذه الامة : ٢٦٤١،
[3])دا روايت مرسل يعنی ضعيف دې

وَكَذَّبَ بِهٖ

او د روغ کنړی | دا

او ستا قوم د دې نه

قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ؕ قُلْ لَّسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ؕ ⁽⁶⁶⁾

قوم ستا | حالانکه هغه حقیقت دی | اووایه | نهٔ یم زه | په تاسو باندې | حوالدار |

انکار اوکړو حال دا چې دا بالکل حق دې | ورته اووایه چې زه ستاسو ذمه دار نه یم

لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ ؗ وَّسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ⁽⁶⁷⁾ وَاِذَا رَاَيْتَ

دپاره دهر خبر | یووخت مقرر دی | اوزربه | پوهه شئ تاسو | او هر کله چې | اووینې تهٔ

دهر خبر (دښکاره کیدو) یو وخت مقرر دې | اوتاسو به ډیر زر پوهه شئ | اوهر کله چې ته اووینې

الَّذِيْنَ يَخُوْضُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰى

هغه کسان | چې جګړې کوی | په آیتونو زمونږ کښی | نولرې شه | دهغوئ نه | تردې پورې |

چې خلق زمونږ په آیتونو کښې جګړې کوی | نو هغوئ نه یو طرفته شه | تردې چې (هغه بحث پرېږدی)

يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ ؕ وَاِمَّا يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ

چې مشغول شی هغوئ | په خبره بله کښی | او که چرې | هیر کړی ستا نه | شیطان | نو مهٔ کینه

اوپه نورو خبرو کښې مشغول شی | او که چرې شیطان درنه (دانصیحت) هیر کړی ..........

بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ⁽⁶⁸⁾ وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ

روستو | دیادیدلونه | د ظالم قوم سره | اونشته | په هغه کسانو باندې | چې پرهیزګاری کوی

نویادیدونه پس دداسې ظالمانو ډله کښې مه کینه | اوپه پرهیزګارانو باندې ..........

مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ

دحساب دهغوئ نه | هیڅ څیز | الیکن شته په هغوئ | انصیحت کول | دپاره ددې چې هغوئ |

دهغوئ دحساب هیڅ ذمه واری نشته | البته نصیحت کول (پرې فرض دی) شاید

يَتَّقُوْنَ ⁽⁶⁹⁾

خان اوساتی دغلطې لارې دتګ نه

چې هغوئ هم دګناه نه ځان بچ کړی |

قوله تعالی: وَكَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ؕ

**دروغ کنړل نه تابعداری:-** ستا قوم قریش قرآن دروغ اوګنړلو سره د دې چه د دې نه علاوه بل هیڅ څیز حق نه دې. ته ورته اووایه چه زه ستاسو حفاظت کونکې او ذمه وار نه یم. لکه چه فرمانیلې شوی دی اووایه (اې محمد ﷺ) چه داستا د رب د طرف نه حق دې چه څوک غواړی ایمان راوړی او چه څوک غواړی اونه منی. یعنی زما کار خوصرف تبلیغ کول دی اوستاسو کار اوریدل او منل دی. څوک چه زما

تابعداري اوکړي هغه به په دین او دنیا دواړوکښې کامیاب وي او څوك چه مخالفت اوکړي هغه به په دواړه جهانه بدبخت وي. په دې وجه ارشاد اوفرمائیلې شو چه د هرې خبرې د پاره یو وخت مقرر دې اود هریو خبرد پاره یوه وقوع ده سره د دې چه څه وخت پس وي. لکه چه اوفرمائیلې شو چه څه موده پس به تاسو ته پته اولګی او اوفرمائیلي شو ﴿لِكُلِّ اَجَلٍ كِتٰبٌ۝﴾ دا تهدید او لوئ وعید دې. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه ډیر زر به تاسو ته معلومه شي.

**دَ ټوقو کونکوسره نه کیناستلوحکم:-** د الله ﷻ ارشاد دې ﴿وَاِذَا رَاَيْتَ الَّذِيْنَ يَخُوْضُوْنَ فِيْۤ اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾ یعنی چه ته کله دا کافران اووینې چه په دروغو او ټوقومسخرو سره زمونږ په آیاتونوکښې بحث کوی نو د دوی نه مخ واړه وه ترهغه وخته پورې چه هغوی څه نورې خبرې شروع کړي. اوکه چرې تانه ئې شیطان هیرکړي نو په یاد راتلوباندې د دې ظالمانوخلقو سره مه کینه. مطلب دا چه د امت هر یو کس دې مکذبینو سره نه کینی څوك چه د الله ﷻ آیاتونوکښې تحریف کوی او د دې په صحیح او ښکاره مفهوم باندې قائم دا نه پریږدی. په دې وجه په حدیث شریف کښې دی چه زما د امت د پاره د معافئ قابل ګرځولې شوی دی په خطا او هیرې سره یو کار کول یا د مجبورنې ([1]) د وجې یوکار کول او هم د دې طرف ته په دې مبارك قول کښې اشاره ده چه په کتاب کښې تاسو ته خودلی شوی دی چه کله تاسو ته پته اولګی چه د الله ﷻ آیاتونو سره کفر او ټوقې مسخرې کولې شی نو د هغوی نه پاڅه ترهغه وخته پورې چه د هغوی د خبرو موضوع بدله شی که داسې نه وی نو ته به هم د ټوقومسخرو کونکونه اوګنړلې شې او هم د دوی برابر به شې. د الله ﷻ ارشاد دې ﴿وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ﴾ یعنی چه کله ته د هغوی نه اخوا شوې او د هغوی د مجلس نه نه ینې نو تا خپله ذمه واري پوره کړه اود هغوی سره د ګناه د شمولیت نه خلاص شوې. سعیدبن جبیر رحمه الله د دې دا مطلب بیان کړې دې که هغه کافرانو د آیاتونو په تنقیص کښې لګیا وی نو اوس په تاهیڅ ذمه واری نشته چه تاد هغوی نه جدا والې او ډډه کړې وی. نور علماء د دې دا مطلب بیانوی که تاسو خلق د دې نالائقو سره کینئي هم نود هغوی د ټوقومسخرو ذمه واری په تاسو نشته او ګمان دې چه دا آیت د سورة نساء مدنیه په آیت سره منسوخ شوې دې او هغه آیت دا دی. ﴿اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ﴾ یعنی پداسې صورت کښې ته هم د هغوی په شان شوې. دا توضیح په آیت ﴿وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ﴾ سره متعلق وه. دا د مجاهد رحمه الله سدی رحمه الله او ابن جریج وغیره قول وو د هغوی د دې قول په بناء باندې د الله ﷻ د قول ﴿وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ۝﴾ مطلب دا شو ولې مونږ تاته د هغوی نه په داسې صورت کښې د ډډې کولو حکم کړې دې چه هغوی ته خبردارې او نصیحت اوشی. کیدې شی چه راتلونکې وخت کښې د دې نه محتاط شی او بیائې دوباره اونه کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَذَرِ | الَّذِيْنَ | اتَّخَذُوْا | دِيْنَهُمْ |
| او پریږده | هغه کسان | چې نیولې دي هغوی | دین خپل |
| او هغه کسان پریږده چې کومو دخپل دین نه | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَعِبًا | وَّلَهْوًا | وَّغَرَّتْهُمُ | الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا | وَذَكِّرْ |
| لوبې | او عبث کار | او په دهوکه کښې اچولې دي هغوی | ژوند د دنیا | او نصیحت کوه |
| لوبه او تماشه جوړه کړې ده | | اود دنیا د ژوند په دهوکه کښې پریوتلي دي | | او ددې |

[1] د دې تخریج دسورة بقره آیت نمبر ۲۸۲ لاندې تیر شوي دي

بِهٖٓ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ۖ

په دې قران سره | چې اونه نیولې شي | یو نفس | په سبب دهغه عمل | چې کړې وي هغه

قران په ذریعه ورته نصیحت کوه | چې څوک دعملونو په وجه داسې گیر نه شي ..........

لَیْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِیٌّ وَّلَا شَفِیْعٌ ۚ وَاِنْ تَعْدِلْ

حال دا چې نه وي | هغه لره | ماسوا د الله نه | څوک دوست | اونه سفارش کونکې | اوکه فدیه ورکړي

چې بیا ورله دالله ﷻ نه بغیربل څوک دوست اوسفارشي نه وي | اوکه هرقسم فدیه ورکول غواړي

كُلَّ عَدْلٍ لَّا یُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ اُبْسِلُوْا

هرڅومره فدیه | وابه غستلې شي | ددغه نفس نه | داکسان | هغه کسان دي | چې نیولې کیږي به |

نو دابه ترې نه نشي قبلولې | ......................(خکه) چې داخلق به دخپلو عملونو

بِمَا كَسَبُوْا ۚ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِیْمٍ وَّعَذَابٌ

په سبب دهغه عمل | چې کړې وي هغوئ | وي به دهغوئ دپاره | څکل | دگرمو اوبو نه | اوعذاب

په سزا کښې گرفتار وي | اودغه خلقودپاره به یشیدلې اوبه اودرد ناک عذاب مقرر دې

اَلِیْمٌۢ بِمَا كَانُوْا یَكْفُرُوْنَ ۧ

درد ناك | په سبب دهغې | چې وو هغوئ | چې دحق نه انکار ئې کولو

دا هرڅه د دې وجې چه دوی به (دوحدانیت نه) انکارکولو |

قوله تعالی: وَذَرِ الَّذِیْنَ اتَّخَذُوْا دِیْنَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَیٰوةُ الدُّنْیَا وَذَكِّرْ بِهٖٓ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ۖ لَیْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِیٌّ وَّلَا شَفِیْعٌ

**دین لوبې ټوقې ګڼړلو والا انجام:-** الله ﷻ فرمائی چه داخلق پریږ ده کومو چه دین یو دلوبوځیز ګرځولې دې خکه چه هغوی د یو لوئ عذاب طرف ته روان دی. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه دوی ته په دې قرآن باندې نصیحت او عبرت ورکړه، د الله ﷻ د عذاب نه دوی اوویروه دې د پاره چه هغوی د خپلو عملونو په وجه هلاك نه کړې شي. ضحاك رحمه الله (تُبْسَلَ د تسلم) په معنی کښې اخلی یعنی مه ورکوه. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی دې د پاره چه رسوا نه شي. قتاده رحمه الله فرمائی چه بند نه کړې شي او مره او ابن زید د نیولو په معنی کښې اخلی. دا ټول اقوال او عبارتونه تقریبا په یوه معنی کښې دی. مطلب دا چه د هلاکت د پاره پریخودل، د خیرنه بندول او د مطلب د حاصلولو نه بندیدل. لکه چه فرمائی (كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ رَهِیْنَةٌ) هرسړې په خپلو اعمالوکښې رابندکړې شوې دې بغیر د ښی طرف والا نه. او د الله ﷻ قول دې (لَیْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِیٌّ وَّلَا شَفِیْعٌ) یعنی نه به د هغوی څوك ولی وی اونه څوك شفیع. لکه چه فرمائی (مِّنْ قَبْلِ اَنْ یَّاْتِیَ یَوْمٌ لَّا بَیْعٌ فِیْهِ وَلَا خُلَّةٌ) د دې نه وړاندې چه هغه ورځ راشی په کومه کښې چه نه سودابازی شته، نه دوستی نه محبت،نه سفارش او شفاعت. هم کافران پوره ظالمان دی. د الله ﷻ قول دې (وَاِنْ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا یُؤْخَذْ مِنْهَا) یعنی د خپلو ګناهونو په بدله کښې که هغوی ټوله دنیا او جهان په فدیه کښې یابدله کښې ورکړی نو قبول به نه شي. لکه چه فرمائی (اِنَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ) کوم خلق چه په کفر باندې وو او هم په کفر مړه شو که هغوی د ډکې زمکې هومره سره زر هم ورکړی نو ناممکن دی چه قبول کړې شی اودهغوی غاړه خلاصه شی.نو وئی فرمائیل (اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ اُبْسِلُوْا بِمَا كَسَبُوْا)

قُلْ أَنَدْعُوا

| اووايه | آيا راؤبلو مونږه |

| (پیغمبره) د دوئ نه تپوس اوکړه | چې آيا مونږ

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلٰى

بغير دالله نه | هغه چې نفع نشي راکولې مونږته | اونۀ نقصان راکولې شي مونږته | او واپس شو مونږه | په

دالله ﷻ نه بغير نور (معبودان) راوبلوا چې نه مونږ ته نفع رسولی شي اونه نقصان | اودې نه پس چې

أَعْقَابِنَا بَعْدَ إِذْ هَدٰىنَا اللّٰهُ كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ

پوندوخپلوباندې | روستو | دهغې نه چې | لاراوښودله مونږته الله | پشان دهغه سړی | چې بې لارې کړې وی هغه

الله ﷻ مونږ ته نیغه لار خودلې ده بیا په شالاړ شوا ............... دهغه چا په شان چې هغوئ لره

الشَّيٰطِيْنُ فِي الْأَرْضِ حَيْرَانَ لَهٗ أَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗ

شیطانانو | په زمکه کښې | چې حیران وی | حال دا چې هغه لره | ملګری وی | اچې آوازونه کوی هغه ته

شیطان په بیابان کښې بې لارې کړې وی | اوبالکل حیران ګرځی | په داسې حال کښې چې ملګری ورته بلنه کوی

إِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ؕ قُلْ إِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ

دې نیغې لارې ته | راشه مونږته | اووایه | ابیشکه | هدایت دالله چې دی | هغه حقیقی هدایت دی |

چې زمونږ په شان دهدایت طرفته راشئ | ورته اووایه چې سمه لار هغه ده چې الله ﷻ خودلې ده

وَأُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۙ وَأَنْ أَقِيْمُوا

اوحکم شوی دی مونږته | چې تابعدار شو مونږه | رب دمخلوقاتوته | اودا چې | قائیموئ |

اومونږ ته حکم شوی دی چه د کائناتو د رب تابعدار جوړ شئ | ..............او دا چې تاسو مونځ

الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ؕ وَهُوَ الَّذِيْ إِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۝

مونځ | اواویریږئ دهغه نه | اوهغه | هغه ذات دی | چې هغه ته به | ورجمع کړې شئ تاسوا

قائمونئ | اودالله ﷻ نه ویریږئ | او هم هغه ته به تاسو ټول جمع کیږئ ..........

وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ وَيَوْمَ

اوهغه | هغه ذات دې | چې پيدا کړی نې دی | آسمانونه او زمکه | په حقه سره | اوپه کومه ورځ

اوالله ﷻ هغه ذات دې چې آسمانونه اوزمکې نې په حقه پیدا کړی دی | ............ اوپه کومه ورځ

يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ ۚ قَوْلُهُ الْحَقُّ ؕ وَلَهُ الْمُلْكُ

چې اووانی الله | شه | نو شی به | خبره دهغه | حقه ده | اوهغه لره به وی | بادشاهی |

چې هغه دومره اووانی اچې قیامت شه | نو هغه به شی | دهغه وینا حقه ده | اوټوله بادشاهی به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ | يُنْفَخُ | فِي الصُّوْرِ ط | عٰلِمُ | الْغَيْبِ | وَالشَّهَادَةِ ط |
| په هغه ورځ چې پوك اوكړې شي | | په شپیلۍ كښې | عالم دې | په پټو | او په ښكاره باندې |
| په هغه ورځ د هغه وی چې په كومه ورځ شپیلۍ پوک وهلې شی هغه په غیبو او ښكاره چیزونو باندې عالم دې | | | | | |
| وَهُوَ | الْحَكِيْمُ | الْخَبِيْرُ ۝ | | | |
| او هغه | د حكمت خاوند دې | خبردار دې | | | |
| او هغه د حكمتونو خاوند او خبردار ذات دې | | | | | |

قوله تعالى: قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلٰٓى اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰىنَا اللهُ

**مشركانوته فیصله كونكې جواب:**- مشركانو مسلمانانوته وئیلې وو چه دین محمدیﷺ پریږدئی نو الله ﷻدا آیت نازل كړو چه دوی ته اووایه چه زه الله ﷻ پریږدم او د دې بتانوعبادت اوكړم چه نه گټه وركولې شی او نه نقصان وركولې شی او په كفر اختیارولو سره مونږ په اولته پښو واپس اوګرځو سره د دې چه الله ﷻ مونږ ته رڼړا راكړیده. زمونږ خوبه داسې مثال شی لكه چه شیطان څوك دهوكه كړې وی یعنی دایمان راوړلو نه پس كفر اختیارول داسې دی لكه چه یو سړې سفركوی او لار ئې هیره كړې وی او شیطانانو هغه غلط كړې وی او د هغه ملګری په نیغه لار وی او هغه رابلی چه مونږ له راشه مونږ په نیغه لار یو او هغه انكار كړې وی. دا هغه سړې دې چه نبی اكرم ﷺ د ښه پیژندلو نه باوجود د ګمراهانو منونكې شی او كافرشی او نبی كریم ﷺ هغه نیغې لار ته رابلی. دا د اسلام لار ده.﴿قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ﴾ په دې كښې د بتانو اود بتانود عبادت كونكو مثال بیان كړې دې اود هغه خلقو څوك چه د الله ﷻ لارې ته رابلنه كوی. لكه چه چانه لار غلطه شوې وی او څوك چغه وهونكې هغه ته چغه وهی چه اې فلانكیه ته د دې لارې طرف ته راشه اود هغه نور ملګری رابلی چه غلطی مه كوه زمونږ په شان په نیغه لار باندې واپس راشه نوكه هغه د ړومبی دعوت وركونكی آواز واوری نو هغه به دې د هلاكت طرف په كنده كښې اوغورزوی. اوكه د نوروخلقو آواز واوری نوهغوی به دې په نیغه لار اود هدایت په لار راوړسوی. ړومبی بلونكې د ځنګل د شیطانانو نه دې. دا مثال دهغه سړی دپاره دې چه د الله ﷻلار پریږدی او د بتانوعبادت شروع كړی او هغه هم په دې كښې كامیابی اوګڼړی. خو چه كله ده له مرګ راشی نو پښیمانتیا به اوچتول وی. داد لارې نه اخوا كونكی شیطانان دی چه هغوی د پلار نیكه په نومونو اود هغوی په نومونواخستو سره رابلی نو هغه د دوی منل كوی او هغه هم په دې كښې كامیابی ګڼړی. اوس شیطانان هغه په هلاكت كښې اچوی او هغه خوری یا اوړې تكې په ځنګل كښې غلطوی چه هلاك شی.﴿حَيْرَانَ﴾ نه حیران دې لكه چه یو سړې غلط شوې وی اوحیران وی. حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه د الله ﷻ هدایت نه قبلونكې د شیطان تابعداری كونكې او د ګناه كاركونكې سړې مراد دې. د ده ملګری ده ته د هدایت طرف ته دعوت وركوی. الله ﷻ فرمائی چه دا د شیطان غلط كړې شوې هغه دې د چا اولیاء چه انسانان دی. هدایت خو د الله ﷻ هدایت دې او ګمراهی هغه ده كوم طرف ته چه شیطان رابلل كوی. دا ابن جریر رحمه الله روایت كړې دې. بیا وائی چه دا د دې خبرې تقاضاده چه د ده ملګرې دې د ګمراهئی طرف ته رابلی او ګمان كوی چه همدغه صحیح لار ده

عوفی رحمه الله فرمائی چه دارائې د آیت د ظاهر خلاف ده ځكه چه الله ﷻ فرمائیلی دی چه دده د سفرملګری دې هدایت طرف ته رابلی. نو دا جائزنه دی چه دې ته ګمراهی اووئیلې شی سره د دې چه الله ﷻ خبر وركړې دې چه هغه هدایت دې او دا خبره خو هم هغه ده كومه چه ابن جریر رحمه الله كړې ده چه د

عبارت سیاق د دې خبرې مقتضی دې چه ﴿كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ فِي الْاَرْضِ حَيْرَانَ﴾ دادمحال کیدو په وجه د نصب په محل کښې دې. یعنی د حیرانتیا جهل او ضلالت په حالت کښې اود هغه ملګری هم په هغه لار روان دی نو هغوی دې هم په خپله لار روان کړو او په خپله هم هغه لار باندې د راتلونې ورته اووئیل کومه چه الله ﷻ د مثال په توګه بیان کړه. اوس د کلام تقدیرداسې شو چه هغه د دوی په رابللوباندې انکار کوی اودهغوی طرف ته توجونه کوی. که الله ﷻ غوښتل نوهغوی ته به نې هدایت کړې وو او هغوی به نې په نیغه لار راګرځولې وې. په دې وجه اوفرمائیلې شو ﴿هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى﴾ اولکه چه فرمانی چه چاته الله ﷻ هدایت اوکړی هغه څوك نه شی ګمراه کولې. او ونی فرمائیل چه د هغوی په لار د راوستلو څومره حریص ولې نه وی. الله ﷻ چه څوك ګمراه کړی هغوی څوك په لار نه شی راوستې او نه د هغه خلقو څوك امدادی شته. بیا ارشاد دې چه ﴿وَاُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ مونږ ته حکم دې چه په خلوص سره د هغه عبادت اوکړو او مونځونه په پابندئی سره اوکړو اود الله ﷻ اوویریږو او په هر حال کښې پرهیزګار اوسیږو.هم د هغه طرف ته به د قیامت په ورځ ټول اوچتولې شی. هم هغه زمکه او آسمان په اعتدال سره پیدا کړی اودهغې مالك او مدبردې. هغه به د قیامت په ورځ صرف "کن" وانی او د سترګو په رپ کښې به ټول څیزونه بیا په وجود کښې راشی. دلته ﴿وَيَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ﴾ کښې د یوم لفظ ته نصب دې یا خو ﴿وَاتَّقُوْهُ﴾ باندې عطف ګرځولو سره به د هغې تقدیر داسې شی ﴿وَاتَّقُوْهُ يَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ﴾ یعنی دهغه ورځو نه اوویریږه یادا چه نصیب کیږی به پدې بنا پاندې چه ﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ﴾ باندې عطف دې. یعنی اوویریږئی د هغه ورځې نه په کومه ورځ چه به هغه وانی "کُنْ" یعنی د مخلوق د پیدائش شروع او اعادې ذکر اوشو او همدغه ډیر مناسب هم دی. یا دا چه تنصیب به کیږی په دی بنا باندې چه فعل دلته مقدر کیخودې شوې دې نو تقدیر دا شو چه یاد کړه هغه ورځ چه وانی به ﴿واذكر يوم يقول كن﴾ اود دې نه وړاندې ﴿الْحَقُّ يَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ﴾ بیا دالله ﷻ ارشاد دې چه ﴿قَوْلُهُ الْحَقُّ﴾ دا دوه جملې دی او د دواړو جملو محل جر دې په دې بنا چه دا دواړه الفاظ د سرب العلمین صفت واقع شوی دی اود الله ﷻقول دې ﴿يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ﴾ احتمال دې چه دا بدل وی ﴿وَيَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ﴾ اودا هم احتمال دې چه ظرف وی د ﴿وَلَهُ الْمُلْكُ﴾ ﴿يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ﴾ لکه چه فرمائیلی دی ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ نن د چا بادشاهی ده د یو واحد قهار بادشاهی ده. لکه چه فرمانی ﴿اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذِ الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ وَكَانَ يَوْمًا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ عَسِيْرًا﴾ په هغه ورځ د رحمن بادشاهی برحق ده او هغه ورځ به په کافرانو ډیره سخته وی.

قوله تعالی: يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ

**د اسرافیل ؑ د شپیلئی حقیقت او ویره:-** مفسرینو ﴿يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ﴾ کښې د رانې اختلاف کړې دې. بعضو وئیلی دی چه صور جمع د صورة ده. ابن جریر ؒ وانی لکه چه څنګه "سور" د ښار پناه ته وانی او دا د سورة جمع ده. او صحیح دا دې چه "صور" نه مراد هغه قرن دې په کوم کښې چه به دننه حضرت اسرافیل ؑ پوك وهلی. ابن جریر ؒ وانی چه صحیح هم هغه دی په کوم باندې چه په حدیث کښې رانړا اچولې شوې ده. حضور اکرم ﷺ فرمائیلی دی چه اسرافیل ؑ شپیلئی په خله کښې لګولې ده، سر نې ښکته کړې دې او په انتظاردې چه کله به د شپیلئی د پوکوهلو حکم کیږی. (۱)یو اعرابی هم د حضور ﷺ نه تپوس کړې وو چه صور څه څیز دې نو حضور ﷺ فرمائیلې وو چه قرن په څه کښې پوکې

(۱)دا روایت داسرافیل په نوم ترمذی کتاب التفسیر ومن سورة الزمر: ۳۲۴۳، ابن ماجه : ۴۲۷۳، ابن ما جه: ۷/۳، حلیة الاولیاء ۱۰۵/۵ مسند ابی یعلی : ۷۱/۱، ابن حبان: ۲۵۶۹، .

وهلو سره غربیږي.(١)
نبي اکرم ﷺ یو ځل صحابه کرامو رضي الله عنهم اجمعین سره ناست ووچه فرمائیلي کله چه الله ﷻ د زمکې او آسمان د پیدا کیدو نه فارغ شونو صور یئې پیدا کړو او اسرافیل ؑ ته ئې ورکړه کومه چه هغه په خُله کښې لګولې ده او سترګې په عرش لګیدلې دی په انتظاردې چه کله به د پوکوهلو حکم کیږي. نو ابوهریره ؓ وائی چه ما اووئیل یارسول اللهﷺ! صورڅه څیز دې؟ ارشاد اوفرمائیلي شو هغه قرن دې.تپوس اوشو چه هغه څنګه، وئې فرمائیل ډیره لویه. د الله ﷻ قسم دې چا چه زه رالیږلې یم د هغې پلنوالې دومره دې لکه څومره چه دزمکواوآسمانونو پلنوالې.په هغې کښې به په دریو وختونو کښې پوکې وهلې شي. اول به د ویرولو او پریشانه کولو پوکې وی او دوئم تول بې هوشه کونکې او دریم بیا د الله ﷻ په وړاندې د اودرولو. الله ﷻ به اول د پوکوهلو حکم اوکړی نو هغې سره به ټول د دنیا خلق اوویریږي مګرهغه چاته چه الله ﷻ استقامت ورکړي. تر کومې چه حکم نه وی شوې شپیلئی به هم هغه شان غږیږي اودریږی به نه.لکه چه فرمائیلې شوی دی ﴿هَٰؤُلَآءِ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ﴾ یعنی هغه به یو زبردسته چغه اَو ډیر اوچت آواز وی. غرونه به د اوریځو په شان الوزی او زمکه به خوزیږی او ټالئی به وهی لکه په سمندرکښې ورانه شوې کشتئی کومه چه چپې هر طرف ته دیکه کوی لکه څنګه چه یو فانوس په چت کښې زوړندوی او هغه ټالئی ورکوی. فرمائی﴿ يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ﴾ په هغه ورځ به رچونکې شپیلئی پوکوهلې شی او د هغې نه پس به بیا په دوئم ځل پوك وهلې شي. په هغه ورځ به ټول په ټول ډیر ویریږی، خلق به راپریوزی، میندې به یئې روونکی ماشومان هیرکړی، د حاملو ښځو حملونه به پریوزی. په هلکانو باندې به د ویرینه بوډاوالې راشی. شیطانان به د خان بچ کولو په خاطر د زمکې غاړو ته اوتښتی خو فرښتې به هغوی په وهلو وهلو واپس راولی. یو بل ته به چغې وهی خو څوك به چاته پناه نه شی ورکولې بغیرد الله ﷻ نه. خلق به هم په دغه ویره کښې وی چه زمکه به د هر ګوټ نه شلیدل شروع شی. داسې لوئې امر به ښکاره شی چه چرې به هم نه وی لیدلې شوې او داسې مصیبت او ویره به وی چه صرف الله ﷻ ته پته ده. بیا به خلق د آسمان طرف ته اوګوری نود هغې ذرې به الوزی، ستوری به ماتیږی. نمر او سپوږمئی به توره شی. نبی کریم ﷺ فرمائی چه مړو ته به د دې خبر نه وی.
حضرت ابوهریره ؓ اوفرمائیل یارسول اللهﷺ! چه الله ﷻ کله فرمائی ﴿ فَفَزِعَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ﴾ نو الله ﷻ به څوك مستثنی ګرځوی. نو حضور ﷺاوفرمائیل هغه شهیدان دی. فزع او ویره خو ژوندو ته کیږی او هغوی ژوندی خو دی، لیکن الله ﷻ سره دی، الله ﷻ هغوی ته رزق ورکوی. الله ﷻد هغه ورځې د فزع نه هغوی محفوظ ساتلی خکه چه هغه خو د الله ﷻ عذاب دې او عذاب خو په نافرمانه خلقو نازلیږی. هم دا څیز الله ﴿ﷻ تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ﴾ والا به آیت کښې پیش کړی دې چه هره یوه یئې ورکونکې مور به خپل یئې روونکی بچی نه غافله شی. د هرې حاملې حمل به اوغورزیږی، ترکومې چه الله ﷻ غواړی په عذاب کښې اخته وی، د اوږدې مودې پورې به دا حالت وی. بیا به الله ﷻبې هوشی راوستونکې شپیلئی وهلو حضرت اسرافیل ؑ ته حکم اوکړی نو ټول د آسمانونواو زمکو مخلوق به بې هوشه شی خو چه څوك الله ﷻ غواړی هغه به په هوش کښې وی. ملك الموت به الله ﷻ له راشی او وائی به اې الله ﷻ ټول مړه شو. الله ﷻ ته خو پته ده مګر تپوس به اوکړی څوك باقی دی؟ هغه به عرض اوکړی چه ته باقی ئې خکه چه تاته خو به کله هم مرګ رانه شی او د عرش

(١) ابوداود كتاب السنة باب ذكر البعث والصور: ٤٧٤٢، وسنده صحيح ، ترمذی ٣٢٤٤، دارمی : ٣٢٥/٢.

اوچتونکې ملائکې هم دی. حضرت جبرائیلﷺ او حضرت اسرافیلﷺ او زه هم باقی یم. الله ﷻ به اوفرمائی چه جبرائیل او میکائیل له هم مړه کیدل پکار دی نو عرش به خبرې اوکړی اې ربه! جبرائیل او میکائیل به هم مړه کیږی؟ الله ﷻ به اوفرمائی ژبه مه کولاوهه د عرش د لاندې چه څومره دی ټول به مړه کیږی. ملك الموت به بیا الله ﷻ ته عرض اوکړی اې ربه! جبرائیل او میکائیل هم مړه شو. الله ﷻبه اوفرمائی اوس څوك باقی دی؟ هغه به عرض اوکړی چه ته باقی ئې او تاله خو مرګ راخی نه. اوس زه اود عرش اوچتونکې فرښتې باقی دی. الله ﷻ به اوفرمائی چه د عرش اوچتونکو له هم مړه کیدل پکار دی نو هغه به هم مړې شی. الله ﷻ به تپوس اوکړی اوس څوك باقی دی؟ عزرائیل به وائی ته چه نه مړکیدونکې ئې او زه. الله ﷻ به عرش ته حکم اوفرمائی د اسرافیل نه شپیلئی واخله او اسرافیل ته به وائی ته هم زما مخلوق ئې ته هم مړ شه. هغه به هغه وخت مړ شی او د رب واحد، صمد، لم یلد ولم یولد نه سوا به څوك هم باقی پاتې نه شی. آسمان او زمکې به راغونډې کړې شی لکه چه طومار راغونډولې شی. درې ځل به دا راغونډولې او خورولې شی بیابه فرمائی زه جباریم، زه جباریم، زه جبار یم. بیا به درې ځل آواز اوشی چه په نن ورځ د چا بادشاهت شته؟ څوك به جواب ورکړی. بیابه پخپله اوفرمائی بادشاهت صرف د الله ﷻ واحد او قهار دې.

بیا به نور زمکې آسمانونه پیداکړی او هغه به خواره کړی او اوږده به ئې کړی په هغې کښې به هیڅ کګلیچ او نقص باقی پاتې نه شی. بیا به مخلوق ته د الله ﷻ یوزبردست آواز اوشی نو په نوې پیداشوې زمکه باندې به ټول د اول په شان شی. کوم چه په زمکه کښې دننه دی هغه به دننه وی او کوم چه بهر وی هغه به بهر. بیا به د عرش د لاندې به الله ﷻ اوبه راپیدا کړی. آسمان ته به حکم اوکړی چه اووریږه. څلویښتوورځو پورې به اوبه وریږی تردې چه اوبه به دولس ګزه اوچتې شی. بیا به بدنونوته الله ﷻ حکم اوکړی نو هغه به داسې د زمکې نه راښکاره شی لکه څنګه بوټی او سبزیانې راټوکیږی. کله چه بدنونه د مخکې په شان پوره شی نو اول به د عرش ملائکې ژوندئی کړې شی. الله ﷻبه اسرافیل ﷺ ته حکم اوکړی چه شپیلئی واخله هغه به ئې واخلی نو بیا به الله ﷻ حضرت جبرائیلﷺ او حضرت میکائیلﷺ ژوندی کړی. بیا به روحونه راپللې شی. د مسلمانانو روحونه به لکه د رڼړا پړقیږی او د کافرانو روحونه لکه د تیارې. دا ټول به په شپیلئی کښې واچولې شی. اسرافیل ﷺ ته به حکم اوشی چه د واپس ژندی کیدو شپیلئی اووهه نو چه د ژوند پوکې اووهلې شی نو روحونه به داسې تږپونه وهی لکه د شاتو د مچونه چه زمکه او آسمان ډك شی. بیا به د الله ﷻ د طرف نه حکم اوشی چه روحونه خپلو بدنونوکښې داخل شئی نو د دنیا ټول روحونه به داخلیږی او د سپیږمو په لار به بدنونوکښې راخی لکه څنګه چه زهر په مار خوړلی بدن کښې ورځی. بیا به زمکه شلیږی او خلق به راپاڅی او د خپل رب طرف ته به مخ کوی او د ټولو نه اول به زما قبرکولاویږی. د الله ﷻ طرف ته به ټول خی نو کافران به وائی چه دا ورځ خو ډیره سخته معلومیږی. خلق به بربنډ او بې جامو وی او هم یو ځای کښې به ولاړ وی. اویاکاله به هم دغه حال وی چه الله ﷻ به نه دوی ته ګوری او نه به څه فیصله کوی. خلق به ژړا فریاد کوی، اوښکې به ختمې شی نو وینې به د سترګونه روانې شی، خلق به په خپلو خولوکښې ډوب وی، تر زنوپورې به خوله رسیدلې وی.

خلق به وائی چه الله ﷻ له څوك سفارشی تلل پکار دی چه فیصله اوشی نو په خپل مینځ کښې به وائی چه د ټولو پلار آدم ﷺ نه علاوه داسې څوك کیدې شی چه ژبه کولاوْ کړې شی، الله ﷻ هغه په خپل لاس جوړکړې دې، خپل روح ئې په هغه کښې پوك وهلې اود ټولو نه اول ئې هغه سره خبرې کړی. خلق به حضرت آدم ﷺ له راشی او خپل مقصد به ورته وړاندې کړی هغه به د سفارش نه انکار اوکړی چه د زه د هغه د شان لائق نه یم. بیا خان له خان له یو یو نبی ﷺ له راشی. چا له چه هم راځی نو انکار به

کوي. حضور ﷺ فرمائي چه بيا به ماله راشي نو زه به خم او په فحص به سجده باندې راپرېوزم. حضرت ابوهريره ﷺ تپوس اوکړو يا رسول اللهﷺ! فحص څه څيز دې نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه عرش مخامخ حصه ده. الله ﷻ به يوه فرښته راوليږي او هغه به ما د مټ نه اونيسي اوچت به مې کړي. الله ﷻ به اوفرمائي ته څه غواړې؟زه به عرض اوکړم چه اې ربه! تاما سره د شفاعت د حق راکولو وعده کړې وه نو دا حق ماته راکړه او د خلقو په مينځ کښې فيصله اوکړه. الله ﷻ به اوفرمائي ښه ده ته شفاعت کولې شې او زه به خلقو کښې خپلې فيصلې نافذې کړم.

حضور ﷺ فرمائي چه زه به بيا خلقو کښې اودريږم. مونږ ټول خلق به ولاړ يو چه د آسمان نه به يو په زوره آواز اوشي او مونږ به اوويريږو. د زمکې د پيريانو او انسانانو نه به ډيرې فرښتې د آسمان نه نازلې شي. هغوی به زمکې ته نزدې راشي نو زمکه به د هغوی په نور سره اوپرقيږي. هغوی به صفونه جوړکړي نو مونږ به تپوس اوکړو چه آيا الله ﷻ تاسو کښې دې، هغوی به وائي نه هغه راتلونکې دې. فرښتې به بيا د آسمان نه نازلې شي چه د نازلو شوو فرښتونه به په شمير کښې دوه چنده وي اود پيريانو او انسانانو نه به هم په شمير کښې دوه چنده وي او زمکه به د هغوی د نور نه اوپرقيږي. هغوی به په طريقه سره اودريږي، مونږ به تپوس اوکړو چه رب کريم په تاسو کښې دې؟ هغوی به وائي چه نه هغه راتلونکې دې. بيا به په دريم ځل د دې نه هم په دوچنده تعداد کښې د ملائکو نزول اوشي. اوس به رب جبار عزوجل د اوريځو په سوري کښې په اتوفرښتو باندې خپل تخت اوچت کړې تشريف فرما وي. حالانکه دغه وخت کښې د هغه تخت څلورو فرښتواوچت کړې دې او د هغوی قدمونه د آخری زمکې په بيخ کښې دی. زمکه او آسمان د هغوی د بدن د نيم حصې په مقابله کښې دی. د هغوی په اوږو د الله ﷻ عرش دې او د هغوی په ژبوبه د الله ﷻ تسبيح او تحميد وی هغوی به وائي ﴿سبحان ذي العرش واجبروت سبحان ذي الملك والملكوت سبحان الحي الذي لايموت سبحان الذي يميت الخلائق ولايموت سبوح قدوس قدوس سبحان ربنا الاعلى رب الملائكة والروح سبحان ربنا الاعلى الذي يميت الخلائق ولايموت﴾ بيا به الله ﷻ په خپله کرسئ باندې جلوه افروز شي. يو آواز به اوشي اې د پيريانو او انسانانو ټوليه! ما چه د کوم وخت نه تاسو پيداکړې ونې ترنن پورې خاموش ووم، ستاسو خبرې مې اوريدې ستاسو عملونه مې کتل. اوس تاسو خاموش اوسيږئ ستاسو د عملونو صحيفې به تاسو ته اوروليې شي. که هغه ښه ثابتې شوې نو د الله ﷻ شکر اوکړئ او که خرابې وې نو خپل ځانونه ملامته کړئ. بيا به الله ﷻدوزخ ته حکم اوکړي نو د هغې نه به يو تك تور پړقيدونکې شکل رابنکاره شي. بيا به الله ﷻفرمائي چه اې بنی آدم! ما حکم نه وو کړې چه د شيطان عبادت مه کوه دا ستاسو ښکاره دښمن دې. تاسو هم زما عبادت کوئ همدغه صراط مستقيم دې. دې شيطان خو ډير ګمراه کړي دی تاسو عقل نه لرلو. دا هغه دوزخ دې د کوم چه تاسو سره وعده شوې وه او کوم چه تاسو دروغ ګڼړلو. اوس اې مجرمانو! د نيکانو نه جدا شئ. الله ﷻ به امتونه جدا جدا کړي. د الله ﷻ ارشاد دې چه اې نبي! ته به هر امت په زنګونونو راپرېوتونکې اووينې. هرامت سره به د هغه عمل نامه وی او نن به د خپلو کړو بدله بياموئ. اوس به الله ﷻ په خپل ټول مخلوق کښې فيصله کول شروع کړي خو د پيريانو او انسانانو دې وخت کښې نه.

اوس به د وحوشو او بهائمو په مينځ فيصلې فرمائي تر دې چه د يوې ظالم او ښکروری بکرئ د ظلم بدله به هم بلې بکرئ ته ورکولې شي. او تر دې پورې چه يو ځناور به هم د بدلې ورکولونه باقي پاتې نه شي نو دې ځناورو ته به اووائي چه خاورې شئ نو کافران به وائي چه افسوس مونږ هم د دې عذاب نه د بچ کيدلو د پاره خاورې شوې وې. لهٰذا دا چه اوس به د بنديګانو په مينځ کښې د مقدمو فيصله کيږي. د ټولو نه اول به د قتل او وينې مقدمې پيش کړې شي. اوس به هرهغه قتل شوې راځي

چه د الله ﷻ په لارکښې چا قاتل قتل کړې وي. الله ﷻ به قاتل ته حکم ورکوي هغه به د مقتول سر اوچتوي. هغه سر به عرض اوکړي اې الله ده نه تپوس اوکړه چه ده څه ولې قتل کړې ووم. الله ﷻ به د هغه نه تپوس اوکړي(سره د دې چه هغه ته معلومه ده) چه ولې دې قتل کړې وو؟ هغه غازي به وائي چه اې الله ستا د عزت او نوم په خاطر، نو الله ﷻ به اوفرمائي ته رښتيا وائې اود هغه د نور مخ به د نمر په شان پرقيږي. ملائکې به هغه جنت طرف ته بوځي. دغه شان په نورو مقتولان هم خپلې کوللې په سر راوړي. الله ﷻ به د هغوی د قاتلانو نه تپوس اوکړي ولې مو قتل کړې وو نو هغوی به وائي د خپل شهرت او نوم د پاره. نو فرمائي به چه هلاك شه ته. د هر قتل شوي مقدمه به پيش کولې شي او انصاف به کيږي اود هرظلم بدله به د ظالم نه اخستې شي او چه کوم ظالم له الله ﷻ غواړي عذاب به ورکولې شي او چه به چا باندې غواړي نو خپل رحمت به نازلوي. بيا به د ټول مخلوق انصاف کيږي. يو مظلوم به داسې نه پاتې کيږي چه د ظالم نه ورته بدله ورنه کړې شي. تردې چه څوك په پښيوکښې اوبه ګډوي او وائي چه خالص دي هغه ته به هم سزا ورکړي او اخستونکي ته به د هغه نيکئي ورکړي. چه د دې نه هم فراغت اوشي نو يو آواز کونکې به آواز اوکړي او ټول مخلوق به نې اوري. هريو ټولي له پکار دي چه دخپلو خپلو خدايانو طرف ته لاړ شي او د خپلو معبودانو لمن دې اونيسي. اوس به يو بت پرست داسې نه وي د چا بتان چه به د هغه مخې ته خوار زار پراته نه وي. يوه فرښته به په هغه وخت د حضرت عزير ﷺ په شکل راشي او يوې فرښتې ته به د عيسى ﷺ بن مريم شکل ورکړې شي. نو يهوديان به د حضرت عزير ﷺ شاته شي او د عيسى ﷺ شاته به نصاري راجمع شي. بيا به د هغوی دا فرضي معبودان هغوی دوزخ طرف ته روان کړي. وائي به چه که دا د دوی رب وې نو دوی به نې چرې هم دوزخ طرف ته نه وو روان کړي. اوس به دا ټول په دوزخ کښې د هميشه د پاره وي. نو دې وخت کښې به صرف مؤمنان باقي پاتې شي په کوموکښې چه به منافقان هم شامل وي. الله ﷻ به د خپل شان مطابق څنګه چه غواړي هغوی له راشي نو وائي به چه اې خلقو ټول خلق خپلو خپلو خدايانو سره ملاؤ شوي دی تاسو هم چه د چا عبادت کولو هغوی سره ملاوشئ. نو دا ټول خلق مؤمنان سره د منافقانو به وائي چه په الله ﷻ قسم زمونږ الله ﷻ خو ته وې. ستا نه علاوه به مونږ بل څوك نه منلو نو الله ﷻ به د هغوی نه اخوا شي اوبه خپل حقيقي شان کښې به راشي او هغوی سره به اودريږي ترکومې چه غواړي.بيا به مخامخ راشي او ارشاد به اوفرمائي اې خلقو ټول خپلوخپلوخدايانوسره ملاوشوي دی تاسو هم خپلوخدايانو سره ملاؤ شئ هغوی به وائي چه دالله ﷻ قسم ستانه علاوه خو زمونږ بل خدائې نه وو. مونږ به ستانه علاوه د بل چا عبادت نه کولو.بيا به الله ﷻ خپله پنډئي څنګه چه د هغه شان سره مناسب دی کولاؤکړي.دهغې په عظمت سره به په دوی داخبره ښکاره شي چه د هغوی الله ﷻخودادې. بيابه ټول په ټول په سجده کښې سرښکته پريوزي. خو چه کوم منافقان وي هغوی به په شا طرف پريوزي.دسجدې دپاره به تيټيدې نه شي اودهغوی شاګانې به لکه د غواد شا په شان نيغې وي. بيا به الله ﷻ حکم اوکړي چه دوئ اوچت کړئي. دې وخت کښې به د هغوی په وړاندې د دوزخ پل صراط راشي چه د خنجر او تورې نه به زيات تيره وي او ځاې په ځاې به ازغن او خونيدونکي او خطرناك وي. د دې لاندې به يو بل خونيدونکې پل هم وي. نيکان خلق به پرې داسې تيريږي لکه د سترګو رپ يا د بجلئي پرق يا د تيزې هوا په شان يا د تيز اس په شان يا د تيز سور په شان او يا د تيزې منډې وهونکي سړي په شان. بعضې خو به پوره محفوظ وي او خلاصې به بيامومی، بعضې به زخمي شي او بعضې خو به پرې پرې شي او دوزخ کښې به اوغورزيږي نو بيا چه کله جنتيان جنت طرف ته روان کړې شي نو وائي به اوس به زمونږ شفاعت الله ﷻ ته څوك کوي. هغوی به آدم ﷺ له راشي او د شفاعت درخواست به اوکړي نو هغه به د خپلې خطا ذکر اوکړي او وائي به زه د دې اهل نه

یم تاسو نوحﷺ له لاړ شئ هغه د الله ﷻ رومبې رسول دې. خلق به حضرت نوح ﷺ له راشي هغه به هم د خپلې خطا ذکر اوکړي او وائي به چه زه خو اهل نه یم تاسو حضرت ابراهیم ﷺ له لاړ شئ هغه ته خو الله ﷻ خپل خلیل ونیلې دې نو هغه به هم د خپلو خطاګانو ذکر اوکړي او وائي به حضرت موسی ﷺ له لاړشئ هغه سره خو الله ﷻ پخپله خبرې کړې دي. او په هغه باندې د تورات په شان کتاب د ټولونه اول نازل کړې دې خلق به حضرت موسی ﷺ له راشي نو هغه به هم د خپل قتل د خطا ذکر اوکړي او وائي به چه زه هم د دې اهل نه یم تاسو روح الله له لاړشئ ځکه چه د الله ﷻ روح او کلمه ده. عیسی ﷺ به هم وائي چه نه زه د دې قابل نه یم تاسو محمد ﷺ له لاړشئ. حضور ﷺ فرمائي چه بیا به خلق ماله راشي. الله ﷻ ماله د دریو شفاعتونو حق راکړې دې او وعده ئې فرمائیلې ده. دې وخت کښې به زه جنت طرف ته روان یم، دروازه به اوټکووم، د جنت دروازه به کولاؤ شي ماته به هرکلې اوونیلې شي. زه به جنت ته داخل شم او الله ﷻ طرف ته به نظر اوکړم په سجده کښې به پریوزم نو الله ﷻ به ماته ذ تحمید او تمجید اجازت راکړي چه داسې تحمید به ئې چاته نه وي خودلې. بیا به فرمائي اې محمدﷺ سر اوچت کړه څه شفاعت کول غواړې اوکړه، ستا شفاعت به اوریدې شي، ستا سوال به پوره کولې شي. زه به خپل سر اوچت کړم نو الله ﷻ به اوفرمائي څه غواړې، زه وایم اې الله تا ماته د شفاعت حق راکړې دې د اهل جنت باره کښې زما شفاعت قبول کړه چه هغوی جنت ته داخل شي نو فرمائي به ښه ما اجازت ورکړو دا خلق جنت ته داخلیدلې شي.

حضورﷺ فرمائیل د الله ﷻ قسم تاسو به جنت کښې خپلو کورونو او خپلو بیبیانو له دومره زر اورسیږئې لکه څومره زر چه په دنیاکښې رسئ. هر سړي ته به ښه بي بي ملاویږي دآدم ﷺ د اولاد نه اود اویاؤ حورونه. دې دواړوته به په دې اویاؤ حورو باندې فضیلت حاصل وي ځکه چه په دنیا کښې دې ښځو د الله ﷻ لوئ لوئ عبادتونه کړي وو. هغه به یوې له راشي نو هغه به د یاقوتو په کورکښې په مرغلرو سره ښائسته کړې شوې د سرو زرو په تخت ناسته وي چه د سندس او استبرق اویا جنتي جوړې به ئې اچولې وي. هغه به د دې په اوږه لاس کیږدي نو د خپل لاس عکس به د هغې د سینې نه، د کپړو نه د بدن او غوښتې نه اخوا بل طرف ته ښکاري. بدن به ئې دومره صفا وي چه په هډوکي کښې به ئې مازغه ښکاري لکه چه د یاقوتو یوه چوکه وینې. دهغې زړه به د هغې د پاره آئینه جوړه شوې وي اود هغې زړه به د ده د پاره وي نه به دې د هغې نه سترې کیږي او نه به هغه د ده نه سترې کیږي. هغه چه کله هم دې ښځې له راځي هغه به پیغله وي نه به هغه د ده نه څه ګیله کوي او نه به دې د هغې نه څه ګیله کوي. په دې کښې به یو آواز راشي وائي به چه موږ ته پته ده چه په تاسو کښې به د چا زړه موړ نه شي خو ستا نورې بیبیانې هم شته نو هغه جنتي به وار په وار هغوی له راځي او چه کومې یوې له هم هغه راشي وائي چه په الله ﷻ قسم په جنت کښې زمانه بله ښائسته نشته او نه ماسره ستا نه بل څوک خوښ شته.

لیکن چه کله دوزخیان دوزخ کښې غورزولې شي نو اُور به د چا د قدمونوپورې وي د چا د نیم ورونو پورې د چا د زنګونو او ملاپورې، د چا دمخ نه علاوه ټول بدن پورې ځکه چه په مخ باندې اُور حرام کړې شوې دې. رسول الله ﷺ فرمائیلي زه به الله ﷻ ته اووایم چه اې ربه! زما د امت د دوزخیانو باره کښې زما شفاعت قبول کړه. نو الله ﷻ به اوفرمائي چه راؤباسه د دوزخ نه خپل امتیان کوم چه ته پیژنې نو یو امتي به هم بچ نه شي. بیا به د عام شفاعت اجازت ملاؤشي. نو هر نبي او هر شهیدبه خپل خپل شفاعت وراندې کړي. بیا به الله ﷻ اوفرمائي چه د چا په زړه کښې د دینار د وزن برابر ایمان هم وي هغه د دوزخ نه راؤباسئ. بیا به اوفرمائي چه د دوو دینارو د دریمې حصې برابر هم وي، بیا به فرمائي چه د یو دینا د دریمې حصې برابر هم وي، که د دینار د څلورمې حصې برابر وي،

بیا د قیراط برابر او بیا که د اوری د دانې برابر هم وی، نو تول به د دوزخ نه رابهر کړې شي. بیا به هغه هم چه د الله ﷻ د پاره ئې څه د خیرکار کړې وی اوس به څوك هم باقي پاتې نه شي چه د شفاعت قابل وی. تردې چه د الله ﷻ د رحمت عام کیدو ته اوګوری نو د ابلیس به هم طمع پیدا شي چه د هغه هم څوك شفاعت اوکړی. بیا به الله ﷻ اوفرمائی چه اوس یو زه باقي پاتې شوم نو زه خو په تولو رحم کونکوکښې د تولونه زیات رحم کونکې یم نو په دوزخ کښې به خپل لاس ورخښ کړی او داسې بې شمیره دوزخیان چه سوزیدو سره کونله شوی وی هغه به د جنت په نهر کوم ته چه نهر حیاة وائی واچولې شي هغوی به د نوی سر نه داسې تازه شي لکه چه د تالاب په غاړه شنه بوټی چه نمر ورته اورسی نو شنه ښکاری اوچه په سوری کښې وی نو زیړ ښکاری. هغوی به د مستو سبزو په شان راټوکیږی او د ذرو په شان به خواره شوی وی. د هغوی په تندو باندې به لیکلې شوی وی د الله ﷻ آزادکړې شوی دوزخیان. په دې لیك سره به د هغوی د جنتیانو سره پیژندګلو اوشی چه هغوی څه نیك کارونه کړی وو. یو مودې پورې به هغوی په جنت کښې دغه شان وی. بیا به الله ﷻ ته درخواست اوکړی چه اې ربه! دا لیك ختم کړه نو ختم به کړې شي. دا مشهور حدیث دې او ډیر اوږد دې ډیر غریب دې او په مختلفو احادیثوکښې مختلف ټکړې دی بعض خبرې د نکارت قابلې دی. اسماعیل بن رافع د مدینې قاضی د دې په روایت کښې یوازې دې، د دې په صحت کښې اختلاف دې. بعضو د دې توثیق کړې دې، بعضو ضعیف ګرځولې دې، بعضو انکار کړې دې. لکه احمد بن حنبل حاتم رازی، عمر بن علی فلاس رحمهم الله، بعضو متروك ګنړلې. ابن عدی رحمه الله فرمائی چه دا تول حدیث د غور قابل دې اود دې تول راویان ضعیف دی. زه وایم چه د دې په اسناد کښې په ډیرو وجوهاتو اختلاف دی. ما دا جدا په یوجزء کښې بیان کړې دې د دې دعبارت سیاق هم عجیبه دې. ډیر احادیث ئې یوځائ کړی او دا ئې یو حدیث جوړکړیدې او دا ئې هم یو سیاق ګرځولې دې، نو په دې وجه د انکار قابل شو. ما د خپل استاذ حافظ ابوالحجاج المزی رحمه الله نه اوریدلی دی چه دا د ولید بن مسلم یو کتاب دې کوم چه هغه راجمع کړې دې. نو لکه چه دا شواهد دی د بعضې جدا جدا احادیثو. والله اعلم.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ | قَالَ | اِبْرٰهِيْمُ | لِاَبِيْهِ | اٰزَرَ | | |
| اوکله چې | اووئیل | ابراهیم | پلار خپل | آزرته | | |

اوهغه وخت یادکړه چې ابراهیم علیه السلام خپل پلار ته آزرته اووئیل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَتَتَّخِذُ | اَصْنَامًا | اٰلِهَةً | اِنِّيْٓ | اَرٰىكَ | وَقَوْمَكَ | فِيْ | ضَلٰلٍ | مُّبِيْنٍ |
| آیا نیسې ته | بتان | په خدایئ سره | بیشکه چې زهٔ | وینم تا | اوقوم ستا | په گمراهئ | ښکاره کښې | |

چې آیا ته بتان په خدائې سره نیسې ازه خووینم چې ته اوستا قوم په ښکاره ګمراه کښې یې؛

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَكَذٰلِكَ | نُرِيْٓ | اِبْرٰهِيْمَ | مَلَكُوْتَ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ |
| اوهمدارنګې | ښودلو مونږه | ابراهیم ته | انظام سلطنت | دآسمانو نو | او دزمکې |

اودغه شان مونږ ابراهیم علیه السلام ته دآسمانونو اوزمکې دبادشاهت نظام اوخودلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلِيَكُوْنَ | مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ | فَلَمَّا | جَنَّ | عَلَيْهِ | الَّيْلُ |
| اودپاره ددې چې شي هغه | دیقین کونکو نه | نوهرکله چې | خوره شوه | په هغه باندې | شپه |

اوددې دپاره چې په هغه ډله کښې شامل شي چه کوم یقین کوی؛ هرکله چې پرې شپه راغله

رَاٰ كَوْكَبًا ۚ قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ

اولیدو هغه | یوستوري | اوونیل هغه | دا رب زما دې | پس هر کله چې | پټ شو هغه | نووې وئیل |

اوستوری ئې اولیدل | نووې وئیل چه دا زما رب دې | خو چې کله ډوب شول نو وې وئیل چې

لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ ۝ فَلَمَّا رَاَ الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ

نۀ خوښوم زۀ | پټېدونکی | بیاهر کله چې | اولیده هغه | سپوږمۍ | ځلیدونکې | نو وې وئیل |

زه ډوبیدونکو سره محبت نه کوم | هرکله چې ئې روښانه سپوږمۍ ............ | اولیده نو وې وئیل

هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَىِٕنْ لَّمْ يَهْدِنِيْ

دا رب زما دې | خو هر کله چې | غائبه شوه هغه | نو وې وئیل | که چرې | هدایت اونکړې ماته

چې دا زما رب دې | خو کله چې هغه پرېوته | نو وې وئیل که چرې ماته الله ﷻ سمه لار اونه ښائی

رَبِّيْ لَاَكُوْنَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّآلِّيْنَ ۝ فَلَمَّا رَاَ الشَّمْسَ

رب زما | نو خامخا شم به زۀ | د قوم | گمراه نه | هر کله | اولیدو هغه | نمر

نو زه به د هغه خلقو نه شم چه گمراهان دی | ............بیا هر کله چې نمر ئې ځلیدونکې اولیدو

بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّيْ هٰذَآ اَكْبَرُ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَتْ

ځلیدونکې روښانه | نو وې وئیل | دا رب زما دې | دا د ټولونه لوئ دې | خو هر کله چې | پناه شو هغه

............نو وې وئیل چې دا زما رب دې | او داپۀ ټولو کښې لوئې دې | خو کله چې هغه پرېوتو

قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ۝

نو وې وئیل | اې زما قومه | بیشکه زۀ | بیزاره یم | د هغو نه | چې تاسو ئې شریکوئ

نووې وئیل چې انې زما قومه زه ستاسو د شرک نه ویزاره یم ..........

اِنِّيْ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

بیشکه زۀ چې یم | گرزولې دې ما | مخ خپل | هغه الله ته | چې پیدا کړی دی هغه | آسمانونه | او زمکه

ماخو خپل مخ هغه ذات طرف ته اوگرځولوا چې آسمانونه او زمکې ئې پیدا کړی دی

حَنِيْفًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝

حال دا چې یو مخیزې یم حق ته | او نۀ یم زۀ | د مشرکانو نه |

زه یومخیز یم | او د مشرکانو په ډله کښې نه یم شامل. |

**قوله تعالی:** وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً ۚ

**د حضرت ابراهیم علیه السلام خاندان او آزر:-** د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه د حضرت ابراهیم علیه السلام د پلار نوم آزر نه وو بلکه تارخ وو. د الله ﷻ ارشاد ﴿وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ﴾ ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه د آزر نه مراد صنم او بت دې. د ابراهیم علیه السلام دپلار نوم خو تارخ، د مور نوم شانی او د بی بی نوم ساره وو او د

حضرت اسماعیل ﷺ د مور نوم کومه چه د ابراهیم ﷺ وینزه وو هاجره وه. د نسب د علماؤ نه د اکثرو قول دا دې. آزر نوم وو د یو بت نو د ابراهیم ﷺ پلار د دې بت خادم او عبادت کونکې وو په دې وجه دغه نوم په هغه باندې غالب راغلو. والله اعلم.

ابن جریر رحمه الله وغیره وائی چه د خبرو دا طریقه د هغه خلقو په خبرو اتروکښې یوه عیب جنه خبره او ناروا خبره ګڼړلې شوه. د دې لفظ آزر معنی ده کوګ. لیکن د چانه نې د دې روایت نه دې پیش کړې او نه نې دا چاسره منسوب کړې ده. ابن ابی حاتم رحمه الله وائی چه معتمر بن سلیمان بیان کړې دې چه ما د خپل پلار نه اوریدلی دی چه هغه به د آزر معنی اعوج یعنی کوګ خودله او دا یوه سخته کلمه وه چه ابراهیم ﷺ اوونیله. ابن جریر رحمه الله وائی چه صحیح خو دا دی چه د هغه د پلار نوم آزر وو. بیا د نسب د پیژندګلو کونکو اعتراض پیش کولو سره وائی چه د ابراهیم ﷺ د پلار نوم تارخ وو. بیا وائی چه ممکن دی دوه نومونه نې وی لکه چه د اکثرو خلقو وی او یا یو نوم د لقب او عرف په توګه وی دا یوه جید وجه کیدې شی. والله اعلم.

**آزر ته د توحید درس او د هغې انجام:-** د الله ﷻ په قول کښې د قاریانو اختلاف دې. حسن بصری او ابویزید مدنی رحمهم الله وائی چه د دې معنی دا دې چه اې آزره! ته بتان رب ګڼړې؟ لکه آزر نې منادی جوړکړې دې او جمهور دا په فتحې سره لولی. د حسن بصری رحمه الله په نزد پیش سره نه دې. د دې مطلب دا شو چه دا لفظ یو معرفه او علم دې په دې وجه به غیرمنصرف ګڼړلې شی. لکه قول ﴿لِأَبِيهِ﴾ نه بدل دې او هم په دې بنا باندې منصوب دې یا به عطف بیان ګڼړلې شی او هم دا ډیر صحیح کیدې شی اوچه کوم خلق دا نعت ګرځوی لکه احمر او اسود غیرمنصرف خو چه د چا دا ګمان دې چه دا د محمول کیدو په وجه منصوب دې څکه چه ﴿أَصْنَامًا آلِهَةً﴾ تقدیرداسې دې﴿یا ابت أَزَرًا أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا آلِهَةً﴾ یعنی اې پلاره! آیا آزر بتان ته رب جوړوې خو د لغت په لحاظ سره دا قول بعید یعنی لرې دې په دې وجه چه کوم حرف د استفهام نه پس وی هغه په خپل ماقبل باندې عمل نه کوی څکه چه د دې حرف استفهام د پاره خو صدرکلام پکار دې. ابن جریر رحمه الله وغیره د دې تقریر او تصدیق کړې دې او د عربئی په قواعدو کښې همدغه مشهور دی. مقصد دا چه ابراهیم ﷺ خپل پلار ته نصیحت اوکړو، د بتانو په عبادت کولو نې د هغه مخالفت اوکړو، هغه نې د دې نه منع کړو خو د هغه پلار منع نه شو. هغه اوونیل چه تا بت خپل رب جوړکړو؟ زه تا او ستا په مسلک تلونکې خلق په لویه ګمراهئی کښې شمیرم. په دې سره به بې لارې شې بلکه په حیرانتیا او جهل کښې به یئې. هغه په جهالت او ګمراهئی ګرخول د هر یو عقل سلیم صاحب د پاره یو واضح دلیل دې.

د الله ﷻ ارشاد دې په قرآن کریم کښې د حضرت ابراهیم ﷺ ذکر اوکوره، هغه صدیق او نبی وو. خپل پلار ته هغه ونیلي وو اې پلاره د دې عبادت مه کوه چه نه اوری، نه ګوری او نه ستا څه کار کولې شی. اې پلاره! د الله ﷻ د طرف نه ماته هغه علم حاصل شوې دې چه تاته نه دې حاصل شوې نو زما خبره اومنه زه تاته بالکل نیغه لار ښائم. اې پلاره! د شیطان عبادت مه کوه شیطان د الله ﷻ دښمن دې. اې پلاره سخته اندیښنه ده چه په تاباندې به عذاب نازل شی او ته به د شیطان دوست اوګرځولې شې. نو آزر جواب ورکړو چه اې ابراهیمه! ته زما د خدایانونه ډډه کونکې نې، که ته د دې طریقې نه منع نه شوې نو زه به تا سنګسار کړم او تابه بالکل پریږدم. نو ابراهیم ﷺ سلام عرض کړو او ونې ونیل چه زه به ستا د پاره د الله ﷻ نه استغفار اوکړم. زما الله ﷻ ډیر مهربانه دې خو زه تاهم پریږدم او ستا دا باطل خدایان هم. زه به هم الله ﷻ سره خپله رابطه یوځائې کوم. کیدې شی چه الله ﷻ ما زما په دعاکښې ناکامه نه کړی. ابراهیم ﷺ به ترژونده پورې د خپل پلار د پاره استغفار کولو خو چه کله ئې پلار هم په شرک کښې مړشو او حضرت ابراهیم ﷺ ته معلومه شوه چه د شرک د پاره استغفار کار نه

کوی نو استغفار نې پریخودو. لکه چه الله ﷻ فرمائی د ابراهیم ﷺ استغفار خو د هغه د پلاره د پاره په دې وجه وو چه هغه ورسره وعده کړې وه. لیکن کله چه ابراهیم ﷺ ته معلومه شوه چه هغه د الله ﷻ دښمن دې نود هغه نه ئې ویزاری اوکړه بې شکه حضرت ابراهیم ﷺ الله پرست او حلیم وو. په صحیح حدیث کښې روایت دې د قیامت په ورځ به حضرت ابراهیم ﷺ خپل پلار سره ملاو شی نو آزر به ورته اووائی اې بچیه نن به زه ستا نافرمانی نه کوم نو ابراهیم ﷺ به خپل رب ته عرض اوکړی اې ربه! تاماسره وعده نه وه کړې چه زه به د قیامت په ورځ تا نه ذلیل کوم او نن زما د پاره د دې نه بله لویه رسوائی څه کیدې شی چه زما پلار په دې حال کښې دې. ارشاد به اوفرمائیلې شی چه اې ابراهیم ﷺ! ته خپل شاته اوګوره نو هغه به د خپل پلار په ځائې یو کتمل اوګوری چه په ختوکښې لړلې شوې دې او د هغه پښې نې نیولی دی او هغه دوزخ طرف ته راکاږی بوځی.(۱)

**د آسمان او زمکې په ملکوت باندې نظر:-** دغه شان الله ﷻ ارشاد فرمائی چه مونږ ابراهیم ﷺ ته د زمکې او آسمان ملکوت وراندې کوو اود هغه په نظر کښې دا دلیل قائموو چه څنګه د الله ﷻ په وحدانیت د زمکې او آسمان مخلوق بنیاد دې د کومې نه چه دا دلیل اخستې شی چه د الله ﷻ نه سوا بل رب نشته. هم داسې دلالت فی النظر ته ملکوت وائی. ځکه چه دلالت فی النظر اول د ټولو نه وراندې حضرت ابراهیم ﷺ ته حاصل وو لکه چه الله ﷻ فرمائی ﴿أَوَلَمْ يَنظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ او بل ځائې کښې دی ﴿أَفَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾ خلقو له دآسمان او زمکې په مخلوق باندې د عبرت نظر اچول پکار دی. دوی ته د ځان نه وراندې روستو کتل پکار دی. که مونږ غواړو نو په زمکه کښې به دوی ورخښ کړو او که اوغواړو نود آسمان نه به پرې یوه ټکړه راګذار کړو. رغبت او رجوع کونکو د پاره په دې کښې نښې دی. خو د ملکوت باره کښې ابن جریر رحمه الله وغیره بیان کړې دې چه د ابراهیم ﷺ د سترګو په وړاندې آسمان شلیدلې وو او حضرت ابراهیم ﷺ د آسمان ټولو څیزونوته کتلې وو. تردې چه د هغه نظر تر عرش پورې رسیدلې وو او اووه واړه زمکې د هغه د پاره کولاو شوې وې نو هغه د زمکې دننه څیزونه اولیدل. بعضو خلقو د دې مضمون اضافه هم کړې ده چه هغه د خلقو ګناهونه هم لیدلې وو او په هغه ګناهګارانو باندې ئې بددعا کړې وه نو الله ﷻ فرمائیلې وو چه نه، اې ابراهیم ﷺ! زه تانه ډیر په خپلو بندیګانو باندې مهربان یم، څه لرې خونه ده که روستو هغوی توبه کړی او رجوع اوکړی. حضرت ابن عباس ؓ د دې آیت باره کښې فرمائی چه الله ﷻ په خپل قدرت سره حضرت ابراهیم ﷺ ته د زمکې او آسمان ټول پټ او ښکاره څیزونه اوخودل، په هغې کښې هیڅ هم پټ پاتې نه شو او چه کله هغوی د ګناهګارانو په ګناه باندې بد ونیل نو اوفرمائیلې شو چه نه داسې نه، اود هغوی بد دعا رد کړې شوه. بیا هغه د وړاندې په شان شو. احتمال دې چه د هغه د سترګونه پرده اخوا شوې وی او پټ د هغه د پاره ښکاره شوی وی. او دا هم احتمال دې چه د زړه په سترګو هغه لیدلې وی او د الله ﷻ حکمت باهره او دلالت قاطعه ئې معلوم کړې وی لکه چه د امام احمد او ترمذی رحمهم الله نه روایت دې. د خوب په حالت کښې الله ﷻ په یو بهترین شکل کښې ماله راغلو او وئې فرمائیل اې محمد ﷺ! په ملاءاعلی کښې څه بحث کیږی؟ ماعرض اوکړو اې ربه! ماته پته نشته نو هغه خپل لاس زماد دواړو اوږو په مینځ کښې کیخودو نود هغه د ګوتویخوالې ما په خپله سینه کښې محسوس کړو. اوس هرڅیز ماته ښکاره شو اوهرڅه می اولیدل.(۲) د الله ﷻ قول ﴿وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ﴾ کښې ونیلې شوی دی چه په دې آیت کښې واو زائده دې نود دې تقدیرداسې

۱)صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی ( واتخذالله ابراهیم خلیلا). ۳۳۵۰.
۲)احمد: ۲٤۳/۵، ترمذی کتاب تفسیر القران ومن سورة صاد: ۳۲۳۵، وسنده حسن.

شو ﴿مَلَكُوتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ﴾ یعنی بغیرد واوْ نه.لکه څنګه چه په دې آیت کښې ﴿وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِيْنَ سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ﴾ پدې کښې د آیت نه پس واوْ زائده دې. دا هم وئیلې شوی دی چه زائد نه دی بلکه د وړاندینئی خبرې په بنیاد باندې خبره اوچته کړې ده. یعنی مونږ په هغه باندې ملکوت ښکاره کړل دې د پاره چه هغه اوګوری او یقین اوکړی. اوس د الله ﷻ قول دې چه کله تیاره شپه شوه نو حضرت ابراهیم علیه السلام ستورې اولیدلو نو وئی وئیل چه دا به زما رب وی خو چه کله هغه ډوب شو نو هغه اووئیل چه ډوبیدونکی څیزونه خو زه نه خوښوم او نه غیبیدونکې څیز رب کیدې شی. قتاده رحمه الله وائی چه ابراهیم علیه السلام ته معلومه شوه چه رب خو هغه کیدل پکار دی چه زائل کیږی نه. بیا نې چه کله سپوږمئی روښانه اولیدله نو وئی وئیل چه دا به زما الله ﷻ وی. چه هغه هم ډوبه شوه نو وائی دا هم الله ﷻ نه دې. که الله ﷻ عزوجل زما لارخودنه اونه کړی نو زه خو به ګمراه شم. بیائې چه کله نمر راختونکې اولیدو نو وئیلې دا روښانه دې او د ټولو نه لوئ هم دې نو چه کله هغه هم ډوب شو نو وئی وئیل اې قومه! زه خو جدا کیږم ستاسو د دې ټولو څیزونونه د کومو چه تاسو عبادت کوئې. ماخو د هغه ذات طرف ته خپل مخ کړې دې چا چه زمکې او آسمانونه پیدا کړی دی سره د دې خبرې د دې څیزونو د پیدا کولو په وخت کښې د هغه په وړاندې د دې هیڅ نمونه نه وه په دې وجه زه د شرك نه د توحید طرف ته راغلم.

**دَ مناظرې میدان که دَ غوراوفکر مقام:-** مفسرینو حضراتو په دې مقام کښې اختلاف کړې دې چه آیا دا د ابراهیم علیه السلام د غوراو فکر مقام دې یا قوم سره د مناظرې مقام دې او هغه د قوم نه د یو مناظره کونکی په شان سوال کوی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه دا د ابراهیم علیه السلام د غور او فکر مقام ګرځوی د دې قول نه په دلیل نیولوکه زما رب ماته هدایت اونه فرمائی نو زه به ګمراه شم. محمد بن اسحاق رحمه الله وائی چه ابراهیم علیه السلام هغه وخت وئیلی وو کله چه هغه په اول ځل د هغه غار نه راوتلې وو په کوم کښې چه هغه د خپلې مور نه پیدا شوې وو ځکه چه د نمرود بن کنعان د ویرې هغه د بچې د پیدا کیدو په وخت کښې یو غار کښې ننوتلې وه. نمرود ته نجومیانو وئیلی وو چه دې کال کښې به یو ماشوم پیدا کیږی د چا په لاس چه به ستا ملك برباد شی نو هغه حکم ورکړې وو چه په دې کال کښې څومره ماشوما پیدا کیږی ټول قتل کړئی. د ابراهیم علیه السلام مور بی بی چه کله حامله شوه او د حمل کیدو وخت نزدې شو نوهغه د ښار نه بهر یو غار ته لاړه او ماشوم ئې هم هلته پریخودو لاړه. په دې سلسله کښې هغه ډیرد عادت نه د خلاف خبرو ذکر کوی لکه څنګه چه هم په دې بنیاد باندې مخیکینو او روستنو مفسرینو هم ذکر کړې دې خو ربښتیا دادی چه د ابراهیم علیه السلام خپل قوم ته دا بیان د یوې مناظرې په حیثیت سره دې. ددې عقیدې باطله کولودپاره چه تاسود کومو بتانو عبادت کوئې دا ټول هیڅ نه دی. په اول مقام کښې هغه د بتانو د عبادت متعلق د خپل پلار خطا ښکاره کوی چه دا بتان هغوی د فرښتو په شکل جوړکړی وو چه دا بتان به دخالق حقیقی په وړاندې د هغوی شفاعت کوی سره د دې چه دا بتان پخپله د هغوی په نظرکښې سپك او بې معنې وو. لیکن هغوی لکه چه د ملائکو عبادت کولو سره دا غوښتل چه هغوی د رزق او نورو ضرورتونو متعلق الله ﷻ ته سفارش اوکړی نو په دې مقام کښې د هغوی خطا او ګمراهی ښکاره شوه. دا شکلونه د اوو ستورو وو یعنی قمر، عطار، زهره، شمس، مریخ، مشتری او زحل. د ټولو نه ډیر ځلیدونکې ستورې شمس یعنی نمر دې بیا قمر سپوږمئی ده بیا په دې ټولو ستوروکښې ډیرځلیدونکې زهره ده. نو حضرت ابراهیم علیه السلام د ټولو نه وړاندې هم دا ستورې زهره واخستله او قوم ته ئې اوخودل چه تاسو د رب په ځائې دا کوم ستوری نیولې دی په دې کښې هیڅ صلاحیت نشته، دا پخپله پابند دی چه اود دوی رفتار معین او مقرر دې. دا نیغ یا ګس طرف ته لړ شان هم په خپل اختیارسره نه شی تیتیدلې. دا اجرام فلکی دی کوم چه الله

ﷻروښانه پيدا كړي دي او په دې كښې دهغه ډير لوئ حكمت پټ دى، دا د مشرق نه راوخي بيا د مشرق او مغرب په مينځ كښې په لار تيريږي بيا د نظر نه غيب شي او بله شپه ښكاره شي داسې ځيزونه چه په خپل عادت مستمره باندې پابند وي الله ﷻ څنګه كيدې شي. بياهغه د سپوږمئي طرف ته راځي او د زهره باره كښې چه كوم بيان كړې وو هم هغه بيان كوي. بيا د نمر ذكر كوي او چه كله د دې دريو ځيزونونه د الهيت انتفاء كوي چه په اجرام فلكي كښې ډير روښانه دي او په دليل قاطع سره خپله دعوى ثابتوى نو فرمائي چه اې قومه! زه د دې ځيزونو نه بري يم كوم چه تاسو د الله ﷻ سره شريك ګرځوني. كه چرې دا الله ﷻ دى نو دا ټول امداديان جوړكړني تاسو زما مخالفت اوكړني او لږ شان هم ما سره رعايت او نرمي مه كوني. زه د فاطرالسموات والارض شوې يم زه به ستاسو په شان شرك نه كوم. زه خو به د دې ځيزونو د خالق عبادت كوم چه د دې مخترع دې، مسخر دې او مدبر دې. د هرځيز رشته انقياد هم د هغه په لاس كښې ده. لكه څنګه چه اوفرمائيل ستاسو رب هم هغه دې چا چه په شپږو ورځوكښې زمكې او آسمان پيداكړل بيا په عرش باندې مستوى شو. شپه په ورځ او ورځ په شپه سره پټوي چه يو بل پسې ځي راځي. نمر سپوږمئي او ستورى ټول د هغه د حكم لاندې دي. د مخلوق اوامر مالك هم هغه دې، هغه رب العالمين دې اود ډيرو بركتونو خاوند دې.

نو دا څنګه جائزكيدې شي چه ابراهيم ﷺ په دې مقام د غور او فكر نظر واچوي او د شرك په خيالاتوكښې اول اخته شي سره د دې چه الله ﷻ د هغه په حق كښې فرمائيلي دي چه مونږ د اول نه حضرت ابراهيمﷺ ته هدايت وربښلې دې. مونږ هغه ښه پيژنو، هغه به خپل پلار او قوم ته ونيل، دا څه بتان دي چه تاسو ورته عبادت كوني. او وئي فرمائيل چه ابراهيم ﷺ صرف د الله ﷻ عبادت كونكې او ډير مخلص بنده دې. هغه چرې هم شرك نه دې كړې. هغه د الله ﷻ په نعمتونوباندې شكر ګذاردې. الله ﷻ هغه ډيره غوره جوړكړې دې اوهغه ته ئې د صراط مستقيم هدايت فرمائيلې. په دنياكښې هم هغه ته خوبياني او نيكئي وركړى دى او په آخرت كښې هم هغه د صالحينونه دې، نو بيا مونږ ستا طرف ته وحى رالیږو اې نبي چه د ابراهيم ﷺ د دين منئه كوه هغه حنيف وو مشرك نه وو. الله ﷻ اوفرمائيل چه اووايه اې نبي! زما رب ماته د صراط مستقيم هدايت كړې دې چې په هغې ابراهيم ﷺ قائم وو. اوهغه مشركانو نه نه وو. صحيح حديث پاک نه ثابت دي چې حضرت نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې هر پيدا كيدونكې فطرت باندې پيدا كيږي. ([1]) حضرت رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل الله ﷻخپل بنديګان حنيف پيداكړي دي ([2]) يعني هم د الله ﷻ كيدونكي. او وئې فرمائيل چه د الله ﷻفطرت هم هغه دې په كوم چه د انسان پيدائش اوشى او كوم ځيز ئې چه څنګه پيدا كړو په هغې كښې بدلون نه شي كيدې. او وئې فرمائيل دكوم معنى چې ديوقول په بناهم دغه ده لكه څنګه چې د ﴿فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا[3]﴾ .او ﴿ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِن بَنِي آدَمَ مِن ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۖ قَالُوا بَلَىٰ[4] ﴾ ده. د دې بيان به راشي. يعنى دا چه خلق الله ﷻ په خپل فطرت باندې پيداكړي دي د الله ﷻ د تخليق بدلون نشته. نوكله چه د دې الله پرستي فطرت او د بندګنى اعتراف د ټول مخلوق باره كښې دي نو د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ باره كښې به څنګه نه وي اوهغه د الله ﷻ په پيژند ګلوكښې څنګه فكرمند اومتردد كيدې شي هغه خو د فطرت سليم په لحاظ باندې ښكلي هستى وه. بغير د شك نه خبره هم دغه ده چه هغه په دې مقام باندې خپل قوم سره مناظره او مباحثه كوله او چه په كوم شرك كښې هغه خلق اخته وو د هغوى خيالات د دليل او ثبوت په ذريعه لرې كوي. دا خبره نه ده چه په خپله متردد وو.

[1]) صحيح بخارى كتاب الجنائز باب ماقيل فى اولاد المشركين : ۱۳۸۵، صحيح مسلم : ۲۶۸۵، ترمذى : ۲۱۳۸، احمد: ۲۵۳/۲.

[2]) صحيح مسلم كتاب الجمعة باب الصفات التى يعرف بها فى الدنيا اهل الجنة واهل النار:۲۸۶۵، احمد:۲۶۶/٤، ابن حبان: ۶۵۳، مسندالطيالسى:۱۰۷۹.

وَحَآجَّهٗ قَوْمُهٗ ؕ

| اوجګړه اوکړه دهغه سره | قوم دهغه

| اودهغه قوم هغه سره جګړه اوکړه

قَالَ اَتُحَآجُّوْٓنِّیْ فِی اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنِ ؕ

نوهغه اووئیل آیا تاسو جګړه کوئ زما سره | په حق دالله کښې | اوحال دا چې لاره ښودلې ده هغه ماته

هغه ورته اووئیل چې آیاتاسو ماسره دالله ﷻ په حق کښې جګړه کوئ | اوحال دادې چې هغه ماته سمه لار ښودلې ده

وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ بِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ رَبِّیْ شَيْـًٔا ؕ

اونه یریږم زه | دهغې نه | چې تاسو ئې شریکان کوئ | دهغه سره | مګر کیږي به هغه | چې اوغواړي | رب زما څه څیز

اوزه ستاسو دجوړکړې شوؤ شریکانو نه ویره نه کوم | البته زما رب چې څه غواړي (نوهغه به کیږي)

وَسِعَ رَبِّیْ كُلَّ شَیْءٍ عِلْمًا ؕ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ۝ وَكَيْفَ

فراخه دې | رب زما | په هرڅیزباندې | په لحاظ دعلم سره | آیانونه قبلوئ تاسو نصیحت | اوڅنګه |

زما د رب علم په هرڅۀ راخور دې | نوتاسو هم حق نه سبق نه زده کوئ | ...................اوڅنګه به

اَخَافُ مَآ اَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُوْنَ اَنَّكُمْ اَشْرَكْتُمْ

اویریږم زه | دهغې نه | چې شریکان کړې دی تاسو | اونه یریږئ تاسو | ددې نه چې بیشکه تاسو | شریك کړې دې تاسو

زه ستاسو دشریکانو نه اوویریږم | حال دا دې چې تاسونه ویریږئ چې داسې څیزونه

بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا ؕ

دالله سره | هغه څه | چې نه دې نازل کړې الله | په شریکولودهغې سره | په تاسو | څه دلیل |

الله ﷻ سره شریکوئ | چې دهغې (د عبادت په جواز ) هیڅوتاسره هیڅ دلیل نشته دې

فَاَیُّ الْفَرِيْقَيْنِ اَحَقُّ بِالْاَمْنِ ۚ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝

نوکومه | یوه ددې دواړوډلونه | زیاته مستحقه ده | په امن سره | که یئ تاسو | چې پوهیږئ |

(دااوبیانې) چې کومه یوه په دې دواړوډلو کښې دامن زیاته حقداره ده ؟ | خوهله که تاسو پوهیږئ

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ

هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | اوګډوډئې نۀ کړو | ایمان خپل | دظلم سره | دغه کسان چې دی |

چاچې ایمان راوړې دې | اوخپل ایمان ئې ظلم (شرک) سره نه دې ګډ کړې | نوهم دغه خلق

لَهُمُ الْاَمْنُ وَهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ۝ وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ

هم هغوئ لره دې | امن | اوهغوئ | نیغه لارموندونکی دی | اودغه وۀ | دلیل زمونږه

په امن کښې دی | ...........اوهم دوی په سمه لار روان دی | .............دا زمونږ هغه دلیل وو چې

| |
|---|
| آتَيْنَٰهَآ إِبْرَٰهِيمَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ ۚ نَرْفَعُ دَرَجَٰتٍ |
| چې ورکړې وو مونږه هغه \| ابراهیم ﷺ ته \| په مقابله \| د قوم د هغه کښې \| اوچتوو مونږ \| په درجو کښې |
| چې ابراهیم ﷺ ته مو د قوم مقابله کښې ورکړې وو \| او مونږ د هغه خلقو درجې اوچتوو |
| مَّن نَّشَآءُ ۗ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿٨٣﴾ |
| هغه څوك \| چې اوغواړو مونږه \| بیشکه \| رب ستا \| صاحب د حکمت دې \| پوهه دې په هر څه \| |
| چې د چا باره کښې زمونږ خوښه شي \| بیشکه رب ستا د حکمت خاوند \| او په هر څه پوهه دې \| |

قوله تعالی:: وَحَآجَّهُۥ قَوْمُهُۥ ۚ قَالَ أَتُحَٰٓجُّوٓنِّى فِى ٱللَّهِ وَقَدْ هَدَىٰنِ ۚ

**د مشرکانو په وړاندې صفا صفا توحیدی خبرې:-** الله ﷻ د حضرت ابراهیم خلیل الله باره کښې ذکر فرمائی چه کوم وخت هغوی د توحید متعلق خپل قوم سره مناظره کوله او هغوی خپل قوم ته فرمائیل چه آیا تاسو د الله ﷻ باره کښې ماسره جګړه کوئې هغه خو واحد او خان له دې او هغه د حق طرف ته ماته بصیرت او هدایت فرمائیلې دې او زه د هغه په یو والی باندې دلائل لرم. نو زه بیا ستاسو فاسدو اقوالو او باطله شبهاتو طرف ته څنګه توجو ورکولې شم. ستاسو د قول په باطل کیدو باندې ماسره دلیل شته. ستاسو دا د خان نه جوړشوی بتان خو په یوه خبره کښې هم اثر نشی کولې. نه زه د دوی نه ویریږم او نه د دوی زه ذره پرواه کوم. که دا بتان زما څه کولې شی نو ښه ده اودې کړی او ماله دې د سمیدو د پاره یوذره مهلت هم نه راکوی. د الله ﷻ قول دې ﴿إِلَّآ أَن يَشَآءَ رَبِّى شَيْـًٔا ۗ﴾ او که الله ﷻ څه کول غواړی نو کولې شی. په ټولو څیزو د هغه د علم احاطه وسیع ده. یو څیز د هغه نه پټ نه دې. زه چه کوم څیز بیانوم د هغې نه تاسو هیڅ عبرت نه اخلئی؟ دې د پاره چه د بتانو د عبادت نه منع شئی. د احتجاج دا صورت بالکل داسې دې لکه څنګه چه حضرت هود ﷺ د خپل قوم په وړاندې ایخودې وو. او د هغه قوم عاد قصه هم په قرآن پاك کښې موجود ده چه ﴿ قَالُوا۟ يَٰهُودُ مَا جِئْتَنَا﴾ یعنی اې هود ﷺ! تا خو څه معجزه پیش نه کړه، ستا په خالی وینا باندې مونږ خپل معبودان پریږدو، مونږ خو په تا باندې ایمان راوړونکی نه یو، مونږ خو هم دا ګڼړو چه په تا باندې زمونږ د معبودانو څه لعنت وریدلې دې. نو هود ﷺ اووئیل زه الله ﷻ ګواه جوړوم او تاسو هم ګواه اوسیږئی چه زه د الله ﷻ نه نه بلکه الله ﷻ سره نور معبودان چه تاسو شریك کړی دی هغې نه ویزاره یم. اوس تاسو ټول ستاسو د بتانو ټول یوځای شئی او چه څومره زما بد غواړئی هیڅ کسر مه پریږدئی او مه ماله مهلت راکوئې. زما یقین خو په خپل رب باندې دې چه ستاسو هم رب دې هغه به هر ځا لرونکی خپل خان سره د نیولو د پاره رابلی. بیا په ذکر شوی آیت کښې فرمائی چه زه آخر ستاسو د دې باطلو بتانو نه ولې اوویریږم چه تاسو پخپله د دې خبرې نه نه ویریږئی، چه نور څیزونه د الله ﷻ سره شریك ګڼړئی د کوم چه تاسو سره هیڅ دلیل هم نشته. لکه څنګه چه یو ځای کښې فرمائی﴿ أَمْ لَهُمْ شُرَكَٰٓؤُا۟﴾ بل ځای فرمائی ﴿ إِنْ هِىَ إِلَّآ أَسْمَآءٌ سَمَّيْتُمُوهَآ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُم﴾ بیا ارشاد مبارك دې چه هم تاسو اوښایئې چه ستاسو او زما په ډله کښې څوك په حقه دې، آیا هغه الله ﷻ چه هر څه کولې شی یا هغه چه د ذرې برابر نفع نقصان نه شی کولې. بیا فرمائی چه کومو خلقو ایمان راوړو او خپل ایمان سره ئې د ظلم پیوند اونه لګولو، نو امن او تسلی خو د هغوی حق دې او هم دغه د هدایت خاوندان دی. هم هغوی خپل عبادت د شرك د شك او شبهې نه خالص ساتلې، په دنیا او آخرت باندې هم د دوی قبضه ده.

**کله چه صحابه کرامو ﷺ ته د ظلم د مفهوم پته اونه لګیدې شوه:-** په بخاری شریف کښې د عبدالله ﷺ نه روایت دې چه کله دا آیت ﴿ وَلَمْ يَلْبِسُوٓا۟ إِيمَٰنَهُم بِظُلْمٍ ﴾ نازل شونو صحابه کرامو رضوان الله اجمعین اووئیل یا رسول الله ﷺ! څوك دې چه هغه به په خپل نفس باندې ظلم نه وی کړې. نو آیت نازل شو ﴿ إِنَّ ٱلشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾ یعنی ظلم عظیم چه دې هغه شرك دې،([1])کله چه دا پورتنې آیت نازل شوې وو په هغې خلقو ته غلط فهمی شوې وه نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه څنګه تاسو ګڼړئی نو داسې نه ده. آیا تاسو نه دی اوریدلی چه عبدصالح یعنی لقمان حکیم وئیلي وو ﴿ يَٰبُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِٱللَّهِ ۖ إِنَّ ٱلشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾ د ظلم نه مراد شرك دې([2]) عبدالله ﷺ نه روایت دې چه کله ﴿وَلَمْ يَلْبِسُوٓا۟ إِيمَٰنَهُم بِظُلْمٍ﴾نازل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ماته اوفرمائیلې شو چه ته د هغه ایمانداره خلقو نه ئې. ([3]) جریر ابن عبدالله ﷺ فرمائی چه یوځل مونږ رسول الله ﷺ سره روان وو چه کله د مدینې نه بهر شو نو یو سور زمونږ طرف ته راروان ښکاریدو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا سور تاسو سره د ملاویدو د پاره راروان دې. کله چه هغه مونږ له راورسیدو نو سلام ئې اوکړو. حضور ﷺ تپوس اوکړو د کوم ځائ نه راروان یئې؟ هغه د خپل کور بال بچ او قبیلې د طرف نه. بیا حضور ﷺ اوفرمائیل چرته روان یئې؟هغه وئیل رسول الله ﷺ سره ملاویدل غوارم. حضور ﷺ اوفرمائیل وایه هم زه د الله ﷻ رسول یم. هغه وئیل یارسول الله ﷺ! ماته د ایمان تعلیم راکړه. حضور ﷺ اوفرمائیل چه وایه د الله ﷻ نه علاوه بل څوك اله نشته او دا چه محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دې. مونځ کوه، زکواة ورکوه، د رمضان روژې ساته او حج کوه. هغه اووئیل ماته د دې خبرو اقرار دې. بیا چه کله روان شو نود هغه د اوښ پښه د ځنګلی مږې په سوړه کښې اوننښته او اوښ راپریوتلو دې سره هغه سور هم راپریوتلو د هغې سرمات شو سټ ئې هم مات شو. حضور ﷺ اوفرمائیل په ما د ده خسمانه کول ضروری دی. ورسره عمار بن یاسر ﷺ او حذیفه ﷺ ورمنډه کړه او هغه ئې اوچت کړو بیا ئې اووئیل یا رسول الله ﷺ! دا خو مړ شو. حضور ﷺ مخ بل طرف ته کړو اوونی فرمائیل چه تاسو ته پته ده چه ما مخ ولې واړولو. ما دوه فرښتې اولیدلې چه د جنت میوې د ده په خُله کښې ورکولې څه سره چه ماته معلومه شوه چه هغه اوږې مړشوې دې. بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا دهغه خلقو نه وو د چا باره کښې چه الله ﷻ فرمائیلی دی چه هغوی د خپلو ایمانونوسره ظلم یعنی شرك نه یو ځائ کوی. بیا ئې اوفرمائیل چه خپل رور انتظام اوکړئی نو مونږ هغه ته غسل ورکړو او کفن مو ورته واغوستو، خوشبوئ مو پرې اومږله او چه کله مو قبر ته اوړلو نو حضرت رسول اکرم ﷺ تشریف راوړلو او د قبر په غاړه کیناستو او وئی فرمائیل چه لحد والا قبر جوړکړئی کولاؤ قبر مه جوړوئی. زمونږ قبرونه د لحد والا وی او د نور خلقو کولاؤ قبرونه وی. ([4]) اودې د هغه خلقو نه وو چه ډیر لږ عمل کوی او ډیر زیات خیر بیاموﻣی.([5]) په تفصیل سره ابن عباس ﷺ داسې بیان کوی چه مونږ رسول الله ﷺ سره روان وو یو باندچې مخې ته راغلو او وئی وئیل یا رسول الله ﷺ! د هغه ذات قسم دې چا چه ته په حقه سره پیغمبر رالیګلې ئې ما خپل مال اولاد وطن پریخودو او راغلم چه ستا په ذریعه هدایت حاصل کړم او دغه شان تاسو ته رسیدلې یم چه د زمکې ګیا وابنه خورم نو ته به اوس ماته دین

---

[1] ) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الانعام باب ( ولم یلبسوا ایمانهم بظلم) ٤٦٢٩، صحیح مسلم: ١٢٤. ترمذی: ٣٠٦٧، احمد:١/٣٧٨، السنن الکبری للنسائی: ١١١٦٥.

[2] ) احمد:١/٣٧٨،

[3] ) ابن مردویه.

[4] ) احمد:٤/٣٥٩،

[5] ) احمد حواله سابق

اوښائي. حضور ﷺ هغه ته دین اوخودلو او هغه قبول کړو. مونږ د هغه نه چاپیره راجمع شو هغه روان شو نو د هغه د اوښ پښه د خنګلی مږې په سوړه کښې اونښته، هغه پریوتلو او په دیکه سره د هغه سټ مات شو. نوحضور ﷺ اوفرمائیل د الله ﷻ قسم هغه رښتیا ونیلی وو چه خپل وطن بال بچ پریخودی او ماله صرف هدایت او دین حاصلولودپاره راغلي وو. هغه د دین تعلیمات حاصل کړل. مانه معلومه شوه چه د سفر ورځې صرف د زمکې ګیا واښه خوړلو سره تیرې کړې وې، هغه عمل لږ اوکړو او اجرني ډیر حاصل کړو. آیا تاد هغه خلقو باره کښې اوریدلی چا چه خپل ایمان سره ظلم او شرك شامل نه کړو. هم دغه خلق د امن او د زړه د اطمینان حق دار دی. همدغه هدایت یافته خلق دی او دې هم د هغوی نه وو.

د عبدالله بن سنجره ؓ نه روایت دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چاته چه ورکړې شو نو هغه شکر اوکړو او چاته چه ورنه کړې شو هغه صبر اوکړو او چا ظلم اوکړو او بیائې بښنه اوغوښتله او په چا چه ظلم اوشو هغه بښنه اوکړه، دومره وینا سره حضور ﷺ خاموش شو نو خلقو اوونیل یارسول الله ﷺ! ده ته به څه ملاویږی نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه هم دغه خلق د الله ﷻ د طرف نه په امن کښې دی او همدغه خلقو هدایت موندلي دې. د الله ﷻ ارشاد دې﴿ وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى قَوْمِهٖ ؕ﴾ مونږ حضرت ابراهیم ﷺ ته خپل قوم سره مناظره او دلیلونه راوړل اوخودل. مجاهد رحمه الله د دې آیت نه لاندینی دلیل پیش کولو نه الله ﷻ مراد اخلی یعنی دا حجت ابراهیمی چه زه ولې ستاسو د معبودانو نه اوویریږم سره د دې چه تاسو د الله ﷻ سره شرك کولو سره نه ویریږئی د کوم چه نه څه دلیل او نه څه سند شته. اوس تاسو پخپله پوهه شئی چه په دواړوکښې چا خپل ډیر بچاؤ اوکړو. الله ﷻ دې ته د امن او هدایت نوم ورکړې دې. بیائې اوفرمائیل ﴿اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا﴾ بیا ئې دې نه پس اوفرمائیل ﴿وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى قَوْمِهٖ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ﴾ دلته د درجات لفظ بالاضافة او بلا اضافة دواړه شانه لوستلي شوې دې. لکه چه په سورة یوسف کښې دی اوخبره دواړه قسمه یو شان ده. او د الله ﷻ قول ﴿اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ۝﴾ یعنی هغه په خپلو اقوالوکښې حکیم دې او په خپلو افعالوکښې علیم دې. یعنی چاله چه غواړی هدایت ورکړی او چاله چه غواړی ګمراه ئې کړی. لکه چه فرمائی ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ۝﴾ یعنی د چا په قسمت کښې چه د الله ﷻ فیصله متحقق شوی ده هغه به ایمان نه راوړی که هغه ته هرقسم نښې ولې اونه خودلې شی چه د الله ﷻ د عذاب سره هغه مخ نه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَوَهَبْنَا لَهٗٓ | اِسْحٰقَ | وَيَعْقُوْبَ ؕ | كُلًّا | هَدَيْنَا ۚ | وَنُوْحًا | هَدَيْنَا |
| اوورکړو مونږ هغه ته | اسحاق | اویعقوب | هر یو ته | اوښودله مونږ لار | اونوح ﷺ ته | ښودلی وه مونږ لار |

اومونږ ورله اسحاق اویعقوب ﷺ (اولاد) ورکړل اوهریوته موسمه لار اوخودله (هغه لار چې) پخوامونوح ﷺ ته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ قَبْلُ | وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ | دَاوٗدَ | وَسُلَيْمٰنَ | وَاَيُّوْبَ | وَيُوْسُفَ |
| وړاندې دهغه نه | اودَاولاد دهغه نه | داود ﷺ ته | اوسلیمان ﷺ ته | اوایوب ﷺ ته | اویوسف |

اوخودله | او بیاموږ دهغه اولاد کښې داود ﷺ ته ...... او سلیمان ﷺ ...... او ایوب ﷺ..... او یوسف ﷺ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمُوْسٰى | وَهٰرُوْنَ ؕ | وَكَذٰلِكَ | نَجْزِي | الْمُحْسِنِيْنَ ۝ |
| اوموسی ﷺ ته | اوهارون ﷺ ته | او دارنګې | بدله ورکوو مونږ | نیکانو خلقو ته |

اوموسی ﷺ ......او هارون ﷺ ته خودلي وه | ......اودغه شان مونږ نیکانوته بدله ورکوو

وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيسٰى وَإِلْيَاسَ ط كُلٌّ

اوهدايت اوكړومونږ زكرياته | اويحيى ته | اوعيسى ﷺ ته | اوالياس ﷺ ته | داټول

اوزكريا ﷺ او يحيى ﷺ او عيسى ﷺ او الياس ﷺ ته موخودلې وه | دا ټول (پيغمبران)

مِّنَ الصّٰلِحِينَ ﴿٨٥﴾ وَإِسْمٰعِيلَ وَالْيَسَعَ وَيُونُسَ

دنيكانونه وو | اوهدايت اوكړو مونږ اسماعيل ﷺ ته | اواليسع ﷺ ته | اويونس ﷺ ته

د صالحانو ختې ووا | ............او اسماعيل ﷺ ............او اليسع ﷺ ............اويونس ﷺ

وَلُوطًا ط وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعٰلَمِينَ ﴿٨٦﴾ وَمِنْ آبَائِهِمْ

اولوط ﷺ ته | اوهريو ته فضيلت وركړومونږه | په مخلوقاتوباندې | اودپلارانودهغوى نه

اولوط ته موخودلې وه | او دوئ كښې هريوته مونږ دهغه زمانې په خلقو فضيلت وركړې ووا | اوددوئ بعضو پلرونو

وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَإِخْوَانِهِمْ ج وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ

اودااولاددهغوى نه | اودرونړه دهغوى | اوغوره كړل مونږه هغوئ | اونيغ برابر كړل مونږه هغوئ |

اودبعضو اولاد او د بعضو رونړوته مو فضيلت وركړې ووا | او غوره كړي وو مونږ | او په

إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٨٧﴾ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِي بِهِ مَنْ

لارې | نيغې ته | دا | هدايت دې دالله | نيغه لاربښانى په دې سره | هغه چاته

نيغه لار موروان كړې ووا | ........ دغه دالله ﷻ هدايت دې | چې چاته ئې په خپلو بندګانو كښې

يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ط وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُمْ

چې خوښ ئې شى | دبندګانوخپلونه | اوكه چرې | شرك كړې وې دوئ | نوخامخا به ضائع شوى وو ددوئ

كښې خوښ شى نوهغه ته ئې وركوى | خوكه دې خلقوشرك كړې وې نوخواه مخواه

مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٨٨﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ آتَيْنٰهُمُ

هغه عملونه | چې وو دوئ | چې كول به ئې | داپيغمبران | هغه كسان ووا چې وركړې وو مونږهغوئ ته

به ئې ټول عملونه ضائع شوى ووا | .................داهغه كسان دى چې مونږ ورته ..........

الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ج فَإِنْ يَكْفُرْ بِهَا هٰٓؤُلَآءِ

كتاب | اوحكم | اونبوت | نوكه چرې | انكاركوى | دې دې نعمت نه | دا خلق

كتاب او حكمت او پيغمبرى وركړې وه | ...نوكه داخلق ددې (قرآن) نه انكار اوكړى

فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوا بِهَا

نو په تحقيق سره | مقرر كړې دې مونږ | په دې نعمت سره | يوداسې قوم | چې نۀ دى هغوئ | د هغې نه

نومونږ دا نعمت داسې خلقو ته اوسپارل | ..............................چې هغوئ د دې نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِكٰفِرِيْنَ﴿٨٩﴾ | أُولٰٓئِكَ | الَّذِيْنَ | هَدَى اللّٰهُ | فَبِهُدٰىهُمُ |
| انکار کونکی | دا پیغمبران | هغه کسان دی | چې هدایت کړې ووُ الله | پس په هغوئ پسې |
| منکر نه دی \| دغه خلق وو چې الله ﷻ ورته هدایت کړې وو \| نو ته هم دهغوئ په لار | | | | |
| اقْتَدِهْ ط | قُلْ | لَآ اَسْئَلُكُمْ | عَلَيْهِ | اَجْرًا ط اِنْ هُوَ |
| اقتدا اوکړه ته \| اووایه | نهٔ غواړم زهٔ ستاسو نه | په کار ددې تبلیغ او هدایت | څهٔ اجر | نهٔ دې \| دا قرآن |
| تګ کوه \| دوئ ته اووایه چې زه د تبلیغ پدې کار ستاسو نه اجرت نه غواړم \| دا قران پاک | | | | |
| اِلَّا | ذِكْرٰى | لِلْعٰلَمِيْنَ﴿٩٠﴾ | | |
| مګر \| نصیحت دې \| دپاره دمخلوقانو \| | | | | |
| دټولې دنیا د خلقو دپاره یو نصیحت دې \| | | | | |

**قوله تعالی:: وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ**

**د الله ﷻ په ابراهیم ؑ باندې انعامات:**- الله ﷻ فرمائی مونږ حضرت ابراهیم ؑ ته د اسحق ؑ په شان خوئ ورکړو سره د دې چه د بوډاوالی په وجه هغه او د هغه بی بی ساره د اولاد نه ناامیده شوی وو. فرښتې هغوی له راغلې او قوم لوط طرف ته هم رواني وې. فرښتو ښځې خاوند ته د اسحاق د پیداکیدو زیرې ورکړو نو بی بی حیرانه شوه او وئې وئیل چه ښه ده زما به بچې کیږی زه بوډهنی زما خاوند بوډا دا څنګه عجیبه خبره ده. نو فرښتو اووئیل اې بی بی ته د الله ﷻ په کارونو حیرانتیا کوې؟ اې د کور خلقو د الله ﷻ برکتونه اورحمتونه په تاسو باندې دی. فرښتو هغوی ته دا هم زیرې ورکړو چه هغه به نبی هم وی او دهغه نسل به هم زیاتیږی. یعنی وئی فرمائیل ﴿وَبَشَّرْنٰهُ بِاِسْحٰقَ نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ﴾ او دادیر لوئ زیرې او ډیرلوئ نعمت دې، نو اوفرمائیلې شو ﴿ فَبَشَّرْنٰهَا بِاِسْحٰقَ وَمِنْ وَّرَآءِ اِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ﴾ د دې پیداکیدونکی اسحاق به هم ستاسو په ژوند کښې خوئ کیږی اوستا سو سترګې چه څنګه په خپل خوئ یخیږی په نمسی سره به هم یخې شی څکه چه دنسل باقی پاتې کیدو په وجه د نمسی په پیدا کیدو باندې خوشحالی نوره هم زیاتیږی. چه د بوډا او بوډهنی کله د اولاد په پیداکیدوکښې شك کیدلې شی چه د ضعف د وجې د هغوی بچې نه شی کیدې نو خوئ او بیا نمسی د چا نوم چه به یعقوب وی په هغې به خوشحالی څنګه نه وی. د یعقو ب اشتقاق روستو دې یعنې د اسحاق نه پس هغې پسې هم راتلونکې. داصله او بدله ده د ابراهیم ؑ چا چه خپل وطن پریخودو او قوم ئې پریخودو د هغوی د ښارونونه ئې هجرت اوکړو د الله ﷻ د عبادت په خاطر لرې لاړو. د دې بدله د هغوی صلبی نیك اولادوو چه په هغوی سره د هغه سترګې یخې شی. لکه چه فرمائی کله ابراهیم ؑ خپل قوم او د هغوی معبودان پریخودل نو مونږ هغه ته اسحاق او یعقوب ورکړو او دواړه نبیان شو. اودلته فرمائی ﴿ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ﴾ او بیا ئې اوفرمائیل ﴿ وَنُوْحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ﴾ دې نه اول مونږ د نوح هدایت کړې وو. او مونږ حضرت ابراهیم ؑ ته نیك نسل ورکړو او اسحاق ؑ او یعقوب ؑ دواړو ته خصوصیت عظیمه ورکړه. خو نوح ؑ کله چه الله ﷻ ټول د زمکې مخلوق عرق کړو. بغیرد هغوی نه چه په نوح ؑ ئې ایمان راوړلې وو او هغه سره په کشتئ کښې ناست وو دا باقی خلق د نوح ؑ اولاد وو او د دنیا ټول خلق د هغوی اولاد دې او ابراهیم ؑ چه د هغه نه پس څوك نبی شوې نه وو بغیر د هغه کسانو نه چه د هغه په اولاد کښې وو لکه چه الله ﷻ فرمائیلی دی﴿ وَجَعَلْنَا

﴿فِیْ ذُرِّیَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْکِتٰبَ﴾ او الله ﷻ اوفرمائیل ﴿وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ وَجَعَلْنَا فِیْ ذُرِّیَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْکِتٰبَ﴾ اودا نبي هم اوفرمائیل چه د نبیانو نه دي هم دي په چا چه الله ﷻ انعام کړې دی. د حضرت آدم ؑ د اولاد نه او هغه کوم چه مونږ نوح ؑ سره په کشتئ کښې اخستې وو اود ابراهیم ؑ او اسرائیل د اولاد نه او چاته چه مونږ هدایت کړې وو او خوښ کړې مو وو. د هغوی په وړاندې به چه کله د الله ﷻ آیاتونه لوستلې کیدل نو ژړل به ئې او په زارو سره به په سجده کښې راپریوتل. په دې آیت مبارك کښې ﴿وَمِنْ ذُرِّیَّتِهٖ﴾ نه مطلب دا دې چه هم مونږ د هغوی اولاد ته هم هدایت ورکړو یعنی داؤد ؑ او سلیمان ؑ ته هم خو که د اولاد ضمیر د نوح ؑ طرف ته کړې شي نو نزدې هم د نوح لفظ دې او ضمیر اقرب ته ځي نو دا خبره خو صفا ده هیڅ اشکال نشته. ابن جریر ؒ هم دا اختیارکړې ده. خوضمیر ابراهیم ؑ ته اوکړې شي چه د کلام سیاق داسې دې نو دا خو ډیر ښه دې لیکن اشکال دا دې چه د ابراهیم ؑ په اولاد کښې دلوط ؑ لفظ هم راغلې دې او لوط ؑ د ابراهیم ؑ د اولاد نه نه دې بلکه د هغه د رور هارون بن آزر ځوئ دې. څه عجیبه چه غلبې او اکثریت په توګه د هغه د اولاد په ضمن کښې ذکر کړې شوی وی. لکه څنګه چه د الله ﷻ په دې قول کښې ذکر دی ﴿اَمْ کُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ یَعْقُوْبَ الْمَوْتُ﴾ دلته آباء یعقوب ؑ په سلسله کښې د اسماعیل ؑ نوم هم راغلو او حضرت اسماعیل ؑ خو د هغه تره وو. دا د کلام د سلسلې د غلبې او اکثریت په وجه اوشو. او دغه شان بل آیات دي ﴿فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِکَةُ کُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ۙ اِلَّآ اِبْلِیْسَ﴾ چرته چه ملائکوته د سجدې حکم اوکړې شو اود مخالفت غندنه اوشوه نو هلته ابلیس د غلبې په وجه په ملائکوکښې شمیر کړو استثنی اوکړې شوه. ځکه چه هغه د ملائکو سره مشابهت لرلو ګنی نوملائکه نه وه.د پیریانونه وو. د هغه طبیعت نار یعنی اُور وو او د فرښتو نور یعنی رڼرا وه. دې سره حضرت عیسی ؑ د ابراهیم ؑ یا نوح ؑ د اولاد په سلسله کښې.راوړلې شو.تولکه چه ده ته نې هم د ابراهیم ؑ نسل اووئیلې. د دې دلیل په بنیاد چه د لور اولاد هم د سړی د نسل نه ګنړلې شي اوس که د عیسی ؑ د ابراهیم ؑ سره څه تعلق دې نو صرف په دې وجه چه د هغه مور حضرت مریم علیها السلام د ابراهیم ؑ د نسل نه وه. ګنی د عیسی ؑ خو پلار هم نه وو. وائی چه حجاج یحیی بن یعمر ته اووئیل چه ما اوریدلی دی چه حس او حسین د نبی کریم ﷺ د اولاد نه دی سره د دې چه هغوی د علي او ابوطالب د اولاد نه دی او بیا دا هم دعوی کوې چه د دې ثبوت د قرآن نه دې. ما قرآن د اول نه تر آخره پورې اولوستلو خو ما اونه موندل. نو ابن یعمر اووئیل چه تا په سورة انعام کښې نه دې لوستلی ﴿وَمِنْ ذُرِّیَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَیْمٰنَ﴾ تردې چه هغه د یحیی او عیسی پورې اولوستلو ونې وئیل چه او لوستلې مې دی. ونې وئیل چه عیسی ؑ د ابراهیم ؑ په اولاد کښې خودلې شوې دې سره د دې چه د هغه پلار نه وو صرف د لور په حیثیت سره په اولاد کښې اوګرځولې شو نو بیا د لورپه حیثیت سره حسن اوحسین دنبی کریم ﷺ په اولادکښې ولې نه شونوحجاج وئیل تا صحیح اووئیل.(۱)

د دې د پاره چه کله یو سړې خپل میراث د خپل اولاد په نوم وصیت کوی یا وقف کوی یا هبه کوی نو په هغه اولاد کښې د لونړوبچې هم داخل ګنړی. لیکن کله چه هغه د خپل خامنو په نوم ورکوی یا وقف کوی نو خپل خاص صلبی خامن او نمسی حقدار وی. او نورو خو وئیلی.دی چه په دې کښې د لونړو بچې هم داخل دی ځکه چه د صحیح بخاری شریف حدیث دې حضور ﷺ د حضرت حسن بن علی ﷺ باره کښې فرمائیلی دی چه زما دا ځوئ سید دې او الله ﷻ به د ده په ذریعه د مسلمانانو په دوو

(۱) حاکم: ۳/۱٦٤.

پلوکښې صلح کوی اود جنګ فتنه به ختمه شی.(۱) نو حسن ﷜ نې د ابن په لفظ سره تعبیر کړو کوم چه دلالت کوی چه هغه هم په اولادکښې داخل ګڼړلې شی. د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ وَمِنْ اٰبَآئِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَاِخْوَانِهِمْ ﴾ دلته د هغه د نسل او نسب دوارو ذکر دې او هدایت او غوره والې په دې ټولو باندې شامل دې. په دې وجه نې اوفرمائیل ﴿وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ یعنې مونږ هغوی خوښ کړل او د نیغې لار هدایت مو ورته اوکړو. بیا فرمائی ﴿ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ﴾ دا خبره هغوی ته د الله ﷻ په توفیق او د هغه د هدایت په سبب حاصله شوه.

**شرک یو ډیره خطرناکه بیماری:-** ﴿ وَلَوْ اَشْرَكُوْا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ یعنې که چرې هغوی شرك اوکړو نو د هغوی ټول نیك اعمال به ختم کړې شی. دلته دا خبره خودل مقصد دې چه د شرك کار څومره سخت دې اود دې د خرابوالې اهمیت څومره زبردست دې. لکه چه فرمائی ﴿لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ﴾ دا جمله محل شرط دې اود شرط د پاره دا ضروری نه ده چه واقع شوی وی. لکه چه فرمائی ﴿قُلْ اِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ﴾ یعنې که د الله ﷻ اولاد وې نو زه به د ټولونه اول منونکې جوړشوې وم. او وئی فرمائیل﴿ لَوْ اَرَدْنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ لَهْوًا لَّاتَّخَذْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّآ ﴾ که لوبه او تماشه جوړول غوارنی نو هم د خپل ځان به مو جوړوله او نور فرمائی ﴿ لَوْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا﴾ که چرې الله ﷻ هم د اولاد اراده لرله هو د خپل مخلوق نه چه نې څوك غوښتل خوښ کړې به نې وو. خو هغه د دې نه پاك دې ځان له دې او غالب دې.

او په ذکر شوی آیت مبارکښې ارشاد دې چه هم دې خلقو ته مونږ کتاب حکمت او نبوت ورکړو او په خپلو بندیګانو باندې مو د دې په سبب نعمت او مهربانی اوفرمائیله. اوس که چرې هغوی د نبوت نه انکار اوکړو نو په دې مکې والا او په دې قریشو به مونږ داسې خلق مسلط کړو چه انکار به نه شی کولې او زمونږ شکر کونکی بندیګان به شی. نو که هغه اوس غیر قریش عرب او عجم وی یا اهل کتاب وی په دوی به مونږ مهاجرین او انصار مسلط کړو هغوی زمونږ د یوې خبرې نه هم انکار نه کوی او نه څه خبره رد کوی. بلکه د قرآن په ټولو آیاتونو که هغه محکم وی که متشابه وی ایمان لری.

بیا خپل رسول ﷺ ته مخاطب کیږی او فرمائی چه هغه ذکر شوی انبیاء کرام اود هغوی پلاران اولاد او رونړه داسې خلق دی چا ته چه الله ﷻ هدایت فرمائیلې دې. نو ته اوس هم د هغوی اقتداء او تابعداری اوکړه. نوکله چه د رسول د پاره دا حکم دې د هغه امت خو د دې تابع دې. د حضرت ابن عباس ﷛ نه تپوس اوکړې شو چه آیا په سورة صٓ کښې سجده شته؟ نو وئی فرمائیل چه او. بیا نې دا آیت تلاوت اوفرمائیلو ﴿ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ۭ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوْحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ وَيُوْسُفَ وَمُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ۭ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ۝ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيْسٰى وَاِلْيَاسَ ۭ كُلٌّ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ وَاِسْمٰعِيْلَ وَالْيَسَعَ وَيُوْنُسَ وَلُوْطًا ۭ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَي الْعٰلَمِيْنَ ۝ وَمِنْ اٰبَآئِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَاِخْوَانِهِمْ ۚ وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۭ وَلَوْ اَشْرَكُوْا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ اُولٰۗىِٕكَ الَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ۚ فَاِنْ يَّكْفُرْ بِهَا هٰٓؤُلَاۗءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوْا بِهَا بِكٰفِرِيْنَ ۝ اُولٰۗىِٕكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ۭ ﴾ بیا نې اوفرمائیل چه هغه هم د دغه ډلې نه دې.(۲) اود الله ﷻ ارشاد دې ﴿قُلْ لَّآ اَسْـَٔــلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ۭ ﴾ زه تاسو نه خپل هیڅ څه حق یا تبلیغ نه غوارم ماله هیڅ نه دی پکار. ﴿ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ ۝﴾دا خو د ټولې دنیا دپاره یو نصیحت دې. د دې پاره چه د ګمراهئ نه هدایت حاصل کړی.

(۱) صحیح بخاری کتاب الصلح باب قول النبی ﷺ للحسن بن علی ﷛ (ان ابنی هذا سید) : ۲۷۰۴، ابوداود :۴۶۶۲، ترمذی : ۳۷۷۳.
(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الانعام باب قول الله تعالی (اولئک الذین هدالله فبهداهم اقتده) :۴۶۳۲.

وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ

او اونکړو دوئ قدر | دالله | لکه څنګه چی حق دې |

| اودوئ دالله ﷻ عظمت هغه شان اونه پیژندل څنګه چه

قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰی بَشَرٍ مِّنْ شَیْءٍ ؕ

د قدر دهغه | کله چی | اووئیل دوئ|چی نهٔ دې نازل کړې | الله|په هیڅ انسان باندې| هیڅ څیز

د هغه عظمت پیژندل پکار ووا دوئ وانی چې الله کله هم په هیڅ یو بشر هیڅ حکم نه دې نازل کړې

قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِیْ جَآءَ بِهٖ مُوْسٰی نُوْرًا

اورته اووایه| چا نازل کړې دې| کتاب | هغه |چی راوړې وو| هغه| موسی |چی رنړا وه

ورته اووایه چې هغه کتاب چا نازل کړې ووا چې کوم موسی ؑ راوړې وو | هغه ټولو د خلقو دپاره رنړا

وَّهُدًی لِّلنَّاسِ تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِیْسَ تُبْدُوْنَهَا

اولار ښودونکې وو |دپاره دخلقو|تاسو جوړوئ دهغې نه|پاڼړې پاڼړې | چی ښکاره کوئ بعضې دهغې نه

راوهدایت ووا ..............اوس هغه تاسو پاڼړې پاڼړې کوئ| .............. لږ څه په کښې ښکاره کوئ

وَتُخْفُوْنَ كَثِیْرًا ۚ وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ

اوپټوئ تری نه | ډیر | اوښودلې شوې دې تاسو ته|هغه علم|چی نهٔ وومعلوم | . تاسو ته

اوډیر څه په کښې پټوئ | او(ددې کتاب په وجه)تاسو ته هغه خبرې معلومې شوې

وَلَآ اٰبَآؤُكُمْ ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِیْ خَوْضِهِمْ یَلْعَبُوْنَ ﴿۹۱﴾

اونهٔ پلارانو ستاسو ته|ورته اووایه|چی الله | بیا |پریږده هغوئ|په غلطو بحثونو خپلو کښی |چی لوبې کوی

چې تاسو او ستاسو پلارنیکه ته نه وې معلومې|اووایه الله نازل کړې دې| بیا پریږده چې خپلو عبثو کښې مشغول وی

وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِیْ

اودا(قرآن) | یو کتاب دې | چی نازل کړې دې مونږ|چی برکتناك دې| چی تصدیق کونکې دې| دهغه کتاب

اومونږ چې داکوم کتاب نازل کړې دې | داهم د(تورات پشان)یو برکتی کتاب دې| اودهغې کتاب تصدیق کوی

بَیْنَ یَدَیْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰی وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ

چی وړاندې ددهٔ نه دې|دپاره ددې چی تهٔ اویروې | مورد کلو(مکه)|اوهغه څوك|چی چاپیره ددې نه دی

کوم چه ددې نه وړادې ووا اوددې دپاره راغلې دې چې ته پرې ام القری اودچاپیرچل خلق اویروې

وَالَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ یُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَهُمْ

اوهغه کسان|چی ایمان راوړی | په آخرت باندې|هغوئ ایمان راوړی| په دې قرآن| اوحال دا چې هغوئ

اوڅوک چې په آخرت باندې ایمان راوړی| نو هغوئ په دې کتاب هم ایمان راوړی | اوهغوئ د

| | |
|---|---|
| عَلٰى صَلَاتِهِمْ | يُحَافِظُوْنَ ﴿۹۲﴾ |
| د مونځونو خپلو | حفاظت کوي ۔ |
| د خپلو مونځونو ډېر خیال ساتي ۔ | |

**قوله تعالی:** ﴿وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَيْءٍ﴾

**د آیت شان نزول:-** الله ﷻ فرمائي چه کله هغوی د رسول تکذیب اوکړونود الله ﷻ د حق تعظیم ئې ادا نه کړو. عبدالله بن کثیر رحمه الله فرمائي چه دا آیت د قریشو په حق کښې نازل شوې دې [1] او دا هم وئیلي شوي دي چه د یهودو باره کښې دې. یا دا چه هم د دوی د یو سړي فخاص په باره کښې دې او یا د مالك بن صیف باره کښې دې. د دې ناپوهه خلقو دا خیال دې چه الله ﷻ په یو انسان باندې کتاب نه دې نازل کړې. د شان نزول باره کښې رومبنئي خبره ډېره صحیح ده ځکه چه آیت مکي دې او یهود خو د دې خبرې قائل نه وو چه په انسان باندې څه کتاب نه دې نازل شوې ځکه چه هغوی خو د تورات د نازلیدو قائل دي. او قریش اهل وطن او عرب د محمد ﷺ منکروو په دې حجت کښې چه حضور ﷺ بشر دې او په بشر باندې کتاب نه نازلیږي لکه چه فرمائي ﴿اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا اَنْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ﴾ یعنې خلق ولې حیران دي که مونږ هم په دوی کښې په یوکس باندې وحی نازلوو چه خلق د کفرنه اوویروي.او ارشاد مبارك دې ﴿وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰى﴾ یعنې کله چه هغوی ته هدایت اورسیدو نو چه کوم څیز منع کونکې وو نو هغه د هغوی دا وینا کول وو چه آیا الله ﷻ څوك بشر رسول رالیږلې دې نو اې نبي ﷺ! ورته اووایه که فرښتې په زمکه ګرځیدې راګرځیدې نو مونږ به هم د آسمان نه یوه فرښته رسول جوړ کړې رالیږلې وو. اوس دلته الله ﷻ فرمائي چه ورته اووایه چه چا کتاب په موسی علیه السلام باندې نازل کړې وو چه په خلقو باندې نور او هدایت ثابت شو. د موسی علیه السلام پیش کړې شوې کتاب تورات د چا نازل کړې شوې وو. تاسو او ټول خلق دا پیژنئ چه د موسی بن عمران کتاب هم الله ﷻ نازل کړې وو په څه سره به چه خلقو په مشکلاتو او سختو کښې رڼرا موندله او د شبهاتو په تیاروکښې به ئې نیغه لار لټوله. بیا ئې اوفرمائیل چه ته تورات پاڼړه پاڼړه کړې لیکې خو په هغې کښې لیکلې شوې تحریف او بدلون هم د خپل طرف نه کوې او دا وائې چه دا هم د الله ﷻ د آیاتونو نه دي. په دې وجه ئې اوفرمائیل چه څه خو حقیقي آیاتونه ښکاره کوې او اکثر پټوې. او د الله ﷻ ارشاد دې چه تا هغه څه زده کړل کوم چه نه تا پیژندل اونه ستا مشرانو. یعنې چانازل کړو دا قرآن کوم چه تاسو ته ټول تیرشوي خبرونه اوخودل او د کیدونکو خبرې پیشن ګوئي درته اوکړه کوم چه نه تاسو پیژندل اونه ستاسوپلارانو اونیکونو.قتاده رحمه الله فرمائي چه دې نه مراددعربومشرکان دي.او مجاهد رحمه الله وائي چه مسلمانان مراد دي. اوس د الله ﷻ ارشاد دې چه د دې سوال په جواب کښې هم تاسو پخپله جواب ورکړئ چه هم الله ﷻ نازل کړې دې. او هغه کوم چه ابن عباس رضی الله عنه فرمائي هغه د دې کلمې په تفسیرکښې مقرر دی. داسې نه ده لکه چه بعضې متاخرینووئیلي دي ﴿قُلِ اللّٰهُ﴾ معنی دا ده چه ستاسو دا خطاب د هغوی د پاره نه دې بغیر د دې نه چه دا کلمه صرف یوه کلمه ده یعنې د الله لفظ دې او په دې سره به دا لازم راځي چه یوه مفرد کلمه هم جمله کیدې شي کومه چه غیرمرکب وي. خو مفردکلمه راوړل د عربو په لغت کښې غیرمفید ګنړلې شوې ده او په دې باندې خاموشي نه شي کیدې. اود الله ﷻ ارشاد دې چه دوی په ضلالت او جهالت کښې اورك پریږدئ تر هغه وخته پورې چه د مرګ په وجه د دوی د حقیقت سترګې کولاؤ شي او آخرهم هغوی الله ﷻ اوپیژني.

---

[1] الطبری:۱۱/۵۲۴.

**د قرآن او صاحب قرآن شان:-** اود الله ﷻ ارشاد دې چه دا قران مبارك دې اود تورات او انجيل تصديق كونكې دى. دې د پاره چه ته په مكه او د دې په خواوشا كښې اوسيدونكى د عربو قبائل اود عربو اوعجمو بنى آدمان د كفر او شرك د خرابې نتيجې نه اوويرولې شې. لكه چه په يو بل آيت كښې ارشاد دې ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا﴾ يعنى ورته اووايه اې خلقو! زه ستاسو انسانانو طرف ته الله ﷻ رسول جوړكړې راليږلې يم دې د پاره چه خبردارې اوكړې شم او هغوى ته هم چاته چه زما د جنت پيغام رسيدلې دې. اوفرمانيلې شو چه كوم خلق كفركوى د هغوى د پاره د دوزخ وعده ده. بيانې اوفرمانيل ﴿تَبٰرَكَ الَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرًا﴾ مبارك دې هغه ذات چا چه قرآن په خپل روسول ﷺ باندې نازل كړو، د دې د پاره چه د ټولې دنيا د پاره هغه ويرونكې جوړشى. بل ځاى كښې ارشاد دې ﴿ وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْاُمِّيّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ ۚ فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ ۚ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِالْعِبَادِ﴾ اهل كتابو او ان پړهو ټولوخلقو ته اووايه چه اوس به هم تاسو ايمان راوړنى كه نه، كه هغوى اسلام راوړه نو هدايت به بيامومى او كه مخ ئې واړولو نو كوى دې ستا كار صرف هغوى ته خبره رسول وو. الله ﷻ د خپلو بنديګانونه ښه خبر دې. د بخارى شريف او مسلم شريف نه ثابت دى چه رسول الله ﷺ فرمانيلى ما ته پنځه څيزونه راكړې شوى دى چه زما نه وړاندينو انبياء كرامو نه چاته هم نه وو وركړې شوى. په دې يو دا ده چه هر نبى به خاص خپل يو قوم طرف ته ليګلې شو او زه د ټولې دنيا جهان د خلقو د پاره ليګلې شوې يم.[1] هم په دې وجه فرمائى ﴿ وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ﴾ يعنى هر هغه سړې چه په الله ﷻ باندې ايمان راوړى او په ورځې د قيامت نو هغه به په دې مبارك كتاب باندې هم ايمان راوړى. كوم چه اې محمد ﷺ مونږ په تاباندې نازل كړې دې. او هغه مؤمنان داسې دى چه په پابندنى سره خپل مونځ ادا كوى كوم چه الله ﷻ په خپل خپل وخت كښې ادا كول په هغوى باندې فرض كړى دى.

| |
|---|
| وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ |
| او څوك دې ازيات ظالم \| دهغه چانه \| چى تړى \| په الله باندې |
| اودهغه چا نه لوئې ظالم څوك كيدې شى \| چې په الله ﷻ باندې |
| كَذِبًا اَوْقَالَ اُوْحِيَ اِلَيَّ وَلَمْ يُوْحَ اِلَيْهِ شَيْءٌ وَّمَنْ |
| دروغ \| ياوائى \| چى وحى شوى ده \| ماته \| حال دا چى وحى كړې شوې نۀ وى \| هغه ته \| څه څيز \| اوهغه څوك |
| دروغ اوتړى \| يادا اووائى چې ماته وحى راغلې ده \| او په حقيقت كښې هيڅ وحى ورته نه وى راغلې \| ....اوڅوك |
| قَالَ سَاُنْزِلُ مِثْلَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ ۗ وَلَوْ تَرٰى |
| چى اووائى \| چى نازل به كړم زه \| په شان \| دهغې \| چى نازل كړې دې \| الله \| اوكاش چى اووينې تۀ \| |
| چې وائى چه زه به هم د الله ﷻ پشان كتاب نازل كړم \| ............................اوكۀ ته اوګورې |
| اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ |
| څه وخت چى وى \| ظالمان خلق \| په سختوا دمرګ كښى \| اوفرشتې ورته \| |
| څه وخت چې دا ظالمان دمرګ په مصيبت كښې ګرفتار وى \| ..............اوفرشتو ورته |

[1] ددې تخريج سورة آل عمران آيت نمبر ۱۵۱ كښې تير شوې دې.

بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ اَلْيَوْمَ

رااوږده کونکي وي | لاسونه خپل | اوورته وائي چي رااوباسي | روحونه خپل | نن ورځ به

لاسونه وراوږده کړي وي | او ورته وائي چي خپل روحونه راوباسي | .............نن به تاسو

تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ

بدله درکړې کيږي تاسوته | عذاب سپکونکي | په سبب دهغي | چي وئ تاسو | چي وئيل به مو

ته سپکونکي عذاب درکولې شي | ............. خکه چي تاسو په الله ﷻ ناحقه خبرې ترلې |

عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۹۳﴾

په الله باندې | ناحقه خبرې | اووئ تاسو | دآيتونو دهغه نه | چي تکبر به مو کولو

.........او دهغه د آياتونو منلو نه مو هم تکبر کولو.............

وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ

او په تحقيق سره | رابه شئ تاسومونږته | يواځي | لکه څنګه چي | پيدا کړي وئ مونږه تاسو | په اول | ځل

او الله به ورته وائي) اوس تاسو مونږ ته هغه يواځي (اوتش لاس) راغلي يئ لکه څنګه چي مو په اول ځل پيدا کړي وئ

وَتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ وَمَا نَرٰى

او پريښودل تاسو | هغه څه | چي درکړي وو مونږ تاسوته | روستو | دشاګانو ستاسو نه | او نه وينو مونږه

مونږ چي په دنيا کښي هرڅه درکړي وو | هغه موروستو پريخودل | .............او مونږ تاسو سره

مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ

تاسو سره | شفارشيان ستاسو | هغه | چي ګمان به کوو تاسو | چي بيشکه هغوي

ستاسو هغه سفارشيان اونه ليدل په کوم چه به تاسو ګمام کولو چه هغوي ستاسو په کارونو کښي

فِيْكُمْ شُرَكٰٓؤُا لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ

ستاسوپه کارجوړولو کښي | شريکان دي | په تحقيق سره | ختم شوتعلقات | په مينځ ستاسو کښي

ستاسو شريکان دي | .............ستاسوتول تعلقات ختم شول.............

وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿۹۴﴾

اوورك شو | ستاسو نه | هغه څه | چي وئ تاسو | چي ګمان به مو پرې کولو دسفارشيانو

اوکومي دعوې چي مو کولې هغه ټولې درنه هيرې شوې | .............

قوله تعالى:: وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ قَالَ اُوْحِيَ اِلَيَّ وَلَمْ يُوْحَ اِلَيْهِ شَيْءٌ

**د ټولونه لوئ ظالم څوک دي** :- الله ﷻ فرمائي چه په الله ﷻ باندې دروغ تړونکي نه به لوئ ظالم څوک وي.هغوی د ده د پاره شريکان ګرځوي او د ده د پاره اولاد ګرځوي. دا دعوی کوی چه الله ﷻ هغه رسول جوړ کړې راليګلې دې سره د دې چه الله ﷻ نه وی راليګلې. په دې وجه ارشاد دې هغه وائي چه په ما هم وحی راليګلې شوی ده حالانکه نه وی راليګلې شوې. عکرمه رحمه الله او قتاده رحمه الله فرمائي چه دا

ایت د مسیلمه کذاب باره کښې نازل شوې دې. او د هغه نه به نور لوئ ظالم څوك وي چه وائي زه هم داسې قرآن نازلولې شم څنګه چه الله ﷻ نازل کړې دې. یعنې د الله ﷻ د وحې سره معارضه کوي. لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائیلي کله چه په دوی باندې زمونږه آیاتونه لوستلې شي نو دوی وائي چه مونږ واورېده خو که مونږ غواړو نو مونږ هم داسې کولې شو. په مذکوره آیت کښې ارشاد دې چه افسوس چه تا داخلق د مرګ په سکراتو او ګرباتوکښې لیدلې کله چه ملائکه د وهلو د پاره لاس اوچتوي لکه چه فرمائي ﴿لَئِنۢ بَسَطتَ إِلَيَّ يَدَكَ﴾ زما د قتل کولو د پاره که چرې ته خپل لاس اوچت هم کړې(د هابیل او قابیل قصه)ونې فرمائیل﴿ وَيَبۡسُطُوٓاْ إِلَيۡكُمۡ أَيۡدِيَهُمۡ وَأَلۡسِنَتَهُم ﴾ هغوي خپل لاسونه خپلې ژبې ستا طرف ته اوږدوي دې د پاره چه تاته نقصان اورسوي او بدې ردې اووائي. ضحاك او ابوصالح رحمهم الله وائي چه د عذاب د پاره لاسونه اوچتول مراد دي. لکه چه فرمائیلي شوي دي افسوس چه تاسو لیدلې وې چه مړه کیدونکي کافران ملائکه په مخونو او شاګانو باندې د مرګ په وخت کښې وهي. د دې د پاره اوفرمائیلې شو﴿وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ بَاسِطُوٓاْ أَيۡدِيهِمۡ﴾ چه د هغوي دبدنونونه د هغوي روحونه راوباسي. هغه فرښتې به دغه کافرانوته وائي خپل روحونه بهر راوباسئ. د کافرانو چه د مرګ وخت نزدې راشي نو ملائکه به هغوي ته خبرورکړي د عذاب او نکال بیرنې، د دوزخ او حمیم اود رحمن د غضب، نو د هغوي روحونه به د هغوي په بدنونوکښې اوګرځي،د وتلونه به انکار کوي نو ملائکې به هغوي وهي تردې چه روحونه به راوځي او وائي به ورته چه خپل روحونه بهر راوغورزوئ نن به تاسوته ډیر ذلیل عذاب درکولې شي. په دې سزا کښې چه په الله ﷻ باندې موڅنګه بهتانونه تړلې وو. د مؤمن او کافر د مرګ د وخت متعلق ډیر احادیث واردشوي دي. د الله ﷻ قول دې چه الله ﷻ مؤمنانو ته د دنیا او آخرت په ژوندکښې دثابت قول په ذریعه ثابت او قائم اوساتل. ابن مردویه رحمه الله دلته یو ډیر اوږد حدیث په غریب سندسره ذکر کړې دې چه دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کړې شوې خودلې شوې دې.

د الله ﷻ ارشاد دې چه تاسو به مونږ له داسې ځان له راځئ لکه چه د اول پیدائش په وخت کښې پیداکولې شوي.اودا خبره به هغوي ته په معاد کښې فرمائیلې شي. لکه چه فرمائي هغوي به د خپل رب په وړاندې صف په صف پیش کولې شي هم په هغه حالت کښې به راځي لکه چه په اول وخت د پیدائش کښې وو. یعنې لکه چه څنګه پیدا کړې شوي وو هم هغه شان به اوچتولې شي او تاسو به د دې خبرې نه انکار کولو او دا د قیامت ورځ مو مستبعد ګڼړله. او ونې فرمائیل چه په دنیاکښې تاسو کوم مال دولت جمع کړې وو هغه به روستو پریږدئ او راځئ به. په صحیح حدیث کښې دي چه نبي اکرم ﷺ فرمائیلي بنیادم وائي چه زما مال زما دې ولې ستامال خو صرف دومره وو چه څومره تاخوړلې، فناکړې، واغوستو او زوړدې کړو او بل له دې ورکړو نو لکه چه باقي دې اوساتلو د دې نه علاوه ستا ټول دولت د نورو خلقو دې. الله ﷻ به د بنیادم نه تپوس اوکړي کوم ځائ دې جمع کړې ایخودې وو نوهغه به وائي اې ربه جمع مې کړو زیات مې کړو او هم هلته مې پریخودو. (¹) بیا فرمائي د دې ورځې د پاره دې څه رالیګلي هغه به ګوري چه هیڅ مې نه دي لیګلي. بیا به فرمائي چه څه شو ستا هغه شفعاء کوم چه تا ماسره شریکان ګڼړل. اوس هغه ولې شفاعت نه کوي. دا هغه ملامت کولې او زوړولې شي څکه چه هغه په دنیاکښې د بتانو عبادت کولو او دابه ئې ګڼړل چه دوي به په دنیاوي ژوندکښې او په اخروي ژوند کښې فائده ورکوي. د قیامت په ورځ خو به ټول تعلقات پریکړې شي او ګمراهي به ختمه شي. د بتانو بادشاهي به لاړه شي او الله ﷻ به انسانانوته خطاب کوي چه ستاسو هغه بتان اوس کوم ځائ دي کوم چه تاسو زما شریکان ګڼړل او هغوي ته به ونیلي شي چه ستاسو هغه

¹) صحیح مسلم کتاب الزهد باب الدنیا سجن للمؤمن وجنة للکافر: ۲۹۵۸، ترمذی: ۲۳۴۲، احمد: ۲٤/٤.

باطل معبودان چرته لاړل. هغوی ستاسو څه امداد کولی شی یا تاسو د هغوی څه امدا کولی شئ. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه تاسو سره اوس هغه شریکان نه ښکاری کوم چه تاسو ما سره شفیع ګنړلې وو او هغوی مو هم حقداران ګنړلې وو چه د دوی عبادت اوکړې شی. بیا فرمائی چه ستاسو خپل مینځ کښې ټول تعلقات ختم شوی دی.

﴿بَيْنَكُمْ﴾ که په رفع سره اولولې یعنی ﴿بَيْنُكُمْ﴾ نو مراد به دا وی چه ستاسو ډلې به ماتې کړې شی اوکه په نصب سره ئې اولولې نو مطلب به دا وی چه په خپل مینځ کښې اسباب او تعلقات به ختم شی او د بتانو نه چه تاسو کوم امیدونه قائم ساتلی وو هغه به ټول خی. لکه چه فرمائیلی شوی دی چه په دغه وخت کښې به دا باطل معبودان د خپلو تابعدارانونه ویزاری ښکاره کړی. عذاب به په خپلو سترګو اووینی اود هغوی ټول په خپل مینځ کښې تعلقات به ختم شی او د هغوی تابعداران به وائی افسوس چه مونږ بیا دنیا ته لیګلی شوې وې. د دې د پاره چه څنګه نن دې معبودانو زمونږ نه ویزاری ښکاره کړه مونږ هم د دوی نه ویزاره شو. ګوره الله ﷻ څنګه د هغوی اعمال په هغوی باندې ارمان او حسرت جوړولوسره پیش کوی. اوس دوی د اُور نه نشی وتلې. او اوفرمائیلې شو چه کله شپیلئ پوک وهلې شی نو په خپل مینځ کښې حسب او نسب هیڅ به هم باقی پاتې نه شی، نه به څوک پلار او نه څوک خوئ او نه به څوک د یو بل عبادت کوی. اوفرمائی چه دا تاسو په دنیاکښې دص یو بل عبادت کولو نو صرف د دنیاوی مینې محبت په خاطر او بیا به د قیامت په ورځ د یوبل انکار کوی او په خپل مینځ کښې به په یوبل لعنت او ملامتیا کوی. ستاسو ځائ به دوزخ وی او څوک به هم ستاسو د امداد د پاره نه اوچتیږی. فرمائی چه خپل شریکان راوبلئ، دوی به ئې راغواړی خود هغوی د طرف نه به هیڅ جواب نه بیامومی. او فرمائی چه په کومه ورځ مونږ هغه ټول راجمع کړو نو مشرکانو ته به وایو...(ترآخره پورې) د دې متعلق په قرآن پاك کښې ډیر بې شمیره آیاتونه دی.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ اللهَ | فَالِقُ | الْحَبِّ | وَالنَّوٰى ط | يُخْرِجُ | الْحَيَّ | مِنَ الْمَيِّتِ | وَمُخْرِجُ | الْمَيِّتِ |
| بیشکه الله | چونکې دې | ددانې | اود زړی | راوباسی | ژوندې | د مړی نه | اوراېستونکې دې | ادمړی |

بیشکه الله ﷻ ددانې او زړی چونکې دې | ....دمړی نه ژوندې راوباسی | ..اودژوندی نه مړئ راوباسی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ الْحَيِّ ط | ذٰلِكُمُ | اللهُ | فَأَنّٰى | تُؤْفَكُونَ ۝ | فَالِقُ |
| دژوندی نه | دغه کارونه کونکې | الله دې | نوکوم طرفته | ګرځولې کیږئ تاسو | چونکې دې |

.............دا ستاسو الله ﷻ دې | نوتاسو (دهغه د عبادت نه) کوم طرفته اړولی شئ | هغه د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْإِصْبَاحِ ج | وَجَعَلَ | الَّيْلَ | سَكَنًا | وَّالشَّمْسَ | وَالْقَمَرَ | حُسْبَانًا ط |
| د صبا | اوجوړه کړې ئې ده | شپه | وخت دآرام | اونمر | اوسپوږمئ | نښې دحساب |

صبا راوېستونکې دې | اوشپه ئې دآرام وخت مقرر کړې دې | اونمراو سپوږمئ ئې حساب مقرر کړې دې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ | تَقْدِيرُ | الْعَزِيزِ | الْعَلِيمِ ۝ | وَهُوَ | الَّذِي | جَعَلَ | لَكُمُ |
| دا | اندازه ده | دغالب | اودعلیم | اوهغه | هغه ذات دې | چې پیدا ئې کړل | ستاسودپاره |

دا دغالب او پوهه الله ﷻ اندازه ده | .............. اوالله ﷻ هغه ذات دې چې ستاسودپاره ئې

| |
|---|
| النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۗ قَدْ |
| ستوري ادپاره ددې چې لاره اومومئ اپه هغې سره اپه تیارو کښې ادوچې اودریاب اپه تحقیق سره |
| ستوري مقرر کړې دي اچې تاسوپرې د اوچې اوسمندر په تیرو کښې لارې معلوم کړئ ا |
| فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝ |
| په تفصیل سره بیا ن کړې دي مونږه ا نښې ادپاره دهغه قوم اچې پوهیږي ا |
| مونږ خپل آیاتونه په تفصیل سره هغه چاته بیانوو چې پوهه لري ا |

قوله تعالى: إِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى ۖ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ ۚ

**دژوندون او د کائناتو دنظام دخالق اومالک یو پیژندګلو:**-الله ﷻ خبر ورکوي چه په زمکه کښې کرلې شوې دانې هغه پورته راولي اوخیرې اودهغې نه مختلف قسم سبزیانې او زرغونې راپیداکوي دکومو رنګونه چه جدا شکلونه جدا خوندونه جدا. اوهم د دې ﴿إِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى﴾ په تفسیر کښې فرماني چه هغه د یو بې څا څیز نه یو څاوالاڅیز یعني بوټی پیدا کوي او د څا والا نه بې څا والا څیز راوباسي. لکه تخم او حبوب بې څا څیز دې او د څا والا د بوټی نه راپیداکیږي. لکه څنګه چه فرمائیلې شوي دي چه د پوهیدلودپاره دا هم یوه نکته ده چه زمکه خو وې اوچه او مړه لیکن باران ورولوسره مونږ بیا دا ژوندنۍ کړو اود دې نه غلې دانې پیدا کوو کومې چه تاسوخورئ. ﴿وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ﴾ دا په ﴿فَالِقُ الْحَبِّ﴾باندې معطوف دې. بیا د دې تفسیراوکړې شو بیا په دې باندې ﴿وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ﴾ آیت عطف کړې شو. دا ټول عبارت په خپل مینځ کښې متقارب دې او د ټولو هم یو مفهوم دې. څوك وائي چه د بې څا اګئي نه د څا والا بچې پیدا کول مراد دي یا د دې عکس څوك مراد اخلي چه د فاجر نه صالح بچې او د صالح سړي نه ولدفاجر مراد دې ځکه چه نیکان په مثال د ژوندو دي او بد په مثال د مړو دي. دې نه علاوه نور ډیر امور مراد کیدې شي.

وې فرمائیل چه ددې ټولو کارونوکونکې یو الله دې چه شریك نه لري نو بیا ته کوم طرف ګرځې راګرځې اود حق نه مخ اړوې، د غیرالله عبادت کوي. هغه د رڼا او تیارې پیداکونکې دې لکه چه د سورت په شروع کښې اوفرمائیلې شو چه هغه تیاره او رڼا جوړه کړې یعني د ورځې د رڼا نه د شپې تیاره راویستې ده. بیا نې د شپې نه ورځ راویسته کوم چه ټوله دنیا روښانه کړه. شپه ختمه شوه تیاره لاړه ورځ اوپرقیده لکه چه فرمائي شپه ورځ پټوي. دغه شان الله ﷻ د څیزونو په متضاد تخلیق باندې د خپل قدرت کامله بیان کوي. ددې د پاره نې اوفرمائیل چه دشپې نه ورځ اوڅیرلو سره راویستونکې دې اودغه شان د دې برعکس. اوشپه نې تیاره او د آرام محل جوړه کړه دې د پاره چه ټول څیزونه په دې کښې سکون آرام او مزې واخلي. لکه چه فرمائي قسم دې د ورځې د رڼا او قسم دې د شپې چه ښه تیاره شي او وئي فرمائیل چه قسم دې د شپې چه تکه توره تیاره جوړه شي او د ورځې قسم دې چه ښه روښانه شي اوفرمائي چه قسم دې د ورځې د رڼا چه ښه خوره شي او د شپې چه ټوله دنیا راګیره کړي. د صهیب رومي ؓ بي بي د هغه د شپې د ډیرې بیدارئي شکایت کولو سره وائي چه الله ﷻ د ټولود پاره شپه د سکون او آرام محل جوړه کړې ده لیکن د صهیب ؓ د پاره نه. ځکه چه صهیب ؓ ته کله جنت رایاد شي نود هغې په شوق کښې ټوله شپه نه اوده کیږي او عبادت کوي. اوچه کله دوزخ وریاد شي نوټوله شپه ترې خوب اوتښتي. ابن ابي حاتم داروایت کړیدې. اوفرمائي چه نمر او سپوږمۍ په خپل رفتار او حساب سره روان دي دهغوی د رفتار په قانون کښې یوه ذره فرق او بدلون نه راځي،

نه اخوا دیخوا کیږي بلکه د هر یو منازل مقرر دي. په یخنئ او ګرمئ کښې په خپلو خپلو اصولو باندې روان دي او هم په دې مرتبه او قاعده باندې شپه ورځ کمیږي زیاتیږي. لکه چه فرمائي الله ﷻ نمر ډیر روښانه پیدا کړې او سپوږمئ ته ئې یخه رڼرا ورکړې اوددې د کمیدو او زیاتیدو منازل ئې مقرر کړي دي. فرمائي چه نه نمر سپوږمئ سره جنګیږي او نه د ده نه وړاندې کیږي چه شپه هم ښکاره شي او نه شپه ورځ راګیروي. هره یوه سیاره په خپل خپل مدار او احاطه کښې په ګردش دی او فرمائي چه نمر سپوږمئ او ټول ستوري د الله ﷻ په امر سره محکوم او مسخر دي. فرمائي چه دا ټول د رب چه عزیز او علیم دی مقرر کړې شوې قانون دې څوك د دې خلاف ورزی نه شی کولې. هیڅ څیز د هغه د علم نه نشی اخوا کیدې که هغه د زمکې او آسمان یوه ذره ولې نه وی.

چرته چه الله ﷻ د شپې او ورځې د پیدا کولو او نمر، سپوږمئ د پیدا کولو ذکر فرمائیلې دې نو کلام هم د عزیز اوعلیم په الفاظو سره ختم کړې دې لکه څنګه چه دلته هم. او فرمائي چه د هغوی د پوهې د پاره دا هم یوه نکته ده چه شپه د کومې نه چه مونږ ورځ راوُباسو هغه د دې د پاره څنګه تیاره اوسیږي او نمر هم د خپل آرام په ځائ کښې حرکت کوی او د خپل مستقر طرف ته ځي دا د رب عزیز او علیم ګرخولې شوی معیار دې. کله چه الله ﷻ په اول سورة حم السجدة کښې ﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ ذکر اوفرمائیلونوارشاد کیږي چه مونږ دا آسمان په چراغونوسره ښائسته کړې دې او هم دغه چراغونه د دنیا د حفاظت کار ورکوی. دا تقدیر د عزیز او علیم دې.[1] اوفرمائي چه هغه ستاسو د پاره ستوري جوړکړي دي دې د پاره چه کله تاسو په بحروبر کښې په تیاروکښې ئې نو د دې د لارې د پیژندګلو کار واخلئ. الله ﷻ فرمائي چه دا ستوري د آسمان ښائست دې او بل دا چه شیطانان په دې سره ویشتلې شي. او دریم دا چه په دې سره په تیاروکښې د بحروبر لار پیژندلې شي. بعضې سلف ونیلی دي چه د نجوم مقصد صرف دغه درې څیزونه دي د دې نه زیات که څوك د دې څه مقصد ګڼړي نو هغه خطا کوی اودالله ﷻ په آیات باندې اضافه کوی. بیائې اوفرمائیل چه مونږ خپل آیاتونه په ډیر تفصیل اووضاحت سره بیان کړی دی.ددې دپاره چه خلق دعقل نه کارواخلی او د حق پیژندګلو اوکړی د باطل نه اجتناب اوکړی.

| |
|---|
| وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَّمُسْتَوْدَعٌ ؕ قَدْ |
| اوهغه ا هغه ذات دې ا چی پیدا ئې کړئ تاسو ا دنفس یونه ا نوځائې دقراردې ا اوځائې دامانت دې ا په تحقیق سره |
| ا الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسوټول ئې دیونفس نه پیداکړی یئ؛ ا نوبیایو د استوګنې ځائې دې او بل د امانت ځائې دې |
| فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّفْقَهُوْنَ ﴿۹۸﴾ وَهُوَ الَّذِيْٓ |
| واضحه بیان کړی دی مونږه ا نښې ا دپاره دهغه قوم ا چی پوهیږی ا اوهغه ا هغه ذات دې ا |
| مونږ پوهه خلقو ته ټولې نښې ښکاره بیان کړې دی اوالله ﷻ هغه ذات دې چې |
| اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ |
| چی نازلې ئې کړې ا دآسمان نه ا اوبهٔ ا نو رااویستل مونږه ا په هغې سره ا بوټې ا دهرڅیزا |
| دآسمان دطرفه ئې اوبه راورولې دی ا اودهغې په ذریعه مونږ هرقسم شینکې؛ رازرغون کړو |

---

[1] حاکم: ۲/۳۱٦، عن ابن عباس ﷺ وسنده حسن.

فَأَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا

نوراا ویستل مونږه|دهغې نه|شین فصل|ا اوباسومونږه| دهغې نه |داني| قط په قط یو بل کښې نختې

اوبه هغې کښې مو شنه ښاخونه پیدا کړل اوبه هغې مو قط په قط داني پیدا کړې

وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَّجَنّٰتٍ مِّنْ أَعْنَابٍ وَّالزَّيْتُونَ

او د کجوروته |دغنچې دهغې نه| وږی | نزدې | او باغونه| دانګورو | اوخونه |

اودکهجورو دغونچې نه زوړندې غونچې............. ........|اود انګوروا و خونه او د انارو باغونه

وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ انْظُرُوْا إِلٰى ثَمَرِهٖ

اوانار |چې یوشان وی په رنګ کښې| اونه وی یوشان په خوند کښې| اوګورئ| میوې دهرې ونې ته

...........چې څه دیوبل پشان دی | او څه دیوبل نه مختلف دی | ددې ونومیوو ته اوګورئ

إِذَا أَثْمَرَ وَيَنْعِهٖ إِنَّ فِي ذٰلِكُمْ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ

کله چې میوه اونیسی | اوپخیدوده ته | بیشکه | په دې څیزونو کښې | نښې دی| دپاره دهغه قوم

چې کله میوه اوکړی او کله پخه شی | بیشکه په دې څیزونو کښې دهغه خلقو دپاره د عبرت نښې دی

يُّؤْمِنُوْنَ

چې ایمان راوړی|

مومنان دی|

قوله تعالی:: وَهُوَ الَّذِيْٓ أَنْشَأَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَّمُسْتَوْدَعٌ

**د الله ﷻ دنور قدرت کامله اوحکمت بالغه بیان:-** الله ﷻ فرمائي چه هم هغه تاسودیو روح یعنی حضرت آدم ؑ نه پیدا کړنی.لکه څنګه چه فرمانیلی اې خلقو د یو الله ﷻ نه اوویریږنی چا چه حضرت آدم ؑ پیدا کړو اود هغه نه ئې د هغه بی بی اوبیا ددې دواړو نه ډیرې ښځې او سړی پیدا کړل. ونی فرمائیل چه بیاتاسو آرام کښې کیګنی او بیا بل ځایٔ ته ورکولې شنی.ددې جملې په معنی کښې دمفسرینو اختلافات دی. حضرت ابن مسعود ؓ او حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه د مستقر نه مراد د مور رحم دې اود مستودع نه مراد د پلار شا ده او بعض وائی چه د مستقر نه مراد دنیا اود مستودع نه مراد آخرت پس دمرګه. سعید بن جبیر ؒ فرمائی چه "استقرار فی الارض" او "ودیعت بعدمرګ" مراد دې. حسن بصری ؒ وائی چه په مرګ باندې کوم عمل بند شو دا مستقر دې اومستودع د آخرت کور دې. لیکن اول قول ډیر صحیح دی.مونږه د پوهه لرونکود پاره خبره څومره واضحه بیانوو. بیانې اوفرمائیل هم هغه دآسمان نه اوبه نازل کړې چه مبارک دی اودبندیګانودپاره رزق راپیداکوی. دمخلوق امداکوی هم په دې سره مونږ مختلف قسم بوټی راټوکوو. لکه چه فرمائیلی هم په اوبو سره هریوڅیز ژوندون بیامومی، هم په دې سره زمیندارہ او شنې ونې راټوکیږی. هم په دغه ونوکښې بیا دانې او میوې پیدا کیږی. مونږ هم د دې د مینځ نه داسې دانې راوباسو چه یو بل سره اینختې وی کومو ته خوشې او غونچې وائی. د خرما ونه کښې غنچه دار ښاخونه وی. قنوان د قنو جمع ده د څه معنی چه تازه خرما غونچې چه نزدې نزدې او یوبل سره اینختې وی. ابن عباس ؓ فرمائی چه د قنوان دانیه نه د خرما وړې وړې ونې د کومو خوشې چه زمکې سره لږیدلې وی مراد دی. اهل حجاز خو دې

ته قنوان وائی خود بنوتمیم قبیله قینیان (په یا سره) وائی اودا د قنو جمع ده لکه چه صنوان د صنو جمع ده. بیائې اوفرمائیل د انګورو باغونه یعنی د انګورو باغونه مونږ په زمکه پیدا کوو. د خرما او انګورو ذکر ئې اوفرمائیلو ځکه چه دغه دواړه د اهل حجاز بهترینې میوې ګڼرلې شی بلکه د ټولې دنیا بهترینې میوې دی. الله ﷻ د خپل احسان ذکر فرمائی چه د دې خرما او انګورو د میوو نه تاسو شراب جوړوئی او د خپل خان د پاره ښه خوراك تیاروئی. دا آیت د شرابو د حرامیدو نه وړاندې دې. فرمائی چه په زمکه کښې مونږ د خرما او انګورو باغونه جوړکړی. فرمائی چه د زیتون او انارو باغونه چه د پاڼړواو شکل په لحاظ سره د یو بل په شان او نزدې دی خود میوې شکل خوند او طبیعت په لحاظ بالکل مختلف دی. بیا ئې اوفرمائیل چه کله پخې شی نودهغې د میوې طرف ته اوګوره یعنی د الله ﷻ په قدرت کښې فکر اوکړه چه څنګه ئې هغه د نیشت نه په وجود کښې راوستل اود میوې جوړیدونه اول دا هم د سوزیدو لرګی وو. بیا هم دغه لرګی خرما انګور او نورې میوې جوړې شوې. لکه چه فرمائی په زمکه باندې ګنړې ونې انګور او د زمیندارئی باغونوکښې چه غنچه دار هم دی او غیر غنچه دارهم، ټولوته یو شان اوبه ملاویږی خو په خوراك کښې یوه ډیره غوره وی د بلې نه. د دې د پاره دلته اوفرمائیلې شو چه اې خلقو په دې کښې د الله ﷻ د کامل قدرت او حکمت دلیلونه دی. په دې هم ایماندار خلق پوهیږی اود الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ تصدیق کوی.

| |
|---|
| وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ |
| اوجوړکړی دی خلقو\| الله لره\| شریکان \|چې پیریان دی\|حال داچې پیدا کړی دی الله پیریان |
| اودوئ الله ﷻ لره پیریان شریکان ګرځولی دی\|حال دادې چې الله خو هغوی هم پیدا کړی دی |
| وَخَرَقُوْا لَهٗ بَنِيْنَ وَبَنٰتٍۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى |
| اوجوړکړل خلقو\|الله لره \| ځامن \| اولونړه \| بغیر دعلم نه \|پاکی ده هغه لره \| اوډیر اوچت دې |
| اودوئ الله ﷻ لره بغیر دپوهې نه ځامن او لونړه جوړکړی دی \| الله ﷻ پاك دې \| او دهغه خبرو د نسبت نه |
| عَمَّا يَصِفُوْنَ ۟ |
| دهغه خبرونه \| چې دوئ بیانوی هغه لره \| |
| اوچت دې کومې چې دوئ بیانوی \| |

**قوله تعالی:**: وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ وَخَرَقُوْا لَهٗ بَنِيْنَ وَبَنٰتٍۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ

**د غیرالله عبادت او بطلان:-** دلته په مشرکانو باندې رد دې چه په عبادت کښې الله ﷻ سره غیر شریك کوی اوشیطان عبادت کوی. که چرې داسې اووئیلې شی چه هغوی خود بتانو عبادت کولو نوبیا د شیطان دعبادت څه مطلب دې؟ نو جواب دا دې چه هغوی د بتانو عبادت هم کولو نو د شیطان په لمسون اودهغه په تابعدارئی سره لکه چه فرمائی هغوی الله ﷻ پریخودواودښځو عبادت ئې اوکړو (یعنی ملائکوته ئې د الله ﷻ لونړه اووئیل اود دې ملائکو د بتانو عبادت ئې کولو) هغوی خو صرف د شیطان سرکش عبادت کوی چا چه وئیلی وو اې الله زه به ستاد بندیګانو یوه لویه حصه خپل خان ته راکاږم، هغوی به ګمراه کوم په هغوی کښې به لرې لرې امیدون پیدا کوم. زه به هغوی ته حکم ورکوم او هغوی به د څناورو غوږونه پریکوی. زه به هغوی ته داسې حکم ورکوم او ستا ورکړې شوې شکلونه به خرابوی او چا چه الله ﷻ پریخودو او شیطان ئې خپل ولی او مشر جوړ کړو او په ډیرکولاو تاوان

کښې پاتې شو.هغه دې مشرکانوسره خانسته وعدې کوی اوهغه په دوی کښې لرې لرې امیدونه راپیداکوی اود هغه ټولې وعدې دهوکه وی. لکه چه فرمائی تاسو شیطان اود هغه اولاد خپلونې؟ تاسو له خو زما لمن نیول پکار وو. اوحضرت ابراهیم ﷺ خپل پلارته ونیلې وو اې پلاره ته د شیطان عبادت کوې شیطان خو د رحمن نافرمان دې. اولکه چه فرمائی اې بنیادمه ما تاسوته نه وو خودلی چه دشیطان عبادت مه کونې هغه خوستاسو ښکاره دښمن دې.تاسو هم زماعبادت کونې اوهم دغه نیغه لار ده.

ملائکې به د قیامت په ورځ وائی ته پاك نې ته زمونږ ولی نې دې مشرکانو به مونږ ته د الله ﷻ لونړه ونیل او زمونږ عبادت به نې کولو خوزمونږ دوی سره هیڅ تعلق نشته دوی خو په اصل کښې د شیطان عبادت کولو په دې وجه په مذکوره آیت کښې اوفرمائیل چه دې مشرکانو شیطانان د الله ﷻ شریك جوړکړی وو سره د دې چه دوی هم یو الله ﷻ پیدا کړې دی. نو هغوی د الله ﷻ سره د هغه د مخلوق څنګه عبادت کوی لکه چه ابراهیم ﷺ فرمائیلی وو آیا تاسو د هغه څیزونو عبادت کونې کوم چه تاسو پخپله په خپلو لاسونو جوړکړی. تاسو او ستاسو جوړکړی شوی څیزونه ټول هم الله ﷻ پیدا کړی دی نودې د پاره پکار دی چه تاسو ځان د یو الله ﷻ چه شریك نه لری تعلق اوساتئی. بیائې اوفرمائیل چه هغوی په ناپوهئی کښې د الله ﷻ د پاره لونړه او ځامن جوړکړل. دلته د الله ﷻ په اوصافوکښې د ګمراهانو په ګمراهئی خبردارې ورکوی. هغوی د الله ﷻ د پاره ځوئ ګرځوی لکه چه یهود وائی عزیر ﷺ د الله ﷻ ځوئ دې (نعوذبالله) سره د دې چه هغه د الله ﷻ پیغمبر دې او نصاری حضرت عیسی ﷺ ته د الله ﷻ ځوئ وائی او د مکې مشرکانو په ملائکوته د الله ﷻ لونړه ونیلې. دا ظالمان چه د کومې خبرې قائل دی الله ﷻ د دې نه ډیر اوچت دې. ﴿خَرَقُوْا﴾ معنی ده هغوی د خپل زړه نه جوړکړل. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه هغوی اټکل اولګولو. عوفی رحمه الله وائی چه هغوی اوګرځول. مجاهد رحمه الله وائی هغوی دروغ خبره جوړه کړه. مطلب دا چه هغوی څوك د عبادت شریك ګنړی خو الله ﷻ چه واحد دې هغوی بغیر د چا د شرکت نه پیداکړل هغوی د حقیقت د واقفیت نه بغیر داسې وائی د الله ﷻ د عظمت او لوینې نه جاهل دی کوم چه الله ﷻ دې د هغه ځامن لونړه او ښځه څنګه کیدې شی. د دې د پاره اوفرمائیلې شو هغه پاك دې اود دوی د فضول او بیهوده خبرونه اوچت دې.

بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ اَنّٰى
اپیدا کونکې دې | آسمانونو | اودزمکې | څنګه
| ............دآسمانونو اوزمکې پیداکونکې دې | ............څنګه

يَكُوْنُ لَهٗ وَلَدٌ وَّلَمْ تَكُنْ لَّهٗ صَاحِبَةٌ ؕ وَخَلَقَ
کیدې شی | هغه لره | ځوئې | حال دا چی نشته|هغه لره |ملګرې دژوند (ښځه) |اوپیدا کړې دې هغه
دهغه دپاره ځوئې کیدې شی |حالانکه دهغه بی بی نشته ............ | اوهغه هر څیز پیدا

كُلَّ شَيْءٍ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا
هرڅیز |اوهغه | په هر څیز باندې| خبردار دې |دغه الله| رب دې ستاسو | نشته لائق دعبادت | مګر
کړې دې |اوپه هرڅه پوهه دې |همدا الله ﷻ دې چې ستاسوپالونکې دې |دهغه نه بغیربل څوک معبود نشته

قوله تعالى: بَدِيعُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ أَنّٰى يَكُونُ لَهٗ وَلَدٌ وَّلَمْ تَكُنْ لَّهٗ صَاحِبَةٌ ۖ

**د الله ﷻ د وحدانيت بيان**:- هغه د زمكې او آسمان پيدا كونكې او خالق دې د هغه په وړاندې د زمكې او آسمان مثال نه وو. بدعت ته بدعت په دې وجه وائي چه په سلف كښې د هغې هيڅ مثال نه وي خلق يو عمل د خپل طرف نه شروع كړي او دا پخپله د ثواب كار ګڼړي. د هغه څوئ څنګه كيدې شي د هغه خو ښځه نشته او څوئ خو د دوو متناسبوڅيزونو نه پيدا كيږي او د الله ﷻ خو مناسب او متشابه بوڅيز هم نشته. لكه چه فرمائي هغه وائي چه رحمن يو خپل څوئ جوړ كړې دې دا ډيره دروغ خبره ده هغه هرڅيز پيدا كړې دې نو بيا د هغه مخلوق د هغه ښځه څنګه جوړيدې شي، د هغه څوك مثال نشته بيا د هغه څوئ د هغه مثال څنګه جوړيدې شي د الله ﷻ ذات د دې نه پاك دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكُمُ اللّٰهُ | رَبُّكُمْ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | |
| دغه الله | رب دې ستاسو | نشته لائق دعبادت | مګر | |
| همدا الله ﷻ دې چې ستاسوپالونكې دې ادهغه نه بغيربل څوك معبودنشته | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هُوَ | خَالِقُ | كُلِّ شَيْءٍ | فَاعْبُدُوْهُ | وَهُوَ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | وَّكِيْلٌ |
| هغه دې | پيدا كونكې | دهر څيز | نو عبادت كوئ دهغه | اوهغه | په هر څيز باندې | نګهبان دې |
| دهرڅيزپيداكونكې دې | ...............دهغه عبادت كوئ | اوهغه دهرڅيزكارساز دې | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا تُدْرِكُهُ | الْاَبْصَارُ | وَهُوَ | يُدْرِكُ | الْاَبْصَارَ | وَهُوَ | اللَّطِيْفُ |
| نشي كتلې هغه | ستركې | اوهغه | وينى | ستركې | اوهغه | باريك ليدونكې دې |
| اوهغه (د مخلوق) په ستركونه ليدلې كيږي | اوهغه ټولې ستركې وينى | اوهغه ډير بارک بين | | | | |

| |
|---|
| الْخَبِيْرُ |
| خبردار دې |
| خبردار دې |

قوله تعالى: لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ ۖ وَهُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ ۖ

**د الله ﷻ د رويت بيان**:- هم دغه الله ﷻ ستاسورب دې چا چه هرڅيز پيداكړې دې د هغه نه سوا بل هيڅ څوك د عبادت لائق نشته.هغه دهرڅيز خالق دې نو تاسو هم د هغه عبادت كوئ او د هغه د وحدانيت اقرار اوكړئ. د هغه نه څوك څوئ شته نه پلار نه بى بى او نه د هغه څوك عديل او مثال شته. هغه په هرڅيز باندې حفيظ او رقيب دې. د هرڅيز مدبر دې هم هغه رزق وركوي شپه ورځ هم هغه جوړ كړې دى. هغه ستركې نه شي ليدلې. په دې مسئله كښې د آئمه سلف ډير اقوال دى يو خو دا چه ستركې به هغه په آخرت كښې ليدلې شي ولې په دنياكښې نه شي ليدلې. د حضور اكرم ﷺ د احاديثونه دا په تواترسره ثابت دى لكه چه د حضرت عائشه صديقه رضى الله عنها نه روايت دې چه چا دا ګمان اوكړو چه نبى كريم ﷺ الله ﷻ ليدلې وو نو هغه دروغژن دې. بيا هغې هم دا آيت اولوستلو.(١) د ابن عباس ﷺ نه د دې خلاف روايت دې. هغه د الله ﷻ رويت مطلق ساتلې اود هغې نه ئې دا هم مراد دې چه

(١)صحيح بخارى كتاب التفسير سورة النجم :٤٨٥٥، صحيح مسلم: ١٧٦، صحيح مسلم كتاب الايمان باب معنى قول الله عزجل( ولقد راه نزلة اخرى): ١٧٦.

حضور ﷺ د زړه په سترګو دوه ځل الله ﷻ لیدلی دی او دا مسئله به د سورة النجم په اول کښې ان شاء الله بیانولې شي. ابن عیینه رحمه الله فرمائی چه په دنیا کښې سترګې هغه نه شي لیدلې او نورو وئیلی دی چه د دې مطلب دا دې چه په مړو سترګو هغه نه شي لیدلې. د دې نه تخصیص کیږی د هغه رویت چه مؤمنانوته به د آخرت په کور کښې حاصلیږی. معتزلو د خپلې پوهې د اقتضاء په بنیاد د دې کوم مطلب ګڼرلې هغه دا دې چه نه په دنیا کښې الله ﷻ لیدلې شي نه په آخرت کښې. دا عقیده د اهل سنت والجماعت نه خلاف ده کومه چه د نادانئی په بنیاد باندې ده. ځکه چه د الله ﷻ د قول نه داخبره ثابتیږی. یعنی الله ﷻ فرمانیلی دی چه د ایماندارانو مخونه به په هغه روځ خوشحاله وی او د خپل رب طرف ته به هغوی خپل نظرونه اوچت کړی وی. اود کافرانو متعلق الله ﷻ فرمائی چه هغوی به د خپل رب د کتونه په پرده کښې وی یعنی هغوی به رب نه شي لیدلې. د دې نه په دې خبره باندې دلالت کیږی چه دمؤمنانو د پاره به د رب په رویت کښې حجاب نه وی اود متواتر احادیثونه دا هم ثابت دی چه مؤمنان به د آخرت په کورکښې الله ﷻ د جنت په روضاتوکښې ګوری. الله ﷻ دې په خپل فضل سره دا خبره رانصیب کړی، آمین.

اودا هم وئیلی شوی دی چه مراد دا دې چه عقل به پوهه نه شي حاصلولې اوداسې خیال ډیر عجیبه دې اود آیت د ظاهر نه خلاف دې. د کوم مطلب چه دا شو چه د ادراك معنی رویت دې والله اعلم. د نورو خیال دا دې چه رویت ثابت منلو سره د ادراك د انکار خلاف نه دې ځکه چه ادراك رویت سره خاص دې اود خاص په نفی سره د عام نفی نه کیږی. اوس چه د کوم ادراك دلته نفی شوې ده دا ادراك د کوم قسم دې. په دې کښې ډیر اقوال دی لکه معرفت حقیقت او حقیقت پیژندلو والا سوا د الله ﷻ نه څوك نه شي کیدلې سره د دې چه مؤمن ته به رویت کیږی خو حقیقت یو بل څیز دې. سپوږمئی هر څوك وینی خود دې حقیقت دهغې ذات او کنه ته د چا رسیدل نه شي کیدلې. نو الله ﷻ خو بې مثل دی. ابن علیه رحمه الله وائی چه نه لیدل مخصوص دی په دنیاکښې یعنی په دنیا کښې په سترګو سره نه شي لیدلې. بعض وائی چه ادراك د رویت نه خاص تر دې ځکه چه ادراك احاطه کولو ته وائی اود عدم احاطه نه عدم رویت نه لازمیږی. لکه چه د ټول علم احاطه نه کیدو باندې دا نه لازم کیږی چه مطلق علم حاصل نه دې. انسان ته د علم د احاطې نه حاصلیدل د دې آیت نه ثابت دی. ﴿ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا ﴾او په صحیح مسلم کښې دی چه اې الله! زه ستا د ثناء احاطه نه شم کولې نود دې (۱) خو دا مطلب نه شي کیدې چه مطلق ثناء نه شم کولې. د ابن عباس ﷺ قول دې چه د چا نظر د الله ﷻ احاطه نه شي کولې. عکرمه رحمه الله ته اووئیلې شو ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ﴾ نو وئی وئیل ولې ته آسمان نه شې لیدلې؟ وئیل او لیدلې شم نو هغه اووئیل چه پوره آسمان په یو نظر سره لیدلې شې. لهذا دا چه د الله ﷻ شان د دې نه اوچت دې چه په هغه باندې نظر پریوزی.الله ﷻ اوفرمائیل چه د مؤمنانو مخونه به داسې خوشحاله وی او هغوی به خپل رب ته ګوری خو دهغه دعظمت په وجه به نظر هغه محیط کولې نه شي. د دې آیت په تفسیرکښې حدیث وارد دې که چرې ټول انسانان او پیریان شیطانان او ملاتکې د کوم وخت نه چه پیدا کړې شوی دی ټول یو صف جوړکړی نو بیا به هم د هغه احاطه اونه کړې شي.(۲) دا حدیث ډیر غریب دې او په صحاح سته کښې چرته هم نشته.

ابن عباس ﷺ وائی چه نبی کریم ﷺ خپل رب لیدلې وو چه کله اووئیلې شو چه آیا الله ﷻ نه دی فرمائیلی ﴿ لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ ﴾ نو وئی فرمائیل چه هغوی ﷺ خو هم د ا لله تعالی یو نور دې خود دې آیت

(۱) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب مایقال فی الرکوع والسجود: ۴۸۶، ابوداود:۸۷۹، ترمذی: ۳۴۹۳، ابن حبان: ۱۹۳۲.

(۲) الدرالمنثور: ۶۸/۳، ابن ابی حاتم.

مطلب دا نه دې كه چرې هغه په خپل ټول نور سره تجلي اوكړي نو سترګې هغه نه شي ليدلې (١) او بعضي دا مطلب بيانوي چه هيڅ څيز د هغه په وړاندې قائم نه شي پاتې كيدې. الله ﷻ نه اوده كيږي او نه اوده كيدل دهغه د پاره سزاوار دى هغه ميزان قائم كړي دې د ورځې اعمال د شپې راتلونه وړاندې او د شپې اعمال د ورځې راتلونه وړاندې د هغه مخې ته پيش كولې شى د هغه حجاب نور دې يا نار دې كه هغه اوچته كړې شي نو د هغه تجلي به ټوله دنيا اوسوزوي.(٢) په وړاندينو كتابونو كښې دي چه الله ﷻ موسى ﷺ ته فرمائيلي وو اې موسى ! يوژوندې زما تجلي كتوباندې ژوندې نه شي پاتې كيدې او هيڅ څيز بغيرد فنا نه نشي پاتې كيدې. الله ﷻ فرمائي چه كله هغه په غرباندې تجلي اوكړه نو هغه خراب او اوسوزيدو او حضرت موسى ﷺ بې هوشه پريوتلو او چه كله په هوش كښې راغلو نووئې وئيل ﴿ سُبْحٰنَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ ادراك خاص د قيامت په ورځ د رويت نفي نه كوي هغه به په مؤمنانو بنديګانو باندې خپله تجلي كوي دهغه تجلي اوعظمت به دهغه د خوښې په حيثيت باندې وي. نظر د هغه ټول ادراك نه شي كولې په دې وجه ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها په آخرت كښې د رويت قائله ده او په دنيا كښې د رويت نفي كوي. د هغوى احتجاج هم د دې آيت نه دې نو چه د كومې خبرې نفي ادراك اوكړي نود هغې معنى هم د رويت عظمت اود جلال ده نو هغه خبره څنګه ممكن ده چه د يو بشر يا فرښتې نه به اوشي. بيا ارشاد دې چه ﴿ وَهُوَيُدْرِكُ الْاَبْصَارَ ﴾ يعنى هغه د خلقو د ابصار ادراك او احاطه كولې شي څكه چه هم هغه د انسان نظر پيدا كړې دې نو بيا به هغه څنګه احاطه نه شي كولې. ارشاد دې چه آيا هغه به خپل پيدا كړې شوى څيز باندې نه پوهيږي هغه خو لطيف او خبير دې او كله د لفظ ابصار نه مبصرين مراد وي يعنى مبصرين هغه نه شي ليدلې هغه لطيف دې يعنى د يو خبرې په استخراج ډير باريك دې اود هر څيز د خاى او مقام نه خبر دې. والله اعلم. لكه چه حضرت لقمان خپل څوئ ته د نصيحت په وخت كښې وائى ﴿ يٰبُنَيَّ اِنَّهَآ اِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ ﴾ اې زما بچيه! كه يوه بدي يا نيكي د ورې د دانې هومره هم برابر وى كه هغه په كانړو كښې وى په آسمانونو كښې وى يا په زمكه كښې الله ﷻ به هغه راوړي. الله ﷻ ډير باريك بين او خبردار دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَدْ | جَآءَكُمْ | بَصَآئِرُ | مِنْ رَّبِّكُمْ | | |
| په تحقيق سره | راغلي دي تاسو ته | ارنړاكاني دپوهې | دطرفه درب ستاسو نه | | |
| ......... تاسو ته دخپل رب دطرفنه دليلونه راغلي دي ......... | | | | | |
| فَمَنْ | اَبْصَرَ | فَلِنَفْسِهٖ | وَمَنْ | عَمِيَ | فَعَلَيْهَا |
| نوچاچي | اوغړولي سترګې | نوفائدې ئې دپاره دخپل خان ده | اوچاچې | ايندي كړې | نونقصان ئې په هغه دي |
| نوڅوك ئې چې اووينې | نوفائده ئې خان دپاره ده | اوڅوك چي خان ړوند كړي | نو نقصان ئې خان دپاره دي | | |
| وَمَآ اَنَا | عَلَيْكُمْ | بِحَفِيْظٍ | وَكَذٰلِكَ | نُصَرِّفُ | الْاٰيٰتِ |
| اونه يم زه | ستاسو | ساتونكې | اوهم دغه شان | مونږبارباربيانوو | آيتونه |
| اوزه په تاسونګهبان (مقررشوي) نه يم | ............ اومونږ خپل آياتونه دغه شان بيانوو | | | | |

(١) ترمذى كتاب تفسير القران باب ومن سورة النجم : ٣٢٧٩، وهو حسن حاكم :٣١٦/٢، السنة لابن ابى عاصم : ٤٣٧.

(٢) صحيح مسلم كتاب الايمان باب فى قوله عليه السلام ان الله لاينام : ١٧٩ مسندالطيالسى: ٤٩١.

| وَلِيَقُولُوا | دَرَسْتَ | وَلِنُبَيِّنَهُ |
|---|---|---|
| اوددې دپاره چې اووائې داخلق| دبل چانه ونيلي دي تا |اودپاره ددې چې مونږبيان کړوحقيقت| | | |
| اوددې دپاره چې دوی اووائې چې تا(چرته دچانه) لوستلی دی | ............او څوک چې | | |
| لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿١٠٥﴾ | | |
| هغه قوم ته|چې پوهه لری| | | |
| پوهه دی هغوی ته حقيقت ښکاره کړو| | | |

**قوله تعالي:** قَدْ جَآءَكُم بَصَآئِرُ مِن رَّبِّكُمْ ۖ فَمَنْ أَبْصَرَ فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَنْ عَمِىَ فَعَلَيْهَا ۚ

**مومن، کافر اوروښانه دلائل:-** بصائر يعنی ښبي ښباني کومې چه قرآن کښې موجود دی او چه رسول الله ﷺ پيش کړی دی، نو چه چا د بصيرت نه کار واخستو نو د هغه ذات ته فائده اورسيده. لکه چه اوفرمائيلي شو چه څوك هدايت حاصل کړی هغه به د خپل ذات د پاره وی او چه څوك دهوکه شو نود هغې نقصان به هم په هغه وی. د دې دپاره اوفرمائيلې شو چه څوك ړوندجوړيږی نود هغې نقصان به هم هغه ته رسی. لکه چه فرمائی سترګې ړندې نه وی بلکه زړه ړوند وی او زه څه په تاسو باندې حفاظت کونکې رقيب ياساتندونکې خونه يم بلکه زه خوصرف يومبلغ يم هدايت خوالله ﷻ کوی.څوك چه غواړی نو ګمراه ئې کړی او څوك چه غواړی په نيغه لار ئې کړی او دغه شان مونږ خپل آياتونه په تفصيل سره بيانوو. لکه څنګه چه په دې سورت کښې د توحيدبيان پيش کړې شوې دې او په دې وجه هم چه کافر او مشرك وائی اې محمد ﷺ! دا خبرې تا د وړاندينواهل کتابونه نقل کړی دی او هم د هغوی نه دې زده کړی دی او وائې. ابن عباس ﷺ فرمائی چه لفظ "درست" په معنی د تلوت. د هغوی دا خبره د مخاصمت او مجادلت په محل کښې ده لکه چه د دې کافرانو د کذب او عناد الله ﷻ داسې خبر ورکړې دې چه کافر وائی چه دا خو جوړکړې شوی دروغ دی او نورو هم د دې کتاب قرآن په جوړولوکښې امداد ورکړې دې نودا د ډير کذب او ظلم خبره ده. هغوی وائی چه دا خو د اولنو خلقو ملفوظات او مکتوبات دی کوم چه هغوی هم ليکلی دی اود دې کافرانو د زعم او کذب باره کښې فرمائی چه هغه فکر اوکړو، سوچ ئې اوکړو او اندازه ئې اولګوله. بيا ئې سوچ اوکړو مخ ئې تريو کړو شکل ئې وران کړو غرور ئې اوکړو او ونی ونيل چه دا خو يو لوستلې شوې جادو دې د الله ﷻ نه د انسان کمال دې. او ونی فرمائيل د داسې خلقو د پاره وضاحت سره خبره کوو څوك چه حق اوپيژنی او د هغې تابعداری کوی، د باطل نه ډډه کوی. د کافرانو په ګمراهئی او مؤمنانو په تصديق کښې د الله ﷻحکمت او مصلحت دې لکه چه فرمائی غلط تعبير کونکی د قرآن نه ګمراه کيږی هم او هدايت هم اخلی.ونی فرمائيل چه د چاپه زړه کښې بيماری اودچا زړونه کاڼړی دی شيطان دهغوی په زړه کښې خبره اچوی اوداخيز د هغوی د پاره د الله ﷻ ازمينبت جوړيږی او الله ﷻ ايماندارانوته نيغه لاز ښائی. اوفرمائی مونږ په دوزخ باندې فرښتې مقرر کړی دی اود هغوی د (۱۹) مقرر کړې شوې شمير د کافرانود پاره يوه فتنه ده خو هم په دې سره د ايماندارانو او اهل کتابو ايمان زياتيږی اهل کتاب او مؤمنان په دې کښې شك نه کوی (ځکه چه اهل کتاب هم په خپلوکتابونوکښې هم د دغه شمير ذکرمومی) ليکن کافر او بيمار زړه والا خلق وائی چه د دې خبرې د پيش کولو الله ﷻ ضرورت څه وو دغه شان ډير خلق ګمراه کيږی او ډير هدايت بياموملی. د الله ﷻ شکر د هغه نه بغيرڅوك پيژنی. او ونی فرمائيل مونږ قرآن د مؤمنانود پاره شفا او رحمت جوړکړو او نازل مو کړو او هم دغه څېز د

ظالمانود پاره د خسارې او تاوان دې. ونې فرمانیل چه اووایه دا قران د مؤمنانودپاره هدایت او شفا ده اود کافرانو په غوږونوکښې پردې لګیدلی دی او هغوی رانده دی. قرآن د متقیانود پاره هدایت کیدل او هدایت او ضلالت د هغې په منشاء پاندې موقوف کیدل، په دې موضوع ډیر آیاتونه دی. په دې وجه نې دلته اوفرمانیل چه مونږ آیاتونه څنګه اړولو راړولو سره بیانوو خو کافران هم دغه وانی چه د چرته نه نې لیکلی راوړی. ابن عباس ﷠ ﴿ درست﴾ په معنی ﴿قراءت وتعلمت﴾ بیان کړې دې او حسن بصری ﷫ په معنی د تقاومت وانی. عمرو بن دینار ﷫ وانی چه ابن زبیر ﷠ ونیل چه ماشومان دلته "دارست" لولی او دې لفظ "درست قراءت" ابن مسعود ﷠ "درست تصب سین او دتاء په وقف سره دې اود دې معنی ده تقاومت. مطلب دا شو چه کوم څیز ته مونږ ته اوروې هم د مخکینو په ذریعه د دې نه واقف یو. د ابن مسعود ﷠ په قراءت کښې درس دې یعنی محمد ﷺ دا زده کړې دې. دا اختلاف عجیبه دې. ابی بن کعب ﷠ به ونیل چه حضور ﷺ ماته داسې اورولې وو ﴿وَلِيَقُولُوا دَرَسْتَ﴾ یعنې د سین په جزم او تاء په زبر سره.[1]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِن رَّبِّكَ | إِلَيْكَ | أُوحِيَ | مَآ | ٱتَّبِعْ | |
| دطرفه درب ستانه | تاته | چې وحی شوی ده | دهغې | تابعداری کوه | |
| ته د هغه وحی تابعداری کوه کومه چې تاته ستا رب کړې ده | | | | | |
| وَلَوْ | عَنِ ٱلْمُشْرِكِينَ ۝ | وَأَعْرِضْ | هُوَ | إِلَّا | لَآ إِلَٰهَ |
| اوکه چرې | دمشرکانونه | اومخ اوګرځوه | هغه دې | مګر | نشته لائق دعبادت |
| اوکه چرې | ........................... | اود مشرکانو هیڅ پرواه مه کوه | ........ | | دهغه نه بغیر بل معبود نشته |
| حَفِيظًا | عَلَيْهِمْ | وَمَا جَعَلْنَٰكَ | مَآ أَشْرَكُوا | | شَآءَ ٱللَّهُ |
| څوکیدار ساتونکې | په دوئ | اونهٔ نې مقرر کړې مونږته | نوهٔ به وؤ کړې شرک دې خلقو | | غوښتلې الله |
| الله ﷻ غوښتلې نو دوئ به شرک نه وو کړې او مونږ ته په دوئ محافظ نه نې مقرر کړې | | | | | |
| | بِوَكِيلٍ ۝ | عَلَيْهِم | أَنتَ | وَمَآ | |
| | وکیل | په دوئ باندې | تهٔ | اونهٔ نې | |
| اونه ته د دوئ ذمه دار یې | | | | | |

**قوله تعالی:** ﴿ٱتَّبِعْ مَآ أُوحِيَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ﴾

**دَ الله ﷻ حکم دَ نبی ﷺ او امت دَ پاره:-** الله ﷻ رسول کریم ﷺ او د هغه امت ته حکم ورکوی چه تاسو هم د وحی اقتداء کونې او هم په دې عمل کونې ځکه چه هم دغه حق دی او په دې کښې هیڅ ګډوډوالې نشته اود دې مشرکانونه ډډه کونې، دوی ته معافی کونې، د دوی تکلیف رسول برداشت کونې ترهغه وخته پورې چه الله ﷻ په دې دښمنانو باندې فتحه او کامیابی درکړی او پوهه شئ چه هم د دوی په ګمراهنې کښې د الله ﷻ حکمت دې. که الله ﷻ غوښتل نوټوله دنیا به ئې په هدایت باندې کړې وه او ټول به په هدایت باندې راجمع شوی وو او شرک کونکو به هڅو شرک نه کولو. په دې کښې د الله

---

[1] حاکم:۲/۲۳۸

ﷻ خاص حکمت دي او چه هغه څه کوي نو په هغې باندې اعتراض نه شي کولې او دا خبره ده چه هغه په د تپولونه تپوس کوي. مونږ ته د دوی ذمه وار نه ئې جوړ کړې د دوی په زړه کښې چه څه راخي کوي دي، ته په دوی باندې ساتندونکي نه ئې، نه ته دوی ته رزق ورکوې، ستا کارخو صرف تبلیغ کول دی. لکه چه فرمائي دوی ته نصیحت کوه ته صرف نصیحت او خیګړه کونکې یئې ته د هغوی د پاره ربانی فوجدار نه ئې او وئې فرمائیل چه تبلیغ کول ستا کار او تپوس کول زمونږ کار دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تَسُبُّوا | الَّذِيْنَ | يَدْعُوْنَ | | | |
| اومهٔ کوئی کنځل | هغو ته | چې رابلې ئې دا خلق | | | |
| او (ائې مسلمانانو) هغې معبودانو ته کنځل مه کوئ | چې دوی ئې | | | | |
| مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | فَيَسُبُّوا | اللّٰهَ | عَدْوًا | بِغَيْرِ عِلْمٍ ط | كَذٰلِكَ |
| ماسوا د الله نه | نو کنځل به اوکړي | الله ته | په دشمنئ کښې | په ناپوهتیا سره | دغه شان |
| دالله ﷻ نه سوا عبادت کوي | خکه چې دوی به په دښمنئ کښې دناپوهئ په وجه الله ﷻ ته کنځل اوکړي داشان | | | | |
| زَيَّنَّا | لِكُلِّ اُمَّةٍ | عَمَلَهُمْ ص | ثُمَّ | اِلٰى رَبِّهِمْ | مَّرْجِعُهُمْ |
| ښائیسته کړې دې مونږه | هرامت ته | عمل دهغوئ | بیا | رب دهغوئ ته | واپس تلل دی دهغوئ |
| مونږ هر یو امت ته خپل خپل عمل ښائسته کړې دې | بیا به داټول خپل رب ته پیش کیږي | | | | |
| فَيُنَبِّئُهُمْ | بِمَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ ⑩ | | |
| نو خبر به کړي هغوئ | په هغه کارونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | | |
| نو هغه به ورته خبر ورکړي چې دوئ څه کارونه کړي دی | | | | | |

**قوله تعالى:: وَلَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَيَسُبُّوا اللّٰهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ ط**

**باطلو معبودانو ته دکنځلو ممانعت:**-الله ﷻ رسول الله ﷺ او د هغه امت منع کوي چه د مشرکانو خدایانو ته کنځلې مه کوئي اوبدرد مه وائې سره د دې چه په کښې یو ذره مصلحت خو شته ولې مفاسد ئې ډیر دي یعنی په جواب کښې به هغوی هم د مسلمانانو الله ﷻ ته کنځل کوي. مشرکانو به وئیل ای محمد ﷺ! زمونږ بتانو ته د کنځلونه تاله منع کیدل پکار دی ګنی نو مونږ به هم ستا د رب بې عزتی کوو. نو الله ﷻ منع کړل. د قتاده رحمه الله نه روایت دې چه مسلمانانو به د کافرانو بتانوته کنځل کول نو کافرانو به هم د حقیقت نه خان خبرولو نه بغیر په دښمنئ کښې الله ﷻ ته هم بدرد وئیل[1] کله چه ابوطالب زنکدن وو نو قریشو مشوره اوکړه چه ابوطالب له خو او هغه ته وایو چه خپل وراره منع کړه مونږ ته دا د شرم خبره معلومیږي چه د ابوطالب دمرګ نه پس به محمد ﷺ څوك قتل کړي.عرب به وائي چه د ابوطالب په ژوند کښې خو هیڅ اونه شو اوس چه کله هغه مړ شو نو بزدلانو هغه قتل کړو. نو ابوجهل ابوسفیان عمرو بن العاص او نور ډیر خلق د جرګې په شکل راغلل او مطلب نومې سړې د اجازت د پاره راوڵیګلو.ابوطالب راوغوښتل نو هغوی اووئیل اې ابوطالب! ته زمونږ مشر او سردار ئې، محمد ﷺ مونږ ته تکلیف رسولې دې او زمونږ خدایانوته هم مونږ غواړو چه ته هغه راوغواړې او منع کړې چه هغه دې زمونږ د خدایانو نوم هم نه اخلی نومونږ به هم هغه اودهغه رب پریږدو.نو هغه نبی اکرم

---

[1] تفسیر القرآن لعبدالرزاق: ۱/ ۲۰۸.

ﷺ راوغوښتو اوونی وئیل چه دا هم ستا قوم دې او هم ستا د تره اولاد دې.رسول الله ﷺ اوفرمائیل تره خبره څه ده او دا خلق څه غواړی؟ هغوی وئیل چه ته زمونږ نه او زمونږ د خدایانو نه لرې شه نو مونږ به هم ستانه او ستا د الله ﷻ نه لاس اخوا کړو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه زه تاسو ته یوه خبره ښایم که تاسو هغه خپله کړه نو تاسو به د عربو او عجمو مالکان شئ او د ټولو ملکونونه به ستاسو ملګ ته خراج او دولت راځی.نوابوجهل وئیل چه ستابه داسې یوه خبره نه بلکه لس خبرې هم قبولې کړو. اوښایه هغه څه دی؟ نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه اووایئ ﴿لااله الاالله﴾ نو هغوی انکار اوکړو. شکل ئې جوړ کړو. ابوطالب وئیل وراره د دې نه علاوه بله خبره اوښایه ستا قوم خو په دې کلمه باندې نور غصه کیږی نو هغوی ﷺ اوفرمائیل چه تره زما څه حق دې چه د دې نه بله خبره اوکړم. که هغوی نمر هم راوړی او زما په لاس ئې کیږدی نو زه د دې نه علاوه بل څه نه شم وئیلې. مطلب ئې دا وو چه دوی ناامیده کړم نوهغوی د غصې نه ډك شو او وئې وئیل زمونږه خدایانوته بدرد وئیلو نه منع شه ګنې مونږ به هم تاته او ستا خدائې ته کنځل کوو. په دې وجه فرمائی چه هغوی د دښمنئی په سبب بغیر د څه ګنړلو الله ﷻ ته بدرد وئیل.

دا هغه صورت دې چه چرته مصلحت هم هیرولې شی چه د دې په مقابله کښې به فساد نور زیات شی. رسول الله ﷺ فرمائیلی چه څوك مور پلار ته کنځل کوی هغه ډیر ملعون دې. تپوس اوکړې شو چه یارسول الله ﷺ! خپل مور پلار ته به څوك څنګه کنځل اوکړی؟ وئې فرمائیل چه دې د هغه مور پلار ته کنځل کوی نو داسې ده لکه چه هم هغه اولنی سړی خپل مور پلار ته کنځل اوکړه.([1]) د الله ﷻ ارشاد دې چه مونږ هرامت ته هم د هغه عمل د هغه په نظرکښې ښه ګرځوو لکه څنګه چه دا قوم د بتانو مینه خوښوی نو تیرشوی امتونه هم په ګمراهئی وو هم داخپل عمل به ئې ښه ګنړلو. الله ﷻ چه څه غواړی اختیاروی نو په دې کښې لوئی حکمت وی. بیا دهغه خلقو واپسی هم د الله ﷻ طرف ته وی. دغه وخت به هغه ته دخپلوعقیدو ښه والی او خرابوالې معلوم شی.که عمل نیك وی نو نیکه بدله اوکه خراب وئ نو خرابه بدله به ملاویږی.

| |
|---|
| وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ |
| اوقسمونه خوری هغوئ \| په الله باندې \| په سختو قسمونو خپلو سره \| چی خامخا که \| راغله دوئ ته \| څه نښه \| نو خامخابه ایمان راوړی دوئ |
| اودوئ په الله ﷻ باندې غټ غټ قسمونه خوړل \| که دوئ ته دالله ﷻ طرفه نښه راشی \| نو دوئ به پرې ایمان راوړی |
| بِهَا ط قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ وَمَا يُشْعِرُكُمْ لا اَنَّهَآ |
| په هغې \| اورته اووایه \| بیشکه نښې \| دالله سره دی \| اوڅه پوهه کړئ تاسوا \| چی بیشکه دا نښې |
| (انې پیغمبره) دوی ته اووایه چې ټولې نښې الله ﷻ سره دی \| اوتاسوڅنګه په دې پوهه کړو |
| اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝١٠٩ وَنُقَلِّبُ اَفْـِٕدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ |
| کله چی \| راهم شی \| نهٔ راوړی ایمان دوئ \| اومونږه اړوو \| زړونه ددوئ \| اوسترګې ددوئ |
| که دغه نښه راشی نوبیاهم دوئ ایمان نه راوړی \| اومونږ به ددوئ زړونه او سترګې د حق نه بدلې کړو |

[1]) احمد: ۳۱۷/۱، بلفظ آخر نحو المعنى وسنده حسن ، صحيح بخارى كتاب الادب باب لا يسب الرجل والديه : ۵۹۷۳، صحيح مسلم: ۹۰، ابوداود: ۵۱۴۱،

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَمَا | لَمْ يُؤْمِنُوْا | بِهٖٓ اَوَّلَ | مَرَّةٍ | وَّنَذَرُهُمْ |
| لکه څنګه چې | ایمان رانوړو دوئ | په دې کتاب باندې | په اول ځل | او پرېږدو مونږ دوئ |
| لکه څنګه چې دوئ په دې ښکاره نښو په اول ځل ایمان نه دې راوړئ | او په خپله سرکشۍ | | | |
| فِيْ طُغْيَانِهِمْ | يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ ع | | | |
| په سرکشۍ د دوئ کښې | چې حیران وي | | | |
| به نې حیران پرېږدو | | | | |

**قوله تعالی:** وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا

**دَ کافرانودَ معجزوسوال اودَ الله ﷻ جواب:-** مشرکان د الله ﷻ قسمونه خوړلو سره بیان کوی که چرې هغوی ته څه معجزه اودخرق عادت څه څیزاوخودلې شی نو هغوی به ایمان راوړی. نو اې نبی ﷺ! اووایه دوی ته چه معجزه خو د الله ﷻ سره ده که هغه اوغواړی نو معجزه به ښکاره کړی اوکه اوغواړی نو نه ښکاره کوی. قریشو حضور ﷺ ته اووئیل اې محمد ﷺ! تامونږ ته خودلی دی موسی علیه السلام خپله همسا په کاڼړی باندې وهلې وه نو دولس چینې ترې روانې شوې وې اوعیسی علیه السلام به مړی ژوندی کول او ثمود علیه السلام ته هم د اوښې معجزه ملاوشوې وه. که چرې ته هم داسې څه معجزه پیش کړې نو مونږ به هم ستا تصدیق اوکړو.حضور ﷺ اوفرمائیل چه تاسو له کومه معجزه پکارده؟ وئی وئیل چه دا د صفاغر زمونږ د پاره د سروزرو جوړکړه حضور ﷺ اوفرمائیل چه که داسې اوشی نو تاسو به د توحید تصدیق اوکړئی؟ کافرانو وئیل او مونږ ټول به په تا باندې ایمان راوړو. حضور ﷺ پاڅیدو او د الله ﷻ نه ئې دعا اوغوښتله. جبرائیل علیه السلام راغلو او وئی وئیل که ته غواړې نو د صفاغربه سره زر شی خوکه په دې باندې هم دوی ایمان راوړلو نو ډیر زر به په دوی عذاب نازل شی اوکه ستا خوښه وی نو دا خلق به بغیر د عذاب نه داسې پریخودلې شی. د دې د پاره چه روستو په دوی کښې څوك ایمان هم راوړی او توبه اوکړی. نو الله ﷻ اوفرمائیل چه هغه قسمونو خوړلو سره بیان کوی(الی اخر) خو خبره داسې ده چه دوی کښې څه خلق نادان دی. او وئی فرمائیل چه مونږ د معجزونه صرف دا خبره منع کوی چه د دوی وړاندینوهم د معجزونه کتلو سره انکار کړې وو او دوی به هم انکار کوی نو زر به په عذاب کښې راګیرکړې شی اوچه کوم مهلت ورته حاصل دې هغه به هم لاړ شی، تاته څه پته ده چه دوی به معجزه کتلو سره هم ایمان نه راوړی.

وئیلې شوی دی چه ﴿يُشْعِرُكُمْ﴾ په ذریعه مشرکان مخاطب کړې شوی دی لکه چه الله ﷻ دوی ته فرمائی چه آیا دا د ایمان والا خبره کومه چه قسمونوخوړولو سره تاسو کوئې تاسو په حقیقت کښې رښتیا ګڼړئی(اَنَّهَآ اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ۝)یو قراءت کښې ﴿اِنَّ﴾ په زیر سره دې په دې بناء چې معجزه کتلونه پس نفی دایمان خبر شروع کیږی اوجمله شروع کیږی.نو(انها) نه وئیلې کیږی.اوبعضو ﴿تؤمنون﴾ یعنی (ت) سره دا لفظ لوستلې دې او وئیلی دی چه قول ﴿وَمَا يُشْعِرُكُمْ﴾ مخاطبین مؤمنان دی یعنی اې مؤمنانو! تاسو ته پته ده چه د دې نښو ښکار کیدونه پس به هم دوی ایمان نه راوړی. په دې صورت کښې ﴿انها﴾ د (الف) په زیر سره هم راتلې شی اود (الف) په زبر سره هم. یعنی ﴿يُشْعِرُكُمْ﴾ معمول شو اویدې صورت کښې د﴿لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ ﴿لا﴾صله واقعه به وی لکه چه فرمائی﴿مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ﴾ دلته هم ﴿ان لا﴾ ﴿ان﴾ صله واقع شوی ده.اود الله ﷻ قول دې ﴿ وَحَرٰمٌ عَلٰى قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَآ اَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ۝﴾ یعنی چه کله ما تاته حکم درکړې وو نو څه څیز ته د سجدې نه منع کړې. د دې آیت تقدیر داسې دې اې

مؤمنانو! تاسو سره د دې خبرې څه ثبوت دې چه دوی به خپله غوښتلې شوې نښانې او معجزه لیدلو باندې ضرور ایمان راوړې. او بعضو دا هم وئیلې دی چه ﴿انها﴾ په معنی د﴿لعلها﴾ دې بلکه د ابی بن کعب ﷺ په قراءت کښې ﴿انها﴾ په بدله کښې هم ﴿لعلها﴾.د اهل عربو نه اوریدلی شوی دی﴿اذهب الی السوق انك تشتری لنا شیئا﴾ یعنی بازار ته لاړ شه ته به زما د پاره هلته څه واخلې په معنی﴿لعلك تشتری﴾ یعنی شاید چې اخلې به . داشان په دې دعوی باندې دعربو اشعار هم پیش کړې شوی دی . د الله ﷻقول دې چې: ﴿وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ د دوی د انکار او کفر په وجه د دوی زړونه او د دوی سترګې مونږ اړولې دی. اوس دوی په هیڅ خبره باندې کلکیدونکی نه دی. په ایمان کښې او په دوی کښې فرق پریوتلو. دوی به د دنیا او جهان نښانې اووینی خو ایمان به نه راوړی. لکه څنګه چه په اول ځل د دوی او د ایمان په مینځ حائل شوی وو. ابن عباس ﷺ فرمائی چه الله ﷻ خبر ورکړې دې د دوی د وینا کولو نه اول به دوی څه وینا کونکی دی او د عمل کولو نه اول ئې خبرداری ورکړو چه دوی به څه عمل اوکړی. ونی فرمائیل چه د یو خبردار سړی په شان به تاته څوك پخه خبره نه شی کولې. انسان به وائی چه افسوس کوم زیاتې او ګناه ما کړې ده تردې پورې فرمائیلی شوی دی چه هغه به وائی افسوس چه مونږ ته د دنیاوی ژوند یوه بله موقع راکړې شی نومونږ به د نیکانو نه وو. الله ﷻ فرمائی که چرې دوی بیا هم دنیا ته واپس کړې شی نو بیا به هم په هدایت باندې نه ځی. اوفرمائی چه که دنیا ته واپس کړې شوئې نو د منهیاتو به خامخا مرتکب کیږئې. دوی دروغ وائی چه نیکان به شو. بیا دنیا ته په واپس کولو به هم هغوی د وړاندې ژوند په شان ایمان نه راوړی. څکه چه د هغه وخت په شان به دې وخت کښې هم مونږ د دوی زړونه او د دوی سترګې منقلب کړواوبیا به هم په دوی کښې اوپه متوقع هدایت په مینځ کښې پرده پاتې وی اومونږبه دوی په سرکشو کښې ګرځیدونکی پریږدو.

﴿الحمدلله﴾ د اوومې سپارې تفسیر